# تسهیل الهدایة

## پښتو شرح د هدایه

مع

المرآة الصافیه لتخریج احادیث الهدایة

الاقوال الراجحة في مسائل الهدایة

حل لغات الهدایة

تالیف

مولانا پروفیسر شاه فیصل
فاضل امداد العلوم

فیصل کتب خانه
محله جنگی پېښور

نوئ تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن

# تسهیل الهدایه

## په قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کې شرح

# هدایه

تالیف :مولانا شا ه فیصل فاضل وفا ق المدارس وامداد العلوم

جلد: ⑧

## خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهاریٔ او یوسفزیٔ پښتو کېدون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤ دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربیٔ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنگی پېښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

**دکتاب نوم**: تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف**: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاویدو پتې**:

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷

علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴

مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹

مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰

مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶

مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰

مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵

مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱

مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵

راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳

مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹

صداقت کتب خانه قندهار افغانستان ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱

قدرت کتب خانه کابل افغانستان ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳

عبدالمجید کتب خانه جلال اباد ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹

اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰

مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳

مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸

**د قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو**

هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی موږ د قوسینو په مینځ کښې قندهاری ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دې اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارۍ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزۍ پښتو مثلا مونږ او موږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالبِ علم په دې کتاب کښې د یوسفزۍ او قندهارۍ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورۍ**



## باب التصرف فی الرهن والجنایة علیه وجنایته علی غیره

ژباړه:- (دا) باب په رهن کي د تصرف، او رهن باندې د جنایت، او د رهن د ځان نه علاوه باندې د جنایت (په بیان کي دې.

**تشریح:-** په دې باب کي رهن باندې د تصرف احکام او رهن باندې د جنایت احکام، او که مرهون په چا باندې جنایت اوکړی.نو د هغې احکام بیانولې شی.چونکه په یو شیٔ باندې د تصرف او جنایت احکام ددې شیٔ د ثبوت نه روسته جاری کیږی.په دې وجه ړومبې د رهن د ثبوت بحث اوکړې شو.او ددې نه روسته په رهن باندې د تصرف او جنایت وغیره احکام بیانولې شی.چه ترتیب وضعی د ترتیب طبعی مطابق شی.

### د راهن مرهونه څیز د مرتهن د اجازت نه بغیر د خرخولو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا بَاعَ الرَّاهِنُ) الرَّهْنَ بِغَيْرِإِذْنِ الْمُرْتَهِنِ او کله چې راهن د مرتهن د اجازت نه بغیر، مرهون خرڅ کړو فَالْبَيْعُ مَوْقُوفٌ نو بیع موقوف ده لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغَيْرِ مرهون سره د غیر دحق متعلق کیدو په وجه وَهُوَالْمُرْتَهِنُ او هغه مرتهن دې فَيَتَوَقَّفُ عَلَى إِجَازَتِهِ،نو بیع به دده په اجازت باندې موقوف وی.وَإِنْ كَانَ الرَّاهِنُ يَتَصَرَّفُ فِي مِلْكِهِ ا ګرچه راهن پخپل ملك کي تصرف کوی كَمَنْ أَوْصَى بِجَمِيعِ مَالِهِ تَقِفُ عَلَى إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ لکه هغه کس چا چې پخپل پوره مال کي وصیت کړې وی فِيمَازَادَعَلَى الثُّلُثِ لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ.د ثلث (دریمې برخې ) نه زیات کي به د وراثانو اجازت باندې موقوف وی.مال سره د وارثانو د حق متعلق کیدو په وجه (فَإِنْ أَجَازَالْمُرْتَهِنُ جَازَ) نو که مرتهن اجازت ورکړو.نو بیع جائز ده لِأَنَّ التَّوَقُّفَ لِحَقِّهِ ځکه چې توقف دده د حق په وجه دې وَقَدْرَضِيَ بِسُقُوطِهِ او هغه پخپل حق ساقطولو باندې راضی شو

**تشریح:-** اصول دا دې.که یوڅیز سره د یوکس حق متعلق شی.نو ترکومه پورې چې هغه کس اجازت ورنکړی. دچا چې دې شیٔ سره حق متعلق شوې دې.تر هغه پورې به د مالك تصرف په دې کي نه نافذ کیږی.لکه مثلاً یو کس د خپل پوره مال وصیت اوکړو.نو چونکه دې مال سره د وارثانو حق متعلق دې.په دې وجه د دریمې برخې نه زیات کي به د وصیت د نفاذ لپاره د وارثانو اجازت پکار وی.دغه ډول مرهون سره د مرتهن حق متعلق دې.نو ترکومه پورې چې مرتهن اجازت ورنکړی.د راهن بیع به نه نافذ کیږی.بلکه موقوف به وی.اګرچه راهن پخپل ملك کي تصرف کوی.او کله چې مرتهن اجازت ورکړی.نو بیع به صحیح وی.ځکه چې توقف د مرتهن د حق په وجه وو.اومرتهن خپل حق پورته کړو.نو بیع به جائز وی.

### که راهن د مرتهن دین اداکړونو د بیع حکم

(وَإِنْ قَضَاهُ الرَّاهِنُ دَيْنَهُ جَازَأَيْضًا) او که راهن د مرتهن قرضه ادا کړله نو بیا هم بیع جائز ده لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ النُّفُوذِ ځکه چې کوم شیٔ د بیع د نفاذ نه مانع وو.هغه ختم شو وَالْمُقْتَضِي مَوْجُودٌ او مقتضی موجود ده وَهُوَالتَّصَرُّفُ الصَّادِرُمِنَ الْأَهْلِ فِي الْمَحَلِّ او دا په محل کي د اهل د اړخه تصرف دې.

**حل اللغة:** ① النفوذ: نافذ کیدل،په عمل کي راتګ ﴿

**تشریح:-** د مرتهن حق مرهون سره د پور په وجه متعلق دې.که راهن د مرتهن قرضه ادا کړله.نو مانع ختم شو. په دې وجه به بیع جائز وی.

❓که څوك دا ووایي چې صرف د مانع په زوال سره خو مسئله نه حل کیږی.ترکومه پورې چې مقتضی موجود نه وی؟ نوموږ وایو چې مقتضی د مخکي نه موجود ده.ځکه چې مرهون محل د بیع دې.ځکه چې دا د راهن مملوك دې.او راهن د عاقل بالغ کیدو په وجه د بیع اهل دې.نو هرکله چې مانع ختم شو.نو مقتضی به خپل کار (عمل) کوی.

## که مرتهن د بیع اجازت ورکړي نو د مرتهن د حق مسئله

(وَإِذَا نَفَذَ الْبَيْعُ بِإِجَازَةِ الْمُرْتَهِنِ او هرکله چې بیع د مرتهن په اجازت سره نافذ شوه يَنْتَقِلُ حَقُّهُ إِلَى بَدَلِهِ نو د مرتهن حق به د مرهون بدل اړخ ته منتقل کیږي هُوَ الصَّحِيحُ..هم دا صحیح لِأَنَّ حَقَّهُ تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ ځکه چې د مرتهن حق مالیت سره متعلق دي. وَالْبَدَلُ لَهُ حُكْمُ الْمُبْدَلِ او بدل لپاره د مبدل حکم دي لِفَصَارَ كَالْعَبْدِ الْمَدْيُونِ الْمَأْذُونِ إِذَا بِيعَ بِرِضَا الْغُرَمَاءِ نو داسې شوه.لکه چې قرضدار غلام کله د قرضخواهانو رضامندئ سره خرڅ کړې شي يَنْتَقِلُ حَقُّهُمْ إِلَى الْبَدَلِ نو ددوی حق حق بدل اړخ ته منتقل کیږي لِأَنَّهُمْ رَضُوا بِالْانْتِقَالِ ځکه چې دوی ( قرضخواهان) منتقل کاوه سره راضی کیږي دُونَ السُّقُوطِ رَأْسًا په بالکل ساقطولو سره نه راضی کیږي فَكَذَا هَذَا نو هم دغه ډول دا ( هم ) دي.

**تشریح:-** د مرتهن په اجازت سره چې هرکله بیع نافذ شوه.نو د مرهون په ځائې به ثمن ایخودې شي.ځکه چې د مرتهن حق په عین رهن کې د مالیت په اعتبار سره متعلق وو.او لکه څنګه چې مبدل ( مرهون) مال وو.دغه ډول بدل ( ثمن) هم مال دې. لنډیز د کلام داچه د مرتهن حق به بالکل نه ساقطیږي.بلکه دا به منتقل کولې شی.او ددې مثال بالکل داسې دې.لکه قرضدار غلام مال د قرضخواهانو په اجازت سره خرڅ کړو.نو بیع به جائز وی.نو د قرضخواهانو حق به ساقط نه وی.بلکه منتقل به وی.یعنی مخکې د هغوی حق غلام سره متعلق وو.اوس به د هغه ثمن سره متعلق وی.دغه ډول دا هم دې.

## که راهن دین ادا نکړو او مرتهن د بیع اجازت ورنکړو، نو د بیع حکم

وَإِنْ لَمْ يُجِزِ الْمُرْتَهِنُ الْبَيْعَ او که مرتهن اجازت ورنکړو وَفَسَخَهُ او دا ئې فسخ کړو انْفَسَخَ فِي رِوَايَةٍ نو د یو روایت مطابق به فسخ وی لَوِ افْتَكَّ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ تردې که راهن رهن خلاص کړو لَا سَبِيلَ لِلْمُشْتَرِي عَلَيْهِ نو رهن باندې مشتری لپاره هیڅ لاره نشته لِأَنَّ الْحَقَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ ځکه هغه حق کوم چې مرتهن لپاره ثابت دې بِمَنْزِلَةِ الْمِلْكِ هغه د ملك په درجه کې دې فَصَارَ كَالْمَالِكِ نو مرتهن د مالك پشان شو لَهُ يُجِيزُ وَلَهُ أَنْ يَفْسَخَ ده لره حق شته.چه اجازت ورکړي.او حق شته.چه فسخ کړي

**حل اللغة*** ① **افتك**: خلاص کړو،آزاد کړو﴾

**تشریح:-** که راهن د مرتهن پور اداکړې نه وی.او نه مرتهن د بیع اجازت ورکړې وی.نو بیع به نه نافذ کیږي...کما مر.. اوس سوال دا دې.که مرتهن دا بیع فسخ کړله.نو بیع به فسخ کیږي اوکه نه؟ نو د ابن سماعه رحمه الله روایت دا دې چه بیع به فسخ کیږي.او هرکله چې بیع فسخ شوه.نو اوس د مشتری هیڅ حق په بیع کې پاتې نشو.نو که ددې نه روسته راهن د مرتهن پور ادا کړي.او مرهون د هغه نه راخلاص کړي.نو اوس به مشتری ته دا حق نه وی.چه د راهن نه مبیع واخلی.ځکه چې بیع د مخکې نه ختمه شوې ده. په دې کې دوهم روایت دا دې چې او چې بیع نه فسخ کیږي.او دوهم روایت زیات صحیح دې.لکه څنګه چې په راروان متن کې راځی.

①پاته پاتې شوه دا خبره چې د مرتهن په فسخ کاوه سره بیع ولې فسخ کیږي.حالانکه مرتهن ددې مالك نه دې؟ نو ددې وضاحت دا دې اګرچه هغه مالك نه دې.خو د مالك پشان دې.او مالك ته حق وی.چه عقد فسخ کړي.یا ددې اجازت ورکړي.

②که څوك دا ووایې چې مرتهن مرتهن د مالك په مرتبه کې څنګه دې؟ نو موږ وایو ځکه دې چې په ده کې د مالکیت علامات موجود دی.لکه د راهن تصرف ممنوع کیدل، اوکه راهن ددې سره وطی اوکړي.نو د عقد ضامن کیدل، وغیره.

## د مرتهن په فسخ کولو سره بیع فسخ کیږي اوکه نه؟

(وَفِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ لَا يَنْفَسِخُ بِفَسْخِهِ) او په دوو روایتونو کې د اصح روایت مطابق به د مرتهن فسخ کاوه سره



بیع نه فسخ کیږي لِأَنَّهُ لَوْ ثَبَتَ حَقُّ الْفَسْخِ لَهُ ځکه که مرتهن لپاره حق د فسخ ثابت شی إِنَّمَا يَثْبُتُ ضَرُورَةَ صِيَانَةِ حَقِّهِ نو د خپل حق د ساتنه اړتیا سره به ثابت وی وَحَقُّهُ فِي الْحَبْسِ لَا يَبْطُلُ بِانْعِقَادِ هَذَا الْعَقْدِ او ددې عقد منعقد کیدو سره به د مرتهن د حبس ( او خان سره د ساتلو) حق نه باطلیږي فَبَقِيَ مَوْقُوفًا نو عقد موقوف پاته پاتې شو فَإِنْ شَاءَ الْمُشْتَرِي صَبَرَ نو که مشتری اوغواړي.صبر دې اوکړي. حَتَّى يَفْتَكَّ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ تردې چې راهن رهن راخلاص کړي إِذِ الْعَجْزُ عَلَى شَرَفِ الزَّوَالِ ځکه چې عاجزی د زوال په غاړه باندې دې وَإِنْ شَاءَ رَفَعَ الْأَمْرَ إِلَى الْقَاضِي اوکه اوغواړي.نو دا معامله دې قاضی اړخ ته اوړاندې کړي وَلِلْقَاضِي أَنْ يَفْسَخَ لِفَوَاتِ الْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيمِ او قاضی ته حق شته.چه بیع فسخ کړي.په سپارلو باندې د قدرت فوت کیدو په وجه وَوِلَايَةُ الْفَسْخِ إِلَى الْقَاضِي او د فسخ ولایت قاضی اړخ ته دې لَا إِلَيْهِ مرتهن اړخ ته نه دې وَصَارَ كَمَا إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ الْمُشْتَرَى قَبْلَ الْقَبْضِ او داسې شوه.لکه اخستې شوې غلام، کله چې دا د قبضې نه مخکې اوتختی فَإِنَّهُ يَتَخَيَّرُ الْمُشْتَرِي نو مشتری اختیار مند وی لِمَا ذَكَرْنَا كَذَلِكَ هَذَا.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکرکړې دې.دغه ډول دا( هم اختیار مند دې)

**حل اللغة*** ① **صیانة**: حفاظت② **فوات**: فوت کیدل﴾

**تشریح:-** دا دوهم روایت دې.کوم چې اصح دې.چه د مرتهن په فسخ کاوه سره به بیع نه فسخ کیږي.بلکه موقوف به وی.نو اوس مشتری ته اختیار دې.که غواړي.صبر دې اوکړي.او کله چې راهن د مرتهن پور ادا کړي.او مرهون راخلاص کړي.هغه وخت دې مبیع د راهن نه واخلی.او که غواړي.نو دا معامله دې د قاضی په عدالت کې پیش کړي.چه هغه دا عقد فسخ کړي.ځکه چې راهن ته د سپارلو قدرت نشته .بهرحال د فسخ کاوه ولایت قاضی ته دې.مرتهن ته نه دې.

①که څوك دا ووایې چې د بیع منعقد کاوه کې د مرتهن ضرر دې؟ نو موږ وایو دا نه منوځکه چې ده ته د حبس حق حاصل وو.چه دا به اوس هم پخپل حال پاته وی.او ځکه چې مرهون مرتهن سره محبوس دې.بیع موقوف منلې شوې ده.او مشتری ته اختیار ورکړې شوې دې.

که څوك دا پوښتنه اوکړي چې راهن ته د صبر اختیار ولې ورکړې شوې دې؟ نو موږ وایو چونکه اوس راهن د مبیع سپارلو نه عاجز دې.خو روستو به پور ادا کاوه سره په دې باندې قدرت حاصلیږي.نو ترکومه پورې چې مشتری صبر اوکړي.هم دې ته مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی. «اذا العجز علی شرف الزوال»او ددې لپاره مثال هم شته مثلاً یو غلام واخستلو.خو غلام د قبضې نه مخکې اوتختیدو.نو دلته کې هم مشتری ته اختیار دې.که غواړي.صبر دې اوکړي.تردې چې غلام واپس راشی.اوکه غواړي.نو ددې مقدمه دې د قاضی عدالت ته یوسی.هغه به دا فسخ کړي.

## د مرتهن د اجازت نه بغیر د راهن، مرهون خرڅولو حکم

وَلَوْ بَاعَهُ الرَّاهِنُ مِنْ رَجُلٍ او که مرهون راهن د یوسړي په لاس خرڅ کړو ثُمَّ بَاعَهُ بَيْعًا ثَانِيًا مِنْ غَيْرِهِ بیا ئې دا دوباره د بل سړي په لاس خرڅ کړو قَبْلَ أَنْ يُجِيزَهُ الْمُرْتَهِنُ د مرتهن د اجازت نه مخکې ، فَالثَّانِي مَوْقُوفٌ أَيْضًا عَلَى إِجَازَتِهِ نو دویمه بیع به د مرتهن په اجازت باندې موقوف وی لِأَنَّ الْأَوَّلَ لَمْ يَنْفُذْ وَالْمَوْقُوفُ لَا يَمْنَعُ تَوَقُّفَ الثَّانِي ځکه چې ړومبئ بیع نه ده نافذ شوې.او موقوف د بل کس توقف نه منع کوی فَلَوْ أَجَازَ الْمُرْتَهِنُ الْبَيْعَ الثَّانِي نو که مرتهن د دویمې بیع اجازت ورکړو جَازَ الثَّانِي نو دویمه بیع جائز ده

**تشریح:-** دمرتهن د اجازت نه بغیر که راهن،مرهون خرڅ کړي.نو بیع به موقوف وی... کما مر.. او که اوسه پورې مرتهن اجازت نه وو ورکړې.چه راهن د بل سړي په لاس بیا مرهون خرڅ کړو.نو اوس به څه حکم وی؟ نو وې فرمائیل.چه لکه څنګه ړومبئ بیع موقوف وه.دغه ډول به دویمه بیع هم موقوف وی.اوس که مرتهن د ړومبئ بیع اجازت ورکړي.نو ړومبئ بیع به نافذ وی.او که د دویمې بیع اجازت ورکړي.نو بیع ثانی به نافذه وی.

که څوك دا پوښتنه اوکړي چې مرغيناني رحمه الله صرف دا ذکر کړی دی. که د دویمې بیع اجازت ئې ورکړو. نو هم دا به جائز وی؟ نو موږ خواب ورکوو چې آوخو کله چې دویمه جائز شوه. نو که د ړومبۍ اجازت ورکړي. نوهغه به په درجه اولی جائز وی.

البته دلته یو بل اعتراض پاتې کیږي هغه دا چې بیا مرغيناني رحمه الله دویمه ولې خاص کړله؟ نو خواب دا دې چې د دویمې بیع او د هغه نورو عقدونو په منځ کې د توپیر کاوه په وجه، دکوم ذکر چې اوس راروان دې. واورئ.

## د بیع نه روسته اجاره یا هبه کولو نه روستو د مرتهن په اجازت سره د بیع حکم

(وَلَوْبَاعَ الرَّاهِنُ ثُمَّ أَجَّرَ او که راهن بیع اوکړله. بیا ئې اجاره باندې ورکړو أَوْوَهَبَ یا ئې هبه کړو أَوْرَهَنَ مِنْ غَيْرِهِ یا ئې دده نه علاوه د بل په لاس کې رهن ورکړو وَأَجَازَ الْمُرْتَهِنُ هَذِهِ الْعُقُودَ او مرتهن ددې عقدونو اجازت ورکړو جَازَ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ نو ړومبۍ بیع جائز ده.

**تشریح:-** یعنی که د بیع نه روسته ئې دوباره بیع اوکړله. نو مرتهن چې د کومې بیع اجازت ورکړي. هم هغه به جائز وی. او که د بیع نه روسته ئې اجاره باندې ورکړي. یا ئې د بیع نه روسته چاته هبه کړي. یا ئې د بیع نه روسته د بل یوکس په لاس رهن کیږدي. او اوس مرتهن د اجارې یا هبه یا د رهن اجازت ورکړو. بیا به هم دا درې واړه عقدونه جائز نه وی. بلکه ددې نه مخکې چې کومه بیع شوې وه. صرف هغه به جائز وی.

که څوك دا اعتراض اوکړي چې دلته هم دویمه بیع نشته نو څنګه دې ته ړومبۍ بیع ولې وئیلې شوې ده. نو موږ وایو دې ته ړومبۍ بیع ځکه وئیلی شوی دی. چه پاته عقدونه د بیع نه روسته دی. نو بیع ددې نه مخکې شوه.

که څوك پوښتنه اوکړي چې ددې څه وجه ده. چه د دوو بیعو په صورت کې خو هغه بیع جائز کیږي. د کوم چې مرتهن اجازت ورکړي. او په نورو عقدونو کې ددې عقدونو د اجازت باوجود هم ړومبۍ بیع نافذ کیږي؟ نو موږ وایو په راروان عبارت کې مرغيناني رحمه الله ددې خواب ورکوی.

## په دواړو صورتونو کښې وجه د فرق

وَالْفَرْقُ أَنَّ الْمُرْتَهِنَ ذُوحَظٍّ مِنَ الْبَيْعِ الثَّانِي او توپیر دا دې. چه مرتهن برخه دار دې. د دویمې بیع نه لِأَنَّهُ يَتَعَلَّقُ حَقُّهُ بِبَدَلِهِ ځکه چې دده حق د مرهون ثمن سره متعلق دې فَيَصِحُّ تَعْيِينُهُ لِتَعَلُّقِ فَائِدَتِهِ نو د مرتهن تعین صحیح دې. د مرتهن د فائدې د متعلق کیدو په وجه. دویمې سره أَمَّا لَا حَقَّ لَهُ فِي هَذِهِ الْعُقُودِ بهرحال په دې دریو عقدونو کې دده هیڅ حق نشته لِأَنَّهُ لَا بَدَلَ فِي الْهِبَةِ وَالرَّهْنِ ځکه چې هبه او رهن کې هیڅ بدل نشته وَالَّذِي فِي الْإِجَارَةِ بَدَلُ الْمَنْفَعَةِ لَا بَدَلُ الْعَيْنِ او کوم بدل چې اجاره کې دې. هغه د منفعت بدل دې. د عین بدل نه دې وَحَقُّهُ فِي مَالِيَّةِ الْعَيْنِ لَا فِي الْمَنْفَعَةِ او د مرتهن حق عین مالیت کې دې. منفعت کې نه دې فَكَانَتْ إِجَازَتُهُ إِسْقَاطًا لِحَقِّهِ نو د مرتهن اجازت د خپل حق اسقاط دې فَزَالَ الْمَانِعُ نو مانع زائل شو فَنَفَذَ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو بیع اول به نافذ کیږي. نو توپیر واضح شو.

**تشریح:-** مرغيناني رحمه الله په دې دواړو عبارتونو کې ددې دواړو صورتونو په منځ کې توپیر واضح کړې دې. ددې حاصل دا دې. چه په ړومبی صورت کې کله چې دواړه بیع وی. نو د مرتهن حق بیع سره متعلق دې. ځکه چې دده په بدل کې حق دې. چه اوس به بدل (ثمن) د مرهون په ځائې رهن ایخودې شی. او کیدای شی. چه د مرتهن منفعت دویمې بیع کې وی. چه ددې ثمن زیات وی. نو د خپل منفعت په لحاظ دې ته د تعین حق ورکړې شوې دې. او په دوهم صورت کې عقود ثلاثه (اجاره، هبه، رهن) کې د مرتهن هیڅ حق نشته. ځکه چې رهن او هبه کې خو هیڅ بدل نشته. او اجاره کې اجرت بدل دې. خو دا د منفعت بدل دې. د عین مالیت بدل نه دې. او د مرتهن حق د عین مالیت سره متعلق دې. منفعت سره متعلق نه دې. لنډیز د کلام دا چې د مرتهن په عقود ثلاثه کې هیڅ حق نشته. نو دده اجازت به د تعین کار نه ورکوی. ځکه چې د سره دده حق نشته. بلکه دده اجازت خو صرف د حق ساقطولو کار ورکوی. یعنی مرتهن د عین مرهون نه خپل حق واخستلو. نو د راهن تصرف نافذ کیدو نه چې کوم شئ مانع



وو. هغه مانع ختم شو. اوس به موږ پخپله طریقه باندې غور کوو. چه کوم عقد جائز اوګرځوو. نو موږ بیع اختیار کړله. او دا مو جائز اوګرځوله. ولې؟ ځکه چې دا مقدم ده. او ځکه چې دا لازم ده. او ځکه چې دې کې د مرتهن منفعت دې. نو توپیر واضح شو.

## د راهن په آزادولو سره مرهون غلام آزادیږي او که نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَلَوْأَعْتَقَ الرَّاهِنُ عَبْدَ الرَّهْنِ او که راهن د رهن غلام آزاد کړو نَفَذَ عِتْقُهُ نو دده عتق (آزادول) به نافذ کیږي وَفِي بَعْضِ أَقْوَالِ الشَّافِعِي لَا يَنْفُذُ او د امام شافعی رحمه الله په بعضو اقوالو کې به نه نافذ کیږي إِذَا كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا کله چې آزادونکې غریب وی لِأَنَّ فِي تَنْفِيذِهِ إِبْطَالَ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ ځکه چې د عتق (آزادولو) په نافذ کاوه کې د مرتهن حق باطلول دی فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا د بیع مشابه شو بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ مُوسِرًا په خلاف ددې صورت کله چې معتِق (آزادونکې) توانګر وی حَيْثُ يَنْفُذُ عَلَى بَعْضِ أَقْوَالِهِ په دې حیثیت سره چې ددوی په بعضو اقوالو باندې عتق نافذ کیږي لِأَنَّهُ لَا يَبْطُلُ حَقُّهُ مَعْنًى بِالتَّضْمِينِ ځکه چې د ضمان واجبولو په وجه معنی د مرتهن حق نه باطلیږي وَبِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْمُسْتَأْجِرِ او په خلاف د مستاجر د آزادولو لِأَنَّ الْإِجَارَةَ تَبْقَى مُدَّتُهَا ځکه چې اجاره به خپلې مودې پورې پاته پاتې وی. إِذِ الْحُرُّ يَقْبَلُهَا ځکه چې آزاد اجاره قبلوی أَمَّا مَا لَا يَقْبَلُ الرَّهْنَ بهرحال آزاد رهن نه قبلوی فَلَا يَبْقَى نو رهن به پاته نه پاتې کیږي.

**حل اللغة:** ① **موسر:** مالدار ② **التضمین:** ضامن کول ③ **اعتاق:** آزادول

**تشریح:-** که راهن مرهون غلام خرڅ کړي. نو دده بیع موقوف وی... کما مر... خو که راهن مرهون غلام آزاد کړي. نو څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. چه دې کې اختلاف دې. د احنافو رحمهم الله مسلك دا دې. چه آزادونکې که توانګر وی. او که غریب وی. نافذ کیږي. او غلام آزادیږي. دویمه خبره دا ده. چه دواړو صورتونو کې به جلا جلا احکام جاری کیږي. خو عتق صحیح دې.

د امام شافعی رحمه الله په دې کې درې اقواله دی ① که آزادونکې توانګر دې. نو عتق به نافذ وی. او که غریب وی. نو نه به نافذ کیږي. هم دا مرغيناني رحمه الله بیان کړې دې. ② دوهم قول ئې د احنافو موافق دې چې مطلق عتق نافذ کیږي. ③ مطلق عتق نه نافذ کیږي. که راهن توانګر وی. آوکه غریب وی. ځکه چې هرکله دده بیع نه نافذ کیږي. نو عتق به په درجه اولی نه نافذ کیږي. علامه مرغيناني دې دوې (دوه) اقوالو ته اشاره کړې ده

د غریب کیدو په صورت کې د نه نافذ کیدو دلیل دا دې. چه دده عتق نافذ کاوه کې د مرتهن حق باطلیږي. نو لکه څنګه چې بیع نه نافذ کیدله. دغه ډول به عتق هم نه نافذ کیږي. او د توانګر کیدو په صورت کې د عتق نافذ کیدو دلیل دا دې. چه چونکه په دې صورت کې راهن باندې ضمان اداکول لازمیږي. چه په دې وجه به د مرتهن حق نه باطلیږي.

که څوك داعتراض اوکړي چې د امام شافعی رحمه الله د یو قول مطابق د غریب راهن عتق نافذ کول نه منی. او وجه دا بیانوی. چه د مرتهن حق باطلول لازمیږي. خو که مولا خپل غلام اجاره باندې ورکړو. او د اجارې په موده کې دننه موجر (راهن) دا مستاجر غلام آزاد کړي. نو دده عتق نافذ کیږي. حالانکه دې کې د مستاجر حق باطلیږي. دواړو کې وجه د توپیر څه ده؟ نو د دې ځواب دا دې چې دوی د مستاجر عتق ځکه جائز ګرځولې دې. چې آزادئ او اجاره کې هیڅ منافات نشته. بلکه آزاد هم اجیر وی. نو د اعتاق نه روسته به هم عقد اجاره خپلې مودې پورې پخپل حال پاته پاتې وی. نو د مستاجر حق باطلول نه لازمیږي. او په آزاد او رهن کې منافات دې. یعنی آزاد رهن نشی ایخودې. نو د آزادولو نه روسته به رهن هم ختمیږي. چه دې سره به د مرتهن د حق باطلیدل لازمیږي. په دې وجه امام شافعی رحمه الله د راهن آزادول غلط او د موجر آزادول ئې جائز ګرځولی دی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې. أَنَّهُ مُخَاطَبٌ أَعْتَقَ مِلْكَ نَفْسِهِ چې دې مخاطب دې. (عاقل بالغ دې). چه ده خپل ملك آزاد کړې دې فَلَا يَلْغُو تَصَرُّفُهُ بِعَدَمِ إِذْنِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن د اجازت نه کیدو په وجه به دده تصرف لغوه نه وی كَمَا إِذَا

أَعْتَقَ الْعَبْدَ الْمُشْتَرِي قَبْلَ الْقَبْضِ لكه اخستي شوي غلام د قبضې نه مخكې آزادول أَوْأَعْتَقَ الْآبِقَ أَوِالْمَغْصُوبَ او تختيدلي غلام يا مغصوب غلام آزادول وَلَاخَفَاءَ فِي قِيَامِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ.او د ملك رقبه په قيام كې هيڅ پټ والې نشته لِقِيَامِ الْمُقْتَضِي د مقتضاء د قيام په وجه وَعَارِضُ الرَّهْنِ لَايُنْبِئُ عَنْ زَوَالِهِ او د رهن عارض كيدل د ملك د زوال خبر نه ور كوي.

حل اللغة* ① ينبئ: خبرداري ② عارض:عارضي،غيرمستقل﴾

تشريح:- مونږ عتق (آزادي) مطلق جائز او نافذ ګرځولې ده.ددې دليل دا دې.چه راهن عاقل بالغ دې.چه د شرعي احكامو مخاطب او مكلف دې.او دې خپل مملوك آزاده وي.نو د مرتهن اجازت نه ور كاوه په وجه به دده تصرف لغوه نه وي.

كه څوك دا اعتراض اوكړي چې مالك اګرچه راهن دې.خو دده قبضه نشته.نو عتق هم نافذ كول پكار نه دى؟نو خواب دادې چې قبضه د بيع لپاره ضروري وه.چه په سپارلو باندې قدرت حاصل شى.او په آزادولو كې د سپارلو د سره ارتيا نشته.نو د قبضې نه بغير به عتق نافذ وي.ددې درې مثالونه واورئ:① زيد يو غلام د بكر نه واخستلو.او اوسه پورې زيد په غلام باندې قبضه نه ده كړې.چه ددې نه مخكې ئې غلام آزاد كړو.نو عتق نافذ دې.اګرچه غلام باندې قبضه نشته.② د زيد غلام اوتختيدو.او زيد هغه آزاد كړو.نو عتق به نافذ وي.اګرچه غلام دده په قبضه كې نشته.③ زيد د بكر غلام غصب كړو.او بكر په دې حال كې دې آزاد كړو.نو عتق به نافذ وي.حالانكه په دې دريو واړو مثالونو كې په وخت د اعتاق قبضه نشته.دغه ډول به مرهون هم آزاديږي.اګرچه قبضه نه وي.بهرحال دلته كې راهن خپل ملك كې تصرف كړې دې.او په دې كې هيڅ شبه نشته.چه مرهون د راهن ملكيت دې.ګنى كه ملكيت ئې نه وې.نو ددې خان سره ساتل به هم صحيح نه وو.رهن صحيح كيدل پخپله د ملك د قيام تقاضه كوى.او د رهن د عارض په وجه چې مرتهن ته قبضه د استيفاء حاصله شوه.په دې سره به ملك نه زائل كيږي.

## د مرهون په آزادولو سره د دواړو ملكيت ختميږي

ثُمَّ إِذَا زَالَ مِلْكُهُ فِي الرَّقَبَةِ بياكله چې غلام كې د راهن ملكيت زائل شو بِإِعْتَاقِهِ دده د آزادولو په وجه، يَزُولُ مِلْكُ الْمُرْتَهِنِ فِي الْيَدِ نو قبضه كې به د مرتهن ملك زائل كيږي بِنَاءً عَلَيْهِ هم په دې باندې بناء كاوه سره، بناءً كَإِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ،بَلْ أَوْلَى لكه مشترك غلام آزادول،بلكه په درجه اولى لِأَنَّ مِلْكَ الرَّقَبَةِ أَقْوَى مِنْ مِلْكِ الْيَدِ ځكه چې ملك د رقبې د قبضې د ملك نه زيات قوى دې فَلَمَّا لَمْ يَمْنَعِ الْأَعْلَى نو هركله چې (د عتق صحيح كيدو نه) اعلى مانع نشو لَايَمْنَعُ الْأَدْنَى بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو ادنى به په درجه اولى مانع نه وى وَامْتِنَاعُ النَّفَاذِ فِي الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ لِانْعِدَامِ الْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيمِ او په بيع او هبه كې د نفاذ ممتنع كيدل، سپارلو باندې د قدرت نه كيدو په وجه دې وَإِعْتَاقُ الْوَارِثِ الْعَبْدَ الْمُوصَى بِرَقَبَتِهِ لَا يَلْغُو او د وارث آزادول د داسې غلام، چې دده د رقبې وصيت كړې شوې وى.لغوه به نه وى بَلْ يُؤَخَّرُ إِلَى أَدَاءِ السِّعَايَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بلكه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به آزادول د سعايت ادا كاوه پورې موخر ساتلې شى رحمه الله وَإِذَا نَفَذَ الْإِعْتَاقُ بَطَلَ الرَّهْنُ لِفَوَاتِ مَحَلِّهِ او كله چې آزادول نافذ شو.نو د رهن د محل فوت كيدو په وجه رهن باطل شو

حل اللغة* ① انعدام: نشتوالي ② امتناع:منع كول ③ السعاية: كوشش،محنت﴾

تشريح:- كله چې راهن غلام آزاد كړو.نو اوس د راهن ملكيت زائل شو.او كله چې د راهن ملكيت زائل شو.نو مرتهن ته چې كوم د قبضې ملكيت حاصل وو.هغه هم زائل شو.كه يو غلام د زيد او بكر په منځ كې مشترك بله خبره ده.چه په آزادى شوى يا په آزادونكى به بعض احكام جارى كيږي.نو اوګورئ دلته كې بكر ملكيت كې شريك دې.او مرتهن په ملك رقبه كې شريك نه دې.بلكه ده ته صرف ملك يد حاصل دې.او دا هم ښكاره ده.چه



ملك رقبه قوى ده.او ملك يد ددې په مقابله كې ضعيف دې.او تاسو اوكتل.چه قوى صحت د عتق منع نكړو.نو ادنى به په درجهٔ اولى صحت د عتق نه منع كوى.

دلته كه څوك دا اعتراض اوكړي چې د غير د حق متعلق كيدل، د تصرف نافذ كيدو نه مانع وى.لكه په بيع او هبه كې ، نو بيا عتق ولې صحيح دې؟ نو مونږ معترض ته ځواب وركوو چې ستا بيان شوې اصول څه قاعده كليه نه ده.او پاتې شو د بيع او هبې نه نافذ كيدل، نو دا صرف په دې وجه دى.چه راهن ته په سپارلو باندې قدرت نشته.په دې وجه به د تختيدلى او مستاجر بيع نه نافذ كيږى.او عتق به نافذ وى.

كه څوك د اعتراض په شكل كې ووايي چې زيد وصيت اوكړو.چه د ميراث.فلانې غلام بكر ته وركړئ.خالد (چې د زيد وارث دې) بكر ته اوسه پورې وركړې نه وو.چه دا غلام ئې آزاد كړو.نو عتق به صحيح نه وى.ځكه چې وارث اګرچه مالك دې.خو دې غلام سره د بكر حق متعلق دې.نو دغه ډول د راهن عتق هم صحيح كيدل پكار نه دى؟ نومونږ دغه معترض ته وايو چې ستا مسئلې سره زمونږ اتفاق نشته.بلكه د وارث عتق صحيح دې.خو دومره خبره ده.چه دا غلام به د موصى له (بكر) لپاره د خپل قيمت مزدورى كوى.او دا تاخير د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق دې.ګنى د صاحبينو رحمهما الله په نيز به فى الحال آزاد وى. لنډيز د كلام دا چې تصرف د آزادولو لغوه نه دې.بهرحال هركله چې اعتاق نافذ شو.نو اوس چونكه غلام آزاد شو.او آزاد د رهن محل نه دې.په دې وجه به رهن باطل وى.

## د غلام په آزاديدو سره به د مرتهن قرضه څنګه وصولولې شي؟

(ثُمَّ) بَعْدَ ذَلِكَ (إِنْ كَانَ الرَّاهِنُ مُوسِرًا بيا ددې نه روسته كه راهن توانګر وى وَالدَّيْنُ حَالًا او پور فى الحال ادا كول واجب وى طُولِبَ بِأَدَاءِ الدَّيْنِ نو د راهن څخه به د پور ادا كاوه مطالبه كولاى شى لِأَنَّهُ لَوْ طُولِبَ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ ځكه كه د راهن نه د قيمت ادا كاوه مطالبه اوكړې شى تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِقَدْرِ الدَّيْنِ نو د پور په اندازه به مقاصه واقع شى فَلَا فَائِدَةَ فِيهِ نو په دې كې به هيڅ فائده نه وى (وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ مُؤَجَّلًا او كه پور موجل (نيتيه دار) وى أُخِذَتْ مِنْهُ قِيمَةُ الْعَبْدِ نو د راهن څخه به دغلام قيمت اخستلې شى وَجُعِلَتْ رَهْنًا مَكَانَهُ او قيمت به د غلام په ځائې رهن كولاى شى حَتَّى يَحِلَّ الدَّيْنُ تردې چې د پور ادا كاوه وخت راشى لِأَنَّ سَبَبَ الضَّمَانِ مُتَحَقِّقٌ، وَفِي التَّضْمِينِ فَائِدَةٌ ځكه چې د ضمان سبب متحقق دې.او په مضمون كاوه كې فائده ده فَإِذَا حَلَّ نو كله چې د پور ادا كاوه وخت راغې اقْتَضَاهُ بِحَقِّهِ الدَّيْنُ نو مرتهن به دا پخپل حق كې وصول كړى إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ وَرَدَّ الْفَضْلَ كله چې دا دده د پور د جنس څنې وى.او زياتى به واپس كوى.

تشريح:- راهن كه مرهون غلام آزاد كړو.نو دا آزاد شو.خو په دې كې ښكاره د مرتهن تاوان دې.په دې وجه حكم وركړې شو.چه اوس اوګوره.چه راهن غريب دې.اوكه توانګر دې.كه توانګر وى.بيا اوګوره. پور فى الحال ادا كول واجب دى.او كه نيتيه دار (ميعادى) دې.ځكه چې د هرصورت احكام جلا جلا دى.① كه آزدونكې توانګر وى.او پور فى الحال ادا كول واجب وى.نو راهن څخه به د دين ادا كولو مطالبه كولې شى.

كه څوك ووايي چې د مرهون د عوض يعنى د قيمت مطالبه كول پكار دى؟ نو مونږ ځواب وركوو چې دلته چونكه د پور ادا كاوه وخت راغلې دې.نو اوس به د قيمت د مطالبې هيڅ فائده نه وى.ځكه كه قيمت واخستلې شو.او قيمت او پور د يو جنس څنې وى.نو د پور په اندازه به مقاصه كيږى.او كه په قيمت كې څه زياتى دې.نو هغه به راهن ته واپس كولې شى.نو په قيمت واجبولو كې هيڅ فائده او نشوه.په دې وجه به د پور ادا كاوه مطالبه كولې شى.او كه پور ميعادى (نيتيه دار) وى.نو راهن څخه به د غلام قيمت وصولولې شى.او د مرهون په ځائې به ايږدلې شى.او د پور ادا كاوه وختپورې به دا قيمت رهن وى.بيا كله چې د پور ادا كاوه وخت راشى.نو كه قيمت او پور د يو جنس څنې وى.يعنى دواړه دراهم وى.يا دنانير وى.نو مرتهن به ددې قيمت نه خپل حق وصول كړى.بيا كه قيمت د پور نه زيات وى.نو زياتى دې راهن ته واپس كړى.اوكه كم وى.نو كمې دې د راهن نه وصول كړى.اوكه

قیمت او پور خلاف جنس وي.نو نه به وصوله وي.بلکه قیمت به خان سره ګیر ساتي.تردې چې راهن دده قرضه ادا کړي.یا قاضي د وصولولو حکم ورکړي.

۵ وياتې شو په راهن باندې د ضمان وجوب اوددې فائده نو ددې وضاحت دا دې ضمان خو پرې ځکه واجب شو.چه ده مرهون آزاد کړې دې.او د مرتهن ید استيفاء ئې زائل کړې دې.نو دا د ضمان سبب دې.اود دې فائده دا ده.چه په دې سره به د مرتهن د پور وصولولو لپاره مضبوطي حاصليږي.خو دا حکم هغه وخت دې.کله چې راهن توانګر وي.اوکه دې غريب وي.نو ددې حکم دا دې.کوم چې راروان دې.

## که راهن غریب وي نو غلام به پخپل قیمت کښې سعي کوي

(وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا اوکه راهن غريب وي سَعَى الْعَبْدُ فِي قِيمَتِهِ نو غلام به پخپل قيمت کې سعي ( مزدوري) کوي وَقَضَى بِهِ الدَّيْنَ او په دې مزدورئ سره به پور ادا کولای شي إِلَّا إِذَا كَانَ بِخِلَافِ جِنْسِ حَقِّهِ خو کله چې پور دده د حق د جنس خلاف وي لِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ مِنْ جِهَةِ الْمُعْتَقِ ځکه چې هرکله د آزادونکی د اړخه خپل عين وصولول متعذر شو يَرْجِعُ إِلَى مَنْ يَنْتَفِعُ بِعِتْقِهِ نو مرتهن به هغه کس باندې رجوع کوي.کوم چې د راهن د عتق نه منتفع شوې دې وَهُوَ الْعَبْدُ او هغه غلام دې لِأَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ ځکه چې منافع په اندازه د ضمان وي
قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: حضرت مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل وَتَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَتِ الْقِيمَةُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ او ددې تاويل دا دې.کله چې قيمت د پور نه کم وي أَمَّا إِذَا كَانَ الدَّيْنُ أَقَلَّ نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى بهرحال کله چې پور د قيمت نه کم وي.نو مورږ به دا انشاء الله ذکرکوو.

**تشریح:-** که راهن غريب وي.نو مرتهن دې آزاد شوې غلام اونيسي.او په ده دې مزدوري کوي.چه په دې مزدورئ سره د مرتهن پور ادا شي.اوس دلته قدرتي طور باندې دوې (دوه) سوالونه پيدا کيږي.چه غلام به مزدوري ولې کوي.او څومره به کوي.ددې بيان دا دې:① مزدوري به ددې لپاره کوي.چه د راهن د غريب کيدو په وجه مرتهن د هغه نه خپل حق نشي وصولولې.نو د مجبورئ په وجه به دا غلام ګرفتارولې شي.ځکه چې د هغه د عتق نه فائده اخستونکې هم دا غلام دې.ځکه چې نفع حاصلول په اندازه د ضمان وي.يعني د آزادئ نفع حاصلولو سره به په ده باندې قيمت واجب وي.په نورو الفاظو کې داسې چې حاصلات او منافع د ضمان په وجه دي.② اوس پاتې شوه دا خبره چې څومره مزدوري به کوي؟ نو ددې ځواب دا دې.چه قيمت او پور کې چې کوم يو کم وي.د هغې برابر مزدوري به په ده لازم وي.يعني که پور کم وي.نو د پور په مقدار، اوکه قيمت کم وي.نو د قيمت په مقدار به مزدوري کوي.( يعني نفع به حاصله وي).په دې وجه صاحب دهدايه رحمه الله تفسير اوکړو.چه دا وئيلی شوی دی. ﴿سعي العبد في قيمته﴾ دا هغه وخت دې.کله چې قيمت د پور نه کم وي.

۵ اوس په دې دا سوال پيدا کيږي.چه غلام مزدوري اوکړله.او پور ئې ادا کړو.نو آيا ده ته به حق وي.چه دې ادا کړې شوې پور د خپل آزادونکی نه واپس واخلي؟ نو ددې ځواب په راروان عبارت کې ورکوي.فرمائي.

## مرتهن به پخپل ادا شوی رقم سره راهن باندې رجوع کوي

(ثُمَّ يَرْجِعُ بيا به غلام رجوع کوي بِمَا سَعَى عَلَى مَوْلَاهُ د هغه مقدار په سلسله کې ، کوم چې ده مزدوري کړې ده.پخپل مولا باندې، إِذَا أَيْسَرَ کله چې هغه توانګر شي.لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَهُ ځکه چې غلام د هغه پور ادا کړې دې وَهُوَ مُضْطَرٌّ فِيهِ بِحُكْمِ الشَّرْعِ او غلام په دې کې په حکم د شريعت مجبور دې فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ نو غلام به معتق ( آزادونکی) باندې رجوع کوي بِمَا تَحَمَّلَ عَنْهُ د هغه مقدار په سلسله کې ، د کوم چې د آزادونکی د اړخه ده برداشت کړې دې بِخِلَافِ الْمُسْتَسْعَى فِي الْإِعْتَاقِ په خلاف د هغه غلام چې په هغه مزدوري کړې شوې وي.په اعتاق کې لِأَنَّهُ يُؤَدِّي ضَمَانًا عَلَيْهِ ځکه چې دې هغه ضمان ادا کوي.کوم چې په ده باندې دې لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَسْعَى لِتَحْصِيلِ الْعِتْقِ عِنْدَهُ ځکه



چې دې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د آزادئ حاصلولو لپاره مزدوري کوي وَعِنْدَهُمَا لِتَكْمِيلِهِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د عتق پوره کاوه لپاره ( مزدوري کوي). وَهُنَا يَسْعَى او دلته کې دې مزدوري کوي فِي ضَمَانٍ عَلَى غَيْرِهِ بَعْدَ تَمَامِ إِعْتَاقِهِ د هغه ضمان په سلسله کې کوم چې دده په غير باندې واجب دې.د هغه د اعتاق پوره کيدو نه روسته فَصَارَ كَمُعِيرِ الرَّهْنِ نو (مزدوري کړې شوې غلام ) عاريت باندې د ورکونکي پشان شو.

**تشریح:-** په نفس مسئلې د بيان نه وړاندې د مقدمې په طور يوه اختلافي قاعده ياده کړئ هغه دا چې اعتاق ( آزادي) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ټکړې کيداې شي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز نه برخې کيږي.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز بعض برخه آزادول ګويا د واړه آزادول شو.خو اوس لا د غلام سره د بل شريك ماليت ګير دې.د هغه نه د خلاصولو لپاره که معتق ( آزادونکې) غريب دې.نو د خپل قيمت نيمه برخه به دوهم شريك ته ورکول لازمي وي.کله چې د هغه ملکيت نيم وي.او د امام صاحب رحمه الله په نيز چې څومره آزاده کړې شوې ده.هغه آزاده شوه.د پاته آزادولو لپاره به مزدوري کولې شي. لنډيز د کلام دا چې غلام باندې مزدوري به د صاحبينو رحمهما الله په نيز د آزادئ د تکميل ( او پوره والی) لپاره وي.او د امام صاحب رحمه الله په نيز به د آزادئ حاصلولو لپاره وي. ﴿تفصيل لپاره هدايه:ج۴﴾

۵ اوس د دې قاندې په رڼا کې که زيد خالد ته د خالد د مجبورئ په لحاظ خپله ګهړئ عاريت ورکړله.چه دا رهن کيږده.او پور واخله.او خپل اړتيا پوره کړه.خالد هم دغه ډول اوکړل.اوس زيد د خالد پور ادا کړو.او خپله ګهړئ ئې د مرتهن نه واخستله.نو زيد چې کوم پور ادا کړې دې.دا به د خالد نه واپس اخلي.ځکه چې ده مجبوراً داسې کړې دی.چه د خالد قرضه ئې ادا کړې ده.چه خپله ګهړئ را لنډيز کړي.ددې دا اصول ( قاعده ) راووتله.چه څوك د مجبورئ نه د چا قرضه ادا کړي.نو هغه ادا کړې شوې قرضه واپس اخستې شي.اوکه څوك داسې ضمان ادا کړي.کوم چې پخپله دده په ذمه وي.نو ده ته به د بل نه د اخستلو حق نه وي.هرکله چې دا تفصيلات ذهن کې کيناستل.نو اوس پوهه شئ؛

۵ په ړومبی صورت کې چې مرهون غلام کومه مزدوري کړې ده.او د راهن پور ئې ادا کړې دې.نو آيا دې دا پور د راهن نه واپس اخستلې شي؟ نو فرمائي.چه اخستلې شي.کله چې راهن توانګر شي.نو واپس دې واخلي.ځکه چې دلته کې غلام په حکم د شريعت د مجبورئ او اړتيا په وجه د راهن پور اداکړې دې.نود ذکرشوې قاعدې په وجه به واپسي جائز وي.او که د خالص اعتاق ( آزادولو) په صورت کې کله چې يو شريك آزاد کړې وي.او د دوهم کس لپاره مزدوري کړې شوې وي.نو دا مزدوري د شريك معتق ( آزادونکی) نه واپس نشي اخستلې.ځکه چې دلته کې غلام د معتق پور نه ادا کوي.بلکه کوم ضمان چې شرعاً غلام باندې لازم شوې دې.دې هغه ادا کوي.ځکه چې په قول د امام ابوحنيفه رحمه الله دا مزدوري د آزادئ حاصلولو لپاره ده.او په قول د صاحبينو رحمهما الله د عتق پوره کاوه لپاره ده.او د رهن په مسئله کې غلام د راهن پور ادا کوي.حالانکه غلام دلته کې د مزدورئ د وجوب نه مخکې پوره آزاد شوې دې.نو د غلام به هغه مسئله وي.کومه چې د معير د رهن ده.کومه چې مورږ بيان کړې ده.

ثُمَّ أَبُو حَنِيفَةَ أَوْجَبَ السِّعَايَةَ فِي الْمُسْتَسْعَى بيا امام ابوحنيفه رحمه الله د مالدارئ او غريبئ دواړو حالتونو مزدوري واجب کړې ده الْمُشْتَرَكِ فِي حَالَتَيِ الْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ هغه مشترك غلام کې ،په کوم چې به مزدوري کوي وَفِي الْعَبْدِ الْمَرْهُونِ شَرَطَ الْإِعْسَارَ او په غلام مرهون کې ئې د غريبئ شرط لګولې دې.

**تشریح:-** په دې عبارت کې دا دوې (دوه) مسئلې بيانوی ① يو غلام د زيد او خالد دواړو په منځ کې مشترك دې.زيد خپله برخه آزاده کړله.او خالد آزاده نکړله.نو که خالد اوغواړي.په غلام دې د خپلې برخې اړه کې مزدوري اوکړي.که زيد توانګر وي.او که غريب وي.يعني امام صاحب رحمه الله دلته کې د آزادونکی د مالدارئ اوغريبئ خيال نه دې کړې.بلکه دواړو صورتونو کې ( که دوهم شريك اوغواړي) مزدوري کولې شي.② دريمه مسئله دا ده که راهن غلام آزاد کړې وي.نو مرتهن په غلام صرف هغه وخت مزدوري کولې شي.کله چې راهن غريب وي.اوکه توانګر وي.نو نشي کولې. لنډيز د کلام دا چې ړومبی صورت کې دواړو صورتونو کې مزدوري شته.او په دوهم

صورت كې صرف يو صورت كې جائز نه ده.

لِأَنَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ حَقُّ الْمِلْكِ خکه چې مرتهن لپاره حق د ملك ثابت دې وَأَنَّهُ أَدْنٰى مِنْ حَقِيقَتِهِ او حق د ملك د هغه حقيقى ملك نه ادنى (معمولى) دې الثَّابِتَةِ لِلشَّرِيكِ السَّاكِتِ كوم چې د ساكت شريك لپاره ثابت دې فَوَجَبَ السِّعَايَةُ هُنَا فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ نو دلته (په يو رهن كې) يو حالت كې مزدورى واجب شوه إِظْهَارُ النُّقْصَانِ رُتْبَتَهُ دده د رتبې نقصان ښكاره كاوه دپاره.

حل اللغة* ① الساكت: خاموش، چپ﴾

تشريح:- په دې عبارت كې وجه د توپير بيانوى نوفرمائى په ړومبى دواړو صورتونو كې دا توپير بيان كړې شو.چه دې كې ددواړو شريكانو حقيقى ملك دې.او دوهم صورت كې د مرتهن حقيقى ملك نشته.بلكه حق د ملك دې.او حق د ملك حقيقى ملك نه كم دې.نو ددې دواړو په منځ كې د توپير واضح كاوه دپاره، يعنى ددې خودلو لپاره چې د دوهم مرتبه د ړومبى نه كمه ده.نو توپير ئې اوكړو.چه ړومبى كې دواړو صورتونو كې ، او دوهم كې صرف يو صورت كې ، مزدورى كولې شى.

بِخِلَافِ الْمُشْتَرِي په خلاف د مشترى غلام، قَبْلَ الْقَبْضِ إِذَا أَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي كوم چې مشترى د قبضې نه مخكې آزاد كړې وى حَيْثُ لَا يَسْعٰى لِلْبَائِعِ په دې حيثيت سره چې دا غلام به د بائع لپاره مزدورى نه كوى الْأَرِوَايَةُ عَنْ أَبِي يُوسُفَ وَالْمَرْهُونُ يَسْعٰى.خو د امام ابويوسف رحمه الله په يو روايت كې ، او مرهون به مزدورى كوى

تشريح:- په دې عبارت كې دريمه مسئله بيانوى چې زيد د خالد غلام واخستلو.او اوس لا زيد قبضه نه وه كړې.چه زيد دا غلام آزاد كړو.نو آزادى صحيح شوه.خو اوس زيد د خالد ثمن ادا نكړو.نو ايا دا غلام به د خالد د ثمن لپاره مزدورى كوى.نو وې فرمائيل.چه نه به كوى.كه زيد توانګر وى.اوكه غريب وى.دواړو صورتونو كې به مزدورى واجب نه وى. بيا په دوهم او دريم صورت كې ولې توپير كړې شوې دې.ددې وجه په راروان عبارت كې بيان شوې ده.

لِأَنَّ حَقَّ الْبَائِعِ فِي الْحَبْسِ أَضْعَفُ،خکه چې حبس (او بندولو) كې د بائع حق ضعيف دې لِأَنَّ الْبَائِعَ لَا يَمْلِكُهُ فِي الْآخِرَةِ خکه چې انجام (په آخر) كې به بائع ددې مالك نه وى وَلَا يَسْتَوْفِي مِنْ عَيْنِهِ او نه بائع ددې عين وصولولې شى وَكَذٰلِكَ يَبْطُلُ حَقُّهُ فِي الْحَبْسِ او هم دغه ډول حبس كې دده حق باطليږى. بِالْإِعَارَةِ مِنَ الْمُشْتَرِي مشترى ته عاريت باندې د ور كاوه په وجه. وَالْمُرْتَهِنُ يَنْقَلِبُ حَقُّهُ مِلْكًا او مرتهن نو دده حق د ملك نه ګرځى وَلَا يَبْطُلُ حَقُّهُ بِالْإِعَارَةِ مِنَ الرَّاهِنِ او راهن ته عاريت باندې د ور كاوه په وجه د مرتهن حق نه باطليږى حتى يمكنه الْإِسْتِرْدَادُ فَلَوْ تردې چې ده ته د راهن نه د واپس اخستلو قدرت وى أَوْجَبْنَا السِّعَايَةَ فِيهِمَا نو كه موږ په دواړو صورتونو كې مزدورى واجب كړو لَسَوَّيْنَا بَيْنَ الْحَقَّيْنِ نو موږ په دواړو حقوقو كې برابرى اوكړله وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ او دا جائز نه ده

حل اللغة* ① اضعف: زيات كمزورې ② الاسترداد: طلب د واپس كولو③ السعاية: كوښښ﴾

تشريح:- دلته مرغينانى رحمه الله د دوهم او دريم صورت په منځ كې توپير بيان كړې دې.چه دا درې دى:① بائع به انجام كې د مبيع مالك نه وى.بلكه صرف بائع ته حق د حبس دې.اوكه بائع سره مبيع هلاك شى.نو په ده به ضمان واجب نه وى.بلكه بيع به فسخ كيږى.او كه مرتهن سره هلاك شى.نو رهن به فسخ نه وى.بلكه پوره شو.او مرتهن د خپل حق وصولونكې شو.ګويا مرتهن د مرهون مالك شو.② بائع خپل ثمن د مبيع نه نشى وصولولې.بلكه ده ته صرف حق د حبس دې.مشترى د هر يو محل نه پور ادا كولې شى.خکه چې د بائع ثمن د مشترى په ذمه دې.او د مرتهن پور اګرچه په ذمه د راس (او ماليت) دې.خو اوس دده د حق په عوض كې مرهون دې.چه ددې نه د تيرشوى تفصيل پشان د پور وصولى كيداې شى.③ كه بائع مبيع عاريت باندې مشترى ته وركړې وى.نو اوس حق د حبس



ختم شو.او د واپس اخستلو حق پاتې نشو.او كه مرتهن مرهون راهن ته عاريت باندې وركړې وى.نو كله چې غواړى.واپس دې واخلى.ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه حق د حبس خو دواړو ته دې.خو د مرتهن د حبس حق زيات قوى دې.او د بائع كمزورې دې.نو ددوى دواړو په حكم كې هم توپير كول ضرورى دى.نو موږ اووئيل.چه د رهن په صورت كې به مزدورى كولې شى.او د بيع په صورت كې به مزدورى نشى كولې.ګنې د توپير باوجود دواړو حقونو كې مساوات او برابرى لازميږى.چه دا جائز نه ده.

## د غلام آزادولو نه روسته د رهن د اقرار كولو حكم

(وَلَوْ أَقَرَّ الْمَوْلٰى بِرَهْنِ عَبْدِهِ او كه مولا د خپل غلام د رهن اقرار اوكړو بِأَنْ قَالَ (لَهُ رَهَنْتُكَ عِنْدَ فُلَانٍ.په دې طريقه چې مولا اووئيل.چه ته ما فلانى سره رهن كړې يې وَكَذَّبَهُ الْعَبْدُ او غلام د مولا تكذيب اوكړو ثُمَّ أَعْتَقَهُ بيا مولا ده لره آزاد كړو تَجِبُ السِّعَايَةُ عِنْدَنَا (<sup>۱</sup>) نو زموږ په نيز مزدورى واجب ده. خِلَافًا لِزُفَرَ وَهُوَ يَعْتَبِرُ بِإِقْرَارِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ په خلاف د امام زفر رحمه الله،دوى دا د آزادئ نه روسته په اقرار باندې قياس كوى وَنَحْنُ نَقُولُ أَقَرَّ بِتَعَلُّقِ الْحَقِّ او موږ وايو.چه مولا په داسې حالت كې د حق د تعلق اقرار كړې دې.فِي حَالِ يَمْلِكُ التَّعْلِيقَ په كوم حالت كې چې مولا د حق يوخائې كاوه ملكيت لرى لِقِيَامِ مِلْكِهِ دده د ملك د خكه چې دا د ولايت ختميدو حالت دې قيام په وجه بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْعِتْقِ نو اقرار صحيح دې.په خلاف د عتق نه د روستو لِأَنَّهُ حَالُ انْقِطَاعِ الْوِلَايَةِ خکه چې دا حالت د ختميدو د ولايت دې

تشريح:- مولا خپل غلام آزاد كړو.اوس د عتق نه روستو اقرار كوى.چه ما دا غلام فلانى سره رهن ايخودې وو. او غلام دده تكذيب كوى.نو د مولا اقرار به صحيح نه وى.خکه چې اوس مولا ته په دې غلام هيڅ ولايت حاصل نه دې.اوكه مخكې ئې اقرار اوكړو.او بيا ئې آزاد كړو.نو زموږ په نيز اقرار صحيح دې.امام زفر رحمه الله په ړومبى صورت باندې قياس كوى.او دا هم صحيح نه ګرځوى.موږ امام زفر رحمه الله ته خواب وركړو.چه دا قياس مع الفارق دې.خکه چې ړومبى صورت كې د مولا ولايت منقطع شوې دې.خو په دوهم صورت كې ولايت قائم دې.نو هركله چې د مولا اقرار د ولايت د بقاء په وخت صادر شو.نو دا به معتبر وى.او دا غلام به ددې مرتهن لپاره مزدورى كوى.د تيرشوى تفصيل مطابق.؛

## د مرهون غلام د مدبر جوړولو حكم

(وَلَوْ دَبَّرَهُ الرَّاهِنُ او كه مرهون غلام، راهن مدبر جوړ كړو صَحَّ تَدْبِيرُهُ بِالْإِتِّفَاقِ نو بالاتفاق دده مدبر جوړول صحيح دى أَمَّا عِنْدَنَا فَظَاهِرٌ بهرحال زموږ په نيز، نوښكاره ده وَكَذَا عِنْدَهُ او هم دغه ډول د امام شافعى رحمه الله په نيز لِأَنَّ التَّدْبِيرَ لَا يَمْنَعُ الْبَيْعَ خکه چې ددوى د اصل مطابق مدبر كول بيع نه منع كوى.

حل اللغة* ① استيلاد: مدبر جوړل ② موسر:مالدار﴾

تشريح:- كه راهن،مرهون غلام مدبرجوړ كړې وى.نو بالاتفاق به مدبر جوړيږى. زموږ په نيز چې هركله اعتاق صحيح دې.نو مدبر جوړول به په درجه اولى صحيح وى.او د امام شافعى رحمه الله په نيز د يو قول مطابق اګرچه اعتاق جائز نه دې.خو مدبر جوړول ددوى په نيز هم جائز دې.او وجه د جواز دا ده.چه ددوى په نيز د مدبر بيع جائز ده.نو د مدبر جوړولو د عدم جواز هيڅ وجه نشته.

(وَلَوْ كَانَتْ أَمَةً او كه مرهونه وينځه وى. فَاسْتَوْلَدَهَا الرَّاهِنُ نو راهن دا ام ولد جوړه كړله صَحَّ الْإِسْتِيلَادُ بِالْإِتِّفَاقِ نو بالاتفاق استيلاد (ام ولد جوړول) صحيح دې لِأَنَّهُ يَصِحُّ بِأَدْنَى الْحَقَّيْنِ خکه چې استيلاد (ام ولد جوړول) دوې (دوه) حقونو كې ادنى حق سره صحيح كيږى وهو او دا هغه حق دې مَا لِلْأَبِ فِي جَارِيَةِ الْإِبْنِ كوم چې پلار ته د خوى په وينځه كې وى فَيَصِحُّ بِالْأَعْلٰى نو استيلاد به په اعلى حق سره (په درجه اولى) صحيح وى وَإِذَا صَحَّ او هركله چې دا

۱) القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فى تبيين الحقائق نقلا عن القول الراجح (۱۲-۳۳۰)-

دواړه صحیح شو خَرَجَامِنَ الرَّهْنِ نو دوی دواړه (مدبر او ام ولد) د رهن نه خارج شو لِبُطْلَانِ الْمَحَلِّيَّةِ د محلیت د بطلان په وجه، إِذْلَايَصِحُّ اسْتِيفَاءُ الدَّيْنِ مِنْهُمَا خکه چې استیفاء د پور ددوی دواړو نه نه صحیح کیږي. فَإِنْ كَانَ الرَّاهِنُ مُوسِرًا نو که راهن توانګر وی. ضَمِنَ قِيمَتَهُمَا نو د دواړو د قیمت به ضامن وی عَلَى التَّفْصِيلِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ فِي الْإِعْتَاقِ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ د اعتاق په بیان کې ذکر کړې دې.

تشریح:- اوکه راهن مرهونه وینځه ام ولد جوړه کړله. نو استیلاد هم جائز دې. خکه چې راهن د مرهونه مالك دې. نو په درجه اولی به استیلاد (ام ولد جوړول) صحیح وی. خکه چې پلار د خوی وینځه ام ولد جوړولې شی. حالانکه پلار ته چې کوم حق حاصل دې. هغه کمزورې دې. او د راهن حق اعلی او قوی دې. او چونکه د مدبر او ام ولد نه د پور وصولی نشی کیدې. په دې وجه اوس دا دواړه رهن پاتې نشو. بیا به د مرتهن څه کیږي. نو وې فرمائیل. که راهن توانګر دې. نو ددوی د قیمت به ضامن وی. چه ددې ذکر اوس وړاندې صفحه باندې تیر شو.

**که راهن غریب وی نو مدبر او ام ولد به په ټول دین کښې سعی کوی**

(وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا اوکه راهن غریب وی اسْتَسْعَى الْمُرْتَهِنُ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ فِي جَمِيعِ الدَّيْنِ، نو مرتهن به په مدبر او ام ولد، پوره پور کې مزدوری کوی لِأَنَّ كَسْبَهُمَا مَالُ الْمَوْلَى خکه چې د دوی دواړو مزدوری د مولا مال دې بِخِلَافِ الْمُعْتَقِ په خلاف د معتق (آزاد شوی غلام) حَيْثُ يَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنَ الدَّيْنِ وَمِنَ الْقِيمَةِ په دې حیثیت سره چې دې مزدوری کوی. په پور او قیمت کې په کم کې، لِأَنَّ كَسْبَهُ حَقُّهُ خکه چې د آزاد شوی مزدوری، دده حق دې وَالْمُحْتَبَسُ عِنْدَهُ لَيْسَ إِلَّا قَدْرَ الْقِيمَةِ او کوم چې ګیر دې. آزاد شوی (غلام) سره هغه په قدر د قیمت دې فَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ نو قیمت باندې به نشی زیاتولې وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ بِقَدْرِ الدَّيْنِ فَلَا تَلْزَمُهُ الزِّيَادَةُ او د مرتهن حق د پور په اندازه دې. نو په آزاد شوی (غلام) به زیاتی نه لازمیږي وَلَا يَرْجِعَانِ بِمَا يُؤَدِّيَانِ عَلَى الْمَوْلَى. او دوی دواړه (مدبر او ام ولد) به په ادا شوی مقدار کې مولا باندې رجوع نه کوی بَعْدَ يَسَارِهِ د هغه د مالدارۍ نه روسته لِأَنَّهُمَا أَدَّيَاهُ مِنْ مَالِ الْمَوْلَى خکه چې دوی دواړو پور د مولا د مال نه ادا کړې دې وَالْمُعْتَقُ يَرْجِعُ، او آزاد شوې به رجوع کوی لِأَنَّهُ أَدَّى مِلْكَهُ عَنْهُ خکه چې ده د مولا د اړخه خپل ملك ادا کړې دې وَهُوَ مُضْطَرٌّ عَلَى مَا مَرَّ حالانکه (په دې کې) غلام مجبور دې. د هغه تفصیل مطابق کوم چې تیر شوې دې.

حل اللغة: ① معسر: غریب ② المحتبس: بندونکې

تشریح:- د راهن د غربت په صورت کې فرمایي چې مرتهن مدبر او ام ولد دې دومره مزدوری اوکړی. چه د هغه د پور په اندازه شی. خکه چې د دوی دواړو مزدوری د مولا ملك دې. او پور په مولا دې. نو ددوی په مزدورۍ سره پور ادا کول داسې دی. ګویا مولا پخپله ادا کوی. خو د آزاد شوی اړه کې حکم دا وو. چه په پور او قیمت کې چې کوم یو کم وی. دغه هومره مزدوری به کوی. او مرتهن ته به نې ورکوی. د دې امله دا بیانوی چې د معتق (آزاد شوی غلام) مزدوری پخپله د معتَق (مولا) ده. په دې وجه دواړو کې چې کوم کم وی. دغه هومره به په ده واجب وی. او حقیقت کې د مرتهن پور په راهن دې. خو چونکه دده حق د مرهون مالیت سره متعلق شوې وو. او اوس د مرهون مالیت ختم شو. ددې باوجود د مرتهن مالیت غلام سره محبوس پاتې شو. چه ددې په وجه به هغه په ده باندې مزدوری کوی. خو غلام سره چې کوم د مرتهن مالیت ګیر دې. هغه په اندازه د قیمت دې. نو مرتهن ته به د قیمت نه زیات د مزدورۍ کاوه حق نه وی. او د مرتهن حق راهن باندې صرف د پور په اندازه دې. نو که پور کم وی. نو مرتهن ته په غلام باندې د پور د مقدار نه زیاته مزدوری کاوه حق نه وی. او نه په غلام باندې د مقدار نه زیاته مزدوری کول واجب وی. او چونکه د ام ولد او مدبر مزدوری د مولا مال دې. نو دوی چې کومه مزدوری ګټلې ده. او کوم پور نې ادا کړې دې. دوی ته دا حق نشته. چه د مولا نه دهغه د مالدارۍ نه روسته دا مقدار واپس واخلی. البته آزاد شوې (غلام) به واپس اخلی. چه ددې تفصیل تیر شوې دې

**مدبر او ام ولد به کله سعی کوی؟**



وَقِيلَ الدَّيْنُ إِذَا كَانَ مُؤَجَّلًا او ونیلی شوی دی. چه کله پور میعادی وی يَسْعَى الْمُدَبَّرُ فِي قِيمَتِهِ قِنًّا نو مدبر به خپل قیمت کې مزدوری کوی لِأَنَّهُ عِوَضُ الرَّهْنِ خکه چې قیمت د مرهون عوض دې حَتَّى تُحْبَسَ مَكَانَهُ تر دې چې قیمت به د مرهون په ځاې محبوس وی فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمُعَوَّضِ.. نو عوض به معوض (مرهون) په اندازه مقدر وی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ حَالًّا په خلاف ددې صورت کله چې قرضه فی الحال واجب الاداء وی. لِأَنَّهُ يَقْضِي بِهِ الدَّيْنَ، وَلَوْ أَعْتَقَ الرَّاهِنُ الْمُدَبَّرَ خکه چې مزدورۍ سره به پور ادا کولې شی. اوکه راهن مدبر آزاد کړو وَقَدْ قُضِيَ عَلَيْهِ بِالسِّعَايَةِ او په ده د مزدورۍ فیصله کړې شوې وه أَوْلَمْ يُقْضَ لَمْ يَسْعَ إِلَّا بِقَدْرِ الْقِيمَةِ نو دې به مزدوری نه کوی. خو د قیمت په اندازه لِأَنَّ كَسْبَهُ بَعْدَ الْعِتْقِ مِلْكُهُ خکه چې د آزادۍ نه روسته دده مزدوری هم دده ملك دې وَمَا أَدَّاهُ قَبْلَ الْعِتْقِ او ده چې د آزادۍ نه مخکې کوم اداکړې دې. لَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى مَوْلَاهُ هغه به د خپل مولا نه واپس نه اخلی لِأَنَّهُ أَدَّاهُ مِنْ مَالِ الْمَوْلَى خکه چې دا هغه د مولا د مال نه ادا کړې دې.

تشریح:- د دې خبرې بیان وړاندې اوشو چې مدبر او ام ولد به دومره ګټه کوی. چه د مرتهن پور ادا شی. خو بعض حضراتو ونیلی دی. چه دا حکم صرف هغه وخت دې. کله چې پور فی الحال واجب الاداء وی. خکه چې هلته کې د توانګر راهن نه هم د پور ادا کاوه مطالبه کیږي. دغه ډول به دلته کې د مدبر نه هم کیږي. خو که پور نیتیه دار وی. نو د راهن د مالداره کیدو په صورت کې هلته کې د راهن نه د مرهون غلام قیمت اخستلې شی. او د مرهون په ځاې رهن ایخودې شی. دغه ډول د مدبر په صورت کې هم که پور میعادی (نیتیه دار) وی. نو په مدبر به صرف دومره مزدوری کولې شی. خومره چې دده قیمت دې. خکه چې د مرهون عوض قیمت وی. نو عوض به دومره واجب وی. خومره چې معوض دې. نو په قیمت سره به مزدوری نشی کولې.

؟ زید خپل مرهون غلام مدبر کړو. او بیا ده لره زید آزاد کړو. نو اوس به دې خومره مزدوری کوی؟ نو وې فرمائیل. چه اوس به په ده باندې د ازاد شوی احکام جاری کولې شی. یعنی که قیمت کم وی. نو صرف د قیمت په اندازه به مزدوری کوی. د پور په اندازه مزدوری به په ده باندې لازم نه وی. خکه چې کله دې آزاد شو. نو دده مزدوری دده ملك شو. نو هم هغه حکم به جاری کیږي. کوم چې د آزاد وی. کوم چې ددې نه مخکې تیر شوې دې. او په دې مدبر د مزدورۍ فیصله شوې وی. او که نه وی شوې. دواړو صورتونو کې هم دا حکم دې. کوم چې ذکر شو. ده چې د آزادۍ نه مخکې د مدبر کیدو په صورت کې کومه مزدوری کړې ده. او مرتهن ته نې ورکړې ده. د خپل مولا څخه به د هغې د اخستلو حقدار نه وی. خکه چې دغه وخت دې مدبر وو. او د مدبر مال د مولا مال وی.

**که راهن مرهون هلاك کړو نو څه حکم دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل وَكَذَلِكَ لَوِ اسْتَهْلَكَ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ او هم دغه ډول (به په راهن باندې ضمان واجب وی) کله چې راهن رهن هلاك کړې وی لانه حق محترم خکه چې دا (حق د مرتهن) محترم حق دې وَمَضْمُونٌ عَلَيْهِ بِالْإِتْلَافِ چې دا به په راهن باندې د هلاکاوه په وجه مضمون وی وَالضَّمَانُ رَهْنٌ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ او ضمان به د مرتهن په قبضه کې رهن وی لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْعَيْنِ د ضمان د عین قائم مقام کیدو په وجه.

تشریح:- که راهن مرهون هلاك کړو. نو ددې هلاکاوه حکم هغه دې. کوم چې د راهن د ازادولو حکم دده په مالدارۍ کې وی. یعنی که پور فی الحال واجب دې. نو دده څخه به پوره پور وصولولې شی. اوکه پور نیتیه دار وی. نو د مرهون قیمت به د راهن نه اخستلې شی. او دا قیمت به د (پور ادا کولو) نیتې راتلو پورې مرتهن سره رهن وی. ولې؟ خکه چې د مرتهن حق محترم حق دې. چه ددې د هلاکاوه په وجه ضمان لازمیږي. او دا ضمان به مرتهن سره څکه پروت وی. چه دا د عین مرهون قائم مقام دې.

**که مرهون بل چا هلاك کړو نو ضامن به څوك وی؟**

(فَإِنِ اسْتَهْلَكَهُ أَجْنَبِيٌّ نو که مرهون چا اجنبی (غیر کس) هلاك کړې وی فَالْمُرْتَهِنُ هُوَ الْخَصْمُ فِي تَضْمِينِهِ نو د

اجنبی په ضامن جوړولو کي به مرتهن خصم وی **فَيَأْخُذُ الْقِيمَةَ** نو مرتهن به قیمت اخلی **وَتَكُونُ رَهْنًا فِي يَدِهِ** او دا قیمت به د مرتهن په قبضه کي رهن وی **لِأَنَّهُ أَحَقُّ بِعَيْنِ الرَّهْنِ حَالَ قِيَامِهِ** خکه چې مرتهن د مرهون د موجود کیدو په وخت د عین مرهون زیات حقدار وو **فَكَذَا فِي اسْتِرْدَادِ مَا قَامَ مَقَامَهُ** نو دغه ډول به د مرهون د قائم مقام شئ واپس اخستلو کي (هم دې زیات حقدار وی **وَالْوَاجِبُ عَلَى هَذَا الْمُسْتَهْلِكِ** او په دې هلاکونکی باندې به د مرهون هغه قیمت واجب وی قیمته یوم هلك کوم چې د هلاکت په ورخ ددې قیمت دې **فَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ يَوْمَ اسْتَهْلَكَهُ خَمْسَمِائَةٍ** نو که د هلاکاوه په ورخ د مرهون قیمت پنځه سوه وی **وَيَوْمَ رَهَنَ أَلْفًا** او د رهن په ورخ زر روپئ وی **غَرِمَ خَمْسَمِائَةٍ** نو هلاکونکې به د پنځو سوو تاوان ادا کوی **وَكَانَتْ رَهْنًا وَسَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ خَمْسُمِائَةٍ** او دا قیمت به رهن وی.او په پور کي پنځه سوه ساقط شوې

**حل اللغة:** ① غرم: تاوان»

**تشریح:-** که د مرهون په خاني د راهن نه علاوه بل چا اجنبی سړی دا هلاك کړو.نو په دې اجنبی به ضمان واجب وی.خو ددې اجنبي څخه به تاوان مرتهن وصوله وی.یعنی د اجنبی څخه به مرتهن قیمت وصوله وی.او خپل خان سره به ئې رهن ایږدی.اوس سوال پیدا شو.چه مرتهن تاوان ولې وصوله وی؟ نو ځواب ئې ورکړو.که مرهون موجود وې.نو ددې زیات حقدار به مرتهن وو.نو کوم شئ چې د مرهون قائم مقام دې.د هغې د واپس اخستلو حقدار به هم مرتهن وی.اوس سوال پیدا شو.چه د اجنبی څخه به څومره تاوان اخستلې شی؟ نو ددې ځواب ئې ورکړو.چه په کومه ورځ اجنبي مرهون هلاك کړو.دغه ورځ چې د مرهون کوم قیمت وی.دغه اومره تاوان به د اجنبی نه اخستلې شی.مثلاً د رهن ایخودو په ورځ قیمت زر روپئ دې.او پور هم اتفاق سره زر روپئ دی.او د هلاکت په ورځ د مرهون قیمت پنځه سوه روپئ دې.نو په اجنبی به صرف د پنځو سوو روپو تاوان واجب وی.او دا پنځه سوه روپئ به مرتهن سره رهن وی.او د پور څخه به پنځه سوه روپئ ساقطیږی.یعنی اوس راهن باندې صرف پنځه سوه روپئ پور پاتې شو.چه ددې عوض اوس دا قیمت دی.کوم چې مرتهن سره ایخودې شوې دی.

**فَصَارَ الْحُكْمُ فِي الْخَمْسِمِائَةِ الزِّيَادَةِ** نو شی به حکم په دې پنځو سوو کي چې کوم زیات دې.( یعنی د فی الحال قیمت نه چې کوم زیات دې) **كَأَنَّهَا هَلَكَتْ بِآفَةٍ** گویا چې دا په څه آفت سره هلاك شوې دې **وَالْمُعْتَبَرُ فِي ضَمَانِ الرَّهْنِ الْقِيمَةُ يَوْمَ الْقَبْضِ** او په ضمان د رهن کي د قبضې د ورځې قیمت معتبر دې **لَا يَوْمَ الْفِكَاكِ** نه د ورځې د خلاصیدو نه، **لِأَنَّ الْقَبْضَ السَّابِقَ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ** خکه چې مخکنې قبض تاوان دې پر(په)ده باندې **لِأَنَّهُ قَبْضُ اسْتِيفَاءٍ** خکه چې دا ( قبضه د مرتهن) قبضه د استیفاء ده. **إِلَّا أَنَّهُ يَتَقَرَّرُ عِنْدَ الْهَلَاكِ** خو ضمان د هلاکت په وخت مقرر کیږی.

**تشریح:-** که مرهون مرتهن سره هلاك شی.که د مرتهن په هلاکاوه سره هلاك شوې وی.او که د آسمانی آفت په وجه هلاك شوې وی.نو د مرهون د قیمت په اندازه به پور ساقطیږی... کمامر.،نو دلته اگرچه پوره مرهون هلاك نشو.بلکه نصف هلاك شو.خکه چې پنځه سوه روپئ مرتهن ته د اجنبی نه ملاؤ.شوې دی.نو څومره قیمت چې کمولو سره هلاك شوې دې.هغه هلاك شو.او که کمې به د مرتهن په ذمه وی.نو داسې به گڼړلې شی.چه مرتهن سره د پنځو سوو روپو په اندازه هلاك شوې دې.نو دومره به دده پور ساقطیږی.خکه که اجنبی هلاك کړې وو.نو په هغه د هلاکت د ورځې ضمان واجبیږی.چه هغه ده ورکړو. و مرتهن باندې د قبضې د ورځې د قیمت ضمان واجبیږی.او د خلاصولو د ورځې د قیمت اعتبار کیږی خکه چې د مرتهن قبضه د استیفاء قبضه وی.نو مرهون د مرتهن په ضمانت کي د رهن په وخت داخل شوې دې.او اوس ددې قیمت کم شوې دې.او نیم پاتې شوې دې.نو د پاته ضمان په مرتهن باندې پاته پاتې شو.او ددې په اندازه د مرتهن پور ختم شو.او پنځه سوه پاته پاتې شو.

که څوك پوښتنه اوکړی چې هرکله مرتهن باندې د قبضې د ورځې قیمت معتبر وی.نو بیا داسې کیدل پکار دی.که مرهون هلاك شوې نه وی.او مرتهن سره ددې قیمت کم شو.نو د قیمت د نقصان په اندازه به پور ختمیږی.او پاته پور دې راهن ادا کړی.او خپل مرهون دې راخلاص کړی؟ نوموړ وایوچه مرغینانی رحمه الله ددې



ځواب په «إلا أنه يتقرر عند الهلاك...» سره ورکړې دې.یعنی اوس به مرتهن باندې ددې کموالی تاوان واجب نه وی.خکه چې ضمان کي مضبوطی د مرهون هلاکت سره راخی.او مرهون هلاك شوې نه دې.بلکه ژوندې دې.صرف د نرخ کمیدو په وجه ددې قیمت کم شوې دې.نو اوس لا په ضمان کي مضبوطی او قوت نه دې راغلې.نو که په دې حال کي راهن دا لنډیز وی.نو پوره پور به ورکوی.او لنډیز وی به.او په موجوده صورت کي چونکه اجنبی سره مرهون هلاك شوې دی.نو اوس به د قبضې د ورځې پوره قیمت معتبر وی... کمامر.

**(وَلَوِ اسْتَهْلَكَهُ الْمُرْتَهِنُ)** و که مرهون مرتهن هلاك کړې وی **وَالدَّيْنُ مُؤَجَّلٌ غَرِمَ الْقِيمَةَ** و پور میعادی وی.نو مرتهن به د قیمت تاوان ورکوی **لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ الْغَيْرِ** خکه چې مرتهن د غیر ملك هلاك کړې دې **وَكَانَتْ رَهْنًا فِي يَدِهِ** او دا قیمت به د مرتهن په قبضه کي رهن وی **حَتَّى يَحِلَّ الدَّيْنُ** تردې چې د پور ادا کاوه وخت راشی **لِأَنَّ الضَّمَانَ بَدَلُ الْعَيْنِ** خکه چې ضمان د عین بدل دې **فَأَخَذَ حُكْمَهُ** نو ضمان به د عین حکم اخلی **وَإِذَا حَلَّ الدَّيْنُ** و کله چې د پور ادا کاوه وخت راشی » **وَهُوَ عَلَى صِفَةِ الْقِيمَةِ** او دا (قرض) د قیمت د صفت (یعنی جنس) باندې دې **اسْتَوْفَى الْمُرْتَهِنُ مِنْهَا قَدْرَ حَقِّهِ** نو مرتهن به د قیمت نه د خپل حق په اندازه اخلی **لِأَنَّهُ جِنْسُ حَقِّهِ** **ثُمَّ إِنْ كَانَ فِيهِ فَضْلٌ** خکه چې دا دده د حق گڼړول دی.بیا که دې کي زیاتی وی **يَرُدُّهُ عَلَى الرَّاهِنِ** نو دا دې په راهن باندې واپس کړی **لِأَنَّهُ بَدَلُ مِلْكِهِ** خکه چې دا ( د مرهون قیمت) د راهن د حق بدل دې **وَقَدْ فَرَغَ عَنْ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ** حالانکه دا د مرتهن د حق نه فارغ شوې دې.

**حل اللغة:** ① اتلاف: هلاکول ② استوفی: پوره وصول

**تشریح:-** د مرتهن د مرهون د ضائع کاوه په صورت کي که پور (نیتبه دار) وی.نو مرتهن به د مرهون د قیمت ضامن وی.او دا قیمت به مرتهن سره رهن وی.خکه که مرهون پاته وې.نو ددې به هم دا حکم وو.نو اوس به د مرهون د بدل هم دا حکم وی.او په مرتهن باندې ضمان خکه واجب شوې دې.چه ده د غیر ملك ضائع کړې دې.او کله چې د پور ادا کاوه وخت راشی.نو اوس به کتلې شی.چه قیمت د پور د جنس څخه دې.او که نه دې.نو که قیمت د پور د جنس څخه وی.نو ددې قیمت څخه به مرتهن د خپل حق په اندازه وصوله وی.که د پور ادا کاوه نه روسته څه رقم بچ پاتې شی.نو هغه به راهن ته واپس ورکولې شی.خکه چې دا قیمت د راهن د ملك بدل دې.او اوس دا بدل د مرتهن د حق نه فارغ شوې دې.نو پاته پاتې به راهن ته واپس کولې شی.خو که قیمت د پور نه کم وی.نو ددې حکم په راروان عبارت کي بیانوی،

## مرتهن مرهون هلاك کړو.خو د مرهون قیمت راپریوتو.نو څه حکم دې؟

**(وَإِنْ نَقَصَتْ عَنِ الدَّيْنِ)** و که (د مرهون) قیمت د پور نه کم شو **بِتَرَاجُعِ السِّعْرِ** د نرخ واپس کیدو په وجه، **إِلَى خَمْسِمِائَةٍ** پنځو سوو پورې **وَقَدْ كَانَتْ قِيمَتُهُ يَوْمَ الرَّهْنِ أَلْفًا** حالانکه ددې قیمت د رهن په ورځ زرروپئ وو **وَجَبَ بِالِاسْتِهْلَاكِ خَمْسُمِائَةٍ** نو د هلاکاوه په وجه به پنځه سوه واجب وی **وَسَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ خَمْسُمِائَةٍ** و د پور څخه به پنځه سوه ساقطیږی. **لِأَنَّ مَا انْتَقَصَ كَالْهَالِكِ** خکه کوم چې کم شوې دې نو هغه پر(په)ځیر د هلاک شوې دې **وَسَقَطَ الدَّيْنُ بِقَدْرِهِ**، او ساقط شو پور پر(په)اندازه د هغې **وَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْقَبْضِ** او دده د قبضه کاوه د ورځې قیمت به معتبر وی **فَهُوَ مَضْمُونٌ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ** او په مرتهن باندې به مرهون د مخکنئ قبضې په وجه مضمون وی **لَا بِتَرَاجُعِ السِّعْرِ** د نرخ کرځیدو په وجه به نه وی **وَوَجَبَ عَلَيْهِ الْبَاقِي بِالْإِتْلَافِ** او په مرتهن به پاته د هلاکاوه په وجه واجب وی. **وَهُوَ قِيمَتُهُ يَوْمَ أَتْلَفَ** او هغه د مرهون په ورځ د هلاك شوی قیمت دې.

**تشریح:-** مرتهن که مرهون هلاك کړلو او ددې قیمت کم شو نو ددې کمی ضمان په مرتهن راخی.ددې تفصیل دا دې.چه په کومه ورځ رهن ایخودې شوې وو.هغه ورځ د مرهون قیمت زر روپئ وو.بیا د نرخ بدلیدو رابدلیدو سره د مرهون قیمت پنځه سوه روپئ پاتې شو.اوس مرتهن دا هلاك کړو.نو په مرتهن باندې دوې (دوه) ضمانه شو.یو

ضمان د استهلاك او دوهم ضمان د نقصان، نو د استهلاك د ضمان په وجه مرتهن باندې به پنځه سوه روپۍ د مرهون قيمت لازم وی.چه دا به رهن ايخودې شی.او د نقصان د پنځو سوو روپو په وجه به په پور کې پنځه سوه روپۍ ساقطيږی.اوس صرف پنځه سوه روپۍ پاتې شوې.ځکه چې کله مرهون هلاك شی.دغه وخت نقصان هم مضمون وی...کمامر.. نو نقصان ته به د هلاکت مرتبه ورکولې شی.او د نقصان په اندازه به پور ساقطيږی.او چونکه مرهون د مخکنۍ قبضې په وجه د مرتهن په ضمان کې داخل دې.نو د قبضې د ورځې قيمت به معتبر وی.

«لايتراجع السعر...» يعنی مرهون د مرتهن په ضمان کې د نرخ بدليدو په وجه داخل نه دې.بلکه د مخکنۍ قبضې په وجه مضمون دې.نو د قبضې د ورځې قيمت به مضمون وی.او د پنځو سوو روپو کوم ضمان چې واجب شوې دې.هغه د هلاکاوه په وجه واجب شوې دې.نو په دې کې به د هلاکيدو د ورځې قيمت معتبر وی.

**د مرتهن، راهن سره د مرهون د عاريت ايخودو حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله وويل (وَإِذَا أَعَارَ الْمُرْتَهِنُ الرَّهْنَ لِلرَّاهِنِ لِيَخْدُمَهُ) او کله چې مرتهن مرهون، راهن ته عاريت ورکړو.چه مرهون د راهن خدمت اوکړی. أَوْلِيَعْمَلَ لَهُ عَمَلًا دهغه لپاره څه کار اوکړی. فَقَبَضَهُ نو راهن په دې باندې قبضه اوکړله خَرَجَ مِنْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو مرهون د مرتهن د ضمان نه اووتلو لِمُنَافَاةٍ بَيْنَ يَدِ الْعَارِيَةِ وَبَيْنَ يَدِ الرَّهْنِ د قبضې د عاريت، او د قبضې د رهن په منځ کې د منافات په وجه (فَإِنْ هَلَكَ فِي يَدِ الرَّاهِنِ نو که مرهون د راهن په قبضه کې هلاك شی هَلَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو د څه شئ نه بغير به هلاك وی.( يعنی د مرتهن پور به نه ختميږی). لِفَوَاتِ الْقَبْضِ الْمَضْمُونِ د مضمون قبضې فوت کيدو په وجه وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَسْتَرْجِعَهُ إِلَى يَدِهِ او مرتهن ته حق شته.چه مرهون واپس پخپله قبضه کې واخلی لِأَنَّ عَقْدَ الرَّهْنِ بَاقٍ إِلَّا فِي حُكْمِ الضَّمَانِ فِي الْحَالِ ځکه چې عقد رهن پاته دې.خو اوس د ضمان په حکم کې ( پاته نه دې).

**تشريح:-** صورت د مسئلې دا دې چې راهن ، مرهون د مرتهن سره کيخودو.ددې نه روسته مرتهن هم دا مرهون، راهن ته عاريتاً کار ( او خدمت) کاوه لپاره ورکړو.چه په دې باندې راهن قبضه اوکړله.نو اوس مرهون د مرتهن د قبضې نه اووتلو.نو اوس مرهون د مرتهن په ضمانت کې نه دې.ځکه چې اوس مرهون د راهن په قبضه کې دې.او د راهن قبضه، قبضه د امانت ده.او د مرتهن قبضه، قبضه د ضمانت ده.چه ددې په منځ کې منافات دې. ددې تقاضه دا ده.چه ددې دواړو قبضو اجتماع نه وی.گنی اجتماع د نقيضينو به لازم شی. لنډيز د کلام دا چې اوس مرهون د مرتهن په ضمان کې نه دې.نوکه مرهون د راهن سره هلاك شی.نو چونکه دده سره امانت دې.نو په راهن باندې هم ضمان نشته.او د مرتهن د ضمان د قبضې نه خارج شوې وو.نو په مرتهن هم ضمان نشته.البته د مرتهن قرضه پخپل حال د راهن په ذمه قائم ده.خو دا ياد ساتئ:چه ددې عاريت په وجه د مرتهن قبضه ختمه شوې ده.عقد رهن نه دې ختم شوې.بلکه عقد رهن قائم دې.نو مرتهن چې کله هم اوغواړی.مرهون د راهن نه واپس اخستلې شی. لنډيز د کلام دا چې عقد رهن پاته دې.خو اوس حکم د ضمان نشته.اود ضمان نه کيدو وجه تيره شوې ده.

**که مرتهن قبضه ختمه کړه نو عقد رهن به پاته وی اوکه نه؟**

أَلَا تَرَى آيا تاسو نه گورئ أَنَّهُ لَوْ هَلَكَ الرَّاهِنُ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ که راهن مرهون، مرتهن ته د واپس کاوه نه مخکې هلاك کړی كَانَ الْمُرْتَهِنُ أَحَقَّ بِهِ مِنْ سَائِرِ الْغُرَمَاءِ نو مرتهن به ددې زيات حقدار وی.د ټولو قرضخواهانو نه وَهَذَا لِأَنَّ يَدَ الْعَارِيَةِ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ او دا ( عقد رهن پاته پاتې کيدل) ځکه دی.چه د عاريت قبضه لازم نه ده وَالضَّمَانُ لَيْسَ مِنْ لَوَازِمِ الرَّهْنِ عَلَى كُلِّ حَالٍ او ضمان هرحال کې د رهن د لوازمو څخه نه دې أَلَا تَرَى أَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ ثَابِتٌ فِي وَلَدِ الرَّهْنِ آيا تاسو نه گورئ.چه د رهن په بچی کې د رهن حکم ثابت دې وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَضْمُونًا بِالْهَلَاكِ اگرچه دا بچې مضمون بالهلاك نه دې وَإِذَا بَقِيَ عَقْدُ الرَّهْنِ او هرکله چې عقد رهن پاته دې فَإِذَا أَخَذَهُ



عَادَ الضَّمَانُ نو کله چې مرتهن مرهون واخستلو.نو ضمان واپس راغې لِأَنَّهُ عَادَ الْقَبْضُ فِي عَقْدِ الرَّهْنِ ځکه چې عقد رهن کې قبضه واپس راغله فَيَعُودُ بِصِفَتِهِ نو قبضه به سره د خپل صفت ( د ضمان) نه واپس راځی.

**حل اللغة:** ① الغرماء: جمع د غريم، قرضخواه»

**تشريح:-** په دې عبارت سره ددې بيان کوی چې د مرتهن قبضه اگرچه ختمه شوه خو عقد رهن بيا هم پاته دې يعنی که راهن اوسه پورې مرهون مرتهن ته واپس کړې نه دې.چه راهن مړ شو.او په راهن باندې د نورو خلگو پور هم دې.چه هغوی مرهون کې شريکيدل غواړی.ليکن حق د مرتهن به مقدم وی.او هغه به خانله د مرهون حقدار وی.د پاته قرضخواهانو به په دې کې شرکت نه وی.ددې نه معلومه شوه.چه عقد رهن پاته دې.او ددې وجه دا ده.چه د عاريت قبضه نه لازميږی.بلکه مرتهن چې کله اوغواړی.دا دې د راهن نه واپس واخلی.په دې وجه عقد رهن پاته شمار کړې شوې دې.

که څوك دا ووايي چې دا څنگه کيدای شی چې رهن دې پاته وی او ضمان دې واجب نه وی نو موږ ځواب ورکوو چې دا څه هميشه لپاره لازم نه دې.چه چرته کې هم رهن وی.هلته به ضمان هم لازم وی.لکه مثلاً مرهون يوه اسپه ده.هغې بچې راوړو.نو بچې به هم مرهون وی.خو که بچې هلاك شی.نو ددې ضمان واجب نه دې.بهرحال ذکر شوی صورت کې عقد رهن پاته دې.او هرکله چې عقد پاته دې.نو کله چې مرتهن مرهون واپس واخستلو.نو ضمان هم واپس راځی.ځکه چې کله عقد رهن کې قبضه واپس راځی.نو سره د خپل صفته به واپس کيږی.او د رهن د قبضې صفت ضمان دې.نو مرهون بيا د مرتهن په ضمان کې داخل شو.

**د يو بل په اجازت، بل چا سره د عاريت ايخودو حکم**

(وَكَذَلِكَ لَوْ أَعَارَهُ أَحَدُهُمَا أَجْنَبِيًّا او دغه ډول که مرهون دوی دواړو کې يوکس اجنبی ته عاريت باندې ورکړو

بِإِذْنِ الْآخَرِ د دوهم په اجازت سره سَقَطَ حُكْمُ الضَّمَانِ نو د ضمان حکم به ساقطيږی لما قلنا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَرُدَّهُ رَهْنًا كَمَا كَانَ او دوی دواړو کې هريو ته حق شته.چه مرهون د مخکې پشان رهن ارخ ته واپس کړی لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَقًّا مُحْتَرَمًا فِيهِ ځکه چې دې کې د هر يو حق محترم دې.

**حل اللغة:** ① محترم: قابل قدر، قابل عزت»

**تشريح:-** دلته بل صورت ذکر کوی که راهن ته د عاريت ور کاوه په ځائې ئې اجنبی ( غيرکس) ته عاريت باندې ورکړی.که هريوکس ورکړې وی.خو چې د دوهم په اجازت سره ئې ورکړې وی.بيا هم دا حکم دې.چه اوس مرهون په ضمان کې داخل نه دې.اوکه مستعير سره هلاك شی.نو په هيڅ يو به ضمان واجب نه وی.مستعير باندې په دې وجه چې دده قبضه، قبضه د امانت ده.او امانت کې د تعدی نه بغير ضمان نه واجبيږی.او مرتهن باندې په دې وجه ( نه واجبيږی) چې ضمانتی پور د تيرشوی دليل په وجه ختم شوې دې.نو د مرتهن پور به راهن باندې پخپل حال پاته پاتې وی.او چونکه مرهون کې د راهن او مرتهن دواړو حق محترم دې.نو په دوی دواړو کې هر يو ته دا حق حاصل دې.چه مستعير نه مرهون واپس واخلی.او مرهون ئې جوړ کړی.لکه څنگه چې مخکې وو.

**د يو بل په اجازت په بل چا د مرهون خرخولو.د اجارې يا هبه کولو حکم**

بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ وَالْبَيْعِ وَالْهِبَةِ مِنْ أَجْنَبِيٍّ او دا ( د عاريت مسئله) د اجنبی په لاس د اجارې او بيع او د هبې خلاف ده إِذَا بَاشَرَهَا أَحَدُهُمَا بِإِذْنِ الْآخَرِ کله چې دوی دواړو کې يو د دوهم په اجازت ورکړې وی وَحَيْثُ يَخْرُجُ عَنِ الرَّهْنِ فَلَا يَعُودُ په دې حيثيت سره چې دا به د رهن نه خارجيږی.نو رهن به نه واپس کيږی إِلَّا بِعَقْدٍ مُبْتَدَإٍ خو په نوی عقد سره، وَلَوْ مَاتَ الرَّاهِنُ اوکه راهن مړ شی قَبْلَ الرَّدِّ إِلَى الْمُرْتَهِنِ مرتهن ارخ ته د واپس کاوه نه مخکې كَوْنُ الْمُرْتَهِنِ أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ نو مرتهن به د قرضخواهانو برابر وی بِلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِالرَّهْنِ حَقٌّ لَازِمٌ بِهَذِهِ التَّصَرُّفَاتِ ځکه چې مرهون سره ددې تصرفاتو په

سبب، لازم حق متعلق شو **فَيَبْطُلُ بِهِ حُكْمُ الرَّهْنِ** نو ددې لازم حق په وجه د رهن حکم باطل شو **يَتَعَلَّقُ بِهِ حَقٌّ لَازِمٌ** بهرحال د عاریت په وجه مرهون سره حق لازم نه دې متعلق شوې **أَمَّا بِالْعَارِيَةِ لَمْ فَافْتَرَقَا** نودا دواړه جلا جلا شو.

**تشریح:-** دلته د ماقبل مسئلې د حکم برعکس صورت بیانوی هغه دا که په راهن او مرتهن کې یوکس د دوهم په اجازت سره یو اجنبی باندې مرهون خرڅ کړو. یا ئې اجاره باندې ورکړو. یا ئې هبه کړو. نو اوس مرهون د رهن نه خارج شو. نو که اوس مرتهن سره مرهون واپس راشی. بیا هم صرف د قبضې په وجه به رهن نه وی. ترکومه پورې چې نوې عقد اونکړې شی. په دې صورت کې که راهن اوس مرهون مرتهن ته واپس کړې نه وو. چه راهن مړ شو. نو اوس به د مرهون حقدار صرف مرتهن نه وی. بلکه نورو قرضخواهانو سره به برابر شریك وی. او برخه به ټولو ته په دې کې ورکولې شی. (چه ددې د ویش طریقه موږ په درس د سراجی کې بیان کړې ده). په عاریت او دې تصرفاتو کې د توپیر کاوه وجه دا ده. چه ددې تصرفاتو په وجه د نورو لازم حق مرهون سره متعلق شوې دې. یعنی مشتری او. مستاجر اود موهوب له لازم حق مرهون سره متعلق شوې دې. په دې وجه رهن ختمول لازم شو. او د عاریت په وجه د مستعیر هیڅ لازم حق مرهون سره نه دې متعلق شوې. نوکله چې غواړی. مستعیر نه واپس اخستلې شی.

## د راهن نه د مرتهن، مرهون عاریت اخستل او هلاکیدو سره د ضمان حکم

**(وَإِذَا اسْتَعَارَ الْمُرْتَهِنُ الرَّهْنَ مِنَ الرَّاهِنِ** او کله چې مرتهن د راهن نه مرهون عاریت واخستلو **لِيَعْمَلَ بِهِ** چې په دې سره کار اوکړی **فَهَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ فِي الْعَمَلِ** نو مرهون کارکې د لګیدو نه وړاندې هلاك شو **هَلَكَ عَلَى ضَمَانِ الرَّهْنِ** نو په ضمان د رهن به هلاك وی **لِبَقَاءِ يَدِ الرَّهْنِ** د رهن د پاته پاتې کیدو په وجه **وَكَذَا إِذَا هَلَكَ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْعَمَلِ** او هم دغه ډول کله چې د کار نه د فراغت نه روسته هلاك شوې وی **لِارْتِفَاعِ يَدِ الْعَارِيَةِ** د عاریت د قبضې ختمیدو په وجه **وَلَوْ هَلَكَ فِي حَالَةِ الْعَمَلِ** او که د کار په حالت کې هلاك شوې وی **هَلَكَ بِغَيْرِ ضَمَانٍ لِثُبُوتِ يَدِ الْعَارِيَةِ** نو د ضمان نه بغیر به هلاك وی. د عاریت د قبضې د ثبوت په وجه **بِالِاسْتِعْمَالِ** د استعمال په ذریعه **وَهِيَ مُخَالِفَةٌ لِيَدِ الرَّاهِنِ فَانْتَفَى الضَّمَانُ** او دا (قبضه د عاریت) د قبضې مخالف ده. نو ضمان منتفی شو.

**تشریح:-** مرتهن د راهن نه د څه کار کاوه لپاره مرهون مستعار واخستلو. او هغه هلاك شو. نو اوس درې صورتونه دی. په دوو صورتونو کې ضمان واجب دې. او په یو کې نه دې. ① د کار پیل کاوه نه وړاندې مرهون هلاك شو. یا ② د کار کاوه نه فارغ شو. اوس مرهون هلاك شو. نو په دې دواړو صورتونو کې د رهن حکم په دې جاری کیږی. او هلاکت به په پور کې مضمون وی. په ړومبی صورت کې ځکه چې اوس قبضه د رهن پاته ده. او په دوهم صورت کې ځکه چې اوس قبضه د عاریت ختمه شوه. او قبضه د رهن جوړه شوې ده. ③ خاص د استعمال په وخت هلاکه شی. نو اوس به ضمان نه وی. او پور به پخپل حال پاته وی. ځکه چې استعمال د عاریت د قبضې په وجه، او د عاریت په قبضه کې د داخلولو دپاره، د ضمانت د قبضې نه وتل ضروری دی. ګنی اجتماع د متنافیینو (نقیضونو) به لازم شی. او عاریت کې د تعدی نه بغیر ضمان نه واجبیږی.

## د راهن، مرتهن ته د مرهون استعمالولو د اجازت حکم

**(وَكَذَا إِذَا أَذِنَ الرَّاهِنُ لِلْمُرْتَهِنِ بِالِاسْتِعْمَالِ)** وهم دغه ډول کله چې راهن، مرتهن ته د استعمال اجازت ورکړې وی **لِمَا بَيَّنَّاهُ** د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې

**تشریح:-** که د عاریت نه بغیر راهن مرتهن ته د استعمال اجازت ورکړې وی. نو اوس هم دا حکم دې. یعنی د استعمال نه مخکې او روستو هلاکت مضمون دې. خو په وخت د استعمال کې هلاکت مضمون نه دې. پاتې شوه په مرهون باندې د انتفاع مسئله، نو دا موږ مخکې واضح کړې ده.

## د یو نه په عاریت کېړه اخستل او بل سره د مرهون کولو حکم

**(وَمَنِ اسْتَعَارَ مِنْ غَيْرِهِ ثَوْبًا لِيَرْهَنَهُ** و چاچه د خپل غیر نه کپړه مستعار واخستله. چه دا رهن کیږدی. **فَمَا رَهَنَهُ بِهِ مِنْ**



**قَلِيلٍ أَوْ كَثِيرٍ فَهُوَ جَائِزٌ** نو هغه لږ یا ډیر مقدار د کوم په بدله کې چې ده رهن ایخودې دې. نو دا جائز دې **لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَبَرِّعٍ بِإِثْبَاتِ مِلْكِ الْيَدِ** ځکه چې دې (معیر) د ملك ید (د قبضې ملك) ثابتولو سره تبرع کونکې دې **فَيُعْتَبَرُ بِالتَّبَرُّعِ بِإِثْبَاتِ مِلْكِ الْعَيْنِ وَالْيَدِ** نو دې به قیاس کولې شی، د ملك عین او قبضې اثبات سره تبرع کاوه باندې **وَهُوَ قَضَاءُ الدَّيْنِ** او دا پور ادا کوی **وَيَجُوزُ أَنْ يَنْفَصِلَ مِلْكُ الْيَدِ عَنْ مِلْكِ الْعَيْنِ ثُبُوتًا لِلْمُرْتَهِنِ** او جائز ده. چه ملك ید د ملك عین نه جلا شی. مرتهن لپاره د ثبوت په اعتبار سره **كَمَا يَنْفَصِلُ زَوَالًا فِي حَقِّ الْبَائِعِ** لکه څنګه چې د بائع په حق کې د زوال په اعتبار سره جدا کیږی **وَالْإِطْلَاقُ وَاجِبُ الِاعْتِبَارِ** او اطلاق واجب الاعتبار دې **خُصُوصًا فِي الْإِعَارَةِ** خصوصاً په عاریت کې **لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهَا لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ** ځکه چې عاریت کې جهالت مفضی الی المنازعه نه دې.

**حل اللغة:** ① التبرع: احسان کول.

**تشریح:-** که خالد زید نه مثلاً کمبل عاریت واخستله. چه دا رهن کیږدی. او پور واخلی. او خپل اړتیا پوره کړی. نو دا جائز ده. بیا که زید هیڅ مقدار مقرر کړې نه وی. یعنی دا ئې نه وی وئیلی. چه په دومره کې ئې رهن کیږده. ددې نه په زیات یا کم کې ئې مه ایږده. نو مستعیر چې په څومره مقدار هم رهن کیږدی. جائز دې. نو په دې کې دوې (دوه) خبرې شوې. ① د عقد رهن جواز ② د اطلاق اعتبار. ① ړومبې دلیل دا دې. چه معیر صرف دومره حق ورکړې دې. چه مرتهن ته قبضه د ملك حاصله شی. د ملك عین د ثبوت حق ئې ورنکړو. ددې باوجود به هم دې عقد ته جائز وئیلې کیږی. ولې؟ ځکه که معیر په ذکر شوې طریقه د ور کاوه په ځائې، پور هم ددې کمبل په ذریعه ادا کړی. نو بیا هم جائز دې. چه په دې کې د ملك عین او ملك ید دواړو اثبات دې. خو دا واړه د معیر تبرع (احسان) دې. په ده څه لازمی حق نه دې. بهرحال لکه څنګه چې مقیس علیه جائز دې. دغه ډول به مقیس هم جائز وی. او په ډیرو معاملاتو کې داسې کیږی. چه ملك عین ثابت وی. او ملك ید نه وی. یا ملك ید ثابت وی. او ملك عین نه وی. لکه کله چې بائع څه شی خرڅ کړو. خو اوس په دې باندې مشتری قبضه نه ده کړې. نو ملك عین د بائع نه زائل شوې دې. او ملك ید پاته دې. او مشتری لپاره ملك عین ثابت شو. او ملك ید اوس لا نه دې ثابت شوې. معلومه شوه. چه دې دواړو کې انفصال جائز دې. هرکله چې انفصال جائز دې. نو دلته کې به هم جائز وی. چه مرتهن لپاره صرف ملك ید ثابت دې. ملك عین ثابت نه دې. ② دوهم دلیل دا دې. چه کله معیر هیڅ او نه وئیل. بلکه صرف د ایخودلو اجازت ئې ورکړو. نو د مرتهن د اطلاق اعتبار به کولې شی. او دلته به عاریت کې خصوصاً اعتبار کیږی. ځکه چې د عاریت جهالت مفضی الی المنازعه نه وی.

## د معیر د اړخه د مقدار مقررولو په صورت کښې حکم

**(وَلَوْ عَيَّنَ قَدْرًا** او که معیر یو مقدار معین کړو **لَا يَجُوزُ لِلْمُسْتَعِيرِ أَنْ يَرْهَنَهُ بِأَكْثَرَ مِنْهُ** نو مستعیر لپاره جائز نه دی. چه ددې نه په زیات سره رهن کیږدی **وَلَا بِأَقَلَّ مِنْهُ،** او نه ددې نه په کم سره (جائز دې **لِأَنَّ التَّقْيِيدَ مُفِيدٌ، وَهُوَ يَنْفِي الزِّيَادَةَ،** ځکه چې قیدلګول مفید دی. او دا قید لګول د زیاتی نفی کوی **لِأَنَّ غَرَضَهُ الِاحْتِبَاسُ** ځکه چې د معیر غرض د دومره مقدار په بدله کې محبوس دې **بِمَا تَيَسَّرَ أَدَاؤُهُ** کوم ادا کول چې آسان وی **وَيَنْفِي النُّقْصَانَ أَيْضًا** او دا قید لګول د نقصان نفی هم کوی **لِأَنَّ غَرَضَهُ أَنْ يَصِيرَ مُسْتَوْفِيًا لِلْأَكْثَرِ بِمُقَابَلَتِهِ عِنْدَ الْهَلَاكِ** ځکه د معیر غرض دا دې. چه مرتهن دې په مقابله کې د هلاکت په وخت د اکثر وصولونکې شی **لِيَرْجِعَ بِهِ عَلَيْهِ** چې معیر په مستعیر باندې رجوع اوکړې شی

**حل اللغة:** ① الاحتباس: بندول ② التقیید: مقید کول،

**تشریح:-** که معیر هیڅ مقدار مقررکړې نه وې. نو مستعیر ته د قلیل اوکثیر په بدله کې د رهن ایخودو اختیار وو. خو که ده څه مقدار مقرر کړو. نو بیا په دې کې د معین مقدار نه د کم او زیات اختیار پاتې نشو. ځکه چې معیر د کوم مقدار قید لګولې دې. هغه د منفعت نه خالی نه دې. بلکه دې کې فائده ده. کومه؟ مثلاً که ده د پنځو سوو مقدار مقرر کړې وو. نو اوس د زیاتو په بدله کې ایخودل جائز نه دی. ځکه د معیر مقصد دا وو. چه د دومره

پور په بدله کي کمبل محبوس وي.کوم چې مستعير (راهن) اسانتيا او سهولت سره ادا کولې شي.او بيا هغه ته د هغه کمبل ملاؤ شي.نو دده قيد لګول مفيد دی.او که د پنځه سوه روپۍ مقرر کړې وې.نو د سلو په بدله کي به رهن ايخودل جائز نه وی.ولې؟ ځکه چې په دې صورت کي به کمبل د سلو په بدله کي محبوس وی.نو که کمبل مرتهن سره هلاك شی.نو ده صرف سل روپۍ وصول کړې.ځکه چې دومره مقدار مضمون وو.او پاته امانت وو.چه ددې ضمان واجب نه دې.نو امانت والا مقدار به معير ته هم نه ملاويږي.نوکه په زياتو کي نې کيږدی.نو مضمون به وی.او معير ته به ضمان ملاويږي.

## د متعين جنس يا متعين مرتهن يا د معين ښار قيد لګولو حکم

| وَكَذٰلِكَ التَّقْيِيدُ بِالْجِنْسِ وَبِالْمُرْتَهِنِ وَبِالْبَلَدِ او هم دغه ډول جنس سره مقيد کول،او مرتهن سره مقيد کول، او ښار سره مقيد کول (معتبر دی (لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مُفِيدٌ لِتَيَسُّرِ الْبَعْضِ ځکه چې دې کي هريو مفيد دې.د بعضو د جنس آسانتيا سره د ملاويدو په وجه، بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْبَعْضِ په نسبت د بعضو وَتَفَاوُتِ الْأَشْخَاصِ فِي الْأَمَانَةِ وَالْحِفْظِ ،او امانت دارئ او په ساتنه د مرهون کي د خلګو د حال متفاوت کيدو په وجه |
|---|

تشريح:- لکه څنګه چې د معير دا قيد مفيد او معتبر شوې وو.چه د دومره پور په بدل کي نې کيږده .دغه ډول که معير دا قيد اولګوی.چه د فلانی شئ په بدله کي نې رهن کيږده.يا مرتهن فلانې شئ پکار دې.يا نې دا قيد اولګولو.چه فلانی ښار کي رهن ايخودې شي.نو دمعير دا قيد لګول به هم معتبر او مفيد وی.او مستعير ته به دا حق نه وی.چه ددې مخالفت اوکړی.او په دې قيوداتو کي فائده ده.مثلاً که زميندار غنم پور واخلی.او رهن کيږدی.نو دغه وخت به غنم ادا کول د روپو په نسبت زيات آسان وی.يا عاريت ورکونکی خيال اوکړو.چه شايد مستعير نې خلاص نکړې شی.او ماته پخپله خلاصول راپيښ شی.او دغه وخت ماته فلانې شئ آسانتيا سره ملاو شی.نو بهرحال دا قيد مفيد دې.دغه ډول د مرتهن تعين هم مفيد دې.ځکه که مرتهن ديندار سړې دې.نو هغه به دا چالاکی نه کوی.چه که مرهون زيات قيمتی دې.نو داسې اووايه.چه هغه خو زما سره هلاك شو.نو د پور په اندازه به مضمون وی.او پاته امانت وو.چه د هغې ضمان واجب نه دې.يعنی مرتهن به دا منطق نه چلوی.او مرهون به نه هضمه وی.او د امانت دارو خلګو حال هم د امانت د ساتنه په باب کي مختلف وی.دغه ډول د ښار قيد هم مفيد دې.ځکه چې بعضو ښارونو کي پور ادا کول اسان وی.او په بعضو کي مشکل وی.او په بعضو ښارونو کي خلګ ديانت داره وی.او بعض ښارونه بدنامه وی. لنډيز د کلام دا چې عاريت ورکونکی مستعير ته مقدار د قرض، او جنس، او مرتهن، او ښار او د کلی قيد اولګولو.نو په مستعير ددې قيد لحاظ واجب دې.

| (فَإِذَا خَالَفَ اوکله چې مستعير (د معير دحکم) مخالفت اوکړو كَانَ ضَامِنًا نو ضامن به وی ثُمَّ إِنْ شَاءَ الْمُعِيرُ ضَمَّنَ الْمُسْتَعِيرَ بيا که معير اوغواړی.نو مستعير دې ضامن جوړ کړی وَيَتِمُّ عَقْدُ الرَّهْنِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمُرْتَهِنِ او د مستعير (راهن) او مرتهن په منځ کي به عقد رهن پوره کيږی، لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چې راهن (مستعيں) دضمان ادا کاوه په وجه د مرهون مالك شوې دې فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ نو دا خبره واضحه شوه.چه ده خپل ملك رهن ايښودلې دې. |
|---|

تشريح:- نو که مستعير د معيرد حکم مخالفت اوکړو.نو معير ته به د مستعير نه د تاوان اخستلو حق وی.يعنی مستعير به په وخت د هلاکت مضمون وی.بيا معير ته اختيار دې.چه ضمان د مستعير نه واخلی.يا د مرتهن نه واخلی.خو که ده د مستعير نه ضمان واخستلو.نو ضمان ادا کاوه په وجه به مستعير د مرهون مالك وی.ځکه چې د مستعير او مرتهن په منځ کي به عقد رهن تمام منلې شی.ځکه چې دغه وخت به مستعير د خپل ملك رهن ساتونکې شمارلې کيږی.

## معير مرتهن ضامن جوړولې شي اوکه نه؟

(وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ، وَيَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ بِمَا ضَمِنَ وَبِالدَّيْنِ عَلَى الرَّاهِنِ اوکه معير اوغواړی.مرتهن دې ضامن



| جوړ کړی.او مرتهن به مضمون او پور د راهن نه واپس اخلی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْاِسْتِحْقَاقِ او موږ دا د مرهون د استحقاق ثابتولو کي بيان کړې دې وَإِنْ وَافَقَ بِأَنْ رَهَنَهُ بِمِقْدَارِ مَا أَمَرَهُ او که مستعير د معير موافقت اوکړو.په دې طريقه چې معير د کوم مقدار حکم ورکړې وو.د هغې په عوض نې عاريت رهن کړو كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ أَوْ أَكْثَرَ نوکه د مستعار قيمت د پور برابر يا زيات وی فَهَلَكَ عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ نو دا (مستعار) مرتهن سره هلاك شو يَبْطُلُ الْمَالُ عَنِ الرَّاهِنِ لِتَمَامِ الْاِسْتِيفَاءِ بِالْهَلَاكِ.نو د راهن نه پور ساقط شو.د هلاکت په وجه.د وصولئ پوره کيدو په وجه وَوَجَبَ مِثْلُهُ لِرَبِّ الثَّوْبِ عَلَى الرَّاهِنِ او په راهن به هم ددې په مثل کپړې والا (معيں) لپاره واجب لِأَنَّهُ صَارَ قَاضِيًا دَيْنَهُ بِمَالِهِ بِهٰذَا الْقَدْرِ ځکه چې مستعير هم په دې اندازه د معير د مال نه خپل پور اداکونکې جوړ شوې دې وَهُوَ الْمُوجِبُ لِلرُّجُوعِ دُونَ الْقَبْضِ بِذَاتِهِ او د رجوع موجب هم دا دې.نفس قبضه نه ده لِأَنَّهُ بِرِضَاهُ ځکه چې قبضه د معير په رضامندئ سره شوې ده. |
|---|

تشريح:- معير ته دا حق هم شته.چه هغه د مرتهن نه ضمان وصول کړی.نوکه معير د مرتهن نه ضمان واخستلو.نو مرتهن چې کوم ضمان ادا کړې دې.او خپل قرض، دواړه به د راهن نه واپس اخلی.چه ددې دليل ددې باب نه وړاندې د رهن د استحقاق په مسئله کي تير شوې دې.معير چې کوم مقدار معين کړې وو.که مستعير د هغې موافقت اوکړو.يني د دومره پور په بدله کي نې رهن کيخودو.کوم مقدار چې معير وئيلې وو.او اوس هغه مرتهن سره هلاك شی.نو کتلې به شی.که د مستعار مرهون قيمت د پور برابر يا زيات وی.نو د ذکر شوی موافق به د مرتهن پور د راهن نه ختميږی.ځکه چې د مرهون د هلاکت په وجه مرتهن پور وصولونکې شمار کړې شوې دې.نو چې څومره پور وو.دغه هومره رقم به راهن کمبل والا معير ته ورکوی.ځکه چې مستعير د معير د مال نه خپله دغه اومره قرضه ادا کړې ده.ځکه چې سبب د وجوب قبضه نه ده.بلکه خپل پور ادا کول دی.نو څومره پور نې چې ادا کړې دې.دغه اومره به د معير حق وی.صرف د قبضې په وجه به مستعير باندې د معير حق واجب نه وی.ځکه چې قبضه خو په رضا د معير وه.او عاريت امانت وی.البته څومره قرضه چې مستعير د معير د مال نه اداکوی.دغه اومره ضمان به مستعير باندې واجب وی.

## د مرهون عيب دار کيدو مسئله

| وَكَذٰلِكَ إِنْ أَصَابَهُ عَيْبٌ او دغه ډول که مرهون ته نې څه عيب رسولې وی ذَهَبَ مِنَ الدَّيْنِ بِحِسَابِهِ نو هم په دې حساب سره به پور ساقطيږی وَوَجَبَ مِثْلُهُ لِرَبِّ الثَّوْبِ عَلَى الرَّاهِنِ او په راهن به د کپړې والا (معيں) لپاره هم ددې په مثل واجب وی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې وَإِنْ كَانَ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ ذَهَبَ بِقَدْرِ الْقِيمَةِ اوکه د مرهون قيمت د پور نه کم وی.نو د قيمت په اندازه به پور ختميږی وَعَلَى الرَّاهِنِ بَقِيَّةُ دَيْنِهِ لِلْمُرْتَهِنِ او په راهن به د مرتهن لپاره د هغه پاته پور لازم وی لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعِ الْاِسْتِيفَاءُ بِالزِّيَادَةِ عَلَى قِيمَتِهِ ځکه چې د قيمت نه د زيات وصولی نه ده واقع شوې وَعَلَى الرَّاهِنِ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ او په راهن باندې به د کپړې والا لپاره هغه مقدار واجب وی مَا صَارَ بِهِ مُوفِيًا د کوم مقدار په ذريعه چې دې خپل پور اداکونکې جوړ شوې دې لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې. |
|---|

تشريح:- که مرتهن سره په کمبل کي څه عيب پيدا شو.مثلاً کمبل د پنځو سوو روپو وو.او هم دغه اومره مثلاً د مرتهن قرضه ده.اوس مرتهن سره د اور لګيدو په وجه کمبل کي عيب پيدا شو.چه ددې په وجه اوس ددې قيمت درې سوه روپۍ شو.نو په دې حساب سره به پور ساقط وی.يعنی اوس د مرتهن په پور کي دوې (دوه) سوه روپۍ ساقط شوې.او صرف درې سوه روپۍ پاته پاتې شوې.نو مستعير به هم معير ته دغه اومره رقم ادا کوی.يعنی دوې (دوه) سوه، ځکه چې مستعير د معير د کمبل نه دغه اومره پور ادا کړې دې.او دا اوس تير شو.چه د معير د مال نه دې څومره پور ادا کوی.دغه اومره ضمان به مستعير باندې واجب وی.دا بحث هغه وخت دې.کله چې د کمبل قيمت د پور برابر يا زيات وی.اوکه کم وی.مثلاً پور پنځه سوه روپۍ دې.او د کمبل قيمت سل روپۍ دې.او کمبل

مرتهن سره هلاك شي.نو د مرتهن په پور کي صرف سل روپۍ ساقطې شوې. پاته څلور سوه د راهن په ذمه پاته دي.نو په دې صورت کي به مستعير معير ته صرف پنځه سوه روپۍ ورکوی.ځکه چې مستعير د معير د مال نه دغه اومره پور ادا کړې دې.

**که راهن د مرهون خلاصولو نه عاجزه وي نو څه حکم دې ؟**

(وَلَوْ كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ او که د مستعار مرهون قیمت د پور برابر وی. فَأَرَادَ الْمُعِيرُ أَنْ يَفْتَكَّهُ جَبْرًا عَنِ الرَّاهِنِ د راهن د غریبۍ په وجه معير مرهون خلاصول اوغوښتل لَمْ يَكُنْ لِلْمُرْتَهِنِ إِذَا قَضَى دَيْنَهُ بِمَنْعِهِ نو مرتهن ته د منع کاوه حق نشته.کله چې دده پور ادا کولې شي. لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَبَرِّعٍ حَيْثُ يُخَلِّصُ مِلْكَهُ ځکه چې معير تبرع ( احسان) کونکې نه دې.ځکه چې هغه ملك لنډيز وی وَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمَا أَدَّى الْمُعِيرُ په دې وجه به ادا کړې شوې مقدار د راهن نه واپس اخلی فَأُجْبِرَ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الدَّفْعِ نو مرتهن به په ور کاوه باندې مجبوروليې شی بِخِلَافِ الْأَجْنَبِيِّ إِذَا قَضَى الدَّيْنَ په خلاف د اجنبی (غير کس)، کله چې هغه پور ادا کوی لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ، إِذْ هُوَ لَا يَسْعَى فِي تَخْلِيصِ ځکه چې اجنبی تبرع کونکې دې.په دې چې اجنبی به پخپل ملك خلاصولو کې سعی نه کوی وَلَا فِي تَفْرِيغِ ذِمَّتِهِ او نه به پخپله ذمه خلاصولو کې ( سعی کوی) فَكَانَ لِلطَّالِبِ أَنْ لَا يَقْبَلَهُ نو طالب ( مرتهن) ته به حق وی.چه دده ادا کول قبول نه کی (نکړی)

**حل اللغة*** ① **يفتك**: آزاد کړی،خلاص کړی ② **الاجنبی**:پردې، غیرمعاقد ③ **تخليص**:خالص کول ④ **تفريغ**:فارغ کول

**تشريح:**- راهن غريب دې.چه د مرهون خلاصولو نه معذور او مجبور دې.معير اوغوښتل.چه پور پخپله ادا کړی.او خپله کمبل د مرتهن نه را لنډيز کړی.نو مرتهن ته به دا حق نه وی.چه هغه انکار اوکړی.نو په ده به زبردستی کولې شی.ځکه چې اصول دا مقرر دې.که دا کار متبرع اوکړی.نو په مرتهن به زبردستی نه کيږی.اوکه ادا کونکې متبرع نه وی.نو زبردستی به کولې شی.اوس موږ غور اوکړو.نو معلومه شوه.چه اوس معير متبرع نه دې.يعنی اگرچه هغه عاريت ور کاوه کې متبرع وو.خو په خلاصولو کې متبرع نه دې.بلکه هغه خپل مال لنډيز وی.او د نه معتبرکيدو دليل دا هم دې.چه دا پور معير د راهن نه واپس آخلی.که څوك اجنبی دا کار اوکړی.يعنی د راهن پور ادا کړی.او مرهون راخلاص کړی.نو دلته کې به مرتهن په ور کاوه باندې نشی مجبوروليې.ځکه چې دې متبرع دې.او د متبرع کيدو دليل دا دې.چه د اجنبی مقصد نه خپل ملك خلاصول دی.او نه خپله قرضه ادا کوی.

**ضروری وضاحت*** «جبراً عن الراهن...» دا عبارت ددې کتاب د مغلقاتو ( او مشکلو ځايونو) څنې دې.امام محمد رحمه الله ددې په ځاې دا عبارت فرمائيلې دې. «حين عن الراهن...» شمس الائمه فخرالاسلام بزدوی رحمه الله وغيره هم دغه ډول ذکر کړی دی.په دې وجه بعضو حضراتو وئيلی دی.چه «جبراً عن الراهن...» د کاتب يا قاری غلطی ده.او بعض حضراتو ددې تفسير په «بغير رضاه» سره کړې دې.تفصيل لپاره اوګورئ نتائج الافکار

**د مستعار څيز هلاکيدو په صورت کښې د ضمان حکم**

(وَلَوْ هَلَكَ الثَّوْبُ الْعَارِيَةُ عِنْدَ الرَّاهِنِ او که مستعار کپړه د راهن سره هلاکه شوه قَبْلَ أَنْ يَرْهَنَهُ د رهن ايخودو نه مخکې أَوْ بَعْدَ مَا افْتَكَّهُ يا ددې د خلاصولونه روستو فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو په راهن باندې ضمان نشته . لِأَنَّهُ لَا يَصِيرُ قَاضِيًا بِهَذَا ځکه چې راهن په دې سره خپل پور ادا کونکې نه دې وَهُوَ الْمُوجِبُ عَلَى مَا بَيَّنَّا .او د ضمان موجب هم دا دې.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې

**تشريح:**- مستعير د معير نه کوم کمبل عاريت اخستې دې.که هغه راهن سره د رهن ايخودو نه مخکې يا د رهن خلاصولو نه روستو هلاك شی.نو چونکه راهن په دې کمبل سره خپله قرضه نه ده اداکړې.په دې وجه به راهن باندې ددې ضمان واجب نه وی.او د ضمان سبب په دې سره پور ادا کول وو.چه هغه اونه موندې شو.



**د معير او مستعير په منځ کښې د اختلاف مسئله**

(وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي ذَلِكَ او که معير او مستعير دواړه په دې کې اختلاف اوکړی فَالْقَوْلُ لِلرَّاهِنِ نو د راهن قول به معتبر وی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الْإِيفَاءَ بِدَعْوَاهُ الْهَلَاكَ فِي هَاتَيْنِ الْحَالَتَيْنِ ځکه چې راهن د پور ادا کاوه نه منکر دې.په دې دواړو حالتونو کې د خپلې د هلاکت دعوې په وجه.

**تشريح:**- يعنی که په معير او مستعير کې اختلاف شی.معير وائی.چه مستعار په وخت د رهن هلاك شوې دې.او مستعير وائی.چه د رهن نه مخکې يا د رهن خلاصولو نه روسته هلاك شوې دې.نو د راهن قول به معتبر وی.خو که معير ګواهان پيش کړی.نو بيا به د معير قول معتبر وی.د مستعير قول ولې معتبر دې؟ ځکه معير دعوه کوی.چه د راهن په ذمه زما حق لازميږی.او مستعير ددې نه منکر دې.او قول د منکر معتبر وی.په دې وجه به د مستعير( مرتهن) قول معتبر وی.

**د رهن په مقدار کښې د اختلاف مسئله**

(كَمَا لَوِ اخْتَلَفَا فِي مِقْدَارِ لکه څنګه که دوی دواړه اختلاف اوکړی.په هغه مقدار كَيْ مَا أَمَرَهُ بِالرَّهْنِ د کوم په بدله کې چې معير د رهن حکم ورکړې وو فَالْقَوْلُ لِلْمُعِيرِ.نو د معير قول به معتبر وی. لِأَنَّ الْقَوْلَ قَوْلُهُ فِي إِنْكَارِ أَصْلِهِ ځکه چې د معير قول معتبر دی.د عاريت داصل عقد په انکار کې .فَكَذَا فِي إِنْكَارِ وَصْفِهِ نو هم دغه ( به دده قول معتبر وی) د عقد د صفت په انکار کې

**تشريح:**- په معير اومستعير کې اختلاف شو.معير وائی.چه ما تاته وئيلی وو.چه په پنځو سوو کې ئې رهن کيږده.او مستعير وائی.چه تا په دريو سوو کې وئيلی وو.نودلته به د معير قول معتبر وی.ځکه که دې د سره دا اووائی.چه ما تاته درهن ايخودو اجازت نه وو درکړې.نود معير قول معتبر وی.نو مقدار خو ددې عقد يو صفت شو.نو د صفت په انکار کې به هم دده قول معتبر وی.

د کاتبانوغلطی۞ دلته د هدايه په نسخو کې ،،کما،، دې.خو دا د ناسخينو( کاتبينو) سهوه ده.ګنی صحيح ،،ولو،، دې.ګنی د ،،کما،، په صورت کې مطلب غلطيږی.حالانکه مسئله کې د مستعير قول معتبر شوې دې.او دلته به د معير تشبيه صحيح نه وی.البته که د معير او مستعير لحاظ کاوه نه بغير د منکر کيدو په اعتبار سره د تشبيه لحاظ اوساتلې شی.نو تشبيه صحيح کيداې شی.

**د دين موعود په بدله کښې د رهن ايخودو حکم**

(وَلَوْ رَهَنَهُ الْمُسْتَعِيرُ بِدَيْنٍ مَوْعُودٍ او که مستعير مستعار د موعود ( چې صرف وعده ئې شوې وی) په بدله کې رهن ايخودې وی. وَهُوَ أَنْ يَرْهَنَهُ بِهِ لِيُقْرِضَهُ كَذَا او هغه دا دې.چه دې دا رهن کيږدی.چه مرتهن راهن ته دومره پور ورکړی فَهَلَكَ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ قَبْلَ الْإِقْرَاضِ نو مرهون د مرتهن په قبضه کې د پور ور کاوه نه مخکې هلاك شو وَالْمُسَمَّى وَالْقِيمَةُ سَوَاءٌ او مسمی او قيمت برابر دې يَضْمَنُ قَدْرَ الْمَوْعُودِ الْمُسَمَّى نو مرتهن به د موعود مسمی ضامن وی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې أَنَّهُ كَالْمَوْجُودِ چه موعود د موجود په مثل دې وَيَرْجِعُ الْمُعِيرُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمِثْلِهِ او معير به راهن باندې ددې په مثل سره رجوع کوی لِأَنَّ سَلَامَةَ مَالِيَّةِ الرَّهْنِ ځکه چې د رهن د ماليت سلامتيا د مرتهن نه د وصولۍ په وجه بِاسْتِيفَائِهِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ كَسَلَامَتِهِ بِبَرَاءَةِ ذِمَّتِهِ عَنْهُ د رهن د سلامتيا په مثل دې.د راهن ذمه بری کيدو سره پور ده

**حل اللغة*** ① **الاقراض**: پور ورکول ﴾

**تشريح:**- خالد د زيد کمبل رهن ايخودو لپاره مستعار واخستله.اوس دخالد او بکر خبره اوشوه.بکر اووئيل .چه ته دا کمبل رهن کيږده.زه به تاته زر روپۍ پور درکوم.خالد رهن کيخ ... بکر اوسه پورې زر روپۍ نه دی

ورکړي.خو وعده ئې کړې ده.نو دا موعود پور دې.او په ړومبي باب کې تیر شوي دي.چه موعود د موجود پشان دې.او اتفاق سره د کمبل قیمت هم زر روپۍ دې.او کمبل بکر سره هلاك شو.نو مرتهن به زر روپۍ ضمان راهن ته ورکوي.ځکه که بکر د مخکې نه پور ورکړې وې.او مرهون هلاك شوې وې.بیا به هم دده قرضه ساقطیدله.دلته که خالد نه زر روپۍ اخلي.ځکه که د پور ور کاوه نه روسته مرهون د بکر سره هلاك شوې وې.بیا به زید د زر روپۍ اخستلي.دغه ډول به اوس هم وي.

ساقط نشي.نو ددې ادا کاوه به مرتهن باندې لازم وي. ځکه چې موعود د موجود په درجه کې دې.بیا به زید د خالد نه زر روپۍ اخلي.ځکه که د پور ور کاوه نه روسته مرهون د بکر سره هلاك شوې وې.بیا به هم زید د خالد نه زر روپۍ اخستلي.دغه ډول به اوس هم وي.

🔑لنډیز د کلام دا چې د راهن په براءت من الدین او استیفاء من المرتهن کې هیڅ توپیر نشته.د دواړو حکم یو دې.مرغیناني رحمه الله دا براءت او برابري په دې عبارت کې بیان کړې ده. ﴿لأن سلامته مالیته الرهن....﴾ یعني د مرهون مالیت دواړو صورتونو کې راهن سره صحیح سلامت پاتې شو.فرق صرف دومره دې.چه دلته کې د وصولۍ په طریقه دې.او د پور نه روستو د ذمې د براءت په طریقه دې.

### د معیر د عاریت غلام آزادولو حکم

﴿وَلَوْ كَانَتِ الْعَارِيَةُ عَبْدًا فَأَعْتَقَهُ الْمُعِيرُ﴾ او که عاریت غلام وي.نو معیر دا آزاد کړو ﴿جَازَ لِقِيَامِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ﴾ نو عتق جائز دې.د ملك رقبه د قائمیدو په وجه ﴿ثُمَّ الْمُرْتَهِنُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ رَجَعَ بِالدَّيْنِ عَلَى الرَّاهِنِ﴾ بیا مرتهن ته اختیار دې.که غواړي.د راهن نه دې پور واپس واخلي. ﴿لِأَنَّهُ لَمْ يَسْتَوْفِهِ﴾ ځکه چې مرتهن پور نه دې وصول کړې ﴿وَإِنْ شَاءَ ضَمِنَ الْمُعِيرَ قِيمَتَهُ﴾ او که غواړي.معیر دې د غلام د قیمت ضامن جوړ کړي ﴿لِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ تَعَلَّقَ بِرَقَبَتِهِ بِرِضَاهُ﴾ ځکه چې د مرتهن حق د غلام سټ سره د معیر په رضامندۍ متعلق شوې دې ﴿وَقَدْ أَتْلَفَهُ بِالْإِعْتَاقِ﴾ حالانکه حق معیر آزاد کړې دې.او هلاك کړې ئې دې ﴿وَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَهُ﴾ او قیمت به مرتهن سره رهن وي ﴿إِلَى أَنْ يَقْبِضَ دَيْنَهُ﴾ تردې چې هغه پخپل پور باندې قبضه اوکړي ﴿فَيَرُدُّهَا إِلَى الْمُعِيرِ﴾ نو مرتهن به دا معیر اړخ ته واپس کوي ﴿لِأَنَّ اسْتِرْدَادَ الْقِيمَةِ كَاسْتِرْدَادِ الْعَيْنِ﴾ ځکه چې قیمت واپس اخستل، د عین د واپس اخستلو پشان دی.

**حل اللغة:** ① **استرداد:** طلب دواپس کولو،واپس کول۔

**تشریح:-** مستعار د کمبل په ځائې غلام دې.چه د بکر سره رهن دې.زید (معیر) دې آزاد کړو.نو چونکه زید ددې مالك دې.په دې وجه آزدول صحیح شو.اوس به مرتهن (بکر) څه کوي.نو وې فرمائیل.چه ده ته دوې (دوه) اختیاره دی ① د خالد (راهن) نه دې د خپل پور مطالبه اوکړي.ځکه چې دغلام آزادولو په وجه بکر خپل حق نه دې وصول کړې.نو د هغه حق پخپل حال پاتې دې.نو راهن نه دې خپل پور واپس واخلي.② د زید (معیر) نه دې د غلام د قیمت تاوان واخلي.او (دا قیمت دې) د خپل خان سره رهن کیږدي.کله چې خالد دده پور اداکړي.دغه وخت دې دا قیمت زید (معیر) ته ورکړې شي.

🔑اود معیر نه د ضمان واخستووجه دا ده چې د مرتهن حق دغلام سټ سره د معیر په رضامندۍ سره متعلق شوې دې.او معیر غلام آزادولو سره د مرتهن حق هلاك کړې دې.نو مرتهن د معیر نه د قیمت تاوان اخستلې شي.

🔑**لان استرداد** ...﴾ دا عبارت په اصل کې د سوال تقدیري ځواب دا دې سوال دا دې چې معیر د قیمت نه روسته ادا شوې پور واپس ولې اخلي؟ نوعلامه مرغیناني رحمه الله ځواب ورکوي چې عین مرهون موجود وې.نو د پور ادا کاوه نه روسته به مرهون معیر واپس اخستلو.دغه ډول قیمت دې.چه د عین قائم مقام دې.دا به هم معیر واپس اخلي.

### د رهن لپاره غلام مستعار اخستل او ددې نه د فائدې اخستلو حکم

﴿وَلَوِ اسْتَعَارَ عَبْدًا أَوْ دَابَّةً لِيَرْهَنَهُ﴾ اوکه ده غلام یا حیوان (څاروې) مستعار واخستلو.چه دا رهن کیږدي ﴿فَاسْتَخْدَمَ الْعَبْدَ﴾ بیا مستعیر د غلام نه خدمت واخستلو ﴿أَوْ رَكِبَ الدَّابَّةَ﴾ یا په څاروي باندې سور شو ﴿قَبْلَ أَنْ يَرْهَنَهُمَا﴾ ددې دواړو د رهن



ایخودو نه مخکې ﴿ثُمَّ رَهَنَهُمَا﴾ بیا ده دا دواړه رهن کیخودل ﴿بِمِثْلِ قِيمَتِهِمَا﴾ د داسې مال په بدله کې کوم چې ددې دواړو د قیمت مثل دې ﴿ثُمَّ قَضَى الْمَالَ﴾ بیا راهن پور ادا کړو ﴿فَلَمْ يَقْبِضْهُمَا﴾ نو (اوس) ئې دې دواړو باندې قبضه نه ده کړې ﴿حَتَّى هَلَكَا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ﴾ تردې چې دا دواړه مرتهن سره هلاك شو ﴿فَلَا ضَمَانَ عَلَى الرَّاهِنِ﴾ نو راهن باندې ضمان نشته ﴿لِأَنَّهُ قَدْ بَرِئَ مِنَ الضَّمَانِ﴾ ځکه چې دې د ضمان نه بري شوې دې ﴿حِينَ رَهَنَهُمَا﴾ حالانکه ده دا دواړه رهن کیخودل ﴿فَإِنَّهُ كَانَ أَمِينًا خَالَفَ﴾ ځکه دې داسې امانت دار وو.چه ده مخالفت اوکړو ﴿ثُمَّ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ﴾ او بیا موافقت اړخ ته راواپس شو

**حل اللغة:** ① **دابة:** څناور ② **الوفاق:** موافقت

**تشریح:-** که مستعیر د رهن لپاره غلام یا اس مستعار اخستې وي.او بیا د رهن ایخودو نه مخکې ئې د غلام نه خدمت اخستې وي.یا په اس باندې سور شوې وي.بیا ئې دا رهن کیخودو.بیا ئې د مرتهن پور ادا کړو.خو اوس ئې قبضه نه وه کړې.چه غلام یا اس مرتهن سره هلاك شو.نو اوس به راهن باندې ضمان نه وي.ځکه چې ده د معیر د مال نه خپل پور نه دې ادا کړې.

🔑دلته که څوك دا سوال اوکړي چې کله په امانت کې تعدي موجود شي نو ضمان واجبیږي اودلته هم ده اګرچه پور ئې نه دې اداکړې.خوخدمت ئې ترې اخستې دې.او تعدي ئې کړې ده.ددې تعدي په وجه په ده باندې ضمان واجبول پکار دي.نوموږ وایو هرکله چې مستعیر دا رهن کیخودو.نو اوس دې دضمان نه بري شو.ځکه اصل دا مقرر دې.چه کله امین د مالك مخالفت اوکړي.او بیا موافقت اوکړي.نو په ده باندې ضمان نه واجبیږي.او دلته کې هم دا صورت دې.نو ضمان به نه واجبیږي.

### د مستعیر مرهون خلاصول او استعمالولو حکم

﴿وَكَذَا إِذَا افْتَكَّ الرَّهْنَ﴾ او هم دغه ډول کله چې مستعیر رهن خلاص کړو ﴿ثُمَّ رَكِبَ الدَّابَّةَ﴾ بیا دې په سوارلۍ باندې سور شوې وي ﴿أَوِ اسْتَخْدَمَ الْعَبْدَ فَلَمْ يَعْطَبْ﴾ یا ئې د غلام نه خدمت اخستې وي.نو دې هلاك نشو. ﴿ثُمَّ عَطِبَ بَعْدَ ذَلِكَ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ﴾ بیا ددې نه روسته دده د څه (زیاتي) کاوه نه بغیر هلاك شو ﴿لَا يَضْمَنُ﴾ نومستعیر به ضامن نه وي. ﴿لِأَنَّهُ بَعْدَ الْفِكَاكِ بِمَنْزِلَةِ الْمُودَعِ﴾ ځکه چې د خلاصولو نه روسته مستعیر د مودع په مرتبه کې دې ﴿بِمَنْزِلَةِ الْمُسْتَعِيرِ﴾ مستعیر د مستعیر په مرتبه کې نه دې. ﴿لِانْتِهَاءِ حُكْمِ الْاِسْتِعَارَةِ بِالْفِكَاكِ﴾ د خلاصولو په وجه د عاریت حکم ختمیدو په وجه ﴿لَا وَقَدْ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ فَيَبْرَأُ عَنِ الضَّمَانِ﴾.او هغه راواپس شو موافقت اړخ ته.نو دې به ضمان نه بري کیږي.

**تشریح:-** مستعیر مرهون راخلاص کړو.او دا ئې استعمال کړو.چه دې کې دا هلاك نشو.بیا ددې نه روسته مرهون پخپله هلاك شو.نو بیا به هم مستعیر ضامن نه وي.ځکه چې هرکله مستعیر رهن راخلاص کړو.نو اوس دې مستعیر پاتې نشو.بلکه مودع جوړ شو.او د مودع او امین حکم دا دې.که دې د مخالفت نه روسته د هلاکت نه مخکې د مالك موافقت اوکړي.نو په ده ضمان نه واجبیږي.

### د مستعیر اقسام

﴿وَهَذَا بِخِلَافِ الْمُسْتَعِيرِ﴾ او دا د مستعیر خلاف دې ﴿لِأَنَّ يَدَهُ يَدُ نَفْسِهِ﴾ ځکه چې د مستعیر قبضه دده ذاتي قبضه ده ﴿فَلَا بُدَّ مِنَ الْوُصُولِ إِلَى يَدِ الْمَالِكِ﴾ نود مالك په اړخ وصولي ضروري ده ﴿أَمَّا الْمُسْتَعِيرُ فِي الرَّهْنِ فَيَحْصُلُ مَقْصُودُ الْآمِرِ﴾ بهرحال مستعیر د رهن خو د آمر مقصود حاصله وي ﴿وَهُوَ الرُّجُوعُ عَلَيْهِ عِنْدَ الْهَلَاكِ وَتَحَقُّقُ الِاسْتِيفَاءِ﴾....او دا مقصود د راهن په مستعیر رجوع ده. (مرتهن) سره د هلاکت په وخت، او د وصولۍ متحقق کیدو په وخت.

**تشریح:-** د مستعیر دوې (دوه) قسمونه دی ① هغه مستعیر چې د رهن لپاره عاریت واخلي.② هغه مستعیر چې د خپل کار لپاره عاریت واخلي.د دواړو حکم جلا جلا دې.د رهن دمستعیر حکم هغه دې.کوم چې ذکر شو.که د مخالفت نه روسته موافقت اوکړي.نو د موافقت نه روسته د هلاکت په وجه به په ده باندې ضمان نه وي.ځکه چې

دي د مودع په مرتبه کي دي.او مودع او امین چي کله موافقت اوکړو.نو ګویا اوس حکماً امانت باندي د مالك قبضه اوشوه.او کله چي حکماً د مالك قبضه اوشوه.نو اوس د هلاکت په وجه به په ده باندي ضمان واجب نه وي.او د خالص مستعیر قبضه خپله ذاتي قبضه ده.نو هلته کي حکماً د مالك قبضه نه وي.بلکه د مالك قبضه به هغه وخت وي.کله چي دي مستعار مالك ته حواله کړي.نو که دده د اړخه د تعدی نه روسته هم مستعار هلاك شو.نو په ده به ضمان واجب وي.او په مستعیر د رهن به تاوان نه وي.

ⓘ اوکه څوك دا پوښتنه اوکړي چي په مستعیر د رهن کي حکماً د آمر قبضه څنګه اومنلي شوه؟ نو موږ ورته وایو چي مستعیر د رهن څه هم کوي.یعني مرتهن سره ایخودل دي د آمر د مقصود حاصلولو لپاره کوي.ځکه چي د آمر (معیر) مقصود دا دي.که مرهون د مرتهن سره هلاك شي.چه په دي سره مرتهن د پور وصولونکي اوګرځولي شي.نو دغه وخت به معیر ته حق وي.چه د راهن نه ضمان واخلي.ځکه چي دغه وخت راهن دده په مال سره خپله قرضه ادا کړي ده.بهرحال ددي وجوهاتو په وجه دوی دواړو مستعیرو کي توپیر کړي شوي دي.

### د راهن په مرهون باندي جنایت مضمون دي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.(وَجِنَايَةُ الرَّاهِنِ عَلَى الرَّهْنِ مَضْمُونَةٌ) و د راهن جنایت په مرهون باندي مضمون وی لِأَنَّهُ تَفْوِيتُ حَقٍّ لَازِمٍ مُحْتَرَمٍ ځکه چي دا (جرم) د داسي لازم حق فوت کول دی.چه هغه محترم دي وَتَعَلُّقُ مِثْلِهِ بِالْمَالِ يَجْعَلُ الْمَالِكَ كَالْأَجْنَبِيِّ فِي حَقِّ الضَّمَانِ او ددي د مثل مال سره تعلق، مالك د اجنبی پشان ګرځوی.د ضمان په حق کي ، كَتَعَلُّقِ حَقِّ الْوَرَثَةِ بِمَالِ الْمَرِيضِ لکه د مرض الموت مریض د مال سره د وارثانو دحق تعلق يَمْنَعُ نَفَاذَ تَبَرُّعِهِ فِيمَا وَرَاءَ الثُّلُثِ د ثلث نه علاوه کي دده د تبرع نفاذ منع کوی وَالْعَبْدُ الْمُوصَى بِخِدْمَتِهِ او لکه هغه غلام چي د هغه د خدمت وصیت کړي شوي وی إِذَا أَتْلَفَهُ الْوَرَثَةُ کله چي دي وارثانو هلاك کړي وی ضَمِنُوا قِيمَتَهُ نو هغوی به دده د قیمت ضامن وی لِيُشْتَرَى بِهَا عَبْدٌ يَقُومُ مَقَامَهُ چي په دي قیمت سره یو غلام واخستلي شی.چه هغه دده قائم مقام شی.

**حل اللغة** ① **جنایة**:ګناه،جرم ② **وراء**: علاوه،سوا

**تشریح**:- که مرهون باندي راهن څه جنایت اوکړو.نو راهن باندي به ددي تاوان ادا کول لازمی وی.ځکه چي بعضو صورتونو کي مالك د اجنبی پشان جوړیږي.او په ده باندي ضمان واجبیږي.ددي لپاره قاعده کلیه دا ده.که د یوکس مال سره د بل چا حق متعلق شو.نو اوس مالك د اجنبی پشان شو.نو که یوکس د مرض الموت مریض دي.هغه د خپل مال مالك دي.خو دده د مال سره د وراثانو حق متعلق شوي دي.په دي وجه د ثلث نه زیات کي به دده تبرعات صدقه،وصیت وغیره نه نافذ کیږي.یعني د ثلث نه زیات کي دي د اجنبی په مثل شوي دي. دغه ډول که یوکس وصیت اوکړو.چه زما فلاني غلام به د خالد خدمت کوی.او ددي نه روسته وارثانو دا غلام په څه طریقه هلاك کړو.نو په دوی به ددي د قیمت ضمان واجب وي.چه په دي قیمت سره بل غلام واخستلي شی.او د خالد خدمت اوکړي.حالانکه وارثان دده مالکان وو.خو د موصی له لازم حق ددي سره متعلق وو.په دي وجه مالکان د اجنبی په مرتبه کي راکوز کړي شوی دی.او ضمان واجب کړي شوي دي.دغه ډول به په راهن باندي هم ضمان واجب وی

### په مرهون د مرتهن جنایت په اندازه دجنایت پور ساقطه وی

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَجِنَايَةُ الْمُرْتَهِنِ عَلَيْهِ تُسْقِطُ مِنْ دَيْنِهِ بِقَدْرِهَا) و په مرهون باندي د مرتهن جنایت (جرم) په اندازه د جنایت دده پور ساقطه وی وَمَعْنَاهُ أَنْ يَكُونَ الضَّمَانُ عَلَى صِفَةِ الدَّيْنِ او ددي مطلب دا دي.چه ضمان به د پور په صفت وی وَهَذَا لِأَنَّ الْعَيْنَ مِلْكُ الْمَالِكِ، وَقَدْ تَعَدَّى عَلَيْهِ الْمُرْتَهِنُ او دا ځکه چي عین د مالك ملك دي. حالانکه عین باندي مرتهن تعدی کړي ده.فَيَضْمَنُهُ لِمَالِكِهِ نو هغه به ددي د مالك لپاره ضامن وی

**تشریح**:- که مرتهن په مرهون باندي جنایت اوکړو.نو د جنایت په اندازه به پور ساقطیږي.یعني کله چي پور او ضمان د یو جنس ځني وي.او که پور مثلاً مکیلي یا موزوني شیان وی.نو پور به نه ساقطیږي.بلکه په مرتهن به



ددي ضمان واجبولي شی.او دا ضمان به هم مرهون کولي شی.بیا کله چي راهن پور ادا کړي.نو راهن به د مرتهن نه مرهون سره د ضمان نه واپس اخلي.او په مرتهن باندي د ضمان د وجوب وجه دا ده.چه مرهون د راهن ملك دي.چه په ده باندي مرتهن تعدی کړي ده.نو ددي تعدی په وجه به په ده باندي ضمان واجب وی.

### په راهن او مرتهن او ددوی دواړو په مال د رهن د جنایت مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.(وَجِنَايَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنِ وَعَلَى مَالِهِمَا هَدَرٌ) او په راهن او مرتهن او ددوی په مال باندي د مرهون جنایت عبث (او غیر معتبر) دي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [1] او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی رحمه الله وَقَالَا جِنَايَتُهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ مُعْتَبَرَةٌ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دمرهون په مرتهن باندي جنایت معتبر دي وَالْمُرَادُ بِالْجِنَايَةِ عَلَى النَّفْسِ مَا يُوجِبُ الْمَالَ او په نفس باندي د جنایت نه مراد هغه جنایت دي.کوم چي مال واجبه وی أَمَّا الْوِفَاقِيَّةُ فَلِأَنَّهَا جِنَايَةُ الْمَمْلُوكِ عَلَى الْمَالِكِ بهرحال اتفاقی مسئله،نو دا ځکه چي دا د مالك او مملوك جنایت دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ مَاتَ كَانَ الْكَفَنُ عَلَيْهِ آیا تاسو نه ګورئ.که غلام مرهون مړشي.نو کفن به په راهن باندي وی

**تشریح**:- که غلام مرهون په راهن یا مرتهن باندي جنایت اوکړو.نو ددي څلور صورتونه دی ① مرهون، راهن یا مرتهن په قصد سره قتل کړو.نو په دي کي به مرهون باندي قصاص واجب وی.② مرهون، راهن یا مرتهن خطاء قتل کړو.نو دلته به غلام مرهون باندي هیڅ ضمان نه وی.③ مرهون د راهن یا مرتهن بعض اندامونه کټ کړل.چه دي سره هغه هلاك نشو.خو په مشقت کي راګیر شو.په دي کي به هم مرهون باندي هیڅ ضمان نه وی.④ مرهون د راهن یا مرتهن مال ضائع کړو.په دي کي به هم ضمان واجب نه وی.دا تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب مطابق دي.

د صاحبینو رحمهما الله مذهب په دي کي د صاحبینو رحمهما الله اختلاف دي.دوی فرمائی.که مرهون په راهن باندي جنایت اوکړي.نو اوس موږ د امام صاحب رحمه الله قول سره متفق یو.اوکه په مرتهن باندي جنایت اوکړي.نو صاحبین رحمهما الله ددي جنایت اعتبار کوی.یعني په نفس د مرتهن کي جنایت کاوه کي ، ګنی د مرتهن په مال کي د جنایت حکم روستو ذکر دي.په «والمراد...» سره مرغینانی رحمه الله دا بیانوی.کوم خاني چي دا وئیلی شوی دی.په نفس کي جنایت عبث دي.ددي نه مراد هغه جنایت دي.کوم چي قصاص نه واجبوی.ګنی که قصاص واجب کړي.نو بیا به واجب وی.بهرحال دراهن په اړه کي د صاحبینو رحمهما الله او امام صاحب رحمه الله دواړو اتفاق دي.چه ضمان به نه وی.ددي دلیل دا دي.چه دلته مملوك پخپل مالك باندي جنایت کړي دي.او دا معتبر نه دي.

ⓘ پاتي شوه دا خبره چي مرهون غلام د راهن ملك دي؟ نو ددي دلیل دا دي چي که مرهون غلام مړشی.نو ددي کفن په راهن باندي واجبیږي.نودا ددي خبري دلیل دي.چه راهن دده مالك دي.نود شارح مقصد دا دي که د مملوك نقصان ئي اوکړو.نو ضمان به واجب نه وی؟

بِخِلَافِ جِنَايَةِ الْمَغْصُوبِ عَلَى الْمَغْصُوبِ مِنْهُ، په خلاف د مغصوب منه باندي د مغصوب د جنایت، لِأَنَّ الْمِلْكَ عِنْدَ أَدَاءِ الضَّمَانِ يَثْبُتُ لِلْغَاصِبِ مُسْتَنِدًا ځکه چي د ضمان ادا کاوه په وخت ملکیت د استناد په طریقه غاصب لپاره ثابتیږي حَتَّى يَكُونَ الْكَفَنُ عَلَيْهِ، فَكَانَتْ جِنَايَةً عَلَى غَيْرِ الْمَالِكِ تردي چي کفن به غاصب باندي وی.نو دا (مغصوب منه باندي د مغصوب جنایت) د غیرمالك جنایت دي نو دا جنایت به معتبر وی

**تشریح**:- دلته عبارت د سوال مقدر ځواب کیداي شی هغه دا چي وړاندي دا وضاحت اوشوکه د مملوك نقصان اوشو نو ضمان نه واجبیږي حالانکه دغصب په مسئله کي ضمان واجبیږي مثلاً که مغصوب د مغصوب منه څه نقصان اوکړي.نو په مغصوب باندي ضمان واجب دي.حالانکه دا د مغصوب منه مملوك دي؟ نوعلامه مرغینانی

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (٤٨\٤) وملتقى (٣٠٠\٤) وكشف الأستار(٢٧٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (٣٣١\٢)-

فرمايي چي ددې وجه بله دا هغه دا چي كله غاصب ضمان ادا كړي.نو دې د غصب په وخت د مغصوب مالك شمارلې كيږي.او كله چې مالك غاصب ثابت شو.نو مغصوب منه د اجنبي په مرتبه كي شو.او كوم جنايت چې په اجنبي وي.هغه معتبر وي.او ددې ضمان واجب وي.

> وَهٰذَا فِي الْخِلَافِيَّةِ او په اختلافي مسئله كي د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې اَلْجِنَايَةُ حَصَلَتْ عَلٰى غَيْرِ مَالِكِهٖ چې جنايت د خپل مالك نه علاوه باندې حاصل شوې دې. وَفِي الْاِعْتِبَارِ فَائِدَةٌ او د جنايت په اعتبار كاوه كي فائده ده وَهُوَ دَفْعُ الْعَبْدِ اِلَيْهِ بِالْجِنَايَةِ او دا دجنايت په وجه غلام مرتهن ته وركول دي فَتُعْتَبَرُ نو جنايت به معتبر وي. ثُمَّ اِنْ شَاءَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ اَبْطَلَا الرَّهْنَ بيا كه راهن او مرتهن اوغواړي.نو رهن دې باطل كړي وَدَفَعَاهُ بِالْجِنَايَةِ اِلَى الْمُرْتَهِنِ اود جنايت په وجه دې غلام مرهون مرتهن ته وركړي وَاِنْ قَالَ الْمُرْتَهِنُ لَا اَطْلُبُ الْجِنَايَةَ اوكه مرتهن اووئيل. چې زه ( عوض د) جنايت نه غواړم فَهُوَ رَهْنٌ عَلٰى حَالِهٖ نو مرهون به پخپل حال رهن وي

تشريح:- په اختلافي مسئله كي صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه مرتهن باندې د مرهون جنايت معتبر دې.دا ددوي دليل دي.چه دلته د مرهون په مرتهن باندې جنايت مالك باندې جنايت نه دې.ځكه چې مالك خو راهن دي.اودلته كه جنايت معتبر اومنو.نو په دې كي فائده ده.ځكه چې د جنايت په وجه به مرهون غلام مرتهن ته ملاويږي.اگرچه ددې په وجه به د مرتهن پور خو ساقط شي.خو كله د غلام مالك جوړيدل عين مقصود وي.ځكه كه هغه په دې كي فائده اوگنړي.نو واديخلي.اگرچه پور به ساقط شي.خو مقصود حاصليږي.او كه هغه په دې كي منفعت اونگنړي.نو نه دې اخلي.هم ددې مرتهن رضا بيانولو لپاره مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل. ثُمَّ اِنْ شَاءَ ... الخ يعني راهن سره سره مرتهن هم په ابطال د رهن باندې راضي وي.او دا په جنايت كي قبول كړي.نو بيا دا خبره ده.چه د جنايت تاوان هم ادا شو.او پور هم ساقط شو.گني كه مرتهن دا اووائي.چه ماته د جنايت تاوان پكار نه دې.نو بيا به غلام پخپل حال باندې مرهون پاتې وي.

> وَلَهٗ اَنَّ هٰذِهِ الْجِنَايَةَ لَوِ اعْتُبِرَتْ لِلْمُرْتَهِنِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.كه مونږ د مرتهن لپاره ددې جنايت اعتبار اوكړو كَانَ عَلَيْهِ التَّطْهِيْرُ مِنَ الْجِنَايَةِ، چې د جنايت نه پاك كيدل به د مرتهن په ذمه وي لِاَنَّهَا حَصَلَتْ فِي ضَمَانِهٖ ځكه چې جنايت د مرتهن په ضمانت كي حاصل شوې دې فَلَا يُفِيْدُ وُجُوْبُ الضَّمَانِ لَهٗ مَعَ وُجُوْبِ التَّخْلِيْصِ عَلَيْهِ نو مرتهن لپاره به د ضمان وجوب مرتهن باندې د راتلو د وجوب سره سره مفيد نه وي.

حل اللغة* ① التطهير:پاكول

تشريح:- د مرهون په مرتهن باندې جنايت، د امام صاحب رحمه الله په نيز معتبر نه دې.دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه مرهون دا جرم د مرتهن په ضمانت كي كړې دې.نو ددې جرم د عيب ( او بدنامي) نه خلاصول به د مرتهن په ذمه وي.نو يو اړخ خو دې مرتهن لپاره ضمان وي.او بل اړخ دې مرتهن باندې ضمان وي.په دې كي به هيڅ فائده نه وي.په دې وجه ددې جنايت اعتبار اونكړې شو.دا خبره خو د مرتهن د نفس په جنايت كي وه.

> وَجِنَايَتُهٗ عَلٰى مَالِ الْمُرْتَهِنِ لَا تُعْتَبَرُ بِالْاِتِّفَاقِ اود مرتهن په مال باندې به د مرهون جنايت بالاتفاق معتبر نه وي اِذَا كَانَتْ قِيْمَتُهٗ وَالدَّيْنُ سَوَاءً كله چې د مرهون قيمت او پور برابر وي لِاَنَّهٗ لَا فَائِدَةَ فِي اعْتِبَارِهَا ځكه چې د جنايت اعتبار كاوه كي هيڅ فائده نشته لِاَنَّهٗ لَا يَتَمَلَّكُ الْعَبْدَ وَهُوَ الْفَائِدَةُ ځكه چې مرتهن به دغلام مالك خو نه جوړيږي.او دا ( د غلام مالك كيدل) د فائدې شئ وو

تشريح:- او كه مرهون د مرتهن په مال باندې جنايت اوكړي.نو ددې مختلف صورتونه دي.په هغې كي يو دا دې.چه كله د مرهون قيمت او پور برابر وي.نو په دې صورت كي به بالاتفاق جنايت معتبر نه وي.ځكه چې د جنايت اعتبار كاوه كي هيڅ فائده نشته.ځكه چې دې به د جنايت په وجه د غلام نه مالك كيږي. بلكه د پور په وجه ده ته د غلام د ماليت استحقاق حاصل دې.نو د جنايت په اعتبار كاوه كي څه فائده شوه؟ حالانكه د جنايت اعتبار



كاوه نه بغير مرتهن د غلام د ماليت مستحق شوې دې.او دلته كي اصل فائده د غلام مالك كيدو كي وه.چه دا به ده ته نه حاصليږي.بلكه د ماليت د استحقاق په وجه به ده ته دا حق وي.چه غلام خرڅ كړې شي.چه ددې نه مرتهن خپل پور وصول كړي.اوكه د جنايت اعتبار اوكړې شي.بيا به هم دا نتيجه راوځي.

## د پور نه د مرهون د قيمت د زياتې حصې حكم

> وَاِنْ كَانَتِ الْقِيْمَةُ اَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ،اوكه د مرهون قيمت د پور نه زيات وي فَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهٗ يُعْتَبَرُ بِقَدْرِ الْاَمَانَةِ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله يو روايت دا دې.چه هغه په اندازه د امانت د جنايت اعتبار كوي لِاَنَّ الْفَضْلَ لَيْسَ فِيْ ضَمَانِهٖ ځكه چې زياتي د مرتهن په ضمان كي نه دې فَاَشْبَهَ جِنَايَةَ الْعَبْدِ الْوَدِيْعَةِ عَلَى الْمُسْتَوْدَعِ نو دا په مستودع باندې د وديعت دغلام د جنايت مشابه شو

تشريح:- زيد د خالد سره خپل غلام رهن كيخودو.چه دده قيمت دوې (دوه) زره روپۍ دې.او د خالد پور زيد باندې زر روپۍ دې.اوس مرهون غلام د خالد څه مال ضائع كړو.مثلاً دده نې بل غلام هلاك كړو.نواوس به څه حكم وي؟ په دې كي د امام صاحب رحمه الله دوې (دوه) قوله دي ① خالد سره د غلام نصف مضمون وو. او پاته نصف امانت وو.د مضمون ضمان ساقط او د امانت ضمان به مرتهن ته وركولې شي.يعني دا مجرم غلام به مرتهن ته ملاويږي.چه دده قيمت دوې (دوه) زره روپۍ دې.نو دده په نصف سره پور ادا شو.او پاته نصف كوم چې امانت وو.هغه ته د جنايت په عوض كي ملاؤ شو.كه غلام مرتهن سره هلاك شوې وې.بيا به هم دده قرضه ساقطيدله.او د پاته ضمان به نه راتلو.نو اوس هم د دين ساقطيدو په سلسله كي به غلام د مرتهن په قبضه كي هلاك شوې گنړلې شي.د امانت په مقدار كي ضمان ځكه واجب شو.چه دې مقدار كي مرتهن د مستودع پشان دې.اوكه د وديعت غلام د مستودع په مال كي جنايت اوكړي.نو تاوان واجبيږي.

> وَعَنْهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوهم روايت دا دې اَنَّهَا لَا تُعْتَبَرُ چې جنايت به معتبر نه وي لِاَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ وَهُوَ الْحَبْسُ فِيْهِ ثَابِتٌ ځكه چې د رهن حكم ( يعني حبس) په زياتي كي ثابت دې فَصَارَ كَالْمَضْمُوْنِ نو زياتي د مضمون مثل شو وَهٰذَا بِخِلَافِ جِنَايَةِ الرَّهْنِ عَلَى ابْنِ الرَّاهِنِ اَوِ ابْنِ الْمُرْتَهِنِ،او دا د راهن په خوي، يا د مرتهن په خوي باندې د مرهون د جنايت خلاف دې لِاَنَّ الْاَمْلَاكَ حَقِيْقَةً مُتَبَايِنَةٌ فَصَارَ كَالْجِنَايَةِ عَلَى الْاَجْنَبِيِّ ځكه چې املاك حقيقت كي متبائن ( او جلا جدا) دي.نو دا اجنبي باندې د جنايت پشان شو

حل اللغة* ① املاك:جمع د ملك، ② متباينة:د يوبل نه مختلف

تشريح:- د امام صاحب رحمه الله دوهم روايت دا دې.چه مقدار هم مرتهن سره محبوس دې.نو دې ته به هم د محبوس درجه وركولې شي.او تاوان به واجب نه وي. بهرحال كه مرهون په راهن يا مرتهن باندې جنايت اوكړي.نو ددې حكم دا دې.(چه ضمان به واجب نه وي) خو كه د راهن په خوي يا د مرتهن په خوي باندې جنايت اوكړي.نو اوس به ضمان واجب وي.ځكه چې دا جنايت على الاجنبي دې.او د پلار او خوي ملكيت جلا جلا وي.اگرچه دوی يو ځائې اوسيږي. په دې مسئله تفصيلي بحث په بدائع كي تير شوې دې.

## د پور برابر قيمت والا غلام قيمت كميدو او زياتيدو مسئله

> قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمايي وَمَنْ رَهَنَ عَبْدًا او چاچه داسې غلام رهن كيخودو سَاوِيًا بِاَلْفٍ بِاَلْفٍ اِلٰى اَجَلٍ كوم چې د زرو روپو برابر دې.د زرو ( روپو) په بدل كي ، د يوې مودې لپاره فَنَقَصَ فِي السِّعْرِ فَرَجَعَتْ قِيْمَتُهٗ اِلٰى مِائَةٍ .نو په نرخ كي كمې اوشو.نو ددې قيمت سلو پورې پاتې شو ثُمَّ قَتَلَهٗ رَجُلٌ نو دا غلام چا قتل كړو وَغَرِمَ قِيْمَتَهٗ مِائَةً او دې دده د سلو ( روپو) د قيمت ضامن شو. ثُمَّ حَلَّ الْاَجَلُ بيا موده راغله فَاِنَّ الْمُرْتَهِنَ يَقْبِضُ الْمِائَةَ قَضَاءً عَنْ حَقِّهٖ لَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ نو مرتهن به د خپل حق وصولولو په طريقه باندې سلو ( روپو) باندې قبضه كوي او په راهن به هيڅ رجوع نه كوي. وَاَصْلُهٗ اَنَّ النُّقْصَانَ مِنْ حَيْثُ السِّعْرِ لَا يُوْجِبُ سُقُوْطَ الدَّيْنِ

عِنْدَنَا (۱) او ددې اصل دا دی.چه د نرخ نقصان زموږ پور ساقطیدل نه واجبه وی

**تشریح:-** دا مسئله وړاندې تیره شوې ده.ددې لنډیز دا ده.چه زید خالد سره خپل غلام رهن کیخودو.چه ددې قیمت د رهن په ورځ زر روپۍ دي.او پور هم زر روپۍ دي.اوس نرخ بدل شو.چه ددې په وجه د غلام قیمت صرف سل روپۍ پاتې شو.اوس غلام لره بکر قتل کړو.چه په ده باندې دده د قیمت ضمان واجب شو.یعنی د هلاکاوه د قیمت چې کومې سل روپۍ دی.دا به مرتهن سره رهن وی.بیا کله چې د دین ادا کاوه وخت راشي.نو مرتهن به دا سل روپۍ پخپل حق کې اخلی.او د مرتهن پاته سل روپۍ ختمې شوې.چه دا به د راهن نه نه اخلی.ځکه.چې کله مرهون هلاکیږي.نو په ده هغه ضمان واجبیږي.کوم چې د رهن ایخودو په ورځ د رهن قیمت وو.او هغه زر روپۍ وې.نو ددې ټولو په مرتهن باندې ضمان واجب شو.چه ددې په وجه پور ساقط شو.او پاتې شوې د هلاکت نه بغیر صرف د مرهون قیمت کمیدل، دا ضمان نه واجبه وی.بلکه مرتهن به خپل پور وصوله وی.او عین مرهون به راهن ته حواله کوی.که ددې قیمت زیات شوې وی.اوکه کم شوې وی.

خِلَافًا لِزُفَرَ وَهُوَ يَقُولُ په خلاف د امام زفر رحمه الله، دوی وائی اَلْمَالِيَّةُ قَدِ انْتَقَصَتْ فَأَشْبَهَ انْتِقَاصَ الْعَيْنِ چې نرخ کم شو.نو دا د عین مشابه شو.

**تشریح:-** په زیربحث مسئله کې د امام زفر رحمه الله په نیز د نرخ کمیدو هم مرتهن باندې ضمان واجبیږي.او هغه فرمائی.که د مرهون کوم یو جزء هلاك شی.چه ددې په وجه مالیت کمیږي.او هم په دې حساب سره پور ساقطیږي.دغه ډول په نرخ کمیدو سره هم مالیت کمیږي.نو هم په دې حساب سره به پور هم ساقطیږي.

وَلَنَا او زموږ دلیل دادې نُقْصَانَ السِّعْرِ عِبَارَةٌ عَنْ فُتُورِ رَغَبَاتِ النَّاسِ چې د نرخ نقصان مراد دې.د خلګو د رغبتونو د کم والی په وجه وَذٰلِكَ لَا يُعْتَبَرُ فِي الْبَيْعِ او دا په بیع کې معتبر نه دې وَحَتّٰی لَا يَثْبُتَ بِهِ الْخِيَارُ تردې چې ددې په وجه به خیار نه ثابتیږي وَلَا فِي الْغَصْبِ حَتّٰی لَا يَجِبَ الضَّمَانُ او نه په غصب کې (معتبر دې).تردې چې ضمان به نه واجبیږي بِخِلَافِ نُقْصَانِ الْعَيْنِ لِأَنَّ بِفَوَاتِ جُزْءٍ مِنْهُ په خلاف د عین د نقصان، ځکه چې د مرهون د یو جزء فوت کیدو په وجه، يَتَقَرَّرُ الْاِسْتِيفَاءُ فِيهِ په دې جزء کې استیفاء ثابتیږي إِذِ الْيَدُ يَدُ الْاِسْتِيفَاءِ ځکه چې قبضه د مرتهن د استیفاء قبضه ده.

**حل اللغة:** ① فتور: کموالې ② السعر: نرخ ③ رغبات: جمع د رغبت، دلچسپی، شوق ساتل

**تشریح:-** دا زموږ دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه کله د یو شي نه د خلګو رغبت (او شوق) کم شي.نو ددې شي نرخ کمیږي.او کله چې رغبت زیاتیږي.نو ریټ (او قیمت) هم زیاتیږي.لکه چمپلان په یخنۍ کې ګرانیږي.او په ګرمۍ او بارانونوکې ددې نرخ غورځیږي.(او کمیږي).او د نرخ کمیدو زیاتیدو په بیع او غصب کې هیڅ اعتبار نه کیږي.نوکه یو شی ئې د یوکس نه واخستلو.او ددې نه روسته د بیع نرخ راپریوتو.نو مشتری ته د اوختو (او بیع پریخودو) اختیار نشته.دغه ډول که زید د خالد اس غصب کړو.او کله ئې چې اس واپس کړو.نو ددې نرخ راغورځیدلې دې.نو خالد به ددې وینا حقدار نه وی.چه اوس ددې نرخ راغورځیدلې دې.او دغصب په ورځ ددې قیمت دا وو.نو د کم والی ضمان ادا کړه.او پاتې شوه دا خبره چې امام زفر رحمه الله نقصان د سفر په نقصان د عین باندې قیاس کړې دې.نو دا قیاس صحیح نه دې.ځکه چې مرهون باندې د مرتهن قبضه، قبضه د استیفاء (او وصولۍ) ده.که مرهون پوره مرتهن سره هلاك شي.نو دې به د پوره پور وصولونکې شمارلې کیږي.نوکه د مرهون یو جزء فوت شي.نو هم ددې په اندازه به د استیفاء د قبضې په وجه وصولونکې شمارلې کیږي.بهرحال دامام زفر رحمه الله ذکر کړې شوې قیاس صحیح نه دې.

## په نرخ کمیدو سره پور نه ساقطیږي نومرهون به د پوره قرضې په بدله کښې رهن وی

(۱) القول الراجح هو هذاقول الجمهور رحمهم الله كذا فی ملتقى الأبحر (٤\١٠٣، ٣٠٠) وكنز الدقائق (٣٨٦) والدرالمحتار (٥\٣٦٨) نقلاً [illegible] الراجح (٢\٣٣٣)-



وَإِذَا لَمْ يَسْقُطْ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ بِنُقْصَانِ السِّعْرِ او هرکله چې په نرخ کمیدو سره د پور نه هیڅ ساقط نشو فَبَقِيَ مَرْهُونًا بِكُلِّ الدَّيْنِ نو مرهون د پوره پور په بدله کې مرهون پاتې شو فَإِذَا قَتَلَهُ حُرٌّ نو کله چې دا یو آزاد قتل کړو غَرِمَ قِيمَتَهُ مِائَةً نوهغه به دده د سلو (روپو) د قیمت ضامن وی لِأَنَّهُ تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْإِتْلَافِ فِي ضَمَانِ الْإِتْلَافِ ځکه چې په ضمان د هلاکت کې به دده د هلاکت د ورځې قیمت معتبر وی لِأَنَّ الْجَابِرَ بِقَدْرِ الْفَائِتِ ځکه چې نقصان پوره کونکې شی د فوت شوی پشان وی

**حل اللغة:** ① اتلاف: هلاکول

**تشریح:-** دتیر شوی تقریر نه معلومه شوه.چه په نرخ کمیدو سره هیڅ پور نه ساقطیږي.نو لکه څنګه چې مخکې مرهون د پوره پور بدل وو.اوس به هم د پوره پور بدل وی.نو که په دې حال کې راهن پور ادا کړي.نو پوره پور به ادا کوی.او مرهون به واپس اخلی.نوکه اوس څوك دا مرهون قتل کړي.نو چونکه اوس ددې قیمت سل روپۍ دې.نو په ده به د سلو روپو تاوان واجب وی.ځکه چې څومره ده نقصان کړې دې.هم دغه هومره نقصان پوره کول به په ده واجب وی.ځکه چې نقصان پوره کول د فوت شوی په اندازه وی.نو ددې قاتل څخه به سل روپۍ مرتهن اخلی.او رهن به ئې ایږدی.نو چونکه دا سل روپۍ د مرهون بدل دې.نو په ده به هم هغه حکم جاری کیږي.کوم چې د اصل وو.او اصل د پوره پور بدل وو.نو دا عوض به هم د پوره پور بدل وی.ځکه چې دا د اصل قائم مقام دې.په دې وجه به مرتهن د راهن نه د زیاتی اخستلو حقدار نه وی.ځکه که مرتهن سره مرهون هلاك شوې وې.بیا به هم دا حکم وو.نو اوس به هم دا حکم وی.او د غلام په قاتل باندې به د هلاکت د ورځې په اعتبار سره ضمان واجب وی.خو په مرتهن باندې د قبضې د ورځې په حساب سره (ضمان) وی.

وَأَخَذَهُ الْمُرْتَهِنُ او دا قیمت به مرتهن اخلی لِأَنَّهُ بَدَلُ الْمَالِيَّةِ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ ځکه چې دا د مرتهن په حق کې د مالیت بدل دې وَإِنْ كَانَ مُقَابَلًا بِالدَّمِ عَلٰی أَصْلِنَا اګرچه زموږ د اصل مطابق دا د وینې بدل دې حَتّٰی لَا يُزَادَ عَلٰی دِيَةِ الْحُرِّ تردې چې قیمت د آزاد په دیت باندې نه زیاتیږي. لِأَنَّ الْمَوْلٰی اسْتَحَقَّهُ بِسَبَبِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې مولا ددې د مالیت په سبب سره مستحق کیږي. وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمَالِيَّةِ او د مرتهن حق مالیت سره متعلق دې فَكَذَا فِيمَا قَامَ مَقَامَهُ نو هم دغه ډول هغه شي کې کوم چې د عین قائم مقام دې.

**تشریح:-** اوددې خبرې دلیل چې مرتهن د قاتل سل روپۍ اخلی دا دې چې دا قیمت خون بها (دیت) دې.یعنی د وینې بدل دې.او ددې دلیل دادې.چه د غلام قیمت د آزاد د دیت نه نشی زیاتولې.ددې باوجود به د مرتهن په حق کې دا قیمت د غلام د مالیت بدل شمارلې کیږي.ځکه که د مولا په قبضه کې څوك دا غلام قتل کړي.نو هغه ته د غلام قیمت ورکولې شي.حالانکه دا د وینې بدل دې.او مولا د غلام د وینې مالك نه دې.خو قیمت ورکول په دې اعتبار سره دی.چه دا د مالیت بدل دې.نو د مرتهن په حق کې به هم د مالیت بدل شمارلې کیږي.او مالیت سره د مرتهن حق تړلې شوې دې.نو هرکله چې د مرتهن حق د مرهون مالیت سره متعلق دې.نو د مرهون په بدل کې به هم د مالیت په اعتبار سره د مرتهن حق متعلق وی.او مرتهن ته به دا حق وی.چه هغه قیمت واخلی.چه ددې دلیل دا ذکرشو.خو اوس به مرتهن ته دا حق نه وی.چه د راهن نه نهه سوه روپۍ هم وصول کړي.هم دا مرغینانی رحمه الله فرمائی.

## مرتهن به د راهن نه هیڅ واپس نه اخلی

ثُمَّ لَا يَرْجِعُ عَلَی الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ بیا به مرتهن د راهن نه هیڅ څه واپس نه اخلی. لِأَنَّ يَدَ الرَّهْنِ يَدُ الْاِسْتِيفَاءِ مِنَ الْاِبْتِدَاءِ

ځکه چې د پیل نه د رهن قبضه، قبضه د استیفاء ده وَبِالْهَلَاكِ يَتَقَرَّرُ او د هلاکت په وجه استیفاء مضبوطیږي وَقِيمَتُهُ كَانَتْ فِي الْاِبْتِدَاءِ أَلْفًا فَيَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا لِلْكُلِّ مِنَ الْاِبْتِدَاءِ او ددې قیمت پیل کې زر روپۍ وو.نو مرتهن به د پیل نه زر روپۍ وصولونکی شمارلې کیږي.

**تشریح:-** چونکه مرتهن ته د پیل نه د وصولۍ قبضه حاصل وه.کله چې ددې قیمت زر روپۍ وو.او د هلاکت په وجه

وصولي بالكل يخه شوه.نو دې به د زرو ( روپو) وصولونكې شمارلې كيږي.چونكه دليل عجيبه شان وو.په دې وجه مرغيناني رحمه الله وريسې ددې دويمه توجيه فرمائي.

**دا خو به د سلو په بدله كښې د زرو ( روپو) وصولونكې شي ؟**

أَوْنَقُولُ يا موږ وايو لَايُمْكِنُ أَن يُجْعَلَ مُسْتَوْفِيًا الْأَلْفَ بِمِائَةٍ چې دا خو ممكن نه ده.چه دې د سلو په بدله كې د زرو ( روپو) وصولونكې اوګرځولې شي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا خكه چې دا خو سود ارخ ته متعدى دې فَيَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا الْمِائَةَ نو مرتهن به د سلو وصولونكې وى وَيَبْقَى تِسْعُمِائَةٍ فِي الْعَيْنِ او نهه سوه په عين كې پاته پاتې دى فَإِذَا هَلَكَ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا تِسْعَمِائَةٍ بِالْهَلَاكِ نو كله چې عين هلاك شو.نو د هلاكت په وجه به د نهه سوه ( روپو) وصولونكې شمارلې كيږي. بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ مِنْ غَيْرِ قَتْلِ أَحَدٍ په خلاف ددې صورت، كله چې دې د چا د قتلولو نه بغير مړشى. لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا الْكُلَّ بِالْعَبْدِ خكه چې مرتهن د غلام په وجه د پوره (قرض) وصولونكې شمارلې كيږي لِأَنَّهُ لَا يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا خكه چې دا سود ارخ ته متعدى نه دې.

تشريح:- كه څوك دا ووايي چې مرتهن غريب خو وصول كړى سل روپۍ دى.او تاسو فرمايئ؛چه زر روپۍ ئې وصول كړې.نو دا خو ښكاره سود دې.خكه چې جنس متحد دې؟ نو ددې دا ځواب وركوى.چه اول مرتهن سل روپۍ وصول كړې.او كله چې غلام هلاك شو.نو پاته نهه سوه هم وصول شوې.اوس به سود نه وى.خكه چې نهه سوه روپۍ د غلام د هلاكت بدل دې.او سل روپۍ د استيفاء د قبضې بدل دې.البته كه د چا د قتلولو نه بغير مرهون غلام پخپله مرتهن سره مړ شى.نو اوس د هيڅ تاويل ارتيا نشته.خكه چې زر روپۍ پوره دغلام بدل دې.چه په دې كې د اختلاف جنس په وجه د سود هيڅ شبه نشته.

**د راهن په حكم خرڅول او پور وصولولو نه روسته د پاته قيمت حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائي وَإِنْ كَانَ أَمَرَهُ الرَّاهِنُ أَنْ يَبِيعَهُ او كه مرتهن ته راهن دا حكم وركړې وى.چه مرهون خرڅ كړى فَبَاعَهُ بِمِائَةٍ وَقَبَضَ الْمِائَةَ نو هغه دا په سل روپۍ خرڅ كړو قَضَاءً مِنْ حَقِّهِ و د خپل حق په وصولولو كې ده په سلو باندې قبضه اوكړله فَيَرْجِعُ بِتِسْعِمِائَةٍ •.....نو مرتهن به نهه سوه ( د راهن نه) واپس اخلى. لِأَنَّهُ لَمَّا بَاعَهُ بِإِذْنِ الرَّاهِنِ خكه چې كله مرتهن دا خرڅ كړو.د راهن په اجازت سره.نو داسې شوه صَارَ كَأَنَّ الرَّاهِنَ اسْتَرَدَّهُ ګويا چې راهن دا واپس واخستلو وَبَاعَهُ بِنَفْسِهِ او پخپله ئې دا خرڅ كړې وى وَلَوْ كَانَ كَذَلِكَ يَبْطُلُ الرَّهْنُ او كه داسې وې.نو رهن به باطليدو. . وَيَبْقَى الدَّيْنُ او پور به پاته پاتې وو إِلَّا بِقَدْرِ مَا اسْتَوْفَى خو د هغه مقدار په اندازه كوم چې مرتهن وصول كړې وى وَكَذَا هَذَا نو دغه ډول دا هم دې

تشريح:- راهن مرتهن ته حكم وركړو.چه مرهون خرڅ كړه.ده په سلو روپو باندې خرڅ كړو.او سل روپۍ ئې پخپل پور كې كيخودې.نو كومې چې پاته سل روپۍ دى.هغه هم هغه شان د راهن په ذمه پاته پاتې دى.خكه چې هركله مرتهن د راهن په حكم سره خرڅ كړې دې.نو دا داسې دې.لكه چې راهن ئې پخپله خرڅ كړى.او كه هغه پخپله خرڅ كړې وې.او د ثمن سل روپۍ ئې مرتهن ته وركړې وې.بيا به هم د هغه نهه سوه روپۍ په راهن پاته پاتې كيدې.نو په ذكر شوى مثال كې هم دا حكم دې.

**كه مرهون غلام لره بل غلام قتل كړى ؟**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائي وَإِنْ قَتَلَهُ عَبْدٌ قِيمَتُهُ مِائَةٌ چې ده لره يو داسې غلام قتل كړو.چه دهغه قيمت سل درهم



دې فَدُفِعَ مَكَانَهُ نو دا قاتل غلام دده په بدله كې وركړې شو افْتَكَّهُ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ نو راهن به دا د پوره پور په بدله كې لنډيز وى وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ([1]) او دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دى وَقَالَ مُحَمَّدٌ هُوَ بِالْخِيَارِ او امام محمد رحمه الله فرمائي.راهن ته اختيار دى إِنْ شَاءَ افْتَكَّهُ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ كه غواړى.نو دا دې د پوره پور په بدله كې خلاص كړى وَإِنْ شَاءَ سَلَّمَ الْعَبْدَ الْمَدْفُوعَ إِلَى الْمُرْتَهِنِ و كه غواړى.نو غلام مدفوع ( كوم چې ده ته په ديت كې ملاو شوې دې) دې مرتهن ته د هغه د مال په بدله كې وركړى.

تشريح:- راهن چې كوم غلام د زرو ( روپو) په بدله كې رهن ا يخودې وو.مرتهن سره يو غلام دا مرهون غلام قتل كړو.او د قاتل غلام قيمت سل روپۍ دې.او د شريعت په حكم هم دا قاتل غلام د مرهون ( مقتول) غلام په بدله كې مرتهن ته وركړې شو.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه دې كې اختلاف دې. شيخينو رحمهما الله فرمائي.چه راهن د مرتهن پوره پور اداكړى.او د مرهون قائم مقام دوهم غلام به اخلى.او بس،امام محمد رحمه الله فرمائي.چه په ذكر شوى صورت كې راهن ته دوې (دوه) اختياره ملاويږي يا خوبه راهن پوره قرضه اداكړى.او مرتهن نه دا دوهم غلام واخلى.اويا به راهن دا دوهم غلام د مرتهن د پور په بدله كې مرتهن سره پريږدى.

وَقَالَ زُفَرُ يَصِيرُ رَهْنًا بِمِائَةٍ او امام زفر رحمه الله فرمائيلى دى.چه دې به د سلو په بدله كې رهن وى لَهُ د امام زفر رحمه الله دليل دا دې يَدُ الرَّهْنِ يَدُ اسْتِيفَاءٍ چې د رهن قبضه، قبضه د استيفاء ده وَقَدْ تَقَرَّرَ بِالْهَلَاكِ او د هلاكت په وجه استيفاء مضبوطه شوې ده إِلَّا أَنَّهُ أَخْلَفَ بَدَلًا بِقَدْرِ الْعُشْرِ خو د مرتهن د عشر ( لسمې حصې) په اندازه بدل وصول كړې دې فَيَبْقَى الدَّيْنُ بِقَدْرِهِ نو پور به د عشر په اندازه پاته پاتې وى.

تشريح:- د امام زفر رحمه الله په نيز خو د نرخ كميدل د عين جزء فوت كيدو پشان دې.نو د عين ٩١١٠ ضائع شوه.نو د پور به هم ٩١١٠ فوت وى.او اوس د مرتهن پور په راهن باندې ټولې سل روپۍ پاتې شوې. يعنى ١١١٠، چې ددې په بدله كې به دا دوهم غلام رهن منلې كيږي.

**دليله**◉دا دې.چه د مرتهن قبضه، قبضه د استيفاء وى.او هلاكت سره دا استيفاء مضبوطيږي. مرهون چې هلاك شى.نو پوره قرضه ساقطيدل پكار دى.خو چونكه مرتهن ته د مرهون غلام په بدل كې سل روپۍ ملاو شوى دى.چه دا داصل غلام عشريعنى ١١١٠ (لسمه حصه) ده.نو هم دې حساب سره به پور هم ساقطيږي.نو ٩١١٠ به ساقط وى.او صرف ١١١٠ يعنى سل روپۍ پور پاتې شوې.چه ددې په بدله كې دوهم غلام رهن دې.راهن به دوې (دوه) سوه روپۍ وركوى.او دا دوهم غلام به اخلى.

وَلِأَصْحَابِنَا عَلَى زُفَرَ رحمه الله او د امام زفر رحمه الله خلاف زموږ د اصحابو دليل دې الْعَبْدَ الثَّانِي قَائِمٌ مَقَامَ الْأَوَّلِ لَحْمًا وَدَمًا چې دوهم غلام د غوښې او وينې اعتبار سره د ړومبى قائم مقام دې وَلَوْ كَانَ الْأَوَّلُ قَائِمًا او كه ړومبې موجود وې وَانْتَقَصَ السِّعْرُ او نرخ كم شوې وې وَلَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ عِنْدَنَا لِمَا ذَكَرْنَا نو د ذكر شوى دليل په وجه به زموږ په نيز هيڅ پور نه ساقطيدو فَكَذَلِكَ إِذَا قَامَ الْمَدْفُوعُ مَكَانَهُ نو هم دغه ډول كله چې مدفوع (دوهم غلام) د ړومبى ( غلام) په ځائې قائم شى.

تشريح:- زموږ اصحابو د امام زفر رحمه الله دليل مات كړې دې.فرمائي.كه ړومبې غلام موجود وې.او صرف د نرخ كميدو په وجه ددې قيمت سل روپۍ پاته پاتې شوې وې.نو راهن به پوره پور ادا كولې.او خپل غلام به ئې اخستلې.او دلته چونكه دوهم غلام د صورت او معنى په اعتبار سره د ړومبى قائم مقام دې.نو دلته كې به هم دغه ډول ګڼړلې شى.چه ړومبې غلام موجود دې.او دده قيمت په نرخ كميدو سره كم شوې دې.نو پوره پور ادا كاوه سره به راهن ددې د اخستلو حقدار وى.

[1] القول الراجح هو هذاقول الشيخين. رحمهما الله كذا فى الدرالمحتار(٣٦٩١٥) وملتقى الأبحر(٣٠٢١٤) والدرالمنتقى (٣٠٣١٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٣٤١٢)-

ولمحمد في الخيار او د امام محمد رحمه الله دليل په خيار كي دا دي المرهون تغير في ضمان المرتهن چي مرهون د مرتهن په ضمان كي بدل شوي دي فيتخير الراهن نو راهن به اختيار مند وي. كالمبيع اذا قتل قبل القبض لكه چي مبيع كله دده د قبضي نه وړاندي قتل كړي شي والمغصوب اذا قتل في يد الغاصب او مغصوب چي كله دا د غاصب په قبضه كي قتل كړي شي يتخير المشتري والمغصوب منه كذا هذا نو مشتري او مغصوب منه ته اختيار وركولي شي.نو هم دغه ډول دا دي

تشريح:- دا د امام محمد رحمه الله دليل دي.فرماني.چه په مرهون كي كومه توپير پيدا شوي ده.دا د مرتهن په ضمان كي داخليدو سره پيدا شوي ده.نو راهن ته اختيار ملاويدل پكار دي،ولي؟ ځكه كه مبيع باندي اوسه پوري مشتري قبضه نه وي كړي.چه دا يو غلام قتل كړو.چه ددي په وجه قاتل غلام د مبيع غلام په عوض كي وركړي شو.نو اوس مشتري ته اختيار وي.كه د پوره ثمن په بدله كي دا دوهم غلام اخلي.او كه بيع فسخ كوي.نو دغه ډول دلته كي هم راهن ته اختيار ملاويدل پكار دي.دغه ډول كه دغاصب په قبضه كي مغصوب غلام بل غلام قتل كړي وو.چه ددي په وجه قاتل غلام د مقتول غلام په عوض كي وركړي شو.نو مغصوب منه ته اختيار دي.كه دا دوهم غلام اخلي.او كه د غاصب غلام نه د خپل غلام قيمت اخلي.دغه ډول دلته كي هم راهن ته اختيار ملاويدل پكار دي.

ولهما او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دي. التغير لم يظهر في نفس العبد لقيام الثاني مقام الاول لحما ودما چي توپير په نفس غلام كي نه دي ښكاره شوي د غوښي اوويني په اعتبار سره،د دوهم د ړومبي قائم مقام كيدو په وجه كما ذكرناه لكه څنګه چي دا مونږ ذكر كړي دي مع زفر،وعين الرهن امانة امام زفر رحمه الله سره (په بحث كي) اوعين رهن امانت دي عندنا فلا يجوز تمليكه منه زمونږ په نيز نو جائز نه دي د راهن مرتهن لره مالك جوړول بغير رضاه د مرتهن د رضامندئ نه بغير ولان جعل الرهن بالدين حكم جاهلي،وانه منسوخ،او ځكه چي رهن د پور په بدله كي كول د جاهليت (د زمانې) حكم دي.او دا منسوخ دي بخلاف البيع په خلاف د بيع، لان الخيار فيه حكمه الفسخ وهو مشروع ځكه چي بيع كي د خيار حكم د فسخ دي.او دا مشروع دي وبخلاف الغصب،لان تملكه باداء الضمان مشروع په خلاف دغصب، .او ځكه چي ضمان ادا كاوه سره د غاصب مالك كيدل مشروع دي

تشريح:- دا د شيخينو رحمهما الله دليل دي.ددي حاصل دا دي.چه مونږ اوس د امام زفر رحمه الله سره په بحث كاوه كي وئيلي وو.چه دوهم غلام د ړومبي قائم مقام دي.نو په نفس مرهون غلام كي توپير نه ده شوي.نو دا داسي شوه.لكه چي ړومبي غلام موجود دي.او دده قيمت كم شوي دي.په دي صورت كي دا نه جائز كيږي.چه غلام مرتهن د رضامندئ نه بغير مرتهن ته وركړي شي.او د كتاب الرهن په پيل كي تير شوي دي.چه عين مرهون امانت دي.او په امانت كي هم دا نه جائز كيږي.چه دده د رضامندئ نه بغير دا په مودع باندي ور اوتپلي شي.او رهن د پور بدل ګرځول د جاهليت د زمانې حكم دي.چه دا شريعت منسوخ كړي دي.نو په منسوخ باندي د عمل څه معنى؟ چي راهن ته اختيار دي.چه دوهم غلام د پور په بدله كي مرتهن ته وركړي.او تاسو ائ امام محمد رحمه الله چه دا په بيع او غصب باندي قياس كړي دي.نو دا قياس معى ألفارق دي. ولي؟ ځكه چي بيع كي كوم خيار ملاو دي.ددي مقصد فسخ ده.او فسخ بيع كي جائز ده.او رهن كي جائز نه ده.نو بيا قياس څنګه (صحيح كيږي)؟ او غاصب د ضمان ادا كاوه په وجه د مغصوب مالك كيږي.او مرتهن د پور په وجه د مرهون نه مالك كيږي.نو بيا قياس څنګه (صحيح كيداي شي) حالانكه علت جامعه هم موجود نه دي.

**د غلام مرهون قيمت زيات ووا و ياكم شو نو بل غلام ئي قتل كړو.نو څه حكم دي ؟**

ولوكان العبد تراجع سعره اوكه د غلام نرخ كم شوي وي حتى صار يساوي مائة ثم قتله عبد يساوي مائة تردي چي دا د سلو برابر شو.بيا دا داسي غلام قتل كړو.چه هغه د سلو برابر دي فدفع به نو قاتل د هغې په بدله كي وركړي شو فهو على هذا الخلاف نو دا هم په دي اختلاف (مبنى) دي

حل اللغة* ① تراجع:واپس كيدل،كميدل② يساوى:برابرى وى﴾



تشريح:- د مرهون غلام قيمت زر روپۍ وو.خو د نرخ بدليدو په وجه اوس ددي قيمت سل روپۍ پاتي شو.اوس دا يو غلام قتل كړو.چه د هغې قيمت هم سل روپۍ دي.بيا قاتل غلام مرتهن ته وركړي شو.نو په دي كي هم دا اختلاف دي.كوم چي ذكر شو.پاته تفصيل ښكاره دي.په ... د صاحب د نتائج رحمه الله اشكال هم دي.چه حاشيه كي موجود دي.

**د مرهون غلام د قتل خطاء جنايت د ضمان مسئله**

(واذا قتل العبد الرهن قتيلا خطأ اوكله چي مرهون غلام يو كس په خطاء سره قتل كړو فضمان الجناية على المرتهن نو د جنايت ضمان به د مرتهن په ذمه وى وليس له ان يدفع او مرتهن ته به دا حق نه وي.چه دا غلام وركړي. لانه لا يملك التمليك ځكه چي مرتهن د مالك جوړولو مالك نه دي ولو فدى اوكه مرتهن فديه ادا كړله طهر المحل نو محل (مرهون) پاك شو فبقي الدين على حاله نو پور پخپل حال باندي پاته پاتي شو ولا يرجع على الراهن بشيء من الفداء اومرتهن به په فديه كي هيڅ هم د راهن نه نه اخلي لان الجناية حصلت في ضمانه ځكه چي جنايت د مرتهن په ضمان كي حاصليږي فكان عليه اصلاحها نو په مرتهن به اصلاح د جنايت واجب وى.

تشريح:- د مرتهن سره د اوسيدو په حالت كي مرهون غلام څوك په خطاء سره قتل كړو.نو ضمان به مرتهن باندي لازم وى.او د لته د ضمان صرف يو صورت دي.اوهغه دا چي مرتهن د مقتول فديه ادا كړى.او كله چي مرتهن فديه ادا كړى.نو په مرهون چي كوم جنايت وو.هغه ختم شو.او د مرتهن پور پخپل حال راهن باندي قائم پاتي شو.اوس كه مرتهن اوغواړى.چه ما كوم ضمان اداكړي دي.هغه د مرتهن نه واپس واخلم.نو نشى اخستلي.ځكه چي غلام دا جنايت د مرتهن په ضمان كي د اوسيدو په حالت كي كړي دي.نو ددي ذمه داري مرتهن باندي راځي.نو هغه خپلي ذمه دارئ لاندي غلام مرهون د جنايت نه پاك كړو.نو دا ضمان د راهن نه نشي اخستلي.بهرحال دلته مرتهن ته صرف د فديي اخستلو اختيار دي.كه دي غلام په ضمان كي وركړي.نو ددي حق به نه وى.ځكه چي مرتهن د غلام مالك نه دي.چه هغه پخپله مالك نه دي.نو بل څوك به څنګه مالك كولي شي.

**كه مرتهن د فديي وركولو نه انكار اوكړي ؟**

(ولو ابى المرتهن ان يفدي وكه مرتهن د فديي ور كاوه نه انكار اوكړو قيل للراهن ادفع العبد نو راهن ته به وئيلي شي.چه غلام وركړه او افده بالدية يا ديت دده فديه وركړه لان الملك في الرقبة قائم له ځكه چي رقبه د غلام كي د راهن ملك قائم دي وانما الى المرتهن الفداء او مرتهن په اړخ فديه وركول دي لقيامه حقه د هغه د حق قائم مقام كيدو په وجه (فاذا امتنع عن الفداء نوكله چي مرتهن د فديي ور كاوه نه منع شي يطالب الراهن بحكم الجناية نو د راهن څخه به د جنايت د حكم مطالبه كولاى شي ومن حكمها التخيير بين الدفع والفداء اود جنايت حكم د غلام وركولو، او فديه ور كاوه په منځ كي اختيار وركول دي (فان اختار الدفع نو كه راهن غلام وركول اختيار كړل سقط الدين نو د مرتهن پور ساقط شو لانه استحق ځكه چي مرهون غلام په داسي سبب (يعنى قتل) سره مستحق جوړ شوي دي ليعنى فيضمان المرتهن فصار چي دا د مرتهن په ضمان كي حاصل شوي دي كالهلاك نو دا (استحقاق) د هلاكت پشان شو وكذلك ان فدى وهم دغه ډول كه راهن فديه وركړي وى لان العبد كالحاصل له بعوض په دي وجه راهن ته غلام د داسي عوض په بدله كي حاصل شوي دي كان على المرتهن كوم چي په مرتهن سربيره دي وهو الفداء او دا عوض فديه وركول دى

حل اللغة* ①ان يفدى: چي فديه وركړى ② التخيير:اختيار وركول﴾

تشريح:- كه مرتهن فديه ادا نكړى.نو اوس به مطالبه د راهن نه كيږي.او ده ته به اختيار ملاويږي① غلام د مقتول وارثانو ته حواله كړى.ځكه چي هغه مالك دي.او دا حق مرتهن ته ځكه نه وو ملاو شوي.چه هغه مالك نه وو.② غلام خپل خان سره اوساتى.او دده فديه (ديت) اداكړى.بهرحال كه هر يو صورت اختيار كړي شوي وى.دواړو

صورتونو کې به د مرتهن قرضه ساقطیږي.ځکه چې ړومبی صورت کې دده لپاره کوم غلام ورکول لازمی شوی دی.دا ورکول دهغه حرکت په وجه لازمی شوی دی.کوم چې ده د مرتهن په ضمان کې د اوسیدو په حالت کې کړې دې.نو دا د هلاکت په مرتبه کې دې.او په دوهم صورت کې اګرچه غلام د راهن سره دې.خو مفت کې نه دې.بلکه د هغه عوض په بدله کې دې.د کوم عوض اداکول چې د مرتهن په ذمه وو. لنډیز د کلام دا چې راهن ته دوې (دوه) حقونه د ملکیت په وجه ملاو شوی دی.او مرتهن مالك نه دې.بلکه دده په مرهون کې حق دې.په دې وجه ده ته صرف د فدیې ور کاوه حکم دې.د غلام ور کاوه حکم نه دې.

**که د مرهون ب چې انسان هلاك كړي يا مال ضائع كړي نو ضمان به په چا وي؟**

بِخِلَافِ وَلَدِ الرَّهْنِ په خلاف د مرهون د بچی إِذَا قَتَلَ إِنْسَانًا کله چې ده یو انسان قتل کړو. أَوْ اسْتَهْلَكَ مَالًا یا ئې مال هلاك کړو يُخَاطَبُ الرَّاهِنُ په دې حیثیت سره چې راهن به مخاطب وی بِالدَّفْعِ أَوْ الْفِدَاءِ فِي الِابْتِدَاءِ د بچی ورکولو، یا د فدیې ور کاوه په پیل کې،

**تشریح:-** راهن یوه وینځه رهن کیخوده.چه دا د یوکس ښځه هم ده.او حامله ده.مرتهن سره ددې بچې پیدا شو. بچې د یوځو ورځو شو.چه دې د بره خانې نه راپریوتو.چه ددې په وجه څوك سرې مړ شو.او بچې تیك ټاك پاتې شو.نو ضمان به په چا وی؟ نو وې فرمائیل.چه اوس به ضمان مرتهن باندې نه وی.

لِأَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه چې د مرهون بچې مرتهن باندې مضمون نه دې فَإِنْ دَفَعَ خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ نو که راهن بچې ورکړو( د مستحق ته) نو دا به رهن نه خارج وی وَلَمْ يَسْقُطْ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ او د پور څخه به هیڅ نه ساقطیږي كَمَا لَوْ هَلَكَ فِي الِابْتِدَاءِ لکه (مثلاً) که د پیل نه هلاك شوې وې وَإِنْ فَدَى فَهُوَ رَهْنٌ مَعَ أُمِّهِ عَلَى حَالِهِمَا.او که فدیه ئې ورکړې وی.نو دا بچې به د مخکې پشان (اوس هم) خپلې مور سره رهن وی.

**تشریح:-** دلیل دا دې چې وړاندې تیر شوی دی.چه د مرهون بچې اګرچه مرتهن سره رهن وی.خو دا مضمون نه وی.نو په مرتهن به ضمان نه وی.بلکه ضمان به صرف په راهن وی.او راهن ته به اختیار وی.که غواړي.نو هم دا بچې دې د مقتول وارثانو ته ورکړي.او که غواړي.نو دده فدیه دې ورکړي.که هر یو صورت اختیاره وی.د مرتهن پور به هم هغه شان پخپل حال پاته پاتې وی.اوکه ده فدیه ورکړې وی.نو پور به هم پاته وی.او دا بچې به هم د پور ادا کاوه پورې خپلې مور سره یو ځاې مرهون وی.

**دغلام مرهون د خپل قیمت برابر یا زیات مال هلاکولو حکم**

(وَلَوْ اسْتَهْلَكَ الْعَبْدُ الْمَرْهُونُ مَالًا اوکه مرهون غلام دومره مال هلاك كړې وی يَسْتَغْرِقُ رَقَبَتَهُ چې دده سټ ئې راګیر کړې وی فَإِنْ أَدَّى الْمُرْتَهِنُ الدَّيْنَ نو که مرتهن هغه پور ادا کړو الَّذِي لَزِمَ الْعَبْدَ کوم چې په غلام لازم شوې دې فَدَيْنُهُ عَلَى حَالِهِ نو د مرتهن پور پخپل حال (باقی) دې. كَمَا فِي الْفِدَاءِ لکه څنګه چې په فدیه ور کاوه کې دی وَإِنْ أَبَى قِيلَ لِلرَّاهِنِ که هغه انکار اوکړی.نو راهن ته به وئیلې شی بِعْهُ فِي الدَّيْنِ چې مرهون په پور کې خرڅ کړه. إِلَّا أَنْ يَخْتَارَ أَنْ يُؤَدِّيَ عَنْهُ خودا چې راهن د هغه د اړخه فدیه اداکول اختیار کړی نو که راهن فدیه ادا کړله.نود مرتهن پور باطل شو فَإِنْ أَدَّى بَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْفِدَاءِ لکه څنګه چې موږ دا په فدیه ور کاوه کې بیان کړی دی وَإِنْ لَمْ يُؤَدِّ وَبِيعَ الْعَبْدُ اوکه راهن ادا نکړو.او په دې کې غلام خرڅ کړې شو فِيهِ يَأْخُذُ صَاحِبُ دَيْنِ الْعَبْدِ دَيْنَهُ نو په غلام دې پور والا خپل پور واخلی لِأَنَّ دَيْنَ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ عَلَى دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ وَحَقِّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ ځکه چې دغلام پور د مرتهن په پور او د ولی د جنایت په حق باندې وړاندې دې لِتَقَدُّمِهِ عَلَى حَقِّ الْمَوْلَى دده (یعنی د غلام د قرض) مخکې کیدو په وجه د مولا په حق باندې.

**حل اللغة:** ① تقدم: وړاندې والې

**تشریح:-** مرهون غلام د یو کس د قتل کاوه په ځاې د چا مال ضائع کړو.او دومره مال ئې هلاك کړو.چه دا د مرهون



غلام د قیمت نه کم نه دې.بلکه برابر یا زیات دې.نو داسې به ګنړلې شی.چه د چا مال ئې هلاك کړې دې.د هغه دومره پور د غلام په ذمه دې.نو که دا پور مرتهن ادا کړو.نو جائز دې.اود مرتهن پور به پخپل حال پاته وی.او که مرتهن د پور ور کاوه نه انکار اوکړو.نو اوس به د راهن نه مطالبه کولې شی.نوکه هغه غواړي.نو پور دې ادا کړي.ګنی هغه ته به حکم ورکولې شی.چه دا غلام خرڅ کړي.او په دواړو صورتونو کې به د مرتهن پور ساقطیږي.بهرحال هرکله چې دا خرڅ کړې شو.نو دده د ثمن څخه به هغه سړې خپل پور وصوله وی.د چا چې په غلام باندې پور شمار کړې شوې دې.

① که څوك دا ووایي چې باید ده (پکار ده) په دې ( ثمن د غلام) کې مرتهن ته هم څه ملاوشی نو موږ وایو داسې ځکه ن ده تیك چې دا په غلام باندې ذاتی پور دې.او د مرتهن پور په راهن دې.او قاعده دا ده.چه کوم پور په غلام وی. هغه د مرتهن د پور نه وړاندې وی.دغه ډول که دې مرهون غلام بل څه جنایت هم کړې وی.نو دې به د جنایت ته حواله کولې شی.خو بیا به ده ته حکم کولې شی.چه دا خرڅ کړه.او د پور والا پور ادا کړه.په دې کې هم د پور والا حق د جنایت د ولی د حق نه مقدم ساتلې شوې دې.وجه ددې دا ده.چه د پور والا حق د مولا د حق نه هم مقدم دې.نو د مرتهن او د جنایت د ولی د حق څخه به د پور والا حق په درجه اولی مقدم وی.

**د غلام په ثمن کښې د پور ادا کولو نه روسته د پاته پاتې ثمن حکم**

(فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ نوکه څه بچ پاتې شی وَدَيْنُ غَرِيمِ الْعَبْدِ مِثْلُ دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ أَوْ أَكْثَرُ او د غلام د قرضخواه پور د مرتهن د پور برابر یا ددې نه زیات وی فَالْفَضْلُ لِلرَّاهِنِ وَبَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ نو زیاتوالې به راهن لپاره وی.او د مرتهن پور به باطل وی لِأَنَّ الرَّقَبَةَ اُسْتُحِقَّتْ لِمَعْنًى ځکه چې رقبه د غلام مستحق شوې ده.د داسې معنی په وجه هُوَ فِي ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ کوم چې د مرتهن په ضمان کې دې فَأَشْبَهَ الْهَلَاكَ نو دا د هلاکت مشابه شو

**حل اللغة:** ① قرضخواه

**تشریح:-** ددې غلام په خرڅولو کې چې کوم ثمن ملاو شوې دې.که د پور والا پور ادا کاوه نه څه بچ پاتې شی.او اتفاق سره د قرضخواه او مرتهن پور برابر دې.یا د قرضخواه زیات دې.نو په دې دواړو صورتونو کې به د قرضخواه پور ادا کولې شی.او کوم ثمن چې بچ پاتې شی.نو هغه د راهن دې.اود مرتهن پور باطل شو.وجه ددې دا ده.چه د مرتهن په ضمان کې پوره غلام د بل مستحق شوې وو.او دا استحقاق د هلاکت په درجه کې دې.نو لکه څنګه چې د هلاکت په صورت کې پور ساقطیږي.دلته کې به هم ساقطیږي.

**که د غلام پور د مرتهن د پور نه کم وی نو څه حکم دې؟**

(وَإِنْ كَانَ دَيْنُ الْعَبْدِ أَقَلَّ وکه د غلام پور د مرتهن د پور نه کم وی وَسَقَطَ مِنْ دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ بِقَدْرِ دَيْنِ الْعَبْدِ.نو د مرتهن پور به د غلام د پور په اندازه ساقطیږي وَمَا فَضَلَ مِنْ دَيْنِ الْعَبْدِ ود غلام په پور کې چې کوم بچ پاتې شی يَبْقَى رَهْنًا كَمَا كَانَ هغه به پخپل حال پاته پاتې وی ثُمَّ إِنْ كَانَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ قَدْ حَلَّ بیا که د مرتهن د پور ادا کاوه وخت راغلې وی أَخَذَهُ نو مرتهن به دا د خپل پور په بدله کې اخلی. لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ ځکه چې دا دده د حق جنس دې وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ اوکه د ادا کاوه وخت نه وی راغلې أَمْسَكَهُ حَتَّى يَحِلَّ نو هغه دې دا ځان سره ګیر اوساتی.تردې چې وخت راشی

**تشریح:-** کوم حکم چې ذکر شو.دا خو هغه وخت دې.کله چې د غلام د قرضخواه پور اود مرتهن پور برابر وی.یا د قرضخواه پور زیات وی.اوکه په غلام باندې د قرضخواه پور کم وی.او د مرتهن پور زیات وی.نو دا حکم نه دې.بلکه حکم دا دې.چه د مرهون غلام د قیمت نه د قرضخواه پور ادا کاوه نه روسته چې کوم رقم بچ پاتې شی.هغه به رهن وی.مثلاً د غلام قیمت زر روپۍ دې.او پور هم زر روپۍ دې.او په غلام باندې د استهلاك په وجه سل روپۍ پور شو.چه په دې کې دې خرڅ کړې شو.او سل روپۍ قرضخواه ته ورکړې شوې.پاته نهه سوه به رهن وی.بیا به کتلې شی.چه پور میعادی ( نیته دار) دې.اوکه نه د ې.که میعادی نه وی.نو پاته پاتې به مرتهن پخپل

حق کي اخلي.ځکه چي دا دده د حق جنس دې.او که ميعادي وی.نو دا دې خپل ځان سره رهن کيږدی.او کله چې د پور ادا کاوه وخت راشي.هغه وخت دې وصول کړي.

وَإِنْ كَانَ ثَمَنُ الْعَبْدِ لَا يَفِي بِدَيْنِ الْغَرِيمِ او که د غلام ثمن د قرضخواه پور پوره نکړی أَخَذَ الثَّمَنَ نو قرضخواه دې ثمن واخلی وَلَمْ يَرْجِعْ بِمَا بَقِيَ عَلَى أَحَدٍ او کوم چې پاته پاتې شي.هغه به د هيڅ چا نه واپس نه اخلی حَتَّى يُعْتَقَ الْعَبْدُ تردې چې غلام آزاد شی لِأَنَّ الْحَقَّ فِي دَيْنِ الْاِسْتِهْلَاكِ يَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ ځکه چې حق د استهلاك په پور کي دغلام سټ سره متعلق کيږي وَقَدْ اُسْتُوْفِيَتْ او سټ وصول شوې دي فَيَتَأَخَّرُ إِلَى مَا بَعْدَ الْعِتْقِ نو حق به روستو کيږی.د عتق نه روستو پورې ثُمَّ إِذَا أَدَّى بيا کله چې غلام ادا کړو.بعده د آزادئ نه روستو لَا يَرْجِعُ عَلَى أَحَدٍ نو دې به په هيڅ چا باندې رجوع نه کوی لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ بِفِعْلِهِ ځکه چې دا په ده باندې دده په فعل سره واجب شوې دې

تشريح:- که غلام په زر روپۍ کي خرڅ کړې شو.او د غلام د قرضخواه پور پنځلس سوه روپۍ دې.نو د مرتهن پور به خو ساقطيږی.او زر روپۍ به قرضخواه ته ورکولې شی.پاته پنځه سوه دې د هيڅ چا نه نشی اخستلې.نه د راهن نه او نه د مرتهن نه.البته ددې غلام د آزادئ نه روسته ئې هم دده نه اخستې شی.ځکه چې دا د استهلاك پور د غلام سټ سره متعلق کيږی.چه دا وصول کړې شوې دی.نو د قرضخواه حق به، د ادا کاوه نه روستو پورې موئخر وی.بيا غلام د آزادئ نه روسته هرکله دا پنځه سوه روپۍ ادا کړلې.نو هغه ته حق نشته.چه د راهن يا مرتهن نه دا واپس واخلی.ځکه چې دا پور هم په ده باندې واجب شوې وو.اوهم دده په فعل سره واجب شوې وو.

## د پور نه د زيات قيمت والا غلام، نصف رهن کښې ايښودل

(وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الْعَبْدِ أَلْفَيْنِ او که د غلام قيمت دوې (دوه) زره وی وَهُوَ رَهْنٌ بِأَلْفٍ او دې د زر (روپو) په عوض رهن وی وَقَدْ جَنَى الْعَبْدُ او غلام څه جنايت اوکړو يُقَالُ لَهُمَا نو دوی دواړو (راهن او مرتهن) ته به ونيلې شی اَفْدِيَاهُ چې فديه ادا کړه. لِأَنَّ النِّصْفَ مِنْهُ مَضْمُونٌ ځکه چې دده نصف مضمون دې وَالنِّصْفُ أَمَانَةٌ او نصف امانت دې وَالْفِدَاءُ فِي الْمَضْمُونِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ او دمضمون فديه په مرتهن ده. وَفِي الْأَمَانَةِ عَلَى الرَّاهِنِ او د امانت فديه په راهن ده فإن فَإِنْ أَجْمَعَا عَلَى الدَّفْعِ نو که دوی (راهن اومرتهن) دواړه په غلام ور کاوه باندې اتفاق اوکړی دَفَعَاهُ نو دا غلام دې ورکړی وَبَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ او د مرتهن پور به ختم شی وَالدَّفْعُ لَا يَجُوزُ فِي الْحَقِيقَةِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ لِمَا بَيَّنَّا او زموږ ذکر شوی دليل سره په حقيقت کي د مرتهن د اړخه ورکول جائز نه دی وَإِنَّمَا مَعْنَاهُ الرِّضَا بِهِ دده د اړخه په ور کاوه خو رضامندی ده

تشريح:- زيد چې خالد سره د دوې (دوه) زره روپو پور په عوض کوم غلام رهن ايخودې دې.د هغې قيمت دوې (دوه) زره روپۍ دې.او په دې صورت کي خالد سره ددې غلام نصف مضمون دې.او پاته نصف امانت دې.،،کمامر،، بهرحال دلته به په دوی دواړو جنايت واجب وی.که دا غلام د جنايت ولی ته حواله کوی.او که دده فديه ادا کوی.او د مضمون فديه ادا کول به د مرتهن فريضه وی.او د امانت فديه ادا کول به د راهن فريضه وی.اوکه د فديې ادا کاوه په ځاني دواړو اتفاق اوکړو.چه دا غلام د جنايت ولی ته حواله کړی.نو جائز دی.خو د مرتهن پور به باطليږی. که څوك دا اعتراض اوکړی چې وړاندې تير شو چې راهن غلام په جنايت کي ورکولې شی.خو مرتهن ئې نشی کولې.ځکه چې هغه مالك نه دې.اودلته بيان دې چې راهن اومرتهن دواړه غلام ور کولای شی نوموړ وايو چې دا په مسامحت (او په خطاء) بناء دې.کني ورکول د مرتهن کار نه دې.البته دده رضامندی ضروری ده.دده رضاء د تسامح په لحاظ دفع (يعنی غلام ورکولو) سره تعبير کړې شوه.

فَإِنْ تَشَاحَّا او که دوی دواړه اختلاف اوکړی فَالْقَوْلُ لِمَنْ قَالَ أَنَا أَفْدِي نو د هغه کس قول به معتبر وی.چه دا اووانی .چه زه فديه ورکوم. رَاهِنًا كَانَ أَوْ مُرْتَهِنًا که هغه راهن وی اوکه مرتهن وی أَمَّا الْمُرْتَهِنُ فَلِأَنَّهُ لَيْسَ فِي الْفِدَاءِ إِبْطَالُ حَقِّ الرَّاهِنِ .بهرحال مرتهن، نو ځکه چې فديه ور کاوه کي د راهن د حق ابطال نشته وَفِي الدَّفْعِ



الَّذِي يَخْتَارُهُ الرَّاهِنُ إِبْطَالُ الْمُرْتَهِنِ او په هغه غلام دفع کاوه (او په جرم کي ورکولو) کي کوم چې راهن اختيار کوی.د مرتهن د حق ابطال دې.

حل اللغة* ① تحاشا: صيغه د تثنيه،دواړو اختلاف اوکړو﴾

تشريح:- که راهن او مرتهن دواړو کي اختلاف پيدا راغلو.مثلاً راهن اووانی.چه زه به فديه ورکوم.او مرتهن اووانی.چه زه به غلام د جنايت ولی ته ورکوم.يا ددې په عکس وی.نو څوك چې فديه ورکول غواړی.دهغه قول به معتبر وی.که راهن وی اوکه مرتهن وی.ځکه که مرتهن فديه ورکول غواړی.نو په دې کي د راهن هيڅ نقصان نشته.او دده د حق هيڅ ابطال نشته.نو فديه به ورکولې شی.اوکه راهن په غلام ور کاوه باندې کلك شی.نو چونکه په دې کي د مرتهن د حق ابطال دې.ځکه چې اوس به د غلام مالك د جنايت ولی جوړيږی.اود مرتهن پور به ساقطيږی.

## د مرهون د بچي د جنايت د ضمان مسئله

وَكَذَا فِي جِنَايَةِ الرَّهْنِ إِذَا قَالَ الْمُرْتَهِنُ أَنَا أَفْدِي او هم دغه ډول د مرهون د بچی په جنايت کي کله چې مرتهن اووانی.چه زه به فديه ورکوم لَهُ ذٰلِكَ نو ده ته به دا حق وی وَإِنْ كَانَ الْمَالِكُ يَخْتَارُ الدَّفْعَ اګرچه مالك (راهن) بچې ورکول اختيار کړی لِأَنَّهُ أَنْ لَمْ يَكُنْ مَضْمُونًا ځکه چې بچې اګرچه مضمون نه دې. فَهُوَ مَحْبُوسٌ بِدَيْنِهِ نو دا دده د پور په عوض محبوس دې وَلَهُ فِي الْفِدَاءِ غَرَضٌ صَحِيحٌ اود مرتهن په فديه ور کاوه کي صحيح غرض (او مقصد) دې وَلَا ضَرَرَ عَلَى الرَّاهِنِ ،فَكَانَ لَهُ أَنْ يَفْدِيَ او د راهن هيڅ ضرر نشته.نو مرتهن ته به د فديې ور کاوه حق وی وَأَمَّا الرَّاهِنُ فَلِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ وِلَايَةُ الدَّفْعِ او بهرحال راهن، نو ځکه چې مرتهن ته د ور کاوه ولايت نشته لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې فَكَيْفَ يَخْتَارُهُ نو مرتهن دا (دفع يعنی غلام ورکول) څنګه اختيارولې شي وَيَكُونُ الْمُرْتَهِنُ فِي الْفِدَاءِ مُتَطَوِّعًا او مرتهن به په فديه ور کاوه کي متطوع (او احسان کونکې) وی فِي حِصَّةِ الْأَمَانَةِ حَتَّى لَا يَرْجِعَ عَلَى الرَّاهِنِ ،په برخې د امانت کي ،تردې چې دې په راهن باندې رجوع نشی کولې لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ لَا يَخْتَارَهُ ځکه چې مرتهن له ممکن ده.چه دې فديه ورکول اختيار نکړی فَيُخَاطَبُ الرَّاهِنُ نو راهن به مخاطب وی فَلَمَّا الْتَزَمَهُ نو کله چې مرتهن د فديې ور کاوه التزام اوکړو وَالْحَالَةُ هٰذِهٖ كَانَ مُتَبَرِّعًا او حالت دا وو.(يعنی راهن مخاطب وې) نو مرتهن به متبرع وو وَهٰذَا عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهُ او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله د يو روايت مطابق دي لَا يَرْجِعُ مَعَ الْحُضُورِ چه متبرع (احسان کونکې) به د موجود کيدو په صورت کي رجوع نه کوی وَسَنُبَيِّنُ الْقَوْلَيْنِ أَنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى ..او موږ به انشاء الله دواړه قولونه ډير نژدې ذکر کړو.

حل اللغة* ① محبوس: بندشوې ② متطوع: نفل کونکې،زياتی ادا کونکې﴾

تشريح:- که د مرهون بچی جنايت اوکړو.نو ددې ضمان په مرتهن باندې نه لازميږی.ځکه چې دا مرتهن سره د مرهون کيدو باوجود نه مضمون کيږی.بلکه امانت وی.،،کمامر،، بهرحال که ددې باوجود مرتهن د مرهون د بچی د جنايت فديه ادا کړله.نو چونکه مرتهن په دې فديه ور کاوه کي متبرع دې.نو ده ته به داحق نه وی.چه د راهن نه دا فديه واپس واخلی. اوددې زياتی تفصيل روستو راروان دې بهرحال دلته دا بيانول مقصود دی.که د مرهون بچی جنايت اوکړو.اوس په دې کي د راهن او مرتهن اختلاف اوشو.يو وائی.چه هم دا بچې به د جنايت ولی ته ورکوم.او دوهم وائی.چه زه به فديه ادا کوم.نو قول به د هغه کس معتبر وی.څوك چې فديه ورکول غواړی.ځکه چې مرتهن فديه ورکول غواړی.نو په دې کي د راهن هيڅ ضرر نشته.او د مرتهن په دې کي فائده ده.او فائده دا ده.چه دده په پور کي نوره مضبوطی هم پيدا کيږی.او غرض هم صحيح دې.او د مرهون د بچې اګرچه مرتهن باندې مضمون نه دې. خو دده سره محبوس دې.نو د مرتهن په دې کي فائده ده.او د راهن هيڅ نقصان نشته.اوکه راهن فديه ورکول غواړی.او مرتهن د بچی ورکول غواړی.نو د راهن قول به په درجه اولی معتبر وی.ځکه مرتهن ته دا ولايت حاصل نه دې.چه هغه د مرهون څوك مالك جوړ کړی.لکه څنګه چې بار بار تير شوی دی.

وَلَوْأَبَى الْمُرْتَهِنُ أَنْ يَفْدِيَ او ( په رومبی صورت کي لکه چې د مرهون د بچی مسئله نه وی) که مرتهن د فديه ور کاوه نه انکار اوکړی. وَفَدَاهُ الرَّاهِنُ او راهن فديه ادا کړې وي فَإِنَّهُ يَحْتَسِبُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نِصْفَ الْفِدَاءِ مِنْ دَيْنِهِ نو د مرتهن نصف فديه به دده په پور کي محبوس وی لِأَنَّ سُقُوطَ الدَّيْنِ أَمْرٌ لَازِمٌ خکه چې پور ساقطيدل لازمی امر دی. که راهن فديه ورکړی وَدَفَعَ فَلَمْ يَجْعَلِ الرَّاهِنُ فِي الْفِدَاءِ مُتَطَوِّعًا او که مرهون غلام ورکړی. نو راهن به په فديه ور کاوه کي متبرع (احسان کونکي) نه شمارلې کيږی

تشريح:- په تيره شوې مسئله کي کله چې راهن او مرتهن باندې ضمان واجب شوې وو. هغې کي مرتهن د فدي ادا کاوه نه انکار کړې وو. او ټوله فديه راهن باندې ادا کول لازمی شوی وو. نو چونکه راهن دلته کي متبرع نه دې. لکه ځنګه چې د مرهون د بچی په مسئله کي مرتهن متبرع وو. نوچه راهن متبرع نه دې. نو ادا کړې شوې نصف فديه په راهن او نصف به په مرتهن باندې لازم وی. او چونکه مرتهن ادا نکړله. خکه چې دا فديه به د مرتهن د پور نه حسابولې شی. خکه که راهن فديه ورکړی. اوکه غلام د جنايت ولی ته حواله کړی. دواړو صورتونو کي به د مرتهن پور ساقطيږی. خکه چې راهن متبرع نه دې.

ثُمَّ يُنْظَرُ بيا به کتلې شی إِنْ كَانَ نِصْفُ الْفِدَاءِ مِثْلَ الدَّيْنِ أَوْأَكْثَرَ بَطَلَ الدَّيْنُ که نصف فديه د پور برابر يا زياته وی. نو پور به باطل وی وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِ نِصْفِ الْفِدَاءِ اوکه د پور نه کمه وی. نو د نصف فدې په اندازه به پور ساقطيږی وَكَانَ الْعَبْدُ رَهْنًا بِمَا بَقِيَ او د پاته پاتې په بدله کي به غلام رهن وی لِأَنَّ الْفِدَاءَ فِي نِصْفٍ كَانَ عَلَيْهِ خکه چې نصف فديه ورکول مرتهن باندې لازم وه. فَإِذَا أَدَّاهُ الرَّاهِنُ نو کله چې دا راهن ادا کړله وَهُوَ لَيْسَ بِمُتَطَوِّعٍ حالانکه هغه متبرع نه دې كَانَ لَهُ الرُّجُوعُ عَلَيْهِ نو ده ته به مرتهن باندې د رجوع حق وی فَيَصِيرُ قِصَاصًا بِدَيْنِهِ نو د مرتهن د پور په بدله کي به مقاصه کولای شی كَأَنَّهُ أَوْفَى نِصْفَهُ گويا چې راهن د مرتهن نصف قرضه ادا کړې ده فَيَبْقَى الْعَبْدُ رَهْنًا بِمَا بَقِيَ نو غلام به د پاته پاتې په عوض کي رهن پاته وی

تشريح:- نوهرکله چې د نصف فدیې او د مرتهن د پور حساب اولګولې شو. نو دا صورتونه شو① د مرتهن پور د نصف فدیې برابر دې. يا زياته دې. نو په دې صورت کي به د مرتهن واړه پور باطل وی.② دمرتهن پور زيات دې. او نصف فديه کمه ده. مثلاً پور زر روپۍ به مرتهن باندې راخی. او د پاته پنځو سوو روپو په بدله کي به دا غلام مرتهن سره رهن وی. خکه چې نصف فديه مرتهن باندې واجب وه. چه هغه ده ادا نکړله. چه هغه هم راهن ادا کړله. او چونکه راهن متبرع نه دې. نو راهن ته به حق وی. چه دا پنځه سوه د مرتهن نه واپس واخلی. خو د اخستلو نه بغير به مقاصه او بدله کيږی. او داسې به ګنړلې کيږی. ګويا چې راهن د هغه پور نه کوم چې د راهن په ذمه دې. پنځه سوه ورکړلې. او اوس پنځه سوه نور هم پاته پاتې شو. او ددې پاته پاتې پنځو سوو په بدله کي به مرتهن سره غلام رهن وی.

### د راهن په موجودګئ کښې د مرتهن د فدیې اداکولو حکم

وَلَوْكَانَ الْمُرْتَهِنُ فَدَى او که° اهن فديه ادا کړله. وَالرَّاهِنُ حَاضِرٌ حالانکه راهن موجود دې فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ نو مرتهن متبرع دې وَإِنْ كَانَ غَائِبًا اوکه راهن غائب وی لَمْ يَكُنْ مُتَطَوِّعًا نو مرتهن به متبرع نه وی وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې

تشريح:- په رومبئ مسئله کي کله چې نصف مضمون او نصف امانت وو. او نيمه فديه په راهن او نيمه په مرتهن واجب شوې وه. خو مرتهن پوره فديه ادا کړله. نواوس په دې صورت کي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې کي تفصيل دې که راهن دلته کي موجود دې. نو د مرتهن فعل تبرع ده. د واپس اخستلو حق نشته. او که راهن غائب دې. نو تبرع نه ده. نو اوس به د واپس اخستلو حق وی.

(وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالْحَسَنُ وَزُفَرُ رَحِمَهُمُ اللَّهُ الْمُرْتَهِنُ مُتَطَوِّعٌ فِي الْوَجْهَيْنِ او فرمائيلی دی امام ابويوسف، او امام محمد،



او حسن، او امام زفر رحمهم الله چې مرتهن په دواړو صورتونوکي متبرع دې لِأَنَّهُ فَدَى مِلْكَ غَيْرِهِ خکه چې ده د خپل خان نه د علاوه د ملك فديه ادا کړې ده بِغَيْرِ أَمْرِهِ فَأَشْبَهَ الْأَجْنَبِيَّ°. د هغه د حکم نه بغير، نو مرتهن د اجنبی مشابه شو

تشريح:- د امام ابويوسف، او امام محمد، او حسن، او امام زفر رحمهم الله دا څلور واړه حضرات فرمائی. چه مرتهن متبرع دې. اوس به د واپس اخستلو حق نه وی. خکه چې د امانت ضمان په ده واجب شوې نه وو. بيا هم ده د هغه د حکم نه بغير ادا کړې دی. نو دې د اجنبی پشان دې. نو د واپس اخستلو حق به نه وی.

وَلَهُ او دا امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّهُ إِذَا كَانَ الرَّاهِنُ حَاضِرًا چې کله راهن موجود وی أَمْكَنَهُ مُخَاطَبَتُهُ نو ده له راهن سره مخاطبه ( او مخکی کيدل) ممکن دی فَإِذَا فَدَاهُ الْمُرْتَهِنُ نوکله چې مرتهن د هغه فديه ادا کړله فَقَدْ تَبَرَّعَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو هغه د اجنبی پشان تبرع اوکړله فَأَمَّا إِذَا كَانَ الرَّاهِنُ غَائِبًا. نو بهرحال کله چې راهن غائب وی تعذر مخاطبته نو هغه سره مخاطبت متعذر دې. وَالْمُرْتَهِنُ يَحْتَاجُ إِلَى إِصْلَاحِ الْمَضْمُونِ او مرتهن د مضمون اصلاح کاوه محتاج دې وَلَا يُمْكِنُهُ ذَلِكَ. او ده له د مضمون اصلاح کول ممکن نه ده إِلَّا بِإِصْلَاحِ الْأَمَانَةِ خو د امانت اصلاح سره فَلَا يَكُونُ مُتَبَرِّعًا، نو دې به متبرع نه وی.

تشريح:- دامام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب دليل دا دې چې کله راهن موجود دې. نو هغه د ادا کاوه مکلف جوړيدې شو. ددې باوجود ده فديه ادا کړله. نو اوس دې د اجنبی (غير) پشان شو. او د واپس اخستلو حق پاتې نشو. اوکه راهن غائب وی. نو هغه لره د ادا کاوه مکلف جوړول متعذر شو. نو اوس به مرتهن مجبور شمارلې کيږی. خکه چې د مضمون برخې ساتنه دمرتهن په ذمه وو. خود مضمون ساتنه هغه وخت کيداې شی. چې د امانت والا برخې هم اصلاح اوکړی. يعنی ددې ضمان هم ادا کړی. نو اوس به دې مجبور شمارلې کيږی. او متبرع به نه شمارلې کيږی. نو د واپسئ حق به وی. او دا د هغه وعدې ايفاء ده. کومه چې مرغينانی ددې نه وړاندې کړې وه. چه موږ به دواړه صورتونه ډير نژدې ذکر کړو.

### د راهن د مرګ نه روسته د مرتهن د قرضې او مرهون حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا مَاتَ الرَّاهِنُ او کله چې راهن مړشی بَاعَ وَصِيُّهُ الرَّهْنَ نو دده وصی دې مرهون خرڅ کړی وَقَضَى الدَّيْنَ او پور دې ادا کړی لِأَنَّ الْوَصِيَّ قَائِمٌ مَقَامَهُ خکه چې وصی د راهن قائم مقام دې وَلَوْ تَوَلَّى الْمُوصِي حَيًّا بِنَفْسِهِ او که د ژوند په حالت کي موصی (راهن) پخپله متولی وې كَانَ لَهُ وِلَايَةُ الْبَيْعِ بِإِذْنِ الْمُرْتَهِنِ نو هغه لپاره د مترهن په اجازت سره د بيع ولايت وو فَكَذَا الْوَصِيُّ نو هم دغه ډول به د هغه وصی لپاره وی

تشريح:- د راهن د مرګ نه روسته دې وصی مرهون خرڅ کړی. اود مرتهن پور دې ادا کړی. خکه چې دې د راهن نائب او دده قائم مقام دې. اوکه دا کار راهن پخپله کړې وې. نو جائز وو. خود مرتهن په اجازت سره، نو هم دغه ډول به دا ولايت دده قائم مقام (اونائب) ته هم ملاويږی.

### که د راهن څوك وصی نه وی نو د مرهون به څه کيږی؟

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَصِيٌّ وکه د راهن څوك وصی نه وی نَصَبَ الْقَاضِي لَهُ وَصِيًّا نو قاضی دې دده لپاره څوك وصی مقرر کړی وَأَمَرَهُ بِبَيْعِهِ او هغه ته دې د مرهون د خرڅولو حکم اوکړی لِأَنَّ الْقَاضِيَ نُصِبَ نَاظِرًا لِحُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ خکه چې قاضی د مسلمانانو د حقوقو نګران مقررکړې شوې دې إِذَا عَجَزُوا عَنِ النَّظَرِ لِأَنْفُسِهِمْ کله چې هغه پخپله د ساتنه کاوه نه عاجزه شی وَالنَّظَرُ فِي نَصْبِ الْوَصِيِّ. او د وصی په مقررولو کي شفقت (او مهربانی) دا ده لِيُؤَدِّيَ مَا عَلَيْهِ لِغَيْرِهِ چې وصی هغه حق ادا کړی. کوم چې په ده باندې دده د غير لپاره دې. وَيَسْتَوْفِي مَالَهُ مِنْ غَيْرِهِ او دده غير دا حق وصول کړی

حل اللغة° ① النظر: شفقت﴾

تشريح:- د قاضی کار دا دې. چه دې د مسلمانانو د حقوقو پالنه (او حفاظت) اوکړی. نو که راهن مړ شی. او داه

خوك وصي نه وي.نو قاضي دې دده ځوك وصي مقرر كړي.او دې وصي ته حكم اوكړي.چه مرهون خرڅ كړي.او پور ادا كړي.او دلته به د وصي په مقررولو كي دا فائده وي.كه د راهن مرحوم په چا باندې حق وي.نو وصي دې دا وصول كړي.اوكه په راهن مرحوم باندې د چا حق وي.نو وصي دې دا ادا كړي.

### د مړي د قرضو باوجود د وصي د څيني تركې رهن كيخودو حكم

وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ اوكه په مړي قرضه وي فَرَهَنَ الْوَصِيُّ بَعْضَ التَّرِكَةِ عِنْدَ غَرِيمٍ مِنْ غُرَمَائِهِ نو وصي د تركې بعض برخه د يو قرضخواه سره رهن كيخودله لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دى وَلِلْآخَرِينَ أَنْ يَرُدُّوهُ او نورو قرضخواهانو ته به حق وي.چه دا راواپس كړي. لِأَنَّهُ آثَرَ بَعْضَ الْغُرَمَاءِ بِالْإِيفَاءِ الْحُكْمِيِّ خكه چې وصي ايفاءِ حكمي سره په قرضخواهانو كي بعضو ته ترجيح وركړې ده فَأَشْبَهَ الْإِيثَارَ بِالْإِيفَاءِ الْحَقِيقِيِّ نو دا ايفاءِ حقيقي سره د ترجيح وركاوه مشابه شوه. فَإِنْ قَضَى دَيْنَهُمْ قَبْلَ أَنْ يَرُدُّوهُ (دوه) نوكه وصي ددې د واپس كاوه نه مخكي ددوى قرضه ادا كړله جَازَ نو جائز ده لِزَوَالِ الْمَانِعِ بِوُصُولِ حَقِّهِمْ إِلَيْهِمْ د مانع د زوال په وجه، ددوى حق دوى ته د رسيدو په وجه،

**تشريح:-** په مړي باندې پور دې.او د ډيرو خلګو پور دې.نو واړه قرضخواه به تركه كي برابر شريك وي.خو وصي بعض تركه صرف د يو قرضخواه سره رهن كيخودله.او رهن ايخودل حكماً پور خلاصول دي.او كه وصي د يو قرضخواه پور خلاص كړي.او د پاته خلاص نكړي.نو دا جائز نه دى.نو دغه ډول به حكماً خلاصول هم جائز نه وي.خكه چې دا ترجيح بلا مرجح ده.نو نورو قرضخواهانو ته به حق وي.چه هغوى دا مرهون واپس واخلي.خو كه ددې د واپس اخستلو نه مخكې وصي دده پور ادا كړو.نو اوس به رهن جائز وي.خكه چې كوم مانع وو.هغه زائل شو.او حق والا ته ددوى حق ملاو شو.

وَلَوْ لَمْ يَكُنْ لِلْمَيِّتِ غَرِيمٌ آخَرُ اوكه د مړي بل ځوك قرضخواه نه وي جَازَ الرَّهْنُ) اعْتِبَارًا بِالْإِيفَاءِ الْحَقِيقِيِّ نو رهن جائز دې په ايفاءِ حقيقي باندې قياس كاوه سره، (وَبِيعَ فِي دَيْنِهِ او مرهون به دده په پور كي خرڅولې شي لِأَنَّهُ يُبَاعُ فِيهِ قَبْلَ الرَّهْنِ خكه چې دا په پور كي د رهن نه مخكي هم خرڅولې شي فَكَذَا بَعْدَهُ نو هم دغه ډول د رهن نه روسته (هم خرڅولې شي).

**تشريح:-** او كه صرف هم دا يو قرضخواه دې.د بل چا پور په مړي باندې نشته.نو بيا مذكوره رهن جائز دې.خكه چې دلته كي حقيقتاً پوره پور خلاصول هم جائز دى.نو ايفاءِ حكمي به هم جائز وي.او دا مرهون به ددې قرضخواه په پور كي خرڅولې شي.خكه وصي ته حق وو.چه د رهن نه مخكي دا خرڅ كړي.نو دغه ډول به ده ته حق وي.چه د رهن نه روستو ئې خرڅ كړي.

### د مړي په قرضه كښې وصي لپاره د رهن اخستلو حكم

وَإِذَا ارْتَهَنَ الْوَصِيُّ بِدَيْنٍ لِلْمَيِّتِ عَلَى رَجُلٍ اوكله چې وصي په مړي د يو سړي د پور په بدله كي رهن واخستلو جَازَ نو جائز دې لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ وَهُوَ يَمْلِكُهُ خكه چې دا وصولي ده.او وصي د استيفاء مالك دې قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرغيناني رحمه الله فرماني وَفِي رَهْنِ الْوَصِيِّ تَفْصِيلَاتٌ او د وصي په رهن كي تفصيلات دى نَذْكُرُهَا فِي كِتَابِ الْوَصَايَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى چې دا به موږ انشاء الله په كتاب الوصايا كي ذكر كړو.

**تشريح:-** كه په يو سړي باندې د مړي پور وي.دهغې په بدله كي وصي رهن واخستلو.نو دا جائز دې. خكه وصي ته حق شته.چه د مړي پور وصول كړي.او رهن اخستل هم وصولول دي.حضرت مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د وصي د رهن په اړه كي بعضي تفصيلات دي.چه دا په ,,كتاب الوصايا،، كي انشاء الله راروان دي.

### كوم خيز چې د بيع محل جوړيدې شي هغه د رهن محل هم جوړيدې شي

فَصْلٌ دا فصل دې قَالَ (وَمَنْ رَهَنَ عَصِيرًا بِعَشَرَةٍ قِيمَتُهُ عَشَرَةٌ) چا چې رهن كيخودو، د انګورو شيره د لس درهمو په



بدله كي ، چې ددې قيمت لس درهمه دې فَتَخَمَّرَ نو دا شيره شراب جوړ شو ثُمَّ صَارَ خَلًّا بيا سركه جوړه شوه يُسَاوِي عَشَرَةً فَهُوَ رَهْنٌ بِعَشَرَةٍ، چې دا د لسو درهمو برابر ده.نو دا سركه به د لس درهمو په بدله كي رهن وي أَنَّ مَا يَكُونُ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ يَكُونُ مَحَلًّا لِلرَّهْنِ خكه چې كوم شئ د بيع محل جوړيدې شي.هغه د رهن محل جوړيدې شي. إِذِ الْمَحَلِّيَّةُ بِالْمَالِيَّةِ فِيهِمَا خكه چې دې دواړو( بيع او رهن) كي محليت د ماليت په اعتبار سره دې

**حل اللغة:** ① **عصير**:رس،نچوړ﴾② **تخمر**:شراب جوړ كړي﴾

**تشريح:-** په دې فصل كي مرغيناني رحمه الله د رهن متفرقې (جلا جدا) مسئلې بيانوي.زيد د خالد نه لس درهم پور واخستل.او د خالد سره ئې د انګورو شيره درهن كيخودله.چه د انګورو ددې شيرې قيمت هم لس درهمه دې. بيا د انګورو ددې شيرې نه شراب جوړ شو.او بيا پخپله ددې نه سركه جوړه شوه.او اتفاق سره ددې سركې قيمت هم لس درهمه دې.نو اوس به دا سره د لسو درهمو په بدله كي رهن شمارلې كيږي.خكه چې د انګورو شيره او سركه مبيع جوړيدې شي.او كوم شئ چې مبيع جوړيدې شي.هغه مرهون هم جوړيدې شي.په نورو الفاظو كي داسې چې كوم شئ محل د بيع جوړيدې شي.هغه شئ محل د رهن هم جوړيدې شي.خكه كه بيع وي.او كه رهن وي.د محليت تعلق ماليت سره دې.او دا دواړه شيان مال دي.

الْخَمْرُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ابْتِدَاءً او شراب اګرچه پيل كي محل د بيع نه دې وَفَهُوَ مَحَلٌّ لَهُ بَقَاءً نو دا په بقاء كي محل د بيع دې. حَتَّى أَنَّ مَنِ اشْتَرَى عَصِيرًا تردې چې كوم كس د انګورو شيره واخستله فَتَخَمَّرَ قَبْلَ الْقَبْضِ نو دا د قبضې نه مخكي شراب جوړ شو يَبْقَى الْعَقْدُ نو عقد به پاته پاتې وي إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ فِي الْبَيْعِ خو مشترى به د بيع په اړه كي اختيارمند وي لِتَغَيُّرِ وَصْفِ الْمَبِيعِ د مبيع وصف بدليدو په وجه بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا تَعَيَّبَ ددې صورت په درجه كي كله چې مبيع عيب دار شي.

**تشريح:-** دا عبارت په حقيقت كي د يوتقديرى سوال ځواب دې سوال دا دې چې هركله دا دواړه شيان مال دي.خو شراب مال نه دې.نو كله چې د انګورو د شيرې نه شراب جوړ شو.نو عقد رهن هم دلته كي فاسد كيدل پكار دي؟ نوعلامه مرغيناني رحمه الله ځواب وركوى چې دا د عقد د بقاء حالت دې.او شراب ابتداء كي محل د عقد نشى جوړيدې.خو په بقاء كي شراب محل د عقد جوړيدې شي.لكه چې يوكس دانګورو شيره واخستله.خو اوس ئې په دې باندې قبضه نه وه كړې.چه ددې نه شراب جوړ شو.نو عقد بيع به پاته پاتې وي.خو دلته به مشترى ته اختيار ملاويږي.كه غواړي.نو مبيع دې واخلي.اوكه غواړي.نو عقد دې فسخ كړي.خكه چې د مبيع په وصف كي تغير او توپير واقع شوې ده.لكه مثلاً كه د قبضې نه مخكې د بيع نه روسته مبيع كي عيب پيدا شو.نو مشترى ته اختيار شته.كه غواړي.دا (عيب دار مبيع) دې واخلي.اوكه غواړي.نو بيع دې فسخ كړي.دغه ډول حكم دلته كي هم دې.خو دلته كي خو اوس ددې نه سركه جوړه شوې ده.نو عارض زائل شوې دې.نودا به د عدم (او غيرموجود) په درجه كي شمارلې كيږي.او دا به د لسو درهمو په بدله كي رهن شمارلې كيږي.

### د پور برابر مرهون هلاكيدو حكم

وَلَوْ رَهَنَ شَاةً اوكه ده يوه وزه (چيلۍ) رهن كيخوده قِيمَتُهَا عَشَرَةٌ بِعَشَرَةٍ د لس درهمو په بدله كي چې ددې قيمت لس درهمه دې فَمَاتَتْ ، .نووزه (چيلۍ) مړه شوه فَدُبِغَ جِلْدُهَا نو ددې څرمنې له رنګ وركړې شو فَصَارَ يُسَاوِي دِرْهَمًا نو دا څرمنه د يو درهم برابر شوه فَهُوَ رَهْنٌ بِدِرْهَمٍ نو د يو درهم په بدله كي رهن شو لِأَنَّ الرَّهْنَ يَتَقَرَّرُ بِالْهَلَاكِ خكه چې رهن د هلاكت په وجه قائم ثابتيږي فَإِذَا أُحْيِيَ بَعْضُ الْمَحَلِّ نو كله چې دمحل بعض برخه موجود پاتې شوه يَعُودُ حُكْمُهُ بِقَدْرِهِ نو هم ددې په اندازه به د رهن حكم راواپس كيږي.

**تشريح:-** كه راهن د لس درهمو پور په بدله كي يوه وزه (چيلۍ) رهن كيخودله.چه ددې قيمت هم لس درهمه دې.او داوزه (چيلۍ) مرتهن سره هلاكه شوه.نو د مرتهن پور ساقطيږي.خو كه ددې وزه (چيلۍ) څرمنه اوبنكلې شوه .او

رنګ ورکړې شو.او ددې قيمت يو درهم دې.نو ګويا د محل ١١١٠ پاته دې.او ٩١١٠ هلاك شوې دې.نو په دې حساب سره به د پور ٩١١٠ هلاك وى.او ١١١٠ به پاته ګنړلې شى.او اوس به دا څرمنه د يو درهم په بدله كي رهن شمارلې كيږى.

## د قبضې نه وړاندې مبيع هلاكيدل او د بيع حكم

بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَتِ الشَّاةُ الْمَبِيعَةُ په خلاف ددې صورت كله چې مبيعه وزه (چيلۍ) مړه شى قَبْلَ الْقَبْضِ د قبضه كاوه نه وړاندې فَدُبِغَ جِلْدُهَا نو ددې څرمنې ته رنګ وركړې شو حيث لايعود البيع په دې حيثيت سره چې بيع نه راواپس كيږى لِأَنَّ الْبَيْعَ يَنْتَقِضُ بِالْهَلَاكِ قَبْلَ الْقَبْضِ ځكه چې بيع د قبضه نه وړاندې د هلاكت په وجه ماتيږى وَالْمُنْتَقِضُ لَا يَعُودُ او كوم شئ چې مات شوې وى.نو هغه نه راواپس كيږى.

حل اللغة* ① المنتقض: كمونكې ﴿

تشريح:- كه هم دا صورت په بيع كي راپيښ شو.نو كومه بيع چې ختمه شوې وه.اوس به واپس نه راځى.ځكه چې هركله د قبضې نه مخكي مبيع هلاك شو.نو بيع ختمه شوه.او هركله چې بيع ختمه شوه. نو اوس به بيع نه راواپس كيږى.

أَمَّا الرَّهْنُ يَتَقَرَّرُ بِالْهَلَاكِ بهرحال رهن د هلاكت په وجه قائم ثابتيږى عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې وَمِنْ مَشَايِخِنَا مَنْ يَمْنَعُ مَسْأَلَةَ الْبَيْعِ .او زموږ په مشائخو كي بعضې خلګ هغه دى.كوم چې د بيع د مسئلې نه منع كوى وَيَقُولُ يَعُودُ الْبَيْعُ او وائى.چه بيع راواپس كيږى

تشريح:- په رهن كي دا خبره نشته.ځكه چې رهن د مرهون په هلاكت سره نه ماتيږى.بلكه تماميږى.خو بعضو مشائخو په بيع او رهن كي څه توپير نه دې كړې.او دواړه ئې په يو حكم كي ساتلى دى.خو مشهور قول ړومبنې دې.

## د رهن زياتيدل د راهن حق دې

وَنَمَاءُ الرَّهْنِ لِلرَّاهِنِ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل.او د مرهون زياتيدل د راهن دى وَهُوَ مِثْلُ الْوَلَدِ وَالثَّمَرِ وَاللَّبَنِ وَالصُّوفِ* لكه بچې، او ميوه، او شيدې او وړئ، لِأَنَّهُ مُتَوَلِّدٌ مِنْ مِلْكِهِ وَيَكُونُ رَهْنًا مَعَ الْأَصْلِ ،ځكه چې زياتيدل د راهن د ملك نه پيدا كيږى.او زياتيدل به اصل سره رهن وى لِأَنَّهُ تَبَعٌ لَهُ، وَالرَّهْنُ حَقٌّ لَازِمٌ فَيَسْرِي إِلَيْهِ ځكه چې دا د اصل تابع دې.او رهن يو لازمى حق دې.نو دا به تابع اړخ ته سرايت كوى ( او متعدى كيږى).

حل اللغة* ① التمر:قجورې ② اللبن" شيدې ﴿

تشريح:- كه په مرهون كي د ميوې، يا شيدې ، يا وړئ، يا د بچې پيدا كيدو په وجه زياتې اوشو.نو ددې مالك به راهن وى.ځكه چې دا واړه شيان دده دملك پيداوار دې.خو ددې د اصل سره به مرهون جوړولې شى.او ايخودلې به شى.ځكه چې دا يو داسې متاكد( او مضبوط) حق دې.چه لازم دې.نو كه راهن دا فسخ كول اوغواړى.نو نشى كولې.او كوم چې داسې لازمى حق وى.هغه د مرهون توابع اړخ ته هم سرايت كوى ( او متعدى كيږى).نو دا توابع اګرچه مرهون به وى.خو مضمون به نه وى.

فَإِنْ هَلَكَ نوكه ( نماء او زياتى شوې) هلاك شى يَهْلِكُ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو د څه شئ ( بدل) نه بغير به هلاك وى لِأَنَّ الْأَتْبَاعَ لَا قِسْطَ لَهَا ځكه چې اتباع، ( كوم چې تابع وى) ددې لپاره هيڅ برخه نه وى مِمَّا يُقَابَلُ بِالْأَصْلِ د هغه پور څني كوم چې د اصل مقابل ده. لِأَنَّهَا لَمْ تَدْخُلْ تَحْتَ الْعَقْدِ مَقْصُودًا ځكه چې اتباع د عقد لاندې داسې نه دې داخل شوې.چه مقصود وى إِذِ اللَّفْظُ لَا يَتَنَاوَلُهَا په دې وجه به لفظ د عقد اتباع ( كوم چې زياتى شوى وى) ته نه شامليږى.

تشريح:- نوكه مرتهن سره توابع هلاك شى.نو نه به په ده باندې ضمان واجب وى.او نه به دده پور ساقطيږى.ځكه



چې پور په حقيقت كي داصل مقابل دې.د توابع په مقابله كي د پور هيڅ برخه نشته.ځكه چې لفظ د عقد دې ته ګړ نه وو.نو دا د عقد لاندې داخليدل، قصداً نه دى.بلكه ضمنى طور باندې دى.

## كوم څيز چې تابع وى د هغې په هلاكيدو د ثمن حكم

وَإِنْ هَلَكَ الْأَصْلُ اوكه اصل هلاك شى. وَبَقِيَ النَّمَاءُ او زياتى شوې پاته پاتې شى افْتَكَّهُ الرَّاهِنُ بِحِصَّتِهِ نو راهن به دا( زياتى شوې) دده د برخې په بدله كي لنډيز وى يُقَسَّمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الرَّهْنِ يَوْمَ الْقَبْضِ وَقِيمَةِ النَّمَاءِ يَوْمَ الْفِكَاكِ،( يعنى) پور دې د مرهون د قبضې د ورځې په قيمت او د زياتى شوى د خلاصولو د ورځ والا په قيمت باندې ويش كړې شى لِأَنَّ الرَّهْنَ يَصِيرُ مَضْمُونًا بِالْقَبْضِ ځكه چې رهن د قبضې په وجه مضمون كيږى وَالزِّيَادَةُ تَصِيرُ مَقْصُودَةً بِالْفِكَاكِ او زياتى شوې د خلاصولو په وجه مقصود كيږى إِذَا بَقِيَ إِلَى وَقْتِهِ كله چې د خلاصولو وخته پورې پاته پاتې شى وَالتَّبَعُ يُقَابِلُهُ شَيْءٌ إِذَا صَارَ مَقْصُودًا او تابع چې كله مقصود كيږى.نو ددې په مقابله كي د مال برخه راځى

تشريح:- د متن د تسهيل نه وړاندې په دې خبره خان پوهه كړه چې كوم شئ چې تابع وى.تركومه پورې چې دا صرف تابع وى.ددې په مقابله كي ثمن نه راځى.مثلاً يوكس يوه ګاميښه (ميخه) واخستله.چه دا شيدې وركوى.اوسه پورې مشترى قبضه نه وه كړې.چه ددې بچې مړ شو.نو د ثمن څخه به هيڅ نه كميږى.ځكه چې مړشوې صرف تابع دې.چه ددې په مقابله كي ثمن نه وى.خو كه تابع مقصود جوړ شى.نو اوس به ددې په مقابله كي ثمن راځى.مثلاً هم په دې ذكرشوى مثال كي د قبض نه وړاندې ګاميښه (ميخه) مړه شوه.او بچې پاته پاتې ( يعنى ژوندې) دې.چه دا مشترى اخستل غواړى.نو ددې په برخه كي چې څومره ثمن راځى.چه دا ثمن ادا كړى.نو بچې اخستلې شى.ځكه چې اوس قبض كاوه سره مقصود جوړ شوې دې.

ددې تفصيل نه روسته پوهه شئ.چه په ړومبۍ مسئلې كي نماء ( زياتى شوې) هلاك شوې وو.دلته ددې په عكس دې.يعنى نماء ( زياتى شوې) پاته پاتې دې.او اصل هلاك شوې دې.نو چونكه اوس نماء كوم چې تابع دې.مقصود جوړ شو.ځكه چې راهن په دې باندې د قبضه كاوه قصد كوى.نو ددې په مقابله كي به مال وى.

كَوَلَدِ الْمَبِيعِ لكه د مبيع بچې، فَمَا أَصَابَ الْأَصْلَ يَسْقُطُ مِنَ الدَّيْنِ نو د پور كوم مقدار چې اصل ته اورسيږى.هغه به ساقطيږى لِأَنَّهُ يُقَابِلُهُ الْأَصْلُ مَقْصُودًا ځكه چې د پور دا مقدار د اصل په مقابله كي مقصود جوړ شوې دې وَمَا أَصَابَ النَّمَاءَ او كوم مقدار چې زياتى شوى ته اورسيږى افْتَكَّهُ الرَّاهِنُ لِمَا ذَكَرْنَا نو لنډيز وى به راهن ( په دې سره) زياتى شوې، د هغه دليل په وجه كوم چې موږ ذكر كړې دې.

تشريح:- ددې صورت دا دې.① چې شاكر د احمد سره د نهه سوه روپو د پور په بدله كي يوه ګاميښه (ميخه) رهن كيخوده.هغې بچې راوړو.د ميخې قيمت زر روپۍ دې.او اوس د بچې قيمت پنځه سوه روپۍ دې.نو د اصل قيمت د تابع د قيمت دوچند دې.اوس ګاميښه (ميخه) هلاكه شوه.او بچې پاته دې.راهن بچې خلاصول غواړى.نو ددې طريقه به دا وى.چه د دواړو په قيمت كي دې تناسب اوګورى.يعنى په زرو او پنځو سوو كي دې تناسب اوګورى.كله ئې چې اوكتل.نو معلومه شوه.چه زر د پنځو سوو دوچند دې.نو په دې حساب سره د پور نه هغه مقدار كوم چې د ميخې قيمت جوړيږى.هغه دې اوښكلې شى.يعنى دومره پور ساقط شو.او كوم مقدار چې د بچې په برخه كي راشى.هغه دې راهن مرتهن ته وركړى.او بچې دې د مرتهن نه راخلاص كړى.نو په ذكر شوى صورت كي به د پور درې برخې كولې شى.چه په دې كي به شپږ سوه د ميخې مقابل وى.او درې سوه به د بچې مقابل وى.نو شپږ سوه د ميخې د هلاكت په وجه ساقط شوې.او درې سوه پاته دى.چه دا د بچې مقابل دى.نو راهن دې درې سوه روپۍ وركړى.او بچې دې راخلاص كړى.

## يوه ضرورى قاعده كليه

وَصُوَرُ الْمَسَائِلِ عَلَى هَذَا الْأَصْلِ تُخَرَّجُ او په دې قاعده كليه باندې د ډيرو مسئلو صورتونه راوښكلې كيږى. وَقَدْ ذَكَرْنَا بَعْضَهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى او د هغې نه بعض موږ په كفاية المنتهى كي ذكر كړى دى وَتَمَامُهُ فِي الْجَامِعِ

وَالزِّيَادَاتِ او ددې پوره بحث په جامع صغیر او زیادات کې دې

تشريح:- دا داسې قاعده کلیه ده.چه په دې باندې ډیر جزئیات متفرع کیږي.چه ددې تفصیلی بحث په جامع کبیر او زیادات کې دې.د هغې نه بعض جزئیات موږ په کفایة المنتهی کې ذکرکړی دی.

**د راهن، مرتهن ته د مرهون استعمالولو اجازت ورکول.او د ضمان حکم**

وَلَوْرَهَنَ شَاةً اوکه یو کس یوه وزه (چیلۍ) رهن کیخوده بِعَشَرَةٍ وَقِيمَتُهَا عَشَرَةٌ په لس درهمو کې ، او ددې قیمت لس درهمه دي وَقَالَ الرَّاهِنُ لِلْمُرْتَهِنِ احْلِبْ الشَّاةَ او راهن مرتهن ته اوونیل.چه ته د وزه (چیلۍ) شیدې لوشه فَمَا حَلَبْتَ فَهُوَلَكَ حَلَالٌ نو کوم چې ته لوشې هغه ستا لپاره حلال دی. فَحَلَبَ وَشَرِبَ نو مرتهن اولوشل.او وې ښبل فَلَاضَمَانَ عَلَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ نو په ده باندې هیڅ ضمان نشته أَمَّا الْإِبَاحَةُ فَيَصِحُّ تَعْلِيقُهَا بِالشَّرْطِ وَالْخَطَرِ بهرحال اباحت، نو دا په شرط اوخطرپورې معلق کول صحیح دی لِأَنَّهَا إِطْلَاقٌ خکه چې اباحت خو اطلاق ( جائز کول) دی وَلَيْسَ بِتَمْلِيكٍ او دا تملیك نه دې فَتَصِحُّ مَعَ الْخَطَرِ وَلَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ نو اباحت شرط سره جائز دې.اوهیڅ پور به نه ساقطیږی لِأَنَّهَا تَلِفَتْ بِإِذْنِ الْمَالِكِ خکه چې دا مرتهن د مالك په اجازت سره هلاك کړی دی.

حل اللغة: ① احلب:اولوشی ② الخطر:خطر،

حل اللغة: خطر، په قاموس او لویدیځ کې دی.د خطر معنی ده،، هلاکت ته نژدې کیدل،، خو دلته کې ددې نه مراد دا دې.کوم چې د وجود او عدم وجود احتمال لری.یعنی دا د شرط په معنی کې دې.

تشريح:- زید د لس روپو پور په بدله کې خالد سره خپله وزه (چیلۍ) رهن کیخوده.چه ددې قیمت لس روپۍ دې.او زید خالد ته ددې د پیو لوشلو او ښبلو اجازت ورکړو.نو که خالد شیدې اولوشل.او وې څکل.نو په ده به هیڅ ضمان نه وی.او ددې په وجه به د پور نه هیڅ نه ساقطیږی.خکه چې خالد څه کړی دی.هغه ئې د مالك (زید) په اجازت سره کړی دی.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې دا اجازت خو صحیح نشو.چه زید وئیلی دی.،فما حلبت فهو لك حلال....،،او دلته د ماشرط معنی ته متضمن دې.خکه خو ددې په خبر باندې فاء داخلیږی.نو دا تعلیق شو.او تملیك په یو شرط باندې معلق کول باطل دی؟ نوموږ خواب ورکوو چې تملیك په شرط باندې معلق کول باطل دی.خو دا تملیك نه دې.بلکه دا خو اباحت او اطلاق دې.او اباحت په شرط باندې معلق کول صحیح دی.

**که مرتهن سره وزه (چیلۍ) هلاکه شوه.نو دا به سره ددې د پیو په پور کښې حسابیږی**

(فَإِنْ لَمْ يُجِزْ الشَّاةَ نوکه راهن وزه (چیلۍ) لنډیز نکړله. حَتَّى مَاتَتْ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ تردې چې دا د مرتهن په قبضه کې مړه شوه قُسِمَ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ اللَّبَنِ الَّذِي شَرِبَ نو پور به ددې د پیو په قیمت باندې کوم چې ده څکلی دی. وَعَلَى قِيمَةِ الشَّاةِ او د وزه (چیلۍ) په قیمت باندې تقسیمولې شی فَمَا أَصَابَ الشَّاةَ سَقَطَ نو د پور کوم مقدار چې د وزه (چیلۍ) په برخه کې راشی.نو هغه به ساقطیږی وَمَا أَصَابَ اللَّبَنَ أَخَذَهُ الْمُرْتَهِنُ مِنَ الرَّاهِنِ او کوم چې د پیو په برخه کې راشی.هغه به مرتهن د راهن نه اخلی.

تشريح:- که راهن دا وزه (چیلۍ) اوس لا نه وه لنډیز کړې.د کومې شیدې چې مرتهن څکلی دی.او دا مړه شوه.نو که د پیو والا مسئله نه وه.نو ددې په مرګ سره به د مرتهن پوره قرضه ساقطیدله.خو اوس به د پیو حساب هم کیږی.او حساب به د ړومبۍ مسئلې پشان وی.مثلاً د وزه (چیلۍ) قیمت لس روپۍ دې.او پور هم لس روپۍ دې.او تر اوسه پورې د پیو قیمت هم مثلاً لس روپۍ شو.او وزه (چیلۍ) مړه شوه.نو د مرتهن د پور څخه به پنځه روپۍ ساقطیږی.او پنځه روپۍ به پاته وی.چه دا به مرتهن د راهن نه وصول کوی.

لِأَنَّ اللَّبَنَ تَلِفَ عَلَى مِلْكِ الرَّاهِنِ بِفِعْلِ الْمُرْتَهِنِ خکه چې شیدې د راهن په ملك باندې هلاك شوې دی.د مرتهن په



فعل سره وَالْفِعْلُ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ قِبَلِهِ او دا فعل د مرتهن د راهن د اړخه د مسلط ( مقرر) کاوه په وجه حاصل شوې دې فَصَارَ كَأَنَّ الرَّاهِنَ أَخَذَهُ نو داسې شوه.ګویا چې راهن دا اخستې دې وَأَتْلَفَهُ او هلاك کړې ئې دې وَكَانَ مَضْمُونًا عَلَيْهِ نو دا به په راهن باندې مضمون وی فَيَكُونُ لَهُ حِصَّتُهُ مِنَ الدَّيْنِ نو مرتهن لپاره به د پیو برخه وی.د پور نه، فَيَبْقَى بِحِصَّتِهِ نو پور به د پیو د برخې په اندازه پاته پاتې وی.

حل اللغة: ① تسليط:مسلط کول ② اتلف: هلاك کړو،

تشريح:- خکه چې مرتهن کوم شیدې څکلی دی.د راهن د مسلط کاوه په وجه ئې څکلی دی.نو به داسې ګنړو.ګویا راهن پخپله دا شیدې اخستې دی.او څکلی ئې دی.یا ئې هلاك کړی دی.نو دا شیدې په راهن باندې مضمون وی.دغه ډول به دا هم مضمون وی.نو د پور نه چې کوم رقم د پیو په برخه کې راځی.دومره پور به د راهن په ذمه وی.بیا لکه څنګه چې په ذکر شوی مثال کې د پیو مسئله ده.

وَكَذٰلِكَ وَلَدُ الشَّاةِ إِذَا أَذِنَ لَهُ الرَّاهِنُ فِي أَكْلِهِ او هم دغه ډول د وزه (چیلۍ) بچې کله چې راهن ددې دخوړلو اجازت ورکړې وی وَكَذٰلِكَ جَمِيعُ النَّمَاءِ الَّذِي يَحْدُثُ عَلَى هٰذَا الْقِيَاسِ .او دغه ډول هغه واړه زیاتی شوی به په دې قیاس دی

تشريح:- دغه ډول که راهن مرتهن ته اجازت ورکړې وی.چه د وزه (چیلۍ) بچې اوخوره.او مرتهن دا ذبح کړو.او وې خوړلو.او اوس وزه (چیلۍ) مړه شوه.نو اوس به هم دغه حکم وی.کوم چې ذکر شو.او لنډیز د کلام دا ده.چه په مرهون کې کوم زیاتوالې اوشی.د هغې به هم دا حکم وی.

**په رهن او پور کښې د زیادت حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَتَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ او په رهن کې زیادت جائز دې وَلَا تَجُوزُ فِي الدَّيْنِ او په پور کې جائز نه دې عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ[1]) د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیز وَلَا يَصِيرُ الرَّهْنُ رَهْنًا بِهَا او مرهون به د زیاتوالی په بدله کې رهن نه وی

تشريح:- یوه وزه (چیلۍ) ئې رهن ایخودې وه.په لس روپۍ کې ، راهن یوه وزه (چیلۍ) بله هم ورکړله.چه دا دواړه رهن کیږده.نو دا جائز دی.دا په مرهون کې زیاتوالې دې.او که مرتهن ددې وزه (چیلۍ) په عوض لس روپۍ نورې هم ورکړلې.چه ددې شلو روپو په بدله کې دا وزه (چیلۍ) رهن دې.نو دا جائز نه دی.دا د طرفینو رحمهما الله مذهب دې.چه مرهون کې زیادت جائز دې.او پور کې جائز نه دې.امام ابویوسف رحمه الله په پور کې هم زیادت جائز ګرځوی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ تَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الدَّيْنِ أَيْضًا او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په پور کې هم زیاتوالې جائز دې. وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ لَا تَجُوزُ فِيهِمَا او امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائی.چه دې دواړو کې زیاتوالې جائزنه دې وَالْخِلَافُ مَعَهُمَا فِي الرَّهْنِ او دوی دواړو سره اختلاف برابر دې.د رهن په زیاتوالی کې ، الثَّمَنُ وَالْمُثَمَّنُ وَالْمَهْرُ وَالْمَنْكُوحَةُ سَوَاءٌ او ثمن کې ، او مبیع کې ، او مهر کې ، او منکوحه کې ، وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او موږ دا په کتاب البیوع کې ذکر کړی دی.

تشريح:- اوامام زفر او امام شافعی رحمهما الله په رهن او پور دواړو کې زیادت ناجائز ګرځوی.حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د امام شافعی او امام زفر رحمهما الله ذکر شوې اختلاف په پنځو څیزونو کې دې.① د مرهون زیادت زموږ په نیز جائز دې.او ددوی په نیز جائز نه دې.② په بیع کې د ثمن زیادت زموږ په نیز جائز دې.ددوی په نیز جائز نه دې. ③ په بیع کې د مبیع زیادت زموږ په نیز جائز دې.ددوی په نیز جائز نه دې.④ په نکاح کې د مهر زیادت زموږ په نیز جائز دې.ددوی په نیز جائز نه دې.⑤ په نکاح کې د منکوحې زیادت زموږ په نیز جائز دې.ددوی په نیز جائز نه دې.ددې صورت دا دې.چه مولا د خپلې وینځې نکاح د یو سړی سره اوکړله.په زر روپۍ

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين. رحمهما الله كذا فى ملقى الأبحر (٣٥٠١٤) وردالمحتار (٣٧٢١٥.٣٧٣)-

مهر کي ، بيا په دې مهر کي مولا د خپلې دويمې وينځې نکاح هم دده سره اوکړله. او ميرمن قبوله کړله.نو دا جائز دی.او اوس به مهر په دواړو باندې تقسيميږی.ددې نه روسته مرغينانی رحمه الله فرمائی. چې موږ په کتاب البيوع کي دا بيان ذکرکړی دې.

> وَلِأَبِي يُوسُفَ فِي الْخِلَافِيَّةِ الْأُخْرَى او په دويمه اختلافی مسئله کي د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې الدَّيْنُ فِي بَابِ الرَّهْنِ كَالثَّمَنِ فِي الْبَيْعِ چې په باب د رهن کي قرض، په بيع کي د ثمن پشان دې وَالرَّهْنُ كَالْمُثَمَّنِ او رهن د مثمن پشان دې فَتَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِيهِمَا نو په دې دواړو کي به زيادت جائز وی كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څنګه چې بيع کي ( جائز دې) وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا الِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ لِلْحَاجَةِ وَالْإِمْكَانِ او په دوی دواړو کي علت جامعه اصل عقد سره متعلق کيدل دی.د حاجت او امکان په وجه.

**تشريح:-** دا د امام ابويوسف رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه دوی مرهون او پور په ثمن او مبيع باندې قياس کړې دې.او وئيلې ئې دی.چه په باب د رهن کي پور د بيع د ثمن پشان دې.او مرهون د مبيع پشان دې.او ددې دواړو زيادت د طرفينو رحمهما الله په نيز هم جائز دې.نو دلته د رهن او پور هم زيادت کيدل پکار دې.د دواړو په منځ کي علت جامعه دا دې.چه دا دواړه زياتوالې به اصل عقد سره متعلق کولې شی.لکه په بيع کي د ثمن او مبيع زياتوالې اصل عقد سره متعلق کولې شی.لکه څنګه چې هلته کي اړتيا دې.دغه ډول دلته کي هم اړتيا دې.چه نوره مضبوطی هم حاصله شی.او لکه څنګه چې هلته کي امکان دې.دلته هم امکان دې.يعنی په پيل د رهن کي دا جائز ده.چه د مرهون قيمت د پور برابر يا کم يا زيات وی.نو که د مولښتی کاوه نه روسته هم دا حالت راشی.نو په دې کي هيڅ باك نشته.بهرحال دلته کي حاجت او امکان شته.

> وَلَهُمَا وَهُوَ الْقِيَاسُ او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې او هم دا قياس دې الزِّيَادَةُ فِي الدَّيْنِ تُوجِبُ الشُّيُوعَ فِي الرَّهْنِ چې د پور زيادت په رهن کي شيوع واجبه وی وَهُوَ غَيْرُ مَشْرُوعٍ عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز مشروع نه دې وَالزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ تُوجِبُ الشُّيُوعَ فِي الدَّيْنِ او په مرهون کي زيادت شيوع واجبه وی وَهُوَ غَيْرُ مَانِعٍ مِنْ صِحَّةِ الرَّهْنِ او دا شيوع د رهن د صحت نه مانع نه دې أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ رَهَنَ عَبْدًا بِخَمْسِمِائَةٍ مِنَ الدَّيْنِ آيا تاسو نه ګورئ.که راهن غلام د پور د پنځو سوو په بدله کي رهن کيخودو جاز نو جائز دې. وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ أَلْفًا وَهَذَا شُيُوعٌ فِي الدَّيْنِ اګرچه پور زر روپۍ وی.او دا په پور کي شيوع دې.

**حل اللغة:** ① **شيوع:** خور وور ،ناقابل تقسيم

**تشريح:-** دا د حضرات طرفينو رحمهما الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه وړاندې تير شوی دی.چه مرهون کي شيوع جائز نه دې.اوکه شيوع په پور کي راشی.نو دا مضر نه دې.او په مرهون کي د زيادت په وجه پور کي شيوع کيږی.چه دا جائز دې.او په پور کي د زيادت په وجه مرهون کي شيوع راځی.چه دا جائز نه دې.په دې وجه موږ اووئيل.چه د مرهون زيادت جائز دې.او د پور زيادت جائز نه دې.

پاتې شوه دا خبره چې په پور کي زيادت سره مرهون کي شيوع څنګه لازميږی؟ نو ددې وضاحت دا دې چې کله چې غلام په لس روپۍ کي رهن وو.او بيا مرتهن د لسو روپو زيادت نور هم اوکړو.نو د غلام نصف غير معين نصه، د ړومبی لسو روپو بدل جوړ شو.او نصف غير معين د نورو لسو روپو بدل اوګرځيدو. نو په غلام کي شيوع بيدا شوه.او که يوې وزه (چيلۍ) سره يوه بله وزه (چيلۍ) هم رهن کيږدی.نو په لسو کي مثلاً د پنځو بدل ړومبۍ وزه (چيلۍ) شوه.او د پاتې پنځو بدل دويمه وزه (چيلۍ) شوه.نو دلته په مرهون کي شيوع نشته.خو په پور کي شيوع شوه.او د پور شيوع مضر نه دې.بيا دا په يو مثال سره واضح کوی.چه زيد زر روپۍ د خالد نه واخستلې.او يو غلام ئې د پنځو سوو روپو په بدل کي رهن کيخودو.نو دا جائز دې.حالانکه پور کي شيوع دې.خود پور شيوع مضر نه دې.په دې وجه دا جائز دې.

> الِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ غَيْرُ مُمْكِنٍ فِي طَرَفِ الدَّيْنِ او اصل عقد سره مولښتی کول ممکن نه دی.د پور په اړخ کي ،



> لِأَنَّهُ غَيْرُ مَعْقُودٍ عَلَيْهِ وَلَا مَعْقُودٍ بِهِ ځکه چې دا نه معقود عليه دې.اونه معقود به دې وُجُوبُهُ سَابِقٌ عَلَى الرَّهْنِ بلکه د پور وجوب په رهن باندې مقدم دې.

**حل اللغة:** ① **الالتحاق:** ملحق کول ② **انفساخ:** فسخ کول

**تشريح:-** دا د طرفينو رحمهما الله د اړخه په امام ابويوسف رحمه الله باندې زبردست اعتراض دې.ددې حاصل دا دی.چه محترم ستاسومذکوره قياس صحيح نه دې.او په باب د رهن کي د پور زيادت اصل عقد سره نشی مولښتی کيدې.ځکه چې اصل عقد سره مولښتی کيدل د معقود عليه يا معقود به کيداې شی.او پور نه معقود عليه دې. او نه معقود به دې.او په باب د بيع کي د ثمن زيادت اصل عقد سره ځکه مولښتی کيداې شی.چه ثمن معقود دې.او معقود عليه يعنی مبيع، او معقود به يعنی ثمن او پور ددې دواړو نه هيڅ هم نه دی.ځکه که پور معقود به وې.نو د عقد رهن په وجه پور واجبيږی.حالانکه پور د عقد رهن نه بغير واجبيږی.او د پور وجوب مخکي اوشو.او عقد رهن روستو وی.جائز دې.

> وَكَذَا يَبْقَى بَعْدَ انْفِسَاخِهِ اوهم دغه ډول د عقد رهن د فسخ کيدو نه روسته به پاتې پاتې وی وَالِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ فِي بَدَلَيِ الْعَقْدِ او اصل عقد سره مولښتی کول، د عقد دواړو بدلونو کي کيږی بِخِلَافِ الْبَيْعِ بر خلاف د بيع، لِأَنَّ الثَّمَنَ بَدَلٌ يَجِبُ بِالْعَقْدِ ځکه ثمن داسې بدل دې.چه دا د عقد په وجه واجبيږی.

**تشريح:-** دغه ډول که په څه وجه عقد رهن فسخ شی.نو پور اوس هم پاتې پاتې کيږی.معلومه شوه.چه دا معقود به نه دې.البته د ثمن وجوب د عقد بيع په وجه کيږی.اوکه بيع فسخ شی.نو د ثمن وجوب هم ختميږی.نو ستاسو قياس د سره صحيح نشو.

## په رهن کښې د زيادت حکم

> ثُمَّ إِذَا صَحَّتِ الزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ بيا کله چې مرهون کي زيادت صحيح شو وَتُسَمَّى هَذِهِ زِيَادَةً قَصْدِيَّةً او ددې زيادت نوم قصدی زيادت ايخودې شی يُقْسَمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الْأَوَّلِ يَوْمَ الْقَبْضِ نو پور به تقسيمولې شی.د قبضې د ورځې په ړومبی قيمت باندې، وَعَلَى قِيمَةِ الزِّيَادَةِ يَوْمَ قُبِضَتْ او د قبضې د ورځې په زياتی قيمت باندې

**تشريح:-** د اصل د هلاکت په صورت کي چې کومه مسئله تيره شوې ده.دا مسئله هم بالکل د هغې پشان ده. بس دومره توپير دې.چه هلته د بچی قيمت د خلاصولو د ورځې معتبر وو.اودلته به د زيادت هغه قيمت معتبر وی.کوم چې د قبضې په ورځ ددې قيمت وو.اګرچه هغه هم زيادت وو.او دا هم زيادت دې.خو دواړو کي توپير دې.هغه زيادت غير ارادی دې.او دا زيادت ارادی او قصدی دې.په دې وجه دواړو کي توپير کړې شوې دې.او اصل او دا زيادت د قبضې په وجه مضمون وی.نو دواړو کي به د قبضې د ورځې قيمت معتبر وی.او غير ارادی زيادت د خلاصولو په وجه مقصود جوړيږی.نو په دې کي به د خلاصولو د ورځې قيمت معتبر وی.

> حَتَّى لَوْ كَانَتْ قِيمَةُ الزِّيَادَةِ يَوْمَ قَبْضِهَا خَمْسَمِائَةٍ تردې که د زياتی قيمت په دې باندې د قبضې په ورځ پنځه سوه روپۍ وی وَقِيمَةُ الْأَوَّلِ يَوْمَ الْقَبْضِ أَلْفًا او د ړومبی قيمت د قبضې په ورځ زر روپۍ وی وَالدَّيْنُ أَلْفًا او پور زر روپۍ وی يُقْسَمُ الدَّيْنُ أَثْلَاثًا فِي الزِّيَادَةِ ثُلُثُ الدَّيْنِ نو پور به په دريو برخو باندې تقسيمولې شی.په زيادت کي د پور دريمه، وَفِي الْأَصْلِ ثُلُثَا الدَّيْنِ او اصل کي د پور دوې (دوه) ( دريمې) برخې اعْتِبَارًا بِقِيمَتِهِمَا ددې دواړو د قيمت اعتبار کاوه سره، فِي وَقْتَيِ الِاعْتِبَارِ په اعتبار د دواړو وختونو کي لِأَنَّ الضَّمَانَ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ ،او دا ځکه چې ضمان دوی دواړو کي هر يو کي د قبضې په وجه ثابتيږی فَتُعْتَبَرُ قِيمَةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَقْتَ الْقَبْضِ نو په دوی دواړو کي به د هر يو قيمت د قبضې د وخت معتبر وی

**تشريح:-** ددې وضاحت د دې مثال نه کيږی که زيد زر روپۍ د خالد نه پور واخستلې.او يو غلام ئې رهن کيخودو.چه دده قيمت زر روپۍ دې.بيا ئې يو غلام بل هم رهن کيخودو.هم ددې زرو روپو په بدله کي ، نو دا جائز

دی.نو د ذکرشوی تفصیل مطابق ۶۶۶ د رومبی په برخه کي راغلي.او ۳۳۳ روپیٔ د زیادت په برخه کي راغلي.اوس که رومبۍ هلاك شی.نو د هغه برخه به وی.او که دوهم هلاك شی.نو دده دحصې پور به ساقطیږی.

**بې ارادې زیادت کښې د خلاصولو د ورځې قیمت معتبر دی**

وَإِذَا وَلَدَتِ الْمَرْهُونَةُ وَلَدًا او کله چې مرهونه (وینځې) بچې راوړو ثُمَّ إِنَّ الرَّاهِنَ زَادَ مَعَ الْوَلَدِ عَبْدًا بیا راهن د بچی سره یو غلام زیاتی کړو وَقِيمَةُ كُلِّ وَاحِدٍ او د هر یو قیمت زر روپیٔ دي أَلْفٌ فَالْعَبْدُ رَهْنٌ مَعَ الْوَلَدِ خَاصَّةً نو غلام به خاص طور باندې بچی سره رهن وی يُقْسَمُ مَا فِي الْوَلَدِ عَلَيْهِ وَعَلَى الْعَبْدِ الزِّيَادَةِ د پور هغه مقدار کوم چې د بچی په برخه کي دې.په بچی باندې، او زیاتی به په غلام باندې تقسیمولې شی لِأَنَّهُ جَعَلَهُ زِيَادَةً مَعَ الْوَلَدِ دُونَ الْأُمِّ ځکه چې راهن غلام د بچی سره زیاتی کړي دي. مور سره ئې نه دي (زیاتی) کړي

تشریح:- وړاندې تیر شوی دی.چه غیر ارادی زیاتوالي (په بچی کي) دده د مقصود کیدو په وجه د خلاصولو په ورځ قیمت معتبر وی.اوس واوریٔ.زید د خالد نه زر روپیٔ پور واخستلې.او خپله یوه وینځه ئې رهن کیخوده.چه د هغې قیمت زر روپیٔ دې.نو جائز دې.بیا ددې وینځې مرتهن سره بچې پیدا شو.او اتفاق سره ددې د بچی قیمت هم زر روپیٔ دې.نو دا هم مرهون شو.زید په مرهون کي د زیادت په طریقه یو غلام بل هم ورکړو.او دده قیمت هم زر روپیٔ دې.خو زید ددې غلام زیادت خصوصاً بچی سره کړې دې.یعنی داسې ئې اوونیل،،زدتك هذا العبد مع الولد رهناً،،نو په ذکر شوی صورت کي به دا زیاتی غلام بچی سره رهن وی.او زر روپیٔ پور کوم چې په مور او بچی باندې د قیمت برابرکیدو په وجه نیم په نیمه شو.اوس د بچی والا نیمه بیا نیم په نیمه شو.او په غلام کي چونکه ددوی قیمت هم برابر دې.نو اوس مطلب دا شو.چه په پور کي د پنځو سوو روپو عوض وینځه ده.او د۲۵۰ عوض بچې دې.او د۲۵۰ عوض غلام دې.خو کله چې راهن د غلام زیادت اوکړو.نو بچې مړ شو.نو چونکه دا اوس مضمون نه دې جوړ شوې.په دې وجه به دا دځه ضمان نه بغیر هلاك وی.یعنی ګویا چې د سره وو هم نه.او چونکه غلام دده تابع دې.او متبوع د رهن نه خارج شوې دې.نوتابع یعنی زیاتی غلام به هم د رهن نه خارجیږی.او اوس د زیادت حکم باطل شو.ځکه چې دا په حکم کي د بچی تابع دې.نو اوس به د پوره پور بدل وینځه وی.دلته خاص طور باندې هم دا خبره خودل مقصود وو.پاته خبره مور د آسانتیا په غرض سره ذکرکړې ده.

وَلَوْ كَانَتِ الزِّيَادَةُ مَعَ الْأُمِّ او که مور سره ئې زیاتی کړې وی يُقْسَمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الْأُمِّ يَوْمَ الْعَقْدِ وَعَلَى قِيمَةِ الزِّيَادَةِ يَوْمَ الْقَبْضِ نو پور به د عقد په ورځ د مور په قیمت باندې او د قبضې په ورځ د زیاتی په قیمت باندې تقسیمولې شی. فَمَا أَصَابَ الْأُمَّ قُسِمَ عَلَيْهَا وَعَلَى وَلَدِهَا، نو کوم مقدار چې د مور په برخه کي راځی.هغه به په مور او ددې په بچی باندې تقسیمولې شی لِأَنَّ الزِّيَادَةَ دَخَلَتْ عَلَى الْأُمِّ ځکه چې زیاتوالي په مور داخل شوې دې

تشریح:- په دې عبارت کي ددې بیان کوی که راهن د غلام زیادت خاص طور باندې مور سره کړې دې.نو اوس به طریقه بل شان وی.چه پوره پور به په مور او غلام په تیره شوې طریقه تقسیمیږی.بیا به د مور برخه د تیرشوی تفصیل مطابق، په مور او بچی باندې تقسیمیږی.یعنی بچې به د مور په برخه کي داخلیږی.اوکه د زیادت نه روسته مور مړه شی.نو د مور په برخه کي چې کوم څه راغلی وو.په دغه اندازه پور به ساقط وی.او د غلام او بچی په برخه کي چې کوم راغلې وو.په اندازه پور به د مرتهن په راهن باندې پاته پاتې وی.ځکه چې د مور د هلاکیدو په وجه دده د برخې ضمان په مرتهن باندې راغلې دې.نو د زیادت (د غلام) حکم به باطل نه وی.په خلاف د رومبی صورت، چې هغې کي غلام د بچی تابع وو.او که دې صورت کي د زیادت نه روسته بچې مړشی.نو مفت به مړ وی.او پوره پور به د مور او غلام بدل وی.ګویا چې د بچی نه بغیر راهن د غلام زیادت کړې دې.

**د یو غلام په ځائې د بل غلام ایخودو مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله جامع صغیر کي فرمائیلی دی (فَإِنْ رَهَنَ عَبْدًا يُسَاوِي أَلْفًا بِأَلْفٍ) نو که رهن ئې



کیخودو.داسې غلام کوم چې د زر (روپو) برابر دې.د زر(روپو) په بدله کي، ثُمَّ أَعْطَاهُ عَبْدًا آخَرَ قِيمَتُهُ أَلْفٌ رَهْنًا مَكَانَ الْأَوَّلِ بیا راهن مرتهن ته دوهم غلام ورکړو.د رهن په طور، چې دده قیمت زر روپیٔ دې.د رومبی په ځائې، فَالْأَوَّلُ رَهْنٌ حَتَّى يَرُدَّهُ إِلَى الرَّاهِنِ نو رومبې به رهن وی.تردې چې مرتهن دا راهن ته واپس کړی وَالْمُرْتَهِنُ فِي الْآخَرِ أَمِينٌ حَتَّى يَجْعَلَهُ مَكَانَ الْأَوَّلِ او مرتهن د دوهم غلام په بدله کي امین دې.تردې چې دا د رومبی په ځائې کړی لِأَنَّ الْأَوَّلَ إِنَّمَا دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ بِالْقَبْضِ وَالدَّيْنِ ځکه چې رومبې غلام د مرتهن په ضمان کي د قبضې او پور په وجه داخل شوې وو وهما باقیان او دا دواړه شیان پاته دی بِالْقَبْضِ وَالدَّيْنُ وَهُمَا بَاقِيَانِ فَلَا يَخْرُجُ عَنِ الضَّمَانِ إِلَّا بِنَقْضِ الْقَبْضِ .نودا به د ضمان نه خارجیږی.خو د قبضې ماتولو سره مَا دَامَ الدَّيْنُ بَاقِيًا ترکومه پورې چې پور پاته دې وَإِذَا بَقِيَ الْأَوَّلُ فِي ضَمَانِهِ او هرکله چې غلام د مرتهن په ضمان کي داخل دې لَا يَدْخُلُ الثَّانِي فِي ضَمَانِهِ نو دوهم به دده په ضمان کي نه وی لِأَنَّهُمَا رَضِيَا بِدُخُولِ أَحَدِهِمَا فِيهِ ځکه چې دوی دواړه (راهن او مرتهن) په دوی دواړو کي د یو په ضمان کي په داخلیدو راضی شوې دې لَا بِدُخُولِهِمَا د دواړو په داخلیدو نه دی (راضی شوی)، فَإِذَا رَدَّ الْأَوَّلَ دَخَلَ الثَّانِي فِي ضَمَانِهِ نوکله چې مرتهن رومبې واپس کړو.نو دوهم به دده په ضمان کي داخلیږی

تشریح:- زید د غلام نه زر روپیٔ پور واخستلې.او د زر روپو د قیمت یو غلام ئې خالد سره رهن کیخودو.زید سره یو غلام بل هم دې.چه دده قیمت هم زر روپیٔ دې.اوس زید غواړی.چه رومبې غلام د خالد نه واخلم.او دا دوهم هغه سره کیږدم.نو دا جائز دی.نو دوهم غلام ئې کیخودو.او اوسه پورې خالد رومبې غلام واپس کړې نه دې.نو ترکومه پورې چې هغه واپس نکړی.هغه وخته پورې به رومبې مرهون شمارلې کیږی.او دوهم به امانت شمارلې کیږی.نوکه په دې صورت کي رومبې هلاك شی.نو پور به ساقطیږی.او که دوهم هلاك شی.نو چونکه امانت دې.په دې وجه به مفت هلاك وی.ددې وجه دا ده.چه رومبې غلام د قبضې او پور په وجه د مرتهن په ضمان کي داخل شوې وو.او اوس قبضه هم موجود ده.نودا غلام به هم اوس په ضمان کي داخل وی.البته که قبضه ختمه کړی.نو بیا به دا مضمون نه پاتې کیږی.او هرکله چې رومبې اوس هم په ضمان کي داخل دې.نو دوهم به اوسه پورې ضمان کي داخل نه وی.ځکه چې په اتفاق د فریقینو مرهون دوی دواړو کي یو دې.دواړه نه دی.بهرحال هرکله چې رومبې غلام واپس کړی.نو اوس به دوهم غلام دده په ضمان کي داخلیږی.

نکته۞ مرغینانی رحمه الله د بری کیدو نه د احتراز (او بچکیدو) لپاره زیاتی کړې دې.دا عبارت چې ،،مادام الدين باقياً،، (یعنی ترکومه پورې چې پور پاته وی.او قبضه هم ختمه شوې نه وی.نو مرهون به مضمون وی ځکه چې ابراء کي د قبضې باوجود ضمان ختمیږی.(کما سيجيء،،

**د نوې قبضې شرط ضروری دې اوکه نه؟**

ثُمَّ قِيلَ بیا ونیلی شوی دی يُشْتَرَطُ تَجْدِيدُ الْقَبْضِ، چې د قبضې نوی‌کول شرط دی لِأَنَّ يَدَ الْمُرْتَهِنِ عَلَى الثَّانِي ځکه چې دوهم غلام باندې د مرتهن قبضه د امانت قبضه ده. وَيَدُ الرَّهْنِ بَعْدَ اسْتِيفَاءٍ وَضَمَانٍ * او د رهن قبضه وصولی او ضمان وی فَلَا يَنُوبُ عَنْهُ نوقبضه د نیابت به د ضمانت د قبضې نیابت نه کوی

تشریح:- بهرحال ترکومه پورې چې مرتهن د رومبی غلام نه خپله قبضه پورته نکړی.هغه وخته پورې به دوهم غلام د هغه په ضمانت کي نه داخلیږی.خو اوس په دې دا سوال پیدا کیږی.چه په دوهم غلام به د نوې قبضې اړتیا راپیښیږی.یا هم هغه رومبیٔ قبضه به کافی وی؟ په دې کي زموږ د مشائخو دوې (دوه) ډلې دی.یوه ډله وائی.چه د قبضې تجدید ضروری دې.د رومبی ډلې دلیل دا دې.چه په دوهم غلام باندې د مرتهن قبضه، قبضه د امانت ده.او په مرهون د مرتهن قبضه، قبضه د ضمانت او قبضه د استیفاء وی.او قبضه د امانت د ضمانت د قبضې نیابت نشی کولې.په دې وجه د قبضې د تجدید اړتیا راپیښیږی.

كَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ جِيَادٌ لكه هغه كس چې دهغه په بل باندې كهره دراهم وى فَاسْتَوْفَى زُيُوفًا ظَنَّهَا جِيَادًا نو هغه كهوټه وصول كړلي چه دا ئې كهره ګنړلي وې ثُمَّ عَلِمَ بِالزِّيَافَةِ وَطَالَبَهُ بِالْجِيَادِ بيا ئې كهوټه كيدو نه خبر شو.او هغه نه ئې كهره اوغوښتلې. وَأَخَذَهَا فَإِنَّ الْجِيَادَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ او كهره ئې واخستلې.نو كهره به دده په قبضه كې امانت وى مَا لَمْ يَرُدَّ الزُّيُوفَ وَيُجَدِّدَ الْقَبْضَ تركومه پورې چې دې كهوټه واپس نكړې.او د قبضې نوى كيدل اونكړي

حل اللغة* ① جياد: كهره ② يجدد: نوى كوى ③ الزيافة: كهوټه ④ تبرع: احسان كول﴾

تشريح:- ددې مثال بعينه داسې دې.چه د بكر د عمرو په ذمه مثلاً زر درهمه كره واجب دى.او بكر هغه ته زر درهم كهوټه وركړلې.بكر په نا خبرۍ كې واخستلې.روستو هغه ته معلومه شوه.چه دا كهوټه دى.نو بكر ته حق شته.چه هغه د عمرو نه د خپلو كره دراهمو مطالبه اوكړى.او واخلي.نو عمرو بكر ته كره دراهم وركړل.تركومه پورې چې بكر مخكې كهوټه دراهم عمرو ته حواله نكړى.او په كهره درهمو باندې جديد قبضه اونكړى.تر هغه وختـه پورې به دراهم بكر سره امانت وى.دغه ډول به په ذكر شوې مسئله كې هم وى.نوكه د جديد قبضې نه مخكې كهره دراهم هلاك شي.نو دعمرو مال به هلاك وى.ځكه چې دا بكر سره امانت وو.مثلاً بكر په پيښور كې كهره درهم وصول كړل.او خان سره ئې اوساتل.او چې سوات ته لاړو.نو كهوټه دراهم ئې واپس كړل.او بكر تر اوسه پورې پيښور ته نه دې راغلې.او جديد قبضه ئې نه وه كړې.چه كهره دراهم ئې ضائع كړل.نو دا به د قرضدار ( عمرو) مال وى.دغه ډول امانتى غلام او رهن كې ګڼړل پكار دى.

وَقِيلَ لَا يُشْتَرَطُ او ونيلې شوى دى.چه د قبضې تجديد شرط نه دې لِأَنَّ الرَّهْنَ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ ځكه چې رهن د هبې پشان تبرع (او احسان) دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ لكه څنګه چې مونږ وړاندې بيان كړى دى وَقَبْضُ الْأَمَانَةِ يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الْهِبَةِ او د امانت قبضه د هبې د قبضې نيابت كوى.

تشريح:- اوپه دې مسئله كې زمونږ دعالمانو دويمه ډله وائى.چه د قبضې تجديد شرط نه دې.د دوى دليل دا دې.چه لكه څنګه هبه تبرع ده.دغه ډول عقد رهن هم تبرع ده.د كتاب الرهن په پيل كې ددې بيان تير شوې دې.اوكه زيد خالد سره خپل څه مال امانت كيخودو.او بيا ئې هم دا مال خالد ته هبه كړو.چه دې كې قبضه شرط ده.نو هم دا ړومبۍ د امانت قبضه به د هبې قبضه ګڼړلې شي.او د جديد قبضې اړتيا به نه راپيښيږى.دغه ډول به دلته كې هم وى.چه د امانت قبضه به د رهن دقبضې نيابت كوى.او د دوهم غلام مضمون جوړيدو لپاره به د جديد قبضې اړتيا نه راپيښيږى.

وَلِأَنَّ الرَّهْنَ عَيْنَهُ أَمَانَةٌ اوځكه چې عين رهن امانت دې وَالْقَبْضُ يَرِدُ عَلَى الْعَيْنِ او قبضه په عين وارديږى فَيَنُوبُ قَبْضُ الْأَمَانَةِ عَنْ قَبْضِ الْعَيْنِ نو د امانت قبضه به د عين قبضې د اړخه نيابت كوى

تشريح:- د دويمې ډلې دوهم دليل دا دې.چه وړاندې څو خله تير شوى دى.چه د مرهون عين مرتهن سره امانت وى.او د مرهون ماليت مضمون وى.او كله چې مرتهن په دوهم غلام باندې قبضه اوكړله.نو دده په عين باندې ئې قبضه اوكړله.بهرحال كه قبضه د امانت وى.اوكه قبضه د ضمانت وى.دواړو كې اصل قبضه په عين وى.او ددې په تبعيت كې ماليت باندې قبضه كيږى.نو هركله چې په قبضه د امانت كې ( چې په دوهم غلام ئې قبضه كړې ده) عين قبضه موجود ده.او هم دا د عين قبضه به د ضمانت په قبضه كې هم وى.نو د قبضې تجديد به تحصيل د حاصل وى.نو مونږ اوونيل.چه قبضه د امانت به ددې عين قبضې د اړخه نيابت كوى.كومه چې په قبضې د ضمانت كې وى.

## په برى كولو كښې كه مرهون مرتهن سره هلاك شي نو څه حكم دې ؟

(وَلَوْ أَبْرَأَ الْمُرْتَهِنُ الرَّاهِنَ عَنِ الدَّيْنِ اوكه مرتهن راهن د پور نه برى كړو. أَوْ وَهَبَهُ مِنْهُ ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ يا مرتهن پور راهن ته هبه كړو.بيا مرهون د مرتهن په قبضه كې هلاك شو يَهْلِكُ بِغَيْرِ شَيْءٍ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً به بغير د څه



شي نه هلاك وى خِلَافًا لِزُفَرَ .اختلاف دې د امام زفر رحمه الله

تشريح:- د زيد د خالد په ذمه زر روپۍ پور وو.خالد ددې په بدله كې خپله اسپه چې د زر روپو ده.زيد سره رهن ايخودې وه.اوس صورت دا شو.چه زيد خپل پور معاف كړو.يائې هبه كړو.نو اوس زيد له پكار دى.چه دخالد اسپه ئې واپس كړې وې.خو اوس لا د واپس كاوه حالت نه وو راغلې.چه دا هلاكه شوه.نو اوس به په زيد باندې ضمان وى.او كه نه؟ زمونږ مذهب دا دې.چه ضمان نشته.بلكه مفت هلاك شوې دې.او امام زفر رحمه الله فرمائى.چه په زيد به ضمان واجب وى.

لِأَنَّ الرَّهْنَ مَضْمُونٌ بِالدَّيْنِ دليل دا دې چې رهن مضمون وى.د پور په وجه، أَوْ بِجِهَتِهِ عِنْدَ تَوَهُّمِ الْوُجُودِ يا د پور د جهت په وجه د پور د وجود متوهم كيدو په وخت، كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمَوْعُودِ لكه څنګه په پور موعود كې ، وَلَمْ يَبْقَ الدَّيْنُ بِالْإِبْرَاءِ أَوِ الْهِبَةِ او د ابراء يا هبې په وجه نه پور پاته پاتې شو وَلَا جِهَتُهُ او ددې جهت پاته پاتې شو لِسُقُوطِهِ د پور د ساقطيدو په وجه، إِلَّا إِذَا أَحْدَثَ مَنْعًا خو كله چې مرتهن د انكار نوې (تجديد) اوكړه لِأَنَّهُ يَصِيرُ بِهِ غَاصِبًا ځكه چې مرتهن به د انكار په وجه غاصب ګرځيږى إِذْ لَمْ تَبْقَ لَهُ وِلَايَةُ الْمَنْعِ ځكه چې مرتهن لپاره د انكار كاوه ولايت پاته پاتې نشو

حل اللغة* ① الابراء: برى كول ② سقوط: ساقط كيدل﴾

تشريح:- زمونږ دليل دا دې چې ضمان به ځكه نه وى.چه په دې صورت كې پور بالكل ساقط شوې دې.او د پور جهت هم بالكل ساقط شوې دې.يعنى مرهون پور كې هم مرهون مضمون وى.او دلتـه كې موعود پور هم نشته.نو نه پور پاتـه دې.او نه جهت د پور پاته دې.او هم ددوى دواړو په وجه مرهون مضمون وى.او هركله چې دا دواړه موجود نه دى.نو ضمان به هم نه وى.البته كه خالد خپله اسپه د زيد نه غوښتلې وى.او زيد د ور كاوه نه انكار كړې وى.او اوس اسپه هلاكه شي.نو اوس به په زيد تاوان وركول لازمى وى.ځكه چې هركله زيد د غوښتلو باوجود ور كاوه نه انكار كړې وى.نو اوس به دې غاصب شمارلې كيږى.او په غاصب باندې ضمان واجب وى.ځكه چې دې صورت كې زيد ته د اسپې ساتلو ( او منع كولو) هيڅ ولايت پاته نه دې پاتې شوې.

## په ذكر شوى خلورو صورتونو كښې په ښځه باندې ضمان نشته

وَكَذَا إِذَا ارْتَهَنَتِ الْمَرْأَةُ رَهْنًا بِالصَّدَاقِ او هم دغه ډول كله چې ښځې رهن اخستې وى د مهر په بدله كې فَأَبْرَأَتْهُ نو ښځې ميړه برى كړې وى. أَوْ وَهَبَتْهُ يا ئې هغه ته هبه كړې وى أَوِ ارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللَّهِ قَبْلَ الدُّخُولِ يا ښځه ( نعوذ بالله) د دخول نه وړاندې مرتده شوې وى أَوِ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ عَلَى صَدَاقِهَا يا ښځې ميړه سره پخپل مهر باندې خلع كړې وى ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِهَا بيا مرهون د ښځې په قبضه كې هلاك شى هَلَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ فِي هٰذَا كله په دې ټولو صورتونو كې به مرهون د څه شي نه بغير هلاك وى وَلَمْ تَضْمَنْ شَيْئًا او ښځه به هيڅ ضامنه نه وى

حل اللغة* ① اختلعت: ښځې خلع اوكړه ② صداق: مهر﴾

تشريح:- لكه څنګه چې د ابراء ذكر شوى صورت كې د مرهون د هلاكيدو په وجه مرتهن باندې ضمان نه وو.دغه ډول به په دې څلورو صورتونو كې هم مرتهن ښځه باندې ضمان نه وى.① زيد د خالدې سره په زر روپۍ مهر باندې نكاح اوكړله.بيا زيد د خالدې د مهر په عوض هغې سره مثلاً خپله اسپه رهن كيخوده.بيا خالد خپل پور كوم چې په زيد دې.معاف كړو.او دا اسپه خالدې سره د واپس كاوه نه وړاندې هلاكه شوه.نو په خالدې به ضمان نه وى.لكه څنګه چې ړومبى صورت كې معاف كونكى باندې ضمان نه وو.② بالكل هم دغه صورت دې.او خالدې خپل پور زيد ته هبه كړو.او اسپه ئې اوسه پورې نه وه واپس كړې.نو بيا به هم ضمان نه وى.③ اوس زيد د خالدې سره دخول نه وو كړې.چه هغه ،،نعوذ بالله من ذالك،، مرتده شوه.نو مهر پخپله ساقط شو.اوس اتفاق سره خالدې سره دا اسپه هلاكه شوه.نو په خالدې به ضمان نه وى.لكه څنګه چې ابراء كې ضمان نه وو.④ خالدې د

زيد سره خلع اوكړله او د خلع په بدله كي مهر مقرر كړي شو.زيد دا قبول كړو.نو خلع اوشوه.او اوس خالدي مرهونه اسپه واپس كړي نه وه.چه هغه ددي سره هلاكه شوه.نو په خالدي به ضمان نه وي.

| |
|---|
| لِسُقُوطِ الدَّيْنِ د پور د ساقطيدو په وجه. كَمَا فِي الْإِبْرَاءِ لكه څنګه چي ابراء كي دي. |

تشريح:- دليل دا دي چي دي ټولو صورتونو كي د اسپي د هلاكيدو نه مخكي پور ساقط شوي دي.نو دا واړه مثالونه د ابراء پشان دي.

**په ذكر شوي صورت كښي ضمان واجب دي**

| |
|---|
| وَلَوِاسْتَوْفَى الْمُرْتَهِنُ الدَّيْنَ بِإِيفَاءِ الرَّاهِنِ او كه مرتهن دين وصول كړو.د راهن د ور كاوه نه مخكي أَوْبِإِيفَاءِ مُتَطَوِّعٍ يا د يو متبرع د ور كاوه نه مخكي . ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِهِ بيا مرهون د مرتهن په قبضه كي هلاك شي يَهْلِكُ بِالدَّيْنِ نو دا به د پور په بدله كي هلاك وى وَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّ مَا اسْتَوْفَى إِلَى او د مرتهن په ذمه به ددي مال واپس كول واجب وي مَا اسْتَوْفَى مِنْهُ كوم چي ده وصول كړي دي.هغه سړي ارخ ته د چانه ني چي وصول كړي دي. وَهُوَ مَنْ عَلَيْهِ او دا (د چا نه ني چي وصول كړي دي) هغه كس دي.په چا چي دا پور وو أَوِالْمُتَطَوِّعُ بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ يا متبرع دي.په خلاف د ابراء، |

تشريح:- د ابراء په صورت كي مرتهن باندي ضمان واجب نه وو.خو كه راهن پور ادا كړو.يا يوكس د تبرع په طور د راهن د ارخه پور ادا كړو.او اوس مرتهن مرهون، راهن ته حواله كړي نه وو.چه مرهون هلاك شو.نو اوس په مرتهن باندي ضمان شته.يعني دده پور ساقط شو.او چا چي د راهن يا متبرع نه وصول كړي دي.دا په هغوى ارخ ته واپس كول واجب وي.ددي څه وجه ده.چه د ابراء په صورت كي ضمان واجب نه دي.او په ذكر شوي صورت كي ضمان واجب دي؟ نو ددي خواب مرغيناني رحمه الله په راروان عبارت كي وركوي.

**د ابراء او ايفاء په منځ كښي وجه د فرق**

| |
|---|
| وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ بِالْإِبْرَاءِ يَسْقُطُ الدَّيْنُ أَصْلًا او وجه د توپير دا ده.چه ابراء سره پور بالكل ساقطيږي كَمَا ذَكَرْنَا، وَبِالْإِسْتِيفَاءِ لَا يَسْقُطُ لكه څنګه چي مونږ دا ذكر كړي دي.او د استيفاء په وجه نه ساقطيږي لقيام الموجب د ابراء د موجب پاتي كيدو په وجه، إِلَّا أَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْإِسْتِيفَاءُ لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ مګر تحقيق دا چي استيفاء متعذر ده.د فائدي نه كيدو په وجه، لِأَنَّهُ يَعْقُبُ مُطَالَبَةً مِثْلِهِ څكه چي دا استيفاء د خپل مثل مطالبه شاته راولي فَأَمَّا هُوَ فِي نَفْسِهِ فَقَائِمٌ، فَإِذَا هَلَكَ بهرحال نفس استيفاء قائم ده.نو كله چي مرهون هلاك شو يَتَقَرَّرُ الْإِسْتِيفَاءُ الْأَوَّلُ نو.نو رومبئ استيفاء مضبوطه شوه فَانْتَقَضَ الْإِسْتِيفَاءُ الثَّانِي نو دويمه استيفاء ماته شوه. |

تشريح:- دا د ابراء او ايفاء په منځ كي وجه د توپير ده.چه رومبى كي ضمان نشته.او دوهم كي ضمان شته. ددي حاصل دا دي.چه د ابراء په صورت كي پور بالكل ختم شوي دي.اګرچه د راهن پور اخستل پخپل حال پاته دى.او د راهن پور اخستل، ددي خبري تقاضه كوى.چه راهن د مرتهن پور ادا كړي.خو چونكه اوس مرتهن بري كړو.نو كه پور اوس هم پاته اومنلي شي.نو اجماع د متنافيينو لازميږي.چه ابراء اوشوه.او بيا هم پور پاته دي. لنډيز د كلام دا چي د ابراء په صورت كي د پور موجب خو اوس هم معدوم نه دي.خو د پور د بقاء منافي موجود دي.په دي وجه پور بالكليه ساقط شوي ده.په دوهم صورت كي كله چي راهن پور ادا كړي دي.نو اصلي حق ادا نشو.څكه چي مرتهن كوم پور وركړي وو.هغه بعينه ده ته ملاو نشو.بلكه ددي مثل ملاو شوي دي.ګويا چي د پور ادا كاوه نه روسته هم د قرضخواه اصل حق د قرضدار په ذمه برقرار دي.ددي دليل دا دي.كه قرضخواه قرضه باندي د قبضي كاوه نه پس، يعنى د پور وصولولو نه روسته هم قرضدار بري كړو.نو قرضدار ته به حق وي.چه ده كوم مال قرضخواه ته وركړي وو.هغه دي واپس واخلي.څكه چي اصل حق معاف شوي دي.نو بيا د بدل څه سوال دي. لنډيز د كلام دا چي ابراء سره پور بالكل ساقطيږي.او ادا كاوه كي اصل حق نه ساقطيږي .بلكه پاته پاتي كيږي.



اكه څوك دا ووايي چي هركله چي د قرضخواه اصل حق پاته دي.نو قرضخواه له پكار دى.چه خپل حق د قرضدار نه اوغواړي؟ نومونږ وايو چي په دي كي هيڅ فائده نشته بلكه هسي پيسه به دور لازميږي.اوهغه داسي چي كله قرضخواه خپل اصل اوغواړي.نو قرضدار به خپل ادا كړي شوي مال واپس غواړي.او هم دا مطالبه به جليږي.په دي وجه قرضدار ګڼرلي شوي دي.چه ګويا حق ادا كول اوشو.په دي شرط چي مرهون مرتهن سره هلاك شوي نه وي.

اوكه روسته د ايفاء نه مرهون هلاك شي.نوچونكه اصلي حق پاته دي.په دي وجه به دا مضمون شمارلي كيږي.او د مخكني استيفاء په وجه به پور ختم شمارلي كيږي.او كله چي پور د رومبئ استيفاء په وجه ختم شوي دي.نو اوس به مرتهن باندي ضروري وى.چه د راهن وركړي شوي مال واپس كړي.دا په دي دواړو كي وجه د توپير ده. مرغيناني رحمه الله په عبارت كي غور كاوه سره د فقير( مرغيناني ددي كتاب) په علم كي هم دا مطلب راغلي دي.ګڼي حضرات شارحينو دلته كي بل بل څه ليكلي دى.علامه عيني رحمه الله هم په دي كلام نه دي كړي.البته په نتائج الافكار كي دلته ډير تفصيل سره كلام شوي دي.دا پوره تقرير بي فائدي اوګدوالي دي.

| |
|---|
| (وَكَذَا إِذَا اشْتَرَى بِالدَّيْنِ عَيْنًا اوهم دغه ډول كله چي مرتهن د پور په بدله كي څه شئ واخستلو أَوْصَالَحَ عَنْهُ عَلَى عَيْنٍ يا د پور د ارخه ني څه شئ باندي مصالحت اوكړو لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ څكه چي دا ( دي دواړو كي هريو) استيفاء ده |

تشريح:- په دي عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه لكه څنګه په حقيقت كي پور ادا كاوه سره مرتهن خپل حق وصولونكي جوړيږي.دغه ډول كه مرتهن د خپل پور په بدله كي د راهن نه څه سامان واخستلو.نو دده حق ادا شو.او هركله چي حق ادا شو.او اوس مرتهن سره مرهون هلاك شي.نو قيمت واپس كول به لازمي وى.دغه ډول كه د پور په بدله كي مثلاً په يو كمبل باندي مصالحت اوشو.او اوس مرهون مرتهن سره دي.نو بيا به هم مضمون وى.څكه چي مرتهن ددي اخستلو او صلح په وجه خپل پور وصول كړي دي.نوكه اوس مرهون موجود وى.نو ددي واپس كول به ضروري وى.اوكه مرهون هلاك شي.نو ددي قيمت واپس كول به واجب وى.

**د پور حواله كولو په صورت كښي كه مرهون مرتهن سره هلاك شو نو څه حكم دي**

| |
|---|
| (وَكَذَلِكَ إِذَا أَحَالَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ بِالدَّيْنِ عَلَى غَيْرِهِ او هم دغه ډول كله چي راهن واپس كړي وى.مرتهن ته د پور په سلسله كي ، پخپل غير باندي، ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ بَطَلَتِ الْحَوَالَةُ بيا مرهون هلاك شي.نو حواله به باطل وى وَيَهْلِكُ بِالدَّيْنِ او مرهون به د پور په بدله كي هلاك وى لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَرَاءَةِ بِطَرِيقِ الْأَدَاءِ، څكه چي حواله د ادا كاوه په طريقه باندي د براءت په معنى كي ده لِأَنَّهُ يَزُولُ بِهِ عَنْ مِلْكِ الْمُحِيلِ مِثْلُ څكه چي د حوالي په وجه محيل ( راهن) په ملكيت سره ددي په مثل زائل كيږي مَا كَانَ لَهُ عَلَى الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ، كوم چي د محيل په محتال عليه دي أَوْ مَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ يا چي كوم مقدار محتال عليه د محيل نه واپس اخلى لَمْ يَكُنْ لِلْمُحِيلِ عَلَى الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ، كه په محتال عليه باندي پور نه وى لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلِ څكه چي محتال عليه د وكيل په مرتبه كي شو. |

تشريح:- په خالد باندي د ماجد پور دي.خالد ماجد ته اوونيل.چه زما پور به ارشد ادا كوى.او ارشد دا قبول كړل.نو دي عقد ته حواله وائي.او خالد محيل دي.او ارشد محتال عليه دي.كله چي ارشد قرضه ادا كړله.نو ارشد به هم دغه مقدار د خالد نه واپس اخلى.او كه د خالد په ارشد باندي پور وى.نو دومره مقدار د پور نه ساقط شو.او ارشد په پور ادا كاوه كي د خالد وكيل دي.نو په رهن كي هم دا صورت راپيښ شو.چه راهن ( خالد) خپل پور ادا كول په ارشد ( محتال عليه) باندي حواله كړل.او ارشد پور ادا كړو.او اوس مرتهن مرهون واپس كړي نه وو.چه دا هلاك شو.نو پور به ساقطيږي.او كوم چي مرتهن ته ادا كړي شوي دي.د هغي واپس اخستل به واجب وى.څكه چي محتال عليه كوم څه ادا كړي دي.دا ګويا راهن ادا كړي دى.او هركله چي راهن ادا كړي دى.نو هم دا حكم دي.نو دلته كي به هم دا حكم وى.او كه اوسه پوري محتال عليه پور نه وو ادا كړي.نو چونكه اوس د مرتهن هيڅ مطالبه پاته نه ده پاتي شوي.نو حواله هم باطل شوي ده.

### په پور نه کیدو باندې د راهن او مرتهن د اتفاق نه روسته د مرهون هلاکیدو حکم

وَكَذَا لَوْتَصَادَقَا عَلَى او هم دغه ډول كه راهن او مرتهن دواړو اتفاق اوکړو لَادَيْنَ چې پور نشته ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ يَهْلِكُ بِالدَّيْنِ بيا مرهون هلاك شو.نو د پور په بدله کې به هلاك وى لتوهم وجوب الدين د پور د وجوب د توهم په وجه، بِالتَّصَادُقِ عَلَى قِيَامِهِ د پور په قيام باندې د اتفاق كاوه په وجه فَتَكُونُ الْجِهَةُ بَاقِيَةً نو جهت د پور پاته پاتې شو بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ ،په خلاف د ابراء. وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

تشریح:- وړاندې تير شوى دى.چه هركله پور يا جهت د پور پاته پاتې وى.نو مرهون مضمون وى.د هغې يو مثال بيانوى.چه راهن او مرتهن دواړو اتفاق اوکړو.چه پور نشته.او اوس مرهون مرتهن سره هلاك شو.نو په پور کې به مضمون وى.ځکه امکان شته.چه مابنام دواړه د پور په بقاء باندې اتفاق اوکړى.نو جهت د پور پاته دې.په دې وجه به مرهون په پور کې مضمون وى.او د ابراء په صورت کې پور هم ختم دې.او ددې جهت هم ختم دې.والله اعلم بالصواب.

# كتاب الجنايات

ژباړه:- (دا) كتاب د جناياتو (د احكامو په بيان كې) دې.

تشریح:- ددې نه وړاندې د رهن احكام ذكر شو.او دلته د جناياتو (جرمونو) احكام ذكر دى.او وجه د مناسبت دا ده.چه رهن د مال د ساتنه لپاره دې.او احكام د جنايت د نفسونو د ساتنه لپاره دى.او مال د نفس د ساتنه ذريعه ده.په دې وجه وسيله مقدم كړې شوې ده.جنايات د جنايت جمع ده.چه دا په اصل كې مصدر دې.او د اسم مفعول په معنى كې مستعمل دې.په لغت كې جنايت هر بد (او ناروا) كار ته وائى.او په شريعت كې جنايت هغه حرام فعل ته وائى.چه دهغې اثر په نفس يا مال باندې پريوځى.( يعنى په كتاب الجنايات كې د جناياتو نه مراد هم دا دې.گنى جنايات د حج، د سرى نفس سره متعلق نه دى.او ددې باوجود هم دې ته جنايات وئيلې شى.په ﴿مجمع الانهر ص۵۸۸ ج۵﴾ كې په وجه د مناسبت باندې تفصيلى بحث شوې دې.

تنبيه: د جناياتو دوې (دوه) قسمونه دى ① جنايت على نفسه ② جنايت على غيره، د ړومبى ډول نه بحث كول دلته مقصود نه دى.

بيا د جنايت على غيره څلور قسمونه دى.① جنايت په نفس غير باندې وى.② جنايت على الغير دده په اړخ وى.③ جنايت على الغير دده په عزت (او آبرو) باندې وى.④ جنايت على الغير په مال باندې وى.

بيا د ړومبى څلور قسمونه دى ① قتل ② صلب (په سولئ كول او پهانسى كول) ③ حرق (سوزول) ④ غرق (ډوبول).

او د دوهم درې قسمونه دى ① قطع (كټ كول) ② كسر (ماتول) ③ شج (زخمى كول) او هم ددې دواړو احكام دلته په كتاب الجنايات كې بيانول مقصود دى.

د دريم دوې (دوه) قسمونه دى① قذف ددې موجب حد دې.چه ددې تفصيل د دهدايه په دوهم ټوك كې تير شوې دې.② غيبت ددې موجب اثم (او گناه) دې.او دا د آخرت د احكامو څنې دې.

بيا د څلورم درې قسمونه دى① غصب چې ددې احكام د دريم ټوك په آخر كې ذكر دى.② جنايت ③ سرقه، ﴿كذا فى عقود الجواهر المنقيه، ص۱۹۴ ج۲﴾

### د قتل پنځه اقسام

قَالَ امام قدورى رحمه الله فرمانى اَلْقَتْلُ عَلٰى خَمْسَةِ أَوْجُهٍ او قتل په پنځه قسمه دې عَمْدٌ، وَشِبْهُ عَمْدٍ وَخَطَأٌ عمد، او شبه عمد، او خطاء، وَمَا أُجْرِيَ مُجْرَى الْخَطَإِ او كوم چې خطاء قائم مقام وى وَالْقَتْلُ بِسَبَبٍ او قتل په سبب سره، وَالْمُرَادُ



بَيَانُ.. او مراد د داسې قتل بيان دې فَتْلٌ تَتَعَلَّقُ بِهِ الْأَحْكَامُ چې دې سره احكام متعلق كيږى.

تشریح:- مرغينانى رحمه الله فرمانى.چه د قتل اقسام ډير دى.خو دلته كې موږ صرف هغه اقسام بيانوو.چه هغې سره دا احكام متعلق كيږى.قصاص، ديت، كفاره، ميراث نه محروميدل، او دا پنځه قسمه قتلونه دى.كوم چې ذكر شو.چه ددې تفصيلى احكام راروان دى.موږ په درس سراجى اقسام د قتل په اختصار او جامعيت سره بيان كړى دى.خو هلته كې د مناسبت په وجه قائم مقام د قتل خطاء جلا نه دې بيان كړې شوې .په دې وجه صرف څلور قسمونه بيان شوى دى.

### د قتل عمد تفصيل

قَالَ امام قدورى رحمه الله او فرمائيل (فَالْعَمْدُ مَا تَعَمَّدَ نو قتل عمد دا دې.چه اراده اوكړې شى ضَرْبَهُ بِسِلَاحٍ د مقتول د وژلو په وسلې سره أَوْمَا أُجْرِيَ مُجْرَى السِّلَاحِ يا په داسې شئ سره كوم چې د وسلې قائم مقام وى. كَالْمُحَدَّدِ مِنَ الْخَشَبِ لكه د سوكې والا لرگې، وَلِيطَةِ الْقَصَبِ او د نل (يا بانړس) پوست وَالْمَرْوَةِ الْمُحَدَّدَةِ او تيره كانړې، وَالنَّارِ او اور. لِأَنَّ الْعَمْدَ هُوَ الْقَصْدُ، وَلَا يُوقَفُ عَلَيْهِ خكه چې عمد هغه اراده ده.په كوم چې د دليل نه بغير اطلاع اونشى إِلَّا بِدَلِيلِهِ وَهُوَ اسْتِعْمَالُ الْآلَةِ الْقَاتِلَةِ او هغه دليل د قصد، د قتل كونكى وسله استعمالول دى فَكَانَ مُتَعَمِّدًا فِيهِ عِنْدَ ذٰلِكَ نو هغه په دې وخت قتل كې قصد كونكې وى. وَمُوجِبُ ذٰلِكَ الْمَأْثَمُ او د قتل عمد موجب گناه ده. لِقَوْلِهِ تَعَالٰى ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا﴾ الآية د الله تعالى فرمان دې. ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا﴾ په وجه، وَقَدْ نَطَقَ بِهِ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ السُّنَّةِ [۱] او په دې (قتل كې د گناه په) سلسله كې ډير حديثونه ناطق (او وارد) دى وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ او په دې باندې د امت اجماع منعقد شوې ده.

حل اللغة: ① سلاح: وسله ② الخشب: د سوكې لرگې ③ ليطة: پوست ④ القصب: نل ⑤ المروحة: تيره كانړې﴾

تشریح:- مخكې مرغينانى رحمه الله د قتل پنځه اقسام بيان كړل.ددې ځائې نه د قتل عمد تفصيلى ذكر دې.نو وې فرمائيل.چه كله د يو انسان د وژلو اراده وى.او هغه لپاره داسې وسله استعمال كړې شى.چه هغه قتلونكې ده.نو دا قتل عمد دې.لكه توره، طمانچه، ټوپك، توپ وغيره، او لكه تيره لرگې،او تيره د بانړس پوست ، او تيره كانړې، او لكه اور، وجه ددې دا ده.چه د قتل عمد لپاره د قتل اراده پكار ده.او اراده يو مخفى او پټ شئ دې.نو كله چې د قتل د ارادې دليل اوموندې شى.نو هم په دې به اكتفاء كولې شى.او دې ته به قتل عمد وئيلې شى.او كله چې قاتل داسې الات او وسله استعمال كړله.چه دې سره قتل واقع كيږى.نودا به د عمد دليل وى.

او د قتل عمد حكم دا دې.چه په دې كې ديت او كفاره نه لازميږى.بلكه گناه او قصاص لازميږى.هم دا مرغينانى رحمه الله او فرمائيل.چه د قتل عمد موجب گناه ده.اوس فرمائى.چه قتل عمد گناه ده.نو ددې دليل دا آيت دې ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾ ددې آيت نه معلومه شوه.چه قتل د مؤمن گناه ده.او د ډير حديثونو نه د قتل گناه كيدل معلوميږى. او د قتل عمد په گناه كيدو باندې د امت اجماع ده.

### قصاص په كوم قتل سره واجبيږى

قَالَ امام قدورى رحمه الله او فرمائيل وَالْقَوَدُ) لِقَوْلِهِ تَعَالٰى ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى﴾ إلا او قصاص د الله تعالى د

[۱]) منها ما رواه عبدالله بن عمر رضى الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ أمرت أن أقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله ويقيموا الصلاة ويؤتوا الزكاة فإذا فعلوه عصموا منى دمائهم وأموالهم إلا بحقها وحسابهم على الله أخرجه البخارى الإيمان باب ۱ رقم ۱۳۹۹ ومسلم فى الإيمان رقم ۳۲)_

فرمان په وجه ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ په وجه إِلَّا أَنَّهُ تَقَيَّدَ بِوَصْفِ الْعَمْدِيَّةِ او قصاص د عمديت وصف سره مقيد دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْعَمْدُ قَوَدٌ} د نبي كريم ﷺ د فرمان په وجه، «العمد قود» ،،عمد قصاص دی،، مُوجِبُهُ يعنى د عمد موجب او حكم قصاص دی وَلِأَنَّ الْجِنَايَةَ بِهَا تَتَكَامَلُ او ځكه چې د عمديت په وجه جنايت كامليږی وَحِكْمَةُ الزَّجْرِ عَلَيْهَا تَتَوَفَّرُ زجر (ملامته كولو) حكمت عمديت باندې پوره كيږی وَالْعُقُوبَةُ الْمُتَنَاهِيَةُ لَا شَرْعَ لَهَا دُونَ ذٰلِكَ او د آخری درجې عقوبت (او سزا) ددې لپاره د قصاص نه علاوه بل څه شئ مشروع نه دی.

حل اللغة: ① تتكامل: پوره كيږی ② الزجر: رټل، زورنه وركول ③ تتوفر: پوره كيږی ④ المتناهية: آخری درجه.

تشريح:- د ګناه سره سره قتل عمد كې قصاص هم واجبيږی. ځكه چې د قرآن كريم دا آيت ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ په وجوب د قصاص باندې دلالت كوی.

كه څوك دا اعتراض اوكړی چې آيت كې خو د قتل عمد ذكر نشته. بلكه د مطلق قتل ذكر دی؟ نو موږ وايو چې په يو حديث سره نې ددې آيت تفسير فرمائيلې دی. چه دلته د قتل نه قتل عمد مراد دی. حديث كې دی. «العمد قود» چه، ،قتل عمد قصاص دی،، يعنى د قصاص سبب دی.

او آيت كې د قتل نه مراد قتل عمد دی. ددې دليل دا هم دی. چه پوره پوره جرم د عمديت په وجه كيږی. او د زجر (ملامته كولو) پوره نفع او فائده هم هغه وخت حاصليږی. كله چې جنايت كې ده تعمد كړې وی. او د ټولو نه لوئې جرم دنيا كې يو كس قتلول دی. او د ټولو نه لويه سزا قصاص ده. نو قصاص به په لوئې جنايت كې واجب وی. او قتل به لوئې جنايت هغه وخت وی. لكه چې ددې عمد (قصد او اراده) وی. په دې وجه مذكوره آيت كې وجوب د قصاص عمديت سره مقيد منلې شوې دی.

### د قتل عمد سزا او ددې حكم

قَالَ وويل (امام قدوری رحمة الله عليه) إِلَّا أَنْ يَعْفُوَ الْأَوْلِيَاءُ خو دا چې اولياء معاف كړی أَوْ يُصَالِحُوا يا مصالحت اوكړی لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځكه چې حق د اولياو دی ثُمَّ هُوَ وَاجِبٌ عَيْنًا بيا قصاص فرض عين دی وَلَيْسَ لِلْوَلِيِّ أَخْذُ الدِّيَةِ إِلَّا بِرِضَا الْقَاتِلِ او ولی ته د قاتل د رضامندئ نه بغير د ديت اخستلو حق نشته وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ او هم دا د امام شافعی رحمة الله عليه په دوې (دوه) قولونو كې يو قول دی رحمة الله عليه إِلَّا أَنَّ لَهُ حَقَّ الْعُدُولِ إِلَى الْمَالِ مِنْ غَيْرِ مَرْضَاةِ الْقَاتِلِ خو ولی ته د قاتل د رضامندئ نه بغير مال اړخ ته د وركرځيدو حق شته لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ مَدْفَعًا لِلْهَلَاكِ ځكه چې مال د هلاكت لرې كاوه ذريعه متعين شوې ده نو وراوړاندې كيدل به جائز وی فَيَجُوزُ بِدُونِ رِضَاهُ د قاتل د رضامندئ نه بغير،

تشريح:- د قتل عمد اصل سزا قصاص دی. او دا هم فرض عين دی. چا چې قتل كړې دی. هغه څخه به قصاص اخستلې شی. ده په بدله كې به د بل نه (قصاص) نشی اخستلې. خو قصاص د اولياو حق دی. كه هغوی نې معاف كړی. نو ختميږی. يا دوی مصالحت اوكړی. او ددې په بدله كې څه واخلی. او قصاص پريږدی. نو جائز دی. خو د قصاص په ځائې به ديت هغه وخت واجبيږی. كله چې قاتل هم په ديت وركاوه باندې راضی شی. د امام شافعی رحمة الله عليه په دې كې يو قول دا دی. چې د قتل عمد سزا قصاص متعين دی. خو كه ولی د قصاص په ځائې ديت اخستلو باندې راضی شی. نو هغه ته حق شته. د قاتل رضامندی ضروری نه ده. دوی فرمائی. چه په ديت وركاوه سره د قاتل نفس بچ كيږی. او نفس چې په كومه طريقه هم بچ كيږی. ددې بچ كول د امكان حده پورې واجب دی. ځكه چې هركله ولی راضی شو. نو اوس د قاتل د رضامندئ نه بغير هم په ده باندې ديت واجبيږی.

وَفِي قَوْلٍ الْوَاجِبُ أَحَدُهُمَا او په يو قول كې دی، چې په دې دواړو (قصاص او ديت كې) يو واجب لَا بِعَيْنِهِ چې په معين طريقه سره نه دی وَيَتَعَيَّنُ بِاخْتِيَارِهِ او يو د ولی په اختيار سره متعين كيږی لِأَنَّ حَقَّ الْعَبْدِ شُرِعَ جَابِرًا ځكه چې د بنده حق مشروع شوې دی. جابر جوړيدو (د نقصان پوره كولو) سره وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ نَوْعُ جَبْرٍ فَيَتَخَيَّرُ او په هر يو كې جبر دې (يعنى د نقصان پوره والې شته، نو ولی به اختيار مند وی).



تشريح:- دامام شافعی رحمة الله عليه دوهم قول دا دی. چه قتل عمد كې په قصاص او ديت كې يو واجب دی. چه ددې متعين كول د ولی په اختيار كې دی. ځكه كه قصاص دی او كه ديت دی. دواړه د بنده حقونه دی. او د بنده حق هغه وی. كوم كې چې د نقصان پوره والې شوې وی. او د نقصان پوره والې قصاص كې هم دی. او په ديت كې هم دی. نو اوس به ولی ته اختيار وی. كوم چې غواړی. اختيار دې كړی. دا د امام شافعی رحمة الله عليه اقوال دی. او زموږ په نيز د قتل عمد اصل سزا قصاص ده. ديت نه دی. زموږ دليل دا دی.

وَلَنَا او زموږ دليل د كتاب الله هغه آيت دی مَا تَلَوْنَا مِنَ الْكِتَابِ كوم چې موږ تلاوت كړې دی وَرَوَيْنَا مِنَ السُّنَّةِ او هغه حديث دی. كوم چې موږ روايت كړې دی وَلِأَنَّ الْمَالَ لَا يَصْلُحُ مُوجِبًا او ځكه چې مال د قتل د موجب جوړيدو صلاحيت نه لرې لِعَدَمِ الْمُمَاثَلَةِ د مماثلت نه كيدو په وجه، وَالْقِصَاصُ يَصْلُحُ او قصاص صلاحيت لرې لِلتَّمَاثُلِ، د تماثل (او يوشان والی) په وجه وَفِيهِ مَصْلَحَةُ الْأَحْيَاءِ او قصاص د ژوندو خلګو لپاره مصلحت دی زَجْرًا وَجَبْرًا اس د زجر او جبر (د نقصان ټيك كيدو) په لحاظ سره،، فَيَتَعَيَّنُ نو قصاص متعين دی.

تشريح:- ددې ځائې نه زموږ ددليل ذكر دی. رومبې دليل خو ذكر شوې آيت دی ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ او مذكوره حديث دی. يعنى «العمد قود» يعنى ،، قتل عمد قصاص دی،، ددې دواړو دليلونو نه معلومه شوه. چې د قتل موجب اصلی قصاص دی. دليل عقلی دا دی. چه په مال او نفس كې هيڅ مماثلت نشته. ځكه چې سړې مالك دی. او مال مملوك دی. نو په مال او نفس كې هيڅ مماثلت نشته. البته په سړی او سړی كې مماثلت شته. نو په قصاص كې تماثل شته. نو قصاص به متعين وی. او دويمه وجه دا هم ده. چه په قصاص كې د ژوندو خلګو لپاره مصلحت هم دی. ځكه چې كله سړې د خپل يو دشمن قتلولو اراده كوی. نو هغه به پخپل انجام (قصاص) باندې غور كوی. نو هغه به د خپل حركت (او فعل) نه منع كيږی. نو په قصاص كې زجر (رټل) دی. او جبر هم دی. ځكه چې كله قاتل په قصاص كې قتل كړې شو. نو د مقتول اولياء به بې يرې او مطمئن وی. ګنې يريدل به. ځكه چې دوی ته به د قاتل د اړخه د قتل يره وه. چه چرته اولياء موقع او نه مومی. او ما قتل نكړی. په دې وجه به هغه د مخكې نه ددوی د ختمولو كوښښ كولو. بهرحال قصاص كې زجر هم دی. او د نقصان جبر (ټيك كيدل) هم دی. په دې وجه قصاص د قتل موجب دی.

وَفِي الْخَطَإِ وُجُوبُ الْمَالِ ضَرُورَةَ صَوْنِ الدَّمِ عَنِ الْإِهْدَارِ او په قتل خطاء كې د مال وجوب، د وينې ضائع كيدو نه د بچ كاوه د اړتيا په لحاظ سره دی وَلَا يُتَيَقَّنُ بِعَدَمِ قَصْدِ الْوَلِيِّ بَعْدَ أَخْذِ الْمَالِ او د مال اخستلو نه روستو د ولی قصد نه كيدو يقين نشته فَلَا يَتَعَيَّنُ مَدْفَعًا لِلْهَلَاكِ نو مال به د هلاكت لرې كاوه لپاره نه متعين كيږی.

حل اللغة: ① صون: ساتنه ② الدم: وينه ③ الاهدار: ضائع كول، بې قيمته كول.

تشريح:- كه څوك دا پوښتنه اوكړی چې هركله چې په مقتول او مال كې مماثلت نشته. نو په قتل خطاء كې ديت ولې واجب شوې دی؟ نو د هغې وركوی چې قتل ډير لوئې جرم دی. خو په قتل خطاء كې خطاء كونكې معذور دی. په دې وجه قصاص خو متعذر شو. او كه قاتل مفت پريږدی. نو دا د انسان د احترام خلاف دی. او د نفس محترم احترام د خطاء په عذر سره نه ختميږی. نو په دې كې ديت ځكه واجب كړې شوې دی. چه د وينې فضول ضائع كيدل لازم نشی.

كه څوك پوښتنه اوكړی چې بيا د «لأنه تعين مدفعاً للهلاك» به څه ځواب وی نو موږ ځواب وركوو چې ددې څه ګارنټی ده. چه ولی به د مال اخستلو نه روسته بيا قاتل نه قتلوی. كيدای شی. چه هغه مال واخلی. او په موقع موندلو باندې قاتل هم ختم كړی. نو داسې ونيل موږ نه منو چې ،، مال د هلاكت دفع كاوه لپاره متعين دی،،

او كه معترض دا اعتراض اوكړی چې تاسو دا هم فرمايئ چه په مصالحت كې مال اخستل جائز دی. حالانكه دا ګارنټی خو هلته هم نشته؟ نو موږ وايو چې ددې دواړو كې توپير دی. په مصالحت كې ولی په مال اخستلو باندې رضامندی ښكاره كړې ده. نو دلته ښكاره ده. چه اوس به هغه داسې نه كوی. او تاسو اوفرمائيل. چه د قاتل د

رضامندۍ نه بغیر په هغه باندې د قصاص په ځائې مال واجب کړې شی. نو چونکه د هغه په طبیعت کې بغض دې. نو دلته ښکاره حال دا دې. چه هغه به د زړه بهراس اوښکلو لپاره د هغه د قتلولو موقع ګوری. چه قتل ئې کړی.

وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ عِنْدَنَا او په دې کې زموږ په نیز کفاره نشته وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَجِبُ او د امام شافعی رحمه الله په نیز واجب ده لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى التَّكْفِيرِ فِي الْعَمْدِ ځکه چې عمد کې کفارې ارخ ته سخت حاجت دې. أَمَسُّ مِنْهَا إِلَيْهِ فِي الْخَطَأِ هغه حاجت نه، کوم چې کفارې ارخ ته په قتل خطاء کې دې فَكَانَ أَدْعَى إِلَى إِيجَابِهَا نو دا ( قتل عمد ) به د کفارې د وجوب زیات سبب وی.

حل اللغة: ① التكفير: کفاره ورکول ② ايجاب: واجبول

تشريح:- ① زموږ په نیز واجب په قتل عمد کې کفاره نه ده. او د امام شافعی په نیز واجب ده او د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې. چه هرکله په قتل خطاء کې کفاره واجب ده. نو په قتل عمد کې کفاره په درجه اولی واجبیدل پکار دی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّهُ كَبِيرَةٌ مَحْضَةٌ، وَفِي الْكَفَّارَةِ مَعْنَى الْعِبَادَةِ چې کبیره محضه ده. او په کفاره کې د عبادت معنی ده فَلَا تُنَاطُ بِمِثْلِهَا نو نه به شی واجبولې په مثل ددې (کبیرې) وَلِأَنَّ الْكَفَّارَةَ مِنَ الْمَقَادِيرِ او ځکه چې کفاره د شرعی مقدارونو څخه ده. وَتَعَيُّنُهَا فِي الشَّرْعِ لِدَفْعِ الْأَدْنَى او په شریعت کې د کفارې تعین، د ادنی لرې کاوه لپاره دې لَا يُعَيِّنُهَا لِدَفْعِ الْأَعْلَى نو کفاره د اعلی لرې کاوه لپاره نشی متعین کولې وَمِنْ حُكْمِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ او د عمد په حکم کې د میراث نه محرومیدل دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ { لَا مِيرَاثَ لِقَاتِلٍ }(1) د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، «لا ميراث لقاتل» ،،قاتل لپاره میراث نشته،،.

حل اللغة: ① تناط: واجبیږی ② حرمان: محرومه کیدل

تشريح:- زموږ دلیل (۱) قتل عمد ګناه کبیره ده. او ډیره سخته کبیره ده. او په کفاره کې د عبادت معنی ده. نو کومه کفاره چې عبادت دې. د هغې سبب به داسې کبیره ګناه څنګه جوړیږی. کفاره پخپلې رائې سره نه واجبیږی. بلکه د شریعت په متعین کاوه سره واجبیږی. (۲) او شریعت کفاره، د هغې ګناه لرې کاوه لپاره متعین کړې ده. کومه چې قتل خطاء کې ده. او دا ګناه معمولی ده. نو پخپل قیاس سره د بنده ګانو نه ددې ګناه لرې کاوه لپاره کفاره نشی متعین کیدې. کوم چې قتل عمد دې. او دا ګناه ډیره لویه ده.

دقتل عمد حکم دا دې. چه قاتل ته به میراث نه ملاویږی. حدیث کې راځی. چه ،قاتل ته به میراث نه ملاویږی، یعنی قتل مانع د میراث دې. «و قد فصلناه فی درس السراجی»

### قتل شبه عمد کوم قتل ته وائی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَشِبْهُ الْعَمْدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او شبه عمد د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا دې أَنْ يَتَعَمَّدَ الضَّرْبَ چې قاتل په داسې شئ سره د وهلو اراده اوکړی بِمَا لَيْسَ بِسِلَاحٍ وَلَا مَا أُجْرِيَ مُجْرَى السِّلَاحِ چې هغه نه وسله ده. او نه د وسلې قائم مقام دې.

تشريح:- امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی. چه کله په قصد سره اووهی. او په داسې شئ سره اووهی. کوم چې وسله نه شمارلې کیږی. نو دا شبه عمد دې. اګرچه ددې شئ په استعمالولو سره په عامه توګه (عام طور) باندې مرګ نه

(1) من حديث أبی هريرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال القاتل لايرث أخرجه الترمذی فی الفرائض باب ١٧ وابن ماجه فی الفرائض باب ٨ رقم ٢٧٣٥)_



واقع کیږی. یا په دې مرګ نشی کولې. نو په امسا ئې مړ کړی، یا ئې په کاڼړی مړ کړی، یا ئې په ډنډه (لرګی) مړ کړی، یا ئې قینچۍ باندې مړ کړی، چونکه دا وسله نه شمارلې کیږی. په دې وجه دا واړه صورتونه په شبه عمد کې داخل دی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ او فرمائیلی دی امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ و هم دا د امام شافعی رحمه الله قول دې إِذَا ضَرَبَهُ بِحَجَرٍ عَظِيمٍ أَوْ بِخَشَبَةٍ عَظِيمَةٍ فَهُوَ عَمْدٌ کله چې قاتل مقتول په لوئې کاڼړی یا غټ لرګی سره اووهلو. نو دا عمد دې.

تشريح:- صاحبین رحمهما الله او امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه په کوم شئ سره په عامه توګه (عام طور) باندې نشی قتلولې. هغې سره قصدا مړ کاوه سره به شبهِ عمد وی. اګرچه دا وسله نه وی. خو ددې په استعمالولو سره مرګ واقع کیږی. نو په داسې شئ سره په وژلو باندې قتل عمد وی. نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز که په لرګی وغیره سره مړ کړی. نو بیا به هم قتل عمد وی. او په لوئې کاڼړی ئې مړ کړو. نو بیا به هم قتل عمد وی. البته که په ډنډې سره ئې مړ کړو. نو شبه عمد به وی. خو که بلا ناغه ئې په ډنډه اووهی. نو بیا به قتل عمد وی.

وَشِبْهُ الْعَمْدِ او شبهِ عمد دا دې أَنْ يَتَعَمَّدَ ضَرْبَهُ چې د مقتول په داسې شئ سره د وهلو قصد اوکړی بِمَا لَا يُقْتَلُ بِهِ غَالِبًا چې هغې سره په عامه توګه (عام طور) باندې قتل نه کیږی لِأَنَّهُ يَتَقَاصَرُ مَعْنَى الْعَمْدِيَّةِ ځکه چې د عمدیت معنی به قاصر (ناممکن) وی بِاسْتِعْمَالِ آلَةٍ صَغِيرَةٍ په داسې وړې آلې استعمالولو سره لَا يُقْتَلُ بِهَا غَالِبًا چې دې سره په عامه توګه (عام طور) باندې نشی قتلولې لِمَا أَنَّهُ يُقْصَدُ بِهَا غَيْرُهُ. ځکه چې وړې آلې سره د غیر د قتل قصد کولای شی كَالتَّأْدِيبِ وَنَحْوِهِ لکه تادیب او ددې پشان، فَكَانَ شِبْهَ الْعَمْدِ، نو دا ( وړوکې آلې سره قتلول ) به شبهِ عمد وی وَلَا يَتَقَاصَرُ بِاسْتِعْمَالِ آلَةٍ او (دعمدیت معنی) به قاصر (او ناممکن) نه وی د داسې آلې په استعمالولو سره لَا تَلْبَثُ، کوم چې نه ایساریږی (یعنی د مرګ نه بغیر نه پریږدی). لِأَنَّهُ لَا يُقْصَدُ بِهِ إِلَّا الْقَتْلُ كَالسَّيْفِ ځکه چې دې سره د قتلولو اراده کیږی. لکه توره فَكَانَ عَمْدًا مُوجِبًا لِلْقَوَدِ نو دا به قتل عمد وی. چې دا به قصاص واجبوی. دلته د قتل شبهِ عمد بیان دې.

حل اللغة: ① خشبة: د سوکې والا لرګې ② التاديب: ادب ورکول ③ يتقاصر: کمیږی ④ تلبث: وخت تیروی ⑤ القود: قصاص

تشريح:- صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه کله وړه شان آله مثلاً ډنډه (لرګې) استعمال کړی. نو چونکه په دې سره په عامه توګه (عام طور) باندې قتل نه واقع کیږی. په دې وجه دې کې د عمدیت معنی قاصر ده. ځکه چې دلته به تادیب او تنبیه مقصود وی. نو دا به قتل شبه عمد وی. اوکه داسې آله ئې استعمال کړله. چه دا د مرګ نه بغیر نه پریږدی. لکه توره وغیره، نو داسې قتل، قتل عمد دې. او دلته به قصاص واجب وی.

وَلَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د نبی ﷺ فرمان دې { أَلَا إِنَّ قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمْدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا } خبرشئ چې د شبه عمد مقتول، د کوړې او امسا (کونتۍ) مقتول دې ،وَفِيهِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ (1) او په دې کې سل اوښان دی

تشريح:- د شبه عمد دوهم نوم خطاء عمد هم دې. عمد ورته ځکه وائی. چه د وژلو قصد دې. او خطاء ورته ځکه دې. چه داسې شئ استعمالوی. چه دا وسله نه ده. او نه د قتل لپاره موضوع ده. د امام صاحب رحمه الله دلیل دې. چې په حدیث کې دی. چه «ألا أن قتيل خطاء العمد» یعنی شبه عمد مقتول هغه دې. کوم چې په کوړې او امسا وغیره سره

(1) من حديث عمر بن العاص رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الديات باب ١٧ والنسائی فی القساص باب ٣٣ رقم ٤٤٦٠ وابن ماجه فی الديات باب ٥ رقم ٢٦٢٧)-

مړ کړي شوي وي. او په دې کې د ديت سل اوښان دي. نو اوګورئ چې دې حديث کې د مطلق امسا ذکر دې. چه دا ډنډې او امسا دواړو ته ګډ دې. نو د صاحبينو رحمهما الله دا فرمائيل، چه ددې نه مراد ډنډه ده. دا مطلق باطلول دې. چه دا جائز نه دي.

وَلِأَنَّ الْآلَةَ غَيْرُ مَوْضُوعَةٍ لِلْقَتْلِ اوځکه چې آله د قتل لپاره نه موضوع ده وَلَا مُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ، او نه په قتل کې استعمالولې شي إِذْ لَا يُمْكِنُ اسْتِعْمَالُهَا ځکه چې ددې آلې استعمال ممکن نه دې عَلَى غِرَّةٍ مِنَ الْمَقْصُودِ قَتْلُهُ، د هغه سړي په غفلت باندې، د کوم چې د قتل قصد وي وَبِهِ يَحْصُلُ الْقَتْلُ غَالِبًا او ددې په وجه په عامه توګه (عام طور) باندې (په دهوکه سره د استعمالولو په وجه) قتل واقع کيږي فَقَصُرَتِ الْعَمْدِيَّةُ نَظَرًا إِلَى الْآلَةِ، نو داآلې لحاظ ساتلو سره به عمديت قاصروي فَكَانَ شِبْهُ الْعَمْدِ نو دا به شبه عمد وي كَالْقَتْلِ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا الصَّغِيرَةِ د کوړې او وړې ډنډې (امسا) پشان

حل اللغة: ① موضوعة: تياره شوي ② السوط: کوړه ③ العصا: کونتې۔

تشريح:- بيا دويمه وجه دا هم ده. چه امسا وي او که ډنډه وي. ددې دواړو وضع د قتل لپاره نه کيږي. او نه دا د قتل لپاره استعمالولې شي. ځکه وسله هغه ده. چه د چا د قتلولو اراده ده. هغه نا خبره دې. او اچانک دې وار اوکړو. او هغه مړ شو. لکه څنګه چې وسلو کې کيږي. خو امسا يا ډنډه د مقتول ناخبرئ سره استعمالول ناممکن دی. ځکه چې دې کې يو خل وهل په عامه توګه (عام طور) باندې د قتل لپاره نه کافي کيږي. بلکه بار بار وهل به ضروري وي. او په داسې صورت کې به غفلت نه وي. بلکه غفلت صرف په رومبی ګزار کې کيداې شي. او چونکه د غفلت په صورت کې ددې استعمال ناممکن دې. په دې وجه قتل کې د عمديت معنی قاصر شوه. ځکه چې د قاتل د نفس قصد لحاظ نه دې. بلکه د آلې لحاظ دې. نو په امسا وغيره سره قتلول به هم دغه ډول شبه عمد وي. لکه څنګه چې کوړې او ډنډې سره قتل شبه عمد دې.

### د قتل شبه عمد موجب او حکم

قَالَ قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَمُوجِبُ ذَلِكَ عَلَى الْقَوْلَيْنِ الْإِثْمُ)، او د شبه عمد موجب د دواړو قولونو مطابق ګناه ده لِأَنَّهُ قَتَلَ ځکه چې قاتل قتل اوکړو وَهُوَ قَاصِدٌ فِي الضَّرْبِ حالانکه هغه د وهلو قصد کونکې دې (وَالْكَفَّارَةُ) لِشَبَهِهِ بِالْخَطَإِ او کفاره واجب ده. ددې د مشابه کيدو په وجه قتل خطاء سره (وَالدِّيَةُ مُغَلَّظَةٌ عَلَى الْعَاقِلَةِ) او ددې موجب) عاقله باندې ديتِ مغلظه دې.

تشريح:- دا د قتل شبه عمد موجب او حکم بيان دې. چه ددې موجب ګناه او کفاره او ديت دې. او د شبه عمد د فريقينو په نيز هم دا حکم دې. ګناه ځکه واجب ده. چه ده په قصد سره وهلې دې. چه په دې سره قتل واقع شوې دې. او کفاره ځکه واجب ده. چه دا دقتل خطاء مشابه ده. او ديت مغلظه به واجب وي. چه دا به دده په خاندان واجب وي.

وَالْأَصْلُ او قاعده کليه دا ده أَنَّ كُلَّ دِيَةٍ وَجَبَتْ بِالْقَتْلِ ابْتِدَاءً چې هر هغه ديت کوم چې قتل سره په پيل کې واجب وي لَا بِمَعْنًى د داسې معنی په وجه نه، يَحْدُثُ مِنْ بَعْدُ کوم چې روستو پيدا شي فَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو دا ديت به عاقله باندې وي اعْتِبَارًا بِالْخَطَإِ په قتل خطاء باندې قياس کاوه سره وَتَجِبُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ او دا ديت به په دريو کالو کې واجب وي. لِقَضِيَّةِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ[1] د عمر بن خطاب رضي الله عنه د فيصلې په وجه، وَتَجِبُ مُغَلَّظَةً او مغلظ به واجب وي، وَسَنُبَيِّنُ صِفَةَ التَّغْلِيظِ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او موږ به ډير نژدې د تغليظ صفت بيان کړو. انشاء الله تعالى

حل اللغة: ① سنين: جمع د سن، کال۔

تشريح:- په عاقله باندې د ديت د جوب لپاره قاعده کليه ذکر کوی چې کوم ديت براه راست (بغير واسطې) قتل

[1] أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه (نصب الراية: ٨٥١٥)۔



سره واجبيږي. هغه د قاتل په خاندان واجبيږي. او که د قتل نه روستو مصالحت وغيره سره ديت واجب شي. نو هغه پخپله قاتل باندې واجبيږي. او دلته ديت دځه واسطې نه بغير (براه راست) قتل سره واقع شوي دې. او د ديت قسطونه به په دريو کالو کې ادا کولې شي. ځکه چې عمرفاروق رضي الله عنه هم دغه ډول فيصله فرمائيلې ده. او د مغلظه تفصيل علامه مرغيناني رحمه الله روسته بيانوي

### په قتل عمد او قتل شبه عمد کښې د قاتل ميراث نه محروميدل

(وَيَتَعَلَّقُ بِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ)، او متعلق کيږي، شبه عمد سره د ميراث نه محروميدل لِأَنَّهُ جَزَاءُ الْقَتْلِ ځکه چې دا د قتل سزا ده وَالشُّبْهَةُ تُؤَثِّرُ فِي سُقُوطِ الْقِصَاصِ او شبه د قصاص ساقطيدو کې موثر ده دُونَ حِرْمَانِ الْمِيرَاثِ د ميراث په محروميدو کې نه ده وَمَالِكٌ وَإِنْ أَنْكَرَ مَعْرِفَةَ شِبْهِ الْعَمْدِ او مالك اګرچه د شبه عمد انکار کړې دې فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا أَسْلَفْنَاهُ نوحجت ددوی خلاف هغه دې. کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- لکه څنګه چې قتل عمد کې د ميراث نه محرومه کيږي. دغه ډول په قتل شبه عمد کې هم د ميراث نه محروميږي. ځکه چې دا اصول مقرر دې. چه قاتل ته دخپل مورث ميراث نه ملاويږي. او دا هم قتل دې. که څوک پوښتنه اوکړي چې دا قتل دې. خو په دې قتل کې شبه ده؟ نو موږ ورته وايو چې د شبه په وجه قصاص ختم کړې شو. خو د ميراث نه محروميدل به نشی ختمولې. امام مالك رحمه الله فرمانی. ما ته معلومه نه ده. چه شبه عمد څه شئ دې. بلکه د قتل خو دوې (دوه) قسمونه دی ① قتل عمد ② قتل خطاء، مرغيناني رحمه الله فرمانی. چه کوم حديث موږ وړاندې ذکر کړې دی. دا د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دې.

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَالْخَطَأُ عَلَى نَوْعَيْنِ) و (قتل) خطاء په دوې (دوه) قسمه دې خَطَأٌ فِي الْقَصْدِ يو د ارادې خطاء، وَهُوَ أَنْ يَرْمِيَ شَخْصًا او هغه دا دې. چه په غشی يو داسې سړې اولی يَظُنُّهُ صَيْدًا چې ده په هغه باندې د ښکار ګمان کړې دې، فَإِذَا هُوَ آدَمِيٌّ نو اچانک هغه سړې دې أَوْ يَظُنُّهُ يا په هغه د حربی ګمان کوی حَرْبِيًّا فَإِذَا هُوَ مُسْلِمٌ نو اچانک هغه مسلمان دې.

تشريح:- د قتل خطاء موجب کفاره او ديت دې. او ديت به په عاقله وي. او ددې اداکول به په دريو کالو کې وي. چه ددې دليل تير شوې دې. او د خطاء دوې (دوه) قسمونه دی. يو د ارادې خطاء ده. د دې مثال لکه چې هوسئ ئې ايشتله، خو هغه سړې اوختو. يا ئې حربی ويشتلو. خو هغه مسلمان اوختلو. دا د ارادې خطاء ده.

وَخَطَأٌ فِي الْفِعْلِ او دوهم خطاء په فعل کې وَهُوَ أَنْ يَرْمِيَ غَرَضًا او هغه دا دې. چه په يوه نښانه غشې اولی. فَيُصِيبَ آدَمِيًّا نو دا يو سړي ته اولګی وَمُوجِبُ ذَلِكَ الْكَفَّارَةُ، وَالدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او ددې موجب کفاره او ديت دې. عاقله باندې لِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ} الْآيَةَ د الله تعالى د فرمان {فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ} ﴿النساء ٩٢﴾ په وجه وَهِيَ عَلَى عَاقِلَتِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ او ديت به د قاتل په عاقله باندې دريو کالو کې وي، لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه، کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- دوهم ډول د فعل خطاء ده. د دې مثال لکه چې په يوه نښانه ئې غشې اوويشتلو. خو هغه اونه لګيده. بلکه يو سړې اولګيدو. دا د فعل خطاء ده. بهرحال حکم د دواړو يو دې. چه کفاره او ديت واجب دې. چه ددې دليل دا آيت دې. کوم چې متن کې ذکر دې.

### په قتل خطاء کښې ګناه شته اوکه نه؟

(وَلَا إِثْمَ فِيهِ) يَعْنِي فِي الْوَجْهَيْنِ او په قتل خطاء کې دواړو صورتونو کې ګناه نشته قَالُوا مشائخو فرمائيلی دی. الْمُرَادُ إِثْمُ الْقَتْلِ چه مراد د قتل ګناه ده فَأَمَّا فِي نَفْسِهِ فَلَا يَعْرَى عَنِ الْإِثْمِ بهرحال فی نفسه دا فعل د ګناه نه خالی نه دې مِنْ حَيْثُ تَرْكِ الْعَزِيمَةِ د عزيمت په پريخودو وَالْمُبَالَغَةِ فِي التَّثَبُّتِ فِي حَالِ الرَّمْيِ او احتياط کې د مبالغې د پريخودو په

وجه، دوېشتلو په وخت، اِذْشَرْعُ الْكَفَّارَةِ يُؤْذِنُ بِاِعْتِبَارِ هٰذَا الْمَعْنٰى ځکه چې د کفارې مشروع کېدل ددې معنی د معتبر والی خبر ورکوي

تشريح:- دلته علامه مرغيناني رحمه الله د يوې خبرې وضاحت کوي هغه دا چې امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. چې په قتل خطاء کې ګناه نشته. که په اراده کې خطاء وي. اوکه په فعل کې خطاء وي. خو دا عجيبه خبره وه. چه ګناه نشته. خو بيا به هم د ميراث نه محروم وي؟ نو ځواب ورکوي چې چونکه د قتل قصد نه دې کړې. په دې وجه کومه چې د قصد ګناه کېږي. هغه به نه وي. خو نفس قتل دلته کې هم ګناه ده. ځکه چې ده په عزيمت باندې عمل پرېښودو. او د غشي ويشتلو په وخت چې د کوم احتياط نه کار اخستل پکار دی. هغه ئې پرېښودو. او په نفس قتل کې د ګناه دليل دا دې چه دلته کفاره مشروع ده. او د ګناه نه بغير به کفاره مشروع نه وي. په دې وجه به د ميراث نه محروميږي. نو وې فرمائيل.

## قاتل خطاء هم د ميراث نه محروميږي

(وَيُحْرَمُ عَنِ الْمِيرَاثِ)، او دا قاتل به د ميراث نه محروميږي لِأَنَّ فِيهِ اِثْمًا فَيَصِحُّ تَعْلِيقُ الْحِرْمَانِ بِهِ، به ځکه چې دې کې ګناه ده. نو په ده باندې محروميدل معلق کول صحيح دی بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې صورت، اِذَا تَعَمَّدَ الضَّرْبَ مَوْضِعًا مِنْ جَسَدِهِ کله چې قاتل د مقتول د بدن په يوه برخه کې د وهلو اراده کړې وی فَأَخْطَأَ نو هغه خطاء شوه فَأَصَابَ مَوْضِعًا آخَرَ او په بل ځاۍ ئې اولګيدو فَمَاتَ نو هغه مړ شو حَيْثُ يَجِبُ الْقِصَاصُ، نو قصاص به واجب وی لِأَنَّ الْقَتْلَ قَدْ وُجِدَ بِالْقَصْدِ إِلٰى بَعْضِ بَدَنِهِ، ځکه چې قتل اوموندې شو. دده د بدن بعضې برخې اړخ ته د ارادې کاوه په وجه وَجَمِيعُ الْبَدَنِ كَالْمَحَلِّ الْوَاحِدِ او پوره بدن يو محل دی

تشريح:- د تير شوی تقرير نه معلومه شوه. چه په قتل خطاء کې هم ګناه ده. نو که مقتول د قاتل وارث دې. نو قاتل ته به ميراث نه ملاويږي. يو سړی د زيد ځپه نشان (ننبه) مقرر کړله، او دا دهغه په سينه باندې اولګيدو. نو دلته به قصاص واجب وی. ځکه چې پوره بدن يو محل دې. او دې محل اړخ ته دده قصد ښکاره دې. نو په ده باندې د قتل عمد تعريف صادقيږي.

## د جاري مجري (قائم مقام) تعارف او حکم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَمَا أُجْرِيَ مَجْرَى الْخَطَإِ) او کوم چې د قتل خطاء قائم مقام دې مِثْلُ النَّائِمِ يَنْقَلِبُ عَلٰى رَجُلٍ لکه اوده کس په يو سړي را واوړي فَيَقْتُلُهُ نو هغه مړ کړي فَحُكْمُهُ حُكْمُ الْخَطَإِ فِي الشَّرْعِ، نو ددې حکم د قتل خطاء حکم دې. په شريعت کې وَأَمَّا الْقَتْلُ بِسَبَبٍ او هغه چې قتل دې د سبب په ذريعه كَحَافِرِ الْبِئْرِ لکه د خپل ملك نه علاوه (د بل په ملك) کې څاه کنستونکې وَوَاضِعِ الْحَجَرِ فِي غَيْرِ مِلْكِهِ، او کاڼړې ايخودونکې، وَمُوجِبُهُ او ددې موجب اِذَا تَلِفَ فِيهِ آدَمِيٌّ کله چې يو سړې په دې کې مړ شي،، الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ، عاقله باندې ديت دې. لِأَنَّهُ سَبَبُ التَّلَفِ ځکه چې دا د هلاکاوه سبب دې وَهُوَ مُتَعَدٍّ فِيهِ او قاتل په دې کې متعدی دې فَأُنْزِلَ مُوقِعًا دَافِعًا نو دې به د غورځونکې لکه ورکونکې په مرتبه کې راکوزولې شي فَوَجَبَتِ الدِّيَةُ نو ديت به واجب وی (وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ او په دې کې کفاره نشته وَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ او په دې سره د ميراث نه محروميدل نه متعلق کېږي.

حل اللغة: ① موقعاً: په کوهي کې غورځونکې، ② دافعاً: په کاڼړي غورځونکې، ③ نائم: ويده (اوده) ④ الحافر: کنستونکې ⑤ الحجر: کاڼړې

تشريح:- د قتل خطاء، نه د فراغت نه روسته مرغيناني رحمه الله هغه قتل بيانوی. کوم چې د قتل خطاء قائم مقام دې. لکه مثلاً يو سړې اوده وو. هغه په اړخ واوختلو. خو په يو بل سړی راپريوتلو. چه ددې په وجه هغه مړ شو. نو ددې حکم به هم هغه وی. کوم چې د قتل خطاء دې. ددې نه روسته بيا مرغيناني رحمه الله د قتل سبب ذکر کړو. لکه يو سړي داسې ځکه کې څاه اوکنستلو. کوم چې دده ملکيت نه دې. او څوك په دې کې پرېوتلو. او مړ شو. يا ده په



داسې ځمکه کې کاڼړې کېخودو. چه په دې سره يوکس تيندك (ډغره) اوخوړلو. او مړ شو. نو په دې کې عاقله باندې ديت واجب دې. ځکه چې دا څاه کنستل، او کاڼړې ايخودل د هلاکت سبب دې. او کله چې د سبب مرتکب متعدی کيږي. نو سبب د علت په مرتبه کې راکوزولې شي. او دلته دده تعدی (زياتې) ښکاره دې. نو داسې به ګڼړلې شي. ګويا چې ده پخپله هغه په کوهي کې غورځولې دې. او پخپله ئې هغه په کاڼړي ورديکه کړې دې. نو ديت به واجب وی. البته په دې کې به کفاره واجب نه وی. او نه به دا قاتل د ميراث نه محروميږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعي رحمه الله اوفرمائيل رحمه الله يُلْحَقُ بِالْخَطَإِ فِي أَحْكَامِهِ؛ چې دا (د قتل سبب) به قتل خطاء سره لاحق کولې شی. ددې په احکامو کې لِأَنَّ الشَّرْعَ أَنْزَلَهُ قَاتِلًا ځکه چې شريعت ده لره د قاتل په درجه کې راکوز کړې دې.

تشريح:- امام شافعي رحمه الله فرمائي چه په قتل سبب کې ديت دې. او ور سره کفاره او د ميراث نه محروميدل هم شته او زمونږ احنافو په نيز نه کفاره شته او نه د ميراث نه محروميدل شته. دامام شافعي رحمه الله دليل دا دې چې شريعت ده لره قاتل ګرځولې دې. او د قتل معمولی درجه قتل خطاء ده. نو د قتل خطاء احکام به په دې جاری کيږي.

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دې اَلْقَتْلُ مَعْدُومٌ مِنْهُ حَقِيقَةً چې دده د اړخه حقيقت کې قتل معدوم دې فَأُلْحِقَ بِهِ فِي حَقِّ الضَّمَانِ، نو دې د ضمان په حق کې قتل خطاء سره لاحق کړې شوې دې فَبَقِيَ فِي حَقِّ غَيْرِهِ عَلَى الْأَصْلِ، نو د ضمان په حق کې به د قتل سبب اصل باندې قائم پاتې وی وَهُوَ وَإِنْ كَانَ يَأْثَمُ بِالْحَفْرِ فِي غَيْرِ مِلْكِهِ، او اګرچه (سبب پيداکونکې) د خپل ملك نه په علاوه کې د کوهي کنستلو په وجه به ګناه ګار وی لَا يَأْثَمُ بِالْمَوْتِ (خو) د مرګ په وجه به ګناه ګار نه وی عَلٰى مَا قَالُوا لکه څنګه چې مشائخو فرمائيلی دی وَهٰذِهِ كَفَّارَةُ ذَنْبِ الْقَتْلِ او دا (کفاره د قتل) د قتل د ګناه کفاره ده ،، وَكَذَا الْحِرْمَانُ بِسَبَبِهِ او دغه ډول د ميراث نه محروميدل د ګناه په سبب سره دی.

تشريح:- موږ ورته وايو چه په حقيقت کې د قاتل د اړخه قتل معدوم دې. البته دا صرف د قتل سبب دې. نو ددې سبب کېدو په وجه موږ په ده باندې ديت واجب کړې دې. خو د کفارې او د ميراث نه د محروميدو په اړه کې موږ دا ددې پخپل حقيقت باندې قائم ساتلې دې. چه دا دده د اړخه قتل نه دې. نو نه به کفاره وی. او نه به د ميراث نه محروميږي. او کفاره د قتل او د ميراث نه محروميدل به هغه وخت کېږي. کله چې قاتل د قتل په وجه ګناهګار وی. او دې د مرګ په وجه ګناهګار نه دې. بلکه د غير په ملك کې د کوهي کنستلو په وجه ګناهګار دې.

## د نفس نه په کم کښې د قتل عمد او قتل شبه عمد حکم

(وَمَا يَكُونُ شِبْهَ عَمْدٍ فِي النَّفْسِ فَهُوَ عَمْدٌ فِيمَا سِوَاهَا)؛ او کوم قتل چې په نفس کې شبه عمد وی. هغه د نفس نه په علاوه کې قتل عمد دې لِأَنَّ إِتْلَافَ النَّفْسِ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْآلَةِ، ځکه چې د نفس هلاکول د آلې د اختلاف په وجه مختلف کېږي. وَمَا دُونَهَا لَا يَخْتَصُّ بِهِ بِآلَةٍ او کوم چې د نفس نه کم دې. د هغې ضائع کول د يو (خاص) آلې سره مخصوص نه دی. دُونَ آلَةٍ نه په بلې آلې سره. والله اعلم بالصواب.

تشريح:- کله قتل کولې شي. او کله اندامونه پرېکول او ماتول وغيره کېږي. چه ددې بيان روستو راروان دې. نو مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل. چه د قتل عمد او شبه عمد کېدل، صرف د نفس د قتل په اړه کې دی. د اندامونو ماتول او کټ کاوه کې واړه عمد شمارلې کېږي. ځکه چې دا خبره په قتل کې چليږي. چه په دې سره دده اراده د قتل وه او که نه وه. خو په اندامونو پرې کاوه کې نه چليږي. ځکه چې سترګه لکه څنګه چې په چاړې سره اوښکلې کېدای شي. دغه ډول په کوړې او ډنډې (امسا) وغيره سره هم اوښکلې کېدای شي.

## باب ما يوجب القصاص وما لا يوجبه

ژباړه:- (دا) باب د هغه (امورو په بیان کې) دی. کوم چې موجب د قصاص دی. او کوم نه دی.

تشریح:- مرغیناني رحمه الله د قتل اقسام بیان کړی دی. چه په دې کې یو قتل عمد وو. چه دا د قصاص موجب وو. خو هر وخت قصاص نه واجبوی. بلکه کله واجبوی. او کله نه واجبوی. په دې وجه د تفصیل حاجت راپیښ شو. په دې باب کې مرغیناني رحمه الله ددې تفصیل بیانوی.

## په کوم قتل سره قصاص واجبیږي؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل (اَلْقِصَاصُ وَاجِبٌ بِقَتْلِ كُلِّ مَحْقُونِ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيدِ) هر هغه سړي د کوم چې همیشه لپاره وینه محفوظ وی. د هغه په قتل سره قصاص واجبیږی. اِذَا قَتَلَ عَمَدًا کله چې دې په عمد (قصد) سره قتل کړی شی أَمَّا الْعَمَدِيَّةُ بهرحال عمدیت فَلِمَا بَيَّنَّاهُ نو د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دي وَأَمَّا حَقْنُ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيدِ او بهرحال همیشه لپاره د وینې محفوظ کیدل، فَلِتَنْتَفِيَ شُبْهَةُ الْإِبَاحَةِ نو چې د وینې د اباحت شبه منتفی شی وَتَتَحَقَّقَ الْمُسَاوَاةُ او مساوات متحقق شی.

حل اللغة: ① محقون: محفوظ ② التأبيد: همیشه لپاره ③ المساواة: برابری ﴿

تشریح:- په قتل عمد سره هغه وخت قصاص واجبیږی. کله چې مقتول داسې سړی وی. چه دهغه وینه همیشه لپاره محفوظه وی. لکه مسلمان یا ذمی، ځکه چې د ذمی امان هم همیشه لپاره دې. کافر، حربی، مرتد، باغی مستامن دا واړه ددې فهرست نه خارج دی. نو ددوی په قتل سره قصاص نه واجبیږی.

امام ابوالحسین قدوری دوې (دوه) قیده لګولې دی. ① عمدیت چې ددې بیان د کتاب الجنایات په پیل کې تیر شوې دې. ② همیشه لپاره محفوظ الدم کیدل

نو ددې دوې (دوه) امله دی. ① که دا شرط نه وی. نو ددې مقتول د وینې مباح کیدلو شبه به پاته وی. او شبه راتلو سره به قصاص ختمیږی. ② چې د قاتل او مقتول په منځ کې مساوات راشی. چه مقتول محفوظ الدم وو. نو دده په بدله کې به محفوظ الدم قاتل هم قتلولې شی.

که څوک دا سوال اوکړی چې کوم سړی چې دارالحرب کې مسلمان شو. نو هغه هم همیشه لپاره محفوظ الدم شو. حالانکه دده د قاتل نه قصاص نشی اخستلې؟ نو موږ وایو چې په اسلام راوړلو سره ده ته عصمت مؤثمه حاصل شوې دې. او عصمت مقومه په دارالاسلام سره حاصلیږی. او د عصمت مقومه حاصلولو نه بغیر به قصاص نشی اخستلې.

## غلام او آزاد به د یو بل په قتل کښې قصاص کولای شي اوکه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائیل (وَيُقْتَلُ الْحُرُّ بِالْحُرِّ) او آزاد به قتلولې شی. د آزاد په بدله کې وَالْحُرُّ بِالْعَبْدِ او آزاد د غلام په بدله کې، لِلْعُمُومَاتِ د عموماتو (د عامو روایاتو) په وجه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا يُقْتَلُ الْحُرُّ بِالْعَبْدِ او امام شافعي رحمه الله فرمائی. چه آزاد به د غلام په وجه نشی قتلولې لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ د الله تعالی د فرمان ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ ﴿البقره:١٧٨﴾ په وجه وَمِنْ ضَرُورَةِ هَذِهِ الْمُقَابَلَةِ او ددې مقابلې د اړتیا څخه دا خبره ده أَنْ لَا يُقْتَلَ حُرٌّ بِعَبْدٍ، چې آزاد د غلام په بدله کې قتل نکړې شی وَلِأَنَّ مَبْنَى الْقِصَاصِ عَلَى الْمُسَاوَاةِ او ځکه چې د قصاص بنا (بنیاد) مساوات باندې دې وَهِيَ مُنْتَفِيَةٌ بَيْنَ الْمَالِكِ وَالْمَمْلُوكِ او مساوات منتفی دې. د آزاد او غلام په منځ کې وَلِهَذَا لَا يُقْطَعُ طَرَفُ الْحُرِّ بِطَرَفِهِ، او هم په دې وجه به د غلام د اندام په بدله کې د آزاد اندام نشی کټ کولې بِخِلَافِ الْعَبْدِ بِالْعَبْدِ په خلاف د غلام، د غلام په بدله کې لِأَنَّهُمَا يَسْتَوِيَانِ ځکه چې دوی دواړه برابر دی وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ حَيْثُ يُقْتَلُ بِالْحُرِّ، او په خلاف د غلام په دې حیثیت سره، چې دې به د آزاد په بدله کې قتلولې شی، لِأَنَّهُ تَفَاوُتٌ إِلَى نُقْصَانٍ ځکه چې تفاوت د نقصان په اړخ دې

حل اللغة: ① العصمة: ساتنه ② يعتمد: اعتماد کوی ﴿



تشریح:- د احنافو رحمهم الله په نیز به د غلام په بدله کې قصاص کې قتلولې شي او دامام شافعي رحمه الله په نیز نشی قتلولې او دا اختلاف په دې صورت کې دې. کله چې مقتول غلام وی. او قاتل آزاد وی. اوکه دواړه غلامان وی. نو بالاتفاق قصاص شته. اوکه دواړه آزاد وی. بیا هم بالاتفاق قصاص شته. اوکه قاتل غلام وی او مقتول آزاد وی نو په دې صورت کې به په اتفاق سره غلام قتلولې شی.

امام شافعي رحمه الله ① ددې آیت نه استدلال کړې دې. ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ دلته غلام د غلام، او آزاد د آزاد په مقابله کې کیدو نه دا معاملیږی. چه د غلام په بدله کې به آزاد نشی قتلولې.

② د امام شافعي رحمه الله عقلی دلیل دا دې. چه د قصاص لپاره ضروری ده. چه د قاتل او مقتول په منځ کې مساوات (او برابری) وی. او په مالك او مملوك، او قادر او عاجز په منځ کې هیڅ مساوات نشته. نو قصاص به هم نه وی. ③ امام شافعي رحمه الله یو دلیل دا هم بیان کړې دې. که آزاد سړی د یو غلام یو اندام کټ کړی. نو د آزاد اندام به قصاص کې نشی کټ کولې. حالانکه د اندام نه زیات محترم نفس دې. نو هرکله چې اندام کې قصاص وانخستلې شو. نو په نفس کې به په درجه نشی اخستلې.

که څوك په امام شافعي رحمه الله باندې اعتراض اوکړی چې قاتل غلام وی او مقتول آزاد وی نو په دې صورت کې هم تسویه نشته حالانکه امام شافعي رحمه الله په دې صورت کې د غلام نه چې قاتل دې د قصاص اخستلو قائل دې نو علامه مرغیناني رحمه الله د هغوی د اړخه دا دلیل ذکر وی چې مساوات نشته. خو دلته کمې او قصور (نقصان) قاتل کې دې. او ددې په عکس کې قصور او نقصان مقتول کې وو. په دې وجه چې کوم نقصان او کمې په قاتل کې دی. ما دا مانع د قصاص نه دې شمارلې. دا واړه د امام شافعي رحمه الله دلیلونه وو.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّ الْقِصَاصَ يَعْتَمِدُ الْمُسَاوَاةَ فِي الْعِصْمَةِ چې قصاص اعتماد لری. په عصمت (او حفاظت) کې برابری باندې وَهِيَ بِالدِّينِ او ساتنه د دین وَبِالدَّارِ یا دارالاسلام په وجه کیږی وَيَسْتَوِيَانِ فِيهِمَا او دې دواړو کې دوی برابر دی وَجَرَيَانُ الْقِصَاصِ بَيْنَ الْعَبْدَيْنِ يُؤْذِنُ او د دوې (دوه) غلامانو په منځ کې قصاص جاري کیدل، خبر ورکوی، بِانْتِفَاءِ شُبْهَةِ الْإِبَاحَةِ د وینې د اباحت د شبهې منتفی کیدو،

تشریح:- په مختلف فیه مسئله کې زموږ دلیل ددې دلیلونو عموم دې. لکه ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ او لکه مثلاً (تقدیم وتاخیر اوکړه) ﴿اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ او لکه ﴿العمد قود﴾

او دامام شافعي رحمه الله د قاتل او مقتول په مینځ کې د مساوات د دلیل نه دا ځواب دې چې مساوات کیدل پکار دی. خو مساوات په ساتنه کې کیدل پکار دی. یعنی دواړه معصوم الدم وی. او د ساتنه حصول اسلام او دارالاسلام سره کیږی. او دلته آزاد او غلام دواړه مسلمانان دی. او دواړه په دارالاسلام کې دی. نو دا دواړه معصوم دی. او د دواړو په منځ کې مساوات دې. او په غلام کې ساتنه د ثبوت دلیل دا هم دې. چه قاتل او مقتول دواړه غلامان وی. نو په دې صورت کې بالاتفاق قصاص شته. که د غلام مقتول په عصمت کې څه شبه وې. نو دلته به قصاص نه وو. نو معلومه شوه. چه د غلام په عصمت کې هیڅ قصور نشته.

وَالنَّصُّ تَخْصِيصٌ بِالذِّكْرِ او نص په ذکر کې تخصیص دې فَلَا يَنْفِي مَا عَدَاهُ او دا به د ذکر شوی نه د علاوه نفی نه کوی

تشریح:- په دې عبارت سره دا د امام شافعي رحمه الله د نقلی دلیل ځواب دې. چه څومره خبره ذکر ده. دا خودل د آیت مقصود دی. او د ﴿الحر بالعبد﴾ د سره په دې کې ذکر نشته. نو مذکور د غیر مذکور نفی نه کوی. ځکه چې حنفیان مفهوم مخالف اعتبار نه کوی. حسامی کې دی. ﴿ان التنصیص علی الشیء باسمه العلم یوجب التخصیص و نفی الحکم عما عداه و هذا فاسد لأن النص لم یتناوله فکیف یوجب الحکم فیه انما نفیاً او إثباتاً﴾

علامه محمد یوسف تالوی د هدایه په شرح اشرف الهدایه کې لیکلی دی چې علامه سیوطی رحمه الله په درمنثور کې دا آیت منسوخ ګرځولې دې. او ددې ناسخ ئې ﴿أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ ګرځولې دې. نو ددې تحقیق مطابق به د ذکر

شوی ایت نه د سره استدلال صحیح نه وی.

### د ذمي په بدله کښې به مسلمان قصاص کولای شي اوکه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَالْمُسْلِمُ بِالذِّمِّيِّ) او قتلولې به شي مسلمان د ذمی په بدله کې، خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ اختلاف دې د امام شافعی رحمه الله لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د امام شافعی رحمه الله دليل د نبی کریم ﷺ فرمان دې {لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ}(١) چه،، د كافر په بدله کې به مؤمن نشی قتلولې،، وَلِأَنَّهُ لَا مُسَاوَاةَ بَيْنَهُمَا وَقْتَ الْجِنَايَةِ او ځکه چې په وخت د جنایت د دوی دواړو په منځ کې هیڅ مساوات نشته وَكَذَا الْكُفْرُ مُبِيحٌ فَيُورِثُ الشُّبْهَةَ او هم دغه ډول کفر مبیح دې.نو دا به شبه پیدا کوی.

تشریح:- که مسلمان ذمی قتل کړو.نو د ذمی په بدله کې به قصاصاً مسلمان قتلولې شی.او که نه؟ په دې کې هم زموږ او د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې.امام شافعی رحمه الله د عدم مساوات په وجه د قصاص قائل نه دې.او حنفیه د قصاص قائل دی.او مساوات ثابت منی.امام شافعی رحمه الله فرمائی. حديث کې دی. «لا يقتل مؤمن بكافر» «رواه أبوداؤد» ددې نه ښکاره واضح ده.چه د کافر په بدله کې به مسلمان نشی قتلولې.ځکه چې ذمی کافر دې.او په وخت د قتل کفر په ده کې موجود دې.او کفر فی نفسه د وینې د اباحت سبب دې.نو په دې کې د عدم مساوات شبه موجود ده.او هرکله چې شبه اوموندې شوه.نو قصاص ساقط شو.

وَلَنَا او زموږ دلیل هغه حدیث دې. مَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتَلَ مُسْلِمًا بِذِمِّيٍّ}(٢) کوم چې نقل دې.چه نبی ﷺ د ذمی په بدله کې مسلمان قتل کړو. وَلِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ فِي الْعِصْمَةِ ثَابِتَةٌ او ځکه چې مساوات په عصمت (او حفاظت) ثابت دې نَظَرًا إِلَى التَّكْلِيفِ وَالدَّارِ د تكليف يا دار (یعنی دارالاسلام) اړخ ته په نسبت کاوه سره وَالْمُبِيحُ كُفْرُ الْمُحَارِبِ دُونَ الْمُسَالِمِ او مبیح د محارب کفر دې.مسالم (ذمی کیدل) نه دې،وَالْقَتْلُ بِمِثْلِهِ يُؤْذِنُ بِانْتِفَاءِ الشُّبْهَةِ.او د ذمی قتلول د خپل مثل په بدله کې د شبهې ختمیدلو نفی کوی

حل اللغة* ① المحارب: هغه کافر چې په دارالحرب کې اوسیږی.② مسالم: ذمه کیدل»

تشریح:- زموږ دلیل دا دې چې نبی کریم ﷺ یو مسلمان په قصاص کې قتل کړې وو.چه هغه ذمی قتل کړې وو. (کذا في دارقطنی)

«ولأن المساواة.....» د امام شافعی رحمه الله په نیز نفس آدمیت (سړی توب) د ساتنه حاصلیدو سبب دې. ددې تفصیل په «هدایه دوهم جلد،،کتاب السیر،،» کې ذکر دې.او ذمی هم سړې دې.او دې فرمائی.چه سړې ددې لپاره پیدا کړې شوې دې.چه دې د تکلیف شرعیه مکلف وی.او د تکلیف لپاره ضروری ده.چه دده سره کار لرل حرام دی.

«لنډیز د کلام دا چې د امام شافعی رحمه الله په نیز نفس آدمیت (سړې کیدلو) سره عصمت موثمه ثابتیږی.او زموږ په نیز عصمت موثمه اسلام سره حاصلیږی.او عصمت مقومه دارالاسلام سره حاصلیږی .نو ذمی سړې هم دې.او د دارالاسلام اوسیدونکې هم دې.نو که د امام شافعی رحمه الله اعتبار سره اوګورئ.بیا هم په مسلمان او ذمی کې مساوات دې.او که د حنفیانو په اعتبار سره اوګورئ.بیا هم دوی دواړو کې مساوات دې...إلى التكليف،، یعنی عند الشافعی،،...والدار،، یعنی عندنا،

(١) من حديث علي رضي الله عنه أخرجه البخاري في العلم باب ٣٩ والترمذي في الديات باب ١٦ والنسائي في القسامة باب ١٣ والدارمي في الديات ١١ رقم ٥والنسائي في القسامة القود والديات باب ١٣ رقم ٤٤١٢)_

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنه أخرجه الدارقطني في سننه (١٣٤\٣)_



«او امام شافعی! چې دا څه فرمایي چې کفر مبیح دې.دا مطلقا صحیح نه ده.بلکه د حربی کفر مبیح دې.د مسالم (ذمی) کفر مبیح نه دې.او ذمی به د ذمی په بدله کې بالاتفاق قتلولې شی.دا قتل ددې خبرې دلیل دې.چه دده د وینې په محفوظ کیدو کې هیڅ شبه نشته.ګنی قصاص به نه جاری کیدو.

وَالْمُرَادُ بِمَا رَوَى او مراد د هغه حدیث نه کوم چې امام شافعی رحمه الله روایت کړې دې الْحَرْبِيُّ لِسِيَاقِهِ حربی دې.د حدیث د سیاق په وجه آن {وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ} (او هغه) «ولا ذو عهد في عهده» دې ،وَالْعَطْفُ لِلْمُغَايَرَةِ او عطف د مغایرت لپاره وی.

تشریح:- پاتې شو د امام شافعی رحمه الله روایت کړې حدیث، نو هلته کې د کافر نه مراد حربی دې.او ددې موږ هم قائل یو.چه د حربی په بدله کې به مسلمان نشی قتلولې.پوره حدیث داسې دې. «لا يقتل مؤمن بكافر ولا ذو عهد في عهده» یعنی مسلمان او ذمی به د کافر په بدله کې نشی قتلولې.حالانکه که ذمی بل ذمی قتل کړی.نو په دې کې بالاتفاق قصاص واجب دې.او دلته فرمائیلی شوی دی.چه ذمی به د کافر په بدله کې نشی قتلولې.ددې نه معلومه شوه.چه دلته د کافر نه مراد حربی دې.

«اوکه یوکس ووایي چې کیدای شی دلته د ذوعهد نه مراد مسلمان وی.اومطلب دا وی.که یو مسلمان امام اخلی.او دارالحرب ته لاړ شی.او هلته یو کافر قتل کړی.نو هغه حرام اوکړل.خو دا مسلمان به ددې کافر په بدله کې نشی قتلولې؟ نو موږ ځواب ورکوو چې ذوعهد په مؤمن باندې عطف دې.او عطف مغایرت غواړی.په دې وجه ضروری ده.چه د ذوعهد نه غیر مؤمن مراد وی.او هغه ذمی دې.پاته تفسیر ښکاره دې.

### د مستامن په قتل سره قصاص واجب دې اوکه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا يُقْتَلُ بِالْمُسْتَأْمَنِ)،او مسلمان به د مستامن په بدله کې نشی قتلولې. لِأَنَّهُ غَيْرُ مَحْقُونِ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيدِ ځکه چې مستامن د د همیشګۍ په طریقه محفوظ الدم نه دې وَكَذَلِكَ كُفْرُهُ بَاعِثٌ عَلَى الْحِرَابِ او دغه ډول دده کفر په جنګ باندې راپورته کونکې دې ،،لِأَنَّهُ عَلَى قَصْدِ الرُّجُوعِ ځکه چې مستامن د واپس کیدو په قصد باندې دې.

تشریح:- د مستامن د وینې په ساتنه کې دوام (او همیشګی) نشته.نوکه یو مسلمان مستامن قتل کړو. نو قصاص به واجب نه وی.او دې د واپس کیدو اراده لری.نو دده کفر ده لره په جنګ باندې آماده (او راضی کونکې) دې.

### ذمی به د مستامن په قصاص کښې قتل کولاې شي اوکه نه؟

(وَلَا يُقْتَلُ الذِّمِّيُّ بِالْمُسْتَأْمَنِ) او ذمی به د مستامن په بدله کې نشی قتلولې لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې وَيُقْتَلُ الْمُسْتَأْمَنُ بِالْمُسْتَأْمَنِ) او مستامن به د مستامن په بدله کې قتلولې شی قِيَاسًا لِلْمُسَاوَاةِ،د قیاس په طور د مساوات په وجه وَلَا يُقْتَلُ اسْتِحْسَانًا لِقِيَامِ الْمُبِيحِ او استحساناً به نشی قتلولې.د مبیح د قائم مقام کیدو په وجه،

تشریح:- که ذمی مستامن قتل کړو.نو د مستامن په بدله کې به ذمی نشی قتلولې.ځکه چې مستامن همیشه لپاره محفوظ الدم نه دې.که مستامن بل مستامن قتل کړو.نو په دې کې دوې (دوه) قوله دی.① د قیاس تقاضه دا ده.چه دوی دواړو کې مساوات شته.په دې وجه به قتلولې شی.② او د استحسان تقاضه دا ده.چه په دوی کې مبیح د قتل موجود دې.نو قصاص به نشی اخستلې.

### سړې به د ښځې په بدله کښې قصاص کولاې شي

(وَيُقْتَلُ الرَّجُلُ بِالْمَرْأَةِ او قتلولې به شی سړې د ښځې په بدله کې ،وَالْكَبِيرُ بِالصَّغِيرِ،او غټ د وړوکی په بدله کې وَالصَّحِيحُ بِالْأَعْمَى وَالزَّمِنِ او روغ د ړوند او ګوډ په بدله کې وَبِنَاقِصِ الْأَطْرَافِ او د ناقصو اندامونو په بدله کې و

بِالْمَجْنُونِ او د مجنون په بدله کي لِلْعُمُومَاتِ، د عامو رواياتو په وجه، وَلِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ التَّفَاوُتِ فِيمَا وَرَاءَهُ او ځکه چي د عصمت (او حفاظت) نه علاوه د تفاوت په اعتبار سره قصاص ممتنع دي الْعِصْمَةِ امْتِنَاعَ الْقِصَاصِ وَظُهُورَ التَّقَاتُلِ وَالتَّفَانِي او خپل منځ کي قتال او خپل منځ کي د يو بل هلاکول ښکاره کيدل دي

حل اللغة: (۱) الزمن: ګوډ (۲) اعمى: ړوند (۳) التفاني: يوبل هلاکول

تشريح:- هرکله چي د مساوات (او برابري) مدار په اسلام او دارالاسلام باندي ايخودي شوي دي.نو کله چي دا مدار او موندي شي.هلته به قصاص اخستلي شي.که سړي ښځه قتل کړي وي.او که ددي په عکس وي.او که بالغ بچي قتل کړي وي.اوکه روغ سړي ړوند او ګوډ قتل کړي وي.اوکه د روغو (پوره) اندامونو والا د ناقصو اندامونو والا قتل کړي وي.او که د صحيح دماغو والا ليوني قتل کړي وي.ځکه چي نص کي عموم دي.اوکه د عصمت نه علاوه په نورو ځيزونو کي د مساواتو اعتبار اوکړي شي.نو بيا به خو د قصاص دروازه بنده شي.او هرکله چي قصاص نه اخستلي کيږي.نو بيا پخپل منځ کي جنګ جګړي او د قتل دروازه پرانستلي شي.او خپل منځ کي به يو بل هلاکوي.

## پلار به د ځوی په بدله کښي نشي قصاص کولای

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِابْنِهِ) او سړي به د خپل ځوی په بدله کي نشي قتلولي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِوَلَدِهِ} (۱) د نبی کريم ﷺ د فرمان «لا يقاد الوالد بولده» په وجه وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي قَوْلِهِ او دا حديث د خپل اطلاق په وجه امام مالك رحمه الله باندي حجت دي.د هغوی په دي فرمائيلو کي، يُقَادُ إِذَا ذَبَحَهُ ذَبْحًا، چي قصاص به اخستلي شي.کله چي پلار خوني ذبح کړي. وَلِأَنَّهُ سَبَبُ لِإِحْيَائِهِ او ځکه چي پلار د ځوی د ژوند سبب دي فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يَسْتَحِقَّ لَهُ إِفْنَاؤُهُ نو ناممکن ده دا خبره چي ځوی لپاره د پلار فناء کاوه استحقاق وی وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ لَهُ قَتْلُهُ او هم په دي وجه ځوی لپاره د پلار قتلول جائز نه دی وَإِنْ وَجَدَهُ فِي صَفِّ الْأَعْدَاءِ مُقَاتِلًا اګرچه پلار د دشمنانو په صف کي قتال کونکي بيامومي أَوْ زَانِيًا يا زنا کونکي اومومی وَهُوَ مُحْصَنٌ، حالانکه پلار محصن وی وَالْقِصَاصُ يَسْتَحِقُّهُ الْمَقْتُولُ او د قصاص مستحق مقتول وی، ثُمَّ يَخْلُفُهُ وَارِثُهُ بيا د مقتول خليفه دده وارث وی.

حل اللغة: (۱) احيا: ژوندی کول (۲) الاعداد: جمع د عدو، دشمن (۳) افناء: ختمول (۴) المسقط: ساقطونکي

تشريح:- که پلار (خپل) خوني قتل کړو.نو قصاص به نشي اخستلي.ځکه (۱) ترمذی کي حديث دي.چه د پلار څخه به د خپل بچي په بدله کي قصاص نشي اخستلي.نوکه ذبح ني کړي.او که په بله څه طريقه ني قتل کړي.واړه په دي کي داخل دی.نو دا حديث د خپل عموم په وجه د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دي.دوی فرمائيلی دی.چه قصاص به نشي اخستلي.خو که پلار خپل بچي ذبح کړي وی.نو قصاص به اخستلي شی. (۲) او دويمه وجه دا ده.چه د ځوی د ژوند سبب پلار دي.نو ځوی ته دا استحقاق نشی کيدي.چه پلار ختم کړی.هم دا وجه ده.که پلار د کافرانو په فوج کي د جنګ لپاره راغلي وی.او قتال کوی.بيا هم شريعت ځوی ته دا حق نه دي ورکړي.چه خپل پلار قتل کړی.چه ددي تفصيل په کتاب السير کي ذکر دي.دغه ډول که پلار د محصن کيدو باوجود زنا اوکړله.او ځوی اوکتلو.نو ځوی له جائز نه دی.چه پلار قتل کړی.

که څوك دا ووايي چي قصاص خو د ځوی د وارثانو حق وی.ځوی ته خو دا حق نه وو.چه پلار قتل کړی.خو دلته خووارثان مستحق جوړ شوی دی؟نو موږ وايو چي اول استحقاق د قصاص لپاره کيږي.بيا ددي په نيابت او خلافت کي دا حق دده وراثانو ته ملاويږي.او دلته چي هرکله اصل ته حق ملاؤ نشو.نو دده خليفه ته به څنګه ملاويږي.

(۱) من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده رضي الله عنه أخرجه البيهقي فی السنن الكبرى (۶۹۱۸)_



وَالْجَدُّ مِنْ قِبَلِ الرِّجَالِ أَوِ النِّسَاءِ، وَإِنْ عَلَا او نيکه د سرو او ښځو د طرفه، اګرچه بل څوك پورته وی فِي هَذَا بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ په دي باب کي، د پلار په درجه کي دي وَكَذَا الْوَالِدَةُ وَالْجَدَّةُ مِنْ قِبَلِ الْأَبِ او دغه ډول مور او انا چي د پلار داړخه وی. أَوِ الْأُمِّ قَرُبَتْ أَوْ بَعُدَتْ اوکه مور د اړخه وی.که نژدي وی.اوکه لري وی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه. کوم چي موږ بيان کړي دي، وَيُقْتَلُ الْوَلَدُ بِالْوَالِدِ او د پلار په بدله کي به ځوني قتلولي شي، لِعَدَمِ الْمُسْقِطِ د ساقطونکی نه کيدو په وجه.

تشريح:- نيکه، قرنيکه، پرنکه وغيره (چي د پلار د اړخه وی اوکه د مور د اړخه وی) د پلار په حکم کي دی.مور او نيا، قره انا او پره انا وغيره( چي د پلار د اړخه وی اوکه د مور د اړخه وی) هم د پلار په مرتبه کي دی.او دليل هم هغه دي.کوم چي ذکر شو.البته که ځوی پلار قتل کړو.نو دلته کي هيڅ ساقطونکي نشته.په دي وجه به ځوني په قصاص کي قتل کولي شی.

## آقا به د غلام، مدبر،او مکاتب په بدل کښي نشي قصاص کولای

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِعَبْدِهِ) او قتلولي به نشي سړي د خپل غلام په بدله کي، وَلَا مُدَبَّرِهِ او د خپل مدبر په بدله کي وَلَا مُكَاتَبِهِ او نه د خپل مکاتب په بدله کي وَلَا بِعَبْدِ وَلَدِهِ او نه د خپل ځوی د غلام په بدله کي لِأَنَّهُ لَا يَسْتَوْجِبُ لِنَفْسِهِ عَلَى نَفْسِهِ الْقِصَاصَ ځکه چي آقا استحقاق نه لری د خپل ځان لپاره پخپل ځان باندي د قصاص، وَلَا وَلَدِهِ عَلَيْهِ اونه په ده باندي دده ځوني (استحقاق) لری. وَكَذَا لَا يُقْتَلُ بِعَبْدٍ مَلَكَ بَعْضَهُ او نه به قتلولي شي د داسي غلام په بدله کي، د کوم چي د بعض دي مالك شوي وی. لِأَنَّ الْقِصَاصَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چي قصاص غير متجزی دي قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل. قَالَ (وَمَنْ وَرِثَ قِصَاصًا عَلَى أَبِيهِ سَقَطَ) او څوك چي وارث شو د قصاص، پخپل پلار باندي، نو قصاص به ساقطيږي، لِحُرْمَةِ الْأُبُوَّةِ د پلار توب د احترام په وجه.

تشريح:- دلته مسئله دا ده که مولا خپل غلام قتل کړو.نو قصاص به نشي اخستلي.او د مدبر او مکاتب هم دا حکم دي.ځکه چي د قصاص وارث هم مولا دي.او اخستلي هم د مولا نه شی.او دا باطل دی.اوکه د خپل ځوی غلام ني قتل کړي وی.نو بيا به هم قصاص نه وی.ځکه چي ځوني هم پلار باندي د قصاص نشی مستحق کيدي.يو مشترك غلام دي.چه دا يو شريك قتل کړو.نو دده څخه به قصاص نشي اخستلي.ځکه چي قصاص غير متجزی دي.اوکه ځوی ته د قصاص حق په ميراث کي ملاو شو.بيا به هم قصاص نه وی.ځکه چي د پلار توب احترام ددي نه مانع دي.مثلاً د ځوی مور ني قتل کړله.او ځوني ددي وارث دي.نو قصاص به ساقطيږي.؛

## قصاص به په توره او ټوپك سره اخستلي شي

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا يُسْتَوْفَى الْقِصَاصُ) قصاص به نشي اخستلي إِلَّا بِالسَّيْفِ مګر په توري سره، وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُفْعَلُ بِهِ او ويلي امام شافعي رحمه الله، چي قاتل سره به داسي سلوك کولای شی مِثْلَ مَا فَعَلَ څنګه چي قاتل کړي دي إِنْ كَانَ فِعْلًا مَشْرُوعًا په دي شرط چي فعل مشروع وی فَإِنْ مَاتَ نو که قاتل ددي نه مړ شو.نو کافی ده وَإِلَّا تُحَزُّ رَقَبَتُهُ، ګنی دده سټ به کټ کولای شی، لِأَنَّ مَبْنَى الْقِصَاصِ عَلَى الْمُسَاوَاةِ ځکه چي د قصاص بنا (بنياد) مساوات باندي دي.

حل اللغة: (۱) سيف: توره (۲) استيفاء: حاصلول (۳) التحرز: ځان ساتل

تشريح:- د حنفيانو په نيز به صرف وسلي سره قصاص اخستلي شي.که په توره وی اوکه په ټوپك وی.د امام شافعي رحمه الله مسلك دا دي.چه کوم فعل قاتل کړي دي.که دا مشروع فعل وی.نو قاتل سره به هم دغه ډول کولي شی.بيا که هغه په دي سره مړ شو.نو ټيك ده.ګنی ددي نه روسته به دده سټ کټ کولي شی.ځکه چي د قصاص بنا (بنياد) مساوات باندي دي.نو د مساوات هم دا طريقه ده.او فعل مشروع دا دي.چه قاتل په درونډ کاڼي سره چقولي وی.او مړ کړي ني وی.اوکه فعل غير مشروع وی.مثلاً قاتل د مقتول په مقعد( د غټ قضائي حاجت په ځائي) کي کونتي، يا نيزه دننه کړي وی.او مړ کړي ني وی.يا ئي د ښځي په شرمګاه کي نيزه داخل کړي وی.او مړ کړي ئي

وی.نو امام شافعي رحمه الله هم د مساوات قائل نه دی.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زمونږ دليل د نبی کريم ﷺ فرمان دی.،، {لَا قَوَدَ إِلَّا بِالسَّيْفِ} قصاص نشته مګر په توره سره.،، وَالْمُرَادُ بِهِ السِّلَاحُ او د تورې نه وسله مراد ده وَلِأَنَّ فِيمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ او ځکه چې په دې طريقه کي کوم اړخ ته چې امام شافعي رحمه الله تللې دی. اسْتِيفَاءُ الزِّيَادَةِ لَوْ لَمْ يَحْصُلِ الْمَقْصُودُ بِمِثْلِ مَا فَعَلَ زيات وصولول دی.که د قاتل د فعل په مثل سره مقصود حاصل نشي ،فَيُحَزُّ نو بيا به سټ کټ کولای شي فَيَجِبُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو ددې څخه به بچ کيدل واجب وی كَمَا فِي كَسْرِ الْعَظْمِ لکه څنګه چې هډوکی ماتولو کي (منع کيږي).

حل اللغة* ① كسر:ماتول ② العظم:هډوکې﴾

تشريح:- داحنافودليل د ابن ماجه حديث دې.چه قصاص به تورې يعنی وسلې سره اخستلې شی.② او دويمه وجه دا ده.که د مساوات صورت اختيار کړې شی.نو زياتوالې لازميږي.ځکه کيداې شی.چه کومه طريقه قاتل اختيار کړې وه.که هم دغه طريقه اختيار کړې شی.نو کيداې شی چې قاتل مړ نشی.نو بيا به دده قتلول لازمی وی.نو قاتل سره دده د حرکت نه زيات حرکت اوشو.او دا جائز نه ده.ددې مثال هډوکې ماتول دی.که غابښ نې مات کړې وی.نو قصاص ممکن دې.ځکه چې غابښ محدود دې.او که د غابښ نه ئې علاوه بل څه هډوکې مات کړې معلومه نه ده.چه په قصاص کي به څومره هډوکې ماتولې شی.که هم دغه اومره هډوکې د قاتل مات کړې شی.څومره چې ده مات کړې وو.يا ددې نه کم نو جائز دې.او که زيات مات کړې شی.نو جائز نه ده.او چونکه دلته دا اطمينان نشته.چه زيات هډوکې به نه ماتيږي.په دې وجه د هډوکی قصاص جائز نه دې. چې د حق نه زيات وصول نکړې شی.دغه ډول کله چې د قاتل د فعل نه زيات وصولول لازميږي.نو جائز به نه وی.

## که د مکاتب مقتول د مولا نه بغير هيڅ څوک وارث نه وی.نو د قصاص حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل [وَإِذَا قُتِلَ الْمُكَاتَبُ عَمْدًا] او کله چې مکاتب عمداً قتل کړې شو [وَلَيْسَ لَهُ وَارِثٌ إِلَّا الْمَوْلَى] او د آقا نه علاوه هيڅ څوک وارث نه وی وَتَرَكَ وَفَاءً او ده د بدل کتابت برابر مال پريښودې وی فَلَهُ الْقِصَاصُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په نيز به آقا لپاره قصاص وی. رحمهما الله

تشريح:- مکاتب يو کس عمداً قتل کړو.او مکاتب په مزدورئ کاوه دومره مال ګټلې او پريښودې دې.چه په دې سره د بدل کتابت ادا کيداې شی.او د آقا نه علاوه بل څوک دده وارث نشته.نوشيخين حضرات رحمهما الله فرمائی.چه آقا ته د قصاص اخستلو حق شته.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ او امام محمد رحمه الله فرمائی. لَا أَرَى فِي هَذَا قِصَاصًا، چې په دې کي زه قصاص جائز نه ګنړم لِأَنَّهُ اشْتَبَهَ سَبَبُ الِاسْتِيفَاءِ ځکه چې د وصولولو سبب مختلف شو فَإِنَّهُ الْوَلَاءُ ځکه چې دا وصولی ولاء ده آن مَاتَ حُرًّا که (مکاتب) آزاد شوې وی.او مړ شوې وی وَالْمِلْكُ او وصول ملك دې آن مَاتَ عَبْدًا،که دې دغلام کيدو په حالت کي مړشوې وی. وَصَارَ كَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ او دا داسې شوه.لکه چې يوکس خپل غير ته ونيلی وی بِعْتَنِي هَذِهِ الْجَارِيَةَ بِكَذَا، چې تا په ما دا وينځه په دومره خرڅه کړې ده وَقَالَ الْمَوْلَى زَوَّجْتُهَا مِنْكَ او مولا اووائی.چه ما تا سره ددې نکاح کړې ده لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا لِاخْتِلَافِ السَّبَبِ نو د سبب د اختلاف په وجه دده لپاره دې وينځې سره وطی کول حلال نه دی كَذَا هَذَا دغه ډول دا هم دې.

تشريح:- او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه د قصاص اخستلو حق نشته.ځکه چې دلته د قصاص اخستلو سبب مختلف دې.او د سبب اختلاف داسې دې.لکه د مستحق اختلاف،او د مستحق داختلاف په صورت کي قصاص نشی اخستلې.نو دلته به هم قصاص نه اخستلې کيږي.ځکه که اومنلې شی.چه دې د آزادئ په حالت کي مړ شوې دې.نو د قصاص اخستلو سبب ولاء دې.اوکه دا اومنلې شی. چې دې د غلامئ په حالت کي مړ شوې دې.نو د قصاص اخستلو سبب ملك دې.او ددې مثال دا دې.چه آقا د خپلې وينځې په اړه کي اووئيل.چه ما ددې سره ستا نکاح



کړې ده.او هغه اووائی.داسې نه ده.ب لکه دا تا په ما باندې په دومره خرڅه کړې ده.نو دده لپاره دې وينځې سره وطی کول جائز نه دی.ځکه چې سبب مختلف دې.او دغه ډول دلته کي د سبب اختلاف دې.نو لکه څنګه چې وطی جائز نه ده.دغه ډول قصاص هم جائز نه دې.دا د امام محمد رحمه الله دليل دې.

وَلَهُمَا او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې آن حَقَّ الِاسْتِيفَاءِ لِلْمَوْلَى بِيَقِينٍ عَلَى التَّقْدِيرَيْنِ چې مولا لپاره دواړو مقدارونو (اندازو) باندې يقين سره د وصولولو حق شته وَهُوَ مَعْلُومٌ او مولا معلوم دې وَالْحُكْمُ مُتَّحِدٌ،او حکم يو دې وَاخْتِلَافُ السَّبَبِ لَا يُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ.او د سبب اختلاف نه د منازعت اړخ ته مفضی دې وَلَا إِلَى اخْتِلَافِ حُكْمٍ او نه دحکم اختلاف اړخ ته فَلَا يُبَالَى بِهِ نو د سبب د اختلاف پرواه به نشی کولې.

حل اللغة* ① المنازعة:جګړه ② يغاير:مغائر کيږي،بدليږي ③ لايبالی: پروه نشته﴾

تشريح:- دا د شيخينو رحمهما الله دليل دې.چه مولا ته د قصاص اخستلو حق شته.ځکه که هغه آزاد مړی شی او که غلام، دواړو صورتونو کي مولا ته د قصاص اخستلو حق شته.او مستحق يعنی مولا هم معلوم دې.او حکم هم متحد (يوشان) دې.يعنی قصاص وصولول.او په سبب کي اګرچه اختلاف دې.خو ددې به هيڅ پرواه نشی کولې.ځکه چې ددې په وجه حکم کي اختلاف نشته.او د سبب دا اختلاف مفضی الی المنازعت دې.

بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ،په خلاف ددې مسئلې لِأَنَّ حُكْمَ مِلْكِ الْيَمِينِ يُغَايِرُ حُكْمَ النِّكَاحِ ځکه چې د ملك يمين حکم د نکاح د حکم نه مغائر (او بدل) دې.

تشريح:- کومه مسئله چې دليل کي امام محمد رحمه الله پيش کړې ده.د هغې خبره بله ده.ځکه چې هلته کي حکم کي مغايرت دې.ځکه چې د ملك يمين حکم يو دې.او د ملك نکاح حکم بل دې.ځکه د ملك يمين حکم دا دې.چه دا مملوکه وی.چه په دې کي حلت تابع دې.او ملك رقبه اصل دې.او تابع د معدوم په مرتبه کي وی.او په نکاح کي حلت مقصود دې.

## که د مکاتب د مولا نه علاوه وارثان هم موجود وی.نو د قصاص حکم

[وَلَوْ تَرَكَ وَفَاءً] او که (مقتول عمد مکاتب) د بدل کتابت برابر مال پريښودې وی [وَلَهُ وَارِثٌ غَيْرُ الْمَوْلَى] و د آقا نه علاوه بل څوك دده وارث وی فَلَا قِصَاصَ نو قصاص نشته ،[وَإِنِ اجْتَمَعُوا مَعَ الْمَوْلَى] اګرچه وارثان آقا سره راجمع شی لِأَنَّهُ اشْتَبَهَ مَنْ لَهُ الْحَقُّ ،ځکه چې دا سړې مشتبه شو.دچا لپاره چې حق دې لِأَنَّهُ الْمَوْلَى ځکه چې هغه ﴿من له الحق﴾ مولا دې آن مَاتَ عَبْدًا،که مکاتب غلام (په حالت د غلامئ کي) مړ شوې وی وَالْوَارِثُ آن مَاتَ حُرًّا او وارث شته.که دې آزاد مړ شوې وی إِذْ ظَهَرَ الِاخْتِلَافُ بَيْنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ځکه چې صحابو کي اختلاف ښکاره شوې دې {فِي مَوْتِهِ عَلَى نَعْتِ الْحُرِّيَّةِ أَوِ الرِّقِّ دده د آزادئ يا غلامئ په حالت کي د مړ کيدو په صفت باندې ،بِخِلَافِ الْأُولَى،په خلاف د رومبی صورت. لِأَنَّ الْمَوْلَى مُتَعَيِّنٌ فِيهَا، ځکه چې دې کي مولا متعين دې

حل اللغة* ① الرق:خالصه غلامی﴾

تشريح:- اوکه د مولا نه علاوه دده نور وارثان هم موجود وی.او پاته صورت هم هغه وی.نو بالاتفاق به قصاص نشی اخستلې. ځکه چې رومبی صورت کي خو د سبب اختلاف وو.او حکم متحد وو.او مستحق هم متحد وو. او دلته په مستحق کي اختلاف دې.مستحق په يو صورت کي مولا دې.او په يو صورت کي د مکاتب مقتول وارثان دی.که دا اومنلې شی.چه دې آزاد مړ شوې دې.نو وارث مستحق دې.اوکه دا اومنلې شی. چې غلام مړ شوې دې.نو آقا مستحق دې.او دې غلام مړې شوې دې، اوکه آزاد، دا د صحابو رضي الله عنهم اختلافی مسئله ده.نو د يو صورت متعين کول مشکل دی.په دې وجه قصاص ختم کړې شو.او په رومبی صورت کي مستحق صرف مولا وو.په دې وجه شيخينو رحمهما الله اوفرمائيل.چه قصاص به اخستلې شی.

## د مکاتب د بدل کتابت برابر مال نه پريخودو په صورت کښې قتل کولو سره د قصاص حکم

(وَإِنْ لَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً) او كه (مكاتب مقتول) د بدل كتابت برابر مال نه وي پريښودې. (وَلَهُ وَرَثَةٌ أَحْرَارٌ) او دده آزاد وارثان وي. (وَجَبَ الْقِصَاصُ لِلْمَوْلَى فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا) نو مولا لپاره به قصاص وي. د ټولو فقهاو په قول كي لِأَنَّهُ مَاتَ عَبْدًا بِلَا رَيْبٍ لِانْفِسَاخِ الْكِتَابَةِ ځكه چې دې د كتابت فسخ كيدو په وجه بلا شبه غلام مړ شوې دې.

**تشريح:-** يو مكاتب چا عمداً قتل كړو. خو ده دومره مال پرې نخودو. چه دا بدل كتابت پوره كړي. او دده آزاد وارثان موجود دي. نو دلته به بالاتفاق د آقا لپاره قصاص وي. ځكه چې هركله دې د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز ثابت شو. نو عقد كتابت فسخ شو. او هركله چې كتابت فسخ شو. نو دې غلام مړ شوې دې. او هركله چې غلام مړ شوي دي. نو حق د قصاص به صرف مولا لپاره وي.

بِخِلَافِ مُعْتَقِ الْبَعْضِ په خلاف د معتق البعض إِذَا مَاتَ وَلَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً كله چې دې مړ شي. او د سعايت (د خان د پاته قيمت) برابر مال پرې نږدی لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي الْبَعْضِ لَا يَنْفَسِخُ بِالْعَجْزِ ځكه چې بعض برخه كي آزادی د عاجز كيدو په وجه نه فسخ كيږي.

**تشريح:-** خوكه يو غلام په دوې (دوه) كسانو كي مشترك عمداً قتل كړې وي. او اوس ئې دومره مال نه وو ګټلې. كوم چې د هغه مقدار برابر وي. كوم چې ده له ګټل پكار وو. نو دلته به قصاص نشي اخستلې. ځكه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز عتق (آزادي) اګرچه متجزی دې. خو د مال ادا كاوه نه د عاجزئ په وجه به عتق نه فسخ كيږي. نو د غلام د عجز په وجه به په پوره غلام كي د موجود مولا ملكيت نه ثابتيږي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د بعض آزادول د كل (ټول) آزادول دي. نو ددوی په قول خو هيڅ اشكال نشته.

## مرتهن سره د مرهون غلام عمداً قتل كولو سره د قصاص حكم

(وَإِذَا قُتِلَ عَبْدُ الرَّهْنِ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ) او كله چې د رهن غلام د مرتهن په قبضه كي قتل كړې شو (لَمْ يَجِبِ الْقِصَاصُ) نو قصاص به واجب نه وي (حَتَّى يَجْتَمِعَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ) تردې چې راهن او مرتهن دواړه جمع شي لِأَنَّ الْمُرْتَهِنَ لَا مِلْكَ لَهُ فَلَا يَلِيهِ، ځكه چې مرتهن لپاره ملكيت نشته. نو مرتهن ته به ددې ولايت نه وي وَالرَّاهِنُ لَوْ تَوَلَّاهُ لَبَطَلَ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ فِي الدَّيْنِ او كه راهن ددې متولي وي. نو د پور په حق كي به د مرتهن حق باطل وي فَيُشْتَرَطُ اجْتِمَاعُهُمَا نو ددوی دواړو جمع كيدل شرط دی لِيَسْقُطَ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ بِرِضَاهُ چې د مرتهن حق دده په رضامندئ سره ساقط شي.

**تشريح:-** كه مرهون غلام عمداً (په قصد سره) د مرتهن په قبضه كي قتل كړې شو. خو يواځې راهن ته، يا يواځې مرتهن ته به د قصاص اخستلو حق نه وي. بلكه د دواړو جمع كيدل شرط دی. راهن يواځې ځكه (قصاص) نشي اخستلې. چه د مرتهن د حق ابطال لازميږي. او يواځې مرتهن ځكه قصاص نشي اخستلې. چې هغه ددې مالك نه دې. نو ضروري ده. چه دواړه جمع شي. چه د مرتهن د حق ابطال دده په رضامندئ سره وي.

(كه څوك دا ووايي چې هركله چې د مرتهن په قبضه كي غلام هلاك شو. نو دده حق هم دده نه ساقط شو؟ نو مونږ وايو دا ټيك ده خو حق ساقطيدل اوس هم تام (او پوره) نه دی. ځكه كيداې شي. چه مصالحت اوشي. يا كيداې شي. چه داسې شبه راوځي. چه هغې سره دا قتل، قتل خطاء شي.

## د پاګل د ولی قتل كولو سره د قصاص حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلي دی (وَإِذَا قُتِلَ وَلِيُّ الْمَعْتُوهِ) او كله چې د معتوه (پاګل) ولی قتل كړې شوې وي (فَلِأَبِيهِ أَنْ يَقْتُلَ) نو د پاګل پلار لپاره حق شته. چه هغه قاتل (په قصاص كي) قتل كړي. لِأَنَّهُ مِنَ الْوِلَايَةِ عَلَى النَّفْسِ ځكه چې قصاص اخستل، په نفس باندې د ولايت د باب څخه دې شُرِعَ لِأَمْرٍ رَاجِعٍ إِلَيْهَا چې دا د داسې شئ لپاره مشروع شوې دې. كوم چې نفس اړخ ته راجع دې وَهُوَ تَشَفِّي الصَّدْرِ او دا امر د سينې (يعنی د زړه) تسكين او اطمينان دې فَيَلِيهِ كَالْإِنْكَاحِ نو پلار ته به ددې ولايت وي. لكه د نكاح كولو،



﴿حل اللغة: ① تشفي: تسكين، آرام ② صدر: سينه﴾

**تشريح:-** مثلاً د يو سړي يو پاګل خوئې دې. او ددې پاګل يو خوئې دې. چه دا عمداً چا قتل كړو. نو اوس به قصاص څوك اخلي. معتوه (پاګل) خو هسې هم پاګل دې. نو شريعت د پاګل پلار ته دا ولايت وركړې دې. چې هغه د خپل خوی قصاص واخلي. ځكه چې پلار ته پخپل پاګل خوی باندې ولايت حاصل دې. ځكه چې د قصاص د مشروعيت وجه د نفس اطمينان او د زړه تسلی ده. په دې وجه ده ته د نكاح ولايت حاصل دې. نو هركله چې نفس باندې ولايت حاصل شو. نو په قصاص اخستلو باندې به هم ولايت حاصل وي. ځكه چې قصاص اخستل هم د ولايت على النفس د باب څخه دې.

(وَلَهُ أَنْ يُصَالِحَ) او پلار ته حق شته. چه هغه مصالحت اوكړي لِأَنَّهُ أَنْظَرُ فِي حَقِّ الْمَعْتُوهِ وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَعْفُوَ ځكه چې صلح د پاګل په حق كي زيات د شفقت سبب دې. او پلار ته د معاف كاوه حق نشته لِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ حَقِّهِ ځكه چې معاف كاوه كي د پاګل د حق ابطال دې (وَكَذَلِكَ إِنْ قُطِعَتْ يَدُ الْمَعْتُوهِ عَمْدًا) او دغه ډول كه د پاګل لاس كټ كړې شوې وي په قصد سره، لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه، كوم چې مونږ ذكر كړې دي.

﴿حل اللغة: ① المعتوه: پاګل ② ابطال: باطلول﴾

**تشريح:-** هركله چې پلار ته د قصاص اخستلو ولايت شته. نو د مصالحت على المال ولايت به هم وي. ځكه چې دې كي د پاګل فائده ده. چه دا مال به دده په كار راځي. خو پلار ته دا حق نشته. چه قصاص معاف كړي. ځكه چې دې كي د پاګل حق باطلول دی. دغه ډول كه قصداً د پاګل لاس كټ كړې شو. نو د پاګل پلار ته ولايت شته. چه هغه دده قصاص وصول كړي. د هغه مذكور دليل په وجه.

(دلته يوه خبره په ذهن كي ياد ساتئ چې پلار ته دصلح على المال ولايت شته. خو دا جواز هغه وخت دې. كله چې د ديت په مقدار باندې مصالحت اوكړي. او كه د ديت دمقدار نه په كم باندې مصالحت كړې وي. نو كمی به جائز نه وي. او پوره ديت به واجب وي.)

## وصی د پلار قائم مقام دې

(وَالْوَصِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ) او وصی په دې ټولو صورتونو كي د پلار په درجه كي دې (إِلَّا أَنَّهُ لَا يَقْتُلُ) خو وصی قصاص نشي اخستلې لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةٌ عَلَى نَفْسِهِ ځكه چې وصی ته د پاګل په نفس باندې ولايت نشته وَهَذَا مِنْ قَبِيلِهِ او (قصاص اخستل) هم ددې قبيل څخه دې. (يعنی نفس باندې د ولايت د قبيلې څخه دې). وَيَنْدَرِجُ تَحْتَ هَذَا الْإِطْلَاقِ الصُّلْحُ عَنِ النَّفْسِ وَاسْتِيفَاءُ الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ او ددې اطلاق لاندې د نفس د اړخه د صلح او اندام قصاص اخستل داخل دی فَإِنَّهُ لَمْ يَسْتَثْنِ إِلَّا الْقَتْلَ ځكه چې امام محمد رحمه الله د قتل نه علاوه د هيڅ چا استثناء نه ده فرمائيلې.

﴿حل اللغة: ① يندرج: داخليږي ② استيفاء: وصولول﴾

**تشريح:-** كه د پاګل پلار نه وي. بلكه د پلار وصی وي. نو دې په مال باندې صلح كولې شي. او د اطرافو او اندامونو قصاص وصولولې شي. نو په پلار او وصی كي دومره توپير دې. چه وصی قصاص نشي اخستلې. ددې وجه دا ده. چې قصاص اخستل نفس باندې د ولايت د باب څخه دې. او وصی ته په نفس د پاګل باندې ولايت حاصل نه دې. د امام محمد رحمه الله عبارت په جامع صغير كي داسې دې. «والوصی بمنزلة الأب فی جميع ذالك إلا أنه لا يقتل» ددې عموم نه معلوميږي. چه د قتل او قصاص نه علاوه چې څومره صورتونه هم دی. دې ټولو كي وصی ته ولايت حاصل دې. نو د اندامونو قصاص او د مصالحت جواز ثابت دې.

## وصی ته د صلحې (او روغې) حق شته اوكه نه؟

وَفِي كِتَابِ الصُّلْحِ أَنَّ الْوَصِيَّ لَا يَمْلِكُ الصُّلْحَ، او د مبسوط په كتاب الصلح كي دی. چه وصی د صلح مالك نه دې. لِأَنَّهُ

تَصَرُّفٌ فِي النَّفْسِ بِالْاِعْتِيَاضِ عَنْهُ خکه چې صلح په نفس کې تصرف دې.دده د اړخه د عوض اخستلو په وجه فَيَنْزِلُ مَنْزِلَةَ الْاِسْتِيْفَاءِ نو صلح به د قصاص اخستلو په درجه کې راکوخولې شی

**حل اللغة:** ① **الاعتياض:** عوض اخستل﴾ ② **التشفي:** تسکین﴾

**تشریح:-** د مبسوط په کتاب الصلح کې امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه وصی ته د مصالحت هم حق نشته.خکه د مصالحت لنډیز دا ده.چه دې د نفس عوض اخلی.او د نفس عوض اخستل داسې دی.لکه قصاص اخستل، او د قصاص اخستلو وصی ته حق نشته.نو د صلح حق به هم نه وی.

وَوَجْهُ الْمَذْكُورِ هٰهُنَا اَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنَ الصُّلْحِ الْمَالُ اووجه ددې روایت کومه چې دلته کې ذکر ده.چه د صلح نه مقصود مال دې وَاَنَّهٗ يَجِبُ بِعَقْدِهٖ او مال د وصی په عقد سره واجبیږی كَمَا يَجِبُ بِعَقْدِ الْاَبِ لکه څنګه چې د پلار په عقد سره واجبیږی بِخِلَافِ الْقِصَاصِ، لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ التَّشَفِّيْ په خلاف د قصاص، خکه چې ددې مقصود تسلی ده وَهُوَ مُخْتَصٌّ بِالْاَبِ او دا پلار سره مختص دې وَلَا يَمْلِكُ الْعَفْوَ، او وصی د معاف کاوه مالك نه دې.لِاَنَّ الْاَبَ لَا يَمْلِكُهٗ خکه چې پلار ددې مالك نه دې. لِمَا فِيْهِ مِنَ الْاِبْطَالِ خکه چې دې کې ابطال دې فَهُوَ اَوْلٰى نو وصی به په درجه اولی ( حقدار نه وی).

**تشریح:-** او د جامع صغیر، د روایت دلیل دا دې.یعنی چې مصالحت کاوه حق ورته شته هغه دا دې چې د مصالحت مقصود مال دې.او وصی ته حق وی.چه هغه پاګل لپاره عقود مالیه اوکړی.او دا هم عقد مال دې.نو وصی ته به ددې حق وی.او د قصاص مقصود تسلی او د زړه اطمینان دې.او د تسلئ اړتیا هلته دې.چرته چې مخکې غم او غصه ډکه شوې وی.او هغه پلار دې.وصی چونکه اجنبی دې.چه په ده کې غم اوغصه نه ده ډکه شوې.نو ددې د ازالې لپاره به د قصاص اړتیا هم نه وی.په دې وجه وصی قصاص نشی اخستلې.

اوس پاتې شوه دا مسئله چې آیا وصی معاف کولې شی؟ نو وې فرمائیل.چه هرکله پلار ته د معاف کاوه حق نشته.نو وصی ته به په درجه اولی ددې حق نه وی.خکه چې دې کې د پاګل د حق ابطال دې.

## وصی ته په اندامونو کښې د قصاص اخستلو حق شته اوکه نه؟

وَقَالُوا الْقِيَاسُ اَنْ لَا يَمْلِكَ الْوَصِيُّ الْاِسْتِيْفَاءَ فِي الطَّرَفِ او مشائخو فرمائیلی دی.قیاس دا دې.چه وصی په اندام کې دقصاص اخستلو مالك نه وی. كَمَا لَا يَمْلِكُهٗ فِي النَّفْسِ، لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ مُتَّحِدٌ لکه څنګه چې هغه ددې په نفس کې مالك نه دې.خکه چې مقصود متحد دې وَهُوَ التَّشَفِّيْ او هغه تسلی ده.وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ يَمْلِكُهٗ او استحسان کې به وصی ددې مالك وی، لِاَنَّ الْاَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكَ الْاَمْوَالِ خکه چې اندامونه د اموالو په مرتبه کې دی فَاِنَّهَا خُلِقَتْ وِقَايَةً لِلْاَنْفُسِ كَالْمَالِ خکه چې اندامونه د مال پشان د نفسونو د ساتنه لپاره پیدا کړې شوی دی عَلٰى مَا عُرِفَ د هغه تفصیل مطابق کوم چې پیژندلې شوې دې فَكَانَ اسْتِيْفَاؤُهٗ بِمَنْزِلَةِ التَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ نو په اندامونو کې قصاص وصولول په مال کې دننه د تصرف پشان دې.

**تشریح:-** په اطراف او اندامونو کې قصاص اخستل جائز دی.خودا مسئله د استحسان په بنا (بنیاد) ولاړه ده خکه قیاس ددې مخالف دې قیاس خو په اطرافو کې د عدم جواز تقاضا کوی خکه چې د قصاص مقصود تسلی ده.که د نفس قصاص وی.او که د اندامونو، لکه څنګه چې وصی ته د نفس د قصاص حق نشته.دغه ډول په اندامونو کې هم د قصاص حق کیدل پکار نه دی.

**تشریح:-** داستحسان تقاضه دا ده.چه اندامونو کې قصاص جائز وی.خکه د اندامونو هغه مرتبه ده.کومه چې د مال ده.خکه چې مال هم د انسان د خدمت لپاره دې.او اندامونه هم د انسان د خدمت لپاره دی.نو هرکله چې اندامونه د مال په مرتبه کې شو.نو د اندامونو د قصاص وصولول په مال کې د تصرف پشان شو.او په مال کې تصرف جائز دې.نو د اندامونو قصاص به هم جائز وی.

وَالصَّبِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْمَعْتُوْهِ فِيْ هٰذَا، اوبچې په دې باب ( او فعل) کې د پاګل په مرتبه کې دې وَالْقَاضِيْ بِمَنْزِلَةِ الْاَبِ فِي الصَّحِيْحِ،



او د صحیح قول مطابق قاضی د پلار په درجه کې دې اَلَا تَرٰى اَنَّ مَنْ آیا تاسو نه ګورئ،چه کوم سړې قتل کړې شو قُتِلَ وَلَا وَلِيَّ لَهٗ يَسْتَوْفِيْهِ السُّلْطَانُ،او د هغه هیڅ څوك ولی نه وی.نو قصاص به بادشاه وصولوی وَالْقَاضِيْ بِمَنْزِلَتِهٖ فِيْهِ او قاضی په قصاص وصولولو کې د بادشاه په مرتبه کې دې.

**تشریح:-** اودلته چې کوم حکم د پاګل دې.هم دا حکم د بچی دې.او کوم حکم چې د پلار دې.هم دا حکم د قاضی او د بادشاه دې.خکه چې کوم سړې عمداً قتل کړې شی.او د هغه څوك ولی نه وی.نو دده قصاص بادشاه وصولوی.او قاضی د بادشاه نائب دې.نو قاضی ته به د قصاص وصولولو ولایت وی.

## د مقتول په اولیاء کښې بالغ هم شته او نا بالغ هم، نو د قصاص طریقهٔ کار

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی (وَمَنْ قُتِلَ وَلَهٗ اَوْلِيَاءُ صِغَارٌ وَكِبَارٌ) او کوم سړې چې قتل کړې شو.او دده اولیاء بالغ او ماشومان دی فَلِلْكِبَارِ اَنْ يَقْتُلُوا الْقَاتِلَ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله نو بالغانو ته حق شته.چه دوی قاتل قتل کړی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز

**تشریح:-** یو سړې عمداً قتل کړې شو.او دده په وارثانو کې یعنی په اولیاو کې بعض نابالغ دی.او بعض بالغ دی.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز به بالغان قصاص اخلی.او د ماشومانو د بلوغ انتظار به نشی کولې.

وَقَالَا لَيْسَ لَهُمْ ذٰلِكَ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دوی ته دا حق نشته حَتّٰى يُدْرِكَ الصِّغَارُ، تردې چې ماشومان بالغ شی لِاَنَّ الْقِصَاصَ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمْ خکه چې قصاص ددوی په منځ کې مشترك دې وَلَا يُمْكِنُ اسْتِيْفَاءُ الْبَعْضِ او د بعض وصولول ممکن نه دی لِعَدَمِ التَّجَزِّيْ،د تجزی ( ټکړې کول) نه کیدو په وجه. وَفِي اسْتِيْفَائِهِمُ الْكُلَّ اِبْطَالُ حَقِّ الصِّغَارِ او د ( بالغانو) په پوره قصاص وصولولو کې د ماشومان حق باطلول دی فَيُؤَخَّرُ اِلٰى اِدْرَاكِهِمْ نود ماشومانو د بلوغ پورې به قصاص مؤخر کولای شی كَمَا اِذَا كَانَ بَيْنَ الْكَبِيْرَيْنِ لکه څنګه چې کله قصاص د دوو غټو ( لویو) په منځ کې مشترك وی وَاَحَدُهُمَا غَائِبٌ او په دوی دواړو کې یو کس غائب وی اَوْ كَانَ بَيْنَ الْمَوْلَيَيْنِ یا قصاص د دوو آقاو په منځ کې مشترك وی.

**حل اللغة:** ① **التجزی:** تقسیم ② **یوخر:** روستو کولای شی﴾

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د بچو ( ماشومانو) د بلوغ پورې به قصاص مؤخر کولې شی.د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه قصاص خو د دوی ټولو په منځ کې مشترك حق دې.نو د ټولو په وصولولو سره به وصولیږی.او په دوی کې د وصولولو صلاحیت نشته.او دا هم نشی کیدې.چه بعض قصاص بالغان وصول کړی.او پاته قصاص ماشومان روسته د بلوغت نه وصول کړی. خکه چې قصاص غیر متجزی دې.او که بالغان واړه قصاص اوس وصول کړی.نو د ماشومانو حق باطلول لازمیږی.نو اوس صرف هم دا صورت پاته پاتې شو.چه د ماشومانو د بلوغ پورې انتظار اوکړې شی

او ددې مثالونه دا دی ① زید او بکر یو غلام واخستلو.بیا دا غلام بل چا عمداً قتل کړو.او اتفاق سره زید بالغ دې.او بکر نابالغ دې.نو ترکومه پورې چې بکر بالغ نشی.قصاص به مؤخر کولې شی.دغه ډول دلته کې هم قصاص مؤخر کول پکار دی.② زید او بکر دوې (دوه) رونړه دی.ددوی پلار عمداً قتل کړې شو.او دا دواړه بالغان دی.خو زید دلته کې موجود دې.خو بکر غائب دې.نو ترکومه پورې چې بکر رانشی.قصاص به مؤخر کولې شی.دغه ډول به دلته کې هم مؤخر کیږی.

وَلَهٗ او دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې اَنَّهٗ حَقٌّ لَا يَتَجَزَّاُ لِثُبُوْتِهٖ چې حق د قصاص غیرمتجزی ( ناقابل تقسیم) دې.ددې حق د ثابتیدو په وجه بِسَبَبٍ لَا يَتَجَزَّاُ په داسې سبب سره، چې دا غیر متجزی ( او نه ټکړې کیدونکې) دې وَهُوَ الْقَرَابَةُ، او هغه سبب د قرابت دې وَاحْتِمَالُ الْعَفْوِ مِنَ الصَّغِيْرِ مُنْقَطِعٌ اود بچی د اړخه احتمال د معافئ منقطع دې فَيَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ نو دا حق به د هر یو لپاره کامل ثابت وی مِنْهُمَا كَمَلًا كَمَا فِيْ وِلَايَةِ الْاِنْكَاحِ لکه څنګه چې د نکاح کاوه په ولایت کې

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دي. ددې حاصل دا دې چه د قصاص حق غیر متجزی دې. ځکه چې په کوم سبب سره حق د قصاص ملاو شوي دې. هغه سبب هم غیر متجزی دې. ځکه چې سبب قرابت دې. او په قرابت کې واړه برابر شریك دی. معلومه شوه. چه سبب غیر متجزی دې. او پاتې شوه دا شبه، چې کیداې شی، چې ماشومان د بلوغ نه روسته معاف کړی. نو قصاص به ساقط شی. دا دا خالص توهم دې. ځکه چې اوسه پورې دا هم معلومه نه ده. چه دا بچی به بالغ هم شی. او که نه. بهرحال لکه څنګه چې ولایت د نکاح هر برابر ولی ته کامل ملاویږی. دغه ډول به دا حق هم هر یو مالك ته ملاویږی. او هرکله چې کامل حق د بالغانو لپاره هم ثابت شو. نو دوی له د قصاص اخستلو حق ثابت شو.

| |
|---|
| بِخِلَافِ الْكَبِيرَيْنِ په خلاف د غتو (لویو)، لِأَنَّ احْتِمَالَ الْعَفْوِ مِنَ الْغَائِبِ ثَابِتٌ ځکه چې د غائب د اړخه احتمال د معاف کاوه ثابت دې وَمَسْأَلَةُ الْمَوْلَيَيْنِ مَمْنُوعَةٌ او د دوې (دوه) آقاو مسئله غیر مسلم ده. |

**تشریح:-** اوصاحبینو چې په استشهاد کې کومې دوې (دوه) مسئلې ذکر کړی دی نو د هغې ځواب دا دې ① د غائب د اړخه ددې خبرې احتمال شته. چه هغه معاف کړی وی. او ددې تراوسه پورې علم نه وی. بهرحال د معاف کاوه شبه موجود ده. ② دا مسئله نه منلې کیږی. بلکه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې صورت کې د بالغ آقا لپاره جائز دی. چه هغه قصاص وصول کړی. او د نابالغ آقا د بلوغ انتظار اونکړی. نو هغه ئې قتل کړو

### په بیلچه (یا کداله) وهلو سره قتلولو کښې د قصاص حکمد مذکوره مسئلې وضاحت

| |
|---|
| قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا بِمَرٍّ او چا چې یو کس په کداله (یا بیلچې) سره اووهلو فَقَتَلَهُ، فَإِنْ أَصَابَهُ بِالْحَدِيدِ نو که دې ته اوسپنه لګیدلې وی قُتِلَ بِهِ نو ددې په بدله کې به قتلولې شی وَإِنْ أَصَابَهُ بِالْعُودِ او که دې ته لرګې لګیدلې وی فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ نو په قاتل به دیت واجب وی |

**حل اللغة*** ① حدید: اوسپنه ② العود: لرګې﴾

**تشریح:-** یو سړی بل کس په کدالې اووهلو. چه دې سره هغه مړ شو. نو فرمائی. که دې ته د بیلچې (یا کدالې) اوسپنه لګیدلې وی. نو اوس به قصاص واجب وی. او که د بیلچې (یا کدالې) لرګې لګیدلې وی. نو قصاص به واجب نه وی. بلکه دیت به واجب وی.

### په بیلچه (یا کداله) وهلو سره قتلولو کښې د قصاص حکم

| |
|---|
| قَالَ مرغینانی رحمه الله فرمائی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهَذَا إِذَا أَصَابَهُ بِحَدِّ الْحَدِيدِ او دا هغه وخت دی. کله چې دې ته د اوسپنې سوکه (نوکه) لګیدلې وی لِوُجُودِ الْجَرْحِ د زخم موجود کیدو په وجه فَكَمُلَ السَّبَبُ، وَإِنْ أَصَابَهُ بِظَهْرِ الْحَدِيدِ نو سبب به کامل وی. او که دې ته د اوسپنې شا لګیدلې وی فَعِنْدَهُمَا يَجِبُ نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز به قصاص واجب وی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اعْتِبَارًا مِنْهُ لِلْآلَةِ او هم دا روایت دې. د امام ابوحنیفه رحمه الله نه، د امام ابوحنیفه رحمه الله د اړخه د آلې اعتبار کاوه سره، وَهُوَ الْحَدِيدُ او آله هغه اوسپنه ده. |

**تشریح:-** د امام محمد رحمه الله د قول تشریح کوی. اوعلامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د اوسپنې په لګیدلو سره به قصاص هغه وخت واجب وی. کله چې د اوسپنې نوکه (سوکه) لګیدلې وی. چه زخم اولګی. او د قصاص سبب کامل شی. او که د اوسپنې شا لګیدلې وی. یعنې روسته مخ لګیدلې وی. نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز دا قتل عمد دې. نو قصاص به واجب وی. او د امام صاحب رحمه الله نه یو رویت دا هم دې یعنی چې قصاص واجب دې. ځکه چې آله د قتل اوسپنه ده. او اوسپنه فی نفسه وسله ده.

| |
|---|
| وَعَنْهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې إِنَّمَا يَجِبُ إِذَا جَرَحَ، چې قصاص به واجب وی. کله چې زخم لګیدلې وی وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا اصح دې عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى د هغه تفصیل مطابق کوم چې به موږ انشاءالله بیان کړو. |



**تشریح:-** اوداامام ابوحنیفه رحمه الله نه دوهم روایت دا هم منقول دې چې قصاص واجب نه دې. البته که په ستو (روسته مخ) لګیدو سره زخم هم اولګی. نو قصاص به واجب وی. ځکه چې د زخم نه بغیر فساد کامل نه دې. نو د آخری سزا به استحقاق نه وی.

### د تلې (ترازو) په ډنډې وهلو سره قتل کولو کښې د قصاص حکم

| |
|---|
| وَعَلَى هَذَا الضَّرْبُ بِسَنْجَاتِ الْمِيزَانِ او په دې اختلاف د تلې (ترازو) ډنډې دې. |

**تشریح:-** یعنی که د تلې د اوسپنې په ډنډه سره ئې څوك اووهلو. او مړ ئې کړو. نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز دا قتل عمد دې. نو قصاص به واجب وی. او د امام صاحب رحمه الله په نیز که زخم لګیدلې وی. نو قصاص به وی. ګنی نه به وی... کمامر..

### په لرګی (ډنډې) باندې قتلولو سره د قصاص حکم

| |
|---|
| وَأَمَّا إِذَا ضَرَبَهُ بِالْعُودِ او بهرحال کله ئې چې دې دکدالې (سځکورې) په لرګی سره وهلې وی. فَإِنَّمَا يَجِبُ الدِّيَةُ نو دیت به واجب وی لِوُجُودِ قَتْلِ النَّفْسِ الْمَعْصُومَةِ د نفس معصومه د قتل موجود کیدو په وجه وَامْتِنَاعِ الْقِصَاصِ او د قصاص د ممتنع کیدو په وجه حَتَّى لَا يُهْدَرَ الدَّمُ تردې چې وینه فضول نشی. |

**حل اللغة*** ① المعصومة: محفوظ ② یهدر: عبث کولای شی ③ امتناع: منع کول﴾

**تشریح:-** او کله ئې چې د سځکورې په لاسکی (لرګې) سره دې وهلې او هلاك کړې وی. نو دیت به واجب وی. او قصاص به واجب نه وی. ځکه چې دا قتل عمد نه دې. نو دیت به واجب وی. چه وینه فضول (او عبث) نشی.

### په غټې امسا (لرګی) سره د قتلولو حکم

| |
|---|
| ثُمَّ قِيلَ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْعَصَا الْكَبِيرَةِ بیا وئیلی شوی دی. چه ډنډه (د تلې بازو) د غټ لرګی په درجه کې ده فَيَكُونُ قَتْلًا بِالْمُثَقَّلِ نو دا به دروند شئ سره د قتلولو په مرتبه کې وی وَفِيهِ خِلَافُ أَبِي حَنِيفَةَ او په دې کې د امام ابوحنیفه رحمه الله اختلاف دې عَلَى مَا نُبَيِّنُ، د هغه تفصیل مطابق کوم چې به موږ بیان کړو وَقِيلَ هُوَ بِمَنْزِلَةِ السَّوْطِ او وئیلی شوی دی. چه بنتیا د کوړې په مرتبه کې دې ،،وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْمُوَالَاةِ او په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې. او دا د موالات مسئله ده. |

**حل اللغة*** ① العصا: کونتئ ② السوط: کوړه ③ المثقل: درون﴾

**تشریح:-** د تلې ډنډه بعضو حضراتو د پیړ لرګی په مرتبه کې ګرځولې دې. او د پیړ لرګی هغه درجه ده. کومه چې د یو درونډ وزنی شئ درجه وی. چه په دې کې دامام صاحب او د صاحبینو رحمهما الله اختلاف دې. یعنی د امام صاحب رحمه الله په نیز به د شبه عمد کیدو په وجه دیت، او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د قتل عمد کیدو په وجه قصاص واجب وی. او بعضو حضراتو بنتیا د کوړے په مرتبه کې ګنړلې دې. چه په دې کې قصاص نه واجبیږی. خو امام شافعی رحمه الله فرمائی. که په کوړه ئې لګاتار (پرله پسې) وهلو. او هغه مړ شو. نو اوس به دا قتل عمد وی. او قصاص به واجب وی.

| |
|---|
| لَهُ د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ الْمُوَالَاةَ فِي الضَّرَبَاتِ إِلَى أَنْ مَاتَ چې لګاتار وهل، تردې چې هغه مړشی دَلِيلُ الْعَمْدِيَّةِ د عمدیت دلیل دې فَيَتَحَقَّقُ الْمُوجِبُ نو موجب د قصاص متحقق شو |

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه کله ده بلا ناغه (لګا تار) په کوړې یا ډنډې سره وهلو. تردې چې کوم کس ئې وهلو. هغه مړ شو. نو دا ددې خبرې دلیل دې. چه دده قصد او اراده د وهلو وه. نو دا قتل عمد شو. نو قصاص به واجب وی.

وَلَنَا او زموږ دليل هغه دي مَارَوَيْنَا (١) {أَلَاآن قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمْدِ} كوم چې موږ روايت کړي دي. «ألا إن قتيل خطاء العمد» وَيُرْوَى "شِبْهِ الْعَمْدِ" الْحَدِيثَ او نقل دي.. شبه العمد.. پوره حديث اووايي.

تشريح:- مرغيناني رحمه الله فرماني.چه وړاندې حديث تير شوي دي. «ألا إن قتيل خطاء العمد قتل قتل السوط والعصا وفيه مائة من الإبل» او په يو روايت کې د خطاء العمد په ځائې ،، شبه العمد،، دې.پاته تفصيلات هم هلته کې تير شوي دي.نو ددې حديث نه معلومه شوه.چه د امسا او کوړې وهلې شوې او مړ شوې به عمداً مقتول نه وي.او نه به په دې کې قصاص راځي.بلکه ديت به واجب وي.

## په باربار پيوسته وهلو سره قتل کولو کښې د قصاص حکم

وَلِأَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ عَدَمِ الْعَمْدِيَّةِ،او ځکه چې په دې کې د عدم عمديت شبه ده لِأَنَّ الْمُوَالَاةَ قَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلتَّأْدِيبِ ځکه چې لګاتار وهل، کله د تاديب لپاره وي أَوْلَعَلَّهُ اعْتَرَاهُ الْقَصْدُ فِي خِلَالِ الضَّرَبَاتِ يا شايد ده ته قصد عارض شوې وي.د وهلو په منځ کې ، فَيَعْرَى أَوَّلُ الْفِعْلِ عَنْهُ نو د فعل ړومبۍ برخه به د قصد نه خالي وي. وَعَسَاهُ أَصَابَ الْمَقْتَلَ،او کيداې شي.چه دا کوړه د قتل ( نازك) ځائې ( يا نيتې) ته رسيدلې وي وَالشُّبْهَةُ دَارِئَةٌ لِلْقَوَدِ او شبه د قصاص لرې کونکې دې فَوَجَبَ الدِّيَةُ نو ديت به واجب وي.

حل اللغة* ① خلال: مينځ ② دارئة:لرې کونکې»

تشريح:- په لګاتار وهلو کې هم دا شبه ده.چه کيداې شي د قتل اراده نه وي.ځکه چې کله د تاديب او تنبيه لپاره هم لګاتار وهل ورکولې کيږي.بهرحال شبه پيدا شوه.دغه ډول کيداې شي.چه کله ده وهل پيل کړې وي.نو دده اراده د قتلولو نه وه.بلکه په منځ کې دده دا اراده پيدا شوې وي.بهرحال دلته به هم قصاص واجب نه وي.چونکه شبه پيدا شوه.او کيداې شي.چه اراده د قتل نه وه.خو د قصد نه بغير په نازك ځائې لګيدلې وي.چه په دې سره هغه مړ شوې وي.نو قتل عمد به نه وي.

❁ بعضو حضراتو ددې دا مطلب بيان کړې دې.چه دده اراده د مړ کاوه نه وه.خو اتفاق سره داسې اوشو.چه دلته ده اووهلو.او د مخکې نه دا دده د مرګ ( نيته) او وخت دې.او دا هسې بيسه بهانه جوړه شوه.او هغه مړ شو. بهرحال په دې ټولو صورتونو کې شبه پيدا شوه.او د شبهې په وجه به قصاص ساقطيږي.او ديت به واجب وي.

## د بچي په اوبو کښې أوبولو سره قتل کولو کښې د قصاص حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائي (وَمَنْ غَرَّقَ صَبِيًّا) و چا چې ماشوم ( اوبو کې ) ډوب کړو أَوْبَالِغًا فِي الْبَحْرِ يا ئې بالغ په درياب کې ( غرق کړو). فَلَا قِصَاصَ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ(٢)نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز قصاص نشته وَقَالَا:او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي يُقْتَصُّ مِنْهُ چې دده ځخه به قصاص اخستلې شي وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ او هم دا د امام شافعي رحمه الله قول دې ،غَيْرَأَنَّ عِنْدَهُمَا يُسْتَوْفَى حَزًّا علاوه ددې خبرې نه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز به سټ کټ کاوه سره قصاص وصولولې شي وَعِنْدَهُ يُغَرَّقُ كَمَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او د امام شافعي رحمه الله په نيز به غرق کولې شي.لکه ځنګه چې موږ دا وړاندې بيان کړی دی.

حل اللغة* ① غرق: په اوبو کې ډوب شو»

تشريح:- يو سړی يو بچې يا بالغ په درياب کې غرق کړو.نو اوس ځه حکم دې.نو په دې کې امام صاحب رحمه الله فرماني.چه په دې صورت کې به ديت واجب وي.او قصاص به نه وي.اوصاحبين رحمهما الله او امام شافعي

[1] تقدم تخريجه)_

[2] القول الراجح هو هذاقول أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر( ٣١٩\٤، ٣١٨) والخانية ( ٣٨٩\٤، ٤٨٨) نقلاً عن القول ا لراجح (٣٣٧\٢)-



رحمه الله فرماني.چه قصاص واجب دې.بيا په قصاص کې اختلاف دې. صاحبين رحمهما الله فرماني.چه په قصاص کې به د قاتل سټ کټ کولې شي.او امام شافعي رحمه الله فرماني.چه قاتل به غرق کولې شي.يعنى «يفعل به كما فعل إن كان فعلاً مشروعاً»

لَهُمَا ددې حضراتو دليل د نبي ﷺ فرمان دې قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ غَرَّقَ غَرَّقْنَاهُ} (١) چې ،، چا غرق کړو،نو موږ به هغه غرق کوو،، وَلِأَنَّ الْآلَةَ قَاتِلَةٌ فَاسْتِعْمَالُهَا أَمَارَةُ الْعَمْدِيَّةِ او ځکه چې ( د درياب اوبه) آله د قتلولو ده.نو ددې استعمال د عمديت علامه ده. وَلَا مِرَاءَ فِي الْعِصْمَةِ او د وينې په ساتنه ( او عصمت) کې هيڅ شبه نشته.

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله او امام شافعي رحمه الله دليل دا حديث دې «من غرق غرقناه» (رواه البيهقي)

طريق الاستدلال ۞ د امام شافعي رحمه الله استدلال خو ددې نه ښکاره دې.او صاحبين رحمهما الله فرماني.چه د حديث نه دا معلومه شوه.چه د قاتل ځخه به قصاص اخستلې شي.پاتې شوه ددې طريقه نو وړاندې حديث تير شوې دې. «لا قود إلا بالسيف» او غرق کونکی داسې آله اختيار کړې ده.چه دا هلاکونکې ده.يعني اوبو کې ډوبول ( او غرقول).او دا آله د قتل ده.نو د قتل د آلې استعمالول، د قصد او عمد دليل دې.نو مقتول معصوم الدم دې.چه په دې کې هيڅ شبه نشته.او قاتل عمداً قتل کوی.نو قصاص به واجب وي.

وَلَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د نبي ﷺ فرمان دې {أَلَاآن قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمْدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا} (٢) خبر شئ! د شبه عمد مقتول د کوړې او امسا مقتول دې وَفِيهِ {وَفِي كُلِّ خَطَإٍ أَرْشٌ} او په دې ( شبه عمد ) کې او په هر قتل خطاء کې ديت دې،،

حل اللغة* ① سوط: کوړه ② ارش: ديت »

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه اوبه د قتلولو آله نه ده.نو ددې حکم به د توري حکم نه وي.بلکه د کوړې او امسا حکم به وي.چه په دې کې ديت واجبيږي.ځکه حديث کې دی.چه په هرشبه عمد کې او هر قتل خطاء کې ديت واجبيږي.او حديث دا دې. «ألا إن قتيل خطاء العمد قتيل السوط والعصا فيه و في كل خطاء إرش» نوپه ذکر شوی صورت کې به هم ديت واجب وي.

،لِأَنَّ الْآلَةَ غَيْرُمُعَدَّةٍ لِلْقَتْلِ او ځکه چې دا آله ( اوبه) د قتل لپاره موضوع نه دی وَلَامُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ او نه په قتل کې استعمالولې شی لِتَعَذُّرِ اسْتِعْمَالِهِ فَتَمَكَّنَتْ شُبْهَةُ عَدَمِ الْعَمْدِيَّةِ ددې د استعمال متعذر کيدو په وجه.نو د عدم عمديت شبه پيدا شوه.

حل اللغة* ① معدة: تياره شوې ② تمكنت: پيدا شوه »

تشريح:- او اوبه نه د قتل آله ده.او نه د قتلولو لپاره اوبه استعمالولې شی.بيا اکثرو صورتونو کې قتل لپاره د اوبو استعمال متعذر هم دې.او هرکله چې صورت حال دا دې.نو د عدم عمديت شبه پيدا شوه.او شبهې سره قصاص ساقطيږی.

وَلِأَنَّ الْقِصَاصَ يُنْبِئُ عَنِ الْمُمَاثَلَةِ،او ځکه چې قصاص د مماثلت خبر ورکوی وَمِنْهُ يُقَالُ: اقْتَصَّ أَثَرَهُ،او هم ددې نه ونيلې شی،، إقتص أثره،، ده د هغه د نقش قدم تابعداری اوکړله وَمِنْهُ الْمِقَصَّةُ لِلْجَلَمَيْنِ او هم ددې نه د قينچۍ دواړو مخونو لپاره مقصه ونيلې شی.

تشريح:- او که دلته کې قصاص واجب کړې شی.نو په قصاص کې او غرق کاوه کې به مماثلت نه وی..او مماثلت ضروری دې.او د مماثلت نه کيدو وجه دا ده.چه په غرق کاوه سره مړ شوې دې.خو ښکاره يا پټ ځه وهل ټکول نه

[1] من حديث براءبن عازب رضي الله عنه أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٧٩\٨) رقم ١٥٩٩٣)_

[2] تقدم تخريجه)_

دی شوی.او هرکله چې ددې بدل قصاص سره اخستلې شی.نو دلته به ښکاره هم خرابیږی.کوم چې غرق کاوه سره نه وو شوی.

؟ هم دا وجه ده.چه په زخم لګولو او دروند شئ سره په زور ور کاوه او ماتولو کي هم تماثل منلې شوې دې.او هم دا وجه ده.چه امام صاحب رحمه الله په دروند کاڼی سره د وژلو په صورت کي قصاص نه دې واجب کړې.بلکه دیت ئې واجب کړې دې.بهرحال په دې دواړو کي تماثل نشته.حالانکه مماثلت کیدل ضروری دی.ځکه چې د قصاص معنی پخپله د مماثلت کیدو ده.په دې وجه ددې نه اشتقاق (او اخذ) کاوه سره ,,إقتص أثره،، ونیلې شی.کله چې څوك د چا په نقش قدم باندې روان شی.او هم ددې نه مشتق کاوه سره د قینچې دواړو مخونو (پلکو) لپاره مقصه ونیلې شی.

| |
|---|
| وَلَا تَمَاثُلَ بَيْنَ الْجَرْحِ وَالدَّقِّ او د جرح او دق (زخم او ټ کاوه) په منځ کي مماثلت نشته لِقُصُورِ الثَّانِي د دوهم د قاصر کیدو په وجه عَنْ تَخْرِيبِ الظَّاهِرِ د ښکاره خرابولو په وجه وَكَذَا لَا يَتَمَاثَلَانِ فِي حِكْمَةِ الزَّجْرِ او هم دغه ډول دا دواړه (جرح او دق) متماثل نه دی.د زجر (رټلو او ملامتیا) په حکمت کي ، ځکه لِأَنَّ الْقَتْلَ بِالسِّلَاحِ غَالِبٌ وَبِالْمُثَقَّلِ نَادِرٌ چه وسلې سره قتلول غالب دی.او په دروند شئ سره نا آشنا دی. |

**حل اللغة:** ① **تخريب:** خرابول ② **الزجر:** رټل ③ **المثل:** دورن ④ **نادر:** کله کله پیښیدونکې

**تشريح:-** او جرح او دق (زخمی کول او ټکولو) په منځ کي هم تماثل نشته.ځکه چې ټ کاوه کي ښکاره خرابول کم دی.نو د زخم او غرق په منځ کي به هم په درجه اولی هیڅ مماثلت نه وی.او د قصاص مقصد دا دې.چه زجر (ملامتیا) حاصل شی.او دا مقصد به هلته ,,علی سبیل الکمال،، حاصلیږی.کله چې په دې آلې سره د قتلولو عام رواج وی.او په کوم سره چې د قتلولو عام رواج نه وی.هلته به د زجر دا حکمت هم نه حاصلیږی.او صورت حال دا دې.چه په تورې او وسلې سره قتلول عام دی.او په دروند او وزنی شئ سره یا غرق کاوه سره قتلول نا آشنا دی.( عام نه دی.نو دلته په قصاص واجبولو سره حکمت د زجر هم غیر متماثل دې.

### د فریق مخالف د مستدل حدیث جواب

| |
|---|
| وَمَا رَوَاهُ غَيْرُ مَرْفُوعٍ او هغه روایت کوم چې امام شافعی رحمه الله روایت کړې دې.غیر مرفوع دې أَوْ هُوَ مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ یا هغه په سیاست باندې محمول دې وَقَدْ أَوْمَأَ إِلَيْهِ إِضَافَتُهُ إِلَى نَفْسِهِ فِيهِ او هم دې اړخ ته اشاره کوی.د ډوبولو اضافت خپل نفس اړخ ته په حدیث کي ، وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ او هرکله چې قصاص ممتنع شو وَجَبَتِ الدِّيَةُ وَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو دیت به واجب وی.او دیت به په عاقله وی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ وَاخْتِلَافُ الرِّوَايَتَيْنِ فِي الْكَفَّارَةِ او موږ دا ذکرکړې دې.او د دوو روایتونو اختلاف دې.په کفاره کي دننه. |

**تشريح:-** پاتې شو هغه حدیث کوم چې د فریق مخالف مستدل دې.نو هغه حدیث مرفوع نه دې.بلکه د زیادت کلام دې.,,فلا یصح به الإستدلال،، یا دا حدیث په سیاست باندې محمول دې.چه ددې دلیل دا دې.چه نبی کریم ﷺ د غرق کاوه اضافت خپل خان اړخ ته فرمائیلې دې.او ,,غرقناه،، ئې فرمائیلې دی.بهرحال هرکله چې قصاص واجب نشو.نو دیت به واجب وی.او دیت به په عاقله باندې واجب وی.د امام صاحب رحمه الله په نیز خو دیت بې شکه واجب دې.پاتـه پاتې شوه کفاره، نو په دې کي د امام صاحب رحمه الله دوې (دوه) روایتونه دی.یو روایت دا دې.چه کفاره واجب نه ده.او د امام طحاوی رحمه الله روایت دا دې.چه کفاره واجب ده.,,وإختلاف،، مبتدا او ,,فی الکفارة،، ددې خبر دې.

### په قصداً وهلو ټکولو.او زخمی کولو سره د مړ کیدو په صورت کښې د قصاص حکم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا عَمْدًا فَلَمْ يَزَلْ صَاحِبَ فِرَاشٍ او چا چې قصداً څوك سړې زخمی کړو.نو هغه پیوسته په بستره (بیمار) پروت وو حَتَّى مَاتَ فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ لِوُجُودِ السَّبَبِ تردې چې مړ شو.نو په ده به |



| |
|---|
| قصاص واجب وی.د مرګ سبب موجود کیدو په وجه وَعَدَمِ مَا يُبْطِلُ حُكْمَهُ فِي الظَّاهِرِ او د هغه شئ نه کیدو په وجه کوم چې ښکاره د سبب حکم باطل کړی فَأُضِيفَ إِلَيْهِ نو د حکم اضافت به سبب اړخ ته وی |

**تشريح:-** عثمان بکر زخمی کړو.او ددې زخم په وجه بکر مثلاً یوه میاشت پورې په بستره (مریض) پروت وو. او مړ شو.نو د عثمان څخه به قصاص اخستلې شی.ځکه چې د عثمان د زخم په وجه دې مړ شوې دې.چه دا تر اوسه پورې باطل شوې نه وو.نو د مرګ اضافت به د زخم لګولو اړخ ته کیږی.

### د کافرانو په ډیره کښې د یو مسلمان د لاسه د بل مسلمان شهید کیدو مسئله

| |
|---|
| قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائی (وَإِذَا الْتَقَى الصَّفَّانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ او کله چې د مسلمانانو او مشرکانو دواړه صفونه ګډ وډ شی فَقَتَلَ مُسْلِمٌ مُسْلِمًا ظَنَّ أَنَّهُ مُشْرِكٌ نو یو مسلمان بل مسلمان مشرك اوګنړلو.او قتل ئې کړو فَلَا قَوَدَ عَلَيْهِ وَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ). نو په ده باندې قصاص نشته.او په ده کفاره ده. |

**تشريح:-** د مسلمانانو او مشرکانو صفونه وران (او ګډ وډ) شو.او جنګ پیل شو.یو مسلمان بل مسلمان مشرك اوګنړلو.او قتل ئې کړو.حالانکه دا مقتول مسلمان دې.نو قاتل باندې قصاص نشته.صرف کفاره او دیت دې.

| |
|---|
| لِأَنَّ هَذَا أَحَدُ نَوْعَيِ الْخَطَإِ ځکه چې دا د خطاء په دوو قسمونو کي یو ډول دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې وَالْخَطَأُ بِنَوْعَيْهِ لَا يُوجِبُ الْقَوَدَ او خطاء سره د خپلو دواړو قسمونو قصاص نه واجبه وی وَتُوجِبُ الْكَفَّارَةَ، وَكَذَا الدِّيَةَ او کفاره او دیت واجبوی عَلَى مَا نَطَقَ بِهِ نَصُّ الْكِتَابِ لکه څنګه چې نص د کتاب ناطق دې |

**تشريح:-** دلیل دا دې چې دا خطاء فی القصد ده.او د خطاء چې هر یو ډول وی.په قتل خطاء کي قصاص نه وی.بلکه دیت او کفاره واجبیږی.د الله تعالی د فرمان نه هم دا ثابتیږی.ارشاد دې. ﴿وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ إِلَّا أَنْ يَصَّدَّقُوا﴾

### د مشرکانو په صف کښې د مسلمان قتلولو مسئله

| |
|---|
| وَلَمَّا اخْتَلَفَتْ سُيُوفُ الْمُسْلِمِينَ عَلَى الْيَمَانِ أَبِي حُذَيْفَةَ رضی الله عنه او کله چې د مسلمانانو تورې د حضرت حذیفه رضی الله عنه په پلار یمان باندې واقع شوې قَضَى رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِالدِّيَةِ.(1) نو رسول الله ﷺ د دیت فیصله اوفرمائیله. |

**تشريح:-** په غزوهٔ خندق کي د حضرت حذیفه رضی الله عنه پلار یمان د خپل بوډها توب په وجه د ښځو او ماشومانو سره په یو غر باندې وو.په هغه باندې د شهادت ولوله (او جذبه) راغله.او لاندې راکوز شو.مسلمانانو هغه مشرك اوګنړلو.او په هغه باندې ئې چور اوکړله.حضرت حذیفه رضی الله عنه چغې وهلې.چه دا خو زما پلار دې.خو ددې هیڅ چا نه اوریدل.تردې چې هغه ئې قتل کړو.نو دلته کي نبی کریم ﷺ د دیت فیصله فرمائیلې وه.معلومه شوه.چه په داسې صورت کي به دیت واجب وی.

| |
|---|
| قَالُوا: إِنَّمَا تَجِبُ الدِّيَةُ مشائخو فرمائیلی دی.چه دیت به هغه وخت واجب وی إِذَا كَانُوا مُخْتَلِطِينَ، کله چې مسلمانان خپل منځ کي ګډ وډ شی فَإِنْ كَانَ فِي صَفِّ الْمُشْرِكِينَ نوکه یو مسلمان د مشرکانو په صف کي وی لَا تَجِبُ نو دیت به نه واجبیږی. لِسُقُوطِ عِصْمَتِهِ دده د عصمت ساقطیدو په وجه بِتَكْثِيرِ سَوَادِهِمْ ددوی د تعداد زیاتولو په وجه قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ كَثَّرَ سَوَادَ قَوْمٍ نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.,,چا چې د یو قوم تعداد زیات کړو فَهُوَ مِنْهُمْ(2) نو هغه هم د هغوی څنې دې،، |

1) من حدیث رافع بن حدیج رضی الله عنه أخرجه الواقدی فی مغازیه (نصب الرأیة:١٠٠/١٥)_

2) من حدیث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه أخرجه ابویعلی الموصلی فی مسنده (نصب:١٠٢/١٥)_

**حل اللغة:** ① **مختلطين:** جمع د خليط، شريك ② **سواد:** جماعت، ډله﴾

**تشريح:-** مشائخو فرمائيلي دي،چه د ديت حكم هغه وخت دې.كله چې ګنړه او ګډه وډې پيل شوې وي.او كه يو مسلمان د مشركانو په صف كي وي.نو دده د قتلولو په وجه به ديت واجب نه وي.ځكه چې اوس دا مسلمان د هغوى تعداد زياتونكي جوړ شوې دې.چه ددې په وجه دده عصمت (او د وينې حفاظت) ساقط شو.ځكه حديث كي دي.چه ،، څوك د كوم جماعت په تعداد كي د زياتوالى سبب جوړ شو.هغه به هم هغوى كي شمارلې كيږي،،

**د زخمي سړي سر زخمي كول، د مارچيچل.او د زمري چور كولو نه روسته مړكيدو سره د ديت حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي (وَمَنْ شَجَّ نَفْسَهُ وَشَجَّهُ رَجُلٌ او چا چې خپل سر زخمي كړو.او يو سړى دده سر زخمي كړو وَعَقَرَهُ أَسَدٌ او شير دې زخمي كړو وَأَصَابَتْهُ حَيَّةٌ او مار دې اوچيچلو فَمَاتَ مِنْ ذَلِكَ كُلِّهِ نو دې ددې ټولو څيزونو په وجه مړ شو فَعَلَى الْأَجْنَبِيِّ ثُلُثُ الدِّيَةِ نو په اجنبى باندې دريمه برخه ديت دې. لِأَنَّ فِعْلَ الْأَسَدِ وَالْحَيَّةِ جِنْسٌ وَاحِدٌ ځكه چې شير او مار فعل (او زخمي كول) جنس واحد دې لِكَوْنِهِ هَدَرًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ددې د عبث كيدو په وجه په دنيا او آخرت كي وَفِعْلُهُ بِنَفْسِهِ هَدَرٌ فِي الدُّنْيَا مُعْتَبَرٌ فِي الْآخِرَةِ او دده ذاتى فعل دنيا كي عبث او آخرت كي معتبر دې حَتَّى يَأْثَمَ عَلَيْهِ تردې چې هغه به په دې باندې ګناهګار وي

**حل اللغة:** ① **شج:** دسر زخمي كړو ② **اسد:** زمري ③ **الحية:** مار ④ **ياثم:** ګناهګاريږى﴾

**تشريح:-** عثمان خپل سر پخپله زخمي كړو.او بكر هم دده سر زخمي كړو.او شير عثمان زخمي كړو.او مار دې اوچيچلو .ددې ټولو سببونو په وجه هغه مړ شو.نو بكر باندې به څومره ديت واجب وي؟ نو وي فرمائيل .چه دريمه برخه ديت به بكر باندې واجب وي.ځكه چې ګويا په دريو سببونو سره مړ شوې دې.او د بكر فعل ددې سببونو دريمه برخه ده.نو ديت به هم دريمه برخه وي.

❓كه څوك دا پوښتنه اوكړي چې د بكر فعل د سببونو دريمه برخه څنګه ده؟نو مونږ ورته وايو چې ځكه چې د شير او مار فعل د جنس واحد كيدو په وجه يو فعل شو.او يو فعل پخپله د عثمان، او يو فعل د بكر دې.نو د عثمان فعل د سبب دريمه برخه شوه.

❓كه څوك دا پوښتنه اوكړي چه د د شير او مار فعل يو جنس ولې دې.او د دوى (د عثمان او بكر) دواړو فعل جلا جلا ولې دې؟ نومونږ ورته وايو چې د شير او مار فعل په دنيا او آخرت كي فضول دې.يعنى نه به دلته (دنيا) كي د شير او مار ګرفتارى كيږي.او نه به په آخرت كي (ګرفتارولې شي).نو دا دواړه جنس واحد شو.او د عثمان فعل آخرت كي معتبر دې.دنيا كي فضول دې.او د بكر فعل دنيا او آخرت دواړو كي معتبر دې.ځكه چې دعثمان فعل نه شير او مار سره يوځائې كيداې شي.او نه د بكر فعل سره (متعلق كيداې شي).نو د بكر فعل د ټولو افعالو ثلث شو.نو په ده به ثلث ديت واجبولې شي.

❓اوياته پاتې شوه دا خبره چې د عثمان فعل په آخرت كي معتبر دې نو د دې دليل دا دې چې عثمان ددې په وجه ګناهګاريږى.او هم ددې ګناه په وجه مشائخو كي دا اختلاف شوې دي.چه په ده به د جنازې لمونځ كولاى شى او كه نه؟ او ده دده د اتم كيدو په وجه دى.نو فرمائي.

وَفِي النَّوَادِرِ او په نوادر كي دي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ يُغَسَّلُ چې د طرفينو رحمهما الله په نيز به ده ته غسل ور كولاى شى وَيُصَلَّى عَلَيْهِ او په ده به د جنازې لمونځ كولاى شى وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُغَسَّلُ او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به غسل وركولې شى. وَلَا يُصَلَّى عَلَيْهِ او په ده به د جنازې لمونځ نشى كولې. وَفِي شَرْحِ السِّيَرِ الْكَبِيرِ ذَكَرَ فِي الصَّلَاةِ عَلَيْهِ اخْتِلَافَ الْمَشَايِخِ او د سيركبير په شرح كي په ده باندې د لمونځ كاوه په اړه كي د مشائخو اختلاف ذكر دې عَلَى مَا كَتَبْنَاهُ فِي كِتَابِ التَّجْنِيسِ وَالْمَزِيدِ چه دا موږ په كتاب ،، التجنيس و المزيد،، كي ليكلي دي.

**تشريح:-** طرفين رحمهما الله فرمائي،چه په خودكشى كونكى باندې به لمونځ د جنازې كولې شى.او غسل به وركولې شى.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به صرف غسل وركولې شى.او ابانه به لمونځ نشى كولې.د سير كبير په شرح



كي د لمونځ اړه كي د مشائخو اختلاف ذكر دې،چه دا مرغينانى رحمه الله پخپل كتاب ،،التجنيس و المزيد،، بيان كړي دي.خو مفتى به قول دا دې.چه لمونځ به كولې شى.او غسل به وركولې شى.تفصيل لپاره اوګورئ ﴿شامى ص:۵۸۴ج۱﴾

**د اجنبي فعل په دنيا او آخرت كښې معتبر دي**

فَلَمْ يَكُنْ هَدَرًا مُطْلَقًا نو نه به وى (فعل د زيد) مطلق (بالكل) عبث وَكَانَ جِنْسًا آخَرَ او دې به دوهم جنس وى وَفِعْلُ الْأَجْنَبِيِّ مُعْتَبَرٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ او د اجنبى فعل دنيا او آخرت كي معتبر دې فَصَارَتْ ثَلَاثَةَ أَجْنَاسٍ نو واړه افعال درې جنسه شو فَكَأَنَّ النَّفْسَ تَلِفَتْ بِثَلَاثَةِ أَفْعَالٍ نو ګويا چې نفس په درې افعالو سره هلاك شوې دې فَيَكُونُ التَّالِفُ بِفِعْلِ كُلِّ وَاحِدٍ ثُلُثَهُ نو هر فعل سره هلاكونكې ددې ثلث شو ،فَيَجِبُ عَلَيْهِ ثُلُثُ الدِّيَةِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو په ده به د ديت ثلث واجب وى.والله اعلم بالثواب.

**تشريح:-** د زيد فعل چونكه من وجه معتبر، او من وجه عبث دې.نو دا به جلا شمارل ضرورى وى.نو واړه افعال د دريو جنسونو جمع شو.او د خالد فعل ددې افعالو ثلث دې.نو په ده به ثلث ديت هم واجب وى.

**په مسلمان باندې د توري راويستونكي د قتل كولو حكم**

فصل: قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلي دى (وَمَنْ شَهَرَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ سَيْفًا) او چا چې په مسلمان باندې توره راويستله فَعَلَيْهِمْ أَنْ يَقْتُلُوهُ نو په مسلمانانو واجب دى.چه دې قتل كړى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَنْ شَهَرَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ سَيْفًا د نبى ﷺ د فرمان په وجه چې ،،چا په مسلمان باندې توره راويستله فَقَدْ أَطَلَّ دَمَهُ}[1] نو ده خپله وينه فضول كړله،، .وَلِأَنَّهُ بَاغٍ او ځكه چې دې باغى دې فَتَسْقُطُ عِصْمَتُهُ بِبَغْيِهِ نو دده د بغاوت په وجه به دده عصمت ساقطيږى، وَلِأَنَّهُ تَعَيَّنَ طَرِيقًا لِدَفْعِ الْقَتْلِ عَنْ نَفْسِهِ فَلَهُ قَتْلُهُ او ځكه چې قتلول معين طريقه ده.د خپل نفس نه د مدافعت لپاره به مسلمان لپاره دده قتل جائز وى.

**تشريح:-** كوم سړې اګرچه مسلمان وى.په مسلمانانو باندې توره راوباسى.نو په مسلمانانو باندې واجب دى.چه دې قتل كړى.ځكه د هغه حديث مطابق كوم چې ذكر شو.دده عصمت ساقط شو.② او دده وينه فضول شوه.او دې باغى دې.او بغاوت عصمت ختمونكې دې.③ اوكه دې قتل نكړې شى.نو د خپل نفس نه مدافت مشكل دې.نو اوس د مدافعت طريقه صرف قتل دې.نو د قتل څواب ثابت شو.

**د امام محمد رحمه الله په دواړو عبارتونو سره دده قتلول واجب دي**

وَقَوْلُهُ فَعَلَيْهِمْ او د امام محمد رحمه الله قول ،، فعليهم،، وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او د امام محمد رحمه الله قول جامع صغير كي حَقٌّ عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَقْتُلُوهُ نو حق دې په مسلمانانو چې دې قتل كړى إِشَارَةٌ إِلَى الْوُجُوبِ وجوب اړخ ته اشاره ده وَالْمَعْنَى وُجُوبُ دَفْعِ الضَّرَرِ او وجه د ضرر لرې كاوه وجوب دې

**تشريح:-** امام محمد رحمه الله په مبسوط كي ،، فعليهم،، او په جامع صغير كي ئې داسې فرمائيلي دى. «فحق على المسلمين أن يقتلوه» ددې دواړو عبارتونو نه دا خبره معلومه شوه.چه قتلول واجب دى.او وجوب ځكه دې.چه د خپل نفس نه ضرر لرې كړى.،، وفيه أقوال أخر،،

**د توري راويستونكي مسلمان د وژلو حكم**

وَفِي سَرِقَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او د جامع صغير په ،،كتاب السرقه،، كي دى وَمَنْ شَهَرَ عَلَى رَجُلٍ سِلَاحًا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا او چا چې

[1] غربه الزيلعى رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج من حديث ابى الزبير رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من شهر سيفه ثم وضعه فدمه هدر وعزاه إلى ابن ماجه (رقم ۴۰۹۷) (نصب:۱۰۴۱۵)_

په یو کس باندې وسله راوښکله.په شپه یا ورځ کې ، أَوْ شَهَرَ عَلَيْهِ عَصًا لَيْلًا فِي مِصْرٍ یا ئې په ده امسا راوښکله.د شپې په ښار کې ، أَوْ نَهَارًا فِي طَرِيقٍ فِي غَيْرِ مِصْرٍ یا په ورځ کې په داسې لاره کې چې دا په ښار کې نه ده فَقَتَلَهُ الْمَشْهُورُ عَلَيْهِ عَمْدًا نو ده هغه کس قتل کړو.په چا چې توره راویستلې شوې وه.په عمد ( قصد ) سره فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ لِمَا بَيَّنَّا نو په ده باندې هیڅ شی نشته.د هغه دلیل په وجه، کوم چې موږ بیان کړې دی.

﴿حل اللغة: ① سلاح: وسله ② عصا: کونتی؛ ③ طریق:لاره﴾

تشریح:- یو سړی په یو کس باندې توره راویستله.که ورځ وی اوکه شپه وی.یا ئې امسا راویسلته.په ښار کې ئې راویسلته خو په شپه کې ، یا ئې ورځ کې راویستله خو په یو ځنګل کې ، نو هغه کس ،، په چا چې وسله یا امسا راویستلې شوې وه،، چې دا پوزیشن اوکتلو.هغه وسله راوښکلو والا مړ کړو.نو په ده به هیڅ ضمان نه وی.د هغه تیر شوی حدیث په وجه.

## په شپه ورځ کښې د تورې ، او په شپه یا ځنګل کښې د لرګی راویستونکی د قتل کولو وجه

وَهٰذَا،لِأَنَّ السِّلَاحَ لَا يَلْبَثُ او خکه چې وسله نه ایساریږی فَيَحْتَاجُ إِلَى دَفْعِهِ بِالْقَتْلِ نو دی ( په چا چې وسله راویستلې شوې ده) به ددې دفع کاوه محتاج وی.د قتل په ذریعه وَالْعَصَا الصَّغِيرَةُ،وَإِنْ كَانَتْ تَلْبَثُ وَلٰكِنْ فِي اللَّيْلِ لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ او وړه امسا اګرچه ایساریږی.خو د شپې به ده له هیڅ څوك فریاد رس (او مددګار) نه راځی. فَيُضْطَرُّ إِلَى دَفْعِهِ بِالْقَتْلِ،نو دې به د قتل په ذریعه دده د دفع کاوه محتاج وی وَكَذَا فِي النَّهَارِ فِي غَيْرِ الْمِصْرِ فِي الطَّرِيقِ لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ،.او دغه ډول په ورځ کې ، د ښار نه بهر په لاره کې به ده ته فریاد پوره کونکې ( امدادی) نه رارسیږی فَإِذَا قَتَلَهُ كَانَ دَمُهُ هَدَرًا"..نو هرکله چې ده ( په چا چې وسله راویستلې شوې ده) هغه لره ( چا چې وسله راوښکلې ده) قتل کړو.نو دده وینه به فضول وی قَالُوا:مشانخو فرمائیلی دی فَإِنْ كَانَ عَصًا لَا تَلْبَثُ نو که داسې امسا وی.چه هغه نه ایساریږی يَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ مِثْلَ السِّلَاحِ عِنْدَهُمَا نو احتمال شته.چه د صاحبینو رحمهما الله په نیز دا د وسلې په مثل شی.

تشریح:- په جامع صغیر کې چې کوم قیودات لګولې شوی دی.دلته مرغینانی رحمه الله ددې وجه بیانوی.① که وسله په شپه کې وی اوکه ورځ کې وی.د ټولو حکم یوشان ( برابر) دی.ځکه چې وسله به خو فوراً خپل کار کوی.نو دلته د خپل ځان بچ کاوه لپاره قتلولو باندې په هرحال کې مجبور دی.② که راوښکونکی امسا راویستلې ده.نو ددې لپاره ئې د شپې او د ځنګل قید لګولې دی.د شپې قید ئې ځکه لګولې دی.چه امسا اګرچه فوراً په عامه توګه (عام طور) باندې نه مړ کوی.خو د شپې به ده ته څوك مددګار ملاؤ نشی.چه هغه دې خلاص کړی.او دغه ډول په ورځ کې که په ځنګل کې وی.هلته به هم څوك خلاصونکې ملاو نشی.نو په دې دواړو صورتونو کې به هم دې مجبور شمارلې کیږی.او داسې به ګڼړلې شی.چه لکه ځنګه دې په ړومبی صورت کې مجبور وو.اوس هم مجبور دې.نو که ده هغه قتل کړو.نو هیڅ ضمان به واجب نه وی.

وړاندې مسئله تیره شوې ده.چه د صاحبینو رحمهما الله په نیز امسا د وسلې په مرتبه کې ده.نو ددوی په نیز به امسا دلته کې هم د وسلې په درجه کې وی.او د وسلې پشان که ده امسا راوښکله.نو د شپې او ورځې، ښار او ځنګل حکم یوشان دې.[1]

## د لیونی، پاګل، یا د بچی د تورې راویستل او قتلولو سره د دیت مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی. وَإِنْ شَهَرَ الْمَجْنُونُ عَلَى غَيْرِهِ سِلَاحًا او که مجنون د ځان نه علاوه باندې وسله راوښکله فَقَتَلَهُ الْمَشْهُورُ عَلَيْهِ عَمْدًا نو مشهور علیه (په چا چې وسله راویستلې شوې وه) هغه عمداً قتل کړو فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ() نو په قاتل باندې دده په مال کې دیت واجب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ:لَا شَيْءَ عَلَيْهِ،او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په قاتل هیڅ هم نشته وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ وَالدَّابَّةُ او هم په دې اختلاف بچې او حیوان (ځاروې) دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجِبُ الضَّمَانُ فِي الدَّابَّةِ د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په ځاروی کې ضمان واجب دې وَلَا يَجِبُ فِي الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ او په بچی او مجنون کې واجب نه دې.

﴿حل اللغة: ① شهر: چور اوکړه ② الصبی:ماشوم ③ المجنون: لیونې﴾

تشریح:- یو مجنون او پاګل یا بچی په زید باندې توره یا بل څه شی راویستلو.یا په زید باندې مثلاً میښې چور اوکړله.چه ددې په وجه زید هغه قتل کړو.او خپل ځان ئې بچ کړو.نو په زید باندې بالاتفاق په یو صورت کې هم قصاص نشته.اوس پاتې شوه د دیت خبره، نو په دې کې اختلاف دې په نورو الفاظو سره داسې چې دې کې درې قوله دی:① د طرفینو رحمهما الله قول، چې د دیت او میښې قیمت به واجب وی.② د امام شافعی رحمه الله قول دا دې.چه په دې کې به په یوصورت کې هم دیت او ضمان واجب نه وی.③ د امام ابویوسف رحمه الله قول دا دې.چه د مجنون او بچی په صورت کې به دیت واجب نه وی. البته د میښې په صورت کې به ددې د قیمت ضمان واجب وی.

لِلشَّافِعِيِّ أَنَّهُ د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دی قَتَلَهُ دَافِعًا عَنْ نَفْسِهِ چې قاتل دې د خپل نفس د اړخه د مدافعت په غرض سره قتل کړې دی فَيُعْتَبَرُ بِالْبَالِغِ الشَّاهِرِ،نو دې به په بالغ راویستونکی باندې قیاس کولای شی وَلِأَنَّهُ يَصِيرُ مَحْمُولًا عَلَى قَتْلِهِ بِفِعْلِهِ او ځکه چې قاتل د مقتول په قتل باندې د مقتول په فعل سره راپورته شوې دی فَأَشْبَهَ الْمُكْرَهَ نو قاتل د مکره مشابه شو.

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې.که توره راویستونکې بالغ وې.او قاتل ده لره قتل کړې وو.نو دیت به نه واجبیدو.دغه ډول به دلته کې هم دیت واجب نه وی.ځکه چې دواړو صورتونو کې د زید مقصد خپل ساتنه دې.او وجه داده. چې مجنون وغیره پخپله قاتل په قتل باندې راپورته کړې دې.که دې ورمخکې شوې نه وو.نو هغه به نه قتلولو.ددې مثال بالکل داسې دې.چه زید د خالد په سینه باندې طمانچه راویستله. چې بکر په ګولۍ باندې اوله.ګنی زه تا ختموم.نو خالد په بکر باندې ګولۍ اوچلوله.چه په دې سره بکر مړ شو.نو په خالد،،چه مکره دې،، هیڅ به واجب نه وی.دا د امام شافعی رحمه الله دلیل دی

وَلِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ فِعْلَ الدَّابَّةِ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ أَصْلًا او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی.چه د ځاروی فعل بالکل غیر معتبر دې حَتَّى لَوْ تَحَقَّقَ تردې که د ځاروی فعل متحقق کیدو لَا يُوجِبُ الضَّمَانَ نو هغه به ضمان نه واجبولو أَمَّا فِعْلُهُمَا مُعْتَبَرٌ فِي الْجُمْلَةِ ددوی دواړو فعل فی الجمله معتبر دې حَتَّى لَوْ حَقَّقْنَاهُ تردې که دوی دواړو دا فعل متحقق کړې وې يَجِبُ عَلَيْهِمَا الضَّمَانُ،نو په دوی دواړو به ضمان واجب وې وَكَذَا عِصْمَتُهُمَا لِحَقِّهِمَا او دغه ډول ددوی دواړو عصمت ددوی دواړو د حق په وجه دې وَعِصْمَةُ الدَّابَّةِ لِحَقِّ مَالِكِهَا او د ځاروی عصمت ددې د مالك د حق په وجه دې فَكَانَ فِعْلُهُمَا مُسْقِطًا لِلْعِصْمَةِ دُونَ فِعْلِ الدَّابَّةِ نو ددوی دواړو فعل به عصمت ساقطونکې وی.د ځاروی فعل به نه وی.

﴿حل اللغة: ① عصمة: حفاظت، ② دابة: ځناور ③ مسقط:ساقطونکې﴾

تشریح:- دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه په ځاروی، مجنون او بچی کې توپیر دې.یعنی د ځاروی فعل معتبر نه دې.اود بچی او مجنون فعل فی الجمله معتبر دې.او دوهم فرق دا دې. چې د مجنون او بچی عصمت پخپله ددوی ذاتی دې.او ددوی دواړو حق دې.او د ځاروی عصمت ذاتی نه دې.بلکه ددې دمالك د

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين. رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(٣٨٨١٥) والفقه الإسلامى وأدلته (٢٤٤١٢) والهندية (٧١٦) وملتقى الأبحر(٣٢٢١٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٣٩١٢)-

حق په وجه دي.هرکله چې دا توپير ښکاره شو.نو د څاروی فعل د نه کيدو په درجه کې دی.نو د څاروی په فعل سره به د څاروی عصمت نه ساقطيږي.او هرکله چې عصمت نه ساقطيږي.نو ددې د قتلولو په وجه به د قيمت ضمان واجب وی.

او د بچی او مجنون فعل فی الجمله د معتبر کيدو په وجه،ددوی په فعل سره ددوی عصمت شمارلې کيږي.او هرکله چې عصمت ساقط شو.نو بيا به د قتل ضمان واجب نه وی.او ددوی دواړو د فعل معتبر کيدو دليل دا دی.که دوی څوك قتل کړي.نو دوی باندې ضمان واجبيږي.البته د نه مکلف کيدو په وجه به قصاص واجب نه وی.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دې أَنَّهُ قَتَلَ شَخْصًا مَعْصُومًا چې ده معصوم سړې قتل کړې دې أَوْ أَتْلَفَ مَالًا يا ئې داسې مال ضائع کړې دې مَعْصُومًا حَقًّا لِلْمَالِكِ چې دا د مالك دحق په وجه معصوم دې. وَفِعْلُ الدَّابَّةِ لَا يَصْلُحُ مُسْقِطًا او د څاروی فعل د عصمت ساقطولو صلاحت نه لری وَكَذَا فِعْلُهُمَا او دغه ډول ددوی دواړو فعل (هم ساقطونکې نه دې) وَإِنْ كَانَتْ عِصْمَتُهُمَا حَقَّهُمَا لِعَدَمِ اخْتِيَارٍ صَحِيحٍ اګرچه ددوی دواړو عصمت ددوی دواړو حق دې.د اختيار صحيح نه کيدو په وجه وَلِهَذَا لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ بِتَحَقُّقِ الْفِعْلِ مِنْهُمَا په دې وجه ددوی دواړو د فعل متحقق کيدو په وجه قصاص نه واجبيږي بِخِلَافِ الْعَاقِلِ الْبَالِغِ په خلاف د عاقل بالغ، لِأَنَّ لَهُ اخْتِيَارًا صَحِيحًا،ځکه چې دده لپاره اختيار صحيح شته وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ لِوُجُودِ الْمُبِيحِ او قصاص نه واجبيږي.د مبيح موجود کيدو په وجه ،وَهُوَ دَفْعُ الشَّرِّ فَتَجِبُ الدِّيَةُ او مبيح شر لرې کوی.نو ديت به واجب وی.

تشريح:- دا د حضرات طرفينو رحمهما الله دليل دې.چه په دې ټولو صورتونوکې ديت او د قيمت ضمان واجب دې.ځکه چې ړومبی صورت کې قاتل معصوم الدم سړې قتل کړې دې.او په دوهم صورت کې ئې داسې مال ضائع کړې دې.چه دا د مالك د حق په وجه معصوم دې.او اې ابويوسف رحمه الله! دا دې څه اوفرمائيل.چه د څاروی فعل عصمت ساقطونکې نه دې.اود مجنون او بچی فعل عصمت ساقطونکې دې.دا صحيح نه ده.بلکه د دواړو فعل غير مسقط ( يعنی عصمت ساقطونکې نه) دې.د څاروی خو ښکاره دې.اود مجنون او بچی ځکه چې دوی دواړو کې اختيار صحيح نشته.او د اختيار صحيح نه کيدو دليل دا دې.که بچې او مجنون څوك قتل کړی.نو قصاص به واجب نه وی.دا بله خبره ده.چه ددوی دواړو عصمت خپل حق دې.اود څاروی عصمت د مالك د حق په وجه دې.خو په اختيار صحيح نه کيدو کې واړه برابر دی.او پاتې شوه دا چې بالغ توره راوښکلې وه.او دې قتل کړې شوې وو.او په قاتل باندې ضمان واجب شوې نه وو.دا ځکه چې دې بالغ کې اختيار صحيح موجود دې.

که څوك دا سوال اوکړی چې هرکله چې د بچی او مجنون په صورت کې امام صاحب رحمه الله ديت واجب کړې دې.يعنی ددوی فعل ئې غير معتبر شمار کړې دې.بيا خو قاتل باندې د ديت په ځائې قصاص واجبيدل پکار دی؟ نو موږ ورته وايو چې دا خبره منو خو دلته به قصاص واجب نه وی.ځکه چې قاتل هسې بيسه قتل نه دې کړې.بلکه يو مبيح دده په حق کې موجود دې.او هغه دده شر لرې کوی.ددې مبيح موجود کيدو په وجه به ديت واجب وی.او قصاص به واجب نه وی.

**په ښار کښې د درمیځ سری توره راویستونکی لره قتلولو باندې د قصاص حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائی (وَمَنْ شَهَرَ عَلَى غَيْرِهِ سِلَاحًا فِي الْمِصْرِ) او چا چې د خپل ځان نه علاوه باندې ښار کې وسله راوښکله فَضَرَبَهُ نو هغه ئې مړ کړو. ثُمَّ قَتَلَهُ الْآخَرُ بيا دا بل چا قتل کړو فَعَلَى الْقَاتِلِ الْقِصَاصُ نو په قاتل به قصاص واجب وی مَعْنَاهُ: إِذَا ضَرَبَهُ فَانْصَرَفَ ددې مطلب دا دې.کله ئې چې دې وهلې وی.نو واپس شوې وی لِأَنَّهُ خَرَجَ مِنْ أَنْ يَكُونَ مُحَارِبًا بِالْانْصِرَافِ ځکه چې دې د واپس کيدو په وجه د جنګ کاوه نه خارج شو،فَعَادَتْ عِصْمَتُهُ نو دده عصمت واپس راغې.

تشريح:- زيد په خالد باندې ښار کې توره راويستله.بيا ئې خالد مثلاً دوې (دوه) درې ګزاره اووهلو.او واپس لاړو.اوس د دوباره وهلو اراده پاتې نشوه.اوس قاتل هغه لره قتل کړو.نو په خالد به قصاص واجب وی.ځکه چې



کله زيد واپس شو.نو جنګ کونکې پاتې نشو.نو اوس هغه معصوم الدم دې.او دمعصوم الدم په قتل سره قصاص واجبيږي... کمامر،،

**د شپې د يوکور سامان راوښکلو باندې قتلولو سره د ضمان حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمانيلی دی (وَمَنْ دَخَلَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ لَيْلًا او په چا چې شپه کې دده نه غير داخل شو وَأَخْرَجَ السَّرِقَةَ او هغه د غلا مال اوښکلو فَاتَّبَعَهُ نو دې ( د چا نه چې غلا اوشوه) هغه پسې روان شو وَقَتَلَهُ او هغه ئې قتل کړو فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په ده به هيڅ شئ واجب نه وی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {قَاتِلْ دُونَ مَالِكَ} (۱) د نبی ﷺ د فرمان په وجه،،چه پخپل مال پسې قتال کوه،، وَلِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهُ الْقَتْلُ دَفْعًا فِي الِابْتِدَاءِ او ځکه چې په ابتداء کې د مدافعت په وجه قتل مباح دې فَكَذَا اسْتِرْدَادًا فِي الِانْتِهَاءِ نو هم دغه ډول انتهاء کې د واپس اخستلو لپاره ( مباح دې). وَتَأْوِيلُ الْمَسْأَلَةِ إِذَا كَانَ لَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الِاسْتِرْدَادِ او د مسئلې تاويل کله چې دې په واپس اخستلو باندې قدرت نشی لرلې إِلَّا بِالْقَتْلِ، خو د قتل په وجه، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ والله اعلم بالثواب

تشريح:- د يوکس په کور کې غل داخل شو.او د غلام مال ئې بهر اوويستلو.او اوتختيدو.د کور مالك هغې پسې روان شو.او غل ئې قتل کړو.نو په کور والا به هيڅ ضمان نه وی.ځکه ① حديث کې دی.چه «قاتل دون مالك» يعنی ،،د خپل مال په وجه قتل اوکړه،، ② او د کور والا لپاره جائز وو.چه هغه په پيل کې دې قتل کړې وې.کله چې دې کور ته داخل شوې وو.نو د مال اخستلو لپاره به روستو قتلول هم جائز وی.خو دا په هغه صورت کې دی.کله چې په دهمکی وغيره سره مال ملاو نشی.اوکه ملاو شی.نو بيا به قتل مضمون وی.

## باب القصاص فيما دون النفس

ژباړه:- ( دا) باب د نفس نه په کم کې د قصاص ( په بيان کې ) دې.

تشريح:- تر اوسه پورې مرغينانی رحمه الله قصاص فی النفس بيانولو.اوس د قصاص فی الاطراف ( يعنی په اندامونو کې د قصاص) احکام بيانوی.

**په کومو صورتونو کښې قصاص شته اوپه کومو کښې نشته**

قَالَ: (وَمَنْ قَطَعَ يَدَ غَيْرِهِ عَمْدًا مِنَ الْمَفْصَلِ) امام قدوری رحمه الله فرمانيلی دی.او چا چې عمداً د خپل ځان نه غير په جوړ کې لاس کټ کړو قُطِعَتْ يَدُهُ.نو دده لاس به کټ کولې شی. وَإِنْ كَانَتْ يَدُهُ أَكْبَرَ مِنَ الْيَدِ الْمَقْطُوعَةِ اګرچه دده لاس د کټ شوی لاس نه لوئې وی. لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ ﴿المائده: ۴۵﴾ دالله تعالی د فرمان ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ په وجه،،د زخمونو بدله ددې په برابر ده. وَهُوَ يُنْبِئُ عَنِ الْمُمَاثَلَةِ فِيهِ او قصاص د مماثلت خبر ورکوی فَكُلُّ مَا أَمْكَنَ رِعَايَتُهَا نو هر هغه زخم چې هغه کې د مماثلت رعايت ممکن وی. يَجِبُ فِيهِ الْقِصَاصُ نو هغې کې به قصاص واجب وی. وَمَا لَا فَلَا او چرته چې نه وی.نو نه به وی. وَقَدْ أَمْكَنَ فِي الْقَطْعِ مِنَ الْمَفْصَلِ او د جوړ نه په لاس کټ کاوه کې د مماثلت رعايت ممکن دې. فَاعْتُبِرَ نو قصاص به معتبر وی. وَلَا مُعْتَبَرَ بِكِبَرِ الْيَدِ وَصِغَرِهَا او د لاس وړوکوالی او غټ والی به هيڅ اعتباز نه کيږي. لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْيَدِ لَا تَخْتَلِفُ بِذَلِكَ، ځکه چې د لاس منفعت به ددې په وجه نه مختلف کيږي. وَكَذَلِكَ الرِّجْلُ وَمَارِنُ الْأَنْفِ وَالْأُذُنُ دغه ډول خپه، او د پوزې نرمه برخه ده.او غوږ دې. لِإِمْكَانِ رِعَايَةِ الْمُمَاثَلَةِ او د مماثلت رعايت ( او لحاظ) ممکن کيدو په وجه.

حل اللغة: ① مفصل: جوړ

(۱) من حديث أبی هريرة رضی الله عنه أخرجه مسلم فی الإيمان رقم ۲۲۵)_

**تشریح:-** که یوکس د بل سړی یو اندام کټ کړو.نو په بعضو صورتونو کي قصاص شته.او په بعضو کي نشته.نو ددې اصولی (قاعده) کلیه دا ده.چه په کوم صورت کي مماثلت کیداې شی.هلته به قصاص وی.چرته چي مماثلت متعذر یا نا ممکن وی.هلته به قصاص نه وی.بلکه دیت به واجب وی.تفصیل ددې اجمال دا دې.چه کله ئې لاس یا خپه د جوړ سربیره کټ کړې وی.نو مماثلت به ممکن وی.یعنی د مړوند نه ئې کټ کړې وی.یا ئې د ځنګلې نه کټ کړې وی.یا ئې خپه د ګیټو نه،یا ئې د خنګون نه کټ کړې وی.نو د بل (کټ کونکی) به هم دغه اومره کټ کولې شی.دغه ډول په غوړ کي د مماثلت رعایت کیداې شی. اوډوزې په نرمه برخه کي هم مماثلت کیداې شی.نو په دې کي به قصاص وی.ځکه د قرآن فیصله ده.چه ﴿وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ﴾ ﴿المائده: ۴۵﴾،،د زخمونو بدله برابر ده. د لاس کار نیول دی.نوکه د لاس د وړوکوالی یا غټ والی په وجه د لاس په منفعت کي څه خلل نه وی.نو ددې اعتبار به نه کیږی.نو که کټ کړې شوې وړوکې وی.او د کټ کونکې لاس غټ وی.بیا به هم قصاص واجب وی.او چرته چي د مماثلت رعایت نشی کیدې.لکه د مړوند د نیمې نه ئې لاس کټ کړې وی.یا ئې د لینګئ د نیمې نه خپه کټ کړې وی.نو دلته د مماثلت رعایت ممکن نه دې.نو قصاص به هم نه وی.

### په سترګه اوښکلو کښې د قصاص حکم او یوه قاعده کلیه

قَالَ: (وَمَنْ ضَرَبَ عَيْنَ رَجُلٍ) امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.او چا چي یوکس په سترګه اووهلو. (فَقَلَعَهَا) نو دا ئې بهر راویستله. (لَا قِصَاصَ عَلَيْهِ) نو په ده به قصاص نه وی.په بهر راویستلو کي ، لِامْتِنَاعِ الْمُمَاثَلَةِ فِي الْقَلْعِ، د مماثلت د ممتنع کیدو په وجه، وَإِنْ كَانَتْ قَائِمَةً اوکه سترګه موجود وی. فَذَهَبَ ضَوْءُهَا نو ددې نظر (بینائی) ختم شو. فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ نو په ده به قصاص وی. لِإِمْكَانِ الْمُمَاثَلَةِ د مماثلت د ممکن کیدو عَلَى مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ په وجه،د هغه تفصیل مطابق کوم چي امام قدوری رحمه الله په مختصرالقدوری کي فرمائیلې دې تُحْمَى لَهُ الْمِرْآةُ چي دده لپاره به آئنه ګرمه کړې شی. وَيُجْعَلُ عَلَى وَجْهِهِ قُطْنٌ رَطْبٌ. او دده په مخ باندې دې لامده مالوچ کیخودې شی. وَتُقَابَلُ عَيْنُهُ بِالْمِرْآةِ او آئینه دې دده سترګې ته مخکی کړې شی. فَيَذْهَبُ ضَوْءُهَا نو دده نظر به ختم شی.، وَهُوَ مَأْثُوْرٌ عَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ} او دا د صحابو رضی الله عنهم د یو جماعت نه نقل دی.

**حل اللغة:** ① قلع: ویستل ② المماثلة: یوشانوالې ③ قطن: مالوچ ④ رطب: لواندهٔ ⑤ المرآة: شیشه

**تشریح:-** وړاندې قاعده تیره شوه.چه چرته مماثلت ممکن وی.هلته به قصاص وی.او چرته چي مماثلت ممکن نه وی.نو هلته به قصاص واجب نه وی.نوکه زید د بکر سترګه اووهله.چه ددې په وجه د بکر ګاټې بهر راووتلو.نو چونکه دلته کي مماثلت ممکن نه دې.په دې وجه به قصاص نه وی.اوکه سترګه موجود وی. صرف ددې بینائی (نظر) ختم شوې وی.نو دلته مماثلت ممکن دې.او هغه دا دې.چه د کومې سترګ نه قصاص اخستل مقصود نه دی.هغه دې اوتړلې شی.او په مخ دې لامده مالوچ کیخودې شی.او ګرمه صفا اوسپنه دې دده هغه سترګې ته مخکی کړې شی.د کومې نظر ختمول چي مقصود دی.په دې طریقه به بینائی ختمه شی.او مخ او دویمې سترګې ته به هیڅ نقصان نه رسیږی.د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کي دا واقعه راپیښ شوې وه.نو حضرت عثمان رضی الله عنه صحابو رضی الله عنهم سره مشوره اوکړله.نو حضرت علی رضی الله عنه دا مشوره ورکړې وه.او ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې باندې سکوت اختیار کړې وو.

### په غاښ ماتولو کښې د قصاص حکم

قَالَ: (وَفِي السِّنِّ الْقِصَاصُ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.او په غاښ کي قصاص شته. لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ﴾ د الله تعالی د فرمان ﴿وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ﴾ ﴿المائده: ۴۵﴾ په وجه. (وَإِنْ كَانَ سِنُّ مَنْ يُقْتَصُّ مِنْهُ) د چا نه چي قصاص اخستلې شی. (أَكْبَرَ مِنْ سِنِّ الْآخَرِ) د دوهم کس د غاښ نه لوئې وی. لِأَنَّ مَنْفَعَةَ السِّنِّ لَا تَتَفَاوَتُ بِالصِّغَرِ وَالْكِبَرِ ګرچه ددې سړي غاښ ځکه چي د غاښ منفعت په وړوکوالی او غټوالی سره نه متفاوت کیږی **قال** .امام قدوری رحمه الله



قَالَ: (وَفِي كُلِّ شَجَّةٍ تَتَحَقَّقُ فِيهَا الْمُمَاثَلَةُ الْقِصَاصُ) و هر یو داسې زخم چي هغې کي مماثلت متحقق اوفرمائیل. کیداې شی.قصاص شته. لِمَا تَلَوْنَا[1] د هغې آیت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړې دې.

**حل اللغة:** ① شجة: د سر زخم ② السن: غاښ

**تشریح:-** که یوکس د بل سړی غاښ مات کړو.نو په دې کي په قصاص وی.په قرآن کي صفا حکم موجود دې. ﴿وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ﴾ ﴿المائده: ۴۵﴾ چي ،، د غاښ په بدله کي غاښ دې،،اګرچه د یو کس غاښ وړوکې وی.او د بل کس غټ وی.ځکه چي دې اختلاف سره د غاښونو منفعت کي هیڅ تفاوت نه راځی.او په ﴿وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ﴾ سره دا خبره ثابته شوې ده.چه په کوم زخم کي مماثلت ممکن وی.هغې کي به قصاص اخستلې شی.

### د غاښ نه علاوه هډوکی ماتولو کښې د قصاص حکم

قَالَ (وَلَا قِصَاصَ فِي عَظْمٍ) او قصاص په هډوکی نشته (إِلَّا فِي السِّنِّ) خو په غاښ کي ، وَهٰذَا اللَّفْظُ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ([2]) او دا لفظ د حضرت عمر او ابن مسعود رضی الله عنهما نه نقل دې وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {لَا قِصَاصَ فِي الْعَظْمِ} ([3]) او نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی چه ،، هډوکی کي قصاص نشته،، وَالْمُرَادُ غَيْرُ السِّنِّ او د هډوکی نه مراد د غاښ نه علاوه دې

**حل اللغة:** ① عظم: هډوکې

**تشریح:-** د غاښ نه علاوه په یو هډوکی کي به هم قصاص نشی اخستلې.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په متن کي کوم الفاظ ذکر دی.یعنی ﴿لا قصاص فی عظم إلا فی السن﴾ دا الفاظ د حضرت عمر او د ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دی.او په حدیث کي دا هم دی.چه ﴿لا قصاص فی العظم﴾ هډوکی کي قصاص نشته.او د هډوکی نه مراد د غاښ نه علاوه دې.

وَلِأَنَّ اعْتِبَارَ الْمُمَاثَلَةِ فِي غَيْرِ السِّنِّ مُتَعَذِّرٌ او ځکه چي د غاښ نه علاوه کي د مماثلت اعتبار متعذر دې لِاحْتِمَالِ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ، د زیادت او د نقصان د احتمال په وجه، بِخِلَافِ السِّنِّ په خلاف د غاښ، لِأَنَّهُ يُبْرَدُ بِالْمِبْرَدِ،ځکه چي په سوان سره به ګرولې شی وَلَوْ قُلِعَ مِنْ أَصْلِهِ اوکه د جرړې نه ئې غاښ اوښکلو يُقْلَعُ الثَّانِي نو د دوهم کس به هم د جرړې نه اوښکلې شی فَيَتَمَاثَلَانِ نو دواړه به مماثل شی.

**حل اللغة:** ① المبرد: امبور ② قلع: د ویخ نه ویستل

**تشریح:-** بله دا چي اصول هم هغه دې.کوم چي ذکر شوې دې.چه چرته مماثلت ممکن وی.هلته به قصاص وی.ګنی نه به وی.او په هډوکی کي مماثلت نشی کیدې.البته په غاښ کي مماثلت کیداې شی.ځکه چي هډوکی کي د کمی بیشی ، او د زیاتی او نقصان احتمال شته.او دا احتمال په غاښ کي نشته.ځکه چي غاښ په سوان سره د ګرولو سره د ړومبی پشان جوړیدې شی.اوکه د ړومبی ئې پوره غاښ اوښکلې وی.نو د دوهم به هم پوره غاښ اوښکلې شی.

### د نفس نه په کم کښې شبهِ عمد نه وی

[1] من اثر الحکم بن عتیبة اخرجه عبدالرزاق فی مصنفه (نصف: ۱۰۷/۵).

[2] غربه الزیلعی رحمه الله عنهما ونقل عن الشعبی والحسن رحمه الله قالا لیس فی العظام قصاص ما خلا السن والرأس وعزاه إلی مصنف ابن ابی شیبة (نصب: ۱۰۷/۵)_

[3] غربه الزیلعی رحمه الله ثم قال وروی ابن ابی شیبة فی مصنفه ..عن عمر رضی الله عنه قال إنا نقید من العظام ونقل بمثله عن ابن عباس رضی الله عنهما (نصب: ۱۰۷/۵)_

قَالَ: (وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ شِبْهُ عَمْدٍ إِنَّمَا هُوَ عَمْدٌ أَوْ خَطَأٌ) امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل.او د نفس نه په علاوه کي شبه عمد نشته.هغه (مادون النفس) خو عمد يا خطاء دي لِأَنَّ شِبْهَ الْعَمْدِ يَعُودُ إِلَى الْآلَةِ،ځکه چې شبه عمد آلې ارخ ته واپس کولای شي وَالْقَتْلُ هُوَ الَّذِي يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِهَا او قتل د آلې په اختلاف سره مختلف کيږي. دُونَ مَا دُونَ النَّفْسِ داسې نه چې کوم د نفس نه علاوه دي لِأَنَّهُ لَا يَخْتَلِفُ إِتْلَافُهُ بِاخْتِلَافِ الْآلَةِ،ځکه چې د مادون النفس هلاکت به د آلې د اختلاف په وجه نه مختلف کيږي فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا الْعَمْدُ وَالْخَطَأُ نو د عمد او خطاء نه علاوه هيڅ يو پاته پاتې نشو.

تشريح:- وړاندې تفصيل تير شوې دې.نو شبه عمد په پوره قتل کي خو کيداې شي.د اندامونو په ماتولو کي صرف دوې (دوه) صورتونه دي.يا به عمد وي، يا به خطاء وي.چه ددې وجه هم وړاندې تيره شوې ده.

## د يو بل په زخمي کولو کښې د قصاص حکم

(وَلَا قِصَاصَ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ)،او قصاص نشته، د سړي او ښځې په منځ کي ، د نفس نه علاوه کي وَلَا بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ، وَلَا بَيْنَ الْعَبْدَيْنِ او نه د آزاد او غلام په منځ کي ، او نه د دوې (دوه) غلامانو په منځ کي ،

تشريح:- په قصاص في النفس کي سړې او ښځه، آزاد او غلام، او دوې (دوه) غلامان برابر دي.چه ددې بيان وړاندې تير شوې دې.خو د اندامونو په قصاص کي دې کي مساوات نشته.بلکه تفاوت دې.وجه ددې دا ده.چه اندامونه د مالونو په درجه کي ايخودې شوي دي.چه ددې وجه تيره شوې ده.او هرکله چې دا د اندامونو په مرتبه کي شو.نو ددې قيمت به ملاويږي.او په قيمت کي تفاوت دې.مثلاً د سړي د لاس قيمت شريعت پنځه سوه ديناره مقرر کړې دې.او د ښځې د لاس قيمت ئې دوې (دوه) سوه او پنځوس ديناره مقرر کړې دې.بهرحال هرکله چې تفاوت دې.نو د سړي د لاس په بدله کي د ښځې لاس اود ښځې د لاس په بدله کي به د سړي لاس نشي کټ کولې.او نه د غلام د آزاد په بدله کي ، او نه د آزاد د غلام په بدله کي ، او نه د غلام د غلام په بدله کي ، په دې ټولو صورتونو کي به قصاص نه وي.

خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې.په دې ټولو صورتونو کي ، إِلَّا فِي الْحُرِّ يَقْطَعُ طَرَفَ الْعَبْدِ خو د آزاد په صورت کي چې دې د غلام اندامونه کټ کړي وَيَعْتَبِرُ الْأَطْرَافَ بِالْأَنْفُسِ لِكَوْنِهَا تَابِعَةً لَهَا او دوی اندامونه په نفس باندې قياس کوي.په دې وجه چې اندامونه د نفس تابع دي.

تشريح:- د امام شافعي رحمه الله په نيز به په دې ټولو صورتونو کي قصاص وي.علاوه د يو صورت نه،ځکه چې دې اندامونه په نفس او بدن باندې قياس کوي.ځکه چې اندامونه تابع دي.او نفسونه متبوع دي.اوکوم حکم چې د متبوع وي.هم هغه د تابع وي.نو په يو صورت کي ددوی په نيز قصاص واجب نه دې.کله چې آزاد دغلام لاس کټ کړي.ځکه چې دې صورت کي آزاد باندې د قتل عمد په صورت کي ددوی په نيز قصاص هم نشته.نو په اندام کي به هم قصاص نه وي.

وَلَنَا أَنَّ الْأَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكُ الْأَمْوَالِ او زموږ دليل دا دې.چه اندامونه د مالونو قائم مقام دي. فَيَنْعَدِمُ التَّمَاثُلُ بِالتَّفَاوُتِ فِي الْقِيمَةِ،نو په قيمت کي به د تفاوت په وجه تماثل معلوميږي وَهُوَ مَعْلُومٌ قَطْعًا بِتَقْوِيمِ الشَّرْعِ او تفاوت قطعاً معلوم دې.د شريعت د تقويم په وجه فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُهُ بِخِلَافِ التَّفَاوُتِ فِي الْبَطْشِ نو د تفاوت اعتبار ممکن دې.په خلاف د هغه تفاوت کوم چې نيولو کي دې. لِأَنَّهُ لَا ضَابِطَ لَهُ فَاعْتُبِرَ أَصْلُهُ،ځکه چې ددې لپاره هيڅ قاعده مقرر نه ده.نو د اصل نيولو اعتبار به کولې شي. وَبِخِلَافِ الْأَنْفُسِ او په خلاف د نفسونو لِأَنَّ الْمُتْلَفَ إِزْهَاقُ الرُّوحِ وَلَا تَفَاوُتَ فِيهِ ځکه چې قاتل روح ضائع کړې دې.او په دې کي هيڅ تفاوت نشته.

حل اللغة: ① تقويم:قيم لګول ② ازهاق: ويستل ③ تفاوت: فرق، اختلاف.

تشريح:- او زموږ دليل دا دې چې په لاس کي اصل کي نيول معتبر دي.اودا په دواړو لاسونو کي موجود دي.او د تفاوت لپاره شريعت هيڅ اصول او قاعده نه ده مقرر کړې.نو ددې تفاوت اعتبار به نه کيږي.اود سړي او د ښځې



په لاس کي د تفاوت شريعت اعتبار کړې دې.او ددوی ئې جلا جلا قيمت متعين کړې دې.په دې وجه دا تفاوت معتبر منلې شوې دې.او د نفس په ضائع کاوه کي دا تفاوت هم معتبر نه دې.ځکه چې قاتل په هر صورت کي د روح ضائع کونکې دې.او په روح کي هيڅ تفاوت نشته.نو قصاص به واجب وي.

## د مسلمان او ذمي په منځ کښې د قصاص مسئله

(وَيَجِبُ الْقِصَاصُ فِي الْأَطْرَافِ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرِ)او د مسلمان او کافر په منځ کي اندامونو کي قصاص واجب دې لِلتَّسَاوِي بَيْنَهُمَا فِي الْأَرْشِ ددوی دواړو په منځ کي ارش (تاوان) کي د برابرئ په وجه.

تشريح:- دلته د کافر نه مراد ذمي دې.د مسلمان او د ذمي د لاس قيمت شريعت يو ايخودې دې.نو د مساوات په وجه به قصاص واجب وي.ځکه چې قصاص مماثلت غواړي.او مماثلت موجود دې.

## نيم مړونده پورې لاس کټ کول او تيره زخم لګولو نه روسته ټيک کيدو سره د قصاص حکم

قَالَ: (وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ مِنْ نِصْفِ السَّاعِدِ) امام قدوري رحمه الله فرمائيلي دي.او چا چې د يوسړي لاس د نيم مړوند نه کټ کړو أَوْ جَرَحَهُ جَائِفَةً يا ئې ده ته جائفه زخم (تيره زخم) اولګولو فَبَرَأَ مِنْهَا نو هغه ددې نه ټيک شو فَلَا قِصَاصَ عَلَيْهِ نو په ده به قصاص نه وي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُمَاثَلَةِ فِيهِ،ځکه چې دې کي د مماثلت اعتبار ممکن نه دې إِذِ الْأَوَّلُ كَسْرُ الْعَظْمِ،ځکه چې ړومبې (مړوند کټ کول) هډوکې ماتول دي وَلَا ضَابِطَ فِيهِ،او په هډوکی کي هيڅ قاعده مقرر نه ده وَكَذَا الْبُرْءُ نَادِرٌ فَيُفْضِي الثَّانِي إِلَى الْهَلَاكِ ظَاهِرًا.او دغه ډول ټيک کيدل نا آشنا دي.نو دوهم به په ښکاره هلاکت ارخ ته مفضي وي.

حل اللغة: ① جائفه : هغه زخم ته وائي.کوم چې جوف (منځ) پورې متعدي شي.يعني په سر ئې اووهلو.او ددې اثر دماغ پورې اورسيدو.يا معدې پورې اورسيدو.وغيره، ② جراحات:جمع د جراحة: زخم ③ کسر:ماتول ④ العظم: هډوکې

تشريح:- دلته دوې (دوه) مسئلې بيانولی شي① که يوکس د بل نيم مړوند کټ کړو.نو دلته به قصاص نه وي.ځکه چې دلته د مماثلت رعايت ممکن نه دې.ځکه چې دا هډوکې پرې کول دي.چه ددې حکم هم دا دې.② داسې زخم ئې اولګولو.چه دا دننه پورې اورسيدو.يعني جائفه چې ددې نه په عامه توګه (عام طور) باندې سړې نه ښه کيږي.خو هغه ټيک شو.نو قصاص به نه وي. ځکه چې دې خو ټيک شو.او د دوهم په اړه کي غالب ګمان هم دا دې.چه دې به ټيک نشي.نو د مماثلت رعايت ممکن نه دې.

البته که ړومبې کس ټيک شوې نه وي.نو کتلې به شي.چه زخم دننه پورې رسيدونکې دې.اوکه نه دې.که رسيدونکې وي.نو قصاص به وي.ګنی اوس به انتظار کولې شي.کله دا حالت ښکاره شي.بيا به ددې مطابق عمل کولې شي.

## د شل لاسی يا د کمو ګوتو والا نه د لاس کټ کولو په جرم کښې د قصاص اخستلو مسئله

قَالَ:امام قدوري رحمه الله فرمائيلي دي (وَإِذَا كَانَتْ يَدُ الْمَقْطُوعِ صَحِيحَةً) اوکله چې کټ شوي لاس صحيح وي وَيَدُ الْقَاطِعِ شَلَّاءَ او د کټ کونکی لاس اوچ وي أَوْ نَاقِصَةَ الْأَصَابِعِ يا د ناقصو ګوتو والا وي فَالْمَقْطُوعُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَطَعَ الْيَدَ الْمَعِيبَةَ نو د چا لاس چې کټ کړې شوې دې.هغه ته اختيار دې.که غواړي.نو د عيب دار لاس دې کټ کړي وَلَا شَيْءَ لَهُ غَيْرُهَا و دده لپاره ددې عيب دار لاس نه علاوه هيڅ نشته وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ كَامِلًا او که غواړي.د لاس پوره ديت دې واخلی لِأَنَّ اسْتِيفَاءَ الْحَقِّ كَامِلًا مُتَعَذِّرٌ ځکه چې کامل حق وصولول متعذر دی فَلَهُ أَنْ يَتَجَوَّزَ بِدُونِ حَقِّهِ نو پريکړې شوی لپاره حق شته.چه هغه د خپل حق نه په کم کي بې پرواهی اوکړی وَلَهُ أَنْ يَعْدِلَ إِلَى الْعِوَضِ او دده لپاره حق شته.چه عوض (ديت) اړخ ته وراوګرځی

تشريح:- د زيد لاس صحيح سلامت دې.او د بکر لاس شل دې.اوچ دې.يا دده ګوتې کمې دي.او صورت دا شو.چه

بکر د زید لاس کټ کړو.نو اوس به زید څه کوی.نو ده ته یواختیاردا حاصل دی که زید غواړی.نو د بکر لاس چې هر څنګه دی.هم ددې نه دې قصاص واخلی.او دا دې کټ کړی.ځکه چې هرکله پوره لاس د بکر نشته.نو ددی نه علاوه بله لار نشته.او د خپل حق نه په کم باندې راضی کیدل، او په دې حال باندې بې پرواهی کول (او سترګې پټول) جائز دی.او که ده داسې اوکړل.نو دده حق ادا شو.او دا داسې شوه.لکه د کره درهمو په خانې ردی (او کهوټه) اخستل.او دوهم اختیار دا دی که قصاص وانخلی.بلکه دیت واخلی.

كَالْمِثْلِيِّ لکه مثلی إِذَا انْصَرَمَ عَنْ أَيْدِي النَّاسِ بَعْدَ الْإِتْلَافِ کله چې دا د خلګو په لاسونو سره د هلاکاوه نه روسته ختم شی. ثُمَّ إِذَا اسْتَوْفَاهَا نَاقِصًا بیا کله چې پریکړې شوی د ناقص نه وصول کړلو فَقَدْ رَضِيَ بِهِ نو هغه په دې سره راضی شو فَيَسْقُطُ حَقُّهُ نو دده حق به ساقطیږی. كَمَا إِذَا رَضِيَ بِالرَّدِيءِ مَكَانَ الْجَيِّدِ لکه کله چې دې د کره په ځانې ردی (کهوټه) سره راضی شی.

حل اللغة* ① انصرم: ختم شو ② ایدی: جمع د ید،لاس ③ الارش: دیت ④ الاتلاف: هلاکول﴾

تشریح:- او ددې مثال بالکل داسې دې.چه زید د بکر یو مثلی شئ هلاك کړو.نو په زید واجب دی.چه ددې مثل ادا کړی. خو اتفاق سره دا شئ په بازار کې نشته.او که وی.نو خراب (او معمولی) دې.نو اوس بکر ته اختیار دې.که غواړی.نو څنګه شئ چې بازار کې ملاویږی.د هغې په اخستلو دې راضی شی.او په دې صورت کې به دهغه حق ادا شی.اوکه غواړی.نو ددې قیمت دې واخلی.بالکل دغه ډول مذکوره صورت هم دې.

## د لاس پخپله غورزیدل، یا ظلم سره کټ کولو کښې د قصاص مسئله

(وَلَوْ سَقَطَتِ الْمُؤَنَّةُ قَبْلَ اخْتِيَارِ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ او که ناقص (خراب) لاس د مجنی علیه (د چا چې لاس کټ کړې شوې دې) اختیارولو نه مخکې اوغورزیدو أَوْ قُطِعَتْ ظُلْمًا یا په ظلم سره کټ کړې شو فَلَا شَيْءَ لَهُ عِنْدَنَا نو مجنی علیه لپاره زمونږ په نیز هیڅ نشته لِأَنَّ حَقَّهُ مُتَعَيِّنٌ فِي الْقِصَاصِ،ځکه چې دده حق په قصاص کې متعین دې وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْمَالِ بِاخْتِيَارِهِ او مال اړخ ته حق منتقل کیږی.د مجنی علیه د اختیارولو په وجه فَيَسْقُطُ بِفَوَاتِهِ نو دده حق به ساقطیږی.د لاس د فوت کیدو په وجه

حل اللغة* ① المؤنة: خراب شوې لاس ② سرقة: غلا﴾

تشریح:- د خالد هغه لاس ،د کوم .چې اوس ذکر پیل وو،، پخپله پریوتلو.یا په ظلم سره چا کټ کړو.نو اوس به څه کیږی؟ د مجنی علیه نه زید مراد دې.د چا چې لاس کټ کړې شوې دې.نو بهرحال که زید تر اوسه پورې دیت اخستل اختیار کړې نه وی.بلکه اوسه پورې ددې ذکر هم نه وو شوې.یا زید قصاص منتخب کړې وو.چه دا صورت راپیښ شو.چه د خالد لاس چا په ظلم سره کټ کړو.یا دا پخپله پریوتلو.نو اوس نه قصاص پاتې شو.او نه دیت، ځکه چې واجب اصلی خو دلته قصاص دې.او مال هغه وخت واجبیږی.کله چې مجنی علیه دیت اختیار کړی.حالانکه په دې صورت کې مجنی علیه دیت نه دې اختیار کړې.نو نه به قصاص وی.او نه به دیت وی.قصاص به ځکه نه وی.چه محل د قصاص نشته.او دیت ځکه نشته.چه دا اختیار کړې شوې نه وو.البته که مجنی علیه دیت اخستل اختیار کړې وی.او دا واقعه راپیښه شوې وی. نو د دیت وجوب پخپل حال قائم دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قُطِعَتْ بِحَقٍّ په خلاف ددې صورت، کله چې د یو داسې حق په وجه لاس کټ کړې شو عَلَيْهِ مِنْ قِصَاصٍ أَوْ سَرِقَةٍ کوم چې په ده باندې واجب دې.یعنی قصاص یا غلا حَيْثُ يَجِبُ عَلَيْهِ الْأَرْشُ نو په ده باندې دیت واجب دې لِأَنَّهُ أَوْفَى بِهِ حَقًّا مُسْتَحَقًّا ځکه چې ده په دې سره خپل واجبی حق ادا کړې دې فَصَارَتْ سَالِمَةً لَهُ مَعْنًى.نو معنوی اعتبار سره لاس دده لپاره سلامت پاتې شو.

تشریح:- او که هم دا واړه صورتونه وی.خو دده لاس په ظلم سره نه دې کټ کړې شوې.بلکه د یو حق په بدله کې کټ کړې شوې دې.کوم چې په ده باندې واجب دې.مثلاً په قصاص کې کټ کړې شوې دې.یا په غلا کې کټ کړې



شوې دې.نو اوس به په یو صورت کې هم د مجنی علیه حق نه ختمیږی.بلکه په هر صورت کې به دیت واجب وی.ځکه چې دې صورت کې معنوی حیثیت سره ګویا لاس موجود دې.خو په حقیقت کې موجود نه دې.د حقیقت په اعتبار سره قصاص معدوم (او ساقط) شو.او د معنی په اعتبار سره به دیت پاته پاتې وی.

## د زخمی شوی سر وړوکې او د زخمی کونکی سر غټ وی نو څه حکم دې !

قَالَ: (وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.او چا چې د یو سړی سر زخمی کړې وی فَاسْتَوْعَبَتِ الشَّجَّةُ مَا بَيْنَ قَرْنَيْهِ نو زخم د سر دواړه طرفونه راګیر کړې وی. وَهِيَ لَا تَسْتَوْعِبُ مَا بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّاجِّ او دا زخم، د زخم لګونکی دواړه طرفونه نشی راګیرولې فَالْمَشْجُوجُ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ اقْتَصَّ بِمِقْدَارِ شَجَّتِهِ يَبْتَدِئُ مِنْ أَيِّ الْجَانِبَيْنِ شَاءَ نو زخمی ته اختیار شته.که غواړی.د خپل زخم په مقدار دې قصاص واخلی.د کوم اړخه چې غواړی.شروع دې اوکړی. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ او که غواړی.دیت دې واخلی لِأَنَّ الشَّجَّةَ مُوجِبَةٌ ځکه چې زخم قصاص واجبونکې دې لِكَوْنِهَا مَشِينَةً ځکه چې دا د عیب دار کاوه سبب دې فَيَزْدَادُ الشَّيْنُ بِزِيَادَتِهَا نو د زخمی شوی د زیاتوالی په وجه به عیب کې زیاتوالې کیږی وَفِي اسْتِيفَائِهِ مَا بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّاجِّ د زخمی شوی په وصولولوکې ، د زخمی کونکی د دواړو طرفونو په منځ کې زِيَادَةٌ عَلَى مَا فَعَلَ،د زخمی کونکی په فعل باندې زیاتوالې دې وَلَا يَلْحَقُهُ مِنَ الشَّيْنِ بِاسْتِيفَائِهِ قَدْرَ حَقِّهِ مَا .او د زخمی شوی د خپل حق په اندازه وصولولو کې به زخمی کونکی ته هغه عیب نه ملاویږی. يَلْحَقُ الْمَشْجُوجَ کوم چې زخمی شوی ته ملاو شوې دې فَيَنْتَقِصُ نو د زخمی شوی حق به ناقص کیږی فَيُخَيَّرُ نو زخمی شوی ته به اختیار وی كَمَا فِي الشَّلَّاءِ وَالصَّحِيحَةِ لکه څنګه چې په شل او صحیح لاس کې وو.

حل اللغة* ① شاج: د سر زخمی کونکې یعنی بکر، مشجوج: دکوم کس چې سر زخمی کړې شوې دې.یعنی زید

تشریح:- د خالد سر ورکوټې دې.مثلاً په پلن والی کې د ښی اړخه چپه اړخه پورې واړه د څلورو ګوتو عرض دې.او د عثمان مثلاً یوه لیشت دې.اوس صورت دا شو.چه عثمان د خالد سر زخمی کړو.او دومره زخم ئې لګولې دې.چه څلور ګوتې پلن والې ئې واړه راګیر کړې دې.اوس که خالد ته اوونیلی شی.چه څلور ګوتې قصاص واخله.نو د عثمان په سر کې به څلور ګوتې معمولی شان درد سره اوشی.او دده پوره سر به نه خرابیږی.نو د خالد حق ناقص پاتې شو.او که د پوره سر زخمی کاوه یعنی پوره یوه لیشت زخمی کاوه اختیار ورکړې شی.نو دا مقدار د جنایت نه زیات دې.او دا ظلم دې.نو خالد ته دوې (دوه) اختیاره دی.① صرف د څلورو ګوتو مقدار چې د کوم اړخه غواړی.زخمی دې کړی.② اوکه غواړی.نو دیت دې واخلی.لکه څنګه چې مخکښې مسئله کې شوی وو.کله چې د پریکونکی لاس شل یا اوچ وو.دغه ډول به دلته کې هم وی.

## د زخمی شوی سر غټ او د زخمی کونکی سر وړوکې وی نو څه حکم دې !

وَفِي عَكْسِهِ يُخَيَّرُ أَيْضًا او ددې په عکس کې به هم اختیار ور کولای شی لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الِاسْتِيفَاءُ كَامِلًا ځکه چې کامل وصولول متعذر دی لِلتَّعَدِّي إِلَى غَيْرِ حَقِّهِ،د زخمی شوی د حق نه غیر پورې د متعدې کیدو په وجه، وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الشَّجَّةُ فِي طُولِ الرَّأْسِ او دغه ډول کله چې زخم د سر په اوږد والی کې وی وَهِيَ تَأْخُذُ مِنْ جَبْهَتِهِ إِلَى قَفَاهُ او زخم پیل شوې وی.دده د تندی نه دده د ستو پورې، وَلَا تَبْلُغُ إِلَى قَفَا الشَّاجِّ او دا زخم د زخم لګونکی ستو پورې نه رسیږی فَهُوَ بِالْخِيَارِ نو زخمی شوی ته اختیار دې ،لِأَنَّ الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ.ځکه چې وجه مختلف نه ده.

حل اللغة* ① جبهة: تندې ② قفا:څټ﴾

تشریح:- اوکه د ړومبی په عکس وی.یعنی د زخمی کړې شوی سر غټ وی.او د زخم لګونکی وړوکې وې. اوس به هم دا حکم وی.که غواړی.نو قصاص دې د خپل حق په اندازه واخلی.او که غواړی.دیت دې واخلی.مثلاً د زخمی کړې شوی سر څلور ګوتې زخمی شوې دې.چه دا په معمولی شان درد کې راغلې دې.او په زخم لګونکی کې به دا مقدار دواړه طرفونه راګیره وی.نو زخمی شوی ته اختیار دې.چه څلور ګوتې دده د سر زخمی کړی.او که

غواړي.نو ديت دې واخلي.او هم دا بحث که د پلن والي په ځائې اوګدوالي کې وي.په دې کې هم دا حکم دې.او هم دا ددې وجه هم ده.

## په ژبه او خاص اندام (ذکر) کښې قصاص شته اوکه نه؟

قَالَ: (وَلَاقِصَاصَ فِي اللِّسَانِ وَلَافِي الذَّكَرِ[1]) امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.او په ژبه او ذکر کې قصاص نشته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ إِذَاقُطِعَ مِنْ أَصْلِهِ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه کله دا د جرړې نه کټ کړې شی يَجِبُ نو قصاص واجب دې لِأَنَّهُ يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ خکه چې مساوات ممکن دې وَلَنَا أَنَّهُ يَنْقَبِضُ وَيَنْبَسِطُ.او زمونږ دليل دا دی.،چه دا راټوليږی.او خوريږی فَلَايُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ نو د مساوات اعتبار ممکن نه دې

حل اللغة:① اللسان: ژبه ② ينقبض: لاغونډيږی ③ يبسط:خوريږی

تشريح:- که زيد د بکر ژبه کټ کړله.يا ئې ذکر کټ کړو.نو قصاص به نه وی.امام ابويوسف رحمه الله فرمائی. که ژبه او ذکر ئې د جرړې نه کټ کړو.نو قصاص به واجب وی.ګنی نه به وی.ځکه چې اوس مماثلت او مساوات کيداې شی.چه د دوهم کس هم د جرړې نه کټ کړې شی.خو موږ اووئيل.چه ژبه او ذکر کله راټوليږی.او کله پلنيږی. نو د مساوات اعتبار ممکن نه دې.

## په حشفه (يعنی د خاص اندام په سر) کښې د قصاص حکم

(إِلَّاأَنْ تُقْطَعَ الْحَشَفَةُ) خو دا چې حشفه (د اندام مخصوصه سر) کټ کړې شی. لِأَنَّ مَوْضِعَ الْقَطْعِ مَعْلُومٌ كَالْمَفْصِلِ،ځکه چې د کټ کاوه ځائې معلوم دې.پشان د جوړ وَلَوْقَطَعَ بَعْضَ الْحَشَفَةِ أَوْبَعْضَ الذَّكَرِ او که د حشفې څه برخه يا د ذکر څه برخه کټ کړې شوه فَلَاقِصَاصَ فِيهِ.نو په دې کې به قصاص نه وی.

حل اللغة:① خشفة: د ذکر سر ② الاذن: غوږ

تشريح:- که يوکس د يوسړی حشفه کټ کړله.نو دا ځائې معلوم دې.نو قصاص به اخستلې شی.لکه څنګه چې د لاس په صورت کې د جوړ نه د کټ کاوه حکم وو.او که د حشفې يا د ذکر (اندام مخصوصه) څه برخه کټ کړې شوې وی،نو په دې کې به قصاص نه وی.

لِأَنَّ الْبَعْضَ لَايُعْلَمُ مِقْدَارُهُ،ځکه چې د بعض مقدارمعلوم نه دې بِخِلَافِ الْأُذُنِ په خلاف د غوږ، إِذَاقُطِعَ كُلُّهُ أَوْبَعْضُهُ کله چې دا واړه يا ددې بعض برخه کټ کړې شی لِأَنَّهُ لَايَنْقَبِضُ وَلَايَنْبَسِطُ خکه چې غوږ نه راټوليږی.او نه خوريږی. وَلَهُ حَدٌّ يُعْرَفُ او د غوږ معلوم مقدار دې فَيُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ نو د مساوات اعتبار ممکن دې وَالشَّفَةُ إِذَااسْتَقْصَاهَا بِالْقَطْعِ او شونډې کله ئې چې دا پوره کټ کړې وی يَجِبُ الْقِصَاصُ لِإِمْكَانِ اعْتِبَارِ الْمُسَاوَاةِ نو قصاص به واجب وی.د مساوات د اعتبار په وجه بِخِلَافِ مَا إِذَاقُطِعَ بَعْضُهَا په خلاف ددې صورت کله چې ددې بعضې برخه کټ کړې شوې وی "لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ اعْتِبَارُهَا او ځکه چې د مساوات اعتبار متعذر دې.

تشريح:- دليل دا دې چې بعض برخه معلوم نه ده.يعنی متعين ځائې نه دې.په دې وجه به د مماثلت او مساوات رعايت نشی کيدې.البته که غوږ ئې کټ کړو.واړه يا بعضې حصه، نو قصاص به واجب وی.ځکه چې غوږ نه راټوليږی.او نه خوريږی.او د غوږ يو حد مقرر دې. نو دلته مساوات کيداې شی.او که شونډې ئې پوره کټ کړې وی.نو قصاص شته.او په بعض برخه کې به قصاص نه وی.ځکه چې ړومبی صورت کې مساوات کيداې شی.او په دوهم کې مساوات نشی کيدې.

[1] القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فى ردالمحتار (٥٣٩٤) والهندية ١٥١٦) وملتقى الأبحر (٣٢٥١٤) والدرالمنتقى (٣٢٤١٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٠١٢)-



## که قاتل د مقتول وارثانو سره صلح اوکړی نو د قصاص څه حکم دې؟

فَصْلٌ: قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَااصْطَلَحَ الْقَاتِلُ وَأَوْلِيَاءُ الْقَتِيلِ) او کله چې د قاتل او مقتول اولياو مصالحت اوکړو عَلَى مَالٍ په يو مال باندې، سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط شو وَوَجَبَ الْمَالُ قَلِيلًاكَانَ أَوْكَثِيرًا او مال واجب شو.که لږ وی اوکه ډير وی لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ الآية.د الله تعالی د فرمان ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ ﴿البقرة:۱۷۸﴾ په وجه عَلَى مَاقِيلَ د هغه قول مطابق کوم چې وئيلی شوی دی نَزَلَتِ الْآيَةُ فِي الصُّلْحِ چې آيت دصلح په اړه کې نازل شوې دې وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: {مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيلٌ} الْحَدِيثُ،[1] او د نبی کريم ﷺ د فرمان ﴿من قتل له قتيل﴾ ﴿الحديث﴾ په وجه وَالْمُرَادُ وَاللهُ أَعْلَمُ الْأَخْذُ بِالرِّضَا او د حديث مراد ،،والله اعلم،، د قاتل په رضامندۍ سره اخستل وی عَلَى مَابَيَّنَّاهُ.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې وَهُوَالصُّلْحُ بِعَيْنِهِ او هم دا (رضامندۍ سره اخستل) بعينه صلح ده وَلِأَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِلْوَرَثَةِ او ځکه چې قصاص د وارثانو داسې ثابت حق دې يَجْرِي فِيهِ الْإِسْقَاطُ عَفْوًا چې په دې کې د معافۍ په طريقه باندې اسقاط جاری کيږی كَذَاتَعْوِيضًا لِاشْتِمَالِهِ عَلَى إِحْسَانِ الْأَوْلِيَاءِ وَإِحْيَاءِ الْقَاتِلِ نو هم دغه ډول د عوض اخستلو په طريقه باندې به (اسقاط جاری کيږی).د عوض (او بدل) اخستلو د مشتمل کيدو په وجه، د اولياو په احسان باندې او د قاتل په احياء باندې، نو فَيَجُوزُ بِالتَّرَاضِي عوض (بدل) اخستل رضامندۍ سره جائز دې.

حل اللغة:① تعويض:عوض ورکول ② التراضی:دواړو طرفونونه رضامندی

تشريح:- کله چې د قاتل او مقتول وارثانو دا مصالحت اوکړو.چه د دومره مال په بدله کې صلح ده.او قصاص معاف دې.نو اوس به قصاص ختم وی.او صرف مال به واجب وی.په کوم چې مصالحت شوې دې.که دا مال لږ وی.او که ډير وی.د صلح ثبوت په قرآن سره دې ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾ (هغه قاتل چا لره چې دده د رور (مقتول) د اړخه څه معافی ورکړې شی.(په واسطه د اولياو) نو تابعداری کول پکار دی.د دستور موافق، او په ښه طريقې سره دا ادا کول پکار دی،،يعنی د مقتول په وارثانو کې که بعضې هم وينه معاف کړی.نو اوس به قاتل په قصاص کې نشی قتلولې.بلکه کتلې به شی.چه دې وارثانو په کومه طريقه معاف کړې دې.چه خالص د ثواب په غرض سره ئې د مال د معاوضې نه بغير معاف کړې دې.

او که د شرعی ديت او مصالحت په طور په يو خاص مقدار مال باندې راضی شوی وی.خو صرف د قصاص نه ئې لاس اخستې وی.نو په ړومبی صورت کې به قاتل ددې وارثانو د مطالبې نه بالکل خلاص (او آزاد) وی.او په دوهم صورت کې قاتل له پکار دی.چه دې معاوضه په ښه طريقه او د زړه په خوشحالۍ سره ادا کړی.د صلح ثبوت د ﴿من قتل له قتيل إما أن يعفو و إما أن يقتل﴾ ،الحديث، نه شوې دې.يعنی ،، د کوم سړی چې څوک ولی قتل کړې شو.نو ده ته اختيار دې.که غواړی.معاف دې کړی.او که غواړی.قصاص دې واخلی.او د مال په بدله کې معاف کول هم عفوه ده.

داعبارت ديوتقديری سوال ځواب دې سوال دا دې چې وړاندې دا مسئله تيره شوې ده.که اولياء په ديت اخستلو باندې راضی شی.او قاتل راضی نه وی.بلکه هغه په قصاص باندې راضی وی.نو اولياء دده د رضامندۍ نه بغير ديت نشی اخستلې.د امام شافعی رحمه الله په نيز اختيار صرف اولياو ته دې.قاتل ته نشته.ددې حديث نه د امام شافعی رحمه الله تائيد کيږی؟ نوعلامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې په حديث کې هم اخستلو نه هغه اخستل مراد دی.کوم چې د قاتل په رضامندۍ سره وی.او کوم اخستل چې رضامندۍ سره وی.هم هغې ته صلح وائی.

[1] من حديث أبى هريرة رضي الله عنه أخرجه البخارى فى العلم باب ٣٩ ومسلم فى الحج ر٤م ٤٤٧ وأبوداود فى المناسک باب ٨٩ والترمذى فى الديات باب ٨ والنسائى فى القسامة باب ٢٩ وابن ماجه فى الديات باب ٣ والدارمى فى البيوع باب ٦٠ وأحمد فى المسند (٢٣٨١٢)_

او قصاص د اولياو حق دې.د كوم په وجه چې اولياو ته حق دې.چه خپل حق مقتو كي معاف كړي.يا څه عوض واخلي.او معاف ني كړي.بيا په دې عوض اخستلو كي د فريقينو ( د قاتل او مقتول داولياو) فائده ده.د مقتول د اولياو فائده دا ده.چه ددوى دارخه قاتل باندې احسان ايخودې شوې دې.او د قاتل فائده دا ده.چه دده نفس بچ شو.نو د دواړو رضامندى پكار ده.

**د صلحې مال كه لږ وى اوكه ډير، يو حكم دي**

وَالقَلِيلُ وَالكَثِيرُ فِيهِ سَوَاءٌاو په صلح كي لږ او ډير مال برابر دي لِأَنَّهُ لَيسَ فِيهِ نَصٌّ مُقَدَّرٌخكه چې دې كي هيڅ متعين كونكې نص نشته فَيُفَوَّضُ إِلَى اصطِلَاحِهِمَانو دا به د فريقينو په اتفاق باندې سپارلي كيږي كَالخُلعِ وَغَيرِهِ،لكه څنګه چې خلع او ددې غير دې وَإِن لَم يَذكُرُوا حَالًا وَلَا مُؤَجَّلًااو كه دوى د نقد او پور ذكر اونكړو فَهُوَ حَالٌ.نو دا به نقد وى. لِأَنَّهُ مَالٌخكه دا داسې مال دي وَاجِبٌ بِالعَقدِ، چې دا عقد سره واجب شوې دي وَالأَصلُ فِي أَمثَالِهِ الحُلُولُاو ددې په مثل كي ( كوم چې عقد سره واجب وى) قاعده د نقديت ده نَحوُ المَهرِ وَالثَّمَنِ، بِخِلَافِ الدِّيَةِلكه مهر او ثمن، په خلاف د ديت، لِأَنَّهَا مَا وَجَبَت بِالعَقدِخكه چې ديت د عقد په وجه نه واجبيږي.

حل اللغة* ① موجل: په نيټه ② الحلول: داخليدل»

تشريح:- د صلح د مال مقدار به څومره وى.نو چونكه په نص كي ددې مقدار نه دې وراد شوې.په دې وجه دا د ولي او قاتل په اتفاق باندې موقوف دى.كه لږ وى.اوكه ډير وى.لكه په خلع او د مال په بدله كي آزادولو كي هم دا صورت دې.اوكه دوى د نقد او پور هيڅ ذكر نه وى كړې.نو نقد مال به واجب وى. خكه قاعده دا ده.چه كوم مال په عقد سره د طرفينو په رضامندئ سره واجب وى.نو هغه به فى الحال واجب الاداء وى.او كوم مال چې عقد سره واجب نه وى.هغه به فى الحال واجب نه وى.او دا مال عقد سره واجب شوې دې.نو فى الحال به واجب الاداء وى.او ديت قسط وار واجب دې.خكه چې ددې وجوب عقد سره نه دې.بلكه د شريعت په واجبولو سره دې.

**آزاد او غلام په شريكه يو قتل اوكړونو په زر روپئ باندې صلح كولو كښې به څومره څومره برخه دار وى؟**

قَالَ:( امام محمد رحمه الله فرمائيلي دى) وَإِن كَانَ القَاتِلُ حُرًّا وَعَبدًااو كه قاتل آزاد او غلام وى فَأَمَرَ الحُرُّ وَمَولَى العَبدِ رَجُلًانو آزاد او د غلام مولا يو سړى ته حكم اوكړو بِأَن يُصَالِحَ عَن دَمِهِمَا عَلَى أَلفِ دِرهَمٍچې هغه ددوى دواړو د وينې د اړخه په زر درهمه باندې مصالحت ( او روغه) اوكړي فَفَعَلَ نو هغه اوكړله فَالأَلفُ عَلَى الحُرِّ وَالمَولَى نِصفَانِنو زر درهم به په آزاد او آقا باندې په نيمه وى لِأَنَّ عَقدَ الصُّلحِ أُضِيفَ إِلَيهِمَا.خكه چې د عقد صلح اضافت دوى دواړو ارخ ته دې.

تشريح:- حارث آزاد دې.او عثمان د ارشد غلام دې.حاث او عثمان ( دواړو) ساجد عمداً قتل كړو.نو ددې په وجه دوى دواړو باندې قصاص واجب شو.خو دوى دواړو زاهد وكيل جوړ كړو.چه هغه د ساجد وارثانو سره خبره اوكړي. او د زر درهمو په بدله كي مصالحت اوكړي.چه د دواړه قاتلانو ( حارث اوعثمان) نفسونه بچ شى.بهرحال زاهد خبره اوكړله.او په زر درهمو باندې ني مصالحت اوكړو.نو اوس سوال دا دې.چه دا زر درهم به څوك وركوى؟ نو ددې خواب ني وركړو.چه حارث او ارشد دواړه به ني نيم په نيمه ادا كوى.خكه چې د زاهد وكيل فعل به د دوى دواړو فعل شمارلې كيږي.خكه چې زاهد خو سفير او معتبر محض دې.چه ده ته اصيل اړخ ته د اضافت حاجت راپيښيږي.او اصيل دوى دواړه دى.او ددې مثال داسې دې.لكه چې دوې (دوه) سړو يو غلام واخستلو. نو هغه به دواړو په منځ كي نيم په نيمه وى.او ثمن به هم نيم په نيمه واجب وى.خكه چې ثمن د غلام بدل دې.

**د مقتول د بعضو وارثانو د قصاص معاف كولو حكم**

وَإِذَا عَفَا أَحَدُ الشُّرَكَاءِ مِنَ الدَّمِاو كله چې شريكانو كي يو كس وينه معاف كړله أَو صَالَحَ مِن نَصِيبِهِ عَلَى عِوَضٍيا ني د خپلې برخې د اړخه په يو عوض باندې مصالحت اوكړو. سَقَطَ حَقُّ البَاقِينَ عَنِ القِصَاصِنو د پاته خلګو حق د



قصاص به معاف كيږي وَكَانَ لَهُم نَصِيبُهُم مِنَ الدِّيَةِاو د دوى لپاره به په ديت كي ددوى برخه وى

تشريح:- حق د قصاص چې چا لپاره ثابت وو.هغوى كي يوخپل حق معاف كړو.نو اوس پاته اولياء هم قصاص نشى اخستلې.بلكه د خپلې برخې ديت اخستلې شى.مثلاً د زيد پنځه خامن دى.او بل هيڅ څوك وارث ني نشته.زيد چا عمداً قتل كړو.چه ددې په وجه قصاص واجب شو.خو يو څوى خپل حق معاف كړو.نو اوس قصاص ساقط شو.صرف ديت به واجب وى.چه ددې صورت به دا وى.چه د پوره ديت نه به ١١٥ خارجولې شى.او ۴١٥ به دوى څلور واړه په منځ كي برابر برابر تقسيميږي.

وَأَصلُ هَذَااو ددې اصل دا دې أَنَّ القِصَاصَ حَقُّ جَمِيعِ الوَرَثَةِ چې قصاص د ټولو وارثانو حق دې وَكَذَا الدِّيَةُ او دغه ډول ديت دې.

تشريح:- په دې عبارت كي يو اصول بيانوى چې چونكه په قصاص كي د ټولو وارثانو حق دې.او هركله چې د ټولو حق دې.نو هر يو ته حق دې.چه قصاص وصول كړي.يا ني معاف كړي.نو كله چې يو كس خپل حق معاف كړو.نو د سره قصاص ساقط شو.بهرحال زموږ په نيز په قصاص او ديت كي د ټولو وارثانو حق دې.كه ددوى وراثت په اعتبار د نسب سره وى.او كه په اعتبار د سبب ( د زوجينو) سره وى.

خِلَافًا لِمَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ فِي الزَّوجَينِپه خلاف د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله د زوجينو ( ښځې او خاوند) په حق كي لَهُمَا أَنَّ الوِرَاثَةَ خِلَافَةٌ، ددوى دواړو دليل دا دې.چه وراثت خو خلافت دې وَهِيَ بِالنَّسَبِاو خلافت د نسب په وجه سره كيږي دُونَ السَّبَبِ د سبب په وجه نه كيږي لِانقِطَاعِهِ بِالمَوتِ د سبب منقطع كيدو په وجه، د مرګ په ذريعه

حل اللغة* ① انقطاع: ختميدل»

تشريح:- دامام مالك او امام شافعي رحمهما الله په دې كي اختلاف دې.دوى فرمائي.چه په قصاص او ديت كي د زوجينو حق نشته.خكه چې ميراث كي كوم وراثت ثابتيږي.ددې مال خلافت او نيابت دې.او د خلافت بنا (بنياد) نسب دې.سبب نه دې.خكه چې سبب خو مرګ سره ختميږي.نو د زوجينو هيڅ حق به په قصاص او ديت كي نه وى.
او ددې حضراتو مراد په وراثت سره هغه وراثت دې.كوم چې د مرګ نه روستو ثابت وى.ګنى د مرګ نه مخكي په تركه كي چې د وارثانو كوم حق متعلق وى.هغې كي زوجينو ته هم ميراث ملاويږي. بهرحال ددې حضراتو په نيز، په قصاص او ديت كي د زوجينو حق نشته.او زموږ په نيز د ټولو وارثانو حق دې.

وَلَنَااو زموږ دليل دا دې {أَنَّهُ عَلَيهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَمَرَ بِتَورِيثِ امرَأَةِ أَشيَمَ الضِّبَابِيِّ چې نبى ﷺ د اشيم ضبابى د ښځې د وارث جوړولو حكم فرمائيلې وو مِن عَقلِ زَوجِهَا أَشيَمَ}[1] ددې د ميړه د اشيم په ديت كي ، وَلِأَنَّهُ حَقٌّاو خكه چې دا قصاص او ديت داسې حق دې يَجرِي فِيهِ الإِرثُ، چې دې كي ميراث جارى كيږي مِن حَتَّى أَن مَن قُتِلَتردې چې كوم سړې قتل كړې شو وَلَهُ ابنَانِاو دهغه دوې (دوه) خامن وى فَمَاتَ أَحَدُهُمَا عَن ابنٍنو په دوى كي يو خوني مړ شو كَانَ القِصَاصُ بَينَ الصُّلبِيِّ وَابنِ الِابنِنو قصاص به د صلبى څوى او نمسى په منځ كي وى فَيَثبُتُ لِسَائِرِ الوَرَثَةِنو دا قصاص او ديت د ټولو وارثانو لپاره ثابت دې.

تشريح:- زموږ په نيز قصاص او ديت كي د زوجينو حق وى.دليل دا دې.چه اشيم ضبابى خطاءً قتل كړې شوې وو.چه ددې په وجه ديت واجب شو.نو سركار دوعالم ﷺ دا حكم فرمائيلې وو.چه په دې ديت كي دې د اشيم ښځې ته هم ميراث وركړې شى.ددې نه معلومه شوه.چه په ديت كي د ښځې حق وو.په دې وجه خو ني وركړې وو.نو دغه ډول به قصاص كي هم حق وى.بيا قصاص او ديت داسې شئ دې.چه په دې كي ميراث جارى كيږي.او هركله چې ميراث جارى كيږي.نو بيا به دټولو وراثانو لپاره دا حق ثابت وى.

[1] من حديث ضحاک بن سفيان رضي الله عنه أخرجه ابوداود فى الفرائض والترمذى فى الفرائض باب ١٨ وابن ماجه فى الديات باب ١٢ رقم ٢٦٤٢ والنسائى فى السنن الكبرى (٧٩١٤) رقم ٦٣٦٦_

اوپه دوی دواړو د میراث جاري کیدو دلیل دا دې چې د زید دوې (دوه) ځامن دی.بکر او خالد، زید عمداً چا قتل کړو.نو حق د قصاص بکر او خالد لپاره دې.اوس د بکر انتقال اُوشو.او دده یو ځوئې ساجد موجود دې.نو په حق د قصاص کې به اوس ساجد د بکر قائم مقام وی.او اوس به حق د قصاص ساجد او خالد دواړو لپاره وی.نو ددې نه معلومه شوه.چه قصاص کې میراث جاري کیږی.

وَالزَّوْجِيَّةُ تَبْقَى بَعْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا فِي حَقِّ الْإِرْثِ او زوجیت د میراث په حق کې حکماً د مرګ نه روسته پاته پاتې کیږی أَوْ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ مُسْتَنِدًا إِلَى سَبَبِهِ یا دا ( قصاص یا دیت) د مرګ نه روستو خپل سبب اړخ ته منسوب کیږی.او ثابتیږی وَهُوَ الْجُرْحُ او ( سبب ) هغه زخم لګول دی.

تشریح:- په دې عبارت کې د دې خبرې وضاحت کوی چې په مرګ سره زوجیت مطلقاً نه ختمیږی بلکه د میراث په حق کې د مرګ نه روستو هم زوجیت حکماً پاته پاتې کیږی.او هرکله چې پاته پاتې کیږی.نو زوجین به هم په قصاص او دیت کې مستحق وی.② یا داسې خواب ورکولې شی.چه د قصاص یا دیت سبب هغه زخم دې.کوم چې د مرګ واقع کیدو نه مخکې لګولې شوې وو. او هغه وخت زوجیت موجود وو.او د مرګ نه روستو قصاص یا دیت ددغه سبب په وجه ثابتیږی.نو زوجین به د نورو وارثانو نه خارجول صحیح نه وی.او د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله استدلال تام نشو.

### په قصاص وصولولو.یا خپل حق معاف کولو.او صلح کولوکښې د مقتول وارثانو ته اختیار دې

وَإِذَا ثَبَتَ لِلْجَمِيعِ او هرکله چې د ټولو وارثانو لپاره حق د قصاص ثابت شو. فَكُلٌّ مِنْهُمْ يَتَمَكَّنُ مِنَ الْإِسْتِيفَاءِ وَالْإِسْقَاطِ عَفْوًا وَصُلْحًا نو په دوی کې به هر یو د قصاص اخستلو،اومعاف کولو،اودصلح په طریقه ساقطولو باندې قادر وی وَمِنْ ضَرُورَةِ سُقُوطِ حَقِّ الْبَعْضِ فِي الْقِصَاصِ او په قصاص کې دبعضو حق ساقطیدو لپاره ضروری ده سُقُوطُ حَقِّ الْبَاقِينَ فِيهِ، چې په قصاص کې د پاته حق ساقط شی لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چې قصاص غیر متجزی ( او نه ټکړې کیدونکې) دې.

تشریح:- د ذکر شوی تفصیلاتو نه دا خبره معلومه شوه.چه حق د قصاص ټولو وارثانو لپاره ثابت دې.نو په دوی کې به هر یو ته دا حق هم ثابت وی.چه دوی قصاص وصول کړی.یا خپل حق معاف کړی.یا مصالحت اوکړی.بهرحال که په هره طریقه وی.هرکله چې بعضو حق د قصاص ساقط کړو.نو اوس به قصاص ساقطول ضروری وی.ګنې قصاص کې به ټکړې کول لازم شی.حالانکه قصاص نه ټکړې کیږی.

### د دوو سړو قاتل ته د یو مقتول د وراثانو قصاص معاف کولو سره د دوهم مقتول د وارثانو د حق حکم

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَتَلَ رَجُلَيْنِ په خلاف ددې صورت کله چې قاتل دوې (دوه) سړی قتل کړی وی وَعَفَا أَحَدُ الْوَلِيَّيْنِ او په مقتولینو کې د یوکس ولی معاف کړی وی لِأَنَّ الْوَاجِبَ هُنَاكَ قِصَاصَانِ ځکه چې هلته کې دوې (دوه) قصاصونه واجب دی مِنْ غَيْرِ شُبْهَةٍ لِاخْتِلَافِ الْقَتْلِ وَالْمَقْتُولِ.د څه شبهې نه بغیر د قتل او مقتول د اختلاف په وجه وَهَاهُنَا وَاحِدٌ او دلته کې یو قصاص دې لِإِتِّحَادِهِمَا، ددوی ( د قتل او مقتول) دواړو د متحد کیدو په وجه وَإِذَا سَقَطَ الْقِصَاصُ او هرکله چې قصاص ساقط شو يَنْقَلِبُ نَصِيبُ الْبَاقِينَ مَالًا نو د پاته اولیاو برخه به مال سره بدلیږی لِأَنَّهُ امْتَنَعَ لِمَعْنًى ځکه چې قصاص ممتنع شوې دې.د داسې معنی په وجه رَاجِعٍ إِلَى الْقَاتِلِ،کوم چې قاتل اړخ ته راجع ده وَلَيْسَ لِلْعَافِي شَيْءٌ مِنَ الْمَالِ او د معاف کونکی لپاره هیڅ مال نشته لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ بِفِعْلِهِ وَرِضَاهُ ځکه چې ده خپل حق پخپل فعل او خپلې رضامندئ سره ساقط کړې دې

تشریح:- په ذکر شوی صورت کې که یوکس ( قصاص ) معاف کړو.نو قصاص بالکل ختم شو.خوکه زید دوې (دوه) سړی قتل کړی وی.مثلاً بکر او خالد ئې قتل کړې وی.بیا داسې اوشوه.چه د بکر اولیاو هغه معاف کړو.نو ددې معاف کاوه په وجه به د خالد د اولیاو حق نه ساقطیږی.بلکه دوی ته به د قصاص اخستلو حق پاته وی.



وجه د توپیر دا ده.چه په ړومبئ مسئله کې قتل یو دې.او مقتول هم یو دې.او په دویمه مسئله کې قتلونه دوې (دوه) دی.او مقتول هم دوې (دوه) دی.نو د یو فعل یا د یو محل په معاف کاوه سره به دوهم فعل یا دوهم محل نه معاف کیږی.او دلته کې داسې نه ده.بلکه فعل او محل یو دې.نو د بعضو معاف کول به د ټولو معاف کول وی.هرکله چې بعضو معاف کړو.نو اوس په قاتل کې عصمت پیدا شو.او هرکله چې عصمت پیدا شو.نو قصاص ساقط شو.خو دیت به واجب وی.لکه څنګه چې د خطاء په صورت کې د قاتل د خطاوار کیدو په وجه قاتل کې عصمت دې.چه ددې په وجه به دې نشی قتلولې.البته دیت به واجب وی.دغه ډول دلته کې هم ده.او کوم ولی چې خپل حق معاف کړې وو.هغه ته به دیت کې هیڅ نه ملاویږی.ځکه چې هغه خپلې رضامندئ او خپل فعل سره خپل حق ساقط کړې دې.

### د دیت او ارش ادا کولو موده او طریقه

ثُمَّ يَجِبُ مَا بيا چې کوم مال واجب وی يَجِبُ مِنَ الْمَالِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ [1] هغه به په دریو کالو کې واجب وی وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی يَجِبُ فِي سَنَتَيْنِ چې په دوو کالو کې به واجب وی فِيمَا إِذَا كَانَ بَيْنَ الشَّرِيكَيْنِ په دې صورت کې کله چې قصاص د دوې (دوه) شریکانو په منځ کې وی وَعَفَا أَحَدُهُمَا او په دوی کې هر یو معاف کړې وی ،لِأَنَّ الْوَاجِبَ نِصْفُ الدِّيَةِ ځکه چې نیم دیت واجب دې إذا فَيُعْتَبَرُ بِمَا نو په هغه صورت به قیاس کولای شی إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ خَطَأً کله چې خطاء دده لاس کټ کړې شوې وی.

تشریح:- دیت په دریو کالو کې قسط وار واجبیږی.او ارش ( تاوان) دوو کالو پورې ادا کولې شی.اوس دا اختلاف اوشو.چه دا به د کوم په حکم کې ګرځولې شی؟ نو موږ د دیت په حکم کې اوګرځولو.او امام زفر رحمه الله اوفرمائیل.چه د ارش ( تاوان) په حکم کې به ګرځولې شی.امام زفر رحمه الله فرمائی.چه زید خالد عمداً قتل کړو.د خالد دوې (دوه) وارثان دی.په دوی کې یو کس خپل حق معاف کړو.نو اوس د دوهم وارث لپاره نیم دیت پاته پاتې شو.اوکه یوکس د بل سړی خطاء سره لاس کټ کړو.نو دلته به هم نیم دیت واجب وی.نو دواړه مقدارونه برابر شو.نو لکه څنګه چې د لاس دیت ( ارش) په دوو کالو کې ادا کولې شی.دغه ډول به دلته کې واجب شوې مال، یعنی د نیم دیت اداکول به هم په دوو کالو کې واجب وی.دا د امام زفر رحمه الله دلیل دې.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې آن هَذَا بَعْضُ بَدَلِ الدَّمِ چې دا د وینې د بدل بعضې برخه ده وَكُلُّهُ مُؤَجَّلٌ إِلَى ثَلَاثِ سِنِينَ او دوینې واړه بدل دریو کالو پورې مؤجل ( او نیټه دار) وی فَكَذَلِكَ بَعْضُهُ،نو دغه ډول به ددې بعض وی وَالْوَاجِبُ فِي الْيَدِ او کوم چې په لاس کې واجب دې كُلُّ بَدَلِ الطَّرَفِ هغه د اندام د بدل کل دې وَهُوَ فِي سَنَتَيْنِ فِي الشَّرْعِ او دا په شریعت کې دوو کالو کې کیږی وَيَجِبُ فِي مَالِهِ او دا مال به د قاتل په مال کې واجب وی لِأَنَّهُ عَمْدٌ ځکه چې دا قتل عمد دې.

تشریح:- زموږ دلیل دیت په ارش ( تاوان) باندې قیاس کول ولې کولې شی.بلکه دیت به په دیت باندې قیاس کولې شی.دلته چې کوم مقدار واجب دې.دا د دیت بعض دې.او که ټولو د دیت په بدله کې مصالحت کړې وې.نو پوره دیت به واجبیدو.نو کوم چې د پوره دیت حکم دې.هم دا حکم به د دیت د بعض هم وی.نو د امام زفر رحمه الله استدلال مشکوك دې.

بیا دا سوال پیدا کیږی.چه دا مال په چا واجب دې.په قاتل یا عاقله باندې؟ نو وې فرمائیل.چه دا د قتل عمد عوض دې.او عاقله باندې د قتل خطاء دیت واجبیږي.نو دا مال به د قاتل د مال نه ادا کولې شی.

### که یو جماعت یو سړې عمداً قتل کړی نو د قصاص څه حکم دې ؟

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا قَتَلَ جَمَاعَةٌ وَاحِدًا عَمْدًا او کله چې یو جماعت یو سړې عمداً قتل کړو أُقْتُصَّ

[1] القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فی الفقه الإسلامی (۳۰۸۱۳) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۰۱۲)-

مِنْ جَمِيعِهِمْ نو ددوی ټولو څخه به قصاص اخستلې شی لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فِيهِ: د حضرت عمر ﷺ د فرمان په وجه په دې سلسله کي لَوْ تَمَالَأَ عَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَ که په ده باندې د صنعاء ټولو خلګو امداد کړې وې لَقَتَلْتُهُمْ (۱) نو ما به دوی واړه قتلول وَلِأَنَّ الْقَتْلَ بِطَرِيقِ التَّغَالُبِ غَالِبٌ او څکه چې قتل د تغالب (او اکثريت) په طريقه باندې غالب دې وَالْقِصَاصُ مَزْجَرَةٌ لِلسُّفَهَاءِ او قصاص د کم عقلو لپاره د زجر (او زورنې) آله ده، فَيَجِبُ تَحْقِيقًا لِحِكْمَةِ الْإِحْيَاءِ نو قصاص واجب دې.د احياء حکمت ثابتولو دپاره

حل اللغة: ① السفهاء: جمع د سفيه، بيوقوف، کم عقل ﴾

تشريح:- مقتول يو دې.او قاتل متعدد (ګڼې) دی.نو واړه به په قصاص کي قتلولې شی.د حضرت عمر فاروق ﷺ هم دا فيصله ده.او چونکه قتل په عامه توګه (عام طور) باندې هم داسې کيږی.چه د يوکس نور خلګ کومك کوی.نو که د قاتل د تعدد په وجه قصاص پريښودې شی.نو بيا به د قصاص دروازه بنده شی.او کوم چې مقصود دې.يعنی نظام د عالم قائم ساتل، او د خلګو ژوندی ساتل، دا مقصود به معطل (او عبث) پاتې شی.

کومې واقعه ته چې په متن کي اشاره شوې ده د هغې تفصيل دا دې چې په صنعاء کي زينب نومې يوه ښځه وه.د هغې ميړه په سفر کي پردی وطن ته تلې وو.او خپل يو څوئې ،، چې اصيل ئې نامه وه.او دده د مخکنۍ ښځې نه پيدا شوې وو،، ددې سره ئې پريخودو.او لاړو.د زينب يو څو اشنايان پيدا شو.څو هغوی د اصيل نه تنګ راغلل.نو زينب خپلو چالاکو يارانو سره مشوره اوکړله.نو د ټولو دا رائې مقرر شوه.چه دا هلك موږ رسوا کوی.نو واړه متفق شو.او دې ئې قتل کړو.او د غمدان په کوهی کي ئې اوغورزولو.او دا واړه سره د ښځې اووه نفر وو.نو کله چې دا هلك ورك شو.نو هم دې زينب چغې کړې.او په چغو کي به ئې وئيلې.چه ائ الله چا چې اصيل قتل کړې وی.هغه دې تباه شی.او هغه دې اونيولې شی.او دغه وخت د حضرت عمر ﷺ د اړخه يعلی د صنعاء وزير وو.نو دوی په دې اړه کي خلګو ته خطبه واوروله.چه ددې تحقيق او معلومات اوکړئ.نو يو څو ورځې روسته د غمدان کوهی په اړخ يو سړې تيريدو.او هلته د مچانو د ډيروالی نه ده ته پته اولګيده.نو ده يعلی ته خبر ورکړو.نو هغه خلګ خان سره کړل.او تشريف ئې يوړلو.نو د ښځې په چالاکو يارانو کي يوکس اووئيل.چه ما په رسۍ کي دړ زوړند کړئ.نو ورکوز شو.او د اصيل لاش ئې د کوهی په غار (ګاڼ) کي پټ کړو.بيا دې راووتلو.او ده اووئيل.چه ما هلته هيڅ او نه موندل.نو دوهم سړی اووئيل.چه ما ورکوز کړئ.بيا هغه ورکوز شو.او لاش ئې راوښکلو.نو آخرکار ښځې اقرار اوکړو.او ددې يارانو هم اقرار اوکړو.يعلی ددې تفصيل حضرت عمر ﷺ ته اوليکلو.هغوی ددې دا حکم جاری کړو.چه دوی واړه دې قتل

### که يو سړې پوره جماعت قتل کړی نو په قصاص کښې به هم دا يوکس قتل کولې شی

وَإِذَا قَتَلَ وَاحِدٌ جَمَاعَةً او کله چې يو سړی يو جماعت قتل کړو فَحَضَرَ أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِينَ نو د مقتولينو اولياء حاضر شو قُتِلَ لِجَمَاعَتِهِمْ نو قاتل به ددوی د ټولو د اړخه قتلولې شی وَلَا شَيْءَ لَهُمْ غَيْرُ ذَٰلِكَ او د اولياو لپاره به ددې نه علاوه هيڅ نه وی فَإِنْ حَضَرَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ نو که په دوی کي يو حاضر شو قُتِلَ لَهُ نو دده لپاره به قاتل قتلولې شی وَسَقَطَ حَقُّ الْبَاقِينَ او د پاته (اولياو) حق به ساقط ... شی

تشريح:- يوسړي مثلاً ... بيا به هم قصاص کي د ټولو لپاره دا يو قاتل ... دوی کي يو (ولی) حاضرشو.او قصاص نې ... به چا ته نه ... ږی.

... دی يُقْتَلُ بِالْأَ... ې په دوی کي به د ړومبی مقتول په



وَيَجِبُ لِلْبَاقِينَ الْمَالُ د پاته لپاره به مال واجب وی وَإِنِ اجْتَمَعُوا او که دوی واړه راجمع شو بدله کي قتلولې شی وَقُسِمَتِ الدِّيَاتُ بَيْنَهُمْ او ددوی وَلَمْ يُعْرَفِ الْأَوَّلُ او ړومبې معلوم نه وی قُتِلَ لَهُمْ نو ددوی ټولو لپاره به دې قتلولې شی وَقِيلَ يُقْرَعُ بَيْنَهُمْ او وئيلې شوی دی.چه ددوی په منځ کي به قرعه (خسنړې) اچولې شی فَيُقْتَلُ لِمَنْ نو دهغه کس د اړخه به قتلولې شی، خَرَجَتْ قُرْعَتُهُ.د چا چې قرعه راوخی.

حل اللغة: ① يقرع: خسنړې به واچوی ﴾

تشريح:- او د امام شافعی رحمه الله دلته مختلف اقوال دی: ① که قاتل دا واړه مقتولين يو بل پسې قتل کړې وی.نو د ړومبی په بدله کي به قصاص وی.او د پاته په بدله کي به مال واجب وی. ② اوکه واړه (ئې په يو ځل) قتل کړی وی.يا ئې وړاندې روستو قتل کړی وی.خو د ړومبی پته نه لګی.نو د ټولو لپاره به قتلولې شی.او بيا به ديتونه د دوی ټولو په منځ کي تقسيمولې شی. ③ قرعه (او خسنړې) به اچولې شی.چه د چا نوم راوخی.د هغه لپاره به قتلولې شی.او د پاته لپاره به مال وی.

لَهُ د امام شافعی رحمه الله دليل دا دې الْمَوْجُودُ مِنَ الْوَاحِدِ قَتَلَاتٌ چې د يو قاتل د اړخه يوڅو قتلونه موجود دی وَالَّذِي تَحَقَّقَ فِي حَقِّهِ او دده په حق کي چې کوم قتل متحقق (او ثابت) شو قَتْلٌ وَاحِدٌ هغه يو قتل دې فَلَا تَمَاثُلَ.نو تماثل اونشو وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ او په ړومبی فصل کي هم دا قياس وو، إِلَّا أَنَّهُ عُرِفَ بِالشَّرْعِ.خو د شريعت نه معلومه شوې ده.

تشريح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه صرف د قاتل قتل به د ټولو مقتولينو اولياو لپاره کافی نه وی.څکه چې قاتل متعدد (ګڼې) قتلونه کړی دی.او دده قتل صرف هم دده قتل دې.حالانکه قصاص کي مماثلت کيدل پکار دی.چه هغه دلته کي نشته.بلکه په ړومبی صورت کي کله چې مقتول يو وی.او قاتل ګنړ وی.قصاص کيدل پکار نه دی.څکه چې مماثلت موجود نه دې.او هم دا د قياس تقاضه ده.خو چونکه هم هغه د حضرت عمر ﷺ فرمان وارد شو.په دې وجه قياس پريښودې شو.او دلته کي څه داسې دليل وارد نه دې.چه هغه د قياس خلاف وی.نو په قياس به عمل کولې شی.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دې أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ قَاتِلٌ بِوَصْفِ الْكَمَالِ سچه اولياو کي هر يو کامل وصف سره (په قصاص کي) قتلونکې دې فَجَاءَ التَّمَاثُلُ نو تماثل پيدا شو أَصْلُهُ الْفَصْلُ الْأَوَّلُ او ددې اصل ړومبې فصل دې إِذْ لَوْ لَمْ يَكُنْ كَذَٰلِكَ څکه که دا خبره نه وې لَمَا وَجَبَ الْقِصَاصُ نو قصاص به نه وو.

تشريح:- زموږ دليل دا دې.چه هر کله واړه اولياء حاضر شو.او د قاضی د فيصلې نه روسته هغوی پخپله يا ددوی وکيل هغه قتل کړو.نو په دواړو صورتونو کي به دا ګڼړلې شی.چه هر يو کس خپل پوره حق ،،قصاص علی سبيل الکمال،، حاصل کړو.نو تماثل شته.او لکه څنګه چې ړومبی صورت کي مقتول يو وی.او قاتلان ګنړ وی.هم دا ګنړلې شوی دی.چه هر قاتل کامل وصف سره دې قتل کړې دې.ګنی ددې نه بغير به د ټولو نه قصاص نه اخستلې کيدو.نو دلته به هم دغه ډول ګنړلې کيږی.

وَلِأَنَّهُ وُجِدَ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ جُرْحٌ او څکه چې د هر ولی د اړخه داسې زخم اوموندې شو صَالِحٌ لِلْإِزْهَاقِ چې دا د روح ويستلو صلاحت (او قدرت) لری فَيُضَافُ إِلَىٰ كُلٍّ مِنْهُمْ نو د روح ويستل به په دوی کي د هر يو کس اړخ ته مضاف وی إِذْ هُوَ لَا يَتَجَزَّأُ څکه چې روح وتل غير متجزی (او غير منقسم) دی وَلِأَنَّ الْقِصَاصَ شُرِعَ مَعَ الْمُنَافِي او څکه چې قصاص د منافی باوجود مشروع شوې دې لِتَحْقِيقِ الْإِحْيَاءِ د احياء (ژوند) ثابتولو لپاره وَقَدْ حَصَلَ بِقَتْلِهِ او د ژوند ثبوت حاصل شوې دې فَاكْتُفِيَ بِهِ نو هم په دې به اکتفاء کولې شی.

تشريح:- بل دليل دا دې چې په دوی کي د هريو زخم ددې قابل دې.چه د روح وتلو سبب جوړ شی.نو د روح وتلو اضافت به دوی ټولو اړخ ته کيږی.څکه چې لکه څنګه قصاص غير متجزی دې.دغه ډول روح وتل هم غير متجزی

دي.او د سرې د بدن شلول (او زخمي كول) ممنوع دي.او داسې كونكې حديث كې ملعون ګرځولې شوي دي.
ددې باوجود دلته كې د ژوند د تحقيق په غرض سره قصاص مشروع كړې شوې دې.بهرحال كوم چې غرض (او
مقصد) دې.يعنې تحقيق د ژوند ، هغه ددې قاتل په قتلولو سره حاصليږي.او هركله چې مقصد حاصل شو.نو په
دې به اكتفاء كولې شي.او د قصاص نه علاوه به هيڅ مال واجب نه وي.

## كه قاتل مړشي نو د قصاص څه حكم دې ؟

قَالَ:امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْقِصَاصُ او په چاچه قصاص واجب وي إِذَا مَاتَ كله چې هغه
مړشو سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط شو لِفَوَاتِ مَحِلِّ الِاسْتِيفَاءِ د استيفاء د محل فوت كيدو په وجه، فَأَشْبَهَ مَوْتَ الْعَبْدِ
الْجَانِي،نو د مجرم غلام د مرګ مشابه شو وَيَتَأَتَّى فِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او په دې كې د امام شافعي رحمه الله اختلاف
دې إِذِ الْوَاجِبُ أَحَدُهُمَا عِنْدَهُ.ځكه چې ددوی په نيز دې دواړو كې يو واجب دې.

**تشريح:-** په كوم قاتل چې قصاص واجب وو.او ديت وركول اختيار شوی نه وو.نو كه دا قاتل مړ شی.نو قصاص به
هم ساقطيږي.ځكه چې د كوم محل نه قصاص وصوليدو.هغه محل ختم شوې دې.نو دا بالكل داسې ده.لكه چې
يو غلام جنايت (جرم) اوكړي.او په دې كې دا غلام وركول لازمی شی.خو د ور كاوه نه وړاندې دا غلام مړ شو.نو
اوس به هيڅ نه وركړې كيږي.ځكه چې محل فوت شوې دې.او چونكه د امام شافعي رحمه الله په نيز اصل كې قصاص
واجب نه دې.بلكه دې دواړو كې يو واجب دې.او قصاص متعذر شو.نو ديت به وصولولې شی.
او زموږ په نيز اصلي واجب قصاص دې.او ديت اړخ ته انتقال هغه وخت كيږي.كله چې دوی دواړه په دې باندې
اتفاق اوكړي.او دا اتفاق شوې نه وو.نو اصلي موجب قصاص وو.او د محل فوت كيدو په وجه اوس دا فوت
شو. (ختم)

## كه دوو سړو د يو سړي لاس كټ كړونو د قصاص څه حكم دې ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا قَطَعَ رَجُلَانِ يَدَ رَجُلٍ وَاحِدٍ او كله چې دوو سړو د يو سړي لاس كټ كړو (فَلَا
قِصَاصَ عَلَى وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دوی دواړو كې يو باندې هم قصاص نشته. وَعَلَيْهِمَا نِصْفُ الدِّيَةِ او دوی دواړو باندې به
نيم ديت وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعي رحمه الله اوفرمائيل تُقْطَعُ يَدَاهُمَا، چې د دواړو لاس به كټ كولای شي
وَالْمَفْرُوضُ إِذَا أَخَذَ سِكِّينًا او د مسئلې محل فرض كله چې دوی دواړو چاړه نيولې وي وَأَمَرَّهُ عَلَى يَدِهِ او دا ئې دهغه په
لاس چلولې وي حَتَّى انْقَطَعَتْ تردې چې لاس كټ شی لَهُ الِاعْتِبَارُ بِالْأَنْفُسِ، د امام شافعي رحمه الله دليل په نفس باندې
قياس كول دی وَالْأَيْدِي تَابِعَةٌ لَهَا او لاس د نفس تابع دي فَأَخَذَتْ حُكْمَهَا،نو لاس به د نفس حكم اخلي أَوْ نَجْمَعُ بَيْنَهُمَا بِجَامِعِ
الزَّجْرِ يا به ددوی دواړو په منځ كې د جامع زجر په وجه جمع كولې شي.

**تشريح:-** زيد او بكر په يوځاې د خالد يو لاس كټ كړو.نو څه حكم دې؟ په دې كې دامام شافعي رحمه الله مذهب دا
دې.چه د زيد او بكر دواړو به قصاص كې لاس كټ كولې شی.ځكه كه زيد او بكر دواړو په يو ځاې خالد قتل
كړې وي.بيا به هم دواړو نه قصاص اخستلې شو.نو دلته به هم دواړو نه د لاس قصاص اخستلې شی. لنډيز دكلام
دا چې امام شافعي رحمه الله لاس په نفس باندې قياس كړې دې.په نورو الفاظو كې داسې چې لاس پرې كول ئې په
قتل باندې قياس كړې دې.او علت جامع او مشتركه ددواړو په منځ كې حكم د زجر دې.چه دا د دواړو په منځ كې
مشترك دې.په نورو الفاظ كې داسې چې اندامونه د نفس تابع دی.او د تابع هم هغه حكم كيدل پكار دی.كوم چې
د متبوع وي.
دلته يوه خبره ياد ساتل پكار دی چې زموږ او د امام شافعي رحمه الله دا اختلاف په هغه صورت كې دې.كله چې
دواړه يوه چاړه نيولې وی.او دده په لاس ئې چلولې وی.اوكه دواړو جلا جلا چاړه نيولې وی.او يوكس د يو اړخه او
دوهم به بل اړخه پرې كول پيل كړې وی.تردې چې د دواړو چاړې ملاو شوې.يعنې پوره لاس كټ شو.نو دلته به
دامام شافعي رحمه الله په نيز هم قصاص نه وی.كه هم دا صورت په حلق (مرۍ) كټ كاوه كې راپيښ شو.نو بالاتفاق په



دواړو به قصاص واجب وی.

دواړو به قصاص واجب وی.
وَلَنَا او زموږ دليل دا دې كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا قَاطِعٌ بَعْضَ الْيَدِ، چې په دوی دواړو كې هر يو د لاس بعض برخه كټ
كونكې دې. لِأَنَّ الِانْقِطَاعَ حَصَلَ بِاعْتِمَادَيْهِمَا ځكه چې پرې كول ددوی دواړو په بوج سره حاصل شوې دی وَالْمَحَلُّ مُتَجَزِّءٌ
او محل (لاس) متجزی دې فَيُضَافُ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَعْضُ سنو دوی دواړو كې هر يو اړخ ته به د بعض اضافت
كولای شي فَلَا مُمَاثَلَةَ نو مماثلت به نه وی.

**تشريح:-** دا زموږ دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه په زيد او بكر كې هر يو دده بعض لاس كټ كړې دې. ځكه چې
چاړه باندې د دواړو لاس دې.او د دواړو په زور د چاړې نه كار اخستې شوې دې.او د خالد لاس هم د تجزی (
يعنې برخې كولو) قابل دې.نو دا به ضروري وی.چه داسې اوونيلې شی.چه هر يو بعض لاس كټ كړې دې.او
هركله چې هر يو بعض لاس كټ كړې دې.او دوی دواړو ته دا سزا ملاو شی.چه ددوی پوره لاس كټ كړې شی.نو
مماثلت ختم شو.حالانكه قصاص كې مماثلت ضروري دې...كما مر..

بِخِلَافِ النَّفْسِ په خلاف د نفس لِأَنَّ الِانْزِهَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ ځكه چې روح وتل غير متجزی دی.

**حل اللغة:** ① **الانزهاق:** وتل د روح ② **قتلات:** جمع د قتلة، وژل﴿

**تشريح:-** پاتې شوه د قتل مسئله، نو ددې حقيقت د روح وتل دی.چه دا غير متجزی شمار كړې شوې دې.او هركله
چې دا غير متجزی شمار كړې شوې دې.نو ضروري ده.چه هر يو اړخ ته د روح وتلو اضافت ..على سبيل الكمال..
وی.او هركله چې دواړو اړخ ته كامل اضافت اوشو.نو د دواړو څخه به قصاص اخستلې شی.

## د امام شافعي رحمه الله د قياس جواب

وَلِأَنَّ الْقَتْلَ بِطَرِيقِ الِاجْتِمَاعِ غَالِبٌ او ځكه چې قتل د اجتماع په طريقه غالب (او عام) دی حِذَارَ الْغَوْثِ، د فرياد پوره
كونكی (امدادی) د يرې نه وَالِاجْتِمَاعُ عَلَى قَطْعِ الْيَدِ مِنَ الْمِفْصَلِ فِي حَيِّزِ النُّدْرَةِ او اجتماع د جوړ نه په لاس كټ كاوه كې
نا آشنا ده لِافْتِقَارِهِ إِلَى مُقَدِّمَاتٍ بَطِيئَةٍ ددې د محتاج كيدو په وجه داسې مقدمو اړخ ته كوم چې ډير روستو مطلوب
وی فَيَلْحَقُهُ الْغَوْثُ نو ده سره به فرياد پوره كونكې يو ځائې كيږي.

**حل اللغة:** ① **بطيئة** : روستو، ② **المفصل:** جوړ ③ **الندرة:** ناآشنا ④ **الغوث:** فرياد﴿

**تشريح:-** د دې ځائې نه دامام شافعي رحمه الله د قياس ځواب وركړې كيږي. چې ستاسو مذكوره قياس صحيح نه
دې.ځكه چې د مقيس عليه او مقيس په منځ كې مناسبت پكار دې.او دلته په دې دواړو كې هيڅ مناسبت نشته،
هغه څنګه؟ نو وې فرمائيل، ځكه چې مقيس عليه قتل دې.او په دې كې په عامه توګه (عام طور) باندې د
امداديانو اجتماع كيږي.چه څوك امدادی رانشی.او قتل كاوه ته مو پرينږدی.په دې وجه ډير راجمع كيږي.چه كار
زر ختم شی.او مقيس لاس پريكول دی.او په دې كې په عامه توګه (عام طور) باندې د خلګو يعنې د امداديانو
اجتماع نه كيږي.ځكه چې كله د جوړ نه لاس كټ كوی.نو په دې كې به وخت لګی.ځكه چې ددې لاس نيولو اړتيا
به راپيښيږي.كوم نې چې كټ كړې دې.او چاړې چلولو وغيره (اړتيا يه راپيښيږي).او كله چې د امداديانو
اجتماع كيږي.نو دلته كې دا كار ډير وخت غواړي.نو ددوی په چغو او شور وغيره سره به د پريكړې شوی څوك
امدادی راشی.چه په دې سره به دا كار اونشی.نو اړتيا دې.چه دلته اجتماع نه وی.چه شور نه وی.او كار اوشی.
لنډيز د كلام دا چې مقيس عليه كې اجتماع ده.او په مقيس كې اجتماع نشته.نو ددوی دواړو په منځ كې مناسبت
نشته.نو قياس به صحيح نه وی.

## يو لاس دوو سړو كټ كړونو د ديت څه حكم دې ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَعَلَيْهِمَا نِصْفُ الدِّيَةِ چې په دوی دواړو به نصف ديت واجب وی لِأَنَّهُ دِيَةُ الْيَدِ الْوَاحِدَةِ
ځكه چې دا د يو لاس ديت دې وَهُمَا قَطَعَاهَا او دوی دواړو يو لاس كټ كړې دې.

**تشريح:-** د يو لاس هغه ديت وي. كوم چې د پوره نفس د ديت نيم دې. نو هم دا نصف ديت به په دوى دوارو واجب وي. او په دوى دوارو كي به هر يو باندې د نصف نيم نيم واجب وي. ځكه چې دوى يو لاس كټ كړې دې. نو ددې لاس ضمان به دوى دوارو باندې نصف واجب وي. ګويا چې هر يو باندې د نفس د ديت ١١۴ واجب وي.

## يو سړى د دوو سړو ښي لاس كټ كړواو دواړه حاضر شو نو څه حكم دې ؟

(وَاِنْ قَطَعَ وَاحِدٌ يَمِيْنَيْ رَجُلَيْنِ) او كه يو سړې د دوو سړو راسته لاس كټ كړو (فَحَضَرَا) نو دوى دواړه حاضر شو (فَلَهُمَا) نو ددوى دوارو حق دې (اَنْ يَقْطَعَا يَدَهٗ) چه دده لاس كټ كړي (وَيَاْخُذَا مِنْهُ نِصْفَ الدِّيَةِ) او دده نه نصف ديت واخلي (يَقْتَسِمَانِهٖ نِصْفَيْنِ) چې دا دوى دواړه نيم په نيمه ويش كړي. (سَوَاءٌ قَطَعَهُمَا مَعًا) كه ده ددوى دواړو لاسونه په يو ځل كټ كړې وي (اَوْعَلَى التَّعَاقُبِ) و كه يو بل پسې ئې كټ كړي وي.

**تشريح:-** ارشد د حارث اوعثمان دواړو لاسونه كټ كړي دي. نو اوس څه حكم دې؟ نو په دې كي د احنافو مذهب دا دې. چه د ارشد لاس د دوى دواړو د لاسونو بدل خو نشي جوړيدې. نو دا صورت به اختيارولي شي. چې دوى دواړه د هغه لاس كټ كړي. او دا به د تعين نه بغير د يو لاس بدل وي. او د دوهم لاس دې دده نه ديت وصول كړي. او دا دې دواړه نيم په نيمه ويش كړي. كه دواړه لاسونه ئې په يوځل كټ كړي وي. بيا هم دا حكم دې. او كه وړاندې روستو ئې كټ كړې وي. بيا هم دا حكم دې. په دې كي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې. ددوى مذهب دا دې.

(وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله) او امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دي. (فِي التَّعَاقُبِ يُقْطَعُ بِالْاَوَّلِ)، چې د تعاقب (روستو والي) په صورت كي به د ړومبي لاس په بدله كي دده لاس كټ كولاى شي (وَفِي الْقِرَانِ يُقْرَعُ). او د قران (يو ځائې والى) په صورت كي به قرعه اندازى كولاى شي (لِاَنَّ الْيَدَ اسْتَحَقَّهَا الْاَوَّلُ) ځكه چې د پريكونكى د لاس مستحق ړومبي مقطوع (لاس پريكړې شوې) جوړ شوې دې (فَلَا يَثْبُتُ الْاِسْتِحْقَاقُ فِيْهَا لِلثَّانِيْ) نو په دې لاس كي به د دوهم لپاره استحقاق نه ثابتيږي.

**تشريح:-** دا د امام شافعي رحمه الله مسلك او دليل دې. دوې فرمائي. كه لاسونه ئې وړاندې روستو كټ كړي وي. نو د قاطع (پريكونكى) لاس به د ړومبي بدل وي. او دوهم ته به د هغه د لاس ديت وركولې شي. اوكه د دواړو لاسونه په يو ځل كټ كړې شوي وي. نو په دې صورت كي به قرعه (خسنړې) اچولې شي. چه د چا نوم راوخي. د هغه په بدله كي به د قاطع لاس كټ كولې شي. او دوهم كس ته به دده د لاس ديت وركولې شي. ځكه چې د روستو والى په صورت كي د قاطع د لاس مستحق ړومبنې جوړ شوې دې. نو اوس په دې كي د دوهم حق نشي ثابتيدې.

(كَالرَّهْنِ بَعْدَ الرَّهْنِ)، لكه د يو رهن نه روسته بل رهن كي (نشي ايخودلې كيدې). (وَفِي الْقِرَانِ الْيَدُ الْوَاحِدَةُ لَا تَفِيْ بِالْحَقَّيْنِ) او ديوځائې والى په صورت كي به يو لاس د دواړو حقوق نشي پوره كولې (فَتُرَجَّحُ بِالْقُرْعَةِ). نو د قرعې (خسنړې) په ذريعه به ترجيح وركولې شي.

**تشريح:-** دلته امام شافعي رحمه الله مقيس عليه ذكر كوي او فرمائي چې لكه څنګه چې د اصولو په بنا (بنياد) باندې د يو مرهون د رهن ايخودو نه روسته هم دا د بل سره رهن نشي ايخودې. اوكه د قران (يوځائې والى) صورت دې. نو چونكه د قاطع يو لاس د دواړو د لاسونو بدل نشي كيدې. چه دده لاس د كوم كس د لاس په بدله كي كټ كړې شي؟ نو په دې كي به قرعه اچولې شي. بيا چې دچا نوم راوخي. د هغه په بدله كي به دده لاس كټ كولې شي. او دوهم ته به ديت ملاويږي. دا د امام شافعي رحمه الله دليل دې.

(وَلَنَا) او زموږ دليل دا دې (اَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِيْ سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ) چې دوى دواړه د استحقاق په سبب كي برابر دي (فَيَسْتَوِيَانِ فِيْ حُكْمِهٖ) نو دوى دواړه به د سبب په حكم كي برابر وي (كَالْغَرِيْمَيْنِ فِي التَّرِكَةِ) لكه دوې (دوه) قرضخواهان په تركه كي (برابر وي).



**تشريح:-** دا زموږ دليل دې. ددې حاصل دا دې. چه چونكه د زيد او بكر دواړو لاسونه كټ كړې شوي دي. نو قصاص هم دواړو ته ملاويدل پكار دي. ځكه چې هركله په سبب كي دواړه برابر دي. نو په حكم كي به هم برابر وي. او ددې هم هغه طريقه ده. كومه چې موږ بيان كړې ده. ددې مثال بعينه داسې دې. چه د زيد په ذمه د بكر پنځوس روپۍ پور دي. او د خالد څلويښت دي. او د ساجد هم څلويښت دي. او دا واړه پور په مختلفو زمانو كي ده اخستې دي. اوس زيد وفات كيږي. او مال پريږدي. نو په دې تركه كي د ټولو (قرضخواهانو) حق برابر دې. دا به نشي كتلې. چه د كوم كس نه پور مخكي اخستې شوې دې. هغه ته به د مخكي اخستلو حق حاصل وي. دغه ډول به دلته كي هم دا نشي كتلې. بلكه صرف په سبب كي د مساوات په وجه به په حكم كي مساوات ثابتيږي.

(وَالْقِصَاصُ مِلْكُ الْفِعْلِ) او قصاص د يو فعل داسې ملكيت دې (يَثْبُتُ مَعَ الْمُنَافِيْ) چې دا منافعو سره ثابتيږي (فَلَا يَظْهَرُ اِلَّا فِيْ حَقِّ الْاِسْتِيْفَاءِ) نو دا ملكيت به صرف د استيفاء په حق كي ښكاره كيږي.

**تشريح:-** په دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله د امام شافعي رحمه الله د قياس نه ځواب كوى او فرمايي چه دا مسئله د رهن په مسئلې باندې قياس كول، قياس مع الفارق دى. اوګورئ، په قصاص كي ولى د قصاص د قاتل مالك كيږي نه. بلكه ولي ته صرف دومره حق ملاويږي. چه هغه قصاص وصول كړي. اګرچه هغه د قاتل مالك كيداې نشي. ځكه چې قاتل آزاد دې. او كوم مرهون چې رهن ايخودې شوې دې. هغه مملوك دې. او په مملوك كي د مرتهن حق د مرهون ذات سره متعلق كيږي. اګرچه دا د ماليت په اعتبار سره كيږي. خو بهرحال دده د حق تعلق محل سره دې. ځكه چې مرتهن به خاص د محل نه خپل حق وصولوى. نو دلته د منافعو نه هم دا مراد دې چه قاتل د آزاد كيدو په وجه مملوك نشي كيدې. نو ددې تقاضه دا وه. چه دده د حر كيدو په وجه ولي ته حق د قصاص هم ملاو نشي. خو موږ د منافي باوجود حق د قصاص وركړو. خو د قصاص حقيقت صرف د يو فعل مالك جوړول دى. د محل او ذات ملكيت به په دې كي نه ثابتيږي. نو دا فعل د ملك به صرف دومره پورې كار كوى. چه ولي د قصاص خپل حق وصولولې شي.

(اَمَّا الْمَحَلُّ فَخُلُوٌّ عَنْهُ) هرچه محل دې نو دا د ملك نه خالي دي (فَلَا يَمْنَعُ ثُبُوْتَ الثَّانِيْ) نو دا به د ثابت شوى ملك ثبوت نه منع كوى (بِخِلَافِ الرَّهْنِ) په خلاف د رهن، (لِاَنَّ الْحَقَّ ثَابِتٌ فِي الْمَحَلِّ) ځكه چې حق د استيفاء په محل كي ثابت ده

**تشريح:-** پاتې شو د قاتل ذات او محل د قصاص، نو په دې كي ولي د قصاص ته هيڅ ملكيت نشته. هركله چې دا اصول په ذهن كي كيناستل. نو دوهم اصول (قاعدې) باندې پوهه شئ، چه كوم ځائې كي د يوكس حق په محل كي ثابت نه وى. صرف د فعل ملك سره دده تعلق وى. نو هلته به دفعل د ملك اجتماع كيږي. او كوم ځائې چې د حق تعلق محل سره وى. هلته د يو حق د ثبوت نه روسته دوهم حق نشي ثابتيدې. نو د رهن تعلق چونكه محل سره دې. په دې وجه اوس دا مرهون د بل سره رهن نشي ايخودې. او د قصاص تعلق د فعل ملك سره دې. چه په دې كي د ملكيت د حق ثبوت د بل د حق ثابتيدو نه نشي منع كولې. لنډيز د كلام دا چې د امام شافعي په ذكر شوې مسئله كي قصاص د رهن په مسئلې باندې قياس مع الفارق دې.

## په يو مثال سره د احنافو رحمهم الله د مسلك تائيد

(فَصَارَ) او دا داسې شوه (كَمَا اِذَا قَطَعَ الْعَبْدُ يَمِيْنَيْهِمَا) لكه چې غلام د دوى دواړو ښي لاسونه كټ كړي وي (عَلَى التَّعَاقُبِ) يو بل پسې (فَتُسْتَحَقُّ رَقَبَتُهٗ لَهُمَا) نو ددوى دواړو لپاره به دده د سټ استحقاق وي.

**تشريح:-** په دې مثال سره مرغيناني رحمه الله د حنفيانو د مسلك تائيد كوي. فرمائي. كه يو غلام د زيد او بكر لاسونه د تير شوى (صورت) پشان كټ كړې وي. نو دلته به هم د دواړو استحقاق د غلام په سټ كي ثابت وي. يعنى دا غلام به دوى دواړو ته وركولې شي. نو ددې نه معلومه شوه. چه دلته د يو د حق ثبوت د دوهم د حق د ثبوت نه مانع نه دې. دغه ډول به ړومبۍ مسئله كي هم وي.

## يو سړى د دوو سړو لاس كټ كړواو يو حاضر شو. نو څه حكم دې ؟

وَإِنْ حَضَرَ وَاحِدٌ مِنْهُمَا او که په دوی دواړو کې یو حاضر شو فَقَطَعَ يَدَهُ نو ده دهغه لاس کټ کړو فَلِلْآخَرِ عَلَيْهِ نِصْفُ الدِّيَةِ نو د دوهم لپاره په ده باندې نیم دیت دی لِأَنَّ لِلْحَاضِرِ أَنْ يَسْتَوْفِيَ ځکه چې حاضر شوی لپاره د خپل حق وصولولو حق دی لِثُبُوتِ حَقِّهِ دده دحق ثابتیدو په وجه، وَتَرَدُّدِ حَقِّ الْغَائِبِ او د غائب په حق کې د تردد په وجه، وَإِذَا اسْتَوْفَى او هر کله چې حاضر خپل حق وصول کړو لَمْ يَبْقَ مَحِلُّ الْإِسْتِيفَاءِ نو محل د استیفاء پاته پاتې نشو فَيَتَعَيَّنُ حَقُّ الْآخَرِ فِي الدِّيَةِ نو د دوهم حق په دیت کې متعین شو لِأَنَّهُ أَوْفَى بِهِ حَقًّا مُسْتَحَقًّا ځکه چې جنایت کونکی دده په ذریعه خپل خان باندې یو واجبی حق ادا کړې دی.

**تشریح:-** وړاندې چې کومه مسئله بیان کړې شوې ده.دا حکم هغه وخت دې.چه د کومو دواړو لاسونه کټ کړې شوی دی.دوی دواړه حاضر شی.اوکه صرف یو حاضر شو.او دوهم غائب وی.نو ددې حکم دا دې.کوم چې دلته کې ذکر دې.یعنی حاضر خپل قصاص وصول کړی.او کوم چې غائب دې.هغه لپاره به نصف دیت واجب وی.ځکه چې دوی دواړو کې د هر یو لاس کټ شوې دې.نو د وصولولو حق هر یو ته حاصل دې.نو کوم چې حاضر دې.هغه ته به حق وی.چه هغه خپل حق وصول کړی.او پاتې شو غائب، نو دده په وجه به د حاضر حق موخر کول ضروری نه وی.ځکه چې د غائب په حق کې خو اوس هم تردد (او شك) دې. ځکه کیدای شی.چه هغه خپل حق معاف کړی.او کیدای شی.چه هغه د سره حاضر هم نشی.نو حاضر ته حق شته.چه خپل حق وصول کړی.نو کله چې ده وصول کړو.نو چونکه محل د استیفاء (او وصولولو) ،،یعنی راسته لاس،، ختم شو.نو اوس د دوهم حق په دیت کې متعین شو.ولې؟ ځکه چې لاس پرکونکی پخپل لاس سره هغه حق ادا کړې دې.کوم چې په ده واجب وو.او په داسې صورت کې د حقدار حق نه ختمیږی.چه ددې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.

**د غلام د قتل عمد اقرار معتبر دي اوکه نه؟**

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا أَقَرَّ الْعَبْدُ بِقَتْلِ الْعَمْدِ او کله چې غلام د قتل عمد اقرار اوکړو لَزِمَهُ الْقَوَدُ[1] نو په ده به قصاص لازم وی.

**تشریح:-** غلام د قتل عمد اقرار کوی. زموږ مذهب دا دې چه اقرار صحیح دې.او د غلام څخه به قصاص اخستلې شی.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمائی. لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ چې دده اقرار به صحیح نه وی لِأَنَّهُ يُلَاقِي ځکه چې دده اقرار متعلق شوې دې حَقَّ الْمَوْلَى بِالْإِبْطَالِ د مولا د حق باطولو سره فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْمَالِ. کله چې غلام د مال اقرار کړې وی.

**تشریح:-** اود امام زفر رحمه الله قول دا دې.که دده اقرار معتبر اومنلې شی.نو غلام به په قصاص کې قتل کولې شی.او د مولا حق به باطلیږی.حالانکه کله چې غلام داسې اقرار اوکړی.چه هغې کې د آقا حق باطلیږی.نو هلته دده اقرار معتبر نه وی.مثلاً غلام اقرار اوکړو.چه د فلانی زما په ذمه دومره روپۍ دی.نو دا اقرار به معتبر نه وی.دغه رول به د قتل عمد اقرار هم صحیح نه وی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّهُ غَيْرُ مُتَّهَمٍ فِيهِ* چه غلام په دې کې متهم نه دې. لِأَنَّهُ مُضِرٌّ بِهِ فَيُقْبَلُ ځکه چې اقرار د غلام لپاره مضر دې.نو دده اقرار به قبولولې شی.

**تشریح:-** داحنافو دلیل دادې چې دې اقرار کې غلام باندې هیڅ تهمت نشته.او د مال په اقرار کې تهمت دې.ځکه چې د آقا نه زیات نقصان خو پخپله دغلام دی.چه دده نفس به قتلیږی.نو دده اقرار به قبول وی.

وَلِأَنَّ الْعَبْدَ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي حَقِّ الدَّمِ او ځکه چې غلام د وینې په حق اصل حریت باندې پاته دې عَمَلًا بِالْآدَمِيَّةِ

[1] القول الراجح هو هذاقول الجمهور رحمهم الله كذا فى ردالمحتار (۳۹۶/۵) والفقه الإسلامی (۳۲۳/۳) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۲/۲)-



په سرې توب باندې عمل کاوه سره، حَتَّى لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَوْلَى عَلَيْهِ بِالْحَدِّ وَالْقِصَاصِ تردې چې غلام باندې به د آقا د حدود او قصاص اقرار صحیح نه وی.

**تشریح:-** بله وجه دا ده که موږ دغلام دآدمیت اوانسانیت خیال ساتونوددې نه دا قاعده مقرر کیږی چې غلام پخپله وینه کې د آزادئ صفت لری.او د قصاص اصلی مقصد وینه بهیول دی.مال نه دې.بلکه د مال معدوم کیدل ضمنی شئ دې.نو دلته د غلام اقرار د هغه شئ په اړه کې معتبر منلې شوې دې.کوم شئ چې د حریت صفت باندې قائم (او پاته پاتې) دې.اود دې دلیل دا دې چې غلام د انسانیت او آدمیت دحق مستحق دې که آقا پخپل غلام باندې د حدود یا قصاص اقرار اوکړی.نو دده اقرار به صحیح نه وی.او د مولا د اقرار په وجه به غلام باندې حد یا قصاص نه جاری کیږی.نو ددې مسئلې دا خبره معلومه شوه.چه غلام اګرچه غلام او مملوك دې.خودده اقرار به قبلولې شی.

وَبُطْلَانُ حَقِّ الْمَوْلَى بِطَرِيقِ الضِّمْنِ او د آقا د حق باطلیدل ضمناً دی فَلَا يُبَالَى بِهِ نو ددې پرواه به نشی کولې.

**تشریح:-** اوپاته پاتې شوه د غلام په قصاص سره د مولی حق باطلیدل نودا ضمنی شئ دې مقصود اصلی نه دې.

**یو سړی ئې په قصد سره په غشی اوویشتلو.او دوهم هم اولګیدو. نو څه حکم دې؟**

وَمَنْ رَمَى رَجُلًا عَمْدًا او چا چې یو سړی په غشی عمداً اوویشتلو فَنَفَذَ السَّهْمُ مِنْهُ إِلَى آخَرَ نو دا غشی دده نه (علاوه) بل کس ته اولګیدو فَمَاتَا نو دوی دواړه مړه شو. فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ لِلْأَوَّلِ نو په ده باندې رومبی لپاره قصاص وَالدِّيَةُ لِلثَّانِي عَلَى عَاقِلَتِهِ او دوهم لپاره به دده په عاقله (خاندان) باندې دیت واجب وی لِأَنَّ الْأَوَّلَ عَمْدٌ ځکه چې رومبې (قتل) عمد دې وَالثَّانِي أَحَدُ نَوْعَيِ الْخَطَإِ او دوهم د خطاء په دوې (دوه) قسمونو کې یو (قسم) دې كَأَنَّهُ رَمَى إِلَى صَيْدٍ ګویا چې ده ښکار اړخ ته غشې اوویشتلو فَأَصَابَ آدَمِيًّا نو دا یو سړی ته اولګیدو، وَالْفِعْلُ يَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِ الْأَثَرِ او فعل متعدد کیږی.د اثر په متعدد کیدو سره.

**حل اللغة:** ① سهم: غشی النفوذ: لګیدل،داخلیدل

**تشریح:-** زید یو سړې په ګولئ (یا په غشی) اوویشتلو.او هغه په دې ګولئ اولګیدو.او د هغه د بدن نه اووتلو.او دوهم کس هم اولګیدو.او هغه هم مړ شو.او رومبې هم مړ شو.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه رومبې قتل خو ښکاره ده.چه قتل عمد دې.او د قتل عمد سزا قصاص دې.او دوهم قتل خطاء دې.که دې ته خطاء فی القصد اوویلې شی.او که خطاء فی الفعل، بهرحال قتل خطاء دې.او په قتل خطاء کې دیت واجبیږی.نو د رومبی قتل په وجه به قصاص واجب وی.او د دوهم قتل په وجه به دده په خاندان باندې دیت واجب وی.اوپه دې باندې تعجب نه دې پکار چې فعل یودې او سزا متعدد ده ځکه چې کله اثر متعدد شی نو اثر به هم متعدد وی

**په خطاء سره د یو اندام کټ کولو نه روسته دده د قتلولو متعلق بعض صورتونه او د هغې حکم**

**فصل:** (دا فصل دې قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ خَطَأً او چا چې د یو کس لاس خطاء سره کټ کړو ثُمَّ قَتَلَهُ عَمْدًا بیا ئې هغه عمداً قتل کړو قَبْلَ أَنْ تَبْرَأَ يَدُهُ د هغه د لاس ښه کیدو نه وړاندې أَوْ قَطَعَ يَدَهُ عَمْدًا یا ئې د هغه لاس عمداً کټ کړو ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً بیا ئې هغه خطاء سره قتل کړو أَوْ قَطَعَ يَدَهُ خَطَأً یا ئې د هغه لاس خطاء سره کټ کړو فَبَرِئَتْ يَدُهُ نو د هغه لاس صحیح شو ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً بیا ئې هغه خطاء سره قتل کړو أَوْ قَطَعَ يَدَهُ عَمْدًا یا ئې دهغه لاس عمداً کټ کړو فَبَرَأَتْ نو هغه صحیح شو ثُمَّ قَتَلَهُ عَمْدًا بیا ئې هغه عمداً قتل کړو.

**تشریح:-** په رومبی فصل کې د فعل واحد ذکر وو.په دې فصل کې د دوو فعلونو ذکر دې.په ذکر شوی متن کې مرغینانی رحمه الله څلور صورتونه بیان کړی دی.چه په دې کې د فاعل فعل متعدد دې.او د دواړو فعلونو به جلا جلا ضمان اخستلې شی. ① لاس ئې په خطاء سره کټ کړو.بیا ئې عمداً قتل کړو.او په منځ کې لاس ټیك نشو. ② لاس ئې عمداً کټ کړو.او په منځ کې ټیك شوې وو.بیا ئې خطاء سره قتل کړې وی. ③ لاس ئې په خطاء سره کټ

کړو.په منځ کي تيك شوي وو.بيا ئې خطاء سره قتل کړي وی.(٤) لاس ئې عمداً کټ کړو.په منځ کي تيك شو بيا ئې عمداً قتل کړي وی.

فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِالْأَمْرَيْنِ جَمِيعًا نو دې به د دواړو څيزونو په اړه کي ګرفتارولې شي

تشريح:- په زيربحث څلورو واړو صورتونو کي به د لاس ضمان جلا او د قتل ضمان به جلا اخستلې شي.نو په رومبي صورت کي به نصف ديت او قصاص واجب وی.او په دوهم صورت کي به دلاس قصاص او پوره ديت واجب وی.په دريم صورت کي به پوره ديت د قتل، او نصف ديت د لاس واجب وی.په څلورم صورت کي به رومبې د لاس قصاص اخستلې شی.بيا به قصاص اخستلې شی.په كفايه کي ددې تفصيلي بحث ذكر دې.

**يوه قاعده كليه: كه متعدد فعل جمع كول ممكن وی.يا نه وی نو څه حكم دې ؟**

وَالْأَصْلُ فِيهِ او په دې کي قاعده كليه دا ده أَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْجِرَاحَاتِ وَاجِبٌ.چه په زخمونو کي جمع كول واجب دی مَا أَمْكَنَ تر كومه پورې چې ممكن وی تَتْمِيمًا د رومبی د پوره كاوه لپاره لِلْأَوَّلِ،لِأَنَّ الْقَتْلَ فِي الْأَعَمِّ يَقَعُ بِضَرَبَاتٍ مُتَعَاقِبَةٍ خكه چې په عامه توګه (عام طور) باندې قتل په بلا ناغه يو څو ګزارونو سره واقع كيږی.وَفِي اعْتِبَارِ كُلِّ ضَرْبَةٍ بِنَفْسِهَا بَعْضُ الْحَرَجِ او د هر ګزار پخپله اعتبار كاوه کي څه حرج دې إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ الْجَمْعُ خو دا چې جمع كول ممكن نه وی ،فَيُعْطَى كُلُّ وَاحِدٍ حُكْمَ نَفْسِهِ نو هر يو ته به ددې حكم وركولې شي.

حل اللغة: (١) متعاقبة: بلا ناغه (٢) السراية: دخپل ځائې نه تيريدل،تجاوز كول؛

تشريح:- ددې ځائې نه مرغيناني رحمه الله يوه قاعده كليه بيانوی.چه كله فعل متعدد وی.او ددې جمع كول ممكن وی.نو جمع كولې به شی.يعنی تداخل به كولې شی.او كه جمع كول ممكن نه وی.نو بيا به د هر فعل حكم جلا جلا ثابت وی.اوس پاتې شوه دا خبره چې په رومبی صورت کي جمع ولې واجب ده.نو مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل چه دا د رومبی تتمه جوړه شی.خكه چې دا خو په عامه توګه (عام طور) باندې كيږی.چه په قتلولو کي څو ګزارونه بلا ناغه وركړې كيږی.نو كه دهر وارسزا جلا مقرر كړې شی.نو حرج به لازميږی .په دې وجه جمع كول واجب دی.

وَقَدْ تَعَذَّرَ الْجَمْعُ فِي هَذِهِ الْفُصُولِ او په دې ټولو صورتونو کي جمع كول متعذر دی فِي الْأَوَّلَيْنِ لِاخْتِلَافِ حُكْمِ الْفِعْلَيْنِ په رومبو دوو صورتونو کي د دواړو فعلونو حكم د مختلف كيدو په وجه وَفِي الْآخَرَيْنِ لِتَخَلُّلِ الْبُرْءِ او په آخيرنو دوو کي ، د تيكوالی په منځ کي د راتلو په وجه وَهُوَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ،او تيك كيدل خوريدل ختموی حَتَّى لَوْ لَمْ يَتَخَلَّلْ تردې كه صحيح كيدل په منځ کي رانشی.وَقَدْ تَجَانَسَا او دواړه فعلونه مجانس ( د يوجنس) وی بِأَنْ كَانَا خَطَأَيْنِ.په دې طريقه چې دا دواړه خطاء وی يُجْمَعُ بِالْإِجْمَاعِ.نو بالاجماع به جمع كولای شی لِإِمْكَانِ الْجَمْعِ د جمع د ممكن كيدو په وجه وَاكْتُفِيَ بِدِيَةٍ وَاحِدَةٍ او په يو ديت به اكتفاء كولې شی

حل اللغة: (١) تخلل: خلل اچول،په مينځ کي راتګ (٢) البرء: روغيدل (٣) القطع: كټ كيدل؛

تشريح:- وړاندې چې كوم څلور صورتونه بيان شو نود هغې په اړه کي علامه مرغيناني رحمه الله فرمايي چې په دې کي جمع جائز نه ده، ولې؟ په رومبو دوو صورتونو کي خكه تداخل (او جمع كيدل) نشی كيدې.چه په دواړو فعلونو کي اختلاف دې.يو عمد دې.او دوهم خطاء دې.او په آخری دوو صورتونو کي چونكه په منځ کي صحيح كيدل راغلی دی.او صحيح كيدو د زخم خوريدل منع كړی دی.چه په دې سره دا دواړه مستقل ( جدا) فعل شمار شو.اوكه دواړه فعلونه خطاء وی.او په منځ کي صحيح شوې نه وی.نو بالاجماع تداخل ( او جمع كول) جائز دی.چونكه دلته جمع كول ممكن دی.او دلته کي يو ديت كافی دې.

**په قصد سره د لاس كټ كولو نه روسته ئې قصداً قتل كړونو څه حكم دې ؟**

وَإِنْ كَانَ قَطَعَ يَدَهُ عَمْدًا او كه د هغه لاس ئې عمداً كټ كړې وی ثُمَّ قَتَلَهُ عَمْدًا قَبْلَ أَنْ تَبْرَأَ يَدُهُ،بيا دهغه د لاس تيك كيدو نه مخكي ئې هغه عمداً قتل كړې وی فَإِنْ شَاءَ الْإِمَامُ نو كه امام اوغواړی قَالَ: اقْطَعُوهُ نو او دې وائی چه



دده لاس كټ كړئ ثُمَّ اقْتُلُوهُ،بيا دې قتل كړئ وَإِنْ شَاءَ قَالَ: اقْتُلُوهُ او كه اوغواړی.نو اودې وائی.چه دې قتل كړئ وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

تشريح:- دا صورت د ذكر شوو څلورو صورتونو نه علاوه دې.چه په دې کي د امام صاحب رح او صاحبينو رحمهما الله اختلاف دې.(٥ صورت) كه مخكي ئې عمداً لاس كټ كړې وی.او بيا ئې عمداً قتل كړې وی.او په منځ کي صحيح شوې نه وی.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز به تداخل (جمع) كولې شی.او صرف قتلولې به شی.او د لاس قصاص به نه اخستلې كيږی.د امام صاحب رحمه الله په نيز به مخكي د لاس قصاص اخستلې شی.او بيا به قصاص د نفس اخستلې شی.خو دا د ولی په اعتبار سره دی.كه ولی صرف په قصاص باندې اكتفاء اوكړی.نو جائز ده.اوكه دواړه جمع كړی.نو بيا هم جائز ده.

وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمايي يُقْتَلُ چې قتلولې به شی وَلَا تُقْطَعُ يَدُهُ او دده لاس به نشی كټ كولې لِأَنَّ الْجَمْعَ مُمْكِنٌ لِتَجَانُسِ الْفِعْلَيْنِ خكه چې د دواړو فعلونو د يو جنس كيدو په وجه جمع ممكن ده وَعَدَمِ تَخَلُّلِ الْبُرْءِ او د صحيح كيدو په منځ کي د نه راتلو په وجه فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نو دواړه به جمع كولې شی

تشريح:- د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د واړو فعلونو جلا جداكونكی دوې (دوه) شيان دی:(١) چې د دواړو فعلونو جنس يو نه وی.يعنی دواړه عمداً يا ( دواړه) خطاء نه وی.بلكه يو عمد او دوهم خطاء وی يا برعكس وی.(٢) په منځ کي صحيح شوې وی..... او دلته دواړه شيان مفقود دی.( موجود نه دی).خكه چې د دواړو فعلونو جنس هم متحد دې.او د دواړو په منځ کي براءت هم نشته.نو دواړه يو كول پكار دی.نو دلته به صرف قصاص واجب وی.او بس.

**د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله رومبې دليل**

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّ الْجَمْعَ مُتَعَذِّرٌ، چې جمع متعذر ده. إِمَّا لِلِاخْتِلَافِ بَيْنَ الْفِعْلَيْنِ هَذَيْنِ يا خو ددې دواړو فعلونو د مختلف كيدو په وجه( د موجب په لحاظ سره) لِأَنَّ الْمُوجِبَ الْقَوَدُ خكه چې د هر يو موجب قصاص دې.( په يو کي د لاس قصاص او په بل کي د نفس قصاص وَهُوَ يَعْتَمِدُ الْمُسَاوَاةَ فِي الْفِعْلِ او قصاص په فعل کي مساوات غواړی وَذَلِكَ بِأَنْ يَكُونَ الْقَتْلُ بِالْقَتْلِ او دا ( مساوات) په دې طريقه وی.چه قتل وی د قتل په بدله کي وَالْقَطْعُ بِالْقَطْعِ او د لاس پرې كول وی.د لاس كټ كاوه په بدله کي وَهُوَ مُتَعَذِّرٌ او دا ( مساوات په دې صورت کي كله چې صرف قصاص وی.او لاس پرې كول پريښودې شی) متعذر دی.

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.فرمائی.چه تداخل ( جمع كول) نشی كيدې.بلكه تداخل متعذر دې.خكه چې حقيقت کي دواړو فعلونو کي اختلاف دې.اګرچه په ښكاره متحد الجنس معلوميږی. خكه چې رومبی فعل کي د لاس قصاص واجبيږی.او په دوهم فعل کي قصاص د نفس واجبيږی.او د اندام درجه د مال درجه ده.په خلاف د نفس د درجې،نو دې دواړو ته يوځنګه ونيلې كيدای شی.

أَوْ لِأَنَّ الْحَزَّ يَقْطَعُ إِضَافَةَ السِّرَايَةِ إِلَى الْقَطْعِ،يا په دې وجه چې سټ پرې كول د لاس كټ كاوه اړخ ته د خوريدو نسبت منع كوی حَتَّى لَوْ صَدَرَا مِنْ شَخْصَيْنِ تردې كه دا دواړه ( عمداً لاس كټ كول، او قتل) د دوې (دوه) سړو نه صادر شوی وی يَجِبُ الْقَوَدُ عَلَى الْحَازِّ نو په سټ كټ كونكی باندې به قصاص واجب وی فَصَارَ نو دا داسې شوه كَتَخَلُّلِ الْبُرْءِ لكه په منځ کي صحيح كيدل راتګ ،

تشريح:- دا عبارت د امام ابوحنيفه رحمه الله بل دليل دې.فرمائی.كه په منځ کي زخم صحيح شوې وی.نو په اتفاق د فريقينو به تداخل نه كيږی.بلكه د دواړو فعلونو سزا به جلا جلا وركولې شی.اوس به په دې غور كولې شی.چه د

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٣٩٨/٥) وملتقى الأبحر (٣٢٩/٤، ٣٣٠) والكنز(٣٩٤)-

زخم صحیح کیدو حاصل څه دي؟ نو کله چې موږ غور اوکړو.نو معلومه شوه.چه د صحیح کیدو حاصل دا دي.چه د صحیح کیدو په وجه به زخم نور نه خوریږي.بلکه د زخم خوریدل به بند شي. نو کله چې موږ په ذکر شوي صورت باندې غور اوکړو.نو د ټیك والي د نه کیدو باوجود د د ټیك والي حقیقت دلته موجود ملاو شو.نو هم هغه حکم ورکړې شو.کوم چې د صحیح کیدو دي.یعنی عدم تداخل ( او نه جمع کول) دا ولې؟ دا ځکه چې کله ده عمداً لاس کټ کړو.نو احتمال وو.چه زخم به خور شي.اوکه خور به نشي؟ خو کله چې ده قتل کړو.نو د خوریدو محل د سره ختم شو.نو د زخم متعدی کیدو او د خوریدو سوال هم ختم شو.او هم دا نه خوریدل د ټیك کیدو نتیجه ده.په دې وجه موږ د ټیك کیدو حکم دلته کې جاري کړو.او موږ اووئیل.چه تداخل به نه کیږي.

ددې دلیل څه دي؟ زید د خالد لاس کټ کړو.او بکر بیا دده سټ پریکړو.نو قصاص به په بکر واجب وي.په زید به نه وي.اوکه بکر نه وو قتل کړې.او ددې زخم په وجه دې مړ شوې وې.نو قصاص به په زید راتلو.نو په زید قصاص نه راتلل او صرف په بکر باندې راتګ ددې خبرې دلیل دې.چه د بکر د قتلولو په وجه د زخم خوریدو دروازه بنده شوه.او اوس نه خوریدو ته د ټیك کیدو مرتبه ورکړې شوې ده.دغه ډول به په ذکر شوی صورت کې هم وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَطَعَ په خلاف ددې صورت کله چې ده لاس کټ کړو وَسَرَى او دا خور شو.( نو صرف قتل به وي). لِأَنَّ الْفِعْلَ وَاحِدٌ ځکه چې فعل واحد دي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا خَطَأَيْنِ او په خلاف ددې کله چې دا دواړه ( لاس پریکول او قتل) خطا.. وي لِأَنَّ الْمُوجِبَ الدِّيَةُ ځکه چې د خطاء موجب دیت دي وَهِيَ بَدَلُ النَّفْسِ او دیت د نفس بدل دي مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ الْمُسَاوَاةِ.د مساوات اعتبار کاوه نه بغیر.

تشریح:- «بخلاف ما إذا قطع.....» که زید عمداً لاس کټ کړو.او زخم خور شو.تردې چې خالد مړ شو.نو صرف قصاص به واجب وي.ځکه چې دلته کې فعل واحد دي.

«و بخلاف ما إذا كانا.....» اوکه زید مخکې خطاءً د خالد لاس کټ کړو.او بیا د صحیح کیدو نه مخکې خطاءً قتل کړو.نو په دې صورت کې به بالاجماع تداخل وي.او هغه د دیت وجوب دې. ځکه چې دا قتل خطاء دي.او په قتل خطاء کې دیت واجبیږي.او دیت د نفس یعنی د محل بدل وي.چه په دې کې د مساوات لحاظ نه ساتلې کیږي.بلکه مساوات قصاص کې واجبیږي.په دې وجه به د تداخل په صورت کې قصاص نه وي.او د دیت په صورت کې به وي.

او راز په دې کې دا دې.چه د قصاص په صورت کې د فعل جزاء واجبیږي.او ددیت په صورت کې د محل جزاء، او محل چونکه یو دې.په دې وجه به دیت کې تعدد نه کیږي.او کله چې فعل متعدد وي.نو جزاء به هم متعدد وي.اګرچه محل یو وي.نو که لسو سړو په یو ځاې یو سړې خطاءً قتل کړو.نو دیت به واجب وي.ځکه چې دا قتل خطاء دې.او چونکه دا د محل جزاء ده.په دې وجه به په دې لسو واړو کسانو باندې صرف یو دیت واجب وي.اوکه لسو سړو په یوځاې عمداً قتل ا وکړو.نو په ټولو به قصاص راځي.ځکه چې دا د فعل جزاء ده.او په فعل کې تعدد دې.

## دوهم دلیل

وَلِأَنَّ أَرْشَ الْيَدِ إِنَّمَا يَجِبُ عِنْدَ اسْتِحْكَامِ أَثَرِ الْفِعْلِ او ځکه چې د لاس جرمانه د فعل د اثر د استحکام په وخت کیږي وَذَلِكَ بِالْحَزِّ او استحکام ددې سټ کټ کاوه په وجه اوشو الْقَاطِعِ لِلسِّرَايَةِ کوم چې خوریدل ختمونکې دي فَيَجْتَمِعُ ضَمَانُ الْكُلِّ وَضَمَانُ الْجُزْءِ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ نو د کل ( ټول) ضمان اود جزء ضمان یو حالت کې جمع کیږي وَلَا يَجْتَمِعَانِ حالانکه دا دواړه نه جمع کیږي أَمَّا الْقَطْعُ وَالْقَتْلُ بهرحال لاس پرې کول او قتل.، قِصَاصًا يَجْتَمِعَانِ د قصاص په طور دا دواړه جمع کیږي.

تشریح:- که لاس پرې کول او قتلول دواړه خطاء وي.نو صرف په دیت باندې اکتفاء ولې کولې شي.دا ددې دوهم



دلیل دي.فرمائي.که د لاس کټ کاوه په وجه زخم خور شي.او مرګه پورې او نه رسیږي.نو د لاس کټ کاوه سزا د لاس دیت دې.یعنی پنځه زره درهم، چې دا د پوره نفس د دیت نصف دې.او که خور شي. او مرګه پورې اورسیږي.نو بیا پوره دیت واجبیږي.بهرحال د لاس ارش ( دیت) به هغه وخت واجب وي.کله چې د فعل اثر مستحکم شي.یعنی صرف د لاس کټ کاوه پورې قائم پاتې شي.او نور خور نشي.او دلته په ذکر شوی صورت کې به د استحکام علم د سټ کټ کاوه نه روسته کیږي.ځکه چې اوس زخم د خوریدو محل نه دې پاتې شوې.نو اوس به تاسو د لاس دیت واجبوئ.نو مطلب دا شو.چه د سټ کټ کاوه په وجه تاسو د لاس دیت واجب کړو.او هم ددې سټ پرې کاوه په وجه تاسو پوره دیت واجب کړو.او په پوره دیت کې د لاس دیت هم موجود دي.ځکه چې کل جزء ته ګډ وي.لکه څنګه چې لس یو ته هم ګډ دې.نو لنډیز دا شوه.چه تاسو د لاس دیت دوې (دوه) ځله حاصل کړو.مخکې انفراداً ( جدا)، او بیا پوره دیت سره یوځاې، هم دا مرغینانی رحمه الله په ضمان کل او ضمان جزء سره تعبیر کړې دې.

حالانکه دا جائز نه ده.چه د یو اندام دیت ډبل ډبل وصول کړې شي.نو موږ مجبوراً اووئیل. چې دلته به صرف یو دیت واجب وي.او تداخل به کیږي.په دې وجه د خطاء په صورت کې موږ مجبوراً د تداخل قائل شو.او د عمداً په صورت کې د تداخل قائل نه یو.

خوکه څوك اعتراض اوکړي چې هم دا اشکال د عمد په صورت کې هم واقع کیږي.ځکه چې اول په قصاص کې لاس کټ کړې شوې دې.او بیا قتل کړې دې.نو چونکه کل جزء ته ګډ دې.نو ګویا د لاس قصاص ډبل وصول کړې دې.نو مذکوره اعتراض دلته کې هم دې؟ «ه خې خې ابازو ته راځې» خو موږ ورته وئیلی شو چې د عمد په سزا کې تغلیظ او سختوالې دې.په دې وجه دلته کې ډبل وصولی جائز ده.ځکه چې د قصاص بنا (بنیاد) مساوات باندې دې.او د مساوات تقاضه هم دا ده.چه اول لاس کټ کړې شي.بیا قتل کړې شي.هم دا مرغینانی رحمه الله پخپلو الفاظو کې داسې اوفرمائیل. «أما القطع و القتل قصاصاً يجتمعان فافهم وتدبر و تشكر فإنه من مزالة الاقدام».

## په سل کوړې وهلو کښې آخری لسو سره مړ کیدو کښې د دیت حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ او چا چې یو سړې سل کوړې اووهلو فَبَرَأَ مِنْ تِسْعِينَ نو دې په نوی ( لس کم سلو) سره صحیح شو وَمَاتَ مِنْ عَشَرَةٍ او د آخر لسو نه مړ شو فَفِيهِ دِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو په دې کې یو دیت دي لِأَنَّهُ لَمَّا بَرَأَ مِنْهَا ځکه چې هرکله لس کم سلو سره ټیك شو لَا تَبْقَى مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ الْأَرْشِ.نو دا نوی د ارش ( دیت) په حق کې معتبر پاته پاتې نشوې آن وَإِنْ بَقِيَتْ مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ التَّعْزِيرِ اګرچه د تعزیر ( او زورنې) په حق کې معتبر پاته دی فَبَقِيَ الِاعْتِبَارُ لِلْعَشَرَةِ سنو صرف د لسو اعتبار پاته پاتې شو وَكَذَلِكَ كُلُّ جِرَاحَةٍ انْدَمَلَتْ او دغه ډول هر زخم دې.چه هغه ډك ( جوړ) شوې وی وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ او د هغې هیڅ اثر پاته پاتې شوې نه وی عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله په اصل باندې،

تشریح:- زید خالد ظلماً په ناحقه سل کوړې اووهلو.په دې کې مثلاً نوی نې په اوګو ( شا) باندې اووهلو. او لس نې په سر باندې اووهلو.د مخکنو نوی کوړو وهلو په وجه مړ نشو.بلکه دې ټیك شو.او د آخری لسو په وجه مړ شو.نو صرف آخری لس کوړې د کومو نه چې مړ شوې دې.هم ددې ضمان یعنی دیت به واجب وي.او د مخکنو نوی کوړو به هیڅ ضمان واجب نه وي.ځکه چې هرکله ددې نوی کوړو هیڅ اثر پاته پاتې نشو.نو ددې ضمان به هم واجب نه وي.بلکه صرف د آخری لسو اعتبار به کولې شي.او دیت به واجب وي.خو د مخکنو نوی کوړو اثر د تعزیر په حق کې پاته دې.یعنی قاضی به دده تعزیر کوی.چه بیا لپاره داسې حرکت اونکړي.دغه ډول هر هغه زخم چې د هغې سوړه ډکه شوې وي.او ددې هیڅ اثر پاته نه وی پاتې شوې.د امام ابوحنیفه رحمه الله د اصل مطابق ددې هم دا حکم دې.چه اوس به ددې هیڅ ضمان واجب نه وي.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي مِثْلِهِ او ددې په مثل کې د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی حُكُومَةُ عَدْلٍ چې حکومت عدل دې

زخم صحيح كيدو حاصل څه دي؟ نو كله چې موږ غور اوكړو. نو معلومه شوه. چه د صحيح كيدو حاصل دا دي. چه د صحيح كيدو په وجه به زخم نور نه خوريږي. بلكه د زخم خوريدل به بند شي. نو كله چې موږ په ذكر شوي صورت باندې غور اوكړو. نو د تيك والي د نه كيدو باوجود د د تيك والي حقيقت دلته موجود ملاؤ شو. نو هم هغه حكم وركړې شو. كوم چې د صحيح كيدو دې. يعني عدم تداخل ( او نه جمع كول) دا ولې؟ دا ځكه چې كله ده عمداً لاس كټ كړو. نو احتمال وو. چه زخم به خور شي. اوكه خور به نشي؟ خو كله چې ده قتل كړو. نو د خوريدو محل د سره ختم شو. نو د زخم متعدي كيدو او د خوريدو سوال هم ختم شو. او هم دا نه خوريدل د تيك كيدو نتيجه ده. په دې وجه موږ د تيك كيدو حكم دلته كې جاري كړو. او موږ اوونيل. چه تداخل به نه كيږي.

؟ ددې دليل څه دې؟ زيد د خالد لاس كټ كړو. او بكر بيا دده سټ پريكړو. نو قصاص به په بكر واجب وي. په زيد به نه وي. اوكه بكر نه وو قتل كړې. او ددې زخم په وجه دې مړ شوې وې. نو قصاص به په زيد راتلو. نو په زيد قصاص نه راتل او صرف په بكر باندې راتګ ددې خبرې دليل دې. چه د بكر د قتلولو په وجه د زخم خوريدو دروازه بنده شوه. او اوس نه خوريدو ته د تيك كيدو مرتبه وركړې شوې ده. دغه ډول به په ذكر شوي صورت كې هم وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَطَعَ په خلاف ددې صورت كله چې ده لاس كټ كړو وَسَرَى او دا خور شو. ( نو صرف قتل به وي. الْفِعْلَ وَاحِدٌ ځكه چې فعل واحد دې وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا خَطَأَيْنِ او په خلاف ددې كله چې دا دواړه ( لاس پريكول او قتل) خطا... دی لِأَنَّ الْمُوجِبَ الدِّيَةُ ځكه چې د خطاء موجب ديت دې وَهِيَ بَدَلُ النَّفْسِ او ديت د نفس بدل دې مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ الْمُسَاوَاةِ. د مساوات اعتبار كاوه نه بغير.

تشريح:- ﴿بخلاف ما إذا قطع....﴾ كه زيد عمداً لاس كټ كړو. او زخم خور شو. تردې چې خالد مړ شو. نو صرف قصاص به واجب وي. ځكه چې دلته كې فعل واحد دې.

؟ ﴿و بخلاف ما إذا كانا....﴾ اوكه زيد مخكې خطاءً د خالد لاس كټ كړو. او بيا د صحيح كيدو نه مخكې خطاءً دې قتل كړو. نو په دې صورت كې به بالاجماع تداخل وي. او هغه د ديت وجوب دې. ځكه چې دا قتل خطاء دې. او په قتل خطاء كې ديت واجبيږي. او ديت د نفس يعني د محل بدل وي. چه په دې كې د مساوات لحاظ نه ساتلې كيږي. بلكه مساوات قصاص كې واجبيږي. په دې وجه به د تداخل په صورت كې قصاص نه وي. او د ديت په صورت كې به وي.

؟ او راز په دې كې دا دې. چه د قصاص په صورت كې د فعل جزاء واجبيږي. او دديت په صورت كې د محل جزاء. او محل چونكه يو دې. په دې وجه به ديت كې تعدد نه كيږي. او كله چې فعل متعدد وي. نو جزاء به هم متعدد وي. اګرچه محل يو وي. نو كه لسو سړو په يو ځاني يو سړې خطاءً قتل كړو. نو ديت به واجب وي. ځكه چې دا قتل خطاء دې. او چونكه دا د محل جزاء ده. په دې وجه به په دې لسو واړو كسانو باندې صرف يو ديت واجب وي. اوكه لسو سړو په يوځاني عمداً قتل ا وكړو. نو په ټولو به قصاص راځي. ځكه چې دا د فعل جزاء ده. او په فعل كې تعدد دې.

**دوهم دليل**

وَلِأَنَّ أَرْشَ الْيَدِ إِنَّمَا يَجِبُ عِنْدَ اسْتِحْكَامِ أَثَرِ الْفِعْلِ او ځكه چې د لاس جرمانه د فعل د اثر د استحكام په وخت كيږي وَذٰلِكَ بِالْحَزِّ او استحكام ددې سټ كټ كاوه په وجه اوشو الْقَاطِعِ لِلسِّرَايَةِ كوم چې خوريدل ختمونكې دې فَيَجْتَمِعُ ضَمَانُ الْكُلِّ وَضَمَانُ الْجُزْءِ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ نو د كل ( ټول) ضمان اود جزء ضمان يو حالت كې جمع كيږي وَلَا يَجْتَمِعَانِ حالانكه دا دواړه نه جمع كيږي أَمَّا الْقَطْعُ وَالْقَتْلُ بهرحال لاس پرې كول او قتل، قِصَاصًا يَجْتَمِعَانِ د قصاص په طور دا دواړه جمع كيږي.

تشريح:- كه لاس پرې كول او قتلول دواړه خطاء وي. نو صرف په ديت باندې اكتفاء ولې كولې شي. دا ددې دوهم



دليل دې. فرماني. كه د لاس كټ كاوه په وجه زخم خور شي. او مرګه پورې او نه رسيږي. نو د لاس كټ كاوه سزا د لاس ديت دې. يعني پنځه زره درهم، چې دا د پوره نفس د ديت نصف دې. او كه خور شي. او مرګه پورې اورسيږي. نو بيا پوره ديت واجبيږي. بهرحال د لاس ارش ( ديت) به هغه وخت واجب وي. كله چې د فعل اثر مستحكم شي. يعني صرف د لاس كټ كاوه پورې قائم پاتې شي. او نور خور نشي. او دلته په ذكر شوي صورت كې به د استحكام علم د سټ كټ كاوه نه روسته كيږي. ځكه چې اوس زخم د خوريدو محل نه دې پاتې شوې. نو اوس به تاسو د لاس ديت واجبوئ. نو مطلب دا شو. چه د سټ كټ كاوه په وجه تاسو د لاس ديت واجب كړو. او هم ددې سټ پرې كاوه په وجه تاسو پوره ديت واجب كړو. او په پوره ديت كې د لاس ديت هم موجود دې. ځكه چې كل جزء ته ګډ وي. لكه څنګه چې لس يو ته هم ګډ دې. نو لنډيز دا شوه. چه تاسو د لاس ديت دوې (دوه) ځله حاصل كړو. مخكې انفراداً ( جدا)، او بيا پوره ديت سره يوځاې، هم دا مرغيناني رحمه الله په ضمان كل او ضمان جزء سره تعبير كړې دې.

؟ حالانكه دا جائز نه ده. چه د يو اندام ديت ډبل وصول كړې شي. نو موږ مجبوراً اوونيل. چې دلته به صرف يو ديت واجب وي. او تداخل به كيږي. په دې وجه د خطاء په صورت كې موږ مجبوراً د تداخل قائل شو. او د عمداً په صورت كې د تداخل قائل نه يو.

؟ خوكه څوك اعتراض اوكړي چې هم دا اشكال د عمد په صورت كې هم واقع كيږي. ځكه چې اول په قصاص كې لاس كټ كړې شوې دې. او بيا قتل كړې دې. نو چونكه كل جزء ته ګډ دې. نو ګويا د لاس قصاص ډبل وصول كړې دې. نو مذكوره اعتراض دلته كې هم دې؟ ﴿ده خې خې ابازو ته راځي﴾ خو موږ ورته وئيلې شو چې د عمد په سزا كې تغليظ او سختوالې دې. په دې وجه دلته كې ډبل وصولي جائز ده. ځكه چې د قصاص بنا (بنياد) مساوات باندې دې. او د مساوات تقاضه هم دا ده. چه اول لاس كټ كړې شي. بيا قتل كړې شي. هم دا مرغيناني رحمه الله پخپلو الفاظو كې داسې اوفرمائيل. ﴿أما القطع و القتل قصاصاً يجتمعان فافهم و تدبر و تشكر فإنه من مزالة الاقدام﴾.

**په سل كوړې وهلو كښې آخرى لسو سره مړ كيدو كښې د ديت حكم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل ﴿وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ او چا چې يو سړې سل كوړې اووهلو فَبَرَأَ مِنْ تِسْعِينَ نو دې په نوى ( لس كم سلو) سره صحيح شو وَمَاتَ مِنْ عَشَرَةٍ او د آخر لسو نه مړ شو فَفِيهِ دِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو په دې كې يو ديت دې لِأَنَّهُ لَمَّا بَرَأَ مِنْهَا ځكه چې هركله لس كم سلو سره تيك شو لَا تَبْقَى مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ الْأَرْشِ. نو دا نوى د ارش ( ديت) په حق كې معتبر پاته پاتې نشوې آن وَإِنْ بَقِيَتْ مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ التَّعْزِيرِ اګرچه د تعزير ( او زورنې) په حق كې معتبر پاته دى فَبَقِيَ الْاِعْتِبَارُ لِلْعَشَرَةِ سنو صرف د لسو اعتبار پاته پاتې شو وَكَذٰلِكَ كُلُّ جِرَاحَةٍ انْدَمَلَتْ او دغه ډول هر زخم دې. چه هغه ډك ( جوړ) شوې وى وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ او د هغې هيڅ اثر پاته پاتې شوې نه وى عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله په اصل باندې،

تشريح:- زيد خالد ظلماً په ناحقه سل كوړې اووهلو. په دې كې مثلاً نوى ئې په اوګو ( شا) باندې اووهلو. او لس ئې په سر باندې اووهلو. د مخكنو نوى كوړو وهلو په وجه مړ نشو. بلكه دې تيك شو. او د آخرى لسو په وجه مړ شو. نو صرف آخرى لس كوړې د كومو نه چې مړ شوې دې. هم ددې ضمان يعنى ديت به واجب وى. او د مخكنو نوى كوړو به هيڅ ضمان واجب نه وى. ځكه چې هركله ددې نوى كوړو هيڅ اثر پاته پاتې نشو. نو ددې ضمان به هم واجب نه وى. بلكه صرف د آخرى لسو اعتبار به كولې شي. او ديت به واجب وى. خو د مخكنو نوى كوړو اثر د تعزير په حق كې پاته دې. يعنى قاضى به دده تعزير كوى. چه بيا لپاره داسې حركت اونكړى. دغه ډول هر هغه زخم چې د هغې سوړه ډكه شوې وى. او ددې هيڅ اثر پاته نه وى پاتې شوې. د امام ابوحنيفه رحمه الله د اصل مطابق ددې هم دا حكم دې. چه اوس به ددې هيڅ ضمان واجب نه وى.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي مِثْلِهِ او ددې په مثل كې د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى حُكُومَةُ عَدْلٍ چې حكومت عدل دې

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ تَجِبُ أُجْرَةُ الطَّبِيبِ چې د طبیب (ډاکټر) اجرت واجب دي.

تشریح:- په داسې صورت حال کې د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په دې صورت کې حکومت عدل واجب دي.د حکومت عدل تفسیر دا دي.که دا غلام وې.نو د زخم نه بغیر به دده څه قیمت وو.مثلاً زر روپۍ به وو.او د زخم سره اته سوه روپۍ دي.نو په دواړو قیمتونوکي د دوې (دوه) سوه روپو توپیر دې.هم دا دوې (دوه) سوه روپۍ به واجب وی.او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه په دې صورت کې به زخم لګونکی باندې د علاج معالجې خرچه واجب وی.

## په سل کوړې وهلو کښې د زخم د اثراتو حکم

وَإِنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ وکه یو سړي ئې سل کوړې اووهلو وَجَرَحَتْهُ او کوړو دې زخمی کړو وَبَقِيَ لَهُ أَثَرٌ او ددې اثر پاته پاتې شو تَجِبُ حُكُومَةُ الْعَدْلِ.نو حکومت عدل واجب دې لِبَقَاءِ الْأَثَرِ د اثر پاته پاتې کیدو په وجه، وَالْأَرْشُ او ارش (دیت) واجبیږی إِنَّمَا يَجِبُ بِاعْتِبَارِ الْأَثَرِ فِي النَّفْسِ په نفس کې د اثر پاته پاتې کیدو په وجه.

تشریح:- دا د مخکنۍ مسئلې دوهم صورت دې.چه یو سړې ئې سل کوړې اووهلو.او زخمی ئې کړو.بیا د هغه زخم تیک شو.یعنی زخم خور نشو.خو د زخم اثر او نشان پاته دې.نو په دې صورت کې بالاجماع حکومت عدل دې.چه ددې تفسیر تیر شوې دې.خکه چې د زخم اثر پاته دې.دلته ارش (دیت) ولې واجب نشو؟ خکه چې کله د زخم اثر نفس ته اورسیږی.هغه وخت ارش واجبیږی.او دا به هغه وخت وی.کله چې زخم تیک شوې نه وی.او دلته کې زخم تیک شوې دې.په دې وجه به ارش (دیت) واجب نه وی.

## لاس کټ کونکی خپل قاطع معاف کړواو بیا وفات شو.نو دیت شته اوکه نه؟

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی (وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ او کوم کس چې د یوسړی لاس کټ کړو فَعَفَا الْمَقْطُوعَةُ يَدُهُ عَنِ الْقَطْعِ.نو د کوم کس لاس چې کټ کړې شوې دې.هغه لاس پرې کول معاف کړل ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذَلِكَ بیا هغه ددې کټ کاوه په وجه مړ شو فَعَلَى الْقَاطِعِ الدِّيَةُ نو په لاس پریکونکی باندې دیت واجب دې فِي مَالِهِ.د قاطع (پریکونکی) په مال کې ، وَإِنْ عَفَا عَنِ الْقَطْعِ وَمَا يَحْدُثُ مِنْهُ او که لاس پریکړې شوی لاس پریکول او کوم څه چې ددې پرې کاوه نه پیدا شوی وو.معاف کړل.ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذَلِكَ بیا هغه ددې کټ کاوه په وجه مړ شو فَهُوَ عَفْوٌ عَنِ النَّفْسِ نو دا نفس معاف کول دی ثُمَّ إِنْ كَانَ خَطَأً بیا که پرې کول خطاء وی فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ،نو دا معاف کول به د ثلث مال خنې وی وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او که پرې کول عمداً وی فَهُوَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ نو معافی به د پوره مال خنې وی ،وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې.

تشریح:- زیدخطاء یا عمداً د خالد لاس کټ کړو.او خالد ډیر سخی سړې وو.هغه دا پرې کول معاف کړل.نو معاف شو.نو نه به د لاس قصاص واجب وی.او نه به دلاس دیت واجب وی.خو که ددې لاس کټ کاوه په وجه خالد مړ شو.نو اوس مخکنۍ معافی ختمه شوه.خکه چې هغه پریکول معاف کړی دی.او دا مسئله د قتل شوه.نو په زید به دیت واجب وی.که پرې کول عمداً وی بیا هم، اوکه خطاء وی نو بیا هم.خو که خالد په دې طریقه معاف کړې وی.چه ما پرې کول معاف کړل.او د کټ کاوه نه پیدا شوې شۍ مې هم معاف کړو.نو که په دې صورت کې مړشی.نو قتل به هم معاف وی.او اوس به دیت واجب نه وي.
البته دومره تفصیل دلته کې هم کتلې شی.که زید عمداً د خالد لاس کټ کړې وو.او هغه په دویمه طریقه معاف کړې دې.نو بس معاف شو.دا به هیڅ نه کتلې کیږی.چه خالد څومره مال پریښودې او مړشوې دې.هغه کم دې او

(١) القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(٣٩٩/٥) والتبيين (١١٩/٦) ومجمع الأنهر (٣٣١/٤) وملتقى الأبحر(٣٣٠/٤، ٣٣١) نقلاً عن القول الراجح (٤٣/٢)-



که زیات دې.او که په دې کې دیت واجب شی.نو هغه د پاته پاتې مال دریمه ده اوکه نه ده؟ او که زید خطاء لاس کټ کړې وی.او خالد د دوهم صورت الفاظو سره معاف کړې وی.نو معافی به په دریمه برخه مال کې جاری کیږی.نو د معافو کاوه د مقدار نه علاوه که د خالد پریښودې شوې مال دوچند وی.نو دا معافی به پوره ثابت وی.او که ددې نه علاوه د خالد هیڅ مال نه وی.نو د دیت د پوره مقدار ثلث ١/٣ به معاف وی.او دوې (دوه) ثلثه ٢/٣ به معاف نه وی.بلکه دومره مقدار به زید د خالد وارثانو ته ورکوی.بهرحال دا مذکوره تفصیل، چې د کټ کاوه معافۍ سره به د قتل معافی نه کیږی.دا د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې.

## د صاحبينو رحمهما الله مسلك

وَقَالَا:او صاحبین رحمهما الله فرمایي إِذَا عَفَا عَنِ الْقَطْعِ کله ئې چې پرې کول معاف کړل فَهُوَ عَفْوٌ عَنِ النَّفْسِ أَيْضًا نو دا د نفس هم معافی ده وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ او هم په دې اختلاف (مبنی) دې إِذَا عَفَا عَنِ الشَّجَّةِ کله ئې چې د سر زخم معاف کړو ثُمَّ سَرَى إِلَى النَّفْسِ بیا دا خور شو نفس ته، وَمَاتَ او مړ شو.

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله مذهب دا دې.چه هرکله خالد پرې کول معاف کړل.نو په دې سره قتل هم معاف شو.او د صاحبینو رحمهما الله او د امام صاحب رح دا اختلاف دغه ډول د سر په زخم کې هم دې.یعنی زید د خالد سر زخمی کړو.او خالد د سر زخم معاف کړو.او بیا خالد هم ددې زخم په وجه مړ شو.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز د قتل معافی اونشوه.نو په زید به دیت واجب وی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د قتل معافی هم وی.اوس مرغینانی رحمه الله د فریقینو دلائل بیانوی.مخکې د صاحبینو رحمهما الله دلیل بیانوی.

## د صاحبينو رحمهما الله مسلك

لَهُمَا او د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې الْعَفْوُ عَنِ الْقَطْعِ عَفْوٌ عَنْ مُوجَبِهِ، چې پرې کول معاف کول د کټ کاوه دواړه حکمونه معاف کول دی وَمُوجَبُهُ الْقَطْعُ او ددې حکم پرې کول دی لَوِ اقْتَصَرَ که پرې کول متعدی (خواره) نشی أَوِ الْقَتْلُ إِذَا سَرَى او قتل دې.کله چې متعدی شی فَكَانَ الْعَفْوُ عَنْهُ عَفْوًا نو د کټ کاوه معاف کول به معاف کول وی عَنْ أَحَدِ مُوجَبَيْهِ أَيُّهُمَا كَانَ،ددې په دواړو حکمونو چې هر یو وی وَلِأَنَّ اسْمَ الْقَطْعِ يَتَنَاوَلُ السَّارِيَ وَالْمُقْتَصِرَ او په دې وجه لفظ د ,, قطع،، (پریکول) متعدی او مستحکم دواړو ته ګډ دې ،فَيَكُونُ الْعَفْوُ عَنْ قَطْعٍ عَفْوًا عَنْ نَوْعَيْهِ.نو د کټ کاوه معاف کول به ددې د دواړو قسمونو معاف کول وی وَصَارَ او داسې شوه كَمَا إِذَا عَفَا عَنِ الْجِنَايَةِ لکه جنایت معاف کول فَإِنَّهُ يَتَنَاوَلُ الْجِنَايَةَ السَّارِيَةَ وَالْمُقْتَصِرَةَ خکه چې دا (جنایت معاف کول) متعدی جنایت او مستحکم (دواړو) ته ګډ دې كَذَا هَذَا دغه ډول دا (هم دي).

حل اللغة: ① يتناول: شامليږی ② الساری: تجاوز کونکې،تیریدونکې ③ المقتصر: په خپل ځائې ولاړ،چه تجاوز ئې نه وی کړې.

تشریح:- دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د لاس کټ کاوه دوې (دوه) سزاګانې دی ① که د لاس زخم نور خور نشی.او هغه ددې نه مړ نشی.نو ددې سزا لاس پرې کول دی.② اوکه مړ شی.نو بیا ددې لاس کټ کاوه سزا قتل ده.بهرحال هرکله چې خالد پرې کول معاف کړل.نو ګویا ددې دواړه حکمونه ئې معاف کړی دی.
په نورو الفاظو کې داسې چې د کټ کاوه دوې (دوه) قسمونه دی:
① ساری: یعنی کوم چې خور (او متعدی) شی. ② مقتصر: یعنی کوم چې خور نشی.او د مطلق انتفاء د مقید انتفاء ته مستلزم وی.نو هرکله چې ده پرې کول معاف کړل.نو ساری او مقتصر (خوریدونکی او نه خوریدونکی) دواړه ئې معاف کړی دی.او ددې مثال بعینه داسې دې.کله چې خالد جنایت معاف کړو.نو اوس که دا جنایت ساری وی او که مقتصر وی.دواړه قسمونه به بالاتفاق معاف کیږی.دغه ډول په مذکوره صورت کې هم دواړه پرې کول معاف کیدل پکار دی.

## د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي سَبَبُ الضَّمَانِ قَدْ تَحَقَّقَ چې د ضمان سبب متحقق دي وَهُوَ قَتْلُ نَفْسٍ مَعْصُومَةٍ او هغه د داسې معصوم نفس قتل دي مُتَقَوِّمَةٍ چې هغه متقوم دي. وَالْعَفْوُ لَمْ يَتَنَاوَلْهُ بِصَرِيحِهِ او اندام صراحتاً قتل ته ګډ نه دي لِأَنَّهُ عَفَا عَنِ الْقَطْعِ ځکه چې ده پرې کول معاف کړي دي وَهُوَ غَيْرُ الْقَتْلِ، او پرې کول د قتل نه غير دي وَبِالسِّرَايَةِ تَبَيَّنَ او د خوريدو په وجه دا خبره واضحه شوه. أَنَّ الْوَاقِعَ قَتْلٌ چې کوم شئ واقع شوې وو. هغه قتل دي وَحَقُّهُ فِيهِ او لاس کټ شوي حق په دې (قتل) کې دي وَنَحْنُ نُوجِبُ ضَمَانَهُ او موږ د قتل ضمان واجبوو وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او مناسب خو دا وه. چه قصاص واجب شوې وې وَهُوَ الْقِيَاسُ او هم دا قياس دي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُوجِبُ لِلْعَمْدِ، ځکه چې قصاص د قتل عمد موجب دي. إِلَّا أَنَّ فِي الِاسْتِحْسَانِ تَجِبُ الدِّيَةُ، خو استحساناً به ديت واجب وي لِأَنَّ صُورَةَ الْعَفْوِ أَوْرَثَتْ شُبْهَةً ځکه چې د معافئ صورت شبه پيدا کړله. وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقَوَدِ او شبه قصاص لرې کونکې دي

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دي. فرمائي. چه په مذکوره صورت کې زيد معصوم نفس قتل کړې دي. نودلته د قياس تقاضه دا وه. چه قصاص واجب شوې وي. خو د معافئ په وجه دقصاص په سلسله کې څه شبه پيدا شوه. نو ددې شبهې په وجه موږ د قصاص په ځائې استحساناً ديت واجب کړې دي. او پاتې شوه دا خبره چې هغه معاف کړې وو. نو ديت هم واجبيدل پکار نه دی. نو ددې ځواب دا دي. چه ده پرې کول معاف کړی وو. او دلته دا قتل ښکاره شو. نو حق يو دي. او معافي د بل شئ شوې ده. حالانکه دا اصول منلې شوې دي. چه سړې خپل حق معاف کولې شي. او دده حق چې په کوم شئ کې دي. هغه ده معاف نکړو. نو د کټ کاوه معاف کاوه سره به د قتل موجب يعنی ديت نه معاف کيږي.

## د صاحبينو رحمهما الله د دليل جواب

وَلَا نُسَلِّمُ او موږ دا خبره نه منو أَنَّ السَّارِيَ نَوْعٌ مِنَ الْقَطْعِ، چې ساری (خوريدونکې) د کټ کاوه يو ډول دي وَأَنَّ السِّرَايَةَ صِفَةٌ لَهُ او موږ دا نه منو. چه خوريدل د کټ کاوه صفت دي. بَلِ السَّارِي قَتْلٌ مِنَ الِابْتِدَاءِ، بلکه خوريدونکی پرې کول د پيل نه قتل دي وَكَذَا لَا مُوجِبَ لَهُ مِنْ حَيْثُ كَوْنِهِ قَطْعًا او دغه ډول د لاس کټ کول، د کټ کيدو په حيثيت سره، (اوس) هيڅ موجب نشته فَلَا يَتَنَاوَلُهُ الْعَفْوُ نو کټ کاوه ته به معافي ګډ نه وي.

تشريح:- دا د امام صاحب رحمه الله د اړخه د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب دي. فرمائي. ای صاحبينو رحمهما الله! تاسو څه اوفرمائيل. چه د کټ کاوه دوې (دوه) قسمونه دی. ساری او مقتصر (خوريدونکې او مستحکم پاتې کيدونکې)، موږ دا نه منو. او نه موږ دا منو. چه خوريدل د کټ کاوه صفت دي. بلکه خوريدونکې پرې کول خو د پيل نه قتل دي. اګرچه دا ښکاره اوس شو. دغه ډول کله چې د کټ کاوه نه روسته زخم خور شي. او د مرګ حالت ته اورسيږي. نو اوس د کټ کاوه هيڅ حکم پاتې نشو. بلکه اوس خو به د قتل حکم جاري کيږي. يعنی ديت به واجب وي. نو دده حق ديت دي. او ده معاف کړی دی کټ کول، او د کټ کاوه دغه وخت هيڅ محل نه وو. نو معافي پخپل محل کې نشوه. په دې وجه د کټ کاوه معاف کاوه سره به د قتل معافي نه کيږي.

بِخِلَافِ الْعَفْوِ عَنِ الْجِنَايَةِ په خلاف د جنايت سره د معاف کولو، لِأَنَّهُ اسْمُ جِنْسٍ ځکه چې جنايت اسم جنس دي وَبِخِلَافِ الْعَفْوِ عَنِ الشَّجَّةِ. او په خلاف د سر د زخم معاف کولو وَمَا يَحْدُثُ مِنْهَا او د هغه شئ د معاف کولو کوم چې په دې زخم سره پيدا شوې وی، لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِي الْعَفْوِ عَنِ السِّرَايَةِ وَالْقَتْلِ ځکه چې دا ښکاره خوريدل او قتل معاف کول دی.

تشريح:- پاته پاتې شو د صاحبينو رحمهما الله د جنايت نه کوم استدلال کول نو هغه صحيح نه دې. ځکه چې جنايت اسم جنس دې. چه دا جنايت ساريه او مقتصره دواړو ته ګډ دې. ځکه که جنايت ئې معاف کړې وی. نو دواړه صورتونه به معاف کيږي. او د کټ کاوه معاف کاوه سره د قتل معافي نه کيږي. او که خالد صراحت کړې وی. چه ما پرې کول او ددې نه پيدا کيدونکی واړه اثرات معاف کړی دی. نو اوس به قتل هم معاف وی. ځکه چې اوس ده صراحت سره معاف کړې دي. يعنی د کټ کاوه نه هم، د خوريدو نه هم، او د قتل نه هم (د ټولو نه ئې معاف کړې دي.



## که خطاء سره ئې لاس کټ کړو نو څه حکم دي؟

وَلَوْ كَانَ الْقَطْعُ خَطَأً او که لاس پرې کول په خطاء سره وی فَقَدْ أَجْرَاهُ مُجْرَى الْعَمْدِ فِي هَذِهِ الْوُجُوهِ وِفَاقًا وَخِلَافًا، نو دا امام محمد رحمه الله په دې ټولو اتفاقی او اختلافی صورتونو کې د عمد قائم مقام ګرځولې دي آذَنَ بِذَلِكَ إِطْلَاقُهُ، د امام محمد رحمه الله اطلاق ددې خبر ورکوی إِلَّا أَنَّهُ إِنْ كَانَ خَطَأً خو که پرې کول خطاء وی فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ، نو معافي به د ثلث نه کيږي وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او که عمداً وی فَهُوَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ، نو معافي به د پوره مال نه کيږي لِأَنَّ مُوجَبَ الْعَمْدِ الْقَوَدُ ځکه چې د عمد موجب قصاص دي وَلَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْوَرَثَةِ او قصاص سره (د مرګ نه مخکې) د وارثانو حق نه متعين کيږي لِمَا أَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چې قصاص مال نه دي.

تشريح:- تراوسه پورې کوم تفصيل بيان کړې دي. دا دهغه صورت حکم ووچه زيد په قصد باندې لاس کټ کړې وی اوس دا بيان کوی چې که د لاس پرې کول په خطا وی نو هم دغه حکم دي اودا حکم د امام محمد رحمه الله امام محمد رحمه الله د اطلاق نه، يعنی دوی د عمد او خطاء ذکر کاوه نه بغير دا حکم بيان کړې دي. نو ددې اطلاق نه دا حکم معلوميږي. البته په عمد او خطاء کې يو معمولی شان توپير شته. هغه دا دې. که زيد د خالد لاس خطاءً کټ کړې وی. او خالد دا جنايت معاف کړې وی. نو معافي به د دريمې برخې مال نه معتبر وی. او که عمداً ئې کټ کړې وی. نو د پوره مال څخه به معتبر وی. او ددې وجه دا ده. چه عمد کې قصاص کې واجبيږي. او قصاص چونکه مال نه دې. نو ددې سره به د وارثانو حق هم نه متعلق کيږي. په دې وجه به دا معافي د پوره مال نه معتبر وی.

فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا أَوْصَى لکه چې ده وصيت کړې وی بِإِعَارَةِ أَرْضِهِ. د خپلې زمکې د اعارې، أَمَّا الْخَطَأُ بهرحال خطاء فَمُوجَبُهُ الْمَالُ، نو د دې موجب مال دي وَحَقُّ الْوَرَثَةِ يَتَعَلَّقُ بِهِ او د وارثانو حق مال سره متعلق کيږي فَيُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ نو معافي به د دريمې برخې نه معتبر وی.

تشريح:- ددې مثال بعينه دا دې. که زيد د خپلې زمکې وصيت اوکړی. نو دا وصيت به په ثلث کې نافذ کيږي. او که د خپلې زمکې په اړه کې دا وصيت اوکړی. چه دا بکر ته عاريت باندې ورکړئ. نو دا وصيت به په پوره مځکه باندې نافذ وی. ځکه چې عاريت کې مستعير مالك جوړول مقصد نه دی. بلکه منافع مقصود وی. نو دا مال نشو. او د وارثانو حق مال سره متعلق کيږي. نو پوره وصيت به نافذ کولای شی. او د زمکې په وصيت کې مال مقصود دې. نو دا به صرف په ثلث کې نافذ وی. هم دا حال د عمداً کټ کاوه دې. اوکه پرې کول خطاءً وی. نو ددې موجب مال دې. او مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي. نو دا معافي به د ثلث نه معتبر وی. نو په عمد او خطاء کې دلته بس دومره شان توپير دې. او بس.

## سړي د لاس کټ کولو په بدله کښې ښځې سره نکاح اوکړله. او مړ شو نو څه حکم دې؟

قَالَ: امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی (وَإِذَا قَطَعَتِ الْمَرْأَةُ يَدَ رَجُلٍ) و کله چې يوې ښځې د يو سړی لاس کټ کړو فَتَزَوَّجَهَا عَلَى يَدِهِ نو دغه سړی دې ښځې سره د خپل لاس په عوض نکاح اوکړله ثُمَّ مَاتَ بيا هغه مړ شو فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا، نو ښځې لپاره به مهر مثل وی وَعَلَى عَاقِلَتِهَا الدِّيَةُ او د ښځې په خاندان به ديت واجب وی إِنْ كَانَ خَطَأً، که پرې کول خطاءً وی. وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او که عمداً وی فَفِي مَالِهَا نو د ښځې په مال کې به (ديت) وی.

تشريح:- زينب د زيد لاس کټ کړو. که خطاءً وی. او که عمداً وی. نو په زينب به د لاس ضمان واجب وی. خو زيد اووئيل. چه ته زما سره نکاح اوکړه. او د لاس کټ کاوه کوم حق چې زما په تا باندې راځی. هغه مهر دې. او ښځې قبول کړو. نو نکاح اوشوه. او په ښځې چې کوم ارش (ديت) واجب شوې وو. يعنی پنځه زره درهمه، دا به مهر منلې کيږي. خو معامله دا ده. چه د ميړه (د زيد) وفات اوشو. نو اوس به څه حکم وی. او د زيد مړکيدل ددې لاس کټ کاوه په وجه شوی دی. نو وې فرمائيل. چه نکاح خو اوس هم صحيح ده. البته مهر مسمی کول به صحيح نه وی. په دې وجه به ښځې لپاره مهرمثل واجب وی. او د زيد وارثانو ته به ديت ملاويږي. اوس پاتې شوه دا خبره چې ديت

به په چا واجب وی؟ نو وې فرمائیل. که زینب خطاء سره لاس کټ کړې وو. نو دیت به د زینب په خاندان باندې واجب وی. او که دې لاس عمداً کټ کړې وو. نو دیت به د ښځې په مال کې واجب وی.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب وجه

وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی لِأَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ خکه چې د لاس نه معافي کول إِذَا لَمْ يَكُنْ عَفْوًا کله چې دا د امام صاحب رحمه الله په نیز د هغه شئ معافی نه وی عَمَّا يَحْدُثُ مِنْهُ عِنْدَهُ کوم چې ددې نه پیدا کیږی، فَالتَّزَوُّجُ عَلَى الْيَدِ لَا يَكُونُ تَزَوُّجًا نو په لاس باندې نکاح کول به په هغه شئ باندې نکاح کول نه وی عَلَى مَا يَحْدُثُ مِنْهُ کوم چې د لاس کټ کاوه نه پیدا شوی وی.

تشریح:- دا تفصیل د امام صاحب رحمه الله په نیز دې. او وجه ددې هم هغه ده. کومه چې اوس تیره شوې ده. چه ددوی په نیز د لاس کټ کاوه معافی سره د قتل معافی نه کیږی. نو دغه ډول ددوی په نیز د لاس د جرمانې په عوض نکاح کاوه باندې د قتل په بدله کې نکاح کول نه وی. هرکله چې نکاح کې دلاس د جرمانې عوض مقرر شو. نو دا تسمیه (مقررول) باطل شو. خکه چې کوم شئ مقرر کړې شوې دې. هغه د سره د زید حق نه وو. او هرکله چې تسمیه صحیح نشوه. نو مهر مثل به واجب وی. په داسې صورت کې هم دا حکم کیږی. چه ددې تفصیل د هدایة په دوهم توک کې ذکر شوې دې.

### که په قصد سره ئې لاس کټ کړې وی نو څه حکم دې؟

ثُمَّ الْقَطْعُ بیا لاس پرې کول إِذَا كَانَ عَمْدًا کله چې عمداً وی يَكُونُ هٰذَا تَزَوُّجًا عَلَى الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ نو دا به د اندام په قصاص باندې نکاح کول وی وَهُوَ لَيْسَ بِمَالٍ حالانکه قصاص مال نه دې فَلَا يَصْلُحُ مَهْرًا نو قصاص به د مهر جوړیدو صلاحیت نه لری لَا سِيَّمَا عَلَى تَقْدِيرِ السُّقُوطِ خاصکر د قصاص ساقطولو په تقدیر باندې فَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ نو مهرمثل به واجب وی. وَعَلَيْهَا الدِّيَةُ فِي مَالِهَا او په ښځې به د ښځې په مال کې دیت واجب وی لِأَنَّ التَّزَوُّجَ وَإِنْ كَانَ يَتَضَمَّنُ الْعَفْوَ خکه چې نکاح کول اګرچه معافیٔ ته متضمن ده عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى د هغه تفصیل مطابق کوم چې به موږ انشاءالله بیان کړو لٰكِنْ عَنِ الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ، خو دا په دې (عمد) صورت کې، د اندام قصاص معاف کول دی وإذا سری او هرکله پرې کول خپاره (متعدی) شو وَإِذَا سَرَى تَبَيَّنَ أَنَّهُ قَتْلُ النَّفْسِ نو دا خبره واضحه شوه. چه دا خو نفس قتلول دی. (لاس پرې کول نه دی). وَلَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْعَفْوُ او معافی قتل ته ګډ نشوه فَتَجِبُ الدِّيَةُ نو دیت به واجب وی وَتَجِبُ فِي مَالِهَا او دا دیت به د ښځې په مال کې واجب وی لِأَنَّهُ عَمْدٌ خکه چې دا عمد دې.

تشریح:- مرغینانی رحمه الله فرمائی. که زینب عمداً لاس کټ کړې دې. نو په دې کې د لاس قصاص واجب دې. او قصاص مال نه دې. او کوم چې مال نه وی. هغه مهر هم نشی جوړیدې. نو تسمه (مهر مقررول) صحیح نشو. نو مهر مثل به واجب وی.

[لا سيما...] یعنی که قصاص واجب وی. بیا هم مهر نشی جوړیدې. او دلته خو قصاص هم ساقط شو. خکه چې سړی ایجاب د نکاح په قصاص کړې دې. او ښځې قبول کړې دې. نو ددې قبول په وجه قصاص ساقط شوې دې. او هرکله چې قصاص مهر مقرر کړې شو. نو ګویا چې قصاص ئې وصول کړو. نو قصاص ساقط شو. لنډیز د کلام دا که قصاص پاته پاتې شوې وې. بیا هم د مال نه کیدو په وجه مره نشو جوړیدې. او دلته خو اتفاق سره قصاص هم ساقط شوې دې. نو ساقط خو په درجه اولی مهر نشی جوړیدې. نو مهر مثل به واجب وی. او په ښځې به د ښځې په مال کې دیت واجب وی.

[که څوک دا پوښتنه اوکړی چې هرکله چې زید د لاس په دیت کې نکاح اوکړله. نو د زینب جرم معاف شو. نو اوس ددې دیت ولې واجب کیږی؟ نو موږ ورته وایو چې زید د نکاح په ذریعه د اندام قصاص معاف کړې دې. خو اوس معلومه شوه. چه دا پرې کول نه دی. بلکه قتل دې. او قتل زید نه دې معاف کړې. بلکه د اندام قصاص ئې معاف کړې دې. نو هرکله چې هغه ئې معاف کړې هم نه دې. نو دا به معاف کیږی هم نه. نو دیت به واجب وی. او چونکه دا



عمد دې. په دې وجه به دیت د ښځې په مال کې واجب وی.

البته دلته دا خطره پاته پاتې کیږی. که ښځې د سړی لاس کټ کړې وی. نو په دې کې خو قصاص نه راخي. او اسو اوفرمائیل. چه قصاص شته؟ نو د دې خواب دا دې چې د موجب اصلي لحاظ کاوه سره مرغینانی رحمه الله داسې فرمائیلی دی. خکه چې داسې صورت کې که څه مانع نه وی. نو قصاص واجبیږی. او دلته مانع موجود دې. یعنی د سړی او د ښځې د لاس تفاوت.

### په ذکر شوی صورت کښې د قیاس څه تقاضه ده؟

وَالْقِيَاسُ او قیاس دا دې أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ چې قصاص واجب وی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې وَإِذَا وَجَبَ لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ او هرکله چې ښځې لپاره مهر مثل واجب شو. وَعَلَيْهَا الدِّيَةُ او په ښځې باندې دیت واجب شو. تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ نو مقاصه (مبادله) به واقع کیږی إِنْ كَانَا عَلَى السَّوَاءِ، که دا دواړه برابر وی وَإِنْ كَانَ فِي الدِّيَةِ فَضْلٌ او که په دیت کې زیادت وی تَرُدُّهُ عَلَى الْوَرَثَةِ، نو ښځه دې دا د میړه وارثانو ته ورکړی وَإِنْ كَانَ فِي الْمَهْرِ او که په مهر کې زیاتوالې وی فَضْلٌ يَرُدُّهُ الْوَرَثَةُ عَلَيْهَا نو وارثان دې دا ښځې ته ورکړی.

تشریح:- قیاس خو دا غوښتل. چه دلته په ښځه باندې قصاص واجب شوې وې. خکه چې د ښځې فعل عمداً صادر شوې دې. چه په دې کې قصاص واجبیږی. خو ددې توجیه موږ پیش کړې ده. چه دیت ولې واجبیږی. بهرحال د ذکر شوی تفصیل نه معلومه شوه. چه په ذکر شوی صورت کې ښځې لپاره مهر مثل دې. او په ښځه دیت واجب دې. نو کله چې د دیت ادا که اوه وخت راشی. او بالفرض د دیت او مهر مثل دواړو مقدار برابر وی. نو مقاصه به کیږی. یعنی دمهر مثل بدل به دیت وی. او د دیت بدل به مهر مثل وی. او که مهر مثل کم او دیت زیات وی. نو زیاتی به د مقتول وارثانو ته ملاویږی. اوکه مهر زیات او دیت کم وی. نو زیاتی به ښځې ته ملاویږی. دا واړه تفصیلات هغه وخت دی. کله چې لاس پرې کول عمداً شوی وی.

وَإِذَا كَانَ الْقَطْعُ خَطَأً او کله چې پرې کول خطاء وی يَكُونُ هٰذَا تَزَوُّجًا عَلَى أَرْشِ الْيَدِ، نو دا به د لاس په دیت باندې نکاح کول وی وَإِذَا سَرَى إِلَى النَّفْسِ او هرکله چې پرې کول نفس اړخ ته خپاره (متعدی) شو تَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا أَرْشَ لِلْيَدِ نو دا خبره واضحه شوه. چه لاس لپاره هیڅ دیت نشته.

تشریح:- او که خطاء شوې وی. نو ګویا چې زید د لاس د دیت په بدله کې نکاح کړې ده. خو کله چې د لاس پرې کول متعدی شو. او قتل ته اورسیدو. نو معلومه شوه. چه دیت د سره واجب شوې هم نه وو. او هرکله دیت موجود نشو. نو تسمیه هم معدوم او باطل شوه. او هر کله چې تسمیه معدوم او باطل شوه. نو مهر مثل واجب شو. خو په دې صورت کې به مقاصه نه کیږی. خکه چې دلته دیت په بل چا واجب دې. او مهرمثل د بل چا حق دې. یعنی دیت د ښځې په خاندان باندې واجب دې. او مهر مثل د ښځې حق دې. او په مخکنی صورت کې دیت په ښځه باندې واجب وو. او مهر مثل هم ددې لپاره واجب وو.

وَأَنَّ الْمُسَمّٰى مَعْدُومٌ او دا خبره واضحه شوه. چه مسمی معدوم دې فَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ، نو مهر مثل به واجب وی. كَمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا لکه (مثلاً) کله چې سړی د ښځې سره نکاح اوکړله عَلَى مَا فِي الْيَدِ په هغه شئ باندې. چه په لاس کې دې وَلَا شَيْءَ فِيهَا حالانکه لاس کې هیڅ نشته وَلَا يَتَقَاصَّانِ او مقاصه به نه کیږی. لِأَنَّ الدِّيَةَ تَجِبُ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي الْخَطَإِ خکه چې خطاء کې دیت عاقله (خاندان) باندې واجبیږی وَالْمَهْرُ لَهَا او مهر ښځې لپاره واجبیږی.

تشریح:- د تسمیه نه معتبر کیدو په وجه ذکر شوی صورت کې بالکل داسې ده. لکه څنګه چې میړه ښځې ته اووئیل. چه ما تا سره هغه شئ باندې نکاح اوکړله. کوم چې زما په لاس کې دی. او ښځې قبول کړل. او په لاس کې هیڅ هم نشته. نو تسمیه معتبر نشوه. او دلته به مهر مثل واجب وی. دغه ډول به په ذکر شوی صورت کې هم وی.

### قصاص د مهر جوړید و صلاحیت لری اوکه نه؟

قَالَ: امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْتَزَوَّجَهَاعَلَى الْيَدِوَمَايَحْدُثُ مِنْهَاأَوْعَلَى الْجِنَايَةِ). که مقطوع اليد ښځې سره د لاس په عوض، او کوم چې ددې نه پيدا شي، هغې باندې، يا جنايت باندې نکاح اوکړله ثُمَّ مَاتَ بيا هغه مړشو مِنْ ذٰلِكَ هم ددې کټ کاوه په وجه، وَالْقَطْعُ عَمْدٌ او پرې کول عمداً وی فَلَهَامَهْرُمِثْلِهَا نو ښځې لپاره به ددې مهر مثل وی لِأَنَّ هٰذَاتَزَوُّجٌ عَلَى الْقِصَاصِ خکه چې دا د قصاص په عوض نکاح کول دی وَهُوَلَايَصْلَحُ مَهْرًا او قصاص د مهر جوړيدو صلاحيت نه لری فَيَجِبُ مَهْرُالْمِثْلِ نو مهر مثل به واجب وی عَلَى مَابَيَّنَّاهُ، د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دي وَصَارَ او داسې شوه كَمَاإِذَاتَزَوَّجَهَاعَلَى خَمْرٍأَوْخِنْزِيرٍ لکه چې ښځې سره ئې په شراب يا خنزير باندې نکاح کړې وی وَلَاشَيْءَلَهُ عَلَيْهَا. او په ښځه به هيڅ واجب نه وی لِأَنَّهُ لَمَّاجَعَلَ الْقِصَاصَ مَهْرًا خکه چې سړی کله قصاص مهر ګرخولې وی فَقَدْرَضِيَ بِسُقُوطِهِ بِجِهَةِ الْمَهْرِ نو دې د مهر په جهت سره د قصاص په ساقطيدو باندې راضی شو فَيَسْقُطُ أَصْلًا نو قصاص به بالکل ساقطيږی كَمَاإِذَاأَسْقَطَ الْقِصَاصَ لکه کله ئې چې قصاص ساقط کړې وی بِشَرْطِ أَنْ يَصِيرَمَالًا په دې شرط سره، چې دا مال شی فَإِنَّهُ يَسْقُطُ أَصْلًا نو قصاص به بالکل ساقطيږی.

تشريح:- زينب د زيد لاس کټ کړو. او عمداً ئې کټ کړو. چه په دې کې قصاص واجبيږی. (يعنی په اعتبار د اصل "کما مر") او که زيد ددې عمدا کټ کاوه په وجه مړ شی. نو قصاص د نفس واجب دې. خو زيد زينب ته اووئيل. چه ته د خپل دې جنايت په عوض ما سره نکاح اوکړه. يا ئې اووئيل. چه تا زما کوم لاس کټ کړې دې. په هغې باندې، او که دا خورشی. او مرګ ته اورسيږی. هغې باندې ما سره نکاح اوکړه. او زينب دا قبول کړل. نو نکاح به صحيح وی. خو چونکه دلته قصاص واجبيږی. او قصاص مال نه دې. او زيد د زينب بضع د قصاص بدل ګرخولې دی. نو دا تسميه صحيح نشوه. چونکه قصاص د مال نه کيدو په وجه مهر نشی جوړيدې. نو مهر مثل به واجب وی. خکه که سړې د يوې ښځې سره نکاح اوکړی. او په مهر کې شراب يا خنزير مقرر کړی. نو هلته هم مهر مثل واجبيږی. ددی دواړو د مال نه کيدو په وجه، دغه ډول به دلته کې هم وی.

قوله: دا خو د مهر مسئله ده. بيا اوشوه داسې چې د زيد ددې کټ کاوه په وجه وفات اوشو. نو د مهر حکم هم دغه دې. خو د قصاص يا د ديت به څه کيږی؟ نو وې فرمائيل. چه په ښځه به نه قصاص واجب وی. او نه به ديت واجب وی. خکه چې دلته کې زيد هرکله قصاص د مهر بدل اوګرخولو. نو ده قصاص ساقط کړو. او کله چې قصاص ساقط شی. نو بالکل ساقطيږی. او کله چې قصاص بالکل ساقط شی. نو دا نه قصاص واجب پاتې شو. او نه ديت واجب پاتې شو.

قوله: كَمَاإِذَاأَسْقَطَ.... يو سړې وائی. چه ما قصاص ساقط کړو. په دې شرط چې دا مال شی. نو قصاص به بالکل ساقطيږی. خکه دده د شرط لنډيز دا ده. چه وينه مال شی. او وينه په هيڅ يو سماوی دين کې نه مال کيږی. نو دا شرط باطل دې. نو دا به مطلق اسقاط شمارلې کيږی؛

**که د تيرشوی تفصيلاتو مطابق ښځې په خطاء سره لاس کټ کړو نو څه حکم دې؟**

وَإِنْ كَانَ خَطَأً که لاس پرې کول خطاء وی يُرْفَعُ عَنِ الْعَاقِلَةِ مَهْرُمِثْلِهَا، نو د عاقله (خاندان) څخه به د ښځې د مهر مثل په اندازه ساقطولې شی وَلَهُمْ ثُلُثُ مَاتَرَكَ وَصِيَّةً. او د ديت په مقدار کې د مهر مثل د مقدار نه علاوه چې کوم بچ پاتې شی. هغه د عاقله لپاره وصيت دې لِأَنَّ هٰذَاتَزَوُّجٌ عَلَى الدِّيَةِ خکه چې دا په ديت باندې نکاح کول دی وَهِيَ تَصْلَحُ مَهْرًا او ديت د مهر جوړيدو صلاحيت لری.

تشريح:- اوکه زينب د زيد لاس په خطاء سره کټ کړې وی. او پاته تفصيلات د مخکې پشان وی. نو د عمد او خطاء کې توپير دې. په ړومبی کې د وارثانو حق نه متعلق کيږی. خکه چې دا مال نه دې. او د دوهم د مال شوې وو. او د ښځې مهر مثل واجب کړې شو. چه ددې وجه تيره شوه. خو دلته به ديت نه ساقطيږی. بلکه ديت به



واجب وی. خکه چې زيد ديت مهر مقرر کړې دې. او ديت چونکه مال دې. په دې وجه ديت مهر جوړيدې شی.

إِلَّاأَنَّهُ يُعْتَبَرُ بِقَدْرِ مَهْرِالْمِثْلِ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ خو د مهر مثل مقدار پورې معافی به د پوره مال نه معتبر وی لِأَنَّهُ مَرِيضٌ مَرَضَ الْمَوْتِ خکه چې دې د مرض الموت مريض دې وَالتَّزَوُّجُ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ او نکاح کول د حوائج اصليه څنې ده وَلَايَصِحُّ فِي حَقِّ الزِّيَادَةِ عَلَى مَهْرِالْمِثْلِ او په مهر مثل باندې د زياتوالی په حق کې به معافی صحيح نه وی لِأَنَّهُ مُحَابَاةٌ خکه چې دا معاف کول محابات (او عطيه) ده فَيَكُونُ وَصِيَّةً نو محابات به وصيت وی

تشريح:- خو زيد به په دې صورت کې د مرض الموت مريض شمارلې شی. او قاعده دا ده. چه د مرض الموت مريض چې داسې کار اوکړی. کوم چې حوائج اصليه کې داخل وی. نو هغه د پوره مال نه معتبر منلې کيږی. يعنی د داسې معاملاتو په حق کې دې د صحت مندو خلګو په حکم کې شمارلې کيږی. او پاتې شو هغه معاملات کوم چې د حوائج اصليه څنې نه وی. نو په دې کې به هغه د مرض الموت مريض شمارلې کيږی. او دده تصرفات به په ثلث کې نافذ کيږی. يعنی دې معاملاتو ته به د وصيت درجه ملاويږی. او نکاح کول د حوائج اصليه څنې ده. نو د ښځې مهرمثل به د پوره مال نه معتبر وی. او هديه او هبه وغيره د حوائج اصليه څنې نه دی. نو دا به د ثلث مال نه معتبر وی.

بهرحال عاقله باندې دلته ديت واجب شو. يعنی لس زره درهم، او د ښځې مهر مثل اووه زره درهم دې. نو د عاقله د ذمې څخه به اووه زره د مهرمثل ساقطيږی. اوس پاته درې زره بچ پاتې شوې. او زيد پوره ديت مهر ګرخولې وو. نو دا درې زره هم ساقطيدل پکار دی. خو د اوو زرو نه په زيات کې د زيد تصرف د مريض الموت کيدو په وجه په ثلث مال کې جاری کيږی. نو که د زيد ترکه نوره هم شته. چه هغه ددې دريو زرو دوچند ده. نو د عاقله د ذمې څخه به دا درې زره هم ساقطيږی. او که ددې دريو زرو نه علاوه د زيد نور مال نه وی. نو په دې کې به يو زر ساقطيږی. او د ښځې خاندان به دوې (دوه) زره درهم د زيد وارثانو ته ادا کوی. په دې عبارت کې مرغينانی رحمه الله دا مضمون بيان کړې دې.

**د عاقله (خاندان) نه د مهرمثل اوچتولو وجه**

فَيُرْفَعُ عَنِ الْعَاقِلَةِ او د عاقله څخه به مهرمثل اوچتولې شی. لِأَنَّهُمْ يَتَحَمَّلُونَ عَنْهَا، خکه چې دا خلګ (عاقله) د ښځې د اړخه تحمل کوی. (او بوج اوچته وی). فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ تَرْجِعَ عَلَيْهِمْ نو دا ناممکن خبره ده. چه ښځه په دوی باندې رجوع اوکړی بِمُوجِبِ جِنَايَتِهَا، د خپل جنايت د موجب په سلسله کې، وَهٰذِهِ الزِّيَادَةُ وَصِيَّةٌ لَهُمْ او دا زيادت عاقله لپاره وصيت دې لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ الْوَصِيَّةِ خکه چې عاقله د وصيت اهل دی لِمَا أَنَّهُمْ لَيْسُوابِقَتَلَةٍ، خکه چې دوی قاتل نه دی فَإِنْ كَانَتْ تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ نو که زيادت د ثلث نه اوځی تَسْقُطُ، نو زيادت به ساقطيږی وَإِنْ لَمْ تَخْرُجْ او که او نځی يَسْقُطُ ثُلُثُهُ. نو د زياتوالی ثلث به ساقطيږی.

تشريح:- د قتل خطاء ديت عاقله باندې واجبيږی. او مهر مثل د ښځې حق دې. آيا ښځې ته حق شته. چه د عاقله نه خپلې اووه زره درهم واپس واخلی؟ نو وې فرمائيل. چه واپس ئې نشی اخستلې. خکه چې دا کوم انصاف دې. چه جنايت دې ښځه اوکړی. او عاقله دې د هغې ديت ورکړی. چه په دې کې دهغې مهر ساقط شی. او ښځه د عاقله نه بيا د خپل مهر مطالبه اوکړی. نو دا اصول مقرر کړې شو. چه ښځې ته به دا حق نه وی. چه د مهر مثل مقدار واپس واخلی. نو د عاقله د ذمې څخه به د مهرمثل مقدار بالکل ساقط شمارلې کيږی. او پاتې شو زيادت، نو په دې اړه کې دا حکم دې. چه ګويا دا زيد د زينب عاقله لپاره وصيت کړې دې. خکه چې دوی نه د زيد وارثان دی. او نه قاتلان دی. نو دوی ددې اهل دی. چه دوی ته وصيت اوکړې شی.

قوله: فَإِنْ كَانَتْ.... بيا که ددې زيادت نه دوې (دوه) ثلثه يا ددې نه زياته ترکه د زيد وی. نو دا زيادت به د وصيت په وجه ساقطيږی. او که نه وی. نو د مذکور پشان به ددې يو ثلث ختميږی. او پاته دوې (دوه) زره به عاقله باندې واجب الاداء وی.

### د صاحبينو رحمهما الله مسلک

وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: رحمهما الله او فرمائيلي دی امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله، كَذٰلِكَ الْجَوَابُ فِيْمَا هم دغه ډول خواب دي په دې صورت کي ، إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى الْيَدِ کله چې سړی د ښځې سره د لاس په عوض نکاح کړې وی ، لِأَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ عَفْوٌ خکه چې لاس معاف کول، هغه شئ هم معاف کول دی عَمَّا يَحْدُثُ مِنْهُ عِنْدَهُمَا کوم چې ددې نه پيدا شی.د صاحبينو رحمهما الله په نيز، فَاتَّفَقَ جَوَابُهُمَا فِي الْفَصْلَيْنِ نو ددوی خواب په دواړو صورتونو کي يو دې.

**تشريح:-** ددې مسئلې په پيل کي مرغيناني رحمه الله فرمائيلي وو ﴿وهذا عند أبي حنيفة رح......﴾ د امام صاحب رحمه الله تخصيص مرغيناني رح خکه کړې وو.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز په دې صورت کي هم هغه حکم دې.کوم چې دوهم صورت کي دې.خکه چې د تفصيل مطابق ددوی په نيز، لاس معاف کاوه نه روستو ښکاره کيدونکی شيان هم معاف کيږی.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز دواړو صورتونو کي يو حکم دې.

### د قصاص اخستلو نه روسته د زخم په وجه د مړکيدو مسئله.او څيني اصطلاحات

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمائيلي دی. (وَمَنْ قُطِعَتْ يَدُهُ) او دچا لاس چې کټ کړې شو فَاقْتَصَّ لَهُ مِنَ الْيَدِ نو هغه لپاره دلاس قصاص واخستلې شو ثُمَّ مَاتَ بيا هغه مړ شو فَإِنَّهُ يُقْتَلُ الْمُقْتَصُّ مِنْهُ (١)نو مقتص منه ( چا نه چې د لاس قصاص اخستلې شوې دې) به قتلولې شی لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ خکه چې ( د مرګ په وجه) دا خبره واضحه شوه أَنَّ الْجِنَايَةَ كَانَتْ قَتْلَ عَمْدٍ چې جنايت قتل عمد وو وَحَقُّ الْمُقْتَصِّ لَهُ الْقَوَدُ او د مقتص له ( چا لپاره چې د لاس قصاص اخستلې شوې دې) حق قصاص وو وَاسْتِيفَاءُ الْقَطْعِ لَا يُوجِبُ سُقُوطَ الْقَوَدِ.او د لاس کټ کاوه وصولی به د قصاص ساقطيدل نه واجبه وی كَمَنْ كَانَ لَهُ الْقَوَدُ لکه هغه سړې چا لپاره چې قصاص وی ، إِذَا اسْتَوْفَى طَرَفَ مَنْ عَلَيْهِ الْقَوَدُ کله چې هغه وصول کړی.د .. من عليه القصاص.. اندام،

**تشريح:-** عثمان د ارشد لاس عمداً کټ کړو.چه ددې په وجه عثمان باندې قصاص د لاس واجب شو.نو د عثمان لاس کټ کړې شو.بيا د ارشد زخم خور شو.او مرګ ته حالت اورسيدو.او ارشد مړ شو.نو اوس به عثمان په قصاص کي قتلولې شی.خکه اوس معلومه شوه.چه د ارشد حق قصاص د نفس ( قود) دې.خکه چې د قتل عمد هم دا موجب دې.او اوس صرف لاس کټ کړې شوې دې.او په لاس کټ کاوه سره قصاص نه ساقطيږی. ددې مثال بالکل داسې دې.چه عثمان ارشد عمداً قتل کړو.چه ددې په وجه عثمان باندې قصاص واجب شو.بيا د ارشد ولی د عثمان مثلاً لاس کټ کړو.نو اوس هم قصاص وصول نشو.او نه قصاص ساقط شو.نو قصاص به اخستلې شی.دغه ډول به دلته کي هم کيږی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يَسْقُطُ حَقُّهُ فِي الْقِصَاصِ چې دده حق به قصاص کي ساقطيږی ، لِأَنَّهُ لَمَّا أَقْدَمَ عَلَى الْقَطْعِ خکه چې کله دې .. من له القصاص.. کټ کاوه ته ور اوړاندې شو فَقَدْ أَبْرَأَهُ عَمَّا وَرَاءَهُ نو ده هغه .. من عليه القصاص.. د کټ کاوه د علاوه نه بری کړو وَنَحْنُ نَقُولُ:او موږ وايو إِنَّمَا أَقْدَمَ عَلَى الْقَطْعِ ظَنًّا مِنْهُ چې دې په کټ کاوه باندې په دې ګمان ور اوړاندې شوې دې أَنَّ حَقَّهُ فِيهِ چې دده حق په کټ کاوه کي دې وَبَعْدَ الْبَرَاءَةِ عَنْهُ تَبَيَّنَ او د متعدی کيدو نه روسته دا خبره ښکاره شوه أَنَّهُ فِي الْقَوَدِ چې دده حق په قصاص کي دې فَلَمْ يَكُنْ مُبْرِئًا دې به قصاص معاف کونکې نه وی بِدُونِ الْعِلْمِ بِهِ نو د قصاص د علم نه بغير.

**تشريح:-** امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه اوس د قصاص اخستلو حق پاتې نشو.خکه چې هر کله د ارشد د لاس په عوض د عثمان لاس کټ کړې شوې وو.نو ګويا ارشد د پاته څيزونو نه، يعنی د متعدی کيدو، او قتل نه عثمان بری کړې وو.او هر کله نې چې بری کړې وو.نو اوس به قصاص نه وی.موږ اووئيل.چه د عثمان لاس خکه کټ

---

(١) القول الراجح هوهذا قول الجمهور كذا فی ردالمحتار(٤٠٠\١٥) وملتقى (٣٣٣\١٤) وكنز(٣٩٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٤\١٢)-



کړې شوې وو.چه اوسه پورې ګمان دا وو.چه حق صرف پرې کول دی.خو اوس د متعدی کيدو نه روستو پته اولګيده.چه د ارشد حق خو قصاص دې.نو معافی به څنګه کيږی.حالانکه اوسه پورې ارشد ته د خپل حق علم هم نه دې شوې.او د حق معلوميدو نه بغير ددې نه معافی څنګه کيدای شی.

**فائده:** د پورتنۍ مسئلې د ښه پوهې لپاره دا څلور اصطلاحات زده کړی:① **مقتص منه:** د چا نه چې قصاص اخستلې شوې وی.② **مقتص له:** د چا لپاره چې قصاص اخستلې شوې وی.③ **من له القود:** د چا لپاره چې قصاص واجب وی.يعنی په غير باندې، ④ **من عليه القصاص:** په چا چې قصاص واجب وی.ددې نه روسته په مسئله پوهه شی:

### د قاتل لاس کټ کولو نه روسته معاف کولو باندې د لاس کټ کولو د قصاص مسئله

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمائيلي دی (وَمَنْ قَتَلَ وَلِيَّهُ عَمْدًا) او د کوم کس ولی چې قصداً قتل کړې شو فَقَطَعَ يَدَ قَاتِلِهِ نو ولی د مقتول، د قاتل لاس کټ کړو. ثُمَّ عَفَا بيا نې معاف کړو وَقَدْ قُضِيَ لَهُ بِالْقِصَاصِ حالانکه دده ( ولی) لپاره د قصاص فيصله شوې وی أَوْ لَمْ يُقْضَ يا فيصله نه وی شوې فَعَلَى قَاطِعِ الْيَدِ دِيَةُ الْيَدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو په لاس کټ کونکی باندې به د لاس ديت واجب وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز

**تشريح:-** عثمان عمداً ارشد قتل کړو.چه ددې په وجه عثمان باندې قصاص واجب دې.او د ارشد خونې ددې وارث دې. چې هغه خالد دې.خالد د قتل په ځائې د عثمان لاس کټ کړو.که د فيصلې نه نې مخکي کټ کړې وی.او که روستو نې کټ کړې وی.او بيا خالد عثمان معاف کړو.نو په دې صورت کي امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه د خالد په ذمه به د عثمان د لاس ديت ورکول لازمی وی.

وَقَالَا: اوصاحبين رحمهما الله فرمايي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ چې په کټ کونکی باندې هيڅ نشته لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى حَقَّهُ خکه چې کټ کونکی خپل حق وصول کړې دې فَلَا يَضْمَنُهُ،نو هغه به ددې ضامن نه وی وَهٰذَا لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ إِتْلَافَ النَّفْسِ او دا (حق وصولول ) خکه چې ولی د نفس هلاکاوه مستحق دې بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا سره د نفس د ټولو اجزاو

**حل اللغة:** ① اتلاف: هلاکول﴾

**تشريح:-** او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه ورکول لازمی نه دی.د دوی دليل دا دې.چه خالد خپل حق وصول کړې دې.په دې کي د ديت څه مطلب دې.که ده هغه په قصاص کي قتل کړې وو.بيا هم جائز وو.او په ده به هيڅ ضمان نه وو.نو دلته به هم ضمان واجب نه وی. صاحبينو رحمهما الله نور شواهد پيش کړی دی.فرمائی.

### د مذکوره صورت په تائيد کښې د صاحبينو رحمهما الله استشهادات

وَلِهٰذَا لَوْ لَمْ يَعْفُ او هم په دې وجه که ولی نه معاف کولو لَا يَضْمَنُهُ،نو ضامن به نه وو وَكَذَا إِذَا سَرَى او هم دغه ډول کله چې خور شی وَمَا بَرَأَ او ټيک نشی أَوْ مَا عَفَا وَمَا سَرَى،يا ده نه معاف کولو،او نه خوريدو أَوْ قَطَعَ يا نې لاس کټ کړې وې ثُمَّ حَزَّ رَقَبَتَهُ بيا نې دده سټ پريکړې وې قَبْلَ الْبُرْءِ ټيک کيدو نه مخکي أَوْ بَعْدَهُ يا ددې نه پس،

**تشريح:-** څلور جزئيات صاحبينو رحمهما الله په استشهاد کي پيش کړی دی.① ولی د لاس کټ کاوه نه روسته معاف نکړو.که زخم خور شی اوکه خور نشی.ضامن به نه وی.② معاف نې نکړو.او زخم خور شو.او مړ شو.دلته به هم ضمان واجب نه وی.③ نه زخم خور شو.او نه ده معاف کړو.دلته به هم ضمان نه وی.④ لاس نې کټ کړو.بيا نې سټ کټ کړو.اوس ټيک شو.يا ټيک شوې نه وی.نو په دې ټولو صورتونو کي به کټ کونکی باندې ضمان نه وی.

وَصَارَ او دا داسې شوه كَمَا إِذَا كَانَ لَهُ قِصَاصٌ فِي الطَّرَفِ لکه چې ولی لپاره اندامونو کي قصاص وی فَقَطَعَ أَصَابِعَهُ نو هغه د مجرم ګوتې کټ کړلې ثُمَّ عَفَا بيا نې معاف کړو ثُمَّ عَفَا لَا يَضْمَنُ الْأَصَابِعَ نو ولی به د ګوتو ضامن نه وی.

**حل اللغة:** ① اصابع: جمع داصبعة، ګوته ② الطرف: اندام﴾

تشريح:- دغه ډول په ذکر شوی صورت کي به هم ديت واجب نه وی. او ددې مثال بعينه داسې دې. چه عثمان د ارشد لاس عمداً کټ کړې وی. چه ددې په وجه عثمان باندې د لاس قصاص واجب وو. خو ارشد د عثمان صرف ګوتې کټ کړلې. او هغه ئې معاف کړو. نو په ارشد به د ګوتو ديت واجب نه وی. دغه ډول به د ذکر شوی صورت حکم هم وی.

## د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې أَنَّهُ اسْتَوْفَى غَيْرَ حَقِّهِ، چې ده د خپل حق غير وصول کړې دې لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْقَتْلِ خکه چې د ولی حق په قتل کي دې وَهَذَا قَطْعٌ وَإِبَانَةٌ او دا پرې کول او جلا کول دی وَكَانَ الْقِيَاسُ أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او قياس دا وو. چه قصاص واجب وی، إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ خو قصاص د شبهٔ په وجه ساقط شو فَإِنَّ لَهُ أَنْ يُتْلِفَهُ تَبَعًا خکه ولی ته حق وو. چه هغه لاس د تبعيت په طريقه هلاك کړې وي وَإِذَا سَقَطَ وَجَبَ الْمَالُ او هرکله چې قصاص ساقط شو. نو مال به واجب وی

تشريح:- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه چونکه د ولی حق قتل وو. پرې کول نه وو. او ده د خپل حق غير وصول کړې دې. نو په ده به د لاس ديت واجب وی. بلکه د قياس تقاضه خو دا وه. چه قصاص واجب شوې وې. خو چونکه ولی ته حق حاصل وو. چه هغه مجرم قتل کړی. او کله ئې چې هغه قتل کړې وې. نو د هغه لاس به هم هلاك شوې وو. په دې وجه دې کي شبه پيدا شوه. او د شبهې په وجه د قصاص په ځائې مال واجب شو. خو د ولی د لاس کټ کاوه په وجه که دا مجرم مړ شی. نو چونکه ولی خپل حق وصول کړې دې. نو په ولی به هيڅ ضمان واجب نه وی.

وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ فِي الْحَالِ او فی الحال به واجب نه وی. (بلکه په لاس بنه کيدو باندې به واجب وی لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَصِيرَ قَتْلًا بِالسِّرَايَةِ خکه احتمال شته. چه پرې کول د خوريدو په وجه قتل اوګرځی فَيَكُونُ مُسْتَوْفِيًا حَقَّهُ نو ولی به د خپل حق وصولونکې شی.

تشريح:- چونکه احتمال شته. چه د لاس پرې کول خپاره شی. او قتل پورې نوبت اورسيږی. په دې وجه به ولی نه فی الحال د لاس ديت نشی وصولولې. بلکه د زخم صحيح کيدو انتظار به کولې شی. که ټيک شو. نو ديت به واجب وی. او که ټيک نشو. بلکه مړ شو. نو واجب به نه وی.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله د دليل تکمله

وَمِلْكُ الْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ ضَرُورِيٌّ او ملك د قصاص په نفس کي ضروری دې لَا يَظْهَرُ نو دا ملك به نه ښکاره کيږی. إِلَّا عِنْدَ الِاسْتِيفَاءِ أَوِ الْعَفْوِ أَوِ الِاعْتِيَاضِ مګر د وصولولو، يا معاف کولو، يا د عوض اخستلو په وخت،

حل اللغة: ① اعتياض: عوض اخستل ② الاستيفاء: وصولول ﴿

تشريح:- دا د امام ابوحنيفه رحمه الله د دليل دويمه برخه ده. ددې حاصل دا دې. چه قاعده مقرر ده. «اَلضرورة تتقدر بقدر الضرورة» چې کوم شی د اړتيا په بناء ثابت وی. هغه د اړتيا حده پورې وی. بيا دا مجرم آزاد دې. او محترم دې. ددې باوجود هم ولی لپاره کوم ملك د قصاص ثابت شوې دې. دا د اړتيا په بناء سره دی. خو چونکه دا ملك د قصاص د اړتيا په بنا (بنياد) دی. په دې وجه به ددې اثبات صرف يو ځائې کي کيږی. کله چې ولی خپل حق وصول کړی. او دده د حق وصولولو درې صورتونه دی: ① قصاص واخلی. ② معاف کړی. ③ ددې عوض واخلی.

لِمَا أَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِيهِ، خکه چې دا (په دې کي هر يو) ملك کي تصرف دې فَأَمَّا قَبْلَ ذَلِكَ لَمْ يَظْهَرْ لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ نو بهر حال ددې نه وړاندې د اړتيا نه کيدو په وجه، به ملك نه ښکاره کيږی بِخِلَافِ مَا إِذَا سَرَى په خلاف ددې صورت کله چې متعدی شی لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ خکه چې دا وصولول دی.

تشريح:- خکه چې دې ټولو صورتونو کي کوم يو هم ولی اختيار کړی. هغه به پخپل ملك کي تصرف وی. نو دا به دده



تصرف معتبر وی. خو چرته چې په دې دريو واړو امورو کي يو هم نه وی. نو هلته به د اړتيا نه کيدو په وجه ملك د قصاص نه ثابتيږی. او دا ضروری امر دې. او هرکله چې ملك د قصاص ثابت نشو. نو په غير حق کي تصرف شو. نو ددې بې ځايه تصرف په وجه به په ده باندې ضمان ورکول واجب وی. او که د لاس پرې کول متعدی شی. او قتل جوړ شی. نو اوس چونکه ده خپل حق وصول کړې دې. نو اوس به په ده باندې هيڅ ضمان واجب نه وی.

## د صاحبينو رحمهما الله د دريم استشهاد جواب

وَأَمَّا إِذَا لَمْ يَعْفُ او بهرحال کله چې ده معاف نکړو وَمَا سَرَى، او نه زخم خور شو قُلْنَا: نو موږ به وايو إِنَّمَا يَتَبَيَّنُ كَوْنُهُ قَطْعًا بِغَيْرِ حَقٍّ بِالْبُرْءِ چې ددې پرې کول د حق نه بغير پرې کول کيدل به ټيک کيدو سره ښکاره کيږی حَتَّى لَوْ قَطَعَ تردې چې ولی لاس کټ کړو وَمَا عَفَا او معاف ئې نکړو وَبَرَأَ او ټيک شو الصَّحِيحُ أَنَّهُ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ نو صحيح دا ده. چه دا صورت اختلافی دې.

تشريح:- ددې ځائې نه علامه مرغينانی رحمه الله د امام ابوحينفه رحمه الله د اړخه د صاحبينو د جزئيات ځوابونه ورکوی او فرمايي چې په څلور جزئياتو په دريم جزء استشهاد صحيح نه دې. دريم جزء دا وو. چه نه ولی معافی اوکړه. او نه زخم خور شو. نو دلته به ديت واجب نه وی. استدلال خکه چې د نه خوريدو مطلب دا دې. چه اوس د زخم پوزيشن (او حالت) کوم رخ اختيار کونکې دې. ددې هيڅ پته نه لګی. خو اوسه پورې زخم ټيک شوې نه دې. ترکومه پورې چې زخم ټيک نشی. نو احتمال شته. چه مجرم ددې زخم په وجه مړ شی. نو بيا به په ولی باندې ضمان نه وی.

لنډيز د کلام دا ده چې ناحق پرې کول به هغه وخت وئيلې شی. چه زخم ټيک شوې وې. او دلته خو ټيک شوې نه دې. البته اوسه پورې دا پرخپاره شوې (خور شوې) نه دې. نو احتمال شته. چه خور شی. په دې وجه به اوس ديت واجب نه وی. نو په دې جزئې سره استدلال صحيح پاتې نشو. ګنی که مجرم د ولی لاس کټ کړی. او هغه معاف کړې هم نه وی. او زخم ټيک شوې وی. نو امام صاحب رحمه الله دلته هم ديت واجبه وی. لنډيز د کلام دا چې دريمې جزئيه سره استدلال ټيک نه دې.

## د څلورم اوپنځم استشهاد جواب

وَإِذَا قَطَعَ او کله چې ولی لاس کټ کړې وی ثُمَّ حَزَّ رَقَبَتَهُ قَبْلَ الْبُرْءِ بيا د ټيک کيدو نه وړاندې ئې دده سټ کټ کړې وی. فَهُوَ اسْتِيفَاءٌ نو دا استيفاء ده وَلَوْ حَزَّ بَعْدَ الْبُرْءِ او که د ټيک کيدو نه روسته ئې کټ کړې وی فَهُوَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ نو هم په دې اختلاف (مبنی) دې أَنْ هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده وَالْأَصَابِعُ وَإِنْ كَانَتْ تَابِعَةً قِيَامًا بِالْكَفِّ او ګوتې د قيام او حصول په اعتبار سره اګرچه د تلی تابع دی. فَالْكَفُّ تَابِعَةٌ لَهَا نو تلې د ګوتو تابع دې غَرَضًا د غرض په لحاظ سره بِخِلَافِ الطَّرَفِ په خلاف د اندامونو، لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لِلنَّفْسِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ خکه چې دا (اندامونه) هر اعتبار سره د نفس تابع دی.

تشريح:- دغه ډول علامه مرغينانی رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه د صاحبينود څلورمې جزئې د استدلال نه ځواب کوی او فرمايي چې دڅلورمې جزئې نه مطلقاً استدلال هم صحيح نه دې. خکه چې دا تفصيل غواړی. که ولی د لاس کټ کاوه نه پس، د صحيح کيدو نه وړاندې دده سټ کټ کړې وی. نو دلته به ديت واجب نه وی. خکه چې ولی خپل حق وصول کړې دې. خو که د ټيک کيدو نه روستو ئې سټ کټ کړې وی. نو امام صاحب رحمه الله دلته هم دغه فرمائی. چه ديت به واجب وی. نو په دې سره به استدلال صحيح نه وی.

دغه ډول د صاحبينو رحمهما الله د پنځمې جزئې نه ځواب کوی او فرمايي چې هغه استدلال هم صحيح نه دې. خکه چې يو اعتبار سره ګوتې د تلی تابع دی. او په يو اعتبار سره تهلې د ګوتو تابع دې. د ړومبی تابع کيدل په دې وجه دی. چه د تهلی نه بغير د ګوتو قيام نه کيږی. او تهلې خکه تابع دې. چه د ګوتو نه بغير په تهلی سره څه نشی نيولې کيدې. نو هرکله چې يو اعتبار سره ګوتې متبوع شوې. نو د ګوتو په کټ کاوه سره به حق حاصل شی. خو په لاس کټ کاوه سره به د نفس قصاص نه حاصليږی. خکه چې لاس خو په هر اعتبار سره د نفس تابع دې. او د تابع تحصيل د متبوع تحصل نه وی. البته د متبوع تحصيل د تابع تحصيل وی.

## په قصاص کښې د لاس کټ کولو د زخم په وجه د مړکیدو مسئله

قَالَ: امام محمد رحمه الله په مبسوط کي فرمائیلي دي (وَمَنْ لَهُ الْقِصَاصُ فِي الطَّرَفِ او چا لپاره چې اندام کي قصاص وي. إِذَا اسْتَوْفَاهُ هرکله چې هغه دا وصول کړو ثُمَّ سَرَى إِلَى النَّفْسِ بيا زخم نفس ارخ ته خور شو وَمَاتَ او دې مړ شو يَضْمَنُ دِيَةَ النَّفْسِ نو هغه ،، من له القصاص فی الطرف،، به ضامن وی.د نفس د دیت، عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز،

تشریح:- دا مسئله په هدایه کي ذکر نه ده.بلکه دا د مبسوط عبارت دې.مسئله دا ده.چه زید د بکر لاس عمداً کټ کړو.چه ددې په وجه زید باندې د لاس قصاص واجب شو.اوس بکر په قصاص دده لاس کټ کړو.خو د زید دا زخم خور شو.چه په دې سره زید مړ شو.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به په بکر دیت واجب وی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به دیت واجب نه وی.د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه بکر خپل حق وصول کړې دې.او دا حق وصولول دده لپاره جائز دی.نو د بکر د ارخه هیڅ تعدی او نه موندې شوه.

وَقَالَا: لَا يَضْمَنُ او فرمایي صاحبین رحمهما الله چې ضامن به نه وی لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى حَقَّهُ ځکه چې ده ،، من له القصاص،، خپل حق وصول کړې دې وَهُوَ الْقَطْعُ، او هغه حق لاس پرې کول دی وَلَا يُمْكِنُ التَّقْيِيدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ او د سلامتیا صفت سره مقید کول ممکن نه دی لِمَا فِيهِ مِنْ سَدِّ بَابِ الْقِصَاصِ. په دې وجه چې دې تقیید کي د قصاص دروازه بندول دی إِذِ الْاِحْتِرَازُ عَنِ السِّرَايَةِ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ ځکه چې د خوریدو (او متعدی کیدو) نه ځان بچ کول دده په وس کي نه دی فَصَارَ كَالْإِمَامِ وَالْبَزَّاغِ وَالْحَجَّامِ نو د امام پشان، او د ستن (انجکش) لګونکی، او د ښکر لګونکی پشان شو وَالْمَأْمُورِ بِقَطْعِ الْيَدِ او د هغه کس پشان شو.چا ته چې د لاس کټ کاوه حکم ورکړې شوې وی.

حل اللغة: ① البزاغ: ستن لګونکې ② الحجام: ښکرلګونکې﴿

تشریح:- بیا په صاحبینو رحمهما الله باندې یو اعتراض کیدو هغه دا چې د د بکر حق خو صرف لاس پرې کول وو.او دلته دې مړ شوې دې.نو صاحبینو رحمهما الله ددې دا ځواب ورکړې دې.چه دلته دا قید لګول چې زید صحیح سلامت پاتې شی.او په لاس کټ کاوه سره مړ نشی.دا داسې قید دې.چه په دې سره به د قصاص دروازه بنده شی.ځکه چې دا خبره د بکر په وس کي د سره شته هم نه.نو ددې مکلف جوړول به هم ممکن نه وی.او ددې مثالونه دا څلور جزئیات دی:.

① امام یا دده نائب د یو مجرم لاس کټ کړو.او زخم خور شو.او مجرم مړ شو.نو په امام به هیڅ ضمان نه وی.
② نشتر لګونکی نشتر(انجکشن) اولګولو.چه ددې په وجه زخم خور شو.او سړې مړ شو.نو په ده به ضمان نه وی.
③ ښکر لګونکی (حجام) ښکر اولګولو.چه په دې سره سړې مړ شو.نو په ښکر لګونکی به هیڅ ضمان نه وی.
④ یو مریض ډاکټر ته اوونیل.چه زما د لاس اپریشن اوکړه.هغه اپریشن اوکړو.چه په دې سره مریض مړشو.نو په ډاکټر به هیڅ ضمان نه وی.نو لکه څنګه چې په دې ټولو صورتونو کي ضمان نه راځی.دغه ډول به په ذکر شوی صورت کي هم ضمان نه وی.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلَهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. أَنَّهُ قَتَلَ بِغَيْرِ حَقٍّ چې ،، من له القصاص،، (هغه لره) د حق نه بغیر قتل کړو دې لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْقَطْعِ ځکه چې دده حق په کټ کاوه کي وَهٰذَا وَقَعَ قَتْلًا او دا قتل واقع شو وَلِهٰذَا لَوْ وَقَعَ ظُلْمًا او په دې وجه که دا لاس پرې کول په ظلم سره وې كَانَ قَتْلًا نو دا به قتل وو وَلِأَنَّهُ او ځکه دا داسې زخم دې جُرْحٌ أَفْضَى إِلَى فَوَاتِ الْحَيَاةِ فِي مَجْرَى الْعَادَةِ چې دا په عامه توګه (عام طور) باندې د ژوند فوت کاوه پورې مفضی کیږی وَهُوَ مُسَمَّى الْقَتْلِ، او هم دا د قتل مسمی ده. (یعنی دې ته قتل ونیلې شی). إِلَّا أَنَّ الْقِصَاصَ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ خو د شبهې په وجه خو قصاص ساقط شو فَوَجَبَ الْمَالُ نو مال به واجب وی.



حل اللغة: ① جرح: زخم ② افضی: سرایت ئې اوکړو﴿

تشریح:- دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.چه چونکه دلته د حقدار حق لاس پرې کول وو.او هغه قتل اوکړو .نو هغه دا کار ناحقه اوکړو.په دې وجه به هغه ددې ضامن وی.او ددې دیت به په هغه واجب وی.ځکه که یوکس په ظلم سره د چا لاس کټ کړو.او دا زخم خور شی.نو اوس دا پرې کول نه دی.بلکه دې ته به قتل ونیلې شی.او په ده به د قتل احکام جاری کیږی.او د زخم نه د سړی مرګ د عادت خلاف نه دی.بلکه داسې کیږی.چه د سخت زخم په وجه سړې مړ کیږی.او په کوم زخم سره چې په عامه توګه (عام طور) باندې مړ کیږی.هم هغې ته قتل وائی.نو په ده به د قتل احکام جاری کیږی.بلکه په دې صورت کي.خو قصاص واجبیدل پکار دی.خو ددې شبهې په وجه قصاص ساقط شو.نو مال به واجب وی.او دکومو جزئیاتو نه چې صاحبینو رحمهما الله استدلال کړې دې.د هغې نه استدلال صحیح نه دې.ځکه چې په دې ټولو صورتونو کي کټ کونکې مکلف او مامور دې.اود مامور په فعل کي سلامتیا ضروری نه ده.

بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَا بِهِ مِنَ الْمَسَائِلِ په خلاف د هغه مسئلو دکومو نه چې صاحبینو رحمهما الله استشهاد کړې دې. لِأَنَّهُ مُكَلَّفٌ فِيهَا بِالْفِعْلِ، ځکه چې دغه (مسئلو) کي فاعل د فعل مکلف دې إِمَّا تَقَلُّدًا ایا په بناء دخلافت او حکومت كَالْإِمَامِ لکه امام أَوْ عَقْدًا ایا په بناء د عقد اجاره كَمَا فِي غَيْرِهِ مِنْهَا لکه چې ددې نه علاوه نورو مسئلو کي دی. وَالْوَاجِبَاتُ لَا تَتَقَيَّدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ او واجبات د سلامتیا په صفت سره نه متصف کیږی. كَالرَّمْيِ إِلَى الْحَرْبِيِّ لکه حربی ارخ ته غشې ویشتل،

تشریح:- او په دې څلورو کي ړومبی (صورت) کي مامور کیدل د شریعت د ارخه دی.ځکه چې هغه بادشاه دې.او په آخری دریو کي مامور کیدل دعقد اجاره په وجه دی.او چرته چې سړې مامور وی.نو د هغه فعل د سلامتیا صفت سره نه مقید کیږی.لکه مثلاً مجاهدینو په حربی کافرانو باندې غشی او ورول،او هغوی کي څوک مسلمان هم شته.چه هغه په غشی اولګیدو،او مړ شو.نو په مجاهدینو به د هغه ضمان واجب نه وی.ځکه چې دوی شرعاً د جهاد مامور دی.

وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ او مورږ هم په دې مسئله کي یو لَا الْتِزَامَ ځکه چې نه التزام شته. وَلَا وُجُوبَ، او نه وجوب شته. إِذْ هُوَ مَنْدُوبٌ إِلَى الْعَفْوِ ځکه چې دې معاف کول مندوب (او جائز) دی فَيَكُونُ مِنْ بَابِ الْإِطْلَاقِ نو دا د اطلاق د باب څنې شو فَأَشْبَهَ الْاِصْطِيَادَ وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو دا دښکار مشابه شو.

تشریح:- او په کومه مسئله کي چې مورږ بحث کوو.هلته نه شرعاً وجوب شته.او نه التزام شته.دلته معاف کول جائز دی.د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ نو دلته به پرې کول اطلاق او جواز سره وی.وجوب سره به نه وی.او د اخلاقاتو لپاره ضروری ده.چه دا په سلامتیا سره مقید وی.او دا داسې شوه .لکه مثلاً ښکار کول جائز دی.او ښکار ئې کولو.او په ګولۍ د ښکار په ځائې انسان اولګیدو.نو دیت به واجب وی.﴿وقد مر فی کتاب الحدود مفصلا﴾ بزاغ: څارو ته انجکشن لګونکې.

## باب الشهادة في القتل

ژباړه:- (دا) باب په قتل کي د ګواهۍ (ور کاوه په بیان کي) دې.

تشریح:- ډیر وخته د قتل تحقق شوې وی.خو قاتل ددې نه انکار کوی.نو د ګواهانو په ذریعه د قتل د اثبات حاجت راپیښیږی.په دې وجه ئې دا باب جلا بیان کړو.په نورو الفاظو کي داسې چې ډیر ځله د شهادت اړتیا راپیښیږی.نو ،، شهادت فی القتل،، د قتل متعلق دې.نو د متعلق د ذکر نه روسته دا د متعلق ذکردې.او چونکه د متعلق درجه او مرتبه د متعلق نه کښته وی.په دې وجه ئې متعلق د متعلق نه روستو ذکر کړې دې.

### یو څوی ګواهانو سره قاتل کیدل ثابت کړل.نو دوهم څوې به قاتل کیدل ثابتوی اوکه نه؟

قَالَ: امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي **(وَمَنْ قُتِلَ)** او كوم سړي چې قتل كړي شو **وَلَهُ ابْنَانِ** او د هغه دوې (دوه) خامن دي. **حَاضِرٌ وَغَائِبٌ** يو حاضر دي او دوهم غائب دي **فَأَقَامَ الْحَاضِرُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْقَتْلِ** نو حاضر په قتل باندې ګواهان قائم كړل **ثُمَّ قَدِمَ الْغَائِبُ** بيا غائب راغې **فَإِنَّهُ يُعِيدُ الْبَيِّنَةَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (۱) نو هغه به دوباره ګواهان قائموي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشريح:-** عثمان عمداً ارشد قتل كړو. او د ارشد دوې (دوه) خامن دي. يو خالد دې. او دوهم ساجد دې. خالد دلته كې موجود دى. او ساجد چرته بهر په سفر باندې تلې دې. خالد اوغوښتل. چه بينه قائم كړم. او د ساجد په غير موجودګۍ كې د عثمان نه قصاص واخلم. نو خالد داسې نشي كولې. بلكه د ساجد انتظار به كولې شي. چه هغه هم راشي. او ګواهان قائم كړي. نو بيا به قاضي د قصاص فيصله جاري كوي. نو ددې مطلب دا شو. چه قاضي به د خالد ګواهان قبلوي. خو د قصاص فيصله به بالاجماع نه كوي. او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دې.

**وَقَالَا:** او صاحبين رحمهما الله فرمايي كوي **لَا يُعِيدُ (وَإِنْ كَانَ خَطَأً)** چې اعاده به نشي كولې. او كه قتل خطاء وي **لَمْ يُعِدْهَا بِالْإِجْمَاعِ** نو غائب به بالاجماع د ګواهانو اعاده نه **وَكَذَلِكَ الدَّيْنُ يَكُونُ لِأَبِيهِمَا عَلَى آخَرَ** او دغه ډول قرضه ده. كوم چې په بل باندې دده د پلار وي.

**تشريح:-** او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه اوس ساجد لپاره دوباره دګواهانو قائمولو اړتيا نشته. بلكه د هغه د راتلو نه روسته د دوباره ګواهانو قائمولو نه بغير به قاضي د قصاص فيصله كوي. او د عثمان د متهم كيدو په وجه به دې بالاجماع په قيد كې ساتي. او كه عثمان ارشد په خطاء سره قتل كړې وي. او خالد بينه قائم كړل. نو اوس به بالاجماع ساجد لپاره د دوباره ګواهانو قائمولو حاجت نه وي.

دغه ډول په يوكس باندې د ارشد مرحوم پور دې. او خالد ددې پور ثابتولو لپاره ګواهان قائم كړل. نو بيا به هم بالاجماع اوس ساجد ته د ګواهانو قائمولو اړتيا نه وي. نو د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله مذكوره اختلاف د قتل عمد په صورت كې دې. اوس په دې باندې د فريقينو دليلونه واورئ.

### د صاحبينو رحمهما الله دليل

**لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ** په اختلافي مسئله كې د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې **الْقِصَاصَ طَرِيقُهُ طَرِيقُ الْوِرَاثَةِ كَالدَّيْنِ،** چې د قصاص طريقه د وراثت طريقه ده. د پور پشان، **وَهَذَا لِأَنَّهُ عِوَضٌ عَنْ نَفْسِهِ** او دا ځكه چې قصاص د مقتول د نفس عوض دې. **فَيَكُونُ الْمِلْكُ فِيهِ لِمَنْ** نو په قصاص كې به هم دده ملكيت وي. **لَهُ الْمِلْكُ فِي الْمُعَوَّضِ** چې دده ملكيت په معوض (نفس) كې دې **كَمَا فِي الدِّيَةِ،** لكه څنګه چې ديت كې دې **وَلِهَذَا لَوِ انْقَلَبَ مَالًا** او هم په دې وجه كه قصاص مال سره بدل شو **يَكُونُ لِلْمَيِّتِ،** نو مال به د مړي لپاره وي **وَلِهَذَا يَسْقُطُ بِعَفْوِهِ بَعْدَ الْجُرْحِ قَبْلَ الْمَوْتِ** او هم په دې وجه د زخم نه روسته د مرګ نه مخكې د مړي په معاف كاوه سره قصاص معاف كيږي **فَيَنْتَصِبُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِينَ** نو د پاتـه د اړخه به وارثانو كې يو كس خصم قائم پاتې كيږي

**تشريح:-** د وارثانو لپاره چې كوم حق ثابتيږي. د هغې دوې (دوه) قسمونه دي: ① طريقه د وراثت ② طريقه د خلافت د اولې طريقې مطلب دا دې. چه دا حق مخكې د مورث لپاره ثابت دې. او بيا به پوره پوره دا حق هر وراث ته حاصليږي. د دويمې مطلب دا دې. چه د مورث ملك ثابتيدو نه بغير د وارثانو ملكيت ثابت شو. او اصول كلي دا دې. چه د وارثانو ملكيت كوم ځاې په طريقه د وراثت وي. هلته وارثانو كې هر يو په خصومت كې د كل (د ټولو) قائم مقام شمارلې كيږي. او په پاتـه كې هر يو د وارثانو د اړخه خصم جوړيدې شي. او په خلافت كې وارثانو كې يوكس د نورو وارثانو د اړخه خصم نشي جوړيدې.

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في شرح العيني على الكنز (۲۴۳/۲) وملتقى (۳۳۴/۴، ۳۳۵) وكنز الدقائق (۳۹۶) الهندية (۱۶/۶) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۶/۲)-



هر كله چې دا تفصيل ذهن كې كيناستو. نو خبره بالكل اسانه شوه. چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز اصول دا دې. چه د وارثانو لپاره د قصاص دملك ثبوت د وراثت په طريقه دې. نو يو وارث د نورو د اړخه خصم كيداې شي. او هر كله چې خصم كيداې شي. نو د دوباره ګواهانو قائمولو حاجت پاتې نشو.

او د وراثت د طريقې دليل دا دې. چه قتال خو په حقيقت كې د مقتول د نفس عوض دې. نو په نفس كې چې دچا حق وو. د هغې په عوض به قصاص كې هم د هغه حق وي. لكه څنګه چې ديت كې هم دا حكم دې. چه دا په طريقه د وراثت دې. هم په دې اصول سره. او لكه څنګه چې د پور هم دا حال دې. چه مخكې دا د مړي حق وي. بيا په طريقه د وراثت دا حق وارثانو لپاره ثابتيږي. او كه قصاص د صلح وغيره په وجه مال جوړ شي. نو بيا هم په دې كې ړومبې د مړي حق ثابتيږي. او بيا دا د وراثت په طريقه وارثانو لپاره ثابتيږي. او په طريقه د وراثت ثابتيدو دا هم ښكاره دليل دې. كه مړي د زخمي كيدو نه روسته د مرګ نه وړاندې قاتل معاف كړو. نو قصاص به ساقطيږي. دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دې.

### د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

**وَلَهُ** او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې **الْقِصَاصَ طَرِيقُهُ الْخِلَافَةُ** چې قصاص، نو د قصاص طريقه، طريقه د خلافت ده **دُونَ الْوِرَاثَةِ،** د وراثت نه ده **أَلَا تَرَى** آيا ته نه ګورې! **أَنَّ مِلْكَ الْقِصَاصِ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ** چې ملك د قصاص مرګ نه روسته ثابتيږي **وَالْمَيِّتُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ،** او مړې د ملك قصاص اهل نه دې **بِخِلَافِ الدَّيْنِ وَالدِّيَةِ** په خلاف د دين او ديت، **لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْمِلْكِ فِي الْأَمْوَالِ،** ځكه چې مړې په مالونو كې د ملك د اهل ځنې دې **كَمَا إِذَا نَصَبَ شَبَكَةً** لكه (مثلاً) د يوښكار لپاره ئې جال اولګولو **فَتَعَلَّقَ بِهَا صَيْدٌ بَعْدَ مَوْتِهِ** او دده د مرګ نه روسته په دې كې ښكار راګير شو **فَإِنَّهُ يَمْلِكُهُ،** نو مړې به ددې ښكار مالك وي **وَإِذَا كَانَ طَرِيقُهُ الْإِثْبَاتِ ابْتِدَاءً** او هر كله چې د قصاص طريق په پيل كې (وارثانو دپاره) اثبات دې **لَا يَنْتَصِبُ أَحَدُهُمْ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِينَ** نو په دې كې به هيڅ څوك د پاتـه (وارثانو) لپاره خصم نه وي **فَيُعِيدُ الْبَيِّنَةَ بَعْدَ حُضُورِهِ.** نو غائب به د خپل حاضريدو نه روسته دګواهانو اعاده كوي.

**تشريح:-** دا د امام صاحب رحمه الله دليل دې. چه قصاص خلافت دې. وراثت نه دې. او د خلافت اصول دا دې. چه په دې كې يو وارث د نورو وارثانو د اړخه خصم نشي كيدې. نو ساجد له به د حاضريدو نه روسته دوباره دګواهانو قائمول ضروري وي. او ددې وجه دا ده. چه ملك د قصاص د مالونو ملك نه دې. بلكه ملك د فعل دې. او مړې ددې خو اهل دې. چه هغه د مالونو مالك جوړ شي. او ددې اهل نه دې. چه هغه د افعالو مالك شي.

نو ملك د قصاص داسې فعل دې. چه ددې ثبوت د مرګ نه روسته كيږي. په دې وجه به مړې ددې اهل نه وي. چه هغه د قصاص مالك جوړ شي. البته دين او ديت چونكه مال دى. په دې وجه به مړې ددې مالك وي. او په دې كې به د وراثت ملكيت په طريقه د وراثت وي. او مړې د مالونو مالك كيداې شي. ددې دليل دا دې. كه بكر د ښكار لپاره جال اولګولو. او دده د مرګ نه روسته جال كې ښكار ګير شو. نو بكر به ددې ښكار مالك وي.

### د قاتل ګواهانو سره د ځان معاف كول ثابتول. او د قصاص حكم

**فَإِنْ كَانَ أَقَامَ الْقَاتِلُ الْبَيِّنَةَ** نو كه قاتل بينه قائم كړل **الْغَائِبَ قَدْ عَفَا** چې غائب معاف كړې دې **فَالشَّاهِدُ خَصْمٌ** نو حاضر (خالد) به خصم وي **وَيَسْقُطُ الْقِصَاصُ** او قصاص به ساقطيږي **لِأَنَّهُ ادَّعَى عَلَى الْحَاضِرِ سُقُوطَ حَقِّهِ فِي الْقِصَاصِ** ځكه چې قاتل د حاضر د حق ساقطيدو دعوه كړې ده په قصاص كې **إِلَى مَالٍ،** د مال په طرف، **وَلَا يُمْكِنُهُ إِثْبَاتُهُ** او قاتل له ددې دعوې ثابتول ممكن نه دى **إِلَّا بِإِثْبَاتِ الْعَفْوِ مِنَ الْغَائِبِ** خو د غائب د اړخه د معاف كاوه ثابتولو سره **فَيَنْتَصِبُ الْحَاضِرُ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ** نو حاضر به د غائب د اړخه خصم جوړيږي **وَكَذَلِكَ عَبْدٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ** او هم دغه ډول غلام كوم چې د دوو سړو په منځ كې (مشترك) وي **قُتِلَ عَمْدًا** چې دا عمداً قتل كړې شوې وي **وَأَحَدُ الرَّجُلَيْنِ غَائِبٌ** او په دواړو سړو كې يو كس غائب وي **فَهُوَ عَلَى هَذَا** نو دا هم په دې اختلاف (مبني) دې **لِمَا بَيَّنَّاهُ** د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشریح:- او که هم دا ړومبې صورت وی.او زید ( قاتل) دعوه اوکړی.او په دلیل او ګواهانو سره دا ثابته کړی. ساجد زه معاف کړې یم.نو خالد به د ساجد د اړخه خصم شمارلې کیږی.او کومه فیصله چې په خالد باندې کیږی.هغه به په ساجد باندې هم شمارلې کیږی.او قصاص به ساقطیږی.او دیت به راځی.نو که ساجد د حاضریدو نه روسته د معافئ انکار اوکړو.نو اوس به پخپل حال دیت واجب وی.چه دا به د خالد او ساجد په منځ کې نیم په نیمه وی.

۲ اوکه دخالد او ساجد مشترك غلام وی.چه دا چا قتل کړو.او خالد په قتل باندې ګواهان قائم کړل.نو امام صاحب پخپل اصول او صاحبین رحمهما الله پخپل اصول باندې دی... کمامر.، اوکه قاتل په ګواهانو دا ثابته کړله.چه ساجد زه معاف کړې یم.نو ددې حکم هم دا دې.کوم چې ذکر شو.

۳ پاتې شوه د خالد د ساجد د اړخه خصم جوړیدل نو دا ځکه دی چې زید دا دعوه کوی.چه د خالد حق د قصاص نه منتقل شوې دې.او مال جوړ شوې دې.او دا هغه وخت کیدای شی.کله چې زید دا ثابته کړی.چه ساجد زه معاف کړې یم.نو د مجبورئ په بناء خالد د ساجد د اړخه خصم اومنلې شو.او د خالد په موجودګئ کې د زید ګواهان قبول کړې شو.

**په دریم ولی باندې د دوو اولیاؤ د معاف کولو ګواهی ورکولو حکم**

قَالَ: سامام محمد رحمه الله فرمائیلی دی (فَإِنْ كَانَ الْأَوْلِيَاءُ ثَلَاثَةً نو که اولیاء درې وی فَشَهِدَ اثْنَانِ مِنْهُمْ عَلَى الْآخَرِ نو په دوی کې دوو په بل ( دریم ) باندې ګواهی ورکړله أَنَّهُ قَدْ عَفَا چې هغه معاف کړې دې فَشَهَادَتُهُمَا بَاطِلَةٌ نو ددوی دواړو شهادت باطل دې وَهُوَ عَفْوٌ مِنْهُمَا او دا معافی به ددوی دواړو د اړخه وی لِأَنَّهُمَا يَجُرَّانِ بِشَهَادَتِهِمَا إِلَى أَنْفُسِهِمَا مَغْنَمًا ځکه چې دا دواړه پخپل شهادت سره خپل ځان اړخ ته غنیمت راکاګی وَهُوَ انْقِلَابُ الْقَوَدِ مَالًا او دا د قصاص د مال نه ګرځیدل ( اوختل) دی

تشریح:- زید عمداً بکر قتل کړو.خو دلته دده درې خامن دی.خالد، ساجد، او عثمان.خالد او ساجد دواړو ګواهی ورکړله.چه عثمان خپل حق معاف کړې دې.نو دا امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه د خالد او ساجد ګواهی به باطل وی.او معافی به دخالد او ساجد د اړخه شمارلې کیږی.ځکه ددوی دواړو مقصد دا دې.چه موږ ته به په داسې کاوه سره د قصاص په ځانې مال ملاو شی.

**قاتل د دواړو تصدیق اوکړو، نو د دیت د وېش مسئله**

فَإِنْ صَدَّقَهُمَا الْقَاتِلُ نو که قاتل ددوی دواړو تصدیق اوکړو فَالدِّيَةُ بَيْنَهُمْ أَثْلَاثًا نو دیت به ددوی تولو په منځ کې درې برخې کیږی مَعْنَاهُ إِذَا صَدَّقَهُمَا وَحْدَهُ، ددې مطلب دا دې.چه ددوی دواړو تصدیق یواځې قاتل کړې وی لِأَنَّهُ لَمَّا صَدَّقَهُمَا ځکه چې هرکله قاتل ددوی دواړو تصدیق اوکړو فَقَدْ أَقَرَّ بِثُلُثَيِ الدِّيَةِ لَهُمَا نو قاتل ددوی دواړو لپاره د دوې (دوه) ثلثه دیت اقرار اوکړو فَصَحَّ إِقْرَارُهُ، نو دده اقرار صحیح دې إِلَّا أَنَّهُ يَدَّعِي سُقُوطَ حَقِّ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ خو قاتل د مشهود علیه(عثمان)دحق ساقطیدودعوه کوی وَهُوَ يُنْكِرُ حالانکه هغه (عثمان) انکار کوی فَلَا يُصَدَّقُ نو د قاتل تصدیق به نشی کولې وَيَغْرَمُ نَصِيبَهُ او قاتل به دده (عثمان) د برخې ضامن وی

تشریح:- ددوی دواړو تصدیق صرف زید ( قاتل) اوکړو.نو په دې صورت کې به دوی دریو واړو ته پوره دیت ملاویږی.او هر یو ته به د دیت ثلث (۱\۳) ملاویږی.ځکه چې هرکله زید ( قاتل) ددوی دواړو تصدیق اوکړو.نو ګویا ددوی لپاره ئې د دوې (دوه) ثلثه دیت اقرار اوکړو.نو د زید دا اقرار صحیح دې. خو زید ورسره د خپل تصدیق په وجه سره) دا دعوه هم کوی.چه د عثمان حق ساقط شو.ځکه چې هغه معاف کړې دې.حالانکه عثمان د معاف کاوه نه انکار کوی.نو په دې کې به د زید قول معتبر نه وی.دده (عثمان) د برخې دیت به هم په ده باندې واجب وی.

**که قاتل د دواړو تکذیب اوکړو.نو د دیت د وېش صورت**



وَإِنْ كَذَّبَهُمَا او که (عثمان) ددوی دواړو تکذیب کړې وی فَلَا شَيْءَ لَهُمَا نو ددوی دواړو لپاره به هیڅ نه وی وَلِلْآخَرِ ثُلُثُ الدِّيَةِ او د دوهم (عثمان) لپاره دریمه برخه دیت دې وَمَعْنَاهُ إِذَا كَذَّبَهُمَا الْقَاتِلُ أَيْضًا، ددې مطلب دا دې.کله چې قاتل هم ددوی دواړو تکذیب کړې وی وَهَذَا لِأَنَّهُمَا أَقَرَّا عَلَى أَنْفُسِهِمَا بِسُقُوطِ الْقِصَاصِ او دا ځکه چې دوی دواړو پخپلو نفسونو باندې د قصاص ساقطیدو اقرار کړې دې فَقُبِلَ نو دا اقرار به مقبول وی وَادَّعَيَا انْقِلَابَ نَصِيبِهِمَا مَالًا او دوی دواړو د خپلې برخې دمال نه د ګرځیدو دعوه کړې ده فَلَا يُقْبَلُ نو دا اقرار به نه قبلیږی إِلَّا بِحُجَّةٍ، خو د حجت په وجه، وَيَنْقَلِبُ نَصِيبُ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ مَالًا او د مشهود علیه برخه به په مال سره بدلیږی. لِأَنَّ دَعْوَاهُمَا الْعَفْوَ عَلَيْهِ ځکه چې ددوی دواړو په مشهود علیه باندې د معافئ دعوه کول، وَهُوَ يُنْكِرُ سحالانکه هغه منکر دې بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ الْعَفْوِ مِنْهُمَا فِي حَقِّ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ، د مشهود علیه په حق کې ددوی دواړو د اړخه د پیل نه د معافئ په مرتبه کې دې لِأَنَّ سُقُوطَ الْقَوَدِ مُضَافٌ إِلَيْهِمَا ځکه چې قصاص ساقطیدل هم دوی دواړو په اړخ مضاف دی.

تشریح:- زید او عثمان دواړو ددوی تکذیب اوکړو.نو اوس به دوی دواړو ته هیڅ نه ملاویږی.او صرف عثمان ته به د دیت ثلث (۱\۳) ملاویږی.ځکه چې خالد او ساجد دواړو دا اقرار کړې وو.چه زموږ د قصاص حق ختم شوې دې.نو ددوی دا اقرار به خو معتبر وی.او ور سره ددوی دا دعوه هم ده.چه زموږ حق په مال سره بدل شو.نو ددوی دا دعوه به نه قبلیږی .البته که دوی په حجت ( او دلیل) سره دا ثابته کړی.نو دعوه قبلیدې شی.خو عثمان ته به دده د برخې مال ملاویږی.ځکه چې د قصاص ساقطیدو اضافت خالد او ساجد اړخ ته دې.نو دوی دواړو چې دا دعوه کړې ده.چه عثمان معاف کړې دې.حالانکه عثمان منکردې.دا داسې شوه.ګویا چې خالد او ساجد د پیل نه خپل حق معاف کړې دی.نو ددوی دواړو حق ساقط شو.او صرف د عثمان حق پاته پاتې شو.

وَإِنْ صَدَّقَهُمَا الْمَشْهُودُ عَلَيْهِ وَحْدَهُ او که یواځې مشهود علیه ددوی دواړو تصدیق کړې وی غَرِمَ الْقَاتِلُ ثُلُثَ الدِّيَةِ لِلْمَشْهُودِ عَلَيْهِ نو قاتل به مشهود علیه لپاره د دریمې برخې دیت ضامن وی وجه لِإِقْرَارِهِ د قتل د اقرار کاوه په لَهُ بِذَلِكَ د مشهود علیه لپاره دده، ( د ثلث دیت

تشریح:- عثمان ددوی دواړو تصدیق اوکړو.او قاتل تکذیب اوکړو.نو دوی دواړو ته به هیڅ نه ملاویږی.البته صرف عثمان ته به د دیت ثلث ملاویږی.بیا به دا ثلث دوی دواړه د عثمان نه اخلی.ځکه چې هرکله قاتل د عثمان په تصدیق کې موافقت اونکړو.نو قاتل به پخپل اقرار کې پخپله ګرفتاریږی.او ثلث دیت به هغه ته ورکول ضروری وی.

**د ګواهانو د یو بل سره خلاف په وهلو.د ناروغتیا او د مرګ ګواهئ ورکولو سره د قصاص حکم**

قَالَ: امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی (وَإِذَا شَهِدَ الشُّهُودُ أَنَّهُ ضَرَبَهُ او کله چې ګواهانو ګواهی ورکړله.چه قاتل دې اووهلو فَلَمْ يَزَلْ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو وهلې شوې پیوسته په بستره پروت ( مریض) وو حَتَّى مَاتَ تردې چې مړ شو فَعَلَيْهِ الْقَوَدُ نو په ده قصاص شته إِذَا كَانَ عَمْدًا کله چې دا عمداً وی. لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالشَّهَادَةِ ځکه چې کوم شئ شهادت سره ثابت وی كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً هغه داسې دې.لکه چې معاینتاً (او په کتلو) سره ثابت وی. وَفِي ذَلِكَ الْقِصَاصُ او په دې صورت کې قصاص دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې وَالشَّهَادَةُ عَلَى قَتْلِ الْعَمْدِ تَتَحَقَّقُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ، او په دې طریقه به قتل عمد باندې شهادت متحقق ( او ثابت) شی لِأَنَّ الْمَوْتَ بِسَبَبِ الضَّرْبِ إِنَّمَا يُعْرَفُ ځکه چې د وهلو په سبب سره مرګ پیژندلې کیږی إِذَا صَارَ بِالضَّرْبِ صَاحِبَ فِرَاشٍ کله چې د وهلو په وجه دې بیمارشی حَتَّى مَاتَ، تردې چې مړ شی، وَتَأْوِيلُهُ إِذَا شَهِدُوا او ددې تاویل دا دې.کله چې دې ګواهی ورکړی أَنَّهُ ضَرَبَهُ بِشَيْءٍ جَارِحٍ چه ده وهونکې په زخمی کونکې شئ سره وهلې دې.

تشریح:- لکه ځنګه چې د سترګو په کتلو سره بعضې خبرې ثابتیږی.دغه ډول په شهادت سره هم ثابتیږی.نو که ګواهانو ګواهی ورکړله.چه زید بکر اووهلو.او ددې وهلو په وجه دې پیوسته په بستره بیمار پروت وو.چه آخر ددې

زخم په وجه مړ شو.نو په زيد به قصاص واجب وي.او دا تفصيل هغه وخت دی.کله چې د زيد دا وهل عمداً وي.او په وسلې سره وي.ګنی د کوړې او امسا (کونتی) حکم بل شان دی... کمامر.. او کله چې ګواهانو مذکوره ګواهي ورکړله.نو ګويا داګواهي ئې ورکړله.چه زيد عمداً بکر قتل کړې دی.او د قتل عمد سزا قصاص ده.

**د دوو ګواهانو د يو سړي په مرګ د مختلف قسم ګواهئ ورکولو حکم**

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمايي **وَإِذَا اخْتَلَفَ شَاهِدَا الْقَتْلِ** او کله چې د قتل دواړه ګواهان مختلف شی **فِي الْأَيَّامِ** په ورځو **أَوْفِي الْبَلَدِ** يا ښار، **أَوْفِي الَّذِي كَانَ بِهِ الْقَتْلُ** يا په هغه څيزکي په کوم ئې چې قتل کړی دې ( يعنی وسله کي )، **فَهُوَ بَاطِلٌ** نو دا ګواهي باطل ده **لِأَنَّ الْقَتْلَ لَا يُعَادُ وَلَا يُكَرَّرُ**.ځکه چې قتل به دوې (دوه) ځله نه وي.( يعنی وسله واپس کيږي.او نه مکرر کيږي) **وَالْقَتْلُ فِي زَمَانٍ أَوْفِي مَكَانٍ** او په يو زمانه کي يا يو ځائي کي قتل **غَيْرُ الْقَتْلِ فِي زَمَانٍ أَوْمَكَانٍ آخَرَ** په دويمه زمانه يا مکان کي د قتل نه علاوه دې **وَالْقَتْلُ بِالْعَصَا غَيْرُ الْقَتْلِ بِالسِّلَاحِ** او په امسا سره قتلول په وسلې سره د قتلولو نه علاوه دي **لِأَنَّ الثَّانِي عَمْدٌ** ځکه چې دوهم عمد **وَالْأَوَّلُ شِبْهُ الْعَمْدِ**،او ړومبې شبه عمد دې **وَيَخْتَلِفُ أَحْكَامُهُمَا** او ددې دواړو احکام جلا جلا دی **فَكَانَ عَلَى كُلِّ قَتْلٍ شَهَادَةٌ فَرْدٌ** نو په هر قتل باندې د يو سړي شهادت شو

**حل اللغة**① العصا: کونتئ ② السلاح: وسله ﴿

**تشريح:-** دوې (دوه) سړو ګواهي ورکړله.چه زيد بکر قتل کړې دی.خو په دواړو کي دا اختلاف دی.چه خالد وائی.چه د جمعې په ورځ ئې قتل کړې دی.او ساجد وائی.چه د نهې ( منګل) په ورځ ئې قتل کړې دی.يا خالد وائی.چه په دهلی کي ئې قتل کړې دی.او ساجد وائی.چه په ديوبند کي ئې قتل کړې دی.يا خالد وائی.چه په توره ئې قتل کړې دی.او ساجد وائی.چه په امسا ئې قتل کړې دی.نو په ذکر شوو ټولو صورتونو کي به د دواړو ګواهي باطل وی.ځکه چې هر قتل باندې يو ګواه پاته پاتې شو.نو نصاب د شهاد مکمل نشو.ځکه دا ممکن نه ده.چه بکر به بار بار قتليږی.او هر قتل د دوهم نه غير وی.د غه شان د امسا قتل هم د تورې د قتل نه غير دی.ځکه چې تورې سره قتل، قتل عمد دی.او امسا سره قتل شبه عمد دی.او ددې دواړو احکام جلا جلا دی.

**وَكَذَا إِذَا قَالَ أَحَدُهُمَا**:اوهم دغه ډول کله چې په دوی کي يو **قَتَلَهُ بِعَصًا** چې هغه دې په امسا قتل کړې دې **وَقَالَ الْآخَرُ لَا أَدْرِي**.او دوهم کس اووئيل.ما ته معلومه نه ده **بِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلَهُ** چې په څه شئ سره ئې قتل کړې دی **فَهُوَ بَاطِلٌ** نو دا (ګواهي) باطل ده **لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يُغَايِرُ الْمُقَيَّدَ** ځکه چې مطلق د مقيد مغاير وی.

**تشريح:-** دغه ډول که خالد اووئيل.چه امسا سره ئې قتل کړې دی.او دوهم وائی.چه ماته معلومه نه ده.چه په څه شئ ئې مړ کړې دی.نو دا ګواهي به باطل وی.ځکه چې مطلق د مقيد نه مغاير دی.حکم کي د مطلق نه مراد قتل او د مقيد نه مراد امسا سره قتل دی.او د دواړو حکم جلا جلا دی.په دواړو کي ديت واجب دی.مطلق کي ديت د قاتل په مال کي واجب وی.او په مقيد کي ديت په عاقله باندې واجب وی.

**د قتل په ګواهئ کښې د قتلولو د آلې نه په لا علمئ ښکاره کولو سره د ګواهئ حکم**

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی **وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ قَتَلَهُ** او که دواړو ګواهانو ګواهي ورکړله.چه قاتل دی قتل کړې دی **وَقَالَا: لَا نَدْرِي بِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلَهُ** و دواړو اووئيل.چه دا معلومه نه ده.چه په شئ ئې قتل کړې دی **فَفِيهِ الدِّيَةُ اسْتِحْسَانًا** نو په دې کي استحسانا ديت دې **وَالْقِيَاسُ** او قياس دا دی **أَنْ لَا تُقْبَلَ هَذِهِ الشَّهَادَةُ** چې شهادت قبول نکړې شی. **لِأَنَّ الْقَتْلَ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْآلَةِ** ځکه چې قتل د آلې د اختلاف په وجه مختلف کيږی **لِأَنَّ جَهِلَ الْمَشْهُودُ بِهِ** نو مشهود به مجهول شو.

**تشريح:-** خالداوساجد د قتل ګواهي ورکړله.خو په څه شئ سره ئې قتل کړې دی.د هغې په اړه کي ئې لا علمی (او بې خبری) ښکاره کړله.نو د قياس تقاضه دا ده.چه دا شهادت باطل شی.او قبول نشی.ځکه چې دې کي په مشهود



به کي جهالت دی.ځکه چې د الې بدليدو سره احکام بدليږی.خو دلته کي قياس پريښودې شوې دی.او په استحسان باندې عمل شوې دی.

**استحساني دليل**

**وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ** د استحسان دليل دا دی **أَنَّهُمْ شَهِدُوا بِقَتْلٍ مُطْلَقٍ** چې دوی د مطلق قتل ګواهي ورکړې ده. **وَالْمُطْلَقُ لَيْسَ بِمُجْمَلٍ** او مطلق مجمل نه دی **فَيَجِبُ أَقَلُّ مُوجِبَيْهِ وَهُوَ الدِّيَةُ** نو د قتل د موجب نه اقل ( کم) يعنی ديت به واجب وی **وَلِأَنَّهُ يُحْمَلُ إِجْمَالُهُمْ فِي الشَّهَادَةِ عَلَى إِجْمَالِهِمْ بِالْمَشْهُودِ عَلَيْهِ سِتْرًا عَلَيْهِ** او ځکه چې شهادت کي ددوی اجمال، مشهود عليه باندې د پردې اچولو په طريقه، ددوی په احسان باندې محمول کولای شی **وَأَوَّلُوا كَذِبَهُمْ**.او ګواهانو د خپل کذب (او دروغو) تاويل اوکړو **فِي نَفْيِ الْعِلْمِ** علم د نفی په سلسله کي **بِظَاهِرِ مَا** هغه نص په ظاهر سره، **وَرَدَ بِإِطْلَاقِهِ فِي إِصْلَاحِ ذَاتِ الْبَيْنِ**[1] ( ) کوم چې د دوو کسانو په منځ کي د اصلاح متعلق د دروغو په جواز باندې وارد شوې دی **وَهَذَا فِي مَعْنَاهُ**،اودا ( پرده اچول د ګواه) هم ددې ( اصلاح ذات البين) په معنی کي ده. **فَلَا يَثْبُتُ الْاِخْتِلَافُ بِالشَّكِّ** نو د شك په وجه به اختلاف نه ثابتيږی **وَيَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ** او ديت به د قاتل په مال کي واجب وی **لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْفِعْلِ الْعَمْدُ** ځکه چې فعل کي اصل عمد دی **فَلَا يَلْزَمُ الْعَاقِلَةُ** نو عمد به عاقله باندې واجب نه وی.

**حل اللغة**① ستر: پرده ② اصلاح ذات البين: د دوو کسانو په مينځ کي روغه کول﴿

**تشريح:-** دا د استحسان دليل دی.چه ګواهانو مطلق وئيلی دی.مجمل ئې نه دی وئيلي.او مطلق باندې عمل ممکن وی.البته په مجمل باندې عمل ممکن نه وی.لکه څنګه چې کفاره کي رقبه ( غلام) آزادول مطلق دی.چه په دې باندې عمل واجب دی.نو د قتل محل د ديت موجب دی.هم هغه به دلته کي واجبيږی.او ددوی د اجمال او اطلاق محل به دا وی.چه هغوی په قاتل پرده اچول غواړی.

که څوك دا اعتراض اوکړی چې دا څنګه پرده اچول دی چې ددې په وجه ګواهان فاسق شو.ځکه چې ښکاره دروغ وائی؟ نومعترض ته وايوچه د دوو کسانو په منځ کي په اصلاح ( او روغه جوړه کي ) دروغ جائز دی.او د مشهود عليه داسې پرده پوشی د قصاص په ځائې ديت واجبيږی.دا هم اصلاح ذات البين ( د دوو کسانو په منځ کي اصلاح) ده.نو دلته به په اصل قتل کي شك نه وی.په دې وجه به ديت واجب وی.او دا ديت به د قاتل په مال کي وی.ځکه چې دا قتل به په قتل عمد باندې محمول کولې شی.ځکه چې قتل کي اول عمد دی.اود عمد ضمان په برادرئ باندې نه وی.

فائده* په مجمل او مطلق کي توپير دی.مجمل هغه دی.چه هغې کي په څو معانو کي اشتباه وی.او ذات معلوم نه وی.بيا که په يو دليل سره يوه معنی متعين شی.نو هم په هغې به عمل کيږی.او مطلق هغه دی.چه د هغې معانې معلومې وی.خو ددې په ثبوت کي بعض افراد مختلف الاصناف ليکلی شوی وی.نو که هر يو فرد واخستلې شی.بهرحال په مطلق به عمل وی.ځکه چې ذات معلوم دی.لکه ( مثلاً) د بنی اسرائيلو بقر (غوا) مطلق ده.که هر رنګ وی.که د کوم عمر هم وی.نو په دې باندې عمل ممکن دی.په دې وجه حديث کي راغلی دی.چه ددغه حکم په وخت که بنی اسرائيلو د کومې غوا قربانی هم کړې وه. نو جائز به وه.خو دغه خلګو سختی اوکړله.نو الله تعالی هم سخته کړله.

**د يو سړي په قتلولو کښې د دوو سړو په اقرار کښې د اختلاف حکم**

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمايي **وَإِذَا أَقَرَّ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا** او کله چې په دوو سړو کي ، دوی کي هر

[1] من حديث أبي الدرداء رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ألا أخبركم بأفضل من درجة الصيام والصلاة والصدقة؟ قالوا:بلى يارسول الله ﷺ قال إصلاح ذات البين وفساد ذات البين الحالقة أخرجه أبوداودفى الأب باب ٥٠ ر٤م ٤٩١٨ والترمذى فى صفة القيامة والرقائق والورع باب ٥٦)_

یوکس دا اقرار اوکړو أَنَّهُ قَتَلَ فُلَانًا چې دوی فلانې قتل کړې دې فَقَالَ الْوَلِيُّ: نو ولی اووئیل قَتَلْتُمَاهُ جَمِيعًا چې تاسو دواړو دا قتل کړې دې فَلَهُ أَنْ يَقْتُلَهُمَا نو ولی ته حق شته.چه دوی دواړه قتل کړی وَإِنْ شَهِدُوا عَلَى رَجُلٍ چې دوی (دواړو) د یوسړي په خلاف ګواهي ورکړله، أَنَّهُ قَتَلَ فُلَانًا سچه ده فلانې قتل کړې دې وَشَهِدَ آخَرُونَ عَلَى آخَرَ بِقَتْلِهِ او دوهم دده د قتل په دوهم باندې ګواهي ورکړله وَقَالَ الْوَلِيُّ: ولی اووئیل قَتَلْتُمَاهُ جَمِيعًا چې تاسو دواړو دې قتل کړې دې بَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ نو دا واړه به باطل وي.

**تشریح:-** عثمان اقرار اوکړو.چه ما بکر قتل کړې دې.او خالد دا اقرار اوکړو.عثمان او خالد ته ولی اووئیل.چه تاسو دواړو قتل کړې دې.نو ولی ته به حق وي.چه د عثمان او خالد دواړو نه قصاص واخلي.

اوکه عثمان او خالد ګواهي ورکړله.چه بکر (مقتول) لره، ساجد قتل کړې دې.او عمر او خالد ګواهي ورکړله.چې بکر (مقتول) لره، زاهد قتل کړې دې.اوس ولی وائي.چه دوی ټولو ګواهانو بکر قتل کړې دې.نو اوس ولی د یو نه هم قصاص نشي اخستلې.په اقرار او شهادت کې توپیر ولې دې؟ ددې وجه دې پسې راروانه ده.

### د اقرار او شهادت په منځ کښې وجه د فرق

وَالْفَرْقُ او توپیر دا دې أَنَّ الْإِقْرَارَ وَالشَّهَادَةَ چې اقرار او شهادت يَتَنَاوَلُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وُجُودَ كُلِّ الْقَتْلِ وَوُجُوبَ الْقِصَاصِ،په دې دواړو کې هر یو د پوره قتل وجود ته، او د پوره قصاص وجوب ته ګډ دې وَقَدْ حَصَلَ التَّكْذِيبُ فِي الْأُولَى مِنَ الْمُقَرِّ لَهُ او په ړومبی کې د مقرله د اړخه تکذیب حاصل شو وَفِي الثَّانِيَةِ مِنَ الْمَشْهُودِ او په دوهم کې د مشهود له د اړخه (حاصل شو). لٰه،غَيْرَ أَنَّ تَكْذِيبَ الْمُقَرِّ لَهُ علاوه ددې خبرې نه چې د مقرله دروغجن کول الْمُقِرَّ مقر لره، فِي بَعْضِ مَا أَقَرَّ بِهِ په هغه بعضو خبرو کې، د کوم چې ده اقرار کړې دې لَا يُبْطِلُ إِقْرَارَهُ فِي الْبَاقِي، په پاته کې به دده اقرار نه باطلوی وَتَكْذِيبُ الْمَشْهُودِ لَهُ الشَّاهِدَ او دمشهود له دروغجن کول شاهد لره فِي بَعْضِ مَا شَهِدَ بِهِ په هغه بعضو خبرو کې، د کومو چې ده ګواهي ورکړې ده يُبْطِلُ شَهَادَتَهُ أَصْلًا،دده شهادت بالکل باطلوی لِأَنَّ التَّكْذِيبَ تَفْسِيقٌ.په دې وجه تکذیب فاسقول دی وَفِسْقُ الشَّاهِدِ يَمْنَعُ الْقَبُولَ سـاو د شاهد فسق شهادت قبلول منع کوی أَمَّا فِسْقُ الْمُقِرِّ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب بهرحال د مقر فسق د اقرار صحت نه منع کوی.

**حل اللغة** ① **تفسیق:** فاسق ګرځول ② **الصواب:** صحیح خبره

**تشریح:-** دا د اقرار او شهادت په منځ کې وجه د توپیر ده.ددوی دواړو د اقرار نه دا ښکاره کیدله.چه پوره قتل د یوکس د اړخه دې.ولی ددوی تکذیب اوکړو.نو د دروغجن کاوه په وجه دوی فاسق شو.او د فاسق اقرار صحیح وي.په دې وجه دواړه په قصاص کې قتلولې شي.او د ګواهانو دواړو فریقو کې هر یو ګواهي ورکړله.چه قصاص په فلانی باندې واجب دې.ولی د ګواهانو هم تکذیب اوکړو.او هرکله چې د ګواهانو تکذیب ئې اوکړو.نو دوی فاسق شو.او د فاسق ګواهي معتبر نه وي.

## باب في اعتبار حالة القتل

ژباړه:- (دا) باب د قتل د حالت د اعتبار کاوه (په بیان کې) دې.

**تشریح:-** احوال د صفاتو د قبیلې خنې دی.او ذوات د صفاتو نه مقدم وي.په دې وجه ئې د قتل (ذوات) د ذکر نه روسته د احوالو (صفاتو) ذکر فرمائیلې دې.

### په غشي لګیدو نه روسته مرتد کیدل معلومیدو باندې د دیت حکم

قَالَ:امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَمَنْ رَمَى مُسْلِمًا او چا چې په یو مسلمان غشې اوویشتلو فَارْتَدَّ الْمَرْمِيُّ إِلَيْهِ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ نو مرمی الیه (چا اړخ ته چې غشې ویشتلې شوې دې) مرتد شو.(او د الله پناه ددې نه) ثُمَّ وَقَعَ بِهِ



فَعَلَى الرَّامِي الدِّيَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو په ویشتونکی باندې دیت دې.د امام السَّهْمُ بیا هغه په غشی اولګیدو اب،حنیفه رحمه الله په نیز،

**تشریح:-** عمرو یو سړې دې.چه مسلمان دې.کلکو (پخو) مسلمانانو سره د دین په امورو کې جګړې کوی. بیا هغه د خبرو په وخت خپل باطنی (او اندرونی) کفر ښکاره کړو.خو زید ته ددې ټولو خبر نشته.او ده په عمرو غشې اوویشتلو.او د غشی ویشتلو په وخت دده ارتداد ښکاره شوې نه وو.او د لګیدو په وخت یعنی کله چې غشی باندې هغه اولګیدو.دغه وخت دې مرتد شوې دې.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په زید دیت واجب وي.

وَقَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمایي ،لَا شَيْءَ عَلَيْهِ چې په ده باندې هیڅ شئ نشته لِأَنَّهُ بِالْإِرْتِدَادِ أَسْقَطَ تَقَوُّمَ نَفْسِهِ ځکه چې ده (مرتد) د مرتدکیدو په وجه د خپل نفس تقوم ساقط کړې دې فَيَكُونُ مُبْرِئًا لِلرَّامِي عَنْ مُوجِبِهِ نو مرتد به د ویشتونکی د ویشتلو د موجب نه بری کونکې شی كَمَا إِذَا أَبْرَأَهُ لکه چې کله ئې دې بری کړې وی بَعْدَ الْجُرْحِ د زخمی کاوه نه روسته قَبْلَ الْمَوْتِ د مرګ نه وړاندې.

**تشریح:-** او صاحبین رحمهما الله فرمایي چې په دې صورت کې به هیڅ هم واجب نه وي. د دوی دلیل دا دې.چه عمرو اوس مرتد دې.نو د ارتداد په وجه دده تقوم ختم شوې دې.او هرکله چې تقوم ختم شو.نو ګویا مرتد په مرتد کیدو سره د ویشتلو د موجب نه بری کړو.او هرکله ئې چې بری کړو.نو هیڅ ضمان به واجب نه وي.او ددې مثال بالکل داسې دې.لکه چې د زخمی کاوه نه روسته د مرګ نه مخکې زخمی کونکې معاف کړی.نو هغه بری کیږي.دغه ډول به دلته کې هم وي.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلَهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ الضَّمَانَ يَجِبُ بِفِعْلِهِ چې ضمان د ویشتونکی په فعل سره واجبیږي وَهُوَ الرَّمْيُ او دده فعل رمی (ویشتل) دې إِذْ لَا فِعْلَ مِنْهُ بَعْدَهُ ځکه چې د رمی نه روسته د رامی (ویشتونکې) د اړخه هیڅ فعل نه وي. فَتُعْتَبَرُ حَالَةُ الرَّمْيِ نو د رمی د حالت اعتبار به وي وَالْمَرْمِيُّ إِلَيْهِ فِيهَا مُتَقَوِّمٌ او مرمی الیه (چا اړخ ته چې غشې ویشتلې شوې دې) په حالت د رمی کې متقوم دې وَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ حَالَةُ الرَّمْيِ فِي حَقِّ الْحِلِّ په دې وجه د ښکار د حلت په حق کې د رمی (ویشتلو) د حالت اعتبار کیږي حَتّٰى لَا يَحْرُمُ تردې چې ښکار به حرام نه وي بِرِدَّةِ الرَّامِي د رامی د مرتد کیدو په وجه بَعْدَ الرَّمْيِ د رمی نه روسته وَكَذَا فِي حَقِّ التَّكْفِيرِ،او دغه ډول د تکفیر (کفارې) په حق کې حَتّٰى جَازَ تردې چې تکفیر جائز دې بَعْدَ الْجُرْحِ، د زخم نه پس. ،قَبْلَ الْمَوْتِ،.د مرګ نه مخکې

**حل اللغة** ① **متقوم:** قیمتی،هغه شئ چې قابل د قیمت وی ② **الرامی:** ویشتونکې

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د رمی د وخت اعتبار به کولې شی.ځکه چې د رامی (ویشتونکی) د اړخه د رمی (ویشتلو) نه روسته هیڅ فعل نه دې صادر شوې.او په وخت د رمی مرمی الیه (چا اړخ ته چې غشې ویشتلې شوې دې) مسلمان دې.نو دغه وخت هغه کې تقوم دې.او هرکله چې دغه وخت په ده کې تقوم دې.نو ددې ضمان به واجب وي.او دیت به واجب وي.لکه مثلاً یو مسلمان یو ښکار ته غشې اوویشتلو.او د غشی په لګیدو نه مخکې دا ښکاری مرتد شو.نو ښکار حلال شو.ځکه چې د رمی په وخت دې مسلمان وو.او حالت د رمی معتبر دې.

نو که د رمی (ویشتلو) نه د لګیدو نه مخکې ئې کفاره د خطاء ادا کړله.نو کفاره به ادا وي.ځکه چې د حالت د رمی اعتبار کولې شی.ددې نه روسته چې کله مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی. «حتى جاز بعد الجرح قبل الموت» اګرچه دا مسئله صحیح ده.خو دلته بې جوړ ده.ځکه چې دلته خو د ویشتلو او د لګیدو په منځ کې توپیر بیانولې شی.په دې وجه عبارت داسې پکار وو. «حتى جاز التكفير بعد الرمى قبل الإصابة»

### د شبهې په وجه قصاص ساقطیږي اوکه نه؟

وَالْفِعْلُ وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او فعل اگر چې عمد دي فَالْقَوَدُ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ نو قصاص د شبهې په وجه ساقط شو وَوَجَبَتِ الدِّيَةُ او دیت به واجب وی. وَلَوْ رَمَى إِلَيْهِ او که دده د اړخه غشي اوويشتلې شو وَهُوَ مُرْتَدٌّ او هغه (چا اړخ ته چې غشي ويشتلي شوي دي) مرتد دي فَأَسْلَمَ نو هغه مسلمان شو ثُمَّ وَقَعَ بِهِ السَّهْمُ بيا هغه په غشی اولگيدو فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په ده هيڅ شی نشته فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا، ددوی ټولو په اقوالو کي وَكَذَا إِذَا رَمَى حَرْبِيًّا او هم دغه ډول کله چې ده حربی غشي ويشتلي وی فَأَسْلَمَ نو هغه مسلمان شو لِأَنَّ الرَّمْيَ مَا انْعَقَدَ مُوجِبًا لِلضَّمَانِ ځکه چې رمی موجب د ضمان نه دي جوړ شوي لِعَدَمِ تَقَوُّمِ الْمَحَلِّ او منعقد شوي. د محل د عدم تقوم په وجه فَلَا يَنْقَلِبُ مُوجِبًا نو رمی به موجب نه راگرځی لِصَيْرُورَتِهِ مُتَقَوِّمًا ددي د متقوم کيدو په وجه بَعْدَ ذَلِكَ د رمی نه پس.

**تشریح:-** دا عبارت د تقدیری سوال خواب دي سوال دا دي چې غشي ويشتل خو عمداً واقع شوی دی. نو دلته قصاص واجبيدل پکار وو؟ نو علامه مرغينانی رحمه الله فرمايي چې خبره صحيح ده. خو دلته شبه پيدا شوه. خو لگيدو په اعتبار سره شبه پيدا شوه. ددي شبهې په وجه د قصاص په ځاني به ديت واجب وی. اوکه مرمی اليه يعنی د اړخ ته چې غشي ويشتلي شوي دي) په وخت د رمی مرتد وو. او په وخت د لگيدو مسلمان شوي دي. نو بالاتفاق نه (چا قصاص شته. او نه ديت شته.

اوکه په وخت د رمی هغه حربی کافر دي. او په وخت د لگيدو هغه مسلمان شوي دي. اوس به هم هيڅ ضمان واجب نه وی. ځکه چې په وخت د رمی (ويشتلو)، د مرمی اليه (چا اړخ ته چې غشي ويشتلي شوي دي) د کفر په وجه په ده کي تقوم نشته. بلکه په ده کي تقوم د رمی نه روستو پيدا شوي دي. او هرکله چې رمی د رمی (ويشتلو د وخت په لحاظ سره موجب د ضمان جوړ نشو. نو روستو د تقوم راتلو په وجه به دا رمی موجب د ضمان نه وی.

### د غشي ايشتلو نه روسته او د لگيدو نه مخکښي آزادولو سره په ويشتونکي د تاوان حکم

قَالَ: امام محمد رحمه الله فرمايي (وَإِنْ رَمَى عَبْدًا) اوکه يو غلام ته ئي غشي اوويشتلو فَأَعْتَقَهُ مَوْلَاهُ نو دا غلام دده آقا آزاد کړو ثُمَّ وَقَعَ السَّهْمُ بِهِ بيا هغه په غشی اولگيدو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ لِلْمَوْلَى نو په ده به د مولا لپاره د غلام قيمت واجب وی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشریح:-** د زيد غلام بکر دي. خالد بکر ته غشي اوويشتلو. د ويشتلو په وخت هغه (بکر) غلام دي. او په وخت د لگيدو زيد غلام (بکر) آزاد کړو. او بکر ددي غشی په وجه مړ شو. نو په دي کي د امامانو اختلاف دي. حضرات شيخين رحمهما الله فرمائی. چه په مذکوره صورت کي به خالد د زيد لپاره د بکر د قيمت تاوان ادا کوی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمايي عَلَيْهِ فَضْلُ مَا بَيْنَ قِيمَتِهِ مَرْمِيًّا إِلَى غَيْرِ مَرْمِيٍّ، چې په ده به د ويشتلي شوی غلام، او د نه ويشتلي شوی غلام د دواړو حالتونو د قيمت توپير واجب وی وَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابويوسف رحمه الله قول امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي

**تشریح:-** او امام محمد رحمه الله فرمائی. چه نه ديت شته. او نه قيمت واجب دي. بکله دا به کتلي شی. چه د ويشتلو نه مخکي دده څه قيمت وو. او د ويشتلو په وخت دده څه قيمت دي. ددي دواړو په منځ کي چې کوم تفاوت وی. هم دا تفاوت به د خالد په ذمه واجب وی. مثلاً د رمی نه مخکي دده قيمت زر روپۍ دي. او د رمی نه روستو دده قيمت اته سوه روپۍ دي. نو د دواړو په منځ کي دوي (دوه) سوه روپۍ تفاوت دي. هم دا دوي (دوه) سوه روپۍ به واجب وی.

### د امام محمد رحمه الله دليل

لَهُ د امام محمد رحمه الله دليل دا دي الْعِتْقُ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ، چې آزادی خوريدل (متعدی کيدل) ختمونکي دي وَإِذَا انْقَطَعَتْ او هرکله چې خوريدل ختم شو بَقِيَ مُجَرَّدُ الرَّمْيِ نو صرف رمی پاته پاتي شوه وَهُوَ جِنَايَةٌ او دا داسي جنايت دي يَنْتَقِصُ

(١) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فی ملتقى (٤\٣٣٩) وتبيين الحقائق (٦\١٢٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٤٦)-



بِمَا قِيمَةُ الْمَرْمِيِّ إِلَيْهِ بِالْإِضَافَةِ إِلَى مَا قَبْلَ الرَّمْيِ چې په دي سره د مرمی اليه (چا اړخ ته چې غشي ويشتلي شوي دي) قيمت کميږی د رمی نه مخکي اړخ ته په اضافت کاوه سره فَيَجِبُ ذَلِكَ نو هم دا کمی به واجب وی.

**حل اللغة:** ① مجرد: صرف ② انقطعت: ختم شو ③ السراية: تجاوز کول، تيريدل﴾

**تشریح:-** دا د امام محمد رحمه الله دليل دي. ددي حاصل دا دي. که يوکس د زيد د غلام لاس کټ کړو. او د لاس کټ کاوه نه روسته زيد خپل غلام آزاد کړو. بيا دا غلام د لاس کټ کاوه په وجه مړ شو. نو په لاس کټ کونکی به د ضمان، او ديت او قيمت نه هيڅ هم واجب نه وی. بلکه په هغه به د لاس دومره ضمان واجب وی. چه د لاس کټ کاوه په وجه څومره دده په قيمت کي نقصان شوي وی. ځکه چې د آزادئ نه روستو د خوريد دروازه بنده شوه. ځکه چې لاس پريکړې شوي گويا چې يو محل دي. او مړ کيدونکي بل محل دي. بالکل دغه ډول دلته هم دی. چه د آزادئ په وجه هم په دي محل کي د خوريدو دروازه بنده شوه. اوکه خوريدل دی. نو هغه بل محل دي. ځکه چې وصف بدليدل دلته د محل د بدليدو په درجه کي دی. نو هرکله چې خوريدل ختم شو. نو اوس د رامی د اړخه صرف د رمی فعل پاته پاتي شو. او دا فعل داسي جرم دي. چه ددي په وجه د مرمی اليه (چا اړخ ته چې غشي ويشتلي شوي دي) په قيمت کي نقصان شوي دي. نو هم دا نقصان به رامی (ويشتونکی) باندي واجب وی.

وَلَهُمَا او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دي أَنَّهُ يَصِيرُ قَاتِلًا مِنْ وَقْتِ الرَّمْيِ چې رامی د رمی د وخت نه قاتل دي لِأَنَّ فِعْلَهُ الرَّمْيُ ځکه چې د رامی فعل رمی ده وَهُوَ مَمْلُوكٌ فِي تِلْكَ الْحَالَةِ او په دي حالت کي غلام مملوک دي فَتَجِبُ قِيمَتُهُ نو د غلام قيمت به واجب وی.

**تشریح:-** دا د شيخينو رحمهما الله دليل دي. ددي حاصل دا دي. چه هرکله د رمی د وخت اعتبار کيږی. نو په وخت د رمی هغه غلام دي. نو په رامی به د رمی د وخت په اعتبار کاوه سره، آقا لپاره د غلام قيمت واجبولي شی. ځکه چې په وخت د رمی دا غلام مملوک دي. نو په دغه ورځ چې کوم دده قيمت وی. دغه اومره قيمت به په رامی (ويشتونکی) باندي واجب وی. ځکه چې دلته په مستحق کي اختلاف نه کيږی.

بِخِلَافِ الْقَطْعِ وَالْجَرْحِ په خلاف د کټ کاوه او زخمی کولو لِأَنَّهُ إِتْلَافُ بَعْضِ الْمَحَلِّ ځکه چې دا (پرې کول او زخمی کول) د بعض محل هلاکول دی وَأَنَّهُ يُوجِبُ الضَّمَانَ لِلْمَوْلَى او دا (د بعض محل ضائع کول) آقا لپاره ضمان واجبه وی وَبَعْدَ السِّرَايَةِ لَوْ وَجَبَ شَيْءٌ لَوَجَبَ لِلْعَبْدِ او د خوريدو نه روسته که يو شئ د غلام لپاره واجب شی، فَتَصِيرُ النِّهَايَةُ مُخَالِفَةً لِلْبِدَايَةِ. نو انتهاء به د ابتداء مخالف اوگرځی

**حل اللغة:** ① النهاية: آخرد يوځيز، کار ② البداية: پيل د يو ځيز، کار﴾

**تشریح:-** په دي عبارت کي د امام محمد د هغه مسئلې ځواب کوی کومه چې هغه په استشهاد کي بيان کړې وه نوفرمائی چې دغه استشهاد صحيح نه دي. ځکه چې کټ کاوه او زخمی کاوه سره د محل څه برخه ضائع کيږی. او دا د محل د بعضې برخې ضائع کول هلاکونکی باندي ضمان واجبه وی. د مولا دپاره، ځکه چې دا ضائع کول په داسي محل باندي وارديږی. چه دا د آقا مملوک دی. او بيا به د خوريدو نه روستو هيڅ واجب نه وی. ځکه که اوس هم څه واجب کړې شی. نو دا به غلام ته ملاويږی. ځکه چې د آزادئ نه روستو د آقا ولايت ختم شو. اوس په دي کي د غلام حق بنکاره شو. نو دلته په بدايت او نهايت کي اختلاف اوشو. چه بدايت (ابتداء) آقا لپاره وو. او نهايت (انتهاء) به غلام لپاره وی. دا د محل توپير ده. او د محل تبديلئ په وخت د خوريدو ضمان او بدل نه واجبيږی. بهرحال مقيس عليه کي توپير دمحل ده. او په مقيس کي د محل توپير نشته. نو قياس به صحيح نه وی. او په مقيس کي د محل د تبديلئ وجه دا ده. چه دي پسې ذکر ده.

### چه کله په غشی اولگی نو ضمان به واجب وی

أَمَّا الرَّمْيُ قَبْلَ الْإِصَابَةِ لَيْسَ بِإِتْلَافِ شَيْءٍ بهرحال رمی (ويشتل) د لگيدو نه مخکي د هيڅ شئ ضائع کول نه دی لِأَنَّهُ لَا أَثَرَ لَهُ فِي الْمَحَلِّ ځکه چې په محل کي د رمی هيڅ اثر نشته وَإِنَّمَا قَلَّتِ الرَّغَبَاتُ فِيهِ البته په غلام کي به رغبتونه (

او میلان د خلگو) کم شی فَلَا يَجِبُ بِهِ ضَمَانٌ نو ددې په وجه به ضمان واجب نه وی فَلَا تَتَخَالَفُ النِّهَايَةُ وَالْبِدَايَةُ نو انتهاء او ابتداء مختلف نشوه فَتَجِبُ قِيمَتُهُ لِلْمَوْلٰى نو د آقا لپاره به د غلام قیمت واجب وی.

حل اللغة: ① اتلاف: هلاکول ② الرغبات: جمع د رغبة: هغه شئ چې مرغوب وی.

تشريح:- دا په مقیس کې د محل د عدم تبدل دلیل دې.فرمائی.غشې چې ترکومه پورې مرمی الیه غلام (چا ارخ ته چې غشې ویشتلې شوې دې) ته نه وی لګیدلې.تر هغه وخته پورې هیڅ برخه ضائع شوې نه ده.البته کله چې غشې اولګی.نو ددې رمی په وجه به په ده ضمان واجب وی.د لګیدو نه مخکې د رمی په وجه به دومره توپیر راځی.چه په مرمی الیه (چا ارخ ته چې غشې ویشتلې شوې دې) کې به د خلګو کې میلان (او شوق) کم شی.او بعضو رغبتونو کمیدو په وجه به هیڅ ضمان نه واجبیږی.نو چونکه دلته کې د محل بدلیدل او نه موندې شو.نو په ابتداء او انتهاء کې اختلاف هم او نه موندې شو.په دې وجه به دا په قطع او جرح (کټ کاوه او زخمی کولو) مسئله باندې قیاس کول صحیح نه وی.او دلته به د آقا لپاره د قیمت ضمان واجب وی.ځکه چې دلته کې محل سره د مولبنتی کیدو په وخت د ضمان د وجوب علت تامه رمی ده.خلاص د کلام دا چې دلته په ابتداء او انتهاء کې اختلاف نشته.

وَزُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله وَإِنْ كَانَ يُخَالِفُنَا اګرچه زمونږ مخالفت کوی فِي وُجُوبِ الْقِيمَةِ د قیمت د وجوب په اره کې، نَظَرًا إِلٰى حَالَةِ الْإِصَابَةِ د لګیدو د حالت په لحاظ سره فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ، نو حجت ددوی خلاف هغه دې. مَا حَقَّقْنَاهُ کوم چې مونږ بیان کړې دې.

تشريح:- د امام زفر رحمه الله قول وړاندې تیر شوې دې.چه ددوی په نیز به ذکر شوی صورت کې دیت واجب وی. ځکه چې دوی د لګیدو د وخت اعتبار کوی.او د لګیدو په وخت هغه آزاد دې.نو دیت به واجب وی.په دې باندې مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د رمی د حالت په اعتبار باندې مونږ کوم دلیلونه پیش کړی دی.دا واړه دلیلونه د امام زفر رحمه الله خلاف حجت دی.

**د رجم د فیصلې نه روسته د یو ګواه په رجوع سره به ویشتونکی باندې هیڅ واجب نه وی**

قَالَ: امام محمد رحمه الله فرمایي وَمَنْ قُضِيَ عَلَيْهِ بِالرَّجْمِ او په چا چې د رجم فیصله اوکړې شوه فَرَمَاهُ رَجُلٌ نو په هغه چا غشې اوویشتلو ثُمَّ رَجَعَ أَحَدُ الشُّهُودِ بیا په ګواهانو کې یوکس رجوع اوکړله ثُمَّ وَقَعَ بِهِ السَّهْمُ بیا هغه په غشی اولګیدو فَلَا شَيْءَ عَلَى الرَّامِي نو په رامی (ویشتونکی) به هیڅ واجب نه وی لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ حَالَةُ الرَّمْيِ ځکه چې معتبر هغه د رمی حالت دې وَهُوَ مُبَاحُ الدَّمِ فِيهَا او دا حالت په رمی کې مباح الدم دې.

تشريح:- وړاندې باربارتیر شوی دی.چه د حالت د رمی اعتبار دې.نو که یوکس زنا اوکړله.او څلورو ګواهانو د زنا ګواهی ورکړې وی.چه په دې وجه قاضی د رجم فیصله ورکړله.یا اوس په دې حالت کې دا مباح الدم شو.نو که په دې وخت کې چا په غشې اوویشتلو.او دا غشې هغه وخت په ده اولګیدو.کله چې څلورو ګواهانو کې یوکس د خپلې ګواهئ نه رجوع کړې ده.نو په رامی به هیڅ ضمان نه وی.ځکه چې په وخت د رمی هغه مباح الدم وو.

**د مجوسی غشې ویشتلو نه روسته مسلمانیدو سره د ویشتلی ښکار حکم**

وَإِذَا رَمَى الْمَجُوسِيُّ صَيْدًا او کله چې مجوسی غشې په ښکار ور اوویشتلو ثُمَّ أَسْلَمَ بیا هغه مسلمان شو ثُمَّ وَقَعَتِ الرَّمْيَةُ بِالصَّيْدِ بیا غشې ښکار ته اولګیدو لَمْ يُؤْكَلْ نو خوړلې به نشی وَإِنْ رَمَاهُ او که هغې (ښکار) ته نې غشې اوویشتلو وَهُوَ مُسْلِمٌ حالانکه هغه مسلمان دې ثُمَّ تَمَجَّسَ وَالْعِيَاذُ بِاللّٰهِ بیا هغه ،،العیاذ بالله،، مرتد شو أُكِلَ نو خوړلې به شی لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ حَالُ الرَّمْيِ فِي حَقِّ الْحِلِّ وَالْحُرْمَةِ ځکه چې دحلت او حرمت په حق کې د رمی حالت معتبر دې إِذِ الرَّمْيُ هُوَ الذَّكَاةُ چې رمی ذکاة (ذبح کول) دې فَتُعْتَبَرُ الْأَهْلِيَّةُ وَالسَّلْبُ عِنْدَهُ نو د رمی په وخت به د اهلیت او ددې اعتبار کولې شی.



تشريح:- هرکله چې د رمی د حالت اعتبار دې.نوکه مرتد یا مجوسی غشې اوویشتلو.او د لګیدو نه مخکې دې مسلمان شو.نو ښکاره به حلال نه وی.ځکه چې وخت د رمی اسلام ،،کوم چې د ذکاة شرط وو ،، نه وو.او که مسلمان غشې اوویشتلو.او د لګیدو نه مخکې هغه مرتد شو.نو دا ښکاره به خوړلې کیږی.ځکه چې د رمی په وخت اهلیت د رمی موجود دې.

**د احرام په حالت کښې غشې ویشتلو نه روسته حلالیدو سره د ویشتلی ښکار او ددې د جزاء حکم**

وَلَوْ رَمَى الْمُحْرِمُ صَيْدًا او که محرم (په حالت د احرام کې) غشې په ښکار ور اوویشتلو ثُمَّ حَلَّ بیا هغه حلال شو فَوَقَعَتِ الرَّمْيَةُ بِالصَّيْدِ نو ښکار په غشی اولګیدو فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو په ده به جزاء لازم وی وَإِنْ رَمَى حَلَالٌ صَيْدًا او که حلال غشې اوویشتلو ثُمَّ أَحْرَمَ بیا هغه محرم شو فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په هغه به هیڅ نه وی لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِالتَّعَدِّي ځکه چې ضمان د تعدی په وجه واجبیږی وَهُوَ رَمْيُهُ او تعدی دده غشې ویشتل دی فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ د احرام په حالت کې وَفِي الْأَوَّلِ هُوَ مُحْرِمٌ وَقْتَ الرَّمْيِ او په رومبی صورت کې هغه په وخت د رمی محرم دې. وَفِي الثَّانِي حَلَالٌ او په دوهم صورت کې حلال دې ،فَلِهٰذَا افْتَرَقَا وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ ،.نو هم په دې وجه دواړه مسئلې جلا جلا شوې.والله اعلم بالصواب

تشريح:- هرکله چې د رمی دحالت اعتبار دې.نوکه په وخت د احرام نې غشې په ښکار ور اوویشتلو.او د لګیدو نه مخکې هغه حلال شو.نو په رامی (ویشتونکی) به د ښکار جزاء لازم وی.او که د حلال کیدو په حالت کې نې غشې اوویشتلو.بیا د لګیدو نه مخکې محرم شو.نو جزاء به لازم نه وی.ځکه چې جزاء د تعدی په وجه واجبیږی.او تعدی د احرام د حالت رمی ده.د حلالیدو د حالت نه ده.

# كتاب الديات

ژباړه:- (دا) کتاب د دیتونو (په بیان کې) دې.

تشريح:- **تعريف الدية** ۞ دیت په شریعت کې هغه مال ته وائی.کوم چې د نفس بدل ګرځولې شوې دې.یعنی دا د ،،تسمية الشئ بإسم المصدر،، د قبیلې څنې ده.او ،،إرش،، (تاوان) هغه مال ته وائی.کوم چې د نفس نه په کم کې واجبیږی.

**الربط بما قبله** ۞ مخکې قصاص بیان کړې شوې دې.بیا دیت، ځکه چې قصاص اصل دې.او دیت د خلیفه مثل دې. او د ژوند او نفس ساتنه زیات مهم (او ضروری) دې.په دې وجه قصاص مقدم کړې شوې دې.

**د قتل شبه عمد د دیت او کفارې حکم**

وَقَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَفِي شِبْهِ الْعَمْدِ دِيَةٌ مُغَلَّظَةٌ عَلَى الْعَاقِلَةِ او شبه عمد په عاقله باندې دیت مغلظه دې وَكَفَّارَةٌ عَلَى الْقَاتِلِ .او په قاتل باندې کفاره ده وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي أَوَّلِ الْجِنَايَاتِ او مونږ شبه عمد د جنایات په پیل کې بیان کړې دې.

تشريح:- د قتل شبه عمد دیت په عاقله باندې وی.او کفاره په قاتل باندې وی.په هدایه څلورم ټوك باندې ددې بیان تیر شوې دې.خو د تغلیظ طریقه هلته نه ده تیره شوې.هغه دلته بیانولې شی.کله چې اوښان سل واجب وی.او ددې دا څلور قسمونه واجب وی: ① بنت مخاض ② بنت لبون ③ حقاق ④ جزاع، ددې نوم دیت مغلظه دې.

**د قتل شبه عمد کفاره څه ده؟**

قَالَ: وَكَفَّارَتُهُ عِتْقُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ او د شبه عمد کفاره د مؤمن غلام آزادول دی لِقَوْلِهِ تَعَالٰى ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلٰى أَهْلِهِ﴾ ﴿النساء:۹۲﴾ الآية د الله تعالی د فرمان ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلٰى أَهْلِهِ﴾ په وجه فَإِنْ لَمْ يَجِدْ نو که هغه غلام اونه مومی فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو د لګاتار دوو میاشتو روژې نیول دی بِهٰذَا النَّصِّ هم ددې نص په

وجه،

تشريح:- د شبه عمد کفاره دا ده.که قدرت وي.نو مومن غلام دې آزاد کړي.د الله تعالى ارشاد دې؟﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ﴾ ﴿النساء:۹۲﴾ اوکه غلام ملاو نشي.نو بيا کفاره دا ده.چه د دوو مياشتو لګاتار (پرله پسې) روژې اونيسي.

وَلَا يُجْزِئُ فِيهِ الْإِطْعَامُ او په دې کې به اطعام (په مسکينانو خوراك خوړل) نه کافي کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَرِدْ بِهِ نَصٌّ ځکه چې د اطعام په سلسله کې هيڅ نص وارد نه دې وَالْمَقَادِيرُ تُعْرَفُ بِالتَّوْقِيفِ او توقيفي مقادير د شارع نه معلوميږي.

تشريح:- او په کفاره د قتل کې به په مسکينانو خوراك خوړل کافي نه وي. ځکه چې شرعي مقادير د شريعت په خودلو معلوميدې شي.حالانکه په هيڅ نص کې نقل نه دی.چه مسکينانو ته به په خوراك خوړلو باندې کفاره ادا کيږي.

وَلِأَنَّهُ جَعَلَ الْمَذْكُورَ كُلَّ الْوَاجِبِ بِحَرْفِ الْفَاءِ او ځکه چې د حرف فاء په وجه مذکور کل (ټول) واجب ګرځولي شي.

تشريح:- اوپه اصول فقه کې دا اصول مقرر دی:① چې د فاء نه روسته کومه جزاء راځي.نو هغې کې ضروري ده.چې پوره جزاء ذکر وي.ګنې هلته به التباس (اوشك) پيدا کيږي.او دلته په نص کې د قتل خطاء نه روسته د فاء نه روستو هم دا دوې (دوه) شيان ذکر دي.تحرير (آزادول) او صيام (روژې نيول)، نو معلومه شوه.چه هم دا دوې (دوه) شيان په طريقې د مانعة الخلو مطلوب (اومقصود) دي.

أَوْ لِكَوْنِهِ كُلَّ الْمَذْكُورِ يا د مذکور د کل ذکر کيدو په وجه، (هم دا به کل واجب ګرځولې شي) عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه څنګه چې معلومه شوې ده.

تشريح:- په مقام د حاجت بيانولو کې چې څه ذکر وي.هم هغه به مطلوب وي.او غير مذکور به مراد نه وي.ګنې که غير مذکور مراد وي.نو ددې د احتياج په وجه به دا هم ضرور بيان کړې شوې وو.

وَيُجْزِئُهُ رَضِيعٌ أَحَدُ أَبَوَيْهِ مُسْلِمٌ وکافي کيږي ده لره شيدې رودونکې چې يوپه مورپلار دده کې مسلمان وي لِأَنَّهُ مُسْلِمٌ بِهِ ځکه چې دا رضيع مسلمان دې په دې يود مورپلار باندې وَالظَّاهِرُ سَلَامَةُ أَطْرَافِهِ اوظاهر سلامت د اندامونو دده دې

تشريح:- کوم غلام چې په کفاره کې ادا کړې شي.د هغه مسلمان کيدل ضروري دی.او ضروري دی.چه اندامونه ئې سلامت وي.نو کوم بچې چې غلام وي.او اوس هغه شيدې څکي.او دده په مور پلار کې يوکس مسلمان دې.نو دده په آزادولو سره به کفاره ادا کيږي.ځکه چې په مور پلار کې د يوکس په مسلمانيدو سره به دا بچې هم مسلمان شمارلې کيږي.او چونکه دا بچې د مور په نس کې نه دې.بلکه بهر دې.نو دده د اندامونو سلامت کيدل به هم ښکاره شي.او هرکله چې دا سلامت الاعضاء (د صحيح اندامونو والا) ثابت شي.نو دده آزادول به کافي وي.

وَلَا يُجْزِئُ مَا فِي الْبَطْنِ اونه کافي کيږي هغه بچې چې په نس کې وي لِأَنَّهُ لَا تُعْرَفُ حَيَاتُهُ وَلَا سَلَامَتُهُ ځکه چې نه دې معلوم ژوند دهغه ونه سلامتيا د اندامونو دهغه

تشريح:- اوکوم بچې چې تر اوسه پورې د مور په نس کې دې.د هغه آزادول به کافي نه وي.ځکه چې اوسه پورې خو دا پته هم نه لګي.چه هغه ژوندې دې.او که نه؟ دغه ډول دا هم معلومه نه ده.چه دده اندامونه سلامت (او روغ) دی.او که نه.

## د قتل خطاء کفاره، او د شيخينو رحمهما الله مسلك

قَالَ مرغيناني رحمه الله فرمانيلي دی وَهُوَ الْكَفَّارَةُ فِي الْخَطَإِ و هم دا (کوم چې مونږ په شبه عمد کې بيان کړی دی يعنی غلام آزادول او روژې نيول) کفاره ده.په خطاء کې، لِمَا تَلَوْنَاهُ د هغه آيت په وجه، کوم چې مونږ تلاوت کړې دې وَدِيَتُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَرْبَاعًا او د شيخينو رحمهما الله په نيز د شبه عمد ديت د څلورو قسمونو



سل اوښان دی خَمْسٌ وَعِشْرُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ پنځه ويشت بنت مخاض وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بِنْتَ لَبُونٍ او پنځه ويشت بنت لبون، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً (۱) او پنځه ويشت حقې او پنځه ويشت جذعې.

حل اللغة: ① بنت مخاض: چې دا د اوښ هغه بچې دې.چه په دوهم کال کې پيل شوې وي.او چونکه اوس به ددې مور په دوهم بچې سره حامله شوې وي.په دې وجه دې ته بنت مخاض وائی.② بنت لبون: کومه چې په دريم کال کې پيل شي.او چونکه اوس به ددې مور دوهم بچې راوړلې وي.او شيدې به ورکوي.په دې وجه دې ته بنت لبون وائی.③ حقه: کوم چې په څلورم کال کې پيل شي. چونکه اوس به دا استحقاق وي.چه په دې سور شي.او په دې بوج بار کړې شي.په دې وجه دې ته حقه وائی.④ جذعه: کومه چې په پنځم کال کې پيل شي.ځکه چې اوس به دې دوې (دوه) غاښونه کړی وي.په دې وجه دې جذعه وائی.بهرحال د شيخينو رحمهما الله په نيز د سلو اوښانو تفصيل دا دې.کوم چې ذکر شو.

تشريح:- د شيخينو رحمهما الله مذهب دا دې. چې کومه د قتل شبه عمد کفاره ده.هم هغه د قتل خطاء کفاره ده.او په شبه عمد کې به سل اوښان واجب وي. په دې کې پنځه ويشت بنت مخاض وي او پنځه ويشت بنت لبون وي اوپنځه ويشت جذعه وي اوپنځه ويشت حقه وي

## د قتل خطاء په ديت کښې د امام شافعي او امام محمد رحمهما الله مسلك

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ رحمهما الله او امام محمد او امام شافعي رحمهما الله فرمائيلی دی أَثْلَاثًا چې درې قسمه اوښان به وي ثَلَاثُونَ جَذَعَةً ديرش جذعې وَثَلَاثُونَ حِقَّةً او ديرش حقې وَأَرْبَعُونَ ثَنِيَّةً او څلويښت ثنيې كُلُّهَا خَلِفَاتٌ فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا چې دا به ټولې حاملې وي.چه ددوی په خيټو کې به ددوی اولاد وي

حل اللغة: ① خلفات: حاملې ﴿

تشريح:- امام محمداوامام شافعي رحمهما الله سل اوښان د څلورو قسمونو په ځائې دريو قسمونو باندې ويش کړی دی.يعنی جذعې ديرش وي.او حقې ديرش وي.او ثنيې څلويښت وي.... ثنى.. د مذکر لپاره او مادې لپاره ..ثنيه.. ده.او دا ټولې څلويښت ثنيې حاملې وي.د حامله مطلب دا دې.چه ددوی په خيټو کې ددوی اولاد وي.

او په دې خو د ټولو اتفاق دې.چه د شبه عمد په ديت کې تغليظ دې.حضرات شيخينو رحمهما الله په څلور قسمونو باندې تقسيمول تغليظ ګنړلې دې.او امام محمد او امام شافعي رحمهما الله د تثنيې په وجوب کې تغليظ ګنړلې دې.او ثنى هغه دې.چه په شپږم کال کې پيل شي.او مؤنث ثنيه دې.چه دې وخت به دا حامله وي.او د خلفة په معنى کې دې.حملداره اوښه د ..فى بطونها أولادها خلفات.. صفت کاشفه دې.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی کريم ﷺ د فرمان په وجه ،، {أَلَا إِنَّ قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمْدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا خبرشئ: د شبه عمد مقتول هغه د کوړې او د امسا مقتول دې وَفِيهِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ او په دې کې سل اوښان دی أَرْبَعُونَ مِنْهَا فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا}() په دې کې به څلويښت داسې وي.چه ددوی په خيټو کې ددوی اولاد وي وَعَنْ عُمَرَ وَزَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: او د عمر او د زيد رضي الله عنهما نه نقل دی) {ثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً (۲) چې ديرش حقې او ديرش جذعې،

حل اللغة: ① الابل: اوښان ② بطون: جمع د بطن، نس ﴿ ③ سوط: کوړه ④ العصا: کونتی ﴿

تشريح:- د دوی مستدل دا حديث دې «ألا إن قتيل خطأ العمد قتيل السوط والعصا وفيه مائة من الإبل أربعون منها في بطونها

(۱) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار(۴۰۶\۵) وملتقى (۳۴۱\۱۴) والهندية (۲۴\۶) وكنزالدقائق (۳۹۸) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۷\۲)-

(۲) تقدم تخريجه)-

(۳) أخرجه أبوداود فى الديات باب ۱۷ رقم (۴۵۵۴)-

تو لاند بهرحال حدیث کي صراحت دي.چه په دې سلو کي څلويښت داسې کيدل پکار دی.چه هغه حاملې وی.او د عمر فاروق او زید بن ثابت رضي الله عنهما نه نقل دی.چه دیرش به حقې وی.او دیرش به جذعې وی. نو ددې تفصیل نه معلومه شوه.چه درې قسمه اوښان به واجب وی.دیرش حقې، او دیرش جذعې، او څلويښت ثنیات.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ دِيَةَ شِبْهِ الْعَمْدِ أَغْلَظُ او ځکه چې د شبه عمد دیت زیات تغلیظ دې وَذٰلِكَ فِيمَا قُلْنَا او دا په داسې صورت کي دې.کوم چې موږ بیان کړي دي |

**تشریح:-** دلیل عقلي پیش کاوه کي دوی فرمائي.چه د شبه عمد دیت سخت وی.او سختی هم په دې صورت کي ده.کوم چې موږ وایو.چه سل اوښان په دریو برخو باندې د ذکر شوی بیان مطابق ویش کړې شي. ګنی د قتل خطاء په دیت کي د اوښانو پنځه قسمونه دی.چه تغلیظ نه وی.نو دلته به درې قسمونه وی. چې ښه تغلیظ اوشی.او په څلورو کي دومره تغلیظ نشته.څومره چې په دریو کي دې.

## د شیخینو رحمهما الله دلیل

| |
|---|
| وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ{او د شیخینو رحمهما الله دلیل د نبی ﷺ فرمان دې ،، فِي نَفْسِ الْمُؤْمِنِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ (¹) د مؤمن په نفس کي سل اوښان دی |

**تشریح:-** دا د شیخینو رحمهما الله دلیل دې.رومبې دلیل دا حدیث دې. «في نفس المومن مائة من الإبل» چې دا ابن حبان صحیح ګرځولي دې. په دې حدیث کي صرف د سلو اوښانودې.د دغه سلو په څلورقسمه اوښانو باندې د ویش تفصیل په کي نشته نو معلومه شوه چې کوم قیدونه امام محمد اوامام شافعي رحمهما الله لګولی دی دا په واجب چې سل اوښان دی په هغې باندې زیادت دې حالانکه داسې موقعو کي مقادیر په قیاسي موازنو (او خیالاتو) سره نه معلومیږي.

| |
|---|
| وَمَا رَوَيَاهُ او هغه حدیث کوم چې دوی (امام محمد او امام شافعي رحمهما الله روایت کړې دې غَيْرُ ثَابِتٍ ثابت نه دې لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ فِي صِفَةِ التَّغْلِيظِ د تغلیظ په صفت کي د صحابو رضي الله عنهم د اختلاف په وجه، |

**تشریح:-** او امام محمد او امام شافعي رحمهما الله چې کوم حدیث بیان کړې دې.هغه حدیث اګرچه مرفوع دې. خو دا به غیرثابت شمارلې کیږي.ځکه که دا ثابت وې.نو د تغلیظ په صفت کي چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم په منځ کي کوم سخت اختلاف دې.دا به نه وو.ځکه چې د مذکوره قول قائل د ذکر شوی حدیث نه دلیل نیولو سره نور صحابه کرام رضي الله عنهم خاموش کولی شو.حالانکه په دې حدیث سره د صحابو رضي الله عنهم په منځ کي حجت پیش کول جاری نشو.دا ددې د نه ثابتیدو دلیل دې.

| |
|---|
| وَابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بِالتَّغْلِيظِ او ابن مسعود رضي الله عنه د تغلیظ قائل دې أَرْبَاعًا په څلورو برخو کاوه سره کَمَا ذَكَرْنَا لکه څنګه چې موږ ذکر کړی دی وَهُوَ كَالْمَرْفُوعِ او دا حدیث (چې موقوف دې) د مرفوع پشان دې فَيُعَارَضُ بِهِ نو ددې په ذریعه به معارضه کولې شی |

**تشریح:-** د ابن مسعود رضي الله عنه نه د تغلیظ هغه طریقه منقول ده.کوم چې د شیخینو رحمهما الله مسلك دې.او اګرچه ابن مسعود رضي الله عنه مرفوع حدیث نه دې پیش کړې.خو دا خبره په قیاس سره نشی معلومیدې.په دې وجه به د صحابی دا قول د حدیث مرفوع په درجه کي ګرځولې شی.او هرکله چې دا د مرفوع حدیث په مرتبه کي شو.نو اوس به په دې کي او د امام محمد او د امام شافعي رحمهما الله د حدیث په منځ کي معارضه کیږي.او د تعارض په وخت به ادنی (او کم) اخستل د متیقن کیدو په وجه اولی وی.او ادنی هغه دې.د کوم چې موږ قائل یو.

## تغلیظ صرف په اوښانو کښې دې

¹) قال الزيلعي تقدم في الزكاة في كتاب عمروبن حزم رواه اب□ حبان في صحيحه نصب الراية (١٢٤/٥)_



| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَلَا يَثْبُتُ التَّغْلِيظُ او تغلیظ به نه ثابتیږی إِلَّا فِي الْإِبِلِ خَاصَّةً خو خاص طور باندې په اوښانو کي ، لِأَنَّ التَّوْقِيفَ فِيهِ ځکه چې (د شارع د طرفه) توقیف د اوښانو په سلسله کي دې فَإِنْ قَضَى بِالدِّيَةِ فِي غَيْرِ الْإِبِلِ نو که د اوښانو نه علاوه کي د دیت فیصله اوکړې شی لَمْ تَتَغَلَّظْ نو دیت به مغلظه نه وی لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې. |

**تشریح:-** چه ددې بیان اوس تیر شوې دې.خو چونکه شریعت تغلیظ صرف په اوښانو په شبه عمد کي دیت مغلظه واجبیږی کي خاص کړې دې.او په دې د امت اجماع منعقد شوې ده.نو د تغلیظ به بله کومه طریقه د ذکر شوې طریقې نه علاوه نه وی.ځکه چې په شرعي مقدارونو کي د قیاسي موازنو دخل نه وی.بلکه د شرعي مقدارونو پیژندلو لپاره نقل پکار دې.او نقل د اوښانو په سلسله کي دې.نو که قاضي د اوښانو نه علاوه سره فیصله اوکړله.نو دده فیصله به نه نافذ کیږي.ځکه چې د توقیف مغائر دې.

## په قتل خطاء کښې د دیت او کفارې حکم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمایي (وَقَتْلُ الْخَطَإِ و قتل خطاء تَجِبُ بِهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ وَالْكَفَّارَةُ عَلَى الْقَاتِلِ ددې په وجه عاقله باندې دیت او په قاتل کفاره واجب ده لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دي |

**تشریح:-** په آیت کي صراحت سره ذکر دی.چه په قتل خطاء کي دیت او کفاره واجب ده.خو کفاره په قاتل ده.او دیت په عاقله باندې دې.چه ددې وجه په پیل د کتاب الجنایات کي ذکر شوې ده.

## د قتل خطاء دیت څه دې ؟

| |
|---|
| قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَالدِّيَةُ فِي الْخَطَإِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَخْمَاسًا او په (قتل) خطاء کي پنځه قسمه اوښان دی عِشْرُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ شل بنت مخاض، وَعِشْرُونَ بِنْتَ لَبُونٍ او شل بنت لبون وَعِشْرُونَ ابْنَ مَخَاضٍ وشل ابن مخاض وَعِشْرُونَ حِقَّةً ،او شل حقې وَعِشْرُونَ جَذَعَةً و شل جذعې، وَهٰذَا قَوْلُ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (¹) او هم دا د ابن مسعود رضي الله عنه قول دې |

**تشریح:-** که د قتل خطاء دیت په اوښانو سره ادا کول وی.نو ددې مقدار سل اوښان دی.چه په دې کي به دا پنځه قسمه اوښان وی. کوم چې دلته کي ذکر دی.او دا د ابن مسعود رضي الله عنه قول دې.دا به د حدیث مرفوع په درجه کي شمارلې شي.

## د امام شافعي رحمه الله او احنافو رحمهم الله په مسلك کښې فرق

| |
|---|
| وَأَخَذْنَا نَحْنُ وَالشَّافِعِيُّ بِهِ او موږ او امام شافعي رحمه الله دا (قول د ابن مسعود رضي الله عنه) اخستې دې {لِرِوَايَتِهِ ابن مسعود رضي الله عنه د روایت کاوه په وجه، {أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي قَتِيلٍ قُتِلَ خَطَأً أَخْمَاسًا} عَلَى نَحْوِ مَا قَالَ چې نبی کریم ﷺ د قتل خطاء په مقتول کي ددوی د قول په مثل د پنځو قسمونو اوښانو فیصله اوفرمائیله {وَلِأَنَّ مَا قُلْنَاهُ أَخَفُّ او ځکه چې دا د کوم چې موږ قائل یو.سپك (او آسان) دې فَكَانَ أَلْيَقَ بِحَالَةِ الْخَطَإِ.نو دا به د قتل خطاء زیات لائق وی لِأَنَّ الْخَاطِئَ مَعْذُورٌ ځکه چې خاطی (قتل خطاء کونکې) معذور دې. |

**تشریح:-** د ابن مسعود رضي الله عنه ددې فرمان په وجه موږ او امام شافعي رحمه الله هم دا قول اختیار کړې دې.چه د قتل خطاء دیت به په پنځو قسمونو سره اداکولې شی.او هم په دې طریقه ابن مسعود رضي الله عنه د قتل خطاء په دیت کي د نبی کریم ﷺ فیصله روایت کړې ده.او خاطی معذور هم دې.په دې وجه دده په دیت کي (اسانتیا او) سپکوالی پکار دې.او دا د سپکوالی طریقه ده.

¹) أخرجه أصحاب السنن الأربعة بألفاظ مختلفة نقلها الزيلعي رحمه الله في نصب الراية و هو في أبي داود في الديات باب ١٧رقم ٤٥٥٦)_والترمذي في أوائل الديات والنسائي رقم ٤٨٠٢ وابن ماجه رقم ٢٦٣١) كذا في نصب الراية:١٢٥/٥)_

غَيْرَ اَنَّ عِنْدَ الشَّافِعِيِّ ؒ علاوه ددې خبرې نه چې د امام شافعي ؒ په نيز يَقْضِي بِعِشْرِيْنَ ابْنَ لَبُوْنٍ مَكَانَ ابْنِ مَخَاضٍ وَالْحُجَّةُ د ابن مخاض په ځاني د شلو ابن لبون فيصله كولاى شي عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ او د امام شافعي ؒ خلاف هغه حديث دې.كوم چې موږ روايت كړې دي.

تشريح:- البته زموږ او د امام شافعي ؒ په مسلك كې دومره توپير دې.چه امام شافعي ؒ د ابن مخاض په ځاني ابن لبون واجب ګڼرى.خو د ابن مسعود ؓ حديث ددوى په خلاف حجت ې.څكه چې دې كې د ابن مخاض ذكر دې.د ابن لبون نه دې.خطابى ؒ فرمائيلي دي.چه د امام شافعي ؒ نه علاوه د بل هيڅ چا زه دا قول نه پيژنم.چه هغې كې ئې ابن لبون واجب كړې وي.

## د قتل خطاء په ديت كښې د سرو زرو او سپينو زرو مقدار

قَالَ امام قدورى ؒ اوفرمائيل وَمِنَ الْعَيْنِ اَلْفُ دِيْنَارٍ او د (قتل خطاء ديت) د سرو زرو نه زر دينار وَمِنَ الْوَرِقِ عَشَرَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ او د سپينو زرو نه لس زره درهمه دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مِنَ الْوَرِقِ اثْنَا عَشَرَ اَلْفًا او امام شافعي ؒ فرمائي.چه د سپينو زرو نه دولس زره درهم دى لِمَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا څكه ابن عباس ؓ روايت كړې دې {اَلنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَضَى بِذٰلِكَ (١) چې نبى كريم ﷺ ددې فيصله فرمائيلې ده.( يعنى د دولس زرو درهمو د بنى عدى د يو سړي په اړه كې)

تشريح:- كه د قتل خطاء ديت د سرو زرو نه ادا كول غواړي.نو زر ديناره د هغې مقدار دې.اوكه د سپينو زرو نه ادا كول وي.نو ددې مقدار لس زره درهمه دې.امام شافعي ؒ فرمائي.چه دولس زره درهمه دې.امام شافعي ؒ د ابن عباس ؓ روايت نه استدلال كړې دې.

وَلَنَا او زموږ دليل هغه دې مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ كوم چې عمر ؓ نه نقل دي {اَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَضَى بِالدِّيَةِ فِي قَتِيْلٍ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ (٢) چې نبى كريم ﷺ د يو مقتول لس زره درهمه فيصله اوفرمائيله.

تشريح:- احنافو خپلې مدعا لپاره د حضرت عمر ؓ د روايت نه استدلال كړې دې.چه نبى ﷺ د يومقتول په ديت كښې په لس زره روپو باندې فيصله كړې وه

وَتَاوِيْلُ مَا رُوِيَ او د ابن عباس ؓ د روايت تاويل دا دې {اَنَّهُ قَضَى مِنْ دَرَاهِمَ چې د نبى كريم ﷺ فيصله د هغه دراهمو اړه كې وه كَانَ وَزْنُهَا وَزْنَ سِتَّةٍ چې د كوم وزن، وزن سته وو وَقَدْ كَانَتْ كَذٰلِكَ او په پيل زمانه كې هم دغه ډول وه.

تشريح:- امام شافعي ؒ چې كوم روايت نقل كړې دې د هغې ځواب دا دې چې د دراهمو وزن مخكې كم او زيات پاتې شوې دې.په يوه زمانه كې دا وزن هم وو.چه د لسو درهمو او د شپږو مثقالو وزن به برابر وو.نو په داسې صورت كې به د درهم وزن كم وى.او ددې مقدار دولس زره درهم به د مروجه وزن لس زره درهمه جوړيږي.نو د دواړو حديثونو انجام يو ثابت شو.

فائده* يو درهم درې ماشې او يوه رتى او د يوې رتى ١١٥ ده.او مثقال د څلورو ماشو او څلورو رتو وى. دا هم هغه وزن دې.په كوم كې چې اووه مثقاله او د لس درهمو وزن برابر وى.او هم دې ته وزن سبعه وائى.او د حضرت

(١) من حديث ابن عباس ؓ أخرجه أبوداود فى الديات باب ١٦ رقم ٤٥٤٥ والترمذى فى الديات باب ٢ والنسائى فى القسامة باب ٣٥ رقم ٤٨٠٣ وابن ماجه فى الديات باب ٦ رقم ٢٦٢٩) والدارمى فى الديات باب ١١)_

(٢) غربه الزيلعى ؒ ثم نقل عن عبيدة السلمانى قال وضع عمر ؓ الديات على أهل الذهب ألف دينار وعلى أهل الورق عشرة آلاف درهم وعلى أهل الإبل مائة من الإبل وعلى أهل البقر مائتى بقرة مسنة وعلى أهل الشاء ألفى شاة وعلى أهل الحلل مائة حلة وعزاه إلى كتاب الآثار لمحمد بن الحسن (نصب الراية: ١٣٠١٥)_



عمر ؓ د زمانې نه هم دا وزن معتبر ګڼرلې شوې وو.په باب د زكاة كې هم دا وزن معتبر دې.

## د اوښانو، سرو زرو، او سپينو زرو نه علاوه سره د ديت اداكولو مسئله

قَالَ امام قدورى ؒ اوفرمائيل وَلَا تَثْبُتُ الدِّيَةُ او ديت به نه ثابتيږى. اِلَّا مِنْ هٰذِهِ الْاَنْوَاعِ الثَّلَاثَةِ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ، مګر هم ددې دريو اقسامو نه د امام ابوحنيفه ؒ په نيز وَقَالَا او صاحبين ؒ فرمايي مِنْهَا وَمِنَ الْبَقَرِ مِائَتَا بَقَرَةٍ، (١) ددې نه او د غواګانو نه دوې (دوه) سوه غواګانې وَمِنَ الْغَنَمِ اَلْفَا شَاةٍ او د چيلو نه زر وزه (چيلۍ) وَمِنَ الْحُلَلِ مِائَتَا حُلَّةٍ او د جوړو نه دوې (دوه) سوه جوړې، كُلُّ حُلَّةٍ ثَوْبَانِ هره جوړه دوې (دوه) كپړې، لِاَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هٰكَذَا جَعَلَ عَلٰى اَهْلِ كُلِّ مَالٍ مِنْهَا (٢) څكه چې عمر ؓ په دې كې د هر مال والا باندې دغه ډول مقرر كړې دي

تشريح:- هركله چې قاتل ديت ادا كوى.نو هغه ته په دريو څيزونو كې اختيار دې.كه اوښانو سره ديت ادا كوى.اوكه دينار يا دراهمو سره،اوددې دريو څيزونو نه علاوه سره به ديت نه ادا كوى.او دا د امام صاحب ؒ فرمان دې. صاحبين ؒ فرمائى.چه د ذكر شوى دريو قسمونو نه هم د مقرر مقدار مطابق ديت ادا كولې شى.اوكه د غواګانو نه ادا كوى.نو دوې (دوه) سوه به وى.اوكه د چيلو نه ادا كوى.نو زر به وى.اوكه جوړې وركوى.نو دوې (دوه) سوه جوړې به وى.چه په دې كې به هره جوړه دوې (دوه) كپړې وى.چه دا به زموږ د عرف (او رواج) مطابق په دې زمانه كې يو قميص او يو پاې كالى (پرتوګ) وى. څكه چې عمرفاروق ؓ هم دغه ډول فيصله په دې مالونو كې كړې وه.دا د صاحبينو ؒ دليل دې.

تنبيه۞ دلته د بعضو فقهاو عبارتونه مختلف دى.سوال دا دې.چه دا صرف د قتل خطاء د ديت ذكر دې. يا د شبه عمد او د خطاء دواړو دې.نو محقق قول دا دې.چه د دواړو ذكر دې.يعنى د امام ابوحنيفه ؒ په نيز د شبه عمد او خطاء دواړو ديت د دريو واړو قسمونو نه ادا كيداې شى.او د صاحبينو ؒ په نيز د نورو هغه څيزونو نه هم ادا كيداې شى.كوم چې دلته كې ذكر دى.

كه څوك دا اعتراض اوكړى چې وړاندې تير شوى دى.چه په شبه عمد كې به ديت مغلظه واجب وى.او تغليظ به صرف اوښانو كې وى.بيا دا ولې اوشو؟ نو د دې ځواب دا دې چې د هغې مطلب دا وو.چه د تغليظ تحقق به صرف اوښانو كې وى.چه سل اوښان به په ذكر شوو څلورو قسمونو باندې تقسيمولې شى.او كه ديت د اوښانو نه علاوه سره ادا كول وى.نو هلته به تغليظ نشى كيدې.بلكه بيا به د شبه عمد او قتل خطاء په ديت كې هيڅ توپير نه وى.څكه چې د تغليظ طريقه صرف په اوښانو كې منقول ده.نو كه قاضى د اوښ نه په علاوه كې د تغليظ فيصله وركړله.نو د نه منقول كيدو په وجه تغليظ ثابت نه وى.او د قاضى فيصله به نافذ نه وى.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وَلَهٗ او د امام ابوحنيفه ؒ دليل دا دې اَنَّ التَّقْدِيْرَ اِنَّمَا يَسْتَقِيْمُ بِشَيْءٍ چې تقدير په داسې شئ سره صحيح كيږى مَعْلُوْمِ الْمَالِيَّةِ چې دكوم ماليت معلوم وى وَهٰذِهِ الْاَشْيَاءُ مَجْهُوْلَةُ الْمَالِيَّةِ او دا شيان (غواګانې، وزه (چيلۍ) او جوړې) مجهول الماليت دى وَلِهٰذَا لَا يُقَدَّرُ بِهَا ضَمَانٌ په دې وجه دې څيزونو سره ضمان نه مقدر كيږى

تشريح:- د امام صاحب ؒ دليل دا دې.چه تقدير په داسې شئ سره صحيح كيداې شى.چه دكوم ماليت معلوم وى.او د دينار او درهم ماليت هر څوك پيژنى.نو هم دې تقدير سره صحيح دې.خو د غواګانو، چيلو او جوړو ماليت مجهول (نا معلوم) دې.لكه څنګه چې ښكاره ده.هم دا وجه ده.كه د يوكس څه شئ ئې ضائع كړو.نو ددې د ضمان اندازه به غواګانو اوچيلو وغيره سره نشى كولې.

(١) القول الراجح هوهذا قول أبى حنيفة ؒ ردالمحتار (٤٠٧١٥) والفقه الإسلامى (٣٠٢١٦) وملتقى (٣٤٢١٤) والهندية (٢٤١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٨٠١٢)_

(٢) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده ؓ أخرجه أبوداود فى الديات باب ١٦ رقم ٤٥٤٢)_

وَالتَّقْدِيرُ بِالْإِبِلِ عُرِفَ بِالْآثَارِ الْمَشْهُورَةِ او اوښ سره داسې آثارو سره معلوم شوي دي.چه مشهور دی وَعَدِمْنَاهَا فِي غَيْرِهَا دا آثار موږ د اوښ نه علاوه كي معدوم موندلی دي

تشريح:- دا ديو تقديری سوال ځواب دي سوال دا دي چي ترڅو پوري د ماليت د جهالت خبره ده نودا خو په اوښانو كي هم شته نوبيا پكارده چي اوښان هم په ديت كي وركول جائز نشي نوپه دي عبارت سره ددي ځواب كوی چي قياس هم دا دي خودمره ده چي موږ دلته قياس پريښودي دي اود قياس پريښول ددي وجی دی چي په مشهورو آثارو سره دا تقدير ثابت دي. په دي وجه موږ له قياس پريښول ضروری شو.او په آثار مشهوره سره د غواګانو، اوچيلو وغيره تقدير ثابت نه دي.نو موږ په قياس باندي عمل اوكړو.د امام صاحب رحمه الله دليل پوره شو.

وَذُكِرَ فِي الْمَعَاقِلِ او امام محمد رحمه الله په كتاب المعاقل كي ذكركړی دی أَنَّهُ لَوْ صَالَحَ عَلَى الزِّيَادَةِ عَلَى مِائَتَيْ حُلَّةٍ أَوْ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ كه د دوي (دوه) سوو جوړو يا د دوي (دوه) سوه غواګانو نه په زيات باندي ئي صلح اوكړله لَا يَجُوزُ نو جائز نه ده وَهَذَا آيَةُ التَّقْدِيرِ بِذَلِكَ او دا په دي سره د تقدير علامت دي.

تشريح:- امام محمد رحمه الله د مبسوط په كتاب المعاقل كي ليكلی دی.كه د دوي (دوه) سوه جوړو او د دوي (دوه) سوه غواګانونه په زيات سره صلح اوكړله.نوصلح به جائزنه وی.داعبارت مرغيناني رحمه الله نقل كوی.او فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله ددي عبارت نه معلوميږی.چه دوي (دوه) سوه جوړي او دوي (دوه) سوه غواګاني تقدير شرعی دي.په دي باندي

ثُمَّ قِيلَ: بيا ونيلي شوی دی هُوَ قَوْلُ الْكُلِّ چي دا د كل ( دټولو) قول دي فَيَرْتَفِعُ الْخِلَافُ نو د سره به دا اختلاف پورته شي وَقِيلَ او ونيلي شوی دی هُوَ قَوْلُهُمَا چي دا د صاحبينو رحمهما الله قول دي.

تشريح:- ① بعضو حضراتو ونيلی دی.چه دا مذكوره قول د ټولو قول دي.يعنی د امام ابوحنيفه، د امام ابويوسف،او د امام محمد رحمهم الله ، نو كه دا خبره ثابته شی.نو بيا خو د سره اختلاف نه پاتي كيږی.② بعضو حضراتو ونيلی دی.چه دا صرف د صاحبينو رحمهما الله قول دي.او هم دا قول اصح دي.چه دا صرف د صاحبينو رحمهما الله قول دي.

③څكه چي امام محمد رحمه الله په كتاب الآثار كي په طريق د امام ابوحنيفه رحمه الله په صحيح سند سره د حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت كړي دي.چه په سپينو زر والا باندي ديت لس زره درهمه دي.او په سرو زرو والا باندي زر ديناره دی.او په غواګانو والا باندي دوي (دوه) سوه غواګاني دی.او په اوښانو والا باندي سل اوښان دی.او په چيلو والا باندي زر وزه (چيلی) دی.او په جوړو والا باندي دوي (دوه) سوه جوړي دی.بيا امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی.چه موږ دا واړه اختياره وو.او امام ابوحنيفه رحمه الله په دي كي صرف اوښان او درهم او دينار اندازه اخلی.نو ددي نه معلومه شوه.چه د صلح مسئله صرف د صاحبينو رحمهما الله قول دي.

### د ښځي او د سړي په ديت كښي فرق

قَالَ: (وَدِيَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ) اود ښځي ديت د سړي د ديت نيم دي وَقَدْ وَرَدَ هَذَا اللَّفْظُ مَوْقُوفًا او دا لفظ موقوف وارد شوي دي عَلَى عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(١) په حضرت علی رضي الله عنه باندي وَمَرْفُوعًا إِلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ(٢) او نبي كريم ﷺ ارخ ته مرفوع وارد دي.

تشريح:- د ښځي ديت مطلقاً د سړي د ديت نصف دي.كه په نفس كي وی.اوكه په اندامونو كي وی.

① دليل دا حديث دي. «دية المرأة على النصف من دية الرجل» دا موقوفاً او مرفوعاً دواړه شان منقول دي.او دا حديث

(١) أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (١٦٧/٨) رقم ١٦٣٠٩)_

(٢) من حديث معاذبن جبل رضي الله عنه أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (١٦٦/٨) رقم ١٦٣٠٥)_



د خپل عموم په وجه امام شافعي رحمه الله باندي حجت دي.څكه چي شافعي په اندامونوكي د نصف ديت قائل نه دي، لكه څنګه چي په راروان متن كي د هغوی د مخالفت ذكر راشي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله ◦ او امام شافعي رحمه الله فرمايي دُونَ الثُّلُثِ چي كوم د دريمي برخي ديت نه كم دي مَا لَا يَتَنَصَّفُ هغه به نشي نيمولي وَإِمَامُهُ فِيهِ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(١) او ددوی امام په دي كي زيد بن ثابت رضي الله عنه دي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ. او د امام شافعي رحمه الله په خلاف حجت هغه حديث دي مَا رَوَيْنَاهُ(٢) كوم چي موږ روايت كړي دي بِعُمُومِهِ د خپل عموم په وجه،

تشريح:- امام شافعي رحمه الله داندامونوپه ديت كي موږ سره مخالفت كوی اوفرمائی چي كله ديت په اندامونو كي وی. نو كتلي به شی.چه هلته د نفس د ديت نصف يا ثلث واجب دي.اوكه كم، كه نصف يا ثلث واجب وی. نو په دي كي موږ سره متفق دي.چه د ښځي د ديت نه هم كم لازميږی. اوكه د نصف يا ثلث نه كم وی نو په دي كي مخالفت كوی اوفرمائی چي هلته به د سړي او د ښځي ديت برابر وی.او د ښځي ديت به د سړي د ديت نصف نه وی.

① په دي كي امام شافعي رحمه الله د زيد ابن ثابت رضي الله عنه د فرمان نه استدلال كړي دي.يعنی ددوی تقليد ئي كړي دي. حالانكه د امام شافعي رحمه الله په نيز د صحابی تقليد حجت نه دي.او

وَلِأَنَّ حَالَهَا أَنْقَصُ مِنْ حَالِ الرَّجُلِ او څكه چي د ښځي حال د سړي د حال نه ناقص دي وَمَنْفَعَتُهَا أَقَلُّ، اود ښځي منفعت كم دي وَقَدْ ظَهَرَ أَثَرُ النُّقْصَانِ بِالتَّنْصِيفِ فِي النَّفْسِ او د نقصان اثر په نفس كي دننه نيمولو كي ښكاره شوي دي فَكَذَا فِي أَطْرَافِهَا وَأَجْزَائِهَا نو هم دغه ډول به ښكاره كيږی.د ښځي په اندامونو او اجزاو كي اعْتِبَارًا بِهَا په نفس باندي قياس كاوه سره، وَبِالثُّلُثِ وَمَا فَوْقَهُ او په دريمه برخه او ددي نه په زياتی باندي قياس كاوه سره.

تشريح:- زموږ عقلی دليل دا دي چي د ښځي حال د سړي د حال نه ناقص دي.او د ښځي منفعت د سړي د منفعت نه كم دي. نو دا نقصان به په ديت كي هم ښكاره كيږی.بيا هركله چي د امام شافعي رحمه الله په نيز د نفس په ديت كي نقصان منلي شوي دي.او دغه ډول د اندامونو په ديت كي دريمه برخه ديت، او ددي نه په زيات كي نقصان منلي شوي دي.نو بيا د دريمي نه په كم كي د عدم تسليم ( او د نه منلو) څه وجه ده.

### د مسلمان او ذمي.او د نصراني، يهودي او د مجوسي د ديتونو مقدار

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَدِيَةُ الْمُسْلِمِ وَالذِّمِّيِّ سَوَاءٌ) او د مسلمان او د ذمی ديت برابر دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمايي دِيَةُ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ أَرْبَعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ چي د نصرانی او يهودی ديت څلور زره درهمه وَدِيَةُ الْمَجُوسِيِّ ثَمَانِمِائَةِ دِرْهَمٍ او د مجوسی ديت اته سوه درهمه دي وَقَالَ مَالِكٌ: رحمه الله اوامام مالك رحمه الله فرمائی. دِيَةُ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ سِتَّةُ آلَافِ دِرْهَمٍ چي د يهودی او نصرانی ديت شپږ زره درهمه دي.

تشريح:- ① د ذمی دديت په برابره كي دري مذاهب دی زموږ په نيز د مسلمان او ذمی ديت برابر دي.② دوهم مذهب د امام شافعي رحمه الله دي د هغوی په نيز كه ذمی، نصرانی يا يهودی وی.نو دده ديت څلور زره درهمه دي.اوكه مجوسی وی.نو دده ديت اته سوه درهم دي.③ دريم مذهب د امام مالك رحمه الله دي د دوی په نيز د يهودی او نصرانی ديت شپږ زره درهمه دي.

(٣) عن الشعبى عن زيدبن ثابت رضي الله عنه قال جراحات الرجال والنساء سواء إلى الثلث فما زاد فعلى النصف أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (١٦٧/٨) رقم ١٦٣١٠)_

(٢) من حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه اخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (١٦٦/٨) رقم١٦٣٠٥)_

لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (امام مالك دليل ) د نبیﷺ د فرمان په وجه چې {عَقْلُ الْكَافِرِ نِصْفُ عَقْلِ الْمُسْلِمِ} د كافر ديت د مسلمان د ديت په نيمه دي،، وَالْكُلُّ عِنْدَهُ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا (١) او پوره ديت ددوی په نيز دولس زره دي.

تشريح:- دامام مالك رحمه الله دليل د ترمذی دا حديث دي. «عقل الكافر نصف عقل المسلم» چې د كافر ديت د مسلمان د ديت نصف دي.او د امام مالك رحمه الله په نيز د مسلمان ديت دولس زره درهمه دي.نو د كافر به شپږ زره وی. په دې كې د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله اختلاف دي.

وَلِلشَّافِعِيِّ رحمه الله او د امام شافعی رحمه الله دليل هغه دي مَا رُوِيَ كوم چې نقل دي أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَعَلَ دِيَةَ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ أَرْبَعَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ چې نبیﷺ د نصرانی او يهودی ديت څلور زره مقرر كړي دي. {وَدِيَةَ الْمَجُوسِيِّ ثَمَانَمِائَةِ دِرْهَمٍ (٢) اود مجوسی نې اته سوه درهمه ( مقرر كړي دي).

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله دليل د عبدالرزاق روايت دي.چه نبی كريمﷺ د نصرانی او يهودی ديت څلور زره درهمه او د مجوسی نې اته سوه درهمه مقرر كړي دي.

### د احنافو رحمهم الله دليل

ولنا قوله عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبیﷺ فرمان دي {دِيَةُ كُلِّ ذِي عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ أَلْفُ دِينَارٍ} (٣) د هر ذمی ديت كله چې هغه پخپل عقد ذمه باندې پاته وی.زر ديناره دي وَكَذَلِكَ قَضَى أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا او هم دغه ډول فيصله كړې ده ابوبكر او عمر رضي الله عنهما {وَمَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ رحمه الله او هغه حديث كوم چې امام شافعی رحمه الله روايت كړي دي لَمْ يُعْرَفْ رَاوِيهِ د هغې راوی معلوم نه دي وَلَمْ يُذْكَرْ فِي كُتُبِ الْحَدِيثِ (٤) او د حديث په كتابونو كې ذكر نه دي وَمَا رَوَيْنَاهُ او هغه حديث كوم چې موږ روايت كړي دي أَشْهَرُ مِمَّا دا دهغه حديث نه مشهور دي رَوَاهُ مَالِكٌ رحمه الله كوم چې امام مالك رحمه الله روايت كړي دي فَإِنَّهُ ظَهَرَ بِهِ عَمَلُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ (٥) والله اعلم ځكه چې په دې د صحابوؓ عمل ښكاره شوی دي.

تشريح:- دا زموږ دليل دي.د ابوداؤد په مراسيلو كې روايت دي.چه د هر ذمی ديت زر ديناره دي.او هم دا د تيرشوی تصريح مطابق د مسلمان ديت دي.او هم دا حضراتو شيخينو رضي الله عنهما فيصله ده.اوس پاتې شو هغه حديث د كوم نه چې امام شافعی رحمه الله استدلال كړي دي.د هغې راوی مجهول دي.او د حديث په كتابونو كې مذكور نه دي.او پاتې شو هغه روايت د كوم نه چې امام مالك رحمه الله استدلال كړي دي.د هغې نه زموږ روايت مشهور دي.او صحابه كرامو رضي الله عنهم هم ددې مطابق عمل كړي دي.

تنبيه◉ په دې درېو واړو حديثونو باندې تفصيلی بحث لپاره او د مرغينانی رحمه الله ددې فرمان ،، لم يذكر فى كتب الحديث،، كې اشكال دي.ددې تفصيل لپاره اوګورئ،﴿نصب الرايه ص:٣٦٩ تا ٣٦٣ ,ج٤﴾

## فصل فيما دون النفس

(١) من حديث ابن عمرو رضي الله عنهما أخرجه أبوداد فى الديات باب ٢١ ر ٤م ٤٥٨٣ والترمذى فى الديات باب ١٦)_

(٢) قال الزيلعى رحمه الله رواه عبدالرزاق فى مصنفه فى كتاب العقول ...أن رسول الله ﷺ فرض على كل مسلم قتل رجلاً من أهل الكتاب أربعة آلاف درهم (نصب:١٣٣\٥)_

(٣) من حديث سعيدبن المسيب رحمه الله أخرجه أبوداود فى مراسيله (نصب:١٣٤\٥)_

(٤) إنكار صاحب الهداية عن وجود هذه الرواية فيه بعد فقد نقل الزيلعى رحمه الله عن عمر رضي الله عنه أخرجه الشافعى فى مسنده وكذا ورى عن عثمان رضي الله عنه البيهقى فى معرفة السنن والآثاررقم ٤٩٣٠) (نصب:١٣٤\٥)_

(٥) كما يعلم من رواية مصنف عبدالرزاق والبيهقى وأبوداود فى مراسيله نقلها الزيلعى رحمه الله فى نصب الرأية:١٣٦\٥)_



ژباړه:- ( دا) فصل د نفس نه په كم كې ( يعنى د اندامونو د احكامو په بيان كې ) دي.

### اندامونو كښې د ديت حكم

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.(وَفِي النَّفْسِ الدِّيَةُ چې په نفس كې ديت دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا بيان كړي دي قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائيلی دی (وَفِي الْمَارِنِ الدِّيَةُ او په مارن ( د پوزې په نرم هډوكی) كې ( پوره ديت) ديت دي وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ او په ژبه كې ديت دي وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ او په ذكر ( اندام مخصوصه) كې ديت دي وَالْأَصْلُ فِيهِ او په دې كې اصل دليل هغه دي مَا رَوَى سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كوم چې سعيد بن مسيب رحمه الله روايت كړي دي أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَ چې نبی كريمﷺ فرمائيلی دی {فِي النَّفْسِ الدِّيَةُ چې په نفس كې ديت دي وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ او په ژبه كې ديت دي وَفِي الْمَارِنِ الدِّيَةُ (١) او د پوزې په نرمه برخه كې ديت دي.

حل اللغة◦ ① مارن: د پوزې نرم هډوكې، تندوړې ② اللسان: ژبه ﴾

تشريح:- په دې فصل كې د نفس نه كم يعنى د اندامونو او اجزاو ديت حكم بيانولې شی.بيا په دې فصل كې د نفس ذكر يا خو تمهيداً دي.يا د حديث نه د تبرك حاصلولو په غرض سره دي.ځكه چې متن بعينه د حديث الفاظ دی.سعيد بن مسيب رحمه الله تابعی دي.نو ددوی دا روايت مرسل دي.او مرسل بالاجماع حجت دي.

وَهَكَذَا او دا حكم هم دغه ډول دي وَهُوَ فِي الْكِتَابِ الَّذِي كَتَبَهُ رَسُولُ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (٢) په هغه خط كې كوم چې رسول اللهﷺ د حضرت عمرو بن حزم لپاره ليكلې وو.

تشريح:- دوهم دليل دا دې چې نبی كريمﷺ د يمن خلګو ته يو خط ليكلې وو.او حضرت عمرو بن حزم رضي الله عنه ته نې ليكلې وو.چه هغې كې د فرائضو، سنتو او د ديتونو تفصيل وو.بهرحال مذكوره ټولو څيزونو كې به پوره ديت واجب وی.د سعيد بن مسيب رحمه الله د مذكوره حديث نه هم دغه ثابت دی.كوم خط چې رسول الله ﷺ د يمن خلګو لپاره ليكلې وو.

وَالْأَصْلُ فِي الْأَطْرَافِ او د اندامونو په سلسله كې قاعده كليه داده أَنَّهُ إِذَا فَوَّتَ جِنْسَ مَنْفَعَةٍ عَلَى الْكَمَالِ چې هركله اندام په كامل طريقه د جنس منفعت فوت كړو. أَوْ أَزَالَ جَمَالًا مَقْصُودًا فِي الْآدَمِيِّ عَلَى الْكَمَالِ يا نې په مكمل طريقه د سړی مقصودی جمال زائل كړو يَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو پوره ديت به واجب وی لِإِتْلَافِهِ النَّفْسَ مِنْ وَجْهٍ من وجه دده د نفس هلاكاوه په وجه، وَهُوَ مُلْحَقٌ بِالْإِتْلَافِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او دا ( من وجه نفس هلاكول) من كل وجه هلاكاوه سره متعلق دی تَعْظِيمًا لِلْآدَمِيِّ د سړی د تعظيم په غرض سره أَصْلُهُ قَضَاءُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ددې دليل د رسول اللهﷺ فيصله ده بِالدِّيَةِ كُلِّهَا فِي اللِّسَانِ وَالْأَنْفِ د پوره ديت په ژبه او پزه كې ،

تشريح:- دلته يوه قاعده كليه بيانوی.چه هركله د يو انسان په اندام كټ كاوه سره ددې اندام كامل منفعت ختم شو.يا چې په دې سره كوم جمال مقصود وو.هغه زائل شو.نو دا داسې ده.لكه د نفس هلاكول،نو دې ته به د كامل هلاكاوه درجه وركولې شی.او پوره ديت به واجبولې شی.د انسان د احترام تقاضه هم دا ده. او ددې دليل دا دې.چه نبی كريمﷺ په ژبه او پزه كې د پوره ديت فيصله فرمائيلې وه.خير دا يو كلی ( قاعده او) اصول دي.چه په دې باندې ډير جزئيات متفرع كيږی.فرمائی.

### په مذكوره قاعدي باندې متفرع جزئيات

وَعَلَى هَذَا تَنْسَحِبُ فُرُوعٌ كَثِيرَةٌ او په دې قاعده باندې ډير فروع متفرع كيږی فَنَقُولُ: فِي الْأَنْفِ الدِّيَةُ نو موږ وايو.چه په

(١) قال الزيلعى رحمه الله لم أجده (نصب الرأية:١٣٨\٥)_

(٢) أخرجه النسائى فى القود رقم ٤٥١٣) وأبوداود فى مراسيله وابن حبان فى صحيحه والحاكم فى المستدرك (٣٩٧١) وعبدالرزاق فى مصنفه (نصب:١٣٨\٥)_

پزه کې پوره دیت دی لِأَنَّهُ أَزَالَ الْجَمَالَ عَلَى الْكَمَالِ خکه چې دې جمال (او ښائست) په پوره طریقه زائل کړې دی وَهُوَ مَقْصُودٌ حالانکه جمال مقصود دی وَكَذَا إِذَا قَطَعَ الْمَارِنَ او دغه ډول کله چې د پوزې نرمه برخه کټ کړله أَوِ الْأَرْنَبَةَ یا نې د پوزې سر (کټ کړو) لِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ ذکرکړې دی وَلَوْ قَطَعَ الْمَارِنَ مَعَ الْقَصَبَةِ او که نرمه برخه نې سره د پوزې د سر (او ډانډی) کټ کړه. لِأَنَّهُ عُضْوٌ وَاحِدٌ نو په یو دیت به اضافه نه لَا يُزَادُ عَلَى دِيَةٍ وَاحِدَةٍ خکه چې دا یو اندام دی وَكَذَا اللِّسَانُ او هم دغه ډول ژبه ده لِفَوَاتِ مَنْفَعَةٍ مَقْصُودَةٍ د مقصودی منفعت فوت کیدو په وجه، وَهُوَ النُّطْقُ. او هغه نطق (خبرې کول) دی.

حل اللغة* ① ينسحب: متفرع کیږی، راوخی،② الارنبة: د پوزې سر ③ النطق: خبرې﴾

تشریح:- اوس په دې کلیه باندې متفرع کیدونکی بعض جزئیات ذکرکوی.په پوزې سره هم جمال مقصود دی.او هرکله چې پزه کټ شوه.نو مقصودی جمال (او ښائست) ختم شو.نو پوره دیت به واجب وی.دغه ډول که د پوزې نرمه برخه نې کټ کړله.نو په دې کې هم یا نې د پوزې سر کټ کړلو، په دې کې هم، اوکه د پوزې نرمه برخه نې کټ کړه.بیا به هم یو دیت واجب وی.خکه چې پزه یو اندام دی.او هم دغه ډول که ژبه نې کټ کړله.بیا به هم پوره دیت واجب وی.خکه چې ژبې سره کوم منفعت مقصود وو (نطق) هغه زائل شو.

**په پوره یا نیمه ژبه کټ کولو کښې د دیت حکم**

وَكَذَا فِي قَطْعِ بَعْضِهِ او هم دغه ډول د پوزې په بعضې برخه کټ کاوه کې إِذَا مَنَعَ الْكَلَامَ کله چې دا کټ کاوه د خبرو کاوه نه بند کړې لِتَفْوِيتِ مَنْفَعَةٍ مَقْصُودَةٍ د مقصودی منفعت ختمیدو په وجه وَإِنْ كَانَتِ الْآلَةُ قَائِمَةً اګرچه ژبه موجود ده. وَلَوْ قَدَرَ عَلَى التَّكَلُّمِ بِبَعْضِ الْحُرُوفِ او که د بعضو حرفونو په وئیلو باندې قادردې قِيلَ: نو وئیلی شوی دی تُقْسَمُ عَلَى عَدَدِ الْحُرُوفِ، چې د حروفو په تعداد باندې به تقسیمولې شی وَقِيلَ: او وئیلی شوی دی عَلَى عَدَدِ حُرُوفٍ چې دهغه حروفو په تعداد باندې به تقسیمولې شی تَتَعَلَّقُ بِاللِّسَانِ، کوم چې د ژبې سره تعلق ساتی فَبِقَدْرِ مَا لَا يَقْدِرُ نو دهغه حروفو په اندازه په کومو چې دې قادر نه دې تَجِبُ دیت به واجب وی.

تشریح:- که ژبه کټ کړې شی.نو پوره دیت واجبیږی... کمامر.. خو که بعض برخه کټ کړې شوې وی.او پاته ژبه موجود ده.نو ددې یو څو صورتونه دی:یوصورت دا دې چې بعضې برخه کټ شوې ده.خو دا خبرې نشی کولې.نو پوره دیت به واجب وی.خکه چې ژبه اګرچه قائم ده.خو مقصودی منفعت زائل شوې دې. دوهم صورت دا دې چې څه خبرې کولې شی.او څه نشی کولې.نو یو قول خو دا دې.چه واړه حرفونه اته ویشت دی.اوس اوګوره.چه څومره نشی وئیلې.نو هم ددغه حرفونو په حساب سره به دیت واجب وی.مثلاً ۱۴ حرفونه وئیلې شی.او ۱۴ نشی وئیلې.نو نیم دیت به واجب وی.او په ټولو حرفونو کې به هم دا حساب لګولې شی.③ بعضو حضراتو وئیلی دی.چه صرف هغه حرفونه به اخستلې شی.د کوم مخرج چې ژبه ده.(یعنی کوم چې په ژبې سره ادا کولې شی) او هغې کې به دا حساب لګولې شی.او کوم حرفونه چې په ژبه ادا کولې شی.هغه ۱۶ دی.(ت، ث، ج، د، ذ، ر، ز، س، ش، ص، ض، ط، ظ، ل، ن، ی) نوکه دا واړه حرفونه نشی ادا کولې.نو پوره دیت به واجب وی.اوکه په دې کې ۸ نشی وئیلې.نو پنځه زره درهم، او که څلور نشی وئیلې.نو پنځه ویشت سوه درهم به واجب وی... وقس علی هذا..

وَقِيلَ: او وئیلی شوی دی إِنْ قَدَرَ عَلَى أَدَاءِ أَكْثَرِهَا که دې په اکثرو حرفونو ادا کاوه باندې قادر وی تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ نو حکومت عدل واجب دې لِحُصُولِ الْإِفْهَامِ مَعَ الِاخْتِلَالِ، ګډ وډ سره د پوهولو حاصلیدو په وجه وَإِنْ عَجَزَ عَنْ أَدَاءِ الْأَكْثَرِ او که د اکثر د وئیلو نه عاجز شی تَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو پوره دیت به واجب وی. لِأَنَّ الظَّاهِرَ خکه ښکاره هم دا ده أَنَّهُ لَا تَحْصُلُ مَنْفَعَةُ الْكَلَامِ چه د کلام (وئیلو) منفعت به نه حاصلیږی.

حل اللغة* ① الافهام: بل پوهول ② الاختلال: ګډ وډ کیدل﴾

تشریح:- بعضو حضراتو وئیلی دی.چه د اکثرو حرفونو په ادا کاوه باندې قدرت وی.او په بعضو باندې نه وی.نو



حکومت عدل واجب دې.چه ددې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.خکه چې هغه دلته کې پخپله خبره خلګ پوهولې شی.اګرچه څه ګډ وډی او کمی به وی.اوکه د اکثرو حرفونو ادا کاوه نه عاجز شی.نو دلته به پوره دیت واجب وی.خکه چې.. للأكثر حكم الكل.. نو ښکاره هم دا ده.چه منفعت د کلام فوت شوې دې.خکه چې کلام خو د حرفونو نه مرکب کیږی.او دې اکثر حرفونه نشی وئیلې.نو کلام به څنګه جوړیږی.

**په پوره اندام مخصوصه یا حشفه کټ کولو کښې د دیت حکم**

وَكَذَا الذَّكَرُ او هم دغه ډول ذکر دې لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ مَنْفَعَةُ الْوَطْءِ چې په دې سره د وطی منفعت وَالْإِيلَادِ او د بچی پیدا کاوه منفعت وَاسْتِمْسَاكِ الْبَوْلِ او د وړو متیازو بندولو، وَالرَّمْيِ بِهِ او د متیازو ویشتلو وَدَفْقِ الْمَاءِ او د منی ویشتلو. وَالْإِيلَاجِ الَّذِي هُوَ طَرِيقُ الْإِعْلَاقِ عَادَةً او د هغه ایلاج (ادخال) کوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې د حامله کیدو طریقه ده.

حل اللغة* ① ایلاد: بچی راوړل ② الامساک: ایسارول ③ ایلاج: داخلول ④ الاعلاق: حامله کول﴾

تشریح:- دغه ډول که د یو کس ذکر نې کټ کړو.نو په دې کې به هم پوره دیت واجب وی.خکه چې د ذکر کوم منافع وو.هغه واړه زائل شو.د ذکر منافع دا وو.① د وطی منفعت ② بچې پیدا کول ③ بولې (وړوکې حاجت) بندول ④ بولې لرې ویشتل ⑤ د منی جلا ویشتل ⑥ هغه ایلاج او ادخال کوم چې عادتاً (عام طور) باندې د حمل طریقه ده.

؟ د عادتاً قید خکه لګولې شوې دې.چه ممکن ده.صرف په موګلو سره هم ښځه حامله شی.خو عادتاً په عامه توګه (عام طور) باندې دا دحمل طریقه نه ده.

وَكَذَا فِي الْحَشَفَةِ الدِّيَةُ كَامِلَةً، او هم دغه ډول په حشفه کې پوره دیت دیګ لِأَنَّ الْحَشَفَةَ أَصْلٌ چې حشفه اصل دیګ فِي مَنْفَعَةِ الْإِيلَاجِ د ایلاج (او ادخال) په منفعت کې ، وَالدَّفْقِ او د ویشتلو په منفعت کې وَالْقَصَبَةُ كَالتَّابِعِ لَهُ او ډنډه د حشفې د تابع پشان ده.

تشریح:- او که د ذکر حشفه (د اندام مخصوصه ټوشیدې) ئې کټ کړله.او صرف ډنډه پاتې شوه.نو بیا به هم پوره دیت واجب وی.خکه چې د حشفې کوم منفعت وو.هغه بالکلیه زائل شو.او اصل ایلاج (داخلول) او د منی جلا ویشتل د حشفې په وجه کیږی.او ډنډه د حشفې تابع ده.

**په وهلو سره عقل ختم شو.نو څه حکم دې ؟**

قَالَ:امام قدوری رحمه الله فرمایي (وَفِي الْعَقْلِ إِذَا ذَهَبَ بِالضَّرْبِ الدِّيَةُ) او په عقل کې کله چې دا د وهلو په وجه ختم شی.دیت دې لِفَوَاتِ مَنْفَعَةِ الْإِدْرَاكِ د معلومولو د منفعت فوت کیدو په وجه إِذْ بِهِ يَنْتَفِعُ بِنَفْسِهِ خکه چې د عقل په وجه دې پخپل نفس سره منتفع کیږی فِي مَعَاشِهِ وَمَعَادِهِ ،.د خپلې دنیا او آخرت په اړه کې

تشریح:- که ګزار (وار) ئې اووهلو.او عقل ختم شو.نو پوره دیت به واجب وی.خکه چې د عقل په وجه سړې پخل نفع پخپلو دینی او اخروی ضروریاتو کې لګوی.نو د معلومولو (او پوهیدو) د جنس منفعت فوت کیدو په وجه به پوره دیت واجب وی.

**په وهلو سره د اوریدو،یا کتلو،یا بوئیولو، یا د خوند معلومولو قوت ختم شو، نو څه حکم دې ؟**

قَالَ وَكَذَا إِذَا ذَهَبَ سَمْعُهُ أَوْ بَصَرُهُ أَوْ شَمُّهُ أَوْ ذَوْقُهُ او هم دغه ډول کله چې (د وهلو په وجه) دده د اوریدو طاقت، د لیدو طاقت، یا د بوئیولو طاقت، یا د خوند معلومولو قوت ختم شی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهَا مَنْفَعَةٌ مَقْصُودَةٌ خکه چې دې کې

هر یو مقصودی منفعت دي وَقَدْرُوِيَ: أَنَّ عُمَرَرَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَضٰى بِأَرْبَعِ دِيَاتٍ فِي ضَرْبَةٍ وَاحِدَةٍ ذَهَبَ بِهَا الْعَقْلُ وَالْكَلَامُ وَالسَّمْعُ وَالْبَصَرُ او (۱) یقیناً نقل دي د حضرت عمرؓ نه د یو ځل وهلو په صورت کي، چې دي سره عقل او خبرې کول، او اوریدل، او نظر ختم شوي وو. د څلورو دیتونو فیصله ئې فرمائیلي وه.

حل اللغة: ① سمع: د اوریدو قوت ② بصر: د کتلو قوت ③ شم: د بویولو قوت ④ ذوق: په ژبه باندې د سکلو قوت

تشریح:- په ذکر شوو څلورو قوتونو کي هر یو منفعت مقصودی دي. نو که د وهلو په وجه کوم یو قوت زائل شو. نو پوره دیت به واجب وي. او که داسې ئې اووهلو. چه په یوځل څلور واړه ختم شي. نو څلور دیتونه به واجب وي. ولې؟ خکه چې عمرفاروقؓ هم دا فیصله فرمائیلي وه. او د اثر په موجودګۍ کي قیاس پریښودې شي.

## د ګیرې یا د سر ویخته خرئیلو سره د دیت حکم

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَفِي اللِّحْيَةِ إِذَا حُلِقَتْ) او په ګیره کي کله چې دا اوخرئیلي شی که یوکس د چا د ګیرې یا د سر ویخته اوخرئیل فَلَمْ تَنْبُتْ الدِّيَةُ نو راونه خیژي. دیت واجب دي لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ مَنْفَعَةُ الْجَمَالِ خکه چې ددې په وجه د جمال منفعت فوت کیږي قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی (وَفِي شَعْرِ الرَّأْسِ الدِّيَةُ) او د سره په ویښتو کي دیت دي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه، کوم چې موږ بیان کړي دي.

تشریح:- او بیا ګیره یا د سر ویخته راونه ختل. نو د حنفیانو په نیز به خرایونکی باندې پوره دیت واجب وي. خکه دي دواړو سره چې کوم جمال (او ښائست) دي. هغه فوت شو. او دا جمال مقصود دي.

وَقَالَ مَالِكٌ: او فرمایي امام مالك رحمه الله وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله او هم دا د امام شافعی رحمه الله قول هم دي تَجِبُ فِيهِمَا حُكُومَةُ عَدْلٍ، ل چې دي دواړو کي حکومت عدل واجب دي لِأَنَّ ذٰلِكَ زِيَادَةٌ فِي الْآدَمِيِّ خکه چې دا (ګیره او د سر ویخته) په سړي کي زیاتی دی وَلِهٰذَا يُحْلَقُ شَعْرُ الرَّأْسِ كُلُّهُ وَاللِّحْيَةُ بَعْضُهَا فِي بَعْضِ الْبِلَادِ او په دي وجه بعضو ښارونو کي د پوره سر ویخته او بعضي ګیره خرئیلي شي.

حل اللغة: ① حکومة: فیصله ② شعر: ویخته ③ اللحیة: ږیره

تشریح:- د امام مالك او امام شافعی رحمه الله مذهب دا دي. چه په دي دواړو صورتونو کي حکومت عدل واجب دي. دیت واجب نه دي. خکه چې ګیره او د سر ویخته د سړي د اصلي اجزاو ځني نه دي. خکه چې زیاتی شیان دی. په نورو الفاظو کي داسې چې دا اجزاء مکمله او مزینه دی. نو حکومت عدل سره به د نقصان پوره والي کولې شي. هم دا وجه ده. چه بعضو ښارونو کي رواج دي. چه هلته د پوره سر ویخته کټ کولې شي. لکه په هندوستان وغیره کي، او په بعضو ښارونو کي د بعضې ګیرې خرئیلو او د بعضې ساتلو رواج دي. نو ددی دواړو به هم هغه حکم وي. کوم چې د سیني او د لینګئ د ویختو وي.

وَصَارَ او دا داسې شوه كَشَعْرِ الصَّدْرِ وَالسَّاقِ لکه د سینې او لینګئ ویخته وَلِهٰذَا يَجِبُ فِي شَعْرِ الْعَبْدِ نُقْصَانُ الْقِيمَةِ په دي وجه د غلام په ویختو کي د قیمت نقصان واجب دي.

تشریح:- او هم دا وجه ده. چه د حنفیانو په نیز هم که د غلام ویخته اوخرئیلی شو. نو دیت واجب نه دي. بلکه صرف دده د قیمت نقصان واجبیږي. نو د آزاد په ویختو خرئیلو کي هم نقصان واجبیدل پکار دی. او هم دا حکومت عدل سره تعبیر کړي شوي دي.

## د احنافو رحمهم الله دلیل

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دي چې ګیره پخپل وخت کي جمال دي وَفِي حَلْقِهَا تَفْوِيتُهُ عَلَى الْكَمَالِ او ددې په خرئیلو کي د جمال مکمل فوت کول دی فَتَجِبُ الدِّيَةُ نو دیت به واجب وي كَمَا فِي الْأُذُنَيْنِ الشَّاخِصَتَيْنِ. لکه څنګه چې په دي

(۱) من حدیث أبی قلابة أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه (نصب: ۱٤۰۱۵)_



دواړو غوږونو کي کوم چې راوتلي دی وَكَذَا شَعْرُ الرَّأْسِ جَمَالٌ او دغه ډول د سر ویخته جمال دي أَلَا تَرَى آیا ته نه ګوري أَنَّ مَنْ عَدِمَهُ خِلْقَةً چې د چا سر ویخته مورزاده (پیدائشی) معدوم شی يَتَكَلَّفُ فِي سَتْرِهِ هغه د سر په پټولو کي تکلف کوی.

حل اللغة: ① جمال: ښائست ② الاذنین: تثنیه د اذن، غوږ ③ ستر: پواړه ④ الشاخصتین: تثنیه د شاخصة، بهر ته راوتلي غوږونه

تشریح:- دا زموږ دلیل دي. چه د ګیره په زمانه کي ګیره کیدل جمال دي. او ددې په خرئیلو سره د ګیرې پوره جمال ختمیږي. نو په دي کي به پوره دیت واجب وي. لکه څنګه چې دا دواړه غوږونه بهر ته راوتلي دی. اګرچه په دي سره سړي نه اوري. بلکه ددنه په سوړه کي چې کومه پرده خوره کړې شوې ده. د هغې په وجه اوري. بیا ددې دواړو د کټ کاوه په وجه پوره دیت واجبیږي. خکه چې د غوږونو کامل جمال ختمیږي. دغه ډول سر ویخته هم جمال دي. هم دا وجه ده. چه څوك ګنجې وي. هغه تکلف کوی. او دخپل سر پټولو کوښښ کوی.

بِخِلَافِ شَعْرِ الصَّدْرِ وَالسَّاقِ په خلاف د سینې او د لینګئ لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ جَمَالٌ خکه چې دي سره جمال متعلق نه دي وَأَمَّا لِحْيَةُ الْعَبْدِ او بهرحال د غلام ګیره فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يَجِبُ فِيهَا كَمَالُ الْقِيمَةِ، چې په دي کي به پوره قیمت واجب وی وَالتَّخْرِيجُ عَلَى الظَّاهِرِ او د ظاهرالروایة د تخریج مطابق خواب دا دي أَنَّ الْمَقْصُودَ بِالْعَبْدِ الْمَنْفَعَةُ بِالِاسْتِعْمَالِ چې د غلام نه مقصود د استعمال منفعت دي دُونَ الْجَمَالِ جمال نه دي بِخِلَافِ الْحُرِّ په خلاف د آزاد.

حل اللغة: ① الصدر: سینه ② المنفعة: فائده

تشریح:- په خلاف د هغه ویختو کوم چې په سینه او لینګئ باندې وی. نو هغې سره هیڅ جمال مقصود نه دي. په دي وجه به په دي کي دیت هم واجب نه وی. نو د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله ګیره او د سر ویخته په دې باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دي. او پاتې شوه د غلام ګیره نو په نوادر کي د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دي. چه په دي صورت کي به هم د غلام پوره قیمت واجب وی. نو قیاس به صحیح نه وی. البته ظاهرالروایة دا دي. چه د قیمت نقصان به واجب وی. نو بیا به د امام صاحب رحمه الله د اړخه خواب دا وی. چه په آزاد کي جمال مقصود دي. او په غلام کي د خدمت منفعت مقصود دي. چه دا د ګیرې کټ کیدو نه روسته هم موجود دي. په دي وجه غلام کي د نقصان قیمت واجب دي. او په آزاد کي پوره دیت واجب دي.

## په بریتو کټ کولو کښې څه حکم دي؟

قَالَ: مرغینانی رحمه الله فرمایي (وَفِي الشَّارِبِ حُكُومَةُ عَدْلٍ) او په بریتو کي حکومت عدل واجب دي هُوَالْأَصَحُّ او هم دا اصح ده لِأَنَّهُ تَابِعٌ لِلِّحْيَةِ خکه چې بریت د ګیرې تابع دی فَصَارَ نو داسې شوه كَبَعْضِ أَطْرَافِهَا لکه د ګیرې بعض طرفونه.

تشریح:- که دیوکس پوره بریت ئې کټ کړل. نو په دې صورت کي حکومت عدل دي. خکه چې بریت د ګیرې تابع دی. او د ګیرې په طرفونو خرئیلو کي هم حکومت عدل دي. نو په بریتو خرئیلو کي به هم حکومت عدل وی.

## د کوسه ګیرې کټ کولو د دیت څه حکم دي؟

قَالَ وَلِحْيَةُ الْكَوْسَجِ إِنْ كَانَ عَلَى ذَقَنِهِ شَعَرَاتٌ مَعْدُودَةٌ او د کوسه ګیرې که دده په ځنه باندې یو څو ویخته وی فَلَا شَيْءَ فِي حَلْقِهِ نو ددې په خرئیلو کي هیڅ نشته. لِأَنَّ وُجُودَهُ يَشِينُهُ خکه چې ددې وجود به دي عیب دار کوی وَلَا يَزِينُهُ او نه به ئې ښائسته کوی

حل اللغة: ① کوسج: کوسه، هغه کس چې ږیره ئې نه کیږي ② یشین: عیبداره کوي ③ یزین: ښائسته کوي

تشریح:- کوسه هغه کس ته وائي. چه دده ګیره یعنی د ګیرې زمانه راغله. او بوډا شو. خو ګیره ئې رانغله. لکه چې

بعض خلک داسې وی.نو ددې یو صورت دا دی چې دده خنه باندې یو څو د شمیر ویخته وی.نو ددې په پریخودو (او پاته پاتې کولو) کې به هیڅ جمال نه وی.او خراب به ښکاری.نو ددې په خرئیلو کې به هیڅ واجب نه وی.

وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ وکه ددې نه زیاته وی وَكَانَ عَلَى الْخَدِّ وَالذَّقَنِ جَمِيعًا او په مخ او خنه دواړو باندې وی لَكِنَّهُ غَيْرُ مُتَّصِلٍ خو متصل نه وی فَفِيهِ حُكُومَةُ عَدْلٍ نو په دې کې حکومت عدل دی لِأَنَّ فِيهِ بَعْضَ الْجَمَالِ ځکه چې دې کې بعض جمال شته.

**حل اللغة:** ① **الذقن:** ذنه ② **مال:** ښائست

**تشریح:-** دوهم صورت دا دی چې لږه زیاته وی.یعنی په خنه هم ده.او په مخ هم ده.خو متصل نه ده.نو په دې کې حکومت عدل واجب دی.ځکه چې دې کې لږ جمال وو.چه فوت شوی دی.

وَإِنْ كَانَ مُتَّصِلًا او که متصل وی فَفِيهِ كَمَالُ الدِّيَةِ نو په دې کې پوره دیت دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِكَوْسَجٍ ځکه چې دی کوسه نه دې وَفِيهِ مَعْنَى الْجَمَالِ او په دې کې د جمال معنی ده

**تشریح:-** دریم صورت دا دې چې ویخته لږ زیات دی.او متصل هم دی.نو ددې په خرئیلو کې به پوره دیت واجب وی.ځکه چې دې اوس کوسه نه دې.او په دې کې جمال وو.چه هغه خرئیونکی ختم کړې دی.

**په ذکر شوی صورتونو کښې د دیت د وجوب لازمی شرط**

وَهَذَا كُلُّهُ او دا واړه بحث هغه وخت دې إِذَا فَسَدَ الْمَنْبَتُ کله چې راختل فاسد شی فَإِنْ نَبَتَتْ نو که ګیره راوخیژی حَتَّى اسْتَوَى كَمَا كَانَ تر هغې پورې شی لکه څنګه چې وه لَا يَجِبُ شَيْءٌ نو هیڅ به واجب نه وی لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ أَثَرُ الْجِنَايَةِ ځکه چې د جنایت اثر پاته پاتې نشو وَيُؤَدَّبُ او دده تادیب به کولای شی عَلَى ارْتِكَابِهِ دده د ارتکاب (او جرم) کاوه په وجه مَا لَا يَحِلُّ دداسې شئ چې حلال نه دی.

**تشریح:-** په ذکر شوو تولو صورتونو کې به دیت هغه وخت واجب وی.چه دوبار ګیره وغیره راو نه خیژی.او راختل ختم شی.اوکه راوخیژی.نو هیڅ به واجب نه وی.ځکه چې د جنایت اثر پاته پاتې نشو.البته دده د غلط فعل جرم کاوه په وجه به دده تعزیر کولې شی.

وَإِنْ نَبَتَتْ بَيْضَاءَ او که سپینه ګیره راوختله فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ لَا يَجِبُ شَيْءٌ فِي الْحُرِّ چې په آزاد کې به هیڅ واجب نه وی لِأَنَّهُ يَزِيدُ جَمَالًا ځکه چې دا دده جمال زیاتوی وَفِي الْعَبْدِ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ او په غلام کې حکومت عدل واجب دی لِأَنَّهُ يَنْقُصُ قِيمَتَهُ ځکه چې دا دده قیمت کموی.

**حل اللغة:** ① **نبتت:** راوتوکیږی، راوخیژی ② **بیضاء:** سپین

**تشریح:-** اوکه د خرئیلو نه روستو سپینه ګیره راوخیژی.نوکه آزاد وی.نو هیڅ به واجب نه وی.ځکه چې سپینه ګیره د آزاد جمال زیاتوی.او که غلام وی.نو حکومت عدل دی.ځکه چې د غلام په ګیرې سپینیدو سره دده قیمت کمیږی.دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دی.

وَعِنْدَهُمَا تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز حکومت عدل واجب دی لِأَنَّهُ فِي غَيْرِ أَوَانِهِ يَشِينُهُ ځکه چې سپینه ګیره وبښته عیب دار کوی وَلَا يَزِينُهُ او نه ښائسته کوی. وَيَسْتَوِي الْعَمْدُ وَالْخَطَأُ او په دې کې عمداً او خطاء دواړه برابر دی عَلَى هَذَا الْجُمْهُورُ جمهور هم په دې تحقیق دی.

**حل اللغة:** ① **اوان:** وخت، زمانه ② **یستوی:** برابریږی

**تشریح:-** او د صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړو صورتونو کې حکومت عدل واجب دې.ځکه چې د ګیرې پخپل وخت باندې سپینیدل د ښائست او جمال سبب دی.او بې وخته سپینیدل خراب لګی.بیا په دې تفصیل کې د عمدا او خطاء خرئیلو دواړو حکم یو دې.د جمهور عالمانو هم دا قول دی.



**په وروځو کښې د دیت د وجوب مسئله**

وَفِي الْحَاجِبَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو وروځو کې پوره دیت دی وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ او په دې کې یو کې نیم دیت دی وَعِنْدَ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ او د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله په نیز حکومت عدل واجب دی وَقَدْ مَرَّ الْكَلَامُ فِيهِ فِي اللِّحْيَةِ او په دې کې بحث د ګیرې په منځ کې تیره شوې ده.

**حل اللغة:** ① **الحاجبین:** تثنیه د حاجب، وروځه ② **اللحیة:** ږیره

**تشریح:-** که دواړه اوریخې ئې کټ کړلې.نو پوره دیت به واجب وی.او د امام مالك اواما شافعی رحمهما الله په نیز د ګیرې پشان دلته هم حکومت عدل دې.د فریقینو دلیلونه د ګیرې په بحث کې تیر شوی دی.

**په کومو اندامو کټ کولو کښې پوره دیت او په کومو کښې نیم دیت واجب دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو سترګو کې دیت دې وَفِي الْيَدَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو لاسونو کې دیت دې وَفِي الرِّجْلَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو پښو کې دیت دې وَفِي الشَّفَتَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو شونډو کې دیت دې وَفِي الْأُذُنَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو غوږونو کې دیت دې وَفِي الْأُنْثَيَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو خصیو (هګی) کې دیت دې كَذَا رُوِيَ فِي حَدِيثِ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] د نبی ﷺ نه د سعید بن مسیب په حدیث کې هم دغه ډول نقل دی قَالَ: امام قدوری رحمه الله فرمایې (وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ نِصْفُ الدِّيَةِ) او په دې څیزونو کې هریو کې نیم دیت دې وَفِيمَا كَتَبَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ[2] او کوم خط چې نبی ﷺ عمرو بن حزم رضی الله عنه لپاره لیکلې وو.هغې کې دی {وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو سترګو کې دیت دې وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ} او په دې کې په یو کې نیم دیت دې وَلِأَنَّ فِي تَفْوِيتِ الِاثْنَيْنِ مِنْ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ تَفْوِيتَ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ أَوْ كَمَالِ الْجَمَالِ او ځکه چې په دې څیزونو کې د دوو په فوت کاوه کې جنس منفعت یا کمال منفعت فوت کول دی فَيَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو پوره دیت به واجب وی وَفِي تَفْوِيتِ إِحْدَاهُمَا تَفْوِيتُ النِّصْفِ او په دې دواړو کې د یو په فوت کاوه کې نصف فوت کول دی فَيَجِبُ نِصْفُ الدِّيَةِ نو نصف دیت به واجب وی

**تشریح:-** مطلب د عبارت او ژباړې نه ښکاره دې. لنډیز د کلام دا چې چرته د دواړو لاسونو یا پښو وغیره کټ کاوه سره پوره دیت واجب دی.هلته به د یو په کټ کاوه سره نصف دیت واجب وی.د سعید بن مسیب رح په حدیث او د عمرو بن حزم رضی الله عنه په خط کې دغه ډول منقول دی.او د اصول خبره دا ده.چه کله چې جنس منفعت یا د پوره جمال فوت کاوه سره پوره دیت واجب شو.نو د نصف په فوت کاوه سره به نصف دیت واجب وی.

**د ښځې یا د سړی تینو کټ کولو کښې څه حکم دی؟**

قَالَ: امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی (وَفِي ثَدْيَيِ الْمَرْأَةِ الدِّيَةُ) و د ښځې په دواړو تینو کې پوره دیت دې. لِمَا فِيهِ مِنْ تَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې دې کې جنس منفعت فوت کول دی (وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ دِيَةِ الْمَرْأَةِ) و په دې کې په یو کې د ښځې د دیت نصف دی لِمَا بَيَّنَّا په هغه وجه کوم چې موږ بیان کړې ده. بِخِلَافِ ثَدْيَيِ الرَّجُلِ په خلاف د سړی د دواړو تینو حَيْثُ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ چې دلته حکومت عدل واجب دې. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ وَالْجَمَالِ ځکه چې دې کې جنس منفعت او جمال فوت کول نه دی.

**حل اللغة:** ① **ثدي:** تی، میمی ② **المراة:** ښځه ③ **تفویت:** فوت کول

[1] قال الزيلعی رحمه الله غريب وقدتقدم فی کتاب عمروبن حزم رضی الله عنه وفی الشفتين الدية وفی البيضتين الدية(نصب:۱۵/۱٤)_

[2] تقدم تخريجه)_

**تشريح:-** د ښځي دواړه تيئونه كټ كړي شو.نو د ښځي پوره ديت به واجب وي.ځكه چي جنس منفعت فوت شو.اوكه يو ئي كټ كړو.نو د ښځي نيم ديت به واجب وي.د تير شوي دليل په وجه.او كه د سړي دواړه تيئونه كټ كړي شو.نو په دي كي صرف حكومتِ عدل واجب دي.ځكه چي دي كي نه د جنس منفعت فوت كيدل دي.او نه د جمال (او ښائست) فوت كيدل دي.,, كما هو ظاهر,,

وَفِي حَلَمَتَيِ الْمَرْأَةِ الدِّيَةُ كَامِلَةً او د ښځي د تئينو په سرونو كي پوره ديت دي لِفَوَاتِ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْإِرْضَاعِ وَإِمْسَاكِ اللَّبَنِ د ارضاع (د پيو وركولو) د مفعت او د پيو بندولو د فوت كيدو په وجه (وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُهَا) او په دي كي په يو كي نصف ديت دي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړي دي.

**حل اللغة:** ① **حلمتي:** تثنيه د حلمة: د ښځي د تی سر ② **الارضاع:** ماشوم ته شيدي وركول،ماشوم خپل تی ته اچول﴾

**تشريح:-** اوكه د ښځي د تئينو سر (غوټئ) كت كړي شوه.نو د دواړو په صورت كي به د ښځي پوره ديت واجب وي.اوديو په صورت كي به نيم ديت واجب وي.ځكه چي د غوټو (د تئينو دسرونو)نه بغيرنه شيدي ور كيداي شی.او نه شيدي په تئينو كي ساتلي شی.

## د سترګو په بڼړو (ويختو) كښي د ديت حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَفِي أَشْفَارِ الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ) او د سترګو په بڼړو كي پوره ديت دي. وَفِي إِحْدَاهَا رُبُعُ الدِّيَةِ او په دي كښي په يو كي څلورمه برخه ديت دي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: مرغيناني رحمه الله فرمايي يُحْتَمَلُ أَنْ مُرَادَهُ الْأَهْدَابُ مَجَازًا احتمال شته.چه د اشفار نه مراد بانړه وي.مجازاً، كَمَا ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ لكه څنګه چي امام محمد رحمه الله په مبسوط كي ذكر كړی دی لِلْمُجَاوَرَةِ د ګوانډ توب په وجه كَالرَّاوِيَةِ لِلْقِرْبَةِ لكه ،،راويه،، د مشكيزي دپاره، وَهِيَ حَقِيقَةٌ فِي الْبَعِيرِ او راويه په اوښ كي حقيقت دي.

**حل اللغة:** ① **الاشفار:** د اشفار معنی ده.د بڼړو (د سترګو د ويختو) جرړه، يعني كوم ځاي چي ويخته راخيژی.هغه ځاي اود اهداب معنی ده.بانړه، خو په دي دواړو كي د مجاورت (ګوانډ توب) تعلق دي.چه دا د مجاز مرسل علاقه ده.نو د يو بل په معنی كي استعمالولي شی.لكه د راويه معنی اوښ،او په دي د پاسه د اوبو مشك ته وئيلي شی. ② **الاهداب:** د سترګو بانړه ③ **المجاورة:** ګاونډيتوب ﴾ ④ **القربة:** ژي په كومه كي چي اوبه جمع كولي شی﴾

**تشريح:-** د قدوري په متن كي د لفظ اشفار نه بانړه هم مراد اخستي شی.او د بڼړو جرړي (ايخونه) هم مراد كيداي شی.بهرحال حكم د دواړو يو دي.د بڼړو ويخته واړه څلور خايه وي.او ددي جرړي هم څلور خايه وي.نو كه يو كس پوره بانړه كټ كړل.نو پوره ديت به واجب وي.اوكه د يو ځاي بانړه ئي كټ كړل.نو چونكه د ټولو ۱۱۴ دي.نو ديت به هم ۱۱۴ واجب وي.,, وقس على هذا,,

وَهَذَا لِأَنَّهُ يُفَوِّتُ الْجَمَالَ عَلَى الْكَمَالِ او دا ځكه چي په دي سره كامل جمال فوت كيږی وَجِنْسَ الْمَنْفَعَةِ او جنس منفعت فوت كيږی وَهِيَ مَنْفَعَةُ دَفْعِ الْأَذَى وَالْقَذَى عَنِ الْعَيْنِ او منفعت د تكليف او خزلو (ګندګی) د سترګو نه د لري كاوه منفعت دي إِذْ هُوَ يَنْدَفِعُ بِالْهُدْبِ او ځكه چي دا (تكليف او خزلي) په بڼړو سره لري كيږی وَإِذَا كَانَ الْوَاجِبُ فِي الْكُلِّ كُلَّ الدِّيَةِ او هركله چي په بڼړو كي پوره ديت واجب دي وَهِيَ أَرْبَعَةٌ او بانړه څلور دی كَانَ فِي أَحَدِهَا رُبُعُ الدِّيَةِ نو په دي كي په يو كي به څلورمه برخه ديت وی وَفِي ثَلَاثَةٍ مِنْهَا ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهَا او په دي كي په دريو كي به د څلورو دري برخي ديت وی وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ مُرَادُهُ مَنْبَتَ الشَّعْرِ او احتمال شته.چه د مرغيناني رحمه الله مراد د ويختو راټوكيدلو ځاي وی، وَالْحُكْمُ فِيهِ هَكَذَا او په دي كي هم دغه حكم دي.

**حل اللغة:** ① **الاذي:** تكليف ② **القذي:** بسري،خاشي بيشی، ﴾



**تشريح:-** د ټولو بڼړو كټ كاوه سره به پوره ديت ځكه واجب وي.چه جنس منفعت هم فوت شو.او جمال هم فوت شو.د بڼړو منفعت دا دي.چه ددي په ذريعه تكليف ده شئ مثلاً خاوري او ګردونه او خزلي او بوسری په سترګو كي نه رسيږی.

## بانړه سره د جرړو كټ كولو كښي د ديت حكم

وَلَوْ قَطَعَ الْجُفُونَ بِأَهْدَابِهَا او كه بانړه ئي سره د جرړو كټ كړل فَفِيهِ دِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو په دي كي به يو ديت واجب وی لِأَنَّ الْكُلَّ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ ځكه چي كل د شئ واحد پشان دي وَصَارَ او دا داسي شوه كَالْمَارِنِ مَعَ الْقَصَبَةِ لكه د پوزي سر سره د پوزي نرمه برخه (هم كټ كړی).

**حل اللغة:** ① **الجفون:** جمع د جفنة:د بانړو جرړه ② **اهداب:** بانړه ③ **المارن:** د پوزي نرمه برخه ④ **القصبة:** ⑤ **القصبة:** د پوزي نرمه حصه﴾

**تشريح:-** دلته د اهداب نه مراد منبت الشعر (د ويختو راختلو ځاي) مراد دي.او مطلب دا دي.چه بانړه او جرړي ئي دواړه كټ كړلي.نو اوس به هم يو ديت واجب وي.لكه مثلاً د پوزي د نرمي برخي او سر كټ كاوه كي يو ديت واجبيږی.,, كما مر,,

## د لاسونو او پښو په ګوتو كښي د ديت حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائيلی دی (وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ عُشْرُ الدِّيَةِ) او د دواړو لاسونو او د دواړو پښو په ګوتو كي، په هره ګوته كي د ديت عشر دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی ﷺ د فرمان په وجه،، {فِي كُلِّ أُصْبُعٍ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ} (1)هره ګوته كي لس اوښان دی،، وَلِأَنَّ فِي قَطْعِ الْكُلِّ تَفْوِيتَ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ او ځكه چي د ټولو ګوتو په كټ كاوه كي د جنس منفعت تكميل دي وَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ او په دي كي (د جنس منفعت فوت كاوه كي) پوره ديت دي وَهِيَ عَشْرٌ او ګوتي لس دی فَتَنْقَسِمُ الدِّيَةُ عَلَيْهَا نو ديت به په ګوتو باندي تقسيميږی.

**تشريح:-** په يولاس كي پنځه ګوتي دی.او په دواړو لاسونو كي لس دی.او دغه ډول په دواړو پښو كي لس ګوتي دی.او په دواړو لاسونو كي يا ددي په لسو ګوتو كي پوره ديت واجبيږی.او هره ګوته د دواړو لاسونو كي د ټولو ګوتو عشر (لسمه) ده.نو په هره ګوته كي به د پوره ديت عشر ۱۱۱۰ واجب وي.پاته مسئله ښكاره ده.

## د لاسونو او پښو ټولي ګوتي برابر دي

قَالَ امام قدوري رحمه الله فرمائيلی دی (وَالْأَصَابِعُ كُلُّهَا سَوَاءٌ) او ټولي ګوتي برابر دی لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حديث د مطلق كيدو په وجه وَلِأَنَّهَا سَوَاءٌ فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ او ځكه چي په اصل منفعت كي ټولي ګوتي برابر دی فَلَا تُعْتَبَرُ الزِّيَادَةُ فِيهِ نو په دي كي به زيادت معتبر نه وی كَالْيَمِينِ مَعَ الشِّمَالِ لكه ښي د چپه سره وَكَذَا أَصَابِعُ الرِّجْلَيْنِ او دغه ډول د دواړو پښو ګوتي لِأَنَّهُ يُفَوِّتُ بِقَطْعِ كُلِّهَا مَنْفَعَةَ الْمَشْيِ ځكه چي د ټولو په كټ كاوه سره د تللو منفعت فوت كيږی فَتَجِبُ الدِّيَةُ كَامِلَةً نو كامل ديت به واجب وی ثُمَّ فِيهِمَا عَشْرُ أَصَابِعَ بيا په دي دواړو (لاسونو او پښو) كي لس ګوتي دی فَتَنْقَسِمُ الدِّيَةُ عَلَيْهَا أَعْشَارًا نو ديت به په لسو ګوتو باندي لس برخو كي تقسيميږی.

**تشريح:-** كه هره يوه ګوته وي.د ټولو حكم برابر دي.ځكه چي كوم حديث ددي نه وړاندي د ګوتو په اړه كي ذكر شو.هغه مطلق دي.او د اصل نيولو منفعت كي ټولي ګوتي برابر دی.نو په دي كي به كمي زياتي معتبر نه وی.لكه ښي او چپه (چپ) لاس كي چي هيڅ شمارلي شوی نه دی.اوكوم حال چي د لاسونو د ګوتو دي.هم دا حال د پښو د ګوتو دي.چه ددي ټولو په كټ كاوه سره د تللو منفعت فوت كيږی.نو ديت به واجب وی.بيا چي څومره ګوتي كټ كړي شوی وی.نو مذكوره حساب به دلته هم جاری كيږی.

(1) من حديث ابی موسی رضي الله عنه أخرجه أبوداود فی الديات باب ۱۸ رقم ۴۵۵۶ والنسائی فی القسامة باب ۴۵ رقم ۴۵۰۳)

### د ګوتو په بندونو کښي کټ کولو کښي د دیت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله فرمائیلي دي (وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ فِيهَا ثَلَاثَةُ مَفَاصِلَ؛ او په هر هغه ګوته کې چې هغې کې دري جوړونه وي فَفِي أَحَدِهَا ثُلُثُ دِيَةِ الْأُصْبُعِ نو په یو جوړ کې د ګوتې دیت ثلث دي وَمَا فِيهَا مِفْصَلَانِ و هغه ګوته کې چې دوې (دوه) جوړونه وي فَفِي أَحَدِهِمَا نِصْفُ دِيَةِ الْأُصْبُعِ نو په یو جوړ کې به د ګوتې دیت نصف وي وَهُوَ نَظِيرُ انْقِسَامِ دِيَةِ الْيَدِ عَلَى الْأَصَابِعِ او دا په ګوتو باندې د لاس د دیت تقسیمولو مثال دي.

حل اللغة: ① الاصابع: جمع د اصبعة، ګوته ② مفاصل: جمع د مفصل، جوړ

تشريح:- په ګوتو کې درې جوړونه (بندونه) وي. او په متې ګوته کې دوې (دوه) بندونه دي. نو د کومې ګوتې بندونه چې درې وي. که د هغې یو بند کټ کړې شي. نو هغې کې به د ګوتې د دیت ثلث واجب وي. او د کومې ګوتې بندونه چې دوې (دوه) بندونه وي. که د هغې یو بند کټ کړې شي. نو په دې کې به د ګوتې د دیت نصف واجب وي. لکه د لاس دیت په ګوتو باندې تقسیمیږي... کما مر،، دغه ډول به د ګوتو دیت په بندونو باندې تقسیمیږي.

### په غاښ کښي د دیت حکم؟

قَالَ: امام قدوری رحمه الله فرمائیلي دي (وَفِي كُلِّ سِنٍّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ) او په هر غاښ کې پنځه اوښان دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبي ﷺ د فرمان په وجه فِي حَدِيثِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د ابو موسی اشعري رض په حدیث کې {وَفِي كُلِّ سِنٍّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ}(١) او په هر غاښ کې پنځه اوښان دي وَالْأَسْنَانُ وَالْأَضْرَاسُ كُلُّهَا سَوَاءٌ، او غاښ او کالي (د جامې غاښ) برابر دي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا(٢) د هغه حدیث د مطلق کیدو په وجه کوم چې مونږ روایت کړي دي وَلِمَا رُوِيَ فِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ: او په بعضو روایتونو کې دي وَالْأَسْنَانُ كُلُّهَا سَوَاءٌ(٣) چې واړه غاښونه برابر دي وَلِأَنَّ كُلَّهَا فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ سَوَاءٌ او ځکه چې واړه غاښونه په اصل منفعت کې برابر دي. فَلَا يُعْتَبَرُ التَّفَاضُلُ نو توپیر کول به معتبر نه وي كَالْأَيْدِي وَالْأَصَابِعِ لکه لاس او ګوتې وَهَذَا إِذَا كَانَ خَطَأً او دا هغه وخت دي. کله چې پرې کول خطاء سره وي فَإِنْ كَانَ عَمْدًا که عمداً وي فَفِيهِ الْقِصَاصُ نو په دې کې قصاص دي وَقَدْ مَرَّ فِي الْجِنَايَاتِ او دا بحث په کتاب الجنایات کې تیر شوي دي.

تشريح:- که یوکس د یوسړي غاښ مات کړو. نو په هر غاښ کې به پنځه اوښان واجب وي. ځکه چې حدیث کې هم دغه ډول وارد دي. بیا غاښونه واړه برابر دي. که انیاب وي. او که اضرس یا طواحن وي. او که نواجذ وي. د ټولو حکم یو دي. ځکه چې د ابو موسی اشعري رض په حدیث کې اطلاق دي. او حدیث دا دي. «الأسنان كلها سواء» نو صفا معلومه شوه. چه واړه غاښونه برابر دي. بیا په اصل منفعت کې واړه برابر دي. نو لکه څنګه چې په لاسونو او ګوتو کې یو بل ته فضیلت ورنکړې شو. دغه ډول به په غاښونو کې هم تفاضل معتبر نه وي. خو دا واړه تفصیل هغه وخت دي. کله چې دا واړه امور خطاءً واقع شي. ګنې د عمد په صورت کې به قصاص واجب وي.

### د اندام منفعت ضائع کولو سره د دیت حکم

قَالَ: امام قدوری رحمه الله فرمائیلي دي. (وَمَنْ ضَرَبَ عُضْوًا) او چا چې د یوکس اندام اووهلو فَأَذْهَبَ مَنْفَعَتَهُ. نو د هغې منفعت ئې ختم کړو فَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په دې کې به پوره دیت واجب وي كَالْيَدِ إِذَا شَلَّتْ کله چې شل شي او وَالْعَيْنِ

(١) قال الزيلعي (رح) ليس هذا في حديث أبي موسى ؓ ثم نقل عن ابن عباس (رض) وفيه ... أن النبي قضى في السن خمس من الإبل أخرجه ابن ماجه في الديات باب ١٧ وأحمد في المسند (١\٢٢٧) نصب: ٥\٤٤١)_

(٢) ومن حديث ابن عباس رضي الله عنهما عن النبي ﷺ قال الثنية والضرس سواء والأسنان كلها سواء أخرجه البزار في مسنده (نصب: ٥\٤٤٥)_

(٣) كما تقدم في الحديث السابق)_



إِذَا ذَهَبَ ضَوْءُهَا کله چې د دې رڼائي (بینائي) ختمه شي. لِأَنَّ الْمُتَعَلِّقَ ځکه هغه شئ کوم سره چې پوره دیت متعلق دي تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ هغه د جنس منفعت فوت کیدل دي لَا فَوَاتُ الصُّورَةِ د صورت نه دي وَمَنْ ضَرَبَ صُلْبَ غَيْرِهِ او چا چې اووهلو د خپل ځان نه علاوه کس په شا باندې فَانْقَطَعَ مَاؤُهُ نو د هغه ماده منویه ختمه شوه تَجِبُ الدِّيَةُ نو پوره دیت به واجب وي لِتَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ د جنس منفعت فوت کیدو په وجه وَكَذَا لَوْ أَحْدَبَهُ او هم دغه ډول که دې ئې کوبې (چې د اوګو منځ ئې بهر ته راوتلې وي) جوړ کړو لِأَنَّهُ فَوَّتَ جَمَالًا عَلَى الْكَمَالِ ځکه چې ده په کامل طریقه جمال فوت کړې دي وَهُوَ اسْتِوَاءُ الْقَامَةِ او هغه (جمال) قد سیدها کول دي فَلَوْ زَالَتِ الْحُدُوبَةُ نو که کوبې توب ختم شو لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په ده به هیڅ لازم نه وي لِزَوَالِهَا کوبې توب زائل کیدو په وجه، لَا عَنْ أَثَرٍ، د د اثر نه بغیر.

حل اللغة: ① منفعة: فائده ② توفيت: فوت کول ③ القامة: قد ④ الحدوبة: کوبې توب، چه ملا ئې تیته وي ⑤ ضوء: رڼائي

تشريح:- یوکس بل سړې په اندام باندې اووهلو. او ددې منفعت ئې ختم کړو. که ددې اندام صورت پخپل حال قائم وي. نو بیا به هم پوره دیت واجب وي. مثلاً په لاس ئې اووهلو. او لاس موجود دې. خو دا شل شو. یا ئې په سترګه اووهلو. او سترګه موجود ده. خو بینائي (او نظر) ئې ختم شو. نو پوره دیت به واجب وي. ځکه چې د پوره دیت وجوب د جنس منفعت فوت کیدو په وجه کیږي. د صورت د زوال په وجه نه کیږي. او که یو کس ئې په شا یو سوک اووهلو. او دې ئې کوبې کړو. بیا به هم پوره دیت واجب وي. ځکه چې مقصودي جمال زائل شو. او مقصودي جمال د قامت سیدها کیدل دي. او د کمر کوبې کیدل ختم شو. نو اوس به ضمان نه وي. ځکه چې کوبې کیدل د اثر نه بغیر ختم شو. نو دده تعزیر به کولې شي.

## فصل في الشجاج

ژباړه:- (دا) فصل د شجاتو (یعنې د سر او مخ د زخمونو په بیان کې) دي.

تشريح:- دلته مناسب دا وه. چه مرغیناني رحمه الله ،، مادون النفس ،، ته د باب عنوان ورکړې وې. بیا ئې ددې مختلف اقسام جلا جلا فصلونو کې بیان کړې وې.

کوم زخم چې په سر او مخ باندې وي. هغې ته شجه وائي. ددې جمع شجاج دي. او کوم زخم چې د سر او مخ نه علاوه وي. هغې ته جراحت وائي. د نفس نه د کم په اقسامو کې یو ډول شجاج هم دې. او د شجاتو (د سر د زخمونو) مسئلې هم ډیرې دي. په دې وجه دا په جلا فصل کې بیان کړې شوې دي.

### د سر او مخ د شپږو زخمونو بیان

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (الشِّجَاجُ عَشَرَةٌ: چې شجاج لس دي الْحَارِصَةُ وَهِيَ الَّتِي تَحْرِصُ الْجِلْدَ یو ئې حارصه، او دا هغه دې. کوم چې څرمنه کې خراش اوکړي أَيْ تَخْدِشُهُ وَلَا تُخْرِجُ الدَّمَ او وینه اونځي وَالدَّامِعَةُ و دامعه وَهِيَ الَّتِي تُظْهِرُ الدَّمَ او دا هغه ده. کومه چې وینه ښکاره کړي. وَلَا تُسِيلُهُ او وینه او نه بهیږي كَالدَّمْعِ مِنَ الْعَيْنِ لکه په سترګو کې اوښکې، وَالدَّامِيَةُ و دامیه، وَهِيَ الَّتِي تُسِيلُ الدَّمَ او دا هغه دې. چه دا وینه اوبیوي وَالْبَاضِعَةُ او بضعه، وهي التي تبضع الجلد او دا هغه دې. چه څرمنه کټ کړي اوتقطعه او په غوښه کې ورننځ شي. او لږه غوښه کټ کړي والملاحمة او متلاحمه، وهي التي تأخذ في اللحم او دا هغه دې. چه دا په غوښه کې ورننځ شي یعنې زیاته غوښه کټ والسمحاق او اسمحاق، وهي التي تصل الى السمحاق او دا هغه دې. چه دا سمحاق پورې ور اورسیږي وَهِيَ الَّتِي جِلْدَةٌ رَقِيقَةٌ بَيْنَ اللَّحْمِ وَعَظْمِ الرَّأْسِ او اسمحاق دا نرئ شان پرده (پوست دې. د غوښې او د سر د هډوکي په منځ کې.

حل اللغة: ① حارصة کې صرف په څرمنه کې خراش وي. اوبس ② دامعة: کې وینه ښکاري. خو بهیږي نه. لکه څنګه چې په سترګو کې هر وخت اوښکې ښکاري. خو بهیږي نه. ③ دامية: چې په دې کې وینه اوبهیږي. ④ باضعة: چې

په دې کي غوښه کټ شي. مرغيناني رحمه الله تعريف اوکړو. چه په دې کي څرمنه کټ شي. خو دا تعريف مشکوک دې. ځکه چې دې لسو وارو کي يو زخم هم داسې نشته. چه په دې کي څرمنه نه کټ کيږي. بلکه څرمنه خو په ټولو کي کټ کيږي. ⑤ **متلاحمة:** مرغيناني رحمه الله ددې تفسير کړې دې. چه په دې کي غوښه کټ شي. يعني په غوښه کي ورښخ شي. او په بدائع وغيره کي ددې تفسير داسې شوې دې. چه په دې کي د باضعه نه زيات غوښه کي ورښخ شي. ⑥ **اسمحاق:** د غوښې او د سر د هډوکی په منځ کي يوه نرۍ شان پرده وی. کله چې زخم دې پردې ته اورسيږي. نو دې ته اسمحاق وائي.

**تشريح:-** د دې ځائې نه د سر او د مخ د شپږو زخمونو بيان پيل شو. اود لغاتو حل ئې اوشو.

**د موضحه، هاشمه، منقله، او آمه بيان**

**(وَالْمُوضِحَةُ)** او موضحه **وَهِيَ الَّتِي تُوضِحُ الْعَظْمَ أَيْ تُبَيِّنُهُ** او دا هغه دې. چه دا هډوکي ښکاره کړی **(وَالْهَاشِمَةُ)** او هاشمه **وَهِيَ الَّتِي تَهْشِمُ الْعَظْمَ: أَيْ تَكْسِرُهُ** او دا هغه دې. چه دا هډوکې مات کړی **(وَالْمُنَقِّلَةُ)** ومنقله **وَهِيَ الَّتِي تَنْقُلُ الْعَظْمَ بَعْدَ الْكَسْرِ: أَيْ تُحَوِّلُهُ** او دا هغه دې. چه دا د ماتولو نه روسته هډوکې منتقل (بې ځايه) کړی. **(وَالْآمَّةُ)** او آمه. **وَهِيَ الَّتِي تَصِلُ إِلَى أُمِّ الرَّأْسِ** او دا هغه دې. چه دا ام الراس ته اورسيږی **وَهُوَ الَّذِي فِيهِ الدِّمَاغُ**. او ام الرس هغه دې. په کوم کي چې دماغ دی.

**تشريح:-** په دې عبارت کي د پاته پاتې څلورو زخمونو ذکر دې. ① **موضحة:** چې په دې کي هډوکې ښکاره شي. ② **هاشمة:** چې په دې کي هډوکې مات شي. ③ **منقلة:** چې په دې کي هډوکې مات شي. او خپل ځائې نه بې ځايه شي. ④ **آمة:** چې زخم ام الراس ته اورسيږی. او امر الرس هغه دې. کوم ځائې چې دماغ وی.

**که موضحه عمداً وی نو په دې کښې قصاص دې**

**قَالَ:** امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل **(فَفِي الْمُوضِحَةِ الْقِصَاصُ)** نو په موضحه کي قصاص دې **(كَانَتْ عَمْدًا)** که دا عمداً وی **لِمَا رُوِيَ** په دې وجه چې نقل دی {**أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَضَى بِالْقِصَاصِ فِي الْمُوضِحَةِ**} چې رسول الله ﷺ په موضحه کي د قصاص فيصله فرمائيلې وه. **وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ أَنْ يَنْتَهِيَ السِّكِّينُ إِلَى الْعَظْمِ** او ځکه ممکن ده. چه هډوکې پورې چاړه اورسيږی **فَيَتَسَاوَيَانِ** نو دواړه برابر شي **فَيَتَحَقَّقُ الْقِصَاصُ** نو مساوات به متحقق (او ثابت) شي.

**تشريح:-** د لسو اقسامو د بيانولو نه روسته فرمائی. چه په دې کي اووم ډول موضحه دې. که دا زخم عمداً وی. نو په دې کي قصاص واجب دې. ولې؟ ددې دوې (دوه) دليلونه دی. ① اول د بيهقی حديث دې. چه په دې کي موضحه کي قصاص بيان کړې شوې دې. او قصاص مساوات غواړی. او په موضحه کي مساوات ممکن دې. چونکه دلته منتها (آخرى حد) هډوکې موجود دې. نو په قصاص کي هډوکی پورې کټ کولې کيداې شي.

**د موضحه نه علاوه د سر او مخ په پاته زخمونو کښې قصاص نشته**

**قَالَ: (وَلَا قِصَاصَ فِي بَقِيَّةِ الشِّجَاجِ)** (فيصل ددې ژباړه پاتې ده) **لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ فِيهَا** ځکه چې دې کي د مساواتو اعتبار کول ممکن نه دی **لِأَنَّهُ لَا حَدَّ يَنْتَهِي السِّكِّينُ إِلَيْهِ**، ځکه چې داسې حد نشته. چه دغه حد پورې رسيدو سره چاړه بنده کړې شي **وَلِأَنَّ فِيمَا فَوْقَ الْمُوضِحَةِ** او ځکه چې هغه زخمونه کوم چې د موضحه نه زيات دی **كَسْرَ الْعَظْمِ** هډوکي ماتول دی **وَلَا قِصَاصَ فِيهِ** او په هډوکی ماتولو کي قصاص نشته.

**تشريح:-** د موضحه نه علاوه په پاته نهو قسمونو کي قصاص نشته. بلکه حکومت عدل دې. ځکه چې قصاص مساوات غواړی. اودلته مساوات ممکن نه دې. ځکه چې په دې کي هيڅ يو کي هم داسې حد او منتها نشته. چه هلته کي رسيدو سره چاړه اودريږی. دا دليل خو د ټولو لپاره عام دې. او د موضحه نه روسته چې د کومو دريو ذکر دې. يعنی هاشمه، منقله، آمه، په دې کي د قصاص نه کيدو وجه دا هم ده. چه په دې ټولو کي هډوکې



ماتيږی. او وړاندې مسئله تيره شوې ده. چه په هډوکو کي قصاص نشته. لنډيز د کلام دا چې د امام ابوحنيفه رحمه الله د روايت مطابق د موضحه نه پورته کوم شپږ ذکر دی. نه هغې کي قصاص شته. او نه په هغه دريو کي کوم چې د موضحه نه روستو ذکر دی.

**د ظاهر الروايه مطابق د موضحه نه مخکنو زخمونو کښې قصاص شته**

**وَهٰذَا رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ** او دا يو روايت دې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه **وَقَالَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ** او امام محمد رحمه الله په مبسوط کي فرمائيلی دی. **وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ**: او هم دا ظاهر الروايه دې **يَجِبُ الْقِصَاصُ فِيمَا قَبْلَ الْمُوضِحَةِ**(۱) چې هغه زخمونو کي کوم چې د موضحه نه وړاندې دی. قصاص واجب دې. **لِأَنَّهُ يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ فِيهِ** ځکه چې دې کي د مساواتو اعتبار ممکن دې **إِذْ لَيْسَ فِيهِ كَسْرُ الْعَظْمِ** ځکه چې دې کي هډوکې ماتيدل نشته **وَلَا خَوْفُ هَلَاكٍ غَالِبٍ** اونه د غالب هلاکيدو يره **فَيُسْبَرُ غَوْرُهَا بِمِسْبَارٍ** نو د زخم ژور والې دې په يوه سلائی (ډکی) سره ناپ کړې شی **ثُمَّ تُتَّخَذُ حَدِيدَةٌ بِقَدْرِ ذٰلِكَ** بيا هم ددې په اندازه يوه اوسپنه تيره کړې شی **فَيُقْطَعُ بِهَا مِقْدَارُ** نو په دې سره دې دومره مقدار کټ کړې شي. **مَا قَطَعَ** کوم چې ده کټ کړې وو **فَيَتَحَقَّقُ اسْتِيفَاءُ الْقِصَاصِ** نو پوره وصولی د قصاص به متحقق شي.

**حل اللغة:** ① **المساواة:** برابری ② **مسبار:** سلائی، ډکې.

**تشريح:-** د موضحه نه روستو چې کوم زخمونه مذکور دی. هغې کي خو بالاتفاق قصاص نشته. اوکوم زخمونه چې د موضحه نه وړاندې دی. هغې کي خو يو اړخ ته ظاهر الروايه دې. او بل اړخ ته د امام ابوحنيفه رحمه الله يو روايت دې. چه په دې کي به هم قصاص نه وی.... کمامر.. او ظاهر الروايه دا دې. کوم چې امام ابوحنيفه رحمه الله په مبسوط کي ذکر کړې دې. چه د موضحه نه مخکي د کومو شپږو زخمونو ذکر دې. هغې کي به قصاص اخستلې شي. ځکه چې دلته هډوکې نه ماتيږی. او په داسې معمولی زخمونو سره د هلاکت يره هم غالب نه ده. نو دلته مساوات کيداې شي. او د مساوات طريقه دا ده. چه په يو سلائی سره د زخم ژور والې ناپ کړې شي. څومره چې ددې ژوروالې وی. هم په دغه اندازه د تيرې سوکې والا غته اوسپنه واخلی. او هم په دغه اندازه دې کټ کړی. څومره چې دده کټ شوې ده. نو مساوات به اوشی.

① **فائده:** خو په اسمحاق کي به بالاجماع قصاص نه وی. لکه څنګه چې د موضحه نه په روستنو دريو وارو کي بالاجماع قصاص نشته. ﴿سکب الأنهر ص: ۵۵۷ ج ۲﴾

② **فائده:** د امام صاحب رحمه الله نه رومبې قول حسن بن زياد رحمه الله روايت کړې دې. خو په ظاهر الروايه کي به قصاص واجب وی. او اصح هم دا ده. ﴿زيلعی ص: ۱۳۳ ج ۶، سکب الأنهر ص: ۵۵۷ ج ۲﴾

**د موضحه نه په کم زخم کښې څه حکم دې؟**

**قَالَ:** امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل **(وَفِيمَا دُونَ الْمُوضِحَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ)** او د موضحه نه په کم کي حکومت عدل دې **لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهَا أَرْشٌ مُقَدَّرٌ** ځکه چې دې کي هيڅ ديت مقرر نه دې **وَلَا يُمْكِنُ إِهْدَارُهُ** او نه ددې فضول ګرځول ممکن دی **فَوَجَبَ اعْتِبَارُهُ بِحُكْمِ الْعَدْلِ**، نو د حکومت عدل په ذريعه ددې اعتبار کول واجب شو **وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنِ النَّخَعِيِّ وَعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ** رحمهما الله او هم دا منقول دی. د ابراهيم نخعی او د عمر بن عبدالعزيز رحمهما الله نه.

**تشريح:-** امام قدوری رحمه الله مخکي فرمائيلی وو. چه د موضحه نه په علاوه کي قصاص واجب نه دې. خو موږ عرض کړې دې. چه صحيح روايت د ظاهر الروايه دې.... کمامر.. بهرحال د کوم روايت مطابق چې په مادون الموضحه کي قصاص واجب نشو. نو په دې کي حکومت عدل واجب دې. يعنی نه ديت شته. او نه قصاص واجب دې. د عدم قصاص وجه خو ذکر شوې ده. او د عدم ديت وجه دا ده. چه د شارع د اړخه تقدير نشته. او پخپل قياس سره د ارش

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في ردالمحتار (۴۱۲/۵ والفقه الإسلامي (۳۵۲/۶) نقلاً عن القول الراجح (۴۹۱/۲)-

(تاوان) مقدار نشي متعين كيدي.او دا هم نشي كيدي.چه هيڅ واجب نه وي.او دا به عبث (او فضول) كرخولي شي.ځكه چي دا تكريم د انسان خلاف دي.نو هر كله چي هيڅ خلاصي ملاو نشو.نو مونږ مجبوراً حكومت عدل اختيار كړي دي.او دا د حضرت ابراهيم نخعي،او عمربن عبدالعزيز رحمهما الله نه منقول دي.

## كه موضحه خطاء وي نو ديت واجب دي

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَفِي الْمُوضِحَةِ اِنْ كَانَتْ خَطَأً) و په موضحه كي كه دا خطاء وي نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ د ديت د عشر نصف (يعني شلمه) ده وَفِي الْهَاشِمَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ، وبه هاشمه كي عشر (لسمه) ده وَفِي الْمُنَقِّلَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ وَنِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ، و په منقله كي عشر او د ديت نصف عشر دي وَفِي الْاٰمَّةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ، و په آمه كي دريمه برخه ديت دي وَفِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ و په جائفه كي دريمه برخه ديت دي فَإِنْ نَفَذَتْ نو كه جائفه نه ورتير شو، فَهُمَا جَائِفَتَانِ نو دا دوي (دوه) جائفي شوي.نو په دي دوارو كي به د ديت دوي (دوه) ثلثه واجب وي فَفِيهِمَا ثُلُثَا الدِّيَةِ.

تشريح:- وړاندي د موضحه د حكم قصاص بيان شوي دي.دا هغه وخت دي.كله چي دا زخم عمداً لګولي شوي وي.او كه خطاء وي.نو په دي كي به ديت واجب وي.چه ددي مقدار دلته كي بيان شوي دي.او ددي نه علاوه نور هغه زخمونه په كوموكي چي ديت واجب دي.هلته د خطاء قيد ملحوظ نه دي.بلكه په عمداً او خطاء دوارو صورتونو كي* هم دا حكم دي.اوس د ديت تفصيل بيانوي:

① په موضحه كي به د ديت شلمه برخه واجب وي.يعني پنځه اوښان،② هاشمه كي به د ديت عشر واجب وي.يعني لس اوښان،③ په منقله كي به عشر ديت او نصف عشر واجب وي.يعني پنځلس اوښان،④ په آمه كي به دريمه برخه ديت واجب وي.⑤ په جائفه كي به هم دريمه برخه ديت واجب وي.

*اوجائفه هغه زخم دي.كوم چي جوف (منځ) پوري اورسيږي.كه په سينه كي وي.كه په نس كي وي.او كه په شا وغيره كي وي. پاته پاتي شوه دا خبره چي دلته خو د شجاج ذكر پيل دي.نو د جائفه ذكر څنګه راغي؟ ددي په ځواب كي صاحب د نهايه رحمه الله فرمائيلي دي.چه دا ذكر دلته كي اتفاقاً راغلي دي.ګني شجاج صرف هغه زخم ته وائي.كوم چي په سر او مخ كي وي.بيا ئي اوفرمائيل.چه په جائفه كي به دريمه برخه ديت هغه وخت واجب وي.كله چي دا زخم بل اړخ ته وتلي نه وي.كه بل اړخ ته وتلي وي.نو بيا به د ديت دري ثلثه واجب وي.

## د مذكوره مسئلو دليل

لِمَا رُوِيَ فِي كِتَابِ عَمْرِوبْنِ حَزْمٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دي وجه چي دعمروبن حزم رضي الله عنه په خط كي نقل دي اَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ قَالَ چي نبي كريم ﷺ اوفرمائيل {وَفِي الْمُوضِحَةِ خَمْسٌ مِنَ الْاِبِلِ،او په موضحه كي پنځه اوښان دي وَفِي الْهَاشِمَةِ عَشْرٌ،اوپه هاشمه كي لس اوښان دي وَفِي الْمُنَقِّلَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ،اوپه منقله كي پنځلس وَفِي الْاٰمَّةِ} (١)او آمه كي وَيُرْوٰي {الْمَأْمُوْمَةُ ثُلُثُ الدِّيَةِ}او نقل دي چي مامومه كي دريمه برخه ديت دي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ او نبي ﷺ فرمائيلي دي {فِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ} چي په جائفه كي دريمه برخه ديت دي وَعَنْ اَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د ابوبكر رضي الله عنه نه نقل دي اَنَّهُ حَكَمَ فِي جَائِفَةٍ نَفَذَتْ اِلَى الْجَانِبِ الْاٰخَرِ بِثُلُثَيِ الدِّيَةِ، (٢) چي دوي په هغه جائفه كي كوم چي بل اړخ ته اوخي.د ديت د دوي (دوه) ثلثو حكم اوفرمائيلو وَلِاَنَّهَا اِذَا نَفَذَتْ او ځكه چي جائفه كله بل اړخ ته اوخي نَزَلَتْ مَنْزِلَةَ جَائِفَتَيْنِ نو دا به د دوي (دوه) جائفو په درجه كي راكوزولي شي اِحْدَاهُمَا مِنْ جَانِبِ الْبَطْنِ يو د دننه اړخ نه، وَالْاُخْرٰي مِنْ جَانِبِ الظَّهْرِ او بل د بهر اړخه وَفِي كُلِّ جَائِفَةٍ ثُلُثُ الدِّيَةِ او په هره جائفه كي دريمه برخه ديت دي فَلِهٰذَا اَوْجَبَ فِي النَّافِذَةِ ثُلُثَا الدِّيَةِ په دي وجه به نافذه كي (كوم چي بل اړخ ته اوخي) دوي (دوه) ثلثه ديت وي.

---

(١) تقدم تخريجه فى كتاب عمروبن حزم رضي الله عنه_

(٢) أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه (نصب:١٤٨١٥)_



تشريح:- امام قدوري رحمه الله چي كومي مسئلي بيان كړي وي.دا د هغه ټولو مسئلو دليل دي.ددي مسئلو دري اجزاء دي.نو د دليل هم دري اجزاء دي.① په موضحه كي پنځه اوښان دي.او هاشمه كي لس دي. او منقله كي پنځلس دي.او آمه كي دريمه برخه ديت دي.په دي دليل كي ئي د عمرو بن حزم رضي الله عنه د خط ړومبي حديث بيان كړي دي.② په جائفه كي دوي (دوه) ثلثه ديت دي.او ددي په ثبوت كي ئي دوهم حديث پيش كړي دي.③ كه جائفه د يو اړخ نه بل اړخ ته اوخي.نو ددي په ثبوت كي ئي د حضرت صديق اكبر رضي الله عنه فيصله پيش كړي ده. دوهم ئي عقلي دليل پيش كړي دي.چه هر كله جائفه بل اړخ ته آووتلو.نو اوس دا يوه جائفه پاتي نشوه.بلكه دوي (دوه) شوي.او په هره جائفه كي دريمه برخه ديت واجبيږي .نو په دوو كي به ثلث واجبيږي.

## د متلاحمه او باضعه تعريف

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله او د امام محمد رحمه الله نه نقل دي اَنَّهُ جَعَلَ الْمُتَلَاحِمَةَ قَبْلَ الْبَاضِعَةِ چي دوي متلاحمه د باضعه نه مخكي كرخولي دي وَقَالَ:او امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي هِيَ الَّتِي يَتَلَاحَمُ فِيهَا الدَّمُ چي متلاحمه هغه دي.په كوم كي چي وينه راجمع شي وَيَسْوَدُّ او توره شي وَمَا ذَكَرْنَاهُ بَدْءًا او مونږ چي كوم مخكي بيان كړي دي مَرْوِيٌّ عَنْ اَبِي يُوسُفَ رحمه الله هغه د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دي اَنْ وَهٰذَا اخْتِلَافُ عِبَارَةٍ او دا د عبارت اختلاف دي لَا يَعُودُ اِلٰى مَعْنًى وَحُكْمٍ چي دا د معنى او حكم اختلاف اړخ ته نه واپس كيږي

تشريح:- مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه مونږ په څلورم وار باضعه او پنځم وار باندي متلاحمه بيان كړي دي.او د دوارو تعريف هم بيان شوي دي.خو دا ترتيب اوتعريف د امام ابويوسف رحمه الله نه منقول دي.امام محمد رحمه الله ترتيب هم بدل كړي دي.او تعريف هم دوي متلاحمه په پنځم وار باندي او باضعه ئي پنځم وار باندي بيان كړي دي.او بيا ئي د متلاحمه دا تعريف كړي دي.چه په دي كي وينه راجمع شي.او توره شي.او اونه بهيږي.چه په دي اړه كي مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا صرف د عبارت او الفاظو اختلاف دي.ددي په وجه به معنى او حكم كي هيڅ اختلاف نه وي.

فائده* يعني په حكومت عدل كي دواړه حكمونه مساوي (او برابر) دي.صرف دومره توپير دي.چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز ددي مشتق منه ،،اَلذَّهَابُ فِى اللَّحْمِ،، (غوښه كي ورننوتل) دي.او د امام محمد رحمه الله په نيز مشتق منه ،، اِلْتِحَامٌ،، دي.چه دا د جمع كيدو په معنى كي دي.

## د دامغه تعريف او حكم

وَبَعْدَ هٰذَا او ددي (آمه) زخم نه روسته شَجَّةٌ اُخْرٰي يو زخم بل هم دي تُسَمَّى الدَّامِغَةَ چي هغي ته دامغه وائي وَهِيَ الَّتِي تَصِلُ اِلَى الدِّمَاغِ،او دا هغه دي.چه دا دماغ پوري اورسيږي وَاِنَّمَا لَمْ يَذْكُرْهَا او دا امام محمد رحمه الله نه دي ذكر كړي لِاَنَّهَا تَقَعُ قَتْلًا فِي الْغَالِبِ او ځكه چي دا په عامه توګه (عام طور) باندي قتل واقع كيږي لَا جِنَايَةً مُقْتَصِرَةً داسي جنايت مقتصره (او د مرګ نه كم) نه (واقع كيږي مُنْفَرِدَةً بِحُكْمٍ عَلٰى حِدَةٍ چه ددي حكم ځانله جلا بيان كړي شي.

تشريح:- وړاندي د لسو شجاتو ذكر كړي شوي دي.مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د آمه.نه روسته يوولسم زخم بل هم دي.چه ددي نوم دامغه دي.چه دا دماغ پوري اورسيږي.

*كه څوك پوښتنه اوكړي چي دامغه يوولسم شجه (او زخم) دي.نو امام محمد رحمه الله دا ولي نه دي ذكر كړي؟نو مونږ ورته وايو چي كله چي زخم دماغ پوري اورسيږي.نو مرګ واقع كيږي.او د مرګ حكم قصاص دي.كه عمداً وي.يا ديت دي.كه خطاء وي.نو چونكه د دامغه حكم څه جلا نه دي.چه دا د قتل د حكم نه غير وي.په دي وجه ددي د ځانله جلا بيانولو اړتيا پاتي نشو.او دلته صرف د شجات (د سر د زخمونو) ذكر مقصود دي.د قتل نه دي.

## په شجاج او جراحه كښي فرق

ثُمَّ هٰذِهِ الشِّجَاجُ تَخْتَصُّ بِالْوَجْهِ وَالرَّأْسِ بيا دا شجات (زخمونه) مخ او سر سره خاص دي لُغَةً، په اعتبار د لغت سره، وَمَا كَانَ فِي غَيْرِ الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ او كوم زخم چي د سر او مخ علاوه يُسَمَّى جِرَاحَةً،هغي ته جراحت وائي وَالْحُكْمُ مُرَتَّبٌ عَلٰى

الحَقِيقَةِ او حکم مرتب کیږي. په حقیقت لغویه باندې، فِي الصَّحِيحِ د صحیح قول مطابق حَتَّى لَوْ تَحَقَّقَتْ فِي غَيْرِهِمَا تر دې
که زخم ددې دواړو نه علاوه وی نَحْوُ السَّاقِ وَالْيَدِ لکه لینګۍ او لاس لَا يَكُونُ لَهَا أَرْشٌ مُقَدَّرٌ، نو ددې زخم لپاره به
مقرر دیت نه وی.

**تشریح:-** د شجه لغوی حقیقت دا دې. چه دا هغه زخم ته وائی. کوم چې صرف په مخ او سر کي وی. نو که زخم د سر او مخ نه علاوه په بل یو ځائې کي وی. نو هلته به د ارش (تاوان) دا حکم نه جاری کیږي. کوم چې شجاتو (د سر او مخ په زخمونو) کي بیان کړې شوې دې. ځکه چې د لفظ کوم لغوی حقیقت وی. هم د هغې په اعتبار سره شرعی حکم ثابتیږي. نو هر کله چې لغوی حقیقت مخصوص زخم دې. نو حکم شرعی به د دوهم زخم په وجه نه ثابتیږي. د ابو اللیث رحمه الله د قول نه د احتراز په وجه مرغینانی رحمه الله د ،، في الصحيح ،، قید لګولي دې.

وَإِنَّمَا تَجِبُ حُكُومَةُ الْعَدْلِ او حکومت عدل به واجب وی لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِالتَّوْقِيفِ ځکه چې د ارش تقدیر (د دیت اندازه
مقررول) د توقیف په وجه سره کیږي وَهُوَ إِنَّمَا وَرَدَ فِيمَا او توقیف وارد شوې دې يَخْتَصُّ بِهِمَا، د هغه زخم په سلسله کي
کوم چې دې (مخ او سر) دواړو سره مخصوص وی وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا وَرَدَ الْحُكْمُ فِيهِمَا او ځکه چې دې زخمونو کي حکم وارد
شوې دې لِمَعْنَى الشَّيْنِ الَّذِي يَلْحَقُهُ ددې عیب د معنی په وجه کوم چې دې ته لاحق کیږي بِبَقَاءِ أَثَرِ الْجِرَاحَةِ، د جراحت د
اثر پاته پاتې کیدو په وجه، وَالشَّيْنُ يَخْتَصُّ او عیب مخصوص دې بِمَا د زخمونو ځنې يَظْهَرُ مِنْهَا فِي الْغَالِبِ داسې زخم
سره چې دا اکثر کلاو پاتې وی وانما تجب حكومة عدل وَهُوَ الْعُضْوَانِ هَذَانِ لَا سِوَاهُمَا او هم دغه ډول دا دوې (دوه)
اندامونه دی

**حل اللغة•** ① **توقیف:** هغه څیزچه په نقل سره ثابت وی لکه د قرآن پاك دسورتونو ترتیب وغیره چې دنبی ﷺ نه ثابت دې د بل چا د اړخه ددې ترتیب نه دې مرتب شوې ② **الشین:** عیب ۔

**تشریح:-** نوکه په لاس یا لینګۍ وغیره کي زخم اوشی. نو هلته به دا دیت واجب نه وی. بلکه په دې کي حکومت عدل دې. اوحکومت عدل ځکه پکار دې چې د ارش (دیت) اندازه او تعین په قیاسی خبرو سره د توقیف او سماع نه بغیر نشی کیدې. او توقیف صرف په شجاتو کي دې. او د لاس او پنډو زخم په شجاتو (د سر او مخ په زخمونو) کي داخل نه دې. بیا دویمه وجه دا هم ده. چه په شجاتو کي د ارش (دیت) کوم حکم وارد شوې دې. د هغې وجه دا ده. چه زخم اګرچه تیك شی. خو ددې چې کوم نشان پاته پاتې شی. دهغې په وجه به مخ خراب ښکاری. په دې وجه مقرر دیت واجبیږي. او د عیب ښکاره کیدل به صرف هغه اندامونو کي وی. کوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې کلاو وی. او داسې اندامونه مخ او سر دې. خاص کر مخ خو هر وخت کلاو وی.

### د ژامې زخم د سر په زخمونو کښې داخل دې اوکه نه؟

وَأَمَّا اللَّحْيَانِ او بهرحال دواړه ژامې فَقَدْ قِيلَ نو ونیلی شوی دی لَيْسَا مِنَ الْوَجْهِ چې دا دواړه د مخ ځنې دی وَهُوَ قَوْلُ
مَالِكٍ رحمه الله اوهم دا د امام مالك رحمه الله قول دې حَتَّى لَوْ وُجِدَ فِيهِمَا تر دې که په دواړو کي دا زخم اوموندې شی مَا فِيهِ
أَرْشٌ مُقَدَّرٌ په کوم کي چې دیت اندازه شوې دې لَا يَجِبُ الْمُقَدَّرُ. نو د ارش دا مقدار به واجب نه وی وَهَذَا لِأَنَّ الْوَجْهَ
مُشْتَقٌّ مِنَ الْمُوَاجَهَةِ، او دا ځکه چې وجه (مخ) د مواجهت نه مشتق دې وَلَا مُوَاجَهَةَ لِلنَّاظِرِ فِيهِمَا او کتونکی لپاره دې
دواړو کي مواجهت نشته.

**حل اللغة•** ① **اللحیان:** تثنیه د لحیة، ږیره ② **المواجهة:** یو بل ته مخکی کیدل ۔

**تشریح:-** د دواړو ژامو په اړه کي د امام مالك رحمه الله قول دې چې دا دواړه په مخ کي داخل نه دی. تر دې که په دواړو کي دا زخم اوموندې شی. په کوم کي چې دیت اندازه شوې دې. نو د ارش دا مقدار به واجب نه وی. اودا حکم ځکه دې چې دا د مواجهت نه ماخوذ دې. د مخ په وجه، په دې وجه ونیلې شی. چه دا برخه کتونکی ته مخکی وی. خو دواړه ژامو ته مخکی نه وی. نو معلومه شوه. چه دا دواړه په مخ کي داخل نه دی.



الآن عِنْدَنَا هُمَا مِنَ الْوَجْهِ خو زموږ په نیز دا دواړه د مخ ځنې دی لِاتِّصَالِهِمَا بِهِ ددې دواړو د متصل کیدو په وجه د مخ
سره، مِنْ غَيْرِ فَاصِلَةٍ، د فاصلې نه بغیر وَقَدْ يَتَحَقَّقُ فِيهِ مَعْنَى الْمُوَاجَهَةِ أَيْضًا او په دې کي د مواجهت معنی هم متحقق ده.

**تشریح:-** خو زموږ په نیز ژامې په مخکې شاملې دی ځکه دا دواړه هم په مواجهت کي واقع کیږي. او دا دواړه د څه فاصلې (او جدايۍ) نه بغیر مخ سره متصل دی. نو دا دواړه هم په مخ کي داخل دی. نو کوم زخم چې ددې دواړو وی. د هغې به هم هغه دیت مقرر وی. کوم چې په شجاتو (د مخ او سر په زخمونو) کي مذکور شو.

①تنبیه • دلته مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی. چه وجه د مواجهت نه مشتق ده. حالانکه د ثلاثي مزید نه مشتق نه راځي؟ ځواب۞ معترض په غلطۍ دې. ځکه چې په اشتقاق کبیر کي په دوو لفظونو کي د لفظ او معنی تناسب کافي وی. په دې وجه صاحب د کشاف فرمائیلی دی. چه یم د تیمم نه او برج د تبرج نه مشتق دی.

②تنبیه • لکه څنګه چې ذقن سره د مواجهت ثبوت کیږي. دغه ډول په دواړو ژامو سره هم کیږي،،، کما هو ظاهر،، نو دا دواړه به د ذقن په حکم کي وی. او په مخ کي به داخل وی.

③تنبیه • د دواړو ژامو حکم بیانولو کي عبارت منتشر (ګډ وډ) شوی شان دې. چه په دې سره هسې بیسه ذهن ګډ وډ کیږي. صفا مسئله دا ده. کومه چې ما عرض کړې ده.

④تنبیه • د قیاس تقاضا دا وه. که دا دواړه په مخ کي داخل دی. نو په اودس کي به ددې پریمنځل (وینځل) فرض وې. خو موږ د اجماع په وجه وینځلو ته واجب اونه ونیل. او اجماع دلته کي د شجاتو په اړه کي نشته. نو دلته موږ په قیاس باندې عمل کاوه سره په حقیقت باندې عمل اوکړو.

⑤تنبیه • ذقن بالاجماع په مخ کي داخل دې. د ځنې لاندې هغه هډوکې چې په هغې ګیره راخیژي. هغې ته لحیه (ژامه) وائی.

### په جائفه او شجه کښې نسبت

وَقَالُوا: او مشائخو فرمائیلی دی الْجَائِفَةُ تَخْتَصُّ بِالْجَوْفِ: چې جائفه د جوف (منځ) سره مخصوص ده جَوْفِ الرَّأْسِ که
د سر جوف وی أَوْ جَوْفِ الْبَطْنِ اوکه د خیټې جوف وی.

**تشریح:-** دلته یو سوال واردیدلو. چه ذکر د شجاج پیل وو. او تاسو په دې کي جائفه راټومبلې دې؟ نو مرغینانی رحمه الله ځواب ورکوی. چه جائفه هغه زخم ته وائی. کوم چې جوف پورې رسیږي. که دا جوف د سر وی. او که د خیټې وی. نو معلومه شوه. چه جائفه هم په شجاج (د سر او مخ په زخمونو) کي داخل ده. ځکه چې شجه او جائفه کي د عموم خصوص مطلق نسبت دې. جائفه عام ده. او شاجه خاص ده. دا د مرغینانی رحمه الله د کلام حاصل دې.

①فائده• جائفه د جاف نه لاندې او د ذقن (ځنې) نه پورته وی. ځکه چې جوف مقامامت دا دی. سینه، شا (ملا)، خیټه، دواړه طرفونه (ډډې) نو په شاجات عشره کي جائفه داخل نه ده.

②فائده• نو بیا دلته په متن کي د جائفه ذکر ولې راغلې دې. حالانکه دلته د شجاج ذکر پیل دې؟ آمه په شجاج کي داخل ده،، کمامر،، او د آمه او جائفه حکم یو دې. یعنی دریمه برخه دیت دې. په دې وجه د آمه په مناسبت سره د جائفه ذکر اوکړې شو.

### د حکومت عدل تفسیر

وَتَفْسِيرُ حُكُومَةِ الْعَدْلِ او د حکومت عدل تفسیر عَلَى مَا قَالَهُ الطَّحَاوِيُّ رحمه الله د هغه تفصیل مطابق کوم چې طحاوی
رحمه الله بیان کړې دې يُقَوَّمُ مَمْلُوكًا بِدُونِ هَذَا الْأَثَرِ وَيُقَوَّمُ وَبِهِ هَذَا الْأَثَرُ، دا دې. چه د مملوك نه بغیر ددې اثر قیمت اولګولې
شی ثُمَّ يُنْظَرُ إِلَى تَفَاوُتِ مَا بَيْنَ الْقِيمَتَيْنِ بیا د دواړو قیمتونو په منځ کي تفاوت اوکتلې شی فَإِنْ كَانَ نِصْفَ عُشْرِ
الْقِيمَةِ نو که دا تفاوت د قیمت د عشر نصف وی يَجِبُ نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ نو د دیت عشر به واجبولې شی وَإِنْ كَانَ رُبْعَ
عُشْرٍ او که ربع عشر وی فَرُبْعُ عُشْرٍ نو ربع عشر به واجبولې شی.

**تشریح:-** په شجاتو کي په موضحه کي د حکومتِ عدل ذکر راغلي وو. دلته د حکومتِ عدل تفسير کوی. او دا تفسير د امام طحاوی رحمه الله نه رانقل دي. فرمائی. چه زيد زخمی شو. او دي آزاد دي. نو تاسو اوګورئ. که دي غلام وي. نو ددي نه بغير به دده قيمت څه وو. مثلاً تاسو اندازه اولګوله. چه دده قيمت سل روپئ جوړيږی. او دي زخم سره چي دي کله د قيمت اندازه اولګوله. نو دده د قيمت اندازه پنځه نوی (پنځه کم سل) روپئ راتګ ه. نو په دواړو قيمتونو کي پنځه روپئ توپير شو. او دا پنځه روپئ دده د کل قيمت د عشر نيمه ده. يعنی شلمه برخه ده. نو په داسي صورت کي د پوره ديت نصف عشر يعنی پنځه اوښان واجبيږی. او که صرف د دوي (دوه) نيمو روپو توپير راوتلو. نو دلته به د ديت څلويښتمه برخه واجب وی. يعنی دوي (دوه) نيم اوښان،، وقس على هذا،،

**په حکومت عدل کښي د امام کرخی رحمه الله نقطه نظر**

**وَقَالَ الْكَرْخِي** رحمه الله او امام کرخی رحمه الله اوفرمائيل **يُنْظَرُ** چي کتلي به شی **كَمْ مِقْدَارُ هٰذِهِ الشَّجَّةِ مِنَ الْمُوضِحَةِ** چي ددي زخم د موضحه زخم په اندازه سره څومره مقدار جوړيږی **فَيَجِبُ بِقَدْرِ ذٰلِكَ مِنْ نِصْفِ عُشْرِ الدِّيَةِ**، نو د ديت په نصف عشر کي به هم ددي په مقدار واجب وی. **لِأَنَّ مَا لَا نَصَّ فِيهِ** ځکه هغه شئ په کوم کي چي نص نه وی **يُرَدُّ إِلَى الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ وَاللهُ أَعْلَمُ** دا منصوص عليه اړخ ته ګرځولي شی... والله أعلم..

**تشریح:-** د حکومتِ عدل تفسير د امام کرخی رحمه الله نه نقل دي. فرمائی. چه په کوم شئ کي نص نه وی. نو د هغي د حکم معلومولو طريقه دا ده. چه دا منصوص عليه اړخ ته ګرځولي شی. او په دغه حساب سره ددي مقدار متعين کولي شی. اوپه موضحه کي نص موجود دي. چه په دي کي نصف عشر واجب دي. نو اوس موضحه ته اوګوره. او دي زخم ته اوګوره. چه د موضحه نه دا زخم څومره کم دي. که مثلاً د نصف توپير راوځی. نو ربع عشر به واجبولي شی. اوکه دا زخم د موضحه په مقابله کي ۱۱۵ دي. نو صرف يو اوښ به واجبولي شی. او که ۲۱۵ دي. نو دوي (دوه) اوښان به واجب وی... وقس على هذا،،

## فصل في أصابع اليد نصف الدية

ژباړه:- (دا) فصل د يو لاس په (ټولو) ګوتو کي نصف ديت (په بيان کي) دي.

**د لاس ګوتو کټ کولو کښي د ديت حکم**

**قَالَ (وَفِي أَصَابِعِ الْيَدِ نِصْفُ الدِّيَةِ)** او د يو لاس په ټولو ګوتو کي نصف ديت دي **لِأَنَّ فِي كُلِّ أُصْبُعٍ عُشْرُ الدِّيَةِ** ځکه چي هره يوه ګوته کي د ديت عشر دي **عَلَى مَا رَوَيْنَا** د هغه حديث مطابق کوم چي مونږ روايت کړي دي **فَكَانَ فِي الْخَمْسِ نِصْفُ الدِّيَةِ**. نو په پنځو ګوتو کي به نصف ديت وی

**تشریح:-** د اندامونو حکم يو دي. او د شجاج حکم بل شان دي. په دي وجه دا په جلا فصل کي بيانولي شی. دا مسئله وړاندي تيره شوي ده. چه په يو لاس کي نيم ديت واجبيږی. او که لاس کټ نکړی. بلکه د يو لاس پنځه واړه ګوتي کټ کړی. نو اوس هم نيم ديت واجبيږی. او په هره ګوته کي لس اوښان واجبيږی. نو په دوو کي به شل او په دريو کي ديرش او په څلورو کي څلويښت او په پنځو کي به پنځوس اوښان واجب وی. او هم دا پنځوس اوښان نيم ديت دي... کما مر..

**وَلِأَنَّ فِي قَطْعِ الْأَصَابِعِ** او ځکه چي د ټولو ګوتو په کټ کاوه کي **تَفْوِيتَ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْبَطْشِ** جنس منفعت بطش (نيول) فوت کول دی **وَهُوَ الْمُوجِبُ** او هم دا (جنس منفعت فوت کول) ديت واجبونکي دي **عَلَى مَا مَرَّ** لکه څنګه چي تير شو

**تشریح:-** بيا د پنځو واړو ګوتو د کټ کاوه په وجه د نيولو د منفعت ختميدو، او دجنس منفعت فوت کيدو په وجه ديت واجبيږی.

**فَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ الْكَفِّ** نو که ټولي ګوتي ئي سره د تهلی کټ کړلي **فَفِيهِ أَيْضًا نِصْفُ الدِّيَةِ** نو په دي کي نيم ديت دي **لِقَوْلِهِ**



**عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** د نبی ﷺ د فرمان په وجه **وَفِي الْيَدَيْنِ الدِّيَةُ** او په دواړو لاسونو کي پوره ديت دي **وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ** [1] او په دي دواړو کي په يو کي نيم ديت دي

**حل اللغة*** ① **الكف:** تلي، ورغوی

**تشریح:-** او که پنځه واړه ګوتي ئي سره د تهلی کټ کړلي. نو اوس به هم دا نيم ديت واجب وی. ځکه حديث کي دی. چه په دواړو لاسونوکي پوره ديت واجب دي. او په يو لاس کي نيم ديت دي. او دا يو لاس کټ کړي شوي دي. نو نيم ديت به واجب وی.

**وَلِأَنَّ الْكَفَّ تَبَعٌ لِلْأَصَابِعِ** او ځکه چي تهلي د ګوتو تابع دي **لِأَنَّ الْبَطْشَ بِهَا** ځکه چي نيول د ګوتو په ذريعه حاصليږی.

**تشریح:-** او چونکه سړي د ګوتو په وجه نيول کوی. او نيول د لاس اصل منفعت دي. او تهلي په دي کي د ګوتو تابع دي. په دي وجه د تابع په وجه به بل هيڅ نه واجبيږی.

**د لاس ګوتي د مړوند سره په کټ کولو کښي څه سزا ده؟**

**وَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ نِصْفِ السَّاعِدِ** او که ګوتي ئي سره د نيم مړوند کټ کړلي **فَفِي الْأَصَابِعِ وَالْكَفِّ نِصْفُ الدِّيَةِ** نو په ټولو ګوتو او تهلی کي نيم ديت دي **وَفِي الزِّيَادَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ**. [2] او په زيات کي (مړوند) کي حکومتِ عدل دي **وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ** رحمه الله او هم دا يو روايت دي. د امام ابويوسف رحمه الله نه.

**حل اللغة*** ① **الساعد:** مړوند

**تشریح:-** يو کس د زيد ديو لاس پنځه واړه ګوتي کټ کړلي. او تهلي ئي هم کټ کړه. او نيم مړوند ئي هم کټ کړو. نو په دي کي د طرفينو رحمهما الله مذهب دا دي. چه د ګوتو او تهلی په وجه به نيم ديت واجبولي شی. او کوم نصف مړوند ئي چي کټ کړي دي. هغي کي حکومتِ عدل واجب دي. اودامام ابويوسف رحمه الله نه هم په يو روايت کي دا منقول دی

**وَعَنْهُ** او د امام ابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت دا دي **مَا زَادَ عَلَى أَصَابِعِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ** چي کوم مقدار دلاسونو او پښو په ګوتو باندي زيات شی **فَهُوَ تَبَعٌ لِلْأَصَابِعِ إِلَى الْمَنْكِبِ وَإِلَى الْفَخِذِ** نو هغه تابع دي. تر د اوګو او لينګئ (رون) پوري، **لِأَنَّ الشَّرْعَ أَوْجَبَ فِي الْيَدِ الْوَاحِدَةِ نِصْفَ الدِّيَةِ**، ځکه چي شريعت په يو لاس کي نيم ديت واجب کړي دي **وَالْيَدُ اسْمٌ لِهٰذِهِ الْجَارِحَةِ** او لاس ددي آلي نوم دي **إِلَى الْمَنْكِبِ** چي اوګو پوري ده **فَلَا يُزَادُ عَلَى تَقْدِيرِ الشَّرْعِ** نو په تقدير (او شرعی اندازه) باندي به زياتوالي نشی کولي.

**حل اللغة*** ① **المنكب:** اوګه ② **الفخذ:** ورون، رون ③ **الجارحة:** څيرونکي آله

**تشریح:-** دامام ابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت دا منقول دي چي بس نيم ديت واجب دي. پاته هيڅ نشته. دليل دا بيانوی چي اصل ګوتي دی. او تهلي پاته مقدار تر اوګو پوري دا واړه ددي تابع دي. ځکه لاس وائی. د ګوتو نه واخله تر اوګو پوري ته، او خپه د پښو د ګوتو نه واخله تر د لينګئ پوري ته وائی. بهرحال مړوند (مټ) وغيره واړه تابع دی. دغه ډول لينګئ وغيره واړه تابع دی. او د تابع لپاره هيڅ نه واجبيږی. نو په مذکوره صورت کي به مړوند لپاره هيڅ واجب نه وی.

**د طرفينو رحمهما الله دليل**

**وَلَهُمَا** او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي **أَنَّ الْيَدَ آلَةٌ بَاطِشَةٌ** چي لاس د نيولو آله ده **وَالْبَطْشُ يَتَعَلَّقُ بِالْكَفِّ وَالْأَصَابِعِ** او نيول متعلق کيږی. په تهلی او ګوتو سره، **دُونَ الذِّرَاعِ** په مټ سره نه کيږی **فَلَمْ يُجْعَلِ الذِّرَاعُ تَبَعًا فِي حَقِّ التَّضْمِينِ** نو د

---

[1] تقدم فی الأحاديث المختلفة ذکرها)_

[2] هوهذاقول الطرفين رحمهما الله کذا فی الدرالمحتار(۴۱۳\۵) وملتقی (۳۵۱\۴) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۹\۲)-

تضمین په حق کي مړ تابع نشي جوړیدي وَلِأَنَّهُ لَا وَجْهَ او ځکه چې هیڅ وجه نشته إِلَى أَنْ يَكُونَ تَبَعًا لِلْأَصَابِعِ چې مړوند د ګوتو تابع شي لِأَنَّ بَيْنَهُمَا عُضْوًا كَامِلًا او ځکه چې ددې دواړو په منځ کي کامل اندام موجود دي وَلَا إِلَى او هیڅ وجه نشته أَنْ يَكُونَ تَبَعًا لِلْكَفِّ چې مړوند د تهلی تابع شی لِأَنَّهُ تَابِعٌ ځکه چې تهلې تابع دي وَلَا تَبَعَ لِلتَّبَعِ او د تابع، تابع نشي کیدي.

**حل اللغة** ① باطشة: نیونکي ② ذراع: ګز ③ التضمین: ضامن کول»

**تشریح:-** دا د طرفینو رحمهما الله دلیل دي.فرمائي.چه د لاس کار نیول دي.او سړي په ګوتو اوتهلی سره نیول کوي.په مړوند او مړ سره نیول نه کوي.نو مړ وغیره د ضمان په حق کي د ګوتو تابع هم نشی کیدي.ځکه که تاسو ئې تابع جوړ کړئ.نو د ګوتو تابع به ئې جوړوئ.یا د تهلی،او دواړه باطل دی.د ګوتو خو ځکه نشی تابع کیدي.چه په منځ کي کامل اندام تهلې موجود دي.او که تاسو ئې د تهلی تابع کوئ.نو دا هم باطل دي. ځکه چې تهلې پخپله د بل تابع دي.او د تابع، تابع نشی کیدي.نومعلومه شوه.چه په زیاتی کي دحکومت عدل نه علاوه بله لاره نشته.

**د یو یا د دوو ګوتو والا تهلی کټ کولو مسئله**

قَالَ:امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی (وَإِنْ قَطَعَ الْكَفَّ مِنَ الْمَفْصِلِ) وکه د جوړ نه ئې تهلې کټ کړو وَفِيهَا أُصْبُعٌ وَاحِدَةٌ او په دې کي صرف یوه ګوته ده فَفِيهِ عُشْرُ الدِّيَةِ نو په دې کي د دیت عشر دي وَإِنْ كَانَ أُصْبُعَيْنِ فَالْخُمُسُ وکه دوې (دوه) ګوتې وی.نو د دیت خمس ( پنځمه) ده وَلَا شَيْءَ فِي الْكَفِّ او په تهلی کي هیڅ نشته وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.

**تشریح:-** که زید د خالد تهلې د جوړ یعنی د مړوند نه کټ کړو.او په تهلی کي صرف یوه ګوته ده.پاته څلور نشته.نو په زید به صرف د ګوتې دیت یعنی لس اوښان واجب وی.او په تهلی کي به هیڅ واجب نه وی.اوکه دوې (دوه) ګوتې وی.نو خمس دیت یعنی شل اوښان به واجب وی.،، کمامر،،او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دي.

وَقَالَا: اوصاحبین رحمهما الله فرمایي يُنْظَرُ إِلَى أَرْشِ الْكَفِّ وَالْأُصْبُعِ چې تهلی او ګوتو اړخ ته به کتلې شی فَيَكُونُ عَلَيْهِ الْأَكْثَرُ نو په ده به اکثر واجب وی وَيَدْخُلُ الْقَلِيلُ فِي الْكَثِيرِ او قلیل به په کثیر کي داخل وی لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الْأَرْشَيْنِ ځکه چې دواړو دیتونو په منځ کي جمع کول نا ممکن ده لِأَنَّ الْكُلَّ شَيْءٌ وَاحِدٌ ځکه چې کل ( ټول) یو شی دي وَلَا إِلَى إِهْدَارِ أَحَدِهِمَا او نه په دواړو کي د یو عبث ګرځولو څه وجه شته لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَصْلٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې په یو اعتبار سره هریو اصل دي فَرَجَّحْنَا بِالْكَثْرَةِ نو موږ کثرت سره ترجیح ورکړې ده.

**تشریح:-** او قلیل به په.کثیر کي داخلولې شی.لکه مثلاً زید د خالد سر زخمی کړو.چه په دې سره د هغه د سر بعضې ایخته هم اوشوکیدل .نو دلته کي هم اکثر واجب دي.او قلیل په کثیر کي داخل وی.دغه ډول به دلته کي هم وی.

① دلته خو دا ممکن نه ده.چه د ګوتې دیت جلا او د تهلی دیت جلا واخستلې شی.ځکه چې دواړه د یو شي په مثل دی.نو د تهلی دیت بعینه د ګوتې دیت دې.او د ګوتې دیت بعینه د تهلی دیت دې.بهرحال دا دواړه شئ واحد دی.نو ترجیح به زیاتو.ته ورکولې شي.

② او دا هم ممکن نه ده.چه صرف په یو دیت باندې اکتفاء اوکړې شی.او دوهم فضول ( او عبث) اوګرځولې شی.ځکه چې یو اعتبار سره دواړه جلا جلا شیان دی.تهلې په دې اعتبار سره چې ګوتې هم په دې سره قائم دی.او ګوتې په دې اعتبار سره، چې اصل منفعت نیول هم ددې په وجه حاصل دې.نو هرکله چې ړومبې او دوهم دواړه

---

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى (٣٥١\١٤) ومجمع الأنهر (٣٥١\١٤) والفقه الإسلامي (٣٤١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٠١٢)-



صورتونه باطل اوګر

**د امام صاحب رحمه الله دلیل**

وَلَهُ اودامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې الْأَصَابِعُ أَصْلٌ چې ګوتې اصل دی وَالْكَفُّ تَابِعٌ اوتهلې تابع دي حَقِيقَةً وَشَرْعًا د حقیقت په اعتبار سره لِأَنَّ الْبَطْشَ يَقُومُ بِهَا ځکه چې نیول د ګوتو په وجه قائم وی وَأَوْجَبَ الشَّرْعُ فِي أُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ شرعی او شریعت په یوه ګوته کي لس اوښان واجب کړی دی. وَالتَّرْجِيحُ مِنْ حَيْثُ الذَّاتِ وَالْحُكْمِ أَوْلَى او د ذات عَشْرًا مِنَ الْإِبِلِ او حکم په اعتبار سره ترجیح غوره دې مِنَ التَّرْجِيحِ مِنْ حَيْثُ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ د واجب مقدار په حیثیت سره ترجیح ور کاوه نه.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د حقیقت او شریعت دواړو په اعتبار سره ګوتې اصل او تهلې تابع دې.حقیقتاً خو ځکه (اصل دی) چې نیول د ګوتو پهوجه حاصلیږي.او حکماً ځکه چې ګوتو لپاره د دیت مقدار دې.او تهلی لپاره د دیت مقدار نشته.او په کوم چې شرعاً مقدار ثابت نه وی.نو هغه نص سره ثابتیږي.او چرته اندازه شرعاً ثابت نه وی.نو هغه تقدیر قیاس او رائې سره ثابتیږي.او رائې د نص معارض نشي کیدې.نو په کوم کي چې شرعی اندازه وی.نو هغې ته به په قیاسی اندازې باندې ترجیح حاصل وی.او دا اصول مقرر دې.چه د ذات او حکم په حیثیت سره ترجیح ورکول د واجب مقدار په حیثیت سره ترجیح ور کاوه نه غوره دي.د واجب مقدار نه مراد د قتل او کثرت اعتبار دې.او د ذات او حکم نه مراد حقیقت او حکم دې.

**د دریو ګوتو د تهلی او د زیاتی نیږمې ګوتې کټ کولو سزا**

وَلَوْ كَانَ فِي الْكَفِّ ثَلَاثَةُ أَصَابِعَ او که په تهلی کي درې ګوتې وی يَجِبُ أَرْشُ الْأَصَابِعِ نو د ګوتو دیت واجب دې وَلَا شَيْءَ فِي الْكَفِّ بِالْإِجْمَاعِ او بالاجماع په تهلی کي هیڅ نشته لِأَنَّ الْأَصَابِعَ أُصُولٌ فِي التَّقْوِيمِ ځکه چې تقوم کي دننه ګوتې اصل دی وَلِلْأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ او اکثر لپاره دکل حکم دې فَاسْتَتْبَعَتِ الْكَفَّ نو اکثر ګوتې به تهلې تابع کوی كَمَا إِذَا كَانَتِ الْأَصَابِعُ قَائِمَةً بِأَسْرِهَا لکه چې تولې ګوتې قائم وی.

**تشریح:-** که په تهلی کي درې ګوتې وی.نو بالاجماع به دیرش اوښان واجب وی.او د تهلی به هیڅ واجب نه وی.ځکه دا منلې شوې ده.چه په تقوم کي ګوتې اصل دې.او دلته اکثر ګوتې موجود دی.ځکه چې درې د پنځو اکثره برخه ده.نو ګوتې به تهلې د ځان تابع کوی.لکه مثلاً که ټولې ګوتې موجود وی.بیا به هم صرف پنځوس اوښان واجب وی.او د تهلی به هیڅ واجب نه وی.

① اوکه د یوکس شپږ ګوتې راختلې وی.او بل چې دا شپږمه زیاتی ګوته کټ کړله.نو چونکه نه په دې سره منفعت شته.او نه په دې کي ښائست شته.په دې وجه ارش خو واجب نه دې.

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَفِي الْأُصْبُعِ الزَّائِدَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ) او په زیاتی ګوته کي حکومت عدل دې تَشْرِيفًا لِلْآدَمِيِّ د سړي د شرافت په وجه، لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنْ يَدِهِ ځکه چې دا دده دلاس جزء دې وَلَكِنْ لَا مَنْفَعَةَ فِيهِ خو په دې کي نه منفعت شته وَلَا زِينَةَ او نه ښائست شته (وَكَذَلِكَ السِّنُّ الشَّاغِيَةُ) او هم دغه ډول زیاتی غاښ دې لِمَا قُلْنَا هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دي

**تشریح:-** البته دا هم دده د لاس جزء دې.نو د انسانی عزت او شرافت په لحاظ سره په دې کي حکومت عدل واجب دې.دغه ډول که د زید ډبل غاښونه راختلی وی.چه دې ،، داړه ور،،وئیلې شی.او خالد دده زیاتی غاښ مات کړو.نو ددې هم دغه حکم دې.چه حکومت عدل دې.او هم هغه ددې دلیل دې.

**د بچی د سترګې ،ذکر،او ژبې کټ کولو سزا**

وَفِي عَيْنِ الصَّبِيِّ او د بچی په سترګه کي وَذَكَرِهِ او دده په ذکر کي وَلِسَانِهِ او دده په ژبه کي إِذَا لَمْ تُعْلَمْ صِحَّتُهُ کله چې په دې کي د هریو صحت معلوم نه وی حُكُومَةُ عَدْلٍ نو حکومت عدل دې.

تشریح:- کله چې د بچي په اړه کې معلومه ده.چه دې ګوري.او کلام ( خبرې) کوي.او دده ذکر حرکت کوي.نو دا ددې اندامونو د صحت علامت دې.نو په داسې صورت کې به بالاتفاق کامل دیت واجب وي.خو که اوس ددې صحت او تندرستی معلومه شوې نه وه.او چا دا کټ کړل. نو زمونږ په نیز په دې کې به دیت واجب نه وي.بلکه حکومتِ عدل دی.

وَقَالَ الشَّافِعِي: رحمه الله او امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل يَجِبُ فِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ چې په دې کې کامل دیت واجب دې لِأَنَّ الْغَالِبَ فِيهِ الصِّحَّةُ ځکه چې دې کې صحت غالب دې فَأَشْبَهَ قَطْعَ الْمَارِنِ وَالْأُذُنِ نو دا د پوزې د نرمې برخې او د غوږ کټ کاوه مشابه شو.

تشریح:- په دې صورت کې امام شافعی رحمه الله زمونږ سره اختلاف کړې دې هغوی فرمایي چې غالب هم دا ده.چه دا اندامونه صحیح وي.نو هم په دې بنا (بنیاد) لکه څنګه چې د پوزې په نرمه برخه کې او په غوږ کې دیت واجبیږي.دغه ډول به په مذکوره اندامونو کې هم دیت واجب وي.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دې أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْ هَذِهِ الْأَعْضَاءِ الْمَنْفَعَةُ چې دې اندامونو سره مقصود منفعت دې فَإِنْ لَمْ تُعْلَمْ صِحَّتُهَا نو ترکومه پورې چې ددې اندامونو صحت معلوم نشي لَا يَجِبُ الْأَرْشُ الْكَامِلُ بِالشَّكِّ نو د شك په وجه به کامل ارش واجب نه وي وَالظَّاهِرُ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلْإِلْزَامِ او د ظاهر الروایة لپاره د حجت جوړیدو صلاحیت نه لري

تشریح:- اومونږ د هغوی د دلیل په ځواب کې وایو.چه غالب او ښکاره حجت کیداې شي.خو ددې په وجه بل باندې حکم نشي لازم کیدې.یعني د الزام لپاره حجت نه دې.

بِخِلَافِ الْمَارِنِ په خلاف د پوزې د نرمې برخې وَالْأُذُنِ الشَّاخِصَةِ او د راوتوکو غوږونو لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الْجَمَالُ ځکه چې مقصود ښائست دې وَقَدْ فَوَّتَهُ عَلَى الْكَمَالِ او دې ښائست مکمل طور باندې ختم کړې دې

تشریح:- او پاتې شوه دا خبره چې امام شافعی رحمه الله د پوزې په نرمه برخه او غوږ باندې قیاس کړې دې.نو دا قیاس مع الفارق دې.ځکه چې ددې دواړو مقصود جلا جلا دې.او په کومو اندامونو کې خبره پیل ده.ددې مقصود منفعت دې.او ددې د منفعت هم علم نشته. ځکه چې اوسه پورې ددې د صحت علم نه دې شوې.او پاتې شو د پوزې نرمه برخه او د غوږونو بهر اړخ ته راوتلې حصه، نو ددوی مقصود ښائست دې.او ښائست ددې په وجه بچي ته هم حاصل دې.او پریکونکی دا ښائست ختم کړو.په دې وجه به په ده باندې دیت واجب وي.

**د زیږیدل په وخت د بچي ژړا.او د اندامونو د صحت معلومولو طریقه**

وَكَذَا لَوِ اسْتَهَلَّ الصَّبِيُّ )او هم دغه ډول ( حکومتِ عدل دې) که بچي اوژړل. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِكَلَامٍ ځکه چې دا کلام نه دې و وي وَإِنَّمَا هُوَ مُجَرَّدُ صَوْتٍ او دا خو صرف یو آواز دې وَمَعْرِفَةُ الصِّحَّةِ فِيهِ بِالْكَلَامِ او په ژبه کې د صحت پیژندګلو په کلام ( او خبرو) سره کیږي وَفِي الذَّكَرِ بِالْحَرَكَةِ او په ذکر ( اندام مخصوصه) کې ( پیژندګلو) حرکت سره کیږي وَفِي الْعَيْنِ بِمَا او په سترګه کې هغه شئ سره کیږي يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى النَّظَرِ د کوم په ذریعه چې په کتلو باندې دې فَيَكُونُ حُكْمُهُ بَعْدَ ذَلِكَ حُكْمَ الْبَالِغِ نو ددې نه روسته به دده حکم د بالغ حکم فِي الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ عمداً او خطاء دواړو ( صورتونو کې).

تشریح:- د زیږیدل په وخت کې بچي اوژړل.او ددې نه علاوه په نورو ذریعو سره دده د ژبې صحت معلوم نشو.نو صرف حکومتِ عدل واجب دې.ځکه چې دا ژړل هیڅ کلام نه دې.بلکه دا خو صرف یو آواز دې.بلکه د ژبې صحت کلام سره او د ذکر صحت په حرکت سره، او د سترګې په داسې شئ سره ،، په کوم سره چې کتلو باندې استدلال کیداې شي،، معلومیږي.او هرکه چې دده د ذکر شوو اندامونو سلامتی معلومه شوه.بیا به دده حکم د بالغ حکم وي.نو د عمداً کټ کاوه په صورت کې به قصاص وي.او د خطاء په صورت کې به دیت واجب وي.

**په وهلو سره د عقل ختمیدو. یا د ویښتو غورزیدو حکم**

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا چا چې د یوکس سر زخمي کړو فَذَهَبَ عَقْلُهُ نو دده عقل ختم شو



أَوْ شَعْرُ رَأْسِهِ یا دده د سر ایخته ( ختم شو). دَخَلَ أَرْشُ الْمُوضِحَةِ فِي الدِّيَةِ نو د موضحه ارش ( تاوان) به په دیت کې داخل وي لِأَنَّ بِفَوَاتِ الْعَقْلِ تَبْطُلُ مَنْفَعَةُ جَمِيعِ الْأَعْضَاءِ ځکه چې د عقل ختمیدو په وجه د ټولو اندامونو منفعت باطلیږي. فَصَارَ نو دا داسې شوه كَمَا إِذَا أَوْضَحَهُ لکه چې ده ته ئې موضحه زخم لګولې وي فَمَاتَ روسته دې مړ شو وَأَرْشُ الْمُوضِحَةِ يَجِبُ بِفَوَاتِ جُزْءٍ مِنَ الشَّعْرِ او د موضحه ارش ( تاوان) د ویښتو څه برخه فوت کیدو سره واجبیږي حَتَّى لَوْ نَبَتَ تردې که ایخته وینختل يَسْقُطُ نو دیت به ساقطیږي وَالدِّيَةُ بِفَوَاتِ كُلِّ الشَّعْرِ او دیت د پوره ایختو فوت کیدو سره واجبیږي وَقَدْ تَعَلَّقَا بِسَبَبٍ وَاحِدٍ او دا دواړه ( تاوان او دیت) متعلق دی.یو سبب سره، فَدَخَلَ الْجُزْءُ فِي الْجُمْلَةِ نو جزء به په کل کې داخل وي كَمَا إِذَا قَطَعَ أُصْبُعَ رَجُلٍ لکه مثلاً د یو سړي ئې یوه ګوته کټ کړله فَشُلَّتْ يَدُهُ نو دده لاس شل شو وَقَالَ زُفَرُ:او امام زفر رحمه الله فرمائیلی دی لَا يَدْخُلُ چې ( د موضحه ارش په دیت کې) نه داخلیږي. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جِنَايَةٌ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ ځکه چې دې کې هر یو مادون النفس کې جنایت دې فَلَا يَتَدَاخَلَانِ نو په دې دواړو کې به تداخل نه کیږي كَسَائِرِ الْجِنَايَاتِ لکه واړه جنایتونه ( جرمونه) وَجَوَابُهُ او ددې ځواب هم هغه دې مَا ذَكَرْنَاهُ کوم چې مونږ ذکر کړې دې.

تشریح:- دلته مرغینانی رحمه الله په حقیقت کې دا بیانول غواړي.چه زید یو جنایت اوکړو.چه ددې وقوع په یو اندام باندې اوشوه.خو دې دوې (دوه) شیان ضائع کړل.او په دې کې د یو دیت کم دې.او د دوهم زیات دې.نو دلته به اقل په اکثر کې داخلیږي.که دا جنایت عمداً وي.او که خطاء وي.او که جنایت جلا جلا په دواړو اندامونو باندې واقع شوې وي.نو تداخل به نه کیږي.بلکه د هر یو دیت به جلا جلا واجب وي.که جنایت عمداً وي.اوکه خطاء وي.دا تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې.ځکه چې ددوی په نیز داسې صورت کې قصاص ساقط دې.

او د صاحبینو رحمهما الله په نیز که ړومبی عمداً وي.او قصاص وصولول ممکن وي.نو قصاص به اخستلې شي.ګنی بیا ددوی هم هغه مسلك دې.کوم مسلك چې دامام صاحب رحمه الله دې.

① او د امام زفر رحمه الله مسلك دا دې.چه دلته به تداخل نه کیږي.بلکه د هر جنایت ارش به جلا جلا واجب وي.ځکه چې د هر جنایت تعلق د نفس نه کم سره دې.چه دلته تداخل نه کیږي.

② خو زمونږ د اړخه دوی ته دا ځواب ورکړې شوې دې.چه هرکله سبب متحد دې.او محل متحد دې.نو اکثر به اقل ته ګډ وي.دا ددې پوره تفصیل حاصل دې.کوم چې مرغینانی رحمه الله بیان کړې دې.

③ او وړاندې تیر شوی دی.چه د پوره سر ویخته خرئیلو کې چې کله دا دوباره راو نه خیژي.پوره دیت دې. او په ګیره کې پوره دیت دې. او که راوخیژي.نو هیڅ واجب نه دی.خو تعزیر دې.او که د سر بعض ایخته ئې ختم کړل.نو په دې کې حکومتِ عدل واجب دې.نو که ده سر زخمي کړو.چه په دې سره موضحه زخم جوړ شو.او ( بعض) ایخته هم ختم شو.نو اوس به کتلې شي.چه د موضحه دیت زیات دې.او که د ویختو حکومتِ عدل زیات دې. نوکوم چې زیات وي.هم هغه به واجبولې شي.او قلیل به په کثیر کې داخلولې شي.نو که حکومتِ عدل زیات وي.نو هم دا به واجب وي.او د موضحه دیت به په حکومتِ عدل کې داخل منلې شي.نو هم دا یو خانې دې.چه دلته کې ئې د موضحه دیت په کثیر کې داخل کړې دې.او دوهم خانې دا دې.چه موضحه زخم جوړ کړې شوې وي.خو زخمي کړې شوې ددې په وجه مړ شو.نو دلته به کامل دیت واجب وي.اود موضحه دیت به په دې کې داخلولې شي.د مرغینانی رحمه الله په عبارت کې لږ انتشار ( او ګډ وډې) دې.په دې تفصیل سره ټوله مسئله صفا شوه.

④ نو مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.که په سر زخمي کاوه سره عقل ختم شو.نو پوره دیت واجب دې.او هرکله چې پوره دیت واجب شو.نو د موضحه دیت به هیڅ نه وي.دغه ډول ئې که زخمي کړو.چه ددې په وجه پوره ایخته ختم شو.نو پوره دیت واجب دې.او هرکله چې پوره دیت واجب شو.نو د موضحه دیت به هیڅ نه وي.

⑤ ارش الموضحه... الخ دلته د موضحه نه مراد اصطلاحي موضحه نشي کیدې.ګنی ددې د دیت مدار په ایختو باندې نه دې...کمامر،،اودغه ډول په ایختو راختلو سره یا په زخم ډکیدو سره ددې دیت نه ختمیږي...کمامر،، بلکه دلته ضروري ده.چه د موضحه نه مراد د هغه ایختو ختمول مراد واخستلې شي.چه داهیڅ ختم نه وي.او راو نه

خیژی.چه په دې کې حکومت عدل واجب دې.او که راوخیژی.نو هیڅ هم نه واجبیږی.او د دیت نه مراد د ایختو پوره دیت دې.اوس مسئله صفا ده.چه د زخم په وجه لاس په لاس (فوراً) څه ایخته ختم شو.بیا ددې په اثر سره واړه ایخته ختم شو.نو اوس په ده پوره دیت واجب دې.او د مخکنو ایختو ختمیدو په وجه.چې کوم حکومت عدل واجب وو.هغه چونکه قلیل دې.نو هغه به په کثیر کې داخلیږی.او دا ممکن ده.چه د موضحه نه هغه زخم مراد واخستلې شی.کوم چې د موضحه نه کم وی.چه په دې کې څه خراش وغیره شوې وی.او څه ایخته وتلې وی.او بیا ددې په اثر سره واړه ایخته ختم شوې وی.نو چونکه په ړومبی کې حکومت عدل واجب وو.او په دوهم کې دیت، نو هرکله چې دیت واجب کړې شو.نو حکومت عدل به هم په دې کې داخل شمارلې شی.ددې تاویل نه بغیر مسئله نه حل کیږی.او صاحب د نتائج رحمه الله اګرچه دلته کې اوګد بحث کړې دې.خو واړه لا حاصل (بې فائدې) دې.والله اعلم بالصواب.

## د موضحه زخم سره د اوریدو، د لیدلو،یا د خبرو کولو د قدرت ختمیدو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ ذَهَبَ سَمْعُهُ) اوکه (د موضحه زخم په وجه) د اوریدو قوت أَوْبَصَرُهُ یا دده نظر أَوْكَلَامُهُ یا دده خبرې ختمې شوې. فَعَلَيْهِ أَرْشُ الْمُوضِحَةِ مَعَ الدِّيَةِ ()نو په ده د دیت سره سره د موضحه دیت هم دې قَالُوا:هَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه دا د شیخینو رحمهما الله قول دې.

تشریح:- زید دخالد سرزخمی کړو.چه ددې په وجه موضحه زخم اوشو.او دې سره سره د اوریدو قوت، یا نظر یا خبرې کول هم ختم شو.نو اوس څه حکم دې.تداخل به کیږی اوکه نه؟ نو په دې کې د امام ابوحنیفه رحمه الله قول د عدم تداخل دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّ الشَّجَّةَ تَدْخُلُ فِي دِيَةِ السَّمْعِ وَالْكَلَامِ چې زخم به د اوریدو او خبرو کاوه په دیت کې داخل وی وَلَا تَدْخُلُ فِي دِيَةِ الْبَصَرِ او د نظر په دیت کې به داخل نه وی.

تشریح:- او د امام ابویوسف رحمه الله نه دوې (دوه) روایتونه دی.په یو کې خو دې د امام صاحب رحمه الله سره دې.او په دوهم کې ددوی په نیز تفصیل دې.یعنی په ذکر شوو دریو قوتونو کې یو کې یعنی نظر کې دوې د امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې.او په اوریدو او خبرو کاوه کې د تداخل قائل دی.اوس د دواړو روایتونو دلیل اوګورئ.

وَجْهُ الْأَوَّلِ د ړومبی وجه دا ده أَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا جِنَايَةٌ چې په دې کې هر یو داسې جنایت دې فِيمَا دُونَ النَّفْسِ چې دا د نفس نه په کم کې دې وَالْمَنْفَعَةُ مُخْتَصَّةٌ بِهِ او منفعت په دې کې هر یو سره مختص دې فَأَشْبَهَ الْأَعْضَاءَ الْمُخْتَلِفَةَ نو دا د مختلفو اندامونو مشابه شو بِخِلَافِ الْعَقْلِ په خلاف د عقل لِأَنَّ مَنْفَعَتَهُ عَائِدَةٌ إِلَى جَمِيعِ الْأَعْضَاءِ ځکه چې دده منفعت ټولو اندامونو اړخ ته واپس کیږی عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څنګه چې مونږ بیان کړی دی.

تشریح:- د عدم تداخل دلیل۞ په دې دریو واړو کې هر یو جرم د نفس نه په کم کې جرم کول دی.او په دې کې دهر یو منفعت هم دغه اندام سره خاص دې.یعنی خبرې کول صرف د ژبې کاردې.اواوریدل د غوږونو،او کتل د سترګو کار دې.نو دا د مختلفو اندامونو مشابه شو.او په مختلفو اندامونو کې تداخل نه کیږی.نو دلته به هم تداخل نه کیږی.بلکه ددې د ختمولو دیت ورکول به واجب وی.او د موضحه دیت به جلا ورکول لازمی وی.او د عقل په صورت کې د تداخل قول ځکه اختیار کړې شوې وو.چه د عقل منفعت پوره بدن اړخ ته راجع دې.او دلته کې داسې نه ده.بلکه هر قوت پخپل مخصوص دائره کې کار کوی.

وَوَجْهُ الثَّانِي د دوهم قول وجه دا ده. السَّمْعَ وَالْكَلَامَ مُبْطَنٌ چې اوریدل او خبرې کول باطنی (پټ) شیان دی فَيُعْتَبَرُ

---

() القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في كنز الدقائق (٤٠٠) وملتقى (٣٥٣\٤) والـدر المحتار(٤١٤\٥) نقلا عن القول الراجح (٣٥١\٢)-



بِالْعَقْلِ نو دا به په عقل باندې قیاس کولای شی وَالْبَصَرُ ظَاهِرٌ او نظر ظاهری (ښکاره) شئ دې فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو دا به عقل سره نشی لاحق کولې.

تشریح:- د تداخل دلیل۞ او د دوهم روایت دلیل دا دې.چه قوت د اوریدو، او د خبرو کولو، باطنی او پټ شیان دی.لکه څنګه چې عقل باطنی (او پټ) شئ دې.نو دا دواړه په عقل باندې قیاس کاوه سره هم هغه حکم ورکړې شو.کوم چې د عقل په صورت کې دې.او نظر یو ښکاره قوت دې.نو دا په عقل باندې قیاس کړې شو.او د عدم تداخل قول اختیار کړې شو.

## د موضحه زخم سره د دواړو سترګو نظر ختمیدل

قَالَ مرغینانی رحمه الله فرمایی (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ) او جامع صغیر کې دی وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا مُوضِحَةً او چا چې په یو سړی موضحه زخم اولګولو فَذَهَبَتْ عَيْنَاهُ نو دده دواړه سترګې ختمې شوې فَلَا قِصَاصَ فِي ذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ()نو په دې کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز قصاص نشته قَالُوا مشائخو فرمائیلی دی وَيَنْبَغِي أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِيهِمَا او مناسب دا ده.چه په دې دواړو کې دیت واجب وی.(وَقَالَا او صاحبین رحمهما الله فرمایی فِي الْمُوضِحَةِ الْقِصَاصُ چې په موضحه کې قصاص شته فِي الْمُوضِحَةِ الْقِصَاصُ مشائخ رحمهم الله فرمایی فِي الْمُوضِحَةِ الْقِصَاصُ وَيَنْبَغِي أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي الْعَيْنَيْنِ او مناسب دا دی.چه دواړو سترګو کې دیت واجب وی.

تشریح:- که یوکس د زید سر زخمی کړو.چه په دې سره موضحه زخم اوشو.او د زید د دواړو سترګو نظر ختم شو.نو په داسې صورت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په دې کې قصاص نشته اوعالمانو فرمائیلی دی چې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز باید ده (پکار ده) چې ارش (تاوان) واجب شی ځکه چې په جامع صغیر کې د دیت نفی نشته صرف د قصاص نفی ده.

۞او د صاحبینو رحمهما الله په نیز په موضحه کې قصاص دې.اوعالمانو فرمائیلی دی چې د صاحبینو د مذهب په رڼاکې باید ده (پکار ده) چې سترګو کې دیت واجب دې.

۞دا اصل مسئله ده.او د مرغینانی رحمه الله د جامع صغیر عبارت کوم چې ددې مسئلې په اړه کې دې.د هغې نقل کول ددې کمی ښکاره کوی.نو د جامع صغیر عبارت دا دې. ﴿ومن شج رجلاً موضحةً فذهب عيناه فلا قصاص في ذالك عند أبي حنيفة رحمه الله وقال في الموضحة قصاص﴾ نو په دې کې صرف دا اووئیلی شو.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز قصاص نشته.خودا نه دی بیان شوی چې دیت واجب دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز موضحه کې قصاص واجب دې.خو د سترګو دیت نه دې بیان کړې شوې.

## د ګوتې بند کټ کولو سره د لاندینۍ حصې بې کاره کیدو مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ قَطَعَ أُصْبُعَ رَجُلٍ مِنَ الْمَفْصِلِ الْأَعْلَى) اوکه یوکس د یو سړی ګوته د پورتنی بند نه کټ کړله فَشَلَّ مَا بَقِيَ مِنَ الْأُصْبُعِ أَوِ الْيَدِ كُلِّهَا نو پاته ګوته یا پاته واړه لاس شل شو لَا قِصَاصَ عَلَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ نو په ده به په دې کې هیڅ شئ کې قصاص نه وی وَيَنْبَغِي او مناسب دا ده أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي الْمَفْصِلِ الْأَعْلَى وَفِيمَا بَقِيَ حُكُومَةُ عَدْلٍ چې په ړومبی بند کې قصاص او په پاته کې حکومت عدل واجب وی (وَكَذَلِكَ لَوْ كَسَرَ بَعْضَ رَجُلٍ او هم دغه ډول (قصاص نشته) که د یوکس دغاښ څه برخه ئې ماته کړله فَاسْوَدَّ مَا بَقِيَ نو پاته پاتې تور شو وَلَمْ يَحْكِ خِلَافًا او امام محمد رحمه الله اختلاف نه دې نقل کړې وَيَنْبَغِي او مناسب دا ده أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي السِّنِّ كُلِّهِ چې په پوره غاښ کې دیت واجب شی.

---

() القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٤١٤\٥) وملتقى (٣٥٣\٤) والفقه الإسلامي (٣٤١\٦)-

**تشریح:-** که زید د خالد د لاس ړومبې بند (جوړ) کټ کړو.چه ددې په وجه پوره ګوته یا پوره لاس شل شو.نو په دې کې بالاتفاق قصاص نشته.ځکه چې زموږ د امام ابوحنیفه رحمه الله د اصحابو په دې اتفاق دې.چه هرکله دیو اندام څه برخه کټ کړې شي.او پاته شل شي.نو په دې کې به قصاص نه وي.یعني صاحبینو رحمهما الله دلته خپل مخکنې اصول پرېښودې دې.بلکه په دې صورت کې به د ړومبی جوړ دیت واجب وي.یعني د دیت د نصف عشر دریمه حصه، او په پاته پاتې برخه کې کوم چې شل شوې دې.حکومتِ عدل دې.اوکه د غاښ څه برخه ئې ماته کړله.چه ددې په وجه واړه غاښ تور شو.نو دلته به هم بالاتفاق قصاص نه وي.بلکه د پوره غاښ دیت به واجب وي.

① چونکه د جامع صغیر په عبارت کې دواړو صورتونو کې صرف د قصاص نفی مذکور ده.او د مثبت حکم نه دې ذکر شوې.نو دا مرغینانی رحمه الله د تیر شوی پشان دواړو خایونو کې د ،، وینبغی..... نه بیان کړې دې.په ،، ولم یحك..... سره دا بیانوی.چه امام محمد رحمه الله ددې مسئلې په نقل کاوه سره په دې کې اختلاف نه دې بیان کړې.کوم چې دا ددې خبرې دلیل دې.چه دا حکم اجماعی دې.

## د قصاص نه مشروع کېدو صورتونو کښې د مظلوم د دعوې حکم

> **وَلَوْقَالَ**:اوکه مظلوم اووئیل **اِقْطَعِ الْمِفْصَلَ** چې زه به پورتنې جوړ کټ کوم **وَاتْرُكُ مَا يَبِسَ** او کوم چې اوچ شوې دې.هغه پرېږدم **أَوْاَكْسِرُ الْقَدْرَ الْمَكْسُوْرَ** یا زه مات شوې مقدار ماتوم **وَاتْرُكُ الْبَاقِيَ** او پاته پرېږدم **لَمْ يَكُنْ لَّهُ ذٰلِكَ** نو دده لپاره به ددې حق نه وي.

**تشریح:-** په کومو صورتونو کې چې قصاص مشروع نه دې.که په دې صورتونو کې مظلوم اووائی.چه جی! دې ظالم زما ړومبې بند کټ کړې دې.چه په دې سره پاته ګوتې یا لاس شل شوې دې.ماته دې اجازت ملاو شي.چه زه هم دده ړومبې بند کټ کړم.کوم چې پاته جرم دې.زه دا معاف کوم.نو مظلوم ته به ددې اجازت نشي ورکولې.

> **لِاَنَّ الْفِعْلَ فِيْ نَفْسِهٖ مَا وَقَعَ مُوْجِبًا لِلْقَوَدِ** ځکه چې دا فعل فی نفسه موجب د قصاص نه دې واقع شوې **فَصَارَ** نو دا داسې شوه **كَمَا لَوْشَجَّهٗ مُنَقِّلَةً** لکه چې ده ته ئې منقله زخم لګولې وي **فَقَالَ** نو زخمی شوی اووئیل **اَشُجُّهٗ مُوْضِحَةً** چې زه ده لره د موضحه په اندازه زخمی کوم **أَتْرُكُ الزِّيَادَةَ** او زیاتی پرېږدم.

**تشریح:-** ځکه چې شریعت دلته قصاص نه دې مشروع کړې.نو بیا به ده ته د قصاص اجازت څنګه ورکولې شي.لکه څنګه چې په منقله زخم کې قصاص مشروع نه دې.،، کما مر،، او زید د خالد سر منقله زخمی کړو.اوس خال وائی.چه ماته دې اجازت راکړې شي.چه زه هم د زید دومره سر زخمی کړم.چه په دې سره موضحه زخم جوړ شي.( چې په دې کې قصاص جائز دې).او زیاتی مقدار زه معاف کوم.نو خالد ته به ددې اجازت نشي ورکولې.ځکه چې هرکله منقله زخم د پیل نه موجب د قصاص نه دې جوړ شوې.نو بیا به د قصاص اجازت څنګه ورکولې شي.

## د صاحبینو رحمهما الله دلیل

> **لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ** په اختلافی مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې **اَلْفِعْلَ فِيْ مَحَلَّيْنِ** چې فعل په دوې (دوه) ځایونو کې دې **فَيَكُوْنُ جِنَايَتَيْنِ مُبْتَدَأَتَيْنِ** نو دا فعل به دوې (دوه) جلا جلا جرمونه وي **فَالشُّبْهَةُ فِيْ اَحَدِهِمَا** نو په دې کې په یو کې شبه به **لَاتَتَعَدّٰى اِلَى الْاُخْرٰى** دوهم اړخ ته متعدی نه وي **كَمَنْ رَمٰى اِلٰى رَجُلٍ عَمْدًا** لکه (مثلاً) یو کس یو سړی اړخ ته عمداً غشي اوویشتلو **فَاَصَابَهٗ** چې هغه اولګیدو **وَنَفَذَ مِنْهُ** او د هغه نه اووتلو **اِلٰى غَيْرِهٖ**....... دوهم کس اوولګیدو **فَقَتَلَهٗ** نو هغه ئې قتل کړو **يَجِبُ الْقَوَدُ فِي الْاَوَّلِ** نو په ړومبی کې قصاص واجب دې.، **وَالدِّيَةُ فِي الثَّانِيْ** او په دوهم کې دیت

**تشریح:-** ددې متن نه په پورته متن کې چې کومه مسئله تیره شوې ده.هغې کې د امام ابوحنیفه رحمه الله او صاحبینو رحمهما الله اختلاف وو.یعني دامام صاحب رحمه الله په نیز قصاص واجب نه وو.اودصاحبینو رحمهما الله په نیز موضحه کې قصاص



وو.او په دواړو سترګو کې دیت واجب وو.نو دلته په دغه مسئله باندې د طرفینو رحمهما الله دلیل پیش کوی.دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د پریکونکي په کټ کاوه سره دوې (دوه) ځایونه متاثر شو.یو سر او بل دواړه سترګې،او د محل تعدد د جنایت تعدد ثابتوی.نو دوې (دوه) سزاګانې ملاویدل پکار دی.یو قصاص او بل دیت.

که څوك دا ووایي چې په شبهاتو سره قصاص ساقطیږی او دلته هم ده د سترګې زخمی کاوه اراده نه ده کړې.نو په دې کې شبه پیدا شوه. په دې وجه به قصاص نه وی؟ نو موږ خواب ورکوو چې موږ په سترګو کې قصاص نه واجبوو.بلکه صرف موضحه کې قصاص واجبوو.چه په دې کې هیڅ شبه نشته.نو د سترګو زخمی کاوه په جنایت کې د شبهې په وجه به موضحه کې هم شبه وی.او ددې مثال بعینه داسې دې.چه زید خالد په غشی اوویشتلو.یا ئې په ګولۍ اوویشتلو.او دغه غشې یا ګولۍ هغه مړ کړو.او د هغه د بدن نه اووتلو.او ساجد اولګیدو.او هغه ئې هم هلاك کړو.نو په زید به د خالد په وجه قصاص واجب وی.او ساجد لپاره به دیت واجب وی.لنډیز د کلام دا چې د ساجد په قتل کې د شبهې په وجه د خالد په قتل کې شبه پیدا نشوه.دغه ډول دلته کې هم کیدل پکار دی.

## د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

> **وَلَهٗ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دی **اَنَّ الْجِرَاحَةَ الْاُوْلٰى سَارِيَةٌ** چې ړومبې زخم خوریدونکې دې **وَالْجَزَاءُ بِالْمِثْلِ**.او جزاء په مثل سره وی **وَلَيْسَ فِيْ وُسْعِهِ السَّارِيْ** او دده په وس کې خوریدونکي (زخم لګول) نشته **فَيَجِبُ الْمَالُ** نو مال به واجب وی **وَلِاَنَّ الْفِعْلَ وَاحِدٌ حَقِيْقَةً** او ځکه چې حقیقت کې فعل یو دې.**وَهُوَ الْحَرَكَةُ** او هغه حرکت دې **الْقَائِمَةُ** کوم چې (د زخمی کاوه په وخت) قائم وو **وَكَذَا الْمَحَلُّ مُتَّحِدٌ مِّنْ وَجْهٍ** او هم دغه ډول من وجه محل متحد دې **لِاِتِّصَالِ اَحَدِهِمَا بِالْاٰخَرِ** دوی دواړو کې یو سره د متصل کیدو په وجه دوهم سره، **فَاَوْرَثَتْ نِهَايَتُهٗ شُبْهَةَ الْخَطَاِ فِي الْبِدَايَةِ** نو د فعل انتهاء په ابتداء کې د خطاء شبه پیدا کړله **بِخِلَافِ النَّفْسَيْنِ** په خلاف د دوو نفسونو، **لِاَنَّ اَحَدَهُمَا لَيْسَ مِنْ سِرَايَةِ صَاحِبِهٖ** ځکه چې دوی دواړو کې یو دده د اندیوالان د خوریدو په وجه نه دې **وَبِخِلَافِ مَا اِذَا وَقَعَ السِّكِّيْنُ عَلَى الْاُصْبُعِ** او په خلاف ددې صورت کله چې په ګوته باندې چاړه پریوتلې وی **لِاَنَّهٗ لَيْسَ فِعْلًا** ځکه چې دا داسې فعل نه دې **مَقْصُوْدًا** چې مقصود وی.(یعني دا حاصل او ثابتیږی.د ړومبی فعل په اثر سره).

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.چه قصاص نه په ړومبی کې واجب دې.او نه په دوهم کې، بلکه په دوهم کې دیت او ړومبی کې ارش (تاوان) دې.ځکه ① چې قصاص مساوات غواړی.او کوم ځائې کې چې مساوات نا ممکن وی.نو بیا قصاص نه وی.او په مذکوره صورت کې ړومبې زخم خوریدونکې دې.نو د دوهم زخم لپاره به هم ضروری وی.چه هغه هم خوریدونکې وی.حالانکه د زخم خوریدونکې کول او نه کول دا د انسان د وس خبره نه ده.نو قصاص به متعذر وی.او مال (دیت) به واجب وی. ② او د کټ کونکی او زخم لګونکی فعل یو دې.لکه څنګه چې ښکاره ده.او د دواړو ځایونو په منځ کې د مضبوط اتصال په وجه دواړه ځایونه به هم متحد ګرځولې شي.یعني په سر او سترګه کې سخت اتصال دې.نو محل به هم یو وی.او د فعل او محل په آخر کې شبه ده.نو د آخر شبه به په ړومبی فعل او محل کې هم شبه د خطاء پیدا کوی.او شبه قصاص لرې کوی.نو قصاص به ختمولې شي.

① که څوك دا ووایي چې په یوه ګولۍ دوې (دوه) نفر مړه شوی وی.هلته هم دغه ډول اووایه.او قصاص په ړومبی کې هم مه واجبه وه؟ نوموږ وایوچه دا قیاس مع الفارق دې.خبره په یو محل کې د خوریدو پیل ده.او دلته نه محل یو دې.او نه خوریدل یو دی.ځکه چې دوی کې د یو کس مړینه د دوهم کس دخوریدو په وجه نه دی.بلکه دغشی لګیدو په وجه دی.

① که یو معترض اعتراض اوکړی که زید د خالد یوه ګوته کټ کړله.بیا د زید د لاس د حرکت په وجه دده د لاس نه چاړه پریوتله .او دا د خالد په دویمه ګوته باندې پریوتله.نو دلته کې هم اووایه.چه لکه څنګه په دویمه ګوته کې قصاص واجب نه دې.دغه ډول په ړومبۍ ګوته کې هم قصاص واجب نه دې؟ نو موږ ځواب ورکوو چې دا هم قیاس مع الفارق دې.ځکه چې دلته کې دوهم فعل د ړومبی اثر نه دې.چه دوهم د ړومبی تتمه اوګرځولې شي.نو

دلته په رومبی کي هيڅ شبه پيدا نشوه.ځکه چې دا دواړه فعل متغاير دی.او په ذکر شوی صورت کي دوهم د رومبی د خوزيدو په وجه سره دې.نو دوهم د رومبی تتمه ګرځيدې شی.

### يوې ګوتې کټ کولو سره د دويمې ګوتې شل کيدو حکم

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ قَطَعَ أُصْبُعًا فَشُلَّتْ إِلَى جَنْبِهَا أُخْرَى) و که يوه ګوته ئې کټ کړله.نو ددې په اړخ کي بله ګوته شله شوه فَلَا قِصَاصَ فِي شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې دواړو کي يو کي هم قصاص نشته .قَالَا هُمَا وَزُفَرُ وَالْحَسَنُ او صاحبين رحمهما الله ،او امام زفر،اوامام حسن رحمهم الله فرمايي يُقْتَصُّ مِنَ الْأُولٰى چې د رومبی قصاص به اخستلې شی وَفِي الثَّانِيَةِ أَرْشُهَا او په دوهم کي به ددې ارش ( ديت) وی وَالْوَجْهُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او د فريقينو دليلونه هغه دی قَدْ ذَكَرْنَاهُ کوم چې موږ ذکر کړی دی.

تشريح:- يوه ګوته ئې کټ کړله.په اړخ کي ور سره دويمه ګوته هم شله شوه.نو د امام صاحب رحمه الله په نيز به قصاص نه وی.او د ذکر شوو څلورو حضراتو په نيز به رومبی کي قصاص او دوهم کي ديت واجب وی. دلته هم د فريقينو دليلونه هم هغه دی.کوم چې په پورتنۍ مسئله کي وو.

### د امام محمد رحمه الله په نيز د قصاص په اړه کښې قاعده کليه

فَفِي رِوَايَةِ ابْنِ سَمَاعَةَ عَنْ مُحَمَّدٍ فِي او ابن سماعه رحمه الله د امام محمد رحمه الله نه روايت کړې دې الْمَسْأَلَةِ الْأُولٰى په رومبۍ مسئله کي وَهُوَ مَا إِذَا شَجَّهُ مُوضِحَةً او هغه دا دې.چه کله دې موضحه زخم اولګوی فَذَهَبَ بَصَرُهُ نو دده د سترګو نظر ختم شی أَنَّهُ يَجِبُ الْقِصَاصُ فِيهِمَا چې په دې دواړو کي به قصاص واجب وی لِأَنَّ الْحَاصِلَ بِالسِّرَايَةِ ځکه چې خوريدو نه کوم شۍ حاصل دې مُبَاشَرَةً هغه مباشرت (او يوځائې والې) دې كَمَا فِي النَّفْسِ لکه څنګه چې په نفس کي دی وَالْبَصَرُ يَجْرِي فِيهِ الْقِصَاصُ او بينائی داسې شۍ دې.چه په دې کي قصاص جاری کيږی بِخِلَافِ الْخِلَافِيَّةِ الْأَخِيرَةِ په خلاف د آخری اختلافی مسئلې لِأَنَّ الشَّلَلَ لَا قِصَاصَ فِيهِ ځکه چې شل کي قصاص نشته.

تشريح:- د هدايه په دې مسئله باندې يوه اختلافی مسئله تيره شوې ده.چه په هغې کي د مشهور قول مطابق امام محمد رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله سره دې.او دوی په دې صورت کي په موضحه زخم کي قصاص او په سترګو کي ديت واجب کړې دې. په دې مسئله کي ابن سماعه رحمه الله د امام محمد رحمه الله نه دوهم روايت نقل کړې دې.چه دواړوکي به قصاص اخستلې شی.يعنی په سترګو کي هم او په موضحه کي هم.

ځکه چې بنده بعض کار په طريقه د قصد او اختيار کوی.او بعض کار په طريقه د توليد ( او سبب) کوی.او کله چې دوهم فعل د زړه په ارادې سره شوې وی.نو د رومبی پشان به دوهم هم اختياری فعل ګرځولې شی.لکه مثلاً که زخم ئې اولګولو.او زخمی ددې زخم په وجه مړ شو.نو قصاص واجبيږی.او سترګه داسې شۍ دې.چه په د ې کي قصاص جاری کيږی.نو د لته به په دواړو کي قصاص واجبولې شی.البته ددې مسئلې په متن کي وئيلی شوی دی.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د رومبی قصاص او د دوهم ديت واجب وی.ددې وجه دا ده.چه په شل کښې قصاص نشته.نو دلته کي ديت واجب کړې شوې دې.

فَصَارَ الْأَصْلُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ عَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ نو ددې روايت مطابق د امام محمد رحمه الله په نيز قاعده کليه دا شوه أَنَّ سِرَايَةَ مَا يَجِبُ فِيهِ الْقِصَاصُ چې د داسې زخم خوريدل (زياتيدل) په کوم کي چې قصاص واجب وی إِلٰى مَا يُمْكِنُ فِيهِ الْقِصَاصُ داسې زخم اړخ ته په کوم کي چې قصاص ممکن وی يُوجِبُ الْاِقْتِصَاصَ قصاص واجبوی كَمَا لَوْ آلَتْ إِلَى النَّفْسِ لکه څنګه چې زخم نفس ته خور شی وَقَدْ وَقَعَ الْأَوَّلُ ظُلْمًا حالانکه رومبی کي ظلم واقع شوې وی.

تشريح:- د ابن سماعه رحمه الله د روايت مطابق د امام محمد رحمه الله په نيز قاعده کليه دا ده.چه کله داسې زخم خور (او زيات) شی.په کوم کي چې قصاص واجب دې.او داسې زخم اړخ ته ورتير شی.په کوم کي چې قصاص اخستلې شی.نو هلته به قصاص واجب وی.لکه مثلاً که ګوته ئې کټ کړې وه.او په دې سره سړې مړ شی.اوګوته پرې کول



عمدا شوې وی.نو قصاص به واجب وی.

### د مشهور قول دليل

وَوَجْهُ الْمَشْهُورِ او د مشهور قول وجه دا ده أَنَّ ذَهَابَ الْبَصَرِ بِطَرِيقِ التَّسْبِيبِ چې د نظر ختميدل د تسبيب په طريقه دی أَلَا يُرٰى آيا تاسو نه ګورئ أَنَّ الشَّجَّةَ بَقِيَتْ مُوجِبَةً فِي نَفْسِهَا چې د سر زخم پخپله موجب د قصاص دې وَلَا قَوَدَ فِي التَّسْبِيبِ او په تسبيب کي قصاص نه وی بِخِلَافِ السِّرَايَةِ إِلَى النَّفْسِ په خلاف نفس اړخ ته د خوريدو لِأَنَّهُ لَا تَبْقَى الْأُولٰى ځکه چې رومبی زخم به پاته نه پاتې کيږی فَانْقَلَبَتِ الثَّانِيَةُ مُبَاشَرَةً نو دوهم به مباشرت ( او قصدی فعل) سره بدليږی.

تشريح:- وړاندې د امام محمد رحمه الله د روايت دليل ذکر شو.کوم چې د ابن سماعه رحمه الله نه نقل دې.او دا د مشهور قول دليل دې.مشهور قول دا وو.چه د رومبی قصاص او د دوهم به ديت واجب وی.ولې؟ ځکه چې د نظر ختميدل د توليد په طريقه دی.د مباشرت ( او قصد) په طريقه نه دې.او اصول دا دې.چه د نفس نه په کم کي په سبب باندې قصاص نه وی.بلکه صرف ديت واجبيږی.ځکه چې قصاص د شجه ( د سر د زخم) واجب شوې دې.

ګکه څوك دا ووايي چې هرکله چې په سبب باندې قصاص لازميږی نو که يوکس د چا سر زخمی کړو.او د زخم د تکليف نه هغه مړ شو.نو دلته قصاص ولې واجب دې. حالانکه د سر زخم دلته کي هم سبب دې.نوددې نه ځواب دا دې چې د نفس د هلاکت په صورت کي رومبې زخم او ددې قصاص نه واجبيږی.نو دا به معدوم شمارلې شی.او صرف هلاکت به په طريقه د مباشرت ( او آرادی فعل) شمارلې کيږی.نو قصاص د نفس به واجب وی.

### د غاښ څينې حصې ماتولو سره د ټول غاښ وتلو حکم

قَالَ:مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْ كَسَرَ بَعْضَ السِّنِّ) وکه د غاښ بعضې برخه ئې ماته کړله فَسَقَطَتْ نو غاښ پريوتلو فَلَا قِصَاصَ نو قصاص به نه وی إِلَّا عَلٰى رِوَايَةِ ابْنِ سَمَاعَةَ رحمه الله خو د ابن سماعه رحمه الله د روايت مطابق ( به قصاص اخستلې شی (وَلَوْ أَوْضَحَهُ مُوضِحَتَيْنِ او که هغه ته دوې (دوه) موضحه زخمونه اولګوی فَتَأَكَّلَتَا نو دا دواړه يوځائې شو فَهُوَ عَلَى الرِّوَايَتَيْنِ هَاتَيْنِ نو دا هم په دې دواړو روايتونو باندې ( مبنی) دی.

تشريح:- که د غاښ بعضې برخه ئې ماته کړله.چه په دې سره واړه غاښ پريوتلو.نو قصاص به نه وی.خو امام محمد رحمه الله نه د ابن سماعه رحمه الله د روايت مطابق به قصاص اخستلې شی.اوکه دوې (دوه) زخمونه په سر کي اورسوی. يعنی دواړه موضحه وی.او بيا دا دواړه خپاره شی.او يو شی.نو د امام محمد رحمه الله نه د مشهور قول مطابق قصاص نه وی.او د ابن سماعه رحمه الله د روايت مطابق به قصاص وی.

### د يو غاښ وتلو په ځائې بل غاښ راووتلو نو څه حکم دې ؟

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْ قَلَعَ سِنَّ رَجُلٍ) او که د يو سړی غاښ ئې اوبښکلو. فَنَبَتَتْ مَكَانَهَا أُخْرَى نو ددې په ځائې بل راوختلو سَقَطَ الْأَرْشُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (1) نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول کي به ديت ساقطيږی.

تشريح:- اوکه د غټ سړی غاښ ئې مات کړې دې.او ددې په ځائې دوهم غاښ راختلې وی.نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه اوس ديت واجب نه دې.

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمايي عَلَيْهِ الْأَرْشُ كَامِلًا چې په ده باندې کامل ديت لِأَنَّ الْجِنَايَةَ قَدْ تَحَقَّقَتْ ځکه چې جنايت ( جرم) متحقق شوې دې وَالْحَادِثُ او کوم شۍ ( نوې غاښ) چې پيدا کيږی نِعْمَةٌ مُبْتَدَأَةٌ مِنَ اللهِ تَعَالٰى هغه د الله تعالی د اړخه نوې نعمت دې.

تشريح:- اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به کامل ديت واجب وی.ځکه چې د مجرم د اړخه خو کامل جنايت دې.او په دې عمر کي غاښ راختل، دا د الله تعالی نوې نعمت دې.نو په مجرم به کامل ديت واجب وی.يعنی پنځه اوښان ،، کما

(1) القول الراجح هو هذا قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی ملتقی (۳۵۴\۱۴) وردالمحتار(۴۱۵\۱۵) نقلاً عن القول الراجح (۳۵۲\۲)-

مر...

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې آن الْجِنَايَةَ انْعَدَمَتْ مَعْنًى چې دجنايت معنى معدوم شوه فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا قَلَعَ سِنَّ صَبِيٍّ لكه د بچي غابښ ئې اوښكلو فَنَبَتَتْ نو هغه راوختلو آن لَا يَجِبُ الْأَرْشُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع به ديت نه وی لِأَنَّهُ لَمْ يَفُتْ عَلَيْهِ مَنْفَعَةٌ خكه چې په دې نه منفعت ختم شو وَلَا زِينَةٌ او نه ښائست.

تشريح:- دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چې معناً جنايت معدوم اوختم شو نو دا داسې شو لكه چې كه يوكس د ماشوم غابښ مات كړو. او دوهم غابښ راوختلو. نو چونكه په دې نه ښائست ختم شو. او نه منفعت فوت شو. په دې وجه به په دې كې بالاجماع ديت واجب نه وی. نودغه ډول به دلته هم ديت ساقطيږی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابويوسف رحمه الله نه منقول دی. أَنَّهُ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ چې حكومتِ عدل واجب دې لِمَكَانِ الْأَلَمِ الْحَاصِلِ *. د هغه درد په وجه كوم چې حاصل شو.

تشريح:- په دې صورت كې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حكومتِ عدل واجب دې. خكه چې ددې په ماتولو سره ده ته تكليف رسيدلې دې. نو ددې ضمان وركول به لازمی وی.

**د غابښ اوښكلو نه روسته پخپل ځائې واپس ايښودو او ټل كيدو سره تاوان شته اوكه نه؟**

(وَلَوْ قَلَعَ سِنَّ غَيْرِهِ) اوكه ده د خان نه علاوه د بل چا غابښ اوښكلو فَرَدَّهَا صَاحِبُهَا فِي مَكَانِهَا نو د غابښ والا دا پخپل خائې كيخودو فَرَدَّهَا صَاحِبُهَا فِي مَكَانِهَا وَنَبَتَ عَلَيْهِ اللَّحْمُ او په دې غوښه راوختله فَعَلَى الْقَالِعِ الْأَرْشُ بِكَمَالِهِ نو په او ښكونكی باندې پوره ديت دی لِأَنَّ هَذَا مِمَّا لَا يُعْتَدُّ بِهِ خكه چې ددې راختلو هيڅ اعتبار نشته إِذِ الْعُرُوقُ لَا تَعُودُ خكه چې رګونه نه راواپس كيږی. (وَكَذَا) او هم دغه ډول (حكم دې). إِذَا قَطَعَ أُذُنَهُ كله ئې چې دده غوږ پريكړو فَأَلْصَقَهَا بيا دا د غوږ والا ملاوكړو فَالْتَحَمَتْ نو په دې غوښه راوختله لِأَنَّهَا لَا تَعُودُ إِلَى مَا كَانَتْ عَلَيْهِ خكه چې غوږ به په دې حالت باندې نه راځی. په كوم چې وو

تشريح:- كه د غابښ ماتيدو نه روسته دا هم پخپل ځائې كيخودې شی. او اتفاق سره په دې غوښه هم راشی. بيا هم په مجرم باندې ديت واجب دې. خكه چې كوم رګونه وو. هغه واپس نه راځی. نو ددې غوښې راتلو به هيڅ اعتبار نه كيږی. دغه ډول كه غوږ ئې كټ كړو. او ده غوږ هم پخپل ځائې كيخودو. او دا وينختلو. نو بيا هم ديت واجب دې. خكه ه دا به پخپل حالت باندې نه راځی.

فائده* شيخ الاسلام فرمائيلی دی كه په فائده او ښائست كې خپل اولنی حالت ته واوړيده نو په دې صورت كې په ده باندې هيڅ څه نشته (درمختار)

**مظلوم د ظالم غابښ اوښكلو. خو د ظالم غابښ واپس صحيح شو نو څه حكم دې؟**

وَمَنْ نَزَعَ سِنَّ رَجُلٍ او چا چې د يو سړی غابښ اوښكلو فَانْتَزَعَ الْمَنْزُوعَةُ سِنُّهُ سِنَّ النَّازِعِ نو د كوم كس غابښ چې اوښكلې شوې وو. هغه د اوښكونكی غابښ اوښكلو فَنَبَتَتْ سِنُّ الْأَوَّلِ نو د ړومبی غابښ وينختلو فَعَلَى الْأَوَّلِ لِصَاحِبِهِ خَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ نو په ړومبی باندې به د خپل انډيوالان لپاره پنځه سوه درهم وی لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ خكه دا خبره واضحه شوه. أَنَّهُ اسْتَوْفَى بِغَيْرِ حَقٍّ چې ده په ناحقه وصول كړې وو لِأَنَّ الْمُوجِبَ فَسَادُ الْمَنْبَتِ خكه چې موجب د قصاص د راختلو د ځائې فاسديدل دی وَلَمْ يَفْسُدْ او دا فاسد شوې نه دې حَيْثُ نَبَتَتْ مَكَانَهَا أُخْرَى خكه چې ددې په ځائې بل راختلې دې فَانْعَدَمَتِ الْجِنَايَةُ نو جنايت معدوم شو وَلِهَذَا يُسْتَأْنَى حَوْلًا بِالْإِجْمَاعِ او په دې وجه به بالاجماع يو كال مهلت وركولې شی.

تشريح:- عثمان د ارشد غابښ مات كړو. نو عمرو د عثمان غابښ مات كړو. خو بيا د عمرو غابښ وينختلو. نو اوس معلومه شوه. چه عمرو په ناحقه د عثمان غابښ مات كړې دې. نو په عمرو به واجب وی. چه هغه د عثمان د غابښ



ديت پنځه سوه درهم ادا كړی. خكه چې د راختلو د ځائې خرابيدو په وجه قصاص واجبيږی. او د راختلو په ځائې كې فساد نه دې پيدا شوې. او هركله چې دوهم غابښ راوختلو. نو د عثمان اړخه جنايت معدوم (غير موجود) شو. او په دې وجه بالاجماع پوره كاله پورې مهلت وركولې شی. چه راختل او نه راختل ښكاره شی.

فائده* د مهلت ور كاوه په اړه كې يو روايت دا دې. كوم چې مرغينانی رحمه الله بيان كړې دې. خو په لنډيز كې دی. كه د بچې غابښ ئې مات كړې وی. نو مهلت به وركولې شی. چه ددې آخری موده يو كال ده. خو د بالغ په صورت كې به مهلت نشی وركولې. البته د اورو تيك كيدو انتظار به كولې شی. او مهلت نه وركول مفتی به قول دې.

**د غابښ په قصاص كښې به څومره انتظار كولې شي؟**

وَكَانَ يَنْبَغِي او مناسب خو دا وه آن يُنْتَظَرَ الْيَأْسُ فِي ذَلِكَ لِلْقِصَاصِ چې په دې كې قصاص لپاره د نا اميدۍ انتظار كولې شو إِلَّا أَنَّ فِي اعْتِبَارِ ذَلِكَ تَضْيِيعَ الْحُقُوقِ خو په دې اعتبار كاوه كې دحقوقو ضائع كيدل وو فَاكْتَفَيْنَا بِالْحَوْلِ نو موږ په يو كال باندې اكتفاء اوكړله لِأَنَّهُ تَنْبُتُ فِيهِ ظَاهِرًا خكه چې دې كې غالباً كلكيدل (او اينختل) راځی فَإِذَا مَضَى الْحَوْلُ نو كله چې كال تير شو وَلَمْ تَنْبُتْ او كلك نشو قَضَيْنَا بِالْقِصَاصِ نو موږ د قصاص فيصله اوكړله وَإِذَا نَبَتَتْ او هركله چې غابښ كلك شو تَبَيَّنَ نو دا خبره واضحه شوه أَنَا أَخْطَأْنَا فِيهِ چې په دې كې موږ غلطی كړې ده وَالِاسْتِيفَاءُ كَانَ بِغَيْرِ حَقٍّ او قصاص اخستل په ناحقه دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ لِلشُّبْهَةِ خو د شبهې په وجه به قصاص واجب نه وی فَيَجِبُ الْمَالُ. نو مال به واجب وی.

تشريح:- د لومړئی مسئلې تفصيل دا دې چې د يوكاله پورې د مهلت ور كاوه په ځائې مناسب دا وو. چه د قصاص اخستلو لپاره د دومره مودې انتظار كړې شوې وې. چه د غابښ راختلو نه بالكل نا اميدی ښكاره شوې وه. خو په داسې كاوه كې د حقونو ضائع كيدو خطره وه. په دې وجه موږ صرف د يو كال د مهلت فيصله اوكړله. خكه چې كله غابښ راخيژی. نو دا په يوكال كې راخيژی. خو كله چې كال تير شو. او غابښ راونه ختلو. نو موږ مجبوراً د قصاص فيصله اوكړله. خو كله چې ددې نه روستو بيا غابښ راوختلو. نو په دې سره زموږ د فيصلې غلط كيدل ثابت شو. او دا هم ښكاره شوه. چه قصاص په ناحقه اخستلې شوې دې. په دې وجه پنځه سوه درهم واجب كړې شو. او په قاعده كې قصاص واجبيدل پكار وو. خو د شبهې په وجه قصاص ساقط شو. او هركله چې قصاص ساقط شو. نو مال واجبيدل پكار دی.

**غابښ په وهلو سره د ړقيدو په صورت كښې څه حكم دې؟**

قَالَ: مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْ ضَرَبَ إِنْسَانٌ سِنَّ إِنْسَانٍ اوكه يو كس بل كس په غابښ اووهلو فَتَحَرَّكَتْ نو دا اوخوزيدو يُسْتَأْنَى حَوْلًا نو هغه ته به يو كاله پورې مهلت ور كولای شی لِيَظْهَرَ أَثَرُ فِعْلِهِ چې دده د فعل اثر ښكاره شی (فَلَوْ أَجَّلَهُ الْقَاضِي سَنَةً نو كه قاضی هغه ته د يوكال مهلت وركړې وی. ثُمَّ جَاءَ الْمَضْرُوبُ بيا وهلې شوې راغې وَقَدْ سَقَطَتْ سِنُّهُ حالانكه د هغه غابښ غورزيدلې دې فَاخْتَلَفَا نو دوی دواړو (وهونكی او وهلی شوی) اختلاف اوكړو قَبْلَ السَّنَةِ فِيمَا كال نه وړاندې د هغه شئ په اړه كې سَقَطَ بِضَرْبِهِ د كوم شئ په ضرب سره چې غابښ غورزيدلې دې فَالْقَوْلُ لِلْمَضْرُوبِ نو د مضروب (وهلی شوی) قول به معتبر وی لِيَكُونَ التَّأْجِيلُ مُفِيدًا چه مهلت وركول مقيد وی.

تشريح:- عثمان ارشد په غابښ باندې اووهلو. چه ددې په وجه دا اوخوزيدو. نو هغه ته به يو كاله پورې مهلت وركولې شی. چه د عثمان د فعل اثر په ښه طريقه ښكاره شی. نوكه قاضی عثمان ته د يو كال مهلت وركړې وی. او اوس لا كال نه وو تير شوې. چه د زيد غابښ پريوتلو. او زيد وائی. چه د زيد د وهلو په وجه غورزيدلې دې. او عثمان وائی. چه نا بلكه زما نه روستو د زيد پخپله درز خوړلو سره غورزيدلې دې. نو دلته به د مضروب (زيد) قول معتبر وی. ګنی كه دده قول معتبر نشی. نو بيا به د مهلت ور كاوه هيڅ فائده نه وی.

**په موضحه او منقله زخم كښې د وهونكی او مظلوم د اختلاف مسئله**

وَهَذَا بِخِلَافِ او دا د هغه صورت خلاف دې مَا إِذَا شَجَّهُ مُوضِحَةً كله ئې چې ده ته موضحه زخم لګولې وی. فَجَاءَ نو هغه (

زخمي) شوې راغي **وَقَدْ صَارَتْ مُنَقِّلَةً** حالانکه هغه منقله شو **فَاخْتَلَفَا** نو دوی دوارو اختلاف اوکړو **حَيْثُ يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَ الضَّارِبِ** نو قول به د ضارب ( وهونکی) معتبر وی **لِأَنَّ الْمُوضِحَةَ لَا تُورِثُ الْمُنَقِّلَةَ** ځکه چې موضحه لره منقله نه پيدا کوی **أَمَّا التَّحْرِيكُ فَيُؤَثِّرُ فِي السُّقُوطِ** بهرحال غابښ خوزول په غورزيدو کې موثر دي **فَافْتَرَقَا** نو دا دواړه جلا جلا شو

**تشريح:-** عثمان عمرو په سر باندې اووهلو.او دې ئې زخمی کړو.او زخم داسې اوشو.کوم ته چې موضحه وائی.بيا دا منقله شو.او اوس په عثمان او عمرو کې اختلاف اوشو.عمرو وائی.چه ددې منقله کيدل ستا د زخم په وجه سره دی.او عثمان وائی.چه نا بلکه د خالد د وهلو په وجه سره دی.نو دلته به د شاج ( زخم لګونکی) يعنی د زيد قول معتبر وی.ځکه چې دلته ښکاره حال د زيد لپاره شاهد دې.ځکه چې موضحه د منقله جوړيدو سبب نه دې.او غابښ ړقول د غورزيدو سبب جوړيږی.

## د مودې تيريدو نه روستو اختلاف شونو د ضارب قول به معتبر وی

**وَإِنْ اخْتَلَفَا فِي ذَلِكَ** او که دوی دوارو اختلاف اوکړو **بَعْدَ السَّنَةِ** کال نه روسته **فَالْقَوْلُ لِلضَّارِبِ** نو د وهونکی قول به معتبر وی **لِأَنَّهُ يُنْكِرُ أَثَرَ فِعْلِهِ** ځکه چې هغه د خپل فعل د اثر نه انکار کوی **وَقَدْ مَضَى الْأَجَلُ الَّذِي وَقَّتَهُ الْقَاضِي لِظُهُورِ الْأَثَرِ** او هغه موده تيره شوې ده.کومه چې قاضی د اثر ښکاره کيدو لپاره مقرر کړې وه **فَكَانَ الْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ** نو د منکر قول به معتبر وی (**وَلَوْ لَمْ تَسْقُطْ**.اوکه غابښ غورزيدلي نه وی **لَا شَيْءَ عَلَى الضَّارِبِ** نو په وهونکی به هيڅ نه وی.

**تشريح:-** که د ضارب او مضروب ( زيد او عمرو) مذکوره اختلاف د مقررې مودې تيريدو نه روسته وی.نو بيا به د ضارب ( وهونکی) قول معتبر وی.ځکه چې دلته کې مضروب ( وهلې شوې) مدعی دې.چه غابښ د ضارب د په اثر سره غورزيدلي دې.او ضارب د خپل فعل په اثر سره د غورزيدو نه انکار کوی.نو کوم خائې چې د منکر قول معتبر وی.ځکه چې دا اختلاف د مودې تيريدو نه روسته دې.اوکه موده تيره شوه.او غابښ او نه غورزيدو.نو بيا به په ضارب هيڅ واجب نه وی.

## د امام ابويوسف رحمه الله د حکومت عدل نقطه نظر

**وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ** او د امام ابويوسف (رحمه الله) نه منقول دی **أَنَّهُ تَجِبُ حُكُومَةُ الْعَدْلِ،** چې په تکليف کې حکومت عدل دې **وَسَنُبَيِّنُ الْوَجْهَيْنِ بَعْدَ هَذَا إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى** او مونږ به ددې نه روسته انشاءالله دواړه وجهې بيان کړو (**وَلَوْ لَمْ تَسْقُطْ** او که غابښ نه وی غورزيدلي **وَلَكِنَّهَا اسْوَدَّتْ** خو تور شوې وی **يَجِبُ الْأَرْشُ فِي الْخَطَإِ عَلَى الْعَاقِلَةِ** نو د خطاء په صورت کې عاقله باندې ديت واجب دې **وَفِي الْعَمْدِ فِي مَالِهِ،** او د عمد په صورت کې دده په مال کې ( واجب دې). **وَلَا يَجِبُ الْقِصَاصُ** او قصاص به واجب نه وی **لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ** ځکه چې مضروب ( وهلی شوی) له ممکن نه ده **أَنْ يَضْرِبَهُ ضَرْبًا** چې ضارب ( وهونکې) داسې ګزار اووهی شی **تَسْوَدُّ مِنْهُ** چې په دې سره غابښ تور شی **وَكَذَا إِذَا كُسِرَ بَعْضُهُ** او هم دغه دول کله ئې چې د غابښ بعض برخه ماته کړله **وَاسْوَدَّ الْبَاقِي** او پاته توره شوه **لَا قِصَاصَ** نو قصاص به نه وی **لِمَا ذَكَرْنَا** په هغه وجه کومه چې مونږ ذکر کړې ده ((**وَكَذَا لَوْ احْمَرَّ**.او هم دغه دول ( حکم دې) که سور شی.يا شين **أَوْ اخْضَرَّ وَلَوْ اصْفَرَّ فِيهِ رِوَايَتَانِ** او که زيړ وی نو په دې کې دوې (دوه) روايتونه دی .

**تشريح:-** د امام ابويوسف (رحمه الله) په نيز که غابښ غورزيدلي نه وی. نو په دې صورت کې حکومت عدل واجب کړې دې ددې وجه په راروانه مسئله راځی.او هم ددې مرغينانی (رحمه الله) حوال ورکړې ده.اوکه غابښ غورزيدلي نه وی.خو تور شوې وی.نو که دا فعل خطاء وی.نو په عاقله به ديت واجب وی.او که عمداً شوې وی.نو د وهونکی په مال کې به ديت واجب وی.او قصاص به ځکه واجب نه وی.چه دا نا ممکن ده.چه مضروب ( وهلې شوې) دغه دول ضارب ( وهونکې) هم اووهی.چه په دې سره دهغه غابښ تور شی.او دغه دول که د غابښ بعضې برخه ئې ماته کړله.چه ددې په وجه پاته غابښ تور شو.اوس به هم قصاص نه وی.هم ددغه مذکوره دليل په وجه، اوکه سور شو.يا شين شو.بيا به هم قصاص نه وی.د پورته ذکر شوی دليل په وجه،



## د شجه زخم تيك كيدو او نشان ختميدو نه روسته څه حکم دې !

**قَالَ**:امام قدوری (رحمه الله) اوفرمائيل (**وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا**) او چا چې د يوسړی سر زخمی کړو **فَالْتَحَمَتْ** نو زخم ډك ( جوړ) شو **وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ** او ددې هيڅ نشان پاته پاتې نشو **وَنَبَتَ الشَّعْرُ** او ايخته وېښتل **سَقَطَ الْأَرْشُ** **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** (رحمه الله)[1] نو د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز ديت ساقط شو **لِزَوَالِ الشَّيْنِ الْمُوجِبِ** د هغه عيب د زوال په وجه کوم موجب د ديت وو.

**تشريح:-** زيد د خالد په سر کې زخم اولګولو.او هغه بالکل ټيك شو.تردې چې د هغې هيڅ نشان هم پاته پاتې نشو.نو د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز به اوس ددې تاوان واجب نه وی.ځکه چې د کوم عيب په وجه مثل واجبيږی.هغه عيب ختم شو.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ**: (رحمه الله) او امام ابويوسف (رحمه الله) فرمايي **يَجِبُ عَلَيْهِ أَرْشُ الْأَلَمِ** چې په ده باندې د درد ( تکليف) تاوان واجب دې **وَهُوَ حُكُومَةُ عَدْلٍ،** او تاوان دا حکومت عدل دې. **لِأَنَّ الشَّيْنَ إِنْ زَالَ** ځکه چې عيب اګرچه ختم شو **فَالْأَلَمُ الْحَاصِلُ** نو کوم درد چې حاصل شوې وو **مَا زَالَ** هغه زائل شوې نه دې **أَنْ فَيَجِبُ تَقْوِيمُهُ** نو ددې قيمت لګول واجب دی.

**تشريح:-** اود امام ابويوسف (رحمه الله) فرمان دا دې.چه په ذکر شوی صورت کې حکومت عدل واجب دې.ځکه چې ددې زخم او نشان او عيب اګرچه ختم شو.خو د هغه تکليف په وجه کوم چې هغه ته رسيدلې وو.او دده کوم صحت چې په دې سره متاثر شوې وو.د هغې هيڅ بدل ملاو نشو.نو د هغې بدل حکومت عدل دې.

## د امام محمد رحمه الله مسلك

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ**:امام محمد (رحمه الله) اوفرمائيل **عَلَيْهِ أُجْرَةُ الطَّبِيبِ،** چې په ده ( ضارب) باندې د ډاکټر اجرت **وَثَمَنُ الدَّوَاءِ** او د دوائی قيمت ( واجب) دې **لِأَنَّهُ إِنَّمَا لَزِمَهُ أُجْرَةُ الطَّبِيبِ وَثَمَنُ الدَّوَاءِ بِفِعْلِهِ** ځکه چې ده ( مضروب) ته د طبيب اجرت او د دوائی قيمت د ضارب د فعل په وجه لازم شوې دې. **فَصَارَ** نو داسې شوه **كَأَنَّهُ أَخَذَ ذَلِكَ مِنْ مَالِهِ** ګويا چې ضارب دا د مضروب د مال نه اخستې دې.

**تشريح:-** دا د امام محمد (رحمه الله) مسلك دې.چه په مذکوره صورت کې به په ضارب باندې د ډاکټر فيس او د دوائی قيمت واجب وی.ځکه چې دا واړه تاوان مضروب ته د ضارب د فعل په وجه ور رسيدلې دې.نو داسې شوه.ګويا چې دومره مال د مضروب نه ضارب اخستې دې.چه ددې واپس اخستل په ضارب باندې ضروری ده.

**إِلَّا أَنَّ أَبَا حَنِيفَةَ يَقُولُ**:خو امام ابوحنيفه (رحمه الله) فرمايي **أَنَّ الْمَنَافِعَ عَلَى أَصْلِنَا لَا تَتَقَوَّمُ** چې منافع زمونږ په اصل باندې نه متقوم کيږی **إِلَّا بِعَقْدٍ أَوْ بِشُبْهَةٍ،** خو په عقد يا شبه عقد سره **وَلَمْ يُوجَدْ فِي حَقِّ الْجَانِي** او د جنايت کونکی په حق کې په دې کې هيڅ نه دی موجود شوی **فَلَا يَغْرَمُ شَيْئًا** نو جنايت کونکې به د هيڅ شی ضامن نه وی.

**تشريح:-** خو امام صاحب (رحمه الله) فرمائی.چه په مذکوره صورت کې درد اوتکليف برداشت کول د منافعو د قبيل څخې دی.او منافع څه په ده متقوم نه دی.او په منافعو کې تقوم اجارې سره حاصليږی.يا په شبه عقد سره، لکه ځنګه چې په اجاره فاسده او مضاربت فاسده کې دی.او دلته نه څه عقد شته.او نه شبه عقد دې.نو په ضارب او جنايت کونکی به دلته هيڅ تاوان هم واجب نه وی.

## د سلو کوړو وهلو نه روسته زخمی ټيك شو نو څه حکم دې !

**قَالَ**:امام محمد (رحمه الله) فرمايي (**وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ** او چا چې يو سړې سل کوړې اووهلو **فَجَرَحَهُ** نو هغه ئې

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنيفة (رحمه الله) كذا فی ردالمحتار(٤١٥\٥) والهندية (٣٠\٦) والدرالمنتقى (٣٥٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٤\٢)-

زخمي کړو فَبَرَءَ مِنْهَا نو هغه ددې نه ټيک شو فَعَلَيْهِ أَرْشُ الضَّرْبِ نو په ده باندې د وهلو تاوان دې مَعْنَاهُ:،ددې مطلب دا دې. إِذَا بَقِيَ أَثَرُ الضَّرْبِ کله چې د وهلو نښان پاته پاتې شی فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَبْقَ أَثَرُهُ او که د دې نښان پاته پاتې نشی فَهُوَ عَلَى اخْتِلَافٍ نو دا په هغه اختلاف (مبنی) دې قَدْ مَضَى کوم چې تير شو فِي الشَّجَّةِ الْمُلْتَحِمَةِ د زخم په جوړيدو (او ډکيدو) کي

**تشريح:-** زيد عمرو لره سل کوړې اووهلو.هغه زخمي نشو.نو بالاتفاق به هيڅ واجب نه وی.او که زخمي شو .نواوس دوې (دوه) صورتونه دی.ټيک شی.او نښان وغيره ختم شی.يا پاته پاتې شی.که پاته دی.نو په ضارب باندې تاوان واجب دی.اوکه پاته نه وی.نو دا هم هغه اختلافی مسئله ده.لکه څنګه چې ددې نه مخکښې مسئله وه.يعنی د امام صاحب رحمه الله په نيز به هيڅ واجب نه وی.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حکومتِ عدل واجب دې.او د امام محمد رحمه الله په نيز د ډاکټر فيس او د دوائی قيمت واجب دې.

## د خطاء لاس کټ کولو نه روسته د قتلولو مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ خَطَأً او چا چې کټ کړو.په خطاء سره د يوسړي لاس ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً قَبْلَ الْبُرْءِ بيا ئې هغه د ټيک کيدو نه مخکې په خطاء سره قتل کړو (فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ نو په ده باندې ديت واجب دې وَسَقَطَ عَنْهُ أَرْشُ الْيَدِ.او د لاس ديت به ساقط وی.

**تشريح:-** زيدد عمرو لاس خطاء سره کټ کړو.هغه اوس ښه شوې نه وو.چه بيا ئې خطاء سره قتل کړو.نو اوس به د لاس ديت ساقطيږی.او د نفس ديت يعنی سل اوښان به واجب وی.

لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ ځکه چې جنايت يو جنس دې وَالْمُوجَبُ وَاحِدٌ او موجب يو دې وَهُوَ الدِّيَةُ او هغه ديت دې وَإِنَّهَا بَدَلُ النَّفْسِ او ديت د پوره نفس بدل دې بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا د نفس ټولو اجزاو سره، فَدَخَلَ الطَّرَفُ فِي النَّفْسِ نو اړخ به په نفس کي داخل وی كَأَنَّهُ قَتَلَهُ ابْتِدَاءً ګويا چې ده د ابتداء نه هغه قتل کړې دې.

**تشريح:-** دليل دا دې چې دواړه جنايتونه د خطاء کيدو په وجه جنس واحد دې.او د دواړو موجب هم يو دې.يعنی ديت دې.او ديت په حقيقت کي د بدن د ټولو اجزاو عوض دې.نو د لاس عوض هم دې.په دې وجه به د لاس عوض دوباره (جدا) نشی اخستلې. بلکه تداخل به کولې شی.او داسې به شمارلې شی.ګويا چې زيد عمرو لره د پيل نه قتل کړې دې.او په خطاء سره د قتلولو سزا ديت دې.چه دا واجب شوې دې.

## د زخم لګولو په صورت کښې د فی الحال قصاص اخستلو حکم

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا جِرَاحَةً او چا چې يو سړی ته زخم اولګولو لَمْ يُقْتَصَّ مِنْهُ نو فی الحال به دده نه قصاص نشی اخستلې حَتَّى يَبْرَأَ ترڅو چې هغه ټيک شی. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ او امام شافعی رحمه الله فرمانيلی دی يُقْتَصُّ مِنْهُ فِي الْحَالِ چې دده څخه به فی الحال قصاص اخستلې شی اعْتِبَارًا بِالْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ د نفس په قصاص باندې قياس کاوه سره وَهَذَا لِأَنَّ الْمُوجَبَ قَدْ تَحَقَّقَ او دا ځکه چې موجب د قصاص ثابت شوې دې فَلَا يُعَطَّلُ نو موجب به نشی روستو کولې.

**تشريح:-** يو سړی ته چې کوم زخم لګولې شوې دې. کيداې شی.چه دا ټيک شی.او کيداې شی.چه حالت مرګ ته اورسيږی.په دې وجه به فی الحال قصاص نشی اخستلې.بلکه کله چې دې ټيک شی.نو هله به قصاص اخستلې شی.دا زمونږ مسلک دې.او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه قصاص به فی الحال (فوراً) اخستلې شی.ځکه ① که څوک يو سړې قتل کړی.نو هلته هم قصاص فوراً اخستلې شی.نو دلته به هم فوراً قصاص واجب وی.② او په دې وجه هم چې هرکله موجب د قصاص موجود دې.نو بيا ددې د روستو کاوه څه مطلب دې؟



وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زمونږ دليل د نبی ﷺ فرمان دې {يُسْتَأْنَى فِي الْجِرَاحَاتِ سَنَةً}(۱) چې په زخمونو کي به د يو کال مهلت ور کولای شی وَلِأَنَّ الْجِرَاحَاتِ يُعْتَبَرُ فِيهَا مَآلُهَا او ځکه چې زخمونو کي ددې انجام معتبر دې.لَا حَالُهَا ددې حال (موجوده حالت) معتبر نه دې. لِأَنَّ حُكْمَهَا فِي الْحَالِ غَيْرُ مَعْلُومٍ ځکه چې فی الحال د زخمونو حکم معلوم نه دې فَلَعَلَّهَا تَسْرِي إِلَى النَّفْسِ نو شايد (کيداې شی) چې زخمونه نفس اړخ ته خپاره شی .فَيَظْهَرُ نو دا خبره به ښکاره شی أَنَّهُ قَتْلٌ چې دا قتل دې وَإِنَّمَا يَسْتَقِرُّ الْأَمْرُ بِالْبُرْءِ او خبره به کلکيږی.په جوړيدو سره.

**تشريح:-** زمونږ دليل يو دا حديث دې.چه په زخمونو کي به يو کال مهلت ورکولې شی. او دوهم دليل دا دې.چه د زخم حال به اوس نه معلوميږی.څه ممکن ده.چه دا خور شی.او قتل پورې اورسيږی.نو په زخمونوکي دحال اعتبار نه کيږی.بلکه د مال اعتبار کيږی.په دې وجه ټيک کيدو پورې به انتظار کولې شی.چه خبره په مسند (او د تحقيق په) طريقه باندې صفا شی.او ښکاره شی.

## په قتل عمد کښې شبهې سره قصاص ساقطيدل او د ديت حکم، يوه قاعده کليه

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَكُلُّ عَمْدٍ سَقَطَ الْقِصَاصُ فِيهِ بِشُبْهَةٍ او هر قتل عمد په کوم کي چې د شبهې په وجه قصاص ساقط شی (فَالدِّيَةُ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو ديت به د قاتل په مال کي وی وَكُلُّ أَرْشٍ وَجَبَ بِالصُّلْحِ او هر هغه ديت کوم چې د صلح په وجه واجب شی فَهُوَ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو هغه د قاتل په مال کي دې آن لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبی ﷺ د فرمان په وجه ،، {لَا تَعْقِلُ الْعَوَاقِلُ عَمْدًا}(۲) چې عاقله د عمد برداشت نشی کولې،،(الحديث) الْحَدِيثُ وَهَذَا عَمْدٌ او دا عمد دې.

**تشريح:-** ددې ځائې نه يو اصول پيش کوی.چه چرته په قتل عمد کي د شبهې په وجه قصاص ساقط شی.او ديت واجب شی.لکه مثلاً پلارخوئې قتل کړو.نوداسې ديت به د قاتل په مال کي واجب وی.عاقله باندې به نه وی.او هر د جرمانې مال کوم چې د عمد په صورت کي د مصالحت په بناء واجب شوې وی.هغه به د قاتل په مال کي واجب وی.ځکه په حديث کي وارد دی.چه عاقله د عمد ذمه وار نه دی.او دا عمد دې.

غَيْرَ أَنَّ علاوه ددې خبرې نه الْأَوَّلَ يَجِبُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ چې ړومبې په دريو کالو کي واجب دې لِأَنَّهُ مَالٌ ځکه دا داسې مال دې وَجَبَ بِالْقَتْلِ ابْتِدَاءً چې دا ابتداءً د قتل په وجه واجب شوې دې فَأَشْبَهَ شِبْهَ الْعَمْدِ نو دا د شبه عمد مشابه شو وَالثَّانِي يَجِبُ حَالًّا.او دوهم به فی الحال واجب وی لِأَنَّهُ مَالٌ ځکه دا داسې مال دې وَجَبَ بِالْعَقْدِ چې د عقد په وجه واجب شوې دې فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ نو دا په بيع کي د ثمن مشابه شو.

**تشريح:-** البته په دې دواړو خبرو کي توپير دا دې.چه ړومبې به قسطوار په درې کالو کي واجب وی.او د صلح مال به فی الحال واجب وی.ځکه اصول دا مقرر دې.چه کوم مال د پيل نه يعنی د مصالحت نه بغيرد قتل په وجه واجب وی.نو دا به د قتل شبه عمد مشابه وی.نو لکه څنګه چې شبه عمد کي مال قسطوار واجبيږی.دغه ډول به په دې کي هم قسطوار واجب وی.او کوم مال چې د کوم عقد او معاهدې په وجه واجب شوې وی.نو هغه به فی الحال واجب وی.لکه څنګه چې بيع کي ثمن فی الحال واجبيږی..

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَإِنْ قَتَلَ الْأَبُ ابْنَهُ عَمْدًا او کله چې پلار خپل خوئې عمداً قتل کړو (فَالدِّيَةُ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو ديت به د قاتل په مال کي دريو کالو کي وی.

**تشريح:-** کله چې پلار خپل خوئې قتل کړو.نو قصاص نشته.بلکه ديت واجب دې.بيا په دې کي اختلاف دې.چه دا

(۱) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه الدارقطنی فی سننه(۳/۹۰) رقم ۳۲)_

(۲) قال الزيلعی رحمه الله غريب مرفوعاً وأخرجه البيهقی عن الشعبی عن عمر رضي الله عنه قال العمد والعبد والصلح والإعتراف لا تعقله العاقلة أخرجه البيهقی فی السنن الكبری (۸/۱۸۱) رقم ۱۶۳۵۹)_

دیت به مؤجل ( روستو) وی.او که معجل ( فوراً) به وی. زمونږ مذهب دا دی.چه مؤجل دی.چه دریو کالو کي به ددي اداکول ضروري وي.

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ: او امام شافعی رحمه الله فرمایي تَجِبُ حَالَّةً چي في الحال به واجب وی لِأَنَّ الْأَصْلَ خکه اصل دا دی آن مَا يَجِبُ بِالْإِتْلَافِ آن، چي کوم مال د هلاکت په وجه واجبیږی يَجِبُ حَالًّا هغه به في الحال واجب وی وَالتَّاجِيلُ لِلتَّخْفِيفِ فِي الْخَاطِئِ او په خطاکار کي مهلت د تخفيف په غرض سره وی وَهٰذَا عَامِدٌ او دي عامد ( قصدی) دي فَلَا يَسْتَحِقُّهُ نو پلار ( چي عامد دي) د تخفیف مستحق به نه وی

تشریح:- او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه معجل او في الحال ادا کول واجب دی. دلیل ئې دا دی.چه کوم مال دخه شی د هلاکاوه په وجه واجبیږی.هغه في الحال واجب وی.او په قتل خطاء کي هم د مال وجوب د نفس هلاکاوه په وجه دی.خو دده د خطاء کار کیدو،او معذور کیدو په وجه د تخفیف ( او آسانتیا) په طور دریو کالو کي ددې اداکول واجب گرځولی شوی دی.خو پلار دلته کي خطاء کار نه دی.بلکه عامد دی.نو عامد به د تخفيف مستحق نه وی.

وَلِأَنَّ الْمَالَ وَجَبَ جَبْرًا لِحَقِّهِ او خکه چي مال د خوني د حق پوره کاوه په غرض سره واجب شوی دی وَحَقُّهُ فِي نَفْسِهِ حَالٌ او د خوني پخپل نفس کي في الحال دی فَلَا يَنْجَبِرُ بِالْمُؤَجَّلِ نو دا ( حق د نفس چي في الحال دی) د مؤجل په ذریعه به نه پوره کیږی.

تشریح:- دوهم دلیل ددوی دا دی.چه مال خکه واجبیږی.چه د مقتول حق پوره شو.او کله چي پلار هغه لره في الحال قتل کړی دی.نو د مال اداکول هم في الحال کیدل پکار دی.کنی د معجل ( في الحال) پوره وصولی به د مؤجل ( روستو) په ذریعه نه کیږی.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دی ،أَنَّهُ مَالٌ چي دا داسي مال دی وَاجِبٌ بِالْقَتْلِ چي د قتل په وجه واجب شوی دی فَيَكُونُ مُؤَجَّلًا نو دا مال به مؤجل وی كَدِيَةِ الْخَطَإِ وَشِبْهِ الْعَمْدِ د خطاء او شبه عمد د دیت پشان وَهٰذَا لِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى او دا خکه چي قیاس انکار کوی تَقَوُّمَ الْآدَمِي بِالْمَالِ د سړی د تقوم د مال سره لِعَدَمِ التَّمَاثُلِ د مماثلت نه کیدو په وجه وَالتَّقْوِيمُ ثَبَتَ بِالشَّرْعِ او تقویم په شریعت سره ثابتیږی وَقَدْ وَرَدَ بِهِ مُؤَجَّلًا او یقیناً چي شریعت وارد شوی دی.د تقویم په سلسله کي چي دا به مؤجل وی لَا مُعَجَّلًا معجل به نه وی. فَلَا يُعْدَلُ عَنْهُ نو ددي څخه به نش گرځیدلي لَا سِيَّمَا إِلَى زِيَادَةٍ خصوصاً زیاتوالی ارخ ته وَلَمَّا لَمْ يَجُزِ التَّغْلِيظُ او هرکله چي تغلیظ جائز نشو بِاعْتِبَارِ الْعَمْدِيَّةِ قَدْرًا د مقدار په اعتبار سره په لحاظ د عمدیت لَا يَجُوزُ وَصْفًا نو د وصف په اعتبار سره به هم جائز نه وی.

تشریح:- دا د حنفیانو دلیل دی.فرمائی.چه کوم مال د قتل په وجه واجبیږی.هغه مؤجل وی.نو د قتل خطاء او شبه عمد دیت ددي شاهد دی.بیا انسان مالك دی.او په مالك د مملوك کي هیڅ تماثل نشته.خو په خطاء وغیره کي چي کوم تقویم ثابت شوی دی.دا خلاف قیاس دی.خو د شریعت نه ثابته ده.خو دا ثبوت په طریقه د تاجیل دی.د تعجیل په طریقه نه دی.نو ضروری شوه.چه د شریعت د امر نه عدول نه وی.په دې وجه مونږ د تاجیل قائل شوی یو.بیا معجل د مؤجل په مقابله کي زائد هم دی.نو د شریعت د مورد خلاف د زیاتوالی د اثبات هیڅ وجه نشته.هم دا وجه ده.چه په قدر او جنس کي د یو د موجود کیدو په وجه د برابرئ باوجود پور بیع حرامیږی.خکه چي د زیاتوالی شبه ده.بهرحال کله ئې چي پلار قتل کړو.د دیت مقدار دلته هم سل اوښان دی.زیات نه دی.نو دده د عمداً کیدو په وجه چي کله مقدار کي زیاتوالي اونشو.نو په وصف کي به په درجه اولی اضافه نه کیږی.او دیت به معجل نشی واجبولي.

**که مجرم د جرم اقرار اوکړی نو دیت به په ده لازم وی اوکه په عاقله باندی ؟**

وَكُلُّ جِنَايَةٍ اعْتَرَفَ بِهَا الْجَانِي او هر هغه جنایت د کوم چي جنایت کونکی اقرار اوکړو نو فَهِيَ فِي مَالِهِ نوهغه به



هم دده په مال کي واجب وی آن وَلَا يُصَدَّقُ عَلَى عَاقِلَتِهِ او پخپلو عاقله باندی به ددې تصدیق نشی کولي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي مونږ روایت کړی دی وَلِأَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يَتَعَدَّى الْمُقِرَّ او خکه چي اقرار به د مقر نه نه متعدی کیږی غیر لِقُصُورِ وِلَايَتِهِ دده د ولایت د قصور ( او نقصان) په وجه عَنْ غَيْرِهِ د خپل فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْعَاقِلَةِ نو اقرار به د عاقله په حق کي نه ښکاره کیږی.

تشریح:- د قتل خطاء دیت عاقله باندي واجب وی.خو که جنایت کونکی پخپله د جنایت اقرار کړی وی.نو دده اقرار به د عاقله خلاف حجت نه وی.نو دا جرمانه به اقرار کونکي د خپل مال نه اداکوی.خکه چي کوم حدیث اوس تیرشوی وو.چه عاقله د عمد بوج نه اوچتوی.ددې په آخرکي دی. «ولا صلحاً ولا إعترافاً» نو د حدیث نه معلومه شوه.چه د اقرار تاوان په عاقله باندی نشته.

**د بچي او لیوني عمد هم د خطاء په حکم کښي دی او دیت په عاقله باندي دی**

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَعَمْدُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ خَطَأٌ او د بچي او د لیوني عمد خطاء دی وَفِيهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په دې کي عاقله باندي دیت دی وَكَذٰلِكَ كُلُّ جِنَايَةٍ مُوجِبُهَا خَمْسُ مِائَةٍ .او هم دغه ډول هر هغه جنایت چي د کوم موجب پنځه سوه درهم وی فَصَاعِدًا یا زیات وی وَالْمَعْتُوهُ كَالْمَجْنُونِ او پاګل د لیوني په مثل دی.

تشریح:- که په قتل عمد کي شبه اوشي.نو کوم دیت چي واجب وی.هغه به د قاتل په مال کي وی.خو که بچي، یا مجنون، یا پاګل عمداً قتل کړو.نو قصاص نشته.خکه چي هغه غیر مکلف دی.او که خطاء ئې قتل کړی وی.نو بیا هم دا حکم دی.خو اوس سوال دا دی.چه دا دیت به د بچي او لیوني په مال کي وی. اوکه په عاقله به وی. زمونږ په نیز ددې وجوب په عاقله باندی دی.او د امام شافعی رحمه الله په نیز ددې وجوب دقاتل په مال کي دی.مونږ ددوی عمد، خطاء گرځولي دی.او د خطاء دیت په عاقله باندي وی.نو دلته به هم دیت په عاقله باندي وی.

وَقَالَ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ: او امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی رحمه الله عَمْدُهُ عَمْدٌ چي دده عمد، عمد دی حَتَّى تَجِبُ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ حَالَّةً تردې چي دده په مال کي به دیت واجب وی. لِأَنَّهُ عَمْدٌ حَقِيقَةً خکه چي دا حقیقت کي عمد دی إِذِ الْعَمْدُ هُوَ الْقَصْدُ وَالْإِرَادَةُ خکه چي عمد دا قصد او اراده ده غَيْرَ أَنَّهُ تَخَلَّفَ عَنْهُ أَحَدُ حُكْمَيْهِ علاوه ددې خبرې چي عمد سره ددې په دوو حکمونو کي یو مختلف شو. وَهُوَ الْقِصَاصُ او هغه قصاص دی فَيَسْتَحِبُّ عَلَيْهِ حُكْمُهُ الْآخَرُ نو په ده به ددې بل حکم متفرع کیږی وَهُوَ الْوُجُوبُ فِي مَالِهِ او هغه دده په مال کي وجوب دی. وَلِهٰذَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِهِ او هم ددې (قتل عمد کیدو) په وجه کفاره واجبیږی. وَيُحْرَمُ عَنِ الْمِيرَاثِ او د میراث نه محرومیږی عَلَى أَصْلِهِ د امام شافعی رحمه الله د اصل مطابق، لِأَنَّهُمَا يَتَعَلَّقَانِ بِالْقَتْلِ خکه چي دا دواړه قتل سره متعلق دی

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه عمد خو عمد دی.خو د بچي یا د لیوني کیدو په وجه مونږ قصاص پریخودو.چه داد قتل عمد موجب وو.او ددې دوهم موجب دا دی.چه دا د دیت وجوب د قاتل په مال کي وی.نو مونږ یو موجب پریخودو.خو دوهم مو پاته اوساتلو.یعنی دیت مو د بچي په مال کي واجب کړو.خکه چي دا فعل عمد دی.او هم دا وجه ده.چه د امام شافعی رحمه الله د اصول مطابق په بچي او مجنون باندي ددې د عمد کیدو په وجه کفاره واجب ده.او دې به د میراث نه هم محروموليږ شی.خکه چي د کفاري وجوب او د میراث نه محرومیدل، د قتل په وجه سره کیږی.او قتل دلته کي موجود دی.دا د امام شافعی رحمه الله دلیلونه ختم شو.

**د احنافو دلیل**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَنَا او زمونږ دلیل هغه دی مَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم چي د علی رضی الله عنه نه

نقل دي أَنَّهُ جَعَلَ عَقْلَ الْمَجْنُونِ عَلَى عَاقِلَتِهِ چې دوی د مجنون دیت دده په عاقله باندې ګرځولې دې وَقَالَ: او داسې ئې اوفرمائیل عَمْدُهُ وَخَطَؤُهُ سَوَاءٌ [1] چې دده عمد او دده خطاء دواړه برابر دی.

تشریح:- زموږ یو دلیل د حضرت علی رضي الله عنه فرمان دې.چه د مجنون عمد او خطاء دواړه برابر دی.او تاسو عمل هم دا اوکړو.چه د لیونی دیت مو په عاقله باندې واجب کړې دې.

وَلِأَنَّ الصَّبِيَّ مَظِنَّةُ الْمَرْحَمَةِ،او خکه چې بچې د رحم (او شفقت) قابل دې وَالْعَاقِلُ الْخَاطِئُ او عاقل خطاءکار لَمَّا اسْتَحَقَّ التَّخْفِيفَ چې هرکله د تخفیف مستحق شو حَتَّى وَجَبَتْ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ تردې چې عاقله باندې دیت واجب شو فَالصَّبِيُّ وَهُوَ أَعْذَرُ نو بچې حالانکه (د عاقل خطاءکار) نه زیات معذور دې أَوْلَى بِهَذَا التَّخْفِيفِ نو ددې تخفیف زیات مستحق دې.

تشریح:- دوهم دلیل دا هم دې.چه بچې د رحم او شفقت محل دې.او هرکله چې تاسو په عاقل خطاء کار باندې دده د معذور کیدو په وجه تخفیف اوکړو.او دیت مو په عاقله باندې واجب کړو.نو بچې د هغه نه زیات معذور دې.نو ده ته دا تخفیف په درجه اولی ملاویدل پکار دی.

### د امام شافعي رحمه الله د استدلال جواب

وَلَا نُسَلِّمُ تَحَقُّقَ الْعَمْدِيَّةِ او موږ د عمدیت تحقق نه منو فَإِنَّهَا تَتَرَتَّبُ عَلَى الْعِلْمِ خکه چې عمدیت په علم باندې مرتب کیږي وَالْعِلْمُ بِالْعَقْلِ،او علم د عقل په وجه سره راځي وَالْمَجْنُونُ عَدِيمُ الْعَقْلِ او مجنون کي عقل موجود نه دې وَالصَّبِيُّ قَاصِرُ الْعَقْلِ او بچې کي نقصان د عقل دې فَأَنَّى يَتَحَقَّقُ مِنْهُمَا الْقَصْدُ نو ددوی دواړو د اړخه قصد دکوم ځائې نه متحقق کیږي وَصَارَ كَالنَّائِمِ.او په دوی کي به هر یو د اوده کس پشان وی.

تشریح:- امام شافعي رحمه الله فرمائیلي وو.چه ددوی دواړو د اړخه د قصد او ارادې تحقق کیږي.نو ددې خواب نې ورکړو.چه دا خبره نه منو.خکه چې د علم نه بغیر قصد او اراده نه کیږي.او علم د عقل په وجه وی.اوددوی دواړو حال دا دې.چه په مجنون کي عقل نشته.او په بچې کي شته.خو قاصر (او کم) دې.نو بیا قصد او اراده د کوم ځائې نه متحقق کیږي.بلکه ددوی حال په قصد او ارادې نه کیدو کي د اوده کس پشان دې.

وَحِرْمَانُ الْمِيرَاثِ عُقُوبَةٌ او د میراث نه محرومیدل (سزا او) عقوبت دې ،وَهُمَا لَيْسَا مِنْ أَهْلِ الْعُقُوبَةِ او دا دواړه (بچې او مجنون) د عقوبت اهل نه دې وَالْكَفَّارَةُ كَاسْمِهَا سَتَّارَةٌ او کفاره د خپل نوم په مثل پټونکې دې وَلَا ذَنْبَ تُسْتَرُ او هیڅ ګناه نه ده.چه کفاره دا پټه کړي لِأَنَّهُمَا مَرْفُوعَا الْقَلَمِ خکه چې دا دواړه مرفوع القلم دی.

تشریح:- او امام شافعي رحمه الله اوفرمائیل.چه د میراث څخه به محرومیږي.او کفاره د قتل به هم واجب وی.نو دا حکم زموږ په نیز نه دې.خکه چې د میراث نه محرومیدل یو عقوبت او سزا ده.او نه ماشوم د عقوبت اهل دې.او نه لیونې.او کفاره د کفر نه مشتق ده.چه ددې معنی ستر (پټول) دی.او ستر کیږي د ګناه نه روستو، او د بچې او مجنون د اړخه ګناه نشته.نو ستر (او پټول) څنګه او کفاره ولې ده. دوی دواړه خو مرفوع القلم دی.

## فصل في الجنين

ژباړه:- (دا) فصل د جنین (په بیان کي) دې.

تشریح:- جنین هغه بچې ته وائی.کوم چې اوس لا په نس کي وی.(ج، ن) په دې ماده کي د اخفاء معنی ده.او بچې مخفی (پټ) وی.په دې وجه ده ته جنین وائی.په دې وجه جن (پیری) ته هم جن وائی.خکه چې دا د انسان د نظر نه پټ وی.او جنین مخکې د ولادت نه ګویا د خپلې مور جزء دې.او ددې بعض احکام مخصوص دی چه هغه دلته

[1] أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (نصب:١٥٧١٥)_



کي بیانولې شي.

### په خیټه د وهلو په وجه د بچي غورځیدو مسئله

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا ضَرَبَ بَطْنَ امْرَأَةٍ) وکله ئې چې ښځه په نس (ګیډه) اووهله فَأَلْقَتْ جَنِينًا مَيِّتًا نو هغې جنین اوغورځولو. فَفِيهِ غُرَّةٌ نو په دې کي یوه غره ده وَهِيَ نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ او دا غره د دیت د عشر نیمه ده قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:مرغینانی رحمه الله فرمایي مَعْنَاهُ دِيَةُ الرَّجُلِ ددې معنی د سړي دیت دې.وَهَذَا فِي الذَّكَرِ،او دا په هلك کي دې وَفِي الْأُنْثَى عُشْرُ دِيَةِ الْمَرْأَةِ،او په انجلۍ کي د ښځې د دیت د عشر (نصف) دې وَكُلٌّ مِنْهُمَا خَمْسُمِائَةِ دِرْهَمٍ او په دوی دواړو کي هر یو پنځه سوه درهمه دې وَالْقِيَاسُ او قیاس دا دې لَا يَجِبُ شَيْءٌ چې هیڅ واجب نه وی لِأَنَّهُ لَمْ يُتَيَقَّنْ بِحَيَاتِهِ.خکه چې ددې (جنین) ژوند یقینی نه دې وَالظَّاهِرُ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلِاسْتِحْقَاقِ او ښکاره د استحقاق د حجت جوړیدو صلاحیت نه لري.

تشریح:- که زید یوه آزاده ښځه په نس اووهله.یا ئې په بل یو اندام په لته وغیره اووهله.چه په دې سره د هغې حمل پریوتلو.(یعنی بچې اوغورځیدو).نو دلته به دیت واجب وی.چه ددې مقدار د دراهمو نه پنځه سوه درهمه دې.که هلك وی او که انجلۍ وی.او چونکه د دیت مقدار د ټولو نه کم او ړومبې مقدار دې.په دې وجه دا غره سره تعبیر کړې شوې دې.چه ددې معنی د ړومبی شئ ده.اګرچه دهلك په صورت کي د سړي د دیت شلمه برخه واجبیږي.او د انجلۍ په صورت کي د ښځې د دیت لسمه برخه واجبیږي.چه ددې مال یو وی. ،،کما هو ظاهر،،هسې د قیاس تقاضه دا وه.چه چونکه د جنین د ژوند هیڅ علم نشته.په دې وجه هیڅ واجبیدل پکار نه وو.خو استحساناً غره واجب کړې شوې ده.

؟که څوك دا ووایي چې دې ته خلاف القیاس وئیل نه دی پکار څکه چې ښکاره هم دا ده چې بچې به ژوندې وی نو موږ ورته وایو چې ټیك ده خو ښکاره دضرردفع کولوحجت جوړیدې شی.خو د استحقاق او الزام حجت نشی جوړیدې.

### استحسانی دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ استحسانی دلیل هغه دې مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ کوم چې د نبی ﷺ نه نقل دې قَالَ چې دوی ووئیل {فِي الْجَنِينِ غُرَّةٌ په جنین کي غره ده عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ یعنی غلام یا قِيمَتُهُ خَمْسُمِائَةٍ} چې ددې قیمت پنځه سوه درهم وی وَيُرْوَى او نقل دی چې ،، "أَوْ خَمْسُمِائَةٍ" [1] یا پنځه سوه درهم،، فَتَرَكْنَا الْقِيَاسَ بِالْأَثَرِ نو مونږ د اثر په وجه قیاس پریخودو وَهُوَ حُجَّةٌ او دا حدیث حجت دې عَلَى مَنْ قَدَّرَهَا بِسِتِّمِائَةٍ په هغه چا (امام) چا چې غره په شپږو سوو درهمو سره مقید کړې ده نَحْوُ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ لکه امام مالك او امام شافعي رحمهما الله.

تشریح:- چونکه په دې باب کي قیاس پریښودې شوې دې.او استحسان باندې عمل شوې دې.په دې وجه ددې دلیل بیان شوې دی.چه په داسې صورت کي حدیث کي غره واجب کړې شوې ده.نو ددې حدیث په وجه موږ قیاس پریخودو.او حدیث کي غره پنځو سوو درهمو سره خاص کړې شوې دې.نو دا حدیث د هغه خلګو خلاف حجت دې.څوك چې غره شپږ سوو درهمو سره مقید کوی.لکه امام مالك او امام شافعي رحمهما الله.

### غره په عاقله لازم دهاو که دده په مال کښې ؟

(وَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ) عِنْدَنَا او دا (غره) زموږ په نیز عاقله باندې ده إِذَا كَانَتْ خَمْسَمِائَةِ دِرْهَمٍ کله چې پنځه سوه درهم

[1] قال الزيلعى رحمه الله الأول غريب ورواية أوخمسمائة عند الطبرانى فى معجمه (كماذكره الهيثمى فى مجمع الزوائد (٣٠٠١٦) وعزاه لطبرانى والبزار) نصب الرأية:١٥٨١٥)_

وی وَقَالَ مَالِكٌ: او امام مالك رحمه الله فرمايي فِي مَالِهِ چې دده په مال کي ده لِأَنَّهُ بَدَلُ الْجُزْءِ ځکه چې دا د جزء بدل دي.

تشریح:- په دې متن کي دده بیان کوی چې غره به زمونږ په نیز غره په عاقله باندې واجب ده.او د امام مالك رحمه الله په نیز په ضارب باندې واجب ده.دوی دا دلیل پش کړې دې.چه جنین د مور جزء دې.چه دا غره د جزء فوت کیدو په وجه واجب کړې شوې ده.او کوم ارش چې په مادون النفس کي وی.هغه په عاقله باندې نه وی.بلکه پخپله مجرم باندې واجبیږی.نو دلته به هم غره په مجرم باندې واجب وی.

وَلَنَا او زمونږ دلیل دا دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {قَضَى بِالْغُرَّةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ}[1] چې نبی ﷺ د غره فیصله عاقله باندې فرمائیلې ده وَلِأَنَّهُ بَدَلُ النَّفْسِ او ځکه چې دا (غره) د نفس (جنین) بدل دي وَلِهَذَا سَمَّاهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دِيَةً په دې وجه نبی ﷺ ددې نوم دیت ایخودې دی حَيْثُ قَالَ په دې حیثیت سره چې دوی اوفرمائیل "دوې (دوه)"[2] ،، ددې دیت ادا کړئ،، وَقَالُوا: او دوی اوونیل {أَنَدِي چې مونږ دیت ادا کړو مَنْ لَا صَاحَ د هغه چا چې هغه نه چغه کړې ده وَلَا اسْتَهَلَّ} الْحَدِيثُ[3] او نه ئې ژړلی دی،، (الحدیث) إِلَّا أَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ مَا دُونَ خَمْسِمِائَةٍ پنځو عاقله د پنځو سوو نه کم دیت نه ورکوی

تشریح:- زمونږ دلیل ① حدیث دې.چه نبی کریم ﷺ غره عاقله باندې واجب فرمائیلې ده.② او دوهم دلیل دا دې. چې غره د نفس بدل دې.او بدل ته دیت وائی.او په حدیث کي دې ته دیت وئیلې شوې دې.ځکه چې په داسې واقعه راپیښیدو باندې نبی ﷺ فرمائیلی وو.چه دده دیت اداکړئ.هغوی وئیلی وو.چه دده دیت څنګه ادا کړو.ده خو نه خبرې کړی دی.او نه ئې ژړلی دی.(الحدیث) بهرحال حدیث کي دې ته دیت وئیلې شوې دې.نو ددې وجوب به د دستور مطابق عاقله باندې وی.او دا اصول مخکښې تیر شوې دې. چې کوم دیت د پنځو سوو نه کم وی.د هغې وجوب به پخپله مجرم باندې وی.عاقله باندې به نه وی.او دلته چې کومه غره واجب شوې ده.هغه پنځه سوه درهمه ده.

① فائده* ﴿ودی یدی ودیاً، و دیة﴾ وینه بهیول، د امر صیغې دا دی. ﴿دِ، دیا، دوا، دی، دِیا، دین﴾ نو دلته په ،،دوه،، کي ،،ه،، مفعول به دې.

② فائده* دلته چې کومه غره واجب شوې ده.هغه پنځه سوه درهم دی.لکه څنګه چې وړاندې تیر شوی دی.په دې وجه دلته د ،،عندنا،، نه روسته د ،،إذا كانت خمس مأة درهم،، قید په ځائې نه دې.دا ممکن ده.چه دا د ،،إذا،، په ځائې ،، إذ،، وی.دغه وخت دې کي ګنجائش شته.چه په عاقله باندې د وجوب دلیل وی.چه په عاقله باندې وجوب ولې دې؟ نو ځکه چې دا پنځه سوه درهم دی.چه ددې وجوب په عاقله باندې راځی.

### د غره ادا کولو طریقه

وَتَجِبُ فِي سَنَةٍ او غره به په یو کال کي واجب وی.

تشریح:- په دې عبارت کي د غره ادا کاوه طریقه بیانوی نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا په یو کال کي ادا کوی

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام شافعی رحمه الله اوفرمائیل. فِي ثَلَاثِ سِنِينَ چې په دریو کالو کي به واجب وی لِأَنَّهُ بَدَلُ النَّفْسِ ځکه چې دا د نفس بدل دې وَلِهَذَا يَكُونُ مَوْرُوثًا بَيْنَ وَرَثَتِهِ په دې وجه دا د جنین په وارثانو کي میراث

[1] من حدیث جابر رضی الله عنه أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه (نصب:۱۵/۱۵۹)_

[2] من حدیث مالک بن نابغة الهذلی أخرجه الطبرانی فی معجمه (نصب:۱۵/۱۶۰)_

[3] من حدیث أبی هریرة رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الدیات ۱۹ رقم ۴۵۷۶ والترمذی فی الدیات باب ۱۵ رقم ۱۴۱۰ والنسائی فی القسامة باب ۴۰)_



کي تقسیمیږی

تشریح:- اود امام شافعی رحمه الله مسلك دا دې.چه ددې ادا کول د دیت پشان دریو کالو کي کیږی. دلیل دا دې چې غره د نفس بدل دې.اواصول دا دې.چه کوم مال د نفس بدل وی.د هغې اداکول قسط وار په دریو کالو کي واجبیږی.نو دلته کي هم داسې کول پکاردی.اوددې دلیل ،،چه غره د نفس بدل دې،، دا هم دې.چه غره د جنین د وارثانو په منځ کي تقسیمیږی.او د اندامونو دیت په وارثانو کي نه تقسیمیږی.بلکه دا مظلوم ته ورکولې شی.نو معلومه شوه.چه غره د نفس بدل دې.او هرکله چې دا د نفس بدل دې.نو د قانون مطابق به د دیت ادائیګی په دریو کالو کي کیږی.

وَلَنَا مَا رُوِيَ او زمونږ دلیل هغه دې عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَسَنِ رَحِمَهُ اللَّهُ کوم چې د محمد بن حسن رحمه الله نه نقل دې أَنَّهُ قَالَ: "دوی فرمائیلی دی بَلَغَنَا أَنَّ چې مونږ ته دا خبره رارسیدلې ده رَسُولَ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَعَلَهُ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي سَنَةٍ[1] چې رسول الله ﷺ غره په عاقله باندې یو کال کي مقرر کړې دې

تشریح:- دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل ① رومبې دا دې.چه د امام محمد رحمه الله نه نقل دې.چه مونږ ته دا خبره راسیدلې ده.چه نبی ﷺ غره په عاقله باندې یو کال کي د ادا کاوه فیصله فرمائیلې ده.

"وَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ بَدَلَ النَّفْسِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ نَفْسٌ عَلَى حِدَةٍ او ځکه چې دا (غره) د جلا نفس کیدو په وجه اګرچه د نفس بدل دې فَهُوَ بَدَلُ الْعُضْوِ مِنْ حَيْثُ الِاتِّصَالُ بِالْأُمِّ نو دا دمال سره د متصل کیدو په وجه د اندام بدل دې فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهِ الْأَوَّلِ فِي حَقِّ التَّوْرِيثِ نو مونږ د وراثت په حق کي په رومبی مشابهت باندې عمل اوکړو وَبِالثَّانِي فِي حَقِّ التَّأْجِيلِ إِلَى سَنَةٍ او د پوره کال مهلت ور کاوه په حق کي مو په دوهم مشابهت باندې عمل اوکړو لِأَنَّ بَدَلَ الْعُضْوِ إِذَا كَانَ ثُلُثَ الدِّيَةِ ځکه چې د اندام بدل کله چې دا دریمه برخه دیت وی. أَوْ أَقَلَّ یا کم وی أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ الْعُشْرِ یعنی د نصف عشر نه زیات وی يَجِبُ فِي سَنَةٍ نو دا بدل په یو کال کي واجبیږی.

تشریح:- دوهم دلیل دا دې.چه جنین په یو اعتبار سره جدا نفس دې.او په دوهم اعتبار سره مور سره د متصل (یو ځائې) کیدو په وجه اندام دې.نو په غره کي هم دوې (دوه) احتماله شو: ① د نفس بدل ② د اندام بدل، نو مونږ په دې دواړو مشابهتونو باندې عمل اوکړو.او مونږ اووئیل.چه مونږ غره موروث ګرځولې ده.ددې د نفس بدل کیدو په وجه، او مونږ د یو کال مهلت ورکړې دې.د اندام د بدل کیدو نه څه مطلب دې؟ مطلب دا دې.که د اندام بدل وی.په دې شرط چې د نصف عشر نه کم نه وی.نو په دې کي د یو کال مهلت وی.او دا هم د نصف عشر نه کم نه دې.او من وجه د اندام بدل دې.نو د یو کال مهلت ملاویدل پکاردی.

فائده* ﴿أو أقل أكثر من نصف العشر....﴾ اکثر د اقل بدل دې.په دې باندې شارحینو اعتراض کړې دی.چه اکثر په صحیح ځائې کي نه دې.ځکه چې د نصف عشر په صورت کي هم وجوب په یو کال کي دې. نو د اکثر قید بې فائدې دې.خو دا وئیلې کیداې شی.چه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه ثلث او ددې نه کم هغه مقدار کوم چې د نصف عشر نه زیات وی.هغې کي وجوب یو کال کي دې.نو د نصف عشر په صورت کي به هم وجوب په یو کال کي وی.

بِخِلَافِ أَجْزَاءِ الدِّيَةِ په خلاف د دیت د اجزاو لِأَنَّ كُلَّ جُزْءٍ مِنْهَا عَلَى مَنْ وَجَبَ ځکه چې د دیت هر جزء په چا واجبیږی يَجِبُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ هغه په دریو کالو کي واجبیږی.

تشریح:- دا عبارت په اصل کي د یو تقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې د احنافو اصول په یو کال کي دغره ادا کول دی نوپکار دا ده چې دا قاعده په ټولو مسائلو باندې حاوی وه حالانکه که یوسړې شلو سړو خطاء سره قتل کړو.نو ددوی په برخه کي چې کوم دیت راځی.هغه هم نصف عشر دې.نودلته بالاتفاق ددې اداکول په دریو

[1] غربه الزیلعی رحمه الله (نصب:۱۵/۱۶۰)_

کالو کي واجبیږي؟ نو علامه مرغیناني رحمه الله فرمایي چې موږ کوم اصول پیش کړي دي. دا د اندام بدل دي. او دلته بدل نفس دي. خو د شریکانو د زیاتوالی په وجه د دیت اجزاء (حصې) جوړې شوې. نو دا قیاس مع الفارق دي.

### جنین مذکر او مونث برابر دي

وَيَسْتَوِي فِيهِ الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى او په دې (د غره واجب مقدار) کي هلك او انجلی برابر دی لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حدیث د مطلق کیدو په وجه کوم چې موږ روایت کړې دي.

**تشریح:-** دا غره په هلك او انجلی کي برابر ده. یعني په دواړو صورتونو کي پنځه سوه درهم دی. ځکه چې مذکوره حدیث «في الجنين غرة عبد أو أمته أو خمس مائة» مطلق دی. چه په دې کي د هلك او دانجلی (جینئ) هیڅ تخصیص نشته.

وَلِأَنَّ فِي الْحَيَّيْنِ إِنَّمَا ظَهَرَ التَّفَاوُتُ او ځکه چې په دوو ژوندو کي به تفاوت ښکاره کیږي لِتَفَاوُتِ مَعَانِي الْآدَمِيَّةِ د سړي توب د معنی د تفاوت په وجه وَلَا تَفَاوُتَ فِي الْجَنِينِ او په جنین کي هیڅ تفاوت نشته فَيُقَدَّرُ بِمِقْدَارٍ وَاحِدٍ نو د جنین دیت به یو مقدار سره مقرر وی وَهُوَ خَمْسُمِائَةٍ. او هغه پنځه سوه درهم دی.

**تشریح:-** دویمه وجه دا هم ده. چه په هلك او انجلی کي تفاوت دي. خو هغه بدله درجه ده. کوم کي چې تفاوت دي او په کومه درجه کي دې اوس دي. په دې کي تفاوت نشته. په نورو الفاظو کي داسې، د اثارو د ترتیب په درجه کي تفاوت دي. او د تحقق په درجه کي هیڅ تفاوت نشته. ځکه چې دویمه درجه کي کوم تفاوت دې. هغه د سړي توب د معنی د تفاوت په وجه پیدا شوې دي. مثلاً د مال مالك سړې او ښځه دواړه کیداې شي. خو مالك د نکاح صرف سړې وی. ښځه نه وی. بهرحال دا تفاوت وی. خو دا په دویمه درجه کي دي. په جنین کي هیڅ تفاوت نشته. نو د دواړو دیت به یوشان مقررولې شي. یعني پنځه سوه درهم.

### د حمل ماشوم ژوندي پیدا شو او مړ شو، نو پوره دیت واجب دي

فَإِنْ أَلْقَتْهُ حَيًّا نو که ښځې ژوندي جنین راوړو ثُمَّ مَاتَ بیا هغه (بچې) مړ شو فَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په دې کي پوره دیت دي لِأَنَّهُ أَتْلَفَ حَيًّا بِالضَّرْبِ السَّابِقِ ځکه چې ضارب (وهونکی) د مخکنو وهلو په وجه یو ژوندې هلاك کړې دې.

**تشریح:-** یعني که جنین ژوندې بهر راوتلې وی. او بیا مړ شوې وی. نو په دې صورت کي به پوره دیت واجب وی. ځکه چې د بچی مړینه د ړومبی وهلو اثر دې. او چونکه دده مړکیدل د ژوند ښکاره کیدو نه روسته دی. نو پوره دیت به واجب وی.

### د مړ جنین پیدا کیدو نه روسته ښځه هم مړه شوهنو دمور د قتل دیت واجب دي

وَإِنْ أَلْقَتْهُ مَيِّتًا او که ښځې مړ بچې اوغورځولو ثُمَّ مَاتَتِ الْأُمُّ بیا (ښځه) مړه شوه فَعَلَيْهِ دِيَةٌ بِقَتْلِ الْأُمِّ نو په ضارب د مور د قتل په وجه دیت دي وَغُرَّةٌ بِإِلْقَائِهَا او د مور د بچې غورځولو په وجه غره ده وَقَدْ صَحَّ او دا خبره د صحت درجې ته رسیدلې ده {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَضَى فِي هَذَا بِالدِّيَةِ وَالْغُرَّةِ} [1] چې نبی ﷺ په دې صورت کي د دیت او غره فیصله فرمائیلې وه

**تشریح:-** که د زید لتې وهلو په وجه (مثلاً) جنین مړ بهر ته راووتلو. او بیا ښځه هم مړه شوه. نو دلته په زید باندې دوې (دوه) ضمانه دی. د ښځې دیت واجب دې. او د جنین په وجه غره واجب ده. او د طبراني د روایت په موجب په مذکوره صورت کي حضرت ﷺ هم دا فیصله فرمائیلې ده.

[1] قال الزيلعي رحمه الله نظرت الكتب الستة إلا النسائي فلم أجده بهذا المعنى والذي في الكتب الستة عن ابى هريرة رضي الله عنه أن النبي ﷺ قضى في جنين إمرأة من بني لحيان بغرة عبد أو أمة ثم إن المرأة التي قضى عليها بالغرة توفيت فقضى رسول الله ﷺ أن ميراثها لبنيها ولزوجها وأن العقل على عصبتها (نصب: ۵/۱۹۱)۔



### ښځه مړه شوه، او بچې ژوندي پیدا شو بیا مړ شو، نو په وهونکي دوې (دوه) دیتونه واجب وي

وَإِنْ مَاتَتِ الْأُمُّ مِنَ الضَّرْبَةِ او که د وهلو په وجه مور مړه شوه ثُمَّ خَرَجَ الْجَنِينُ بَعْدَ ذَلِكَ حَيًّا بیا ددې نه روستو ژوندي جنین پیدا شو ثُمَّ مَاتَ. بیا هغه (جنین) مړ شو فَعَلَيْهِ دِيَةٌ فِي الْأُمِّ نو په ده (ضارب) باندې په مور کي دیت دې وَدِيَةٌ فِي الْجَنِينِ... او یو دیت د جنین دې لِأَنَّهُ قَاتِلُ شَخْصَيْنِ ځکه چې دا (ضارب) د دوو سړو قاتل دې.

**تشریح:-** اوکه دا صورت شوې وی. چه د وهلو په جه مخکې مور مړه شوه. بیا بچې ژونې راووتلو. او بیا هغه هم مړ شو. نو دلته به دوې (دوه) دیتونه واجب وی. د بچی هم پوره دیت او د ښځې هم پورې دیت دې. ځکه چې ضارب دوې (دوه) قتلونه کړی دی.

### ښځه مړه شوه بیا مړ بچې پیدا شونو څه حکم دې!

وَإِنْ مَاتَتْ او که ښځه مړه شوه ثُمَّ أَلْقَتْ مَيِّتًا بیا هغې مړ بچې اوغورځولو فَعَلَيْهِ دِيَةٌ فِي الْأُمِّ نو په ضارب د مور دیت دې وَلَا شَيْءَ فِي الْجَنِينِ او په جنین کي هیڅ واجب نه دی.

**تشریح:-** اوکه دا صورت راپیښ شو. چه ښځه مړه شوه. بیا مړ شوې بچې را پیدا شو. نو زموږ په نیز ذکر شوی صورت کي به صرف د مور دیت واجب وی. او د بچی به هیڅ واجب نه وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله تَجِبُ الْغُرَّةُ فِي الْجَنِينِ چې په جنین کي غره واجب ده. لِأَنَّ الظَّاهِرَ مَوْتُهُ بِالضَّرْبِ ځکه چې مړکیدل د ضرب په وجه دی فَصَارَ نو دا داسې شوه كَمَا إِذَا أَلْقَتْهُ مَيِّتًا لکه چې دا ئې مړ غورځولې وی وَهِيَ حَيَّةٌ او ښځه ژوندئ وی.

**تشریح:-** او د امام شافعی رحمه الله په نیز به د مور دیت او په بچی کي به غره واجب وی. د امام شافعی رحمه الله دلیل دا دې. چه په مذکوره صورت کي د بچی مړکیدل د ضرب په وجه دی. ښکاره هم دا ده. نو دا د ړومبی صورت مثل شو. یعني کله چې مخکې مړ شوې بچې راوځی. او بیا مور مړه شي. نو لکه څنګه چې په دې کي د مور دیت او د بچی غره واجب ده. دلته هم دغه ډول کیدل پکار دی.

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّ مَوْتَ الْأُمِّ أَحَدُ سَبَبَيْ مَوْتِهِ چې د مور مرګ د بچې د مرګ په دوو سببونو کي یو سبب دې لِأَنَّهُ يَخْتَنِقُ بِمَوْتِهَا ځکه چې د مور د مرګ په وجه به دده ساه هم بندیږي إِذْ تَنَفُّسُهُ بِتَنَفُّسِهَا ځکه چې دده ساه اخستل د مور د ساه اخستلو په وجه دی فَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ بِالشَّكِّ نو د شك په وجه به ضمان واجب نه وی.

**تشریح:-** زموږ دلیل دا دې. چه د بچی د مرګ دلته کي دوې (دوه) سببونه دی: ① د وهلو په وجه مړ شی. ② د مور د مرګ په وجه سا بنده شی. او مړ شی. ځکه چې بچې د مور د ساه په ذریعه ساه اخلی. بهرحال دلته کي شك پیدا شو. چې مرګ د ړومبی (وهلو) په وجه دې. اوکه د دوهم (د مور د مرګ) په وجه دې. نو د شك په وجه به ضمان واجب نه وی.

### د بچی غره به په وارثانو کښې د میراث په طور تقسیمیږي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَا يَجِبُ فِي الْجَنِينِ او په جنین کي چې کومه غره واجب وی مَوْرُوثٌ عَنْهُ هغه به دده د اړخه په میراث کي تقسیمولې شی لِأَنَّهُ بَدَلُ نَفْسِهِ ځکه چې دا دده د نفس بدل دې فَيَرِثُهُ وَرَثَتُهُ نو د جنین وارثان به ددې وارث وی (وَلَا يَرِثُهُ الضَّارِبُ او وهونکې به ددې وارث نه وی حَتَّى لَوْ ضَرَبَ بَطْنَ امْرَأَتِهِ تر دې که ده خپله ښځه په نس باندې اووهله فَأَلْقَتِ ابْنَهُ نو د وهونکی بچې ئې اوغورځولو مَيِّتًا حالانکه هغه مړ دې فَعَلَى عَاقِلَةِ الْأَبِ غُرَّةٌ نو د پلار په خاندان باندې غره ده وَلَا يَرِثُ مِنْهَا او پلار به په دې غره کي وارث نه وی لِأَنَّهُ قَاتِلٌ بِغَيْرِ حَقٍّ مُبَاشَرَةً ځکه چې دا په ناحقه د مباشرت (او قصد) په طریقه قتلونکې دې وَلَا مِيرَاثَ لِلْقَاتِلِ. حالانکه قاتل ته میراث نه ملاویږي

**تشریح:-** د جنین په ذکرشوو ټولو صورتونو کي چې ضارب باندې کوم مال واجب کړې شوې دې. چونکه د

تيرشوی تصريح مطابق د نفس بدل دې.نو دا به دجنين د وارثانو په منځ کې تقسيمولې شی.خو که ضارب هم ددې وارث وی.نو هغه به د ميراث نه محروميږی.مثلاً يوکس خپله ښځه په نس باندې په لته اووهله.چه په دې سره مړ جنين بهر ته راووتلو.نو دلته به د وهونکی په خاندان باندې ديت واجب وی.او وهونکې به په دې غره کې د ميراث مستحق نه وی.ځکه چې قاتل ته ميراث نه ملاويږی.او دا قاتل دې.او دا قتل هم قتل د سبب نه دې.بلکه قتل د مباشرت (او ارادةً) دې.او ناحقه قتل دې.،، فيه مافيه.،

## د وينځې په مذکر اومونث ژوندی بچی کښې به څومره ديت واجب وی

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَفِي جَنِينِ الْأَمَةِ إِذَا كَانَ ذَكَرًا) او د وينځې په جنين کې کله چې دا هلك وی نِصْفُ عُشْرِ قِيمَتِهِ دده (د جنين) د قيمت نصف عشر (شلمه) ده لَوْ كَانَ حَيًّا وَعُشْرُ قِيمَتِهِ لَوْ كَانَ أُنْثَى که دا انجلی وی.

تشريح:- دا دهغه جنين تفصيل وو.کوم چې د آزادې ښځې نه راوغورځيږی.که د وينځې نه پيدا شی.نو دا به د وينځې د آقا غلام وی.په دې وجه ددې حکم لږ بل شان دې.نو که د وينځې جنين که ژوندې وی.نو دده قيمت به واجبيدو.ددې نه روسته دې بيا اوکتلې شی.چه جنين هلك دې.اوکه انجلی ده.که هلك دې.نو دده د قميت شلمه برخه به واجبولې شی.اوکه انجلی ده.نو لسمه برخه به واجبولې شی.دا د احنافو مسلك دې.

وَقَالَ الشَّافِعِي رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمايي فِيهِ عُشْرُ قِيمَةِ الْأُمِّ چې په دې کې د مور د قيمت عشر دې لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنْ وَجْهٍ چې دا من وجه جزء دې وَضَمَانُ الْأَجْزَاءِ يُؤْخَذُ مِقْدَارُهَا مِنَ الْأَصْلِ.او د اجزاو ضمان ددې په مقدار اصل حساب نه اخستلې شی.

تشريح:- امام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی.چه په دواړو صورتونو کې به د مور قيمت لګولې شی.اود مور د قيمت عشر به واجبولې شی.ځکه چې دا خو د مور جزء دې (په يو اعتبار سره).، کمامر.،اوکوم ځائې چې د اندامونو ضمان واجبيږی.په هغې کې د مقدار حساب اصل سره لګولې شی.او اصل مور ده.نو په دې سره حساب اولګولو او عشر قيمت مو واجب کړو.

## د احنافو دليل

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دی أَنَّهُ بَدَلُ نَفْسِهِ چې دا دده د نفس بدل دې لِأَنَّ ضَمَانَ الطَّرَفِ لَا يَجِبُ ځکه چې د اندام ضمان نه واجبيږی إِلَّا عِنْدَ ظُهُورِ النُّقْصَانِ..خو د اصولو د نقصان ښکاره کيدو په وخت وَلَا مُعْتَبَرَ فِي ضَمَانِ الْجَنِينِ او د جنين په ضمان کې د اصل نقصان هيڅ اعتبار نشته فَكَانَ بَدَلَ نَفْسِهِ نو شی به دا (ضمان) د جنين د نفس بدل فَيُقَدَّرُ بِهَا نو ضمان به اندازه کولې شی.د جنين نفس سره

تشريح:- اصل لحاظ به د جنين د قيمت ساتلې شی.د مور به نشی ساتلې.ځکه چې دا ضمان د نفس د ضمان جنين دې.د مور د اندام ضمان نه دې.ځکه چې چرته د اندام ضمان واجبيږی.نو هلته د په دې غور کولې شی. چې په اصل کې څومره نقصان پيدا شوې دې.بيا هم دغه اومره نقصان واجبولې شی.حالانکه دلته ددې اعتبار اونکړې شو.بلکه مطلق اوفرمائيلی شو.چه د مور د قيمت عشر به واجب وی.نو که د ښځې نقصان ددې په وجه نه وی شوې.نو بيا هيڅ ضمان واجبيدل پکار نه دی.نو معلومه شوه.چه دا ضمان د نفس دې.ضمان د اندام نه دې.او هرکله چې دا د نفس ضمان دې.نو ددې اندازه به د نفس د قيمت په لحاظ سره وی.

## د امام ابويوسف رحمه الله مسلك

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله امام ابو يوسف رحمه الله اوفرمائيل يَجِبُ ضَمَانُ النُّقْصَانِ چې ضمان د قصاص به واجب وی.لَوْ انْتَقَصَتِ الْأُمُّ که په مور کې نقصان وی اعْتِبَارًا بِجَنِينِ الْبَهَائِمِ خاروو په جنين باندې قياس کاوه سره وَهَذَا لِأَنَّ الضَّمَانَ فِي قَتْلِ الرَّقِيقِ ضَمَانُ مَالٍ او دا ځکه چې د غلام په قتل کې ضمان د مور ضمان وی عِنْدَهُ عَلَى مَا نَذْكُرُ إِنْ شَاءَ



اللهُ تَعَالَى،د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د هغه تفصيل مطابق کوم چې به موږ انشاء الله ذکرکړو فَصَحَّ الْاِعْتِبَارُ عَلَى أَصْلِهِ...د امام ابويوسف رحمه الله د اصل مطابق (د وينځې جنين د څاروو په جنين باندې) قياس کول صحيح نه دی.

تشريح:- دا د امام ابويوسف رحمه الله مسلك دې.ددې حاصل دا دې.چه د وينځې او څاروو مسئله برابر ده.نو که يوکس د بل سړی ميښه مړه کړله.چه ددې په وجه ئې بچې اورغورځيدو.نوکه ددې په وجه بچی کې نقصان شوې وی.نو ضمان د نقصان به واجب وی.ګنی نه به وی.دغه ډول د وينځې مسئله ده.ځکه چې دواړه مال دې.نو په يو بل به قياس کول صحيح وی.

## وينځه مړه کړې شوهاو مالك ددې حمل آزاد کړوبيا ددې وينځې ژوندی ب چې پيدا شونو د ديت مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې فرمائيلی دی (فَإِنْ ضُرِبَتْ) نوکه وينځه اووهلې شوه فَأَعْتَقَ الْمَوْلَى مَا فِي بَطْنِهَا نو آقا کوم څه چې ددې په نس کې دی.هغه ئې آزاد کړل ثُمَّ أَلْقَتْهُ حَيًّا بيا هغې دا (بچې) ژوندې اوغورځولو ثُمَّ مَاتَ بيا هغه مړ شو فَفِيهِ قِيمَتُهُ نو په دې کې د هغې قيمت دې حَيًّا کوم چې د ژوندی دې وَلَا تَجِبُ الدِّيَةُ او ديت به واجب نه وی وَإِنْ مَاتَ بَعْدَ الْعِتْقِ اګرچه دا د آزادولو نه روسته مړ شوې دې.

تشريح:- که عثمان د ارشد وينځه په نس په لته باندې اووهله.او اوسه پورې (مرګ وغيره) هيڅ نه وو شوی. چې خالد اعلان اوکړو.چه کوم څه (بچې) ددې وينځه په نس کې دی.ما هغه آزاد کړو.ددې نه روسته وينځې جنين اوغورځولو.نو دلته په قاعده کې ديت واجبول پکار دی.ځکه چې د مرګ په وخت بچې آزاددې.اودونلو نه روستو ژوندې دې.خو ديت نه دې واجب کړې شوې.بلکه قيمت واجب کړې شوې دې.نو دا به دده آقا ته ملاويږی.يعنی که هغه ژوندې وو.نو د هغه چې کوم قيمت وی.هم هغه قيمت به په ضارب باندې واجبولې شی.اګرچه دا خبره ښکاره ده.چه دده مرګ د آزادئ په حالت کې واقع شوې دې.خو کوم وهل چې دده لپاره مهلك جوړ شوی دی.هغه په حالت د غلامئ کې واقع شوې دې.نو ددې اعتبار کاوه سره قيمت واجب کړې شوې دې.ديت نه دې واجب کړې شوې.

لِأَنَّهُ قَتَلَهُ بِالضَّرْبِ ځکه چې ضارب هغه لره په داسې وار سره مړ کړې دې السَّابِقِ کوم چې په آزادئ باندې مقدم دې وَقَدْ كَانَ فِي حَالَةِ الرِّقِّ حالانکه وهل د غلامئ په حالت کې وو فَلِهَذَا تَجِبُ الْقِيمَةُ په دې وجه به قيمت واجب وی دُونَ الدِّيَةِ ديت به نه وی.

تشريح:- او ضارب هغه لره د ژوند په حالت کې وهلې دې.په دې وجه د ژوندی قيمت واجب کړې شوې دې.ديت نه دې واجب کړې شوې.په دې وجه قيمت هم د ژوندی واجب کړې شوې دې.

وَتَجِبُ قِيمَتُهُ حَيًّا او دده د ژوندی (حالت) قيمت به واجب وی لِأَنَّهُ بِالضَّرْبِ صَارَ قَاتِلًا إِيَّاهُ ځکه چې ضارب دده قاتل جوړ شوې دې وَهُوَ حَيٌّ په داسې حال کې چې هغه ژوندې وو فَنَظَرْنَا إِلَى حَالَتَيِ السَّبَبِ وَالتَّلَفِ نو موږ د سبب اوهلاکت دواړو حالتونو ارخ ته اوکتل.

تشريح:- لنډيز دا شوه چې چونکه دلته د سبب او هلاکت په حالتونو کې تعارض دې.حالت د سبب تقاضه کوی.چه قيمت واجب شی. ځکه چې هغه دغه وخت غلام وو.او د هلاکت د حالت تقاضه دا ده.چه ديت واجب شی.ځکه چې هغه دغه وخت ژوندې دې.نو موږ په بناء د احتياط دواړه جمع کړل.او موږ اووئيل.چه قيمت واجب دې.چه دا د سبب د حالت رعايت دې.او د ژوندی قيمت واجب دې.دا د هلاکت د حالت رعايت دې.ګنی که د هلاکت د حالت اعتبار نه وې شوې.نو صرف غره به واجب وه.

تشريح:- بعضو حضراتو وئيلی دی.چه مذکوره تفصيل د شيخينو رحمهما الله د مسلك مطابق دې.او د امام محمد رحمه الله مسلك بل شان دې.هغوی فرمائی.که دا جنين ژوندې نه وو وهلې شوې.نو مثلاً دده قيمت زر روپئ وو.او د وهلو د حالت په صورت کې اته سوه روپئ دې.نو ددې دواړو په منځ کې د دوو سوو روپو تفاوت دې.نو هم دا تفاوت به

واجب وي.

### د يو قول مطابق مذکوره تفصيل د شيخينو رحمهما الله د قول مطابق دي

وَقِيلَ:او ونيلي شوی دی هَذَا عِنْدَهُمَا، چي دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ تَجِبُ قِيمَتُهُ او د امام محمد رحمه الله په نيز به دده قيمت واجب وی مَا بَيْنَ كَوْنِهِ مَضْرُوبًا إِلَى كَوْنِهِ غَيْرَ مَضْرُوبٍ، د هغه تفاوت مطابق کوم چي دده د وهلو او نه وهلو حالت په منځ کي دي. لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ ځکه چي آزادول د متعدی کيدو ختمونکي دي عَلَى مَا يَأْتِيكَ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى د هغه تفصيل مطابق کوم چي به روستو ستا مخي له راشي.انشاء الله.

تشريح:- ځکه چي د وهلی شوی مرګ متعدی کيدل ختمونکي دي.دغه ډول د امام محمد رحمه الله په نيز آزادول هم د متعدی کيدو ختمونکي دي.نو د آزادئ نه روسته د تيرشوی وهلو د متعدی کيدو دروازه بنده شوه.په ،، باب في جناية المملوك والجناية عليه،، کي ددې تفصيل راروان دي.

### په بچي کښي کفاره شته اوکه نشته

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا كَفَّارَةَ فِي الْجَنِينِ) او په جنين کي کفاره نشته

تشريح:- د جنين د ضمان بيانولو نه روسته د جنين د کفاره بيان کوی اوفرمائی چي د امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك دا دي.چه کفاره واجب نه ده.

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ تَجِبُ او د امام شافعی رحمه الله په نيز کفاره واجب ده لِأَنَّهُ نَفْسٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي جنين من وجه نفس دي فَتَجِبُ الْكَفَّارَةُ احْتِيَاطًا نو احتياطاً کفاره واجب ده.

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله په نيز کفاره احتياطاً واجب ده.ځکه چي جنين هم من وجه نفس دي.نو کفاره به واجب وي.

وَلَنَا او زموږ دليل دا دي أَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيهَا مَعْنَى الْعُقُوبَةِ چي په کفاره کي دعقوبت (اوسزا)معنی ده وَقَدْ عُرِفَتْ فِي النُّفُوسِ الْمُطْلَقَةِ او سزا په نفوس مطلقه کي معلومه شوې ده فَلَا تَتَعَدَّاهَا نو ددې څخه به نه متعدی کيږی وَلِهَذَا لَمْ يَجِبْ كُلُّ الْبَدَلِ په دې وجه به پوره بدل واجب نه وی. قَالُوا: مشائخو فرمائيلی دی إِلَّا أَنْ يَشَاءَ ذَلِكَ مګر دا چي ضارب اوغواړی لِأَنَّهُ ارْتَكَبَ مَحْظُورًا،ځکه چي ده د يو ممنوع ارتکاب (او جرم) کړې دي فَإِذَا تَقَرَّبَ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى نو هرکله چي ده د کفارې په ذريعه د الله په اړخ تقرب (او نزديکت) حاصل کړو كَانَ أَفْضَلَ لَهُ نو دا دده لپاره غوره دي. وَيَسْتَغْفِرُ مِمَّا صَنَعَ او د خپل حرکت نه استغفار دي.

تشريح:- او زموږ دليل دا دي چي چونکه کفاره د مطلقه نفسونو په اړه کي وارد شوې ده.او دا مطلق نفس نه دي.بلکه من وجه نفس دي.نو عقوبت به صرف په مطلقه نفسونو کي واجب وی.چونکه دا نفس مطلقه نه دي.په دې وجه خو د پوره ديت په ځائي غره واجب شوې ده.البته که احتياطاً کفاره ورکړی.نو غوره ده.چه د تقرب سبب اوګرځی.او د جنين هلاکاوه کوم جرم چي ده کړې دي.د هغې نه استغفار اوکړی.

### د هغه بچي حکم دکوم اندامونه چي پوره جوړ شوی نه وی

وَالْجَنِينُ الَّذِي قَدِ اسْتَبَانَ بَعْضُ خَلْقِهِ او هغه جنين د کوم چي بعض اندامونه ښکاره شوی دی بِمَنْزِلَةِ الْجَنِينِ التَّامِّ هغه جنين د تام (پوره) په درجه کي دي فِي جَمِيعِ هَذِهِ الْأَحْكَامِ په دې ټولو احکامو کي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د مطلق کيدو په وجه کوم چي موږ روايت کړې دي وَلِأَنَّهُ وَلَدٌ او ځکه چي دا بچي دي فِي حَقِّ أُمُومِيَّةِ الْوَلَدِ،.. د ام ولد کيدو په حق کي ، وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او د عدت تيريدو په حق کي ، وَالنِّفَاسِ وَغَيْرِ ذَلِكَ او د نفاس وغيره په حق کي فَكَذَا فِي حَقِّ هَذَا الْحُكْمِ نو هم دغه ډول په دې حکم کي وَلِأَنَّ بِهَذَا الْقَدْرِ يَتَمَيَّزُ مِنَ الْعَلَقَةِ وَالدَّمِ او ځکه چي په دومره



اندازې سره به دا د کلکي (او راټولې) شوې وينې نه جلا کيږی فَكَانَ نَفْسًا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ

تشريح:- هرکله چي بعضې اندامونه د جنين تيار شو.نو دا جنين د تام په درجه کي دي.ځکه چي حديث کي د مطلق جنين ذکر دي.چه دا دې دواړو ته ګډ دي.بيا هغه جنين د کوم چي بعض اندامونه جوړ شوی وی.په پاته ټولو احکامو کي د تام جنين په حکم کي دي.نو دلته به هم دا د پوره جنين په حکم کي ګرځولې شی.ځکه چي هرکله بعض اندامونه جوړ شو.نو اوس دا بهيدونکې وينه او کلکه (راټوله شوې) وينه پاتې نشوه.نو د نفس درجه به ده ته ورکولې شی.

فائده* د کوم بچي چي بعض اندامونه جوړ شوی وی.مثلاً لاسونه، خپې، يا نوکونه وغيره ئې جوړ شوی وی.نو دا د بچي په حکم کي دې.ددې په وجه به ښځه د نفاس والا ګرځی.او وينځه به ام ولد جوړيږی.او په دې وجه به عدت تيريږی.او د حمل قائميدو نه شپږ شلې (۱۲۰) ورځې روسته اندامونه جوړيږی.

## باب ما يحدث الرجل في الطريق

ژباړه:- امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.(دا) باب د هغه (څيزونو په بيان کي) دي.کوم چي سړې په لاره کي جوړه کړی.

تشريح:- قتل کله د مباشرت (او قصد) په طريقه کيږی.او کله په طريقه د سبب کيږی.د مباشرت (او ارادی فعل) د احکامو نه د فراغت نه روسته اوس د قتل د سبب بيان پيل کوی.رومبې ئې ځکه مقدم کړو.چه دا د واسطې نه بغير دي.يا دا زيات (په کثرت سره) واقع کيږی.

### په عامه لاره کښي د بيت الخلاء (ليټرين)، د ناوې، او دالان جوړولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ أَخْرَجَ إِلَى الطَّرِيقِ الْأَعْظَمِ كَنِيفًا) او چا چي لوئې لارې اړخ ته بيت الخلاء اوبنکله أَوْ مِيزَابًا يا ئې ناوه اوبنکله أَوْ جُرْصُنًا يا ئې چهجه (بلئ) أَوْ بَنَى دُكَّانًا يا ئې ځپرګې (چبوتره) (دالان) جوړ کړل فَلِرَجُلٍ مِنْ عُرْضِ النَّاسِ نو په عامو خلګو کي هر يوکس ته داحق شته أَنْ يَنْزِعَهُ چي دا لرې کړی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ صَاحِبُ حَقٍّ ځکه چي هر يو حقدار دي بِالْمُرُورِ بِنَفْسِهِ پخپله تيريدو کي وَبِدَوَابِّهِ او خپلو څاروو سره، فَكَانَ لَهُ حَقُّ النَّقْضِ نو هر يو ته به د ماتولو حق وی كَمَا فِي الْمِلْكِ الْمُشْتَرَكِ لکه څنګه چي په مشترك ملك کي حق دي فَإِنَّ لِكُلٍّ وَاحِدٍ حَقَّ النَّقْضِ ځکه چي هر يو ته د ماتولو حق وی فَإِنَّ لِكُلٍّ وَاحِدٍ حَقَّ النَّقْضِ که ددوی نه غيرکس په دې کي څه شئ ايجاد کړو ی فَكَذَا فِي الْحَقِّ الْمُشْتَرَكِ.نو هم دغه ډول (حکم) په مشترك حق کي هم دي

حل اللغة* ① کنيف: بيت الخلاء، دا لفظ اصل کي د عربئ نه دي.بلکه عربئ کي داخل کړې شوې دي.ځکه ددې مختلف تفسيرونه شوی دی.① بلئ (چهجه) ② د اوبو هغه نالئ چي په ديوال کي کلکه (فټ) وی.لکه څنګه چي زموږ په علاقو کي ورته نالئ (لختې) وائی.③ د برګو (کړو او لرګو) هغه برخه کومه چي د ديوال نه بهر اوبنکلې شوې وی. ④ پاوړئ (اندرپايه) ⑤ د لارې دواړو اړخ ته ديوال وی.او په منځ کي پواړه (چت جوړول لکه پاوړئ) چي ددې ځائې نه هلته (بل کور ته) په تللو کي هيڅ پريشانی نه وی.بهرحال که هره معنی مراد واخستلې شی.دا په عامه لاره کي جوړول جائز نه دی.،، کمامر،،

تشريح:- په عامه لاره کي د ټولو حق دي.نوکه يوکس په عامه لاره کي څه داسې شئ جوړ کړی.چه په دې سره خلګو ته تکليف وی.او هغوی ته نقصان رسيږی.نو ټولو خلګو ته به دا حق حاصل وی.چه د تکليف لرې کاوه لپاره دا لرې کړی.لکه څنګه چي په مشترك ملك کي که څوك داسې تصرف اوکړی.نو دا لرې کولې شی.دغه ډول به مشترك حق کي کول هم جائز وی.او په دې کي د ټولو خلګو حق دي.چه په دې کي پخپله هم تيريږی.او خپل څاروی بوځی.نو که په عامه لاره کي ئې بيت الخلاء (ليټرين) يا ځپرګې (چبوتره) (دالان) يا ناوه وغيره اولګوله.نو

تولو خلګو ته به حق وي.چه دا لرې کړي.

## دداسې څيز جوړولو حکم چې خلقو لپاره مضر نه وي

قَالَ:امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَيَسَعُ لِلَّذِي عَمِلَهُ) چا چې دا جوړ کړل.هغه لپاره ګنجائش (اجازت) شته أَنْ يَنْتَفِعَ بِهِ چې ددې نه فائده واخلي مَا لَمْ يَضُرَّ بِالْمُسْلِمِينَ تر کومه پورې چې مسلمانانو لپاره مضر نه وي لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْمُرُورِ خکه چې دده لپاره د مرور (تيريدو) حق شته. وَلَا ضَرَرَ فِيهِ او په تيريدو کې هيڅ ضرر نشته فَيُلْحَقُ مَا فِي مَعْنَاهُ بِهِ نو کوم شئ چې د مرور (تيريدو) په معنى کې وي.د مرور (تيريدو) سره به لاحق کيږي إِذِ الْمَانِعُ مُتَعَنِّتٌ خکه چې مانع سرکښه (او نافرمانه) دي فَإِذَا أَضَرَّ بِالْمُسْلِمِينَ نوکله چې دا د مسلمان لپاره نقصان ده وي كُرِهَ لَهُ ذَلِكَ نو دا (عمل او نفع اخستل) دده لپاره مکروه دى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی صلى الله عليه وسلم د فرمان په وجه، {لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ فِي الْإِسْلَامِ}(١) په اسلام کې نه ضرر شته او نه ضرار شته.

تشريح:- عامې لارې ارخ ته چې چا څه شئ جوړ کړو.که دا عامو خلګو لپاره مضر نه وي.نو جوړونکى ته حق شته.چه ددې نه فائده حاصله کړي.خکه چې جوړونکى ته په دې لاره کې د تيريدو حق شته.خکه چې دده په تيريدو سره هيڅ چاته څه نقصان نشته.نو د کوم شئ په جوړولو سره چې نقصان نه وي.هغه د مرور (تيريدلو) په درجه کې دې.او تيريدل جائز دى.نو اوس به دا مذکوره فعل هم جائز وي.که د مضر نه کيدو باوجود هم څوك ده لره منع ګوي.نو هغه به متعنت (سرکش) وي.البته که په دې سره مسلمانانو ته نقصان رسيږي.نو بيا ددې جوړول او ددې نه نفع حاصلول به هم مکروه تحريمي وي.خکه د نبى صلى الله عليه وسلم ارشاد دې. «لا ضرر ولا ضرار في الإسلام»،، په اسلام کې نه ضرر شته او نه ضرار،، يعنى دا جائز نه ده. چې څوك چا ته په پيل کې نقصان اورسوی.او نه دا جائز ده.چه په آخر کې نقصان اورسوی.ضرر د يو ارخه وي.اوضرارد دوو طرفونونه وي.يعنى ضرار د مضارة په معنى کې دې.چا چې تاته نقصان اورسولو .هغه ته نقصان رسول.دا هم ضرار دې.او په قصاص وغيره کې د خپل حق نه زيات وصولول هم ضرار دې.

مسئله* په قول د امام ابوحنيفه رحمه الله که ده د بادشاه د اجازت نه بغير دا جوړ کړي وي.نو تولو خلګو ته حق دې چه دې منع کړي.اوکه جوړ کړې ئې دي.نو دا دې لرې کړي.که په دې کې ضرر وي اوکه نه وي.او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى.چه د جوړولو نه مخکې تولو ته حق وو.چه منع ئې کړي.خو د جوړولو نه روستو نشته.(کله چې ضرر نه وي).نو منع کونکې به سرکښه (او نافرمانه) وي.او امام محمد رحمه الله فرمائى.که دا مضر نه وي.نو د جوړولو نه مخکې او روستو به هيڅ چا ته د انکار حق نه وي.او منع کونکې به سرکښه نه وي.هم دا آخرى مسئله دلته (په متن کې) ذکر ده.او د دريم جزء تفصيلات روستو راروان دى.

مسئله* ددې مسئلې درې اجزاء دى:① احداث (نوې شئ جوړول) جائز دې.اوکه نه؟ ② د جوړولو نه منع کول او د جوړولو نه روستو د ورانولو حکم ورکول ③ که دده په دې نوى کار سره څوك مړشي.يا څه شئ ضائع شي.د هغې ضمان،نوکه نوى شئ جوړولو سره د خلګو ضرر وي.نوددې جوړول جائز نه دى.خوکه لاره کلاو وي.چه ددې په وجه، تيريدونکو خلګو ته نقصان نه رسيږي.نو جوړول جائز دى.

## په مخصوص کوڅه کښې د ناوې او بيت الخلاء جوړولو مسئله

قَالَ:امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَلَيْسَ لِأَحَدٍ مِنْ أَهْلِ الدَّرْبِ الَّذِي لَيْسَ بِنَافِذٍ) او هغه کوڅه کومه چې عامه نه ده.ددې په اهل (حقدارو) کې هيڅ چا ته دا حق نشته أَنْ يُشْرِعَ كَنِيفًا أَوْ مِيزَابًا چې هغه بيت الخلاء او ناوه راوباسى إِلَّا بِإِذْنِهِمْ خو ددوى تولو په اجازت سره لِأَنَّهَا مَمْلُوكَةٌ لَهُمْ خکه چې دا کوڅه ددوى مملوك ده وَلِهَذَا وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ لَهُمْ عَلَى

(١) من حديث عبادة بن الصامت رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فى سننه فى الأحكام باب ١٧ رقم ٢٣٤٠)_



كُلِّ حَالٍ په دې وجه دوى لپاره هرحال کې شفعه ثابتيږي فَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به جائز نه وي أَضَرَّ بِهِمْ که دا مضر وي أَوْ لَمْ يَضُرَّ او که مضر نه وي إِلَّا بِإِذْنِهِمْ.خو ددوى په اجازت سره (به جائز وي).

تشريح:- مخکنۍ خبره په عامه لاره کې وه.او دا په هغه لاره کې ده.کومه چې عامه نه وي.نو که په دې کې هغه خلګ اجازت ورکړي.د کومو خلګو چې دا لاره ده.نو جائز ده.خکه چې دا ددې تولو شريکانو مملوك ده.او دليل د ملك دا دې. که دلته کې يو کور خرڅ شي.نو تولو خلګو ته د شفعې حق رسيږي. د ددې تفصيل په كتاب الشفعه کې تير شوې دې.

وَفِي الطَّرِيقِ النَّافِذِ او په عامه لاره کې لَهُ التَّصَرُّفُ هغه ته د تصرف حق شته إِلَّا إِذَا أَضَرَّ خو کله چې دا مضر وي.(نو نشته). لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْوُصُولُ إِلَى إِذْنِ الْكُلِّ خکه چې د تولو د ارخه اجازت وصولول متعذر دې فَجُعِلَ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ نو د هر يو په حق کې به دا ګنړلې شي كَأَنَّهُ هُوَ الْمَالِكُ وَحْدَهُ حُكْمًا ګويا چې حکماً هم دې يواځې مالك دې كَيْ لَا يَتَعَطَّلَ عَلَيْهِ طَرِيقُ الِانْتِفَاعِ، چې په ده د نفع اخستلو طريقه بيکاره نکړې شي وَلَا كَذَلِكَ غَيْرُ النَّافِذِ او غير نافذ (چې يو ارخ ئې بند وي) داسې نه ده لِأَنَّ الْوُصُولَ إِلَى إِرْضَائِهِمْ مُمْكِنٌ خکه چې ددوى راضى کاوه پورې رسيدل ممکن دی فَبَقِيَ عَلَى الشَّرِكَةِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا نو دا (غير نافذ کيدل به) حقيقتاً او حکماً شرکت باندې پاته پاتې وي

تشريح:- نو په دې دواړو لارو کې توپير دا شو.چه دلته د تولو اجازت ضروري دې.او په ړومبى کې ضرر نه کيدل ضروري دى.وجه د توپير دا ده.چه دلته دتولو راضى کول ممکن دى.نو هم په دې باندې مدار کيخودې شو.او په دې لاره کې حقيقتاً او حکماً واړه برابر شريکان اومنلې شو.او لاره مملوك او مشترك شمار کړې شوه.او په عامه لاره کې ضرر نه کيدل کافى دى.خکه چې هلته د تولو رضامندى حاصلول متعذر دى.نوکه د تولو رضامندى شرط وه.نو ددوى منافع به بيکاره پاتې کيدلې.په دې وجه دې کې هر يو مستقل مالك شمار کړې شوې دې.او مدار په ضرر نه کيدو باندې کيخودې شو.

## په لاره کښې يوکس باندې ناوه يا روشندان راپريوتو.او مړشو.نو د ديت مسئله

قَالَ:امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا أَشْرَعَ فِي الطَّرِيقِ رَوْشَنًا أَوْ مِيزَابًا) وکله ئې چې راوبنکلو لاره کې روشندان يا ناوه أَوْ نَحْوَهُ يا ددې پشان (بل څيز) فَسَقَطَ عَلَى إِنْسَانٍ نو دا په يو انسان باندې راپريوتلو فَعَطِبَ نو هغه هلاك شو فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو ديت به دده په عاقله باندې وي لِأَنَّهُ سَبَبٌ لِتَلَفِهِ خکه چې هغه دده د هلاکيدو سبب دې مُتَعَدٍّ فِيهِ متعدى دې بِشَغْلِهِ دده د مشغولولو په وجه هَوَاءَ الطَّرِيقِ د لارې فضاء (خلاء)، وَهَذَا مِنْ أَسْبَابِ الضَّمَانِ او دا د ضمان د اسبابوخنې دې وَهُوَ الْأَصْلُ او هم دا قاعده كليه ده وَكَذَلِكَ إِذَا سَقَطَ شَيْءٌ او هم دغه ړول (حکم دې) کله چې دې څيزونو کې څه شئ راپريوتلو مِمَّا ذَكَرْنَا فِي أَوَّلِ الْبَابِ کوم چې موږ په اول باب کې ذکر کړې دي

تشريح:- قاعده كليه داده.چه څوك د چا د قتل او هلاکت سبب جوړ شي.نو دده په عاقله باندې د هلاکونکى ديت واجبيږي.نوکه يوکس په لاره کې د ذکر شوو څيزونو څنې يو شئ جوړ کړو.او هغه په کس باندې راپريوځى.چه دې سره هغه مړ شي.نو په جوړونکى په عاقله باندې به ددې ديت واجب وي.په دومره خبرې سره مسئله صفا شوه.

فائده* د روشن تفسير صاحب د عين الهدايه رحمه الله روشن دان سره کړې دې.او بعضو په پاوړئ او بعضو په هغه لنتر (چت) سره کړې دې.کوم چې په لاره واچولې شى.چه ددې ارخه بل کور ته ورتللې شي. بهرحال که هر څه تفسير وي.حکم يو دې.

## د ناوې وغيره سره په ډغره خوړلو، د مړکيدو د ديت مسئله

وَكَذَا إِذَا تَعَثَّرَ بِنَقْضِهِ إِنْسَانٌ او هم دغه ړول (حکم دې) کله چې دده ملبې سره يو انسان اوخويدولو، أَوْ عَطِبَتْ بِهِ دَابَّةٌ يا ددې په وجه يو حيوان (څاروې) هلاك شو وَإِنْ عَثَرَ بِذَلِكَ رَجُلٌ اوکه په دې څوك سړې اوخويدلو فَوَقَعَ عَلَى آخَرَ نو هغه

په بل باندي راپريوتلو فَمَاتَا نو دوی دواړه مړه شو فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِي نو په دوی دواړو کي به ضمان په هغه سړي وی أَحْدَثَهُ فِيهِمَا چي دا جوړ کړي وو لِأَنَّهُ يَصِيرُ خکه چي جوړونکي داسي شو كَالدَّافِعِ إِيَّاهُ عَلَيْهِ لکه دا په بل کس باندي غورځونکي.

**تشريح:-** يعني د ناوي يا بلئ وغيره کومه چي غورځيدلي وه.او ددي کومه ملبه پرته وی.که په دي باندي څوك اوخويدلو.اومړ شو.نو په مالك به ديت واجب وی.او که يوکس اوخويدلو.او په خويدو سره په بل کس ورپريوتلو .چه په دي سره دوی دواړه مړه شو.نو په مالك به ددوی دواړو ضمان واجب وی.خکه چي دا خو داسي شوه.کويا چي مالك يوکس اونيولو.او په بل باندي ئي ورديکه کړو.نو هلته په ديکه کونکی باندي د دواړو ضمان واجب وی.دغه ډول به دلته کي هم وی.

### د ناوي په راپريوتلو کښي د ضمان او عدم ضمان دوي (دوه) صورتونه

وَإِنْ سَقَطَ الْمِيزَابُ وکه ناوه راپريوخی نُظِرَ کتلي به شی فَإِنْ أَصَابَ نو که هغه برخه لګيدلي وی مَا كَانَ مِنْهُ فِي الْحَائِطِ کومه برخه چي د ناوي په ديوال کي ده رَجُلًا په يو سړي باندي فَقَتَلَهُ نو هغه ئي قتل کړو فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو په ده باندي ضمان نشته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِيهِ خکه چي هغه په دي کي متعدی نه دي لِمَا أَنَّهُ وَضَعَهُ فِي مِلْكِهِ، خکه چي ده دا په پخپل ملك کي ايخودي ده

**حل اللغة:** ① **الميزاب:** ناوه،پرنالهٔ ② **حائط:** ديوال ﴾

**تشريح:-** که ناوه راپريوتله.او په دي سره څوك هلاك شو.نو ددي هغه برخه کومه چي ديوال کي لګيدلي وه.که هغه برخه لګيدلي وی.نو په مالك به ضمان نه وی.خکه چي پخپل ديوال کي د لګولو هغه ته اختيار وو.نو تعدی اونه موندي شوه.

وَإِنْ أَصَابَهُ وکه هغه برخه لګيدلي وی مَا كَانَ خَارِجًا مِنَ الْحَائِطِ کومه چي د ديوال نه بهر ده فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِي وَضَعَهُ فِيهِ نو په ايخودونکي به ضمان وی لِكَوْنِهِ مُتَعَدِّيًا فِيهِ خکه چي هغه په دي کي متعدی دي وَلَا ضَرُورَةَ اوهيڅ اړتيا نشته لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُرَكِّبَهُ فِي الْحَائِطِ خکه چي هغه لپاره په ديوال کي لګول ممکن وو

**تشريح:-** اوکه هغه برخه لګيدلي وی.کومه چي د ديوال نه بهر ده.نو ضمان به واجب وی.خکه چي دا دده تعدی ده.او ددي (دبهر لګولو) اړتيا هم ده ته نه وو.خکه چي ده به صرف پخپل ديوال کي لګولي وه.نه به ئي راوښکله.يا به ئي نالئ جوړه کړي وه.

وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ او په ده باندي کفاره نشته وَلَا يُحْرَمُ عَنِ الْمِيرَاثِ او نه به دي د ميراث نه محروميږی،لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقَاتِلٍ حَقِيقَةً خکه چي دي په حقيقت کي قاتل نه دي.

**تشريح:-** اوپه ده د قتل کفاره نه واجبيږی .او نه دا قاتل د ميراث نه محروميږی.خکه چي د محروميدو سبب هغه قتل دي.کوم چي په طريقه د مانعة الخلو قصاص يا کفاره واجب کړی.او دلته هيڅ هم واجب نه دی.... وبيناه في درس السراجی..

### د پرنالي په دواړو طرفونو کښي د ديت حکم

وَلَوْ أَصَابَهُ الطَّرَفَانِ جَمِيعًا وکه ددي دواړه غاړي ( طرفونه) لګيدلي وی وَعُلِمَ ذَلِكَ او دا خبره معلومه شوي وی وَجَبَ نِصْفُ الدِّيَةِ.نو نصف به واجب وی وَهُدِرَ النِّصْفُ او نصف به عبث ( فضول) وی كَمَا إِذَا جَرَحَهُ سَبُعٌ وَإِنْسَانٌ لکه ( مثلا) کله چي ده لره يو درنده ( ځناور) او انسان زخمی کړي وی وَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ وکه دا معلومه نشی أَيُّ طَرَفٍ أَصَابَهُ چي کوم اړخ په ده لګيدلي دي يَضْمَنُ النِّصْفَ نودي به د نصف ضامن وی اِعْتِبَارًا لِلْأَحْوَالِ د ټولو احوالو لحاظ ساتلو سره.

**تشريح:-** اوکه دواړه طرفونه لګيدلي وی.او دا معلومه وی.چه دواړه غاړي لګيدلی دی.نو په دي صورت کي به



نصف ديت واجب وی.او نصف به عبث ګرځولي شی.لکه مثلا که سړی لره شير او انسان زخمی کړي وی.چه په دي سره هغه مړ شی.نو په إنسان به نصف ديت واجب وی.او که دا معلومه نشی.چه کومه غاړه لګيدلي ده.نو بيا به هم د نصف ضامن وی.ولي؟ خکه چي دي کي د دواړو طرفونو رعايت دي. يعني د يو اړخه د لګيدو په صورت کي پوره ضمان واجب دي.او د يو اړخه هيڅ هم واجب نه دي.نو موږ په منځ کي اوګرځولو.چه نصف واجب دي.نو د دواړو رعايت ( او لحاظ) اوشو.

### د کور ځرخولو نه روسته د لاري د روښندان راغورځيدو مسئله

وَلَوْ أَشْرَعَ جَنَاحًا إِلَى الطَّرِيقِ وکه ده په لاره کي روښندان اوښکلو ثُمَّ بَاعَ الدَّارَ بيا ئي کور خرڅ کړو فَأَصَابَ الْجَنَاحُ رَجُلًا نو دا روښندان يو سړی ته اولګيدو فَقَتَلَهُ نو هغه ئي مړ کړو أَوْ وَضَعَ خَشَبَةً فِي الطَّرِيقِ يا هغه په لاره کي لرګي کيخودو ثُمَّ بَاعَ الْخَشَبَةَ بيا ئي لرګي خرڅ کړو وَبَرِئَ إِلَيْهِ مِنْهَا او مشتری سره ئي د لرګی نه د براءت شرط اولګولو فَتَرَكَهَا الْمُشْتَرِي نو مشتری لرګي پريخودو حَتَّى عَطِبَ بِهَا إِنْسَانٌ تردي چي ددي په وجه څوك انسان هلاك شو فَالضَّمَانُ عَلَى الْبَائِعِ نو ضمان به په بائع وی لِأَنَّ فِعْلَهُ خکه چي د بائع فعل (ايخودل وَهُوَ الْوَضْعُ لَمْ يَنْفَسِخْ بِزَوَالِ مِلْكِهِ دده ملك د زوال نه نه دی فسخ شوی وَهُوَ الْمُوجِبُ اوموجب د ضمان هم دا (د بائع فعل) دي.

**تشريح:-** که زيد د کور نه بهر په لاره کي بلئ جوړه کړله.يا زيد په لاره کي لرګي کيخودو.بيا زيد دا کور يا دا لرګي خالد باندي خرڅ کړو.او زيد خالد سره دا شرط هم کړي وو.چه زه د هرهغه ضمان نه بری يم. کوم چي لرګی يا چهجه وغيره سره موجود شي.بيا د لرګی په وجه يا د روښندان يا چهجي په وجه څوك سړي مړ شو.نو ضمان به په زيد واجب وی.په خالد به نه وی.خکه چي د ضمان اصل موجب هغه د زيد فعل دي.چه هغه داسي حرکت ولي کړي دي.او اوس اګرچه دده ملکيت نشته.خو په عدم ملك سره د فعل زوال نه ثابتيږی.

### په لاره کښي د سکروټي ( انګار) ايخودو سره په سوزيدو د ضمان حکم

وَلَوْ وَضَعَ فِي الطَّرِيقِ جَمْرًا اوکه ده په لاره کي انګار ( سروټکه) کيخوده فَأَحْرَقَ شَيْئًا نو انګار څه شئ اوسوځولو يَضْمَنُهُ نوهغه به ضامن وی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ خکه چي هغه په دي کي متعدی دي وَلَوْ حَرَّكَتْهُ الرِّيحُ او که انګار ته هوا حرکت ورکړو إِلَى مَوْضِعٍ آخَرَ دوهم ځائي اړخ ته ثُمَّ أَحْرَقَ شَيْئًا بيا انګار څه شئ اوسوزولو لَا يَضْمَنُهُ نو هغه به ضامن نه وی لِنَسْخِ الرِّيحِ فِعْلَهُ د هوا د فسخ کاوه په وجه دده فعل لره

**تشريح:-** که زيد په لاره کي اور کيخودو.او په دي سره څوك اوسوزيدو.او مړ شو.نو زيد به ضامن وی.خکه چي دا دده زياتي دي.چه هغه په لاره کي اور کيخودي دي.اوکه د هوا په وجه دا انګار د هغه ځائي نه والوځی.او بل ځائي ته اورسيږی.او په دي سره څوك اوسوزی.او مړ شی.نو اوس به زيد ضامن نه وی.خکه چي اوس د زيد فعل نه دي پاتي شوي.بلکه د هوا فعل شو.

وَقِيلَ او وئيلی شوی إِذَا كَانَ الْيَوْمُ رِيحًا چي کله دغه ورځ د سختي هوا والا وی يَضْمَنُهُ نو هغه به ددي ضامن وی لِأَنَّهُ فَعَلَهُ خکه چي هغه دا کار کړي دي مَعَ عِلْمِهِ بِعَاقِبَتِهِ سره ددي چي ددي کار د انجام نه خبر وو وَقَدْ أَفْضَى إِلَيْهَا او دده فعل دي انجام اړخ ته رسيدلي دي فَجُعِلَ كَمُبَاشَرَتِهِ نو مفضی (متعدی) کيدل به دده د مباشرت (او قصد) مثل شمارلي کيږی.

**تشريح:-** بعضو حضراتو وئيلی دی.که په دغه ورځو کي سخته هوا چليږی.لکه د غنمو کټ کاوه په زمانه کي يوکس په لاره کي اور کيخودو.او هغه د هوا په ځائي بل ځائي ته والوځی.او څه شئ اوسوزوی.نو اوس به د اور ايخودونکي ضامن وی.خکه چي دلته کي زيد ته معلومه وه.چه ددي انجام به دا وی.او آخر د هغي انجام مخي ته هم راغي.نو د زيد فعل به د هوا په وجه فسخ نه شمارلي کيږی.بلکه دا به پاته شمارلي کيږی.او په زيد به ضمان واجب وی.نو هرکله چي ده ته دا معلومه وه.چه ددي انجام به دي حالت ته رسيږی.نو ددي سبب به د مباشرت (او

ارادي) په مرتبه كي راكښته كولي شي.اوكه ده مباشرتا (او قصدا) څه شئ سوزولي وي.نو په ده به ضمان واجب وو.دغه ډول به دلته كي هم ضمان واجب وی.

### د مزدورانو په روشندان يا بلئ راوېنكلو سره د يوكس د هلاكيدو مسئله

وَلَوِ اسْتَأْجَرَ رَبُّ الدَّارِ الْعَمَلَةَ او كه د كور مالك ګلكاران په مزدورئ باندي اونيول لِإِخْرَاجِ الْجَنَاحِ أَوِ الظُّلَّةِ چي روشندان يا بلئ بهر ته راوباسي فَوَقَعَ نو هغه په يوكس راپريوتلو فَقَتَلَ إِنْسَانًا نو هغي يو انسان قتل كړو قَبْلَ أَنْ يَفْرُغُوا مِنَ الْعَمَلِ ددی د كار نه د فارغيدو نه مخكي فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمْ نو ضمان به په ګلكارانو وی لِأَنَّ التَّلَفَ بِفِعْلِهِمْ وَمَا لَمْ يَفْرُغُوا او تركومه پوري چي دوی فارغ شوی نه وی لَمْ يَكُنِ الْعَمَلُ مُسَلَّمًا إِلَى رَبِّ الدَّارِ نو كار به د كور مالك ارخ ته سپارلي شوي نه شمارلي كيږي وَهَذَا لِأَنَّهُ انْقَلَبَ فِعْلُهُمْ قَتْلًا او دا ځكه چي ددوی فعل قتل سره بدل شو حَتَّى وَجَبَتْ عَلَيْهِمُ الْكَفَّارَةُ تردي چي په دوی باندي كفاره واجب ده وَالْقَتْلُ غَيْرُ دَاخِلٍ فِي عَقْدِهِ او قتل د مستاجر په عقد كي نه داخليږي فَلَمْ يَتَسَلَّمْ فِعْلَهُمْ إِلَيْهِ نو د ګلكارانو فعل به مستاجر ارخ ته نه منتقل كيږي. فَاقْتَصَرَ عَلَيْهِمْ نو دا فعل به په جوړونكو باندي منحصر وی.

تشريح:- زيد څه ګلكاران په اجرت باندي اونيول.چه هغوی روشندان يا بلئ وغيره راوباسی.نو تركومه پوري چي ګلكاران كار خلاص نكړي.او اجرت وغيره وانخلي.او دا زيد ته حواله نكړي.تر هغه وخته پوري به دا ددوی ذمه داری شمارلي كيږي.او كله چي فارغ شي.او هغوی ته ني حواله كړي.نو اوس به هغوی ذمه دار نه وی.بلكه زيد به پخپله ذمه دار وی.نو په ړومبی صورت كي كه څوك سړي په دی كي ګير شي.او مړ شي.نو په ګلكارانو به ضمان نه وی.او په دوهم صورت كي به په زيد باندي ضمان وی.ځكه چي ړومبی صورت كي د ګلكارانو فعل قتل شمارلي كيږي.

ددي دليل دا دي.چه كفاره هم ګلكارانو باندي واجبيږي.حالانكه زيد عقد اجاره كړي ده.عقد د قتل ني نه وو كړي.په دي وجه به ددوی فعل هم په دوی باندي منحصر وی.وروسي د دوهم صورت بيان دي.

### د كار نه د فراغت نه روسته راغورځيدو باندي د ضمان حكم

وَإِنْ سَقَطَ بَعْدَ فَرَاغِهِمْ او كه دا ددوی د فارغ كيدو نه روسته غورځيدلي دي فَالضَّمَانُ عَلَى رَبِّ الدَّارِ اسْتِحْسَانًا نو د استحسان په بناء به د كور په مالك ضمان واجب وی لِأَنَّهُ صَحَّ الْاِسْتِئْجَارُ ځكه چي په اجرت نيول صحيح دی حَتَّى اسْتَحَقُّوا الْأَجْرَ تردي چي هغوی داجرت مستحق شوی دی وَوَقَعَ فِعْلُهُمْ عِمَارَةً وَإِصْلَاحًا او د هغوی فعل جوړول،، شوی دی فَانْتَقَلَ فِعْلُهُمْ إِلَيْهِ نو ددوی فعل به د كور مالك ارخ ته منتقل كيږي فَكَأَنَّهُ فَعَلَ بِنَفْسِهِ ګويا چي رب الدار دا كار پخپله كړي دي فَلِهَذَا يَضْمَنُهُ په دي وجه به هغه ددي ضامن وی.، تعمير او

تشريح:- په دي صورت كي ګلكارانو فعل زيد ارخ ته منتقل كيږي.ځكه چي فعل (كار) جوړول او مرمت كول دی.قتل نه دي.نو دا داسي شوه.ګويا چي دا كار زيد پخپله كړي دي.چه په دي سره څوك مړ شو.نو ضمان به هم په ده واجب وی.

### په عامه لاره كښي اوبو اچولو سره د يوكس د هلاكيدو مسئله

وَكَذَا إِذَا صَبَّ الْمَاءَ فِي الطَّرِيقِ او هم دغه ډول (به ضمان واجب وی) كله ني چي لاره كي اوبه واچولي. فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ أَوْ دَابَّةٌ نو په دي سره څوك انسان يا حيوان (څاروي) هلاك شو وَكَذَا إِذَا رَشَّ الْمَاءَ او هم دغه ډول (حكم دي) كله ني چي لاره كي اوبه چړكاو كړي أَوْ تَوَضَّأَ يا ني اودس اوكړو لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځكه چي هغه په دي كي متعدی دي بِإِلْحَاقِ الضَّرَرِ بِالْمَارَّةِ تيريدونكو سره د ضرر لاحق كاوه په وجه.

تشريح:- كه زيد په لاره كي اوبه واچولي.يا ني اودس اوكړو.يا ني چړكاو اوكړو.او په دي كي څوك اوخويدلو . او مړ شو.نو ضمان به واجب وی.ځكه چي د زيد د ارخه تعدی مونډلي شوي ده.ځكه چي هغه تيريدونكو ته ضرر



رسولي دي.

### په بنده كوڅه كښي اوبو اچولو سره به ضامن وی او كه نه؟

بِخِلَافِ مَا إِذَا فَعَلَ ذَلِكَ فِي سِكَّةٍ په خلاف د هغي صورت كله چي ده په هغه كوڅه كي كړي وی غَيْرِ نَافِذَةٍ كومه چي عامه نه وی وَهُوَ مِنْ أَهْلِهَا او هغه ددي د اوسيدونكو څني وی أَوْ قَعَدَ يا دي كيناستلو أَوْ وَضَعَ مَتَاعَهُ يا ني خپل سامان كيښودو لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ ځكه چي هر يو ته داحق حاصل دي.أَنْ يَفْعَلَ ذَلِكَ فِيهَا چي هغه په دي كي كار اوكړي لِكَوْنِهِ مِنْ ضَرُورَاتِ السُّكْنَى دده د اوسيدو په ضروورياتو كي د كيدو په وجه كَمَا فِي الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ لكه مشتركه كوڅه كي

تشريح:- دا د عامي لاري مسئله ده.اوكه عامه لاره نه وی.بلكه بنده كوڅه وی.نو په دي كوڅه كي اوسيدونكو خلګو كي كه يوكس اوبه واچولي.يا هلته كيناستلو.يا ني هلته څه سامان كيخودو.چه په دي سره څوك اوخويدو.او مړ شو.نو په ده به ضمان نه وی.ځكه چي دا كار دلته دده په ضررورياتو كي داخل دي.لكه څنګه چي مشتركه كوڅه كي هر شريك ته دا حق وی.چه هلته خپل ضروريات پوره كړي.دغه ډول به دلته كي هم وی.

### چه د خويځيدو په مقدار ني اوبه نه وی اچولي نو د ضمان مسئله

قَالُوا: مشائخ فرمايي هَذَا ادا (ضمان) هغه وخت دي. إِذَا رَشَّ مَاءً كَثِيرًا كله چي ده زياتي اوبه چړكاو كړي وی بِحَيْثُ يُزْلَقُ بِهِ عَادَةً، چي په دي سره په عامه توګه (عام طور) باندي خويځيدونكي پيدا كيږي أَمَّا إِذَا رَشَّ مَاءً قَلِيلًا بهرحال كله ني چي لږي اوبه چړكاو كړي وی كَمَا هُوَ الْمُعْتَادُ لكه څنګه چي دا معتاد (او عام عادت) دي. وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ لَا يُزْلَقُ بِهِ عَادَةً او ښكاره دا وی.چه په دي سره خوځيدل نه پيدا كيږي لَا يَضْمَنُ نو هغه به ضامن نه وی.

تشريح:- صرف هغه وخت به ضمان وی.كله چي زياتي اوبه چړكاو كړي.چه په دي سره خوئيدل پيدا شي.ګني كه دومره لږي اوبه ني چړكاو كړي.چه په دي سره خوئيدل نه پيدا كيږي.نو بيا به په چړكاو كونكي باندي ضمان واجب نه وی.

### په قصد سره د اوبو په ځائي تللو سره په مړكيدو د ضمان حكم

وَلَوْ تَعَمَّدَ الْمُرُورَ فِي مَوْضِعِ صَبِّ الْمَاءِ او كه ده قصد كړي وی د تيريدو په داسي ځائي كي كوم ځائي چي اوبه راغورځيږي فَسَقَطَ نو هغه په راپريوتلو لَا يَضْمَنُ الرَّاشُّ نو چړكاو كونكي به ضامن نه وی لِأَنَّهُ صَاحِبُ عِلَّةٍ ځكه چي تيريدونكي صاحب د علت دي.( چي د غورځيدو كار ني اوكړو) وَقِيلَ او وئيلي شوی دی هَذَا چي دا (د ضمان عدم وجوب) هغه وخت دي. إِذَا رَشَّ بَعْضَ الطَّرِيقِ كله چي دي د لاري په بعض برخه باندي چړكاو اوكړی لِأَنَّهُ يَجِدُ مَوْضِعًا لِلْمُرُورِ ځكه چي تيريدونكي به د تيريدو ځائي مومی لَا أَثَرَ لِلْمَاءِ فِيهِ حالانكه دغه ځائي كي د اوبو اثر نشته فَإِذَا تَعَمَّدَ الْمُرُورَ عَلَى مَوْضِعِ صَبِّ الْمَاءِ نو هركله چي ده (تيريدونكی) د اوبو غورځيدو په ځائي باندي د تيريدو اراده اوكړله مَعَ عِلْمِهِ بِذَلِكَ د هغه د پوهي باوجود په دي (اوبو غورځيدو) باندي لَمْ يَكُنْ عَلَى الرَّاشِّ شَيْءٌ نو په چړكاو كونكي به هيڅ نه وی.

تشريح:- صورت د مسئلي دا دي چي په لاره كي چړكاؤ شوي دي اوخوان راغلو بنه وينی چي په دي لار كي چړكاؤ شوي دي خوبيا هم په قصد سره بريت تاوهی.او په هغه ځائي تيريږي.كوم ځائي چي اوبه دی.نو په ړكاؤ كونكی به ضمان واجب نه وی.ځكه چي دلته د تيريدونكی فعل علت دي.او د چړكاو كونكی فعل سبب دي.او اصول دا دي.چه كله په علت كي دا صلاحيت وی.چه د حكم اضافت دي ارخ ته كيداي شي.نو بيا په سبب او شرط باندي ضمان نه وی.او دلته د تيريدونكی فعل علت صالحه دي.ځكه چي دا د اختيارمند فاعل فعل دي البته عالمانو دا فرمائيلی دی چي دا حكم په هغه وخت كي دي چي چړكاؤ په پوره لاره باندي نه دی.بلكه په بعضي لاره باندي دی.اوځه لاره اوچه دی چرته تيريدونكی تيريدي شي.

وَإِنْ رَشَّ جَمِيعَ الطَّرِيقِ او كه ده په پوره لاره چړكاو اوكړو يَضْمَنُ نو هغه به ضامن وی. لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِي الْمُرُورِ ځكه چي دا (

غورځیدونکې) په تیریدو کې مجبور دې وَكَذٰلِكَ الْحُكْمُ او هم دا حکم دې فِي الْخَشَبَةِ الْمَوْضُوعَةِ فِي الطَّرِيقِ په لاره کې د ایخودلیې شوی لرګی فِي أَخْذِهَا جَمِيعَهُ چې دې ګیره کړې وی پوره لاره أَوْ بَعْضَهُ یا بعضې لاره

**تشریح:-** اوکه زید په پوره لاره کې اوبه چړکاو کړې دی.نو زید به ضامن وی.ځکه چې پخپل ارتیا کې د تللو لپاره خالد (په تیریدو باندې) مجبور وو.او هغه د زید د فعل په وجه اوغورځیدو.او مړ شو.نو په زید به ضمان واجب وی.دغه ډول که زید په لاره کې لرګی واچول.نو بیا هم دا تفصیل او حکم دې.

## د مالك په حکم اوبو اچولو سره د څه څيز د هلاکیدو د ضمان مسئله

وَلَوْ رَشَّ فِنَاءَ حَانُوتٍ بِإِذْنِ صَاحِبِهِ اوکه ده د دوکان په احاطه کې د دوکان د مالك په اجازت سره اوبه چهړکاو کړې وی فَضَمَانُ مَا عَطِبَ عَلَى الْآمِرِ اسْتِحْسَانًا نو کوم شئ چې هلته هلاك شو.استحساناً به د هغې ضمان په حکم کونکی باندې

**تشریح:-** زید مشکی ته حکم اوکړو.چه ددې دوکان مخې ته په سړك باندې نه، بلکه د دوکان په احاطه کې اوبه چړکاو کړه.هغه چړکاو کړې.نو که هلته څوك اوخویدلو.نو مشکی به ددې ضامن نه وی.بلکه د دوکان مالك به ددې ضامن وی.

## د دوکان مخې ته په بلئ جوړولو سره د بل کس په مړکیدو د ضمان مسئله

وَإِذَا اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا اوکله نې چې یو مزدور په مزدورئ اونیولو لِيَبْنِيَ لَهُ فِي فِنَاءِ حَانُوتِهِ چې دده د دوکان په احاطه کې دده لپاره کور جوړ کړی فَتَعَقَّلَ بِهِ إِنْسَانٌ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْعَمَلِ نو دده د عمل نه د فارغ کیدو نه روسته په دې سره څوك انسان اوخویدلو فَمَاتَ او مړ شو يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى الْآمِرِ اسْتِحْسَانًا نو ضمان به استحساناً په حکم کونکی باندې واجب وی وَلَوْ كَانَ أَمَرَهُ بِالْبِنَاءِ اوکه هغه ته نې حکم ورکړې وی فِي وَسَطِ الطَّرِيقِ د لارې په منځ کې د کور جوړولو، فَالضَّمَانُ عَلَى الْأَجِيرِ لِفَسَادِ الْأَمْرِ نو د حکم د فساد په وجه به ضمان په مزدور وی.

**تشریح:-** زید خالد ته اووئیل.چه زما د دکان مخې ته مثلاً بلئ (چجه یا نیم چتې) جوړه کړه.هغه جوړه کړله.کله چې هغه د کار نه فارغ شو.اوس څوك په دې کې اوخویدلو.او مړ شو.نو ضمان به په زید وی. اوکه زید خالد ته اووئیل.چه د سړك په منځ کې یوه اطاق جوړه کړه.او خالد جوړه کړله.چه په دې سره کس تیندك (ډغره) اوخوړو.او مړ شو.نو دلته به په خالد باندې ضمان وی.ځکه چې ړومبی صورت کې حکم صحیح دې.او په دوهم صورت کې حکم صحیح نه دې.بلکه فاسد دې.ځکه چې خالد ته به دا علم وی.چه د سړك په منځ کې څوك کور نه جوړه وی.

## په غیر مملوکه مځکه کښې کوهې کنستل یا کانړې ایخودو سره په مړکیدو کښې د ضمان حکم

قَالَ:امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ او چاچه څاه اوکنستلو.د مسلمانانو په لاره کې أَوْ وَضَعَ حَجَرًا یا نې کانړې کیخودو. فَتَلِفَ بِذٰلِكَ إِنْسَانٌ، نو ددې په وجه څوك انسان هلاك شو فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو دهغه دیت به دده په عاقله باندې وی وَإِنْ تَلِفَتْ بِهِ بَهِيمَةٌ اوکه یو حیوان (څاروې) هلاك شوې وی فَضَمَانُهَا فِي مَالِهِ نو د هغې ضمان به دده په مال کې لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه چې دې په دې کې متعدی دې فَيَضْمَنُ مَا يَتَوَلَّدُ مِنْهُ نو کوم شئ چې ددې نه پیدا کیږی.دې به دهغې ضامن وی. غَيْرَ أَنَّ الْعَاقِلَةَ تَتَحَمَّلُ النَّفْسَ خو خاندان د نفس برداشت کولای شی دُونَ الْمَالِ د مال نشی کولې فَكَانَ ضَمَانُ الْبَهِيمَةِ فِي مَالِهِ نو د څاروی ضمان به دده په مال کې وی وَإِلْقَاءُ التُّرَابِ او په لاره کې خاوره اچول وَاتِّخَاذُ الطِّينِ فِي الطَّرِيقِ یا خټه جوړول بِمَنْزِلَةِ إِلْقَاءِ الْحَجَرِ وَالْخَشَبَةِ د کانړی او لرګی اچولو پشان دی لِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې.

**تشریح:-** که یوکس د خپل مملوکه زمکې نه علاوه کې څاه اوکنستلو.یا نې کانړې کیخودو.چه په دې کې انسان یا حیوان (څاروې) پریوتلو.یا نې ډغره (ټکره) اوخوړله.او مړ شو.نو په دواړو صورتونوکې به ضمان واجب وی.ځکه چې دا دده زیاتې دې.چه ده په لاره کې دا حرکت کړې دې.خو د سړی دیت به عاقله باندې وی.او دڅاروی ضمان



به پخپله ددې سړی په مال کې واجب وی.ځکه چې خاندان د مال برداشت نشی کولې.صرف د نفس کولې شی.او دغه ډول نې په لاره کې خاوره واچوله.یا نې خټه جوړول پیل کړل.نو دا هم تعدی ده. ددې هم دغه حکم دې.

## د لارې په صفا کولو یا په دې کښې د ګند وغیره په غورځولو سره د ضمان مسئله

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَنَسَ الطَّرِيقَ په خلاف ددې چې کله ده لاره صفا کړله فَعَطِبَ بِمَوْضِعِ كَنْسِهِ إِنْسَانٌ حَيْثُ نو دده د صفا کاوه په ځائې کې څوك انسان هلاك شو لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُتَعَدٍّ.ځکه چې دې متعدی نه دې فَإِنَّهُ مَا أَحْدَثَ شَيْئًا فِيهِ ځکه چې ده په دې (لاره) کې هیڅ نه دی جوړ کړی إِنَّمَا قَصَدَ دَفْعَ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ ده خو د لارې نه د تکلیف ده شئ لرې کاوه اراده کړې ده حَتَّى لَوْ جَمَعَ الْكُنَاسَةَ فِي الطَّرِيقِ تردې که ده په لاره کې ډیران جمع کړو وَتَعَقَّلَ بِهَا إِنْسَانٌ او په دې کې یو سړې اوخویدلو كَانَ ضَامِنًا نو هغه به ضامن وی لِتَعَدِّيهِ دده د متعدی کیدو په بِشَغْلِهِ لارې د مشغولولو په وجه.

**تشریح:-** که زید لاره صفا کړله.نو دا جرم نه دې.بلکه عبادت دې.خو کوم ځائې چې ده صفا کړې دې.هلته خالد اوخویدلو.او مړ شو.نو زید به ضامن نه وی.البته که ډیران نې په لاره کې جمع کړو.نو ضامن به وی. ځکه چې دا په لاره کې اچول تعدی ده.نو ضامن به وی.

## د یو سړی کانړې ایخودل او د بل سړی بل ځائې ته کولو نه روسته د یو سړی د مړه مسئله

وَلَوْ وَضَعَ حَجَرًا او که یو کس (په لاره کې) کانړې کیخودو فَنَحَّاهُ غَيْرُهُ عَنْ مَوْضِعِهِ نو دده نه علاوه بل کس دا د لارې نه اخوا کړو فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ نو ددې په وجه څوك انسان هلاك شو فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِي نَحَّاهُ نو ضمان به په هغه کس وی چا چې دا لرې کړې دې.

**تشریح:-** زید په لاره کې یو کانړې کیخودو.خالد دا (کانړې) ددې ځائې نه اخوا کړو.او په بل ځائې کې نې لاره کې کیخودو.اوس بکر په دې راپریوتلو.او مړ شو.نو ضمان به په خالد وی.په زید به نه وی.ځکه چې دلته کې دوې (دوه) فعلونه دی.یو د زید دې.او بل د خالد دې.د خالد په فعل سره د زید فعل منسوخ شو.

لِأَنَّ حُكْمَ فِعْلِهِ قَدِ انْتَسَخَ ځکه چې د هغه (ړومبی ایخودونکی) فعل منسوخ شوې دې لِفَرَاغِ مَا شَغَلَهُ د هغه لارې د خالی کیدو په وجه کومه چې ده مشغوله کړې وه وَإِنَّمَا اشْتَغَلَ بِالْفِعْلِ الثَّانِي مَوْضِعٌ آخَرُ او د دوهم په فعل سره دوهم ځائې مشغوله کیږی.

**تشریح:-** ځکه چې د زید په فعل سره د لارې کومه برخه مشغوله شوې وه.اوس دغه لاره خالی شوې ده.نو د هغه فعل ورك (غیر موجود) شو.البته د خالد په فعل سره د لارې بله برخه مشغوله شوه.چه ددې په وجه بکر مړ شوې دې.نو ضمان به په خالد واجب وی.

## په لاره کښې ئې کوهې اوکنستلو او په دې کښې څوك مړه شو.نو څه حکم دې !

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په جامع صغیر کې دی فِي الْبَالُوعَةِ د هغه کندوړی په اړه کې يَحْفِرُهَا الرَّجُلُ فِي الطَّرِيقِ کوم چې سړې په لاره کې اوکنی فَإِنْ أَمَرَهُ السُّلْطَانُ بِذٰلِكَ نو هغه ته بادشاه ددې حکم کړې وی وَأَجْبَرَهُ عَلَيْهِ یا نې هغه مجبور کړې وی لَمْ يَضْمَنْ نو په هغه به ضمان نه وی لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه چې هغه غیر متعدی دې حَيْثُ فَعَلَ ځکه چې هغه کوم څه کړی دی مَا فَعَلَ بِأَمْرِ مَنْ هغه سړی په حکم سره نې کړی دی مَنْ لَهُ الْوِلَايَةُ فِي حُقُوقِ الْعَامَّةِ چا ته چې په عامو حقوقو کې ولایت دې. وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ اوکه دهغه د حکم نه بغیر وی فَهُوَ مُتَعَدٍّ نو هغه متعدی دې إِمَّا بِالتَّصَرُّفِ فِي حَقِّ غَيْرِهِ یا خو د خان نه د علاوه په حق کې د تصرف په وجه، أَوْ بِالِافْتِيَاتِ عَلَى رَأْيِ الْإِمَامِ یا د امام په رائې باندې د مخکې کیدو په وجه أَوْ هُوَ مُبَاحٌ یا دا په دې وجه چې دا جائز کار وو مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چې دا د سلامتیا شرط سره مقید دې وَكَذَا الْجَوَابُ،..او هم دغه ډول ځواب دې عَلَى هٰذَا التَّفْصِيلِ د هغه تفصیل مطابق فِي جَمِيعِ مَا

فَعَلَ فِي طَرِيقِ الْعَامَّةِ په هغه ټولو کارونو کې کوم چې هغه دعامو خلګو په لاره کې کړی دی مِمَّا ذَكَرْنَاهُ د هغه کارونو څخه، کوم چې مونږ ذکر کړی دی وَغَيْرِهِ او ددې نه په علاوه کې لِأَنَّ الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ ځکه چې معنی به نه مختلف کیږي.

حل اللغة: البالوعة: ددې معنی موری (د اوبو کندوړې) ده. یعنی په دیوال کې داسې سورې چې په دې کې د دننه اړخه اوبه بهر ته راوځي. چه ددې ژباړه په کندوړی سره شوې ده. او کندوړی هغې ته اوبي. چه هغې ته اوبه راځي. او جمع کیږي.

تشریح:- یو سړی چې په لاره کې کوم تصرف د امام په اجازت یا دده په حکم سره کړې دې. او په دې ځوك په تکلیف شي. او مړ شي. نو دده د نه متعدی کیدو په وجه به په ده ضمان واجب نه وي.

تشریح:- اوکه د امام د اجازت نه بغیر ئې اوکړي. نو ضامن به وي. ځکه چې اوس هغه متعدی (او زیاتي) کونکې دې. او د متعدی کیدو درې وجوهات دي: ① د نورو په حق کې د تصرف کاوه په وجه ② د امام په رائې باندې مخکې کیدو په وجه، ③ مباح (جائز) کار چې د سلامتیا شرط سره مقید وي. نو د لارې نه انتفاع اګرچه جائز ده. خو شرط دا دې. چه په دې سره د چا نقصان نه وي. او دلته نقصان اوشو. او د ټولو تصرفاتو هم دا حکم دې.

**که پخپل ملك یا د کور په کوهي کښې څوك مړ شي نو د ضمان حکم**

وَكَذَا إِنْ حَفَرَهُ فِي مِلْكِهِ او هم دغه ډول که پخپل ملك کې ئې اوکنستلو لَا يَضْمَنُ نو ضامن به نه وي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه چې هغه متعدي نه دې وَكَذَا إِذَا حَفَرَهُ فِي فِنَاءِ دَارِهِ او هم دغه ډول (به ضامن نه وي). چه ده د خپل کور په احاطه کې اوکنستلو لِأَنَّ لَهُ ذَلِكَ ځکه چې هغه ته د کنستلو حق شته لِمَصْلَحَةِ دَارِهِ د خپل کور د مصلحت لپاره وَالْفِنَاءُ فِي تَصَرُّفِهِ او احاطه دده په تصرف کې ده وَقِيلَ، او وئیلې شوی دی هَذَا چې دا (نه ضامن کیدل) هغه وخت دی إِذَا كَانَ الْفِنَاءُ مَمْلُوكًا لَهُ کله چې احاطه دده مملوك وي. أَوْ كَانَ لَهُ حَقُّ الْحَفْرِ فِيهِ یا هغه ته په دې کې د کوهي کنستلو حق وي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه چې هغه غیر متعدی دې أَمَّا إِذَا كَانَ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ بهرحال کله چې دا د مسلمانانو د ډلې لپاره وي أَوْ مُشْتَرَكًا یا مشترك وي بِأَنْ كَانَ فِي سِكَّةٍ غَيْرِ نَافِذَةٍ په دې طریقه چې دا په غیرنافذه (بنده) کوڅه کې وي فَإِنَّهُ يَضْمَنُهُ نو ددې به ضامن وي. لِأَنَّهُ مُسَبِّبٌ ځکه چې دې داسې مسبب دې مُتَعَدٍّ چې متعدی دې وَهَذَا صَحِيحٌ او هم دا صحیح ده.

تشریح:- څنګه مذکوره امورو کې د امام د اجازت په صورت کې ضمان واجب نه وي. دغه ډول که په مملوکه مځکه کې هم دا تصرفات اوکړي. نو بیا به هم ضمان نه وي. ځکه چې دې کې دده د اړخه هیڅ تعدی نشته.
او که د لارې نه یو اړخ ته د خپل کور په غولې (صحن) کې چې دې ته د کور احاطې سره تعبیر کړې شوې دې. مذکوره تصرفات کړی وي. نوکه دده مملوك وي نوپه ده باندې ضمان نشته.
اوکه غیر مملوك دې. خو دامام په اجازت وي. یا د خلګو لپاره د مضر نه کیدو په وجه ده ته د کوهي وغیره کنستلو په دې کې حق حاصل دې. بیا به هم په ده ضمان واجب نه وي. ځکه چې دده د اړخه هیڅ تعدی نشته.

**د لارې په کوهي کښې غورځیدو سره د یو کس د غم یا اولږې نه د مړکیدو مسئله**

وَلَوْ حَفَرَ فِي الطَّرِيقِ اوکه په لاره کې ئې اوکنستلو وَمَاتَ الْوَاقِعُ فِيهِ جُوعًا أَوْ غَمًّا او په دې کې غورځیدونکې د غم یا اولږې په وجه مړ شو لَا ضَمَانَ عَلَى الْحَافِرِ نو په کنستونکی به ضمان نه وي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ[1] د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز لِأَنَّهُ مَاتَ لِمَعْنًى ځکه چې هغه داسې سبب سره مړ شوې دې فِي نَفْسِهِ. چه دا د غورځیدونکی په نفس کې دې فَلَا يُضَافُ إِلَى الْحَفْرِ وَالضَّمَانُ إِنَّمَا يَجِبُ او ضمان واجبیږي إِذَا مَاتَ مِنَ الْوُقُوعِ هغه وخت کله چې دا د غورځیدو په وجه

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في قاضيخان (٤٠٣١٤) والدرالمحتار (٤٢١١٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٤١٢)-



مړ شي.

تشریح:- زید په لاره کې داسې خانې کې ځاه اوکنستلو. کوم خانې چې هغه ته د کوهي کنستلوحق نه وو. چه په هغې کې خالد اوغورځیدو. او مړ شو. نوکه د مرګ سبب غورځیدل وي. نو ضمان به واجب وي. خوکه هغه د غورځیدو په وجه نه وي مړ شوې. بلکه د یرې په وجه مړ شوې وي. یا د اولږې په وجه مړ شوې وي. نو په دې کې اختلاف دې. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د اولږې او غم په وجه د مړکیدو په صورت کې په کنستونکی باندې ضمان نشته. ځکه دا خو داسې شوه. لکه چې خالد پخپله مړ شوې دې. اوپه کوهي کنستونکی به په هغه صورت کې ضمان وي. کله چې صرف د غورځیدو په وجه مړ شي. چه په کوهي کې د دیکه ورکونکې شمار کړی شي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام ابویوسف رحمه الله إِنْ مَاتَ جُوعًا که د اولږې په وجه مړ شي فَكَذَلِكَ نو هم دغه ډول دې. (یعنی ضمان نشته) وَإِنْ مَاتَ غَمًّا اوکه د غم په وجه مړ شي فَالْحَافِرُ ضَامِنٌ لَهُ نو کنستونکې ددې ضامن دې لِأَنَّهُ لَا سَبَبَ لِلْغَمِّ سِوَى الْوُقُوعِ ځکه چې د غم سبب د غورځیدو نه علاوه هیڅ نه دې. أَمَّا الْجُوعُ بهرحال اولږه، فَلَا يَخْتَصُّ بِالْبِئْرِ دا د کوهي سره خاص نه ده.

تشریح:- د امام ابویوسف رحمه الله فرمان دې. چه په اولږه او غم کې توپیر دې. ځکه چې اولږه کې د زید هیڅ دخل نشته. خو په غم او یره کې د زید دخل دې. ځکه چې خالد ته کومه یره او خوف پیدا شوې دې. د هغې سبب صرف کوهي کې غورځیدل دی. په دې وجه د اولږې په صورت کې خو به په زید باندې ضمان نه وي. البته دغم په صورت کې به ضمان وي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمایي هُوَ ضَامِنٌ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا چې هغه په ټولو صورتونو کې ضامن دې لِأَنَّهُ إِنَّمَا حَدَثَ ځکه چې اولږه پیدا شوې ده بِسَبَبِ الْوُقُوعِ د غورځیدو په سبب سره إِذْ لَوْلَاهُ ځکه که دا (په کوهي کې غورځیدل) نه وې لَكَانَ الطَّعَامُ قَرِيبًا مِنْهُ نو خوراك به هغه ته نیزې دې وو

تشریح:- د امام محمد رحمه الله فرمان دا دې. چه په دواړو صورتونو کې به ضمان واجب وي. ځکه چې لکه څنګه د غم سبب په کوهي کې غورځیدل دی. دغه ډول د اولږې سبب هم کوهي کې غورځیدل دی. ځکه که هغه په کوهي کې نه وې غورځیدلې. نو چا به خو ده ته خوراك ورکړې وو.

**په مزدورانو سره د غیر په احاطه کښې کوهي کنستلو نه روسته که په دې کښې څوك مړه شي!**

قَالَ: حضرت مرغینانی رحمه الله فرمایي (وَإِنِ اسْتَأْجَرَ أُجَرَاءَ) اوکه ده مزدوران په اجرت اونیول فَحَفَرُوهَا لَهُ نو هغوی دده لپاره ځاه اوکنستلو فِي غَيْرِ فِنَائِهِ دده نه د غیر په احاطه کې فَذَلِكَ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ نو ضمان به په مستاجر وي وَلَا شَيْءَ عَلَى الْأُجَرَاءِ او په مزدورانو به هیڅ نه وي إِنْ لَمْ يَعْلَمُوا که هغوی ته داخبره معلومه نه وي أَنَّهَا فِي غَيْرِ فِنَائِهِ چې دا (ځاه کنستل) دده د احاطې نه په غیر کې دې لِأَنَّ الْإِجَارَةَ صَحَّتْ ظَاهِرًا ځکه چې اجاره ددې د ظاهر په اعتبار سره صحیح شوه إِذَا لَمْ يَعْلَمُوا کله چې هغوی ته علم نه وي فَنُقِلَ فِعْلُهُمْ إِلَيْهِ نو ددوی فعل به مستاجر اړخ ته منتقل کیږي لِأَنَّهُمْ كَانُوا مَغْرُورِينَ ځکه چې هغوی ته (د مستاجر د طرفه) دهوکه ورکړې شوې ده.

تشریح:- زید یو څو مزدوران په اجرت اونیول. چه په احاطه کې ځاه اوکنی. هغوی ځاه اوکنستلو. او په دې کې څوك پریوتلو. اومړ شو. د مخکې نه دا خبره مشهوره نه وه. چه دا د زید احاطه نه ده. اوس معلومه شوه. چه دا د زید احاطه نه ده. نو ضمان به په چا واجب وي؟ نو وې فرمائیل. چه په مذکوره صورت کې به په زید باندې ضمان واجب وي. په مزدورانو به نه وي. ځکه چې هرکله مزدورانو ته دا علم نشته. چه دا احاطه د بل چا ده. بلکه هغوی دا د زید احاطه ګڼړلې ده. نو اجاره صحیح شوه. او هرکله چې اجاره صحیح شوه. نو د مزدورانو فعل مستاجر اړخ ته منتقل شو. ځکله چې دلته کې زید (مستاجر) دوی ته دهوکه ورکړې ده.

فَصَارُوا نو دا داسې شوه كَمَا إِذَا أَمَرَ لکه چې یو کس بل چا ته حکم اوکړو آخَرَ بِذَبْحِ هَذِهِ الشَّاةِ ددې وزه (چیلۍ) د ذبح

کولو **فَذَبَحَهَا** نو هغه دا ذبح کړله **ثُمَّ ظَهَرَ** بیا دا خبره ښکاره شوه **أَنَّ الشَّاةَ لِغَيْرِهِ** چې وزه (چیلۍ) دده نه علاوه د بل چا ده

**تشریح:-** ددې مثال دا دې چه زید خالد ته حکم ورکړو چه دا وزه (چیلۍ) ذبح کړې. هغه ذبح کړله بیا معلومه شوه چه دا وزه (چیلۍ) د ساجد ده. نو دلته به ضمان واجب وی. اول به ضمان به خالد باندې واجب وی. او بیا به دا ضمان د زید نه وصولوی.

**إِلَّا أَنَّ هُنَاكَ يَضْمَنُ الْمَأْمُورُ** خو دلته به (د ذبح په مسئله کې) مامور (ذبح کونکې) ضامن وی **وَيَرْجِعُ عَلَى الْآمِرِ** او ذبح کونکې به حکم کونکی ارخ ته رجوع کوی **لِأَنَّ الذَّابِحَ مُبَاشِرٌ** ځکه چې ذبح کونکې مباشر (او قصد کونکی) دی **وَالْآمِرُ مُتَسَبِّبٌ** او حکم کونکې مسبب دې. **وَالتَّرْجِيحُ لِلْمُبَاشَرَةِ** او ترجيح مباشرت (او قصد) ته وی **فَيَضْمَنُ الْمَأْمُورُ** نو ذبح کونکې به ضامن وی **وَيَرْجِعُ الْمَغْرُورُ** او ذبح کونکې به د دهوکې په وجه حکم کونکی باندې رجوع کوی **وَهُنَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ ابْتِدَاءً** او دلته به ضمان د مخکې نه په مستاجر باندې واجب وی. **لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُتَسَبِّبٌ** ځکه چې دوی کې هريو مسبب دې **وَالْأَجِيرُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ** او اجير غير متعدی دې **وَالْمُسْتَأْجِرُ مُتَعَدٍّ** اومستاجر متعدی دې **فَيَرْجِحُ جَانِبُهُ** نو د مستاجر ارخ راجح شو

**تشریح:-** دلته کې ددې توپير ښائی چې د ذبح په صورت کې اول ضمان په خالد واجبيږی او بيا هغه د آمر نه ضمان اخلی او دلته مستجير باندې دا رګ واجبيږی. نو وجه د توپير دا ښائی چې خالد چونکه ذابح دی. نو دده فعل مباشرت (او قصدا) دې. او زيد حکم ورکړې دې. نو هغه صرف مسبب دې. او په مباشر او مسبب کې مباشر ته ترجيح ورکړې کيږی. په دې وجه خالد باندې ضمان واجب شو. خو چونکه هغه ته زيد دهوکه ورکړې ده. په دې وجه به خالد د زيد نه دا ضمان واپس وصولوی.

که څوك دا سوال اوکړی چې د کوهی کنستلو په مسئله کې هم داسې کيدل پکاروو. چه اول ضمان په مزدورانو باندې واجب وې. او بيا مزدورانو دا د مستاجر نه واپس اخستلې؟ ددې ځواب دا دې چې په مخکنۍ مسئله کې ذابح ته د مباشر کيدو په وجه ترجيح ورکړې شوې وه. او دلته مستاجر او اجير دواړه سبب دی. نو د ترجيح په تعدی او ظلم باندې کيخودې شو. او تعدی سرف د مستاجر د ارخه ده. د مزدور د ارخه تعدی نشته. په دې وجه دلته کې د مستاجر ارخ ته ترجيح ورکړې شوه. او خاص په ده ضمان واجب کړې شو.

### که د ملك نه کيدو علم وی او مزدورانو کوهې اوکنستلو. نو دوی به ضامن وی

**وَإِنْ عَلِمُوا ذَلِكَ** او که دوی ته ددې علم وی **فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ** نو ضمان به په مزدورانو باندې واجب وی **لِأَنَّهُ لَمْ يَصِحَّ** ځکه چې صحيح نه دې **أَمْرُهُ بِمَا لَيْسَ بِمَمْلُوكٍ لَهُ** د مستاجر حکم د هغه شی په سلسله کې کوم چې دده مملوك نه دې **وَلَا غُرُورَ** او دهوکه ورکول هم نشته **فَبَقِيَ الْفِعْلُ مُضَافًا إِلَيْهِمْ** نو باته پاتې شو د فعل اضافت دوی ارخ ته.

**تشریح:-** که مزدورانو ته معلومه نه وه. چه دا د زيد احاطه نه ده. نو ضمان به په مزدورانو واجب وی. ځکه چې دلته د زيد حکم صحيح نه دې. ځکه چې زيد مالك نه دې او نه دلته کې زيد دهوکه ورکړې ده. نو په دې صورت کې به دا فعل مستاجر ارخ ته مضاف نه وی. نو په مزدورانو به ضمان واجب وی.

### مزدورانو ته د مستاجر د حق نه کيدو علم وو او په کوهې کښې څوك مړ شو. نو د ضمان مسئله

**وَإِنْ قَالَ لَهُمْ** او که مستاجر مزدورانو ته ونيلي وی **هَذَا فِنَائِي** چې دا زما احاطه نه ده **وَلَيْسَ لِي فِيهِ حَقُّ الْحَفْرِ** او ماته په دې کې د کوهی کنستلو حق نشته **فَحَفَرُوا** نو هغوی اوکنستلو **وَمَاتَ فِيهِ إِنْسَانٌ** نو په دې کې څوك سړې مړ شو **فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ قِيَاسًا** نو قياساً به ضمان په مزدورانو وی **لِأَنَّهُمْ عَلِمُوا بِفَسَادِ الْأَمْرِ** ځکه چې دوی ته د حکم د فساد علم شته **فَمَا غَرَّهُمْ** نو مستاجر دوی ته دهوکه ورنکړله

**تشریح:-** که دا خائې د زيد د کور په احاطه کې دې. او دده په استعمال کې دې. اوزيدمز مهال دکوهی په کنستول



باندې لګيا کړی او دا ورته دا هم ووايې چې په دې کې ماته د کوهی کنستو حق نشته خو ګورو به اوس تاسو ځاه اوکنئ. نو د زيد په وينا باندې مزدورانو ځاه اوکنستلو. بيا په دې کې څوك پريوتلو. او هلاك شو. نو د قياس تقاضه دا ده. چه ضمان به په مزدورانو باندې واجب وی. ځکه چې دلته کې زيد هغوی ته څه دهوکه نه ده ورکړې. خبره ئې صفا خودلې ده. او هغوی ته هم د حکم د فساد علم دې. نومجرمان هم دوی شو. نو هم په دوی به ضمان واجب وی.

**وَفِي الِاسْتِحْسَانِ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ** او په استحسان کې به مستاجر باندې وی **لِأَنَّ كَوْنَهُ فِنَاءً لَهُ** ځکه چې ددې مستاجر لپاره احاطه کيدل **بِمَنْزِلَةِ كَوْنِهِ مَمْلُوكًا لَهُ** دده د مملوك کيدو په درجه کې دی **لِانْطِلَاقِ يَدِهِ** . دده د قبضې جاری کيدو په وجه **فِي التَّصَرُّفِ فِيهِ** چې ده په دې کې تصرف کړې دې **مِنْ إِلْقَاءِ الطِّينِ** په غورځولو د خاورې، **وَالْحَطَبِ** او خشاکو **وَرَبْطِ الدَّابَّةِ** او د ځاروو تړلو، **وَالرُّكُوبِ** .. او سوريدلو **وَبِنَاءِ الدُّكَّانِ** او دوکان جوړولو **فَكَانَ الْأَمْرُ بِالْحَفْرِ فِي مِلْكِهِ ظَاهِرًا** نو د کنستلو حکم ظاهری طور باندې پخپل ملك کې شو **بِالنَّظَرِ إِلَى** د هغه ځيزونو لحاظ ساتلو سره **مَا ذَكَرْنَا** کوم چې موږ ذکرکړی دی **فَكَفَى ذَلِكَ لِنَقْلِ الْفِعْلِ إِلَيْهِ** . نو مستاجر ارخ ته د فعل منتقل کاوه لپاره دومره خبره کافی ده.

**تشریح:-** خو د استحسان تقاضا دا ده. چه ضمان به په مستاجر وی. ځکه چې هرکله هغه هلته کې کثهونه ايږدی. ځاروی تړی. ځاوره اچوی. او خپل خاشی (خشاك) اچوی. دوکان (يا چوپال) جوړوی. هلته سوريږی. او څی راځی. خو هغه ته په دې کې د کوهی کنستلو حق نشته. لکه څنګه چې په کلو کې سړك وتلې وی. نو د سړك د دواړو طرفونو مخکه اګرچه د طرفونو کورونو والا خلګ په دې ټولو ځيزونو کې استعمالوی. خو د زمکې دوی مالکان نه وی. نو د دې نه ښکاره معلوميږی چې دا احاطه د زيد مملوکه ده. او د ظاهر په لحاظ د تصرف دومره حق ددې خبرې لپاره کافی دې. چه د مزدورانو فعل مستاجر ارخ ته منتقل کړې شی.

### د امام د اجازت نه بغير پل جوړول، يا شهتير ايخودل. يا څوك مړ شو نو د ضمان مسئله

**قَالَ:** امام محمد رحمه الله اوفرمائيل **وَمَنْ جَعَلَ قَنْطَرَةً بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ** او چاچه د امام د اجازت نه بغير پل جوړ کړو **فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا** نو عمداً په دې باندې څوك سړې تير شو **فَعَطِبَ** نو هغه هلاك شو **فَلَا ضَمَانَ عَلَى الَّذِي عَمِلَ الْقَنْطَرَةَ** نو په پل جوړونکې باندې هيڅ ضمان نشته **وَكَذَلِكَ إِذَا وَضَعَ خَشَبَةً فِي الطَّرِيقِ** او هم دغه ډول ئې که په لاره کې لرګې کيخودو **فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا** نو په دې سربيره څوك سړې عمداً تير شو.

**تشریح:-** يو سړی د امام د اجازت نه بغير پل جوړ کړو. اوس خالد په دې باندې قصداً تير شو. حالانکه هغه داسې دې. چه په بل ځائې باندې هم تيريدې شی. خو هغه ددې سربيره تير شو. او هغه پل مات شو. چه په دې سره خالد هلاك شو. نو په پل جوړونکی باندې به ضمان واجب نه وی. دغه ډول که زيد په لاره کې لرګی واچول. خو ټوله لاره هغه ګيره نکړله. بلکه د لارې څه برخه خالی پرته ده. خو خالد قصداً د لرګی دپاسه روان شو. او اوخوئيدو. او مړ شو. نو په زيد به ضمان واجب نه وی.

**لِأَنَّ الْأَوَّلَ تَعَدٍّ** او ځکه چې رومبې داسې تعدی دې **هُوَ تَسْبِيبٌ** چې دا تسبيب دې **وَالثَّانِي تَعَدٍّ** او دوهم (داسې) تعدی دې **هُوَ مُبَاشَرَةٌ** چې هغه مباشرت (او قصدا) دې **فَكَانَتِ الْإِضَافَةُ إِلَى الْمُبَاشِرِ أَوْلَى** نو مباشر (قصد کونکی) ارخ ته اضافت راجح وی **وَلِأَنَّ تَخَلُّلَ فِعْلِ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ** او ځکه چې د مختار فاعل فعل په منځ کې راتګ **يَقْطَعُ النِّسْبَةَ** . نسبت منقطع کوی.

**تشریح:-** ځکه چې دواړو صورتونو کې تعدی د دواړو ده. د زيد هم ده. او د خالد هم ده. خو د زيد فعل سبب دې. او د خالد فعل مباشرت (او قصدا) دې. او مباشرت ته په سبب باندې ترجيح ورکولې شی. په دې وجه به په زيد باندې ضمان واجب نه وی.

**كَمَا فِي الْحَافِرِ مَعَ الْمُلْقِي** لکه (څنګه چه) په کنستونکی کې د غورځونکی سره (کيږی. چه په غورځونکی ض

کولو فَذَبَحَهَا نو هغه دا ذبح کړله ثُمَّ ظَهَرَ بیا دا خبره ښکاره شوه أَنَّ الشَّاةَ لِغَيْرِهِ چې وزه (چیلۍ) دده نه علاوه د بل چا ده

**تشریح:-** ددې مثال دا دی.چه زید خالد ته حکم ورکړو.چه دا وزه (چیلۍ) ذبح کړی.هغه ذبح کړله.بیا معلومه شوه.چه دا وزه (چیلۍ) د ساجد ده.نو دلته به ضمان واجب وی.اول به ضمان به خالد باندې واجب وی.او بیا به دا ضمان د زید نه وصولوی.

الْآنَ هُنَاكَ يَضْمَنُ الْمَأْمُورُ خو دلته به (د ذبح په مسئله کې) مامور (ذبح کونکې) ضامن وی وَيَرْجِعُ عَلَى الْآمِرِ او ذبح کونکې به حکم کونکی ارخ ته رجوع کوی لِأَنَّ الذَّابِحَ مُبَاشِرٌ خکه چې ذبح کونکې مباشر (او قصد کونکی) دې وَالْآمِرُ مُتَسَبِّبٌ او حکم کونکې مسبب دې. وَالتَّرْجِيحُ لِلْمُبَاشَرَةِ او ترجیح مباشرت (او قصد) ته وی فَيَضْمَنُ الْمَأْمُورُ نو ذبح کونکې به ضامن وی وَيَرْجِعُ لِلْغُرُورِ او ذبح کونکې به د دهوکې په وجه حکم کونکی باندې رجوع کوی وَهٰهُنَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ ابْتِدَاءً او دلته به ضمان د مخکې نه په مستاجر باندې واجب وی. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُتَسَبِّبٌ خکه چې دوی کې هریو مسبب دې وَالْأَجِيرُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ او اجیر غیرمتعدی دې وَالْمُسْتَأْجِرُ مُتَعَدٍّ. اومستاجر متعدی دې فَيُرَجَّحُ جَانِبُهُ.نو د مستاجر ارخ راجح شو

**تشریح:-** دلته کې ددې توپیر ښائی چې د ذبح په صورت کې اول ضمان په خالد واجبیږی اوبیا هغه د آمر نه ضمان اخلی اودلته مستجیرباندې دارګ واجبیږی.نووجه د توپیر دا ښائی چې خالد چونکه ذابح دی.نو دده فعل مباشرت (او قصدا) دې.اوزید حکم ورکړې دی.نو هغه صرف مسبب دې.او په مباشر او مسبب کې مباشر ته ترجیح ورکړې کیږی.په دې وجه خالد باندې ضمان واجب شو.خو چونکه هغه ته زید دهوکه ورکړې ده.په دې وجه به خالد د زید نه دا ضمان واپس وصولوی.

که څوک دا سوال اوکړی چې د کوهی کنستلو په مسئله کې هم داسې کیدل پکاروو.چه اول ضمان په مزدورانو باندې واجب وې.او بیا مزدورانو دا د مستاجر نه واپس اخستلې؟ ددې خواب دا دی چې په مخکنۍ مسئله کې ذابح ته د مباشر کیدو په وجه ترجیح ورکړې شوې وه.او دلته مستاجر او اجیر دواړه سبب دی.نو د ترجیح په تعدی او ظلم باندې کیخودې شو.او تعدی سرف د مستاجر د ارخه ده.د مزدور د ارخه تعدی نشته.په دې وجه دلته کې د مستاجر ارخ ته ترجیح ورکړې شوه.او خاص په ده ضمان واجب کړې شو.

**که د ملک نه ښیدو علم وی او مزدورانو کوهی اوکنستلو.نو دوی به ضامن وی**

وَإِنْ عَلِمُوا ذٰلِكَ اوکه دوی ته ددې علم وی فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ نو ضمان به په مزدورانو باندې واجب وی لِأَنَّهُ لَمْ يَصِحَّ خکه چې صحیح نه دې أَمْرُهُ بِمَا لَيْسَ بِمَمْلُوكٍ لَهُ د مستاجر حکم د هغه شی په سلسله کې کوم چې دده مملوک نه دې وَلَا غُرُورَ او دهوکه ورکول هم نشته فَبَقِيَ الْفِعْلُ مُضَافًا إِلَيْهِمْ نو پاته پاتې شو د فعل اضافت دوی ارخ ته.

**تشریح:-** که مزدورانو ته معلومه نه وه.چه دا د زید احاطه نه ده.نو ضمان به په مزدورانو واجب وی.خکه چې دلته د زید حکم صحیح نه دې.خکه چې زید مالك نه دې.او نه دلته کې زید دهوکه ورکړې ده.نو په دې صورت کې به دا فعل مستاجر ارخ ته مضاف نه وی.نو په مزدورانو به ضمان واجب وی.

**مزدورانو ته د مستاجر د حق نه ښیدو علم وو او په کوهی کښې څوك مړ شو.نو د ضمان مسئله**

وَإِنْ قَالَ لَهُمْ اوکه مستاجر مزدورانو ته ونیلې وی هٰذَا فِنَائِي چې دا زما احاطه نه ده وَلَيْسَ لِي فِيهِ حَقُّ الْحَفْرِ او ماته په دې کې د کوهی کنستلو حق نشته فَحَفَرُوا نو هغوی اوکنستلو وَمَاتَ فِيهِ إِنْسَانٌ نو په دې کې څوك سړې مړ شو فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ قِيَاسًا نو قیاساً به ضمان په مزدورانو وی لِأَنَّهُمْ عَلِمُوا بِفَسَادِ الْأَمْرِ خکه چې دوی ته د حکم د فساد علم شته فَمَا غَرَّهُمْ نو مستاجر دوی ته دهوکه ورنکړله

**تشریح:-** که دا خانې د زید د کور په احاطه کې دې.او دده په استعمال کې دې.اوزیدمز مهال دکوهی په کنستول



باندې لګیا کړی او دا ورته دا هم ووایې چې په دې کې ماته د کوهی کنستو حق نشته خو کورو به اوس تاسو څاه اوکنۍ.نود زیدپه وینا باندې مزدورانو څاه اوکنستلو.بیا په دې کې څوك پریوتلو.او هلاك شو.نو د قیاس تقاضه دا ده.چه ضمان به په مزدورانو باندې واجب وی.خکه چې دلته کې زید هغوی ته څه دهوکه نه ده ورکړې.خبره نې صفا خودلې ده.او هغوی ته هم د حکم د فساد علم دی.نومجرمان هم دوی شو.نو هم په دوی به ضمان واجب وی.

وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ او په استحسان کې به مستاجر باندې وی (لِأَنَّ كَوْنَهُ فِنَاءً لَهُ خکه چې ددې مستاجر لپاره احاطه کیدل بِمَنْزِلَةِ كَوْنِهِ مَمْلُوكًا لَهُ دده د مملوك کیدو په درجه کې دی لِانْطِلَاقِ يَدِهِ فِي التَّصَرُّفِ فِيهِ چې ده په دې کې تصرف کړې دی مِنْ إِلْقَاءِ الطِّينِ په غورخولو د خاورې، دده د قبضې جاری کیدو په وجه وَالْحَطَبِ او خشاکو وَرَبْطِ الدَّابَّةِ او د څاروو تړلو، وَالرُّكُوبِ ،. او سوریدلو وَبِنَاءِ الدُّكَّانِ او دوکان جوړولو فَكَانَ الْأَمْرُ بِالْحَفْرِ فِي مِلْكِهِ ظَاهِرًا نو د کنستلو حکم ظاهری طور باندې پخپل ملك کې شو بِالنَّظَرِ إِلَى د هغه څیزونو لحاظ ساتلو سره مَا ذَكَرْنَا کوم چې موږ ذکرکړی دی فَكَفَى ذٰلِكَ لِنَقْلِ الْفِعْلِ إِلَيْهِ.نو مستاجر ارخ ته د فعل منتقل کاوه لپاره دومره خبره کافی ده.

**تشریح:-** خو د استحسان تقاضا دا ده.چه ضمان به په مستاجر وی. خکه چې هرکله هغه هلته کې کثهونه ایږدی.خاروی تړی.خاوره اچوی.او خپل خاشی(خشاك) اچوی.دوکان ( یا چوپال) جوړوی.هلته سوریږی.او خی راخی.خو هغه ته په دې کې د کوهی کنستلو حق نشته.لکه څنګه چې په کلو کې سړك وتلې وی.نو د سړك د دواړو طرفونو مخکه اګرچه د طرفونو کورونو والا خلګ په دې ټولو څیزونو کې استعمالوی.خو د زمکې دوی مالکان نه وی.نو د دې نه ښکاره معلومیږی چې دا احاطه د زید مملوکه ده.او د ظاهر په لحاظ د تصرف دومره حق ددې خبرې لپاره کافی دې.چه د مزدورانو فعل مستاجر ارخ ته منتقل کړې شی.

**د امام د اجازت نه بغیر پل جوړول، یا شهتیر ایخودل.بیا څوك مړ شو نو د ضمان مسئله**

قَالَ:امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ جَعَلَ قَنْطَرَةً بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ او چاچه د امام د اجازت نه بغیر پل جوړ کړو فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا نو عمداً په دې باندې څوك سړې تیر شو فَعَطِبَ نو هغه هلاك شو فَلَا ضَمَانَ عَلَى الَّذِي عَمِلَ الْقَنْطَرَةَ نو په پل جوړونکې باندې هیڅ ضمان نشته وَكَذٰلِكَ إِذَا وَضَعَ خَشَبَةً فِي الطَّرِيقِ او هم دغه ډول نې که په لاره کې لرګې کیخودو فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا نو په دې سربیره څوك سړې عمداً تیر شو.

**تشریح:-** یو سړی د امام د اجازت نه بغیر پل جوړ کړو.اوس خالد په دې باندې قصداً تیر شو.حالانکه هغه داسې دی.چه په بل خانې باندې هم تیریدې شی.خو هغه ددې سربیره تیر شو.او هغه پل مات شو.چه په دې سره خالد هلاك شو.نو په پل جوړونکی باندې به ضمان واجب نه وی.دغه ډول که زید په لاره کې لرګی واچول. خو ټوله لاره هغه ګیره نکړله.بلکه د لارې څه برخه خالی پرته ده.خو خالد قصداً د لرګی دپاسه روان شو.او اوخوئیدو.او مړ شو.نو په زید به ضمان واجب نه وی.

لِأَنَّ الْأَوَّلَ تَعَدٍّ او خکه چې ړومبې داسې تعدی دې هُوَ تَسْبِيبٌ چې دا تسبیب دې وَالثَّانِي تَعَدٍّ او دوهم (داسې) تعدی دې هُوَ مُبَاشَرَةٌ چې هغه مباشرت (او قصدا) دې فَكَانَتِ الْإِضَافَةُ إِلَى الْمُبَاشِرِ أَوْلَى نو مباشر (قصد کونکی) ارخ ته به اضافت راجح وی وَلِأَنَّ تَخَلُّلَ فِعْلِ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ او خکه چې د مختار فاعل فعل په منځ کې راتګ يَقْطَعُ النِّسْبَةَ.نسبت منقطع کوی.

**تشریح:-** خکه چې دواړو صورتونو کې تعدی د دواړو ده.د زید هم ده.او د خالد هم ده.خو د زید فعل سبب دې.او د خالد فعل مباشرت( او قصدا) دې.او مباشرت ته په سبب باندې ترجیح ورکولې شی.په دې وجه به په زید باندې ضمان واجب نه وی.

كَمَا فِي الْحَافِرِ مَعَ الْمُلْقِي لکه ( څنګه چه) په کنستونکی کې د غورځونکی سره ( کیږی.چه په غورځونکی ضمان

راخي.په کنستونکی نه راخي).

تشریح:- ددې مثال به دا وی که زید څاه اوکنستلو.او بکر خالد اونیولو.او په دې کي ئې اوغورځولو.نو ضمان به په بکر راځي.په زید به نه راځي.ځکه چې څاه کنستل سبب دې.اود بکر فعل د مختار فاعل فعل دې.او د سبب نه روستو چې کله د مختار فاعل فعل په منځ کي راشي.نو د حکم اضافت د مختار فاعل ارخ ته کیږي.سبب ارخ ته نه کیږي.دا مسلم (مقرر) اصول دی.دغه ډول دلته د زید مذکوره فعل سبب دې. او په منځ کي د خالد فعل حائل دې.چه هغه مختار فاعل دې.په دې وجه به اوس د حکم اضافت زید ارخ ته نه کیږي.

**د ضمان د وجوب ځيني صورتونه**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ حَمَلَ شَيْئًا فِي الطَّرِيقِ او چا چې په لاره کي یو شئ اوچت کړې وو عَلٰى إِنْسَانٍ نو هغه په یو انسان باندې پریوتلو فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ نو په دې وجه څوك انسان هلاك شو فَهُوَ ضَامِنٌ نو هغه ضامن دی وَكَذَا إِذَا سَقَطَ او هم دغه ډول کله چې سامان اوغورځيږی فَتَعَثَّرَ بِهِ إِنْسَانٌ نو په دې سره یو انسان په تکلیف شي وَإِنْ كَانَ رِدَاءً وکه دا پټو (څادر) وی قَدْ لَبِسَهُ چې هغه ده اغوستې دې فَسَقَطَ عَنْهُ هغه پریوتلو فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ چې ددې په وجه څوك انسان هلاك شو لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وی.

تشریح:- په لاره کي یو سړی خپل سامان اوړلو.او روان وو.چه هغه پریوتلو.چه په دې سره څوك سړې مړ شو.یا سامان پریوتلو.او په دې کي څوك پریوتلو.او مړ شو.نو په دې دواړو صورتونو کي به اوچتونکی باندې ضمان واجب وی.او که پټو (څادر) ئې اغوستې وو.او روان وو.او پټو (څادر) پریوتلو.چه ددې په وجه څوك سړې مړشو.یا پټو (څادر) پریوتلو.اوپ کي یوسړې ګیر شو.اومړشو.نوپه دې دواړوصورتونوکي به اغوستونکی باندې ضمان نه وی.

وَهٰذَا اللَّفْظُ يَشْمَلُ الْوَجْهَيْنِ او دا لفظ دواړو صورتونو ته ګډ دې.

تشریح:- یعنی په دوهم صورت کي چې کوم «فعطب به....» دې.په دې کي عموم دې. چې د پټو (څادر) په غورځيدو سره مړ شي.یا په پټو (څادر) کي اینختلو سره مړشي.د دواړو حکم یو دې.په دې باندې عنایه کي اعتراض کړې شوې دې. خو اعتراض علیل دې.ځکه چې پټو (څادر) غورځيدو سره د تاویدو موجود کيدو په وجه خوئيدل او مړ کيدل ممکن دی. نو دا غیر متصور ګڼړل عجیبه خبره ده... فتدبر..

**د پورته کونکی او اغوستونکی په ضمان کښې د فرق وجه**

وَالْفَرْقُ او توپیر دا دې أَنَّ حَامِلَ الشَّيْءِ قَاصِدٌ حِفْظَهُ چې د یو شئ اوچتونکی ددې د ساتنه اراده کوی. فَلَا حَرَجَ فِي التَّقْيِيدِ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ نو د سلامتیا وصف سره مقید کاوه کي هیڅ حرج نشته وَاللَّابِسُ لَا يَقْصِدُ حِفْظَ مَا يَلْبَسُهُ او اغوستونکې چې کومه کپړه اغوندی.د هغې د ساتنه اراده نه کوی فَيَحْرَجُ بِالتَّقْيِيدِ بِمَا ذَكَرْنَاهُ نو په دې وصف سره مقید کاوه کي د کوم چې موږ ذکر کړې دې.تنګی نه لازمیږی فَجَعَلْنَاهُ مُبَاحًا مُطْلَقًا نو موږ دا مطلقاً جائز اوګرځولو

تشریح:- په اوچتولو او اغوستلو کي توپیر ولې کړې شوې دې.چه په ړومبی کي ضمان واجب دې.او دوهم کي نه دې؟ نو دا بیانوی.چه د پورته کونکی اراده د سامان د ساتنه وی.نو که دلته کي دا قید اولګولې شی.چه د سلامتیا وصف ضروری دې.ګنی ضمان به لازم وی.نو په دې کي هیڅ حرج او تنګی نشته.اود کپړې اغوستونکی مقصد د کپړې ساتنه نه دې.نوکه دلته کي هم د سلامتیا د وصف قید اولګولې شی. نو سخت تکلیف به لازم شی.په دې وجه کپړې اغوستل مطلقاً جائز اوګڼړلی شو.د څه قید نه بغیر، نو په اغوستونکی به ضمان واجب نه وی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رحمه الله او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ إِذَا لَبِسَ چې کله ئې داسې شئ واغوستلو مَا لَا يَلْبَسُهُ عَادَةً کوم چې



(په عامه توګه (عام طور) نشی اغوستلې فَهُوَ كَالْحَامِلِ نو هغه د پورته کونکی پشان دې لِأَنَّ الْحَاجَةَ لَا تَدْعُو إِلٰى لُبْسِهِ ځکه چې حاجت ددې اغوستلو ارخ ته بوتلونکې نه دې

تشریح:- د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.که یوکس داسې شئ واغوستلو.کوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې نه اغوستلې کیږی.لکه بوریا د خرې کته وغیره.نو دې به اغوستونکې نه شمارلې کیږی.بلکه پورته کونکې به شمارلې کیږی.او په ده به ضمان واجب وی.ځکه چې ددې څیزونو اغوستلو هیڅ حاجت نشته.

**په جمات کښې د جمات د بائست وغیره سامان ایخودلو سره د هلاکت مسئله**

قَالَ:امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا كَانَ الْمَسْجِدُ لِلْعَشِيرَةِ وکله چې جمات د یو قوم (خاندان) وی فَعَلَّقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فِيهِ قِنْدِيلًا نو په دې کي چا فانوس رازوړند کړو أَوْ جَعَلَ فِيهِ بَوَارِيَ یا ئې په دې کي درئ (پوزکی) خورې کړلې أَوْ حَصَاةً یا ئې په دې کي کانړی واچول فَعَطِبَ بِهِ رَجُلٌ نو ددې په وجه څوك سړې هلاك شو لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وی وَإِنْ كَانَ الَّذِي فَعَلَ ذٰلِكَ و که هغه سړې چا چې دا کار کړې دې مِنْ غَيْرِ الْعَشِيرَةِ....ددې (خاندان) خلګو نه غیر(بل څوك) وی ضَمِنَ نو هغه به ضامن وی قَالُوا: مشائخ فرمایي هٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله چې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

تشریح:- یو جمات دې.چه دا د یو قوم مخصوص جمات دې.هم هغوی ددې بنا (بنیاد) ایخودونکی (بانی) او متولیان دی.او بل یوکس په دې جمات کي درئ اولګولې.یا ئې لالټین یا د ډیوې بلولو د شیشې بلبونه یا فانوس وغیره رازوړند کړو.بیا څوك ددې په راغورځيدو سره مړ شو.یا په دې سره اولګیدو او مړ شو.نو په هغه به ضمان وی. اوکه نه؟ نو په دې کښې تفصیل دې.چه ددې کارونو کونکې سړې د هغه قوم څنې دې.دچا چې دا جمات دې.نو بیا بالاتفاق ضمان نشته.او که بل څوك (ددوی نه غیر) وی.نو په دې کي د امام صاحب رحمه الله په نیز په هغه سړی ضمان وی.

وَقَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمایي لَا يَضْمَنُ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيعًا[1] چې په دواړو صورتونو کي به ضامن نه وی لِأَنَّ هٰذِهِ مِنَ الْقُرَبِ ځکه چې دا افعال د قربت (ثواب) حاصلولو دی وَكُلُّ أَحَدٍ مَأْذُونٌ فِي إِقَامَتِهَا او د قرباتو په حاصلولو کي هرکس ته اجازت دې فَلَا يَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو دا به د سلامتیا شرط سره مقید نه وی كَمَا إِذَا فَعَلَهُ لکه کله چې دا کار کړې وی.(د متولیانو د جمات نه غیرکس) بِإِذْنِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَسْجِدِ جمات په متولیانو کي د یو کس په اجازت سره کړې وی.

تشریح:- او د صاحبینو رحمهما الله په نیز ضمان واجب نه دې.خو که هغه د جمات والا په اجازت سره دا کار کړې وی.نو بیا به د امام صاحب رحمه الله په نیز هم هغه ضامن نه وی. دلیل دا دې.چه دا واړه کارونه د قربت دی.د ثواب کارونه دی.او د ثواب کارونو د کاوه ټولو ته اجازت دې.او د قرباتو په ادا کاوه کي د سلامتیا شرط نه وی.نوکه هغه ددوی په اجازت سره دا کار کړې وې.بیا به هم هغه باندې ضمان نه وو.

مولانا مفتی محمد یوسف تالوئی د هدایه په شرح اشرف الهدایه کي فرمایي چې د کانړو (باجره) اچول د هغه زمانې خبره ده.کوم وخت چې به جماتونو کي درئ نه وې.او د کانړو اچولو اړتیا به راپیښیدو.اوس به کانړی اچول د جمات د تعظیم خلاف شمارلې کیږی.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل**

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې وَهُوَ الْفَرْقُ او هم دا وجه د توپیر ده أَنَّ التَّدْبِيرَ فِيمَا يَتَعَلَّقُ بِالْمَسْجِ

[1] القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٤٢٢\٥) والهندية (٤٤\٦) والدرالمحتار(٤٢١\٥) نقلاً عن القـ الراجح (٣٥٦\١٢)-

چې انتظام د هغه شئ په سلسله کې کوم چې د جمات سره متعلق دې. لِأَهْلِهِ دې د اهل لپاره دې دُونَ غَيْرِهِمْ د دوی د غير لپاره نه دې كَنَصْبِ الْإِمَامِ لکه امام مقررول، وَاخْتِيَارِ الْمُتَوَلِّي او متولی اختيارول وَفَتْحِ بَابِهِ او ددې دروازه کلاوول وَإِغْلَاقِهِ او ددې بندول وَتَكْرَارِ الْجَمَاعَةِ او د جماعت تکرار (دوباره کول) فَاسْبَقَهُمْ بِهَا غَيْرُ أَهْلِهِ کله چې د دوی نه غير کس ددوی نه مخکې جماعت اوکړی إِذَا كَانَ فِعْلُهُمْ مُبَاحًا مُطْلَقًا نو ددوی فعل به مطلق مباح وی غَيْرَ مُقَيَّدٍ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چې دا به د سلامتيا شرط سره مقيد نه وی وَفِعْلُ غَيْرِهِمْ تَعَدِّيًا (...او ددوی د غير فعل به تعدی (او زياتی) وی أَوْ مُبَاحًا يا به داسې مباح وی مُقَيَّدًا بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چې د سلامتيا شرط سره به مقيد وی.

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې. اوهم دې دليل سره د عشيره او ددوی دغير په منځ کې توپير هم کيږی. فرمائی. چه د جمات د امورو انتظام د جمات د خلګو کار دې. د نورو خلګو کار نه دې. نو ددوی فعل مطلقاً مباح دې. چه په دې کې د سلامتيا شرط نه دې. او د نورو خلګو فعل به يا خو تعدی وی. يا به مباح وی. او کله چې مباح وی. نو سلامتيا سره به مقيد وی. نو د سلامتيا فوت کيدو په وجه به ضمان واجب وی. دليل پوره شو. نو په جمات کې امام مقررول، او د هغه لرې کول، او متولی منتخب کول، او د جمات دروازه کلاوول، او بندول، دا د جمات د خلګو کار دې. اوکه نورو خلګو د محلې د خلګو نه مخکې په جمات کې جماعت اوکړو. نو د محلې خلګ به بغير د کراهته دوباره جماعت کوی. ګنی دوهم جماعت په محقق قول سره مکروه تحريمی دې.

### د صاحبينو رحمهما الله د دليل جواب

وَقَصْدُ الْقُرْبَةِ لَا يُنَافِي الْغَرَامَةَ او اراده د قربت د غرامت (او تاوان) منافی نه ده. إِذَا أَخْطَأَ الطَّرِيقَ کله چې دا طريقه پريږدی كَمَا إِذَا تَفَرَّدَ بِالشَّهَادَةِ عَلَى الزِّنَا لکه د زناء په شهادت کې تفرد اختيارول وَالطَّرِيقُ فِيمَا نَحْنُ فِيهِ او طريقه په هغه مسئله کې کوم کې چې مونږ يو الِاسْتِئْذَانُ مِنْ أَهْلِهِ د مسجد د خلګو نه اجازت اخستل دی.

**تشريح:-** صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی وو. چه هرکله دده فعل قربت دې. نو ضمان به نه وی. د هغې ځواب ورکوی. که په قربت کې ئې اصل طريقه پريخوده. نو په دې کې هم تاوان راځی. يعنی په قربت او تاوان کې منافات نشته. لکه د زنا شهادت ورکول د حقوق الله د ساتنه په لحاظ سره قربت دې. خو شرط د شهادت قبلولو دا دې. چه ګواهان به څلور وی. نو که يوکس د زنا ګواهی ورکړله. نو اوس به د ګواهئ په ځائې دا قذف وی. په دې شاهد (ګواهی ورکونکی) به حد قذف واجب وی. خو د شاهد فعل فی نفسه (په اصل کې) قربت دې. دغه ډول په مذکوره صورت کې د قربت ادا کاوه طريقه دا وه. چه هغه به د مسجد د خلګو نه اجازت اخستې وو. خو هغه خطاء شو. نو ضمان به واجب وی.

### په جمات کښې د متولی د ناستې په وجه د هلاکت مسئله

قَالَ: امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَإِنْ جَلَسَ فِيهِ رَجُلٌ مِنْهُمْ اوکه په جمات کې کيناستلو په دوی (متوليانو) کې يو سړی، نو فَعَطِبَ بِهِ رَجُلٌ دده په وجه څوک سړی هلاک شو إِنْ كَانَ فِي الصَّلَاةِ نو که هغه په لمانځه کې وی. لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وی

**تشريح:-** که په دې متوليانو (کميټئ والا) کې څوک سړی په جمات کې ناست دې. او په هغه سره يو سړی ډغره اوخوړله. او مړ شو. نو ضمان به وی اوکه نه؟ نو وې فرمائيل. که دغه سړی په لمانځه کې دې. نو بالاتفاق ضامن نه دې.

وَإِنْ كَانَ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ اوکه په لمونځ کې نه وی ضَمِنَ نو هغه به ضامن وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمايي لَا يَضْمَنُ عَلَى كُلِّ حَالٍ (۱) چې په هرحال کې به ضامن نه

(۱) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (۵\۴۲۲) وتبيين الحقائق (۶\۱۴۷) والهندية (۶\۴۴) نقلا عن القول الراجح (۲\۳۵۶)-



وی وَلَوْ كَانَ جَالِسًا لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ أَوْ لِلتَّعْلِيمِ أَوْ لِلصَّلَاةِ او که د قران د قراءت يا تعليم لپاره يا د لمونځ لپاره (په انتظار کې) ناست دې أَوْ نَامَ فِيهِ فِي أَثْنَاءِ الصَّلَاةِ يا د لمونځ په مهال جمات کې اوده شو او أَوْ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ يا بغير د لمونځ نه جمات کې اوده شو أَوْ مَرَّ فِيهِ مَارًّا يا څوک تيريدونکې په جمات کې تير شو أَوْ قَعَدَ فِيهِ لِحَدِيثٍ يا د خبرو کاوه (ګپ شپ) لپاره جمات کې کيناستو. فَهُوَ عَلَى هَذَا الِاخْتِلَافِ نو دا هم په دې اختلاف (مبنی) دی.

**تشريح:-** اوکه په لمانځه کې نه وی. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ضمان واجب وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ضمان واجب نه وی. او د دې اووه صورتونه مرغينانی رحمه الله بيان کړی دی ① د قرآن تلاوت لپاره ناست وی. ② فقه يا حديث وغيره (تعليم) لپاره ناست وی. ③ د لمونځ په انتظار کې ناست وی. ④ لمونځ ئې کولو. چه په لمانځه کې اوده شو. ⑤ د لمونځ نه بهر اوده شو. ⑥ په جمات کې وو. او تيريدو. چه دده په وجه څوک هلاک شو. ⑦ د خبرو لپاره په جمات کې ناست وو.

وَأَمَّا الْمُعْتَكِفُ او پاتې شو معتكف. فَقَدْ قِيلَ نو ونيلی شوی دی عَلَى هَذَا الِاخْتِلَافِ چې په دې اختلاف دی وَقِيلَ او ونيلی شوی دی. لَا يَضْمَنُ بِالِاتِّفَاقِ چې بالاتفاق به ضامن نه وی.

**تشريح:-** اوکه اعتكاف لپاره ناست وی. او دده سره څوک ټکراو شی. او مړ شی. نو په دې کې دوې (دوه) اقواله دی: ① دا هم اختلافی مسئله ده. ② اجماع ده. چه په دې کې به ضمان نه وی.

فائده: د لمونځ په انتظار کې ناست کس به ضامن نه وی. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم، (شامی)

### د صاحبينو رحمهما الله دليل

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې الْمَسْجِدَ إِنَّمَا بُنِيَ لِلصَّلَاةِ وَالذِّكْرِ چې جمات د لمونځ او ذکر لپاره جوړ شوې دې وَلَا يُمْكِنُهُ أَدَاءُ الصَّلَاةِ بِالْجَمَاعَةِ إِلَّا بِانْتِظَارِهَا او دده په جماعت سره لمونځ کول، د جماعت د انتظار کاوه نه بغير ممکن نه ده فَكَانَ الْجُلُوسُ فِيهِ مُبَاحًا نو په دې کې به کښينستل مباح وی لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ الصَّلَاةِ ځکه چې دا کښينستل (جلوس) د لمونځ د ضرورياتو څخه دی

**تشريح:-** په اختلافی مسئله کې دا د صاحبينو رحمهما الله دليل بيانوی. چه جمات ددې لپاره جوړولې شی. چې په دې کې لمونځ اوکړې شی. او د الله تعالی ذکر اوکړې شی. او کله چې په جماعت سره لمونځ ادا کوی. نو د انتظار کاوه ارتيا به راپيښيږی. نو په جمات کې کښينستل به هم مباح وی. ځکه چې جمات کې کښينستل د لمونځ د ضرورياتو څخه دی.

أَوْ لِأَنَّ الْمُنْتَظِرَ يا په دې وجه چې د لمونځ انتظار کونکې لِلصَّلَاةِ فِي الصَّلَاةِ حُكْمًا بِالْحَدِيثِ د حديث په وجه حکماً په لمانځه کې دې فَلَا يَضْمَنُ نو هغه به ضامن نه وی كَمَا إِذَا كَانَ فِي الصَّلَاةِ لکه (مثلاً) کله چې دې په لمانځه کې وی.

**تشريح:-** اويا داسې اووايه چې د لمونځ انتظار کونکې هم حکماً په لمانځه کې دې. او هرکله چې دې په لمانځه کې دې. نو ضمان نه کيدل پکار دی.

### امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې الْمَسْجِدَ إِنَّمَا بُنِيَ لِلصَّلَاةِ چې جمات د لمونځ کاوه لپاره جوړ شوې دې. وَهَذِهِ الْأَشْيَاءُ مُلْحَقَةٌ بِهَا او دا واړه شيان لمانځه سره متعلق دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ التَّفَاوُتِ نو تفاوت ښکاره کول ضروری دی فَجَعَلْنَا الْجُلُوسَ لِلْأَصْلِ مُبَاحًا مُطْلَقًا نو مونږ د اصل لپاره کښينستل مطلقاً مباح کړل وَالْجُلُوسَ لِمَا يُلْحَقُ بِهِ او هغه کار لپاره کوم چې اصل سره متعلق وی مُبَاحًا. داسې مباح کړل مُقَيَّدًا بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چې دا د سلامتيا شرط سره مقيد دی

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې. چه د جمات آبادی د لمونځ لپاره وی. او پاتې ذکر شوی امور لمونځ

دي.بلکه لمانځه سره متعلق دی.نو په مونځ، او غیر لمونځ کي توپیر ضروری شو.نو موږ اوونیل.چه لمونځ لپاره کښینستل د ضمان سبب نه دي.ځکه چي دا مطلقاً جائز دي.د سلامتیا وصف سره مقیدنه دي.او د متعلقاتو لپاره کښینستل مباح مقید دي.نودسلامتیا شرط سره به مقید وی.

وَلَاغَرْوَاو دا څه د تعجب خبره نه ده أَنْ يَكُونَ الْفِعْلُ مُبَاحًا أَوْمَنْدُوبًا إِلَيْهِ چي یوکار مباح یا مندوب (جائز) وی وَهُوَ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ حالانکه هغه د سلامتیا شرط سره مقید وی كَالرَّمْيِ إِلَى الْكَافِرِ لکه کافر اړخ ته غشي ویشتل أَوْ إِلَى الصَّيْدِ یا ښکار اړخ ته وَالْمَشْيِ فِي الطَّرِيقِ او لاره کي تلل، وَالْمَشْيِ فِي الْمَسْجِدِ او په جمات کي تلل إِذَا وَطِئَ غَيْرَهُ کله چي دي د خپل ځان نه علاوه باندي پښي کیږدی وَالنَّوْمِ فِيهِ، او په جمات کي اوده کیدل، إِذَا انْقَلَبَ عَلَى غَيْرِهِ کله چي د ځان نه علاوه (په بل کس) باندي راواوړی

تشریح:- اوداسي کیږی.چه یوکار مباح وی.بلکه مندوب وی.ددي باوجود هم د سلامتیا وصف سره مقید وی.لکه کافر اړخ ته غشي ویشتل مندوب دی.خوکه یو مسلمان ته اولګیدو.نو ددي ضمان به واجب وی.او ښکار کول مباح دی.که ددي په غشی ویشتلو سره بل څوك اولګیدو.نو ضمان به واجب وی.او دغه ډول په لاره کي تلل او په جمات کي تلل مباح دی.خوکه پخپلو پښو کي ئي څوك لاندي کړل.نو ضمان ادا کول به واجب وی.دغه ډول د مسافر او معتکف لپاره جمات کي اوده کیدل مباح دی.خو که په اودو کي په چا راواوړیدو.او هغه مړ شو.نو ضمان به واجب وی.

**د جماعت د کمیټئ د خلقو نه علاوه د بل سړي په جماع کښي کیناستلو سره د هلاکت مسئله**

وَإِنْ جَلَسَ رَجُلٌ مِنْ غَيْرِ الْعَشِيرَةِ فِيهِ او که د جمات د خلګو نه غیر کس په جمات کي کیناستلو لِلصَّلَاةِ د لمونځ لپاره فَتَعَقَّلَ بِهِ إِنْسَانٌ نو په ده سره یو انسان راوغورځیدو يَنْبَغِي نو مناسب دا ده أَنْ لَا يَضْمَنَ چي هغه ضامن نه وی

تشریح:- بل څوك سړي چي هغه د محلي د خلګو ځني نه دي.په جمات کي لمانځه کي ناست دي.چه دده په وجه څوك تیندك اوخوری.او مړ شي.نو په ده به ضمان نه وی.

لِأَنَّ الْمَسْجِدَ بُنِيَ لِلصَّلَاةِ ځکه چي جمات د لمانځه لپاره جوړ شوي دي وَأَمْرُ الصَّلَاةِ بِالْجَمَاعَةِ او د لمونځ د جماعت کار (نظامت) أَنْ كَانَ مُفَوَّضًا إِلَى أَهْلِ الْمَسْجِدِ اګرچه د جمات د خلګو په ذمه دي فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ نو هر یومسلمان لپاره دا حق شته أَنْ يُصَلِّيَ فِيهِ وَحْدَهُ چي په دي کي ځانله (انفرادی) لمونځ اوکړی.

تشریح:- دلیل دا دي چي هغه په لمانځه کي دي.او جماتونه د مونځونو لپاره جوړ شوی دی.او د جمات نظم د جمات خلګو ته حواله دي.خو په دي کي لمونځ کول خو د ټولو مسلمانانو لپاره صحیح دي.او هر یو مسلمان ته دا حق حاصل دي.چه په دي کي لمونځ اوکړی.نو هغه به متعدی نه وی.او هرکله چي متعدی نشو.نو په ده به ضمان واجب نه وی.

# فصل في الحائط المائل

ژباړه:- (دا) فصل د کوږ شوی دیوال (د احکامو په بیان کي) دي.

تشریح:- کله چي دیوال لاري اړخ ته راکوږ شو.نو دي د (لاري د) احاطي یوه برخه راګیره کړله.د ذکر شوو څیزونو سره ددي مناسبت وو.په دي وجه د هغې د ذکر کاوه نه روستو مستقل فصل کي مرغیناني رحمه الله ددي مسئلي بیانوی.

**عامي لاري طرف ته د دیوال راکږیدو مسئلي او احکام**

قَالَ: امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. وَإِذَا مَالَ الْحَائِطُ او کله چي دیوال راکوږ شی إِلَى طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ د مسلمانانو لاري اړخ ته، فَطُولِبَ صَاحِبُهُ بِنَقْضِهِ نو ددي د مالك نه ددي د ورانولو مطالبه اوکړي شوه وَأُشْهِدَ عَلَيْهِ او په دي باندي ګواهان جوړ کړي فَلَمْ يَنْقُضْهُ نو هغه مات نکړو فِي مُدَّةٍ يَقْدِرُ عَلَى نَقْضِهِ په دومره موده کي چي ددي په ورانولو باندي قادر وو حَتَّى سَقَطَ تردي چي هغه راپریوتلو ضَمِنَ مَا تَلِفَ بِهِ مِنْ نَفْسٍ أَوْ مَالٍ نو ددي په وجه چي کوم نفس یا مال هلاك شي. هغې به ضامن وی. وَالْقِيَاسُ او قیاس دا دي أَنْ لَا يَضْمَنَ چي ضامن نشي لِأَنَّهُ لَا صُنْعَ مِنْهُ مُبَاشَرَةً ځکه چي دده د اړخه هیڅ فعل په طریقه دمباشرت (او ارادي) نشته وَلَا مُبَاشَرَةَ شَرْطٍ او نه د داسي شرط مباشرت (او قصد) شته هُوَ مُتَعَدٍّ فِيهِ چي هغې کي دي متعدی وی. لِأَنَّ أَصْلَ الْبِنَاءِ كَانَ فِي مِلْكِهِ ځکه چي اصل بنا (بنیاد) دده په ملکیت کي دي وَالْمَيَلَانُ وَشَغْلُ الْهَوَاءِ لَيْسَ مِنْ فِعْلِهِ او راکږیدل او فضا (خلاء) مشغولول دده فعل نه دي فَصَارَ نو دا داسي شوه كَمَا قَبْلَ الْإِشْهَادِ لکه د اشهاد (ګواهانو قائمولو) نه مخکي.

تشریح:- د یوکس دیوال کوږ شو.چه ددي په وجه ددي د راغورځیدو خطره پیدا شوه.نوکه هغه ته چا هیڅ او نه ونیل.او دیوال راپریوتلو.او څوك هلاك شو.نو هغه به ضامن نه وی.او که هغه ته په هغه خلګو کي چا اوونیل.چاته چي په دي لاره کي د تللو حق دي.او ونیلو هم د مشورې په طور نه وی.بلکه د حکم په طریقه وی.او بیا ئې هم هغه مات نکړی.حالانکه هغه ته دومره مهلت ملاو شوي دي.چه په دي (موده) کي هغه دا کار کولې شی.خو وې نکړو.او وس هغه راپریوتلو.او څوك سړې هلاك شو.نو ددي ضمان به په هغه لازم وی.دا حکم د استحسان دي.

تشریح:- ګنی د قیاس تقاضه دا ده.چه ضمان واجب نه وی.ځکه چي د ضمان واجبیدو دوې (دوه) موجب دی: ① مباشرت (قصد) ② تسبیب. مباشرت خو دلته نشته.لکه څنګه چي ښکاره ده.او تسبیب په یو درجه کي شته.خو په دي کي تعدی نشته.او په سبب باندي ضمان هغه وخت واجبیږی.کله چي دده د اړخه تعدی وی.ګنی ضمان نه واجبیږی.نو که یوکس پخپله مملوکه مځکه کي څاه اوکنستلو.او په دي کي څوك پریوځي.او مړ شي.نو ضمان به واجب نه وی.ځکه چي متعدی نه دي.دغه ډول دلته کي هم عمارت (دیوال) دده په ملکیت کي دي.او کومه چي دي (دیوال) د فضاء برخه راګیره کړې ده.هغه د مالك فعل نه دي.نولکه څنګه چي د اشهاد نه وړاندې ضمان واجب نه دي.د اشهاد نه روستو به هم ضمان واجب نه وی.

فائده◎ اشهاد څه ضروری نه دي.اصل کي د دیوال مالك ته ددي د ورانولو حکم کول دی.او اشهاد د احتیاط په لحاظ سره دي.چه د اړتیا په وخت د قاضی په وړاندې د حکم انکار اونکړی.

**استحسانی دلیل**

وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ د استحسان دلیل دا دي الْحَائِطَ لَمَّا مَالَ إِلَى الطَّرِيقِ چي کله دیوال لاري اړخ ته راکوږ شو فَقَدْ اشْتَغَلَ هَوَاءَ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ بِمِلْكِهِ نو د مسلمانانو د لاري فضاء دده ملکیت سره مشغوله شوه وَرَفْعُهُ فِي يَدِهِ او ددي لرې کول دده په وس کي شته فَإِذَا تَقَدَّمَ إِلَيْهِ نو هرکله نې چي ددي نه مخکي اوونیل وَطُولِبَ بِتَفْرِيغِهِ او ددي د لرې کاوه مطالبه اوکړي شوه. يَجِبُ عَلَيْهِ نو په ده باندي فارغول واجب دی فَإِذَا امْتَنَعَ نو هرکله چي دي منع شو صَارَ مُتَعَدِّيًا نو متعدی شو بِمَنْزِلَةِ مَا لَوْ وَقَعَ ثَوْبُ إِنْسَانٍ فِي حِجْرِهِ لکه (مثلاً) د یوکس په غیږه کي د بل کس کپړه راپریوتله يَصِيرُ مُتَعَدِّيًا بِالْاِمْتِنَاعِ عَنِ التَّسْلِيمِ..نو هغه به د سپارلو نه منع کاوه سره متعدی شمارلې کیږی إِذَا طُولِبَ بِهِ كَذَا هٰذَا کله چي دده نه غوښتلې شوې وی بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْإِشْهَادِ په خلاف د اشهاد نه د وړاندې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ هَلَاكِ الثَّوْبِ قَبْلَ الطَّلَبِ ځکه چي هغه د غوښتلو نه مخکي د کپړې د هلاکاوه په درجه کي دي.

تشریح:- دا د استحسان دلیل دي.ددي حاصل دا دي.چه دده دیوال د مسلمانانو د لاري پلن والې راګیر کړې دي.حالانکه ده ته ونیلی شوی وو.چه دا راوغورځوه.او ټیك ئې کړه.نو په ده راغورځول او ټیك کول واجب شوی وو.بیا ده ټیك نکړو.نو متعدی او ظالم شو.په دي وجه به ضمان واجب وی.ددي مثال بعینه داسي دي.چه د یو انسان کپړه هوا وغیره د بل په غیږه کي راو غورځوله.د کپړې مالك ددي مطالبه اوکړله .خو هغه ورنکړله.بیا هغه هلاکه شوه.نو په هغه به ضمان واجب وی.ځکه چي هغه د منع کاوه په وجه متعدی او ظالم اوګرځیدو.خو که تر اوسه پورې د کپړې مالك نه وه غوښتلې.چه ددي نه مخکي هلاکه شوه.نو ضمان به واجب نه وی.ځکه چي دي

صورت کي تعدي نشته.دغه ډول که د دیوال ټیك کاوه حکم نه وو ورکړی شوی.چه ددې نه ورانډې دا حادثه راپیښه شوه.نو اوس به دې ظالم نه وی.او په ده به ضمان واجب نه وی.

**دوهم دليل**

وَلِأَنَّا لَوْ لَمْ نُوجِبْ او څکه که مونږ واجب نکړو عَلَيْهِ الضَّمَانَ په ده باندې ضمان يَمْتَنِعُ عَنِ التَّفْرِيغِ نو هغه به د خالی کاوه نه منع کیږی فَيَنْقَطِعُ الْمَارَّةُ حَذَرًا عَلَى أَنْفُسِهِمْ نو د لارې تیریدونکی به پخپلو ځانونو باندې د یرې په وجه بندیږی فَيَتَضَرَّرُونَ بِهِ نو هغوی ته به په دې سره ضرر وی.(او دا عام ضرر دی). وَدَفْعُ الضَّرَرِ الْعَامِّ مِنَ الْوَاجِبِ او عام ضرر لرې کول د واجباتو څخې دی وَلَهُ تَعَلُّقٌ بِالْحَائِطِ او هم ددې مالك دیوال سره تعلق دې فَيَتَعَيَّنُ لِدَفْعِ هَذَا الضَّرَرِ نو ددې ضرر لرې کاوه لپاره هم هغه متعين دې وَكَمْ مِنْ ضَرَرٍ خَاصٍّ او ډیر خاص ضررونه دی يُتَحَمَّلُ لِدَفْعِ الْعَامِّ مِنْهُ چې هغه د عامو ضررونو لرې کاوه لپاره برداشت کولې شی.

**تشريح:-** دوهم دلیل د مذکوره حکم دا هم دې.که د دیوال په مالك باندې ددې ټیك کول واجب او نه ګرځولې شی.نو هغه به نې نه ټیك کوی.او چونکه هر وخت به د دیوال راپریوتلو خطره وی.نو خلګ به هلته کې تیریدل ( تلل راتګ ) پریږدی.چه په دې سره به عام ضرر وی.او عام ضرر لرې کول به واجب وی.اوس پاتې شوه دا خبره چې دا عام ضرر به څوك لرې کوی.ښکاره ده.چه دیوال د دیوال د مالك دې.نو هم د هغه ذمه واری به وی.چه هغه دا ټیك کړی.او عام ضرر لرې کړی.او د عام ضرر لرې کاوه لپاره خاص ضرر برداشت کولې شی.چه ددې مثالونه هدایه کې ځائې په ځائې ذکر دی.

**د راغورځولو د حکم باوجود څوك هلاك شو نو د ديت حکم**

ثُمَّ مَا تَلِفَ بِهِ مِنَ النُّفُوسِ بیا هغه نفسونه کوم چې په دې کې هلاك شی تَجِبُ الدِّيَةُ دیت واجب دې وَتَتَحَمَّلُهَا الْعَاقِلَةُ او دا به عاقله ادا کوی لِأَنَّهُ فِي كَوْنِهِ جِنَايَةً دُونَ الْخَطَأِ څکه چې دا ( دیوال راپریوتل) پخپل جنایت کیدو کې د خطاء نه کم دې فَيَسْتَحِقُّ فِيهِ التَّخْفِيفَ بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو دې به په دې کې په طریقه اول د تخفیف ( او آسانتیا) مستحق وی كَيْلَا يُؤَدِّيَ چې دا مؤدی ( متعدی) نشی إِلَى اسْتِئْصَالِهِ د هغه د بیخه ( د جرړې) هلاکولو، وَالْإِجْحَافِ بِهِ او د هغه د پریشانه کاوه ارخ ته،

**تشريح:-** ددې دیوال په وجه چې څوك هلاك شی.نو د هغې تاوان به واجب وی.په دې شرط چې مخکې ددې د ورانولو حکم ورکړې شوې وی.ګواهان قائمول شرط نه دې.اوچه کوم سړې هلاك شوې وی.نو ددې دیت به عاقله باندې واجب وی.

وَمَا تَلِفَ بِهِ مِنَ الْأَمْوَالِ او په دې سره چې کوم مالونه هلاك شی كَالدَّوَابِّ لکه څاروی، وَالْعُرُوضِ او سامانونه يَجِبُ ضَمَانُهَا فِي مَالِهِ نو د هغې ضمان به دده په مال کې واجب وی لِأَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ الْمَالَ څکه چې د خاندان خلګ د مال تاوان نه ورکوی وَالشَّرْطُ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ وَطَلَبُ النَّقْضِ مِنْهُ او شرط ددې نه وړانډې وئیلو او د ورانولو مطالبه کول دی دُونَ الْإِشْهَادِ اشهاد ( ګواهان قائمول) نه دې.

**تشريح:-** اوکه هلاك شوې د انسان نه علاوه څه مال یا سامان وی.نو ددې تاوان به ددې دیوال په مالك باندې وی.څکه چې د عاقله کار د ما ضمان ادا کول نه دی.اوپه عاقله باندې د دیت د وجوب وجه دا ده چې هرکله د خطاء دیت په عاقله باندې واجب دې.نو دا دیت په درجه اولی عاقله باندې واجبیدل پکار دی.څکه چې دا جرم خودقتل خطاء دجرم نه هم کم دې.ګنی که دیت هم دده په مال کې واجب کړې شو.نودا عاجز ( بد قسمته) به د جرړې نه اوښکلې شی.او د ډیرې (خفګان سره به مخکی شی.

**اشهاد صرف د احتياط په وجه دې**

وَإِنَّمَا ذَكَرَ الْإِشْهَادَ او مرغینانی رحمه الله د اشهاد ذکر کړې دې لِيَتَمَكَّنَ مِنْ إِثْبَاتِهِ عِنْدَ إِنْكَارِهِ چې هغه ددې د انکار په وخت ددې په اثبات باندې قادر شی فَكَانَ مِنْ بَابِ الِاحْتِيَاطِ نو اشهاد به د احتیاط د باب څخې وی وَصُورَةُ الْإِشْهَادِ او د اشهاد صورت دا دې أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ چې سړې ووایې اشْهَدُوا چې ته ګواه شه أَنِّي قَدْ تَقَدَّمْتُ إِلَى هَذَا الرَّجُلِ فِي هَدْمِ حَائِطِهِ هَذَا چې ما دې سړی ته دده ددې دیوال ورانولو په اړه کې مخکې وئیلی دی. وَلَا يَصِحُّ الْإِشْهَادُ قَبْلَ أَنْ يَهِيَ الْحَائِطُ او د دیوال د راغورځیدو اړخ ته د مائل کیدو نه مخکې اشهاد صحیح نه دې لِانْعِدَامِ التَّعَدِّي د تعدی نه کیدو په وجه.

**تشريح:-** دا عبارت په حقیقت کې د یوتقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې هرکله چې اشهاد شرط نه دې.بلکه مخکې حکم کول کافی دی.خو مرغینانی رحمه الله باندې ،، واشهد عليه ،،ولې بیان کړې دې. نو ځواب دا دې چې د اشهاد ذکر صرف د احتیاط په بناء دې.چه د دیوال مالك انکار اونکړی.او د اشهاد صورت به دا وی.چه حکم کونکې اووائی.چه ای خلګو! تاسو ګواه اوسئ، ما ده ته وئیلی دی.چه دا دیوال وران کړه.او اوسه پورې لا دیوال نه دې راکوږ شوې.او راغورځیدو ته نږدې نه دې.نو اوسه پورې به اشهاد صحیح نه وی.څکه چې اوس دده د اړخه تعدی نشته.

**که د پيل نه ديوال کوږ جوړ شو.او څوك هلاك شو نو څه حکم دې ؟**

قَالَ:مرغینانی رحمه الله فرمایې (وَلَوْ بَنَى الْحَائِطَ مَائِلًا فِي الِابْتِدَاءِ) وکه دیوال د پیل نه کوږ جوړ کړې شو قَالُوا: نو مشائخ فرمایې يَضْمَنُ مَا تَلِفَ بِسُقُوطِهِ مِنْ غَيْرِ إِشْهَادٍ چې ددې په راغورځیدو کوم شئ هلاك شو.نو هغه به د اشهاد نه بغیر ضامن وی. لِأَنَّ الْبِنَاءَ تَعَدٍّ ابْتِدَاءً څکه چې د پیل نه بنا (بنیاد) تعدی دې كَمَا فِي إِشْرَاعِ الْجَنَاحِ لکه په روشندان اوښکلو کې.

**تشريح:-** لکه څنګه چې په روشندان وغیره اوښکلو کې د اشهاد نه بغیر ضامن کیږی.دغه ډول که ده د مخکې نه دیوال کوږ جوړ کړو.او هغه راپریوتلو.نو هغه به ضامن وی.څکه چې دا د پیل نه تعدی ده.څکه چې دا به د پیل نه د لارې برخه راګیرونکې وی.

**ديوال طرف ته متوجه کولو لپاره د څومره کسانو ګواهی کافی ده؟**

قَالَ:مرغینانی رحمه الله فرمایې (وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ عَلَى التَّقَدُّمِ) او ( د کوږ دیوال راغورځیدو نه) په مخکې وئیلو باندې به د دوو سړو یا د یو سړې او د یوې ښځې ګواهی قبلولې شی لِأَنَّ هَذِهِ لَيْسَتْ بِشَهَادَةٍ عَلَى الْقَتْلِ څکه چې دا په قتل باندې شهادت نه دې

**تشريح:-** په قتل باندې د دوو سړو ګواهی معتبر وی.او په مال کې د دوو سړو یا د یو سړی او د یوې ښځې ګواهی معتبر وی.څکه چې قتل شبهٔ سره ساقطیږی.او مال نه ساقطیږی.او په تقدم(د کوږ دیوال راغورځیدو نه مخکې وئیلو باندې ) چې کوم شهادت دې.دا د قتل او د قصاص شهادت نه دې.بلکه په مال باندې شهادت دې.نو د تقدم په اړه کې که دوې (دوه) سړی وی.نو ډیره ښه ده.ګنی د یو سړی او د یوې ښځې ګواهی به هم معتبر وی.

**د اصلاح او مرمت لپاره څومره موده کافی ده**

وَشُرِطَ التَّرْكُ فِي مُدَّةٍ او امام قدوری رحمه الله شرط لګولې دې.د دومره مودې پریخودو يَقْدِرُ عَلَى نَقْضِهِ فِيهَا چې په دې کې هغه ددې په ورانولو باندې قادر وی لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ إِمْكَانِ النَّقْضِ څکه چې د ماتولو امکان ضروری دې لِيَصِيرَ بِتَرْكِهِ جَانِيًا چې هغه ددې د پریخودو په وجه مجرم شی.

**تشريح:-** ددې فصل په پیل کې امام قدوری رحمه الله دا شرط لګولې وو.چه هغه ته دومره مهلت ملاویدل پکار دی.چه په دې کې هغه دا دیوال وران کړې شی.څکه چې دده د هغه د مجرم کیدو لپاره امکان د ورانولو ضروری دې.

وَيَسْتَوِي او برابره ده دا خبره يُطَالِبُهُ بِنَقْضِهِ مُسْلِمٌ چې دده نه ددې د ورانولو مطالبه مسلمان اوکړی أَوْ ذِمِّيٌّ اوکه ذمی

اوكړي لِأَنَّ النَّاسَ كُلَّهُمْ شُرَكَاءُ فِي الْمُرُورِ ځكه چې واړه خلګ په تيريدو كي (برابر) شريك دي فَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نو دده اړخ ته په دوی كي د هريو تقدم صحيح دي رَجُلًا كَانَ. كه سړي وي أَوِ امْرَأَةً او كه ښځه وي حُرًّا كَانَ آزاد وي آزاد أَوْ مُكَاتَبًا او كه مكاتب وي

تشريح:- بيا كومو خلګو ته چې په دې لاره كي د تيريدو حق دي. كه هغه مسلمان وي. اوكه ذمي وي. ټولو ته د مطالبې حق شته. كه هغه سړي وي. اوكه ښځه وي. آزاد وي. اوكه مكاتب وي. ځكه ددې مطالبې حاصل دا دې. چه د ديوال مالك د لارې مشغولتيا لرې كړي. نو هر حقدار ته به د مطالبې اختيار وي.

وَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ او دده په اړخ تقدم صحيح دي عِنْدَ السُّلْطَانِ بادشاه اړخ ته وَغَيْرِهِ او دده نه غير اړخ ته بِالتَّفْرِيغِ ځكه چې دا د فارغولو مطالبه ده. لِأَنَّهُ مُطَالَبَةٌ فَيَتَفَرَّدُ نو متفرد (او جلا حقدار) به وي كُلُّ صَاحِبِ حَقٍّ بِهِ په دې (لاره) كي هريو حق لرونكي

تشريح:- بيا چې كله مالك نه د ديوال ورانولو مطالبه اوكړې شي. كه د بادشاه په وړاندې اوكړې شي. يا د بل چا په مخكې، دواړو صورتونو كي يو حكم دې.

## كه د بل كور طرف ته ديوال كوږ شونو څه حكم دې؟

قَالَ: مرغيناني رحمه الله فرمايي (وَإِنْ مَالَ إِلَى دَارِ رَجُلٍ) و كه ديوال د يوسړي كور اړخ ته كوږ شو فَالْمُطَالَبَةُ إِلَى مَالِكِ الدَّارِ خَاصَّةً نو مطالبه به خاص طور باندې د كور مالك اړخ ته كيږي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ عَلَى الْخُصُوصِ ځكه چې حق خاص طور باندې هغه لپاره دې.

تشريح:- د زيد دكور ديوال د لارې په ځانې د خالد كور اړخ ته كوږ شو. نو دلته به د ورانولو اختيار صرف خالد ته وي. ځكه چې حق صرف هم دده دې.

وَإِنْ كَانَ فِيهَا سُكَّانٌ او كه په دې كور كي ډير اوسيدونكي وي لَهُمْ أَنْ يُطَالِبُوهُ نو دوی ټولو ته دا حق شته. چه هغوی مطالبه اوكړي لِأَنَّ لَهُمُ الْمُطَالَبَةَ بِإِزَالَةِ ځكه چې هغوی ته د هغه شئ د مطالبې حق شته مَا شَغَلَ الدَّارَ كوم چې كور بوخت كړي فَكَذَا بِإِزَالَةِ نو هم دغه ډول به د هغه شئ لرې كاوه (حق وي) مَا شَغَلَ هَوَاءَهَا كوم د كور فضاء (خلاء) مشغوله كړي.

تشريح:- او كه دا داسې كوټه وي. چه په دې كي ډير كورونه وي. نو په دوی كي به هر يو ته دا حق وي. چه د زيد نه د ديوال ورانولو مطالبه اوكړي. ځكه دې خلګو دا حق شته. كه ديو كس څه شئ دا كور بوخت كړي. نو ددې د لرې كاوه مطالبه دې اوكړي. دغه ډول به دې خلګو ته دا حق وي. چه د هغه شئ د لرې كاوه مطالبه اوكړي. كوم چې د كور فضاء مشغوله كړي. او هغه دلته د زيد ديوال دې.

## د كوږ ديوال مالك ته د مهلت وركولو ځيني مسئلې

وَلَوْ أَجَّلَهُ صَاحِبُ الدَّارِ او كه ده ته (د ديوال مالك ته) د كور مالك مهلت وركړې وي أَوْ أَبْرَأَهُ مِنْهَا يا ئې هغه ددې نه بري كړې وي أَوْ فَعَلَ ذَلِكَ سَاكِنُوهَا يا دا كار د كور اوسيدونكې كړې وي فَذَلِكَ جَائِزٌ نو دا جائز دی وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ او د ديوال په مالك به ضمان نه وي فِيمَا تَلِفَ بِالْحَائِطِ د هغه شئ په سلسله كي كوم چې ديوال سره ضائع شوې دې لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځكه چې حق هم ددوی دې.

تشريح:- دخالد د كور اړخ ته د زيد ديوال كوږ شوې وو. او خالد زيد ته مهلت وركړو. نو صحيح دې. يا د كوټې خلګو مهلت وركړې وي. نو صحيح دې. اوكه په ديوال پريوتلو سره څه ضائع شي. نو په دواړو صورتونو كي به په خالد ضمان نه وي. ځكه چې دكومو خلګو حق وو. هغوی مهلت وركړې وو. او هغوی ته د مهلت وركاوه حق وو.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې صورت إِذَا مَالَ إِلَى الطَّرِيقِ كله چې ديوال لارې اړخ ته كوږ شوې وي فَأَجَّلَهُ الْقَاضِي نو



قاضي هغه (مالك د ديوال) ته مهلت وركړې وي أَوْ مَنْ أُشْهِدَ عَلَيْهِ يا هغه كس (مهلت وركړې وي) چا چې په ده (د ديوال په مالك) باندې اشهاد كړې دې حَيْثُ لَا يَصِحُّ نو دا مهلت وركول به صحيح نه وي لِأَنَّ الْحَقَّ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ ځكه چې حق د مسلمانانو د جماعت دې وَلَيْسَ إِلَيْهِمَا إِبْطَالُ حَقِّهِمْ او د دوی (د قاضي او اشهاد قائمونكي) دواړو په اړخ ددوی (د مسلمانانو) د حق باطلولو اختيار نشته.

تشريح:- اوكه د زيد ديوال لارې اړخ ته كوږ شوې وي. او مهلت وركونكې قاضي وي. يا هغه سړې وي. كوم چې دده نه د ورانولو مطالبه كوي. او په مطالبه كاوه ګواهان جوړه وي. نو ددوی مهلت وركول به صحيح نه وي. ځكه چې دلته دا ددوی حق نه دې. بلكه د مسلمانانو د جماعت حق دې. او دوی ته د جماعت مسلمين د حق باطلولو اختيار نشته.

## د متوجه كولو نه روسته ئې ديوال خرڅ كړونو د هلاكت ضامن به څوك وي؟

وَلَوْ بَاعَ الدَّارَ او كه هغه كور خرڅ كړو بَعْدَ مَا أُشْهِدَ عَلَيْهِ روستو ددې نه چې ده په هغه ګواهان قائم كړي وو وَقَبَضَهَا الْمُشْتَرِي او مشتري په دې قبضه اوكړله بَرِئَ مِنْ ضَمَانِهِ نو هغه به ددې د ضمان نه بري وي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ بِتَرْكِ الْهَدْمِ ځكه چې جنايت د ورانولو په پريخودو باندې مَعَ تَمَكُّنِهِ په ورانولو باندې قدرت سره وي وَقَدْ زَالَ تَمَكُّنُهُ بِالْبَيْعِ او د بيع په وجه دهغه قدرت ختم شو.

تشريح:- د خالد ديوال كوږ شوې وو. او د هغه نه د ورانولو مطالبه كړې شوې وه. خو خالد خپل دا كور په بكر باندې خرڅ كړې دې. نو اوس به په خالد باندې ضمان نه وي. ځكه چې اوس هغه مالك نه دې پاتې شوې. او نه هغه ته د ورانولو حق پاتې شوې دې.

بِخِلَافِ إِشْرَاعِ الْجَنَاحِ په خلاف د روشندان راوښكلو لِأَنَّهُ كَانَ جَانِيًا بِالْوَضْعِ ځكه چې دا (د كور مالك) د لګولو په وجه مجرم دې وَلَمْ يَنْفَسِخْ بِالْبَيْعِ او لګول به د بيع په وجه نه فسخ كيږي فَلَا يَبْرَأُ نو هغه به نه بري كيږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشريح:- او په بكر باندې به هم ضمان نه وي. ځكه چې هغه نه د ورانولو مطالبه نه ده شوې. البته كه د اخستلو نه روستو دده نه د ورانولو مطالبه اوكړې شي. او هغه ئې وران نكړي. نو په هغه به ضمان واجب وي. ځكه چې اوس ده ته د ورانولو قدرت حاصل وو. او دده نه مطالبه هم شوې ده.

وَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُشْتَرِي او په مشتري باندې ضمان نشته لِأَنَّهُ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ ځكه چې دې باندې اشهاد نه دې شوې وَلَوْ أُشْهِدَ عَلَيْهِ او كه په مشتري باندې اشهاد اوكړې شو بَعْدَ شِرَائِهِ دده د اخستلو نه روسته فَهُوَ ضَامِنٌ نو دې به ضامن وي لِتَرْكِهِ التَّفْرِيغَ د مشتري د فارغولو د پريخودو په وجه مَعَ تَمَكُّنِهِ بَعْدَمَا دده د قادر كيدو باوجود ددې نه روستو طُولِبَ بِهِ چه دده نه ددې مطالبه كړې شوې ده.

تشريح:- البته يو كس روشندان او بلې: راوښكلې وي. نو چونكه هغه د پيل نه مجرم دې. نو هغه به د كور خرڅولو په وجه ضمان نه نه بري كيږي. بلكه په هغه به ضمان واجب وي.

## د كومو خلګو نه مطالبه صحيح ده او دكومو نه نه ده! يوه قاعده كليه

وَالْأَصْلُ او قاعده كليه دا ده أَنَّهُ يَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَى كُلِّ مَنْ چې تقدم (د مخكې نه متوجه كول) هر هغه سړي په اړخ صحيح دي يَتَمَكَّنُ مِنْ نَقْضِ الْحَائِطِ وَتَفْرِيغِ الْهَوَاءِ څوك چې په ديوال ورانولو او په فضاء خالي كاوه باندې قادر وي وَمَنْ لَا يَتَمَكَّنُ مِنْهُ او څوك چې په دې قادر نه وي لَا يَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ نو د هغه په اړخ تقدم صحيح نه دي كَالْمُرْتَهِنِ وَالْمُسْتَأْجِرِ وَالْمُودَعِ لكه چې مرتهن او مستاجر او مودع وَسَاكِنِ الدَّارِ او كور كي اوسيدونكي دی

تشريح:- دلته مرغيناني رحمه الله يوه قاعده كليه بيان كړې ده. چه كوم سړې په ديوال ورانولو باندې قادر دې. د هغه څخه به مطالبه كول صحيح وي. او څوك چې قادر نه وي. د هغه څخه به مطالبه ټيك نه وي. اوس هغه خلګ څوك

چې په دیوال ورانولو باندې قادر نه وی.هغوی کې نې بعض بیان کړل.① مرتهن ② مستاجر ③ مودع ④ د ملکیت نه بغیر په کرایه یا عاریت باندې په کور کې اوسیدونکې.

### که کوږ دیوال د تاجر غلام وی نو د ورانولو مطالبه به دچا نه کیږی؟

ویَصِحُّ التَّقَدُّمُ اِلَی الرَّاهِنِ او راهن ارخ ته تقدم صحیح دې لِقُدْرَتِهٖ دده د قادر کیدو په وجه عَلٰی ذٰلِكَ په دې ( دیوال ورانولو) باندې بِوَاسِطَةِ الْفِکَاكِ رهن خلاصولو په واسطې سره وَاِلَی الْوَصِیِّ او ( تقدم صحیح دې) د وصی په طرف وَاِلٰی اَبِ الْیَتِیْمِ او د یتیم د پلار په طرف اَوْ اُمِّهٖ یا دده د مور په طرف فِیْ حَائِطِ الصَّبِیِّ د بچې په دیوال کې ، لِقِیَامِ الْوِلَایَةِ د ولایت د قائم مقام کیدو په وجه وَذَکَرَ الْاُمَّ فِی الزِّیَادَاتِ او د مور ذکر په زیادات کې دې وَالضَّمَانُ فِیْ مَالِ الْیَتِیْمِ او ضمان د یتیم په مال کې دې لِاَنَّ فِعْلَ هٰؤُلَاءِ کَفِعْلِهٖ خکه چې ددوی فعل د یتیم د فعل مثل دې وَاِلَی الْمُکَاتَبِ او تقدم صحیح دې.د مکاتب په طرف لِاَنَّ الْوِلَایَةَ لَهٗ خکه چې ولایت د مکاتب په ارخ دې وَاِلَی الْعَبْدِ التَّاجِرِ سَوَاءٌ کَانَ عَلَیْهِ دَیْنٌ او تاجر غلام ارخ ته که په هغه پور وی اَوْ لَمْ یَکُنْ او که نه وی لِاَنَّ وِلَایَةَ النَّقْضِ لَهٗ خکه چې د ورانولو ولایت هم دده لپاره دې.

**تشریح:-** او د چا نه چې مطالبه کول صحیح دی.هغوی دا دی. راهن خکه چې هغه رهن پریخودو سره ددې په مرمت باندې قادر دې.② وصی ③ د یتیم نیکه ( د پلار پلار) دلته د پلار نه نیکه مراد دې.کنی د پلار په موجودګۍ کې به خو دې د سره یتیم هم نه وی.④ دیتیم مور خکه چې دوی ته د بچې په دیوال کې ولایت حاصل دې.خو د مور ذکر امام محمد رحمه الله په زیادات کې کړې دې. ⑤مکاتب، که د مکاتب دیوال وی.نو دده نه د ورانولو مطالبه صحیح ده.خکه چې د ورانولو ولایت هم ده ته دې. ⑥ تاجر غلام که په ده پور وی.او که نه وی.خکه چې غلام ته د ورانولو ولایت حاصل دې.

### که کوږ دیوال د تاجر غلام وی نو د ورانولو مطالبه به دچا نه کیږی؟

ثُمَّ التَّلَفُ بِالسُّقُوْطِ اِنْ کَانَ مَالًا یا هلاك شوې که مال وی فَهُوَ فِیْ عِتْقِ الْعَبْدِ نو دا به د غلام په سټ کې وی.

**تشریح:-** که د تاجر غلام دیوال وو.او هغه نه د ورانولو مطالبه اوکړې شوه.نو دا مطالبه من وجه د غلام نه ده.او من وجه د آقا نه ده.نو د دواړو رعایت ( او لحاظ) اوساتلې شو.او ونیلی شوی دی.چه کوم شئ هلاك شو.او هغه مال دې.نو ددې اداکول به د غلام د سټ نه وی.تردې چې دا به خرخولې شی.او پور به ادا کولې شی.

وَاِنْ کَانَ نَفْسًا اوکه نفس وی فَهُوَ عَلٰی عَاقِلَةِ الْمَوْلٰی نو دا به د آقا په عاقله باندې وی آن لِاَنَّ الْاِشْهَادَ مِنْ وَجْهٍ عَلَی الْمَوْلٰی خکه چې اشهاد من وجه په آقا دې وَضَمَانُ الْمَالِ اَلْیَقُ بِالْعَبْدِ او د مال ضمان د غلام زیات لائق دې وَضَمَانُ النَّفْسِ بِالْمَوْلٰی او د نفس ضمان د مولا زیات لائق دې.

**تشریح:-** اوکه هلاك شوې څوك سړې وی.نو ددې دیت به د آقا په عاقله باندې واجب وی.خکه چې دمال ضمان په غلام باندې واجبول مناسب دی.او د نفس ضمان په آقا باندې واجبول مناسب دی.

### د میراث د کور د کوږ دیوال مرمت به څوك کوی؟

وَیَصِحُّ التَّقَدُّمُ او تقدم ( کوږ دیوال ارخ ته متوجه کول) صحیح دې اِلٰی اَحَدِ الْوَرَثَةِ فِیْ نَصِیْبِهٖ په وارثانو کې یو ( وارث) ارخ ته.د هغه په برخه کې وَاِنْ کَانَ لَا یَتَمَکَّنُ مِنْ نَقْضِ الْحَائِطِ وَحْدَهٗ اګرچه هغه یواځې ددې په ورانولو باندې قدرت نشی لرلې لِتَمَکُّنِهٖ.د هغه د قادر کیدو په وجه مِنْ اِصْلَاحِ نَصِیْبِهٖ د خپلې برخې په اصلاح باندې، بِطَرِیْقِهٖ د اصلاح طریقې سره وَهُوَ الْمُرَافَعَةُ اِلَی الْقَاضِیْ او دا طریقه قاضی ارخ ته مرافعه ( مقدمه پیش کول) دی.

**تشریح:-** یو کور یو څو سړو ته په میراث کې ملاو شو.او ددې کور دیوال کوږ شوې دې.نو دوی واړه په یو خانې ددې مرمت کوی.او که په دوی کې یومرمت کول اوغواړی.نو هغه هم کولې شی.چه ددې طریقه به دا وی.چه



قاضی ته مسئله وړاندې کړی.نو قاضی به پاته شریکانو ته ددې د مرمت حکم ورکوی.نو که د ورانولو مطالبه په وارثانو کې صرف د یوکس نه اوکړې شوه.نو صحیح ده.خو دا یو وارث به صرف د خپلې برخې ضامن وی.د پاته وارثانو د برخو ضامن به نه وی.او دې به د خپلې برخې ضامن ولې وی؟ نو ددې وجه دا ده.چه دده ارخ ته تقدم صحیح دې... کما مر..

### د دیوال په راغورځیدو یوکس هلاك شوبل کس په ده ټینډك اوخوړواو مړ شو.نو دده د ضمان حکم

وَلَوْ سَقَطَ الْحَائِطُ الْمَائِلُ عَلَی اِنْسَانٍ بَعْدَ الْاِشْهَادِ اوکه کوږ دیوال د اشهاد نه روسته په یو انسان باندې پریوتلو فَقَتَلَهٗ نو هغه نې قتل کړو فَتَعَثَّرَ بِالْقَتِیْلِ غَیْرُهٗ نو مقتول سره دده نه علاوه بل کس اوغورځیدو فَعَطِبَ نو هلاك شو لَا یَضْمَنُهٗ نو هغه ( مالك د دیوال) به دده ضامن نه وی لِاَنَّ التَّفْرِیْغَ عَنْهُ اِلَی الْاَوْلِیَاءِ خکه چې دده ( مقتول) نه لاره خالی کول دده ( مقتول) د اولیاو کار دې لَا اِلَیْهِ دده ( د دیوال د مالك) نه دې.

**حل اللغة:** ① الحائط: دیوال ② تعثر: اوغورځیدو ③ التفري: فارغ کول،اوزګارول

**تشریح:-** د زید دیوال کوږ شوې وو.د هغې په راغورځیدو خالد مړ شو.او خالد سره په ټینډك خوړلو بکر مړ شو.نو د بکر ضمان به په زید باندې نه وی.خکه چې خالد د لارې نه اوچتول د خالد د اولیاو کار دې.د زید نه دې.نو په ده به صرف د خالد ضمان وی.د بکر به نه وی.

### د ملبې په وجه د هلاك شوی د ضمان حکم

وَاِنْ عَطِبَ بِالنَّقْضِ او که دې ( بکر) د ملبې په وجه هلاك شو ضَمِنَهٗ نو هغه ( مالك د دیوال) به دده ضامن وی لِاَنَّ التَّفْرِیْغَ اِلَیْهِ خکه چې خالی کول ( د لارې) هم دده ( د زید) کار دې اِذِ النَّقْضُ مِلْکُهٗ خکه چې ملبه دده ملك دې وَالْاِشْهَادُ عَلَی الْحَائِطِ اِشْهَادٌ عَلَی النَّقْضِ او په دیوال اشهاد، ملبې باندې اشهاد دې لِاَنَّ الْمَقْصُوْدَ اِمْتِنَاعُ الشُّغْلِ خکه چې مقصود مشغولیت نه منع کیدل دی.

**حل اللغة:** ① عطب: هلاك شو ② النقض: ملبه

**تشریح:-** که بکر په خالد باندې د خوئیدو په خانې د زید د دیوال په ملبې باندې اوخوئیدو.نو بیا به د بکر ضمان هم په زید باندې وی.خکه چې د ملبې نه لاره صفا کول د زید فریضه ده.خکه چې د ملبې مالك هم زید دې.

اګه څوك پوښتنه اوکړی چې اشهاد خو صرف په دیوال وو.په ملبې باندې نه وو.نو بیا ضمان څنګه؟ نو موږ ورته وایو چې په دیوال باندې اشهاد، اصل کې ملبې باندې اشهاد دې.خکه مقصود دا دې.چه دده ملك لاره ګیره نکړی.او دلته دده ملك لاره ګیره کړې ده.

### په کوږ دیوال باندې د منګی په ایخودو سره د هلاکت د ضمان حکم

وَلَوْ عَطِبَ بِجَرَّةٍ اوکه دې ( بکر) هغه منګی سره هلاك شو کَانَتْ عَلَی الْحَائِطِ کومه چې په دیوال وه فَسَقَطَتْ بِسُقُوْطِهٖ نو د دیوال پریوتلو سره هغه راپریوتله وَهِیَ مِلْکُهٗ حالانکه دا منګی دده ( د زید) ملکیت دې ضَمِنَهٗ نو دې ( زید) به ضامن وی لِاَنَّ التَّفْرِیْغَ اِلَیْهِ خکه چې فارغول دده کار دې وَاِنْ کَانَ مِلْكَ غَیْرِهٖ اوکه دده نه علاوه د بل چا ملك وی لَا یَضْمَنُهٗ نو ضامن به نه وی لِاَنَّ التَّفْرِیْغَ اِلٰی مَالِکِهَا خکه چې فارغول ددې مالك ارخ ته ( راجع) دی.

**حل اللغة:** ① جرة: منګې

**تشریح:-** د زید په کوږ دیوال باندې مثلاً د شیرې ( د انګورو د کهل) منګې وو.او دیوال راوغورځیدو.چه په دې سره خالد هلاك شو.نو ددې ضمان په زید دې.او د دیوال په راغورځیدو سره منګې هم راوغورځیدو .اوس په دې سره بکر مړ شو.نو د بکر ضمان به په چا وی؟ نو وې فرمائیل.چه د منګی مالك هم زید دې.نو ضمان به په زید واجب وی.اوکه دده په دیوال باندې بل چا د اوچولو لپاره خپل منګې ایخودې وو.نو ضمان به د منګی په مالك باندې لازم وی.وجه ددې دا ده.چه څوك د منګی مالك وی.هغه د لارې نه اوچتول، او لاره صفا کول د هغه فریضه

ده.نو په رومبی صورت کي دا د زید فریضه وه.او په دوهم صورت کي دهغه چا فریضه ده.دچا چې دا منکې دې.

**په مشترك ديوال راغورځيدو سره د هلاكت د ضمان مسئله**

قال امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَإِنْ كَانَ الْحَائِطُ بَيْنَ خَمْسَةِ رِجَالٍ او كله چي ديوال د پنځو سړو په منځ كي مشترك وى فَأَشْهَدَ عَلَى أَحَدِهِمْ په هغوى كي يوكس باندې اشهاد اوكړې شو فَقَتَلَ إِنْسَانًا نو ديوال يو سړې قتل كړو ضَمِنَ خُمُسَ الدِّيَةِ نو هغه به (په چا چې اشهاد شوې دې) د خمس (پنځمې حصې) ضامن وى وَيَكُونُ ذٰلِكَ عَلَى عَاقِلَتِهٖ او دا به دده په عاقله باندې واجب وى.

**تشريح:-** په يو ديوال كي پنځه سړي شريك دى.خو د ورانولو مطالبه صرف په دوى كي د يوكس نه شوې ده.د پاته خلكو نه نه ده شوې.اوس ځوك ددې ديوال راغورځيدو سره هلاك شو.نو په پاته ځلورو باندې به هيڅ ضمان نه وى.ځكه چې ددوى په حق كي اشهاد نشته.بلكه هم په دې يو به ضمان وى.ځكه چې ده باندې ګواهان قائم شوى دى.خو دې به صرف د ديت د پنځمې برخې ضامن وى.ځكه چې دده ملكيت هم په دې حساب سره دې.او د ديت ۱۱۵ به هم په ده واجب نه وى.بلكه دده په خاندان به واجب وى.

**په مشترك كور كښې په كوهي كنستلو كښې د امامانو اختلاف**

وَإِنْ كَانَتْ دَارٌ بَيْنَ ثَلَاثَةِ نَفَرٍ وكه كور د دريو سړو په منځ كي (مشترك) وى فَحَفَرَ أَحَدُهُمْ فِيهَا بِئْرًا نو په دوى كي يو په دې كي څاه اوكنستلو وَالْحَفْرُ كَانَ بِغَيْرِ رِضَا الشَّرِيكَيْنِ الْآخَرَيْنِ او كنستل د دواړو شريكانو د رضامندئ نه بغير وى أَوْبَنَى حَائِطًا يا ئې ديوال جوړ كړو فَعَطِبَ بِهٖ إِنْسَانٌ نو په دې كي ځوك سړې هلاك شو فَعَلَيْهِ ثُلُثَا الدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهٖ نو په ده باندې دوې (دوه) ثلثه ديت دده په عاقله باندې دې وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (١)او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى.

**حل اللغة:** ① **بئر**: څاه ② **الحفر**: كنده﴾

**تشريح:-** د دريو سړويوكور دې.په دوى كي يو كس د دوو ملګرو د رضامندئ نه بغير په دې كي څاه اوكنستلو.يا ئې ديوال جوړ كړو.او په دې كوهي كي ځوك سړې مړ شو.يا ددې ديوال په وجه ځوك سړې مړ شو.نو دا ديوال جوړونكې يا څاه كنستونكې به د ديت د دوې (دوه) ثلثه ضامن وى.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.ګويا امام صاحب رحمه الله فرمائى.چه دا شريك د خپلو دواړو ملګرو په برخو كي د تعدى (زياتى) كاوه په وجه ظالم دې.او پخپله برخه كي دې ظالم نه دې.نو د خپلې برخې به په ده هيڅ ضمان نه وى.او د خپلو ملګرو په برخه كي به د تعدى كاوه په وجه ضامن وى.او چونكه ددوى برخه ۲/۳ ده.په دې وجه به دې د ديت د ۲/۳ ضامن وى.

**د صاحبينو رحمهما الله دليل**

وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائى.عَلَيْهِ نِصْفُ الدِّيَةِ چې په ده باندې نيم ديت دې عَلَى عَاقِلَتِهٖ دده په عاقله باندې فِي الْفَصْلَيْنِ په دواړو صورتونو كي دې لَهُمَا دليل دا آن التَّلَفَ بِنَصِيبِ مَنْ أَشْهَدَ عَلَيْهِ مُعْتَبَرٌ چې په چا باندې ګواهان مقرر شوى دى.د هغه د برخې په مقابله كي ضائع كيدل معتبر دى وَبِنَصِيبِ مَنْ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ اوپه چا چې اشهاد نه دې شوې هَدَرٌ د هغه د برخې په مقابله كي عبث دې فَكَانَا قِسْمَيْنِ نو دا دوې (دوه) قسمونه شو فَانْقَسَمَ نِصْفَيْنِ نو ضمان به نيم په نيمه تقسيميږى كَمَا مَرَّ لكه ځنګه چې تير شوى دى فِي عَقْرِ الْأَسَدِ شير په زخمي كولو وَنَهْشِ الْحَيَّةِ او مار په چيچلو وَجَرْحِ الرَّجُلِ او د سړي په زخمي كاوه كي.

**تشريح:-** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د نصف ديت ضامن وى.د دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه دلته په يو باندې اشهاد شوې دې.په پاته شريكانو باندې نه دې شوې.نو په رومبى به ضمان وى.او په پاته (شريكانو) باندې به

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدر المحتار(٤٢٦/٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٨/٢)-



ضمان نه وى.دغه دول چاچه څاه اوكنستلو.هغه تعدى اوكړله.او چا چې نه دې كنستلې.هغوى هيڅ تعدى نه ده كړې.لنډيز د كلام دا چې دلته په دې دواړو مثالونو كي فعل په دوې (دوه) قسمه شو.يو هغه كوم چې تعدى ده.او دوهم هغه په كوم كي چې تعدى نشته.نو ضمان به هم په دوو برخو باندې تقسيميږى.نو نصف ضمان ادا كول به دې متعدى فريضه وى.او پاته به فضول وى.ددې مثال بعينه داسې دې.چه زيد شير زخمي كړو.او مار هم او چيچلو.او يو سړې هم زخمي كړو.او د دريو واړو په وجه هغه مړ شو.نو په زخمي كونكى سړي به نيم ضمان واجب وى.په هغه دليل سره كوم چې ذكر شو.

**د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل**

وَلَهٗ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې الْمَوْتَ حَصَلَ بِعِلَّةٍ وَاحِدَةٍ چې مرګ په يو علت سره حاصل شوې دې وَهُوَ الثِّقَلُ الْمُقَدَّرُ او هغه ثقل مقدر (خاص دروندوالې) وَالْعُمْقُ الْمُقَدَّرُ او عمق مقدر (او خاص جور والې) دې لِأَنَّ أَصْلَ ذٰلِكَ لَيْسَ بِعِلَّةٍ ځكه چې اصل ثقل او عمق علت نه دې وَهُوَ الْقَلِيلُ او دا (اصل ثقل) قليل دې حَتّٰى يُعْتَبَرَ كُلُّ جُزْءٍ عِلَّةً تردې چې هر جزء به علت وى فَتَجْتَمِعُ الْعِلَلُ نو علتونه به جمع كيږى.وإذا كان كذلك او هركله چې خبره دا ده وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ يُضَافُ إِلَى الْعِلَّةِ الْوَاحِدَةِ نو مرګ به يو علت ارخ ته مضاف كيږى ثُمَّ تُقْسَمُ عَلٰى أَرْبَابِهَا بِقَدْرِ الْمِلْكِ بيا به دا يو علت په پاته ملګرو باندې په اندازه د ملك تقسيمولې شى.

**تشريح:-** د امام صاحب رحمه الله دليل دا دې.چه كوم كس مړ شو.د هغه د مرګ علت يو دې.علتونه متعدد نه دى.يعنى د ديوال مخصوص دروندوالې او د كوهي مخصوص ژوروالې، ګنې په معمولى دروندوالى او معمولى ژوروالى سره په عامه توګه (عام طور) باندې مرګ نه واقع كيږى.نو د ژور والى او درond والى هر هر جزء به جلا جلا علت نشي شمارلې.ګنې نو متعدد علتونه به جمع شى.بلكه علت فقط مخصوص او معلوم دروندوالې او ژوروالې دې.ګنې اصل دروندوالې او ژوروالې چې معمولى وى.نو قاتل نه جوړيږى.نو دا به د مرګ علت هم نه وى.نو معمولى دروندوالې او ژوروالې به علت نه وى.ګنې هر جزء جلا جلا علت منلو سره به ډير علتونه جمع كيږى.بهرحال علت صرف يو دې.او هغه مخصوص او مقدر دروندوالې او ژوروالې دې.نو هم دا د مرګ علت دې.هم دې ارخ ته د مرګ اضافت (او نسبت) كيږى.

بيا به د كور په مالكانو په اندازه د ملك دا علت تقسيمولې شى.نو په رومبى صورت كي د مذكوره ويش په نتيجه كي په دې يو باندې د ديت ۱۱۵ واجب شو.ځكه چې دده ملكيت هم دومره دې.نو كه په دې پنځو واړو باندې اشهاد شوې وې.او دوى ديوال نه وې تيك كړې.بيا به هم په دوى كښې هر يو باندې د ديت ۱۱۵ واجبيدله.نو اوس به هم داسې وى.او په دوهم صورت كي چې كله يو علت په دوى دريو واړو باندې ويش كړې شو.نو د كوهي كنستونكى،او ديوال جوړونكى صرف دوې (دوه) ثلثه كي ده.او پخپله دريمه برخه كي دده د ارخه هيڅ تعدى نشته.نو ددې ضمان به هم په ده واجب نه وى.

بِخِلَافِ الْجِرَاحَاتِ په خلاف د زخمونو فَإِنَّ كُلَّ جِرَاحَةٍ عِلَّةٌ لِلتَّلَفِ بِنَفْسِهَا ځكه چې هر زخم پخپله د ضائع كاوه علت دې صَغُرَتْ كه وړوكې وى أَوْكَبُرَتْ اوكه لوئې وى عَلٰى مَا عُرِفَ د هغه تفصيل مطابق كوم چې معلوم شوې دى إِلَّا أَنَّ عِنْدَ الْمُزَاحَمَةِ أُضِيفَ إِلَى الْكُلِّ خو د مزاحمت (او مقابل) په وخت به مرګ كل (پوره) ارخ ته مضاف وى لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ رومبى والى نه كيدو په وجه.وَاللّٰهُ أَعْلَمُ والله اعلم.

**حل اللغة:** ① **اضيف**: نسبت اوكړې شو ② **المزاحمة**: مقابله راتګ ،ګنړوالې﴾

**تشريح:-** په خلاف د مذكوره زخمونو، چې شير هم هغه لره زخمي كړې وى.او مار هم هغه چيچلې وى.او يو سړې هم هغه زخمي كړې وى.ځكه چې دلته كښې هر فعل پخپل ځائې يو مستقل علت دې.ځكه چې دا درې شيان داسې دى.چه په دې سره سړې ضائع كيږى.نو دا مستقل علتونه دى.كه واړه وى.اوكه غټ وى.

اوس هركله چې د دريو واړو اجتماع اوشوه.او ددې دريو واړو په منځ كي مقابله اوشوه.نو چونكه رومبې والې

خو نشته.چه هغه مخكي دې.او دا روستو دې.يا هغه علت دې.او دا اصلي نه دې.نو د مرګ اضافت په دوى كي هر يو اړخ ته اوكړې شو.يعنى په دوى كي د هر يو په وجه دا مراد دې.ددې نه روسته موږ په دې كي غور اوكړو.نو معلومه شوه.چه د شير او مار فعل خو داسي دې.چه ددې په وجه ضمان نه واجبيږي. او د سړي فعل داسي دې.چه ددې په وجه ضمان واجبيږي.نو موږ د مجبورئ په وجه د فعل دوى (دوه) قسمونه جوړ كړي.يو مضمون او بل غير مضمون، نو د مضمون اعتبار كاوه سره نصف ضمان په زخمي كونكي سړي باندې واجب كړې دي.

## باب جناية البهيمة والجناية عليها

ژباړه:- (دا) باب د څاروى د جنايت او په څاروى باندې د جنايت (په بيان كي) دې.

تشريح:- په دې باب كي به دا بيانيږي.كه څاروى د چا سره څه حركت اوكړو.او نقصان ئې ورته اورسولو.نو د ضمان به څه صورت وى؟ او كه په څاروى باندې چا جنايت اوكړو.نو ددې به څه حكم وى؟

**د سور سړي سوارلئ يوكس مړ كړونو څه حكم دې ؟**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلى دى (الرَّاكِبُ ضَامِنٌ چي) سور به ضامن وى لِمَا أَوْطَأَتِ الدَّابَّةُ د هغې كوم چي څاروى پښو كي اغږلې وى. أَصَابَتْ بِيَدِهَا كه په لاسونو (مخكنو پښو) ئې اغږګلې وى أَوْ رِجْلِهَا اوكه په شاتنو پښو سره أَوْ رَأْسِهَا يا پخپل سره أَوْ كَدَمَتْ يا ئې چيچلې وى أَوْ خَبَطَتْ يا په مخكنو پښو سره وهلې وى وَكَذَا إِذَا صَدَمَتْ وهم دغه ډول (حكم دې) كله ئې چي ديكه وركړې وى. وَلَا يَضْمَنُ او ضامن به نه وى مَا نَفَحَتْ بِرِجْلِهَا كله چي څاروى د خپلو پښو په نوكونو سره وهلې وى أَوْ ذَنَبِهَا يا ئې پخپلې لكئ سره وهلې وى.

حل اللغة* ① الكلام: په مخكنو غاښونو سره چيچل، لخبط: په مخكنو پښو سره وهل، ③ صدم: ديكه (ډغره) وركول، يعنى په بدن سره غورځول،نفخ: نوكانو سره وهل، او مطلق پښو سره وهل،:: لته وهل بيل شئ دې.او په پښو كي اغږل بيل شئ دې. ④ الوطاءت: پائمال كول ⑤ الخبط: په مخكنوپښو سره وهل ⑥ ذنب: لكئ﴾

تشريح:- مثلاً زيد پخپل اس باندې ناست چرته روان وو.چه د هغه اس خالد ته نقصان اورسولو.او هلاك ئې كړو.نو په ذكر شوو صورتونو كي په يو كي ضمان نشته.او په پاته صورتونو كي ضمان شته.كه اس لته اووهله، يا ئې په لكئ اووهلو.نو ضمان به نه وى.او په پاته صورتونو كي به ضمان واجب وى.هغه پاته صورتونه شپږ دى:① پخپلو مخكنو پښو سره اغږل ② پخپلو (شاتنو) پښو سره اغږل ③ سره سره اغږل ④ غاښونو سره چيچل ⑤ په مخكنو پښو سره وهل .. كما هو المعتاد... ⑥ ديكه وركول.( يعنى په ډغره وهل).

**په لارې د تيريدو كښې قاعده كليه**

وَالْأَصْلُ او قاعده كليه دا ده الْمُرُورُ فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ مُبَاحٌ چي تيريدل د مسلمان په لاره كي مباح دى مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چي دا د سلامتيا شرط سره مقيد دې. لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي حَقِّهِ مِنْ وَجْهٍ ځكه چي دا (تيريدونكې) من وجه پخپل حق كي تصرف كوى وَفِي حَقِّ غَيْرِهِ مِنْ وَجْهٍ او من وجه د خپل غير په حق كي لِكَوْنِهِ مُشْتَرَكًا بَيْنَ كُلِّ النَّاسِ لارې د مشترك كيدو په وجه د ټولو خلكو په منځ كي فَقُلْنَا بِالْإِبَاحَةِ ،نو موږ د اباحت قائل شو مُقَيَّدًا بِمَا په داسي حال كي چي دا هغه شئ سره مقيد وى ذَكَرْنَا كوم چي موږ ذكر كړې دي.( يعنى سلامتيا سره) لِيَعْتَدِلَ النَّظَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ چي د دواړو طرفونو نه شفقت معتدل (برابر) شى.

تشريح:- په لاره كي د ټولو خلكو حق دې.واړه په دې كي تيريدې شى.هر تيريدونكې من وجه پخپل حق كي تصرف كوى.او من وجه د بل په حق كي تصرف كوى.نو حكم كول ګكار دى.چه ناجائز وى.خو دا تيريدل به په سلامتيا سره مقيد وى.ځكه چي د دواړو طرفونو د غوره والى هم دا صورت دې.

**په تيريدو كښې چې د كومو څيزونو نه بچ كيدل ممكن وى د هغې مسئله**



ثُمَّ إِنَّمَا يَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ بيا تيريدل به د سلامتيا صفت سره مقيد وى فِيمَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ په هغه صورت كي د كوم نه چي بچ كيدل ممكن وى وَلَا يَتَقَيَّدُ بِهَا او تيريدل به د سلامتيا شرط سره مقيد نه وى فِيمَا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ په هغه صورت كي په كوم كي چي بچ كيدل ممكن نه دى لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَنْعِ عَنِ التَّصَرُّفِ ځكه چي په دې (تقييد) كي د تصرف نه منع كيدل دى وَسَدِّ بَابِهِ د تصرف دروازه بندول دى. وَهُوَ مَفْتُوحٌ حالانكه دا كلاو ده وَالِاحْتِرَازُ عَنِ الْإِيطَاءِ وَمَا يُضَاهِيهِ مُمْكِنٌ او په پښو كي اغږلو نه او كوم چي ددې مشابه دى.بچ كيدل ممكن دى. فَإِنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ التَّسْيِيرِ ځكه چي دا د چلولو د ضروورياتو څخې نه دى فَقَيَّدْنَاهُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ عَنْهُ نو موږ چلول په دې سره د سلامتيا شرط سره مقيد كړو وَالنَّفْحَةُ بِالرِّجْلِ وَالذَّنَبِ او په لته او لكئ سره وهل لَيْسَ يُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ ددې نه بچ كيدل ممكن نه دى مَعَ السَّيْرِ عَلَى الدَّابَّةِ په څاروى باندې (سور) ګرځيدو سره، فَلَمْ يَتَقَيَّدْ بِهِ نو دا به سلامتيا سره مقيد نه وى.

حل اللغة* ① التيسير: آسانتيول ② الفنحة: لته وهل ③ الذنب: لكئ ④ الاضاهة: مشابهت﴾

تشريح:- څه شيان داسي دى.چه ددې نه بچ كيدل ممكن دى.نو هلته د سلامتيا شرط دې. لكه په پښو كي اغږل، چيچل، ديكه وركول وغيره،او بعضې شيان داسې دى.چه ددې نه بچ كيدل ممكن نه دى.نو هلته سلامتيا شرط هم نه دې.د كومو نه چې بچ كيدل ممكن دى. لكه د شا اړخ لته وهل، او په لكئ وهل، نو په دې كي د سلامتيا شرط دې.

**په لاره كښې د څاروى په اودرولو سره ددې د لتې وهلو د ضمان حكم**

وَقَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ أَوْقَفَهَا فِي الطَّرِيقِ نو كه ده حيوان (څاروې) په لاره كي اوتړلو ضَمِنَ النَّفْحَةَ أَيْضًا نو دې به په نوكانو (اولتې) وهلو سره هم ضامن وى لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنِ الْإِيقَافِ ځكه چي دده لپاره په لاره كي د اودرولو نه بچ كيدل ممكن دى وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْهُ عَنِ النَّفْحَةِ اګرچه ده لره د لتې نه بچ كيدل ممكن نه دى فَصَارَ مُتَعَدِّيًا فِي الْإِيقَافِ نو دې په لاره كي اودرولو سره متعدى شو وَشَغْلِ الطَّرِيقِ بِهِ او د لارې د مشغولولو په وجه د اودرولو په ذريعه فَيَضْمَنُهُ نو هغه به ددې ضامن وى

تشريح:- كه اس لته اووهى.نو ددې ضامن په سور كس باندې نشته.خو كه سور كس دا (څاروې) په لاره كي اودروى.او هغه په لاره كي څوك په لته اووهى.نو بيا به ضمان واجب وى.ځكه چې لاره كي اودرول، د عذر نه بغير دى.ددې نه بچ كيدل ممكن دى.اګرچه د لتې وهلو نه بچ كيدل ممكن نه دى. بهر حال په لاره كي د اودرولو په وجه دې مجرم شو.ځكه به په ده باندې ضمان واجب وى.

**د څاروى په تللو سره په خاورې اوچتيدو د يوكس د ستركو زخمى كولو مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ أَصَابَتْ بِيَدِهَا أَوْ بِرِجْلِهَا حَصَاةً أَوْ نَوَاةً) و كه څاروى پخپلو مخكنو يا شاتنو پښو سره كاڼړى يا د كجورو هډوكى اوچت كړل أَوْ أَثَارَتْ غُبَارًا أَوْ حَجَرًا صَغِيرًا يا ده ګردونه يا واړه كاڼړى اوچت كړل فَفَقَأَ عَيْنَ إِنْسَانٍ نو دې د يو سړي ستركه زخمى كړله أَوْ أَفْسَدَ ثَوْبَهُ يا ئې ددوى كپړه خرابه كړله لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وى وَإِنْ كَانَ حَجَرًا كَبِيرًا وكه كاڼړې وى ضَمِنَ نو ضامن به وى.

حل اللغة* ① حصاة: كاڼړې ② نواة: دقجورې هډوكې ③ حجر: كاڼړې④ فقا: ستركه زخمى كړه﴾

تشريح:- اس منډې وهى.او د منډو په وجه كاڼړى او د كجورو هډوكى اوچتيږى.يا ګردونه او دوړې الوځى.يا واړه كاڼړى اوچتيږى.چه په دې سره د چا ستركه زخمى شوه.نو په سور به ضمان نه وى.اوكه لوئې كاڼړې وى.نو ضمان به واجب وى.

لِأَنَّهُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ، ځكه چي ړومبى صورت كي بچ كيدل ممكن نه دى إِذْ سَيْرُ الدَّوَابِّ لَا يَعْرَى عَنْهُ ځكه چي د څاروو تلل ددې نه خالى نه وى وَفِي الثَّانِي مُمْكِنٌ او په دوهم صورت كي بچ كيدل ممكن دى لِأَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنْ

السَّيْرِ عَادَةً ځکه چې دا (غټ غټ کاڼي اوچتول) په عامه توګه (عام طور) باندې د تللو نه خالي وي

تشریح:- رومبې معاف دې. ځکه چې کله اس منډې وهي. نو په عامه توګه (عام طور) باندې دا حالت مخې ته راځي. ګویا چې ددې نه بچ کیدل نا ممکن دی. او دوهم معاف نه دې. ځکه چې دې نه بچ کیدل ممکن دی. ځکه چې داسې په عامه توګه (عام طور) کیږي. چه اس منډې وهي. نو غټ غټ کاڼي نه اوچتوی. بلکه کله چې سور کس په اس باندې زیاته سختي کوي. نو غټ غټ کاڼي اوچتیږي.

وَإِنَّمَا ذَلِكَ بِتَعْنِيفِ الرَّاكِبِ دا خو د سور کس د سختۍ په وجه سره کیږي. وَالْمُرْتَدِفُ فِيمَا ذَكَرْنَا او ردیف (شاته سور کس) په دې جنایاتو کې کوم چې موږ ذکر کړي دي كَالرَّاكِبِ د سور پشان دې لِأَنَّ الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ ځکه چې معنی مختلف نه ده.

تشریح:- که په اس باندې زید پسې شاته خالد هم سور وي. نو اوس به ضمان په دواړو باندې وي. ځکه چې اوس اس ددوی دواړو په لاس کې دې. او د دواړو په تصرف کې دې.

## په لاره کښې د څاروي په سوټو سره د هلاکت د ضمان حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (فَإِنْ رَاثَتْ) نو که څاروي سوټه اوکړله أَوْ بَالَتْ فِي الطَّرِيقِ یا نې په لاره کې بولې اوکړلې وَهِيَ تَسِيرُ حالانکه حیوان (څاروې) روان دې فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ نو په دې سره څوك انسان هلاك شو لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وي لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ السَّيْرِ ځکه چې دا تلل د ضروریاتو څخه دی فَلَا يُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو هغه ته ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی ثُمَّ قَالَ وَكَذَا او هم دغه ډول (به ضامن نه وي) إِذَا أَوْقَفَهَا لِذَلِكَ کله چې هغه حیوان (څاروې) ددې (سوټو یا متیازو) لپاره اودرولې وي لِأَنَّ مِنَ الدَّوَابِّ مَا لَا يَفْعَلُ ذَلِكَ ځکه چې بعض څاروی دا کار نه کوی إِلَّا بِالْإِيقَافِ مګر په اودریدو سره،

تشریح:- که اس په لاره کې سوټې اوکړلې. یا نې بولې اوکړلې. نو چونکه ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی. نو که په دې کې څوك اوخوئیږي. او مړ شي. نو په سور کس به ضمان نه وي. دغه ډول بعضې څاروی داسې وي. چه هغوی اودریږي. نو سوټې کوي. یا بولې کوي. په دې وجه سور کس دا (څاروې) اودرولو. چه د خپل اړتیا نه فارغ شي. نو چونکه ددې په اودرولو کې اړتیا وه. په دې وجه به اوس هم ضمان واجب نه وي.

وَإِنْ أَوْقَفَهَا لِغَيْرِ ذَلِكَ او که دا (څاروې) نې ددې (سوټو یا متیازو) نه علاوه لپاره اودرولو فَعَطِبَ إِنْسَانٌ بِرَوْثِهَا أَوْ بَوْلِهَا نو یو انسان ددې د سوټو یا متیازو په وجه هلاك شو ضَمِنَ نو هغه به ضامن نه وي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي هَذَا الْإِيقَافِ ځکه چې هغه په دې اودرولو کې متعدی دې لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ السَّيْرِ ځکه چې دا (اودرول) د تللو د ضروریاتو څخه نه دې ثُمَّ هُوَ أَكْثَرُ ضَرَرًا بِالْمَارَّةِ مِنَ السَّيْرِ بیا اودرول په لاره تلونکو خلګو لپاره د تللو نه زیات مضر دې لِمَا أَنَّهُ أَدْوَمُ مِنْهُ ځکه چې اودرول د تللو نه زیات وخت اخلی فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو اودرول به تللو سره نه متعلق کیږي.

تشریح:- اوکه هسې بیسه نې په لاره کې اودرولې وي. بیا دې (څاروی) خاشنړه یا سوټې اوکړلې. او څوك په دې کې اوخوئیدو. او مړ شو. نو اوس به په مالك باندې ضمان راځي. ځکه چې دا اودرول بې ضرورته دی. په دې وجه هغه په دې کې متعدی شو. نو ضمان به راځي. په لاره کې تلونکو خلګو ته د اس په تللو سره دومره تکلیف نه وي. لکه څومره چې ددې په اودرولو کې کیږي. ځکه چې تللو کې همیشوالې نشته. (وخت کم لګی). او په اودرولو کې همیشوالې دې. (وخت ډیر لګی) چې دا تړیفك بندولې شي. په دې وجه به اودرولو ته د تللو درجه نشي ورکولې. بلکه تلل به غیر مضمون وي. او اودرول به مضمون ګرځولې شي.

## د څاروی رابښکونکې یا شړونکې به کله ضامن وي؟

وَالسَّائِقُ ضَامِنٌ او د شا اړخه شړونکې به ضامن وي لِمَا أَصَابَتْ د هغه څیز، کوم چې څاروی رسولې وي بِيَدِهَا أَوْ



رِجْلِهَا په مخکنو پښو یا شاتنو پښو سره، وَالْقَائِدُ ضَامِنٌ او رابښکونکې ضامن دې لِمَا أَصَابَتْ بِيَدِهَا د هغه شي کوم نې چې رسولې دې. پخپلو مخکنو پښو سره دُونَ رِجْلِهَا په شاتنو پښو سره به نه وي وَالْمُرَادُ النَّفْحَةُ او مراد (په پښو وهلو سره) نوکانو سره وهل (یعنی لته وهل) دی قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرغینانی رحمه الله فرمایي هَكَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ فِي مُخْتَصَرِهِ چې دا امام قدوری رحمه الله پخپل مختصر کې هم دغه ډول ذکر کړی دی وَإِلَيْهِ مَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ رحمهم الله او هم دې اړخ ته د بعضو مشائخو میلان دې وَوَجْهُهُ او ددې وجه دا ده النَّفْحَةُ بِمَرْأَى عَيْنِ السَّائِقِ چې نفحه (لته وهل) د شړونکې سترګو ته مخکې ده فَيُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو هغه له ددې نه بچ کیدل ممکن دی وَغَائِبٌ عَنْ بَصَرِ الْقَائِدِ او د راخکونکې د سترګونه غائب دې فَلَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو هغه له ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی

حل اللغة: ① السائق: دڅاروی شړونکې ② التحرز: خان ساتل ③ البصر: سترګه ﴾

تشریح:- که سائق (شړونکې) حیوان (څاروې) شړي. او روان دې. نو په مخکنو پښو سره اغړل او په شاتنو پښو سره اغړل برابر دی. په دواړو صورتونو کې به سائق باندې ضمان واجب وي. اوکه قائد (راخکونکې) دې. نو هغه به د شاتنو پښو ذمه دار نه وي. بلکه صرف د مخکنو پښو ذمه وار دې. ځکه چې شړونکې ته دواړه پښې محکی دی. نو هغه ددې نه بچ کیداې شي. او چونکه د رابښکونکی نظر په شاتنو پښو نه دې. نو هغه لپاره ددې نه بچ کیدل هم ممکن نه دی. په دې وجه به هغه د شاتنو پښو ضامن نه وي. شیخ قدوری رحمه الله په مختصر القدوری کې هم دا بیان کړې دې. او بعضو مشائخو د عراق هم دا غوره کړې دې.

## شړونکې به د لتې ضامن وي

وَقَالَ أَكْثَرُ الْمَشَايِخِ: او اکثرو مشائخو فرمائیلی دی أَنَّ السَّائِقَ لَا يَضْمَنُ النَّفْحَةَ أَيْضًا چې شړونکې به هم د لتې وهلو ضامن نه وي وَإِنْ كَانَ يَرَاهَا اګرچه هغه دې ته ګوری إِذْ لَيْسَ عَلَى رِجْلِهَا ځکه چې د څاروی په پښو باندې داسې څیز نشته. مَا يَمْنَعُهَا بِهِ چې دا هغه د لتې وهلو نه منع کړی فَلَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی بِخِلَافِ الْكَدْمِ په خلاف د چیچلو لِإِمْكَانِهِ ددې د ممکن کیدو په وجه كَبْحِهَا بِلِجَامِهَا ددې د واګو رابښکلو په وجه وَبِهَذَا يَنْطِقُ أَكْثَرُ النُّسَخِ او هم دې سره د قدوری اکثرو نسخو بیان دې وَهُوَ الْأَصَحُّ، او هم دا اصح دی

حل اللغة: ① کبح: د څاروی واګې، ② لجام: واګې ﴾

تشریح: امام قدوری رحمه الله چې څه فرمائیلی دی. هغه وړاندې تیر شو. ددې څائې نه د ماوراء النهر د مشائخو قول بیانوی. ددې حاصل دا دې. چه د شاتنو پښو د لتې ضمان چې لکه څنګه په رابښکونکی باندې نشته. دغه ډول به په شړونکی باندې هم نه وي. ځکه چې شړونکې اګرچه دې ته ګوری. خو د څاروی په پښو باندې داسې څه شي نه دې تړلې شوې. چه د هغې په وجه دې د لتې وهلو نه منع کړې شي. نو ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی. البته که حیوان (څاروې) په غاښونو سره چیچل اوکړی. نو ددې نه بچ کیدل ممکن دی. یعنی په واګو رابښکلو سره دې منع کولې شي. د علامه عینی رحمه الله د قول مطابق د قدوری اکثرو نسخو بیان هم دغه ډول دی. او اصح قول هم دا دې چه د سائق او قائد (د شړونکی او رابښکونکی) دواړو حکم یو دې... فیه مافیه..

## د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی يَضْمَنُونَ النَّفْحَةَ كُلُّهُمْ چې د لتې وهلو به واړه ضامن وي لِأَنَّ فِعْلَهَا مُضَافٌ إِلَيْهِمْ ځکه چې دده فعل به هم دوی اړخ ته مضاف وي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ او ددوی خلاف حجت هغه دې مَا ذَكَرْنَاهُ کوم چې موږ ذکر کړې دې.

تشریح:- د امام شافعی رحمه الله په نیز به د لتې وهلو هم ضمان وي. که سور کس وي. اوکه شړونکې یا رابښکونکې دی. ځکه چې د اس فعل به دوی اړخ ته منسوب وي. مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه زمونږ ذکر شوې دلیل په دوی باندې حجت دې.

وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی ﷺ فرمان {الرِّجْلُ جُبَارٌ} پښي فضول دی،، (١) وَمَعْنَاهُ النَّفْحَةُ بِالرِّجْلِ د دې معنی لته وهل دی وَانْتِقَالُ الْفِعْلِ بِتَخْوِيفِ الْقَتْلِ او د فعل انتقال د قتل يره ور کاوه سره کيږي كَمَا فِي الْمُكْرَهِ لکه په مکره کي ، وَهٰذَا تَخْوِيفٌ بِالضَّرْبِ او دا د وهلو تخويف ( يره ورکول) دی.

**حل اللغة:** ① **تخويف:** ويرول

**تشريح:-** دغه ډول دوهم حديث هم امام شافعي رحمه الله باندې په حجت کي پيش کوی چي نبی ﷺ فرمائيلي دی.چه الرجل جبار يعنی په پښو سره چي څوك مړه شي.نو د هغه ضمان به واجب نه وی.بيا چي امام شافعي رحمه الله فرمائيلي دی.چه د خاروی فعل به هم دوی اړخ ته منتقل کيږي.دا هم د اصول اختلاف دي. ولي؟ خکه چي د فعل انتقال د کاملي يرې او دکامل اکراه په صورت کي کيږي.او دلته کي اکراه کامل نه ده.بلکه اکراه ناقص ده.خکه چي دوی د اس د قتلولو دهمکی نه ده ورکړې.بلکه د وهلو ئې ورکړې ده. لنډيز د کلام دا چي دا اکراه ناقص ده.

## د کومو څيزونو چي سور ضامن وي شړونکي او راښکونکي هم ضامن وي

قَالَ (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او په جامع صغير کي دی وَكُلُّ شَيْءٍ ضَمِنَهُ الرَّاكِبُ او هر هغه شئ د کوم چي سور کس ضامن وی ضَمِنَهُ السَّائِقُ وَالْقَائِدُ شړونکي او راښکونکي به هم د هغي ضامن وی . لِأَنَّهُمَا مُسَبِّبَانِ خکه چي دا دواړه مسبب دی بِمُبَاشَرَتِهِمَا د دې دواړو د پوره کولو( او ارادې) په وجه شَرْطَ التَّلَفِ، د هلاکاوه شرط لره، وَهُوَ تَقْرِيبُ الدَّابَّةِ إِلَى مَكَانِ الْجِنَايَةِ او دا حيوان (خاروی) د جنايت خاني ته نژدې کوی فَيَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو دا به د سلامتيا شرط سره مقيد وی فِيمَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ په هغه شئ کي د کوم نه چي بچکيدل ممکن دی كَالرَّاكِبِ لکه سور

**تشريح:-** په جامع صغير کي دی.چه کوم خاني کي په راکب ( سور) باندې ضمان واجبيږي.هلته به په سائق (شړونکی) او قائد ( راښکونکی) باندې هم ضمان وی.لکه څنګه چي راکب د هلاکت سبب دې.دغه ډول سائق او قائد هم د هلاکت سبب دی.خکه چي ددوی د اړخه دا سبب اوموندې شو.چه دوی حيوان (خاروی) د جنايت محل ته نژدې کړې دې.بهرحال مسبب باندې ضمان هغه وخت نه وی.کله چي د هغه د اړخه تعدی نه وی.او په تعدی کيدو سره به ضمان واجبيږي.لکه څنګه چي په راکب باندې راځي.

## د سور، شړونکي او راښکونکي د کفارې بيان

قَالَ (إِلَّا أَنَّ عَلَى الرَّاكِبِ الْكَفَّارَةَ خو په سور باندې کفاره ده فِيمَا أَوْطَأَتْهُ الدَّابَّةُ بِيَدِهَا په هغه صورت کي کله چي د( هلاك شوی) لره خاروی په مخکنو پښو أَوْ بِرِجْلِهَا يا شاتنو پښو سره اغږلې وی وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِمَا او په دوی دواړو باندې کفاره نشته وَلَا عَلَى الرَّاكِبِ فِيمَا وَرَاءَ الْإِيطَاءِ او نه د اغږلو نه علاوه کي په سور باندې کفاره شته.

**تشريح:-** سور، شړونکي او راښکونکي په ضمان کي برابر دی.خو په بعضو احکامو کي توپير دې.او هغه دا دی.چه په مباشر( او قصد کونکی) د قتل باندې کفاره واجبيږي.په سبب باندې نه واجبيږي.نو په پښو کي د پائمال کاوه په صورت کي راکب باندې کفاره واجب ده.په شړونکي او راښکونکي باندې نه ده.

لِأَنَّ الرَّاكِبَ مُبَاشِرٌ فِيهِ خکه چي سور په دې کي مباشر( او قصد کونکي) دې لِأَنَّ التَّلَفَ بِثِقَلِهِ خکه چي هلاکت دده د بوج په وجه دې وَثِقَلِ الدَّابَّةِ تَبَعٌ لَهُ او د خاروی بوج د سور تابع دې لِأَنَّ سَيْرَ الدَّابَّةِ مُضَافٌ إِلَيْهِ خکه چي د خاروی تلل سور اړخ ته مضاف دی وَهِيَ آلَةٌ لَهُ او حيوان (خاروی) د سور لپاره دې وَهُمَا مُسَبِّبَانِ او دا دواړه سبب دی لِأَنَّهُ لَا يَتَّصِلُ مِنْهُمَا إِلَى الْمَحَلِّ شَيْءٌ خکه چي ددوی دواړو د اړخه محله پورې هيڅ يو شئ متصل نه دې وَكَذَا الرَّاكِبُ فِي غَيْرِ الْإِيطَاءِ او هم دغه ډول سور د اغږلو نه علاوه کي مسبب دې.

**تشريح:-** خکه چي سور مباشر( او قصد کونکي) دې.او شړونکي او راښکونکي سبب دی.د سور مباشر( او قصد

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه الدارقطني في سننه (١٧٩١٣)رقم ٢٨٣)_



کونکي) کيدل خکه دی.چه دده د بوج په وجه پائمال شوي مړ شوي دی.او د خاروی بوج د سور د بوج تابع دې.او کوم خاني چي پښو کي پائمال کول نه وی.هلته سور هم مباشر نه دې.بلکه مسبب دې.نو هلته به په سور باندې هم کفاره واجب نه وی.د شړونکي او راښکونکي مباشر نه کيدل او مسبب کيدل په دې وجه دی.چه کوم کس مړشوی دې.هغه کي او په دوی دواړو کي هيڅ قسمه اتصال نشته.نو معلومه شوه.چه دوی صرف سبب دی.

## د کفارې د حکم بنياد

وَالْكَفَّارَةُ حُكْمُ الْمُبَاشَرَةِ او کفاره د مباشرت ( او قصدی فعل) حکم دې لَا حُكْمُ التَّسَبُّبِ د سبب نه دې وَكَذَا يَتَعَلَّقُ او هم دغه ډول متعلق کيږي بِالْإِيطَاءِ په پائمال کاوه سره فِي حَقِّ الرَّاكِبِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ د سور په حق کي ميراث نه محروميدل وَالْوَصِيَّةِ او د وصيت نه محروميدل دُونَ السَّائِقِ وَالْقَائِدِ د شړونکي او راښکونکي په حق کي نه کيږي لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمُبَاشَرَةِ خکه چي دا محروميدل مباشرت ( او قصد ) سره خاص دی.

**تشريح:-** خکه چي کفاره د مباشرت (اوارادې) په صورت کي واجبيږي.د سبب په صورت کي نه واجبيږي .او مباشر صرف سور کس دې.شړونکي او راښکونکي نه دې.کله چي خاروی په پښو کي پائمال کړې وی .اومړ کړې ئې وی.نو سور ته به د مړ کيدونکي ميراث نه ملاويږي.او مړ کيدونکي دده لپاره وصيت اوکړی.نو وصيت به جائز نه وی.او شړونکي او راښکونکي به وارثان هم وی.او ددوی لپاره به وصيت هم جائز وی.... وقد بيناه في درس السراجي،،

## خاروی چي کوم څيز په پښو کښې ضائع کړي.سور به ضامن وی.اوکه شړونکي

وَلَوْ كَانَ رَاكِبٌ وَسَائِقٌ اوکه سور او شړونکي وی قِيلَ: نو وئيلي شوی دی. لَا يَضْمَنُ السَّائِقُ چي شړونکي به ضامن نه وی مَا أَوْطَأَتِ الدَّابَّةُ د هغه شئ کوم چي خاروی په پښو کي پائمال کړې وی لِأَنَّ الرَّاكِبَ مُبَاشِرٌ فِيهِ خکه چي سور په دې کي مباشر( او قصد کونکي) دې لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکرکړې دې وَالسَّائِقُ مُتَسَبِّبٌ او شړونکي مسبب دې وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْمُبَاشِرِ أَوْلَى او د مباشر اضافت راجح وی وَقِيلَ: او وئيلي شوی دی الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا چي ضمان به په دوی دواړو باندې وی لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ سَبَبُ الضَّمَانِ.خکه چي هر يو د ضمان سبب دې.

**تشريح:-** که په خاروی باندې زيد سور دې.او خالد د شا اړخه دا ( خاروی) شړی.او خاروی بکر په پښو کي پائمال کړو.نو په دې کي دوې (دوه) قوله دی:① صرف په سور باندې ضمان دې.خکه چي هغه مباشر دې.اوخالد سبب دې.او د حکم اضافت مباشر اړخ ته کول راجح دی.په نسبت د سبب په اړخ اضافت کاوه نه،② په دواړو باندې ضمان شته.خکه چي سوريدل او ترټل (شړل) دواړه د ضمان سبب دی.نو په دواړو به ضمان وی.

## په دوو اسونو سواره کسان خپلو کښې ټکراو شي. او مړه شي نو د ديت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا اصْطَدَمَ فَارِسَانِ اوکله چي دوې (دوه) سواره اوجنګيږي.( ټکراو شی). فَمَاتَا نو دواړه مړه شو فَعَلَى عَاقِلَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دِيَةُ الْآخَرِ نو د هر يو په مددګار خاندان ( عاقله) باندې به د دوهم ديت واجب وی.

**تشريح:-** زيد او خالد دواړه په اسونو باندې سواره دی.دواړو ډغره اوخوړله.چه ددې په وجه دواړه مړه شو.يا دواړه پيدل وو.دواړو ډغره اوخوړله.او دواړه مړه شو.او ډغره په خطاء سره وی.نو اوس حکم دا دې.چه د زيد مددګار خاندان به د خالد پوره ديت او د خالد مددګار خاندان به د زيد پوره ديت ادا کوی.دا د حنفيانو مسلك دې.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: رحمهما الله او امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمايي يَجِبُ عَلَى عَاقِلَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ دِيَةِ الْآخَرِ چي په دوی دواړو کي به د هر يو په مددګار خاندان باندې د بل نصف ديت واجب وی.

**تشريح:-** د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله مذهب دا دې.چه د زيد په خاندان باندې به د خالد نيم ديت او د خالد په خاندان باندې به د زيد نيم ديت واجب وی.

لِمَا رُوِيَ ذٰلِكَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ(١) په دې وجه چې دا د علي ﷛ نه نقل دی وَلِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَاتَ بِفِعْلِهِ وَفِعْلِ صَاحِبِهِ او خکه چې په دوی دواړو کې هر یو پخپل فعل او د خپل انډیوالان فعل سره مړ شوې دې لِأَنَّهُ بِصَدْمَتِهِ آلَمَ نَفْسَهُ وَصَاحِبَهُ خکه چې ده (یعنی دواړو کې هر یو) پخپلې دیکې سره خپل نفس او خپل انډیوالان ته نقصان رسولې دې فَيُهْدَرُ نِصْفُهُ نو دده نیم به عبث وی وَيُعْتَبَرُ نِصْفُهُ او دده نیم به معتبر وی.

حل اللغة* ① صدمة: دیکه ② آلم: تکلیف اورسولو﴾

تشریح:- د دوی یو نقلی دلیل دې چې زموږ مذهب د حضرت علی ﷛ نه منقول دې او دوهم عقلی دلیل دې چې د هر یو په مرګ کې پخپله د هغه او دهغه د انډیوالان د فعل دخل دې. خکه چې دهر یو ډغره پخپله د هغه لپاره او د هغه د انډیوالان (مقابل) لپاره مضر ده. نو نیم به عبث وی. او نیم به معتبر وی. چه ددې ضمان به واجب وی.

كَمَا إِذَا كَانَ الْاِصْطِدَامُ عَمْدًا لکه خپل منځ کې ټکراویدل چې عمداً وی أَوْ جَرَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نَفْسَهُ وَصَاحِبَهُ جِرَاحَةً یا په دواړو کې هر یو خپل ځان او خپل انډیوال زخمی کړې وی أَوْ حَفَرَا عَلَى قَارِعَةِ الطَّرِيقِ بِئْرًا یا دوو سړو په عامه لاره کې څاه اوکنستلو فَانْهَارَ عَلَيْهِمَا بیا دا په دوی دواړو راو غورځیدو ةجِبُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا النِّصْفُ نو په دوی دواړو هر یو باندې نصف واجب شوې دې ي فَكَذَا هٰذَا نو هم دغه ډول دا (هم دې).

حل اللغة* ① قارعة الطريق، عامه لاره ② انهار: راوغورځیدو﴾

تشریح:- امام زفر او امام شافعی ﷬ په شواهدو کې درې جزئې پیش کړې دی. چه په دې دریو واړو کې نیم ضمان واجبیږي. نو دلته به هم دغه ډول نیم ضمان واجب وی. ① د زید او خالد ټکراویدل په خطاء سره نه وی. بلکه عمداً وی. نو بالاتفاق به په هر یو باندې نصف دیت واجب وی. ② د ډغرې په ځائې دواړو کې جګړه اوشوه. او دواړو یو بل زخمی کړل. تردې چې دواړه مړه شو. نو بیا به هم د هر یو په خاندان باندې نصف دیت واجب وی. ③ زید او خالد په عامه لاره کې څاه اوکنستلو. بیا دا په دوی دواړو باندې راوغورځیدو. نو په دواړو کې به هر یو باندې د دوهم نیم دیت واجب وی. دغه ډول به دلته کې هم وی.

**د احنافو رحمهما الله دليل**

وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّ الْمَوْتَ يُضَافُ إِلَى فِعْلِ صَاحِبِهِ چې د مرګ اضافت د بل فعل اړخ ته دې لِأَنَّ فِعْلَهُ فِي نَفْسِهِ مُبَاحٌ خکه چې دده ذاتی فعل مباح وو وَهُوَ الْمَشْيُ فِي الطَّرِيقِ او هغه په لاره کې تلل دی فَلَا يَصْلُحُ مُسْتَنَدًا لِلْإِضَافَةِ فِي حَقِّ الضَّمَانِ نو دا تلل به د ضمان په حق کې اضافت لپاره د مستند کیدو صلاحیت نه لري كَالْمَاشِي إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالْبِئْرِ لکه څوك تلونکې کله چې ورته د کوهی علم نه وی وَوَقَعَ فِيهَا او په دې کې اوغورځیږي لَا يُهْدَرُ شَيْءٌ مِنْ دَمِهِ نو دده هیڅ وینه نه باطلیږي.

تشریح:- دا زموږ دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه دلته اګرچه د دواړو د فعل دخل دې. خو په داسې موقعو کې د مرګ اضافت خپل فعل اړخ ته نه کیږي. بلکه د غیر فعل اړخ ته د مرګ اضافت کیږي. خکه چې خپل ذاتی فعل خو د هر یو مباح دې. چه دا به د ضمان سبب نه وی. خکه چې لاره کې تلل مباح دی. بهرحال خپل ذاتی فعل موجب د ضمان نشی کیدې. لکه څوك تلونکې روان دې. چه د کوهی علم هغه ته نشته. او هغه په کوهی کې پریوتلو. نو د هغه پوره دیت به واجب وی. او د هغه د تللو په وجه به هیڅ دیت نه ساقطیږي.

وَفِعْلُ صَاحِبِهِ او دده د انډیوالان فعل وَإِنْ كَانَ مُبَاحًا اګرچه مباح دې لَكِنَّ الْفِعْلَ الْمُبَاحَ فِي غَيْرِهِ سَبَبٌ لِلضَّمَانِ خو مباح فعل د خپل ځان نه علاوه کې د ضمان سبب دې كَالنَّائِمِ لکه اوده کس إِذَا انْقَلَبَ عَلَى غَيْرِهِ که د ځان نه علاوه باندې راواوړي.

(١) أخرجه عبدالرزاق في مصنفه (نصب:١٧١١٥)_



تشریح:- دا عبارت یو تقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې لکه څنګه چې دده ذاتی فعل مباح دې. او دا موجب د ضمان نه دې. دغه ډول د بل فعل هم مباح دې. هغه هم موجب د ضمان کیدل پکار نه دی؟ نو د دې نه ځواب ورکوی چې کله چې مباح د ځان نه په علاوه باندې واقع شی. نو موجب د ضمان وی. لکه اوده سړې راشی. او په چا راوغورځیږي. نو په ده به دیت واجب وی. حالانکه اوده کیدل مباح دی.

**د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله د دليل جواب**

رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت علی ﷛ نه روایت دې أَنَّهُ أَوْجَبَ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كُلَّ الدِّيَةِ چې هغوی په دوی کې هر یو باندې پوره دیت واجب کړې دی فَتَعَارَضَتْ رِوَايَتَاهُ نو ددوی دوې (دوه) روایتونه متعارض شو فَرَجَّحْنَا بِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دلیل په ذریعه کوم چې موږ ذکرکړې دی نو موږ ترجیح ورکړله وَفِيمَا ذُكِرَ مِنَ الْمَسَائِلِ او کومې مسئلې چې ذکر شوی دی الْفِعْلَانِ مَحْظُوْرَانِ هلته دواړه فعلونه ممنوع دی فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو توپیر واضع شو.

حل اللغة* ① محظوران: تثنیه د محظور ناروا، ناجائز﴾

تشریح:- ددې ځائې نه د امام زفر او د امام شافعی ﷬ د دلیلونو ځواب ورکوی. ① د علی ﷛ یو روایت هغه دې. کوم چې فریق مخالف پیش کړې دې. او دوهم روایت لوڼې خلاف دې. نو په دواړو روایتونو کې تعارض اوشو. نو پخپلو مذکوره دلیلونو سره خپل قول ته ترجیح ورکړله. ② تاسو چې په اشهاد کې د کومو فعلونو ذکرکړې دې. یعنی عمداً ټکراویدل یا زخمی کول، دا خو پخپله ممنوع او محظور دی. او په مقیس کې فعل مباح دې. نو قیاس به څنګه صحیح وی؟

فائده* د حضرت علی ﷛ د ړومبی روایت په اړه کې وئیلې کیداې شی. چه دا د عمد په صورت باندې محمول دې. او د حضرت علی ﷛ دوهم روایت د سره ثابت نه دې. نو د سره تعارض ختم شو.

**په آزاد کښې د عمداً او خطاء ټکراویدو د دیت حکم**

هٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَا کوم چې موږ ذکرکړی دی. هغه وخت دی إِذَا كَانَا حُرَّيْنِ کله چې دوی دواړه آزاد وی فِي الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ د عمد او خطاء په صورت کې.

تشریح:- یعنی کوم تفصیل چې موږ بیان کړې دې. چه په عمداً ټکراویدو سره نصف دیت واجب دې. او په خطاء سره ټکراویدو کې پوره دیت واجب دې. دا حکم هغه وخت دې. کله چې دواړه آزاد وی. اوکه غلام وی. نو ددوی حکم روستو راروان دې.

**د دوو غلامانو ټکراویدو او هلاکیدو مسئله**

وَلَوْ كَانَا عَبْدَيْنِ اوکه دواړه غلامان وی يُهْدَرُ الدَّمُ فِي الْخَطَإِ نو په خطاء کې به وینه باطل وی، لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَعَلَّقَتْ بِرَقَبَتِهِ خکه چې جنایت د غلام سټ سره متعلق کیږي دَفْعًا په اعتبار د ورکولو وَفِدَاءً او فدیه ادا کولو، وَقَدْ فَاتَتْ لَا إِلَى خَلَفٍ او سټ د غلام بغیر د څه خلیفه نه فوت شو. مِنْ غَيْرِ فِعْلِ الْمَوْلَى علاوه د آقا د فعل نه فَيُهْدَرُ ضَرُوْرَةً نو ضرورتاً به عبث وی.

تشریح:- اوکه ټکراویدونکی دواړه غلامان وی. که په خطاء ټکراؤ اوشی نو به د دواړو غلامانو وینه عبث وی. او هیڅ ضمان به نه راځی. خکه چې کله غلام جنایت کوی. نو ددې دوې (دوه) صورتونه وی. یا هم دا غلام د مجنی علیه (په چا چې جنایت شوې دې) اولیاو ته سپارلې کیږي. یا آقا غلام خپل ځان سره ساتی. او دده فدیه ادا کوی. او دلته هیڅ یو صورت ممکن نه دې. ړومبې خو څکه (ممکن نه دې) چې غلام مړ شو. نو څه به اوسپاری. او دوهم څکه (نا ممکن دې). چه هر کله غلام پخل څه خلیفه نه دې پریښودې. نو آقا د چا فدیه ادا کړی. نو د عبث کیدو نه علاوه به هیڅ لاره نه وی.

وَكَذَا فِي الْعَمْدِ او هم دغه ډول (حکم دې) په عمد کې لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا هَلَكَ بَعْدَ مَا جَنَى وَلَمْ چې په دوی کې هر یو

د جنایت نه روسته هلاك شو يُخْلِفْ بَدَلًا او هيڅ بدل ئې پرې نخودو.

**تشریح:-** اوکه دا ټکراؤ په قصد شوې وی نو هم دغه حکم دې کوم چې د خطاء په صورت کې ووا دلیل ئې هم هغه دې کوم چې تیر شو.

وَلَوْ كَانَ أَحَدُهُمَا حُرًّا اوکه په دوی دوارو کې یو آزاد وَالْآخَرُ عَبْدًا او دوهم غلام وی. فَفِي الْخَطَإِ نو په خطاء کې تَجِبُ عَلَى عَاقِلَةِ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ قِيمَةُ الْعَبْدِ د آزاد مقتول په عاقله باندې د غلام قیمت واجب دې فَيَأْخُذُهَا وَرَثَةُ الْمَقْتُولِ الْحُرِّ نو دا به د آزاد مقتول وارثان اخلی وَيَبْطُلُ حَقُّ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ فِي الدِّيَةِ فِيمَا زَادَ عَلَى الْقِيمَةِ او د آزاد مقتول حق په دیت کې، د قیمت نه په زیات مقدار کې باطلیږی لِأَنَّ أَصْلَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ تَجِبُ الْقِيمَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ ځکه چې د طرفینو رحمهما الله د اصل مطابق عاقله باندې قیمت واجبیږی لِأَنَّهُ ضَمَانُ الْآدَمِيِّ ځکه چې دا د سړی ضمان دې فَقَدْ أَخْلَفَ بَدَلًا بِهَذَا الْقَدْرِ نو غلام هم په دې اندازه خلیفه پریښودې دې فَيَأْخُذُهُ وَرَثَةُ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ نو دا به د آزاد مقتول وارثان اخلی وَيَبْطُلُ مَا زَادَ عَلَيْهِ لِعَدَمِ الْخَلَفِ. او کوم چې دده په حق کې مقدار باندې زیات دې. هغه د خلیفه نه کیدو په وجه باطلیږی.

**تشریح:-** د زید او خالد خطاء سره ټکراو اوشو. چه په دې سره دوی دواړه مړه شو. او زید غلام او خالد آزاد دې. نو په مذکوره صورت کې د خالد مددګار خاندان د زید پوره قیمت ادا کوی. او دا قیمت به د خالد وارثان اخلی. خو د خالد دیت د آزاد کیدو په وجه زیات جوړیږی. خو چونکه زید د خپل قیمت په اندازه خلیفه پریښودې دې. نو د خالد وارثان به صرف هم دا اخلی. او د دیت پاته مقدار به د خلیفه نه کیدو په وجه باطل او عبث ګرځولې شی. او د غلام چې کوم قیمت ملاویږی. دا د مال کیدو په حیثیت سره نه دې. بلکه د سړی د ضمان کیدو په وجه ملاویږی. او د سړی ضمان په عاقله باندې وی. په دې وجه د حضرات طرفینو رحمهما الله په نیز به دا قیمت د خالد په خاندان باندې واجب وی.

**د آزاد او غلام ټکراویدو او هلاکیدو مسئله**

وَفِي الْعَمْدِ او د عمد په صورت کې يَجِبُ عَلَى عَاقِلَةِ الْحُرِّ نِصْفُ قِيمَةِ الْعَبْدِ به د آزاد په عاقله باندې د غلام نیم قیمت واجب وی لِأَنَّ الْمَضْمُونَ هُوَ النِّصْفُ فِي الْعَمْدِ ځکه چې عمد کې هم دا مقدار مضمون دې وَهَذَا الْقَدْرُ يَأْخُذُهُ وَلِيُّ الْمَقْتُولِ او داسې مقدار د مقتول ولی اخلی وَمَا عَلَى الْعَبْدِ فِي رَقَبَتِهِ وَهُوَ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ او کوم چې په غلام باندې دده په سټ کې د آزاد نصف دیت دې يَسْقُطُ بِمَوْتِهِ هغه به د غلام د مرګ په وجه ساقطیږی إِلَّا قَدْرَ مَا أَخْلَفَ مِنَ الْبَدَلِ خو په هغه اندازه چې کوم بدل هغه پریښودې دې وَهُوَ نِصْفُ الْقِيمَةِ او هغه د قیمت نصف دې.

**تشریح:-** د عمد په صورت کې چونکه نصف دیت واجبیږی... کما مر،، نو که د یو غلام او یو آزاد کیدو په صورت کې د خطاء په ځائې عمداً ټکراو اوشو. نو څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. چه د خالد په مددګار خاندان باندې به د زید نیم قیمت واجب وی. او دا نصف قیمت به د خالد وارثان اخلی.

? که څوك دا ووایي چې دلته خو په غلام (زید) باندې د خالد (چې آزاد دې) نیم دیت واجبیدل پکار دې؟ نوځواب دا دې چې چونکه زید هیڅ خلیفه نه دې پریښودې. علاوه د هغه مقدار نه کوم چې د هغه نیم قیمت دې. نو هم په دغه اندازه به د آزاد مقتول وارثانو ته ملاویږی. او پاته مقدار به ساقطیږی.

**د څاروی په راښکلو سره په زین پرېوتلو باندې څوك هلاك شی نو د ضمان حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ سَاقَ دَابَّةً او چا چې حیوان (څاروې) اوشړلو فَوَقَعَ السَّرْجُ عَلَى رَجُلٍ نو زین (ګدئ) په چا ور اوغورځیدله فَقَتَلَهُ نو هغه ئې قتل کړو. ضَمِنَ نو هغه (شړونکې) به ضامن وی وَكَذَا عَلَى هَذَا سَائِرُ أَدَوَاتِهِ او هم دغه ډول (حکم دې) دهغه په ټولو سامانونو کې كَاللِّجَامِ وَنَحْوِهِ، لکه واګې، او ددې پشان وَكَذَا مَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا او هم دغه ډول هغه سامان کوم چې دې باندې بار کولای شی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي هَذَا التَّسْبِيبِ ځکه چې هغه ددې په سبب جوړولو کې متعدی دې. لِأَنَّ الْوُقُوعَ ځکه چې غورځیدل، بِتَقْصِيرٍ مِنْهُ د هغه د کوتاهئ په وجه دی وَهُوَ تَرْكُ



الشَّدِّ وَالْإِحْكَامِ فِيهِ، او هغه تړل او ددې تړلو مضبوطی پریږدی.

**حل اللغة:** ① سرج: زین ② الرداء: پټو (څادر)

**تشریح:-** زید حیوان (څاروې) شړلو. او روان وو. چه دده زین، یا واګې، یا هغه سامان کوم چې ددې سربیره بار کړې شوې دې. څه راوغورځیدل. چه په دې سره څوك سړې هلاك شو. نو په دې ټولو صورتونو کې به په زید باندې ضمان وی. ځکه چې دلته زید د قتل سبب دې. او کله چې په سبب کې تعدی اوشی. نو په هغه باندې ضمان واجبیږی. نو دلته به ضمان واجب وی. تعدی دا ده. چه ده سامانونه ولې نه دی تړلی. اوکه تړلې ئې دی. نو مضبوط ئې ولې نه دی تړلی.

بِخِلَافِ الرِّدَاءِ په خلاف د پټو (څادر) لِأَنَّهُ لَا يُشَدُّ فِي الْعَادَةِ ځکه چې دا په عامه توګه (عام طور) باندې نه تړلې کیږی وَلِأَنَّهُ قَاصِدٌ لِحِفْظِ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ او ځکه چې هغه (شړونکې) ددې څیزونو د ساتنه اراده کونکې دې كَمَا فِي الْمَحْمُولِ عَلَى عَاتِقِهِ لکه په هغه سامان کې کوم ئې چې پخپله اوګه باندې اوچت کړې وی. دُونَ اللِّبَاسِ د کپړو نه دې عَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې وړاندې تیر شوې دې فَيُقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو دا به د سلامتیا شرط سره مقید وی.

**تشریح:-** که یو کس پټو (څادر) اغوستې وی. او هغه اوغورځیږی. او په دې سره څوك سړې مړ شی. نو ضمان به واجب نه وی. ځکه چې دلته د پټو (څادر) په نه تړلو کې هیڅ تعدی نشته. ځکه چې پټو (څادر) عادتاً په عامه توګه (عام طور) باندې نه تړلې کیږی. بیا د جامو مقصد د جامو ساتنه نه وی. او ددې سامان بار کولو، او اوږلو مقد ددې ساتنه وی. نو ددې اوږل به د سلامتیا شرط سره مقید وی. او که سلامتیا معدوم شی. نو ضمان به واجب وی.

**که د اوښانو په قطار کښې یو اوښ څوك هلاك کړی!**

قَالَ وَمَنْ قَادَ قِطَارًا او چا چې د اوښانو قطار راښکلو فَهُوَ ضَامِنٌ نو هغه ضامن دې لِمَا أَوْطَأَ د هغه شی کوم چې دې په پښو کې واغږل فَإِنْ وَطِئَ بَعِيرٌ إِنْسَانًا نو که اوښ یو انسان په پښو کې پائمال کړو ضَمِنَ بِهِ الْقَائِدُ وَالدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو د هغه په عاقله به د دیت ضمان وی.

**حل اللغة:** ① قطار: صف، لین، قطار ② قاد: اوښان راښکلو ③ اوطا: پائمال کړلو

**تشریح:-** د اوښانو قطار روان دې. او یو سړی د مخکنی اوښ واګې نیولې دی. او مخکې مخکې روان دې. پاته واړه هغه پسې شاته روان دی. نو هغه ته قائد (راښکونکې) وائی. او اوښان د څه تکلیف نه بغیر دغه ډول ځی. نو په ذکر شوی صورت کې که یو اوښ یو انسان هلاك کړو. نو ضمان به واجب وی. یعنی که نفس دې. نو ددې ضمان به د راښکونکی په عاقله باندې وی. اوکه مال دې. نو ددې ضمان به پخپله د راښکونکی په مال کې وی.

لِأَنَّ الْقَائِدَ عَلَيْهِ حِفْظُ الْقِطَارِ ځکه چې راښکونکی باندې د قطار ساتنه ضروری دې كَالسَّائِقِ پشان د شړونکی، وَقَدْ أَمْكَنَهُ ذَلِكَ او راښکونکی له دا ساتنه ممکن دې وَقَدْ صَارَ مُتَعَدِّيًا بِالتَّقْصِيرِ فِيهِ او راښکونکې په دې کې د بې غوری کاوه په وجه متعدی شو وَالتَّسَبُّبُ بِوَصْفِ التَّعَدِّي سَبَبٌ لِلضَّمَانِ او سبب جوړیدل د تعدی په وصف سره د ضمان سبب دې إِلَّا أَنَّ ضَمَانَ النَّفْسِ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِيهِ خو د نفس ضمان په تسبیب کې عاقله باندې وی وَضَمَانُ الْمَالِ فِي مَالِهِ او د مال ضمان د مسبب په مال کې وی

**تشریح:-** او دلته د ضمان د وجوب وجه دا ده. چه په راښکونکی باندې د قطار ساتنه ضروری دې. او هغه ساتنه کولې هم شی. هسې خو دا مسبب دې. خو په مسبب باندې د تعدی په صورت کې ضمان واجبیږی. او دلته د قطار ساتنه پریخودل، دده د اړخه تعدی ده.

**په مذکوره صورت کښې به شړونکې او راښکونکې دواړه ضامن وی**

وَإِنْ كَانَ مَعَهُ سَائِقٌ وکه راښکونکی سره شړونکې هم وی فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمَا نو ضمان به په دوی دواړو باندې وی لِأَنَّ قَائِدَ الْوَاحِدِ قَائِدٌ لِلْكُلِّ ځکه چې دیو اوبښ راښکونکې د ټولو راښکونکې دې وَكَذَا سَائِقُهُ او هم دغه دول د یو (اوبښ) شړونکې (د ټولو شړونکې دې لِاتِّصَالِ الْأَزِمَّةِ د واګو د متصل کیدو په وجه، وَهَذَا او دا هغه وخت دی إِذَا كَانَ السَّائِقُ فِي جَانِبٍ مِنَ الْإِبِلِ کله چې شړونکې د اوښانو په اړخ کې وی.

تشریح:- زید قائد (د اوښانو راښکونکې) دې.چه په ده باندې ړومبی صورت کې ضمان واجب شوې وو. خو دده سره سائق (شړونکې) دې.چه دا قائد هم دې.خو دا حکم هغه وخت دې.لکه چې خالد بالکل د اوښانو شاته وی.

أَمَّا إِذَا كَانَ تَوَسَّطَهَا او که شړونکې کله چې د قطار په منځ کې وی وَأَخَذَ بِزِمَامِ وَاحِدٍ او د یو اوښ واګې ئې نیولې وی يَضْمَنُ نو هغه به ضامن وی مَا عَطِبَ د هغه څه کوم چې هلاك شی بِمَا هُوَ خَلْفَهُ په هغه اوښ سره کوم چې هغه پسې وی وَيَضْمَنَانِ او دا (قائد او سائق) دواړه به ضامن وی مَا تَلِفَ بِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ د هغې کوم چې د شړونکی مخې ته هلاك شوی وی لِأَنَّ الْقَائِدَ لَا يَقُودُ ځکه چې راښکونکې د هغه اوښانو راښکونکې نه دې.مَا خَلْفَ السَّائِقِ کوم چې شړونکی پسې شاته دی لِانْفِصَامِ الزِّمَامِ د واګو د جلا کیدو په وجه وَالسَّائِقُ يَسُوقُ، او شړونکې شړی مَا يَكُونُ قُدَّامَهُ هغه اوښان کوم چې د هغه نه مخکې دی.

حل اللغة* ① انفصام: جلا کیدل ② یقود: شړی ﴾

تشریح:- او که خالد د قطار بالکل په منځ کې وی.او د یو اوښ واګې ئې نیولې وی.نو اوس به زید د ټولو قائد نه وی.بلکه د خپل ځائې نه تردې ځایه پورې قائد دې.او خالد د ځان نه د مخکنو سائق دې.او د ځانه د شاتنو قائد دې.نو په داسې صورت کې چې د واګو اتصال ختم شوې دې.که د خالد نه مخکې یو اوښ څوك هلاك کړی.نو په زید او خالد دواړو باندې به ضمان راځی.او که دا واقعه د خالد شاته راپیښه شی.نو ددې ضامن به صرف خالد وی.زید به نه وی.

## د اوښانو په قطار کښې د بل چا اوښ څوك هلاك کړو نو څه حکم دې ؟

قَالَ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ رَبَطَ رَجُلٌ بَعِيرًا إِلَى الْقِطَارِ) وکه یوکس اوښ قطار سره اوتړلو. وَالْقَائِدُ لَا يَعْلَمُ او قائد ته ددې علم نشته فَوَطِئَ الْمَرْبُوطُ إِنْسَانًا نو تړلی شوی (اوښ) څوك انسان پښو کې پائمال کړو فَقَتَلَهُ او هلاك ئې کړو فَعَلَى عَاقِلَةِ الْقَائِدِ الدِّيَةُ نو د قائد په عاقلانو باندې دیت دې. لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ صِيَانَةُ الْقِطَارِ عَنْ رَبْطِ غَيْرِهِ ځکه چې هغه له د قطار ساتنه د خپل نه د علاوه تړلو نه ممکن وو فَإِذَا تَرَكَ الصِّيَانَةَ نو کله چې ده ساتنه پریخودو صَارَ مُتَعَدِّيًا نو هغه متعدی شو وَفِي التَّسْبِيبِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په تسبیب کې دیت په عاقله باندې وی كَمَا فِي الْقَتْلِ الْخَطَإِ لکه څنګه چې قتل خطاء کې دننه دی.

حل اللغة* ① المربوط: تړلې شوې ② بعیر: اوښ﴾

تشریح:- زید خپل (د اوښانو) قطار روان کړې دې.چه خالد د زید په ناخبرئ کې خپل اوښ هم په دې کې اولګولو.او د خالد اوښ څوك سړې زخمی کړو.نو د زید په عاقله باندې به ددې دیت واجب وی. ځکه چې زید دومره غافل (او بې پرواه) ولې شو.که هغه ویخ اوسیدو.نو دده په لاعلمئ کې به خالد دا حرکت نه کولو.نو په دې وجه د زید د اړخه تعدی اوشوه.اګرچه هغه سبب دې.خو په صورت د تعدی سبب باندې ضمان واجبیږی.په عاقله باندې دیت ځکه واجب دې.چه د سبب په صورت کې دیت عاقله باندې واجبیږی.لکه څنګه چې په قتل خطاء کې عاقله باندې واجبیږی.

## د راښکونکی عاقله به د تړونکی په عاقله باندې رجوع کوی

ثُمَّ يَرْجِعُونَ بِهَا عَلَى عَاقِلَةِ الرَّابِطِ بیا به دوی (د زید عاقله) په دې دیت سره د تړونکی (یعنی د خالد) په عاقله باندې رجوع کوی لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِي ځکه چې هم دا (خالد) هغه کس دې. أَوْقَعَهُمْ فِي هَذِهِ الْعُهْدَةِ چې ده هغوی (د زید عاقله) په دې ذمه وارئ کې راګیر کړی دی.



حل اللغة* ① القود: قصاص ② التلف: هلاکیدل ③ القود: قصاص﴾

تشریح:- په ړومبی صورت کې د زید په عاقله باندې ضمان واجب شوې وو.خو د زید خاندان دا ضمان د خالد مددګار خاندان نه وصولوی.ځکه چې د خالد د حرکت په وجه هغوی په دیت ورکاوه مجبوره شوی دی.

وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا فِي الِابْتِدَاءِ او ضمان دوی دواړو باندې د پیل نه واجب نه دې وَكُلٌّ مِنْهُمَا مُسَبِّبٌ حالانکه دوی کې هر یو مسبب دې.لِأَنَّ الرَّبْطَ ځکه چې تړل، مِنَ الْقَوْدِ راښکلو په مقابله کې داسې دی بِمَنْزِلَةِ التَّسْبِيبِ لکه څنګه چې تسبیب دې مِنَ الْمُبَاشَرَةِ د مباشرت په مقابله کې لِاتِّصَالِ التَّلَفِ بِالْقَوْدِ هلاکیدو د متصل کیدو په وجه راښکلو سره دُونَ الرَّبْطِ تړلو سره نه،

تشریح:- دا عبارت په حقیقت کې د یوتقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې هرکله چې په ذکر شوی صورت کې زید او خالد دواړه د هلاکت سبب دی.نو د پیل نه دې په دوی دواړو ضمان واجب کړې شی.په دې کې څه راز دې.چه ړومبې ضمان صرف د زید په عاقله باندې واجب کړې شوې دې.او بیا دا د خالد د عاقله نه واپس اخستلې شوې دې؟ نو علامه مرغینانی رحمه الله ځواب ورکوی چې وړاندې بار بار تیر شوی دی.چه د مسبب او د مباشر د اجتماع په وخت ضمان په مسبب نه وی. بلکه په مباشر (او قصد کونکی) باندې واجب وی.او په تړلو او راښکلو کې هم هغه کنکشن (او تعلق) دې.کوم چې په مسبب او مباشرت کې دې.یعنی قود (راښکل) د مباشرت،او تړل د سبب په درجه کې دی.په دې وجه د هلاکت او ضائع کاوه اتصال قود (راښکلو) سره دې.تړلو سره نه دې.

## د راښکونکی د علم نه بغیر چا په قطار کښې اوښ تړلې وی نو تړونکې به ضامن وی

قَالُوا: مشائخو فرمائیلی دی هَذَا دا هغه وخت دې إِذَا رَبَطَ کله چې ده تړلې وی وَالْقِطَارُ يَسِيرُ حالانکه قطار روان وی لِأَنَّهُ آمِرٌ بِالْقَوْدِ دَلَالَةً ځکه چې دا دلالتاً د قود (راښکلو) حکم ورکونکې دې فَإِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ نو هرکله چې هغه (قائد) په دې (تړلو) پوهه نشو لَا يُمْكِنُهُ التَّحَفُّظُ مِنْ ذَلِكَ نو قائد له ددې نه ساتنه ممکن نه دې فَيَكُونُ قَرَارُ الضَّمَانِ عَلَى الرَّابِطِ نو د ضمان قرار (لازمیدل) به په تړونکی باندې وی.

تشریح:- د زید عاقله ته د د خالد د عاقله نه د دیت واپس اخستلو اختیار صرف هغه وخت دې.کله چې زید خپل قطار سره روان دې.او خالد خپل اوښ اوتړلو.ځکه چې په دې صورت کې ګویا دلالتاً خالد زید ته دا حکم ورکوی.چه زما اوښ راکاږه،او چونکه زید ته ددې علم نه دې شوې.چه هغه ئې ساتنه اوکړی.په دې وجه زید معذور ګرځولې شی.او آخرکار به د خالد په عاقله باندې ضمان واجبولې شی... کمامر..

أَمَّا إِذَا رَبَطَ او که هغه تړلې وی وَالْإِبِلُ قِيَامٌ حالانکه اوښان ولاړ دی ثُمَّ قَادَهَا بیا هغه (قائد) دا راښکل ضَمِنَهَا الْقَائِدُ نو د دیت ضامن به قائد وی لِأَنَّهُ قَادَ بَعِيرَ غَيْرِهِ ځکه چې قائد د خپلو (اوښانو) نه علاوه اوښ راښکلې دې بِغَيْرِ إِذْنِهِ د هغه د اجازت نه بغیر لَا صَرِيحًا چې دا نه صراحتاً دی وَلَا دَلَالَةً او نه دلالتاً دی فَلَا يَرْجِعُ بِمَا لَحِقَهُ عَلَيْهِ نو قائد به په هغه ضمان کې کوم چې په ده باندې راغلې دې.په تړونکی باندې رجوع نه کوی.

تشریح:- او که خالد خپل اوښ په داسې حال کې تړلې وی.چه اوښان ولاړ وی.او بیا زید دا روان کړې وی.او د خالد اوښ څوك هلاك کړې وی.نو دلته به د زید په عاقله باندې د دیت ضمان وی.او دا خلګ به ددې د خالد د عاقله نه د اخستلو حقدار نه وی.ځکه چې دلته د خالد د اړخه د خپل اوښ راښکلو په هیڅ طریقه اجازت نه دې موندې شوې.نو هم زید مجرم جوړ شو.نو د ضمان قائمیدل به هم په ده وی.؛

## شړونکی ته علم وو.چه چا په اوښانو کښې خپل اوښ پریخودونو شړونکې به ضامن وی

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمايي (وَمَنْ أَرْسَلَ بَهِيمَةً) و چا چې حيوان (څاروی) پريخودو وَكَانَ لَهَا سَائِقًا و هغه هم ددې شړونکې وو فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا نو هغه فوراً په چا باندې چور اوکړله يَضْمَنُهُ نو په شړونکی به ددې ضمان وی لِأَنَّ الْفِعْلَ انْتَقَلَ إِلَيْهِ بِوَاسِطَةِ السَّوْقِ ځکه چې فعل به د شړلو په واسطې سره هم دده په اړخ منتقل کيږي.

**حل اللغة:** ① سوق: شړل

**تشريح:-** زيد مثلاً سپې پريخودو.او دې مخکې ددې شړونکې وو.هغه څوك هلاك كړل.نو زيد به ددې ضامن وی.ځکه چې د شړلو په واسطې سره د سپی فعل به هم دده په اړخ منسوب کيږي.

**د باز په پريخودو سره د مملوك ښکار قتلولو ضمان مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْ أَرْسَلَ طَيْرًا) و که چوغکه (باز) ئې پريخودو وَسَاقَهُ يا ئې اوشړو فَأَصَابَ فِي فَوْرِهِ نو دې فوراً (دچا مملوك ښکار) قتل لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وی وَالْفَرْقُ او توپير دا دې بَدَنَ الْبَهِيمَةِ يَحْتَمِلُ السَّوْقَ چې د څاروی بدن د شړلو احتمال لری. فَاعْتُبِرَ سَوْقُهُ نو دده ترټل (شړل) معتبر شو وَالطَّيْرُ لَا يَحْتَمِلُ السَّوْقَ او چوغکه د شړلو احتمال نه لری فَصَارَ وُجُودُ السَّوْقِ وَعَدَمُهُ بِمَنْزِلَةٍ نو د شړلو وجود او ددې نيشت (عدم) په يو درجه کې شو

**حل اللغة:** ① طير: مارغه ② فور: سمدتی

**تشريح:-** سپې چونکه ښناور دې.چه دې شړلې کيداې شی.او چوغکه (باز) نشی شړلې کيدې.نو د سپی ترټل (شړل) به معتبر وی.او د فعل نسبت د شړلو په وجه ليګونکی اړخ ته کولې شی.اوکه باز ئې اوشړلو.نو دا د نه شړلو په درجه کې دې.نو د باز د شړلو په وجه د فعل نسبت شړونکی اړخ ته نه کيږي.او ضمان به نه واجبيږي. لنډيز د کلام دا چې ليګونکی اړخ ته د نسبت مدار په شړلو او ددې په تحقق باندې دې.

**د سپی په پريخودو سره د مملوك ښکار د ضمان مسئله**

وَكَذَا لَوْ أَرْسَلَ كَلْبًا او هم دغه ډول که ده سپې پريخودو وَلَمْ يَكُنْ لَهُ سَائِقًا او دې د هغې شړونکې نه وو ضامن به نه وی وَلَوْ أَرْسَلَهُ إِلَى صَيْدٍ او که سپې ئې په ښکار باندې پريخودو وَلَمْ يَكُنْ لَهُ سَائِقًا.او دهغې شړونکې نه وو فَأَخَذَ الصَّيْدَ نو هغه ښکار اونيولو وَقَتَلَهُ او هغه ئې قتل کړو حَلَّ نو حلال دې.

**تشريح:-** که سپې ئې پريخودو.او هغه ئې شړلې نه دې.او هغه څوك هلاك كړل.نو په ليګونکی به ضمان واجب نه وی.ځکه چې د سپی فعل ليګونکی اړخ ته نه مضاف کيږي.او که سپې ئې په ښکار پريخودو .او هغه ښکار اونيولو.او هلاك ئې کړو.نو دلته به د سپی فعل ليګونکی اړخ ته مضاف کيږي.او داسې به ګڼړو.ګويا چې ليګونکی ښکار ذبح کړې دې.نو ښکار به حلال وی.

وَوَجْهُ الْفَرْقِ او وجه د توپير دا ده الْبَهِيمَةَ مُخْتَارَةٌ فِي فِعْلِهَا چې ښناور پخپل فعل کې اختيار مند دې وَلَا تَصْلُحُ نَائِبَةً عَنِ الْمُرْسِلِ او هغه ددې ليګونکی د نائب جوړيدو صلاحيت نه لری فَلَا يُضَافُ فِعْلُهَا إِلَى غَيْرِهَا نو د ښناور فعل به دده نه غير اړخ ته نه مضاف کيږي هَذَا هُوَ الْحَقِيقَةُ هم دا حقيقت دې إِلَّا أَنَّ الْحَاجَةَ خو دا چې حاجت راپيښيږي مَسَّتْ فِي الِاصْطِيَادِ ښکار کولو فَأُضِيفَ إِلَى الْمُرْسِلِ نو ښکار ليګونکی اړخ ته مضاف وی لِأَنَّ الِاصْطِيَادَ مَشْرُوعٌ ځکه چې ښکار کول مباح دی وَلَا طَرِيقَ لَهُ سِوَاهُ او د ښکار کاوه ددې نه علاوه (چې د سپی فعل ليګونکی اړخ ته منسوب وی) بله څه طريقه نشته وَلَا حَاجَةَ فِي حَقِّ ضَمَانِ الْعُدْوَانِ او د تعدی د ضمان په حق کې هيڅ حاجت نشته.

**تشريح:-** په دې عبارت کې د دواړو صورتونو د حکم په مينځ کې د توپير وجه ښائی يا.داسې اووايه چې دا په حقيقت کې د يو تقديری سوال خواب دې سوال دا دې چې ددې څه وجه ده.چه په ړومبی صورت کې د سپی فعل ليګونکی اړخ ته مضاف نشو.او په دوهم صورت کې مشاف شوې دې؟ نو علامه مرغينانی رحمه الله خواب ورکوی



اوفرمائی چې حقيقت دا دې.چه سپې ښناور دې.چه هغه پخپل فعل کې اختيار مند دې.چه دا د ليګونکی د نائب کيدو صلاحيت نه لری.نو د سپی فعل د چا په اړخ مضاف کيدل هم پکار نه دی.په دې وجه ړومبی صورت کې د سپی فعل ليګونکی اړخ ته مضاف نشو.او په دوهم صورت کې مجبوراً د سپی فعل ليګونکی اړخ ته مضاف شوې دې.ځکه چې ښکار مباح دې.او د ښکار صرف هم دا صورت دې.چه د سپی فعل ليګونکی اړخ ته مضاف شی.او د سپی مړه کول او شلول د ليګونکی د ذبح په درجه کې دی.ګنی ښکار به حلال نه وی. لنډيز د کلام دا چې په دوهم صورت کې لاچاری ده.او په دوهم صورت کې د ضمان واجبولو لپاره د فعل د انتقال هيڅ اړتيا نشته.

**د امام ابويوسف رحمه الله نقطه نظر**

دُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ أَوْجَبَ الضَّمَانَ فِي هَذَا كُلِّهِ احْتِيَاطًا چې دوی په دې ټولو صورتونو کې احتياطاً ضمان واجب کړې دې. صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ د خلګو د مالونو د ساتنه دپاره.

**حل اللغة:** ① صيانة: حفاظت

**تشريح:-** په ړومبی صورت کې په شړلو او نه شړلو کې توپير کاوه په وجه، د نه شړلو په صورت کې ضمان واجب نکړې شو.خو امام ابويوسف رحمه الله په ټولو صورتونو کې ضمان واجب کړې دې.چه د خلګو مالونه د ضائع کيدو نه محفوظ پاتې شی،، وعليه الفتوی،،

**د څاروی په پريخودو سره به د حملې ضامن وی**

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل وَذُكِرَ فِي الْمَبْسُوطِ او په مبسوط کې ذکر دی إِذَا أَرْسَلَ دَابَّةً فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ چې کله چا د مسلمانانو په لاره کې حيوان (څاروی) پريخودو فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا نو هغه فوراً په چا باندې چور اوکړله فَالْمُرْسِلُ ضَامِنٌ نو ليګونکې ضامن دې لِأَنَّ سَيْرَهَا مُضَافٌ إِلَيْهِ ځکه چې د هغه تلل ليګونکی اړخ ته مضاف دی مَا دَامَتْ تَسِيرُ عَلَى سَنَنِهَا ترکومه پورې چې هغه پخپل چال (او طريقه) باندې روان وی.

**تشريح:-** چا په لاره کې خپل يو حيوان (څاروی) پريخودو.او هغه تر اوسه پورې پخپل انداز باندې روان وو.او هم په دې دواران کې هغه په چا چور اوکړله.او هغه ئې هلاك كړو.نو په ليګونکی به ضمان واجب وی.

وَلَوِ انْعَطَفَتْ يَمْنَةً أَوْ يَسْرَةً او که ښی يا چپه اړخ ته اوګرځيدو انْقَطَعَ حُكْمُ الْإِرْسَالِ نو د ليګلو حکم کټ شو إِلَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ طَرِيقٌ آخَرُ سِوَاهُ خو کله چې دهغه لپاره ددې نه علاوه بله څه لاره نه وی وَكَذَا إِذَا وَقَفَتْ او هم دغه ډول کله چې هغه اودريږي ثُمَّ سَارَتْ او بيا روان شی.

**حل اللغة:** ① انعطاف: ګرځيدل، اوړيدل راوړيدل ② يمنية: راسته اړخ ③ يسرة: چپه طرف

**تشريح:-** او که هغه انداز (او چال) بدل کړو.يعنی لاره کلاو ده.په نيغ تللو کې هيڅ تکليف نشته.ددې باوجود هغه په لاره کې ښی يا چپه اړخ ته اوګرځيدو.بيا روان شو.نو د تير شوی انداز (او چلن) ختميدو په وجه د ليګلو حکم کټ شو.او اوس به په ليګونکی باندې ضمان واجب نه وی.البته که لاره تنګه وی.چه د ګګيدو نه بغير په دې کې تلل ممکن نه وی.نو هغه به په تير شوی انداز به ګڼړلې شی.او په ليګونکی به ضمان واجب وی.

**د پريخودو نه روسته اساريدل.او د ښکار کولو مسئله**

بِخِلَافِ مَا په خلاف دهغه صورت إِذَا وَقَفَتْ کله چې دا ښناور (يعنی معلم سپې) ودريدلې وی بَعْدَ الْإِرْسَالِ فِي الِاصْطِيَادِ په ښکار باندې د پريخودو نه روسته ثُمَّ سَارَتْ او بيا روان شوې وی فَأَخَذَتِ الصَّيْدَ نو هغه ښکار نيولې وی. (نو ليګل به ختم نه شمارلې کيږي)

**تشريح:-** که سپې ئې په ښکار باندې پريخودو.او هغه اودريدو.او بيا روان شو.نو ليګل ختم نشو.او ښکار به حلال وی.

لِأَنَّ تِلْكَ الْوَقْفَةَ تُحَقِّقُ مَقْصُوْدَ الْمُرْسِلِ خکه چې دا ودریدل د لیګونکی مقصود ثابتوی لِأَنَّهُ لِيَتَمَكَّنَ مِنَ الصَّيْدِ خکه چې دا (ودریدل) دده په ښکار باندې د قابو موندلو لپاره دی وَهٰذِهٖ تُنَافِيْ مَقْصُوْدَ الْمُرْسِلِ او دا (د څاروی مثلاً اس) ودریدل د لیګونکی د مقصود منافی دی وَهُوَ السَّيْرُ او مقصود تلل دی فَيَنْقَطِعُ حُكْمُ الْإِرْسَالِ نو د ارسال حکم به منقطع کیږی.

**تشریح:-** خکه چې دا (سپی) ددې لپاره ایسار شوې دې چه د ښکار نیولو چم جوړ کړی. او په آس وغیره کې د لیګونکی مقصود تلل دی. او کله چې هغه اودریدو. نو د لیګونکی مقصود دی. او هم دا د لیګونکی فوت کیدو په وجه به لیګل کټ شوی شمارلی کیږی.

**د پریخودې شوی سپی د ښکار په ځائې نفس یا مال باندې د حملې کولو مسئله**

وَبِخِلَافِ مَا او په خلاف ددې صورت إِذَا أَرْسَلَهُ إِلٰى صَيْدٍ چې کله ئې سپې په ښکار پریښودې وی فَأَصَابَ نَفْسًا أَوْ مَالًا فِيْ فَوْرِهٖ نو هغه فوراً په یو نفس یا مال باندې چور اوکړله آن لَا يَضْمَنُهُ مَنْ أَرْسَلَهُ نو لیګونکې به ددې ضامن نه وی

**تشریح:-** یوکس خپل سپې په ښکار باندې پریخودو. او هغه فوراً یو انسان یا مال هلاك کړو. نو دلته به په لیګونکی باندې ضمان واجب نه وی.

وَفِي الْإِرْسَالِ فِي الطَّرِيْقِ يَضْمَنُهُ او په لاره کښې د پریخودو په وجه به ضامن وی لِأَنَّ شَغْلَ الطَّرِيْقِ تَعَدٍّ خکه چې لاره مشغولول تعدی ده فَيَضْمَنُ مَا تَوَلَّدَ مِنْهُ نو په دې شغل سره چې کوم اثر ښکاره شی. د هغې به ضامن وی أَمَّا الْإِرْسَالُ لِلْاِصْطِيَادِ فَمُبَاحٌ بهرحال لیګل د ښکار لپاره مباح دی وَلَا تَسْبِيْبَ او نه دې تسبیب (یعنی هغه تسبیب کوم چې د ضمان باعث وی) إِلَّا بِوَصْفِ التَّعَدِّيْ خو د تعدی صفت سره.

**تشریح:-** خکه چې ښکار مباح دې. نو په دې سبب کې تعدی او نه موندې شوه. او سبب هم هغه وخت موجب د ضمان وی. کله چې په دې کې تعدی وی. اوکه هغه په لاره کې پریښودې وی. او هغه دا مذکوره حرکت اوکړو. نو لیګونکې به ضامن وی. خکه چې لاره کې پریښول تعدی ده.

**څاروی پریخودو سره فوراً د فصل خرابولو د ضمان مسئله**

قَالَ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل (وَلَوْ أَرْسَلَ بَهِيْمَةً) و که څناور ئې پریخودو فَأَفْسَدَتْ زَرْعًا عَلٰى فَوْرِهٖ نو هغه فوراً کښت خراب کړو ضَمِنَ الْمُرْسِلُ نو لیګونکې به ضامن وی وَإِنْ مَالَتْ يَمِيْنًا أَوْ شِمَالًا اوکه هغه ښی یا چپه اړخ ته اوګرځیدو وَلَهٗ طَرِيْقٌ آخَرُ حالانکه هغه لپاره دویمه لاره وه لَا يَضْمَنُ نو ضامن به نه وی[1] لِمَا مَرَّ د هغه دلیل په وجه کوم چې تیر شو وَلَوِ انْفَلَتَتِ الدَّابَّةُ وکه حیوان (څاروې) راخلاص شو فَأَصَابَتْ مَالًا أَوْ آدَمِيًّا نو هغې څه مال یا سړې هلاك کړو لَيْلًا أَوْ نَهَارًا په شپه کې یا ورځ کې (لَا ضَمَانَ عَلٰى صَاحِبِهَا) نو د هغې په مالك باندې ضمان نشته لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی ﷺ د فرمان په وجه {جُرْحُ الْعَجْمَاءِ جُبَارٌ}(1) اود څاروو زخمی کول عبث دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ او امام محمد رحمه الله فرمایي هِيَ ،،،(په کوم حدیث کې چې حیوان (څاروې) عبث ګرخولې شوې دې) دا هغه دې الْمُنْفَلِتَةُ کوم چې خلاص (آزاد) شی وَلِأَنَّ الْفِعْلَ غَيْرُ مُضَافٍ إِلَيْهِ او خکه چې فعل د مالك په اړخ مضاف نه دې لِعَدَمِ مَا د هغه فعل د نه کیدو په وجه يُوْجِبُ النِّسْبَةَ إِلَيْهِ کوم چې مالك اړخ ته نسبت واجب کړی مِنَ الْإِرْسَالِ وَأَخَوَاتِهٖ لکه ددې نور مثالونه، (لکه شړل، راښکل، سواریدل وغیره).

**حل اللغة:** ① **انفلات:** د څاروی راخلاصیدل ② **ارسال:** خوشې کول ③ **العجماء:** زخم: ④ **جبار:** عبث، ضائع، بې ضمانه﴾

(1) تقدم تخریجه فی الزکاة_



**تشریح:-** وړاندې تیر شوی دی. که د لیګلو نه روستو څناور د خپل مخکنی انداز نه واوړیدو. نو لیګل منقطع کیږی. نو که مالك څناور پریخودو. او هغه فوراً د چا فصل خراب کړو. نو لیګونکې ضامن دې. او که د خپل انداز نه واوړیدو. بیا ئې فصل خراب کړې وی. نو ضمان به واجب نه وی. اوکه حیوان (څاروې) پخپله خلاص شو. او او تختیدو. او څوك سړې یا د چا مال ئې هلاك کړو. که په ورځ کې وی. اوکه په شپه کې وی. نو په مالك به ضمان نه راځی. د هغه حدیث په وجه کوم چې ذکر شو. او په دې صورت کې د مالك د اړخه هیڅ داسې فعل اونه موندې شو چه دهغې په وجه د څناور فعل مالك اړخ ته منسوب کړې شی. یعنی د مالك د اړخه نه لیګل شته. او نه شړل، او نه ئې هغه راښکلې دې. او نه په هغې سور شوې دې.

**د قصاب د وزه (چیلئ) د سترګې زخمی کولو د ضمان مسئله**

قَالَ (شَاةٌ لِقَصَّابٍ) د یو قصاب وزه (چیلئ) وه فُقِئَتْ عَيْنُهَا چې د هغې سترګه زخمی کړې شوه فَفِيْهَا نو په دې کې به هغه مقدار وی مَا نَقَصَهَا کوم چې په دې کې نقصان شوې دې لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهَا هُوَ اللَّحْمُ خکه چې ددې (چیلئ) نه غوښه مقصود ده فَلَا يُعْتَبَرُ إِلَّا النُّقْصَانُ نو غوښه به معتبر وی.

**حل اللغة:** ① **فقاة:** سترګې ئې زخمی شوه ② **اللحم:** غوښه﴾

**تشریح:-** چا د یوې وزه (چیلئ) سترګه زخمی کړله. نو چونکه د وزه (چیلئ) مقصود غوښه ده. نو دلته به صرف نقصان واجب وی. ،،وتعریف النقصان معلوم،، د قصاب قید اتفاقی دې. ګنی وزه (چیلئ) که د هر چا وی. د هغې هم دا حکم دې. دغه ډول غوا، اوښ وغیره که د هر چا وی. د هغې هم دا حم دې. کوم چې روستو راروان دې.

**د قصاب د بعضو څاروو د سترګو زخمی کولو د ضمان حکم**

وَفِيْ عَيْنِ بَقَرَةِ الْجَزَّارِ او د قصاب د غوا په سترګه کې او دهغه په اوښ کې رُبُعُ الْقِيْمَةِ څلورمه برخه قیمت دې ،وَكَذَا فِيْ عَيْنِ الْحِمَارِ وَالْبَغْلِ وَالْفَرَسِ او هم دغه ډول (حکم دې) د خر، قچر، او اس په سترګه کې

**حل اللغة:** ① **الجزار:** قصاب ② **الحمار:** خر ③ **البغل:** قچر ④ **الفرس:** اس﴾

**تشریح:-** که د وزه (چیلئ) په ځائې د اوښ یا غوا وغیره سترګه زخمی کړې شوه. نو په دې صورت کې به ددې د څلورمې برخې قیمت ضمان واجب وی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او امام شافعی رحمه الله فرمایي فِيْهِ النُّقْصَانُ أَيْضًا چې په دې کې هم نقصان دې اِعْتِبَارًا بِالشَّاةِ په وزه (چیلئ) باندې قیاس کاوه سره،

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله دلته هم هغه فرمائیلی دی. کوم چې د وزه (چیلئ) حکم دې. یعنی نقصان ادا کول به واجب وی.

وَلَنَا اوزمونږ دلیل هغه دې مَا رُوِيَ {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ کوم چې نقل دې د نبی ﷺ نه قَضٰى فِيْ عَيْنِ الدَّابَّةِ بِرُبُعِ الْقِيْمَةِ}(1) چې د څاروی په سترګه کې ئې د څلورمې برخې قیمت فیصله اوفرمائیله وَهٰكَذَا قَضٰى عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ (2) او هم دغه ډول فیصله فرمائیلې ده. حضرت عمر رضی الله عنه.

**تشریح:-** موږ دلته کې د د رسول الله ﷺ د فیصلې نه او دحضرت عمر رضی الله عنه د فیصلې نه دلیل نیولې دې.

**د اوښ او غوا په سترګه زخمی کولو کښې د ضمان حکم**

وَلِأَنَّ فِيْهَا مَقَاصِدَ سِوَى اللَّحْمِ او خکه چې په دې (غواګانو او اوښانو وغیره کې) د غوښې نه علاوه نور ډیر مقاصد

(1) من حدیث زید بن ثابت رضی الله عنه أخرجه الطبرانی فی معجمه (ذکره الهیثمی رحمه الله فی مجمع الزوائد (۲۹۸۱۶)_

(2) أخرجه عبدالرزاق وابن ابی شیبة فی مصنفیهما (نصب:۱۷۷۱۵)_

دی گَالحَمْلِ لکه بار کول، وَالرُّکُوبِ او سواريدل وَالزِّينَةِ او بنائست، وَالجَمَالِ، او جمال، وَالعَمَلِ او کار فَمِنْ هٰذَا الوَجْهِ تُشْبِهُ الآدَمِي نو په دې وجه دا د سړي مشابه شو وَقَدْ تُمْسَكُ لِلأَكْلِ او دا ساتلې شي.د خوراك لپاره فَمِنْ هٰذَا الوَجْهِ تُشْبِهُ المَأْکُولَاتِ نو دا د خوړلو د څيزونو مشابه شو.

حل اللغة* ① حمل: بار کول ② الرکوب: سوريدل ③ الزينة: بنائست﴾

تشريح:- د اوښ او غوا وغيره په سترګه کي څلورمه برخه د قيمت ولې واجبيږي.دا د هغې عقلي دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه د وزه (چيلئ) مقصد خو غوښه ده.خو ددې څاروو صرف غوښه نه بلکه د غوښې سره سره نور هم ډير مقاصد دی.په دې سره کښت جوړولې شي.سامان بار کولې شي.په دې سره زينت او جمال حاصليږي... کمالا يخفى.. ددې کارونو په وجه په دې (څاروو) کي څه د سړو سره مشابهت دې.او دا خوړلې هم شي.نو ددې مشابهت وزه (چيلئ) سره هم شته.

فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهَيْنِ نو موږ په دواړو مشابهتونو باندې عمل اوکړو بِشَبَهِ الآدَمِي فِي إِيجَابِ الرُّبُعِ نو (موږ عمل اوکړو) د سړي په مشابهت باندې د څلورمې برخې په واجبولو کي وَبِالشَّبَهِ الآخَرِ فِي نَفْيِ النِّصْفِ او په دوهم مشابهت باندې د نصف په نفي کاوه کي،

تشريح:- نو دلته مناسب شو.چه په دې دواړو مشابهتونو باندې عمل اوکړې شي.نو سړي سره د مشابهت په وجه موږ د قيمت ۱۱۴ واجب کړو.او د وزه (چيلئ) وغيره سره د مشابهت په وجه موږ نصف واجب نکړو.يعنى د انسان په سترګه کي نيم ديت واجبيږي.او د وزه (چيلئ) په سترګه کي نقصان واجبيږي.نو موږ د نقصان نه زيات کړو.او د نصف قيمت نه مو کم کړو.او ۱۱۴ مو واجب کړو.چه په دواړو مشابهتونو باندې عمل اوشي.

وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا يُمْکِنُ إِقَامَةُ العَمَلِ بِهَا بِأَرْبَعَةِ أَعْيُنٍ او ځکه چې ممکن دی کار کول په دې سره څلورو سترګو سره، عَيْنَاهَا دوې (دوه) د څاروی وَعَيْنَا المُسْتَعْمِلِ او دوې (دوه) د استعمالونکی فَکَأَنَّهَا ذَاتُ أَعْيُنٍ أَرْبَعَةٍ نو ګويا چې دا د څلورو سترګو والا دې فَيَجِبُ الرُّبُعُ بِفَوَاتِ إِحْدَاهَا نو په دې کي د يو د فوت کيدو په وجه به څلورمه برخه د قيمت واجب وی.

تشريح:- اوبله دا چې په دې څاروو باندې په څلورو سترګو سره کار کولې شي.دوې (دوه) ددوی او دوې (دوه) دهغه کس څوك چې دا استعمال کي راولی.نو ګويا دا د څلورو سترګو والا شو.نو په يوې سترګې تللو سره ګويا څلورمه برخه سترګه لاړله.نو څلورمه برخه د قيمت واجب کړې شوه.

**په لاره کښې څاروې وهل او په دې سره د په راکب او ناخس (سومبئ وهونکی) باندې د ضمان حکم**

قَالَ مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ سَارَ عَلَى دَابَّةٍ فِي الطَّرِيقِ) و څوك چې لاړو په لاره کي څاروی باندې فَضَرَبَهَا رَجُلٌ نو اووهلو دا حيوان (څاروی) يو سړی أَوْ نَخَسَهَا يا ئې ده (څاروی) ته سومبئ ورکړله فَنَفَحَتْ رَجُلًا نو څاروی يو سړي له لته ورکړله أَوْ ضَرَبَتْهُ بِيَدِهَا يا ئې هغه په مخکنو پښو باندې اووهلو أَوْ نَفَرَتْ،...يا راپريوتلو فَصَدَمَتْهُ نو هغه ئې په ډغره اووهلو فَقَتَلَتْهُ نو هغه ئې قتل کړو وی کَانَ ذٰلِكَ عَلَى النَّاخِسِ نو ددې ضمان به په ناخس (سومبئ وهونکی) باندې وی دُونَ الرَّاکِبِ،...په سور باندې به نه هُوَ المَرْوِيُّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا}(۱). د عمر او ابن مسعود رضی الله عنه نه هم دا نقل دی.

حل اللغة* ① سار: لاړلو ② نخس: څاروی ته سومبه ورکول ③ نفحة: لته ورکول ④ صدمة: ډغره وهل﴾

(۱) غربه الزيلعی رحمه الله ثم قال وروى عبدالرزاق ...عن القاسم بن عبدالرحمن قال أقبل رجل بجارية من القادسية فمر على رجل واقف على دابة فنخس رجل الدابة فرفعت رجلها فلم يخط عين الجارية فرفع إلى سلمان بن ربيعة الباهلى فضمن الراکب فبلغ ذلک ابن مسعود رضی الله عنه فقال إنما يضمن الناخس (نصب:۱۷۸۱۵)_



تشريح:- زيد پخپل څاروی باندې ناست روان وو.چه خالد هغه په سومبئ اووهلو.چه په دې سره هغه راپريوتلو، يا ئې يو کس اووهلو.او هلاك ئې کړو.نو ددې ضمان به په خالد باندې وی.په زيد باندې به نه وی. د حضرت عمر او ابن مسعود رضی الله عنه نه هم دا نقل دی.

وَلِأَنَّ الرَّاکِبَ وَالمَرْکَبَ مَدْفُوعَانِ او ځکه چې سور او سوارلئ دواړو ته ديکه ورکړې شوې ده بِدَفْعِ النَّاخِسِ د ناخس (سومبئ وهونکی) په فعل سره فَأُضِيفَ فِعْلُ الدَّابَّةِ إِلَيْهِ کَأَنَّهُ فَعَلَهُ بِيَدِهِ نو د څاروی فعل به ناخس اړخ ته مضاف دی ګويا چې ناخس دا کار پخپلو لاسونو سره کړې دې.

تشريح:- مذکوره ضمان په ناخس (سومبئ وهونکی) باندې ولې دې.او په سور باندې ولې نشته؟ ددې عقلی دليل بيانولې شي.ددې حاصل دا دې.چه ګويا ناخس، سور او سوارلئ دواړو ته ديکه ورکړې ده.نو هم دده د فعل په وجه مقتول مړ شوې دې.نو ضمان به هم په ده واجب وی.

وَلِأَنَّ النَّاخِسَ مُتَعَدٍّ فِي تَسْبِيبِهِ او ځکه چې ناخس پخپل تسبيب کي متعدی دې وَالرَّاکِبُ فِي فِعْلِهِ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فَيَتَرَجَّحُ جَانِبُهُ فِي التَّغْرِيمِ لِلتَّعَدِّي او سور پخپل فعل کي متعدی نه دې نو د تعدی په وجه به د تاوان په اړه کي د ناخس اړخ راجح وی.

حل اللغة* ① تغريم: تاوانی کول ② التعدی: تجاوز کول﴾

تشريح:- او دا وجه هم ده.چه ناخس خو په خپل فعل کي متعدی دې.او سور متعدی نه دې.نو په متعدی به ضمان واجب وی.

حَتّٰى لَوْ کَانَ وَاقِفًا دَابَّتَهُ عَلَى الطَّرِيقِ تردې که دده حيوان (څاروې) په لاره کي ولاړ وی يَکُونُ الضَّمَانُ عَلَى الرَّاکِبِ وَالنَّاخِسِ نِصْفَيْنِ لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي الإِيقَافِ أَيْضًا نو ضمان به په سور او ناخس (سومبئ وهونکی) باندې نيم په نيمه وی ځکه چې اودرولو کي سور هم متعدی دې.

حل اللغة* ① الايقاف: اودريول﴾

تشريح:- تردې که سور خپل اس په لاره کي اودرولې وی.او چادا په سومبئ اووهلو.چه په دې سره څوك هلاك شو.نو اوس د سور د اړخه تعدی موجود ده. ځکه چې هغه په لاره کي اس اودرولې دې.نو په مذکوره صورت کي به ضمان په دوی دواړو باندې نيم په نيمه راځی.

**د څاروی په لته د ناخس او د سورکس د هلاکيدو مسئله**

قَالَ مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ نَفَحَتِ النَّاخِسَ) و که څاروی ناخس (سومبئ وهونکی) ته لته ورکړله کَانَ دَمُهُ هَدَرًا نو د هغه وينه به فضول وی لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الجَانِي عَلَى نَفْسِهِ ځکه چې هغه پخپل نفس باندې د جنايت کونکی په درجه کي دې. (وَإِنْ أَلْقَتِ الرَّاکِبَ) و که څاروی سورکس راوغورځولو فَقَتَلَتْهُ نو دې ئې قتل کړو دې کَانَ دِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَةِ النَّاخِسِ نو د هغه ديت به د ناخس په عاقله باندې وی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي تَسْبِيبِهِ ځکه چې هغه پخپل تسبيب کي متعدی وَفِيهِ الدِّيَةُ عَلَى العَاقِلَةِ.او په دې کي عاقله باندې ديت دې

تشريح:- اوکه سومبئ وهونکی ته څاروی لته ورکړله.او هلاك ئې کړو.نو دهغه وينه عبث ده.ځکه چې هغه پخپل نفس باندې پخپله جنايت کړې دې.او که څاروی سور کس راوغورځولو.او هلاك ئې کړو.نو دده ديت به د ناخس په عاقله باندې واجب وی.ځکه چې ناخس دده د مرګ سبب دې.او د ناخس د اړخه تعدی موجود ده.او په داسې صورت کي ديت عاقله باندې وی.نو په عاقله باندې به ديت واجب وی.

**د ناخس (سومبئ وهونکی) په چيړلو سره څاروی څوك هلاك کړو.نو ددې څه حکم دې ؟**

قَالَ مرغينانی رحمه الله اوفرمائيل (وَلَوْ وَثَبَتْ بِنَخْسِهِ عَلَى رَجُلٍ) وکه د ناخس (سومبئ وهونکی) په سومبئ وهلو سره

څاروی ټوپ اووهلو په یو سړی باندې اَوْوَطِئَتْهُ یا ئې هغه په پښو کې پائمال کړو فَقَتَلَتْهُ نو هغه ئې قتل کړو كَانَ ذٰلِكَ عَلَى النَّاخِسِ نو دا تاوان به په ناخس باندې وی دُوْنَ الرَّاكِبِ په سور به نه وی لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې وَالْوَاقِفُ فِي مِلْكِهِ او پخپل ملك کې ولاړ کس وَالَّذِي يَسِيْرُ فِي ذٰلِكَ سَوَاءٌ او کوم کس چې پخپل ملك کې روان وی برابر دی

حل اللغة: ① وثبت: ټوپ اووهلو ② وطئت: پائمال کړلو

تشریح:- که د ناخس (سومبۍ وهونکی) په سومبۍ وهلو په وجه څاروی ټوپ اووهلو. او څوك ئې قتل کړل. یا ئې څوك په پښو کې واغړل. نو دده دیت به په ناخس باندې وی. په سور به نه وی. ددې دلیل هم هغه دې. کوم چې اوس ذکر شو. بیا په مخکنۍ مسئله کې د ولاړ او تلونکی په منځ کې توپیر بیان کړې شوې دې. یعنی په اول صورت کې ضمان په دواړو باندې دې. او په دوهم کې صرف په ناخس باندې دی. دا توپیر هغه وخت دې. کله چې ده په لاره کې اودرولې وی. او که پخپل ملك کې ئې اودرولې وی. نو بیا د تلونکی او ولاړ حکم یوشان دې.

## د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر

وَعَنْ أَبِي يُوْسُفَ رحمه الله او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی أَنَّهُ يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى النَّاخِسِ وَالرَّاكِبِ نِصْفَيْنِ چې ضمان په ناخس (سومبۍ وهونکی) او سور دواړو باندې نیم په نیمه دې لِأَنَّ التَّلَفَ حَصَلَ څکه چې هلاکیدل حاصل شوی دې بِثِقَلِ الرَّاكِبِ د سور په دروندوالی سره وَوَطْءِ الدَّابَّةِ او د څاروی په پائمال کاوه سره وَالثَّانِي مُضَافٌ إِلَى النَّاخِسِ، او دوهم (د څاروی پائمال کول) ناخس اړخ ته مضاف دی فَيَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا. نو ضمان به په دوی دواړو باندې وی

تشریح:- په مذکوره صورت کې کوم څاڼې پوره ضمان په ناخس (سومبۍ وهونکی) باندې واجب کړې شوې دې. امام ابویوسف رحمه الله ضمان په سور او ناخس دواړو باندې نیم په نیمه واجب ګرځولې دې. څکه چې د مقتول مړکیدل د سورکس د بوج او د څاروی د پائمال کاوه په وجه دی. او دڅاروی پائمال کول به ناخس اړخ ته مضاف کیږی. نو ضمان به په دواړو باندې واجب وی.

وَإِنْ نَخَسَهَا بِإِذْنِ الرَّاكِبِ او که هغه ده (څاروی) ته د سور په اجازت سره سومبۍ اولګوله كَانَ ذٰلِكَ بِمَنْزِلَةِ فِعْلِ الرَّاكِبِ نو دا د راکب (سور) د فعل په درجه کې لَوْ نَخَسَهَا که هغه پخپله سومبۍ وهلې وې وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِي نَفْحَتِهَا او په ناخس باندې د څاروی په لته وهلو کې ضمان نشته لِأَنَّهُ أَمَرَهُ څکه چې سور کس ناخس ته د هغه شی حکم ورکړې بِمَا يَمْلِكُهُ د کوم چې هغه پخپله مالك دې إِذِ النَّخْسُ فِي مَعْنَى السَّوْقِ څکه چې سومبۍ وهل، د شړلو په معنی کې دې فَصَحَّ أَمْرُهُ بِهِ نو د سور هغه ته حکم ورکول صحیح دی وَانْتَقَلَ إِلَيْهِ او فعل به سور اړخ ته منتقل کیږی لِمَعْنَى الْأَمْرِ د امر په وجه.

تشریح:- اوکه ناخس د سور په اجازت سره وهلې وی. نو اوس به د ناخس فعل سور اړخ ته واپس کیږی. ګویا چې سور دا کار پخپله کړې دې. که روان اس چا ته د شا اړخه لته ورکړی. نو په سور کس باندې ضمان نه راځی... کما مر.. او که سور ناخس ته د وهلو حکم ورکړو. چه ددې په وجه ئې څوك په لته اووهلو. نو چونکه د ناخس فعل به سور اړخ ته منتقل کیږی. او سور ته ددې اجازت دې. چه هغه پخپله دا کار کولې شی. څکه چې دا د شړلو په درجه کې دی. په دې وجه به د لتې وهلو ضمان نه په ناخس (سومبۍ وهونکی) وی. او نه په سور باندې.

## که د سور په اجازت سره د ناخس په سومبۍ لګولو سره څاروې څوك هلاك کړی

قَالَ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل (وَلَوْ وَطِئَتْ رَجُلًا فِي سَيْرِهَا) او که څاروی پخپلو تللو کې څوك سړې پائمال کړو وَقَدْ نَخَسَهَا النَّاخِسُ حالانکه ناخس (سومبۍ وهونکی) هغې ته بِإِذْنِ الرَّاكِبِ سد سور په اجازت سره سومبۍ لګولې



فَالدِّيَةُ عَلَيْهِمَا نِصْفَيْنِ جَمِيْعًا نو په دوی دواړو به دیت نیم په نیمه وی إِذَا كَانَتْ فِي فَوْرِهَا چونکه پائمال کول فوراً وی الَّذِي نَخَسَهَا چا چې سومبۍ لګولې ده لِأَنَّ سَيْرَهَا فِي تِلْكَ الْحَالَةِ مُضَافٌ إِلَيْهِمَا څکه د هغه سړی په وجه فوراً شوی دی چې په دې حالت کې د څاروی چوپال دوی دواړو اړخ ته مضاف وی.

تشریح:- که سور خالد ته د سومبۍ وهلو اجازت ورکړو. نو هغه اووهلو. او څاروی څوك پائمال کړل. نو اوس به په سور او ناخس دواړو باندې دیت واجب وی. خو دا ضروری ده. چه دده د سومبۍ وهلو په حالت کې حیوان (څاروی) یوکس په پښو کې واغړی. ګنی د روستو پائمال کاوه په صورت کې د سومبۍ وهلو د اثر ختمیدو په وجه به خالد باندې ضمان واجب نه وی. او د فی الفور وهلو په صورت کې به دواړه ضامن وی. څکه چې دې وخت به د څاروی تلل دواړو اړخ ته مضاف وی.

وَالْإِذْنُ يَتَنَاوَلُ او اجازت ګډ دې فِعْلَهُ مِنْ حَيْثُ السَّوْقُ د ناخس د شړلو فعل ته وَلَا يَتَنَاوَلُهُ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ إِتْلَافٌ او د هغه فعل ته ګډ نه دې د هلاکت په حیثیت سره فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ نو په دې وجه هلاکت صرف په ناخس باندې دې

حل اللغة: ① اتلاف: هلاکول ② یقتصر: کوتاه کیږی، بس کیږی

تشریح:- دا عبارت په حقیقت کې د یوتقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې ناخس چې کله سومبۍ د سور په حکم سره وهلې وی. نو په ناخس باندې ضمان ولې واجب دې؟ نوعلامه مرغینانی رحمه الله ځواب ورکوی چې زید خالد ته د شړلو اجازت ورکړې دې. د هلاکاوه اجازت ئې نه دې ورکړې. ددې حیثیت تقاضا خو دا وه. چه ضمان صرف په ناخس (سومبۍ وهونکی) باندې وی. خو موږ د سومبۍ وهلو د حکم په وجه دواړو باندې واجب کړو.

## د سوال مقدر جواب

وَالرُّكُوْبُ او سوریدل وَإِنْ كَانَ عِلَّةً لِلْوَطْءِ اګرچه د پائمال کاوه علت دې فَالنَّخْسُ لَيْسَ بِشَرْطٍ لِهٰذِهِ الْعِلَّةِ نو سومبۍ وهل، ددې علت شرط نه دې. بَلْ هُوَ شَرْطٌ أَوْ عِلَّةٌ لِلسَّيْرِ بلکه دا د سیر شرط یا علت دې وَالسَّيْرُ عِلَّةٌ لِلْوَطْءِ او تلل د پائمال کاوه علت دې وَبِهٰذَا لَا يَتَرَجَّحُ صَاحِبُ الْعِلَّةِ او هم په دې وجه صاحب د علت راجح نه دې.

تشریح:- دا هم د یو تقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې. چه د راکب فعل د پائمال کاوه علت دې. ګویا چې هغه پخپله خپلو پښو سره په اغړلو هلاکه وی. او د ناخس (سومبۍ وهونکی) فعل شرط دې. اوکله چې علت کې صلاحیت وی. نو د حکم اضافت شرط اړخ ته نه کیږی. بلکه علت اړخ ته کیږی. نو ضمان به سور باندې کیدل پکار دی. نوځواب ورکوی چې شرط خو وړاندې وی. او دلته سومبۍ وهل د سوریدو نه روستو دې. نو معلومه شوه. چه سومبۍ وهل د علت (سوریدو) شرط نه دې. بلکه سومبۍ وهل خو د تللو شرط یا علت دې. نو اوس دوې (دوه) علتونه جمع شو. یو سومبۍ وهل او یو سوریدل، نو ضمان به په دواړو وی. نو سوریدو ته به په سومبۍ وهلو باندې هیڅ ترجیح نه وی. او په ضمان کې به دواړه برابر وی.

## زخمی کول او کوهی کښې غورځول، دواړو سره د دیت د وجوب صورت

كَمَنْ جَرَحَ إِنْسَانًا الکه (مثلاً) یو انسان بل انسان زخمی کړو فَوَقَعَ فِي بِئْرٍ نو دا زخمی په هغه کوهی کې اوغورځیدو حَفَرَهَا غَيْرُهُ عَلَى قَارِعَةِ الطَّرِيْقِ کوم چې زخمی کونکی نه علاوه (بل چا) په عامه لاره کې کنستلې وی وَمَاتَ او هغه مړ شو فَالدِّيَةُ عَلَيْهِمَا نو دیت به په دوی دواړو باندې وی لِمَا أَنَّ الْحَفْرَ شَرْطٌ عِلَّةٍ أُخْرَى څکه چې څاه کنستل د دوهم علت شرط دې دُوْنَ عِلَّةِ الْجُرْحِ د زخمی کاوه (شرط) نه دې كَذَا هٰذَا دغه رول دا هم دې.

حل اللغة: ① جرح: زخم ② حفر: کنستل ③ قارعة الطریق: عامه لاره ④ بئر: کوهی

تشریح:- زید عمرو لره زخمی کړو. او هغه د اوتر کیدو په وجه کوهی کې پریوتلو. کوم چې خالد په عامه لاره کې کنستلې دې. او اوس عمرو مړ شو. نو ضمان به په زید او خالد دواړو باندې راځی. څکه چې زخمی کول او څاه کنستل دواړه د مرګ سببونه دی. نو دا د ړومبی پشان شو. او کوهی کنستل د غورځیدو علت دې. د زخمی کاوه

علت نه دي… کما لایخفی،،

**ناخس (سومبۍ وهونکي) به د سور کس نه ضمان اخلي اوکه نه؟**

ثُمَّ قِيلَ: بیا وئیلی شوی دی يَرْجِعُ النَّاخِسُ عَلَى الرَّاكِبِ چي ناخس (سومبۍ وهونکي) به په سور باندي رجوع کوی بِمَا ضَمِنَ د هغه مقدار دکوم چي دي ضامن جوړ شوي فِي الْإِيطَاءِ د پائمال کاوه په صورت کي، لِأَنَّهُ فَعَلَهُ بِأَمْرِهِ ځکه چي ده د سور په حکم سره کړی دی وَقِيلَ: او وئیلی شوی دی لَا يَرْجِعُ چي رجوع به نه کوی وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا اصح دی فِيمَا أُرَاهُ زما د ګمان مطابق، لِأَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْهُ بِالْإِيطَاءِ ځکه چي سور هغه ته د پائمال کاوه حکم نه وو ورکړي وَالنَّخْسُ يَنْفَصِلُ عَنْهُ او سومبۍ وهل د پائمال کاوه نه جلا وی

تشریح:- بهرحال په ذکر شوی صورت کي ضمان په ناخس (سومبۍ وهونکی) او سور دواړو باندي واجب دي.بیا ناخس ته د سور نه د واپس اخستلو حق شته اوکه نه؟ نو په دي کي دوي (دوه) اقواله دی:① واپس به اخلي.ځکه چي ناخس کوم څه کړی دی.هغه ئي د سورپه حکم سره کړی دی.② واپس به نه اخلي.هم دا مرغیناني رحمه الله اصح ګرځولی دی.

او دلیل ئي دا بیان کړي دي.چه سور هغه ته د سومبۍ وهلو حکم ورکړي دي.د پائمال کاوه حکم ئي نه دي ورکړي.او دلته پائمال کول ثابت شوی دی.

او که څوك ووايي چي د سومبۍ وهلو حکم د پائمال کاوه حکم دي؟ نوددي ځواب دا دي چي دا اعتراض غلط دی.ځکه چي دا اعتراض به هغه وخت صحیح وو.که سومبۍ وهل، پائمال کاوه ته مستلزم وي.حالانکه داسي خبره نه ده.ځکه چي دوی دواړو کي انفصال (او جداوالي) ده.

**د مذکوره مسئلي شواهد**

وَصَارَ او داسي شوه كَمَا إِذَا أَمَرَ صَبِيًّا لکه چي داسي بچی ته ئي حکم ورکړي وی يَسْتَمْسِكُ عَلَى الدَّابَّةِ چي هغه په څاروی باندي کیناستي شی بِتَسْيِيرِهَا د څاروی د روانولو، فَوَطِئَتْ إِنْسَانًا نو هغي (څاروی) یو انسان پائمال کړو وَمَاتَ او هغه مړ شو حَتَّى ضَمِنَ عَاقِلَةُ الصَّبِيِّ تردي چي د بچی عاقله ضامن فَإِنَّهُمْ لَا يَرْجِعُونَ عَلَى الْآمِرِ نو دا به په حکم کونکی باندي رجوع نه کوی دي لِأَنَّهُ أَمَرَهُ بِالتَّسْيِيرِ ځکه چي د بچی د چلولو حکم ئي ورکړي وَالْإِيطَاءُ يَنْفَصِلُ عَنْهُ او پائمال کول د بیولو (بوتللو) نه جلا وی.

تشریح:- د ړومبی حکم بعضي شواهد (او تائیدات) پیش کوی.زید یو داسي بچی ته د څاروی د روانولو حکم اوکړو.چه هغه په څاروی باندي کیناستي شو.نو بچی (څاروي) روان کړو.او څاروی څوك پائمال کړل.او مړ ئي کړو.نو د بچی په عاقله باندي به ضمان واجب وی.خو اوس به هغوی حقدار نه وی.چه د حکم کونکی نه دا ضمان واپس واخلی.ځکه چي بوتلل، پائمال کاوه ته مستلزم نه دی.لکه څنګه چي سومبۍ وهل پائمال کاوه ته مستلزم نه دی.

**د بچی په لاس کښي وسله ورکولو سره څوك هلاك شو نو څه حکم دي؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَكَذَا إِذَا نَاوَلَهُ سِلَاحًا او هم دغه ډول کله ئي چي بچی ته وسله ورکړله فَقَتَلَ بِهِ آخَرَ نو هغه په دي سره بل څوك قتل کړو حَتَّى ضَمِنَ.تردي چي هغه ضامن شو لَا يَرْجِعُ عَلَى الْآمِرِ نو په حکم کونکی باندي به رجوع نه کوی.

تشریح:- د بچی په لاس کي ئي وسله ورکړله.چه په دي سره څوك مړ شو.او په بچی باندي ضمان واجب شو.نو اوس به دا ضمان د حکم کونکی نه واپس نشی اخستلي.

**د ناخس نه فورا روسته که پښو سره څوك هلاك کړي.نو د ضمان حکم**

ثُمَّ النَّاخِسُ إِنَّمَا يَضْمَنُ بیا ناخس (سومبۍ وهونکي) به ضامن وی إِذَا كَانَ الْإِيطَاءُ فِي فَوْرِ النَّخْسِ کله چي پائمال کول



حَتَّى يَكُونَ السَّوْقُ مُضَافًا إِلَيْهِ تردي چي ترتل (شړل) به د ناخس په اړخ مضاف وی په سومبۍ وهلو پسي فوراً وی وَإِذَا لَمْ يَكُنْ فِي فَوْرِ ذَلِكَ او کله چي پائمال کول، سومبۍ وهلو پسي فوراً نه وی فَالضَّمَانُ عَلَى الرَّاكِبِ نو ضمان به په سور کس باندي وی لِانْقِطَاعِ أَثَرِ النَّخْسِ د سومبۍ وهلو د اثر منقطع کیدو په وجه فَبَقِيَ السَّوْقُ مُضَافًا إِلَى الرَّاكِبِ نو د شړلو اضافت سور کس اړخ ته پاته پاتي شو عَلَى الْكَمَالِ په مکمل طریقه باندي.

تشریح:- سومبۍ وهلو نه فوراً روسته که پائمال کول (او پښو کي اغړل) اوموندي شي.نو په ناخس به ضمان وی.ګنی بیا به ضمان په سور باندي وی.

**د راښکونکی یا شړونکی په موجوګۍ کښي د ناخس په چیړلو سره د هلاکت د ضمان حکم**

وَمَنْ قَادَ دَابَّةً او چا چي حیوان (څاروي) راښکلو فَنَخَسَهَا رَجُلٌ نو هغه چا په سومبۍ اووهلو فَانْفَلَتَتْ مِنْ يَدِ الْقَائِدِ نو هغه د راښکونکی د لاس نه خلاص شو فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا نو هغه هم په دغه وخت چا باندي چوړ اوکړله فَهُوَ عَلَى النَّاخِسِ نو ضمان به په ناخس (سومبۍ وهونکی) باندي وی وَكَذَا إِذَا كَانَ لَهَا سَائِقٌ او هم دغه ډول کله چي هغه ددي شړونکي وی فَنَخَسَهَا غَيْرُهُ نو د هغه نه علاوه کس دي (څاروی) په سومبۍ اووهلو لِأَنَّهُ مُضَافٌ إِلَيْهِ ځکه چي دا (د څاروی وهل) به هغه اړخ ته مضاف وی وَالنَّاخِسُ إِذَا كَانَ عَبْدًا او ناخس چي کله غلام وی فَالضَّمَانُ فِي رَقَبَتِهِ نو ضمان به دده په سټ کي وی وَإِنْ كَانَ صَبِيًّا اوکه بچي وی فَفِي مَالِهِ نو د هغه په مال کي به وی لِأَنَّهُمَا مُؤَاخَذَانِ بِأَفْعَالِهِمَا ځکه چي دا (بچي اوغلام) دواړه پخپل فعل کي ګرفتارولي شی.

تشریح:- که د سورکس نه علاوه بل څوك وی.نو راښکونکی، یا شړونکی یا بل چا حیوان (څاروي) په سومبۍ اووهلو. چي په دي سره فوراً څوك مړ شو.نو ضمان به په ناخس باندي وی.ځکه چي د څاروی فعل به ناخس اړخ ته مضاف وی.بیا که ناخس غلام وی.نو د هغه د سټ څخه به دا ضمان ادا کولي شی.اوکه بچي وی.نو د هغه د مال څخه به ضمان ادا کولي شی.ځکه چي د غلام او د بچی د فعل هم ګرفتاری کولي شی.

وَلَوْ نَفَحَتْهَا شَيْءٌ اوکه دي (څاروی) ته هغه شئ ورخښ شو مَنْصُوبٌ فِي الطَّرِيقِ کوم چي په لاره کي اودرولي شوي دي فَنَفَحَتْ إِنْسَانًا نو دي څاروی یو انسان ته لته ورکړله فَقَتَلَتْهُ نو هغه ئي قتل کړو فَالضَّمَانُ عَلَى نو ضمان به په هغه سړی وی مَنْ نَصَبَ ذَلِكَ الشَّيْءَ چا چي دا شئ اودرولي دي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ ځکه چي هغه متعدی دي بِشَغْلِ الطَّرِيقِ د لاري د مشغولولو په وجه، فَأُضِيفَ إِلَيْهِ نو دا خښیدل به هم د هغه په اړخ مضاف وی كَأَنَّهُ نَخَسَهَا بِفِعْلِهِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ ګویا چي هغه حیوان (څاروي) په سومبۍ اووهلو.والله اعلم بالصواب.

تشریح:- که په لاره کي چایو داسي شئ اودرولو.چه په دي کي سوکه (تیره والي) وغیره دي.چه دا د څاروی په بدن کي ورننوتلو.چه هغه د سومبۍ کار ورکړو.نو دلته به په هغه سړی ضمان واجب وی.چا چي دا په لاره کي اودرولي دي.یا ئي خښ کړي دي.ځکه چي هغه متعدی دي.

## باب جناية المملوك والجناية عليه

ژباړه:- (دا) باب د مملوك د جنایت او په مملوك باندي د جنایت (په بیان کي) دي.

تشریح:- په دي باب کي به دا بیانولي شی.چه غلام په چا څه جرم اوکړي.نو څه حکم دي.او که په غلام څوك څه جرم اوکړي.نو څه حکم دي؟ ددي باب د مخکني باب سره څه مناسبت دي.په دي باندي مجمع الانهر کي تفصیلی بحث شوي دي.

**د غلام خطاء سره جنایت کولو باندي د ضمان حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا جَنَى الْعَبْدُ جِنَايَةً خَطَأً) وکله چي غلام خطاء سره جنایت اوکړو قِيلَ لِمَوْلَاهُ: نو

دده آقا ته به ونيلې شي إمّا أن تدفعه بها چې يا خو دا غلام د جنايت په بدله کې ورکړه أو تفديه يا ددې غلام فديه ادا کړه وقال الشافعي رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمايي جنايته في رقبته چې دده جنايت به دده په سټ کې وي يباع فيها چې په دې کې به دې خرڅولې شي إلا أن يقضي المولى الأرش خو دا چې مولا تاوان اداکړي.

تشريح:- کله چې يو غلام څه جرم اوکړو. مثلاً څوك ئې خطاء سره قتل کړو. يا ئې خطاء سره د چا سترګه زخمي کړله وغيره وغيره. نو په دې صورت کې د جرمانې اصل وجوب د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اصل په آقا باندې دې. خو د آسانتيا په طور آقا ته دا اختيار ورکړې شو. که غواړي. نو غلام دې د جنايت ولي ته حواله کړي. او که غواړي. نو د غلام فديه دې ورکړي. او د امام شافعي رحمه الله په نيز دغلام په سټ کې ده. يعني غلام به خرڅولې شي. او دهغه حق به ادا کولې شي. البته آقا ته به دا حق ضرور وي. چې هغه تاوان ادا کړي. او غلام خپل خان سره اوساتي.

وفائدة الاختلاف في اتباع الجاني بعد العتق او د اختلاف فائده د آزادئ نه روستو مجرم پسې لګيدو کې ده والمسألة مختلفة او مسئله مختلف پاتې شوې ده بين الصحابة رضوان الله عليهم (1) د صحابه کرامو رضي الله عنهم په منځ کې.

تشريح:- ددې اختلاف ثمره به هلته ادا کيږي. کله چې غلام آزاد کړې شوې وي. نو زمونږ په نيز به مجني عليه هغه پسې نه لګي. ځکه چې اصل وجوب په هغه نه دې. او د امام شافعي رحمه الله په نيز چونکه اصل وجوب په دغه غلام وو. نو د آزادئ نه روستو هغه پسې نښليدل جائز دی. او په دې مسئله کې د صحابو رضي الله عنهم په منځ کې هم اختلاف پاتې شوې دې. چه د ابن عباس رضي الله عنهما مذهب زمونږ د مذهب پشان دې. او د حضرت علي رضي الله عنه مذهب د امام شافعي رحمه الله د مذهب مطابق دې.

### د امام شافعي رحمه الله دليل

له او د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې أن الأصل في موجب الجناية چې په موجب د جنايت کې اصل دا دې يجب على المتلف چې موجب په ضائع کونکي باندې واجبيږي لأنه هو الجاني ځکه چې هلاکونکې مجرم دې إلا أن العاقلة تتحمل عنه خو د هغه خاندان دهغه د اړخه برداشت کوي ولا عاقلة للعبد او غلام لپاره مددګار خاندان نشته.

تشريح:- دا د امام شافعي رحمه الله دليل دې. ددې حاصل دا دې. چه اصل قانون دا دې. چه کوم کس جرم اوکړي. نو هغه هم د هغه په ذمه کيدل پکار دی. دا بله خبره ده. چه دچا مددګار خاندان وي. هغوی ددې برداشت کوي. دغه ډول به دلته کې هم اصل وجوب په غلام وي. خو څه اوکړې شي. چه د غلام څوك مددګار خاندان نشته.

لأن العقل عندي بالقرابة ځکه چې د امام شافعي رحمه الله په نيز مددګار د قرابت (رشته دارئ) په وجه وي ولا قرابة بين العبد ومولاه او د غلام او دده د آقا په منځ کې هيڅ قرابت نشته فتجب في ذمته نو ديت به د غلام په ذمه کې واجب وي كما في الذمي لکه د ذمي په صورت کې (چې هم په ذمي واجبيږي) ويتعلق برقبته او دا وجوب به دهغه سټ سره متعلق وي يباع فيه چې په دې کې هغه خرڅولې شي. كما في الجناية على المال لکه په مال باندې جنايت کې (چې غلام خرڅولې شي).

تشريح:- ځکه چې د مددګار کيدو دارومدار ددوی په نيز قرابت (او رشته دارئ) باندې دې. او د آقا او غلام په منځ کې هيڅ قرابت نشته. نو د ديت وجوب د غلام په ذمه پاتې شو. لکه که ذمي په خطاء سره داسې قسمه حرکت اوکړي. نو هلته هم دا حکم دې. چه اصل وجوب هم په ده باندې وي. او چونکه دده مددګار خاندان نه وي. په دې وجه ذمي مجبوراً پخپله ددې ضمان ادا کوي. دغه ډول به دلته د غلام حکم وي. نو غلام به خرڅولې شي. او دا حق به ادا کولې شي. لکه مثلاً که غلام په مال باندې جنايت اوکړي. نو هلته بالاتفاق هم دا حکم دې. چه په غلام باندې

(1) عن علي رضي الله عنه قال ما جنى العبد ففي رقبته ويخير مولاه إن شاء فداه وإن شاء دفعه (نصب:۱۸۰:۱۵)_



وجوب دې. چه په دې کې غلام خرڅولې شي. دغه ډول په نفس باندې د جنايت په صورت کې هم کول پکار دی.

### د احنافو دليل

ولنا او زمونږ دليل دا دې أن الأصل في الجناية على الآدمي حالة الخطأ چې د خطاء په حالت کې په سړي باندې د جنايت په سلسله کې اصل دا دې أن تتباعد عن الجاني چې ديت د مجرم نه لرې شي تحرزاً په بچ کيدو سره عن استئصاله هغه د جړې نه د اوبېکلو (او ختميدو) نه والإجحاف به او د هغه د پريشانه کاوه نه معذور فيه ځکه چې هغه په خطاء کې معذور دې يتعمد الجناية په دې حيثيت سره، چه هغه د جنايت تعمد (او قصد) نه دې کړې. على عاقلة الجاني او ديت د مجرم په مددګار خاندان باندې واجب دې إذ هو حيث لم يجب إذا كان له عاقلة کله چې دده مددګار خاندان وي.

حل اللغة: ① الاحجاف: پريشانه کول ② الجاني: جنايت کونکې

تشريح:- دا زمونږ دليل دې. ددې حاصل دا دې. که د خطاء جنايت صادر کيدو په صورت کې ددې جرمانه او بدل په مجرم باندې واجب کړې شي. نو هغه به هلاك شي. او په پريشانو کې به اخته کړې شي. حالانکه خطاء کونکې په خطاء کې معذور هم دې. ځکه چې هغه کوم څه کړې دی. خطاء سره ئې کړې دی. قصداً ئې نه دی کړې. نو که د هغه مددګار خاندان وي. نو ديت هم په ده واجبيدل پکار دی. او د غلام مددګار دده آقا دې. ځکه چې د آقا نه غلام کومك غواړي.

والمولى عاقلته او آقا دده عاقله دې لأن العبد يستنصر به ځکه چې غلام د آقا نه کومك طلب کوي والأصل في العاقلة عندنا النصرة او په دې عاقله کې زمونږ په نيز کومك دې حتى تجب على أهل الديوان تردې چې ديت به د ديوان (د رجستر په ملګرو) په خلګو باندې واجب وي.

تشريح:- او زمونږ په نيز د عاقله کيدو مدار په قرابت باندې نه دې. بلکه په کومك باندې دې. هم ددې نصرت په وجه د ديوان په خلګو ديت واجبيږي. يعني د لښکر په کومه محکمه کې چې دده نوم ليکلې شوې دې. هغوی دده د ديوان خلګ دی. چه هغوی دده د کومك ذمه دار دی. نو هم په هغوی به ديت واجب وي. د اهل ديوان تفصيل په کتاب المعاقل کې راروان دې.

### د امام شافعي رحمه الله د استدلال جواب

بخلاف الذمي په خلاف د ذمي لأنهم لا يتعاقلون فيما بينهم ځکه چې هغوی پخپل منځ کې ديت نه ورکوي فلا عاقلة. نو ددوی هيڅ څوك مددګار خاندان نشته فتجب في ذمته نو ديت به د ذمي په ذمه واجب وي صيانة للدم عن الهدر د وينې د فضول کيدو نه بچکيدو دپاره

تشريح:- دا عبارت د امام شافعي رحمه الله داستدلال نه ځواب دې فرمايي امام شافعي رحمه الله چې د ذمي نه کوم استدلال کړې دې. هغه صحيح نه دې. ځکه چې د ذميانو پخپل منځ کې د ديت ورکولو، او د يو بل کومك کاوه رواج نشته. نو هرکله چې د ذمي څوك عاقله نشته. نو ددې نه علاوه بله لاره نشته. چه د جرم سزا پخپله ذمي باندې واجب کړې شي. چه د مجني عليه وينه فضول کول لازم نشي.

وبخلاف الجناية على المال او په خلاف په مال باندې د جنايت کولو لأن العواقل لا تعقل المال چې خاندان والا د مال ديت نه ورکوي.

تشريح:- دا عبارت هم د امام شافعي رحمه الله داستدلال نه ځواب دې فرمايي امام شافعي رحمه الله چې په مال باندې د جنايت نه کوم استدلال کړې دې. هغه هم صحيح نه دې. ځکه چې مددګار خاندان د مال ديت نه ورکوي. بلکه صرف د نفس ديت ورکوي. نو ددې نه استشهاد څنګه؟

إلا أنه يخير خو آقا ته به اختيار ورکولای شي بين الدفع والفداء د غلام ور کاوه او فديه ور کاوه په منځ کې لأنه واحد ځکه

چې آقا يو دې وَفِي إِثْبَاتِ الْخِيَرَةِ نَوْعُ تَخْفِيفٍ فِي حَقِّهِ او په اختيار ثابتولو کې د هغه په حق کې آسانتيا ده كَيْ لَا يُسْتَأْصَلَ چې هغه هلاك نشي.

حل اللغة: ① تخفيف: آسانتيا ② الخيرة: اختيار ③ يستاصل: هلاکيږي.

تشريح:- بيا مولا يواځې دې.جماعت نه دې.چه هغه ته زياته پريشاني ملاو نشي.نود آسانتيا په خيال هغه ته دا اختيار ورکړې شو.که غواړي.غلام دې د جنايت ولی ته حواله کړي.او که غواړي.نو د غلام فديه دې ادا کړي.

**د حنفيانو د مسلك وضاحت**

غَيْرَأَنَّ علاوه ددې خبرې نه، الْوَاجِبَ الْأَصْلِيَّ هُوَالدَّفْعُ چې واجب اصلی هغه غلام ورکول دی فِي الصَّحِيحِ د صحيح روايت مطابق، وَلِهَذَا يَسْقُطُ الْمُوجِبُ اوهم په دې وجه موجب ساقطيږي بِمَوْتِ الْعَبْدِ د غلام په مرګ سره، لِفَوَاتِ مَحَلِّ الْوَاجِبِ د واجب محل فوت کيدو په وجه وَإِنْ كَانَ لَهُ حَقُّ النَّقْلِ إِلَى الْفِدَاءِ اګرچه آقا ته د فديه ادا کاوه اړخ ته د منتقل کيدو حق شته كَمَا فِي مَالِ الزَّكَاةِ لکه د زکاة په مال کي ( چې د بل مال نه د زکاة مقدار ادا کاوه اجازت شته).

تشريح:- مرغيناني رحمه الله چې د اختلاف نه فارغ شو.نو اوس بيانوی.چه د حنفيانو په نيز آقا ته اختيار شته.که غواړي.نو غلام دې د جنايت ولی ته حواله کړي.او که غواړي.د هغه فديه دې ادا کړي.خو سوال دادې.چه واجب څه دی؟ نو وې فرمائيل.چه اګرچه د تمرتاشي په روايت کې ديت اصل واجب دې.خو صحيح دا ده.چه اصل واجب غلام ورکول دی.او ددې دليل دا دې.چه که اوس آقا هيڅ اختيار کړی نه وو.چه دا غلام مړ شو.نو اوس په آقا باندې هيڅ واجب پاتې نشو.ځکه چې محل د واجب فوت شو.که ديت په اصل کې واجب وې.نو د هغې ختميدو پکار نه وو.لکه څنګه چې په مال د زکاة اصل خو دا دې.چه د نصاب مقرر جزء ادا کړي.خو شرعاً هغه ته ددې خبرې اجازت ورکړې شو.که غواړي.د بل څه مال نه دې دومره مقدار ادا کړي.اوکه مال د نصاب هلاك شي.نو د واجب محل فوت کيدو په وجه به زکاة ساقطيږي.دغه ډول دا مذکوره مسئله هم ده.چه اصل واجب غلام ورکول دی.خو که آقا دهغه فديه ادا کړي.نو جائز ده.

بِخِلَافِ مَوْتِ الْجَانِي الْحُرِّ په خلاف د آزاد جنايت کونکی د مرګ، لِأَنَّ الْوَاجِبَ لَايَتَعَلَّقُ بِالْحُرِّ ځکه چې واجب آزاد سره نه متعلق کيږي اسْتِيفَاءً د وصولولو په اعتبار سره فَصَارَ نو داسې شوه كَالْعَبْدِ فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ لکه په صدقة فطر کي غلام ( چې د سهار صادق نه روستو مړ شي).

تشريح:- خودا مسئله چې د مجرم په مرګ سره جرمانه ساقطيږي.صرف د مجرم غلام لپاره ده.اوکه مجرم آزاد وی.او هغه مړ شی.نو واجب به نه ختميږي.ځکه چې د واجب مقدار ادا کاوه تعلق د مجرم ذات سره نه دې.بلکه د هغه د مال سره دې.او مال د مرګ نه روستو هم موجود دې.او ددې مثال بعينه داسې دې.لکه د شوال په ړومبی تاريخ کي ، د سهار صادق راختلو نه روستو د آقا غلام مړ شو.نو د غلام د مرګ په وجه به دده صدقة فطر د آقا نه نه ساقطيږي.بلکه واجب الاداء به وی.ځکه چې د غلام په مرګ سره واجب محل ختم نشو.بلکه واجب محل خو د آقا مال دې.چه دا دهغه ( د غلام) د مرګ نه روستو هم موجود دې.

**آقا ته د څه څيز ورکولو اختيار دې ؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ دَفَعَهُ نو که آقا جنايت کونکې غلام ورکړو مَلَكَهُ وَلِيُّ الْجِنَايَةِ نو د جنايت ولی به ددې مالك جوړيږي وَإِنْ فَدَاهُ وکه آقا ددې فديه ورکول منظور کړي فَدَاهُ بِأَرْشِهَا نو د جنايت د تاوان مطابق دې د هغې فديه ادا کړي وَكُلُّ ذَلِكَ يَلْزَمُهُ حَالًا او په دې کې به هريو آقا ته فی الحال لازم وی

تشريح:- مرغيناني رحمه الله دلته درې خبرې بيان کړی دی ①کله چې آقا غلام د جنايت ولی ته حواله کړو.نو د جنايت ولی به دغلام مالك کيږي. ② کله چې آقا فديه ورکول منظور کړي.نو فديه به دومره ورکوی.چه دا د جنايت د



تاوان په اندازه وی. ③ که غلام ورکوی.اوکه فديه ورکوی.ادا کول به فی الحال ( فوراً) واجب وی.

أَمَّا الدَّفْعُ بهرحال غلام ورکول فَلِأَنَّ التَّأْجِيلَ فِي الْأَعْيَانِ بَاطِلٌ نو ځکه چې اعيان کې تاجيل (تاخير) باطل دې وَعِنْدَ اخْتِيَارِهِ الْوَاجِبُ عَيْنٌ اود مولا د اختيارولو په وخت د غلام ورکولو چې کوم شئ واجب دې.هغه عين دې

تشريح:- د فی الحال دا کاوه دليل دا بيانوی چې تاجيل ځکه کيږي.چه د واجبی حق په رسولو کې سهولت او آسانتيا وی.او دلته خو غلام د مخکې نه موجود دې.نو تاجيل ( موځر کول) تحصيل د حاصل دې.ځکه چې واجب عين دې.

وَأَمَّا الْفِدَاءُ او فديه ورکول، فَلِأَنَّهُ جُعِلَ بَدَلًا عَنِ الْعَبْدِ فِي الشَّرْعِ نو ځکه چې دا په شريعت کې د غلام بدل ګرځولې شوې دې وَإِنْ كَانَ مُقَدَّرًا بِالْمُتْلَفِ اګرچه دا هلاك شوی سره اندازه شوې ده وَلِهَذَا سُمِّيَ فِدَاءً په دې وجه ددې نوم فديه ايخودې شوې دې فَيَقُومُ مَقَامَهُ نو د فدې قائم مقام به وی وَيَأْخُذُ حُكْمَهُ او د غلام حکم به اخلی فَلِهَذَا وَجَبَ حَالًا كَالْمُبْدَلِ په دې وجه به د مبدل مثلی بدل (فديه) فی الحال واجب وی.

تشريح:- اود فدې ور کاوه دليل بيانوی فرمايي اوکه فديه ادا کول اوغواړي.نو فديه چونکه د غلام بدل دې.او د بدل به هغه حکم وی.کوم چې د مبدل دې.نو ددې ادا کول هم فی الحال واجب دی.اګرچه فديه د تاوان د جنايت په اندازه ده.خو په حقيقت کې فديه د غلام بدل دې.په دې وجه خو ددې نوم فديه ايخودې شوې ده.

**کوم څيز چې آقا اختيار کړود جنايت ولی ته د بل څيز اختيارولو حق شته اوکه نه؟**

وَأَيُّهُمَا اخْتَارَهُ او آقا چې په دې دواړو کې کوم شئ اختيار کړو وَفَعَلَهُ و هغه نې اوکړو لَاشَيْءَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ غَيْرُهُ نو د جنايت ولی لپاره ددې نه علاوه هيڅ نشته أَمَّا الدَّفْعُ بهرحال غلام ورکول فَلِأَنَّ حَقَّهُ مُتَعَلِّقٌ بِهِ نو ځکه چې د ولی حق غلام سره متعلق شوې دې فَإِذَا خَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الرَّقَبَةِ نو هرکله چې د جنايت د ولی او غلام په منځ کي تخليه اوکړې شوه سَقَطَ نو د مطالبې حق ساقط شو وَأَمَّا الْفِدَاءُ او بهرحال فديه ورکول، فَلِأَنَّهُ لَاحَقَّ لَهُ إِلَّا الْأَرْشُ نوځکه چې د ولی هيڅ حق د تاوان نه علاوه نشته فَإِذَا أَوْفَاهُ حَقَّهُ نو هرکله چې آقا د ولی حق پوره کړو سَلِمَ الْعَبْدُ لَهُ نو غلام آقا لپاره صحيح سلامت پاتې شو

تشريح:- آقا ته د مذکوره دواړو څيزونو اختيار دې.هغه چې کوم اختيار کړو.نو د جنايت د ولی بل هيڅ حق پاتې نشو.يعنی که غلام ئې ورکړو.نو د تاوان حق پاتې نشو.او که فديه ئې ورکړله.نو د غلام اخستلو حق پاتې نشو.ځکه چې دغلام ور کاوه په صورت کي د جنايت د ولی حق دغلام د ذات سره متعلق دې.او هرکله آقا غلام هغه ته ورکړو.نو دهغه حق اداشو.نو اوس د زياتی مطالبې حق پاتې نشو.او که آقا فديه اداکړې وی.نوچونکه د جنايت د ولی حق د تاوان په اندازه وو.چه دا هغه ته ملاو شوې دې.اوهرکله چې د ولی حق هغه ته ملاو شو.نو غلام به آقا سره پاتې کيږي.

فَإِنْ لَمْ يَخْتَرْشَيْئًا اوکه آقا هيڅ اختيار نکړل حَتَّى مَاتَ الْعَبْدُ تردې چې غلام مړ شو بَطَلَ حَقُّ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ نو د مجنی عليه حق باطل شو لِفَوَاتِ مَحَلِّ حَقِّهِ د هغه د حق محل فوت کيدو په وجه عَلَى مَابَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې وَإِنْ مَاتَ او که غلام مړ شوې بَعْدَمَا ددې نه روستو اخْتَارَالْفِدَاءَ چې آقا فديه ورکول اختيار کړي لَمْ يَبْرَأْ نو آقا به نه بری کيږي لِتَحَوُّلِ الْحَقِّ د حق راوړيدو په وجه، مِنْ رَقَبَةِ الْعَبْدِ إِلَى ذِمَّةِ الْمَوْلَى ،. د غلام د سټ نه د آقا ذمې اړخ ته.

تشريح:- او اوس وړاندې دا مسئله تيره شوې ده.که غلام مړ شی.او اوس آقا په دې دواړو کې د يو انتخاب نه وو کړې.نو چونکه اصل واجب غلام ورکول دی.او اوس غلام مړ شو.نو وجوب به ساقطيږي.ځکه چې محل د وجوب ختم شوې دې.او که اقا فديه ورکول منظور کړی وو.او بيا غلام مړشی.نو اوس به فديه واجب وی.ځکه چې اوس دجنايت د ولی حق غلام نه منتقل شوې او فديهٔ اړخ ته راغلې دې.چه ددې د ادا کاوه اقا ذمه دار دې.

## که جنایت دوباره اوکړي نو څه حکم دي ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ عَادَ) نو که مجرم راواپس شو (فَجَنَى) نو جنایت ئې (دوباره) اوکړو (كَانَ حُكْمُ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ كَحُكْمِ الْجِنَايَةِ الْأُولَى) نو د دوهم جنایت حکم د ړومبی د جنایت پشان دي مَعْنَاهُ دي بَعْدَ الْفِدَاءِ چې د فدیه ادا کاوه نه روستو لِأَنَّهُ لَمَّا طَهُرَ عَنِ الْجِنَايَةِ ځکه چې هرکله غلام د جنایت نه پاك شو بِالْفِدَاءِ. د فدیه ادا کاوه په ذریعه جُعِلَ كَأَنْ لَمْ تَكُنْ نو جنایت د نه کیدو په درجه کي شو وَهَذَا ابْتِدَاءُ جِنَايَةٍ او دا ړومبی جنایت شو.

تشریح:- که آقا دغلام فدیه ادا کړې ده. خوغلام دوباره جنایت اوکړو. نو اوس به هم هغه حکم وی. کوم چې د ړومبی جنایت په صورت کي بیان کړې شوې دي. ځکه چې هرکله د ړومبی جنایت فدیه ادا شوه. نو غلام د جرم نه پاك صفا شوې دي. ګویا چې هغه جنایت هم نه دي کړې. اودا ګویا دده ړومبې جنایت دي.

## د دوو جنایتونو مسئله

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ جَنَى جِنَايَتَيْنِ) وکه غلام دوې (دوه) جنایتونه اوکړل قِيلَ لِلْمَوْلَى نو آقا ته به ونیلې شی إِمَّا أَنْ تَدْفَعَهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ چې یا خو ته غلام د دواړو جنایتونو ولیانو ته ورکړه يَقْتَسِمَانِهِ عَلَى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا چې دا به هغوی دواړه د خپل حق په اندازه تقسیموی وَإِمَّا أَنْ تَفْدِيَهُ و یا د غلام فدیه ورکړه بِأَرْشِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دهغوی دواړو د دیت په اندازه.

تشریح:- که غلام دوې (دوه) جنایتونه کړې وی. مثلاً خالد ئې هم خطاء سره قتل کړې دي. او ساجد ئې هم خطاء سره قتل کړې دي. نو اوس هم آقا ته اختیار دي. که غواړي. نو د دواړو مقتول اولیاء ته دې خپل مجرم غلام اوسپاری. او هغوی دې د خپلې برخې مطابق دا غلام ویش کړی. او که آقا غواړي. نو ددوی دواړو دیت دې ورکړي. او غلام دې خان سره اوساتی.

لِأَنَّ تَعَلُّقَ الْأَوَّلِ بِرَقَبَتِهِ ځکه چې د ړومبی جنایت د غلام سټ سره متعلق کیدل لَا يَمْنَعُ تَعَلُّقَ الثَّانِيَةِ بِهَا دده د سټ سره دوهم جنایت متعلق کیدل نه منع کوی كَالدُّيُونِ الْمُتَلَاحِقَةِ لکه بلا ناغه پور أَلَا تَرَى آیا ته نه ګورې أَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَى لَمْ يَمْنَعْ تَعَلُّقَ الْجِنَايَةِ چې د آقا ملك د جنایت تعلق نشی منع کولې فَحَقُّ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ الْأَوَّلِ أَوْلَى أَنْ لَا يَمْنَعَ نو د ړومبی مجنی علیه حق به په درجه نه منع کوی.

حل اللغة: ① الدیون: جمع د دین ، پور ② المتلاحقة: پرله پسې

تشریح:- ځکه چې د خالد په قتلولو سره به د ساجد د قتلولو جرم د معاف کاوه قابل نه وی. لکه د آقا د مملوك کیدو باوجود دخالد قتلولو د جنایت تعلق ممتنع نشو. دغه ډول د ړومبی جنایت متعلق کیدو سره د دوهم جنایت دده دسټ سره متعلق کیدل به ممنوع نه وی. لکه مثلاً که غلام پوز واخستلو. نو هغه به دده د سټ سره متعلق وی. اوکه دوباره او په دریم خلی ئې پور واخستلو. نو هغه به هم دده سټ سره متعلق وی.

وَمَعْنَى قَوْلِهِ عَلَى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا او د امام قدوري رحمه الله د قول «علی قدر حقیهما» معنی عَلَى قَدْرِ أَرْشِ جِنَايَتَيْهِمَا «علی قدر إرش جنایتیهما» ده.

تشریح:- دخپل حق په اندازه د اخستلو مطلب دا دي. چه د دوی دواړو په دیت کي کوم تناسب دي. په دې تناسب سره به د غلام په قیمت کي اخلې. مثلاً یوکس ته ئې داسې زخم لګولې دي. چه په هغې سره پنځلس سوه روپۍ واجبیږی. او د دوهم زخم سره مثلاً درې زره روپۍ واجبیږی. نو د غلام قیمت به هم د دوی دواړو په منځ کي د دریو برخو په حساب سره تقسیمیږی.

## که په ډیر سړو باندې جنایت اوکړي نو څه حکم دې ؟



(وَإِنْ كَانُوا جَمَاعَةً) وکه اولیاء یو جماعت وی يَقْتَسِمُونَ الْعَبْدَ الْمَدْفُوعَ عَلَى قَدْرِ حِصَصِهِمْ نو هغوی به دا ورکړې شوې غلام د خپلو برخو په اندازه تقسیموی (وَإِنْ فَدَاهُ) وکه آقا د غلام فدیه ورکول منظور کړی فَدَاهُ بِجَمِيعِ أُرُوشِهِمْ نو آقا به ددوی ټولو د دیت په اندازه فدیه ورکوی لِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ ذکر کړې دي (وَلَوْ قَتَلَ وَاحِدًا) اوکه یوکس ئې قتل کړو وَفَقَأَ عَيْنَ آخَرَ او د دوهم ئې سترګه زخمي کړله يَقْتَسِمَانِهِ أَثْلَاثًا نو دوی دواړه به غلام د دریو برخو په حساب سره تقسیموی (لِأَنَّ أَرْشَ الْعَيْنِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ أَرْشِ النَّفْسِ، وَعَلَى هَذَا حُكْمُ الشِّجَاجِ) ځکه چې د سترګې دیت د نفس د دیت په نیمه دي او هم په دې طریقه د سر د زرخمونو حکم دي.

حل اللغة: ① الشجات: جمع د شجة: د سر زخم

تشریح:- لنډیز د کلام دا که ډیر نفر ده زخمی کړې وی. نو هغوی واړه به دخپلو برخو په اندازه د غلام قیمت وصولوی. اوکه اقا فدیه ادا کړی. نو د تاوان چې کومه فدیه جوړیږی. هغه ادا کول به لازمی وی. او د نفس دیت پوره دیت دې. او د سترګې دیت نیم وی. نو که غلام یو سړې قتل کړو. او د یو کس ئې سترګه زخمي کړله. نو د قیمت به درې برخې کولې شی. هغې کي به دوې (دوه) برخې د نفس ولی ته او یوه برخه د سترګې ولی ته ورکولې شی. دغه ډول که د سر زخمونه مختلف وی. نو هم د هغې په حساب سره به د غلام قیمت د هغوی په منځ کي تقسیمولې شی.

## په مختلف قسم جنایاتو کښې آقا ته څه اختیار دې ؟

وَلِلْمَوْلَى او مولا ته حق شته أَنْ يَفْدِيَ مِنْ بَعْضِهِمْ چې هغوی کي بعضو ته فدیه ورکړی وَيَدْفَعَ إِلَى بَعْضِهِمْ و هغوی کي بعضو ته غلام ورکړی مِقْدَارَ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُ مِنَ الْعَبْدِ په هغه اندازه کوم چې د هغوی حق غلام سره متعلق شوې دې لِأَنَّ الْحُقُوقَ مُخْتَلِفَةٌ ځکه چې حقوق مختلف دی بِاخْتِلَافِ أَسْبَابِهَا د هغې د سببونو مختلف کیدو په وجه وَهِيَ الْجِنَايَاتُ الْمُخْتَلِفَةُ او دا سببونه مختلف جنایتونه دی.

تشریح:- که جنایتونه مختلف وی. مثلاً غلام یوکس قتل کړې دي. او د دوهم کس ئې سترګه زخمی کړې ده. نواقا ته دا حق هم شته. چه یوکس ته د غلام فدیه ورکړی. او د دوهم د حق په اندازه دوهم ته غلام ورکړی. ځکه چې دلته اسباب یعنی جنایتونه مختلف دی. چې لکه څنګه دلته دا کولې شی. چه دواړو ته مجرم غلام ورکړی. یا په فدیه کي د دواړو دیت ادا کړی. دغه ډول آقا

بِخِلَافِ مَقْتُولِ الْعَبْدِ په خلاف د غلام دمقتول إِذَا كَانَ لَهُ وَلِيَّانِ کله چې دهغه دوې (دوه) ولیان وی لَمْ يَكُنْ لَهُ نو آقا ته به حق نه وی أَنْ يَفْدِيَ مِنْ أَحَدِهِمَا چې هغوی کي یوکس ته فدیه ورکړی وَيَدْفَعَ إِلَى الْآخَرِ او دوهم کس ته غلام حواله کړی لِأَنَّ الْحَقَّ مُتَّحِدٌ ځکه چې حق متحد دي لِاتِّحَادِ سَبَبِهِ د حق دسبب متحد کیدو په وجه، وَهِيَ الْجِنَايَةُ الْمُتَّحِدَةُ او هغه یو جنایت دي وَالْحَقُّ يَجِبُ لِلْمَقْتُولِ او حق د مقتول لپاره واجبیږی ثُمَّ لِلْوَارِثِ خِلَافَةً عَنْهُ. بیا د مقتول نه د خلافت په طریقه باندې وارث لپاره ثابتیږی فَلَا يَمْلِكُ التَّفْرِيقَ فِي مُوجَبِهَا نو آقا به د جنایت په موجب کي د جدائی کاوه مالك نه وی.

تشریح:- خوکه غلام یو کس قتل کړې وی. او د مقتول دوې (دوه) ولیان وی. نو چونکه دلته مقتول یوکس دې. نو د دواړو ولیانو د حق اسباب مختلف نه دی. بلکه سبب یو دې. په دې وجه آقا دا نشی کولې. چه یوکس ته فدیه ورکړی. او دوهم ته غلام ورکړی. بلکه یا خو دوی دواړو ته فدیه ورکوی. یا به دوی دواړو ته غلام ورکوی. یعنی اقا ته به د سبب یوکیدو په وجه د تفریق حق نه وی. ځکه چې ابتداء کي اصل حق د مقتول وی. بیا د خلافت په طریقه وارثانو ته ملاویږی. ګویا حقدار هم یو دې. او سبب هم یو دې. په دې وجه به تفریق صحیح نه وی.

## که آقا ته علم نه وواو جنایت کونکې غلام ئې آزادکړو. نو څه حکم دې ؟

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل (فَإِنْ أَعْتَقَهُ الْمَوْلَى) نو که مجرم غلام آقا آزاد کړو وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِالْجِنَايَةِ و آقا جنایت نه

خبر نه وی ضَمِنَ الأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو آقا به دده په قیمت او د جنایت د دیت (یعنی دواړو) نه د کم ضامن وی وَإِنْ أَعْتَقَهُ او که هغه ئې آزاد کړو بَعْدَ الْعِلْمِ بِالْجِنَايَةِ د جنایت معلومیدو نه روستو وَجَبَ عَلَيْهِ الأَرْشُ نو په دده باندې دیت واجب دي

**تشریح:-** د زید غلام خالد جنایت اوکړو.چه په دې کې زید ته دوې (دوه) اختیاره وو.غلام د جنایت ولی ته حواله کول.یا دهغه فدیه ادا کول.خو که زید خالد (غلام) آزاد کړو.نو ددې اعتاق په وجه زید دفدیې اختیارونکې شو اوکه نه؟ نو ددې تفصیل دا دې.که زید ته دجنایت علم وی.نو هغه به د آزادولو په وجه د فدیې اختیارونکې جوړیږي.اوکه د جنایت علم نه وی.او آزاد ئې کړو.نو د فدیې اختیارونکې به نه شمارلې کیږي.بلکه په دې صورت کې به د غلام قیمت او د جنایت په دیت کې چې کوم یو کم وی.هم هغه به په آقا باندې واجب وی.

لِأَنَّ فِي الأَوَّلِ فَوَّتَ حَقَّهُ ځکه چې ړومبی صورت کې آقا (د جرم د حقدار) حق فوت کړې دي فَيَضْمَنُهُ نو آقا به ددې ضامن وی وَحَقُّهُ فِي أَقَلِّهِمَا او د جرم د حقدار حق دې دواړو کې په کم کې دي وَلَا يَصِيرُ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ او آقا (د علم نه بغیر د آزادولو په صورت کې) به د فدیۀ اختیارولو اختیار مند نه وی لِأَنَّهُ لَا اخْتِيَارَ بِدُونِ الْعِلْمِ وَفِي الثَّانِي صَارَ مُخْتَارًا او په دوهم صورت کې به آقا اختیارمند وی لِأَنَّ الإِعْتَاقَ يَمْنَعُهُ مِنَ الدَّفْعِ ځکه چې آزادول به دې د غلام ورکاوه نه منع کوی فَالإِقْدَامُ عَلَيْهِ اخْتِيَارٌ مِنْهُ لِلْآخَرِ نو په هغه باندې وړاندې کیدل د دوهم اختیارول دي.

**تشریح:-** ځکه چې د جرم د مستحق حق هم دا جوړیږي.چه دا آقا په مجرم غلام آزادولو سره فوت کړو.نو آقا به ددې ضامن وی.او آقا به د علم نه بغیر د فدیې اختیارونکې نه شمارلې کیږي.البته د علم نه روستو به د آزادولو په وجه فدیه واجب وی.ځکه چې اوس د غلام ورکول ممتنع شو.نو فدیه متعین شوه.

### د هبې ، مدبر کولو، او ام ولد جوړولو حکم

وَعَلَى هَذَيْنِ الْوَجْهَيْنِ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ او هم په دې دواړو طریقه باندې بیع او هبه، وَالتَّدْبِيرُ وَالِاسْتِيلَادُ او مدبر جوړول، او ام ولد جوړول دی ؤلِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مِمَّا يَمْنَعُ الدَّفْعَ ځکه چې دې کې هر یو غلام ورکول منع کوی لِزَوَالِ الْمِلْكِ بِهِ د ملك زائل کیدو په وجه په دې سره،

**حل اللغة:** ① **التدبير:** مدبر کول ② **الاستيلاد:** ام ولد جوړول

**تشریح:-** د ازدولو په صورت کې د علم او عدم علم په وجه چې کوم جلا جلا حکمونه دی.دغه ډول ددې څلورو امورو حکم دې.کوم چې دلته کې ذکر دی.اوکه علم نه وی.نو آقا به ددې (امورو) په وجه د فدیې اختیارونکې نه وی.دده په قیمت او دیت کې چې کوم یو کم وی.هم هغه به واجب وی.اوکه د علم نه روستو ئې (کوم یو فعل) کړې وی.نو فدیه به واجب وی.هغه څلور امور دا دی ① مجرم غلام خرڅول ② مجرم غلام مدبر جوړول ③ مجرم غلام هبه کول ④ مجرمه وینځه ام ولد جوړول، ځکه چې په دې کې بعضو کې ملك زائل کیږي.او په بعضو کې ملك اگرچه نه زائل کیږي.خو ورکول متعذر کیږي.

بِخِلَافِ الإِقْرَارِ په خلاف د اقرار، عَلَى رِوَايَةِ الأَصْلِ د مبسوط روایت مطابق لِأَنَّهُ لَا يَسْقُطُ بِهِ حَقُّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ،ځکه چې د اقرار په وجه د جنایت د ولی حق نه ساقطیږي فَإِنَّ الْمُقَرَّ لَهُ يُخَاطَبُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ ځکه چې د مقرله څخه به دده د ارخه د ور کاوه مطالبه کولای شی وَلَيْسَ فِيهِ نَقْلُ الْمِلْكِ او په دې کې ملك نقل کول نشته لِجَوَازِ ددې خبرې د جائز کیدو په وجه أَنْ يَكُونَ الأَمْرُ چې خبره هم دغه ډول وی كَمَا قَالَهُ الْمُقِرُّ لکه څنګه چې مقر وائی.

**تشریح:-** او د زید سره چې کوم غلام دې.که هغه جنایت اوکړو.او د زید نه مطالبه اوکړې شوه.چه دا غلام د جنایت ولی ته حواله کړه.نو زید اووئیل.چه دا زما غلام نه دې.بلکه د عمرو دې.نو ددې اقرار کاوه په وجه به زید د فدیې اختیارونکې نه شمارلې کیږي.ځکه چې دې کې د جنایت د ولی حق نه ساقطیږي . بلکه مقرله به ددې خبرې مخاطب وی.چه هغه غلام د جنایت ولی ته حواله کړي.



لاپانه پاتې شوه دا خبره چې جرم د زید غلام کړې دي او ضمان په عمرو واجبیږي نو دا غلط فهمی ده بلکه دا به د وړاندې نه د عمرو غلام شمارلې کیږي.ځکه کیدای شی چه خبره هم دغه ډول وی لکه څنګه چې زید وائی.نو په دې کې د ملك انتقال نشته.

### د امام کرخی رحمه الله تعالیٰ نظر

وَأَلْحَقَهُ الْكَرْخِيُّ بِالْبَيْعِ او دا (اقرار) لاحق کړې دې امام کرخی رحمه الله په بیع وَأَخَوَاتِهِ او ددې په امثالو باندې (کوم چې ددې پشان دی). لِأَنَّهُ مِلْكُهُ فِي الظَّاهِرِ ځکه چې اقرار کونکې ښکاره ددې مالك دې فَيَسْتَحِقُّهُ الْمُقَرُّ نو مقرله به ددې مستحق کیږي بِإِقْرَارِهِ د مقر د اقرار په وجه، فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا د بیع مشابه شو.

**تشریح:-** او امام کرخی رحمه الله مذکوره اقرار د بیع وغیره په درجه کې ګرځوی.او د مذکوره اقرار په وجه آقا د فدیې اختیارونکې شماری.او ړومبې روایت د مبسوط دې.امام کرخی رحمه الله فرمائی.چه په ښکاره آقا ددې غلام مالك دې.نو مقرله به ددې غلام مستحق، د مقر د اقرار په وجه جوړیږي.نو اقرار د بیع مشابه شو.او هم هغه حکم به په دې جاری کیږي.

### په مطلق جنایت کښې د قتل او مادون النفس جنایت حکم

وَإِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ يَنْتَظِمُ النَّفْسَ وَمَا دُونَهَا او د خواب اطلاق په کتاب کې نفس ته او د نفس نه کم ته ګډ دې وَكَذَا الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ او هم دغه ډول وجه مختلف نه ده

**تشریح:-** امام قدوری رحمه الله مطلق جنایت فرمائیلې دې.نو که قتل ئې کړې وی.نو هم دا حکم دې.اوکه یو اندام ته ئې نقصان رسولې وی.نو بیا هم دغه حکم دې.ځکه چې دواړو صورتونو کې وجه یوه ده.چه په دې کې هیڅ اختلاف نشته.

### د مشتری د خیار شرط په صورت کښې هم د بیع پشان حکم دې

وَإِطْلَاقُ الْبَيْعِ يَنْتَظِمُ او د بیع مطلق کیدل ګډ دی الْبَيْعَ هغه بیع ته بِشَرْطِ الْخِيَارِ لِلْمُشْتَرِي کومه چې مشتری لپاره د خیار شرط سره وی لِأَنَّهُ يُزِيلُ الْمِلْكَ ځکه چې دا ملك زائل کوی.

**حل اللغة:** ① **ينتظم:** شاملیږي ② **يزيل:** زائله کیږي

**تشریح:-** د بیع حکم معلوم شو.چه په کوم صورت کې د فدیې اختیارولو سبب دې.او په کوم کې نه دې. او بیع هم مطلق ذکر ده.نوکه داسې بیع وی.په کوم کې چې مشتری لپاره خیار شرط وی.د هغې هم دا حکم دې.کوم چې د مطلق بیع دې.ځکه چې کله خیار مشتری لپاره دې.نو بیع د بائع دملکیت نه خارج شوې ده.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ په خلاف ددې صورت کله چې خیار د بائع لپاره وی وَنَقَضَهُ او بائع بیع ماته کړې وی.

**تشریح:-** البته که خیار بائع لپاره وی.نو چونکه مبیع د بائع د ملك نه خارج شوې نه دې.او بایع په موده د خیار کې بیع ماته کړله.نو دا د عدم بیع په درجه کې ده.او په دې به د بیع احکام نه جاری کیږي.

وَبِخِلَافِ الْعَرْضِ عَلَى الْبَيْعِ او پخلاف په بیع باندې د پیش کولو لِأَنَّ الْمِلْكَ مَا زَالَ ځکه چې ملك نه دې زائل شوې.

**تشریح:-** دغه ډول که آقا غلام خرڅ نکړو.خو دا ئې د خرڅولو لپاره منډئ ته بیولو (بوتللو).خو خرڅ ئې نکړو.نو چونکه د بائع ملکیت ددې فعل په وجه نه دې زائل شوې.نو بیا به هم بائع اختیارونکې نه شمارلې کیږي.

### په بیع فاسد سره د غلام خرڅولو په صورت کښې څه حکم دې !

وَلَوْ بَاعَهُ او که دا ئې خرڅ کړو بَيْعًا فَاسِدًا په بیع فاسد سره، لَمْ يَصِرْ مُخْتَارًا نو آقا به اختیارونکې نه وی حَتَّى يُسَلِّمَهُ تر دې چې دا اوسپاری. لِأَنَّ الزَّوَالَ بِهِ ځکه چې زوال د سپارلو په وجه راځی.

**تشریح:-** اوکه آقا بیع فاسد سره دا (مجرم غلام) خرڅ کړې وی.نو ترکومه پورې چې آقا غلام مشتری ته او نه

سپاري.هغه وخته پورې به هغه د فديې اختيارونكې نه شمارلې كيږي.ځكه چې دده ملك به د سپارلو نه روسته زائل كيږي.

بِخِلَافِ الْكِتَابَةِ الْفَاسِدَةِ په خلاف د كتابتِ فاسده لِأَنَّ مُوجَبَهُ يَثْبُتُ قَبْلَ قَبْضِ الْبَدَلِ ځكه چې ددې موجب په بدله باندې د قبضې نه مخكې ثابتيږي فَيَصِيرُ بِنَفْسِهِ مُخْتَارًا نو آقا د نفس كتابت په وجه د فديې اختيارونكې شو.

**تشريح:-** اوكه كتابتِ فاسده وي.نو د بدل سپارلو نه مخكې د نفس عقد په وجه ملك زائل كيږي.نو كه د جنات د علم نه روستو آقا كتابتِ فاسده اوكړو.نو آقا به د فديې اختيارونكې شمارلې كيږي.

## د دريو مسئلو وضاحت

وَلَوْبَاعَهُ مَوْلَاهُ مِنَ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ اوكه آقا د مجنى عليه په لاس مجرم غلام خرڅ كړو فَهُوَ مُخْتَارٌ نو آقا به د فديې اختيارونكې وي.

**تشريح:-** دلته يوه مسئله دا بيان شوې ده كه مجرم غلام آقا د مجنى عليه په لاس خرڅ كړو.نو چونكه دلته خپل غلام مفت نه دې وركړې.بلكه په عوض سره ئې وركړې دې.نو په دې بيع سره د مجنى عليه حق ادا نشو.او اوس آقا دا غلام د جنايت په بدله كې وركاوه باندې قادر پاتې نشو.نو ددې بيع په وجه به آقا د فديې اختيارونكې شمارلې كيږي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا وَهَبَهُ مِنْهُ په خلاف ددې صورت كله ئې چې غلام مجنى عليه ته هبه كړې وي لِأَنَّ الْمُسْتَحِقَّ لَهُ أَخْذُهُ بِغَيْرِ عِوَضٍ ځكه چې مجنى عليه د عوض نه بغير ددې (غلام) د اخستلو مستحق دې وَهُوَ مُتَحَقِّقٌ فِي الْهِبَةِ او دا په هبه كې متحقق دى دُونَ الْبَيْعِ په بيع كې نه دى.

**تشريح:-** دويمه مسئله دا بيان شوې ده كه آقا مجرم غلام مجنى عليه ته هبه كړې وي.نو د هغه چې كوم حق وو.هغه ادا شو.ځكه د هغه حق دا وو.چه غلام هغه ته مفت ملاو شي.او د هبې په صورت كې د څه عوض نه بغير هغه ته غلام ملاو شوې دې.

وَإِعْتَاقُ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ او د مجنى عليه آزادول بِأَمْرِ الْمَوْلَى بِمَنْزِلَةِ إِعْتَاقِ الْمَوْلَى د آقا په حكم سره د مولا د آزادولو په درجه كې دى فِيمَا ذَكَرْنَاهُ په هغه صورت كې كوم چې موږ ذكر كړې دې، لِأَنَّ فِعْلَ الْمَأْمُورِ مُضَافٌ إِلَيْهِ ځكه چې د مامور فعل حكم كونكى اړخ ته مضاف دې.

**تشريح:-** دريمه مسئله دا بيان شوې ده كه آقا مجنى عليه ته حكم وركړې وي.چه دا غلام آزاد كړه.مجنى عليه آزاد كړو.نو دا داسې ده.ګويا چې آقا پخپله آزاد كړې دې.ځكه چې د مامور فعل حكم كونكى اړخ ته مضاف كيږي.نو كه آقا دا حكم مجنى عليه ته د جنايت دعلم نه روستو وركړې وي.نو آقا به د فديې اختيارونكې شمارلې كيږي.

## د څلورو مسئلو وضاحت

وَلَوْ ضَرَبَهُ او كه آقا مجرم غلام اووهلو فَنَقَصَهُ نو هغه ته ئې نقصان اورسولو فَهُوَ مُخْتَارٌ نو آقا فديه اختيارونكې دې إِذَا كَانَ عَالِمًا بِالْجِنَايَةِ كله چې هغه ته د جنايت علم وي لِأَنَّهُ حَبَسَ جُزْءًا مِنْهُ ځكه چې هغه د غلام يو جزء (اندام) منع كړو.

**تشريح:-** دلته يوه مسئله دا ده كه آقا مجرم غلام دومره اووهلو.چه په هغه كې نقصان پيدا شو.او آقا ته دجنايت علم شته.نو په دې صورت كې آقا د غلام يو جزء خپل ځان سره ساتونكې (او منع كونكې) شو.په دې وجه دې ددې فعل په وجه د فديې اختيارونكې شمارلې شي.

وَكَذَا إِذَا كَانَتْ بِكْرًا او هم دغه ډول كله چې مجرمه (وينځه) باكره وي فَوَطِئَهَا نو هغې سره ئې وطى اوكړله وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُعَلِّقًا اګرچه دا وطى معلق (يعنى دحمل سبب) نه وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې

**تشريح:-** دويمه مسئله دا ده كه باكره وينځه وي.او هغه جرم كړې وي.او آقا د جنايت د علم باوجود هغې سره وطى



اوكړله.نو بيا به هم هغه د فديې اختيارونكې وي.اګرچه حمل قائم شوې نه وي.ځكه چې دلته كې نفس وطى نقصان پيدا كونكې ده.

بِخِلَافِ التَّزْوِيجِ په خلاف دنكاح كولو لِأَنَّهُ عَيْبٌ مِنْ حَيْثُ الْحُكْمِ ځكه چې دا په اعتبار د حكم عيب دې.

**تشريح:-** دريمه مسئله دا ده كه آقا د مجرم غلام نكاح كړې وي.نو هغه به د فديې اختيارونكې نه وي.ځكه چې نكاح كول اګرچه حكماً عيب دې.خو په حقيقت كې هيڅ عيب نه دې.

وَبِخِلَافِ وَطْءِ الثَّيِّبِ او په خلاف د ثيبه (مجرمې وينځې) سره د وطى كولو عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ د ظاهرالرواية مطابق لِأَنَّهُ لَا يَنْقُصُ مِنْ غَيْرِ إِعْلَاقٍ ځكه چې دا د حمل نه بغير د نقصان سبب نه دې.

**تشريح:-** څلورمه مسئله دا ده كه آقا ثيبه مجرمې وينځې سره وطى كړې وي.نو آقا به د فديې اختيارونكې نه شمارلې كيږي.ځكه چې ثيبه كې نفس وطى نقصان پيدا كونكې ده.البته كه په دې وطى سره حمل قائم شو.نو دا (وطى) به نقصان پيدا كونكې شمارلې كيږي.

## آقا لپاره د جنايت كونكي غلام نه د خدمت اخستلو حكم

وَبِخِلَافِ الْاِسْتِخْدَامِ او په خلاف د خدمت اخستلو لِأَنَّهُ لَا يَخْتَصُّ بِالْمِلْكِ ځكه چې خدمت اخستل، ملك سره مخصوص نه دى وَلِهَذَا لَا يَسْقُطُ بِهِ خِيَارُ الشَّرْطِ او هم په دې وجه خدمت اخستلو سره، خيار شرط نه ساقطيږي، وَلَا يَصِيرُ مُخْتَارًا بِالْإِجَارَةِ وَالرَّهْنِ فِي الْأَظْهَرِ مِنَ الرِّوَايَاتِ. او په ظاهرالرواية كې د اجارې او رهن په وجه به آقا د فديې اختيارونكې نه وي.

**تشريح:-** دلته بله مسئله دا بيانوى كه آقا د مجرم غلام نه خدمت واخستلو.د جنايت معلوميدو نه روستو، نو هغه به د فديې اختيارونكې نه شمارلې كيږي.نو كه په خدمت كې غلام هلاك شي.نو په آقا به هيڅ ضمان نه وي.ځكه چې خدمت اخستل، هيڅ ملكيت سره خاص نه دى.نو خدمت اخستل ددې خبرې دليل نه دې.چه آقا فديه اختيار كړله.هم دا وجه ده.كه يوكس خيار شرط سره غلام واخستلو.او د هغه نه ئې خدمت واخستلو.نو خدمت اخستل به خيار نه ساقطوى.اوكه آقا مجرم غلام په اجاره باندې وركړو.يا ئې رهن كيخودو.نو دا د فديې اختيارولو دليل نه دې.

وَكَذَا بِالْإِذْنِ فِي التِّجَارَةِ او هم دغه ډول د تجارت اجازت وركاوه سره (به هم د فديې اختيارونكې نه شمارلې كيږي) وَإِنْ رَكِبَهُ دَيْنٌ، اګرچه په ده باندې پور راواوړي لِأَنَّ الْإِذْنَ لَا يُفَوِّتُ الدَّفْعَ ځكه چې د تجارت اجازت نه غلام وركول فوت كوى وَلَا يَنْقُصُ الرَّقَبَةَ او نه د غلام رقبه ناقصوى.

**تشريح:-** دلته بله مسئله دا بيانوى فرمايي دغه ډول كه آقا مجرم غلام ته د تجارت اجازت وركړو.بيا به هم فديه اختيارول نه ثابتيږي.اګرچه په غلام باندې پور هم راوړيدلې وي.ځكه چې مجرم غلام ته د تجارت اجازت وركاوه سره نه خو په غلام كې څه نقصان پيدا شو.او نه هغه د جنايت ولى ته حواله كول باطل شو.

إِلَّا أَنَّ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ خو د جنايت ولى ته حق شته يَمْتَنِعَ مِنْ قَبُولِهِ چې دده د قبلولو نه منع شي لِأَنَّ الدَّيْنَ لَحِقَهُ مِنْ جِهَةِ الْمَوْلَى ځكه چې پور ده (غلام ته) د آقا د اړخه لاحق شوې دې فَلَزِمَ الْمَوْلَى قِيمَتُهُ نو په آقا به دده قيمت لازم وي.

**تشريح:-** البته د جنايت ولى ته به دا حق ضرور وي.چه د قرضدار غلام اخستلو نه انكار اوكړي.او د آقا نه د هغه قيمت وصول كړي.ځكه چې په غلام باندې كوم پور راوړيدلې دې.دا د آقا په وجه راوړيدلې دې.

## د غلام آزادول جنايت سره معلق كولو سره د جنايت حكم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ) او چا چې خپل غلام ته اووئيل إِنْ قَتَلْتَ كه تا فلانې قتل كړو

فَلَانًا أَوْرَمَيْته یا دې هغه اوویشتلو أَوْشَجَّته یا دې دهغه سر زخمی کړو فَأَنْتَ حُرٌّ نو ته آزاد ئې أَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ(۱) که غلام دا کار اوکړو. فَهُوَمُخْتَارٌلِلْفِدَاءِ نو آقا د فدیې اختیارونکې شو

**حل اللغة:** ① **شجة:** د سر زخم ② **الفداء:** فدیه

**تشریح:-** زید د خپل غلام عتق معلق کړو. د خالد په سر زخمی کولو، یا د هغه په قتلولو باندې، بیا غلام دا کار اوکړو. یعنی خالد ئې قتل کړو. یا ئې د هغه سر زخمی کړو. یا ئې هغه په غشی یا کاڼړی ویشتلو باندې، کاڼړی اوویشتلو. نو غلام خو په دې کار کاوه سره آزاد شو. او د آزادئ نه روستو هغه ددې محل پاتې نشو. چه هغه د جنایت ولی ته حواله کړې شی. نو دا خبره ثابته شوه. چه آقا ددې فعل په وجه د فدیې اختیارونکې شو. دا زموږ مسلك دې.

وَقَالَ زُفَرُ رحمه الله او امام زفر رحمه الله فرمایي لَايَصِيرُمُخْتَارًالِلْفِدَاءِ چې هغه به د فدیې اختیارونکې نه وی. لِأَنَّ وَقْتَ تَكَلُّمِهِ لَاجِنَايَةَ ځکه چې د آقا د خبرو په وخت هیڅ جنایت نه وو وَلَاعِلْمَ لَهُ بِوُجُودِهِ او د جنایت د وجود آقا ته هیڅ علم نشته وَبَعْدَ الْجِنَايَةِ لَمْ يُوجَدْ مِنْهُ فِعْلٌ او د جنایت نه روستو د آقا د اړخه هیڅ داسې فعل نه دې موجود شوې يَصِيرُبِهِ مُخْتَارًا چې د هغې په وجه دې د فدیې اختیارونکې اوګرځی.

**تشریح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی. چه ددې فعل په وجه به آقا د فدیې اختیارونکې نه وی. چه هغه (فعل) د جنایت دیت واجبونکې وی. بلکه په آقا به ددې غلام قیمت واجب وی. د امام زفر رحمه الله دلیل دا دې. چه آقا کوم وخت دا خبره کړې وه. نو دغه وخت جنایت نه وو. او نه دا ضروری امر دې. چه جنایت به خامخا کیږی. بلکه امر احتمالی دې. چه ددې د وجود هیڅ علم او یقین آقا ته نشته. بهرحال د جنایت نه مخکې د فدیې اختیارولو هیڅ وجه نشته. او د جنایت نه روستو د آقا د اړخه هیڅ داسې کلام یا فعل نه دې موجود شوې. چه د هغې په وجه هغه د فدیې اختیارونکې شمار کړې شی. نو فدیه به واجب نه وی. بلکه صرف د غلام قیمت به واجب وی.

### د امام زفر رحمه الله تائیدی جزئیه

(أَلَاتَرٰي آیا ته نه ګورې أَنَّهُ لَوْعَلَّقَ الطَّلَاقَ أَوِالْعَتَاقَ بِالشَّرْطِ که هغه طلاق یا آزادی په شرط باندې معلق کړل ثُمَّ حَلَفَ بیا ئې قسم اوخوړلو أَنْ لَايُطَلِّقَ چې هغه به طلاق نه ورکوی أَوْلَايُعْتِقَ یا به ئې نه ازاده وی ثُمَّ وُجِدَ الشَّرْطُ بیا شرط موجود شو وَثَبَتَ الْعِتْقُ طَلَاقٌ او آزادی او طلاق ثابت شو لَايَحْنَثُ فِي يَمِينِهِ تِلْكَ نو هغه به پخپل دې قسم کې حانث نه وی، كَذَاهٰذَا دغه ډول دا هم ده

**تشریح:-** دا جزئیه امام زفر رحمه الله پخپل تائید کې پیش کړې ده. ددې حاصل دا دې. چه زید خپلې ښځې ته اووئیل إن دخلت الدار فأنت طالق.. یا ئې خپل غلام ته اووئیل... إن دخلت الدار فأنت حر.. بیا ښځه یا غلام په کور کې داخل شو. نو طلاق به پریوځی. او غلام به آزادیږی. خوکه ددې معلق کاوه نه روستو زید قسم اوخوړلو. چه زه به والله هیڅ کله طلاق نه درکوم. یا به نه آزادوم. ددې باوجود به هم په شرط موجود کیدو سره طلاق نه واقع کیږی. خو ده چې کوم قسم د طلاق نه ور کاوه او د نه ازادولو خوړلې دې. په هغې کې به حانث نه وی. ځکه چې کله ده طلاق معلق کړې وو. هغه وخت دده د اړخه طلاق ورکول نه وو صادر شوی. او د هغې نه روستو دده د اړخه د طلاق ور کاوه هیڅ فعل نه دې موجود شوې. په دې وجه به حانث نه وی. او بالکل بعینه هم دا وجه دلته هم موجود ده. نو دلته به هم آقا د فدیې اختیارونکې نه شمارلې کیږی.

### د احنافو د مذهب دلیل

(۱) القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله كذا فى خلاصة الفتاوى (۲٤۹\٤) والدرلمحتار(٤۳٥\٥) وملتقى (۳۸٤\٤) ومجمع الأنهر(۳۸٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (۳٥۸\۲)-



وَلَنَا او زموږ دلیل دا دې أَنَّهُ عَلَّقَ الْإِعْتَاقَ بِالْجِنَايَةِ چې ده آزادی په جنایت باندې معلق کړې ده وَالْمُعَلَّقُ بِالشَّرْطِ او کوم چې په یو شرط باندې معلق وی يَنْزِلُ عِنْدَ وُجُودِ الشَّرْطِ هغه د شرط د وجود په وخت راکوځیږی كَالْمُنَجَّزِ پشان د منجز (فوراً) فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ بَعْدَ الْجِنَايَةِ لکه چې کله ئې هغه د جنایت نه روستو آزاد کړې وی

**حل اللغة:** ① **الاعتاق:** آزادول ② **المنجز:** فوری، سمدستی

**تشریح:-** دا زموږ دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه د آقا د اړخه آزادول به د جنایت نه روستو شمارلې کیږی. او دجنایت نه روستو د آزادولو په صورت کې آقا د فدیې اختیارونکې جوړیږی. نو دلته به هم وی. ځکه اصول دا مقرر دې. چه معلق کول زموږ په نیز د سبب منعقد کیدو نه مانع دې. نو ګویا اوس آقا د.. أنت حر.. قول کړې هم نه دې. بلکه د شرط موجود کیدو نه روستو، یعنی د فلانی د قتلولو (یا زخمی کولو) وغیره کاوه نه روستو به.. أنت حر.. وئیل شمارلې کیږی. نو معلومه شوه. چه د آقا آزادول د جنایت نه روستو دی. او دجنایت نه روستو د آزادولو په وجه آقا د فدیې اختیارونکې شمارلې کیږی. نو دلته به هم شمارلې شی.

### د احنافو په دلیل باندې یو څو شواهد

أَلَايَرٰي آیا نه ګورې أَنَّ مَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ چې چا خپلې ښځې ته اووئیل أَنْ دَخَلْتِ الدَّارَ که ته کور ته داخله شوې فَوَاللهِ لَاأَقْرَبُكِ نو والله چې زه به تا سره جماع اونکړم يَصِيرُابْتِدَاءُ الْإِيلَاءِ مِنْ وَقْتِ الدُّخُولِ نو د ایلاء ابتداء به د دخول د وخت نه شمارلې شی

**تشریح:-** د حنفیانو د دلیل شواهد دا دی. صورت د مسئلې دا دې که زید خپلې ښځې ته اووئیل. که ته کور ته داخله شوې. نو والله زه به تا سره جماع نه کوم. نو د ایلاء پیل به د کلام د وخت نه نه کیږی. بلکه کله چې ښځه کور ته داخله شی. دغه وخت به ایلاء پیل کیږی. دغه ډول د آقا.. أنت حر.. وئیل به د جنایت نه روسته وی. که د میړه فار (تختیدونکې) کیدل ثابت شی. نو دا ښځه به د عدت د بقاء پورې دده وارثه ګنړلې شی. او میړه به هغه وخت فار (او تختیدونکې) شمارلې کیږی. کله چې هغه مرض الموت کې طلاق ورکړی.

وَكَذَا إِذَاقَالَ لَهَا او هم دغه ډول کله ئې چې خپلې ښځې ته اووئیل إِذَامَرِضْتُ کله چې زه بیمار شم فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو تا ته درې طلاقه دی فَمَرِضَ نو هغه بیمار شو حَتّٰى طَلُقَتْ تردې چې ښځې ته طلاق اوشو وَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ الْمَرَضِ او میړه هم په دې مرض سره مړ شو يَصِيرُ نو میړه به فار (تیختنه کونکې) ګرځیږی فَارًّا لِأَنَّهُ يَصِيرُمُطَلِّقًا بَعْدَوُجُودِالْمَرَضِ ځکه چې میړه به د مرض موجود کیدو نه روسته طلاق ورکونکې وی.

**تشریح:-** یا په داسې حالت کې طلاق ورکړی. چرته چې غالباً هلاکت واقع کیږی. نو که یو سړی خپلې ښځې ته اووئیل. چه کله زه بیمار شم. نو تاته درې طلاقه دی. بیا څه موده روسته هغه بیمار شو. نو ښځې ته طلاق پریوتلو. او میړه هم په دې مرض کې مړ شو. یعنی دهغه مرض الموت ثابت شو. نو د میړه فار کیدل ثابت شو. ځکه چې میړه ګویا چې مرض الموت کې طلاق ورکړې دې. د مرض نه ئې مخکې نه دې ورکړې. دغه ډول د آقا په مسئله کې هم ..أنت حر.. وئیل د جنایت نه روستو دی. نو د ذکر شوی اصول مطابق به هغه د فدیې اختیارونکې شمارلې کیږی.

### د امام زفر رحمه الله د مستدلاتو جواب

بِخِلَافِ مَاأَوْرَدَ په خلاف د هغه مسئلې کوم چې امام زفر رحمه الله بیان کړې دې لِأَنَّ غَرَضَهُ طَلَاقٌ أَوْعِتْقٌ ځکه چې د هغه (د قسم خوړونکی) غرض داسې طلاق یا آزادی ده. يُمْكِنُهُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ د کوم نه چې ځان منع کول ممکن وی إِذِ الْيَمِينُ لِلْمَنْعِ ځکه چې قسم د بچ کیدو لپاره وی، فَلَايَدْخُلُ تَحْتَهُ نو د قسم لاندې به هغه فعل نه داخلیږی أَنْ مَالَا يُمْكِنُهُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ د کوم نه چې منع کیدل ممکن نه وی.

**تشریح:-** دا د امام زفر رحمه الله د مستدلاتو ځواب دې: ① امام زفر رحمه الله چې «أَلاترى أنه....» سره کوم استدلال

پیش کړې دې.د هغې ځواب دادې.چه ددې نه استدلال صحیح نه دې.ځکه چې دلته ددې قسم خوړونکی غرض دا دې.چه داسې طلاق به نه ورکوم.یا داسې به نه آزادوم.کوم چې زما په وس کې وی.او کوم معلق طلاق یا عتاق چې ده ویلې دې.د هغې نه بچ کیدل اوس دده په اختیار کې نه دی.نو طلاق معلق به د قسم نه مخکې دده په قسم کې داخل نه وی.

وَلِأَنَّهُ حَرَّضَهُ او ځکه چې آقا غلام راپاره (تېز) کړې دې عَلَى مُبَاشَرَةِ الشَّرْطِ شرط په پوره کاوه باندې، بِتَعْلِيقِ په داسې معلق کاوه سره أَقْوَى الدَّوَاعِي إِلَيْهِ کوم چې شرط ارخ ته مضبوط دواعی (او راوستونکې) ځنې دې وَالظَّاهِرُ او ښکاره داده. أَنَّهُ يَفْعَلُهُ، چې غلام به دا کار کوی فَهَذَا دَلَالَةُ الِاخْتِيَارِ نو دا د اختیار (فدیې) دلیل دې.

حل اللغة: ① اقوی: زیات قوی ② الدواعی: جمع د داعیة: سبب،دعوت ورکونکې ﴾

تشریح:- امام زفر رحمه الله چې «لأن وقت تكلم.....» سره کوم دلیل پیش کړې دې.د هغې ځواب ورکوی. چې آزادی هر چاته خوښه او مطلوب ده.او دلته آقا دده آزادی د فلانی قتل (یا زخمی کولو) سره معلق کړې ده.نو چونکه آزادی هر چا ته خوښه ده.په دې وجه ښکاره ده.چه غلام به د آزادئ حاصلولو لپاره دا حرکت ضرور کوی.او چې خپله آقا دده راپارونکې (تیزونکې) دې.نو په دې کې دا خبره پخپله ښکاره کیږی.چه آقا د غلام فدیه اختیارونکې دې.

**مجنی علیه، جنایت کونکې غلام آزادوکړو.ددې نه روسته مړ شو.نو څه حکم دې ؟**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل.(وَإِذَا قَطَعَ الْعَبْدُ يَدَ رَجُلٍ عَمْدًا) و کله چې غلام عمداً د یوکس لاس کټ کړو فَدُفِعَ إِلَيْهِ نو دا غلام هغه (مجنی علیه) ته حواله کړې شو بِقَضَاءٍ د قاضی په فیصلې سره أَوْ بِغَيْرِ قَضَاءٍ یا بغیر د فیصلې نه فَأَعْتَقَهُ، نو هغه (مجنی علیه) دا (غلام) آزاد کړو ثُمَّ مَاتَ مِنْ قَطْعِ الْيَدِ بیا مجنی علیه د لاس د زخم په وجه مړ شو فَالْعَبْدُ صُلْحٌ بِالْجِنَايَةِ نو غلام د جنایت دارخه صلح ده وَإِنْ لَمْ يُعْتِقْهُ و که آزاد کړې نې نه وی رُدَّ عَلَى الْمَوْلَى نو غلام به آقا ته واپس ور کولای شی وَقِيلَ لِلْأَوْلِيَاءِ.او د مقتول اولیاو ته به ویلې شی أَقْتُلُوهُ که غواړئ.نو دا قتل کړئ أَوْ أَعْفُوا عَنْهُ یا دې معاف کړئ.

تشریح:- د خالد غلام عمداً د زید لاس کټ کړو.په دې باندې خالد خپل غلام زید ته ورکړو.که دا معامله نې پخپله کړې وی.او د قاضی په فیصلې سره نې داسې کړې وی.بیا زید دا غلام آزاد کړو.او زید بیا هم ددې لاس د زخم په وجه مړ شو.نو اوس به په خالد هیڅ واجب نه وی.او غلام به بدل صلح ګرځولې شی.او داسې به ګڼړلې شی.چه د جنایت نه او د جنایت نه پیدا کیدونکی شئ سره په دې غلام باندې صلح واقع شوې وه.او که زید غلام آزاد نکړو.نو د زید د مرګ نه روسته به دا غلام خالد ته واپس ورکولې شی.او د زید اولیاو ته به اختیار وی.که غواړی.نو دا غلام دې په قصاص کې قتل کړی.او که غواړی.نو معاف دې کړی.

**د آزاد او غلام په منځ کښې اندامونو کښې قصاص نشته**

وَوَجْهُ ذَلِكَ او ددې وجه دا ده وَهُوَ أَنَّهُ إِذَا لَمْ يُعْتِقْهُ چې هرکله هغه دا آزاد کړې نه دې وَسَرَى او دې (د لاس زخم) خور شو. تَبَيَّنَ نو دا خبره واضح شوه أَنَّ الصُّلْحَ وَقَعَ بَاطِلًا چې صلح باطل شوې وه.

تشریح:- کله چې د خالد غلام د زید لاس عمداً کټ کړو.نو دلته قصاص واجب نه دې.ځکه چې د آزاد او غلام په اندامونوکې قصاص نه وی.او د بعضو په قول موجب اصلی فدیه ورکول دی.خو کله چې خالد غلام ورکړو.نو دا ګڼړو.ګویا دواړو په غلام باندې مصالحت اوکړو.بیا زید هغه آزاد کړو.نو دعاقل بالغ تصرف صحیح کاوه لپاره ضروری ده.چه غلام بدل صلح اوګرځولې شی.او د زید آزادول نافذ کړې شی.او که آزاد کړې نې نه وی.نو واپس کول ضروری دی.او بیا یا قصاص دې.یا معاف کول دی.ځکه چې هرکله زید د زخم متعدی کیدو په وجه مړ شو.نو اوس معلومه شوه.چه صلح او غلط او باطل وه.

لِأَنَّ الصُّلْحَ كَانَ عَنِ الْمَالِ، ځکه چې صلح په مال وه لِأَنَّ أَطْرَافَ الْعَبْدِ لَا يَجْرِي الْقِصَاصُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ أَطْرَافِ الْحُرِّ ځکه



چې د غلام د اندامونو او د آزاد د اندامونو په منځ کې قصاص نه جاری کیږی فَإِذَا سَرَى نو هرکله چې د لاس پرې کول خپاره (متعدی) شو تَبَيَّنَ نو دا خبره ښکاره شوه أَنَّ الْمَالَ غَيْرُ وَاجِبٍ چه مال واجب نه دې وَإِنَّمَا الْوَاجِبُ هُوَ الْقَوَدُ او قصاص واجب دې فَكَانَ الصُّلْحُ وَاقِعًا بِغَيْرِ بَدَلٍ نو صلح د بدل نه بغیر واقع شوه فَبَطَلَ نو صلح باطل شوه

تشریح: ځکه چې دلته په اندامونو کې خو قصاص کیدای نشی.نو دا ویل به ضروری وی.چه د فدیې په بدله کې په دې مال (یعنی غلام) باندې مصالحت شوې دې.او کله چې خوریدو سره زید مړ شو.نو معلومه شوه.چه دلته موجب اصلی قصاص دې.مال نه دې.نو صلح د بدل نه بغیر شوه.په دې وجه به دا صلح باطل وی.ځکه چې صلح لپاره مصالح عنه پکار دې.او دلته مصالح عنه مال دې.او دلته مال واجب نه دې.بلکه قصاص واجب دې.نو صلح به باطل وی.او قصاص به واجب وی.او د مقتول اولیاو ته به اختیار وی.که غواړی.نو معاف دې کړی.یا دې په قصاص کې قتل کړی.

وَالْبَاطِلُ لَا يُورِثُ الشُّبْهَةَ، او باطل شبه نه پیدا کوی كَمَا إِذَا وَطِئَ الْمُطَلَّقَةَ الثَّلَاثَ فِي عِدَّتِهَا لکه مطلقه ثلاثه سره نې د هغې په عدت کې وطی کړې وی مَعَ الْعِلْمِ بِحُرْمَتِهَا عَلَيْهِ دهغې پخپل ځان باندې د حرمت معلومیدو باوجود، فَيَجِبُ الْقِصَاصُ نو قصاص به واجب وی.

تشریح: دا یو تقدیری سوال ځواب دې سوال دا دې چې هرکله چې صلح په غلام باندې واقع شوې وه.بیا خو قصاص واجبیدل پکار نه دی.ځکه چې صلح سره شبه پیدا شوه.او قصاص په شبهاتو سره ساقطیږی؟نو ځواب ورکوی چې دصلحې په باطل ګرځیدو باندې هیڅ شبه نه پیدا کیږی چې هغه دقصاص ساقطولو سبب اوګرځی بلکه قصاص به واجب وی ددې مثال داسې دې چې یو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقونه ورکړل.او هغه ته معلومه ده.چه په عدت کې دا ښځه په ما باندې حرامه ده.بیا هم ده د هغې سره وطی اوکړله.نو په وطی کونکی به حد واجب وی.دغه ډول به دلته کې قصاص واجب وی.

**آزادول د صلح باندې دلالت کوی**

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَهُ په خلاف ددې صورت کله چې هغه (زید مجنی علیه) دا غلام آزاد کړی لِأَنَّ إِقْدَامَهُ عَلَى الْإِعْتَاقِ يَدُلُّ ځکه چې د هغه په آزادولو باندې ور اوړاندې کیدل دلالت کوی عَلَى قَصْدِهِ تَصْحِيحَ الصُّلْحِ د هغه د صلح صحیح کیدو په ارادې باندې لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مَنْ أَقْدَمَ عَلَى تَصَرُّفٍ ځکه ښکاره هم دا ده.چه چا په کوم تصرف باندې اقدام اوکړو يَقْصِدُ تَصْحِيحَهُ هغه د هغې د صحیح کیدو قصد کوی وَلَا صِحَّةَ لَهُ او د عقد لپاره د صحیح کاوه هیڅ صورت نشته. إِلَّا أَنْ يُجْعَلَ صُلْحًا عَنِ الْجِنَايَةِ علاوه ددې نه چې غلام د جنایت د طرفه، وَمَا يَحْدُثُ مِنْهَا او کوم څه چې د جنایت نه پیدا شی دهغې ارخه بدل صلح اوګرځولې شی.

تشریح:- کله چې زید (مجنی علیه) غلام واخستلو.او آزاد نې کړو.او روستو د زخم خوریدو په وجه زید مړ شو.نو غلام به بدل صلح ګرځولې شی.ځکه چې هرکله زید عاقل بالغ دې.او هغه ددې غلام په آزادولو باندې ور اوړاندې کیږی.نو دا ددې خبرې دلیل دې.چه دده قصد او اراده صلح صحیح کول دی.ځکه ښکاره هم دا ده.چه کوم سړې په کوم تصرف باندې اقدام کوی.نو هغه ددې د صحیح کاوه اراده کوی.او ددې عقد صلح صحیح کاوه بل هیڅ ذریعه ددې نه علاوه نشته.چه غلام د جنایت او د جنایت نه پیدا کیدونکې خبرې د ارخه بدل صلح اوګرځولې شی.

وَهَذَا الْوَجْهُ عَلَيْهِ او هم په دې وجه که مجنی علیه ددې صراحت اوکړو. وَرَضِيَ الْمَوْلَى بِهِ او آقا په دې سره راضی شو يَصِحُّ نو عقد صلح صحیح ده. وَقَدْ رَضِيَ الْمَوْلَى بِهِ حالانکه آقا په دې سره راضی دې لِأَنَّهُ لَمَّا رَضِيَ بِكَوْنِ الْعَبْدِ عِوَضًا عَنِ الْقَلِيلِ ځکه چې هرکله هغه د غلام د کم (یعنی د لاس) په عوض کیدو باندې راضی دې. يَكُونُ أَرْضَى بِكَوْنِهِ عِوَضًا عَنِ الْكَثِيرِ نو د زیات (یعنی د نفس) په عوض کیدو باندې به زیات راضی وی فَإِذَا أَعْتَقَ نو هرکله چې هغه

آزاد کړو يَصِحُّ الصُّلْحُ فِي ضِمْنِ الْإِعْتَاقِ اِبْتِدَاءً نو د آزادولو په ضمن کي صلح د ابتداء نه صحیح شوه.

تشریح:- او د آقا د راضي کیدو دلیل دا دي.چه هرکله هغه په دې خبره راضي وو.چه غلام د لاس عوض شي.نو د نفس په عوض کیدو باندې به خو نور هم زیات راضي وی.او په ړومبی صورت کي د مذکوره وجوهاتو په وجه د مرګ نه روسته اګرچه صلح باطلیږی.خو په دې صورت کي کله چې هغه آزاد کړو.نو د آزادولو په ضمن کي به دا د پیل نه صلح ګڼلې شي.او دا به جدید صلح شمارلې کیږی.

## که صلح باطل شي نو اولیاو ته د معاف کولو او قصاص اختیار شته

وَإِذَا لَمْ يُعْتِقْ اوکله نې چې هغه آزاد کړې نه وی لَمْ يُوجَدِ الصُّلْحُ اِبْتِدَاءً نو د پیل نه صلح او نه موندې شوه وَقَعَ بَاطِلًا او ړومبیٔ صلح باطل واقع شوه فَيُرَدُّ الْعَبْدُ إِلَى الْمَوْلَى نو غلام به آقا ته ور کولای شي وَالْأَوْلِيَاءُ عَلَى خِيَرَتِهِمْ او اولیاء پخپل اختیار باندې دی فِي الْعَفْوِ وَالْقَتْلِ د معافیٔ او قتل په سلسله کي.

تشریح:- اوکله چې زید آزاد کړې نه وو.چه زید مړ شو.نو د مذکوره وجوهاتو په وجه مصالحت باطل شوې دې.او نوې مصالحت هیڅ او نه موندې شو.په دې وجه به غلام خالد ته حواله کولې شي.او اولیاو ته به هم هغه اختیار وی.که غواړی.معاف دې کړی.ګنی قتل دې کړی.

## د لاس کټ کولو په بدله کښې په غلام باندې د صلح کولو حکم

وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ:او د جامع صغیر په بعضو نسخو کي ذکر دی رَجُلٌ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ عَمْدًا چې یو سړی عمداً د بل سړی لاس کټ کړو فَصَالَحَ نو لاس کټ کونکی هغه سړی سره مصالحت اوکړو الْقَاطِعُ الْمَقْطُوعَةَ يَدُهُ عَلَى عَبْدٍ د چا لاس نې چې کټ کړې وو.په یو غلام باندې وَدَفَعَهُ إِلَيْهِ او دغه غلام نې هغه ته ورکړو فَأَعْتَقَهُ الْمَقْطُوعَةُ يَدُهُ نو دغه کس د چا لاس چې کټ کړې شوې وو.هغه ( غلام) نې آزاد کړو ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذَلِكَ بیا هغه ( لاس کټ شوې) ددې په زخم سره مړ شو.قَالَ نو امام محمد رحمه الله فرمایي فَالْعَبْدُ صُلْحٌ بِالْجِنَايَةِ چې غلام به د جنایت په بدله کي صلح وی إِلَى آخِرِ مَا ذَكَرْنَا مِنَ الرِّوَايَةِ د هغه روایت تر آخره پورې کوم چې موږ ذکرکړی دی.

تشریح:- ددې ځائې نه مرغیناني رحمه الله دا بیانوی.چه په یوه نسخه کي خو داسې ذکر دی.لکه څنګه چې دلته په متن کي لیکلی شوی دی.چه په دې کي مجرم پخپله هغه غلام دې.کوم چې ورکړې شوې دې.او دجامع صغیر په بعضو نسخو کي مجرم څوك آزاد کس دې.چه هغه په مصالحت غلام هغه کس له ورکړې دې.د چا چې لاس کټ کړې شوې دې.او حکم په دواړو صورتونو کي یوشان مذکور دې.

تشریح:- نود دویمې نسخې مطابق دلته یو اشکال واردیږی.د هغې حاصل دا دې.چه دکوم کس لاس کټ کړې شوې دې.که هغه جنایت معاف کړی.او بیا د زخم په خوریدو سره هغه مړ شي.نو قصاص نه واجبیږی.او په دویمه نسخه کي چې کوم مصالحت شوې دې.هغه هم ګویا معاف کول دی.نو بیا د خوریدو په صورت کي قصاص ولې واجب کړې شوې دې؟

وَهٰذَا الْوَضْعُ يَرِدُ بِهِ إِشْكَالًا او په دې وضع سره اشکال واردیږی فِيمَا إِذَا عَفَا عَنِ الْيَدِ په دې صورت کي کله چې ده لاس معاف کړو ثُمَّ سَرَى إِلَى النَّفْسِ بیا دا ( د لاس زخم) نفس اړخ ته خور ( متعدی) شو وَمَاتَ او مړ شو حَيْثُ لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ هُنَالِكَ په دې حیثیت سره چې هلته ( د معافیٔ په مسئله کي ) به قصاص واجب نه وی ،وَهٰهُنَا قَالَ يَجِبُ او دلته ( د صلح په مسئله کي ) امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه قصاص واجب دې.قِيلَ وئیلی شوی دی مَا ذُكِرَ هٰهُنَا چې کوم دلته ( د صلح په مسئله کي ) ذکر دی جَوَابُ الْقِيَاسِ دا د قیاس خواب دې فَيَكُونُ الْوَضْعَانِ جَمِيعًا عَلَى الْقِيَاسِ وَالْاِسْتِحْسَانِ نو دواړه وضعې په قیاس او استحسان باندې دی وَقِيلَ او وئیلی شوی دی بَيْنَهُمَا فَرْقٌ چې ددې دواړو په منځ کي توپیر دې.

تشریح:- احنافو عالمانو ددې دوې (دوه) ځوابونه ورکړی دی ① د صلح په مسئله کي د قصاص وجوب د قیاس



حکم دې.او معاف کاوه په مسئله کي د قصاص حکم حکم د استحسان دې.نو اوس هیڅ تعارض نشته.② بعضو مشانخو خواب ورکړې دې.چه دې دواړو کي توپیر دې.یعنی د معاف کاوه په صورت کي به قصاص نه وی.او د صلح په صورت کي به قصاص وی.وجه د توپیر روستو بیانولې شي.

## وجه د فرق

وَوَجْهُهُ او ددې وجه دا ده آنَ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ صَحَّ ظَاهِرًا چې په ظاهر کي د لاس معاف کول صحیح دی لِأَنَّ الْحَقَّ كَانَ لَهُ فِي الْيَدِ مِنْ حَيْثُ الظَّاهِرُ ځکه چې د ظاهر په اعتبار سره لاس کي هم دهغه حق دې فَيَصِحُّ الْعَفْوُ ظَاهِرًا نو ظاهراً به معاف کول صحیح وی ،فَبَعْدَ ذَلِكَ نو ددې په اعتبار د حقیقت معاف کول موجود دی نه روسته ( د خوریدو په وجه). وَإِنْ بَطَلَ حُكْمًا اګرچه معاف کول حکماً باطل شو يَبْقَى مَوْجُودًا حَقِيقَةً فَكَفَى ذَلِكَ لِمَنْعِ وُجُوبِ الْقِصَاصِ نو دا معاف کول د قصاص وجوب منع کاوه لپاره کافی دی

تشریح:- بعضو مشانخو چې په دې دواړو کي توپیر کړې دې.دا دهغه توپیر وجه ده.د هغې حاصل دا دې.چه د لاس والا کله لاس معاف کړو.نو معافی اوس په ښکاره صحیح ده.ځکه چې هغه د حقدار ( مستحق) کیدو په وجه د معاف کاوه حق وو.خو کله چې زخم خوریدو سره هغه مړ شو.نو د هغه معافی مختل شوه.یعنی حکماً معافی ختمه شوه.خو په حقیقت کي چې کومه معافی د لاس په اړه کي هغه ورکړې وه.هغه پاته ده.نو شبه پیدا شوه.په دې وجه به قصاص واجب نه وی.یعنی په حقیقت کي د معافیٔ پاته پاتې کیدل به د قصاص د وجوب ختمولو لپاره کافی وی.ځکه چې دلته به قصاص واجب نه وی.بلکه دیت به واجب وی.

أَمَّا هٰهُنَا الصُّلْحُ لَا يُبْطِلُ الْجِنَايَةَ او دلته مصالحت جنایت نه بَلْ يُقَرِّرُهَا بلکه دا مضبوط او مستحکم کوی حَيْثُ صَالَحَ عَنْهَا عَلَى مَالٍ،په دې حیثیت سره چې ده د جنایت په بدله کي مال باندې صلح کړې ده.فَإِذَا لَمْ يُبْطِلِ الْجِنَايَةَ نو هرکله چې مصالحت جنایت باطل نکړو لَمْ تَمْتَنِعِ الْعُقُوبَةُ نو سزا (قصاص) به نه ممتنع کیږی هٰذَا دا ( د سزا نه ممتنع کیدل) هغه وخت دی إِذَا لَمْ يُعْتِقْهُ کله چې هغه غلام آزاد کړې نه وی أَمَّا إِذَا أَعْتَقَهُ بهرحال هرکله چې هغه غلام آزاد کړې وی فَالتَّخْرِيجُ نو د مسئلې تخریج هم په هغه طریقه ده مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ کومه چې موږ وړاندې ذکرکړې ده

حل اللغة: ① تخریج: استنباط،راویستل د مسائلو

تشریح:- او د صلح مسئله کي هیڅ شبه نشته.په دې وجه به دلته قصاص واجب وی. ځکه چې د صلح په وجه جنایت نه باطلیږی.بلکه بل ایجاد ( او تحقیق) جوړیږی.ځکه چې ده د جنایت په بدله کي مال باندې صلح کړې ده.بهرحال صلح سره جنایت نه باطلیږی.او هرکله چې جنایت نه باطلیږی.نو سزا به هم ممتنع نه وی.نو قصاص به واجب وی.ځکه چې د ذکرشوی دلیلونو په وجه صلح باطل شوې ده.نو صلح باطل شوه.او جنایت پخپل حال قائم دې.نو قصاص به واجب وی.خو د قصاص دا وجوب صرف هغه وخت دې.کله چې هغه غلام آزاد کړې نه وی.اوکه غلام نې آزاد کړې وی.نو بیا حکم هم هغه دې.کوم چې تیر شوې دې.یعنی قصاص به واجب نه وی.او آزادول به جدید صلح شمارلې کیږی.،، کمامر،،

## ماذون فی التجارة غلام جنایت اوکړی نو څه حکم دې ؟

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمایي (وَإِذَا جَنَى) و کله چې جنایت اوکړو الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ جِنَايَةً هغه غلام کوم ته چې د تجارت کاوه اجازت دې وَعَلَيْهِ أَلْفُ دِرْهَمٍ حالانکه هغه باندې زر درهم ( قرض) دی فَأَعْتَقَهُ الْمَوْلَى نو هغه آقا آزاد کړو وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْجِنَايَةِ و آقا ته دجنایت علم شته فَعَلَيْهِ قِيمَتَانِ: نو په آقا باندې دوې (دوه) قیمتونه دی قِيمَةٌ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ یو قیمت د قرضخواه لپاره وَقِيمَةٌ لِأَوْلِيَاءِ الْجِنَايَةِ او یو قیمت د جنایت اولیاو دپاره.

تشریح:- د خالد هغه غلام څه جنایت اوکړو.کوم ته چې د تجارت کاوه اجازت ورکړې شوې دې.او په هغه زر روپیٔ پور هم دی.او خالد ته تر اوسه دهغه د جنایت د علم نه وو.چه خالد هغه آزاد کړو.نو اوس به په آقا (خالد) باندې

دبل ضمان وی. یو د جنایت ولی دپاره، او یو د قرضخواه دپاره، په قیمت او پور کي چې کوم مقدار کم وی. نو د قرضخواه لپاره به هغه واجب وی. او په قیمت او دیت کي چې کوم مقدار کم وی. د جنایت ولی لپاره به هغه واجب وی.

لِأَنَّهُ أَتْلَفَ حَقَّيْنِ ځکه چې آقا داسي دوې (دوه) حقونه ضائع کړی دی كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَضْمُونٌ بِكُلِّ الْقِيمَةِ عَلَى الْإِنْفِرَادِ چه هغې کي هر یو جلا جلا پوره قیمت سره مضمون دې اَلدَّفْعُ لِلْأَوْلِيَاءِ نو هم دغه ډول به د اجتماع په وخت وی یعنی د جنایت اولیاو لپاره غلام ورکول وَالْبَيْعُ لِلْغُرَمَاءِ او قرضخواهانو لپاره خرڅول، فَكَذَا عِنْدَ الْإِجْتِمَاعِ

حل اللغة: ① اتلف: هلاك كړلو ② الانفراد: ځانله، جدا جدا﴾

تشریح:- ځکه که دواړو کي حقوقو کي صرف یو حق وو. نو په آقا به یو ضمان وو. نو هرکله چې دوې (دوه) حقونه جمع شو. نو اوس به د دوو حقونو ضمان واجب وی. ځکه چې د انفراد په صورت کي به غلام د جنایت ولی ته حواله کولي شو. او په پور کي به خرڅولي شو.

وَيُمْكِنُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْحَقَّيْنِ او ممکن ده. جمع کیدل د دواړو حقونو په منځ کي إِيفَاءً مِنَ الرَّقَبَةِ الْوَاحِدَةِ د یوی رقبی (غلام) نه په پوره کاوه سره بِأَنْ يُدْفَعَ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ په دې طریقه چې غلام د جنایت ولی ته ورکړې شی ثُمَّ يُبَاعُ لِلْغُرَمَاءِ بیا د قرضخواهانو لپاره خرڅ کړې شی فَيَضْمَنُهُمَا نو آقا به ددوی دواړو ضامن وی بِالْإِتْلَافِ د ضائع کاوه په وجه.

حل اللغة: ① الغرماء: جمع د غریم، قرضخواه﴾

تشریح:- اوکه څوك دا سوال اوکړی چې د انفراد په صورت کي په پوره ضمان واجبیدو سره دا چرته لازمیږی. چه د اجتماع په صورت کي به هم پوره ضمان واجب وی؟ نو علامه مرغینانی رحمه الله فرمایي چې ددې امکان دې. چه د یو غلام نه دواړه حقونه پوره پوره وصول کړې شی. ددې ترکیب دا دې. چه غلام د جنایت ولی ته حواله کړې شی. نو د هغه پوره حق ادا شو. بیا غلام خرڅ کړې شی. نو د قرضخواهانو پوره حق ادا شو. بهرحال دلته آقا ددې دواړو حقوقو ضائع کونکې شو. چه ددې په وجه به په ده باندې ضمان واجب وی. چه ددې تفصیل تیر شوې دې.

## مجرم قرضدار غلام قتلولو نه روسته دده د پور او جنایت حکم

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې صورت إِذَا أَتْلَفَهُ أَجْنَبِيٌّ کله چې غلام یو اجنبی (غیر کس) ضائع کړې وی تَجِبُ قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ لِلْمَوْلَى په دې حیثیت سره چې آقا لپاره به قیمت واجب وی وَيَدْفَعُهَا الْمَوْلَى إِلَى الْغُرَمَاءِ او دا قیمت به آقا قرضخواهانو ته ورکوی لِأَنَّ الْأَجْنَبِيَّ إِنَّمَا يَضْمَنُ لِلْمَوْلَى بِحُكْمِ الْمِلْكِ ځکه چې اجنبی اقا لپاره د ملکیت په حکم سره ضامن کیږی حَيْثُ، فَلَا يَظْهَرُ فِي مُقَابَلَتِهِ الْحَقُّ نو د ملك په مقابله کي به حق نه ښکاره کیږی لِأَنَّهُ دُونَهُ، ځکه چې حق د ملك نه کم دې وَهٰهُنَا يَجِبُ او دلته ضمان واجب شوې دې لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِإِتْلَافِ الْحَقِّ دوی دواړو کي هر یو لپاره د حق ضائع کیدو په وجه فَلَا تَرْجِيحَ نو هیڅ ترجیح نشته فَيَظْهَرَانِ نو دواړه حقوق به ښکاره وی فَيَضْمَنُهُمَا نو آقا به ددې دواړو ضامن وی.

تشریح:- په مذکوره صورت کي کله چې آقا مجرم غلام آزاد کړې وی. نو په آقا باندې دبل ضمان واجب دې. خو که غلام جنایت اوکړو. او په هغه پور هم شته. او چا اجنبی دا غلام قتل کړو. نو په اجنبی باندې صرف د غلام قیمت واجب دې. چه دا به آقا ته ورکولې شي. او آقا به دا قیمت قرضخواه ته ورکوی. حالانکه دلته هم اجنبی باندې دبل ضمان واجبیدل پکار وو؟ نو ددې خواب نې ورکړو. چه دلته اجنبی باندې کوم ضمان واجب شوې دې. دا د قرضخواه یا د جنایت د ولی دحق په وجه نه دې. بلکه د آقا د ملك په وجه دې. او ملك د حق نه قوی وی. نو ملك سره به حق نه ښکاره کیږی. په دې وجه به صرف ملك سره د غلام قیمت واجب وی. او په آقا باندې د آزادولو په وجه چې کوم ضمان راځی. هغه د دواړو حقونو ضائع کاوه په وجه راځی. چه په هغې کي یو ته په بل باندې ترجیح نشته. نو هرکله چې دواړه حقونه برابر شو. نو آقا به ددې دواړو ضامن وی.



## ماذون فی التجارة وینځه باندې د قیمت نه زیاته قرضه وی نو ددې بچي څه حکم دې

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا اسْتَدَانَتِ الْأَمَةُ الْمَأْذُونُ لَهَا أَكْثَرَ مِنْ قِيمَتِهَا و کله چې پور واخستلو هغه وینځې چا ته چې د تجارت اجازت ورکړې شوې دې. د خپل قیمت نه زیات، ثُمَّ وَلَدَتْ بیا هغې بچې راوړو فَإِنَّهُ يُبَاعُ الْوَلَدُ نو پور کي به هغې سره بچې هم خرڅولې شی وَإِنْ جَنَتْ جِنَايَةً وکه وینځې جنایت کړې وی. (بیا بچې راوړلې وی) مَعَهَا فِي الدَّيْنِ لَمْ يُدْفَعِ الْوَلَدُ مَعَهَا نو هغې سره به بچې نشی ورکولې وَالْفَرْقُ او توپیر دا دې أَنَّ الدَّيْنَ وَصْفٌ حُكْمِيٌّ فِيهَا چې پور وینځه کي یو حکمی وصف دې وَاجِبٌ فِي ذِمَّتِهَا چې دا د وینځې په ذمه کي واجب دې. مُتَعَلِّقٌ بِرَقَبَتِهَا چې دا د وینځې سټ سره متعلق دې اسْتِيفَاءً د وصولولو په طور فَيَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ نو حکمی وصف به بچې ارخ ته متعدی کیږی كَوَلَدِ الْمَرْهُونَةِ. لکه څنګه چې د مرهونه بچې دې (چه د رهن حکم ددې بچې ارخ ته متعدی کیږی).

تشریح:- د خالد یوه وینځه ده. چه هغې ته خالد د تجارت اجازت ورکړې دې. خو هغې باندې پور راوړیدلې دې. چې دا د هغې د قیمت نه زیات دې. او د پور نه روستو ددغې ماذونه وینځې بچې پیدا شو. نو اوس به دغه پور کي وینځه خرڅولې شی. او هغې سره به د هغې بچې هم خرڅولې شی. یا داسې اووایه چې په دې صورت کي به د مور حکم بچې ارخ ته متعدی کیږی.

بِخِلَافِ الْجِنَايَةِ په خلاف د جنایت، لِأَنَّ وُجُوبَ الدَّفْعِ فِي ذِمَّةِ الْمَوْلَى ځکه چې د غلام ور کاوه وجوب (د جنایت په وجه) د آقا په ذمه کي دې لَا فِي ذِمَّتِهَا، د وینځه په ذمه کي نه دې وَإِنَّمَا يُلَاقِيهَا أَثَرُ الْفِعْلِ الْحَقِيقِيِّ او یوځاې شو وینځې سره د حقیقی فعل اثر وَهُوَ الدَّفْعُ او هغه ورکول دی وَالسِّرَايَةُ فِي الْأَوْصَافِ الشَّرْعِيَّةِ او متعدی کیدل په شرعی اوصافو کي کیږی دُونَ الْأَوْصَافِ الْحَقِيقِيَّةِ په حقیقی اوصافو کي نه کیږی.

حل اللغة: ① یلاقی: ملاویږی﴾

تشریح:- اوکه هم دا صورت په جنایت کي راپیښ شو. چه د جنایت نه روستو هغې بچې راوړو. او آقا هم دا وینځه د جنایت ولی ته ورکول اوغوښتل. نو اوس به وینځې سره د وینځې بچې نه ورکولې کیږی. یا داسې اووایه چې په دې صورت کي به د مور حکم بچې ارخ ته نه متعدی کیږی.

ځکه اصول دا دی. چه وصف حکمی بچې ارخ ته متعدی کیږی. فعل حقیقی او وصف حقیقی بچې ارخ ته نه متعدی کیږی. او ښکاره ده. چه پور یو حکمی وصف دې. چه دا د وینځې په ذمه کي واجب شوې دې. چه دا د وینځې د سټ نه د هغې په خرڅولو سره وصولولې شی. نو دا وصف به بچې ارخ ته دغه ډول متعدی کیږی. لکه څنګه چې د رهن حکم مرهونه بچې ارخ ته متعدی کیږی. او د جنایت په صورت کي اصل وجوب په وینځه نه دې. بلکه په آقا دې. البته آقا به پخپله ذمه وجوب ادا کول، په وینځې سپارلو سره کوی. نو د آقا دا وینځه ورکول وصف حکمی نه دې. بلکه فعل حقیقی دې. نو په فعل حقیقی کي به نه متعدی کیږی.

## په یو غلام د آزادولو دعوې نه روسته دغه غلام ددې مدعی ولی قتل کړونو څه حکم دې؟

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ لِرَجُلٍ و کله چې یو غلام د یو سړی وی زَعَمَ رَجُلٌ د هغه په اره کي یو سړې ګمان کوی أَنَّ مَوْلَاهُ أَعْتَقَهُ چې دا غلام دده آقا آزاد کړې دې فَقَتَلَ الْعَبْدُ وَلِيًّا لِذٰلِكَ الرَّجُلِ الزَّاعِمِ خَطَأً نو غلام خطاء سره هم ددې سړی ولی قتل کړو فَلَا شَيْءَ لَهُ نو ددغه سړی لپاره به هیڅ نه وی لِأَنَّهُ لَمَّا زَعَمَ ځکه چې هرکله هغه ګمان اوکړو أَنَّ مَوْلَاهُ أَعْتَقَهُ چې دده آقا دې آزاد کړې دې فَقَدِ ادَّعَى الدِّيَةَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو هغه د غلام په عاقله باندې د دیت دعوه اوکړله وَأَبْرَأَ الْعَبْدَ وَالْمَوْلَى او غلام او آقا نې بری کړو إِلَّا أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ عَلَى الْعَاقِلَةِ مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ خو دده به د حجت نه بغیر د عاقله خلاف تصدیق نشی کولې.

**حل اللغة:** ① ابرأ: برى كړو ② الزاعم: گمان كونكې ③ حجة: دليل.

**تشريح:-** ساجد د خالد غلام دې.او د زيد دعوه ده.چه خالد دا آزاد كړې دې.اتفاق سره ساجد د زيد اولياو كې يوكس په خطاء سره قتل كړو.نو اوس به زيد ته هيڅ نه ملاويږي.يعنى ديت وغيره به هيڅ نه ملاويږي.ځكه چې زيد پخپلې دعوې او خيال سره دا ثابته كړله.چه ساجد او خالد دواړو باندې هيڅ ضمان نشته.ځكه چې آزاد دې.البته د ساجد په عاقله باندې ضمان واجب دې.نو د ساجد او خالد متعلق به دهغه قول قبلولې شي.او په دوى دواړو به ضمان نه وى.او په عاقله به هم ضمان نه وى.ځكه چې د شرعى حجت نه بغير به د عاقلې خلاف د زيد دعوه نه قبليږي.

**د آزادئ نه روستو دده او د قاتل د اولياو په منځ كښې د زماني اختلاف.او ددې يو څو تائيدات**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل ﴿وَإِذَا أَعْتَقَ الْعَبْدُ﴾ و هركله چې غلام آزاد كړې شو فَقَالَ لِرَجُلٍ نو هغه يو سړى ته اووئيل قَتَلْتُ أَخَاكَ خَطَأً چې ما ستا رور خطاء سره قتل كړې وو وَأَنَا عَبْدٌ حالانكه زه غلام ووم وَقَالَ الْآخَرُ او هغه دوهم كس اووئيل قَتَلْتَه تا قتل كړې وو وَأَنْتَ حُرٌّ حالانكه ته آزاد وې فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْعَبْدِ نو د غلام قول به معتبر وى لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِلضَّمَانِ ځكه چې غلام د ضمان منكر دې

**تشريح:-** ساجد د خالد غلام وو.خو خالد ساجد آزاد كړو.اوس ساجد زيد ته وائي.چه كله زه غلام ووم.نو ما ستا رور بكر خطاء سره قتل كړې وو.ددې مطلب دا شو.چه ددې ضمان په آقا (خالد) باندې واجب شو. خو زيد ساجد (آزاد شوې غلام) ته وائي.چه تا بكر د آزادئ په حالت كې قتل كړې دې.يعنى ضمان په تا باندې دې.نو سوال دا شو.چه دلته به د ساجد قول معتبر وى. اوكه د زيد؟ نو وې فرمائيل.چه د ساجد قول به معتبر وى.ځكه چې غلام پخپل ځان باندې د ضمان د وجوب منكر دې.او زيد مدعى دې.چه ضمان په تا (ساجد) باندې دې.او په داسې موقعو كې د منكر قول سره د يمين نه معتبر وى.

لِمَا أَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُودَةٍ ځكه چې هغه د قتل نسبت هغه معهود (خاص) حالت اړخ ته كړې دې مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ، كوم چې د ضمان منافى دې إِذِ الْكَلَامُ فِيمَا ځكه بحث په دې صورت كې دې إِذَا عُرِفَ رِقُّهُ، كله چې دده غلامى مشهوره وى وَالْوُجُوبُ فِي جِنَايَةِ الْعَبْدِ عَلَى الْمَوْلَى او د غلام په جنايت كې وجوب په آقا باندې وى دَفْعًا په اعتبار د غلام وركولو أَوْ فِدَاءً، يا د فديې وركولو،

**حل اللغة:** ① معهودة: معلوم.

**تشريح:-** او پاتې شوه دا خبره چې ساجد د ضمان منكر ولې دې؟ نو وې فرمائيل.چه هغه د قتل نسبت داسې حالت اړخ ته كوى.چه هغې كې په ده باندې ضمان نشي واجب كيدې.د معهود حالت نه مراد هم دا دې.چه ددې غلام مملوكيت مشهور او معلوم وى.ځكه چې دده د قول معتبر كيدو په صورت كې به ضمان په آقا وى.كه دا غلام نې حواله كولو.او كه فديه نې وركوله.

وَصَارَ اوداسې اوشوه كَمَا إِذَا قَالَ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ لكه چې يو عاقل، بالغ اووئيل .طَلَّقْتُ امْرَأَتِي چې ما خپلې ښځې ته طلاق وركړو وَأَنَا صَبِيٌّ حالانكه زه بچې ووم أَوْ بِعْتُ دَارِي.يا ما خپل كور خرڅ كړو وَأَنَا صَبِيٌّ حالانكه زه بچې ووم، أَوْ قَالَ طَلَّقْتُ امْرَأَتِي يا ما خپلې ښځې ته طلاق وركړې وو وَأَنَا مَجْنُونٌ حالانكه زه مجنون ووم وَقَدْ كَانَ جُنُونُهُ مَعْرُوفًا حالانكه د هغه جنون مشهور وى كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو قول به هم د هغه معتبر وى لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه، كوم چې مونږ ذكر كړې دې

**تشريح:-** ددې په تائيد كې نې درې جزئې پيش كوى① يو عاقل بالغ سړې وائي.چه كله زه بچې ووم.هغه وخت ما خپلې ښځې ته طلاق وركړې وو.نو د هغه قول به معتبر وى.② ما خپل كور هغه وخت خرڅ كړې وو.كله چې زه بچې ووم.نو هم دده قول به معتبر وى.③ ما خپلې ښځې ته هغه وخت طلاق وركړې وو.كله چې زه مجنون (



ليونې) ووم.او په حقيقت كې مجنون پاتې شوې وى.چه ددې په وجه دده ليونتوب مشهور او معلوم وى.نو په دې ټولو صورتونو كې به دده قول معتبر وى.ځكه چې دې د ضمان منكر دې.دغه ډول په مخكنئ مسئله كې به هم د منكر يعنى د غلام قول معتبر وى.

**د وينځې آزادولو نه روسته ددې او د آقا د لاس كټ كولو په زمانه كښې اختلاف**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل ﴿وَمَنْ أَعْتَقَ جَارِيَةً﴾ و چا چې يوه وينځه آزاده كړله ثُمَّ قَالَ لَهَا بيا نې هغې ته اووئيل قَطَعْتُ يَدَكِ چې ما ستا لاس كټ كړې وو وَأَنْتِ أَمَتِي حالانكه ته زما وينځه وې وَقَالَتْ او وينځې اووئيل قَطَعْتَهَا چې تا زما لاس كټ كړې وو وَأَنَا حُرَّةٌ حالانكه زه آزاده ووم فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا، نو د وينځې قول به معتبر وى وَكَذَلِكَ كُلُّ مَا أَخَذَ مِنْهَا و هم دغه ډول په هغه ټولو څيزونو كې كوم چې د وينځې نه اخستې شوې وى إِلَّا الْجِمَاعَ وَالْغَلَّةَ اسْتِحْسَانًا بغير د جماع نه، او د ګټې نه استحسانا ،وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ[1] او دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دى.

**حل اللغة:** ① الغلة: ګټه ② جماع: وطى كول.

**تشريح:-** ساجده د خالد وينځه وه.خالد هغه آزاده كړله.اوس خالد ساجدې ته وائي.چه ما ستا لاس هغه وخت كټ كړې وو.كله چې ته زما وينځه وې.او ساجده وائي.چه نا بلكه هغه وخت دې كټ كړې وو.كله چې زه آزاده شوې ووم.نو دلته به د وينځې قول معتبر وى.او د جماع او ګټې نه علاوه چې كوم شئ هم د ساجدې نه اخستې شوې وى.هغې كې هم دا حكم دې.چه د وينځې قول به معتبر وى.البته كه په جماع كې دا اختلاف اوشى. نو استحسانا به د آقا قول معتبر وى.او هم دا اختلاف كه په ګټه كې اوشى.نو بيا به هم د آقا قول معتبر وى.او دا حكم استحساناً دې.او دا د حضرات شيخينو رحمهما الله مذهب دې.

**د امام محمد رحمه الله نقطه نظر**

وَقَالَ مُحَمَّدٌ:امام محمد رحمه الله اوفرمائيل لَا يَضْمَنُ إِلَّا شَيْئًا چې ضامن به نه وى.آقا د هيڅ شئ قَائِمًا بِعَيْنِهِ مګر د هغې (به ضامن وى) كوم چې بعينه قائم وى يُؤْمَرُ نو آقا ته به حكم وركولاى شى بِرَدِّهِ د هغې د واپس كولو عَلَيْهَا په هغې (وينځې) باندې لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ وُجُوبَ الضَّمَانِ ځكه چې آقا د ضمان د وجوب منكر دې لِإِسْنَادِهِ الْفِعْلَ د آقا د فعل د اسناد كاوه په وجه، إِلَى حَالَةٍ مَعْهُودَةٍ داسې معهود حالت اړخ ته مُنَافِيَةٍ لَهُ كوم چې د ضمان منافى دې كَمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى ،لكه څنګه چې ړومبئ مسئله كې (دغلام قول معتبر وو) وَكَمَا فِي الْوَطْءِ وَالْغَلَّةِ او لكه په وطى او ګټه كې وَفِي الشَّيْءِ الْقَائِمِ أَقَرَّ بِيَدِهَا او هغه شئ كې كوم چې موجود دې.آقا د وينځې د قبضې اقرار اوكړو حَيْثُ اعْتَرَفَ بِالْأَخْذِ مِنْهَا په دې حيثيت سره چې هغه د وينځې نه د اخستلو اقرار كړې دې ثُمَّ ادَّعَى التَّمَلُّكَ عَلَيْهَا نو هغه (آقا) دعوه اوكړله.د وينځې د مالك كيدو وَهِيَ مُنْكِرَةٌ حالانكه هغه منكره ده وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منكر معتبر وى فَلِهَذَا يُؤْمَرُ بِالرَّدِّ إِلَيْهَا هم په دې وجه آقا ته هغې اړخ ته د واپس كاوه حكم وركولې شى.

**تشريح:-** په مخكنئ مسئله كې د شيخينو رحمهما الله په نيز د جماع او ګټې نه علاوه ټولو څيزونو كې د وينځې قول معتبر وى.كوم چې د شيخينو رحمهما الله مذهب دې.او د امام محمد رحمه الله قول دا دې.چه د موجود شئ نه علاوه به په پاته هيڅ شئ كې د واپس كاوه حكم نه وى.البته كه بعينه هم دغه شئ موجود دې.نو آقا ته به حكم وركولې شى.چه دا سامان هغې ته حواله كړه.ځكه چې دې صورت كې آقا پخپله اقرار كوى.چه ما دا سامان د وينځې نه اخستې دې.او بيا آقا ددې وينځې د مالك كيدو دعوه هم كوى.او وينځه منكره ده.نو د منكر قول به معتبر وى.او آقا ته به د واپس كاوه حكم وركولې شى.

[1] القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا فى تبيين الحقائق (١٥٨/٦) وردالمحتار(٤٣٦/٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٩/٢)-

د امام محمد رحمه الله مذهب او دليل او د موجود شئ نه علاوه کي د امام محمد رحمه الله په نيز به د اقا قول معتبر وی.خکه چي دې صورت کي آقا منکر او وينځه مدعيه ده.او د منکر قول معتبر وی.د آقا د منکر کيدو وجه دا ده.چه هغه د فعل اسناد داسې حالت ارخ ته کړې دې.چه هغه معهود دې.او د ضمان منافي دې.خکه چې دا د وينځه وه.لکه ځنګه چې په دې بنا (بنياد) (او هم په دې وجه) رومبۍ مسئله کي د غلام قول معتبر منلې شوې وو.خکه چې هغه منکر وو.او لکه ځنګه چې په (مسئله د) وطی کي او ګټه کي د آقا قول معتبر وی. دغه ډول په تولو صورتونو کي د آقا قول معتبر منل پکار دی.

## د شيخينو رحمهما الله نقطه نظر

وَلَهُمَا او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې أَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ چې آقا د ضمان د سبب اقرار اوکړو ثُمَّ ادَّعَى مَا يُبْرِئُهُ بيا ئې د داسې شئ دعوه اوکړله يُبَرِّئُهُ کوم چې هغه د ضمان نه بری کړی فَلَا يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو دهغه قول به معتبر نه وی

تشريح:- حضرات شيخين رحمهما الله فرمائی.چه آقا اول په دې وئيلو سره د ضمان د سبب اقرار کړې دې چې ,, ما دا سامان ددې وينځې نه اخستې دې،، او بيا په دې وئيلو سره د ضمان نه د براءت دعوه کوی چې ,,ما خو دا سامان هغه وخت اخستې وو.کله چې ته زما وينځه وې،، او د داسې سړی قول معتبر نه وی. د دې وضاحت په دې مثال سره کيداې شی.چه يو سړې اقرار کوی.چه ما ستا ښئ سترګه زخمی کړې وه. خو هغه وخت مې زخمی کړې وه.کله چې زما صحيح وه.او زما سترګه روستو زخمی شوې ده.که دده سترګه د مخکې نه زخمی وی.نو په مقر باندې د سترګې ديت واجبيږی.او که (مخکې) صحيح وه.خو روستو بل چا زخمی کړله.نو د قصاص د محل نه کيدو په وجه قصاص هم ختم شو.او ديت هم.

كَمَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ لکه يوکس د خان نه علاوه کس ته اووئيل فَقَأْتُ عَيْنَكَ الْيُمْنَى چې ما ستا ښئ سترګه زخمی کړې وه وَعَيْنِي الْيُمْنَى صَحِيحَةٌ حالانکه زما ښئ سترګه ټيک وه ثُمَّ فُقِئَتْ بيا (زما سترګه) زخمی کړې شوه وَقَالَ الْمُقَرُّ لَهُ: او مقرله اووئيل لَا بَلْ فَقَأْتَهَا نا بلکه تا (زما سترګه) زخمی کړې وه وَعَيْنُكَ الْيُمْنَى مَفْقُوءَةٌ حالانکه ستا ښئ سترګه زخمی شوې وه فَإِنَّ الْقَوْلَ قَوْلُ الْمُقَرِّ لَهُ نو د مقر له قول به معتبر وی.

حل اللغة: ① مفقوءة:زخمی شوې سترګه

تشريح:- مقر وائی.چه ما ستا سترګه هغه وخت زخمی کړې وه.کله چې زما سترګه ټيک وه.او مقرله وائی.چه هغه وخت دې زخمی کړې وه.کله چې ستا سترګه زخمی شوې وه.نو دلته به د مقر قول معتبر نه وی.بلکه د مقرله قول به معتبر وی.نو دغه ډول به په مذکوره مسئله کي هم د مقرله يعنی د وينځې قول معتبر وی.

## د شيخينو رحمهما الله نقطه نظر

وَهٰذَا لِأَنَّهُ مَا أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ او دا خکه چې آقا د فعل اسناد داسې حالت ارخ ته نه دې کړې مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ چې دا د ضمان منافي وی لِأَنَّهُ يَضْمَنُ يَدَهَا خکه چې آقا د وينځې د لاس ضامن کيږی لَوْ قَطَعَهَا که د هغې لاس ئې کټ کړې وي وَهِيَ مَدْيُونَةٌ او هغه قرضداره وی وَكَذَا يَضْمَنُ مَالَ الْحَرْبِيِّ اوهم دغه ډول مسلمان د حربی د مال ضامن کيږی إِذَا أَخَذَهُ کله چې مسلمان دا اخستې وی وَهُوَ مُسْتَأْمَنٌ او هغه مستامن وی.

تشريح:- شيخين رحمهما الله فرمائی.چه مونږ د آقا د اخستلو اقرار په دې وجه د ضمان سبب ګرځولې دې.چه دا ممکن ده.چه د وينځې او د غلام په موجودګئ کي هم آقا باندې ددې جرم ضمان واجب کيداې شی. يعنی د ضمان په وجوب او مملوک کيدو کي هيڅ منافات نشته.خکه که آقا د خپلې وينځې لاس کټ کړو.او هغې باندې د چا پور ته لاړو.او هلته ئې د يوکافر مال واخستلو.او دغه حربی مسلمان شو.او دارالاسلام ته راغلو.اوس مسلمان اقرار کوی.چه ما ستا مال کله اخستې وو.هغه وخت ته کافر وې. او دوهم وائی.چه هغه وخت دې (زما) مال اخستې وو.کله چې زه مسلمان شوې ووم.نو دلته به د مقرله قول معتبر وی.او په مسلمان به ضمان واجب وی.خکه لکه



ځنګه چې د فعل اسناد په رومبۍ مسئله کي داسې حالت ارخ ته نه دې.کوم چې منافي د ضمان دې.خکه چې فی الجمله د حربی مال اخستل هم قابل د ضمان دی.نوکه يوکس امان واخلی.او دارالاسلام ته راشی.او يو مسلمان يا ذمی دهغه مال واخلی.نو ضمان به واجب وی.

بِخِلَافِ الْوَطْءِ وَالْغَلَّةِ په خلاف د وطی او ګټې لِأَنَّ وَطْءَ الْمَوْلَى أَمَتَهُ الْمَدْيُونَةَ لَا يُوجِبُ الْعُقْرَ خکه چې د آقا وطی کول خپلې قرضدارې وينځې سره عقر (مهر) نه واجبوی وَكَذَا أَخْذُهُ مِنْ غَلَّتِهَا او هم دغه ډول د آقا اخستل د هغې د ګټې نه وَإِنْ كَانَتْ مَدْيُونَةً اګرچه هغه قرضداره وی لَا يُوجِبُ الضَّمَانَ عَلَيْهِ په آقا باندې ضمان نه واجبوی فَحَصَلَ الْإِسْنَادُ إِلَى حَالَةٍ نو د فعل اسناد داسې حالت ارخ ته حاصل شو مَعْهُودَةٍ کوم چې مشهور دې مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ .د ضمان منافي دي.

حل اللغة: ① العقر: مهر ② الغلة:ګټه

تشريح:- دا په اصل کي د شيخينو رحمهما الله په رائې باندې د اعتراض ځواب دې اعتراض دا دې چې شيخينو رحمهما الله د وطی او ګټې په صورت کي د وينځې قول معتبر ولې نه دې منلې.بلکه د آقا قول ئې معتبر منلې دې؟ نوعلامه مرغينانی رحمه الله ځواب ورکوی خکه که آقا خپلې قرضدارې وينځې سره وطی اوکړی.نو په آقا به هيڅ ضمان او هيڅ عقر (مهر) واجب نه وی.دغه ډول که آقا د خپلې قرضدارې وينځې د ګټې نه څه واخلی.نو په آقا باندې هيڅ ضمان واجب نه دې.نو په دې دواړو صورتونو کي چې کله آقا داسې اووائی.چه ما وطی کړې وه.يا مې ګټه اخستې وه.خو هغه وخت کله چې ته زما وينځه وې.نو آقا د خپل اسناد هغه معهود حالت ارخ ته کوی. کوم چې د ضمان منافي دې.او ددې دواړو نه علاوه کي منافات ثابت نشو.په دې وجه په ټولو صورتونو کي د وينځې قول معتبر دې.او صرف په دوو صورتونو کي د آقا قول معتبر شوې دې.

## د محجور غلام په شرارت سره د بچي يو سړي لره قتلول

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا أَمَرَ الْعَبْدُ الْمَحْجُورُ عَلَيْهِ صَبِيًّا حُرًّا بِقَتْلِ رَجُلٍ) و کله چې محجور غلام يو آزاد بچي ته ديو سړی د قتل حکم ورکړو فَقَتَلَهُ نو بچي هغه قتل کړو فَعَلَى عَاقِلَةِ الصَّبِيِّ الدِّيَةُ نو د بچي په عاقله باندې ديت دې لِأَنَّهُ هُوَ الْقَاتِلُ حَقِيقَةً،خکه چې بچې په حقيقت کي قاتل دې وَعَمْدُهُ وَخَطَؤُهُ سَوَاءٌ او د بچي عمداً قتل او خطاء سره قتل (دواړه) برابر دی عَلَى مَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې مونږ وړاندې بيان کړې دې (وَلَا شَيْءَ عَلَى الْآمِرِ)او په حکم کونکی باندې هيڅ نشته وَكَذَا إِذَا كَانَ الْآمِرُ صَبِيًّا اوهم دغه ډول (حکم دې) کله چې بچې حکم کونکې وی.

تشريح:- يو محجور غلام وړوکی آزاد بچی ته حکم اوکړو.چه فلانې سړې قتل کړه. نو دغه بچی فلانې سړې قتل کړو.نو په غلام به د قاتل بچی په عاقله باندې ديت واجب وی.او په حکم کونکی غلام به هيڅ واجب نه وی.خکه چې قتل د غلام د ارخه نه دې شوې.بلکه کوم بچی ته چې حکم ورکړې شوې دې.د هغه بچی د ارخه د قتل صدور شوې دې.نو که قتل عمداً وی.اوکه خطاء سره وی.په دواړو صورتونو کي به د بچی په عاقله باندې ديت واجب وی.هم دغه ډول حکم په هغه صورت کي هم دې چې حکم کونکې دغلام په ځائې بل ماشوم وی.

لِأَنَّهُمَا لَا يُؤَاخَذَانِ بِأَقْوَالِهِمَا، خکه چې دا دواړه (قاتل او آمر بچی) پخپلو اقوالو کي ګرفتار نه دی لِأَنَّ الْمُؤَاخَذَةَ فِيهَا بِاعْتِبَارِ الشَّرْعِ خکه چې اقوالو کي ګرفتاری د شريعت په اعتبار کاوه سره کيږی وَمَا اعْتُبِرَ قَوْلُهُمَا او شريعت ددوی دواړو د قول اعتبار نه دې کړې.

تشريح:- دليل دا دې چې د بچی قول معتبر نه وی.البته په بعضو اقوالو کي کوم چې معتبر وی.خصوصاً د محل د ضمان په سلسله کي خو خامخا د بچو اقوال قابل د ګرفت (او سزا) نه وی.په دې وجه به د بچی قول بالکل معتبر نه وی.خو دغلام اقوال فی نفسه (په اصل کي) قابل اعتبار وی.

وَلَارُجُوعَ لِعَاقِلَةِ الصَّبِيِّ عَلَى الصَّبِيِّ الْآمِرِ أَبَدًا او د بچي عاقله ته به کله هم په حکم کونکي بچي باندې د رجوع حق نه وي وَيَرْجِعُونَ عَلَى الْعَبْدِ الْآمِرِ بَعْدَ الْإِعْتَاقِ او عاقله به په حکم کونکي غلام باندې د آزادئ نه روستو رجوع کوي لِأَنَّ عَدَمَ الْإِعْتِبَارِ ځکه چې د هغه د قول نه معتبر کیدل لِحَقِّ الْمَوْلَى دآقا دحق په وجه وو. وَقَدْ زَالَ او د آقا حق زائل شوي دي لَا لِنُقْصَانِ أَهْلِيَّةِ الْعَبْدِ،،.( چې دا د غلام) د اهلیت د نقصان په وجه نه وو بِخِلَافِ الصَّبِيِّ په خلاف د بچي لِأَنَّهُ قَاصِرُ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چې بچې د اهلیت نه قاصر دي.

تشريح:- بیا هرکله چې آمرماشوم وی او د قاتل ماشوم عاقله د مقتول اولیاؤته دیت ورکړی نوکه سهار ته آمرماشوم بالغ شو نوهم د قاتل ماشوم عاقله د دغه دیت د آمرماشوم نه چې اوس بالغ شوې دې مطالبه نشي کولې

البته هرکله چې آمرغلام وی نواګرچه فی الحال په هغه باندې ضمان نشته خوکه سهار دې آزاد شونو د قاتل ماشوم عاقله به د غلام نه هغه ضمان اخلی کوم چې هغوی د مقتول اولیاؤ ته ورکړې وو ځکه چې دلته د مولا د حق په وجه ددې اعتبار ساقط شو.نو اګرچه عارض ختم شی.نو ځکه به دده په قول باندې مواخذه کیږی.او د آزادئ نه روستو چې کوم بچی قتل کړې وو.د هغه عاقله ته به حق وی.چه هغوی ادا کړې شوې دیت ددې غلام نه واپس واخلی.

### د محجور غلام په شرارت سره دوهم غلام بل یو دریم سړي قتل کړو

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَكَذٰلِكَ اِنْ اَمَرَ عَبْدًا) وهم دغه شان(حکم دې)کله نې چې غلام ته حکم ورکړې وی. وی مَعْنَاهُ ددې مطلب دا دی اَنْ يَكُونَ الْآمِرُ عَبْدًا چې حکم کونکې غلام وی وَالْمَأْمُورُ عَبْدًا او مامور ( چا ته نې چې حکم ورکړې دې) غلام وی مَحْجُورًا عَلَيْهِمَا دواړه محجور وی (يُخَاطَبُ مَوْلَى الْقَاتِلِ بِالدَّفْعِ أَوِ الْفِدَاءِ)نو د قاتل غلام آقا به د غلام ور کاوه یا د فدیې ور کاوه مخاطب وَلَا رُجُوعَ لَهُ عَلَى الْأَوَّلِ فِي الْحَالِ او ددې آقا لپاره به فی الحال په اول باندې د رجوع حق نه وی

حل اللغة* ① محجور: بند شوې﴾

تشريح:- که یو محجور غلام د بل کس محجور غلام ته د یوکس د قتل حکم ورکړې وی.او مامور قتل کړې وی.نو اوس څه حکم دې؟ نو ددې تفصیل دا دې.چه کله مامور یعنی قاتل بالغ وی.او هغه دا حرکت عمداً کړې وی.نو قصاص به واجب وی.ځکه چې د غلام او آزاد په منځ کې قصاص جاری کیږی.او که قاتل بچې وی.نو د عمد او خطاء په دواړو صورتونو کې نو په دې کې او کله چې قاتل غټ ( بالغ) وی .خو قتل خطاء وی.نو په دې دریو واړو صورتونو کې یو حکم دې.او هغه دا دې.چه د قاتل غلام په آقا باندې ضمان واجب دې.یعنی هغه ته به اختیار وی.که غواړی.نو قاتل غلام دې د جنایت ولی ته حواله کړی.اوکه غواړی.نو د هغه فدیه دې ادا کړی.یعنی پوره دیت دې ادا کړی.او چونکه حکم ورکونکې هم غلام دې.نو د مجرم آقا به د هغه نه اوس ( فی الحال) هیڅ مطالبه نه کوی.

وَيَجِبُ او واجب دی اَنْ يَرْجِعَ بَعْدَ الْعِتْقِ بِأَقَلَّ مِنَ الْفِدَاءِ وَقِيمَةِ الْعَبْدِ چې دا آقا د آزادئ نه روستو د فدیې اود غلام په قیمت کې د کم رجوع اوکړی لِأَنَّهُ غَيْرُ مُضْطَرٍّ فِي دَفْعِ الزِّيَادَةِ،ځکه چې دا ( د قاتل آقا) د زیات په ور کاوه کې مجبور نه وو وَهٰذَا او دا هغه وخت دی اِذَا كَانَ الْقَتْلُ خَطَأً،کله چې قتل خطاء وی وَكَذَا اِذَا كَانَ عَمْدًا او هم دغه ډول ( حکم دې) کله چې قتل عمداً وی وَالْعَبْدُ الْقَاتِلُ صَغِيرًا حالانکه قاتل غلام بچې وی. لِأَنَّ عَمْدَهُ خَطَأٌ،ځکه چې دده عمداً خطاء دې أَمَّا اِذَا كَانَ كَبِيرًا بهرحال کله چې دې غټ وی يَجِبُ الْقِصَاصُ نو قصاص به واجب وی لِجَرَيَانِهِ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ آزاد او غلام په منځ کې د قصاص جاری کیدو په وجه.

تشريح:- البته د هغه د آزاد کیدو نه روستو د هغه نه ضمان واپس اخستلې شی.اوضمان په اخستلو کې قاعده دا چې د قاتل غلام په قیمت او فدیه کې چې کوم هم کم وی.په هغه اندازه اخستلې شی.



البته که څوك دا سوال اوکړی چې آقا فدیه ورکړی وی او قیمت کم وی نو باید ده (پکار ده) چې فدیه واپس واخلی ځکه چې آقا خو فدیه ورکړې ده اوهغه زیاته ده نو ددې خواب دا دې چې هرکله چې په تا فدیه واجب نه وه.نو تا فدیه ولې ورکړې وه.ځکه چې شرعاً آقا ته اختیار وو.که غواړی.قیمت دې ورکړی.او که غواړی.فدیه دې ادا کړی.یعنی آقا په زیات ور کاوه کې مجبور نه وو.

### د غلام دوې (دوه) سړي عمداً قتلول او د قصاص ساقطیدو صورت

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَاِذَا قَتَلَ الْعَبْدُ رَجُلَيْنِ عَمْدًا) و کله چې غلام دوې (دوه) سړي عمداً قتل کړل وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَلِيَّانِ او په دې دواړو قتل شووکې د هریودوې (دوه) دوې (دوه) ولیان دی فَعَفَا اَحَدُ وَلِيَّيْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دوی دواړو کې دهریو دواړو ولیانوکې یوکس ( قاتل) معاف کړو فَاِنَّ الْمَوْلٰى يَدْفَعُ نِصْفَهُ اِلَى الْآخَرَيْنِ نو آقا به د غلام نصف پاته دوو ( ولیانو) ته ورکوی. اَوْيَفْدِيهِ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ یا به د غلام فدیه لس زره درهم وی.

تشريح:- زید د خالد غلام دې.زید مطیع الرحمن او مرغوب دواړه عمداً قتل کړل.نو په ده به قصاص واجب وی.خو صورت دا شو.چه د مطیع الرحمن دوې (دوه) ولیان دی.راشد او ناظم، دغه ډول د مرغوب هم دوې (دوه) ولیان دی. مزمل او مدثر،اوس صورت دا شو.چه اوسه پورې قصاص نه دې اخستې شوې.چه ددې نه وړاندې راشد او مزمل خپل حق معاف کړو.نو بس اوس به قصاص نشی اخستلې.

البته د ناظم او مدثر لپاره به دیت واجب وی.یا به آقا دا غلام دوی دواړو ته حواله کوی.خو دیت به څومره وی.او غلام به څومره ورکولې شی؟ دا مرغینانی رحمه الله دلته بیانوی.

❶ فرمائی.که آقا غلام ورکول غواړی.نو پاته دواړو ته یعنی ناظم او مدثر ته به صرف نیم غلام ملاویږی.او که آقا فدیه ورکول غواړی.نو دوی دواړو ته به صرف لس زره درهم ورکوی.چه دا به دواړه نیم په نیم تقسیموی. ځکه چې هرکله دواړو خپل حق معاف کړو.نو قصاص ساقط شو.او مال به واجب وی .ګویا چې د پیل نه مال واجب دې.

لِأَنَّهُ لَمَّا عَفَا اَحَدُ وَلِيَّيْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه چې هرکله دواړو کې د هر یو دواړو ولیانو کې یوکس معاف کړو سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط شو وَانْقَلَبَ مَالًا او قصاص مال سره بدل شو فَصَارَ نو داسې شوه. كَمَا لَوْ وَجَبَ الْمَالُ مِنَ الْاِبْتِدَاءِ،لکه چې د پیل نه مال واجب شوې وی. وَهٰذَا لِأَنَّ حَقَّهُمْ فِي الرَّقَبَةِ او دا ځکه چې د اولیاو حق د غلام په سټ کې أَوْ فِي عِشْرِيْنَ اَلْفًا یا په شل زره درهمو کې دې وَقَدْ سَقَطَ نَصِيبُ الْعَافِيَيْنِ او ثابته شوه.چه د دواړو معاف کونکو حق ساقط شو وَهُوَ النِّصْفُ او هغه نصف دې وَبَقِيَ النِّصْفُ او نصف پاته پاتې شو

تشريح:- او د مال دا مقدار ځکه مقرر شو.که چرې دوی څلور واړه حقدار وو.نو د غلام ور کاوه په صورت کې ددوی څلورو واړو استحقاق صرف یوغلام وو.او کله چې په څلورو کې دوو کسانو خپل حق معاف کړو.نو د حق نه نیم معاف شو.او صرف نیم پاته پاتې شو.نو موږ اوونیل.چه دوی دواړو ته به د مجرم غلام نیمه ملاویږی.

❷ او که آقا فدیه ورکول غوښتل.نو د فدیه ور کاوه په صورت کې ددوی څلورو واړو حق شل زره درهم وو.ځکه چې د دوو سړو دیت دغه اومره وی.خو کله چې په څلورو کې دوو ( ولیانو) خپل حق معاف کړو .نو نصف حق ساقط شو.صرف نصف پاته پاتې شو.نو موږ اوونیل.چه په دې صورت کې به آقا باندې صرف دوې (دوه) زره درهم واجب وی.

### د غلام دوې (دوه) سړي عمداً او خطاء سره قتلول او د قصاص ساقطیدو صورت

فَاِنْ كَانَ قَتَلَ اَحَدَهُمَا عَمْدًا وَالْآخَرَ خَطَأً نو که غلام په دوی دواړو کې یو عمداً او دوهم خطاء سره قتل کړې وی. فَعَفَا اَحَدُ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ نو د عمد په دوو ولیانو کې یو کس معاف کړو فَاِنْ فَدَاهُ الْمَوْلٰى نو که آقا د هغه فدیه ورکوی فَدَاهُ بِخَمْسَةَ عَشَرَ اَلْفًا نو پنځلس زره ( درهم) فدیه به ورکوی خَمْسَةَ آلَافٍ لِلَّذِي لَمْ يَعْفُ مِنْ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ پنځه زره د هغه ولی

چا چې د عمد په دوو ولیانو کې معاف کړې نه دي **وَعَشَرَةُ آلَافٍ لِوَلِيِّ الْخَطَإِ** او لس زره د خطاء د دوو ولیانو.

**تشریح:-** که غلام دواړه عمداً قتل کړي نه وي. بلکه یو ئې عمداً او دوهم ئې خطاء سره قتل کړي وي. بیا د عمد دوې (دوه) ولیان وو. هغوی کې یوکس خپل حق معاف کړو. نو اوس قصاص ساقط شو. اوس دوې (دوه) صورتونه دي یا به آقا فدیه ورکوی آقا به په دې صورت کې ټولې پنځلس زره روپۍ ورکوی. په کوم کې چې پنځه زره د هغه کس دي. کوم چې د عمد یو ولی پاته پاتې دي. او لس زره به د هغه دواړو وی. کوم چې د قتل خطاء ولیان دي.

**لِأَنَّهُ لَمَّا انْقَلَبَ الْعَمْدُ مَالًا** ځکه چې (د ولی په معاف کاوه سره) هرکله عمد مال سره بدل شو **كَانَ حَقُّ وَلِيِّ الْخَطَإِ كُلَّ الدِّيَةِ عَشَرَةَ آلَافٍ** نو د خطاء د دواړو ولیانو حق پوره دیت کې لس زره (درهم) دي **وَحَقُّ أَحَدِ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ فِي نِصْفِهَا خَمْسَةَ آلَافٍ،** او د عمد په دوو ولیانو کې د یوحق نصف دیت کې پنځه زره دي **وَلَا تَضَايُقَ فِي الْفِدَاءِ** او په فدیه ورکاوه کې هیڅ تنګی نشته **،فَيَجِبُ خَمْسَةَ عَشَرَ أَلْفًا** نو لس زره به واجب وی.

**حل اللغة:** ① **تضایق:** تنګی ② **الفداء:** فدیه﴾

**تشریح:-** ځکه چې د قتل خطاء ولیانو حق لس زره دي. نو دا حق به پوره واجب وی. او په قتل عمد کې یوکس معاف کړې دي. په دې وجه به دلته صرف نصف دیت واجب وی. او نصف دیت پنځه زره درهم دی. نو هغوی لپاره به پنځه زره واجب وی. د ټولو مجموعه پنځلس زره درهم دی. او که آقا غلام ورکول اختیار کړی. نو د هغې حکم دا دې فرمائی.

## د آقا غلام ورکولو څه طریقه ده؟

**فَإِنْ دَفَعَهُ** او که آقا غلام ورکول منظور کړی **دَفَعَهُ إِلَيْهِمْ أَثْلَاثًا:** نو ولیانو ته به غلام په دریو برخو سره ورکوی **ثُلُثَاهُ لِوَلِيِّ الْخَطَإِ** د غلام دوې (دوه) ثلثه د خطاء د دواړو ولیانو لپاره **وَثُلُثُهُ لِغَيْرِ الْعَافِي مِنْ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ** او دده (یعنی د غلام) دریم ثلث د عمد په دواړو ولیانو کې د نه معاف کونکی لپاره **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله، د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز.

**تشریح:-** دوهم صورت په دې متن کې بیانوی او فرمائی که آقا د فدیې ورکاوه په ځائې غلام ورکول غواړی. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به غلام درې برخې کیږی. په دې کې به دوې (دوه) برخې د خطاء ولیانو ته ورکولې شی. او یوه برخه به د عمد هغه ولی ته ورکولې شی. چا چې معاف کړې نه دې. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د غلام څلور برخې کولې شی. په دې کې به درې برخې د رومبی (یعنی د خطاء ولیانو) لپاره وی. او یوه برخه به د دوهم (دقتل عمد ولی) لپاره وی.

**وَقَالَا:** او صاحبین رحمهما الله فرمایي **يَدْفَعُهُ أَرْبَاعًا:** چې آقا به غلام په څلورو برخو سره ورکوی **ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ لِوَلِيِّ الْخَطَإِ** دده په څلورو کې درې برخې د خطاء دواړو ولیانو لپاره **وَرُبُعُهُ لِوَلِيِّ الْعَمْدِ** او دده څلورمه برخه دعمد ولی لپاره **فَالْقِسْمَةُ عِنْدَهُمَا بِطَرِيقِ الْمُنَازَعَةِ.** نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز ویش د منازعت په طریقه دي **فَيُسَلَّمُ النِّصْفُ لِوَلِيِّ الْخَطَإِ بِلَا مُنَازَعَةٍ** نو نصف به د منازعت نه بغیر د خطاء دواړو ولیانو ته سپارلې کیږی **وَاسْتَوَتْ مُنَازَعَةُ الْفَرِيقَيْنِ فِي النِّصْفِ الْآخَرِ** او په دوهم نصف کې به د فریقینو منازعت برابر وی **فَيُتَنَصَّفُ** نو دوهم نیم به نیم په نیمه وی آن، **فَلِهَذَا يُقْسَمُ أَرْبَاعًا** نو په څلورو برخو سره به غلام تقسیمولې شي

**حل اللغة:** ① **منازعة:** جګړه﴾

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه هسې خو په پوره غلام کې د دواړو فریقو حق وو. چه په دې کې هر فریق ته ددې غلام اخستلو حق وو. خو څه اوکړې شی. چه غلام یو دې. په دې وجه به برابر برخه هم په دې غلام کې دواړو ته ورکولې شی. نو موږ غور اوکړو. نو دا خبره ښکاره شوه. چه د خطاء د ولیانو د حق ډېل کیدو په وجه د غلام نصف دوی ته بغیر د څه منازعت نه ملاو شو. پاته پاتې شو دوهم نصف، په دې اړه کې دوی دریو واړو کې منازعت واقع



شو. د خطاء ولیان غواړی. چه زموږ حق پاته دې. نو دا نیم هم موږ ته ملاویدل پکار دی. او د عمد ولی وائی چه ماته خو هیڅ ملاو نشو. نو دا نیم ماته ملاویدل پکار دی. نو ددې منازعت په وجه دا نصف ددوی په منځ کې نیم په نیمه ویش کړې شو. نو اوس به د خطاء ولیان په څلورو کې درې برخې (۳/۴) او د عمد ولی څلورمه برخه (۱/۴) اخلی. لنډیز د کلام دا چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ویش د منازعت په طریقه وی. د هغې تفصیل دا دې. کوم چې ذکر شو.

## د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د غلام تقسیمولو طریقه

**وَعِنْدَهُ يُقْسَمُ بِطَرِيقِ الْعَوْلِ وَالْمُضَارَبَةِ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به غلام د عول او ضرب په طریقه تقسیمولې شی **أَثْلَاثًا،** په دریو برخو کاوه سره **لِأَنَّ الْحَقَّ تَعَلَّقَ بِالرَّقَبَةِ** ځکه چې حق د غلام سټ سره متعلق دې **أَصْلُهُ التَّرِكَةُ** ددې اصل هغه ترکه ده **الْمُسْتَغْرَقَةُ بِالدُّيُونِ** کومه چې قرضو سره راګیره شوې ده **فَيَضْرِبُ هَذَا بِالْكُلِّ** نو دوی دواړه (د خطاء ولیان) د کل په حساب سره شریکولې شی. **وَذَلِكَ بِالنِّصْفِ** او دا پر (په) نیم سره کیږی

**حل اللغة:** ① عول د علم میراث مشهوره اصطلاح ده هلته به اوپیژندې شی﴾

**تشریح:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا ویش د عول په طریقه باندې وی. یعنی په عول کې واړه وارثان په کمی کې شریک وی. دلته به هم دوی دواړه په کمی کې شریک ساتلې شی. او ددې صورت هم دا دې. چه ددوی په حق کې هم دا تناسب دې. چه د خطاء د ولیانو حق د عمد (د ولیانو) نه دوچند او د عمد د ولی حق د هغوی د حق نه نیم دې. نو ددې نسبت په اندازه تقسیمولو لپاره به په دریو (یعنی ۳) باندې ویش ضروری وی. نو هرکله چې دریو باندې ویش کړې شو. نو د غلام درې برخې جوړې کړې شوې. او د خطاء په ولیانو کې د هغې نه دوې (دوه) او د عمد ولی ته یوه ورکړې شوه. ځکه چې د حق په مقدار کې کوم تناسب وی. د حق د بدل په منځ کې به دا تناسب قائم ساتل ضروری وی. او هغه دلته د تقسیمولو نه بغیر نشی کیدې. نو غلام به دریو برخو کې تقسیمول ضروری وی. ګنی د هر فریق حق پوره سټ سره متعلق دې. او ددې طریقې اختیارولو نه بغیر به مسئله نه حل کیږی. نو واړه په کمی کې ګډ کړې شو. لکه مثلاً که زید مړ شی. او په هغه باندې ډیرې پور وی. چه د زید ترکه ددې ټولو قرضو ادا کاوه لپاره کافی نه وی. نو هلته هم د عول او ضرب طریقې نه کار اخستلې شی.

**وَلِهَذِهِ الْمَسْأَلَةِ نَظَائِرُ وَأَضْدَادٌ** او ددې مسئلې ډیر مثالونه او اضداد (نقیضات) دی **وَذَكَرْنَاهَا فِي الزِّيَادَاتِ** چې دا موږ په زیادات کې ذکر کړی دی.

**حل اللغة:** ① **نظائر:** جمع د نظیر، مثال ② **اضداد:** جمع د ضد، مخالف﴾

**تشریح:-** ددې نه روسته مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه ددې مسئلې بعض مثالونه او اضداد دی. یعنی څه ددې پشان دی. او بعضې ددې خلاف دی. چه دا موږ په زیادات کې ذکر کړی دی. د مرغینانی رحمه الله د یو کتاب نوم زیادات دې. او ددې یو ضد د هدایه په دریم ټوک کې موجود دې.

## د مشترك غلام دوې (دوه) قتلونه کول او د قصاص باطلیدو صورت

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **(وَإِذَا كَانَ عَبْدٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ** او کله چې یو غلام د دوو سړو په منځ کې (شریک) وی **فَقَتَلَ مَوْلًى لَهُمَا أَيْ قَرِيبًا لَهُمَا** نو دې غلام ددوی دواړو مولا یعنی قریب (نزدې رشته دار) قتل کړو **(فَعَفَا أَحَدُهُمَا** نو په دوی دواړو کې یو (غلام) معاف کړو **بَطَلَ الْجَمِيعُ** نو واړه باطل شو. (قصاص او مال.) **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله [1] د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز

**تشریح:-** د زید او بکر دواړو یو مشترك غلام دې. غلام دا بدمعاشی اوکړله. چه د زید پلار ئې قتل کړو. او د بکر پلار ئې هم قتل کړو. نو دوی دواړو ته د قصاص حق حاصل وو. خو زید دا غلام معاف کړو. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی ملتقی (۳۸۸\۴) والدرالمحتار(۴۳۷\۵) نقلاً عن القو الراجح (۳۶۰\۲)-

په نيز د بكر حق باطل شو.يعنى نه اوس څوك قصاص اخستلي شي.او نه مال، نه ئې زيد اخستل شي.او نه بكر.

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمايي يَدْفَعُ الَّذِيْ عَفَا نِصْفَ نَصِيْبِهِ إِلَى الْآخَرِ چې كوم كس معاف كړې دي هغه به د خپلې برخې نصف دوهم ته وركوي أَوْيَفْدِيْهِ بِرُبُعِ الدِّيَةِ يا د هغه د ديت څلورمې برخې سره به فديه ادا كوي. وَذُكِرَفِي بَعْضِ النُّسَخِ قَتَلَ وَلِيًّا لَهُمَا او د جامع صغير په بعضو نسخو كي ذكر دى... قتل وليا لهما.. ،وَالْمُرَادُ الْقَرِيْبُ أَيْضًا او ددې نه قريب ( نږدې رشته دار) مراد دې.

تشريح:- او د صاحبينو رحمهما الله مذهب دا دې.چه په ذكر شوى صورت كي كله چې د نيم غلام مالك مثلاً زيد دې.او د نيم مالك بكر دې.نو د زيد د نيمې دنيمې مالك به هم بكر وى.يعنى كه زيد دا منظور كړى .نو اوس به غلام كې د دواړو ملكيت په څلورو برخو سره وى.يعنى د بكر ۳/۴ او د زيد ۱/۴ يا به زيد د نصف د نصف فديه وركوى.يعنى د ديت ۱/۴ دې ادا كړى.

ف د جامع صغير په نسخو كي دلته اختلاف دي .په بعضو نسخو كي دى. «فقتل مولى لهما» او په بعضو كي «قتل وليا لهما» دى.بهرحال مطلب د دواړو يو دې.

وَذُكِرَفِي بَعْضِ النُّسَخِ قَوْلَ مُحَمَّدٍ مَعَ أَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله او په بعضو نسخو كي د امام محمد رحمه الله قول د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ذكر دې.

تشريح:- دجامع صغير په بعضو نسخو كي د امام محمد رحمه الله قول امام ابوحنيفه رحمه الله سره خودلې شوې دې.يعنى ددوى دواړو يو قول دې.او دلته د امام محمد رحمه الله قول د امام ابويوسف رحمه الله سره خودلې شوې دې.اوهم دا مشهوره ده.

وَذُكِرَفِي الزِّيَادَاتِ:او په زيادات كي ذكر دى ؛عَبْدٌقَتَلَ مَوْلَاهُ چې يوغلام خپل آقا قتل كړو وَلَهُ ابْنَانِ او د هغه دوې (دوه) خامن دى فَعَفَا أَحَدُ الْإِبْنَيْنِ نو په دواړو خامنو كي يو قتل معاف كړو بَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نو دا واړه باطل شو.د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز وَعِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ الْجَوَابُ فِيْهِ او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز دې كي هغه ځواب دې كَالْجَوَابِ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ كوم چې دلته د كتاب په مسئله كي ځواب دې ،وَلَمْ يَذْكُرِ اخْتِلَافَ الرِّوَايَةِ (او امام محمد رحمه الله په زيادات كي او په جامع صغير كي ددې مسئلې بيانولو سره) د روايت اختلاف نه دې ذكر كړې

تشريح:- د زيادات يو جزء مرغينانى رحمه الله پيش كړې دې. چې يو غلام خپل آقا قتل كړو.او ددې مقتول آقا دوې (دوه) خامن دى.چه هغوى ته د قصاص اخستلو حق وو.خو په دوى دواړو كي يوكس قاتل غلام معاف كړو.نو د طرفينو رحمهما الله په نيز هرڅه باطل شو.يعنى نه قصاص پاتې شو.او نه مال.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به دلته هم هغه حكم وى.كوم چې د جامع صغير په مسئله كي د صاحبينو رحمهما الله مسلك بيان كړې شوې دې.او د روايت اختلاف ذكر نه دي.بلكه صفا ليكلى شوى دى.چه امام ابويوسف رحمه الله دا فرمائى.او طرفين رحمهما الله دا فرمائى.

ف دلته مرغينانى رحمه الله د امام صاحب او د صاحبينو رحمهم الله مسلك باندې دليل نه دې بيان كړې.خو د امام صاحب رحمه الله د دليل لنډيز دا ده.چه د معافئ نه مخكې د دواړو حق جوړ شوې وو.او قصاص واجب شوې وو.چه په هغې كي شيوع (برخه دارى) وه.لكه څنګه چې ملكيت كي شيوع (شراكت) دې.اوس هركله چې زيد معاف كړو.نو د هغه برخه ساقط شوه.او د مخكې پشان د بكر حق مال سره بدل شو.او د بكر برخه نصف ده.خو اوس په دې كي شك پيدا شو.چه كوم مال به بكر ته وركولې شى.دا د كوم نصف بدل دې. لكه څنګه چې په دې كي احتمال دې.چه شايد (كيداې شى) د هغه نصف بدل وى.كوم چې د بكر دې.دغه ډول په دې كي احتمال دې.چه د دوهم نصف وى.كوم چې معاف كړې شوې دې.بهرحال په دې كي دا شك پيدا شو.او مال د شك او تردد په وجه نه واجبيږى.

د امام ابويوسف رحمه الله دليل



لِأَبِي يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ:د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې أَنَّ حَقَّ الْقِصَاصِ ثَبَتَ فِي الْعَبْدِ عَلٰى سَبِيْلِ الشُّيُوْعِ، چې په غلام كي د قصاص حق دشيوع په طريقه ثابت شوې دې. لِأَنَّ مِلْكَ الْمَوْلٰى لَايُنَافِيْ اسْتِحْقَاقَ الْقِصَاصِ ځكه چې د آقا ملكيت،آقا لپاره د قصاص استحقاق نه منع كوى لَهُ فَإِذَا عَفَا أَحَدُهُمَا نو هركله چې دوى دواړو كي يو معاف كړو انْقَلَبَ نَصِيْبُ الْآخَرِ نو د دوهم برخه مال سره بدله شوه وَهُوَ النِّصْفُ او دا (د دوهم د حصې) نيمه ده مَالًا، غَيْرَ أَنَّهُ شَائِعٌ فِي الْكُلِّ خو دا نيمه (هم) په واړه كي پرخپاره شوې (خور شوې)دې فَيَكُوْنُ نِصْفُهُ فِي نَصِيْبِهِ نو دده (د نصف) نصف به د هغه (د بكر) په برخه كي وى وَالنِّصْفُ فِي نَصِيْبِ صَاحِبِهِ

حل اللغة: ① انقلب: اوګرځيدو ،بدل شو② نصيب: برخه ③ شائع: خور وور ،ناقابل تقسيم﴾

تشريح:- او نصف به د هغه د انډيوالان ( يعنى د زيد شريكوال كوم چې معاف كونكې دې ) په برخه كې وى. دا د امام ابويوسف رحمه الله دليل دې.په هغه مسئله كي كومه چې زيادات كي ذكر ده.او هم دا د جامع صغير روايت مطابق د صاحبينو رحمهما الله دليل دې.حاصل د دليل دا دې.چه اوس ددې غلام آقا (مالكان) دوې (دوه) دى.يو زيد او دوهم بكر،ځكه چې دا دواړه د مقتول خامن دى.نو د قصاص اخستلو حق دواړو ته حاصل دې.خو د قصاص دا حق په طريقه د شيوع (شراكت) دې.او شيوع او ملك د آقا دواړو دا خبره ممنوع نه ګرځوى.چه حق آقا جوړ شى.او قصاص واجب شى.بهرحال د شيوع (شراكت) په طريقه باندې حق د قصاص دواړو لپاره ثابت دې.بيا زيد دا غلام معاف كړو.نو اوس خو قصاص بالكليه ساقط شو.او اوس د بكر د قصاص حق مال سره بدل شو.او د بكر حق صرف نصف دې.خو په واړه كي پرخپاره شوې (خور شوې)دې.نو اوس به ښكاره د بكر نصف حق پخپله برخه كي وى.او نصف به دزيد په برخه كي وى. ځكه چې د شيوع (برخه دارئ) هم دا تقاضه ده.

ثُمَّ مَا يَكُوْنُ فِي نَصِيْبِهِ نو كوم نصف چې د هغه (د بكر) په برخه كي راځى سَقَطَ هغه به خو ساقطيږى ضَرُوْرَةَ أَنْ ددې خبرې د اړتيا په وجه، الْمَوْلٰى لَايَسْتَوْجِبُ عَلٰى عَبْدِهِ مَالًا، چې آقا پخپل غلام باندې د مال (د قرض) نه مستحق كيږى وَمَاكَانَ فِي نَصِيْبِ صَاحِبِهِ او كوم نصف چې د هغه د انډيوالان په برخه كي راځى بَقِيَ هغه به پاته پاتې وى وَنِصْفُ النِّصْفِ هُوَالرُّبُعُ او د نصف نيمه څلورمه برخه ده فَلِهٰذَا يُقَالُ:په دې وجه به معاف كونكي ته وئيلې شي ادْفَعْ نِصْفَ نَصِيْبِكَ چې د خپلې برخې نصف غلام وركړى أَوْافْتَدَاهُ بِرُبُعِ الدِّيَةِ يا څلورمې برخې ديت سره د هغه فديه ادا كړى.

تشريح:- نو كوم نصف حق چې د بكر په برخه كي وى.هغه به خو ساقطول لازمى وى.يعنى د هغې ضمان به واجب نه وى.ګنى ددې مطلب به دا وى.چه آقا (بكر) پخپل غلام باندې د خپل دين او پور مستحق شو.حالانكه دا باطل دى.

ف البته دوهم نصف هغه پاتې شو.كوم چې دزيد په برخه كي راځى.په هغې كي دا خرابى نه لازميږى.او كوم نصف چې د زيد په برخه كي راځى.چونكه هغه دلته د نصف نصف دې.او دنصف نصف څلورمه برخه ده.نواوس به زيد ته وئيلې شى.چه دخپلې برخې نصف بكر ته وركړى.نو بكر چونكه د مخكې نه د نصف غلام مالك وو.نو اوس به د پاو كم (يعنى د څلورمه برخه كم ) غلام مالك شى.اوكه زيد غواړى.نو د خپلې برخې د نصف فديه دې ادا كړى.او فديه به څلورمه برخه د ديت وى.په دې وجه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د زيادات روايت مطابق او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د جامع صغير د روايت مطابق به زيد په دوو خبرو كي د يو مكلف وى.يا به خو د خپلې برخې د نصف بكر مالك جوړه وى.يا دې ددې برخې فديه ادا كړى.چونكه دا برخه د غلام ۱/۴ ده.په دې وجه به د ديت هم ۱/۴ يعنى دوې (دوه) نيم زره درهم واجب وى.

د طرفينو رحمهما الله دليل

وَلَهُمَا او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې مَا يَجِبُ مِنَ الْمَالِ چې كوم مال واجبيږى يَكُوْنُ حَقَّ الْمَقْتُوْلِ هغه د مقتول حق وى لِأَنَّهُ بَدَلُ دَمِهِ ځكه چې دا مال د مقتول د وينې بدل دې وَلِهٰذَا تُقْضٰى مِنْهُ دُيُوْنُهُ او په دې وجه دې مال سره د مقتول پور ادا كولاى شي وَتُنَفَّذُ بِهِ وَصَايَاهُ.او په دې مال سره د هغه وصيتونه نافذ كولې شي.

تشریح:- دا د زیادات د روایت مطابق د طرفینو رحمهما الله دلیل دی.او د جامع صغیر د روایت مطابق دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دی.ددی حاصل دا دی.چه په دیت کي کوم مال واجبیږی.هغه په حقیقت کي د مقتول حق وی.ځکه چي دا مال دده د وینې بدل او عوض دی.او دا مال په حقیقت کي د مقتول دی.ددی دلیل دا دی.که په مقتول باندي دچا پور وی.نو ددی مال څخه به پور ادا کولي شی.او که مقتول څه وصیت کړی وی.نو په دی مال کي به دهغه وصیت نافذ کولي شی.بهرحال دا د مقتول مال دی.

| |
|---|
| ثُمَّ الْوَرَثَةُ يَخْلُفُونَهُ فِيهِ عِنْدَ الْفَرَاغِ بیا وارثان په دی مال کي د مقتول خلیفه ( او نائبان) وی.د مال فارغ کیدو په وخت مِنْ حَاجَتِهِ د مقتول د حاجت نه وَالْمَوْلَى لَا يَسْتَوْجِبُ عَلَى عَبْدِهِ دَيْنًا او آقا پخپل غلام باندی د پور نه مستحق کیږی فَلَا تَخْلُفُهُ الْوَرَثَةُ فِيهِ والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب نو وارثان به په دی مال کي د مقتول خلیفه ( او نائب هم) نه وی.والله اعلم. |

تشریح:- البته که مقتول ته ددی حاجت نه وی.نو بیا د خلافت په طور ددی مستحق وارثان دی.نو هرکله چي دا د مقتول حق اومنلي شو.نو اصول دا دی.چه آقا پخپل غلام باندی د پور نه مستحق کیږی.نو دلته مقتول د خپل غلام نه د هیڅ مال حاصلولو مستحق جوړ نشو.او هرکله چي مقتول مستحق جوړ نشو.نو وارثان د هغه خلیفه جوړیږی.او دا مال اخستلي شی.په دی وجه طرفینو رحمهما الله اوفرمائیل.چه په مذکوره صورت کي به قصاص او مال بالکل ساقطیږی.

| |
|---|
| **فصل (في الجناية عليه)** |
| ژباړه:- ( دا) فصل ( غلام باندی د جنایت په بیان کي ) دی. |

**د غلام په قتلولو سره قیمت واجبیږی**

| |
|---|
| وَمَنْ قَتَلَ عَبْدًا خَطَأً او چا چي غلام په خطاء سره قتل کړو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو په قاتل باندی د هغه قیمت واجب دی لَا تُزَادُ عَلَى عَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ چي دا به په لس زره درهم باندی نشی زیاتولي فَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ عَشَرَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ نو که د غلام قیمت لس زره درهم وی. أَوْ أَكْثَرَ یا زیات وی قُضِيَ لَهُ بِعَشَرَةِ آلَافٍ نو هغه لپاره به د لسو زرو درهمو فیصله کولای شی إِلَّا عَشَرَةً بغیر د لسو ( د رهمو) نه وَفِي الْأَمَةِ او په وینځه کي إِذَا زَادَتْ قِيمَتُهَا عَلَى الدِّيَةِ کله چي دهغې قیمت د آزادې ښځې د دیت نه زیات وی خَمْسَةُ آلَافٍ إِلَّا عَشَرَةً د لس کم پنځو زرو فیصله به کولای شی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله [1] او دا د طرفینو رحمهما الله په نیز دی. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ: رحمهما الله او امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله فرمایي تَجِبُ قِيمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ چي د غلام قیمت به واجب وی.که هر څومره وی وَلَوْ غَصَبَ عَبْدًا او که یوکس غلام غصب کړو، قِيمَتُهُ عِشْرُونَ أَلْفًا چي د هغه قیمت زر درهم دی فَهَلَكَ فِي يَدِهِ نو دا غلام د غاصب په قبضه کي هلاك شو، تَجِبُ قِيمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ بِالْإِجْمَاعِ..نو بالاجماع به د هغه قیمت واجب وی.که هر څومره وی |

حل اللغة: ① آلاف: جمع دالف، زر

تشریح:- وړاندې د هغه احکامو بیان وو.په کومو کي چي د غلام د اړخه جنایت اوکړې شی.او اوس په دې فصل کي د هغه صورتونو بیان دې.په کومو کي چي غلام باندې جنایت اوکړې شی.نو وې فرمائیل.که یوکس غلام خطاء سره قتل کړو.نو دلته به د دیت په ځائې ددغه غلام قیمت واجب وی.خو د طرفینو رحمهما الله په نیز شرط دا دی.چه دا قیمت د آزاد د دیت نه زیات نشی.نوکه دده ( مجنی علیه غلام) قیمت بالفرض لس زره یا ددې نه هم زیات وی.نو په دیت کي به لس درهمه کم لس زره ( ۹۹۹۰) درهم واجب وی. صرف،

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين كذا فى الكفاية (۹\۲۸۶) ومجمع الأنهر (۴\۳۹۰۱) وكشف الأستار (۲\۳۰۷) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۶۱)-



تشریح:- او امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله فرمائی.چه د غلام پوره قیمت به واجب وی.که هر څومره وی.او که یوکس یو غلام غصب کړو.چه د هغه قیمت مثلاً شل زره دی.او دا غلام غاصب سره هلاك شو.نو په دې کي به بالاجماع پوره قیمت واجب وی.اوس د هر یو دلیل واورئ.

**د امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله دلیل**

| |
|---|
| لَهُمَا امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله دلیل دا الضَّمَانَ بَدَلُ الْمَالِيَّةِ چي ضمان د مالیت بدل دی وَلِهَذَا يَجِبُ لِلْمَوْلَى په دې وجه آقا لپاره ضمان واجبیږی وَهُوَ لَا يَمْلِكُ الْعَبْدَ إِلَّا مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ حالانکه آقا د مالیت په اعتبار سره د غلام مالك دی. |

تشریح:- دا د امام ابویوسف او امام شافعی رحمهما الله دلیل دی.ددې حاصل دا دی.چه په داسې صورت کي کوم ضمان ملاویږی.دا د مالیت بدل وی.د وینې بدل نه وی.ګنې د وینې او د حیوان ( انسانیت) په معامله کي غلام پشان د آزاد وی.او هرکله چي ضمان د مالیت بدل اوګرځیدو.نو پوره مالیت ملاویدل پکار دی.اوس پاتې شوه دا خبره چي ضمان د مالیت بدل دی.ددې دلیل دا دی چي آقا د خپل غلام مالك دی.نو دا د غلام د سړی کیدو په اعتبار سره نه دی.ګنې غلام د سړی کیدو په اعتبار سره د آزاد پشان دی.بلکه آقا د خپل غلام مالك، د مالیت په اعتبار سره دی.او هم په دې وجه د غلام د قتل په صورت کي آقا ته ضمان ورکولې شی.نو دا ددې خبرې دلیل دی.چه ضمان د مالیت بدل دی.

| |
|---|
| وَلَوْ قَتَلَ الْعَبْدَ الْمَبِيعَ قَبْلَ الْقَبْضِ او که مبیع غلام د قبضې نه مخکې قتل کړې شی يَبْقَى الْعَقْدُ نو عقد به پاته پاتې وی وَبَقَاؤُهُ بِبَقَاءِ الْمَالِيَّةِ او د عقد بقاء د مالیت د بقاء په وجه ده أَصْلًا په اعتبار د اصل سره، أَوْ بَدَلِهِ یا په اعتبار د بدل، |

تشریح:- زید د بکر غلام واخستلو.اوسه پورې زید په غلام باندې قبضه نه وه کړې.چه خالد دا غلام خطاء سره قتل کړو.نو اوس سوال دا دی.چه عقد د بیع پاته دی.او که نه؟ نو څواب ملاو شو.چه عقد بیع پاته دی.که څوك دا اعتراض اوکړی چي عقد بیع څنګه پاته ده.حالانکه بیع نشته؟ نو څواب دا دی چي د عقد د بقاء لپاره د مال اړتیا دی.نو هرکله چي مبیع موجود دی.نو اصل مال پاته پاتې کیږی.او که یوکس مال هلاك کړو.نو د هغې بدل د مبیع قائم مقام وی.نو دلته د غلام بدل یعنی کوم قیمت چي په قاتل باندې واجب وی.د مبیع یعنی د غلام قائم مقام دی.نومالیت پخپل حال قائم دی.نو عقد بیع هم پاته ده.بهرحال دلته د عقد د بقاء نه معلومیږی.چه ضمان د مالیت بدل دی.نو پوره مالیت به په قاتل باندې واجب وی.

| |
|---|
| وَصَارَ كَقَلِيلِ الْقِيمَةِ وَكَالْغَصْبِ او دا د کم قیمت او غصب پشان شو |

تشریح:- بیا دې حضراتو په خپله مدعا باندې دوې (دوه) شواهد پیش کړی دی:① که د مقتول غلام قیمت د دیت نه کم وی.نو آخر هلته ولې پوره قیمت واجبیږی؟ ② اوکه غلام ئې غصب کړې وی.نو هلته هم پوره قیمت واجبیږی.دغه ډول به په دې مسئله کي هم پوره قیمت واجب وی.

**د طرفینو رحمهما الله دوې (دوه) دلیلونه**

| |
|---|
| وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ﴾ او د طرفینو رحمهما الله دلیل د الله تعالی فرمان ﴿وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ﴾ ﴿النساء: ۹۲﴾ دی أَوْجَبَهَا مُطْلَقًا، الله تعالی مطلق دیت واجب کړی دی وَهِيَ اسْمٌ لِلْوَاجِبِ او دیت دهغه واجب نوم دی بِمُقَابَلَةِ الْآدَمِيَّةِ کوم چي د سړی توب په مقابله کي واجب وی. |

تشریح:- حضرات طرفینو رحمهما الله دوې (دوه) دلیلونه پیش کړی دی.① مذکوره آیت چي په دې کي الله تعالی په قتل خطاء کي دیت واجب کړې دی.او د غلام په قتل کي ئې ددې نه علاوه بل څه حکم نه دی فرمائیلې.ددې نه معلومه شوه.چه په قتل خطاء کي مطلقاً هم دا حکم دی.که مقتول آزاد وی.اوکه غلام وی.

| |
|---|
| وَلِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْآدَمِيَّةِ او ځکه چي غلام کي د سړی کیدو معنی ده حَتَّى كَانَ مُكَلَّفًا تردې چي هغه مکلف وی |

وَفِيهِ مَعْنَى الْمَالِيَّةِ،او په هغه کي د ماليت معنى ده.، وَالْآدَمِيَّةُ أَعْلَاهُمَااو سړي کيدل په دې دواړو کي اعلى ده فَيَجِبُ اعْتِبَارُهَا بِإِهْدَارِ الْأَدْنَىنو ادنى ( ماليت) عبث ګرځولو سره د سړى کيدو اعتبار واجب دې عِنْدَ تَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَادواړو په منځ کي د جمع متعذر کيدو په وخت.

تشريح:- دوهم دليل دا دې چې په غلام کي دوې (دوه) حيثيتونه جمع دى.يو د سړى کيدو، او دوهم د ماليت، ړومبى په وجه هغه د مونځ، روژې وغيره مکلف دې.او د دوهم په وجه هغه مملوك وى.او په دې دواړو کي سړي کيدل قوى او مضبوط دى.نو کله چې د سړى کيدو او ماليت اجتماع متعذر شى.نو هلته به د سړى کيدو لحاظ کولې شي.او ددې لحاظ ساتلو په وجه به ديت واجب وى.

خو په آزاد او غلام کي توپير دې.په دې وجه موږ د ديت نه لس درهمه کم کړل. اود دواړو جمع کول متعذر دى.چه د سړى کيدو په لحاظ سره ديت واجب شى.او د ماليت په لحاظ سره قيمت واجب شى.نو صرف د سړى کيدو لحاظ کاوه سره ديت واجب کړې شوې دې.

## د فريق مخالف مستدلاتو جواب

وَضَمَانُ الْغَصْبِ بِمُقَابَلَةِ الْمَالِيَّةِاو د غصب ضمان د ماليت په مقابله کي دې ،إِذِ الْغَصْبُ لَا يَرِدُځکه چې غصب نه لرې کيږى إِلَّا عَلَى الْمَالِمګر په مال باندې،

تشريح:- دلته مرغيناني رحمه الله د مخالف د مستدلاتو خواب ورکوى. پخپل غصب ( غلام) باندې قياس کاوه سره ئې پوره قيمت واجب کړې دې.خو قتل په غصب باندې قياس کول صحيح نه دى.ځکه چې غصب خو د مال وى.په وجه به غصب د ماليت مقابل شمارلي شى.او پوره قيمت به واجب وى.

وَبَقَاءُ الْعَقْدِ يَتْبَعُ الْفَائِدَةَاو د عقد بقاء فائده روستو راولى حَتَّى يَبْقَى بَعْدَ قَتْلِهِ عَمْدًااتردې چې د غلام د عمداً قتلولو نه روسته (هم ) باق پاتې کيږى وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْقِصَاصُ بَدَلًا عَنِ الْمَالِيَّةِاګرچه قصاص د ماليت بدل نشى کيداې فَكَذَلِكَ أَمْرُ الدِّيَةِ، نو هم دغه ډول د ديت کار دې.

تشريح:- خصم چې دا فرمائيلى دى چې عقد د ماليت په وجه پاته پاتې کيږى.دا هم غلطه ده.ځکه که د عقد نه روستو او د قبض نه مخکي مبيع غلام قتل کړې شى.نو عقد به اوس هم پاته پاتې وى.حالانکه دلته قصاص واجب دې.مال نه دې.

معلومه شوه.چه د عقد د بقاء مدار دلته د ماليت په بقاء باندې نه دې.بلکه فائده باندې دې.او هغه فائده دا ده.که عقد پاته پاتې شو.نو مشترى ته ا ختيار دې.که غواړى.د قاتل نه دې قصاص واخلى.او که غواړى.بيع دې فسخ کړى. لنډيز د کلام دا چې د عقد د بقاء مدار فائده باندې دې.د عمداً په صورت کي هم، او د خطاء په صورت کي هم، نو لکه څنګه چې په عمد کي د قصاص باوجود د فائدې په وجه عقد پاته دې.دغه ډول په قتل خطاء کي هم د ديت د وجوب په صورت کي د فائدې په وجه عقد پاته دې.

وَفِي قَلِيلِ الْقِيمَةِ الْوَاجِبُاو په کم قيمت کي چې کوم واجبيږى بِمُقَابَلَةِ الْآدَمِيَّةِهغه د سړى کيدو په مقابله کي دې إِلَّا أَنَّهُ لَا سَمْعَ فِيهِخو په دې کي هيڅ نص نه وو فَقَدَّرْنَاهُ بِقِيمَتِهِ رَأْيًانو دا موږ په رائې سره، قيمت سره اندازه کړو.

تشريح:- خصم چې زيات په کم قيمت باندې قياس کړې دې.دا هم غلط دې.بلکه موږ وايو.چه د کم په صورت کي هم قيمت د ماليت بدل نه دې.بلکه د سړى کيدو بدل دې.خو څومره ديت به واجب وى؟ په دې اړه کي هيڅ نص نه وو.نو موږ مجبوراً خپل قياس ته دخل ورکړو.او ددې د قيمت په اندازه مو ديت واجب کړو.

بِخِلَافِ كَثِيرِ الْقِيمَةِپه خلاف د زيات قيمت لِأَنَّ قِيمَةَ الْحُرِّ مُقَدَّرَةٌ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ، ځکه چې د آزاد قيمت لس زره (درهمو) اندازه دې وَنَقَصْنَا مِنْهَا فِي الْعَبْدِاو موږ په غلام کي ددې نه کم کړو إِظْهَارًا لِانْحِطَاطِ رُتْبَتِهِ،دده د مرتبې د کم والى



ښکاره کيدو دپاره،

تشريح:- اوپاتې شوه دا خبره چې د زيات قيمت کومه طريقه موږ اختيار کړې ده.ددې وجه دا ده.چه د آزاد ديت او قيمت په شريعت کي لس زره درهم دې.خو د غلام مرتبه د آزاد نه کمه ده.په دې وجه ضرورى شوه.چه د آزاد په ديت کي څه کم کړې شى.نو موږ لس کم لس زره درهم کړل.

وَتَعْيِينُ الْعَشَرَةِاو د لسو ( درهمو کمولو) تعين بِأَثَرِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا[1] د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د اثر په وجه دې.

تشريح:- اوکه څوك ووايي چې خاص لس درهمه مو ولې کم کړل؟ نو ددې خواب دا دې.چه د ابن عباس رضي الله عنهما په اثر کي د لسو درهم تعين دې.

## د غلام په لاس کښې نيم قيمت واجب دې

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل (وَفِي يَدِ الْعَبْدِ نِصْفُ) و د غلام په لاس کي د هغه د قيمت نيمه ده قِيمَتِهِ لَا قِيمَتِهِ لَا يُزَادُ عَلَى خَمْسَةِ آلَافٍ.چه په پنځو زرو ( درهمو) به نشي زياتولې إِلَّا خَمْسَةًخو پنځه به کمولې شى لِأَنَّ الْيَدَ مِنَ الْآدَمِيِّ نِصْفُهُځکه چې د سړى لاس د هغه نيم دې فَتُعْتَبَرُ بِكُلِّهِنو دا به په کل ( ټول) باندې قياس کولاى شى، وَيَنْقُصُ هَذَا الْمِقْدَارُاو دا مقدار به کمولې شى إِظْهَارًا لِانْحِطَاطِ رُتْبَتِهِد هغه د مرتبې کموالى ښکاره کاوه دپاره.

حل اللغة: ① انحطاط: کښته کيدل ② اظهار: ښکاره کول

تشريح:- وړاندې تيرشوى دى.چه د سړى په لاس کي نيم ديت واجبيږى.نو د غلام په لاس کي به نيم قيمت واجب وى.اوکه دده نيم قيمت د پنځو زرو درهمو نه زياتيږى.نو د پنځو زرو څخه به پنځه درهمه کم واجب وى.چه ددې دليل په مخکښې مسئله کي تير شوې دې.يعنى د کل په صورت کي چې کومه طريقه اختيار کړې شوې ده.د نصف په صورت کي به هم هغه طريقه اختيارولې شى.

## په غلام کښې پوره قيمت کله واجبيږى؟

وَكُلُّ مَا يُقَدَّرُ مِنْ دِيَةِ الْحُرِّاو هرهغه جرم په کوم کي چې د آزاد پوره ديت اندازه وى فَهُوَ مُقَدَّرٌ مِنْ قِيمَةِ الْعَبْدِنو هلته به د غلام پوره قيمت اندازه وى لِأَنَّ الْقِيمَةَ فِي الْعَبْدِ كَالدِّيَةِ فِي الْحُرِّځکه چې د غلام قيمت د آزاد ديت پشان دې إِذْ هُوَ بَدَلُ الدَّمِځکه چې دا ( ديت او قيمت دواړه) د وينې بدل دې عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ لکه څنګه چې موږ ثابت کړى دى.

تشريح:- يعنى کوم ځائې چې د آزاد پوره ديت واجبيږى.هغه صورت کي به د غلام پوره قيمت واجب وى.او کوم ځائې چې د آزاد نصف ديت واجبيږى.هلته به غلام کي نصف ديت واجب وى.ځکه چې دا دواړه ديتونه دى.او دواړه د وينې بدل دى.د وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ ) نه دا خبره ښکاره ده.نوکه يو آزاد ته ئې داسې زخم اولګولو.يعنى موضحه چې په هغې کي د ديت ١١٢٠ برخه واجب ده.هلته به غلام کي د هغه د قيمت ١١٢٠ واجب وى.او وړاندې تير شوى دى.چه ضمان د غصب ، د ماليت ضمان دې.

وَإِنْ غَصَبَ أَمَةًاوکه يوکس يوه وينځه غصب کړله قِيمَتُهَا عِشْرُونَ أَلْفًا چې دهغې قيمت شل زره ( درهمه) دې فَمَاتَتْ فِي يَدِهِنو هغه د غاصب په قبضه کي مړه شوه فَعَلَيْهِ تَمَامُ قِيمَتِهَانو په غاصب به د هغې پوره قيمت واجب وى لِمَا بَيَّنَّاد هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې آن ضَمَانَ الْغَصْبِ ضَمَانُ الْمَالِيَّةِ چې ضمن د غصب ضمان د ماليت دې

[1] غربه الزيلعى رحمه الله عن ابن عباس رضي الله عنهما ثم نقل عن النخعى والشعبى رحمه الله أنهما قالا لايبلغ بدية العبد دية الحروعزاه إلى مصنف ابن ابى شيبة(نصب:١٨١١٥)_

تشریح:- او که د یوکس داسې وینځه ئې غصب کړله چه د هغې قیمت شل زره (درهمه) دي او دغه وینځه د غاصب سره مړه شوه نو په غاصب به پوره قیمت واجب وي.

**د لاس کټ کړي شوي غلام آزادولو نه روسته مړکیدلو باندي د قصاص حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ قَطَعَ يَدَ عَبْدٍ او چا چې کټ کړو د یو غلام لاس، فَأَعْتَقَهُ الْمَوْلَى نو هغه آقا آزاد کړو ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذَلِكَ بیا دا غلام ددې لاس کټ کاوه په وجه مړ شو فَإِنْ كَانَ لَهُ وَرَثَةٌ غَيْرُ الْمَوْلَى نو که د آقا نه علاوه دهغه وارثان وي فَلَا قِصَاصَ فِيهِ نو په دې کي قصاص نشته. وَإِلَّا اقْتُصَّ مِنْهُ کني د هغه څخه به قصاص اخستلي شي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (۱) او دا حکم د شیخینو رحمهما الله په نیز وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله او امام محمد رحمه الله اوفرمائیل لَا قِصَاصَ فِي ذَلِكَ چې په دې کي قصاص نشته وَعَلَى الْقَاطِعِ أَرْشُ الْيَدِ وَمَا نَقَصَهُ ذَلِكَ إِلَى أَنْ يَعْتِقَهُ او په کټ کونکی باندې د لاس ارش (تاوان) او د آزادولو پورې چې په دې کي کوم نقصان شوي دي هغه واجب دي وَيَبْطُلُ الْفَضْلُ او زیاتوالي باطل دي.

تشریح:- صورت د مسئلې دا دې چه زید د خالد غلام دې بکر د زید لاس کټ کړو او د لاس کټ کاوه نه روسته خالد دا زید آزاد کړو او بیا د آزادئ نه روستو ددې زخم خوریدو په وجه زید مړ شو.
نوکه د زید مرحوم لپاره د آقا نه علاوه بل څوك وارث نشته نه څوك د اصحاب الفرائضو څخې شته او نه د نسبي عصبیاتو څخې څوك شته صرف سببي عصبه (آزادونکي آقا) موجود دي. نو په دې صورت کي به بالاتفاق قصاص واجب نه وي بلکه د لاس ارش (تاوان) او د آزادئ نه مخکي د لاس کټ کاوه په وجه چې کوم نقصان شوي دي هغه به واجب وي. اوکه د آقا نه علاوه بل څوك وارث هم وي نو په دې صورت کي اختلاف دي. د شیخینو رحمهما الله په نیز به په دې صورت کي قصاص واجب وي. اود امام محمد رحمه الله په نیز به دلته هم قصاص نه وي بلکه هم دغه مذکوره ارش (تاوان) او نقصان به واجب وي.

**د قصاص نه واجیدو وجه**

وَإِنَّمَا لَمْ يَجِبِ الْقِصَاصُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او په ړومبی صورت کي به قصاص واجب نه وي لِاشْتِبَاهِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ د امله د شبهې نه چې حق چا لپاره دي (یعنی حقدار څوك دي؟) لِأَنَّ الْقِصَاصَ يَجِبُ عِنْدَ الْمَوْتِ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْجُرْحِ خکه چې قصاص د مرګ په وخت، د زخم وخت ارخ ته نسبت کاوه سره واجبیږي فَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْجُرْحِ يَكُونُ الْحَقُّ لِلْمَوْلَى د زخم د حالت په اعتبار سره حق د آقا وي وَعَلَى اعْتِبَارِ الْحَالَةِ الثَّانِيَةِ يَكُونُ لِلْوَرَثَةِ او د دوهم حالت په اعتبار سره د وارثانو حق وي فَتَحَقَّقَ الِاشْتِبَاهُ نو شبه ثابت شوه وَتَعَذَّرَ الِاسْتِيفَاءُ او د قصاص وصولول متعذر شو

حل اللغة* ① الجرح: زخم ② استیفاء: وصولول ﴾

تشریح:- خکه چې ،،من له الحق،، (د چا لپاره چې حق دي هغه) مشتبه دي. د قصاص وصولولو حق چا ته دي که د زخم د وخت اعتبار اوکړي شي نو حق آقا ته دي او که د مرګ د وخت لحاظ اوکړي شي نو حق وارث ته دي. کله چې په ،،من له الحق،، کي شبه پیدا شوه نو د شبهې په وجه قصاص ساقط شو.

فَلَا يَجِبُ عَلَى وَجْهٍ نو په دې طریقه واجب نشوه يُسْتَوْفَى چې دا وصول کړې شي وَفِيهِ الْكَلَامُ او په دې وجوب کي بحث دي.

تشریح:- اګرچه د قاطع فعل پخپله دلته موجب د قصاص دي په دې وجه د قصاص نفس وجوب ثابت دي البته د اشتباه په وجه ددې ادا کول متعذر شو او په حسامی کي کثرت سره دا بحث موجود دي چه خانله نفس وجوب مفید نه وي بلکه کوم خائې چې د ادا مقصد حاصل نشي هلته نفس وجوب هم د نشت پشان (کالعدم) شمارلي

(۱) القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في الدر المنتقى (۳۹۱۱۴) وملتقى (۳۹۰۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۳۶۲۱۲)



شي. دغه ډول دلته هم شوی دی.
وَفِيهِ الْكَلَامُ.... او زموږ کلام (او بحث) د ادا د تعذر متعلق دي. نفس وجوب سره نه دي.

**د آقا او وارث اجتماع سره اشتباه زائل کیږي او که نه؟**

وَاجْتِمَاعُهُمَا لَا يُزِيلُ الِاشْتِبَاهَ او د دواړه جمع کیدل اشتباه نه زائل کوي. لِأَنَّ الْمِلْكَيْنِ فِي الْحَالَيْنِ خکه چې دواړه ملک دوو حالتونو کي دي

تشریح:- که څوك دا اعتراض اوکړي چې په ،، من له الحق،، کي اشتباه ده. خو دا خبره یقیني ده چه حق په دوي دواړو کي د یوکس دي. یا د آقا یا د وارث، نوکه آقا او وارث دواړه په یو خائې د قصاص مطالبه اوکړي بیا خو اشتباه زائل شوه. نو اوس قصاص واجبیدل پکار دي؟ نود دې خواب دا دي چې دا نه منو خکه چې ددوي دواړو د ملکیت وخت جلا جلا دي. نو مخکني اشتباه پخپل حال قائم ده.

بِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمُوصَى بِخِدْمَتِهِ لِرَجُلٍ په خلاف د هغه غلام چې د هغه د خدمت وصیت یو سړي لپاره شوې وي. وَبِرَقَبَتِهِ لِآخَرَ او (په خلاف) د هغه رقبې إِذَا قُتِلَ کله چې دا قتل کړې شي، لِأَنَّ مَا لِكُلٍّ مِنْهُمَا مِنَ الْحَقِّ ثَابِتٌ خکه چې دواړو کي هر یو ته کوم حق حاصل دي مِنْ وَقْتِ الْجُرْحِ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ هغه د زخم د وخت نه د مرګ وخته پورې دي فَإِذَا اجْتَمَعَا نو هرکله چې دا دواړه جمع شو زَالَ الِاشْتِبَاهُ نو اشتباه زائل شوه.

تشریح:- که څوك سوال اوکړي که زید وصیت اوکړو چه زما دا غلام به د خالد خدمت کوي. او مالك به دده بکر وي یعنی ملکیت به د بکر وي او خدمت به د خالد کوي. خیر بیا دا غلام د مخکي پشان عمداً چا قتل کړو نو ،،من له الحق،، مشتبه دي یا خالد دي او یا بکر دي او که دوی دواړه اتفاق اوکړي اوس هم اشتباه ده. نو دلته هم د اجتماع په وخت قصاص نه کیدل پکار دي. حالانکه قصاص واجب دي؟ نو ددې خواب دا دي چې دلته د اجتماع په وخت خکه قصاص واجب دي چه د دواړو حق په یو وخت د زخم د وخت نه د مرګ وخته پورې برابر ثابت دي او په مقیس کي د دواړو ملك جلا جلا وختونو کي دي... فلا يصح القياس،،

**د امام محمد رحمه الله ړومبي دليل**

وَلِمُحَمَّدٍ فِي الْخِلَافِيَّةِ په اختلافي مسئله کي د امام محمد رحمه الله دلیل دا دي وَهُوَ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْعَبْدِ وَرَثَةٌ سِوَى الْمَوْلَى (کله چې غلام لپاره د آقا نه علاوه بل څوك وارث وي) أَنَّ سَبَبَ الْوِلَايَةِ قَدِ اخْتَلَفَ چې د ولایت سبب مختلف دي. لِأَنَّهُ الْمِلْكُ عَلَى اعْتِبَارِ إِحْدَى الْحَالَتَيْنِ خکه چې سبب د ولایت د ړومبی حالت په اعتبار سره ملك دي وَالْوِرَاثَةُ بِالْوَلَاءِ عَلَى اعْتِبَارِ الْأُخْرَى او د دوهم حالت په اعتبار سره د ولاء په وجه وراثت دي فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ اخْتِلَافِ الْمُسْتَحِقِّ نو دا به د مستحق د اختلاف په درجه کي راکوخولې شي، فِيمَا يُحْتَاطُ فِيهِ په هغه امورو کي کومو کي چې احتیاط کولې شي. یعنی کوم چې په شبهاتو سره ساقطیږي

تشریح:- کله چې د غلام څوك وارث د آقا نه علاوه هیڅ څوك نه وي نو په دې کي د شیخینو رحمهما الله په نیز قصاص واجب دي او د امام محمد رحمه الله په نیز (قصاص واجب) نه دي. نو په دې صورت کي د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې چه بالاتفاق د ،، من له الحق،، د مشتبه کیدو په وجه قصاص ساقطیږي،،، کمامر،، او د سبب اختلاف هم د مستحق د اختلاف په درجه کي دي او دلته اختلاف د سبب موجود دي. خکه چې مستحق اګرچه آقا دي خو د زخم د وخت په اعتبار سره دده استحقاق په اعتبار د ملکیت دي او د مرګ د وخت په لحاظ سره دده استحقاق د ولاء په طریقه باندې دي او په قابل احتیاط کارونو کي د سبب اختلاف د مستحق د اختلاف په درجه کي دي نو دلته به هم قصاص واجب نه وي.

كَمَا إِذَا قَالَ لِآخَرَ لکه کله چې دوهم کس ته ووایي بِعْتَنِي هَذِهِ الْجَارِيَةَ بِكَذَا چې تا دا وینځه په ما باندې په دومره (رقم) راخرڅه کړې ده فَقَالَ الْمَوْلَى زَوَّجْتُهَا مِنْكَ نو آقا اوونیل چه ما خو تا سره ددې نکاح کړې ده لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا (نو

د سبب د اختلاف په وجه) دده لپاره هغې سره وطی حلال نه ده.

**تشریح:-** لد نو دا داسې شو لکه څنګه چې زید خالد ته وائی.چه تا په ما باندې خپله وینځه په سل روپۍ راخرڅه کړې ده.او خالد وائی.چه نا ما خو ددې نکاح تا سره کړې ده.نو د حلت سبب مختلف دې.نو د سبب د اختلاف په وجه دې ته د مستحق د اختلاف درجه ورکړې شوه.او حکم دا ورکړې شو.چه زید لپاره دې وینځې سره وطی حلال نه ده.بهرحال ددې تفصیل نه معلومه شوه.چه د سبب اختلاف د مستحق د اختلاف په درجه کې دې.او قصاص هم د هغه څیزونو څخې دې.په کومو کې چې احتیاط کولې شی.نو قصاص به واجب نه وی.

## د امام محمد رحمه الله دوهم دلیل

**وَلِأَنَّ الْإِعْتَاقَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ وَبِانْقِطَاعِهَا** او څکه چې آزادی خوریدل (متعدی کیدل) ختمونکې دې **يَبْقَى الْجُرْحُ بِلَا سِرَايَةٍ وَالسِّرَايَةُ بِلَا قَطْعٍ** او د خوریدو منقطع کیدو په وجه زخم د خوریدو نه بغیر او خوریدل د کټ کاوه نه بغیر پاته پاتې شی **فَيَمْتَنِعُ الْقِصَاصُ** نو قصاص ممتنع شو.

**حل اللغة:** ① **السراية:** متعدی کیدل ② **قطع:** کټ کول

**تشریح:-** دا هم د امام محمد رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه اصول کلی دا دې.چه آزادئ سره خوریدل باطلیږی.څکه چې زخم غلام ته لګیدلې دې.او مړ کیدونکې آزاد دې.نو د جهت اختلاف د ذات اختلاف پشان شو.لکه که د یو کس غلام ته د لاس کټ کاوه نه علاوه څه زخم لګیدلې وی.بیا آقا هغه آزاد کړې وی.او بیا په زخم خوریدو سره هغه مړ شی.نو دلته لاس پرې کول د خوریدو نه بغیر دی.او خوریدل د لاس کټ کاوه نه بغیر دی.نو قصاص ممتنع دې.نو دلته نه قصاص واجب دې.او نه قمیت، دغه ډول دلته کې هم کیدل پکار دی.

## د شیخینو رحمهما الله دلیل

**وَلَهُمَا** او د شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې. **أَنَّا تَيَقَّنَّا بِثُبُوتِ الْوِلَايَةِ لِلْمَوْلَى** چې موږ ته آقا لپاره د ولایت د ثبوت یقین دې **فَيَسْتَوْفِيهِ** نو آقا به قصاص اخلی **وَهَذَا لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ مَعْلُومٌ** او دا څکه چې مقضی له معلوم دې **وَالْحُكْمُ مُتَّحِدٌ** او حکم متحد دې **فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِالْاِسْتِيفَاءِ** نو د قصاص وصولولو قائل کیدل واجب دی **بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ** په خلاف د ړومبی فصل، **لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ مَجْهُولٌ**،څکه چې مقضی له مجهول دې.

**تشریح:-** دا د شیخینو رحمهما الله دلیل دې.په دې کې هیڅ شک او شبه نشته.بلکه یقین دې.چه د آقا ولایت په دواړو صورتونو کې ثابت دې.یعنی مقضی له معلوم دې (چې آقا دې) او حکم د قصاص متحد دې. نو مجبوراً د قصاص او ددې د وصولولو د وجوب قائل کیدل لازمیږی.او پاتې شو ړومبې صورت نو په دې کې مقضی له مجهول دې.نو هغه به په دې باندې قیاس کول صحیح نه وی.

**وَلَا مُعْتَبَرَ بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ هَاهُنَا** او دلته به د سبب د اختلاف هیڅ اعتبار نه **لِأَنَّ الْحُكْمَ لَا يَخْتَلِفُ** څکه چې حکم مختلف نه دې **بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ** په خلاف ددې مسئلې، **لِأَنَّ مِلْكَ الْيَمِينِ يُغَايِرُ مِلْكَ النِّكَاحِ حُكْمًا** څکه چې ملك یمین (د غلام مالك کیدل) حکماً د نکاح د ملك مغایر دې

**تشریح:-** امام محمد رحمه الله! چې کومه دا خبره کړې ده چې اختلاف د سبب د مستحق د اختلاف په درجه کې دې.دا هیڅ اصول نه دې. بلکه کوم ځائې چې د سبب په اختلاف سره حکم کې اختلاف نه راځی.هلته اختلاف د سبب بې کاره او غیر معتبر دې.

او پاتې شوه هغه مسئله کومه چې امام محمد رحمه الله پیش کړې ده.نو هلته په حکم کې د اختلاف په وجه اختلاف د سبب معتبر شوې دې.څکه چې ملك د نکاح او ملك یمین کې مغایرت (فرق) دې.څکه چې ړومبی کې حلت مقصود دې.او په دوهم کې ملکیت مقصود دې.او حلت ضمنی او تابع دې. بهرحال په دې جزئیه او په دې اصول سره د امام محمد رحمه الله استدلال صحیح نه دې.



## د شیخینو رحمهما الله د اړخه د امام محمد رحمه الله د مستدلاتو جواب

**وَالْإِعْتَاقُ لَا يَقْطَعُ السِّرَايَةَ لِذَاتِهِ** او آزادی پخپله (اصل کې) خوریدل نه ختمه وی **بَلْ لِاشْتِبَاهِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ** بلکه چا لپاره چې حق دې.د هغه د اشتباه په وجه (آزادی د خوریدو ختمونکې دې، **وَذَلِكَ فِي الْخَطَإِ** او دا (اشتباه) په خطاء کې وی **دُونَ الْعَمْدِ** په عمد کې نه وی.

**تشریح:-** د شیخینو رحمهما الله د اړخه د امام محمد رحمه الله د مستدلاتو خواب ورکړې کیږی.دا د هغوی د هغه استدلال خواب دې چه هغوی (امام محمد رحمه الله) فرمائیلی وو.چه آزادی د خوریدو (متعدی کیدو) کټ کونکې دې.نو خواب نې ورکړو.او آزادی د خوریدو ختمونکې دې.خو په قتل خطاء کې دې.په عمد کې نه دې.او زموږ بحث په عمد کې پیل ده.په قتل خطاء کې نه ده.

**لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا يَصْلُحُ مَالِكًا لِلْمَالِ** څکه چې غلام د مال د مالك جوړیدو صلاحیت نه لری **فَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْجُرْحِ يَكُونُ الْحَقُّ لِلْمَوْلَى** نو د زخم د حالت اعتبار کاوه کې د آقا حق وی **وَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْمَوْتِ** او د مرګ د حالت اعتبار کاوه کې د مړی حق وی، **يَكُونُ لِلْمَيِّتِ لِحُرِّيَّتِهِ** د هغه د آزادیدو په وجه.

**تشریح:-** اود دې خبرې دلیل چې آزادی په خطاء کې د خوریدو ختمونکې دې په عمد کې نه دې؟ دا دې چې آزادی کوم ځائې د خوریدو ختمونکې ګرځولې شوې دې.دا څکه چې د ..من له الحق.. اشتباه لازم نشی.او دا صرف د خطاء لپاره خاص دې.

البته د خطاء په صورت کې دا اشتباه کیدائې شوه.چه د ړومبی حالت په اعتبار کاوه سره به د ارش مالك آقا وی.څکه چې هغه وخت دې غلام وو.چه دا د مال مالك جوړیدو صلاحیت نه لری.او په دوهم صورت کې د ارش مستحق پخپله غلام وی.څکه چې دې دغه وخت آزاد دې.

**فَيُقْضَى مِنْهُ دُيُونُهُ** نو په دې سره به د هغه پور ادا کولای شی **وَتُنَفَّذُ وَصَايَاهُ** او د هغه وصیت نافذ کولای شی **فَجَاءَ الْاِشْتِبَاهُ** نو اشتباه پیدا شوه.

**تشریح:-** نو دده دا مال به دده په وارثانو کې تقسیمیږی.او په دې مال سره به دده پور ادا کولې شی.او په دې مال کې به دده وصیتونه نافذ کیږی.بهرحال اشتباه په خطاء کې وه. په دې وجه خطاء کې آزادی د خوریدو ختمونکې ګرځولې شوې دې.عمد کې نه دې.

**أَمَّا الْعَمْدُ** بهرحال عمد **فَمُوجِبُهُ الْقِصَاصُ** نو ددې موجب قصاص دې **وَالْعَبْدُ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِيهِ** او غلام په قصاص کې اصل حریت باندې پاته دې **وَعَلَى اعْتِبَارِ أَنْ يَكُونَ الْحَقُّ لَهُ** او په دې اعتبار سره هم چې حق د غلام د حق دې

**تشریح:-** او په عمد کې نشته.څکه چې موجب د عمد خو قصاص دې.چه د ړومبی حالت په اعتبار سره دا د آقا حق اوګرځولې شی.یا د آخر وخت په اعتبار سره د غلام حق اوګرځولې شی.په دواړو صورتونو کې به د قصاص وصولونکې آقا وی.په ړومبی حالت کې اصالتاً او په دوهم کې خلافتاً، بهرحال په ..من له الحق.. کې هیڅ اشتباه نشته.په دې وجه به قصاص واجب وی.

**فَالْمَوْلَى هُوَ الَّذِي يَتَوَلَّاهُ** نو آقا (د خلافت په طریقه) دده متولی جوړیږی. **إِذْ لَا وَارِثَ لَهُ سِوَاهُ** څکه چې د آقا نه علاوه د هغه هیڅ څوك وارث نشته **فَلَا اشْتِبَاهَ فِيمَنْ لَهُ الْحَقُّ** نو په ..من له الحق.. کې هیڅ اشتباه نشته.

**تشریح:-** مسئله ښکاره ده وضاحت ته اړتیا نشته

## د امام محمد رحمه الله مسلك

**وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ فِي الْفَصْلَيْنِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** رحمه الله او کله چې د امام محمد رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کې قصاص ممتنع دې **يَجِبُ أَرْشُ الْيَدِ، وَمَا نَقَصَهُ مِنْ وَقْتِ الْجُرْحِ إِلَى وَقْتِ الْإِعْتَاقِ** نو د لاس ارش او کوم نقصان چې شوې دې.د زخم د وخت

نه د آزادۍ وخته پورې، هغه به واجب وي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څنګه چې موږ ذکر کړې دی لِأَنَّهُ حَصَلَ عَلَى مِلْكِهِ څکه
چې نقصان د آقا په ملك باندې حاصل شوې دې وَيَبْطُلُ الْفَضْلُ او زیاتوالې به باطلیږي وَعِنْدَهُمَا الْجَوَابُ فِي الْفَصْلِ
الْأَوَّلِ او د شیخینو رحمهما الله په نیز رومبی صورت کې هم هغه ځواب دې، كَالْجَوَابِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ فِي الثَّانِي. کوم چې په
دوهم صورت کې د امام محمد رحمه الله په نیز دې.

حل اللغة: ① الفضل: زیاتې

تشریح:- ددې تفصیل په دې مسئله کې پیل کې تیر شوې دې.

**په دوو غلامانو کښې د یو غیر معین ازادولو نه روسته دواړو ته په زخم لګولو سره د ارش مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ قَالَ لِعَبْدَيْهِ) و چا چې خپلو دوو غلامانو ته اوونیل أَحَدُكُمَا حُرٌّ چې په
تاسو کې یو آزاد دې ثُمَّ شُجَّا بیا ددوی دواړو سرونه زخمی کړې شو فَأُوقِعَ الْعِتْقُ عَلَى أَحَدِهِمَا نو هغه په دوی
کې یو باندې آزادی واقع کړله فَأَرْشُهُمَا لِلْمَوْلَى نو ددوی دواړو ارش (تاوان) به آقا لپاره وي. لِأَنَّ الْعِتْقَ غَيْرُ نَازِلٍ فِي
الْمُعَيَّنِ څکه چې آزادی معین کې نه ده وارد شوې وَالشَّجَّةُ تُصَادِفُ الْمُعَيَّنَ او زخم معین سره ملاو شوې دې فَبَقِيَا
مَمْلُوكَيْنِ فِي حَقِّ الشَّجَّةِ نو د سر د زخم په حق کې دا دواړه مملوك پاته پاتې دي.

تشریح:- صورت د مسئلې دادې. چه د زید دوې (دوه) غلامان دی. ساجد او خالد، هغه دوی دواړو ته وائی...أَحَدُكُمَا
حر... تاسو کې یو آزاد دې. او اوسه پورې هغه دا ښکاره کړې نه وه. چه دده مراد کوم یو دې. چه بکر ددوی دواړو
سرونه زخمی کړل. چه په دې کې ارش واجب دی. اوس سوال دا دې. چه دا ارش به څوك اخلی. نو وې فرمائیل. چه د
دواړو غلامانو ارش (تاوان) به آقا لپاره وی. څکه چې دوی دواړو کې یو اګرچه آزاد شوې دې. او د هغه ارش ده ته
ملاویدل پکار دی. خو آزادی مبهم (پټه) ده. او د سر زخم معین (ښکاره) دې. نو د زخم د معین کیدو په وجه د زخم
په حق کې دوی دواړه هم اوس پوره مملوك اوګرځولی شو. او هر کله چې پوره مملوك ثابت شو. نو ددوی دواړ ارش
به آقا ته ملاویږي. خو دا حکم صرف د سر د زخم په صورت کې دې. ګنی د قتل په صورت کې حکم دا دې.

**د دوو غلامانو قتلولو مسئله**

وَلَوْ قَتَلَهُمَا رَجُلٌ او که قتل کړې وی. دا دواړه غلامان یو سړی تَجِبُ دِيَةُ حُرٍّ وَقِيمَةُ عَبْدٍ نو د یو آزاد ارش او د یو غلام
قیمت به واجب وی وَالْفَرْقُ او وجه د توپیر دا ده أَنَّ الْبَيَانَ إِنْشَاءٌ مِنْ وَجْهٍ چې د آقا بیان من وجه انشاء، ده وَإِظْهَارٌ
مِنْ وَجْهٍ او من وجه اظهار دې عَلَى مَا عُرِفَ، د هغه تفصیل مطابق کوم چې معلوم شوې دې وَبَعْدَ الشَّجَّةِ بَقِيَ مَحَلًّا
لِلْبَيَانِ او د زخم نه روستو دا د بیان محل دې فَاعْتُبِرَ إِنْشَاءً نو بیان انشاء اعتبار کړې شو فِي حَقِّهِمَا د دوی دواړو په
حق کې، وَبَعْدَ الْمَوْتِ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلْبَيَانِ او د مرګ نه روستو د بیان محل پاته نه پاتې کیږي فَاعْتُبِرْنَاهُ إِظْهَارًا مَحْضًا نو موږ
بیان محض اظهار اعتبار کړې دې، وَأَحَدُهُمَا او په دوی کې یو په یقین سره ازاد دې حُرٌّ بِيَقِينٍ فَتَجِبُ قِيمَةُ عَبْدٍ وَدِيَةُ حُرٍّ نو
د یو غلام قیمت او د یو آزاد ارش به واجب وی.

تشریح:- که دوی دواړو غلامانو ته چا د سر زخمونه اولګول. نو د دواړو غلامانو ارش آقا لپاره دې. یعنی دواړه
غلامان شمارلې شوی دی. او که یو سړی دوی دواړه قتل کړې وی. نو دلته به هر یو غلام نه ګڼړلې کیږي. بلکه یو
به غلام او دوهم به آزاد ګڼړلې کیږي. او د یو ارش او د یو به قیمت واجب وی. ولې؟ څکه چې آقا ددې وئیلو نه
روسته (چې تاسو کې یو آزاد دې) کله چې دوی دواړو کې یو متعین کوی. نو د هغه دا بیان من وجه انشاء د
آزادۍ ده. او من وجه اظهار د آزادۍ دی. نو موږ د دواړو لحاظ اوکړو. او موږ اوونیل. چه د سر د زخم نه روستو
بیان انشاء دې. ګویا چې ددې نه مخکې آزادی نشته. او د قتل نه روستو بیان اظهار دې. یعنی ددې نه روستو
آزادی حاصل شوې ده. او ددې وجه داده. چه د زخم نه روستو غلام د آزادۍ محل دې. او د مرګ نه روستونه دې.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې صورت ذَا قَتَلَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا رَجُلٌ کله چې په دوی دواړو کې هر یو جلا جلا سړی قتل



کړې دی أَحَدُهُمَا حيث قيمة تجب الْمَمْلُوكَيْنِ، په دې حیثیت سره چې د دواړو غلامانو قیمت به واجب وي لِأَنَّا لَمْ نَتَيَقَّنْ بِقَتْلِ
كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُرًّا څکه چې موږ ته په دوی دواړو کې د یو کس هم آزادیدو سره د قتل یقین نشته وَكُلٌّ مِنْهُمَا
يُنْكِرُ ذَلِكَ او په دوی (قاتلانو) کې هر یو ددې (د آزادۍ) منکر دې.

تشریح:- خو که قاتل د دواړو دوې (دوه) نفر وی. نو بیا به دواړه پوره غلامان ګڼړلې شی. او د دواړو قیمت به واجب
وی. څکه چې دلته د هیڅ چا اړه کې یقین نه دې شوې. چه دا آزاد دې. او هر قاتل خپل مقتول ته غلام وائی. او د
هغه د آزادۍ منکر دې. نو مجبوراً دواړه به غلام ګرځولې شی. او قیمت به واجبولې شی.

**د سر زخم لګولو او د قتل په منځ کښې د فرق د وجې دوهم دلیل**

وَلِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى ثُبُوتَ الْعِتْقِ فِي الْمَجْهُولِ او څکه چې قیاس په مجهول کې د آزادۍ د ثبوت نه انکار کوی لِأَنَّهُ لَا
يُفِيدُ فَائِدَةً څکه چې دا آزادی مفید نه ده وَإِنَّمَا صَحَّحْنَاهُ او موږ عتق صحیح ګرځولې دې، ضَرُورَةَ صِحَّةِ التَّصَرُّفِ د تصرف د
صحت اړتیا په وجه وَأَهْلِيَّتِهِ وَوِلَايَةِ النَّقْلِ مِنَ الْمَجْهُولِ إِلَى الْمَعْلُومِ او موږ آقا لپاره مجهول نه معلوم اړخ ته د منتقل
کیدو ولایت ثابت کړې دې فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الضَّرُورَةِ نو اړتیا به د اړتیا په اندازه وی وَهِيَ فِي النَّفْسِ او اړتیا په نفس کې
دې دُونَ الْأَطْرَافِ په اندامونو کې نه دې فَبَقِيَا مَمْلُوكَيْنِ فِي حَقِّهَا نو د اندامونو په حق کې هغه مملوك پاته پاتې شو

تشریح:- ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله د زخم په او قتل په منځ کې د توپیر دوهم دلیل بیانوي. ددې حاصل دا
دې. چه د قیاس تقاضه دا ده. چه په مجهول کې عتق بالکل ثابت نه وی. څکه چې مجهول کې د آزادۍ ثبوت سره
د آزادۍ هیڅ فائده نه ثابتیږي. بیا چې کله موږ مبهم آزادی صحیح اوګرځوله. نو دا موږ د اړتیا په بناء سره کړې
ده. او د اړتیا په وجه موږ د آزادۍ اثبات کړې دې. او آقا ته مو ددې بیان اجازت ورکړې دې. چه مجهول معلوم سره
بدل شی. او دا اصول پخپل ځائې منلی شوې دې. چه،، الضرورة تتقدر بقدر الضرورة،، نو اوس به دا کتلې شی. چه اړتیا
چرته دې. او چرته نه دې. نو موږ ته معلومه شوه. چې اړتیا صرف په نفس کې دې. اندامونو کې نه دې. څکه چې
محل د آزادۍ قصداً نفس دې. او په اندامونو کې د آزادۍ حلت تابع کیدو سره کیږي. په دې وجه هغه د اندامونو په
حق کې مملوك شمارلې شوې دې.

**د غلام د دواړو سترګولو زخمی کولو مسئله**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ فَقَأَ عَيْنَيْ عَبْدٍ) و چا چې د غلام دواړه سترګې زخمی کړلې فَإِنْ شَاءَ الْمَوْلَى
دَفَعَ عَبْدَهُ نو که غواړي. خپل غلام دې ورکړي وَأَخَذَ قِيمَتَهُ و دده قیمت دې واخلی. وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهُ، او که غواړي. نو دا
دې خان سره اوساتی وَلَا شَيْءَ لَهُ مِنَ النُّقْصَانِ و دده لپاره په نقصان کې هیڅ نشته عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام
ابوحنیفه رحمه الله په نیز،

حل اللغة: ① فقا، د سترګې زخم

تشریح:- زید دخالد دغلام (چه بکر دې) دواړه سترګې زخمی کړلې. او وړاندې تیر شوی دی. چه په یوه سترګه نصف
ارش دې. او په دواړو سترګوکې پوره ارش واجبیږي. او یو څو صفحې مخکې دا هم تیر شوی دی. چه کوم ځائې آزاد
کې پوره ارش واجبیږي. هلته غلام کې پوره قیمت واجبیږي. نو اوس په ذکر شوی صورت کې کله چې د بکر دواړه
سترګې زخمی کړې شوې. نو د بکر پوره قیمت به په زید باندې واجب وی. خو کله چې خالد پوره قیمت د زید نه
وصولوی. نو غلام (بکر) به زید ته ورکوی. او که خالد غلام زید ته نه ورکوی. نو اوس به خالد ته د نقصان هیڅ
ضمان نه ملاویږي. دا د امام ابوحنیفه رحمه الله فرمان دی.

وَقَالَا: و صاحبین رحمهما الله فرمایي أَنْ شَاءَ أَمْسَكَ الْعَبْدَ که غواړي. غلام دې اوساتی وَأَخَذَ مَا نَقَصَهُ، و دده نقصان دې
واخلی وَإِنْ شَاءَ دَفَعَ الْعَبْدَ وکه غواړي. غلام دې ورکړي وَأَخَذَ قِيمَتَهُ و دده قیمت دې واخلی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله او
امام شافعی رحمه الله فرمایي يُضَمِّنُهُ كُلَّ الْقِيمَةِ آقا دې د هغه نه د پوره قیمت ضمان واخلی وَيُمْسِكُ الْجُثَّةَ او غلام جوثه

(بدن﴾ دي خان سره اوساتي لِأَنَّهُ يَجْعَلُ الضَّمَانَ مُقَابِلًا بِالْفَائِتِ خکه چي امام شافعي رحمه الله ضمان د فوت شوی مقابل
ګرخولي دي فَيَبْقَى الْبَاقِي عَلَى مِلْكِهِ،نو پاته د آقا په ملكيت باندي پاته پاتي شو كَمَا إِذَا قَطَعَ إِحْدَى يَدَيْهِ لکه کله
چي کټ ني کړو دهغه يو لاس أَوْ فَقَأَ إِحْدَى عَيْنَيْهِ او زخمي کړي ني وی.يوه سترګه،

**حل اللغة:** ① **جثة:** بدن ② **الفائت:** فوت کيدونکي﴾

**تشريح:-** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه غلام خان سره ساتل او د نقصان تاوان اخستل جائز دی.يعني پوره قيمت به نشي اخستلي.بلکه صرف نقصان به اخستلي شي.

د امام شافعي رحمه الله قول دا دي.چه د غلام پوره قيمت به وصولولي شي.او غلام به هم خان سره ساتلي شي.د امام شافعي رحمه الله دليل دا دي.چه ضمان خو صرف د هغي بدل دي.کوم چي زيد نقصان رسولي دي.اوکوم چي هغه فوت کړي دي.يعني د دواړو سترګو ضمان پوره ارش دي.نو غلام به د خالد په ملکيت باندي پاته پاتي کيږي.امام شافعي رحمه الله ددي په تائيد کي يوه جزئيه پيش کړي ده.که زيد د يوکس د غلام يوه سترګه زخمي کړله.او يو لاس ني کټ کړو.نو هلته هم دا حکم دي.يعني پوره قيمت او غلام خان سره ساتل دی.نو دغه ډول دلته هم کيدل پکار دی.او هغه فرمائي.که د آزاد دواړه لاسونه يا د مدبر دواړه لاسونه کټ کړي شوي وي.نو بيا به هم دا حکم وو.نو دلته هم دا حکم پکار دي.

## د احنافو دليل

وَنَحْنُ نَقُولُ:او موږ وايو أَنَّ الْمَالِيَّةَ قَائِمَةٌ فِي الذَّاتِ چي ماليت په ذات کي قائم دي وَهِيَ مُعْتَبَرَةٌ فِي حَقِّ الْأَطْرَافِ او ماليت د اندامونو په کي معتبر دي لِسُقُوطِ اعْتِبَارِهَا د ماليت د اعتبار ساقطيدو په وجه، فِي حَقِّ الذَّاتِ قَصْرًا عَلَيْهِ صرف د ذات په حق کي ، وَإِذَا كَانَتْ مُعْتَبَرَةً او هرکله چي ماليت ( په اندامونوکي ) معتبر دي وَقَدْ وُجِدَ إِتْلَافُ النَّفْسِ مِنْ وَجْهٍ بِتَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ موجود شوی دی وَالضَّمَانُ يَتَقَدَّرُ بِقِيمَةِ الْكُلِّ او ضمان اندازه کيږي.پوره قيمت سره فَوَجَبَ ضروري شوه يَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ چي د جنايت کونکی غلام مالك شي لِلضَّرُورَةِ ضرر لري کاوه په غرض سره دَفْعًا وَرِعَايَةً لِلْمُمَاثَلَةِ او د مماثلت رعايت کاوه سره.

**حل اللغة:** ① **اتلاف:** هلاکول ② **تفويت:** فوت کول ③ **رعاية:** خيال ساتل﴾

**تشريح:-** دا د امام شافعي رحمه الله په مقابله کي زموږ دليل دي.حاصل د دليل دا دي.چه ماليت څنګه په ذات کي ملحوظ او معتبر دي.په اندامونو او اعضاو کي هم معتبر دي.دا خبره نه ده.چه د ماليت تعلق صرف په ذات سره وی.او اندامونو سره نه وی.او دا هم منلي شوي ده.چه چرته خومره نقصان کيږي .شريعت هم د هغي مطابق ضمان واجبه وی.او د دواړو سترګو زخمي کاوه په صورت کي جنس منفعت فوت کيږي.او د جنس منفعت فوت کيدل من وجه نفس ضائع کول دی.په دي وجه ذکرشوی صورت کي د پوره قيمت ضمان شريعت واجب کړي دي.او هرکله چي مالك ته پوره قيمت ملاو شو.نو اوس د انصاف تقاضه ده.چه دا غلام مجرم ته حواله کړي شي.چه د هغه نه ضرر لري کړي شي.او برابری اوکړي شي.ګني د بدل او مبدل به د آقا په ملك کي اجتماع لازمه شي.او دا باطل ده.

## د امام شافعي رحمه الله د شواهدو جواب

بِخِلَافِ مَا إِذَا فَقَأَ عَيْنَيْ حُرٍّ په خلاف ددي صورت کله چي ده د آزاد دواړه سترګي زخمي کړي وی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَعْنَى الْمَالِيَّةِ،خکه چي په دي کي دماليت معنی نشته وَبِخِلَافِ عَيْنَيِ الْمُدَبَّرِ او په خلاف د مدبر د سترګو لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الِانْتِقَالَ مِنَ الْمِلْكِ إِلَى مِلْكٍ،خکه چي مدبر د يو ملك نه دوهم ملك ارخ ته انتقال نه قبلوی. وَفِي قَطْعِ إِحْدَى الْيَدَيْنِ او په يو لاس کټ کاوه وَفَقْءِ إِحْدَى الْعَيْنَيْنِ او يوه سترګه زخمي کاوه کي لَمْ يُوجَدْ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ جنس منفعت فوت کول نه دی

**تشريح:-** د امام شافعي رحمه الله د اړخه چي کوم دري شواهد ( تائيدات) پيش کړي شوی دی.دا د هغي دريو واړو



خواب دي:① تاسو دا مسئله د آزاد په سترګو يا لاسونو باندي نه شي قياس کولي.خکه چي آزاد څه مال نه دي.او دلته غلام مال دي.نو قياس لپاره مناسبت پکار دي.② دغه ډول د غلام سترګي د مدبر په سترګو باندي هم نشي قياس کولي.خکه مدبر کي دا نشي کيدي.چه دا د بل چا په ملك کي ورکړي شی.او په غلام کي دملك دا انتقال جائز نه دي.③ او دواړه سترګي زخمي کول په يو لاس باندي هم نشي قياس کولي.خکه چي دلته جنس منفعت نه دي فوت شوي.او په ذکر شوی صورت کي جنس مفعت فوت شوي دي.

## د صاحبينو رحمهما الله دليل

وَلَهُمَا او د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دي مَعْنَى الْمَالِيَّةِ لَمَّا كَانَ مُعْتَبَرًا چي هرکله د ماليت معنی معتبر ده وَجَبَ ضروري ده أَنْ يَتَخَيَّرَ الْمَوْلَى چي مولا اختيار مند وی. عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي قُلْنَاهُ په هغه طريقه کومه چي موږ وئيلي ده. كَمَا فِي سَائِرِ الْأَمْوَالِ لکه څنګه چي په ټولو مالونوکي ده فَإِنَّ مَنْ خَرَقَ ثَوْبَ غَيْرِهِ خَرْقًا فَاحِشًا خکه چي چا د خان نه علاوه ( د بل کس) کپړه فاحش ( يعني ډيره زياته) سره اوشلوله أَنْ شَاءَ الْمَالِكُ دَفَعَ الثَّوْبَ إِلَيْهِ نو که مالك غواړي.کپړه دي هغه ته ورکړي وَضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ،او هغه نه دي د هغي ( کپړي) د قيمت ضمان واخلی وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَ الثَّوْبَ او که غواړي.کپړه دي خان سره اوساتی وَضَمَّنَهُ النُّقْصَانَ او هغه نه دي د ضمان نقصان واخلی

**حل اللغة:** ① **خرق:** څيري کول ② **ثوب:** کالی﴾

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دي.ددوی مذهب تير شوي دي.ددوی د دليل لنډيز دا ده.چه ستاسو په نيز اندامونو کي ماليت معتبر دي.نو دا ماليت په ټولو مالونو باندي قياس کول پکار دی.او په ټولو مالونو کي دا خبره چليږي.چه اصل خان سره اوساتی.او د نقصان ضمان واخلی.اګرچه دوهم اختيار هم وی.لکه مثلاً يوکس د چا کپړه اوشلوله.او ډيره ني اوشلوله.چه دي ته فاحش شلول وائی.نو دلته د کپړي مالك ته دوي (دوه) اختياره دی① کپړه شلونکي ته ورکړی.او د هغه نه د کپړي قيمت واخلی.② کپړه خان سره اوساتی.او په دي کي چي کوم نقصان پيدا شوي دي.د هغي ضمان د شلونکی نه واخلی.نو موږ هم دا خبره کړي ده.

## د صاحبينو رحمهما الله په جواب کښي د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلَهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي الْمَالِيَّةَ وَإِنْ كَانَتْ مُعْتَبَرَةً فِي الذَّاتِ چي په ذات کي اګرچه ماليت معتبر دي فَالْآدَمِيَّةُ غَيْرُ مُهْدَرَةٍ فِيهِ وَفِي الْأَطْرَافِ أَيْضًا،او په اندامونو کي هم سړي کيدل عبث نه دی ګرخولی شوی. أَلَا تَرَى آيا نه ګوري أَنَّ عَبْدًا لَوْ قَطَعَ يَدَ عَبْدٍ آخَرَ که يو غلام د دوهم غلام لاس کټ کړو يُؤْمَرُ الْمَوْلَى بِالدَّفْعِ أَوِ الْفِدَاءِ نو آقا ته د غلام ور کاوه يا د فديي ور کاوه حکم ور کولای شی وَهَذَا مِنْ أَحْكَامِ الْآدَمِيَّةِ،او دا د سړي کيدو د احکامو څني دی لِأَنَّ مُوجِبَ الْجِنَايَةِ عَلَى الْمَالِ خکه چي مال باندي د جنايت موجب دا دي. أَنْ تُبَاعَ رَقَبَتُهُ فِيهَا چه په جنايت کي د غلام سټ ( ذات) خرخولي شي

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله په خواب کي د امام صاحب رحمه الله دليل دي.او هم دا دليل د امام شافعي رحمه الله په خواب کي وو.ددي دليل حاصل دا دي.چه د غلام په ذات کي ،او دده په اندامونو کي د ماليت معتبر کيدو مطلب دا نه دي.چه سړي کيدل په دي دواړو کي بالکل فضول اوګرخولي شو.بلکه سړي کيدل هم ملحوظ دی.او ددي دواړو تقاضه هم جلا جلا ده.اوګورئ،که د زيد غلام د خالد د غلام لاس کټ کړي وی.نو دلته به زيد ته دا اختيار ملاوېږي.که غواړي.نو ددي جرم په بدله کي دي خپل جنايت کونکي غلام ورکړي.يا دي د هغه فديه ورکړي.او دا حکم صرف د سړي توب په لحاظ سره دي. ګني که صرف د ماليت اعتبار وي.نو مجرم غلام ته به د خرخولو حکم ورکړي کيدو.بهرحال په غلام کي ماليت او سړي توب دواړه ملحوظ ( او معتبر) دی.او د دواړو جلا جلا احکام دی.نو په خالص مال باندي ددي قياس نشی ( صحيح ) کيدي.

## د سړي توب او د ماليت احکام جلا جلا دی

ثُمَّ مِنْ أَحْكَامِ الْأُولَى بيا د رومبي(سري توب)داحكامو څخه دادي أَنْ لَا يَنْقَسِمَ عَلَى الْأَجْزَاءِ چې موجب د جنايت په اندامونو باندي ويش نشي وَلَا يَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ او هغه د بدن مالك نشي وَمِنْ أَحْكَامِ الثَّانِيَةِ او د دوهم د احكامو څخه دا دي أَنْ يَنْقَسِمَ چې تقسيميږي وَيَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ او جنايت كونكې به د بدن مالك كيږي ،،فَوَفَّرْنَا عَلَى الشَّبَهَيْنِ حَظَّهُمَا مِنَ الْحُكْمِ نو موږ په دواړو مشابهتونو باندي هر يو حكم خور كړو.

تشريح:- د سړي توب او ماليت جلا جلا احكام دي مثلاً ① د سړي توب حكم دا دی چه ضمان به په اندامونو باندې نه تقسيميږي.نو كله چې د آزاد سترګې زخمي كړې شوې.نو هلته به داحكم نه وي.چه د سترګو پاته بدن كي حساب اولګولې شي.او د فوت شوی ضمان واجب كړې شي.او د پاته بدن په اندازه ضمان واجب نشي.② د سړي كيدو دوهم حكم دا دې.چه د ضمان ادا كاوه نه روسته به مجرم د بدن نه مالك كيږي.او د ماليت حكم دا دې.چه ضمان به په اندامونو باندې نه تقسيميږي.نو كه كپړه ئې اوشلوله.نو چې څومره نقصان شوې دې.هغه دې وصول كړې شي.او كپړه دې مالك سره پريښودې شي.او كه پوره ضمان ( قيمت) وصول كړې شو.نو كپړه دې جنايت كونكی ته حواله كړې شي.بهرحال د سړي كيدو او ماليت احكام جلا جلا دی.او په غلام كي دې دواړو حيثيتونو سره اجتماع ده.نو د دواړو لحاظ ضروري دې.چه په دواړو مشابهتونو باندې عمل اوكړې شي.

او امام شافعي رحمه الله چې څه فرمائيلي وو.هغې كي د ماليت اړخ بالكل لغوه ( عبث) ګرځول دی .او د سړي كيدو د اړخه پوره لحاظ ( او رعايت) دې.او د صاحبينو رحمهما الله په فرمان كي د سړي توب بالكل ايفاء ( او وصولي) ده.او د ماليت پوره اعتبار دې.نو د سړي كيدو په اعتبار سره موږ اوونيل .چه ضمان به نه تقسيميږي.او د ماليت په لحاظ سره مو اوونيل.چه مالك ته به دا حق نه وي.چه پوره بدل ( قيمت واخلي.او بيا هم غلام څان سره اوساتي.دده مالك ته به دا حق نه وي.بلكه د پوره قيمت اخستلو په صورت كي به جنايت كونكې غلام ( مجنى عليه ته) حواله كوي.

## فصل في جناية المدبر وأم الولد

ژباړه:- ( دا) فصل د مدبر او ام ولد د جنايت ( په بيان كي ) دې.

تشريح:- د مدبر او ام ولد درجه په رقيت (غلامی) كي ناقص ده.په دې وجه ددوی بيان د غلام د جنايت نه روسته ذكر شوې دې.

### د مدبر او د ام ولد د جنايت مسئله

قَالَ (وَإِذَا جَنَى الْمُدَبَّرُ أَوْ أُمُّ الْوَلَدِ جِنَايَةً) و كله چې مدبر او ام ولد څه جنايت اوكړو. ضَمِنَ الْمَوْلَى الْأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو آقا به دده د قيمت او د جنايت په ارش كي د كم ضامن وی (لِمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دې وجه چې د ابوعبيده رضي الله عنه نه نقل دی أَنَّهُ قَضَى بِجِنَايَةِ الْمُدَبَّرِ عَلَى مَوْلَاهُ[1] ) چې دوی د مدبر د جنايت فيصله د هغه په آقا باندې كړې ده وَلِأَنَّهُ صَارَ مَانِعًا عَنْ تَسْلِيمِهِ فِي الْجِنَايَةِ بِالتَّدْبِيرِ أَوْ الِاسْتِيلَادِ مِنْ غَيْرِ اخْتِيَارِهِ الْفِدَاءَ سا او څكه چې آقا د مدبر كاوه يا د ام ولد جوړولو په وجه د فديې اختيارولو نه بغير، په جنايت كي د سپارلو نه مانع اوګرځيدو فَصَارَ كَمَا إِذَا فَعَلَ ذَلِكَ بَعْدَ الْجِنَايَةِ نو داسې شوه لكه چې هغه داسې كار د جنايت نه روسته كړې وی وَهُوَ لَا يَعْلَمُ او هغه ته علم نه وی.

تشريح:- وړاندې مسئله تيره شوې ده.كه غلام جنايت اوكړو.خو آقا ته دده د جنايت علم نه وو شوې.چه هم په دې حالت كي آقا غلام آزاد كړو.نو دلته به آقا د فديې اختيارونكې نه شمارلې كيږي.خو چونكه د مجنى عليه هم څه قصور ( نقصان) نشته.په دې وجه دلته آقا باندې واجب دی.چه د جنايت ارش او د غلام په قيمت كي چې كم

[1] أخرجه ابن ابي شيبة فى مصنفه (نصب:۱۸۷/۵)_



وی.هغه وركړی.څكه چې د غلام ازادولو نه روسته خو اوس د هغه ( غلام) د وركاوه هيڅ سوال نه پيدا كيږي.بالكل هم دغه ډول دا مسئله هم ده.چه مدبر او ام ولد په جنايت كي د وركاوه قابل نه دی.خو آقا ته څه خبر وو.چه دوی به روستو داسې كوی.نو دلته هم كه دوی څه جنايت اوكړو.هم دا حكم به وی.چه ددوی په قيمت او ارش كي چې كم وی.هغه به وركولې شی.

اوس پاتې شوه دا خبره چې د مدبر د جنايت ضمان آقا باندې ولې راغلې دې.نو په دې اړه كي اګرچه حديث نشته.خو حضرت ابوعبيده ابن الجراح رضي الله عنه د شام امير( ګورنر) وو.هغوی د مدبر د جنايت ضمان د هغه په آقا باندې واجب كړې وو.او د ډيرو صحابو رضي الله عنهم په موجودګئ كي ئې كړې وو.اوهيڅ يو صحابي په هغه به باندې نكير نه وو كړې.نو ګويا په دې باندې اجماع اوشوه.

### په قيمت او ارش كښې به كم واجب وي

وَإِنَّمَا يَجِبُ الْأَقَلُّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ الْأَرْشِ،او ددې په قيمت او ارش كي به كم واجب وی لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ فِي أَكْثَرَ مِنَ الْأَرْشِ څكه چې د جنايت د ولی په زيات كي هيڅ حق نشته وَلَا مَنْعَ مِنَ الْمَوْلَى فِي أَكْثَرَ مِنَ الْقِيمَةِ،او د آقا د اړخه د قيمت نه په زيات كي منع كول نشته.وَلَا تَخْيِيرَ بَيْنَ الْأَقَلِّ وَالْأَكْثَرِ او په كم او زيات كي اختيارول نشته لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ فِي جِنْسٍ وَاحِدٍ څكه چې يو جنس كي اختيارول ګټور نه دی ،لِاخْتِيَارِهِ الْأَقَلَّ لَا مَحَالَةَ دده په يقين سره د كم اختيارولو په وجه بِخِلَافِ الْقِنِّ په خلاف دقن (غلام وركولو)،لِأَنَّ الرَّغَبَاتِ صَادِقَةٌ فِي الْأَعْيَانِ څكه چې اعيانوكي شوقونه صادقيږی فَيُفِيدُ التَّخْيِيرُ بَيْنَ الدَّفْعِ وَالْفِدَاءِ نو د ( غلام) وركاوه او فديې ( وركولو) په منځ كي به اختيارول مفيد وی

حل اللغة:① الرغبات: جمع د رغبة: شوق ،دلچسپی ② الاعيان: جمع د عين،د مبيعې ذات۔

تشريح:- اوپه قيمت اوارش كي كم څكه واجب دې چې د جنايت د ولی حق د قيمت نه زيات نه دې.او د قيمت نه زيات آقا منع كړې دې.څكه چې دې كي كوم كم وی.هم هغه به وركوی.اوكه څوك دا سوال اوكړی چې لكه څنګه چې په غلام وركاوه او دده په فديه وركاوه كي آقا ته اختيار وی.دلته هم په كم او زيات كي اختيار وركول پكار دی.د كم واجبولو څه وجه ده؟ نود دې څواب دا دې چې دلته د اختيار وركاوه نه څه فائده ده؟ ښكاره ده.چه سړې كم اختياره وی.هغه به زيات ولې وركوی.او پاتې شوه مسئله د غلام وركولو، او فديې وركولو، نو هلته په جنس كي اختلاف دې.يو صرف غلام دې.او دوهم اړخ ته ماليت دې.او ډير وخته سړی ته يو عين سره دومره مينه وی.چه هغه مال ددې (عين) په مقابله كي هيڅ نه ګڼړی.او دلته جنس متحد دې.كه ارش وی.اوكه قيمت، دواړه مال دی.نو دلته اختيار نه هيڅ فائده نشته.

### د مدبر د پيوسته جناياتو حكم

وَجِنَايَاتُ الْمُدَبَّرِ او د مدبر جنايات وَإِنْ تَوَالَتْ اګرچه بلا ناغه وی لَا تُوجِبُ إِلَّا قِيمَةً وَاحِدَةً صرف يو قيمت واجبه وی لِأَنَّهُ لَا مَنْعَ مِنْهُ إِلَّا فِي رَقَبَةٍ وَاحِدَةٍ څكه چې د مولا د اړخه منع كول په يو غلام كي دی وَلِأَنَّ دَفْعَ الْقِيمَةِ كَدَفْعِ الْعَبْدِ او څكه چې قيمت وركول دغلام د وركاوه پشان دی وَذَلِكَ لَا يَتَكَرَّرُ او دا ( غلام وركول) مكرر نه دی ،فَهَذَا كَذَلِكَ نو هم دغه ډول به دا ( يعنى قيمت وركول هم مكرر) نه وی وَيَتَضَارَبُونَ بِالْحِصَصِ فِيهَا، او شريك كيږی به مستحق قيمت كي د برخو مطابق، ،وَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ لِكُلِّ وَاحِدٍ او د هر يو په حق كي به د مدبر هغه قيمت معتبر وی فِي حَالِ الْجِنَايَةِ عَلَيْهِ كوم چې هغه باندې د جنايت په وخت وو لِأَنَّ الْمَنْعَ فِي هَذَا الْوَقْتِ يَتَحَقَّقُ څكه چې دا منع كول هغه ثابتيږی.

حل اللغة:① توالت: بلا ناغه ② الحصص: جمع د برخې ③ رقبة: غلام، څټ۔

تشريح:- كه مدبر بلا ناغه جنايت او جرمونه اوكړی.نو په آقا به صرف يو قيمت واجب وی.څكه كه مجرم د وركاوه قابل وې.نوصرف يو څل وركول به واجب وو.او قيمت وركول د غلام وركاوه پشان دی.نو قيمت به هم يو واجب وی.بيا به مستحقين د خپلو برخو مطابق په دې قيمت كي شريك وی.او په چا ئې چې كله جنايت كړې وو.هغه

وخت چې د مدبر څه حکم وو.د هغه په حق کې به هم هغه قیمت معتبر وی.ځکه چې د هغه په حق کې د مولا د ا ړخه منع کول اوس موجود شوی دی.نو که مدبر په دریو واړو باندې جنایت اوکړو.یعنی په زید، خالد او ساجد باندې، په زید باندې د جنایت کاوه په وخت مثلاً دده قیمت سل روپۍ وو.اوپه خالد باندې د جنایت کاوه په وخت ۵۰ روپۍ دې.اوپه ساجد باندې د جنایت په وخت ۲۵ روپۍ دې.د نرخ زیاتیدو او کمیدو سره چې کوم تفاوت ( کمی زیاتې) شوې دې.اوس به چې دې وخت د قاضی په حکم آقا کوم قیمت ادا کوی.په دې کې به هغوی په دغه حساب سره شریك وی.مثلاً که ۱۷۵ روپۍ نې ورکړې.نو د ړومبی سل او د دوهم پنځوس، او د دریم کس به پنځه ویشت وی.په نورو الفاظو کې داسې چې کوم قیمت هم وی.د هغې به اووه برخې په مذکوره صورت کې کولې شی.په دې کې به زید ته ۴/۷ او خالد ته ۲/۷ او ساجد ته ۱/۷ ورکړې کیږی.

**د آقا د یو جنایت قیمت ادا کولو نه روسته د مدبر د بل جنایت حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (فَإِنْ جَنَى جِنَايَةً أُخْرَى) نو که مدبر دوهم جنایت اوکړو وَقَدْ دَفَعَ الْمَوْلَى الْقِيمَةَ إِلَى وَلِيِّ الْأُولَى بِقَضَاءٍ حالانکه مولا د ړومبی جنایت ولی ته د قاضی په فیصلې سره قیمت ورکړې دې. فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په هغه باندې هیڅ نشته لِأَنَّهُ مَجْبُورٌ عَلَى الدَّفْعِ ځکه چې مولا په ور کاوه باندې مجبوره دې.

**تشریح:-** که مدبر جنایت اوکړو.او مولا د هغه قیمت د جنایت ولی ته ورکړو.او د قاضی په حکم سره نې ورکړو.او مدبر دوهم جنایت بل هم اوکړو.نو اوس به په مولا هیڅ ضمان نه وی.

که څوك ووایي چې باید ده (ېکار ده) چې په ده باندې ضمان وو.ځکه چې ده واړه حق د ړومبی جنایت ولی ته حواله کړې دې؟نوموږ وایو چې ده چې څه هم ورکړی دی.د قاضی په حکم سره نې ورکړی دی.او د قاضی د حکم نه روسته دې په ور کاوه باندې مجبوره دې.

**د قاضی د فیصلې نه بغیر د جرمانې اداکولو نه روسته د مدبر د دوهم جنایت حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِنْ كَانَ الْمَوْلَى دَفَعَ الْقِيمَةَ بِغَيْرِ قَضَاءٍ) وکه مولا (د قاضی) د فیصلې نه بغیر قیمت ورکړې وی فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ، نو د جنایت ولی ته اختیار دې إِنْ شَاءَ اتَّبَعَ الْمَوْلَى که غواړی.مولا پسې دې اولګی وَإِنْ شَاءَ اتَّبَعَ وَلِيَّ الْجِنَايَةِ، او که غواړی.د جنایت په ولی پسې دې اولګی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی وَقَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمایي لَا شَيْءَ عَلَى الْمَوْلَى چې په مولا باندې هیڅ نشته لِأَنَّهُ حِينَ دَفَعَ ځکه چې هرکله ده قیمت ورکړو لَمْ تَكُنِ الْجِنَايَةُ الثَّانِيَةُ مَوْجُودَةً نو دوهم جنایت موجود نه وو فَقَدْ دَفَعَ كُلَّ الْحَقِّ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ نومولا پوره حق د هغې مستحق ته ورکړو وَصَارَ او هم دغه ډول شوه كَمَا إِذَا دَفَعَ بِالْقَضَاءِ لکه چې کله هغه د قاضی په فیصلې سره ورکړې وی.

**تشریح:-** اوکه آقا د قاضی په فیصلې سره قیمت ادا کړې وی.بیا مدبر دوهم جنایت اوکړو.نو اوس به څه کیږی؟نو صاحبین رحمهما الله فرمانی.چه اوس به په مولا هیڅ ضمان نه وی.او امام صاحب رحمه الله فرمایي .چه دلته د دوهم جنایت ولی ته اختیار شته.که غواړی.خپل حق دې د مولا نه اوغواړی.اوکه غواړی.نو د جنایت د ولی نه دې دخپل حق مطالبه اوکړی.هرکله چې مولا د ړومبی جنایت ولی ته قیمت ورکړې وو .هغه وخت دوهم جنایت موجود نه وو.او مولا د حق مستحق ته د هغه پوره حق ادا کړې وو.نو د هغه پخپله ادا کول داسې شو.لکه د قاضی په حکم سره ورکول.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل**

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ الْمَوْلَى جَانٍ چې مولا مجرم دې بِدَفْعِ حَقِّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ طَوْعًا، پخپلې رضامندۍ سره د دوهم جنایت حق ور کاوه په وجه وَوَلِيُّ الْأُولَى ضَامِنٌ او د ړومبی جنایت ولی ضامن دې بِقَبْضِ حَقِّهِ ظُلْمًا د هغه په حق باندې ظلم سره د قبضې کاوه په وجه فَيَتَخَيَّرُ نو هغه (دوهم ولی) به اختیار مند



وی.

**حل اللغة:** ① **طوع:** رضامندی،خوښه﴾

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دادې.چه په جرم کې د دواړو شریکوالی ده.د مولا هم او د دوهم جنایت د ولی هم.د مولا جرم دا دې.چه هغه پخپله رضامندۍ سره د دوهم حق ړومبی ته سپارلې دې.او د ړومبی جنایت د ولی جرم دا دې.چه هغه د دوهم په حق باندې ناجائز قبضه کړې ده.نو دوهم ته اختیار ملاو شو.چه ړومبې (د جنایت ولی) راونیسی.یا مولا راونیسی.خو د امام صاحب رحمه الله دا منطق ډیر عجیبه دې.په دې وجه ددې نور وضاحت کوی.

**دوهم ولی د ړومبی جنایت ولی شریك کیږی؟**

وَهَذَا لِأَنَّ الثَّانِيَةَ مُقَارِنَةٌ حُكْمًا مِنْ وَجْهٍ او دا ځکه چې دوهم جنایت ړومبی سره حکماً من وجه مولبنتی دې وَلِهَذَا يُشَارِكُ وَلِيَّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى په دې وجه دوهم ولی د ړومبی جنایت شریکیږی وَمُتَأَخِّرَةٌ حُكْمًا او دوهم د ړومبی نه حکماً مؤخر دې مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ فِي حَقِّهَا په دې حیثیت سره چې د دوهم په حق کې د مدبر هغه قیمت معتبر وی.کوم چې د دوهم جنایت په ورځ وو. فَجُعِلَتْ كَالْمُقَارِنَةِ فِي حَقِّ التَّضْمِينِ نو ضمان په حق کې دوهم د متصل (مولبنتی) پشان ګرځولې شی ،لِإِبْطَالِهِ مولا د باطلولو په وجه، مَا تَعَلَّقَ بِهِ مِنْ حَقِّ وَلِيِّ الثَّانِيَةِ د ددې دوهم ولی حق کوم چې مدبر سره متعلق وو عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ په دواړو مشابهتونو باندې عمل کاوه سره.

**حل اللغة:** ① **المقارنة:** مولبنتی ② **ابطال:** باطلول③ **التضمين:** ضامن کول﴾

**تشریح:-** د عجیبه منطق حل پیش کوی.چه د دوهم جنایت دوې (دوه) جهته دی.من وجه د ړومبی نه مؤخر دې.او من وجه مولبنتی او متصل دې.ددې مقارنت (او مولبنتی کیدو) په وجه ډیرو صورتونو کې دوهم هم د ړومبی شریك کیږی.او په مدبر کې برخه حاصلوی.او د مؤخر کیدو په وجه په ډیرو صورتونو کې دوهم هم د ړومبی سره شریکیږی.او په مدبر کې برخه حاصلوی.او د مؤخر کیدو وجه دا ده.چه په دوهم جنایت کې به هغه قیمت معتبر وی.کوم چې د دوهم جنایت په ورځ د مدبر وو.بهرحال هرکله چې د دوهم دا دوې (دوه) طرفونه دی.نو موږ په دواړو مشابهتونو باندې د عمل په خیال دا اوکړل.چه د ضمان په حق کې موږ دا د مقارن او مولبنتی پشان اوګڼرلو.او ضمان مو واجب کړو.او چونکه د هغه هم حق مدبر سره متعلق وو.چه په دې کې د مولا او د ړومبی د ولی دواړو نقصان دې.په دې وجه دواړو پسې د لګیدو حق ورکړې شو .او په دواړو مشابهتونو باندې عمل داسې اوشو.چه ضمان یا د اتصال په وجه واجب کړې شو.خو دده قیمت کم کړې شو.او هغه معتبر کړې شو.کوم چې په دغه ورځ دده قیمت وو.یا د مؤخر کاوه په وجه واجب شوې دې.په ﴿نتائج الافکار ص۳۷۷﴾ باندې په دې ځانې کې ډیر بحث دې.

**د مدبر آزادولو نه روسته د ګڼرو جنایاتو مسئله**

وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى الْمُدَبَّرَ وکله چې مولا مدبر آزاد کړو وَقَدْ جَنَى جِنَايَاتٍ حالانکه هغه ډیر جنایتونه کړی دی لَمْ تَلْزَمْهُ إِلَّا قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ نو په مولا به یو قیمت واجب وی.ځکه لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا وَجَبَ عَلَيْهِ بِالْمَنْعِ چې ضمان د منع کاوه په وجه واجبیږی.(د مدبر کاوه په سبب سره)، فَصَارَ وُجُودُ الْإِعْتَاقِ مِنْ بَعْدُ وَعَدَمُهُ بِمَنْزِلَةٍ نو ددې نه روستو آزادی موجود کیدل او ددې عدم (آزادی نه موجود کیدل) په یوه درجه کې دی. (وَأُمُّ الْوَلَدِ بِمَنْزِلَةِ الْمُدَبَّرِ فِي جَمِيعِ مَا وَصَفْنَا) و په هغه ټولو احکامو کې کوم چې موږ بیان کړی دی.ام ولد د مدبر په درجه کې ده. لِأَنَّ الِاسْتِيلَادَ ځکه چې ام ولد جوړول، مَانِعٌ مِنَ الدَّفْعِ كَالتَّدْبِيرِ دې په ور کاوه سره د مدبر کاوه پشان مانع دی

**تشریح:-** که مدبر ډیر جرمونه کړی دی.نو صرف یو قیمت واجبیږی.نو که داسې مدبر مولا آزاد کړو.بیا به هم دا حکم وی.هیڅ توپیر به نه پریوځی.ځکه لکه څنګه چې د آزادۍ په وجه هغه د ور کاوه قابل پاتې نشو.د مدبر

جوړولو په وجه هم هغه د ور کاوه قابل نه وو.نو د دواړو درجه برابر شوه.بیا لکه څنګه چې مدبر چا ته نشي ورکولې.د ام ولد هم دا حال دې.نو په دې ټولو مسئلو کي ام ولد هم د مدبر په درجه کي دې.

**د مدبر د خطاء جنایت اقرار**

وَإِذَا أَقَرَّ الْمُدَبَّرُ بِجِنَايَةِ الْخَطَإِ او کله چې مدبر خطاء سره د جنایت اقرار اوکړو لَمْ يَجُزْ إِقْرَارُهُ نو دده اقرار به معتبر نه وي وَلَا يَلْزَمُهُ بِهِ شَيْءٌ او دده دا اقرار په وجه به آقا باندې هیڅ نه لازمیږي عَتَقَ که هغه آزاد شوي وي أَوْ لَمْ يُعْتَقْ او که نه وي لِأَنَّ مُوجَبَ جِنَايَةِ الْخَطَإِ عَلَى سَيِّدِهِ څکه چې د خطاء جنایت موجب د هغه په آقا دې وَإِقْرَارُهُ بِهِ لَا يَنْفُذُ عَلَى السَّيِّدِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ او د ضمان په اړه کي د مدبر اقرار په آقا باندې نه نافذ کیږي.والله اعلم

**تشریح:-** که مدبر څه جنایت خطاء سره اوکړي.نو ددې تاوان به آقا باندې ادا کول لازمي وي.په دې وجه که مدبر پخپله د یو داسې جنایت اقرار اوکړي.نو د هغه اقرار به معتبر نه وي.او دهغه د اقرار په وجه به په آقا باندې هیڅ نه لازمیږي.دا مدبر به پخپل حال مدبر وي.یا ده لره ده آقا آزاد کړې وي.

## باب غصب العبد والمدبر والصبي والجناية في ذلك

**ژباړه:-** (دا) باب د غلام، مدبراو د بچي د غصب کولو، او په دې معامله کي د جنایت کاوه (د احکامو په بیان کي) دې.

**تشریح:-** ددې نه وړاندې دمدبر د جنایت حکم بیان کړې شوې دې.په دې باب کي د مدبر نه صادریدونکې او په مدبر باندې واقع کیدونکې جنایت بیانولې شي.او کوم چې مدبر سره لاحق دی.دهغې بیان به کولې شي.

**لاس کټ شوی غلام د غاصب په لاس کښې هلاك شي نو ددې حکم دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ قَطَعَ يَدَ عَبْدِهِ) و چا چې دخپل غلام لاس کټ کړو ثُمَّ غَصَبَهُ رَجُلٌ بیا دا یو سړي غصب کړو وَمَاتَ فِي يَدِهِ مِنَ الْقَطْعِ و هغه دلاس کټ کاوه په وجه د غاصب په قبضه کي مړ شو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ أَقْطَعَ نو په غاصب باندې د هغه د کټ شوی قیمت دی وَإِنْ كَانَ الْمَوْلَى قَطَعَ يَدَهُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ وکه آقا د غاصب په قبضه کي د هغه لاس کټ کړو فَمَاتَ مِنْ ذَلِكَ فِي يَدِ الْغَاصِبِ نو هغه د کټ کاوه په وجه د غاصب په قبضه کي مړ شو لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په غاصب باندې هیڅ نشته

**تشریح:-** زید د خپل غلام لاس کټ کړو.او بیا هم په دې حال کي بکر دا غصب کړو.بیا د بکر (غاصب) په قبضه کي اوسیدو په وخت هغه مړ شو.نو په غاصب به دهغه قیمت واجب وي.خو پوره قیمت نه، بلکه هغه قیمت کوم چې د لاس کټ شوی کیدو په حالت کي د هغه وي.اوکه غاصب سره د اوسیدو په حالت کي مالك د هغه لاس کټ کړې وي.او بیا غاصب سره د زخم خوریدو په وجه مړ شوې وي.نو په غاصب به هیڅ هم واجب نه وي.او په دې دواړو صورتونو کي توپیر ولې شوی دې؟

وَالْفَرْقُ أَنَّ او وجه د توپیر دا ده الْغَصْبَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ چې غصب د خوریدو ختمونکې دې لِأَنَّهُ سَبَبُ الْمِلْكِ كَالْبَيْعِ څکه چې غصب د بیع پشان د ملك سبب دې فَيَصِيرُ نو داسې شوه كَأَنَّهُ هَلَكَ بِآفَةٍ سَمَاوِيَّةٍ کویا چې دا آسمانی آفت سره هلاك شوې دې فَتَجِبُ قِيمَتُهُ أَقْطَعَ نو دده کټ شوی قیمت به واجب وي وَلَمْ يُوجَدِ الْقَاطِعُ فِي الْفَصْلِ الثَّانِي او په دوهم صورت کي د خوریدو ختمونکې او نه موندې شو، فَكَانَتِ السِّرَايَةُ مُضَافَةً إِلَى الْبِدَايَةِ.نو خوریدل به ابتداء اړخ ته مضاف وي فَصَارَ الْمَوْلَى مُتْلِفًا نو آقا به هلاکونکې وي فَيَصِيرُ مُسْتَرِدًّا،نو هغه به د غاصب نه واپس اخستونکې وي ګیف ولې به نه وي وَأَنَّهُ اسْتَوْلَى عَلَيْهِ حالانکه آقا په هغه باندې قابض شوې دې وَهُوَ اسْتِرْدَادٌ او قابض کیدل واپس اخستل دی فَيَبْرَأُ الْغَاصِبُ عَنِ الضَّمَانِ نو غاصب به د ضمان نه بری کیږي.

**حل اللغة:** ① البداية: شروع،اول ② استولی: غالب شو ③ استرداد: واپس کول.



**تشریح:-** وجه دا ده.چه لکه څنګه بیع سبب د ملك دې.دغه ډول غصب هم د ملکیت سبب دې.او د ملك دسبب راتلو په وجه خوریدل ختمیږي.نو په ړومبی صورت کي د غصب په وجه خوریدل ختم شو.څکه اوس دا داسې شوه.لکه چې پخپله د څه آسمانی آفت په وجه مړ شوې وي.نو په دې صورت کي به د کټ شوی قیمت واجب وي.او په دوهم صورت کي هیڅ ختمونکې نه دې موجود شوې.څکه چې هرکله آقا د غاصب په قبضه کي اوسیدو په وخت د هغه لاس کټ کړې دې.ګویا چې د غاصب نه ئې ړومبې په هغه قبضه کړې ده.او بیا ئې لاس کټ کړې وي.نو هرکله چې ابتداء د آقا په قبضه کي اوشو.نو خوریدل به هم دهغه په قبضه کي شمارلې شي.یعنی ګویا چې آقا په هغه باندې قبضه کړې ده.او لاس ئې کټ کړې دې.یعنی دا واپس اخستل شو.او هرکله چې دا واپس اخستل شو.نو غاصب د ضمان نه بری شو.

**محجور علیه غلام د غاصب په قبضه کښې هلاك شو نوڅه حکم دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا غَصَبَ الْعَبْدُ الْمَحْجُورُ عَلَيْهِ عَبْدًا مَحْجُورًا عَلَيْهِ) و کله چې محجور علیه غلام، بل محجور علیه غلام غصب کړو فَمَاتَ فِي يَدِهِ نو هغه دده په قبضه کي مړشو فَهُوَ ضَامِنٌ نو غاصب به ضامن وي لِأَنَّ الْمَحْجُورَ عَلَيْهِ مُؤَاخَذٌ بِأَفْعَالِهِ څکه چې محجور علیه به پخپلو افعالو کي ګرفتارولې شي

**تشریح:-** یو محجور علیه غلام دوهم محجور علیه غلام غصب کړو.بیا هغه دده په قبضه کي مړ شو.نو غاصب به ضامن وي.څکه چې محجور علیه هم پخپلو افعالو کي ماخوذ وي.

**د غاصب په قبضه کښې د مدبر د جنایت کولو حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل .(وَمَنْ غَصَبَ مُدَبَّرًا) و چا چې غصب کړو.یو مدبر فَجَنَى عِنْدَهُ جِنَايَةً نو ده د هغه سره جنایت اوکړو ثُمَّ رَدَّهُ عَلَى الْمَوْلَى بیا ئې مولا ته واپس کړې وي فَجَنَى عِنْدَهُ جِنَايَةً أُخْرَى ،..نو هغه د مولا سره دوهم جنایت اوکړو. وي فَعَلَى الْمَوْلَى قِيمَتُهُ نو په مولا به ددې قیمت واجب بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ چې دا به په دواړو کي نیم په نیمه وي. لِأَنَّ الْمَوْلَى بِالتَّدْبِيرِ السَّابِقِ أَعْجَزَ نَفْسَهُ عَنِ الدَّفْعِ څکه چې مولا د مخکنی مدبر کاوه په وجه خپل ځان د مدبر ور کاوه نه عاجز کړې دې مِنْ غَيْرِ أَنْ يَصِيرَ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ ددې نه بغیر چې هغه فدیه اختیارونکې وي فَيَصِيرُ مُبْطِلًا حَقَّ أَوْلِيَاءِ الْجِنَايَةِ نو آقا به د جنایت د ولیانو حق باطلونکې وي إِذْ حَقُّهُمْ فِيهِ څکه چې د هغوی حق په ور کاوه کي دې وَلَمْ يَمْنَعْ إِلَّا رَقَبَةً وَاحِدَةً او آقا صرف یو غلام ځان سره ساتلې دې فَلَا يُزَادُ عَلَى قِيمَتِهَا،نو د یو غلام د قیمت څخه به زیاتی کولې نشي وَتَكُونُ بَيْنَ وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ نِصْفَيْنِ او قیمت به د جنایت د دواړو ولیانو په منځ کي نیم په نیمه وي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْمُوجَبِ ددوی دواړو برابر کیدو په وجه، په موجب کي.

**حل اللغة:** ① اعجز:عاجز کړو ② التدبير: مدبر کول.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې.چه زید د بکر مدبر(غلام) غصب کړو.او د غاصب په قبضه کي د اوسیدو په حالت کي مدبر څه جنایت اوکړو.بیا زید دا مدبر د بکر په قبضه کي ورکړو.بیا هغه سره مدبر دوهم جنایت اوکړو.نو اوس به څه حکم وي. نو وې فرمائیل.چه بکر (د مدبر مالك) به د مدبر د پوره قیمت ضامن وي.چه دا به دواړو ولیانو ته نیم په نیمه ملاویږي.او بیا به مالك دغاصب نه نیم قیمت واپس اخلی.او دا نیم به هم د ړومبی جنایت ولی ته ملاویږي.او اقا به د غاصب نه نیم نور هم اخلی.چه دا به آقا سره محفوظ ساتلې شي.او دا د شیخینو رحمهما الله مذهب دې.او د امام محمد رحمه الله په نیز هرکله چې آقا د مدبر پوره قیمت دواړو ولیانو ته ورکړې دې.نو کوم نیم چې د غاصب نه واپس اخلی.هغه به د مالك سره محفوظ وي.چه ددې تفصیل راتلونکی عبارت کي راروان دې.

دلته خو مرغینانی رحمه الله صرف دا بیان کړی دی.چه په مولا باندې د مدبر د پوره قیمت تاوان ولې واجب دې؟ نو وې فرمائیل.چه آقا دده په مدبر جوړولو سره مدبر ور کاوه ممنوع ګرځولی دی.حالانکه هغه په دې طریقهٔ کار سره

د فديې اختيارونکې نه جوړيږي.نو په ده به د مدبر قيمت واجب وي.ځکه چې د وليانو حق د غلام په ورکاوه کې وو.نو ده هغه مدبر جوړ کړو.او د وليانو حق ئې باطل کړو.په دې وجه به قيمت واجب وي.ځکه چې ده يوکس مدبر جوړ کړې دې.او ورکول ئې ممنوع ګرځولی دی.بيا به قيمت صرف يو په منځ کې نيم په نيمه ځکه تقسيميږي.چه په موجب د ضمان کې دواړه برابر دی.بيا به دا قيمت دوارو وليانو

**په ذکر شوې صورت کښې به مولا په نيم قيمت سره غاصب باندې رجوع کوي**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَيَرْجِعُ الْمَوْلَى بِنِصْفِ قِيمَتِهِ عَلَى الْغَاصِبِ) و د مولا به د خپل نيم قيمت په سلسله کې غاصب باندې رجوع کوي. لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ نِصْفَ الْبَدَلِ ځکه چې د بدل نصف مستحق شوې دې كَانَ فِي يَدِ الْغَاصِبِ په داسې سبب سره چې دا د غاصب په قبضه کې شوې دې فَصَارَ نو داسې شوه بِسَبَبٍ كَمَا إِذَا اسْتَحَقَّ نِصْفَ الْعَبْدِ بِهَذَا السَّبَبِ چې د غلام نصف دې سبب سره ثابت شوې دې.

تشريح:- يعنی په مذکوره صورت کې به آقا د مدبر نيم قيمت د غاصب نه واپس اخلی.ځکه چې آقا باندې نيم قيمت د هغه جنايت په وجه ورکول لازم شوی وو.کوم چې د غاصب په قبضه کې صادر شوې وو.نو که د غاصب په قبضه کې غلام کې نصف استحقاق ثابت شی.نو غاصب باندې به ددې ضمان ادا کول لازمی وی.نو دلته به د نصف قيمت ضمان ادا کول واجب وی.

**ولي به دا نيمه د ړومبي جنايت ولي ته ورکوي او بيا په غاصب باندې رجوع کوي**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَيَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى) و آقا به دا نصف د ړومبي جنايت ولي ته ورکوي ثُمَّ يَرْجِعُ بِذَلِكَ عَلَى الْغَاصِبِ بيا به په دې اړه کې غاصب باندې رجوع کوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ.() او دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: و امام محمد رحمه الله فرمائی. يَرْجِعُ بِنِصْفِ قِيمَتِهِ چې آقا به د مدبر د نصف قيمت په اړه کې رجوع کوي فَيُسَلِّمُ لَهُ نو دا نصف به آقا لپاره محفوظ ساتلې کيږي.

تشريح:- دا خبره وړاندې عرض کړې شوې ده.

**د امام محمد رحمه الله دليل**

لِأَنَّ الَّذِي يَرْجِعُ بِهِ الْمَوْلَى عَلَى الْغَاصِبِ ځکه چې هغه مقدار کوم چې به مولا د غاصب نه واپس اخلی عِوَضُ مَا دَا سَلَّمَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى دهغې عوض دې کوم چې د ړومبي جنايت ولی ته ورکړې شوې دې فَلَا يَدْفَعُهُ إِلَيْهِ نو آقا به دا نصف د ړومبي جنايت ولي ته نه ورکوي كَيْ لَا يُؤَدِّي إِلَى اجْتِمَاعِ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ چې دا متعدی نشی .د بدل او مبدل اجتماع اړخ ته فِي مِلْكِ رَجُلٍ وَاحِدٍ،د يو سړی په ملکيت کې وَكَيْلَا يَتَكَرَّرَ الِاسْتِحْقَاقُ او چې استحقاق مکرر نشی.

تشريح:- دا د امام محمد رحمه الله دليل دی.ددې حاصل دا دې.چه آقا کوم مقدار د ړومبي جنايت ولی ته ورکړې دې. هم د هغې عوض به هغه د غاصب نه اخلی.نو که دا نصف هم د ړومبي جنايت ولی ته ورکړې شی.نو هغه به د بدل او مبدل منه مالك جوړ شی.او دا د اصولو خلاف دی.او دده په استحقاق کې به تکرار لازم شی.په دې وجه به دا نصف آقا خپل خان سره محفوظ کوی.

**د شيخينو رحمهما الله دليل**

وَلَهُمَا او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې أَنَّ حَقَّ الْأَوَّلِ فِي جَمِيعِ الْقِيمَةِ چې د ړومبي حق په پوره قيمت کې دې لِأَنَّهُ حِينَ جَنَى فِي حَقِّهِ ځکه چې کله مدبر دهغه په حق کې جنايت اوکړو لَا يُزَاحِمُهُ أَحَدٌ.نو د هغې هيڅ مزاحم ( مقابل) نه وو

---

(١) القول الراجح هوهذاقول الشيخين رحمهما الله كذا فى نتائج الأفكار(٢٩٩\٩) وعناية (٢٩٩\٩) وردالمحتار(٤٤٠\٥) وبحر(٣٨٨\٨) نقلاً من القول الراجح (٣٦٣\٢)-



وَإِنَّمَا انْتَقَصَ او د ړومبی حق ناقص شوې دې بِاعْتِبَارِ مُزَاحَمَةِ الثَّانِي د دوهم د مزاحمت په اعتبار سره، فَإِذَا وُجِدَ شَيْئًا مِنْ بَدَلِ الْعَبْدِ فِي يَدِ الْمَالِكِ نو هرکله چې هغه ( ړومبی) د مالك په قبضه کې دغلام په بدله کې څه شئ حاصل کړو فَارِغًا په داسې حال کې چې هغه د غير دحق نه فارغ دې يَأْخُذُهُ نو د ړومبي ولی به هغه اخلی لِيُتِمَّ حَقَّهُ چې دهغه حق پوره شی فَإِذَا أَخَذَهُ مِنْهُ نو کله چې ړومبي ولی دا دهغه نه واخستلو يَرْجِعُ الْمَوْلَى بِمَا أَخَذَهُ عَلَى الْغَاصِبِ نو مولا به دده نه اخستې شوی مقدار کې غاصب باندې رجوع کوي لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ مِنْ يَدِهِ بِسَبَبٍ ځکه چې دا مقدار دده د لاس نه د داسې سبب په وجه اخستې شوې دې كَانَ فِي يَدِ الْغَاصِبِ کوم چې د غاصب په لاس کې شوې دې.

حل اللغة: ① يزاحم: مقابله کيږی

تشريح:- دا د شيخينو رحمهما الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه د ړومبي جنايت ولی د مدبر د پوره قيمت مستحق وو.ځکه چې د هغه په حق کې پيل کې هيڅ مقابل نه وو.بيا د مقابل په وجه د هغه حق کم شو.او نصف پاتې شو.خو کله چې ددې مدبر غلام بدل د دوهم دحق نه فارغ شی.او د ړومبي جنايت ولی ته ملاويږی.نو هغه به ددې د اخستلو حقدار وی.چه د هغه حق پوره شی.او کله چې د ړومبي جنايت ولی دا نصف د آقا نه واخستلو.نو اوس به آقا ددې نصف په سلسله کې غاصب نه دوباره نصف اخلی.او دا نصف به آقا سره محفوظ پاتې وی.داسې ولې؟ ځکه چې دا نصف کوم د ړومبي جنايت ولی دوباره د آقا نه اخستې دې.دا د هغه جنايت بدله ده.کوم چې د غاصب په قبضه کې مدبر نه صادر شوې وو.په دې وجه به اقا د دوباره اخستلو حقدار وی.

**د جنايت کونکي غلام، غاصب سره د دوهم جنايت مسئله**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ كَانَ جَنَى عِنْدَ الْمَوْلَى) و که آقا سره ئې جنايت اوکړو فَغَصَبَهُ رَجُلٌ بيا دا يو غاصب غصب کړو فَجَنَى عِنْدَهُ جِنَايَةً أُخْرَى نو غاصب سره ئې دوهم جنايت اوکړو فَعَلَى الْمَوْلَى قِيمَتُهُ نو په مولا باندې ددې قيمت واجب دې بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ چې دا به د دواړو په منځ کې نيم په نيمه وی وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ الْقِيمَةِ عَلَى الْغَاصِبِ و آقا به د نصف قيمت په اړه کې غاصب باندې رجوع کوي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ،د هغه دليل په وجه کوم چې موږ په ړومبي صورت کې بيان کړې دې غَيْرَ أَنَّ اسْتِحْقَاقَ النِّصْفِ حَصَلَ بِالْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ علاوه ددې خبرې نه چې ددې نصف استحقاق د دوهم جنايت په وجه حاصل شوې دې إِذْ كَانَتْ هِيَ فِي يَدِ الْغَاصِبِ ځکه چې دوهم جنايت د غاصب په قبضه کې شوې دې فَيَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى نو آقا به دا نصف دړومبي جنايت ولی ته ورکوي. وَلَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ او په دې اړه کې به غاصب باندې رجوع نه کوي وَهَذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا بالاجماع دی.

تشريح:- ددې تفسير ښکاره دې.په دې کې او په ړومبي کې توپير دا دې.چه په ړومبي صورت کې دوهم جنايت آقا سره شوې دې.او په دوهم صورت کې ( ړومبې جنايت ) د غاصب سره شوې دې.او په دې کې بالکل د هغې عکس دې.يعنی ړومبې مالك سره شوې دې.او دوهم غاصب سره شوې دې.او دوهم فرق دا دې.چه کله آقا د غاصب نه نصف قيمت وصول کړو.نو دا به د ړومبي جنايت ولی اخلی.نو اوس به ددې نصف آقا د غاصب نه د اخستلو حقدار نه وی.او دلته ددې اخستې شوې نصف د ړومبي جنايت ولی ته ورکول بالاجماع دی.يعنی دلته د امام محمد او شيخينو رحمهم الله اختلاف نشته.

**په جنايت کښې د ورکړې شوې غلام، د غاصب سره د بل جنايت کولو حکم**

ثُمَّ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْعَبْدِ بيا امام محمد رحمه الله مسئله د غلام په باره کې وضع کړې ده فَقَالَ نو فرمايي وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا او چا چې غصب کړو غلام فَجَنَى فِي يَدِهِ نو هغه دغاصب په قبضه کې جنايت اوکړو ثُمَّ رَدَّهُ بيا غاصب دا واپس کړو. ثُمَّ رَدَّهُ فَجَنَى جِنَايَةً أُخْرَى نو هغه دوهم جنايت اوکړو فَإِنَّ الْمَوْلَى يَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ نو مولا به دا د دواړو جنايت وليانو ته ورکوي ثُمَّ يَرْجِعُ عَلَى الْغَاصِبِ بِنِصْفِ الْقِيمَةِ بيا به د غاصب نه دهغه نصف قيمت واپس اخلی. فَيَدْفَعُهُ إِلَى الْأَوَّلِ نو دا به ړومبي اړخ ته ورکوي وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ او په دې اړه کې به په غاصب باندې رجوع کوي، وَهَذَا

عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ او دا د شیخینو رحمهما الله په نیز دی.

تشریح:- ددې وارہ تفصیل لنډیز دا ده.که د.مدبر په ځاني غلام وی.نو بیا هم دا تفصیل او اختلاف دې.خو دومره توپیر دې.چه د غلام په صورت کي به غلام ورکولې شی.او د مدبر په صورت کي به دهغه قیمت ورکولې شی.او پاته صورت هم هغه دی.کوم چې د رومبي مسئلي وو.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ:او امام محمد رحمه الله فرمایي يَرْجِعُ بِنِصْفِ الْقِيمَةِ چې د نصف قیمت په اړه کي به رجوع کوی او دا به آقا لپاره محفوظ وی.وَإِنْ جَنَى عِنْدَ الْمَوْلَى اوکه هغه د آقا سره جنایت اوکړو ثُمَّ غَصَبَهُ بیا دا غصب کړې وی فَجَنَى فِي يَدِهِ بیا نې د هغه په قبضه کي جنایت اوکړو دَفَعَهُ الْمَوْلَى نِصْفَيْنِ نو آقا به غلام نیم په نیمه ورکوی وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ قِيمَتِهِ او آقا به دده نصف قیمت په اړه کي ( غاصب باندې ) رجوع کوی فَيَدْفَعُهُ إِلَى الْأَوَّلِ نو دا به رومبی ته ورکوی وَلَا يَرْجِعُ بِهِ او په دې اړه کي به رجوع نه کوی وَالْجَوَابُ فِي الْعَبْدِ كَالْجَوَابِ فِي الْمُدَبَّرِ او خواب دغلام په اړه کي د مدبر د خواب پشان دې فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا په هغه ټولو صورتونو کي کوم چې موږ ذکرکړی دی إِلَّا أَنَّ فِي هَذَا الْفَصْلِ يَدْفَعُ الْمَوْلَى الْعَبْدَ خو په دې صورت کي به آقا غلام ورکوی وَفِي الْأَوَّلِ يَدْفَعُ الْقِيمَةَ او په رومبی کي به قیمت

تشریح:- خو امام محمد رحمه الله د مدبر بیان کاوه سره بیا دا هم بیان کړې دې.په دې وجه د امام محمد رحمه الله د طرز(او انداز) مطابق مرغینانی رحمه الله هم دا طریقه اختیار کړې دې.

## غاصب سره د مدبر جنایت کولو نه روسته مولا ته واپس کول. او دوباره غصب کولو سره بیا جنایت کول

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ غَصَبَ مُدَبَّرًا) و چا چې مدبر غصب کړو فَجَنَى عِنْدَهُ جِنَايَةً نو هغه غاصب سره جنایت اوکړو ثُمَّ رَدَّهُ عَلَى الْمَوْلَى بیا نې هغه مولا ته واپس کړو ثُمَّ غَصَبَهُ بیا ده غصب کړو. ثُمَّ جَنَى عِنْدَهُ جِنَايَةً بیا نې دده سره جنایت اوکړو فَعَلَى الْمَوْلَى قِيمَتُهُ نو په مولا باندې دده قیمت واجب دې بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ چې دا به دوی دواړو په منځ کي نیم په نیمه وی لِأَنَّهُ مَنَعَ رَقَبَةً وَاحِدَةً بِالتَّدْبِيرِ ځکه چې آقا د مدبر کاوه په وجه یو رقبه ( غلام) ګیر کړې دې فَيَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ نو په ده باندې یو قیمت واجب دې ثُمَّ يَرْجِعُ بِقِيمَتِهِ عَلَى الْغَاصِبِ بیا به آقا د هغه د پوره قیمت په اړه کي غاصب باندې رجوع کوی لِأَنَّ الْجِنَايَتَيْنِ كَانَتَا فِي يَدِ الْغَاصِبِ ځکه چې دواړه جنایتونه د غاصب په قبضه کي شوی دی.

تشریح:- که غاصب مدبر غصب کړو.او مدبر د غاصب سره جنایت اوکړو.او غاصب دا مدبر آقا ته واپس کړو.او بیا نې دوباره غصب کړو.او مدبر د غاصب سره دوباره بیا جنایت اوکړو.نو په آقا باندې واجب ده. چې هغه دده پوره قیمت دواړو ولیانو ته نیم نیم ورکړی.او بیا د غاصب نه پوره قیمت وصول کړی.او د پوره قیمت نه نصف د رومبی جنایت ولی ته ورکړی.او دا نصف کوم چې ده د رومبی جنایت ولی ته ورکړې دې.دا بیا د غاصب نه واپس واخلی.او د اصح قول مطابق په دې کي د امام محمد رحمه الله هم اتفاق دې.یعنی هغه هم دا فرمائی.او پاته خبره ښکاره ده.

## آقا به نصف قیمت د رومبی جنایت ولی ته ورکوی

فَيَدْفَعُ نِصْفَهَا إِلَى الْأَوَّلِ نو آقا دې د قیمت نصف رومبی ته ورکړی لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ كُلَّ الْقِيمَةِ ځکه چې هغه د پوره قیمت مستحق شوې وو. لِأَنَّ عِنْدَ وُجُودِ الْجِنَايَةِ عَلَيْهِ لَا حَقَّ لِغَيْرِهِ، ځکه چې رومبی باندې د جنایت موجود کیدو په وخت د هغه د غیر حق نه وو وَإِنَّمَا انْتَقَصَ او د رومبی حق کم شوې دې بِحُكْمِ الْمُزَاحَمَةِ مِنْ بَعْدُ بیا روستو د مقابل په حکم سره.

تشریح:- ددې تشریح واضح ده.او وړاندې تیره شوې ده.

## آقا به په غاصب باندې رجوع کوی

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی (وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ) او دا نصف دې د غاصب نه واپس واخلی لِأَنَّ



الِاسْتِحْقَاقَ بِسَبَبٍ ځکه چې استحقاق په دې سبب سره شوې دې كَانَ فِي يَدِهِ کوم چې د غاصب په قبضه کي شوې وو وَيُسَلَّمُ لَهُ او دا نصف به د آقا لپاره سلامت پاتې وی. وَلَا يَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى وَلَا إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ او آقا به دا د رومبي او دوهم جنایت ولی ته نه ورکوی ،لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا فِي النِّصْفِ ځکه چې د دوهم حق په نصف کي دې لِئَلَّا يَتَكَرَّرَ الِاسْتِحْقَاقُ... لِيُبْنَى حَقُّ الْأَوَّلِ د رومبی د حق مخکې کیدو په وجه وَقَدْ وَصَلَ ذَلِكَ إِلَيْهِ او دغه نصف هغه ته رسیدلې دې ثُمَّ قِيلَ: بیا ونیلی شوی دی هَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى الِاخْتِلَافِ كَالْأُولَى چې دا مسئله د رومبی پشان اختلاف باندې ( مبنی) ده وَقِيلَ او ونیلی شوی دی عَلَى الِاتِّفَاقِ چه په اتفاق ده.

تشریح:- یعنی دوباره چې آقا کوم نصف د رومبی جنایت ولی ته ورکړې ده.هغه دې د غاصب نه بیا واپس واخلی.او اوس چې کوم څه دی.دا واړه به د آقا وی.ځکه چې د رومبی کوم حق وو.هغه پوره هغه ته ملاو شوې دې.او د دوهم حق خو وو نیم، ځکه چې مقابل دې.بیا سوال دا دې.چه په دې کي د امام محمد رحمه الله اتفاق دې اوکه اختلاف؟ نو اصح قول دا دې.چه اتفاق دې.اوس به سوال دا وی.چه امام محمد رحمه الله د خپل اصول نه ولې اخوا شو؟ او په رومبی او دې مسئله کي نې توپیر اوکړو.نو د توپیر دا وجه واضح کوی.

## په دواړو صورتونو کښې د امام محمد رحمه الله د فرق کولو وجه

وَالْفَرْقُ لِمُحَمَّدٍ رحمه الله او وجه د توپیر امام محمد رحمه الله لپاره دا ده فِي الْأُولَى الَّذِي يَرْجِعُ بِهِ چې په رومبی صورت کي هغه مقدار کوم چې مولا د غاصب نه واپس اخلی عِوَضٌ عَمَّا هغه عوض دې سَلَّمَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى د هغه شی کوم چې مولا د رومبی جنایت ولی ته ورکړې دې لِأَنَّ الْجِنَايَةَ الثَّانِيَةَ كَانَتْ فِي يَدِ الْمَالِكِ ځکه چې دوهم جنایت د مالک په قبضه کي شوې دې فَلَوْ دَفَعَ إِلَيْهِ ثَانِيًا نو که رومبی ولی ته نې دوباره ورکړو ،يَتَكَرَّرُ الِاسْتِحْقَاقُ نو استحقاق به مکرر کیږی فَأَمَّا فِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ فَيُمْكِنُ بهرحال په دې مسئله کي ممکن ده.أَنْ يُجْعَلَ عِوَضًا عَنِ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ چې دا د دوهم جنایت عوض اوګرځولې شی لِحُصُولِهَا د دوهم جنایت حاصلولو په وجه فِي يَدِ الْغَاصِبِ د غاصب په قبضه کي فَلَا يُؤَدِّي إِلَى مَا ذَكَرْنَاهُ نو دا به ددې خرابۍ اړخ ته متعدی نه وی.

تشریح:- امام محمد رحمه الله په دې دواړو صورتونوکي توپیر ولې کړې دې؟ نو وې فرمائیل.چه د استحقاق د تکرار خرابی رومبی صورت کي وه.دلته نشته.په دې وجه توپیر کړې شوې دې.ځکه چې دلته کي دواړه جنایت د غاصب په قبضه کي اوسیدو سره صادر شوی دی.نو داسې ونیلې کیدای شی.چه رومبې کوم پوره قیمت د غاصب نه اخستې شوې دې.هغه د رومبی جنایت ضمان وو.او په دوهم ځلی چې کوم نصف اخستې شوې دې.دا د دوهم ضمان دې.نو په استحقاق کي به تکرار نه لازمیږی.په خلاف د رومبی صورت.

## غاصب سره د مغصوب بچي د مړو مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ غَصَبَ صَبِيًّا) و چا چې آزاد بچې غصب کړو حُرًّا فَمَاتَ فِي يَدِهِ فَجْأَةً أَوْ بِحُمَّى نو هغه د غاصب په قبضه کي ناګهانی مرګ یا تبې ( بخار) سره مړ شو لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو په هغه به هیڅ نه وی وَإِنْ مَاتَ مِنْ صَاعِقَةٍ أَوْ نَهْشَةِ حَيَّةٍ وکه په بجلۍ غورځیدو یا د مار په چیچلو سره مړ شوې وی فَعَلَى عَاقِلَةِ الْغَاصِبِ الدِّيَةُ نو د غاصب په عاقله باندې دیت واجب دې وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ.او دا استحسان دې

حل اللغة: ① فجاة: ناڅاپه ② حمی: تبۀ ③ صاعقة: تندر ④ نهس: چیچل ⑤ حیة: مار

تشریح:- یوکس داسې بچې غصب کړو.چه هغه آزاد دې.اوخپل تعارف ( پیژندګلو) نشی کولې.او دا بچې د غاصب سره د اوسیدو په حالت کي مړ شو.نو په بعضو صورتونو کي به د غاصب په عاقله باندې دیت واجب وی.او په بعضو کي به هیڅ واجب نه وی.نوکه دا بچې پخپل مرګ مړ شوې دې.یا د تبې په وجه مړ شوې دې.نو په غاصب باندې ضمان نشته.او که په بجلۍ غورځیدو یا د مار په چیچلو سره مړ شو.نو دیت به واجب نه وی.

وَالْقِيَاسُ او قیاس دا دې أَنْ لَا يَضْمَنَ فِي الْوَجْهَيْنِ چې هغه په دواړو صورتونو کي ضامن نه وی وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ

وَالشَّافِعِي رحمهما الله او هم دا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله قول دی لِأَنَّ الْغَصْبَ فِي الْحُرِّ لَا يَتَحَقَّقُ، ځکه چې د آزاد غصب نه متحقق کیږي أَلَا يَرَى آیا دا نه ګوري، أَنَّهُ لَوْ كَانَ مُكَاتَبًا صَغِيرًا که مکاتب صغیر وی سره لَا يَضْمَنُ نو غاصب نه ضامن کیږي مَعَ أَنَّهُ حُرٌّ يَدًا باوجود ددې خبرې چې هغه (صغیر مکاتب) د قبضې په اعتبار سره آزاد دی. فَإِذَا كَانَ الصَّغِيرُ حُرًّا نو هرکله چې صغیر آزاد دې، رَقَبَةً وَيَدًا د رقبې او قبضې دواړو په اعتبار أَوْلَى نو په درجه اولی (به غاصب ضامن وی).

**تشریح:-** او کومه چې د قیاس تقاضه ده.هم دا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله مذهب دی.د دوی دلیل دا دی چې د آزاد غصب نشی کیدی.ددې وجه دا ده.چه مکاتب صرف د خپلې قبضې په اعتبار سره آزاد شمارلې شی.او پاتې شو آزاد نو هغه د خپلې قبضې په اعتبار سره او د ذات په اعتبار سره آزاد وی.نو که مکاتب صغیر څوك غصب کړي.او هغه د غاصب په قبضه کې مړشي.نو نه غصب متحقق کیږي.او نه غاصب ضامن کیږي.نو د آزاد بچی په صورت کې په درجه اولی دا حکم کیدل پکار دی.

## د احنافو استحسانی دلیل

وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ استحسانی دلیل دا دی . أَنَّهُ لَا يَضْمَنُ بِالْغَصْبِ چې غاصب د غصب کاوه په وجه نه ضامن کیږي وَلَكِنْ يَضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ خو هغه د هلاکاوه په وجه ضامن کیږي ،وَهَذَا إِتْلَافٌ تَسْبِيبًا او دا د سبب په طور هلاکول دی لِأَنَّهُ نَقَلَهُ إِلَى أَرْضٍ ځکه چې غاصب هغه داسې ځانې ته منتقل کړو مَسْبَعَةٍ چې هلته درنده ګان (ماتونکی ځناور) ډیر دی. أَوْ إِلَى مَكَانِ الصَّوَاعِقِ یا برق (برق (بجلی)) ډیره غورځیږي،وَهَذَا لِأَنَّ الصَّوَاعِقَ وَالْحَيَّاتِ وَالسِّبَاعَ لَا تَكُونُ فِي كُلِّ مَكَانٍ،او دا ځکه چې برق (برق (بجلی)) او مار او درنده ګان هر ځانې کې نه وی فَإِذَا نَقَلَهُ إِلَيْهِ نو هرکله نې چې هغه (بچې) هلته بوتلو فَهُوَ مُتَعَدٍّ فِيهِ او غاصب د هغه په نقل کاوه کې متعدی دی وَقَدْ أَزَالَ حِفْظَ الْوَلِيِّ حالانکه غاصب د ولی ساتنه زائل کړو فَيُضَافُ إِلَيْهِ نو هلاکول به د غاصب په اړخ مضاف وی.

**حل اللغة:** ① **مسبعة:** د ماتونکودرندګانو ځانې ② **الصواعق:** جمع د صاعقه: تند ③ **اتلاف:** هلاکول ④ **حیات:** جمع د حیة: مار﴾

**تشریح:-** دا زموږ دلیل دی.او زموږ مذهب استحسان باندې مبنی دی.نو د استحسان دلیل دا دی.چه موږ غاصب کوم ضامن جوړ کړی دی.هغه موږ د غصب په وجه نه دی جوړ کړی.بلکه د هلاکاوه په وجه مو ضامن جوړ کړی دی.او غاصب د هلاکت سبب دی.ځکه چې برق (بجلی) ټولو ځایونو کې نه غورځیږي.او ماران او درنده ګان هر ځانې کې نه وی.نو هغه بچې داسې ځانې ته بیولو (بوتللو).نو په دې بیولو (بوتللو) کې هغه متعدی دی.او د بچی ولی د هغه ساتنه کولو.خو هغه (غاصب) د ولی د ساتنه نه هم هغه (بچې) محروم کړو.

لِأَنَّ شَرْطَ الْعِلَّةِ يَنْزِلُ مَنْزِلَةَ الْعِلَّةِ إِذَا كَانَ تَعَدِّيًا ځکه چې د علت شرط کله چې شرط د تعدی په طور وی.د علت په درجه کې راکوزولې شی كَالْحَفْرِ فِي الطَّرِيقِ لکه په لاره کې څاه کنستل بِخِلَافِ الْمَوْتِ فَجْأَةً په خلاف د ناګهانی مرګ، أَوْ بِحُمَّى یا د تبې په وجه مرګ لِأَنَّ ذَلِكَ لَا يَخْتَلِفُ ځکه چې دا (ناګهانی مرګ او د تبې په وجه مرګ) نه مختلف کیږي بِاخْتِلَافِ الْأَمَاكِنِ په اختلاف د ځایونو سره حَتَّى لَوْ نَقَلَهُ إِلَى مَوْضِعٍ تردې که هغه (بچې) ئې داسې ځانې ته بیولو (بوتللو) يَغْلِبُ فِيهِ الْحُمَّى وَالْأَمْرَاضُ چې هلته تبه او مرضونه خپاره شوی دی ،نَقُولُ نو موږ وایو ،بِأَنَّهُ يَضْمَنُ .چه هغه به ضامن وی فَتَجِبُ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو په عاقله به دیت واجب وی لِكَوْنِهِ قَتْلًا تَسْبِيبًا د هغه د قتلولو په وجه، سبب سره (مباشرت او قصد سره نه)

**تشریح:-** او دا اصول مقرر دی.چه شرط ته هغه وخت د علت درجه ور کاوه سره ضمان واجبولې شی.کله چې په دې شرط کې تعدی او زیاتې اوموندې شی.لکه څنګه چې په کوهی کنستلو کې هم داسې دی.نو دغه ډول به دلته کې هم وی.او هلاکول به غاصب اړخ ته مضاف وی.او ناګهانی مرګ سره مړکیدل، یا تبې سره مړ کیدل، ټولو ځایونو



کې کیږي.نو په دې کې د نقل کاوه او منتقل کاوه هیڅ دخل نشته.نو په دې صورت کې به غاصب ضامن نه وی.البته که غاصب بچې داسې ځانې ته بیولو (بوتللو).چه هلته تبه یا نور مرضونه خپاره شوی دی.نو اوس به غاصب ضامن وی.او دیت به واجب وی.خو دا دیت به عاقله باندې وی.غاصب باندې به نه وی.ځکه چې غاصب پخپله نه دې قتل کړې.بلکه هغه د قتل سبب جوړ شوې دې.

## د بچی د ودیعت غلام د قتلولو.یا د ودیعت خوراك د خوړلو مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل [وَإِذَا أَوْدَعَ صَبِيٌّ عَبْدًا] و کله چې بچې سره یو غلام ودیعت کیخودې شو [فَقَتَلَهُ] نو بچی هغه قتل کړو [فَعَلَى عَاقِلَتِهِ الدِّيَةُ] .نو د بچی په عاقله باندې دیت واجب دې [وَإِنْ أَوْدَعَ طَعَامًا] و که بچی سره خوراك ودیعت کیخودې شو [فَأَكَلَهُ] نو بچی هغه اوخوړلو [لَمْ يَضْمَنْ] نو بچې به ضامن نه وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او دا د طرفینو رحمهما الله په نیز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ: رحمهما الله او امام ابویوسف او امام شافعي رحمهما الله فرمائی.يَضْمَنُ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيعًا چه بچې به په دواړو صورتونو کې ضامن وی

**تشریح:-** که د یو بچی سره څوك غلام ودیعت کیخودې شو.او بچی هغه قتل کړو.نو د بچی په عاقله باندې به دیت واجب وی.او که د بچی سره خوراك ودیعت کیخودې شو.او بچی هغه اوخوړلو.نو د طرفینو رحمهما الله نیز بچی باندې ضمان نشته.او د امام ابویوسف او امام شافعي رحمهما الله په نیز به بچی باندې ضمان واجب وی.

## د محجور علیه غلام د ودیعت مال هلاکولو مسئله

وَعَلَى هَذَا او هم په دې قیاس باندې (دا مسئله مبنی ده) إِذَا أَوْدَعَ الْعَبْدُ الْمَحْجُورُ عَلَيْهِ مَالًا کله چې محجور علیه غلام سره څه مال ودیعت کیخودې شوې وی فَاسْتَهْلَكَهُ بیا هغه دا هلاك کړې وی لَا يُؤَاخَذُ بِالضَّمَانِ فِي الْحَالِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ، نو د طرفینو رحمهما الله په نیز به غلام فی الحال ماخوذ (ګرفتار) نه وی وَيُؤَاخَذُ بِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ [1] او د آزادئ نه روستو به ګرفتارولې شی

**تشریح:-** که محجور غلام سره ئې څه امانت کیخودو.چه دا هغه هلاك کړو.نو د طرفینو رحمهما الله په نیزبه غلام نه ضمان د آزادئ نه روستو اخستلې کیږي.فی الحال به نه اخستلې کیږي.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَالشَّافِعِيِّ رحمهما الله او د امام ابویوسف او امام شافعي رحمهما الله په نیز به يُؤَاخَذُ بِهِ فِي الْحَالِ دده نه فی الحال مواخذه کولای شی وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْإِقْرَاضُ او هم په دې اختلاف (مبنی) دی. پور ورکول وَالْإِعَارَةُ او عاریت ورکول فِي الْعَبْدِ وَالصَّبِيِّ غلام او بچی ته

**حل اللغة:** ① **الاعارة:** په خواست سره د یو څیز ورکول ② **الاقراض:** پور ورکول﴾

**تشریح:-** او د امام ابویوسف او امام شافعي رحمهما الله په نیز به فی الحال ضمان اخستلې شی.دغه ډول که محجور غلام ته یا بچی ته ئې پور ورکړو.یا ئې څه شئ عاریت ورکړو.او بچی یا غلام دا هلاك کړو.نو ضمان به نه وی.البته غلام به د آزادئ نه روسته ګرفتارولې شی.(یعنی ضمان به ترې اخستلې شی).

## د جنایت کونکی د بچی د تعین په اړه کښې اختلاف

وَقَالَ مُحَمَّدٌ فِي أَصْلِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی صَبِيٌّ قَدْ عَقَلَ ماشوم چې عاقل شو وَفِي الْجَامِعِ الْكَبِيرِ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي صَبِيٍّ ابْنِ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً،او په جامع کبیر کې مسئله د ۱۳ کالو هلك اړه کې وضع کړې شوې ده وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى او دا په دې خبره دلالت کوی أَنَّ غَيْرَ الْعَاقِلِ يَضْمَنُ بِالْاِتِّفَاقِ .چه غیر عاقل بالاتفاق ضامن دی ،لِأَنَّ التَّسْلِيطَ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ ځکه چې مسلط کول معتبر نه دی وَفِعْلُهُ مُعْتَبَرٌ او د ماشوم غیر عاقل فعل

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ملتقى (٣٩٧\٤) والكفاية فى صدر الفتح (٣٠٢\٩) والدرالمحتار (٤٤٢\٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٤\٢)۔

معتبر دي.

حل اللغة* ① سليط: مسلط كول﴾

تشريح:- ددې ځاني نه مرغيناني رحمه الله دا بيانول غواړي.چه دا اختلاف د كوم بچي په اړه كي دې.د عاقل؟ نو د جامع صغير او جامع كبير په حواله سره ئې ثابته كړې ده.چه دا اختلاف د عاقل ماشوم په اړه كي دې.ګنى كه بچې عاقل وي.نو بالاتفاق به ضمان واجب وي.ځكه چې د بچي د غير عاقل كيدو په صورت كي د اصل مالك د اړخه مسلط كول نه دي موجود شوي.او د بچي فعل معتبر دې.نو د هغه د فعل ضمان به واجب وي.

①فائده*دا مسئله په جامع صغير كي ده.خو دلته داصل اضافه ولې ده؟ نو ددې هيڅ وجه نشته.علاوه ددې نه چې داسې اوونيلې شي.چه دا د ناسخينو غلطي ده.او په عين الهدايه كي دى ،، في الأصل،، نو اوس هيڅ اشكال نه پاتې كيږي.خو په نور شروحاتو كي داسې ملاو نشو.

②فائده* درمختار وغيره كي مسئله ددې په عكس ده.يعني په غيرعاقل ماشوم به بالاتفاق ضمان نه وي.معلومه شوه.چه په دې مسئله كي زموږ د مشانخو دوې (دوه) جماعتونه دي.

## د امام ابويوسف او امام شافعي رحمهما الله دليل

لهما او د امام ابويوسف او امام شافعي رحمهما الله دليل دا دې أَنَّهُ أَتْلَفَ مَالًا مُتَقَوِّمًا چې ده (بچي) متقوم مال هلاك كړې دې. مَعْصُومًا حَقًّا لِمَالِكِهِ چې دا خپل مالك د حق په وجه محفوظ دې فَيَجِبُ عَلَيْهِ الضَّمَانُ نو په ده به ضمان واجب وي كَمَا إذَا كَانَتِ الْوَدِيعَةُ عَبْدًا لكه كه وديعت غلام وي وَكَمَا إذَا أَتْلَفَهُ غَيْرُ الصَّبِيِّ يا لكه د بچي نه علاوه كس دا هلاك كړي فِي يَدِ الصَّبِيِّ الْمُودَعِ د مودع په قبضه كي ،

حل اللغة* ① اتلاف: هلاكول ② متقوم: قيمتي،هغه شئ چې قيمت ئې وي ③ صبي: ماشوم﴾

تشريح:- ددې ځاني نه او د امام ابويوسف او امام شافعي رحمهما الله دليل دې.چه په بچي باندې د مال او خوراك وغيره ضمان ولې واجب دې؟ نو وې فرمائيل.چه لكه څنګه بچي باندې د وديعت ضمان بالاتفاق واجب دې.دغه ډول به د مال ضمان هم واجب وي.او كه بل څوك سړې بچي سره دا مال هلاك كړي.نو په هلاكونكي باندې ضمان واجب دې.نو معلومه شوه.كه بچې ئې پخپله هلاك كړي.نو په ده به هم ضمان واجب وي.ځكه چې دا مال متقوم دې.او دمالك د حق په وجه محفوظ دې.

## د طرفينو رحمهما الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې أَنَّهُ أَتْلَفَ مَالًا غَيْرَ مَعْصُومٍ چې بچي غير محفوظ مال ضائع كړې دې فَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ نو ضمان به واجب نه وي. كَمَا إذَا أَتْلَفَهُ بِإِذْنِهِ وَرِضَاهُ لكه كله چې هغه دا د مالك په اجازت او د هغه په رضامندئ سره هلاك كړي وَهَذَا لِأَنَّ الْعِصْمَةَ تَثْبُتُ حَقًّا لَهُ او دا ځكه چې عصمت د مالك حق جوړيږي.او ثابتيږي وَقَدْ فَوَّتَهَا عَلَى نَفْسِهِ او مالك پخپل نفس باندې ساتنه فوت كړې دې حَيْثُ وَضَعَ الْمَالَ فِي يَدِهِ په دې حيثيت سره چې هغه مال په داسې لاس كي كيخودو مَانِعَةٍ چې هغه (د وديعت د ساتنه او دعاريت كيخودو) نه منع شوې دې.(يعني محجور عليه دې ،فَلَا يَبْقَى مُسْتَحِقًّا لِلنَّظَرِ نو مالك د شفقت مستحق پاته پاتې نشو.

حل اللغة* ① عصمة: ساتنه ② النظر: شفقت ③ فوت: ضائع كيدل﴾

تشريح:- دا د طرفينو رحمهما الله دليل دې.چه د خوراك او مال هلاكاوه په صورت كي بچي باندې ضمان ولې نشته؟ نو ددې وجه دا ده.چه الله تعالى په واړه مالونه د خپلو ټولو بنده ګانو لپاره پيدا كړي دي.په دې لحاظ سره هيڅ مال كي ساتنه نشته.بلكه په دې كي د ټولو شراكت دې.خو كه يوكس د معين ځيزونو مالك جوړ نكړې شي.نو ډير زيات فساد به لازم شي.ځكه چې د يو ځيزنه واړه خلګ فائده واخلي.نو دا نا ممكن ده.نو د اړتيا په وجه د مالك حق كي مالك معصوم شمارلې شي.خو دلته مالك دا عصمت (ساتنه) هم ختم كړو.ځكه چې ده د داسې بچي



سره مال وديعت كيخودو.چه هغه د وديعت ايخودو اهل نه دې.نو ده پخپله د خپل مال ساتنه ختم كړو.نو هركله چې ددې مال غير محفوظ كيدل ثابت شو.نو په بچي به ضمان هم واجب نه وي.او نه اوس مالك د شفقت قابل پاتې شو.ځكه دا داسې شوه. لكه چې بچي د هغه په رضامندئ او اجازت سره د هغه مال ضائع كړې وي.

إلَّا إذَا أَقَامَ غَيْرَهُ مَقَامَ نَفْسِهِ خو كله چې مالك د خپل ځان نه علاوه (بل څوك) د ځان قائم مقام كړي فِي الْحِفْظِ په ساتنه كي وَلَا إقَامَةَ هَاهُنَا او دلته اقامت نشته لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الصَّبِيِّ ځكه چې مالك ته په بچي باندې ولايت نشته وَلَا لِلصَّبِيِّ عَلَى نَفْسِهِ او نه بچي ته پخپل نفس باندې ولايت شته.

تشريح:- خو كه د ساتنه لپاره ئې څوك خپل قائم مقام جوړ كړې وي.او هغه تعدى كړې وه.او دا مال ئې هلاك كړې وي.نو ضمان به واجب وو.خو دلته هغه خپل قائم مقام جوړ كړې نه دې.ځكه چې مالك ته په بچي باندې هيڅ ولايت نشته.او نه بچي ته پخپله خپل ځان باندې ولايت حاصل دې.

## بالغ يا ماذون له غلام د وديعت مال هلاك كړو.نو د ضمان حكم

بِخِلَافِ الْبَالِغِ وَالْمَأْذُونِ لَهُ په خلاف د بالغ او ماذون غلام، لِأَنَّ لَهُمَا وِلَايَةً عَلَى أَنْفُسِهِمَا ځكه چې دوى دواړو ته پخپل نفس باندې ولايت حاصل دې وَبِخِلَافِ مَا إذَا كَانَتِ الْوَدِيعَةُ عَبْدًا او په خلاف ددې صورت كله چې وديعت غلام وي لِأَنَّ عِصْمَتَهُ لِحَقِّهِ ځكه چې د غلام عصمت د خپل حق په وجه دې إذْ هُوَ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي حَقِّ الدَّمِ ځكه چې غلام د وينې په حق كي اصل حريت باندې قائم دې وَبِخِلَافِ او په خلاف ددې صورت مَا إذَا أَتْلَفَهُ غَيْرُ الصَّبِيِّ فِي يَدِ الصَّبِيِّ كله چې دا د بچي نه علاوه كس د بچي په قبضه كي ضائع كړې وي لِأَنَّهُ سَقَطَتِ الْعِصْمَةُ ځكه چې ساتنه ساقط شو بِالْإِضَافَةِ إلَى الصَّبِيِّ د هغه بچي اړخ ته اضافت كاوه سره، الَّذِي وَضَعَ فِي يَدِهِ الْمَالَ د چا په قبضه كي چې مال دې دُونَ غَيْرِهِ د هغه نه علاوه په حق كي (ساتنه) نه دې (ساقط شوي).

تشريح:- كه مودع بالغ وي.يا ماذون له غلام وي.او مال د وديعت دوى هلاك كړي.نو په ده به ضمان واجب وي.ځكه چې دوى دواړو ته پخپل نفس باندې ولايت حاصل دې.نو اقامت صحيح دې.او ساتنه پاته دې.نو ضمان به واجب وي.اوكه په وديعت كي ئې غلام ايخودې وي.نو په بچي به هم ضمان وي.،، كما مر،، ځكه چې د غلام ساتنه د مالك د حق په وجه نه دې.بلكه د غلام د حق په وجه دې.ځكه چې د وينې وغيره په حق كي غلام ته د آزادئ درجه وركړې شوې ده.اوكه بچي سره بل چا دا مال ضائع كړې وي.نو په هغه باندې ضمان واجب دې.ځكه چې مذكوره صورت كي د مال عصمت صرف د بچي په حق كي ساقط دې.ګنى د هغه نه د علاوه په حق كي ساتنه قائم دې.نو په دې غير باندې به ضمان واجب وي.

## د وديعت د مال نه علاوه بچي بل څه مال هلاك كړو.نو څه حكم دې ؟

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمايي وَإِنِ اسْتَهْلَكَ مَالًا او كه بچي مال هلاك كړو ضَمِنَ نو هغه به ضامن وي يُرِيدُ بِهِ مِنْ غَيْرِ إيدَاعٍ.ددې نه مراد د وديعت نه بغير هلاكول دي لِأَنَّ الصَّبِيَّ يُؤَاخَذُ بِأَفْعَالِهِ ځكه چې بچي پخپلو افعالو كي ګرفتاريږي وَصِحَّةُ الْقَصْدِ او د قصد صحت، لَا مُعْتَبَرَ بِهَا فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ د بنده ګانو په حقوقو كي معتبر نه دي.والله اعلم بالصواب.

حل اللغة* ① ايداع: امانت كيخودل ② استهلك: هلاك كړو﴾

تشريح:- كه بچي د مال وديعت نه علاوه بل څه مال هلاك كړو.نو په بچي به ضمان واجب وي.ځكه چې بچي پخپلو افعالو كي ګرفتاريږي.اګرچه هغه پخپلو اقوالو كي نه ګرفتاريږي.

كه څوك دا سوال اوكړي چې د ماشوم خو هډو قصد او اراده صحيح نه ده نو بيا دا حكم ولې دې نوورته وايو چې په په حقوق العباد كي د قصد او ارادې صحت معتبر نه دې.

## باب القسامة

ژباړه:- ( دا) باب د قسامت ( د احکامو په بيان کي ) دې.

تشريح:- د قسامت لغوی او شرعی معنی۞په لغت کي قسامت په معنی د قسم سره دې.او په شريعت کي قسامت په الله تعالی قسم خوړل دی.د مخصوص سبب په وجه، مخصوص عدد سره.په سړی باندې مخصوص طريقه باندې.

### د قسامت بيان

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَاِذَاوُجِدَالْقَتِيلُ فِي مَحَلَّةٍ وکله چې په يوه محله کي څوك مقتول اوموندلې شی وَلَايُعْلَمُ مَنْ قَتَلَهُ و د هغه د قاتل علم اونشی اِسْتُحْلِفَ خَمْسُونَ رَجُلًامِنْهُمْ نو د محلې د پنځوسو سړو څخه به قسم اخستلې شی يَتَخَيَّرُهُمُ الْوَلِي کوم ( پنځوس کسان) چې ولی اختيار کړی بِاللّٰهِ مَاقَتَلْنَاهُ (د قسم الفاظ به دا وی).د خدائي قسم نه موږ دې قتل کړې دې وَلَاعَلِمْنَالَهُ قَاتِلًا ونه موږ ته دده د قاتل علم شته.

حل اللغة: ① قتيل: صيغه داسم مفعول،قتل شوې»

تشريح:- که يو سړې مقتول په يوه محله کي اوموندې شو.او د قتل آثار په ده باندې موجود وی.او د هغه د قاتل معلومات نه وی.او د مقتول ولی په ټوله محله باندې يا په بعضو غير معين باندې يا په بعضو معين باندې د قتل دعوه اوکړی.نو زموږ په نيز به ولی ته حق وی.چه په محله کي پنځوس نفر منتخب کړی.کوم چې دده خوښ وی.او د هغوی نه دې قسم واخستلې شی.هغوی به داسې قسم خوری.چه ،، د الله قسم نه موږ دا قتل کړې دې.او نه موږ ته دده د قاتل معلومات شته.اوکه هغوی قسم اوخوړلو.نو قصاص به ددوی نه ساقطيږی. البته ددوی په عاقله به ديت واجب وی.که ولی د قتل عمد دعوه کوی.او که د قتل خطاء دعوه کوی. لنډيز د کلام دا چې زموږ په نيز قصاص صرف هغه وخت ثابتيږی.کله چې د محلې خلگ د قسم نه انکار اوکړی.او د قتل اقرار کوی.يا په ګواهانو سره قتل عمد ثابت شی.دا زموږ د مسلك تفصيل دې.

وَقَالَ الشَّافِعِي رحمه الله او امام شافعی رحمه الله اوفرمائيل اِذَاكَانَ هُنَاكَ لَوْثٌ کله چې هلته څه قرينه وی اِسْتُحْلِفَ الْاَوْلِيَاءُ خَمْسِينَ يَمِينًا نو د اولياء نه پنځوس قسمونه اخستلې شی وَيَقْضِي لَهُمْ بِالدِّيَةِ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ عَمَدًا او اولياء لپاره به مدعی عليه باندې د ديت فيصله ورکولې شی.كَانَتِ الدَّعْوٰي اَوْخَطَأً دعوه که د ( قتل) عمد وی اوکه د خطاء وی

تشريح:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.که د مدعی په اړه کي ښکاره حال شاهد وی.يعنی په دوی کي د يوکس توره په وينې وی.يا د مقتول او د محلې د خلګو په منځ کي ښکاره دښمنی وغيره وی.نو بيا به د محلې د خلګو نه قسم نشی اخستلې.بلکه د مدعی څخه به قسم اخستلې شی.يعنی مدعی به پنځوس قسمونه خوری.کله چې مدعی قسم اوخوړلو.چه د محلې خلګو دې قتل کړې دې.نوکه دعوه د خطاء وی.نو ديت به واجب وی.او د عمد ( قتل) په اړه کي ددوی دوې (دوه) اقواله دی.د يو قول مطابق به قصاص واجب وی.او د يو قول مطابق به ديت واجب وی.خو که مدعی د قسم نه إنکار اوکړی.نو بيا به د محلې د خلګو نه قسم اخستلې شی.نوکه د محلې خلګو قسم اوخوړلو.نو اوس نه په دوی باندې قصاص شته.او نه ديت شته.اوکه دوی د قسم نه انکار اوکړو.نو اوس د امام شافعی رحمه الله دوې (دوه) اقواله دی.د يو قول مطابق قصاص واجب دې.او د يو قول مطابق ديت واجب دې.او که قرينه نه وی. نو بيا به د محلې د خلګو نه داسې قسم اخستلې شی.کوم چې زموږ مذهب دې.

لنډيز د کلام دا چې زموږ او د امام شافعی رحمه الله اختلاف په دوو ځايونو کي دې.① زموږ په نيز به د مدعی ( ولی) نه قسم نه اخستلې کيږی.او د امام شافعی رحمه الله په نيز به قسم اخستلې شی.② که د محلې خلګو قسم اوخوړلو.نو د امام شافعی رحمه الله په نيز اوس هغه د ضمان نه بری شو.يعنی په دوی به ديت واجب نه وی.او زموږ په نيز به ديت واجب وی.



وَقَالَ مَالِكٌ:او امام مالك رحمه الله اوفرمائيل يَقْضِي بِالْقَوَدِ چې د قصاص فيصله به کولای شی اِذَاكَانَتِ الدَّعْوٰي فِي الْقَتْلِ الْعَمْدِ کله چې د قتل عمد دعوه وی وَهُوَاَحَدُقَوْلَيِ الشَّافِعِي رحمه الله او هم دا د امام شافعی رحمه الله د دوو قولو نه يو قول دې.

تشريح:- او امام مالك رحمه الله فرمائی.که د مدعی دعوه د قتل عمد وی.نو دمدعی عليهم ( د محلې خلګو) نه چې مدعی څوك اختيار کړی.د هغوی څخه به قصاص اخستلې شی.«غرر الافکار، شامی»

فائده: د مخصوص سبب نه مراد د مقتول په محله کي موجود کيدل دی.مخصوص عدد پنځوس (۵۰) دې.د مخصوص سړی نه مراد مخصوص النوع دې.يعنی داسې سړې چې دا عاقل بالغ وی.يا مالك مکلف وی. په دې کي سړې او ښځه هم داخل دی.مخصوص طريقه يعنی پنځوس سړی وی.او ددې نه پنځوس قسمونه وی.او افراد پوره نه وی.نو يمين ( قسم) به مکرر اخستلې شی.

### د لوث مطلب

وَاللَّوْثُ عِنْدَهُمَا او ددوی دواړو ( امام مالك او امام شافعی رحمهما الله په نيز ( لوث) دا دې اَنْ يَكُوْنَ هُنَاكَ عَلَامَةُ الْقَتْلِ عَلٰي وَاحِدٍبِعَيْنِهِ چې هلته په يو معين سړی باندې د قتل علامت وی اَوْظَاهِرٌيَشْهَدُلِلْمُدَّعِي يا ښکاره حال مدعی لپاره شاهد وی مِنْ عَدَاوَةٍظَاهِرَةٍ يعنی ښکاره دښمنی وی اَوْشَهَادَةِعَدْلٍ يا د يو عادل شهادت وی اَوْجَمَاعَةٍ يا د داسې جماعت شهادت وی غَيْرِعُدُولٍ چې غير عادل اَهْلَ الْمَحَلَّةِقَتَلُوْهُ چې د محلې خلګو ده لره قتل کړې دې.

تشريح:- ددې ځائې نه د لوث ( قرينې) تفسير بيانوی.ددې حاصل دا دې.چه څه داسې قرينه ملاو شی.چه په دې سره زړه کي خبره مضبوطه شی.چه هم دا خلګ دده قاتلان دی.چه ددې مختلفې طريقې دی.① په دوی کي د يوکس توره په وينه لړلې وی.② يا د مقتول او په دوی کي د چا په منځ کي دښمنی راروانه وه.③ يو عادل سړی ګواهی ورکړله.چه د محلې خلګ دده قاتلان دی.خو ددې شاهد لپاره ضروری ده.چه دا ددې محلې نه وی.④ يا يو جماعت ګواهی ورکړله.خو دا جماعت د عادلانو نه وی.نو دا واړه صورتونه په لوث ( قرينه) کي داخل دی.

### د لوث په غير موجودګئ کښې د احنافو او د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر

وَاِنْ لَمْ يَكُنِ الظَّاهِرُشَاهِدًالَهُ او که ښکاره حال مدعی لپاره شاهد نه وی فَمَذْهَبُهُ مِثْلُ مَذْهَبِنَا نو د امام شافعی رحمه الله مذهب زموږ د مذهب پشان دې لَايُكَرِّرُالْيَمِينَ علاوه ددې خبرې نه چې دوی قسم نه مکرر کوی غَيْرَاَنَّهُ بَلْ يَرُدُّهَاعَلَى الْوَلِي ،بلکه قسم په ولی باندې راګرځوی فَاِنْ حَلَفُوْا نو که د محلې خلګو قسم اوخوړلو لَادِيَةَعَلَيْهِمْ نو په دوی به ديت نه وی.

تشريح:- مرغينانی رحمه الله فرمائی.که لوث ( قرينه) نه وی.نو بيا زموږ د مذهب مطابق دې.يعنی د امام شافعی رحمه الله په نيز به هم د محلې د خلګو نه قسم اخستلې شی.صرف يو توپير دې.که د محلې خلګ د پنځوسو نه کم وی.نو زموږ په نيز به ددوی نه مکرر قسم اخستلې شی.او د امام شافعی رحمه الله په نيز به اوس د محلې د خلګو په ځائې د محلې د خلګو د ولی نه قسم اخستلې شی.بهرحال د محلې د خلګو نه د قسم اخستلو په صورت کي چې کله هغوی قسم اوخوړلو.نو د امام شافعی رحمه الله په نيز به اوس د محلې په خلګو باندې ديت واجب نه وی.او زموږ په نيز واجب دې.،، کمامر،،

### د قسامت په اړه کښې د امام شافعی نقلی او عقلی دليل

لِلشَّافِعِي رحمه الله د امام شافعی رحمه الله دليل فِي الْبُدَاءِبِيَمِيْنِ الْوَلِي د ولی د قسم نه ابتداء کاوه په اړه کي قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ

د نبی کریم ﷺ فرمان دې وَالسَّلَامُ لِلْأَوْلِيَاءِ د مقتول اولیاو ته {فَيُقْسِمُ مِنْكُمْ خَمْسُونَ چې ،، په تاسو کې به پنځوس سړي قسم خوري أَنَّهُمْ قَتَلُوهُ (١) چې دوی مقتول قتل کړې دې.

**تشریح:-** امام شافعي رحمه الله فرمائیلي وو. که لوث او قرینه وي. نو د قسم ابتداء به د مقتول اولیاو نه کولې شي. اره کې نقلي دلیل دا پیش کوي. چه د خیبر په یوې ګډه کې عبدالله بن سهل بن زید محیصه بن مسعود بن زید په دې مقتول اوموندلو. او دفن ئې کړو. بیا ددې خاني نه مدینې ته راغې. او پخپله د حویصه بن زید مسعود بن زید رضي الله عنه عبدالرحمن بن سهل رضي الله عنه سره د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو. او د عبدالله بن سهل رضي الله عنه واقعه ئې بیان کړله. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چه تاسو به پنځوس قسمونه خورئ. او د خپل انډیوالان د وینې مستحق به شئ. نو دوی عرض اوکړو. چه قسم به څنګه خورو. حالانکه مونږه حاضر نه وو. نو نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو. چه بیا دې یهود پنځوس قسمونه اوخوري. ستاسو نه دې براءت اوکړي. دوی عرض اوکړو. چه دغه خلګ مسلمانان نه دی. او د کافرانو قسمونه څنګه قبلیدې شي. نو نبی کریم ﷺ دوی ته د صدقاتو د اوښانو نه سل اوښان فدیه کې ورکړل. نو اوګورئ. چه په دې کې د مقتول د اولیاء تقدیم دې.

وَلِأَنَّ الْيَمِينَ تَجِبُ عَلَى مَنْ او ځکه چې قسم په هغه کس باندې واجبیږي يَشْهَدُ لَهُ الظَّاهِرُ چا لپاره چې ښکاره حال شاهد وي وَهَذَا تَجِبُ عَلَى صَاحِبِ الْيَدِ، او هم په دې وجه قسم قبضې والا باندې واجبیږي فَإِذَا كَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِلْوَلِيِّ نو هرکله چې ښکاره حال د ولي لپاره شاهد وي يَبْدَأُ بِيَمِينِهِ نو دده د قسم څخه به پیل کولای شي وَرَدُّ الْيَمِينِ عَلَى الْمُدَّعِي أَصْلٌ لَهُ او قسم په مدعی باندې واپس کول د امام شافعي رحمه الله یو اصل دې. كَمَا فِي النُّكُولِ لکه څنګه چې د انکار په صورت کې (مدعی نه قسم اخستلې شي).

**تشریح:-** اوعقلي دلیل دا بیانوي چې په اکثرو معاملاتو کې یمین ځکه معتبر دې. چه ددې مقصد د خپلې ذمې براءت دې. چه ددې په وجه ښکاره حال مدعی لپاره شاهد وي. خو اتفاق سره د قسامت په باب کې ښکاره حال د مدعی په حق کې شاهد دې. ځکه چې لوث او قرینه موجود ده. اوچا لپاره چې ښکاره حال شاهد وي. قول هم د هغه معتبر وي. نو د مدعی قول به سره د یمین نه معتبر وي. یعنی دده د قسم څخه به پیل کولې شي.

د امام شافعي رحمه الله په نیز لکه څنګه چې دا اصول دې. چه که د محلې خلګ دقسم نه انکار اوکړي. نو د مدعی څخه به قسم اخستلې شي. د دیت د وجوب فیصله به ورکولې شي. دغه ډول ددوی په نیز دا هم اصل دې. (قاعده کلیه ده). چه که د محلې د خلګو شمیر پنځوس نه وي. نو اوس به د محلې د خلګو نه مکرر قسم نه اخستلې کیږي. بلکه دلته به د محلې د خلګو په ځائې د محلې د اولیاو نه قسم اخستلې شي. او ددوی په قسم به د دیت د وجوب فیصله ورکولې شي.

غَيْرَ أَنَّ علاوه ددې خبرې نه هَذِهِ دَلَالَةٌ چې قسم داسې دلالت دې فِيهَا نَوْعُ شُبْهَةٍ چې په دې کې د شبهې یو ډول دې وَالْقِصَاصُ لَا يُجَامِعُهَا او قصاص شبهې سره نه جمع کیږي. وَالْمَالُ يَجِبُ مَعَهَا او مال د شبهې سره جمع کیږي فَلِهَذَا وَجَبَتِ الدِّيَةُ نو په دې وجه دیت واجب دې

**تشریح:-** دا عبارت په حقیقت کې د یوتقدیري سوال ځواب دې کوم چې په امام شافعي رحمه الله باندې راتلو هغه دا چې پکار دی. چه د عمد په صورت کې د قصاص د وجوب فیصله ورکړي؟ نو ځواب ورکوی چې په یمین کې شبه ده. او قصاص شبهې سره ساقطیږي. البته مال شبهې سره هم واجبیږي. او دیت مال دې. په دې وجه یمین سره صرف دیت ثابتیدې شي. قصاص نشي ثابتیدې. دا د امام شافعي رحمه الله دلیلونه وو. وروسته زموږ دلیلونه دی.

### د قسامت په اړه کښې د احنافو نقلي دلیل

(١) من حديث عبدالله بن سهل رضي الله عنه أخرجه الأئمة الستة فى كتبهم منهم البخاري فى الأدب باب ٨٩)_



وَلَنَا او زموږ دلیل قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ} وَفِي رِوَايَةٍ {عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ} (١) د نبی کریم ﷺ فرمان دې. «ألبينة على المدعي واليمين على من أنكر» او په یو روایت کې (د ،، على من أنكر،، په ځائې «على المدعى عليه» دې أَوْرَدَى سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ او سعید بن مسیب رضي الله عنه روایت کړې دې {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَدَأَ بِالْيَهُودِ بِالْقَسَامَةِ چې نبی کریم ﷺ د قسامت په اړه کې یهودو نه پیل اوکړله وَجَعَلَ الدِّيَةَ عَلَيْهِمْ لِوُجُودِ الْقَتِيلِ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ (٢) او مقتول ددوی په منځ کې د موندلو په وجه ئې دیت په دوی باندې لازم کړو

**تشریح:-** دا زموږ دلیل دې. ① رومبې دلیل مشهور حدیث دې. «ألبينة على المدعي واليمين على من أنكر» ② دوهم دلیل د سعید بن مسیب رضي الله عنه روایت دې. چه د یهودو په یو کوهي کې د یو مقتول ملاویدو په وجه د یمین او قسامت پیل ئې د یهودو نه اوکړله. او بیا ئې په یهودو باندې دیت واجب کړو. ځکه چې مقتول ددوی په منځ کې ملاو شوې وو. ددې دواړو حدیثونو تفصیل لپاره اوګورئ: «نصب الرايه ص: ۳۹۰، ج۴»

### د احنافو عقلي دلیل

وَلِأَنَّ الْيَمِينَ حُجَّةٌ لِلدَّفْعِ او ځکه چې یمین حجت دې. د مضرت دفع کاوه لپاره دُونَ الِاسْتِحْقَاقِ دا استحقاق لپاره نه دې وَحَاجَةُ الْوَلِيِّ إِلَى الِاسْتِحْقَاقِ او د ولي حاجت استحقاق ارخ ته دې وَلِهَذَا لَا يَسْتَحِقُّ بِيَمِينِهِ الْمَالَ او په دې وجه د مدعی په یمین سره هغه مال نه مستحق کیږي الْمُبْتَذَلَ کوم چې خرچ کولای شي. فَأَوْلَى أَنْ نو دا خبره به په درجه اولی وي لَا يَسْتَحِقُّ بِهِ النَّفْسَ الْمُحْتَرَمَةَ چې یمین سره د نفس محترم استحقاق اونکړې شي.

**حل اللغة:** ① **حجة:** دلیل ② **استحقاق:** مستحق کیدل ③ **المبتذل:** خرچ کونکې»

**تشریح:-** یمین به صرف د محلې د خلګو فریضه وي. د اولیاو به نه وي. ځکه چې یمین هلته وي. چرته چې ددې مقصد دفع (د ضرر) وي. استحقاق نه وي. اودلته د مدعی مقصد دفع مضرت نه ده. بلکه استحقاق دې. بیا دا خبره هم واضح ده. چه د نفس مقام د مال نه زیات دې. او په یمین سره د مال ثبوت نه کیږي. نو د نفس محترم استحقاق به په درجه اولی نه ثابتیږي.

### د محلې په خلقو کښې د پنځوسو سړو منتخب کول حق ولي ته دې

وَقَوْلُهُ يَتَخَيَّرُهُمُ الْوَلِيُّ إِشَارَةٌ او د امام قدوري رحمه الله قول «يتخيرهم الولي» اشاره ده إِلَى أَنَّ دې خبرې ارخ ته، خِيَارَ تَعْيِينِ الْخَمْسِينَ إِلَى الْوَلِيِّ چې د پنځوسو متعین کاوه اختیار ولي ته دې لِأَنَّ الْيَمِينَ حَقُّهُ ځکه چې یمین دده حق دې وَالظَّاهِرُ او ښکاره دا ده، أَنَّهُ يَخْتَارُ چې دې به هغه څوك اختیاروي مَنْ يَتَّهِمُهُ بِالْقَتْلِ کوم چې دې په قتل سره متهم کوي.

**تشریح:-** د محلې د خلګو نه د پنځوسو سړو منتخب کاوه حق به ولي ته وي. ځکه چې یمین د اولیاء حق دې. نو دا اختیار به هم دوی ته ملاویږي. ځکه چې دوی به داسې نفر منتخب کوي. کوم چې دوی پخپل ګمان کې قتل سره متهم ګڼړي. نو په دې سره به قاتل زر ښکاره کیږي. او د قسم فائده دا ده. که دوی د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. نو مسئله به حل شي.

أَوْ يَخْتَارُ صَالِحِي أَهْلِ الْمَحَلَّةِ یا د محلې نیکان خلګ (به اختیاروي). لِمَا أَنَّ تَحَرُّزَهُمْ عَنِ الْيَمِينِ الْكَاذِبَةِ أَبْلَغُ التَّحَرُّزِ ځکه چې ددوی به د دروغ قسم نه بچ کیدل کامل بچ کیدل وي فَيَظْهَرُ الْقَاتِلُ، نو قاتل به ښکاره کیږي وَفَائِدَةُ الْيَمِينِ النُّكُولُ، او د یمین فائده انکار کول دی. (نو مطلوب به حاصل شي). فَإِنْ كَانُوا لَا يَبَاشِرُونَ نو که د محلې خلګو

(١) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده أخرجه الترمذي فى الأحكام باب ١٢رقم ١٣٤١ واللفظ الثاني أخرجه مسلم فى الأقضية باب ١ من رواية ابن عباس )_

(٢) أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه (نصب:١٩٣١٥)_

قتل کړې نه وی وَيَعْلَمُونَ او هغوی قاتل پيژنی يُفِيدُ يَمِينُ الصَّالِحِ عَلَى الْعِلْمِ بِأَبْلَغ نو په معلومولو به د نيك سړی قسم د هغې نه زياته فائده ورکوی مِمَّا يُفِيدُ يَمِينُ الطَّالِحِ کومه چې د بدکار يمين فائده ورکوی وَلَوِ اخْتَارُوا أَعْمَى أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ او که اولياو نا بينا يا محدود فی القذف اختيار کړې وی جَازَ نو جائز ده ،لِأَنَّهُ يَمِينٌ ځکه چې يمين دې وَلَيْسَ بِشَهَادَةٍ او شهادت نه دې.

**تشريح:-** يا به ولی د محلې نيکان خلگ منتخب کوی.ځکه چې د دوی په اړه کې دا خيال غالب دې.چه دوی به دروغ نه وائی.بلکه رشتيا به وائی.او په دې سره به قاتل زر معلوميږی.بيا که دوی قتل نه وی کړې.خو قاتل پيژنی.نو د قاتل معلومولو په اړه کې د نيکانو خلگو شهادت سره چې په مجرم کې کومه مضبوطی پيدا کيږی.دا به بدکارو خلگو په شهادت سره نه حاصليږی.او اولياو چې کوم نفر منتخب کړی دی.هغوی کې ړوند يا محدود فی القذف وی.نو بيا هم جائز ده.ځکه چې دا يمين دې.شهادت نه دې.

## د قسامت په اړه کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله دعوه او د امام شافعی رحمه الله دليلونه

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِذَا حَلَفُوا) نو کله چې دوی قسم اوخوړلو قُضِيَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِالدِّيَةِ نو د محلې په خلگو به د ديت فيصله کولای شی وَلَا يُسْتَحْلَفُ الْوَلِيُّ او د ولی څخه به قسم نشی اخستلې

**تشريح:-** کله چې د محلې د خلگو نه پنځوسو سړو قسم واخستلو.نو ددوی څخه به قصاص ساقطيږی.او په دوی به ديت واجبيږی.دا زمونږ مذهب دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله اوفرمائيل لَا تَجِبُ الدِّيَةُ چې ديت به واجب نه وی وجه لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَهْلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عبدالله بن سهل رضی الله عنه په حديث کې د نبی کريم ﷺ د فرمان په {تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُودُ بِأَيْمَانِهَا} (1) چې يهود به ستاسو نه بری شی.د خپلو قسمونو په وجه،،

**تشريح:-** او د امام شافعی رحمه الله په نيز د محلې په خلگو (دقسم اخستلو نه روستو) هيڅ ضمان واجب پاتې نشو.نه قصاص او نه ديت.په دې اړه کې امام شافعی رحمه الله دوې (دوه) دليلونه بيان کړی دی. ① يوذکر شوې حديث دې د دې مطلب دا دې.چه يهود به قسم خوری.نو هغوی به ستاسو نه بری شی.او په هغوی به ضمان واجب نه وی.

وَلِأَنَّ الْيَمِينَ عُهِدَ فِي الشَّرْعِ او ځکه چې قسم په شريعت کې معهود دې مُبَرِّئًا لِلْمُدَّعَى عَلَيْهِ په دې حال کې چې دا د مدعی عليه بری کونکې دې لَا مُلْزِمًا لازمونکې نه دې كَمَا فِي سَائِرِ الدَّعَاوِي لکه څنگه چې په ټولو دعوو کې کيږی

**حل اللغة:** ① مبرئ: بری کونکې ② ملزم: لازمونکې ③ الدعاوی: جمع د دعوة ده په معنی د دعوی

**تشريح:-** دوهم دليل عقلی دا دې. چې په شريعت کې کوم ځائې يمين مشروع دې.ددې مقصد دا دې.چه مدعی عليه د مدعی نه بری شی.داسې نه ده.چه د مدعی حق د مدعی عليه د قسم خوړلو باوجودمدعی عليه باندې لازم شی.په ټولو دعوو کې هم دا حال دې.نو په قسامت کې به هم دغه ډول کيږی.

## د امام اعظم رحمه الله دليل او د امام شافعی رحمه الله د ړومبی دليل جواب

وَلَنَا او زمونږ دليل دا دې النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَمَعَ بَيْنَ الدِّيَةِ وَالْقَسَامَةِ فِي حَدِيثِ ابْنِ سَهْلٍ (2) چې نبی کريم ﷺ د

(1) تقدم تخريجه فی أول الباب)_

(2) کماتقدم تخريجه فی أول الباب)_



سهل رضی الله عنه په حديث کې ديت او قسامت جمع والې اوکړو وَفِي حَدِيثِ زِيَادِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ (1) او د زياد بن ابو مريم په حديث کې (نې هم دواړه راجمع کړل وَكَذَا جَمَعَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بَيْنَهُمَا او دغه ډول حضرت عمر رضی الله عنه د ديت او قسامت په منځ کې جمع اوکړله عَلَى وَادِعَةَ (2) په قبيله وادعه باندې وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کريم ﷺ فرمان ،،تبرئكم اليهود،، {تُبَرِّئُكُمُ الْيَهُودُ} مَحْمُولٌ عَلَى الْإِبْرَاءِ عَنِ الْقِصَاصِ وَالْحَبْسِ د قصاص اوگرفتارئ نه بری کاوه باندې محمول دې

**تشريح:-** دا زمونږ دليل دې.چه د قسم نه روستو د محلې په خلگو ديت ولې واجب دې؟ نو ① ړمبې نې د سهل رضی الله عنه د واقعې حواله ورکړله.چه په دې کې قسامت او ديت جمع کړې شوې دې.ددې حديث راوی سهل بن ابی حثمه رضی الله عنه دې.② اوهم دغه ډول د زياد بن ابومريم په حديث کې دواړه جمع کړې شوی دی.③ او دغه ډول د قبيلهٔ همدان په بو ښاخ وادعه کې دا واقعه راپيښه شوه.نو فاروق اعظم رضی الله عنه هم قسامت او ديت کې جمع فرمائيلې وه.

④ او قوله ﷺ ،،تبرئكم اليهود،، ترديه خايه پورې زمونږ دليلونه دی.وروسته د امام شافعی رحمه الله د مستدلاتو ځواب دې.ددوی د ړومبی دليل ځواب دا ورکړې شوې دې.چه په مذکوره حديث کې د ديت نه بری کيدل مراد نه دی.بلکه د قصاص او گرفتارئ نه بری شو.او ددې مونږه هم قائل يو.دې پسې ددوی د دوهم دليل ځواب ورکوی.

## د دوهم دليل جواب

وَكَذَا الْيَمِينُ مُبَرِّئَةٌ عَمَّا او هم دغه ډول يمين د هغه شئ نه بری کوی وَجَبَ لَهُ الْيَمِينُ د کوم لپاره چې يمين واجبيږی وَالْقَسَامَةُ مَا شُرِعَتْ او قسامت ددې لپاره نه مشروع کيږی لِتَجِبَ الدِّيَةُ چې ديت واجب شی إِذَا نَكَلُوا کله چې د محلې خلگ انکار اوکړی بَلْ شُرِعَتْ بلکه يمين ددې لپاره مشروع کيږی لِيَظْهَرَ الْقِصَاصُ بِتَحَرُّزِهِمْ عَنِ الْيَمِينِ الْكَاذِبَةِ چې دوی د دروغو قسم نه بچ شی.او قصاص ښکاره شی. فَيُقِرُّوا بِالْقَتْلِ نو دوی د قتل اقرار اوکړی ،فَإِذَا حَلَفُوا نو هرکله چې هغوی قسم اوخوړلو حَصَلَتِ الْبَرَاءَةُ عَنِ الْقِصَاصِ نو د قصاص نه براءت حاصل شو.

**تشريح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائيلی وو.چه يمين خو د مدعی عليه د بری کاوه لپاره مشروع دې.نو دا د هغې ځواب دې.حاصل د ځواب دا دې.چه يمين د مدعی عليه د بری کاوه لپاره مشروع دې. زمونږ هم دې اصول سره اتفاق دې.خو دا ياد ساتئ.چه يمين د هغه حق نه بری کوی.دکوم لپاره چې يمين مشروع شوې وو.او دلته يمين دقصاص ثابتولو لپاره مشروع شوې وو.چه دا خلگ د دروغو قسم نه د بچ کيدو په غرض سره د قسم نه انکار اوکړی.او د قتل اقرار اوکړی.نو قصاص به واجب شی.خو کله چې دوی قسم اوخوړلو.نو اوس به قصاص واجب نه وی.يعنی ددوی قسمونو دوی د قصاص نه بری کړل.

ثُمَّ الدِّيَةُ تَجِبُ بِالْقَتْلِ بيا ديت د هغه قتل په وجه واجبيږی الْمَوْجُودِ مِنْهُمْ ظَاهِرًا کوم چې ښکاره ددوی د اړخه موجود شوې دې لِوُجُودِ الْقَتِيلِ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ د مقتول ددوی په منځ کې د ملاويدو په وجه لَا بِنُكُولِهِمْ (د ديت وجوب) د دوی د انکار په وجه نه دې أَوْ وَجَبَتْ يا ديت واجب شوې دې بِتَقْصِيرِهِمْ فِي الْمُحَافَظَةِ ددوی په محافظت کې د کوتاهئ کاوه په وجه ،كَمَا فِي الْقَتْلِ الْخَطَإِ لکه څنگه چې قتل خطاء کې (ديت واجبيږی).

**حل اللغة:** ① اظهرهم: د هغوی مخکی ② نکول: انکار ③ تقصير: کوتاهی ④ المحافظة: حفاظت

(1) قال الزيلعی رحمه الله وحديث زياد غريب و وری البزار فی مسنده ..عن أبی سلمة بن عبدالرحمن عن أبيه قال كانت القسامة فی الدم يوم خيبر وذكر أن رجلاً من الأنصار من أصحاب النبی ﷺ فقد تحت الليل فجاءت الأنصار فقالوا إن صاحبنا يتشحط فی دمه فقال أتعرفون قاتله؟قالوا لا إلا أن اليهود قتلته فقال رسول الله إختاروا منهم خمسين رجلاً فيحلفون بالله جهد أيمانهم ثم خدوا الدية منهم ففعلوا (نصب:۱۹۵\۵)_

(2) أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه (نصب:۱۹۷\۵)_

**تشریح:-** پاتې شو د دیت وجوب، نو دا ځکه ثابت شو.چه قتل په ښکاره ددوی د اړخه صادر شوي دي.ځکه چې مقتول ددوی په منځ کي ملاو شوي دي.بهرحال د دیت د وجوب مدار په انکار باندې نه دی.بلکه په هغه ښکاره حال باندې دی.کوم چې موږ ذکر کړې دی.یا بیا دیت په دوی باندې ځکه واجب شو.چه ددوی د اړخه ساتنه کي بې غوری او کمی موجود شوې ده.لکه څنګه چې په قتل خطاء کي هم په دې بنا (بنیاد) باندې دیت واجبیږی.

## د محلې د خلقو د قسم خوړلو نه د انکار کولو حکم

وَمَنْ أَبَى مِنْهُمُ الْيَمِينَ او په دوی کي چې کوم کس د قسم نه انکار اوکړو حُبِسَ نو هغه به قید کولای شی حَتَّى يَحْلِفَ تردې چې هغه قسم اوخوری لِأَنَّ الْيَمِينَ فِيهِ مُسْتَحَقَّةٌ ځکه چې دې کي یمین پخپله واجب دي لِذَاتِهَا تَعْظِيمًا لِأَمْرِ الدَّمِ د وینې د معاملې د تعظیم په وجه، وَلِهَذَا يُجْمَعُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الدِّيَةِ، او هم په دې وجه به د یمین او دیت په منځ کي جمع کولای شی بِخِلَافِ النُّكُولِ فِي الْأَمْوَالِ په خلاف د مالونو کي د انکار کولو لِأَنَّ الْيَمِينَ بَدَلٌ عَنْ أَصْلِ حَقِّهِ ځکه چې یمین دده د حق بدل دې وَلِهَذَا يَسْقُطُ بِبَذْلِ الْمُدَّعِي او په دې وجه د مدعا مال په خرچ کاوه سره یمین ساقطیږی وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ او په کومه مسئله کي چې موږ بحث کوو لَا يَسْقُطُ بِبَذْلِ الدِّيَةِ .په دې کي به دیت ور کاوه سره یمین نه ساقطیږی.

**تشریح:-** که د محلې په خلګو کي چا د قسم نه انکار اوکړو.نو ترکومه پورې چې هغه قسم اونه خوری.تر هغه وخته به ني په قید کې ا.چولې شی.ځکه چې په باب د قسامت کي صرف مال مقصود نه دې.بلکه یمین هم اصل مقصود دې.ځکه چې دا د وینې معامله ده.چه دا ډیره محترمه ده.نو دلته قسم هم واجب دې.او دیت هم واجب دې.البته که په مالونو کي مدعی علیه د قسم نه انکار اوکړو.نو دې به نشی قید کولې.بلکه په ده باندې به مال لازمولې شی.ځکه چې په باب د مالونو کي قسم د مدعی د حق بدل دې. او کله چې مدعی حق ادا کړو.یعنی مال نې ورکړو.نو یمین به ساقطیږی.خو په باب د قسامت کي که د محلې خلګ دیت ورکړی.نو په دې باندې به اکتفاء نشی کولې.بلکه په دوی به قسم خوړل هم لازمی وی.او مال ورکول هم.

## د پورتنی حکم نافذ کولو څینې صورتونه

هَذَا الَّذِي ذَكَرْنَا إِذَا ادَّعَى الْوَلِيُّ الْقَتْلَ عَلَى جَمِيعِ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ دا تفصیل کوم چې موږ ذکر کړې دی.هغه وخت دې کله چې ولی د محلې په ټولو خلګو دقتل دعوه کړې وی ،وَكَذَا إِذَا ادَّعَى عَلَى الْبَعْضِ لَا بِأَعْيَانِهِمْ او هم دغه ډول کله ني چې په دوی کي د بعضې غیر معین دعوه کړې وی وَالدَّعْوَى فِي الْعَمْدِ أَوْ الْخَطَإِ او دعوه که په عمد کي وی او که په خطاء کي ( واړه برابر دی.او هم دا حکم دې) ځکه لِأَنَّهُمْ لَا يَتَمَيَّزُونَ عَنِ الْبَاقِي چې بعض غیرمعین به د پاته نه نه جلا کیږی.

**تشریح:-** کوم حکم چې وړاندې تیر شو نو په دې دواړو واړو صورتونو کي هم دغه حکم دې ① د مقتول ولی د محلې په ټولو خلګو د خپل ولی د قتل دعوه کړې وی.که د عمداً وی او که د خطاء وی. نو هم دغه حکم دې. کوم چې ذکر شوې دې.② د محلې په خلګو کي نې بعضو باندې دعوه کړې وی.خو دا بعض غیر متعین وی.بیا هم دغه حکم دې.ځکه چې هرکله دا بعض غیر معین وی.نو دوی به د پاته محلې والو نه انتخاب نشی کیدې.

وَلَوْ ادَّعَى عَلَى الْبَعْضِ بِأَعْيَانِهِمْ او که په بعضې معین باندې نې دعوه کړې وی أَنَّهُ قَتَلَ وَلِيَّهُ عَمْدًا أَوْ خَطَأً چې هغه دده ولی عمداً یا خطاء سره قتل کړې دې. فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ نو هم دغه ډول ځواب دې يَدُلُّ عَلَيْهِ إِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ په دې باندې په قدوری کتاب کي د ځواب اطلاق دلالت کوی ،،وَهَكَذَا الْجَوَابُ فِي الْمَبْسُوطِ او هم دغه ډول ځواب په مبسوط کي (هم دې).

**تشریح:-** دا دریم صورت دې اود دې هم هغه حکم دې چې د وړاندینی صورتونو وو هغه دا چې د محلې په خلګو نې بعضو معین باندې دعوه اوکړله.چه دوی زما ولی قتل کړې دې.نو اوس هم دغه حکم دې.کوم چې ک



اطلاق هم په دې دلالت کوی.ځکه چې دوی مطلقا دا فرمانیلی دی. «إذا وجد القتيل في محلة ليعلم من قتله أستحلف خمسون رجلاً منهم» او په مبسوط کي هم دا ځواب دې.یعنی په بعض متعین باندې د دعوه کیدو په صورت کي هم قسامت او دیت واجب دې.او هم دا ظاهرالروایة دې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي غَيْرِ رِوَايَةِ الْأَصْلِ او د امام ابویوسف رحمه الله نه د اصول د روایت نه علاوه کي منقول دی أَنَّ فِي الْقِيَاسِ تَسْقُطُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ چې د قیاس مطابق به قسامت او دیت ساقطیږی عَنِ الْبَاقِينَ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ د پاته محلې خلګو نه، وَيُقَالُ لِلْوَلِيِّ او ولی ته به وئیلې شی ،أَلَكَ بَيِّنَةٌ چې آیا ستا ګواهان شته؟ فَإِنْ قَالَ نو که هغه واېي لَا چې نشته لَا يُسْتَحْلَفُ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ يَمِينًا وَاحِدَةً نو مدعی علیه څخه به یو یمین سره د هغه په قتل باندې قسم اخستلې شی

**تشریح:-** دا د امام ابویوسف رحمه الله نه په غیرظاهرالروایة کي منقول دی.دوی فرمانی.چه کله مدعی علیه بعض متعین وی.نو دلته د قیاس تقاضه دا ده.چه د محلې د پاته خلګو نه قسامت او دیت ساقط شی.او ولی ته اوئیلې شی.چه تا سره ګواهان شته؟ که وی.نو ډیره ښه ده.کنی که ګواهان نه وی.نو مدعی علیه څخه به ... قسم اخستلې شی.اوس به په دې کي د دواړو فریقو دلیلونه ذکرکولې شی. په نورو الفاظو کي داسې چې د قیاس او استحسان دلیل به ذکرکولې شی.

## د امام ابویوسف رحمه الله دلیل

وَجْهُهُ او وجه ددې دا ده الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ چې قیاس ددې انکار کوی لِاحْتِمَالِ وُجُودِ الْقَتْلِ مِنْ غَيْرِهِمْ د محلې د خلګو نه د غیر د اړخه د قتل موجود کیدو په وجه وَإِنَّمَا عُرِفَ او دا ( دیت او قسامت) پیژندلې شوې دي بِالنَّصِّ فِيمَا إِذَا د نص په ذریعه هغه صورت کي كَانَ فِي مَكَانٍ کله چې مقتول په داسې ځائې کي وی يُنْسَبُ إِلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِمْ چې دا مدعی علیه اړخ ته منسوب وی ،وَالْمُدَّعِي يَدَّعِي الْقَتْلَ عَلَيْهِمْ او مدعی په هغه باندې د قتل دعوه اوکړی ،وَفِيمَا وَرَاءَهُ بَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ او ددې نه په علاوه کي دا په اصل قیاس باندې پاته دې وَصَارَ كَمَا او دا داسې شوه إِذَا ادَّعَى الْقَتْلَ عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ کله چې دې دمحلې د خلګو نه علاوه کي په یو کس باندې د قتل دعوه اوکړی

**تشریح:-** دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د محلې په ټولو خلګو قسامت او دیت واجبول خلاف قیاس دی.ځکه ممکن ده.چه د محلې د خلګو نه علاوه ( بل چا) دې قتل کړې دې.او دلته نې غورځولې دې. لنډیز د کلام دا چې قسامت او دیت د قیاس مخالف دې.اوکوم شئ چې خلاف قیاس وی.هغه صرف مورد د سماع پورې (منحصر) وی.اونص صرف په داسې صورت کي وارد دې.کله چې مقتول په محله کي اوموندلې شی.او مدعی د محلې په ټولو خلګو د قتل دعوه اوکړی.نو صرف هم دا صورت منصوص علیه دې.ددې نه علاوه واړه صورتونه به د مورد د سماع نه خلاف شمارلې شی.او په دې باندې به د قیاس حکم جاری کولې شی.او د قیاس حکم ښکاره دې.چه نه په دې کي قسامت شته او نه دیت شه.لکه که د مدعی دعوه دا وی.چه ددې محلې نه علاوه کي فلانی سړی دا قتل کړې دې.نو دلته بالاتفاق د محلې په خلګو نه قسامت شته او نه دیت شته.او ددې مدعی علیه څه حکم دې.نو ددې ځواب روستو راروان دې.

## د قسامت او د دیت د وجوب استحسانی دلیل

وَفِي الِاسْتِحْسَانِ تَجِبُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ او په استحسان کي د محلې په خلګو قسامت او دیت واجب دې لِأَنَّهُ لَا فَصْلَ فِي إِطْلَاقِ النُّصُوصِ بَيْنَ دَعْوَى وَدَعْوَى ځکه چې د نصوصو په اطلاق کي په یوه دعوه او دویمه دعوه کي هیڅ توپیر نشته فَنُوجِبُهُ بِالنَّصِّ نو موږ دا ( قسامت او دیت) په نص سره واجبوو لَا بِالْقِيَاسِ په قیاس سره نه ( واجبوو). ،بِخِلَافِ مَا إِذَا په خلاف ددې صورت ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ کله چې ولی ددوی نه په غیر کي یو کس باندې دعوه کړې وی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ نَصٌّ ،ځکه چې دې کي نص نشته فَلَوْ أَوْجَبْنَاهُمَا نو که موږ دا دواړه واجب کړو

لأوجبناهما بالقياس نو موږ به دا قیاس سره واجب کوو وهو ممتنع او دا ممتنع دي.

تشریح:- استحساناً په دریو واړو صورتونو کي د محلې په خلګو قسامت او دیت واجب دي. ځکه چي نصوص مطلق دي. په هغې کي دا تفصیل نشته. چه که دعوه داسې وي. نو (حکم) داسې دي. اوکه داسې وي. نو داسې دي. نو په دریم صورت کي هم قسامت او دیت نص سره ثابت کړې دي. په قیاس سره مو نه دي ثابت کړې. ځکه چي نصوصو کي اطلاق دي. البته که د محلې د خلګو نه علاوه کي په یو کس باندې ولی د قتل دعوه کړې وي. نو د محلې په خلګو نه قسامت شته. او نه دیت شته. ځکه چي په دې صورت کي هیڅ نص نشته. نو ددې حکم رتبه به قیاس سره کولې شی. او قیاس دلته باطل دې. ځکه چي مقیس علیه پخپله د قیاس خلاف دي.

## د محلې د خلقو نه علاوه په بل سړي باندې د مدعی د دعوې حکم

ثم حكم ذلك بیا ددې حکم دا دي أن يثبت ما ادعاه چي مدعی د څه دعوه کوی. هغه به ثابتیږی إذا كان له بينة کله چي دده سره بینه وی وإن لم تكن اوکه بینه نه وی استحلفه يمينا واحدة نو مدعی علیه څخه به یو قسم سره حلف اخستلې شی لأنه ليس بقسامة ځکه چي دا قسامت نه دي لانعدام النص د نص نه کیدو په وجه وامتناع القياس او د قیاس ممتنع کیدو په وجه، ثم إن حلف بیا که هغه قسم اوخوړلو برئ نو هغه به بری کیږی، وإن نكل اوکه انکار ني اوکړو. والدعوي في المال حالانکه دعوه د مال په اړه کي ده ثبت به نو په دې سره به مال ثابتیږی وإن كان في القصاص او که دعوه په قصاص کي ده. فهو على اختلاف نو دا په هغه اختلاف (مبنی) ده مضى في كتاب الدعوي کوم چي کتاب الدعوی کي تیر شوي دي

حل اللغة: ① انعدام: نشتوالې ② امتناع: منع کول ③ نکل: انکار اوکړو

تشریح:- دلته مرغینانی رحمه الله دا وضاحت کول غواړی. چه هرکله مدعی د محلې د خلګو نه علاوه په یوغیر سړی باندې د قتل دعوه کړې وی. نو ددې څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. که د مدعی سره ګواهان وی. نو د ولی دعوه به ثابتیږی. اوکه مدعی سره ګواهان نه وی. نو مدعی به مدعی علیه باندې یوځل قسم خوری. پنځوس قسمونه ځکه نشته. چه دا قسامت نه دې. ځکه چي دې صورت کي نه نص شته. او نه دلته قیاس کولې شی. ځکه چي مقیس علیه پخپله ممتنع دې. نو که مدعی علیه قسم اوخوړلو. نو هغه بری شو. او هیڅ ضمان د هغه په ذمه پاتې نشو. اوکه مدعی علیه د قسم نه انکار اوکړی. نو اوس به کتلې شي. چه د مدعي دعوه په مال کي ده. او که په قصاص کي ده. نو که دده دعوه په مال کي یعنی په دیت کي وی. نو مال به بالاتفاق ثابتیږی. اوکه په قصاص کي وی. نو په دې کي د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې. یعنی د امام صاحب رحمه الله په نیز به قصاص کي دعوه ثابتیږی. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به نه ثابتیږی. ددې بحث په ،، کتاب الدعوی،، کي تیر شوې دي.

## که په محله کښې پنځوس قسمونه پوره نشي نو د قسم طریقه

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وإن لم يكمل أهل المحلة) او که د محلې د خلګو تعداد پوره نشو كررت الأيمان عليهم نو په دوی به قسمونه مکرر کولې شی. حتى تتم خمسين تردې چي پنځوس (قسمونه) پوره شی لما روي ځکه چي نقل دی أن عمر رضي الله عنه لما قضى في القسامة چي عمر رضی الله عنه کله په قسامت کي فیصله اوکړله وافى إليه تسعة وأربعون رجلا نو دوی له پنځوس سړی راغلل فكرر اليمين على رجل منهم نو په دوی کي ني یو سړی باندې قسم مکرر کړو حتى تمت خمسين تردې چي پنځوس (قسمونه) پوره شو ثم قضى بالدية[1] بیا ني د دیت فیصله اوفرمائیله وعن شريح والنخعي رحمهما الله مثل ذلك[2] او د شریح او نخعي رحمهما الله نه هم ددې پشان منقول دی

[1] أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه ،نصب:۱۹۸/۵)_

[2] حديث شريح أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه وحديث النخعی (رح) أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه (نصب:۱۹۹/۵)_



تشریح:- وړاندې ونیلې شوی دی. چه د محلې د خلګو د پنځوسو سړو څخه به قسم اخستلې شی. نو که اتفاق سره پنځوس تعداد پوره نشی. نو د موجوده کسانو څخه به مکرر قسم اخستلې شی. چه د پنځوسو تعداد پوره شی. د حضرت عمر رضی الله عنه او د قاضی شریح اونخعی رحمهما الله نه هم دغه ډول منقول دی. او چونکه دپنځوسو شمیر د حدیث نه ثابت دې. نو څومره چي ممکنه وی. (د پنځوسو قسمونو تعداد) پوره کول واجب دی. او ددې صورت دلته هم دا دی. کوم چي ذکر شو.

ولأن الخمسين واجب او ځکه چي پنځوس واجب دی بالسنة د حدیث په وجه فيجب إتمامها ما أمكن نو ترکومه پورې چي ممکن وی ددې پوره کول واجب دی، ولا يطلب او طلب کولې به نشی فيه الوقوف على الفائدة په دې کي فائده باندې خبریدل لثبوتها بالسنة ددې د ثابتیدو په وجه، په سنت سره ثم فيه استعظام أمر الدم بیا په دې کي د وینې معامله لویه ګڼړل دی فإن كان العدد كاملا نو که شمیر پوره وی فأراد الولي نو ولی اراده اوکړله أن يكرر على أحدهم په دوی کي د یوکس نه د مکرر قسم اخستلو فليس له ذلك نو هغه ته به ددې حق نه وی، لأن المصير إلى التكرار ځکه چي تکرار اړخ ته رجوع کول ضرورة الإكمال د پوره والی د اړتیا په وجه دې

حل اللغة: ① اتمام: پوره کول ② اکمال: کامل کول ③ المصیر: واپس کیدل، رجوع

تشریح:- دا عبارت په اصل کي د یوتقدیری سوال ځواب دې اودغه ډول عقلی دلیل هم دې، سوال دا دې چي ددې تکرار نه څه فائده ده؟ نوځواب ورکوی چي په دې چکر (او سوچ) کي غورخیدل غلط دی. نو دلته د ثبوت لپاره دومره خبره کافی ده. چه دا د سنت نه ثابته ده. اوکه هیڅ څه فائده معلومه نشی. نو دا فائده خامخا شته. چه په دې کي د وینې معامله ډیره عظیمه او محترمه ګڼړلې شی. که د پنځوسو شمیر پوره دې. ددې باوجود ولی غواړی. چه په دوی کي دیوکس نه مکرر قسم واخستلې شی. نو ولی ته به ددې حق نه وی. ځکه چي قسم کي تکرار د اړتیا په وجه وو. او اصول منلې شوې دي. چي «الضرورة تتقدر بقدر الضرورة» او دلته هیڅ اړتیا نشته.

## په بچي، مجنون، ښځه او غلام باندې د قسامت نه کیدو وجه

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (ولا قسامة على صبي ولا مجنون) او په بچي او لیونی باندې قسامت نشته لأنهما ليسا من أهل القول الصحيح ځکه چي دوی دواړه د صحیح قول اهل نه دی واليمين قول صحيح او قسم صحیح قول دې قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (ولا امرأة ولا عبد) ونه په ښځه او نه په غلام باندې (قسامت شته). لأنهما ليسا من أهل النصرة ځکه چي دوی دواړه د امدادی خلګو څنې نه دی واليمين على أهلها او قسم (د امداد کونکو په) اهل باندې دې.

تشریح:- په قسامت کي به په ماشوم، لیونی، ښځه او غلام باندې قسم نه وی. ځکه چي قسم قول صحیح ته وانی. او قسم په هغه خلګو باندې واجبیږی. کوم چي امداد کولې شی. او دلته رومبی دواړه قول صحیح نشی ونیلې. اوآخری دواړه اګرچه په صحیح قول کلام کولې شی. خو کومک نشی کولې.

## په کومو صورتونو کښې د محلې په خلقو قسامت او دیت نشته؟

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وإن وجد ميتا) وکه مړې اوموندې شی لا أثر به چي په ده باندې (د قتل) اثر نه وی فلا قسامة ولا دية نو نه قسامت شته او نه دیت شته لأنه ليس بقتيل ځکه چي دې مقتول نه دې، إذ القتيل في العرف ځکه چي عرف کي مقتول هغه دې من فاتت حياته بسبب. چه دهغه ژوند په داسې سبب سره فوت شوې وی يباشره حي کوم چي یو ژوندی سړی کړې وی وهذا ميت او دا داسې مړې دې حتف أنفه چي دا پخپل مرګ مړ شوې دې والغرامة تتبع فعل العبد او تاوان د بنده د فعل تابع دی والقسامة تتبع احتمال القتل او قسامت د قتل د احتمال تابع دې ثم يجب عليهم القسم بیا په دوی باندې قسم واجبیږی فلا بد نو ضروری ده. من أن يكون به أثر چي داسې اثر وی يستدل به على كونه قتيلا چي هغې سره دده په مقتول کیدو باندې استدلال اوکړې شی وذلك او هغه دا دې، بأن

يَكُونَ بِهِ جِرَاحَةٌ چي زخم وی أَوْ أَثَرُ ضَرْبٍ يا د وهلو اثر وی أَوْ خَنْقٍ يا د مرئ خفه کولو (زورلو اثر وی). وَكَذَا إِذَا كَانَ خَرَجَ الدَّمُ مِنْ عَيْنِهِ أَوْ أُذُنِهِ او هم دغه ډول كله چي دده د سترگي يا غوږ نه وينه راوځی لِأَنَّهُ لَا يَخْرُجُ مِنْهَا خکه چي ددي دواړو نه په عامه توگه (عام طور) وينه نه راوځی، إِلَّا بِفِعْلٍ مِنْ جِهَةِ الْحَيِّ عَادَةً خود ژوندی د اړخه د څه فعل په وجه.

حل اللغة: ① حتف انفه: په خپل مرگ باندي مرينه ② الحی: محله ③ جهة: طرف، اړخ.

تشريح:- كه په يوه محله كي څوک مړ انسان ملاو شو. خو په ده باندي د قتل هيڅ اثر نشته. نه څه زخم شته. نه د وهلو ټ كاوه څه اثر شته. نه د مرئ زورلو څه اثر شته. نه دده د سترگي او غوږ نه وينه جاری ده. نو دا مقتول نه دي. بلكه پخپل مرگ مړ شوي دي. او قسامت او ديت په مقتول كي واجبيږي. نو دلته نه قسامت شته. او نه ديت شته. خكه چي دلته نه قتل شته او نه د قتل احتمال شته.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددي صورت إِذَا خَرَجَ مِنْ فِيهِ كله چي وينه دده د خولي أَوْ دُبُرِهِ يا دده د دبر أَوْ ذَكَرِهِ يا دده د ذكر (يعني وراندي روستو د متيازو لارو) نه راوځی لِأَنَّ الدَّمَ يَخْرُجُ مِنْ هَذِهِ الْمَخَارِجِ عَادَةً بِغَيْرِ فِعْلِ أَحَدٍ خكه چي ددي منافذو (سورو) نه د څه فعل نه بغير په عامه توگه (عام طور) وينه راوځی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الشَّهِيدِ او موږ دا په ،، باب الشهيد ،، كي ذكر كړی دی.

تشريح:- اوكه دده د ذكر نه وينه جاری وی. يا دده د دبر نه يا ذكر يا د خولي نه وينه راوځی. نو دي به قتيل نه وی. خكه چي ددي خايونو نه په عامه توگه (عام طور) باندي دبل كس د فعل نه بغير پخپله هم وينه راوځی. په ،، باب الشهيد ،، كي هم ددي بيان تير شوي دي.

## په كومو صورتونو كښي د محلي په خلقو قسامت او ديت شته؟

وَلَوْ وُجِدَ بَدَنُ الْقَتِيلِ أَوْ أَكْثَرُ مِنْ نِصْفِ الْبَدَنِ أَوِ النِّصْفُ وَمَعَهُ الرَّأْسُ فِي مَحَلَّةٍ او كه د مقتول بدن يا د بدن د نصف نه زياته يا نصف او دده سر په يوه محله كي اوموندي شی فَعَلَى أَهْلِهَا الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ نو د محلي په خلگو قسامت او ديت واجب دي وَإِنْ وُجِدَ نِصْفُهُ او كه دده نصف دي مَشْقُوقًا بِالطُّولِ چي دا په اوگدوالی باندي شليدلي وی أَوْ وُجِدَ أَقَلُّ مِنَ النِّصْفِ يا د نصف نه كم وی او ددي سره سر وی أَوْ وُجِدَ يَدُهُ أَوْ رِجْلُهُ أَوْ رَأْسُهُ يا دده لاس يا دده خپه يا دده سرملاو شی فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمْ نو د محلي په خلگو هيڅ نشته لِأَنَّ هَذَا حُكْمٌ خكه چي دا داسي حكم دي عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ چي دا موږ په نص سره پيژندلي دي وَقَدْ وَرَدَ بِهِ فِي الْبَدَنِ او نص ددي حكم په اړه كي په بدن كي دننه وارد شوي دي، إِلَّا أَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ خو اكثر لپاره د كل حكم دي تَعْظِيمًا لِلْآدَمِيِّ د سړی د تعظيم په وجه.

تشريح:- كه د مقتول پوره بدن يا دده اكثره برخه په يوه محله كي ملاو شی. نو د محلي په خلگو قسامت او ديت واجب دي. او كه د نصف نه كم ملاو شی. كه دده سره ور سره وی. او كه صرف سر، پښي يا لاس ملاو شی. نو نه قسامت واجب دي. او نه ديت. خكه چي د مقتول په اړه كي دا مخصوص حكم يعني قسامت او ديت قساس سره ثابت نه دي. بلكه د نص نه خلاف قياس ثابت دي. نو دا به په مورد د سماع باندي منحصر ساتلي شی. او مورد د سماع پوره بدن دي. خو د احتياط په وجه او د انسان د تعظيم په لحاظ اكثر بدن د پوره بدن قايم مقام ايخودي شوي دي.

## د قسامت كيدو او نه كيدو اړه كښي قاعده كليه

بِخِلَافِ الْأَقَلِّ په خلاف دكم (بدن لِأَنَّهُ لَيْسَ بِبَدَنٍ خكه چي دا بدن نه دي وَلَا مُلْحَقٍ بِهِ او نه بدن سره مولبنتی دي فَلَا تَجْرِي فِيهِ الْقَسَامَةُ، نو په دي كي به قسامت نه جاری كيږی وَلِأَنَّا لَوِ اعْتَبَرْنَاهُ او كه موږ د كم اعتبار اوكړو تَتَكَرَّرُ الْقَسَامَتَانِ وَالدِّيَتَانِ نو دوي (دوه) قسامته او دوي (دوه) ديتونه به واجبيږی بِمُقَابَلَةِ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ د يو نفس په مقابله كي وَلَا تَتَوَالَيَانِ حالانكه دا دواړه بلا ناغه نه كيږی



تشريح:- البته كه كمه برخه موندي شوي ده. نو ② چونكه دا نه پوره بدن دي. اونه ددي سره مولبنتی دي. نو په دي كي به قسامت واجب نه وی. ② او دويمه وجه دا هم ده. چه كه د اقل اعتبار اوكړي شی. او قسامت او ديت واجب كړي شی. نو بيا د اكثر بدن ملاويدو سره به قسامت او ديت واجب وی. نو د قسامت او ديت تكرار به لازميږی. حالانكه په قسامت او ديت كي تكرار نشته.

وَالْأَصْلُ فِيهِ او په دي كي قاعده كليه دا ده أَنَّ الْمَوْجُودَ الْأَوَّلَ إِنْ كَانَ بِحَالٍ چي ړومبی موجود كه په داسي حال باندي وی ده لَوْ وُجِدَ الْبَاقِي كه پاته اوموندي شی تَجْرِي فِيهِ الْقَسَامَةُ نو په دي كي قسامت جاری كيږی لَا تَجِبُ فِيهِ نو په دي (ړومبی موجود) كي به قسامت نه واجبيږی وَإِنْ كَانَ بِحَالٍ او كه دا (ړومبي موجود) په داسي حال باندي وی لَوْ وُجِدَ الْبَاقِي كه پاته اوموندي شی لَا تَجْرِي فِيهِ الْقَسَامَةُ نو په دي كي قسامت نه جاری كيږی تَجِبُ نو قسامت به واجب وی وَالْمَعْنَى او اصل وجه هغه، مَا أَشَرْنَا إِلَيْهِ كوم اړخ ته چي موږ اشاره كړي ده.

تشريح:- په دي اړه كي مرغينانی رحمه الله يوه قاعده كليه بيان كړي ده. چه اوگوره. كومه برخه چي اوس ملاو شوي ده. كه روستو نوره برخه هم ملاو شی. چه په دي دويمه برخه به قسامت او ديت واجب وی اوكه نه؟ كه په دويمه برخه كي قسامت او ديت وی. نو په ړومبئ برخه كي به واجب نه وی. اوكه په دويمه كي نه واجبيږی. نو په ړومبئ كي به واجبيږی. او ددي قاعدي وجه هم دا ده. چه په قسامت او ديت كي تكرار لازم نشی.

وَصَلَاةُ الْجِنَازَةِ فِي هَذَا تَنْسَحِبُ عَلَى هَذَا الْأَصْلِ او په دي كي د جنازي لمونځ په دي اصل باندي متفرع دي لِأَنَّهَا لَا تَتَكَرَّرُ په دي وجه به لمونځ د جنازي نه مكرر كيږی.

حل اللغة: ① تنسحب: متفرع كيږی.

تشريح:- اود جنازي د لمونځ حكم هم دا دي. يعنی كه د بدن څه برخه ملاو شوي ده. نو دويمي ته اوگوره. كه هغه ملاو شی. نو په هغي به لمونځ د جنازي كولای شی اوكه نه؟ كه كيدای شی. نو په ړومبئ برخه به نشی كولي. اوكه په دويمه باندي نشی كيدي. نو په ړومبئ برخه به لمونځ د جنازي كولي شی. خكه چي لمونځ د جنازي هم مكرر نه كيږی.

## د تام الخلق او ناقص الخلق په صورت كښي د ديت او قسامت حكم

وَلَوْ وُجِدَ فِيهِمْ جَنِينٌ او كه د محلي په خلگو كي جنين (د خيټي ماشوم) اوموندي شی. أَوْ سِقْطٌ يا ناتمام غورځيدلي بچي (ملاو شی) لَيْسَ بِهِ أَثَرُ الضَّرْبِ چي په ده باندي د وهلو اثر نه وی فَلَا شَيْءَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ. نو د محلي په خلگو هيڅ شئ واجب نه دي لِأَنَّهُ لَا يَفُوقُ الْكَبِيرَ حَالًا خكه چي جنين به په حالت كي د لوئي سړی نه زياتيږی وَإِنْ كَانَ بِهِ أَثَرُ الضَّرْبِ او كه په ده باندي د وهلو اثر وی وَهُوَ تَامُّ الْخَلْقِ او دي تام ال خلگ (اندامونو كي پوره) وی وَجَبَتِ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَيْهِمْ نو د محلي په خلگو قسامت او ديت واجب دي

حل اللغة: ① جنين: د خيټي ماشوم ② يفوق: زيات وی.

تشريح:- اوكه محله كي داسي بچي ملاو شو. چه دا اوسه پوري جنين وو. خو اوس پيدا شوي دي. او په محلبه كي پروت دي. يا بچي نا تمام دي. خو په ده باندي د وهلو د زخم هيڅ اثر نشته. نو د محلي په خلگو به هيڅ هم واجب نه وی. اوكه په ده باندي د وهلو اثر وی. او دده واړه اندامونه جوړ شوي وی. يعنی دا تام ال خلگوی. نو اوس به د محلي په خلگو قسامت او ديت واجب وی.

لِأَنَّ الظَّاهِرَ خكه چي ښكاره هم دا ده تَامُّ الْخَلْقِ يَنْفَصِلُ حَيًّا چي تام ال خلگ ژوندي جلا كيږی وَإِنْ كَانَ نَاقِصَ الْخَلْقِ اوكه دي ناقص ال خلگوی فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِمْ نو په دوی باندي هيڅ شئ نشته لِأَنَّهُ يَنْفَصِلُ مَيِّتًا لَا حَيًّا خكه چي دا مړ جلا كيږی. ژوندي نه جلا كيږی.

**تشریح:-** خکه چې دلته ښکاره هم دا ده.چه دا (پوره اندامونو والا) د خپلې مور نه ژوندی شوې دې.او دا چا مړ کړې دې.اوکه دې ناقص ال خلگوی.نو په دوی به هيڅ واجب نه وی.خکه چې دلته ښکاره هم دا ده.چه دا د خپلې مور د خيټې نه مړ پيدا شوې دې.ژوندې نه دې پيدا شوې.

## په څاروی باندې دموندلی شوی مقتول د ديت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيلُ عَلَى دَابَّةٍ و کله چې مقتول په يو څاروی باندې اوموندلې شی يَسُوقُهَا رَجُلٌ چې دا يو سړې شړی فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو ديت به دده په عاقله باندې وی دُونَ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ په محلې والا باندې به نه وی لِأَنَّهُ فِي يَدِهِ خکه چې مقتول د هغه په لاس کې دې فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا كَانَ فِي دَارِهِ لکه چې دده په کور کې وی وَكَذَا او هم دغه ډول حکم دې. إِذَا كَانَ قَائِدَهَا کله چې دې د څاروی رابښکونکې أَوْ رَاكِبَهَا يا په دې سور وی.

**تشریح:-** يو کس يو حيوان (څاروې) روان کړې دې.او په دې باندې يو مقتول دې.نو دده ديت به هم په ده باندې واجب وی.لکه که مقتول دده په کور کې ملاو شوې وې.نو هم دا حکم به وو.بيا که دا سړې ئې د شا ارخه شړی.يا ئې د مخکې ارخه راکاږی.يا په دې باندې سور وی.واړه برابر دی.

فَإِنِ اجْتَمَعُوا نو که دا واړه راجمع شی. فَعَلَيْهِمْ نو ديت به په دوی ټولو باندې وی لِأَنَّ الْقَتِيلَ فِي أَيْدِيهِمْ خکه چې مقتول ددوی په لاس کې دې فَصَارَ نو داسې شوه كَمَا إِذَا وُجِدَ فِي دَارِهِمْ لکه چې مقتول ددوی په کور کې اوموندې شی

**حل اللغة:** ① بين ايديهم: دهغوی په مخامخ﴾

**تشریح:-** اوکه درې سړی وی.يو سائق (شړونکې) او يو قائد (رابښکونکې) او يو راکب (سور).نو په دوی ټولو به ديت واجب وی.لکه که ددوی په کور کې مقتول ملاو شوې وې.نو په دوی ټولو به ديت واجبيدو.دغه ډول به دلته هم واجب وی.

## که د څاروی خوله شړونکې نه وی نو د ديت حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی وَإِنْ مَرَّتْ دَابَّةٌ بَيْنَ الْقَرْيَتَيْنِ وکه يو حيوان (څاروې) د دوو کلو په منځ کې تير شی وَعَلَيْهَا قَتِيلٌ و په دې باندې مقتول وی فَهُوَ عَلَى أَقْرَبِهِمَا نو ديت به په دوی دواړو کې زيات نږدې باندې وی لِمَا رُوِيَ د هغه روايت په وجه کوم چې نقل دې {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أُتِيَ بِقَتِيلٍ چې نبی ﷺ له يو مقتول راوړلې شو وُجِدَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ فَأَمَرَ أَنْ يُذْرَعَ[1] چې دا د دوو کلو په منځ کې ملاو شوې وو نو نبی کريم ﷺ د پيمائش حکم ورکړو.

**حل اللغة:** ① قريتين: جمع د قرية کلې ② يذرع: پيمائش کوی،ناپ کوی﴾

**تشریح:-** يو حيوان (څاروې) پخپله روان دې.چه دده خوله شړونکې وغيره نشته.او په ده باندې يو مقتول دې.نو ددې به څه حکم وی؟ نو وې فرمائيل.چه حيوان (څاروې) په کوم خانې کې تيريږی.نو کوم کلې چې دې خانې ته نږدې وی .دغه کلی والا به د ديت ذمه دار وی.

په دې باندې مرغينانی رحمه الله يو دليل دا پيش کړی دې چې د نبی کريم ﷺ وړاندې دا واقعه پيښه شوه.نو نبی کريم ﷺ د پيمائش حکم ورکړو.چه دا معلومه شوی.چه کوم کلې زيات نږدې دې.چه په هغې باندې ديت واجب کړې شی.

وَعَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او د عمر ﷺ نه منقول دی أَنَّهُ لَمَّا كُتِبَ إِلَيْهِ فِي الْقَتِيلِ کله چې دوی ارخ ته د هغه مقتول په اړه کې اوليکلی شو الَّذِي وُجِدَ بَيْنَ وَادَاعَةَ وَأَرْحَبَ کوم چې د وادعه او ارحب (قبيلو) په منځ کې ملاو شوې وو كَتَبَ نو

---

[1] من حديث أبی سعيدالخدری ﷺ أخرجه أبوداود طيالبسی ﴿رح﴾ وإسحاق بن راهويه والبزار فی مسانيدهم (نصب:۲۹۹\۵)_



هغوی اوليکل بِأَنْ يَقِيسَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ چې د دواړو په منځ کې دې ناپ اوکړې شی. فَوُجِدَ الْقَتِيلُ إِلَى وَادِعَةَ أَقْرَبَ مقتول وادعه (قبيلې) ته زيات نږدې اوموندې شو، فَقَضَى عَلَيْهِمْ بِالْقَسَامَةِ[1] نو هم په دوی (وادعه خلگو) باندې د قسامت فيصله ورکړې شوه.

**تشریح:-** دوهم دليل دا دې چې د حضرت عمر ﷺ په دور کې د وداعه او راحب (کلو) په منځ کې يو مقتول ملاو شو.نو د هغه خانې حاکم دا واقعه اميرالمؤمنين (عمر ﷺ) ته اوليکله.نو دوی د پيمائش حکم ورکړو.د پيمائش نه روستو معلومه شوه.چه وداعه زيات نږدې وو.نو ددې په اوسيدونکو باندې ديت واجب کړې شو.

قِيلَ وئيلی شوی دی هَذَا مَحْمُولٌ عَلَى مَا چې دا (په دوی کې د زيات نږدې باندې فيصله ورکول) هغه حالت باندې محمول دی إِذَا كَانَ بِحَيْثُ کله چې مقتول په داسې مقام باندې وی يَبْلُغُ أَهْلَهُ الصَّوْتُ چې د نږدې خلگو ته آواز رسيږی لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ خکه چې دا هر کله په دې صفت باندې وی يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ نو دوی ته کومك متعلق کيدای شی فَتُمْكِنُهُمُ النُّصْرَةُ نو دوی ته کومك کول ممکن وو وَقَدْ قَصَّرُوا حالانکه هغوی بې غوری اوکړله.

**حل اللغة:** ① صوت: آواز ② الغوث: کومك کونکې ③ النصرة: مدد﴾

**تشریح:-** بعضو فقهاو وئيلی دی.چه دا کلې په دومره فاصله باندې کيدل پکار دی.که د هغه خانې نه مقتول دوی ته آواز ورکړې وې.نو دوی ته آواز رسيدې شو.ګنی که زيات لرې وی.نو بيا به په دې کلی والا باندې ديت نه وی.خکه چې ديت خکه واجبيږی.چه دا (کلی والا) ساتنه او کومك کولې شو.خو هغوی بې غوری کړې ده.او کله چې زيات لرې وی.نو هلته هيڅ بې غوری ددوی د ارخه نشته.بهرحال په متن کې چې کوم دا فرمائيلی شوی دی.چه په دواړو کلو کې کوم نيز دې وی.د هغې په اوسيدونکو به ديت واجب وی.

## په يو کور کښې د موندلی شوی مقتول د قسامت او ديت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيلُ فِي دَارِ وکه مقتول د يو انسان په کور کې اوموندلې شی إِنْسَانٍ فَالْقَسَامَةُ عَلَيْهِ نو قسامت به هم په ده وی لِأَنَّ الدَّارَ فِي يَدِهِ خکه چې کور دده په قبضه کې دې وَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ او ديت به دده په عاقله باندې وی. لِأَنَّ نُصْرَتَهُ مِنْهُمْ خکه چې دده مددګاران هم دوی دی وَقُوَّتَهُ بِهِمْ او هم ددوی په وجه دده قوت دې.

**تشریح:-** يو مقتول ديو کس په کور کې اوموندې شی.نو قسم به صرف په کور والا باندې وی.خکه چې د کور مالك يواځې هم هغه دې.نو هغه به يواځې د محلې د خلگو په درجه کې وی.او ديت به دده په مددګار خاندان باندې وی.خکه د عاقله فريضه ده.مدد او نصرت کول، او د عاقله د کومك په وجه انسان پخپل ځان کې قوت او توان محسوسوی.

## قسامت به په اصل اوسيدونکو وی او که په کرايه دارو به هم وی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَا تَدْخُلُ السُّكَّانُ فِي الْقَسَامَةِ او په قسامت کې به سکان (د ملکيت نه بغير اوسيدونکی) نه داخليږی نيز مَعَ الْمُلَّاكِ د مالکانو سره عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ سد امام ابوحنيفه رحمه الله په وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ[2] او هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې

**تشریح:-** د يوې محلې څه اوسيدونکی خو هغه دی.کوم چې ددې خانې اصلی اوسيدونکی دی.او ددې خانې د زمکو مالکان دی.او بعضې هغه دی.کوم چې د ملکيت نه بغير کرايه وغيره باندې دلته اوسيږی.نو قسامت به په

---

[1] اخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه،نصب:۵\۲۰۱)_

[2] القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(۵\۴۴۷) والهندية (۶\۷۸) وملتقى (۴\۴۰۳) نقلاً عن القول الراجح (۲\۴۶۵)_

چا وي.نو د طرفینو رحمهما الله مذهب دا دی.چه قسامت به صرف په مالکانو باندې وي.په سکان (په کرایه وغیره اوسیدونکو) به نه وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی هُوَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا چې قسامت به په دوی ټولو باندې وي لِأَنَّ وِلَايَةَ التَّدْبِيرِ ځکه چې د تدبیر ولایت كَمَا تَكُونُ بِالْمِلْكِ لکه څنګه چې د ملك په ذریعه وي تَكُونُ بِالسُّكْنَى دغه ډول د سکنی(صرف اوسیدو)په ذریعه هم کیږي أَلَا تَرَى آیا ته نه ګورې {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَعَلَ الْقَسَامَةَ وَالدِّيَةَ عَلَى الْيَهُودِ چې نبی ﷺ په یهودو باندې دیت او قسامت واجب کړې وو وَإِنْ كَانُوا سُكَّانًا بِخَيْبَرَ} (١) اګرچه هغوی په خیبر کې سکان (د ملکیت نه بغیر اوسیدونکی) وو.(مالك نه وو).

حل اللغة: ① سکان: جمع د ساکن اوسیدونکي.

تشریح:- او امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه قسامت به په دواړو وي.ځکه چې د قسامت او دیت تعلق تدبیر سره دي.او په دې معامله کې واړه برابر دي. د دوی دلیل دا وو.چه اوګورئ نبی کریم ﷺ په یهودو باندې قسامت او دیت واجب کړې وو.حالانکه هغوی د خیبر مالکان نه وو.بلکه د ملکیت نه بغیر د هغه اوسیدونکي وو.ددې نه معلومه شوه.چه په غیرمالکانو باندې هم قسامت او دیت شته.

وَلَهُمَا او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی الْمَالِكُ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِنُصْرَةِ الْبُقْعَةِ چې د بقعې (او علاقې) نصرت سره مالك مخصوص دی دُونَ السُّكَّانِ اوسیدونکي نه دي لِأَنَّ سُكْنَى الْمُلَّاكِ أَلْزَمُ ځکه چې د مالکانو سکنی لازمونکي دي وَقَرَارَهُمْ أَدْوَمُ او ددوی اوسول زیات دائمی (او برقرار) دی فَكَانَتْ وِلَايَةُ التَّدْبِيرِ إِلَيْهِمْ نو د تدبیر ولایت به هم دوی ته وي فَيَتَحَقَّقُ التَّقْصِيرُ مِنْهُمْ نو ددوی د اړخه به تقصیر (او کوتاهي) متحقق وي

حل اللغة: ① نصرة: امداد ② البقعة: علاقه، مځکه ③ ملاک: جمع د مالك.

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی.چه د بقعې (او علاقې) نصرت لپاره مالکان مختص دی.د ملکیت نه بغیر اوسیدونکی نه دی.ځکه چې د ملکیت نه بغیر اوسیدو کې قرار او همیشګی نشته.په خلاف د مالکانو، نو د تدبیر دلالت به په مالکانو باندې وي.او هم په دوی به ساتنه ضروري وي.نو بې غورۍ د مالکانو د اړخه ده.نو هم دوی به ګرفتارولې شي.

وَأَمَّا أَهْلُ خَيْبَرَ او پاتې شو د خیبر خلګ فَالنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَقَرَّهُمْ عَلَى أَمْلَاكِهِمْ نو نبی کریم ﷺ دوی پخپلو املاکو (باغونو او زمکو) باندې قائم ساتلی وو فَكَانَ يَأْخُذُ مِنْهُمْ عَلَى وَجْهِ الْخَرَاجِ او ددوی څخه به ئې (چې کوم څه اخستل.هغه به ئې) د خراج په طور اخستل

تشریح:- د خیبر په واقعه چې امام ابویوسف رحمه الله کوم استدلال کړې دې نو د هغې نه ځواب دا دې چې هغوی مالکان وو.نبی کریم ﷺ هغوی لره د هغوی په زمکو او جائدادونو قائم ساتلی وو.او د هغوی څخه به ئې چې کوم څه وصولول.هغه به ئې د خراج په طریقه اخستل.

## د محلې هغه خلق چې په هغوی قسامت واجبیږي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَهِيَ عَلَى أَهْلِ الْخِطَّةِ دُونَ او دا (وجوب د قسامت او دیت) د خطې (او علاقې) په خلګو دې الْمُشْتَرِينَ په اخستونکو نه دي وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (٢) او دا د طرفینو رحمهما الله قول دي.

تشریح:- د محلې په کومو خلګو چې قسامت واجبیږي.هغوی کې به بعضې خلګ خو هغه وي.چا ته چې ددې

(١) تقدم تخریجه)_

(٢) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ملتقى (٤٠٢/٤) والدرالمحتار(٤٤٧/٥) والهندية (٧٨/٦) والفقه الإسلامى (٤٠٧) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٦/٢)-



علاقې د فتح کیدو په وخت، امام څه مځکه او جائداد ورکړې وو.نو دا خو اهل خطه دی.یا ددوی د نه کیدو په صورت کې به ددوی اولاد اهل خطه وي.او دوهم فرق دا دی.چه کومو خلګو دا اخستې ده.او په دې کې ئې رهائش اختیار کړې دی.نو دواړه فریقه برابر مالکان دی.نو په داسې صورت کې به قسامت په کوم فریق باندې وي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی الْكُلُّ مُشْتَرِكُونَ چې واړه به مشترك وي لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِتَرْكِ الْحِفْظِ ځکه چې ضمان د هغه سړی د اړخه په ساتنه پریخودو باندې واجبیږي مِمَّنْ لَهُ وِلَايَةُ الْحِفْظِ چاته چې د ساتنه ولایت وو وَبِهَذَا الطَّرِيقِ يُجْعَلُ جَانِيًا مُقَصِّرًا او په دې طریقه به هغه (چا لپاره چې ولایت وي) بې غوری کونکې ګرځولې شي وَالْوِلَايَةُ بِاعْتِبَارِ الْمِلْكِ او ولایت د ملکیت د ساتنه په اعتبار سره کیږي وَقَدِ اسْتَوَوْا فِيهِ حالانکه په دې کې دوی واړه برابر دی.

حل اللغة: ① الحفظ: ساتنه ② مقصر: کوتاهی کونکې ③ استووا: برابر دی.

تشریح:- امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه په دواړو فریقو باندې قسامت او دیت دې.ځکه چې دواړه مالکان دی.او دواړو ته د ساتنه ولایت حاصل دې.نو د ساتنه پریخودو په وجه دواړه فریقه د کوتاهئ جرم کونکی شو.په دې وجه به دواړه ماخوذ وي.

وَلَهُمَا او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی أَنَّ صَاحِبَ الْخِطَّةِ هُوَ الْمُخْتَصُّ بِنُصْرَةِ الْبُقْعَةِ چې د خطې خلګ د بقعې (او علاقې) د کومك په اړه کې مختص دی هُوَ الْمُتَعَارَفُ هم دا مشهوره ده وَلِأَنَّهُ أَصِيلٌ او ځکه چې هغه اصیل دې وَالْمُشْتَرِي دَخِيلٌ او مشتری دخیل دې وَوِلَايَةُ التَّدْبِيرِ إِلَى الْأَصِيلِ او د تدبیر ولایت اصیل اړخ ته دې، وَقِيلَ: او وئیلی شوی دی. أَبُو حَنِيفَةَ بَنَى ذَلِكَ چې امام ابوحنیفه رحمه الله بنا (بنیاد) ایخودې دې عَلَى مَا شَاهَدَ بِالْكُوفَةِ هغه حالت باندې دکوم چې هغوی په کوفه کې مشاهده کړې ده.

تشریح:- او د طرفینو رحمهما الله مسلك دا دې.چه قسامت به د خطې په خلګو واجب وي.په اخستونکو به نه وي. ځکه مشهوره هم دا ده.چه د خطې خلګ ددې علاقې او بقعې (زمکې) د ساتنه ذمه دار وي.او دا وجه هم ده.چه د خطې خلګ اصیل دی.او اخستونکی دخیل دی.او د تدبیر ولایت اصیل ته وي.دخیل ته نه وي. بعضو حضراتو وئیلی دي. چې امام ابوحنیفه رحمه الله د کوفې د خلګو دا عمل درآمد اوکتلو.چه د خطې خلګ د تدبیر متولیان وي. اخستونکی نه وي.نو دا حکم ئې ارشاد اوفرمائیلو.

## د خطې په خلقو د قسامت او دیت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ بَقِيَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ وکه په دوی کې یوکس پاته پاتې شو فَكَذَلِكَ يَعْنِي مِنْ أَهْلِ الْخِطَّةِ نو هم دغه ډول (په ده باندې قسامت او دیت دې) یعنی د خطې د خلګو نه، لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ بیان کړې دې وَإِنْ لَمْ يَبْقَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ وکه په دوی کې څوك هم پاته پاتې نشو بِأَنْ بَاعُوا كُلُّهُمْ په دې طریقه چې دوی ټولو خرڅه کړې وي فَهُوَ عَلَى الْمُشْتَرِينَ نو قسامت به په اخستونکو وي لِأَنَّ الْوِلَايَةَ انْتَقَلَتْ إِلَيْهِمْ ځکه چې ولایت هغوی اړخ ته منتقل شو أَوْ خَلَصَتْ لَهُمْ یا صرف هم هغوی لپاره پاتې شوې دې لِزَوَالِ مَنْ د هغه خلګو د نه پاتې کیدو په وجه يَتَقَدَّمُهُمْ کوم چې ددوی نه وړاندې دی أَوْ يُزَاحِمُهُمْ یا ددې مقابل دی.

تشریح:- اوکه هلته په محله کې د خطې د خلګو نه صرف یو سړې پاتې شوې دې.نو بیا هم دغه حکم دې. یعنی هم دې د تدبیر ولی دې.او هم په ده باندې قسامت او دیت دې.البته که د خطې د خلګو نه څوك هم هلته پاتې نشو.بلکه واړه اخستونکی وي.نو اوس به اخستونکی ذمه دار وي.او اوس به قسامت او دیت په دوی واجب وي.ځکه چې څوك ددوی مقابل وو.او څوك چې ددوی نه وړاندې وو.اوس هغوی پاتې نشو.نو اوس ولایت خالص ددوی لپاره پاتې شوې دې.

## په یوکور کښې د موندلی شوي مقتول د قسامت او دیت حکم

وَإِذَا وُجِدَ قَتِيلٌ فِي دَارٍ او کله چې مقتول په یو کور کې اوموندې شي فَالْقَسَامَةُ عَلَى رَبِّ الدَّارِ وَعَلَى قَوْمِهِ نو قسامت به په کور والا او دده په قوم باندې وي وَتَدْخُلُ الْعَاقِلَةُ فِي الْقَسَامَةِ او مددګار خاندان به په قسامت کې داخل وي إِنْ كَانُوا حُضُورًا که دغه خلګ حاضر وي وَإِنْ كَانُوا غُيَّبًا او که غائب وي فَالْقَسَامَةُ عَلَى رَبِّ الدَّارِ نو قسامت به په کور والا باندې وي يُكَرَّرُ عَلَيْهِ الْأَيْمَانُ په ده باندې به قسمونه مکرر کولای شي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله [1] او دا د طرفينو رحمهما الله په نیز دی.

تشریح:- مقتول په یو کور کې ملاو شو.نو قسامت به د کور په مالك باندې وي.او دیت به دده په عاقله باندې وي.اوس په دې باندې سوال دا دې.چه قسامت صرف د کور په مالك دې.اوکه د کور د مالك په عاقله باندې هم دې؟ نو طرفین رحمهما الله فرمائی.چه په دې کې تفصیل دې.که عاقله هم په دې ښار کې موجود دی.نو په دوی هم قسامت شته.اوکه غائب دی.نو په دوی باندې قسامت نشته.بلکه صرف دکور په مالك باندې دې.دده څخه به مکرر قسمونه اخستلې شي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی لَا قَسَامَةَ عَلَى الْعَاقِلَةِ چې په عاقله باندې قسامت نشته لِأَنَّ رَبَّ الدَّارِ أَخَصُّ بِهِ ځکه چې مالك د کور دې کور سره زیات مخصوص دې مِنْ غَيْرِهِ د خپل غیر په مقابله کې فَلَا يُشَارِكُهُ غَيْرُهُ فِيهَا نو په دې قسامت کې به دده غیر دده سره شریك نه وي كَأَهْلِ الْمَحَلَّةِ لَا يُشَارِكُهُمْ فِيهَا عَوَاقِلُهُمْ لکه څنګه چې د محلې د خلګو په قسامت کې ددوی عاقله ددوی سره نه شریکیږی.

تشریح:- اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه صرف د کور په مالك باندې قسامت شته.عاقله باندې نشته. د دوی دلیل دا دې چې دې کور سره او دې خائې سره اختصاص د کورد مالك دې.نو دوهم کس به دده سره په قسامت کې نه داخلیږی.نو دغه ډول دلته هم کیدل پکار دی.لکه څنګه چې کوم خائې د محلې په خلګو قسامت وی.نو ددوی مددګار قبیله په قسامت کي نه داخلیږي.

وَلَهُمَا او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې أَنَّ الْحُضُورَ لَزِمَتْهُمْ نُصْرَةُ الْبُقْعَةِ چې په حاضرینو باندې د علاقې کومك لازم دې كَمَا تَلْزَمُ صَاحِبَ الدَّارِ لکه څنګه چې کومك د کور په مالك باندې لازم دې فَيُشَارِكُونَهُ فِي الْقَسَامَةِ نو د کور د مالك په قسامت کې به حاضر مددګار خاندان شریك وی.

تشریح:- د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه ددې علاقې ساتنه لکه څنګه چې د کور په مالك لازم دې.دغه ډول په عاقله کې حاضرینو باندې واجب دې.نو حاضرین عاقله به په قسامت کې شریکولې شي.

سوال• دلته دا اعتراض کیداې شی چې ددې نه په وړاندې صفحه کې دا مسئله بیان کړې شوې وه.هلته دا وئیلی شوی وو.چه قسامت صرف دکور په مالك دې.او دلته فرمائیلی شوی دی.چه په عاقله باندې هم واجب دې.که حاضر وی؟

ځواب• د دې ځواب دا دې چې دیت خو بهرحال په عاقله باندې دې.او د قسامت په سلسله کې دوې (دوه) روایتونه دی① صرف په کور والا باندې قسامت واجب دې.② په کور والا او عاقله دواړو باندې قسامت واجب دې.ـ نو مخکنۍ مسئله د ړومبی روایت مطابق ده.او دویمه مسئله د دوهم روایت مطابق ده.او د امام کرخی نه دا تطبیق منقول دې.چه ړومبې روایت د عاقله په غائب کیدو باندې محمول دې.او دوهم روایت د عاقله په حاضر کیدو باندې محمول دې.

فائده• په کور والا باندې قسامت هغه وخت واجب دې.کله چې د مقتول ولی په ده باندې د قتل دعوه اوکړی.او که ولی دده نه علاوه په بل کس باندې دعوه اوکړی.نو په ده باندې نه قسامت شته او نه دیت شته.

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٤٤٧/١٥) وملتقى (٤٠٣/١٤) والهندية (٧٨/١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٧/٢)-



## په مشترکه کور کښې د موندلې شوی مقتول د دیت او ضمان طریقه

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَإِنْ وُجِدَ الْقَتِيلُ فِي دَارٍ مُشْتَرَكَةٍ نوکه مقتول په داسې مشترك کور کې اوموندې شي نِصْفُهَا لِرَجُلٍ چې ددې نصف د یو سړی دې وَعُشْرُهَا لِرَجُلٍ او ددې عشر د بل سړی دې وَلِآخَرَ مَا بَقِيَ او باته پاتې د بل سړی دې فَهُوَ عَلَى رُءُوسِ الرِّجَالِ نو تاوان به د سړو د سرونو (شمیر) مطابق وی لِأَنَّ صَاحِبَ الْقَلِيلِ يُزَاحِمُ صَاحِبَ الْكَثِيرِ فِي التَّدْبِيرِ ځکه چې د لږې برخې مالك په تدبیر کې د زیاتې برخې د مالك مقابل دې فَكَانُوا سَوَاءً فِي الْحِفْظِ وَالتَّقْصِيرِ نو په ساتنه او کوتاهۍ کې به دا واړه برابر وی فَيَكُونُ عَلَى عَدَدِ الرُّءُوسِ نو تاوان به د سرونو په شمار باندې وی بِمَنْزِلَةِ الشُّفْعَةِ د شفعې په درجه کې.

حل اللغة• ① رووس: جمع د سر،مراد ترې نفر دی ② التقصير:کوتاهی》

تشریح:- یو مشترکه کور دی.چه په دې کښې مثلاً د دریو سړو اشتراك دی.او د هر یو ملکیت مختلف دې. برابر نه دی.مثلاً زید د ۱۰۱۱ او بکر د ۱۰۱۵، او خالد د ۱۰۱۴ مالك دې.نو لکه څنګه چې شفعه کې نفس اشتراك ته په کتلو سره حق د شفعې برابر ملاویږی.د ملکیت د مقدار په وجه په حق د شفعې کې کمې زیاتې نه کیږی.دغه ډول به دلته هم د ملك په مقدار کې د تفاوت په وجه ضمان کې کمې زیاتې نه کیږی. بلکه د نفس اشتراك لحاظ به کولې شی.او په ټولو به برابر ضمان راځی.ځکه چې د تدبیر په ولایت کې واړه برابر دی.نو ددې درېخودو په صورت کې به په تاوان کې هم واړه شریك وی.

## په خرڅ شوی کور کښې د قبضې نه وړاندې مقتول ملاوشی نو د دیت مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا و چا چې کور واخستلو وَلَمْ يَقْبِضْهَا او په دې باندې ئې قبضه اونکړله حَتَّى وُجِدَ فِيهَا قَتِيلٌ تردې چې په دې کې څوك مقتول اوموندې شو فَهُوَ عَلَى عَاقِلَةِ الْبَائِعِ نو دا (وجوب د دیت) د بائع په عاقله باندې دې وَإِنْ كَانَ فِي الْبَيْعِ خِيَارٌ لِأَحَدِهِمَا وکه په بیع کې دوی دواړو کې یوکس لپاره خیار وی. فَهُوَ عَلَى عَاقِلَةِ الَّذِي نو دا (وجوب د دیت) دهغه سړی په عاقله باندې دې فِي يَدِهِ د چا په قبضه کې چې دا دی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.

تشریح:- د متن د وضاحت نه وړاندې دا خبره زده کړه چې په دې خبره د ټولو اتفاق دې.چه ضمان هغه وخت واجبیږی.کله چې سړی لپاره د ساتنه ولایت حاصل وی.او هغه ساتنه پریږدی.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ساتنه د ولایت مدار په قبضې باندې دې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیزکه فی الفور ملکیت موجود دې.نو د چا چې ملکیت وی.هم په هغه به ضمان وی.اوکه اوس ملکیت نه وی.نو روستو چې چا لپاره هم ملکیت ثابت شی.(نو ضمان به هم په هغه وی).هرکله چې دا اصول په ذهن کې کیناستل.نو اوس واورئ.

دمتن مسئله دا ده چې زید یو کور واخستلو.خو اوس ئې په دې باندې قبضه نه وه کړې.او په دې کې څوك مقتول ملاو شو. نو په دې صورت کې چونکه د امام صاحب رحمه الله په نیز د ضمان مدار په قبضه باندې دې.په دې وجه به دیت د بائع په عاقله باندې واجب وی.ځکه چې قبضه د بائع ده.

اوکه په بیع کې عاقدینو کې یوکس خپل ځان لپاره خیار اخستې وی.نو اوس به ضمان په چا واجب وی؟ نو د امام صاحب رحمه الله په نیز به په هغه کس واجب وی.د چا په قبضه کې چې دغه وخت دا کور دی.

وَقَالَا او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی أَنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ خِيَارٌ که په دې کې خیار نه وی فَهُوَ عَلَى عَاقِلَةِ الْمُشْتَرِي نو دیت د مشتری په عاقله باندې دی. وَإِنْ كَانَ فِيهِ خِيَارٌ وکه په دې کې خیار وی فَهُوَ عَلَى عَاقِلَةِ الَّذِي نو دیت به د هغه سړی په عقاله باندې وی تَصِيرُ لَهُ دچا لپاره چې به دا کور ګرځولې شی

تشریح:- په اولنی صورت کې د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د مشتری په عاقله باندې دیت واجب وی. ځکه چې ددوی

په نیز د ضمان مدار په ملکیت باندې دې.او ملکیت مشتری ته حاصل شوې دې.او په دوهم صورت کې د صاحبینو رحمهما الله په نیز چونکه د ضمان مدار په ملکیت باندې دې.او دا ثابت نه دې.نو دوی اوفرمائیل چه د خیار د زمانې نه روستو چې دا کور د چا په ملکیت کې ځي.په هغه به ضمان واجب وی.که د بائع سره وی.نو د هغه په عاقله باندې، اوکه د مشتری په ملکیت کې راشی.نو دده په عاقله باندې به دیت واجب وی.

## د صاحبینو رحمهما الله دلیل

لِأَنَّهُ إِنَّمَا أُنْزِلَ قَاتِلًا بِاعْتِبَارِ التَّقْصِيرِ فِي الْحِفْظِ ځکه چې هغه (مالك) به په ساتنه کې د کوتاهۍ په وجه د قاتل په درجه کې راکوزولې شی وَلَا يَجِبُ او ضمان نه واجبیږی إِلَّا عَلَى مَنْ لَهُ وِلَايَةُ الْحِفْظِ خو په هغه کس چا لپاره چې د ساتنه ولایت وی وَالْوِلَايَةُ تُسْتَفَادُ بِالْمِلْكِ او ولایت د ملك نه مستفاد کیږی

حل اللغة: ① التقصير: کوتاهی ② ولاية: تصرف، واك اختيار

تشریح:- دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.ددې لنډیز موږ وړاندې ذکرکړې ده.ځکه چې ددوی په نیز ولایت مالك نه حاصلیږی.او په ساتنه کې بې غوری موجب د ضمان ده.یعنی دا بې غوری ده لره د قاتل په درجه کې راکوزوی.او د دیت د وجوب سبب جوړیږی.بهرحال ضمان په قبضه باندې نه دې.بلکه ملکیت باندې دې.

وَلِهَذَا كَانَتِ الدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَةِ صَاحِبِ الدَّارِ په دې وجه دیت د کور د مالك په عاقله باندې واجب دې دُونَ الْمُودَعِ په مودع (امین) باندې نه دې وَالْمِلْكُ لِلْمُشْتَرِي قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْبَيْعِ الْبَاتِّ،او په بیع قطعی کې د قبضې نه وړاندې ملکیت د مشتری دې وَفِي الْمَشْرُوطِ فِيهِ الْخِيَارُ.او په هغه بیع کې په کومه کې چې د خیار شرط وی، يُعْتَبَرُ قَرَارُ الْمِلْكِ كَمَا فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ د ملك د قرار اعتبار به کولای شی لکه څنګه چې صدقهٔ فطر کې (هم دغه ډول کولې شی).

تشریح:- ددې دلیل دا هم دې.که دا واقعه راپیښه شی.او کور دچا سره ودیعت وی.نو ضمان به مودع باندې نه راځی.بلکه د کور په مالك باندې به ضمان واجب وی.بهرحال هرکله چې ضمان په مالك دې.نو هغه بیع کې کومه چې خیار شرط نه وی.د قضې نه وړاندې د مشتری ملکیت ثابتیږی.او په کومه بیع کې چې خیار شرط وی.نو په هغې کې به کتلې شی.چه ملکیت کوم اړخ ته ځی.نو په هغه باندې به ضمان واجبولې شی.لکه څنګه چې په صدقهٔ فطر کې کیږی.چه یو سړی خپل غلام خرڅ کړو.په خیار شرط سره، او دا بیع مثلاً د عیدالفطر په ورځ اوشوه.نو اوس سوال دا دې.چه ددې غلام صدقهٔ فطر په چا واجب ده؟ نو ښکاره ده.چه د خیار نه روستو دا غلام د چا په ملکیت کې راشی.دده صدقهٔ فطر هم په هغه واجبیږی.دغه ډول دلته د دیت د وجوب مسئله ده.

## د امام صاحب رحمه الله دلیل

وَلَهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې الْقُدْرَةَ عَلَى الْحِفْظِ بِالْيَدِ چې ساتنه باندې قدرت قبضې سره کیږی لَا بِالْمِلْكِ ملکیت سره نه کیږی أَلَا يُرَى آیا ته نه ګورې أَنَّهُ يَقْتَدِرُ عَلَى الْحِفْظِ چې هغه ساتنه باندې قادر کیږی بِالْيَدِ دُونَ الْمِلْكِ قبضې سره د ملك نه بغیر وَلَا يَقْتَدِرُ بِالْمِلْكِ دُونَ الْيَدِ، او نه قادر کیږی ملکیت سره د قبضې نه بغیر وَفِي الْبَاتِّ الْيَدُ لِلْبَائِعِ قَبْلَ الْقَبْضِ او په بیع قطعی کې د قبضې نه وړاندې د بائع قبضه ده وَكَذَا فِيمَا او هم دغه ډول (د بائع قبضه ده). فِيهِ په هغه بیع کې الْخِيَارُ لِأَحَدِهِمَا په کومه کې چې دوی دواړو کې یو کس ته خیار وی قَبْلَ الْقَبْضِ لِأَنَّهُ دُونَ الْبَاتِّ نو د قبضې نه وړاندې ځکه چې دا (بیع فیه الخیار) د بیع قطعی نه کم تر ده.

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.چه د ضمان مدار په حقیقت کې قبضې باندې کیدل پکار دی.ځکه چې سړې د قبضې په وجه ساتنه باندې قادر کیږی.ملکیت سره نه قادر کیږی.نو هرکله چې خبره دغه ډول ده.او په کومه بیع کې خیار شرط نه وی.هغې کې د عاقدینو د لین دین کاوه نه وړاندې د بائع قبضه ده.نو په ده باندې مونږه ضمان واجب کړې دې.اوکه په بیع کې عاقدینو کې د یوکس لپاره خیار شرط وی.خو عاقدینو لین دین هیڅ نه وی کړې.نو بیا به هم په مبیع باندې د بائع قبضه وی.ځکه چې هرکله په داسې صورت کې د بیع قطعی په وجه



د بائع قبضه نه ده ختمه شوې.نو د ،، بیع بشرط الخیار،، سره به په درجه اولی دده قبضه نه ختمیږی.

وَلَوْ كَانَ الْمَبِيعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او که مبیع د مشتری په قبضه کې وی وَالْخِيَارُ لَهُ او مشتری ته خیار وی فَهُوَ أَخَصُّ النَّاسِ نو مشتری په ټولو خلګو کې د ټولو نه زیات خاص دې بِهِ تَصَرُّفًا هغه مبیع سره، د تصرف په اعتبار سره وَلَوْ كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ او که خیار بائع لپاره وی فَهُوَ فِي يَدِهِ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ بِالْقِيمَةِ نو مبیع د مشتری په قبضه کې مضمون علیه بالقیمة دې كَالْمَغْصُوبِ لکه څنګه چې مغصوب (کې قیمت واجبیږی). فَتُعْتَبَرُ يَدُهُ نو د مشتری قبضه معتبره ده إِذْ بِهَا يَقْدِرُ عَلَى الْحِفْظِ ځکه چې ددې قبضې په وجه هغه په ساتنه باندې قادر کیږی

تشریح:- اوکه خیار مشتری لپاره وی.او مبیع هم دده په قبضه کې وی.نو هم هغه اوس مالك دې.او هم هغه قابض دې.او هم د.هغه نه زیات د تصرف حقدار په دې بیع کې اوس هیڅ څوك نشته.نو ضمان به هم په ده باندې واجب وی.اوکه خیار بائع لپاره وی.او مبیع د مشتری په قبضه کې وی.نو اګرچه ملکیت خو د بائع دې.خو اصل مدار په قبضې باندې دې.او هغه (قبضه) د مشتری ده.بلکه که دا سامان د مشتری نه هلاك شی.نو په ده به ضمان واجب وی.یعنی ددې قیمت به واجب وی.لکه څنګه چې د مغصوب قیمت واجبیږی.لنډیز د کلام دا چې شرعاً دده قبضه معتبر شوه.ځکه چې هغه ددې قبضې په وجه ددې په ساتنه باندې قادر وو.او هرکله چې قبضه معتبر شوه.نو د ساتنه پریخودو په وجه به په ده باندې ضمان واجب وی.

## په مذکوره صورت کښې د قابض د ملکیت نه د عاقله د انکار مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی (وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ دَارٌ) او د چا په قبضه کې چې یو کور وی فَوُجِدَ فِيهَا قَتِيلٌ هغې کې څوك مقتول اوموندې شی لَمْ تَعْقِلْهُ الْعَاقِلَةُ نو عاقله به دده د اړخه دیت نه ورکوی حَتَّى تَشْهَدَ الشُّهُودُ تر دې چې ګواهان ددې خبرې ګواهی ورنکړی أَنَّهَا لِلَّذِي فِي يَدِهِ چې دا کور دهغه کس دې.د چا په قبضه کې چې دې لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْمِلْكِ لِصَاحِبِ الْيَدِ ځکه چې د قبضې والا د ملکیت کیدل ضروری دی حَتَّى تَعْقِلَ الْعَوَاقِلُ عَنْهُ تر دې چې دده د اړخه عاقله دیت ادا کړی.

تشریح:- په یو کور کې مقتول اوموندې شو.د مذکوره بیان مطابق د کور په مالك باندې قسامت او دده په عاقله باندې دیت واجب ګرې شو.خو عاقله اووئیل.چه دا دده کور نه دې.دې خو په دې کور کې عاریت باندې اوسیږی.یا بل څه سبب دې.چه د هغې په وجه هغه په دې کې اوسیږی.بهرحال هغه ددې مالك نه دې.نو په عاقله به دیت واجب نه وی.البته که ګواهانو دا ګواهی ورکړله.چه دا کور دهغه کس ملکیت دې.څوك چې په دې کې اوسیږی.نو په عاقله به دیت واجب وی.داسې ولې؟ ځکه چې قابض لپاره ملکیت هم پکار دې.نو ددې نه روستو عاقله باندې دیت واجبیږی.

وَالْيَدُ وَإِنْ كَانَتْ دَلِيلًا عَلَى الْمِلْكِ او قبضه اګرچه په ملك باندې دلیل دې لَكِنَّهَا مُحْتَمِلَةٌ خو قبضه احتمالی ده فَلَا تَكْفِي لِإِيجَابِ الدِّيَةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو دا به عاقله باندې د دیت واجبولو لپاره کافی نه وی كَمَا لَا تَكْفِي لِاسْتِحْقَاقِ الشُّفْعَةِ بِهِ فِي الدَّارِ الْمَشْفُوعَةِ لکه څنګه چې قبضه کافی نه ده.ددې په ذریعه مشفوعه کور کې د شفعې استحقاق لپاره فَلَا بُدَّ مِنْ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ نو ګواهان قائمول ضروری دی.

تشریح:- او قبضه اګرچه په ښکاره ددې خبرې دلیل دې.چه ددې مالك قبضې والا (پخپله) دې.خو بهرحال بیا هم په دې کې بل احتمال موجود دې.په دې وجه به خالص قبضه د دیت وجوب لپاره کافی نه وی.لکه څنګه چې خالص قبضه د شفعې د استحقاق لپاره ناکافی وی.

فائده: وړاندې کوم ځائې چې د امام صاحب رحمه الله فرمان تیر شوې دې.چه قبضه معتبر ده.نو ددې نه مراد هغه قبضه ده.کومه چې ملکیت لپاره وی.په دې وجه بالاتفاق مودع باندې ضمان واجب نه دې.

## په کښتۍ کښې د موندلې شوی مقتول د قسامت حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ وُجِدَ قَتِيلٌ فِي سَفِينَةٍ وكه مقتول په كښتئ كي اوموندي شى فَالْقَسَامَةُ عَلَى مَنْ فِيهَا نو قسامت به په هغه خلګو باندي واجب وى كوم چي په كښتئ كي دى مِنَ الرُّكَّابِ يعني سوارلو وَالْمَلَّاحِينَ او كښتئ چلونكى (مانړكى) لِأَنَّهَا فِي أَيْدِيهِمْ څكه چي كښتئ ددوى په قبضه كي ده وَاللَّفْظُ يَشْمَلُ أَرْبَابَهَا او لفظ د ..من فيها.. د كښتئ مالكانو ته ګډ دى حَتَّى تَجِبُ عَلَى الْأَرْبَابِ تردې چي قسامت واجب دى په مالكانو باندي الَّذِينَ فِيهَا كوم چي په كښتئ كي دى وَعَلَى السُّكَّانِ او د ملكيت نه بغير اوسيدونكو باندي وَكَذَا عَلَى مَنْ يَمُدُّهَا او هم دغه ډول په هغه خلګو څوك چي كښتئ راكاږي وَالْمَالِكُ فِي ذَلِكَ وَغَيْرُ الْمَالِكِ سَوَاءٌ په دې كي مالك او غيرمالك برابر دى وَكَذَا الْعَجَلَةُ دغه ډول بيل ګاډي (ريړه) وَهَذَا او دا (د اوسيدونكو او مالكانو برابر كيدل) عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ ظَاهِرٌ دامام ابويوسف رحمه الله د روايت مطابق خو ښكاره دي

حل اللغة: ① سفينة: كښتئ ② ارباب: جمع د رب، په معنى د مالك ③ العجلة: ريړه، هغه د لرګى ټانګه چي غويان ئي راكاږي ④ ملاحين: جمع د ملاح ده د كښتئ چلونكي، مانړكي)

تشريح:- كه مقتول په كښتئ كي وى، نو كوم خلګ چي په كښتئ كي دننه دى. هم په هغوى باندي قسامت او ديت واجب دي. كه هغوى سواره وى. كه مالكان وى. او كه مانړكي وى. واړه به ضامن وى. او د ريړي (خرګاډى) هم دغه حال دي. نو د بسونو به هم دا حال وى.

كه څوك دا پوښتنه اوكړي چي وړاندي تير شوي وو چي طرفينو رحمهما الله چي صرف د كور په مالكانو باندي قسامت دي. په سكانو (اوسيدونكو) باندي نه دي. البته د امام ابويوسف رحمه الله په نيز سكان او مالكان برابر دي. اوس دا حكم اجماعى څنګه شو؟ نو ددې څواب دا دي چي د امام ابويوسف رحمه الله قول وجه خو ښكاره ده. څكه چي هغه پخپل تيرشوى اصول باندي دي.

وَالْفَرْقُ لَهُمَا او د طرفينو رحمهما الله لپاره وجه د توپير دا ده السَّفِينَةَ تُنْقَلُ چي كښتئ منتقل كيږي وَتُحَوَّلُ او متحول كيږي (بل ته حواله كيداې شى) فَيُعْتَبَرُ فِيهَا الْيَدُ نو په دې كي به قبضه معتبر وى دُونَ الْمِلْكِ ملكيت به نه وى كَمَا فِي الدَّابَّةِ لكه څنګه چي څاروى كي (قبضه معتبر ده ملكيت نه) دي. بِخِلَافِ الْمَحَلَّةِ وَالدَّارِ په خلاف د محلي او كور لِأَنَّهَا لَا تُنْقَلُ څكه چي دا نه منتقل كيږى.

تشريح:- په طرفينو رحمهما الله اعتراض وارديږى. نو هغوى ددې دا څواب وركړې دي. چه كور او محله نه منتقل كيږى. او كښتئ اوړلي كيدې، او منتقل كيداې شى. نو دڅاروى پشان په دې كي هم د ملكيت اعتبار اونكړې شو. بلكه د قبضي اعتبار كړې شوي دي. او قبضه په كښتئ باندي ددوى ټولو ده. كه هغه سواره وى. او كه مالكان يا مانړګي وى.

### د محلي په جمات كښي د موندلي شوي مقتول د قسامت مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ وُجِدَ فِي مَسْجِدِ مَحَلَّةٍ او كه مقتول د محلي په جمات كي اوموندي شو فَالْقَسَامَةُ عَلَى أَهْلِهَا نو قسامت به د محلي په خلګو وى لِأَنَّ التَّدْبِيرَ فِيهِ إِلَيْهِمْ څكه چي د جمات په اړه كي تدبير هم ددوى اړخ ته ګرځولى كيږى

تشريح:- د محلي د جمات ساتنه او تدبير د محلي د خلګو فريضه ده. نو كه د محلي په جمات كي څوك مقتول اوموندي شو. نو قسامت او ديت به د محلي په خلګو واجب وى.

### په جامع جمات يا په عامه لاره كښي د موندلي شوي مقتول د قسامت حكم

وَإِنْ وُجِدَ فِي الْمَسْجِدِ الْجَامِعِ أَوِ الشَّارِعِ الْأَعْظَمِ او كه مقتول په جامع جمات يا په عامه لاره كي اوموندي شى فَلَا قَسَامَةَ فِيهِ نو په دې كي قسامت نشته وَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او ديت به په بيت المال باندي دي لِأَنَّهُ لِلْعَامَّةِ څكه چي دا (لاره



او جامع جمات) د عامو خلګو لپاره دي لَا يَخْتَصُّ بِهِ وَاحِدٌ مِنْهُمْ په خلګو كي څوك هم ددې سره مخصوص نه دي وَكَذَلِكَ الْجُسُورُ الْعَامَّةُ او هم دغه ډول پل د عامو خلګو لپاره دي وَمَالُ بَيْتِ الْمَالِ مَالُ عَامَّةِ الْمُسْلِمِينَ او د بيت المال، مال د عامو مسلمانانو دي

حل اللغة: ① الشارع الأعظم: لاره لويه ② الجسور: جمع د جسر، په معنى د پل

تشريح:- كه په جامع جمات كي يا په عامه لاره كي مقتول اوموندي شو نو په دې صورت كي قسامت نشته. او ديت به د بيت المال نه ادا كولي شى. څكه چي هيڅ څوك سړې يواځي د جامع جمات يا عامي لاري يا پل سره مخصوص نه دي. بلكه دا شيان د عامو مسلمانانو لپاره دى. او د بيت المال مال هم د عامو مسلمانانو دي. نو ددوى د مال څخه به ديت ادا كولي شى.

### په بازار كښي د موندلي شوي مقتول د قسامت

وَلَوْ وُجِدَ فِي السُّوقِ او كه مقتول په بازار كي اوموندي شى إِنْ كَانَ مَمْلُوكًا نو كه دا بازار مملوك وى فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ په نيز د امام ابويوسف رحمه الله تَجِبُ عَلَى السُّكَّانِ نو په سكان (اوسيدونكو) باندي ديت واجب دي وَعِنْدَهُمَا عَلَى الْمَالِكِ او د طرفينو رحمهما الله په نيز مالك باندي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَمْلُوكًا او كه مملوك نه وى كَالشَّوَارِعِ الْعَامَّةِ الَّتِي بُنِيَتْ فِيهَا لكه هغه عامي لاري په كومه چي بازارونه جوړ كړې شى فَعَلَى بَيْتِ الْمَالِ نو ديت به په بيت المال وى لِأَنَّهُ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ څكه چي دا بازار د مسلمانانو د جماعت لپاره دي.

حل اللغة: ① السوق: بازار ② الشوارع: جمع د شارعة: لاره

تشريح:- كه مقتول په بازار كي ملاو شى. نو بازار ته به كتلي شى. چه مملوك دي او كه غير مملوك دي. كه د خلګو مملوك وى. نو د طرفينو رحمهما الله په نيز به د بازار په مالكانو باندي ديت واجب وى. او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به په هغه خلګو باندي ديت واجب وى. كوم چي بازار كي اوسيږى. اوكه مملوك نه دي. لكه چي په عامه لاره كي بازار اولګولي شى. نو اوس به ديت په بيت المال باندي وى. څكه چي دا بازار د مسلمانانو د جماعت دي. او د بيت المال مال هم ددوى دي. نو د بيت المال څخه به ديت ادا كولاى شى

### په قيدخانه كښي د موندلي شوي مقتول د قسامت حكم

وَلَوْ وُجِدَ فِي السِّجْنِ او كه مقتول په قيد خانه (جيل) كي اوموندي شى فَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ نو ديت به په بيت المال باندي واجب وى.

حل اللغة: ① السجن: جيلخانه

تشريح:- كه مقتول په قيدخانه كي ملاو شى. نو د طرفينو رحمهما الله په نيز به دده ديت په بيت المال باندي واجب وى.

وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ الدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ عَلَى أَهْلِ السِّجْنِ او د امام ابويوسف رحمه الله دقول مطابق ديت او قسامت د قيدخاني په خلګو باندي واجب دي لِأَنَّهُمْ څكه چي اوسيدونكى هم ددوى دى سُكَّانٌ وَوِلَايَةُ التَّدْبِيرِ إِلَيْهِمْ او د تدبير ولايت هم ددوى په اړخ دي وَالظَّاهِرُ او ښكاره هم دا ده أَنَّ الْقَتْلَ حَصَلَ مِنْهُمْ چي قتل ددوى د اړخه حاصل شوي دي.

تشريح:- د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به دده ديت په قيديانو باندي واجب وى. دليل دا دي. چه قسامت او ديت ددوى د اصول مطابق سكان (اوسيدونكو) باندي واجبيږى. او د قيد خاني سكان قيديان دى. نو د تدبير ولايت به هم دوى ته حاصل وى. او ښكاره هم دا ده. چه قتل هم ددوى دا رخه ثابت شوي دي.

وَهُمَا يَقُولَانِ: او طرفين رحمهما الله فرمايي أَنَّ أَهْلَ السِّجْنِ مَقْهُورُونَ چي قيدى خلګ مقهور (او مغلوب دي فَلَا يَتَنَاصَرُونَ نو دوى كومك نشي كولي فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِمْ مَا نو ددوى سره به هغه حكم نه متعلق كيږى يَجِبُ لِأَجْلِ النُّصْرَةِ كوم چي د

کومك په وجه وَلِأَنَّهُ بُنِيَ او څکه چې قيدخانه جوړه کړې شوې ده لِاسْتِيفَاءِ حُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ د مسلمانانو د حقوقو
وصولولو لپاره فَإِذَا كَانَ غُنْمُهُ يَعُودُ إِلَيْهِمْ نو هر کله چې ددې منفعت مسلمانانو اړخ ته واپس کيږي فَغُرْمُهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِمْ نو
ددې تاوان به هم دوی اړخ ته واپس کيږي.

**حل اللغة:** ① **مقهورون:** جمع د مقهور، مغلوب ② **غنم:** فائده ③ **استيفاء:** حاصلول ④ **غرم:** تاوان﴾

**تشريح:-** د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې. چه قيدي خلګ مقهور او مغلوب دی. هغه به څنګه د چا امداد او کړې شي. هغوی خو پخپله د نصرت او امداد مستحق دی. نو د نصرت پريخودو په وجه چې کوم قسامت او ديت واجبيږي. هغه به په دوی واجب نه وی. او دويمه وجه دا ده. چه قيدخانه ددې لپاره جوړه کړې شوې ده. چه د مسلمانانو حقوق محفوظ پاتې شي. او وصول کړې شي.
لنډيز دکلام دا چه د قيدخانې منفعت عامو مسلمانانو ته رسيږي. نو ددې غرم او تاوان به هم مسلمانانو ته رسيږي. او هم ددوی په مال کې به ديت واجب وی. او ددوی مال هغه د بيت المال مال دی.

قَالُوا: مشائخو فرمائيلی دی وَهٰذِهِ فُرَيْعَةُ الْمَالِكِ وَالسَّاكِنِ او دا مسئله د مالك او ساكن (اوسيدونکي) فرع ده وَهِيَ
مُخْتَلَفٌ فِيهَا او دا مسئله مختلف فيه ده بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ د امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهما الله په منځ کې

**تشريح:-** په حقيقت کې دامسئله د وړاندې ذکرشوې مسئلې فرع ده. يعني دامام ابويوسف رحمه الله په نيز ساکن (اوسيدونکی) باندې ضمان دې. او د طرفينو رحمهما الله په نيز مالك باندې، او په قيد خانه کې قيديان ساکن (اوسيدونکی) دی. خو مالکان نه دی. نو د امام ابويوسف رحمه الله د قول مطابق به په دوی باندې ضمان وی. او د طرفينو رحمهما الله د قول مطابق به په دوی باندې ضمان نه وی.

## په غير مملوکه ځنګل کښې د موندلی شوی مقتول د قسامت مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ وُجِدَ فِي بَرِّيَّةٍ) وکه مقتول په يو ځنګل کې ملاو شی لَيْسَ بِقُرْبِهَا عِمَارَةٌ چې
دې ته نژدې هيڅ آبادی نه وی فَهُوَ هَدَرٌ نو دا فضول ده وَتَفْسِيرُ الْقُرْبِ مَا او د قرب (نيزديوالی) تفسير هغه دې ذَكَرْنَاهُ
کوم چې موږ ذکرکړې دې مِنْ اسْتِمَاعِ الصَّوْتِ يعنی آواز اوريدل، لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ بِهٰذِهِ الْحَالَةِ څکه چې هرکله مقتول په
دې حال وی لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ مِنْ غَيْرِهِ نو ده ته به دده نه غير څوك فرياد پوره کونکې نه رارسيږي فَلَا يُوصَفُ أَحَدٌ بِالتَّقْصِيرِ نو
هيڅ څوك به کوتاهئ سره نه متصف کيږي وَهٰذَا او دا حکم هغه وخت دې إِذَا لَمْ تَكُنْ مَمْلُوكَةً لِأَحَدٍ کله چې دا
ځنګل د چا مملوك نه وی أَمَّا إِذَا كَانَتْ بهرحال کله چې دا د چا مملوك وی فَالدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو ديت او
قسامت به د ځنګل د مالك په عاقله باندې وی

**حل اللغة:** ① **برية:** ځنګل ② **استماع:** اوريدل ③ **صوت:** آواز ④ **الغوث:** فرياد رس﴾

**تشريح:-** که مقتول په يو داسې ځنګل کې ملاو شی. چه دا دچا مملوك نه وی. نو په هيڅ چا قسامت او ديت نشته. بلکه دده وينه عبث ده. په دې شرط چې دې ځنګل سره هيڅ آبادی نه وی. چه ددې ځنګل نه هغه آبادئ ته آواز اورسيږي. څکه چې هرکله دې ته نژدې داسې آبادی نشته. نو ده له هيڅ څوك فرياد پوره کونکې نشی راتلې. او په نه راتلو کې د هيڅ يوکس د اړخه بې غوری نشته. خو که دا ځنګل د چا مملوك وی. بيا به ددې ځنګل د مالك په عاقله باندې ديت واجب وی.

## د دوو کلو په منځ کښې د موندلی شوی مقتول د قسامت حکم

وَإِنْ وُجِدَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ او که مقتول د دوو کلو په منځ کې ملاو شی كَانَ عَلَى أَقْرَبِهِمَا نو د ديت وجوب به په دوی
کې زيات نژدې والا باندې وی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او موږ دا بيان کړې دې وَإِنْ وُجِدَ فِي وَسَطِ الْفُرَاتِ او که مقتول د فرات
درياب په منځ کې ملاو شی يَمُرُّ بِهِ الْمَاءُ چې دا اوبه اوړی فَهُوَ هَدَرٌ نو دا عبث دې لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي يَدِ أَحَدٍ څکه چې فرات



درياب د هيڅ چا په قبضه کې نه ده وَلَا فِي مِلْكِهِ او نه د چا ملکيت دې.

**حل اللغة:** ① **قريتين:** تثنيه د قرية، کلې ② **وسط:** مينځ ③ **يمر:** تيريږی﴾

**تشريح:-** که مقتول ددوو کلو په منځ کې ملاو شی. نو کوم (کلې) چه دې خانې ته نژدې وی. دهغې اوسيدونکو باندې به قسامت او ديت واجب وی. چه ددې وجه وړاندې تيره شوې ده. او که مقتول د فرات دريا په غاړه نه بلکه په منځ کې ملاو شی. چه دا د اوبو څپه ځان سره اوړی. نو دده ديت به په هيڅ چا هم واجب نه وی. څکه چې دا د هيڅ چا په قبضه کې نه دې. او د فرات لاندې (په حکم کې) هر هغه درياب داخل دې. کوم چې د چا په ملکيت نه وی.

## د لوئې درياب په غاړه د راګير شوی مقتول د ديت او قسامت مسئله

وَإِنْ كَانَ مُحْتَبِسًا بِالشَّاطِئِ وکه مقتول د فرات (درياب) په غاړه راګيرشوې وی فَهُوَ عَلَى أَقْرَبِ الْقُرَى مِنْ ذٰلِكَ
الْمَكَانِ نو دا (وجوب د ديت) به دې خانې ته نژدې کلی والو باندې وی عَلَى التَّفْسِيرِ الَّذِي تَقَدَّمَ د قرب (
نيزديوالی) د هغه تفسير مطابق کوم چې وړاندې تير شوې دې لِأَنَّهُ اخْتَصَّ بِنُصْرَةِ هٰذَا الْمَوْضِعِ څکه چې هم دا (نژدې
کلې) ددې خانې کومك سره خاص دې فَهُوَ نو مقتول داسې شو كَالْمَوْضُوعِ عَلَى الشَّطِّ لکه په غاړه باندې ايښودې شوې
وَالشَّطُّ فِي يَدِهِ او غاړه دهغه خلګو په قبضه کې ده مَنْ هُوَ أَقْرَبُ مِنْهُ کوم چې دې ته نژدې دی أَلَا تَرَى آيا ته نه ګورې
أَنَّهُمْ يَسْتَقُونَ مِنْهُ الْمَاءَ چې دا د نژدې کلی خلګ ددې نه اوبه چلوی وَيُورِدُونَ بَهَائِمَهُمْ فِيهَا او په دې کې خپل څاروی
راولی.

**حل اللغة:** ① **محتبس:** راګيرشوې، بندشوې ② **الموضع:** خانې ③ **الشط:** غاړه ④ **بهائم:** جمع د بهيمة، څاروی﴾

**تشريح:-** که مقتول د لوئې درياب په غاړه راګير شوې دې. نو کوم کلې چې دې خانې ته نژدې وی. هم په هغوی به ديت واجب وی. څکه چې ددې خانې کومك هم ددوی فريضه ده. نو هم دوی اړخ ته بې غوری راګرځولې شوې ده. په دې وجه به دوی دديت ذمه دار وی. او د قرب تفسير وړاندې تير شوې دې. نو اوس به ددې مقتول څه حکم وی. لکه چې د درياب په غاړه پروت وی. او غاړه چونکه ددې کلی د خلګو په قبضه کې ده. څکه چې دغه خلګ ددې غاړې نه اوبه چلوی. او خپل څاروی دلته راوړی.

بِخِلَافِ النَّهْرِ په خلاف د هغه وياله الَّذِي يُسْتَحَقُّ بِهِ الشُّفْعَةُ د کوم په ذريعه چې د شفعې استحقاق کيږي لِاخْتِصَاصِ أَهْلِهَا د
شفعې مختص کيدو په وجه به دې وياله سره، بِهِ لِقِيَامِ يَدِهِمْ عَلَيْهِ په دې وياله باندې ددوی د قبضې کيدو په وجه،
فَتَكُونُ الْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَيْهِمْ، نو قسامت او ديت به هم په دغه خلګو وی.

**تشريح:-** او که هلته وړوکې وياله وی. چې په دې کې د شرکت په وجه د شفعې استحقاق کيږي. نو دا وياله ددغه خلګو په قبضه کې دې. نو که په دې کې څوك مقتول ملاو شو. نو دده ديت به هم په دوی باندې واجب وی. او هم په دوی به قسامت واجب وی.

## د مقتول ولی په معين سړی باندې د قتل دعوه او ددې حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَإِنْ ادَّعَى الْوَلِيُّ عَلَى وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِعَيْنِهِ) وکه ولی د محلې د خلګو نه په
يو معين سړی باندې د قتل دعوه اوکړله لَمْ تَسْقُطِ الْقَسَامَةُ عَنْهُمْ نو د محلې د خلګو څخه به قسامت نه ساقطيږي
وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا بيان کړې دې وَذَكَرْنَا فِيهِ الْقِيَاسَ وَالِاسْتِحْسَانَ او موږ په دې کې قياس او استحسان بيان
کړې دې.

**تشريح:-** ددې وضاحت وړاندې تفصيل سره تير شوې دې.

## د مقتول ولی د محلې د خلقو نه علاوه په بل سړی باندې دعوه کول

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل. (وَإِنْ ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ) وکه ددوی نه په علاوه کې په يوکس باندې و

د قتل دعوه اوکړله **سَقَطَتْ عَنْهُمْ** نو د محلې د خلګو څخه به قسامت ساقطيږي **وَوَجْهُ الْفَرْقِ وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ** او وجه د توپير موږ وړاندې بيان کړې ده **هُوَ** او هغه وجه دا ده **أَنَّ وُجُوبَ الْقَسَامَةِ عَلَيْهِمْ دَلِيلٌ عَلَى** چې د محلې په خلګو د قسامت وجوب ددې خبرې دليل دې **أَنَّ الْقَاتِلَ مِنْهُمْ** چې قاتل هم ددې څخني دې **فَتَعْيِينُهُ وَاحِدًا مِنْهُمْ** نو په دوی کې يوکس متعين کول دی **لَا يُنَافِي ابْتِدَاءَ الْأَمْرِ** د ومبئ خبرې منافی نه **لِأَنَّهُ مِنْهُمْ** څکه چې دا يو هم ددوی څخني دې.

**تشريح:-** که د مقتول ولی د محلې د خلګو نه علاوه په بل يوکس باندې د قتل دعوه اوکړله.نو اوس د محلې خلګو نه قسامت شته.او نه ديت شته.ددې وجه د توپير وړاندې ذکر شوې ده.او دا وجه هم ده.چه هرکله د محلې په خلګو قسامت واجبيږي.نو دا ددې خبرې دليل وی.چه قاتل هم ددوی نه يوکس دې.نو هرکله چې ولی د محلې په خلګو کې يوکس متعين کړو.نو خبره اوس هم هغه شان شوه.څکه چې وړاندې هم د محلې خلګ قاتل شمار کړې شوی وو.او هرکله ئې چې په دوی کې يوکس متعين کړو.نو تقديراً اوس هم هغه شان قاتل دی.څکه په دوی ضروري وه.چه دوی د قاتل لاس نيولې وې.او هغه ئې ظلم ته نه وې پريښودې.

**بِخِلَافِ مَا** په خلاف ددې صورت **إِذَا عَيَّنَ مِنْ غَيْرِهِمْ** کله چې ولی ددوی نه علاوه څوك معين کړی **لِأَنَّ ذٰلِكَ بَيَانُ** څکه چې دا (دغير تعين) ددې خبرې بيان دې **أَنَّ الْقَاتِلَ لَيْسَ مِنْهُمْ** چې قاتل هم د دوی څخني دې. **وَهُمْ إِنَّمَا يَغْرَمُونَ** او د محلې خلګ هغه وخت ضامن کيږی **إِذَا كَانَ الْقَاتِلُ مِنْهُمْ** کله چې قاتل هم ددوی څخني وی **لِكَوْنِهِمْ قَتَلَةً تَقْدِيرًا** ددوی تقديراً د قاتل کيدو په وجه **حَيْثُ لَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدِ الظَّالِمِ** په دې حيثيت سره چې دوی د ظالم لاس نه دې نيولې

**تشريح:-** او کله چې قاتل ددوی څخني نه وی.بلکه بل څوك وی.نو د قتل نه حقيقتاً ظهور شته او نه تقديراً.نو په دوی نه قسامت واجب دې.او نه ديت.

**وَلِأَنَّ أَهْلَ الْمَحَلَّةِ لَا يَغْرَمُونَ بِمُجَرَّدِ ظُهُورِ الْقَتِيلِ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ** او څکه چې د محلې خلګ صرف ددوی په منځ کې د مقتول ښکاره کيدو په وجه ضامن نه وی **إِلَّا بِدَعْوَى الْوَلِيِّ** خو د ولی د عوې سره (ضامن جوړيږي)، **فَإِذَا ادَّعَى الْقَتْلَ عَلَى غَيْرِهِمْ** نو ولی چې کله ددوی نه غير کس باندې د قتل دعوه اوکړله **امْتَنَعَ دَعْوَاهُ عَلَيْهِمْ** نو د مدعی د محلې په خلګو دعوه ممتنع شوه **وَسَقَطَ** او تاوان ساقط شو **لِفَقْدِ شَرْطِهِ** ددې شرط د نه موجود کيدو په وجه،

**حل اللغة:** ① **يغرمون:** تاوانی کولای شی ② **مجرد:** صرف ③ **فقد:** غيرموجود ،نشتوالی﴾

**تشريح:-** او په دوی باندې د ديت نه واجبيدو يوه وجه دا هم ده.چه د محلې په خلګو صرف په دې وجه ديت نه واجبيږي.چه مقتول په دې محله کې ملاو شوې دې.بلکه هغه وخت واجبيږي.کله چې د مقتول ولی په دوی دعوه کړې وی.او دلته ولی دعوه په بل چا کړې ده.نواوس هغه د محلې په خلګو دعوه نشی کولې. ګنی دده په دعوه کې به تناقض لازم شی.نو د محلې په خلګو د تاوان شرط موجود نشو.نو په دوی به ديت واجب نه وی.

### د يو قوم دخلقو د جګړې په منځ کښې د مقتول د ديت او قسامت مسئله

**قَالَ** امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی **(وَإِذَا الْتَقَى قَوْمٌ بِالسُّيُوفِ** وکه د يو قوم خلګ پخپلو کې تورو سره مخکې (په جګړه) شو **فَأَجْلَوْا عَنْ قَتِيلٍ** او دوی يو مقتول پريخودو.نو جلا شو **فَهُوَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ** نو دا (د ديت وجوب) د محلې په خلګو دی **لِأَنَّ الْقَتِيلَ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ** څکه چې مقتول ددوی په منځ کې دې **وَالْحِفْظُ عَلَيْهِمْ** او په دوی ساتنه ضروري وو. **إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَ الْأَوْلِيَاءُ عَلَى أُولٰئِكَ أَوْ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ بِعَيْنِهِ** خو دا چې اولياء په هغه خلګو يا په دوی کې په يو معين کس باندې دعوه اوکړی **فَلَمْ يَكُنْ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ شَيْءٌ** نو د محلې په خلګو به هيڅ واجب نه وی **لِأَنَّ هٰذِهِ الدَّعْوَى تَضَمَّنَتْ بَرَاءَةَ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ عَنِ الْقَسَامَةِ** څکه چې دا دعوه د محلې د خلګو د قسامت نه براءت ته شامله ده

**حل اللغة:** ① **السيوف:** جمع د سيف،توره﴾

**تشريح:-** که يو قوم د عصبيت په وجه خپل منځ کې تورو سره په جګړه شو.او کله چې دوی ددې ځائې نه لاړل.نو



دلته يو مقتول ملاو شو.نو دده ديت به د محلې په خلګو وی.څکه چې مقتول هم ددوی په منځ کې ملاو شوې دې.حالانکه په دوی باندې دده ساتنه لازم وو.

**تشريح:-** البته که ولی د قتل دعوه په هغه خلګو اوکړی.يا په دوی کې په يو متعين سړی باندې دعوه اوکړی.نو اوس به د محلې په خلګو هيڅ ضمان نه وی.څکه چې د ولی دې دعوې د محلې خلګ د قسامت نه بری کړل.اوس پاتې شو دا سوال، چې بيا به قسامت او ديت په دغه جګړه کونکو باندې واجب وی اوکه نه؟ نو ددې ځواب په راروان عبارت کې بيانيږي.

### په جګړه کونکو باندې به ديت کله لازم وی؟

**قَالَ** امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی **وَلَا عَلَى أُولٰئِكَ** و نه په دغه خلګو باندې (ديت) شته **حَتّٰى يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ** ترڅو چې د مقتول اولياء ګواهان قائم کړی. **لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوَى لَا يَثْبُتُ الْحَقُّ** څکه چې صرف د دعوې په وجه حق نه ثابتيږي **لِلْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ** د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړې دې **أَمَّا يَسْقُطُ بِهِ الْحَقُّ عَنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ** بهرحال ددې په وجه به د محلې د خلګو نه حق ساقطيږي **لِأَنَّ قَوْلَهُ حُجَّةٌ عَلَى نَفْسِهِ** څکه چې د مدعی قول پخپل نفس باندې حجت دې

**تشريح:-** يعنی په (وړاندې) ذکر شوی صورت کې چې لکه څنګه د محلې په خلګو ضمان نشته.دغه ډول په مقابله کونکی قوم باندې به ديت هم واجب نه وی.البته که د مقتول اولياء ګواهانو سره دا ثابته کړی.چه هم دا خلګ قاتلان دی.نو بيا به ديت واجب وی.ګنی صرف د دعوې په وجه حق نه ثابتيږي.بلکه ګواهان قائمول ضروري دی.لکه څنګه چې حديث کې تير شوی دی.چه «اَلْبينة على المدعی واليمين علی من أنكر» خو کله چې ولی د مقتول په دغه مقابله کونکی قوم باندې د قتل دعوه اوکړله.نو هغه د محلې خلګ بری اوګرځول.او د مدعی قول پخپله دده په حق کې حجت دې.په دې وجه د ګواهانو قائمولو نه بغير به د محلې خلګ بری ګرځولې شی.

### په غير مملوکه ځنګل کښې د لښکرپه ايساريدو کښې د مقتول د قسامت مسئله

**وَلَوْ وُجِدَ قَتِيلٌ فِي مُعَسْكَرٍ** او که مقتول په يو ځنګل کې اوموندې شو **أَقَامُوهُ بِفَلَاةٍ مِنَ الْأَرْضِ** چې دوی په يو داسې ډګر کې ايسار شی **لَا مِلْكَ لِأَحَدٍ فِيهَا** چې په دې کې د هيڅ چا ملکيت نشته **فَإِنْ وُجِدَ فِي خِبَاءٍ أَوْ فُسْطَاطٍ** نو که دا په ډيره (کوډله) يا خيمه کې اوموندې شو. **فَعَلَى مَنْ يَسْكُنُهَا الدِّيَةُ وَالْقَسَامَةُ** نو ديت او قسامت به په هغه خلګو واجب وی کوم چې په دې خيمه کې اوسيږي **وَإِنْ كَانَ خَارِجًا مِنَ الْفُسْطَاطِ** او که مقتول د خيمې نه بهر وی **فَعَلَى أَقْرَبِ الْأَخْبِيَةِ** نو په نژدې خيمې والو باندې **اعْتِبَارًا لِلْيَدِ** د قبضې اعتبار کاوه سره (ديت او قسامت واجب دې خو دا حکم) **عِنْدَ انْعِدَامِ الْمِلْكِ** د ملك نه کيدو په صورت کې (دې)

**حل اللغة:** ①**معسكر:** ځنګل ② **فلاة:** ميدان،صحرا ③ **الفسطاط:** خيمه④ **الاخبية:** خيمې﴾

**تشريح:-** يو لښکر په يو ځنګل کې پړاو اچولې دې.خيمې ئې لګولې دی.او په يوه خيمه کې يو مقتول ملاو شو.نو په دغه خيمې والو باندې قسامت او ديت واجب دې.اوکه مقتول د خيمې نه بهر ملاو شو.نو کومې خيمې سره چې زيات نژدې وی.په دغه خيمې والو باندې قسامت او ديت واجب دې.څکه چې دلته ملك اګرچه نشته.خو قبضه خو شته.نو دلته به صرف قبضه د ملك قائم مقام ګرځولې شی.

### دښمن سره په جنګ کښې ددوی د مقتول د قسامت مسئله

**وَإِنْ كَانَ الْقَوْمُ لَقُوا قِتَالًا** او که لښکر دښمن سره قتال (جنګ) کړې وی **وَوُجِدَ قَتِيلٌ بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ** او ددوی په منځ کې څوك مقتول اوموندې شی **فَلَا قَسَامَةَ** نو نه قسامت شته **وَلَا دِيَةَ** او نه ديت (شته). **لِأَنَّ الظَّاهِرَ** څکه ښکاره دا ده **أَنَّ الْعَدُوَّ قَتَلَهُ** چې دا دښمن قتل کړې دې **فَكَانَ هَدَرًا** نو دا به عبث وی **وَإِنْ لَمْ يَلْقَوْا عَدُوًّا** او که لښکر دښمن سره قتال نه وی کړې **فَعَلَى** نو په هغه تفصيل باندې دې **مَا بَيَّنَّاهُ** کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشریح:- که فوج د دښمنانو سره جنګ کړې وی.او هلته څوك مقتول اوموندې شو.نو اوس به قسامت او دیت واجب نه وی.ځکه چې اوس خو غالب ګمان هم دا دې.چه دا مقتول دښمنانو وژلې دې.نو ( دده وینه) عبث به وی.اوکه جنګ نه وې شوې.او هسې دلته ایسار شوی وی.نو ددې بیان اوس وړاندې تیر شوې دې.

وَإِنْ كَانَ لِلْأَرْضِ مَالِكٌ اوکه د زمکې څوك مالك وی فَالْعَسْكَرُ كَالسُّكَّانِ نو لښکر د سکان ( کور کې کرایه یا عاریت باندې د اوسیدونکی) په شان دې فَيَجِبُ عَلَى الْمَالِكِ نو دیت په مالك باندې واجب دې عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ دا ذکر کړې دې.

تشریح:- اوکه د زمکې څوك مالك وی.نو لښکر به د سکان پشان ګنړلې شی.او د تیرشوی تفصیل مطابق د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به صرف په مالك باندې ضمان واجب وی.په لښکر باندې به نه وی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به په مالك او سکان دواړو باندې ضمان واجب وی.

**د قاتل معلوملو لپاره د قسم خوړلو په جواب کښې د.. فلانی سړی خودلو.. حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا قَالَ الْمُسْتَحْلَفُ) و کله چې یو قسم خوړونکی اووئیل قَتَلَهُ فُلَانٌ چې مقتول فلانی قتل کړې دې اسْتُحْلِفَ بِاللَّهِ نو هغه ته به داسې قسم ور کولای شی مَا قَتَلْتُ چې د خدائې قسم ما نه دې قتل کړې وَلَا عَرَفْتُ لَهُ قَاتِلًا غَيْرَ فُلَانٍ .او نه زه د فلانی نه علاوه بل څوك قاتل پیژنم لِأَنَّهُ يُرِيدُ إِسْقَاطَ الْخُصُومَةِ عَنْ نَفْسِهِ ځکه چې هغه د خپل نفس نه د خصومت ساقطولو اراده کوی بِقَوْلِهِ پخپل دې قول «قتله فلان» سره فَلَا يُقْبَلُ نو دده قول به نشی قبلولې فَيَحْلِفُ عَلَى مَا نو په دغه طریقه به قسم خوړلې شی ذَكَرْنَا کومه چې موږ ذکر کړله لِأَنَّهُ لَمَّا أَقَرَّ بِالْقَتْلِ عَلَى وَاحِدٍ ځکه چې هرکله ده په یو کس باندې د قتل اقرار اوکړو صَارَ مُسْتَثْنًى عَنِ الْيَمِينِ (نو هغه په چا چې اقرار شوې دې) د یمین نه مستثنی شو فَبَقِيَ حُكْمُ مَنْ سِوَاهُ نو ددې نه د علاوه حکم پاته پاتې شو فَيَحْلِفُ عَلَيْهِ نو په پاته باندې به قسم ورکولې شی.

تشریح:- کله چې د یو مقتول په اړه کې د یوکس نه قسم واخستلې شو.نوهغه داسې اووئیل.چه دا فلانی سړی قتل کړې دې.نو اوس هم دا قسم پوره نشو.ځکه کیداې شی.چه فلانی قتل کړې وی.خوهغه سره دې پخپله هم شریك وی.یا مثلاً دده پلار ګډ وی.چه هغه ( پلار په قسم کې ) ده پریښودې وی.نو د قسم پوره کاوه لپاره به اوس ده ته داسې قسم ورکولې شی.یعنی هغه به داسې وائی. چې «بالله ما قتلتُ و لا عرفتُ له قاتلاً غیر فلان»
که څوك دا ووایې چې په دې کې قسم کې خو فلانی باندې اقرار نه دې راغلې؟ نود دې ځواب دا دې چې په هغه باندې خو وړاندې اقرار شوې دې.اوس خو د پاته پاتې حاجت پاته پاتې شو.نو په پاته پاتې به قسم اخستلې شی.او ددې هم دا طریقه ده.کومه چې موږ ذکر کړې ده.

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.(وَإِذَا شَهِدَ اثْنَانِ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ عَلَى رَجُلٍ) و کله چې د محلې په خلګو کې دوو سړو د داسې سړی خلاف ګواهی ورکړله مِنْ غَيْرِهِمْ چې هغه ددوی څنې نه دې أَنَّهُ قَتَلَ چې هغه دا مقتول قتل کړې دې لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُمَا نو ددوی شهادت به نشی قبلولې وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.

تشریح:- د محلې دوو سړو د داسې سړی په اړه کې ګواهی ورکړله.چه هغه ددوی د محلې نه دې.چه هغه مقتول قتل کړې دې.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا ګواهی نشی قبلولې.

**د بلې محلې په یو سړی باندې د قتل د ګواهۍ ورکولو حکم**



وَقَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمایي تُقْبَلُ (۱)شهادت به قبلولې شی لِأَنَّهُمْ كَانُوا بِعَرَضِيَّةِ أَنْ يَصِيرُوا خُصَمَاءَ ځکه چې هغوی د خصم جوړیدو نشانه وو وَقَدْ بَطَلَتِ الْعَرَضِيَّةُ بِدَعْوَى الْوَلِيِّ الْقَتْلَ عَلَى غَيْرِهِمْ او ددوی نه په غیر باندې د ولی د قتل د دعوې په وجه نشانه جوړول باطل شو فَتُقْبَلُ شَهَادَتُهُمْ نو ددوی شهادت به قبلولې شی كَالْوَكِيلِ بِالْخُصُومَةِ لکه څنګه چې د وکیل بالخصومت ( ګواهی قبلولې شی) إِذَا عُزِلَ قَبْلَ الْخُصُومَةِ کله چې دې د خصومت نه وړاندې معزول کړې شی

حل اللغة: ① خصماء: جمع د خصم،جګړه کونکې ② الخصومة: جګړه

تشریح:- د صاحبینو رحمهما الله په نیز به دا ګواهی قبلولې شی. دلیل دا دې.چه د محلې خلګ اګرچه په نشانه وو.چه هم دا خلګ خصم جوړ شی.خو اوس چې کله ولی د مقتول ددوی نه په علاوه باندې دعوه اوکړله.نو اوس ددوی په نښانه باندې کیدل باطل شو.نو اوس ددوی په شهادت کې هیڅ شبه پاتې نشوه.او دا بالکل داسې اوګنړئ.لکه چې د یوکس څوك وکیل بالخصومت وی.نوهغه د خپل مؤکل ګواه نشی جوړیدې.خو که مؤکل هغه د خصومت نه وړاندې د وکالت نه معزول کړې وی.نو اوس هیڅ شبه پاتې نشوه.نو اوس به دهغه ګواهی قبلولې شی.نو دلته به هم دغه ډول کیږی.

**د امام اعظم رحمه الله دلیل**

وَلَهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّهُمْ خُصَمَاءُ چې دوی خصم دی بِإِنْزَالِهِمْ قَاتِلِينَ ددوی د قاتلانو په درجه کې د راکوزولو په وجه لِلتَّقْصِيرِ الصَّادِرِ مِنْهُمْ په سبب د هغه کوتاهۍ کومه چې ددوی نه صادر شوې ده فَلَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُمْ نو ددوی شهادت به نشی قبلولې وَإِنْ خَرَجُوا مِنْ جُمْلَةِ الْخُصُومِ اګرچه دوی د خصم د فهرست نه خارج شوی دی كَالْوَصِيِّ لکه څنګه چې وصی إِذَا خَرَجَ مِنَ الْوِصَايَةِ بَعْدَ مَا قَبِلَهَا کله چې د وصیت قبلولونه روستو،د وصیت نه خارج شی ثُمَّ شَهِدَ (او) بیا ګواهی ورکړی.( نو دده ګواهی نشی قبلولې). قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی وَعَلَى هَذَيْنِ الْأَصْلَيْنِ يَتَخَرَّجُ كَثِيرٌ مِنَ الْمَسَائِلِ مِنْ هَذَا الْجِنْسِ او په دې دواړو اصلونو ( قاعدو) باندې ددې جنس ډیرې مسئلې متفرع کیږی.

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دادې.چه ددې خلګو بې غوری خو ضرور ده.ځکه چې قتل ددوی په محله کې شوې دې.په دوی ساتنه واجب وو.نو ددی دکوتاهۍ په وجه دوی د قاتلانو په درجه کې راغلی دی.او خصم جوړ شوی دی.خو اتفاقی خبره دا ده.چه اوس ولی په غیر باندې د قتل دعوه اوکړله. چې په دې وجه دا خلګ د خاصمانو په فهرست کې نه دی.خو د ړومبۍ شبهې په وجه به ددوی شهادت نشی قبلولې.او دوی به داسې ګنړلې شی.لکه چې یوکس د چا وصی دې.خو اوس هغه د بچی د بالغ کیدو په وجه د وصی کیدو نه خارج شو.او اوس هغه ددې بچی ګواه دې.نو اوس به هم دده ګواهی نشی قبلولې.دغه ډول حکم به دلته هم دې.

**پخپله محله کښې په یو معین سړی د قتل دعوه او ددې محلې د ګواهانو حکم**

قَالَ - (وَلَوِ ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِعَيْنِهِ) و که ولی د محلې په خلګو کې په یو معین سړی باندې د قتل دعوه اوکړله فَشَهِدَ شَاهِدَانِ مِنْ أَهْلِهَا عَلَيْهِ نو د محلې په خلګو کې دوو سړو په هغه باندې ګواهی ورکړله لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ نو ګواهی به نشی قبلولې لِأَنَّ الْخُصُومَةَ قَائِمَةٌ مَعَ الْكُلِّ ځکه چې خصومت ټولو سره قائم دې عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې وَالشَّاهِدُ يَقْطَعُهَا عَنْ نَفْسِهِ او ګواهی ورکونکې خصومت د خپل نفس نه ختموی فَكَانَ مُتَّهَمًا نو هغه به متهم وی.

تشریح:- د محلې په خلګو کې یو معین سړی باندې د مقتول ولی د قتل دعوه اوکړله.چه په دې باندې د محلې دوو

(۱) القول الراجح هوهذا قول الصاحبین رحمهما الله کذا فی کشف الأستار(۳۱۳/۲) والهندیة (۷/۶) نقلا عن القول الراجح (۳۶۸/۲)-

سړو په ده د قتل ګواهي ورکړله.نو چونکه دوی دواړه متهم دی.ځکه چې ددوی د ګواهۍ ور کاوه مقصد خپل ځان د خصم کیدو نه بچ کول دی.حالانکه د محلې واړه خلګ خصم دی.په دې وجه به ددوی شهادت نشی قبلولې.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او د امام ابو یوسف رحمه الله نه منقول دی أَنَّ الشُّهُودَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَتَلْنَاهُ چې د ګواهانو څخه به قسم اخستلې شی. «بالله ما قتلناه» وَلَا يَزْدَادُونَ عَلَى ذَٰلِكَ او په دې باندې به زیادت نشی . لِأَنَّهُمْ أَخْبَرُوا ځکه چې دوی خو دا خبر ورکړې دی أَنَّهُمْ عَرَفُوا الْقَاتِلَ.چه دوی قاتل پیژنی.

تشریح:- دامام ابو یوسف رحمه الله نه نقل دی چې ددوی د ګواهۍ نه دا معلومه شوه.چه دوی دواړه ګواهان قاتل پیژنی.په دې وجه چې کله دوی دواړه د محلې خلګو سره د قسامت قسم خوری.نو دوی دواړو ته به صرف په دې الفاظو سره قسم ورکولې شی.چه د خدائې قسم موږ دا مقتول نه دې قتل کړې.یعنی د محلې د نورو خلګو پشان دوی ته پخپل قسم کې د داسې وئیلو اړتیا نشته.چه «بالله ما قتلناه و لا عرفنا له قاتلا» یعنی ددې آخری جملې زیاتی کاوه اړتیا پاتې نشو.ځکه چې دوی دواړو د مخکې نه دا ګواهی ورکړې ده.چه دده قاتل فلانې دې.په دې وجه به ړومبۍ جملې باندې اکتفاء کولې شی.

## د محلې زخمی کور ته راوستلو نه روسته د زخمی مړ کیدو سره د قسامت او دیت مسئله

قَالَ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل «وَمَنْ جُرِحَ فِي قَبِيلَةٍ او څوك چې په یوه قبیله کې زخمی کړې شو فَنُقِلَ إِلَى أَهْلِهِ نو خپل اهل ( کور) اړخ ته منتقل کړې شو فَمَاتَ مِنْ تِلْكَ الْجِرَاحَةِ نو هغه ددې زخم په وجه مړ شو فَإِنْ كَانَ صَاحِبَ فِرَاشٍ حَتَّى مَاتَ نو که هغه تر مرګه پورې صاحب فراش ( په بستره بیمار ) پاتې شو فَالْقَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَى الْقَبِيلَةِ نو په دې قبیله باندې قسامت او دیت شته وَهَٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۱) او دا دامام ابو حنیفه رحمه الله قول دې.

حل اللغة: ① الجراحة: زخم ② صاحب فراش: د بسترې رنځور»

تشریح:- زید په یوه قبیله یا محله کې زخمی کړې شو.بیا دا راوچت کړې شو.او دده کور اړخ ته منتقل کړې شو.او دې پیوسته صاحب فراش پاتې شو.تردې چې په دې زخم سره مړ شو.نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیز په دې محله یا قبیلې والا باندې قسامت او دیت واجب دې.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله فرمائیلی لَا قَسَامَةَ چې نه قسامت شته وَلَا دِيَةَ او نه دیت شته لِأَنَّ الَّذِي حَصَلَ فِي الْقَبِيلَةِ وَالْمَحَلَّةِ ځکه چې قبیله یا محله کې کوم فعل حاصل شوې دې مَا دُونَ النَّفْسِ هغه د نفس نه کم دې وَلَا قَسَامَةَ فِيهِ او په دې کې قسامت نشته فَصَارَ نو داسې شوه. كَمَا إِذَا لَمْ يَكُنْ صَاحِبَ فِرَاشٍ لکه چې کله دې صاحب فراش ( سخت مریض) نه وی پاتې شوې.

تشریح:- د امام ابو یوسف رحمه الله په نیز قسامت او دیت هیڅ واجب نه دې. دلیل دا دې.چه په دې کې محله کې دې صرف زخمی کړې شوې وو.او قسامت او دیت په قتل کې واجبیږی.د قتل نه غیر کې نه واجبیږی.نو لکه څنګه چې د صاحب فراش نه پاتې کیدو په صورت کې که دې مړ شی.نو بالاتفاق قسامت او دیت نشته.نو دغه ډول به دلته کې هم قسامت او دیت واجب نه وی.

وَلَهُ او د امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّ الْجُرْحَ إِذَا اتَّصَلَ بِهِ الْمَوْتُ چې زخم کله چې د دې سره مرګ یوځائې شی صَارَ قَتْلًا نو زخم قتل جوړیږی وَلِهَٰذَا أَوْجَبَ الْقِصَاصَ او په دې وجه قصاص واجبیږی فَإِنْ كَانَ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو که دې صاحب فراش پاتې شو أُضِيفَ إِلَيْهِ نو قتل به زخم اړخ ته مضاف کیږی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ اوکه دې صاحب فراش پاتې نشو احْتَمَلَ نو احتمال شته أَنْ يَكُونَ الْمَوْتُ مِنْ غَيْرِ الْجُرْحِ چې مرګ د زخم د غیر په وجه شوې وی فَلَا يَلْزَمُ بِالشَّكِّ نو

(۱) القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۱۵/۴۵۰) وملتقی (۴۰۸/۱۴) والهندیة (۶/۷۹) نقلاً عن القول الراجح (۳۶۹/۱۲)-



قسامت او دیت به د شك په وجه نه لازمیږی.

تشریح:- د امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه کله زخم د مرګ سبب جوړیږی. نو زخم ته د قتل درجه ورکولې شی.هم دا وجه ده.چه قاتل معین او معلوم وی.نو په داسې صورت کې په ده باندې قصاص واجبیږی.نو دلته به قسامت او دیت واجب وی.نو که هغه برابر صاحب فراش پاتې شو.او مړ شو.نو مرګ به هم دې زخم اړخ ته مضاف وی.اوکه هغه صاحب فراش پاتې نشو.نو اوس په دې کې احتمالات پیدا شو. کیداې شی.چه دا ددې زخم په وجه مړ شوې وی.او کیداې شی.چه دا ددې زخم په وجه نه وی مړشوې.نو شك پیدا شو.نو د شك په وجه به قسامت او دیت واجب نه وی.

## زخمی سړی هم د زخمی کور ته راوستلو نه ورځ دوې (دوه) روسته مړکیدو سره د ضمان مسئله

وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا مَعَهُ جَرِيحٌ وکه یو سړې زخمی وی بِهِ رَمَقٌ چې په ده کې ساه پاتې وی چور إِنْسَانٌ دا یو انسان اوچت کړو إِلَى أَهْلِهِ او د هغه کور ته ئې اورسولو فَمَكَثَ يَوْمًا نو هغه ایسار شو یوه ورځ أَوْ يَوْمَيْنِ یا دوې (دوه) ورځې، ثُمَّ مَاتَ بیا هغه مړ شو لَمْ يَضْمَنِ الَّذِي حَمَلَهُ إِلَى أَهْلِهِ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله نو د امام ابو یوسف رحمه الله د قول مطابق به ده لره کورته رسونکې ضامن نه وی.

حل اللغة: ① جرح: زخم ② رمق: حرکت،د ساه اخستلو پاته والې»

تشریح:- یو سړې زخمی دې.چه په ده کې لږه شان ساه پاته ده.چه دا یو کس راوچت کړو.او دده کور ته ئې اورسولو.او هم په دې حالت کې هغه یوه ورځ یا دوې (دوه) ورځې پروت وو.بیا مړ شو.نو د امام ابو یوسف رحمه الله قول دا دې.چه اوچتونکې به دده ضامن نه وی.

وَفِي قِيَاسِ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ يَضْمَنُ و د امام ابو حنیفه رحمه الله د قول د قیاس مطابق به ضامن وی لِأَنَّ يَدَهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَحَلَّةِ ځکه چې دده قبضه د محلې په درجه کې ده فَوُجُودُهُ جَرِيحًا فِي يَدِهِ نو د مقتول د زخمی کیدو په حالت کې دده په قبضه کې موجود کیدل داسې دی كَوُجُودِهِ فِيهَا لکه چې مقتول د زخمی کیدو په حالت کې محله کې ملاو شوې وی وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَيِ الْقَوْلَيْنِ فِيمَا قَبْلَهُ او موږ د دواړو اقوالو وجه وړاندې ذکر کړې ده مِنْ مَسْأَلَةِ الْقَبِيلَةِ یعنی د قبیلې والا په مسئله کې.

تشریح:- د امام ابو حنیفه رحمه الله قیاس دا وائی.چه هغه به ضامن وی. دلیل دا دې چې ددې زخمی د اوچتونکی په قبضه کې مرګ داسې دې.لکه په محله کې مړکیدل.او وړاندې تیر شوی دی.چه د امام صاحب رحمه الله په نیز که په محله کې زخمی اوموندې شی.او هغه راوچت کړې شی.او کور ته راوستلې شی.نو د محلې خلص ضامن کیږی.دغه ډول به دلته هم اوچتونکې ضامن وی.او د امام ابو یوسف رحمه الله دلیل هم هلته تیر شوې دې.

## پخپل کور کښې پخپله مقتول اوموندې شی نو د دیت حکم

وَلَوْ وُجِدَ رَجُلٌ قَتِيلًا فِي دَارِ نَفْسِهِ وکه یو سړې پخپل کور کې مقتول اوموندې شی فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو دده دیت به دده په عاقله باندې وی لِوَرَثَتِهِ دده د وارثانو عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیز،

تشریح:- یو سړې پخپل کور کې مقتول اوموندې شو.نو په دې کې امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائی.چه د ده وارثانو ته به دده دیت ملاویږی.او د قاتل عاقله به دا دیت برداشت کوی.د امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل روستو راروان دې.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَزُفَرُ و امام ابو یوسف او امام محمد او امام زفر رحمهم الله فرمایي لَا شَيْءَ فِيهِ چې په دې کې هیڅ نشته. لِأَنَّ الدَّارَ فِي يَدِهِ حِينَ وُجِدَ الْجَرِيحُ ځکه چې کله زخمی کړې شوې اوموندې شو.نو دغه وخت کور د هغه په قبضه کې دې فَيُجْعَلُ نو داسې به ګرخولې شی كَأَنَّهُ قَتَلَ نَفْسَهُ ګویا هغه پخپله خپل نفس قتل کړې دې فَيَكُونُ هَدَرًا نو دا به فضول وی.

**تشریح:-** د امام ابویوسف، امام محمد او د امام زفر رحمهم الله مذهب دا دی.چه دده وینه عبث ده.او په چا باندې هیڅ واجب نه دی.ځکه چې کله زخمی کړې شوې دی. نو دکور مالك هم دی وو.نو په بل چا به ضمان نه وی.

## د امام اعظم رحمه الله دلیل

**وَلَهٗ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دی **أَنَّ الْقَسَامَةَ إِنَّمَا تَجِبُ** چې قسامت واجبیږی **بِنَاءً عَلٰی ظُهُوْرِ الْقَتْلِ** په قتل ښکاره کیدو باندې بناء کاوه سره **وَلِهٰذَا لَا يَدْخُلُ فِي الدِّيَةِ** او هم په دې وجه دیت کې به هغه سړی نه داخلیږی **مَنْ مَاتَ قَبْلَ ذٰلِكَ** کوم چې د قتل ښکاره کیدو نه وړاندې مړ شی، **وَحَالَ ظُهُوْرِ الْقَتْلِ الدَّارُ لِلْوَرَثَةِ** او د قتل ښکاره کیدو په وخت کور دد د وارثانو دی **فَتَجِبُ عَلٰی عَاقِلَتِهِمْ** نو دیت به د دوی په عاقله باندې واجبیږی.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دی.ددې حاصل دا دی.چه قسامت د جرح په وخت واجب نه دی. قسامت هغه وخت واجبیږی.کله چې قتل ښکاره شی.او ښکاره کیدل روغ شوی دی.او اوس حال دا دی.بلکه ددې کور مالك پاتې نشو.بلکه دده وارثان شو.نو دیت به د کور والا په عاقله باندې واجب وی.او وارثانو ته به ملاویږی.یعنی د کور خلگو ته. او پاتې شو ددې دلیل، چې د قتل ښکاره کیدو په وخت قسامت واجبیږی.نو هغه دا دی.چه د قتل ښکاره کیدو نه وړاندې چې په عاقله کې څوك مړ شو. نو د هغه د ترکۀ څخه به دیت نشی ادا کولې.نو که د قسامت او دیت وجوب د ښکاره کیدو نه مخکې کیدلې.نو دده د ترکې نه دیت ادا کیدل پکار وو.

**بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ** په خلاف د مکاتب **إِذَا وُجِدَ قَتِيْلًا فِيْ دَارِ نَفْسِهٖ** کله چې دې په خپل کور کې قتل شوې بیاموندې شی **لِأَنَّ حَالَ ظُهُوْرِ قَتْلِهٖ بَقِيَتِ الدَّارُ عَلٰی حُكْمِ مِلْكِهٖ** ځکه چې حالت د ښکاره کیدو دده د ملکیت په حکم کې پاتې دې **فَيَصِيْرُ** نو داسې به شی **كَأَنَّهٗ قَتَلَ نَفْسَهٗ** گویا چې ده خپل نفس پخپله قتل کړې دی **فَيُهْدَرُ دَمُهٗ** نو دده وینه به فضول وی.

**تشریح:-** د دې په خلاف که د مکاتب خپل ذاتی کور وو.چه په دې کې هغه مقتول اوموندې شو.نو دده وینه عبث ده.ځکه چې هرکله دده قتل ښکاره شو.نو دا کور اوس هم دده د مکاتب ملك دی.ځکه چې د مکاتب مرگ سره عقد کتابت نه باطلیږی.کله چې هغه د بدل کتابت برابر مال پریږدی.او مړ شی.نو هرکله چې دا کور د قتل ښکاره کیدو په وخت هم دده ملکیت اوگرځولې شو.نو په هیڅ چا به ضمان واجب نه وی.بلکه دده وینه به عبث وی.ځکه داسې به گڼلې شی.لکه چې ده خپل ځان پخپله قتل کړې دی.

①فائده* په درمختار کې د صاحبینو رحمهما الله قول مفتی به گرځولې شوې دی.او بعضو د امام صاحب رحمه الله قول ته ترجیح ورکړې ده.

②فائده* که د یوکس په ذریعه دا معلومه شی.چه دا غلو وژلو دی.نو اوس په هیڅ چا قسامت او دیت واجب نه دی.ځکه چې دې شهید دی.﴿ شامی﴾

## د یو کور په دوو اوسیدونکو کښې د یو کس مقتول کیدو سره د دیت حکم

**وَلَوْ أَنَّ رَجُلَيْنِ كَانَا فِيْ بَيْتٍ** وکه دوې (دوه) سړی په یو کور کې وی **وَلَيْسَ مَعَهُمَا ثَالِثٌ** او ددوی سره څوك دریم نه وی **فَوُجِدَ أَحَدُهُمَا مَذْبُوْحًا** نو په دوی کې یو مذبوح (مقتول) اوموندلې شی **قَالَ أَبُوْيُوْسُفَ** رحمه الله نو امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی **يَضْمَنُ الْآخَرُ الدِّيَةَ**[1] چې دوهم به د دیت ضامن وی. **وَقَالَ مُحَمَّدٌ** و امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی **لَا يَضْمَنُهٗ** چې هغه به د دیت ضامن نه وی. **لِأَنَّهٗ يَحْتَمِلُ** ځکه احتمال شته **أَنَّهٗ قَتَلَ نَفْسَهٗ** چې ده ځان پخپله مړ کړې دی **وَيَحْتَمِلُ** احتمال شته **أَنَّهٗ قَتَلَهُ الْآخَرُ** چې دا بل چا قتل کړې وی. **فَلَا يَضْمَنُهٗ بِالشَّكِّ** نو هغه به د شك په وجه دده ضامن نه وی. **وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ** رحمه الله او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی **أَنَّ الظَّاهِرَ** چې ښکاره دا ده.**أَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يَقْتُلُ نَفْسَهٗ** چې لکه کله چې مقتول په محله کې اوموندې شی.انسان خپل نفس نه قتلوی. **فَكَانَ التَّوَهُّمُ سَاقِطًا** نو توهم ساقط شو

[1] القول الراجح هو هذا قول أبی یوسف رحمه الله كذا فی ملتقی (٤٠٩١٤) وردالمحتار (٤٥١١٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٠١٢)-



## كَمَا إِذَا وُجِدَ قَتِيْلٌ فِيْ مَحَلَّةٍ لکه څنگه چې اوموندې شی مقتول پر (په) محله د ده کښې

**حل اللغة*** ① **بیت:** کور ② **مذبوح:** ذبح شوې حلال شوې﴾

**تشریح:-** په یو کور کې دوې (دوه) سړی دی.دریم هیڅ څوك نشته.بیا په دوی کې یو مقتول او مذبوح ملاو شو.نو د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به دا دوهم دده د دیت ضامن وی.

**تشریح:-** او د امام محمد رحمه الله په نیز به د دیت ضامن نه وی. د دوی دلیل دا دی.چه دلته ددې خبرې احتمال شته.چه ده خپل ځان پخپله قتل کړې وی.او دا احتمال هم شته.چه بل چا قتل کړې وی.نو هرکله چې شك پیدا شو.نو د شك په وجه به دیت واجب نه وی.

**تشریح:-** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دی.چه ښکاره دا ده.چه انسان خپل ځان پخپله نه قتلوی.اوکه چرته څوك خودکشی اوکړی.نو دا شاذ او نادر ( یعنی نا آشنا) دی.چه ددې اعتبار به نشی کولې. په دې وجه د امام محمد رحمه الله بیان کړې شوې احتمال توهم دی.او توهم ساقط او کالعدم دی.او ددې مثال بالکل داسې دی.لکه چې په یوه محله کې څوك مقتول ملاو شی.نو د محلې په خلگو دیت واجب دی.حالانکه دا احتمال هلته هم شته.چه مقتول هلته خودکشی کړې وی.نو لکه څنگه چې دا توهم هلته معتبر نه دی.نو دغه ډول به دلته هم معتبر نه وی.

## د یوې ښځې د ملکیت په کلی کښې د موندلې شوې مقتول د قسامت حکم

**وَلَوْ وُجِدَ قَتِيْلٌ فِيْ قَرْيَةٍ لِامْرَأَةٍ** وکه مقتول د یوې ښځې په کلی کې اوموندې شی **فَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ** نو د امام ابوحنیفه او امام محمد په نیز **الْقَسَامَةُ عَلَيْهَا**[1] قسامت په ښځه باندې واجب دی **تُكَرَّرُ عَلَيْهَا الْأَيْمَانُ** په دې باندې به قسمونه مکرر کولای شی **وَالدِّيَةُ عَلٰی عَاقِلَتِهَا** و دیت د ښځې په عاقله باندې واجب دی. **أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ إِلَيْهَا فِي النَّسَبِ** کوم چې د نسب په اعتبار سره دې ته د ټولو نه زیات نژدې قبیله وی.

**تشریح:-** وړاندې تیر شوی دی.چه ښځه او ماشوم او لیونی او غلام د قسامت د خلگو څنې نه دی.خوکه ښځه د پوره کلی مالکه وی.او د هغه ځائې واړه خلگ ددې رعایا ( او اهل) وی.او په دې کلی کې مقتول اوموندې شی.نو طرفین رحمهما الله دلته د خپل تیرشوی اصولو نه مخالف شواو فرمائی.چه قسامت خو صرف په ښځه باندې واجب دی.البته دیت د ښځې په عاقله باندې واجب دی.

**وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ:** او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی **عَلَی الْعَاقِلَةِ أَيْضًا** چې قسامت هم عاقله باندې دی **لِأَنَّ الْقَسَامَةَ إِنَّمَا تَجِبُ عَلٰی مَنْ** ځکه چې قسامت په هغه کس واجبیږی **كَانَ مِنْ أَهْلِ النُّصْرَةِ** څوك چې د امدادی خلگو څنې وی **وَالْمَرْأَةُ لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِهَا** او ښځه د امدادی خلگو څنې نه ده **فَأَشْبَهَتِ الصَّبِيَّ** نو ښځه د بچی مشابه شوه.

**حل اللغة*** ① **اهل النصرة:** امدادیان﴾

**تشریح:-** اوامام ابویوسف رحمه الله پخپل دې اصول باندې دی.چه هغه ددې ټولو لپاره وړاندې مذکور شو.چه ښځه د قسامت د خلگو څنې نه ده.ځکه چې دا د امدادی خلگو څنې نه ده.په دې وجه ښځه باندې قسامت واجب نه دې.بلکه د ښځې په عاقله باندې واجب دی.

## د طرفینو رحمهما الله دلیل

**وَلَهُمَا** او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دی **الْقَسَامَةَ لِنَفْيِ التُّهْمَةِ وَتُهْمَةُ** چې قسامت د تهمت دفع کاوه په وجه وی **الْقَتْلِ مِنَ الْمَرْأَةِ مُتَحَقِّقَةٌ** او د ښځې د اړخه د قتل تهمت ثابت دی.

**تشریح:-** دا د طرفینو رحمهما الله دلیل دی.چه د قسامت مدار په کومك باندې نه دی.بلکه د قتل تهمت لرې کاوه لپاره

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفین رحمهما الله كذا فی الدرالمختار(٤٥١١٥) وملتقی (٤٠٩١٤) ونصب (١٧٦١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٧١١٢)-

دي.او چونکه دلته دا ښځه ددې کلی مالکه ده.په دې وجه د قتل تهمت موجود دې.نو قسامت به هم واجب وي.

**د متاخرینو مشائخو قول**

قَالَ الْمُتَأَخِّرُوْنَ: متاخرینو رحمهم الله فرمائیلی دی أَنَّ الْمَرْأَةَ تَدْخُلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ فِي التَّحَمُّلِ چې د دیت په برداشت کاوه کي
به ښځه د عاقله سره داخله وی فِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ په دې مسئله کي لِأَنَّا أَنْزَلْنَاهَا قَاتِلَةً ځکه چې موږ دا د قاتلې په درجه
کي راکوزه کړې ده وَالْقَاتِلُ يُشَارِكُ الْعَاقِلَةَ او قاتل (په دیت کي) د عاقله سره شریک وی

حل اللغة: ① التحمل: برداشت کول ② انزلنا: موږ اوګرځوله

تشریح:- دلته دا سوال کیدو.چه هر کله عاقله دیت ادا کوی.نو ښځه به هم په دیت ادا کاوه کي ددوی شریکه وی.او
که نه؟ نو متاخرینو مشائخو فرمائیلی دی.چه ښځه به هم په دوی کي داخله وی.ځکه چې ښځه د قاتلې په درجه
کي ده.او قاتل عاقله سره شریك وی.نو دا به هم (شریکه) وی.

**د کلی نه بهر د یوکس په ذاتي مځکه کښې د موندلی شوی مقتول د قسامت حکم**

وَلَوْ وُجِدَ رَجُلٌ قَتِيْلًا وکه څوك سړی مقتول اوموندې شو فِي أَرْضِ رَجُلٍ د یوکس په مځکه کي إِلَى جَانِبِ قَرْيَةٍ په
داسې مځکه کي چې دا د یوکلی په غاړه باندې وی لَيْسَ صَاحِبُ الْأَرْضِ مِنْ أَهْلِهَا چې د زمکې مالك ددې کلی
اوسیدونکې نه وی قَالَ: هُوَ عَلَى صَاحِبِ الْأَرْضِ نو دیت د زمکې په مالك باندې دی لِأَنَّهُ أَحَقُّ بِنُصْرَةِ أَرْضِهِ ځکه چې د
زمکې مالك د خپلې زمکې د کومك زیات حقدار دی مِنْ أَهْلِ الْقَرْيَةِ د کلی د خلگو په مقابله کي.

تشریح:- د یوسړی مځکه ده.او دا د یو کلی په غاړه باندې ده.خو د زمکې مالك ددې کلی اوسیدونکي نه دې.نو
دیت به د زمکې په مالك باندې وی.ځکه چې د کلی د خلگو په مقابله کي د زمکې مالك د خپلې زمکې د کومك
او ساتنه زیات حقدار دې.نو ضمان به هم په ده باندې وی.په کلی والا باندې به نه وی.

# كِتَابُ الْمَعَاقِلِ

ژباړه:- (دا) کتاب د معاقلو (خلګو په بیان کي) دې.

تشریح:- وړاندې د دیاتو بیان وو.او په دې کي به د هغه خلګو بیان کولې شی.په کومو چې دیت واجبیږي.دلته
اصل عبارت داسې دې.،، کتاب أهل المعاقل ،، او اهل معاقل، عواقل دی.خو د عامو مصنفینو دا عادت دې.چه
دوی دا په حذف د مضاف سره بیانوی.

**د عقل او معاقل معنی او دیت ته د عقل وئیلو وجه تسمیه**

الْمَعَاقِلُ جَمْعُ مَعْقُلَةٍ معاقل د معاقله جمع ده وَهِيَ الدِّيَةُ اودا دیت دې وَتُسَمَّى الدِّيَةُ عَقْلًا او دیت ته عقل ځکه وائی لِأَنَّهَا
تَعْقِلُ الدِّمَاءَ مِنْ أَنْ تُسْفَكَ: أَيْ تُمْسِكُ ځکه چې وینه منع کوی.ددې خبرې نه چې دا اوبهیولې شی.(د ،،تعقل،، معنی
د ،،تمسك،، ده).

تشریح:- په دې عبارت کي مرغینانی رحمه الله خودلې ده.چه معاقله د معقله جمع ده.او د معقله معنی د دیت ده.او وجه
د تسمیه دا ده.چه د عقل معنی ده بندول، او دیت هم د وینې بهیولو نه بندوی.په دې وجه دیت ته عقل وائی.پاتې
شو د دیت د وینې بهیولو نه منع کول، نو دا ښکاره ده.

**په عاقله باندې کوم کوم دیت لازمیږي ددې سبب او دلیل**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَالدِّيَةُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ) و دیت په شبهٔ عمد او په خطاء کي دي وَكُلُّ دِيَةٍ تَجِبُ
بِنَفْسِ الْقَتْلِ عَلَى الْعَاقِلَةِ و هرهغه دیت کوم چې د نفس قتل په وجه واجبیږي.هغه په عاقله باندې دي يَعْنِي
يُؤَدُّونَ الْعَقْلَ وَهُوَ الدِّيَةُ او عاقله هغه خلگ دی.کوم چې عقل یعنی دیت ادا کوی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الدِّيَاتِ او موږ دا په



،،کتاب الدیات،، کي ذکر کړی دی وَالْأَصْلُ فِي وُجُوبِهَا عَلَى الْعَاقِلَةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ حَمَلِ بْنِ مَالِكٍ
رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لِلْأَوْلِيَاءِ {قُومُوا فَدُوهُ} (۱) او اصل په عاقله باندې د دیت په وجوب کي د نبی کریم ﷺ فرمان دی.د
حمل بن مالك رضی الله عنه په حدیث کي، د مجرم اولیاو ته ،، تاسو پاسیږئ، نو دده دیت ادا کړئ.،،

تشریح:- هرهغه دیت کوم چې د نفس قتل په وجه واجبیږي.یعنی د دم عمد نه د مصالحت په وجه او د پلار کیدوم
په وجه نه واجبیږي(یعنی چې قاتل پلار وی.نوپه دې صورت کي دیت صرف په پلار باندې دي.په عاقبله پاندې نه
دي) بلکه د نفس قتل په وجه واجبیږي.یعنی په دې باندې د قتل موجب دیت وی.که هغه قتل شبه عمد وی.اوکه
قتل خطاء وی.نو داسې دیت به پخپله قاتل باندې واجب نه وی.بلکه دده په مددګار خاندان باندې به واجب وی.او
د دیاتو تفصیل په ،،کتاب الدیات،، کي تیر شوې دې.

اوس پاتې شوه دا خبره چې د دیت وجوب په عاقله باندې ولې دې.نو په دې اړه کي مرغینانی رحمه الله یو حدیث
پیش کړې دې.چه په دې کي نبی کریم ﷺ د قاتل په اولیاو باندې د دیت ادا کاوه حکم فرمائیلې دې.دحدیث لنډیز
دا ده.چه د حمل بن مالك دوې (دوه) ښځې وې.په دوی کي یوې دویمه د خیمې په لرګی باندې اووهله.چه په دې
سره د هغې حمل ساقط شو.او پخپله هم مړه شوه.په دې باندې نبی کریم ﷺ د ضاربه (کومې ښځې چې وهل کړی
وو د هغې) اولیاو ته حکم اوفرمائیلو.چه ددې دیت اداکړی.

**عقلی دلیل**

وَلِأَنَّ النَّفْسَ مُحْتَرَمَةٌ او ځکه چې نفس محترم دې لَا وَجْهَ إِلَى الْإِهْدَارِ چې ددې د عبث کاوه هیڅ وجه نشته وَالْخَاطِئُ مَعْذُورٌ
او خطاکار معذور دې وَكَذَا الَّذِي تَوَلَّى شِبْهَ الْعَمْدِ نَظَرًا إِلَى الْآلَةِ او هم دغه ډول هغه سړې کوم چې د شبه عمد متولی
وی.د آلې لحاظ کاوه سره فَلَا وَجْهَ إِلَى إِيجَابِ الْعُقُوبَةِ عَلَيْهِ نو په ده باندې د عقوبت (سزا) واجبولو هیڅ وجه نشته وَفِي
إِيجَابِ مَالٍ عَظِيمٍ إِجْحَافُهُ وَاسْتِئْصَالُهُ او د مال په واجبولو کي ده لره په (خفګان کي اخته کول او ده لره هلاکول دی.
فَيَصِيرُ عُقُوبَةً نو دا (مال واجبول) به عذاب وی فَضُمَّ إِلَيْهِ الْعَاقِلَةُ تَحْقِيقًا لِلتَّخْفِيفِ نو دې اړخ ته به عاقله ملاوولې شی.د
سهولت ثابتولو غرض سره

حل اللغة: ① محترمة: قابل عزت ② الاهدار: عبث کول ③ العقوبة: عذاب ④ تخفیف: آسانتول

تشریح:- دا په عاقله باندې د دیت واجبولو عقلی دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د مقتول نفس محترم دې. چې دا
عبث نشی ګرځولې کیدې.او خاطی هم معذور دې.که خطاء سره قتل شوې وی.بیا هم معذور دې .او په شبه عمد
کي هم معذور دې.ځکه چې دلته د آلې استعمال د تادیب لپاره وو.هغه اتفاق.سره مړ شو.بهرحال دواړو صورتونو
کي قاتل معذور دې.بیا هم که په قاتل باندې عقوبت (سزا) واجب کړې شی.او هغه هم پوره دیت، نو د قاتل
بربادی او هلاکت یقینی دې.په دې وجه به د آسانتیا لپاره دده سره عاقله ملاوولې شی.چه قاتل د تباهئ نه بچ
شی.

وَإِنَّمَا خُصُّوا بِالضَّمِّ او ملاوولو سره عاقله مختص دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا قَصَّرَ لِقُوَّةٍ فِيهِ ځکه چې عاقل بې غوری کړې ده.پخپل خان
کي د قوت په وجه وَتِلْكَ بِأَنْصَارِهِ وَهُمُ الْعَاقِلَةُ او دده قوت دده دمددګارانو په ذریعه دې.او مددګاران عاقله دی
فَكَانُوا هُمُ الْمُقَصِّرِينَ فِي تَرْكِهِمْ مُرَاقَبَتَهُ فَخُصُّوا بِهِ نو عاقله بې غوری کونکی شو.ددوی په پریخودو کي ، دده نګرانئ
لره، نو مولښتی کاوه سره هم عاقله مختص شو.

حل اللغة: ① قوة: توان ② انصار: جمع د ناصر، مدادی ③ المقصرین: جمع د مقصر، کوتاهی کونکې،

تشریح:- اوس پاتې شو دا سوال چې هر کله د سهولت په غرض سره د ملاوولو اړتیا وو.نو د عاقله تخصیص ولې
اوشو؟ نو ددې وجه دا ده.چه د قاتل بې غوری دا ده.چه ده برداشت او احتیاط پریخودو.او په دې کي د سړی د

(۱) اخرجه الطبرانی فی معجمه (نصب:۱۶۰۱۵)_

قوت دخل دي.او د سړي قوت دده قبيله او خاندان او تعلقدار وي.په دې وجه تقديراً د عاقله د اړخه بې غوري اومنلې شوه.چه دوی دده نګرانی ولې پريخودله.په دې وجه يوځائې کاوه سره صرف عاقله خاص کړې شو.

## د عاقله مصداق

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَالْعَاقِلَةُ أَهْلُ الدِّيوَانِ آن گَانَ الْقَاتِلُ مِنْ أَهْلِ الدِّيوَانِ) و عاقله اهل ديوان دی.که قاتل د اهل ديوان څنې وي يُؤْخَذُ مِنْ عَطَايَاهُمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو ديت به ددوی د عطايانو نه په دريو کالونو کي اخستلې شی وَأَهْلُ الدِّيوَانِ أَهْلُ الرَّايَاتِ او اهل ديوان د جهنډو والا دی وَهُمُ الْجَيْشُ الَّذِينَ كُتِبَتْ أَسَامِيهِمْ فِي الدِّيوَانِ او دا هغه لښکر دي.چه ددوی نوم په ديوان ( رجسټر) کي ليکلی شوی وی وَهَذَا عِنْدَنَا او دا زموږ په نيز دی

حل اللغة* ① عطايا:جمع د عطية، ورکړه ② الجيش: لښکر ③ اسامی: جمع د اسم،نوم

تشريح:- ديت په عاقله باندې د کومک په بناء واجبيږی.اوس اړتيا راپيښ شو.چه مددګار کوم خلګ دی.چه هغوی ته عاقله وئيلې شی.نو په دې کي ړومبی نمبرکي اهل ديوان دی.او هغه کوم ديوان کوم خلګ دی.نو ددې وضاحت ئې کړې دې.چه ددې حاصل دا دې.چه کوم خلګ په فوج کي بهرتی کيږی.نو د هغه نوم په سرکاری کاغذونو او رجسټرو کي ليکلی کيږی.بيا ددوی مختلفې کمپنۍ ( يونټې) وی.او مختلف جماعتونه وی.او په جلا جلا رجسټرو کي ددوی نوم ليکلې شوې وی.يعنی د هرې کمپنۍ رجسټر جلا جلا وی.نو کوم خلګ چې د يوې کمپنۍ افراد دی.هغوی خپل منځ کي د يو بل عاقله دی.څکه که په دوی کي يوکس ته څه حادثه راپيښه شی.نو هغه به د خپلو ملګرو نه کومك طلب ګوی.نوکه په دوی کي د يوکس نه څه داسې کار اوشی.چه هغې سره ديت واجب شی .نو هغه به هم په دې اهل ديوان باندې واجب وی.او ديوان په معنی د رجسټر دې.يعنی دده د کمپنۍ په خلګو باندې، او په اهل ديوان باندې ديت واجبول زموږ مسلك دې.

وَقَالَ الشَّافِعِي: الدِّيَةُ عَلَى أَهْلِ الْعَشِيرَةِ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه ديت د قبيلې په خلګو دې لِأَنَّهُ كَانَ كَذَلِكَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] وَلَا نَسْخَ بَعْدَهُ څکه چې د رسول الله ﷺ په زمانه کي هم دغه ډول وو.او ددوی ﷺ نه روستو نسخ نشته وَلِأَنَّهُ صِلَةٌ وَالْأَوْلَى بِهَا الْأَقَارِبُ او څکه چې ديت خو صله ده.او د صلې زيات لائق رشته دار دی.

حل اللغة* ① العشيرة: قبيله ② عهد:زمانه ③ الاقارب: خپلوان،رشته داران

تشريح *د امام شافعی رحمه الله په نيز به اهل ديوان باندې ديت نه واجبيږی.بلکه ددیت وجوب به د خاندان په خلګو باندې وی.د امام شافعی رحمه الله ① ړومبې دليل دا دې.چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کي ديت صرف په خاندان او قبيلې باندې واجبيدو.او هرکله چې ددوی ﷺ نه روستو هيڅ نبی نشته.نو ددوی نه روستو حکم منسوخ کيداې هم نشی.
② ددوی دوهم دليل دا دې.چه ديت خو يوه صله ده.او د صلو حقدار رشته داران وی.نو ديت به په رشته دارانو باندې واجب وی.

وَلَنَا قَضِيَّةُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او زموږ دليل د حضرت عمر رضی الله عنه فيصله ده فَإِنَّهُ لَمَّا دَوَّنَ الدَّوَاوِينَ جَعَلَ الْعَقْلَ عَلَى أَهْلِ الدِّيوَانِ چې کله دوی رجسټرې جوړې کړلې.نو په اهل ديوان باندې ئې ديت مقرر کړو وَكَانَ ذَلِكَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ مِنْ غَيْرِ نَكِيرٍ مِنْهُمْ} او دا د صحابو رضی الله عنهم په موجودګۍ کي د څه نکير نه بغير اوشو.

حل اللغة* ① قضية: فيصله ② الدواوين:جمع د ديوان، رجسټر ③ محضر: موجودتيا ،حاضری

تشريح:- دا د حنفيانو دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه په اهل ديوان باندې د ديت په وجوب باندې د صحابو اجماع ده.څکه چې کله حضرت عمرفاروق رضی الله عنه رجسټرونه مدون ( او رائج) کړل.نو په اهل ديوان باندې ئې ديت

[1] من حديث إبن عباس رضى الله عنهما أخرجه ابى أبى شيبة فى مصنفه (نصب:۵\۲۰۶)_



مقرر کړو.او دوی دا کار د صحابو رضی الله عنهم په موجودګۍ کي کړې دې.چه په دې کي هيڅ يو صحابی نکير اونکړو.

وَلَيْسَ ذَلِكَ بِنَسْخٍ بَلْ هُوَ تَقْرِيرُ مَعْنًى او دا نسخ نه ده.بلکه معنی دا تقرير ( اثبات) دې لِأَنَّ الْعَقْلَ كَانَ عَلَى أَهْلِ النُّصْرَةِ څکه چې ديت په مددګارانو باندې وی وَقَدْ كَانَتْ بِأَنْوَاعٍ بِالْقَرَابَةِ وَالْحِلْفِ وَالْوَلَاءِ وَالْعَدِّ او د کومك مختلف انواع دی. د قرابت په وجه او د معاهدو په وجه او د ولاء په وجه، او د شمارلو په وجه وَفِي عَهْدِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَدْ صَارَتْ بِالدِّيوَانِ او د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کي کومك د ديوان په وجه شوې وو فَجَعَلَهَا عَلَى أَهْلِهِ اتِّبَاعًا لِلْمَعْنَى[1] نو دوی رضی الله عنه ديت په اهل ديوان باندې اوګرځولو.د معنی اتباع کاوه سره.

حل اللغة* ① القرابة:خپلولی ② الحلف:معاهده

تشريح:- دې ته نسخ وئيل مناسب نه دی.بلکه دا د حکم اصلی اثبات او تقرير دې.څکه چې د ديت وجوب په مددګارانو باندې دې.او د کومك يو څو قسمونه دی① د رشته دارۍ په وجه هم نصرت کيږی.② دحليف په وجه يعنی خپل منځ کي کومك باندې معاهده اوشی.چه دې ته ولاء الموالات وائی.③ او کله مددګار د عتاقه په وجه وی.④ اوکله امداد په دې وجه کولې شی.چه يو سړې په يو قوم کي د اوسيدو په وجه هم د هغوی نه شمارلې کيږی.لکه څنګه چې ابليس لعين د عبادت په باب کي فرښتو سره د مشغوليدو په وجه هم په دوی کي شمارلې کيدو.اګرچه هغه ددوی د جنس څنې نه دې. بهرحال د کومك دا مختلف انواع وو.او د حضرت عمر رضی الله عنه په دور کي نصرت ( او مدد) د ديون په وجه سره شو.او دا په اهل ديوان سره نصرت کول ددې نه وړاندې نه وو.نو د معنی لحاظ کاوه سره حضرت عمر رضی الله عنه په اهل ديوان باندې ديت واجب کړو.نو دا نسخ نه ده.بلکه د حکم اصلی د معنی لحاظ دې.

## د نصرت او امداد صورتونه

وَلِهَذَا قَالُوا:اوهم په دې وجه فقهاو فرمائيلی دی لَوْ كَانَ الْيَوْمَ قَوْمٌ تَنَاصُرُهُمْ بِالْحِرَفِ که نن داسې قوم وی.چه د هغوی تناصر(يو بل سره امداد کول) د پيشې (پيشو)( او کاروبار) په وجه وی دی فَعَاقِلَتُهُمْ أَهْلُ الْحِرْفَةِ نو د هغوی عاقله به د هغوی د پيشې والا خلګوی وَإِنْ كَانَ بِالْحِلْفِ او که تناصر د حليف (ملاتړ) په وجه وی فَأَهْلُهُ وَالدِّيَةُ صِلَةٌ كَمَا قَالَ و د حليف خلګ به ( عاقله) وی.او ديت صله ده.لکه څنګه چې امام شافعی رحمه الله فرمائيلی لَكِنَّ إِيجَابَهَا فِيمَا هُوَ صِلَةٌ وَهُوَ الْعَطَاءُ أَوْلَى مِنْهُ فِي أُصُولِ أَمْوَالِهِمْ خو ديت په داسې مال کي واجبول چې دا صله ده.او هغه عطاء ده.اولی (اوراجح) ده.د ديت واجبولو نه

حل اللغة* ① الحرف: جمع د حرفة، پيشه،هنر ② العطاء: بخشش

تشريح:- او د نصرت او امداد هم دا څلور صورتونه نه دی.نور ( صورتونه) هم کيداې شی.نوکه نن سهار د يو قوم په خپل منځ کي يو بل سره امداد کول د پيشې په بنا (بنياد) باندې وی.نو دده د پيشې خلګ به دده عاقله وی.او که خپل منځ کي د امداد کاوه مدار ولاء موالات وی.نو مولی الموالات به دده عاقله وی. اوامام شافعی رحمه الله چې کوم دا فرمائيلی دی.چه ديت صله ده.دا صحيح ده.نو صله به په صله کي واجبول اولی ( او راجح) وی.په دې وجه موږ ديت په اصل مالونو کي د واجبولو په ځائې په صلو کي واجب کړو.او کوم عطيات چې د سرکار نه کال په کال ورکولې شی.ددوی او ددوی د اهل وعيال د روزانه ضرورياتو نه علاوه دا هم په صلو کي داخل دی.نو هم په دې عطياتو کي ديت واجب کړې شو.

[1] كما فى رواية الحاكم أخرجه ابن ابى شيبة فى مصنفه (نصب:۵\۲۰۷)_

وَالتَّقْدِيرُ بِثَلَاثِ سِنِينَ مَرْوِيٌّ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[۱] ددوی په اصل مال کي دننه.او د دريو کالونو اندازه د نبی کريمﷺ نه نقل ده وَمَحْكِيٌّ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ[۲] او د عمرؓ نه منقول ده وَلِأَنَّ الْأَخْذَ مِنَ الْعَطَاءِ لِلتَّخْفِيفِ وَالْعَطَاءُ يَخْرُجُ فِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً وَاحِدَةً او ځکه چې د عطاء نه اخستل د سهولت په وجه دی.او عطاء په يو کال کښې يو ځل وی.

حل اللغة* ① التخفيف: آسانول ② سنة: کال ③ سنين: جمع د سن،کال﴾

تشريح *پاتې شوه دا خبره چې ديت ادا کول په دريو کالو کي ولې دی؟ نو ددې وجه دا ده.چه دا د نبی کريمﷺ نه نقل دی.اوحضرت عمرؓ نه منقول دی.او چونکه دا سرکاری انعامونه په يو کال کي يو ځل ورکولې شی.اودعطياتو نه ديت اخستل د آسانتيا په غرض سره دی.نو د آسانتيا تقاضه دا شوه.چه قسطوار به په دريو کالو کي ديت وصولولې شی.

## دديت ادا کولو طريقه او موده

فَإِنْ خَرَجَتِ الْعَطَايَا فِي أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِ سِنِينَ نوکه درې عطايانې د دريو کالو نه په زياته کي يا په کم کي اووتل أَوْ أَقَلَّ أُخِذَ مِنْهَا لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ نو ديت به هم ددې نه اخستلې شی.د مقصود حاصليدو په وجه وَتَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَتِ الْعَطَايَا لِلسِّنِينَ الْمُسْتَقْبَلَةِ بَعْدَ الْقَضَاءِ او د امام قدوری رحمه الله د قول تاويل (دا دی).چه کله عطايانې د راروانو کالونو وی.د قاضی د فيصلې نه روستو حَتَّى لَوِ اجْتَمَعَتْ فِي السِّنِينَ الْمَاضِيَةِ قَبْلَ الْقَضَاءِ تردې که د تيرو شوو کالونو عطايانې راجمع شی.د قاضی دحکم نه وړاندې ثُمَّ خَرَجَتْ بَعْدَ الْقَضَاءِ بيا د قاضی دحکم نه روسته عطايانې راوخی لَا يُؤْخَذُ مِنْهَا نو ددې عطايانو څخه به ديت نشی اخستلې لِأَنَّ الْوُجُوبَ بِالْقَضَاءِ عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى ځکه چې وجوب د قضاء په وجه دې.د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- په عامه توګه (عام طور) به داسې کيدل.چه د ماهانه رزق او مياشت په مياشت تنخواه نه علاوه چې به فوج ته کوم سالانه انعام ملاويدو.هغه به په يو کال کي يو ځل ورکولې شو.نو ددې څخه به د هر کال په عطايانو کي د ديت ثلث وصولولې شو.چه په دريو کالو کي پوره ديت ادا کړې شی.خو که دا عطايانې د دريو کالو په ځاې شپږو کالونو کي ملاو شی.نو بيا به په شپږو کالونو کي ديت وصولولې شی.يعنی کال په کال به ۶/۱ وصولولې شی.اوکه اتفاق سره د دريو کالو عطايانې په يو کال کي ورکړې شی.نو پوره ديت به هم ددې يو کال عطايانو نه وصولولې شی.ځکه مقصود خودا وو.چه کوم ديت وصول شی.هغه ددوی د عطايانو نه وصول شی.او دلته هم دغه ډول ده.

خو دا کومې عطايانې چې اوس ملاو شوی دی.په دې کي به د دوو خبرو لحاظ ساتلې کيږی① په دې کي به ديت هغه وخت واجب وی.کله چې قاضی په اهل ديوان باندې د ديت د وجوب فيصله ورکړله .نو د قاضی د حکم نه روسته به دا عطايانې مجاهدينو ته ملاوشوی وی.② دا عطايانې د راروانو کالونو لپاره پيشګی ورکړې شوی وی.وجه ددې دا ده.چه په عاقله کي کلام دې.نو ددې تعين به د قاضی د قضاء په ذريعه کيږی.نوکه د تيرو شوو کالونو عطايانې بندې شوې وې.او د قاضی د قضاء نه روستو عطايانې ورکړې شوی وی.نو ددې عطايانو څخه به ديت نشی اخستلې.ځکه چې دوهم شرط موجود نه دې.

## که عطايا په دريو کالوکښې يا ددې نه کم يا زياته موده کښې ملاويږی نو دديت حکم

وَلَوْ خَرَجَ لِلْقَاتِلِ ثَلَاثُ عَطَايَا فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ او که قاتل لپاره په يو کال کي درې عطايانې اوځی مَعْنَاهُ فِي الْمُسْتَقْبَلِ ددې

[۱] قال الزيلعی رحمه الله تقدم تخريجه فی باب الجنايات (نصب: ۲۰۷۱۵)_
[۲] أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه (نصب:۸۵۱۵)_



يُؤْخَذُ مِنْهَا كُلُّ الدِّيَةِ لِمَا ذَكَرْنَا نو د ذکر شوی دليل په وجه به ددې نه پوره ديت اخستلې شی وَإِذَا كَانَ جَمِيعُ الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ او کله چې پوره ديت په دريو کالو کي وی فَكُلُّ ثُلُثٍ مِنْهَا فِي سَنَةٍ نو د ديت هر ثلث به په يو کال کي وی وَإِنْ كَانَ الْوَاجِبُ بِالْفِعْلِ ثُلُثَ دِيَةِ النَّفْسِ أَوْ أَقَلَّ او که واجب بالفعل د نفس ديت ثلث وی.يا ددې نه کم وی كَانَ فِي سَنَةٍ وَاحِدَةٍ نو دا به په يو کال کي وی وَمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ إِلَى تَمَامِ الثُّلُثَيْنِ فِي السَّنَةِ الثَّانِيَةِ او کوم مقدار چې د يو ثلث نه زيات وی.د دوې (دوه) ثلثه مکمل کيدو پورې، هغه به په دوهم کال (اخستلې شی) وَمَا زَادَ عَلَى ذَلِكَ إِلَى تَمَامِ الدِّيَةِ فِي السَّنَةِ الثَّالِثَةِ او کوم چې د دوې (دوه) ثلثه نه زيات وی.د پوره ديت پورې، هغه به په دريم کال کي (وصولولې شی).

تشريح:- دلته د قاتل نه صرف قاتل مراد نه دې.بلکه عاقله سره د قاتل نه مراد دی.او ددې مطلب دا دې.که د دريو کالو نه علاوه اهل ديوان ته پيشګی ورکړې شوی وی.نو اوس به د دريو کالو تاخير نشی کولې.بلکه ددې څخه به فوراً (فی الحال) پوره ديت وصولولې شی.په دې شرط چې دا عطايانې د راروانو کالونو وی.او ددې ملاويدل د قاضی د فيصلې نه روستو شوی وی.چه ددې دليل وړاندې ذکر شوې دې.

وړپسې فرمائی.چه چرته نفس خطاء سره قتل شوې وی.نو هلته به پوره ديت واجب وی.او هر کال کي به يو ثلث ديت وصولولې شی.خو که ديت واجب نه وی.بلکه ارش (تاوان) واجب وی. چې ددې تعلق د نفس نه کم سره وی.او ددې ارش مقدار د ديت ثلث يا دوې (دوه) ثلثه يا ددې نه کم يا زيات وی.نو په داسې صورت کي به په يو کال کي څومره وصولولې شی؟ نو وې فرمائيل.که د ارش مقدار د ديت ثلث يا د دې نه کم وی.نو دا واړه به په يو کال کي وصولولې شی.او که د ثلث نه زيات وی.په دې شرط چې د دوې (دوه) ثلثه نه زيات نشی.نو ثلث به په دې کال کي او پاته به په دوهم کال کي وصولولې شی.او که ددې مقدار د دوې (دوه) ثلثه نه هم زيات شی.نو په ړومبی کال کي به يو ثلث، او په دوهم کال کي به دوهم ثلث، او کوم چې پاته مقدار دې.هغه به په دريم کال کي وصولولې شی.

## که پلار خپل ځوئې قتل کړی نو د ديت طريقه او موده

وَمَا وَجَبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ مِنَ الدِّيَةِ أَوْ عَلَى الْقَاتِلِ بِأَنْ قَتَلَ الْأَبُ ابْنَهُ عَمْدًا او کوم ديت چې عاقله باندې واجب دې.يا په قاتل باندې په دې طريقه چې پلار خپل ځوئې عمداً قتل کړې وی فَهُوَ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو ديت به د قاتل په مال کي وی.په دريو کالوکي،

تشريح:- د حنفيانو مسلك دا دې.چه ديت که په عاقله باندې واجب وی.او که د قاتل په مال کي واجب وی. لکه چې پلار خپل ځوئې عمداً قتل کړې وی.نو په پلار باندې ديت واجب دې.بهرحال زموږ په نيز که هر يو ديت وی.هغې کي تاجيل دې.چه دا به قسط وار په دريو کالو کي ادا کولې شی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ وَمَا وَجَبَ عَلَى الْقَاتِلِ فِي مَالِهِ فَهُوَ حَالٌّ او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه کوم ديت د قاتل مال کي واجب وی.هغه به نغد (فوراً وصولولې) شی لِأَنَّ التَّأْجِيلَ لِلتَّخْفِيفِ لِتَحَمُّلِ الْعَاقِلَةِ ځکه چې تاجيل د سهولت په وجه دې.د عاقله د برداشت کاوه په وجه فَلَا يَلْحَقُ بِهِ الْعَمْدُ الْمَحْضُ نو عمد محض (خالص قصد) به ددې سره نشی ملاوولې.

حل اللغة* ① تاجيل: نيتهه ② العمد: قصداً عمداً﴾

تشريح:- امام شافعی رحمه الله دا فرمائی.چه کوم ديت په عاقلهَ باندې واجب وی.نو هغه به په دريو کالو کي ادا کولې شی.خو کوم ديت چې د قتل عمد په صورت کي د څه عارض په وجه د قاتل په مال کي واجب شی.هغې کي به تاجيل نشی کولې.بلکه هغه به فی الحال واجب الاداء وی.ځکه چې عاقله پخپله مجرم نه دی.نو په دوی باندې د تخفيف په غرض سره د ديت په ادا کاوه کي تاجيل مشروع شوې دې.نو خالص قتل عمد به ددې سره يوځاې کولې نشی.

### د احنافو دلیل

وَلَنَا أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ او زمونږ دلیل دا دی چه قیاس د مال د وجوب انکار کوی. وَالشَّرْعُ وَرَدَ بِهِ مُؤَجَّلًا او شریعت د مال وجوب سره د مؤجل مال سره وارد شوی دی فَلَا يَتَعَدَّاهُ نو وجوب د مال به د تاجیل نه نه متعدی کیږی.

تشریح:- دا زمونږ دلیل دی. ددې حاصل دا دی. چه د قیاس تقاضه خودا وه. چه د نفس په بدله کې مال واجب نشی. خو خلاف قیاس د نفس په بدله کي وجوب د مال ثابت شوې دی. چه دې ته دیت وائی. او کوم شئ چې خلاف قیاس وی. هغه د مورد سماع نه اړول جائز نه دی. او په شریعت کي چې چرته هم د دیت په طور د مال وجوب مشروع شوې دې. هغه مؤجل دی. په دې وجه به دې ته هم مؤجل ونیل ضروری وی.

### د لسو سړو په غلطۍ سره یو سړي قتلول او د دیت مقدار

وَلَوْ قَتَلَ عَشَرَةٌ رَجُلًا خَطَأً او که لسو سړو یو سړې قتل کړې وی په خطاء سره فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ عُشْرُ الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو په هر یو باندې د دیت عشر دی. په دریو کالو کي دننه، اعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ جزء په کل باندې قیاس کاوه سره إذ هُوَ بَدَلُ النَّفْسِ ځکه چې دا د نفس بدل دی.

تشریح:- که لسو سړو په خطاء سره یو کس قتل کړې وی. نو په هر یو به د دیت عشر واجب وی. چه دا به ددوی نه په دریو کالو کي وصولولې شی. ځکه که وجوب په یو باندې وې. نو هم دغه ډول به وو. نو که وجوب په زیاتو باندې شوې دې. بیا به هم دغه ډول وی. او ددې ادائیګی به په دریو کالو کي کولې شی. ځکه چې دا بهر حال د نفس بدل او عوض دی. او ددې مؤجل کیدو سره مشروع کیدل هم معلوم شوی دی.

وَإِنَّمَا يُعْتَبَرُ مُدَّةُ ثَلَاثِ سِنِينَ مِنْ وَقْتِ الْقَضَاءِ بِالدِّيَةِ او د دریو کالو موده به د دیت د فیصلې د وخت نه معتبره وی. لِأَنَّ الْوَاجِبَ الْأَصْلِيَّ الْمِثْلُ وَالتَّحَوُّلَ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْقَضَاءِ ځکه چې واجب اصلی مثل دی. او قیمت اړخ ته اوړیدل د قضاء په وجه دی فَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاؤُهَا مِنْ وَقْتِهِ نو د دیت ابتداء به د قضاء د وخت نه معتبر وی كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُورِ لکه څنګه چې د دهوکه کړې شوی په بچی کي ( د قیمت ادا کاوه اعتبار د قضاء دوخت نه معتبر دی)

حل اللغة* ① التحول: اوړیدل ② ابتداء: اول، شروع﴾

تشریح* بیا د قاضی د دیت د فیصلې نه روستو چې کوم درې کالونه راځی. هغې کي به دیت وصولولې شی. ځکه چې اصل واجب خو مثل وی. ځکه چې د هلاك شوی ضمان په مثل سره کیږی. او قیمت اړخ ته اوړیدل د قضاء په وجه دی. نو د دیت ابتداء به د قضاء د وخت نه کیږی. لکه څنګه چې د دهوکه کړې شوی په بچی کي کیږی. یعنی مثلاً یوې ښځې د یو سړی سره نکاح اوکړله. او سړی ته هغې ونیلي وی. چه زه آزاده یم. نو بچی پیدا شو. او چا دعوه اوکړله. چه دا ښځه زما وینځه ده. نو دا وینځه به مستحق ته واپس کولې شی. او ددې بچی به آزاد وی. خو ددې قیمت ادا کول به ضروری وی. او قیمت به د قضاء د ورځې معتبر وی. دغه ډول به دلته هم د مودې پیل د قضاء د وخت نه کولې شی. او ده ته مغرور ( دهوکه کړې شوې) ځکه ونیلې شوې دې. چه ده ته دغه ښځې دهوکه ورکړې ده.

### که څوك اهل دیوان نه وی نو دده عاقله به څوك وی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الدِّيوَانِ و څوك چې د اهل دیوان څخې نه وی. فَعَاقِلَتُهُ قَبِيلَتُهُ نو د هغه عاقله د هغه قبیله ده لِأَنَّ نُصْرَتَهُ بِهِمْ ځکه چې دهغه کومك هم ددوی په وجه دی وَهِيَ الْمُعْتَبَرَةُ فِي التَّعَاقُلِ او په عاقله کیدو کي کومك معتبر دی.

حل اللغة* ① الديوان: رجستر﴾

تشریح:- که یوکس د اهل دیوان څخې نه وی. نو دده عاقله به دده قبیله او دده خاندان وی. ځکه چې دده مددګار دده



خاندان وی. او د کومك په بنا (بنیاد) باندې د عاقله کیدو مدار دی.

### د دیت طریقه

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَتُقْسَمُ عَلَيْهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ و دیت به په قبیله باندې دریو کالو کي تقسیمولې شی لَا يُزَادُ الْوَاحِدُ عَلَى أَرْبَعَةِ دَرَاهِمَ فِي كُلِّ سَنَةٍ وَيُنْقَصُ مِنْهَا هر کال کي به د یو یا څلورو درهمو نه زیات نشی اخستلې. او ددې نه کمولې شی

تشریح:- کله چې په قبیلې والو باندې دیت ویش کړې شی. نو په دې کي به دا خیال ساتلې شی. چه پوره دیت به ددوی نه په دریو کالو کي قسط وار وصولولې شی. او په کال کي به د هر یو نه صرف یو درهم ا خستلې شی. چه مجموعه درې شی. یا به د هریو نه یودرهم او د یو درهم دریمه اخستلې شی. چه مجموعه څلوردرهمه شی. ځکه چې د هیڅ یوکس نه د څلورو درهمو نه زیات اخستل جائز نه دی. اګرچه د کمولو ګنجائش شته. خو د زیاتو نشته.

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: كَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي مُخْتَصَرِهِ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. چه امام قدوری رحمه الله پخپل مختصر کي هم دغه ډول ذکر کړی دی وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يُزَادُ عَلَى أَرْبَعَةٍ مِنْ جَمِيعِ الدِّيَةِ او دا دې خبرې ته اشاره ده. چه په پوره دیت کي د څلورو نه زیاتولې شی وَقَدْ نَصَّ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ عَلَى أَنَّهُ لَا يُزَادُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ جَمِيعِ الدِّيَةِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ عَلَى ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ حالانکه امام محمد رحمه الله صراحت کړې دی. چه په یوکس به په پوره دیت کي په دریو کالو کي په دریو یا څلورو درهمو باندې نشی زیاتولې فَلَا يُؤْخَذُ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ فِي كُلِّ سَنَةٍ إِلَّا دِرْهَمٌ أَوْ دِرْهَمٌ وَثُلُثُ دِرْهَمٍ نو په هر کال کي به د هریو نه صرف یو درهم یا یو درهم او د یو درهم ۳/۱ اخستلې شی وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا زیاته صحیح ده.

تشریح:- د امام قدوری رحمه الله د کلام نه ښکاره دا معلومیږی. چه په دریو کالو کي د هر یو نه د څلورو درهمو پورې اخستلې شی. ( زیات به نشی اخستلې). ځکه چې دوی دا فرمائیلی دی. چه د هیڅ یوکس څخه به په کال کي د څلورو درهمو نه زیات نشی اخستلې. البته د څلورو نه کم اخستلې شی. او دا د امام محمد رحمه الله د تصریح خلاف دې. او اصح هم هغه دې. کوم چې امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.

### که د عاقله قبیله د دیت لپاره کافی نه وی نوڅه حکم دی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَتَّسِعُ الْقَبِيلَةُ لِذٰلِكَ او که قبیله ددې لپاره کافی نه وی ضُمَّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ مَعْنَاهُ نَسَبًا نو د نسب په اعتبار سره به په قبیلو کي زیاته نژدې ددوی په اړخ ملاوولې شی كُلُّ ذٰلِكَ لِمَعْنَى التَّخْفِيفِ دا ټولې خبرې د سهولت په وجه دی وَيُضَمُّ الْأَقْرَبُ فَالْأَقْرَبُ عَلَى تَرْتِيبِ الْعَصَبَاتِ الْإِخْوَةُ ثُمَّ بَنُوهُمْ، ثُمَّ الْأَعْمَامُ ثُمَّ بَنُوهُمْ او اقرب فالاقرب به ملاوولې شی. د عصباتو د ترتیب مطابق، رونړه بیا وریرونه، بیا ترونه بیا ددوی ځامن ( یعنی د ترونو ځامن).

حل اللغة* ① تتسع: کافی کیږی﴾

تشریح:- کومه قبیله چې دده عاقله شمار کړې شوې وه. هغه د دیت ادا کاوه لپاره کافی نه ده. نو دویمه قبیله به ددوی په اړخ ملاوولې شی. کومه چې د نسب په اعتبار سره دوی ته نژدې وی. ځکه چې عاقله باندې د دیت وجوب د سهولت په غرض سره دې. او سهولت په دې کي دې. کوم چې مونږ بیان کړل. چه په یو سړی باندې په پوره دیت کي د څلورو درهمو نه زیات رانشی. نو د اقرب فالاقرب په لحاظ سره به قبیلې ملاوولې شی. او د الاقرب فالاقرب هم هغه ترتیب دې. کوم چې د عصبیاتو ترتیب دې. یعنی ړومبې به د قاتل رونړه ملاوولې شی. بیا به د رونړو ځامن، بیا ترونه، بیا د ترونو ځامن وغیره. ﴿ و قد بینا ترتیب العصبات مفصلاً فی درس السراجی ﴾

### په عاقله کښې د قاتل پلار، نیکه او خپل ځامن داخلیږی اوکه نه؟

وَأَمَّا الْآبَاءُ وَالْأَبْنَاءُ او بهرحال آباء (پلار او نيكونه) او خامن فَقِيلَ يَدْخُلُونَ لِقُرْبِهِمْ نو وئيلی شوی دی.چه دوی په عاقله کې داخليږي .ددوی د نيزديوالی په وجه وَقِيلَ لَا يَدْخُلُونَ او وئيلي شوى دي.چه نه داخليږي لِأَنَّ الضَّمَّ لِنَفْيِ الْحَرَجِ حَتَّى لَا يُصِيبَ كُلَّ وَاحِدٍ أَكْثَرُ مِنْ ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ ځکه چې ملاوول د حرج لرې كاوه لپاره دې.چه هريو ته د دريو يا ځلورو نه زياته اونه رسيږي وَهَذَا الْمَعْنَى إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ عِنْدَ الْكَثْرَةِ او دا معنى د كثرت ( زياتوالی) په وخت ثابتيږي وَالْآبَاءُ وَالْأَبْنَاءُ لَا يَكْثُرُونَ او آباء او خامن كثير نه دي.

تشريح:- دلته دا سوال كيږي.چه د عاقله په فهرست كې د قاتل آباء او دهغه خامن هم دا خل دی.اوكه نه دی؟ نو په دې كې دوې (دوه) اقواله دی ① هركله چې د عاقله كيدو بنا (بنياد) په كومك او رشته دارئ دی.نو آباء او خامن به په درجه اولی داخل وی. ② قاتل سره د نورو ملاوولو اړتيا ځكه راپيښيږي.چه په قاتل باندې آسانتيا وی.او په عاقله باندې هم آسانتيا وی.هم دا وجه ده.چه ددې خبرې لحاظ ساتلې شوې دې.چه د هيڅ يو كس نه د دريو يا ځلورو درهمو نه زيات وانخستلې شی.او حرج لرې كول هغه وخت كيداې شی. كله چې په دوی كې زياتوالي وی.كوم چې ملاوولې شی.او آباء او خامن په عامه توګه (عام طور) دومره نه وی.چه په دوی كې كثرت وی.او دوی د ديت ادا كاوه لپاره كافی شی.صاحب د نتائج دلته يو اشكال كړې دې.

### كه يوه كمپنئ د ديت ادا كولو لپاره كافی نه وی نو څه حكم دې ؟

وَعَلَى هَذَا حُكْمُ الرَّايَاتِ او هم په دې طريقه رايات ( او كمپنيانې) دی إِذَا لَمْ يَتَّسِعْ لِذَلِكَ أَهْلُ رَايَةٍ ضُمَّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الرَّايَاتِ كله چې ددې لپاره د يوې جهنډې والا ناكافی شی.نو ددوی اقرب الرايات ملاوولې شی يَعْنِي أَقْرَبَهُمْ نُصْرَةً يعنى په دوی كې چې كوم د ټولو نه زيات نژدې وی. د كومك په اعتبار سره إِذَا حَزَبَهُمْ أَمْرٌ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ كله چې دوی ته څه معامله راپيښه شی.د الاقرب فالاقرب په لحاظ سره وَيُفَوَّضُ ذَلِكَ إِلَى الْإِمَامِ او دا امام ته اوسپارلې شی لِأَنَّهُ هُوَ الْعَالِمُ بِهِ، ثُمَّ هَذَا كُلُّهُ عِنْدَنَا ځكه چې دا خبره اهم ګنړل دی.بيا دا واړه تفصيل زموږ په نيز دې.

حل اللغة: ① رايات: جمع د راية، رائې

تشريح:- او كه هم دا صورت په كمپنيانو كې شوې وی.نو په يوه كمپنئ يا يو رجستر كې چې د چا نوم ليكلې شوې دې.هغوی د ديت ادا كاوه لپاره كافی نه دی.نو دوی اړخ ته به ددې دويمې كمپنئ والا ملاوولې شی.كوم چې ددوی د كومك او نصرت په لحاظ سره نژدې وی.او هم ددې الاقرب فالاقرب لحاظ كاوه سره نور هم ملاوولې شی.چونكه ددې معاملاتو نه امام ( حاكم) واقف دې.په دې وجه به دا امام ته حواله كولې شی.بهرحال مذكوره تفصيلات د حنفيانو د مسلك موافق دی.د امام شافعی رحمه الله مذهب په راروان عبارت كې بيانوی.

### د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر او دهغې دليل

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ يَجِبُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ نِصْفُ دِينَارٍ او د امام شافعی رحمه الله په نيز هر يو باندې نيم دينار واجب دې فَيُسَوِّي بَيْنَ الْكُلِّ نو د ټولو په منځ كې به برابری كولای شی لِأَنَّهُ صِلَةٌ ځكه چې دا صله ده فَيُعْتَبَرُ بِالزَّكَاةِ وَأَدْنَاهَا ذَلِكَ نو دا به په زكاة باندې قياس كولې شی.او د زكاة كم نه كم مقدار نصف دينار دې إِذْ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ عِنْدَهُمْ نِصْفُ دِينَارٍ ځكه چې د صحابو رضی الله عنهم په نيز پنځه درهمه نيم دينار دې.

تشريح:- د امام شافعی رحمه الله په نيز كم نه كم مقدار پنځه درهمه يا نيم دينار به په عاقله كې هر يو باندې واجبولې شی.او په دې كې به دعاقله واړه افراد برابر وی.كه پلار وی.اوكه خونې وی.يا ددې نه علاوه بل څوك وی.او ددوی دليل دا دې.چه لكه څنګه زكاة يوه صله ده.يعنى د څه عوض نه بغير زكاة واجبيږي.دغه ډول ديت هم يوه صله ده.نو ديت به په زكاة باندې قياس كولې شی.او د زكاة كم نه كم نصاب دوې (دوه) سوه درهمه دې.چه په دې كې به د زكاة پنځه درهمه واجب وی.نو دغه ډول به په ديت كې هم كم نه كم هر يو باندې پنځه درهمه واجب وی.يا به نيم دينار واجب وی.ځكه چې د نيم دينار او پنځو درهمو قيمت به د صحابو رضی الله عنهم په دور كې برابر وو.



وَلَكِنَّا نَقُولُ: هِيَ أَحَطُّ رُتْبَةً مِنْهَا خو موږ وايو.چه ديت د مرتبې په اعتبار سره دزكاة نه كم دې أَلَا تَرَى أَنَّهَا لَا تُؤْخَذُ مِنْ أَصْلِ الْمَالِ.آيا ته نه ګورې.چه ديت د اصل مال نه نه اخستلې كيږي فَيُنْتَقَصُ مِنْهَا تَحْقِيقًا لِزِيَادَةِ التَّخْفِيفِ نو ديت به د زكاة نه كم وی. د زياتې آسانتيا ثابتولو دپاره.

حل اللغة: ① احط: كم ② تخفيف: آسانې پيدا كول

تشريح:- زموږ دليل دا دې.چه د زكاة مرتبه د ديت نه زياته ده.ځكه چې زكاة په اصل مال كې واجبيږي.او ديت په اصل مال كې نه واجبيږي.بلكه په صلو ( انعام) كې واجبيږي.نومعلومه شوه.چه د ديت مرتبه د زكاة نه كمه ده.نو ددې مقدار به د زكاة نه كمول وی.چه معلومه شی.چه ددې مرتبه د زكاة نه كمه ده.او په دې كې د زكاة نه زياته آسانتيا ده.نو موږ د پنځو نه راكمه كړله.او د دريو يا ځلورو درهمو قول مو اختيار كړې دې.

### كه قاتل د اهل الارزاق څخه وی نو د ديت مسئله

وَلَوْ كَانَتْ عَاقِلَةُ الرَّجُلِ أَصْحَابَ الرِّزْقِ يُقْضَى بِالدِّيَةِ فِي أَرْزَاقِهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ فِي كُلِّ سَنَةٍ الثُّلُثُ اوكه د سړی عاقله اصحاب رزق وی.نو ددوی په رزقونو كې به د ديت فيصله وركولې شی.په دريو كالو كې ،هركال كې ثلث لِأَنَّ الرِّزْقَ فِي حَقِّهِمْ بِمَنْزِلَةِ الْعَطَاءِ قَائِمٌ مَقَامَهُ ځكه چې ددوی په حق كې رزق د عطاء په مرتبه كې دې.د عطاء قائم مقام دې إِذْ كُلٌّ مِنْهُمَا صِلَةٌ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ ځكه چې دې دواړو كې هريو د بيت المال د اړخه صله ده بيا به كتلې شی.كه ددوی رزقونه كال په كال راوځی.نو څنګه چې راوځی.ددې څخه به ثلث اخستلې شی.د عطاء په درجه كې ثُمَّ يُنْظَرُ إِنْ كَانَتْ أَرْزَاقُهُمْ تَخْرُجُ فِي كُلِّ سَنَةٍ، فَكُلَّمَا يَخْرُجُ رِزْقٌ يُؤْخَذُ مِنْهُ الثُّلُثُ بِمَنْزِلَةِ الْعَطَاءِ وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ فِي كُلِّ سِتَّةِ أَشْهُرٍ وَخَرَجَ بَعْدَ الْقَضَاءِ اوكه رزق ششماهی راوځی او د قاضی د قضاء نه روسته راوځی يُؤْخَذُ مِنْهُ سُدُسُ الدِّيَةِ نو ددې څخه به دديت سدس اخستلې شی وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ فِي كُلِّ شَهْرٍ اوكه مياشت په مياشت راوځی يُؤْخَذُ مِنْ كُلِّ رِزْقٍ بِحِصَّتِهِ مِنَ الشَّهْرِ حَتَّى يَكُونَ الْمُسْتَوْفَى فِي كُلِّ سَنَةٍ مِقْدَارَ الثُّلُثِ نو د هر رزق څخه به د مياشتې د برخې په اندازه اخستلې شی.تردې چې د پوره كال وصول شوی مقدار ثلث شی وَإِنْ خَرَجَ بَعْدَ الْقَضَاءِ بِيَوْمٍ أَوْ أَكْثَرَ اوكه رزق د قضاء نه روستو په يوه ورځ يا ددې نه په زياته كې راوځی أُخِذَ مِنْ رِزْقِ ذَلِكَ الشَّهْرِ بِحِصَّةِ الشَّهْرِ نو ددې مياشت په رزق كې به د مياشتې برخه اخستلې شی.

حل اللغة: ① ارزاق: جمع د رزق، روزی ② سنة: كال ③ اشهر: جمع د شهر، مياشت

تشريح:- عطيه هغه ده.كوم چې اهل ديوان ته كال په كال انعام ملاويږي.او د رزق په تفسير كې مختلف اقوال دی
① كوم چې فقيرانو ته ددوی د غريبئ په وجه د بيت المال نه وظيفه ملاويږي.هغې ته رزق وائی
② فوجيانو ته مياشت په مياشت د ضروورياتو لپاره تنخواه ملاويږي.هغې ته رزق وئيلې شی.،، وفيه أقوال،،
مرغينانی رحمه الله دا فرمائيل غواړی.كه قاتل د اهل عطاء څخه نه وی.بلكه د اصحاب الارزاق څخه وی.نو رزق د عطيه قائم مقام دې.نو اوس به د ديت فيصله رزقونو كې كولې شی.چه دا به په دريو كالو كې وصولولې شی.او د كال به ثلث وصولولې شی.بيا كه رزق د بيت المال نه كال په كال ملاويږي.نو هم دا حساب دې.اوكه هر شپږ مياشتې روسته ملاويږي.نو كله هم چې ملاويږي.په دې كې به سدس اخستلې شی.چه په يو كال كې ثلث پوره شی.اوكه رزق مياشت په مياشت ملاويږي.نو هره مياشت به ۳۶۱۱ اخستلې شی.چه په يو كال كې ثلث پوره شی.او پاته عبارت آسان دې.

### كه د قاتل عاقله ته هره مياشت رزق او كال په كال عطايا ملاويږی نو د ديت حكم

وَإِنْ كَانَتْ لَهُمْ أَرْزَاقٌ فِي كُلِّ شَهْرٍ وَأَعْطِيَةٌ فِي كُلِّ سَنَةٍ اوكه ددوی لپاره مياشت په مياشت رزقونه وی.او كال په كال عطيات وی فُرِضَتِ الدِّيَةُ فِي الْأَعْطِيَةِ دُونَ الْأَرْزَاقِ نو ديت به په عطايانو كې فرض كولې شی.په رزقونو كې به نشی ( فرض كولې). لِأَنَّهُ أَيْسَرُ ځكه چې دا آسانه ده إِمَّا لِأَنَّ الْأَعْطِيَةَ أَكْثَرُ يا خو په دې وجه چې عطايانې زياتې دی أَوْ لِأَنَّ

الرِّزْقُ لِكِفَايَةِ الْوَقْتِ او په دې وجه چې رزق د وخت د كفايت لپاره دې فَيَتَعَسَّرُ الْأَدَاءُ مِنْهُ نو ددې نه ادا كول مشكل دى وَالْأُعْطِيَاتُ لِيَكُونُوا فِي الدِّيوَانِ قَائِمِينَ بِالنُّصْرَةِ او عطاياني ددې لپاره دی.چه دوی په ديوان كې امداد باندې قائم پاتې شی فَيَتَيَسَّرُ عَلَيْهِمْ نو په دوی به ادا کول آسان وی.

**حل اللغة*** ① **يتعسر**: گرانیږی ② **يتيسر**: آسانیږی﴾

**تشريح:**- اوكه د قاتل عاقله داسې وی.چه هغوی ته د بيت المال نه مياشت په مياشت رزق هم ملاويږی.اوكال په كال عطاياني هم وركولې شی.نو ديت به د عطايانو نه وصولولې شی.ځكه چې دوی ته هم په دې كې سهولت دې.ځكه چې عطاياني زياتې وی.نو ددې ځخه به ديت وركول آسان وی.او رزق د كفايت په اندازه ملاويږی.نو ددې ځخه به ديت وركول گران پريوځي.او عطاياني ددې لپاره وی.چه دا مستقل فوج دې.دا ددې لپاره ساتلې شوی دې.چه د ارتيا په وخت د امداد كار پوره كړی.نو دا مال ددوی د روزانه ضروریاتو نه زيات دې.نو ددې نه ادا كول آسان دی.

## قاتل هم عاقله كښې داخل دې اوكه نه؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَأُدْخِلَ الْقَاتِلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ او عاقله سره به قاتل داخلولې شی فَيَكُونُ فِيمَا يُؤَدِّي كَأَحَدِهِمْ نو قاتل به په هغه ديت كې كوم چې ادا كړې شوې دې.په عاقله كې به د يوكس پشان شی لِأَنَّهُ هُوَ الْفَاعِلُ فَلَا مَعْنَى لِإِخْرَاجِهِ وَمُؤَاخَذَةِ غَيْرِهِ ځكه چې قاتل فاعل دې.نو دده د خارجولو او دده نه غير كس د گرفتارولو هيڅ معنی نشته

**حل اللغة*** ① **اخراج**: ويستل ② **مواخذة**: نيول﴾

**تشريح:**- چرته چې عاقله باندې ديت واجب وی.هلته د عاقله يو فرد چې هغه پخپله قاتل دې.په ديت ادا كاوه كې به شريكيږی.اوكه نه؟ نو دا يوه اختلافی مسئله ده.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجِبُ عَلَى الْقَاتِلِ شَيْءٌ مِنَ الدِّيَةِ اعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ فِي النَّفْيِ عَنْهُ او امام شا فعی رحمه الله فرمائی.چه په قاتل باندې به د ديت نه هيڅ نه واجبيږی.جزء په كل باندې قياس كاوه سره، د قاتل نه دكل د نفی په سلسله كې وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ مَعْذُورًا او جامع د قاتل معذور كيدل دی

**تشريح:**- د امام شافعی رحمه الله په نيز به نه شريكيږی.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به شريكيږی.د امام شافعی رحمه الله دليل دا دې.چه هركله قاتل باندې پوره ديت واجب نكړې شو.نو ددې جزء به هم واجب نه وی.ځكه چې اصول منلې شوې دې.چه ﴿الجزء لا يخالف الكل﴾ او دويمه وجه دا هم ده.چه د قاتل نه د پوره ديت نفی كاوه وجه دده معذور كيدل دی.او هغه په جزء ادا كاوه كې هم معذور دې.

قُلْنَا: إِيجَابُ الْكُلِّ إِجْحَافٌ بِهِ وَلَا كَذَلِكَ إِيجَابُ الْجُزْءِ نو مونږ وايو.چه كل (ټول) ديت واجبول هغه لره په (خفگان كې اخته كول دی.او د جزء واجبول داسې نه دی وَلَوْ كَانَ الْخَاطِئُ مَعْذُورًا اوكه خاطی معذور دې فَالْبَرِيءُ مِنْهُ أَوْلَى نو د قتل نه بری په درجه اولی (معذور دې).

**حل اللغة*** ① **اجحاف**: پريشانه كول ② **الخاطئ**: خطائی كونكې﴾

**تشريح:**- د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چې جرم دې قاتل اوكړی.او راگيری دې بل څوك، دا كوم انصاف دې؟ په دې وجه به قاتل هم د عاقله سره شريك وی.او په ده باندې پوره ديت ځكه نه دې واجب كړې شوې. چې دې په (خفگان كې اخته نشی.او د دريو، څلورو درهمو په ادا كاوه كې به دده سا نه اوخي.( يعنی هيڅ پريشانی نه ده).

قَالَ اللهُ تَعَالَى {وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى} د الله تعالی ارشاد دې،،او هيڅ څوك به د بل بوج نه اوچتوی،،

**حل اللغة*** ① **وزرة**: بار، پيټی﴾



**تشريح:**- او حضرت امام شافعی رحمه الله څه اوفرمائيل.چه خاطی معذور دې؟ حضرت! كه دې معذور دې.نو عاقله خو دده نه هم زيات معذور دی.حالانكه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى﴾ يعنی جرم دې يوكس اوكړی.او راگير دې شی بل څوك،داسې به نه كيږی.بهرحال قاتل به عاقله سره د ديت په ادا كولوكې شريكولې شی.

## په اهل ديوان كښې بچې او ښځې په ديت كښې شامل نه دی

وَلَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّةِ مِمَّنْ كَانَ لَهُ حَظٌّ فِي الدِّيوَانِ عَقْلٌ) لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: باندې، د هغه خلگو څنې چې هغوی لپاره په ديوان كې برخه وی. ديت نشته.د حضرت عمر رضی الله عنه د فرمان په وجه لَا يَعْقِلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ صَبِيٌّ وَلَا امْرَأَةٌ(۱) چې عاقله سره به ماشوم او هيڅ يوه ښځه ديت نه وركوی وَلِأَنَّ الْعَقْلَ إِنَّمَا يَجِبُ عَلَى أَهْلِ النُّصْرَةِ لِتَرْكِهِمْ مُرَاقَبَتَهُ او ځكه چې ديت په مددگارو خلگو باندې واجبيږی.او ددوی ددې نگرانی ( او حفاظت) پريخودو په وجه وَالنَّاسُ لَا يَتَنَاصَرُونَ بِالصِّبْيَانِ وَالنِّسَاءِ او خلگ د ماشومانو او ښځو نه كومك نه اخلی وَلِهَذَا لَا يُوضَعُ عَلَيْهِمْ مَا هُوَ خَلَفٌ عَنِ النُّصْرَةِ وَهُوَ الْجِزْيَةُ، او په دې وجه په دوی ( ماشومانو او ښځو ) باندې هغه نشی مقرر كيدې.كوم چې د كومك خليفه دې.او هغه جزيه ده.

**حل اللغة*** ① **الذرية**: ماشومان ② **الصبيان**: جمع د صبی، ماشوم ③ **النصرة**: مدد﴾

**تشريح:**- كه په ښځو او ماشومانو كې د هريو كس نوم د امداد په طور د ديوان په خلگو كې وی.نو كله چې د ديوان په خلگو ديت واجب وی.نو په ماشومانو او ښځو به واجب نه وی.ځكه چې د ديت وجوب په مددگارو خلگو باندې وی.او ماشومان او ښځې د نصرت د خلگو څنې نه دی.ځكه چې د ماشومانو او ښځونه كومك نه اخستلې كيږی.هم دا وجه ده.چه ښځې او ماشومان د نصرت د خلگو څنې نه دی.نو د كومك بدل چې كوم په كافرانو باندې جزيه واجبيږی.نو جزيه به هم په ماشومانو او ښځو باندې واجب نه وی.چه ددې تفصيل د هداية په دوهم ټوك كې تير شوې دې.

## كه قاتل ب چې يا ښځه وی نو دوی به په عاقله كښې شامل نه وی

وَعَلَى هَذَا لَوْ كَانَ الْقَاتِلُ صَبِيًّا أَوِ امْرَأَةً او په دې طريقه كه قاتل بچې يا ښځه وی لَا شَيْءَ عَلَيْهِمَا مِنَ الدِّيَةِ بِخِلَافِ الرَّجُلِ نو په دوی دوارو به ديت واجب نه وی.په خلاف د سړی لِأَنَّ وُجُوبَ جُزْءٍ مِنَ الدِّيَةِ عَلَى الْقَاتِلِ بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ أَحَدُ الْعَوَاقِلِ ځكه چې قاتل باندې د ديت د جزء وجوب په دې اعتبار سره دې.چه قاتل هم دعاقله څنې يوكس دې لِأَنَّهُ يَنْصُرُ نَفْسَهُ ځكه چې قاتل د خپل نفس كومك كوی وَهَذَا لَا يُوجَدُ فِيهِمَا او دا معنی په دوی ( بچې او ښځه ) دوارو كې نه موندلې كيږی

**تشريح:**- اوكه بچې يا ښځه پخپله قتل اوكړی.بيا به هم د ديت وجوب ددوی په عاقله باندې وی.او په ښځه به هيڅ واجب نه وی.البته كه څوك بالغ سړې قاتل وی.نو په ده به په عاقله كې د يو فرد پشان د ديت څه برخه واجب وی.ځكه چې په مددگارو خلگو كې دده د كيدو په وجه دې په عاقله كې شمارلې كيږی.او د عاقله يو فرد حسابيږی.ځكه چې دې بهرحال خپل كومك خو كوی.او په بچې او ښځه كې دا خبره موجود نه ده.

وَالْفَرْضُ لَهُمَا مِنَ الْعَطَاءِ لِلْمَعُونَةِ لَا لِلنُّصْرَةِ او ددوی ( بچې او ښځې) دوارو لپاره د عطاء برخه د معونت ( او خيگړې) لپاره ده.د كومك لپاره نه ده كَفَرْضِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَرَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ لكه د نبی كريم ﷺ د ازواج مطهرات(رضی الله عنهن) حصه.

**حل اللغة*** ① **المعونة**: خيگړه ② **النصرة**: مدد﴾

**تشريح:**- كه څوك پوښتنه اوكړی چې هركله چې بچې او ښځې د امدادی خلگو څنې نه دی.نو دوی به د اهل عطاء

---

(۱) غربه الزيلعی رحمه الله نصب:(٢٠٨١٥)_

خني څنګه وی؟ نو موږ ځواب ورکوو چې ددوی لپاره چې کومې عطایانې مقرر دی.هغه په امدادی خلګو کې د کیدو په بنا (بنیاد) باندې نه دی.بلکه ددوی د معونت (او خیګړې) په وجه دی.یعنی امام ددوی معونت او کومک کول غواړی.څکه چې دوی په بعضو معاملاتو کې معین کیدای شی.لکه څنګه چې د نبی کریم ﷺ پاکو بیبیانو ته کومه برخه ورکولې شوه.هغه د نصرت په بنا (بنیاد) باندې نه وه.بلکه د معونت (او نیکۍ) په وجه وه.

سوال۞ دلته دا فرمائیلی شوی دی.چه ښځه به عاقله سره په دیت کې نه شاملیږی.او په څلورم توک کې دا مسئله تیره شوې ده.چه ﴿قال المتاخرون أن المرأة تدخل مع العاقلة﴾ نو دا تعارض ولې دې؟

ځواب۞ هغه اصل روایت نه دې.بلکه د بعضو متاخرینو قول دې.او دا اصل مذهب دې.

## د یو ښار خلق به د بل ښار د خلقو دیت نه ادا کوی

**وَلَا يَعْقِلُ أَهْلُ مِصْرٍ عَنْ مِصْرٍ آخَرَ** او د یو ښار والا به د بل ښار د خلګو د اړخه دیت نه ورکوی **يُرِيدُ بِهِ أَنَّهُ إِذَا كَانَ لِأَهْلِ كُلِّ مِصْرٍ دِيوَانٌ عَلَى حِدَةٍ** د مرغینانی مراد دا دې.چه کله د هر ښار لپاره جلا دیوان وی **لِأَنَّ التَّنَاصُرَ بِالدِّيوَانِ عِنْدَ وُجُودِهِ** څکه چې د دیوان موجود کیدو په وخت، تناصر (دیو بل امداد) د دیوان په ذریعه کیږی **وَلَوْ كَانَ بِاعْتِبَارِ الْقُرْبِ فِي السُّكْنَى** اوکه تناصر په سکنی (او اوسیدو) کې د قرب په وجه وی **فَأَهْلُ مِصْرِهِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِ مِصْرٍ آخَرَ** نو د سړی د ښار خلګ دده زیات نژدې دی.د بل ښار د خلګو نه.

حل اللغة۞ ① القرب: نزدیکت ② السکنی: استوګنه ③ مصر: ښار﴾

تشریح:- که د هر ښار د فوجیانو کمپنی جلا جلا ده.نو په کومه کمپنۍ کې چې هغه دې.دغه کمپنی به د هغه عاقله وی.او هم دغه به دده دیت ادا کوی.نو هم دا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه د یو ښار خلګ به د بل ښار د خلګو د اړخه دیت نه ادا کوی.او که د تناصر بنا (بنیاد) په سکنی کې د نیزدیکت په وجه وی.نو د سړی د ښار خلګ به د بل ښار د خلګو په مقابله کې زیات نیزدې وی.

## په قتل خطاء کښې ددې کلی خلق د دیت ادا کولو لپاره کافی نه وی نو څه حکم دې؟

**وَيَعْقِلُ أَهْلُ كُلِّ مِصْرٍ مِنْ أَهْلِ سَوَادِهِمْ** او د هر ښار خلګ به د خپل کلي د خلګو د اړخه دیت ادا کوی **لِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ لِأَهْلِ الْمِصْرِ** څکه چې د کلی خلګ د ښار د خلګو تابع دی **فَإِنَّهُمْ إِذَا حَزَبَهُمْ أَمْرٌ اسْتَنْصَرُوا بِهِمْ** څکه چې د ښار خلګو ته څه معامله راپیښه شی.نو د کلی د خلګو نه کومک غواړی **فَيَعْقِلُهُمْ أَهْلُ الْمِصْرِ بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الْقُرْبِ فِي النُّصْرَةِ** نو د ښار خلګ به ددوی دیت اداکوی.د نیزدیکت او د نصرت د معنی اعتبار کاوه سره،

حل اللغة۞ ① سواد: جماعت﴾

تشریح:- که په یو کلی کې د قتل خطاء کیس اوشو.او د کلی خلګ د دیت ادا کاوه لپاره کافی نه وی.نو هغه ښار به ددې کلی سره ملاوولی شی. د کوم چې دا کلې تابع دې.څکه چې ددې کلی خلګ ددغه ښار تابع دی.او په وخت د اړتیا د ښار خلګ د کلی د خلګو نه کومک غواړی.نو د نیزدیکت او کومک معنی موجود ده.په دې وجه به د ښار خلګ ددوی دیت ادا کوی.

## یو سړی په یو وطن کښې اوسیږی او اهل دیوان په بل وطن کښې . نو عاقله به څوک وی؟

**وَمَنْ كَانَ مَنْزِلُهُ بِالْبَصْرَةِ وَدِيوَانُهُ بِالْكُوفَةِ** او هغه سړی چې دده کور په بصره کې وی.او دده دیوان په کوفه کې وی **عَقَلَ عَنْهُ أَهْلُ الْكُوفَةِ** نو دده د اړخه به د کوفې خلګ دیت ادا کوی **لِأَنَّهُ يَسْتَنْصِرُ بِأَهْلِ دِيوَانِهِ لَا بِجِيرَانِهِ** څکه چې دې د خپل اهل دیوان نه کومک طلب کوی.د خپلو ګاونډیانو نه نه طلب کوی **وَالْحَاصِلُ أَنَّ الِاسْتِنْصَارَ بِالدِّيوَانِ أَظْهَرُ** او حاصل دا دې.چه د دیوان نه کومک طلب کول زیات ښکاره دی **فَلَا يَظْهَرُ مَعَهُ حُكْمُ النُّصْرَةِ بِالْقَرَابَةِ وَالنَّسَبِ وَالْوَلَاءِ وَقُرْبِ السُّكْنَى وَغَيْرِهِ** نو دیوان سره به د رشته دارۍ او نسب او ولاء او د نیزدیکت او اوسیدو (ګاونډتوب) وغیره د نصرت (او مدد) حکم نه ښکاره کیږی **وَبَعْدَ الدِّيوَانِ النُّصْرَةُ بِالنَّسَبِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ** او د دیوان نه روستو نصرت په نسب



سره دې.د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دې **وَعَلَى هَذَا يُخَرَّجُ كَثِيرٌ مِنْ صُوَرِ مَسَائِلِ الْمَعَاقِلِ** او هم په دې اصول باندې د معاقلو (او دیتونو) د مسئلو د ډیرو صورتونو تخریج کیږی.

تشریح:- یو سړې د بصرې اوسیدونکې دې.خو دده اهل دیوان په کوفه کې دی.نو دده د اړخه به د کوفې خلګ دیت ادا کوی.څکه چې کوم سړې د اهل دیوان ځني دې.هغه د خپل اهل دیوان نه غواړی.د خپلو ګاونډیانو نه غواړی.بهرحال د نصرت په مختلفو انواعو کې د ټولو نه مضبوط په دیوان سره کومک کول دی.نو ددې نصرت په موجودګۍ کې به د بل هیڅ نصرت اعتبار نشی کولې.او ددې نه روسته د مصر د نصرت بالقرابت وار دې.او دا داسې (قاعده) کلیه ده.چه په دې باندې د دیت ډیرې مسئلې متفرع کیږی.

## د ښار اوسیدونکې جنایت اوکړی او نسبی رشته دار په کلو کښې اوسیږی نو د دیت حکم

**وَمَنْ جَنَى جِنَايَةً مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ** او د ښار په خلګو کې چې کوم کس جنایت اوکړو **وَلَيْسَ لَهُ فِي الدِّيوَانِ عَطَاءٌ** او په دیوان کې هغه لپاره هیڅ عطیه نه وی **وَأَهْلُ الْبَادِيَةِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ وَمَسْكَنُهُ الْمِصْرُ** او په اعتبار د نسب کلې ده ته زیات نژدې وی.او دده رهائش ښار (کې) دې **عَقَلَ عَنْهُ أَهْلُ الدِّيوَانِ مِنْ ذَلِكَ الْمِصْرِ** او ددې ښار اهل دیوان به دده دیت ادا کوی **وَلَمْ يَشْتَرِطْ أَنْ يَكُونَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَهْلِ الدِّيوَانِ قَرَابَةٌ** او امام محمد رحمه الله دا شرط نه دې بیان کړې.چه دده او د اهل دیوان په منځ کې څه قرابت وی **قِيلَ هُوَ صَحِيحٌ** او وئیلی شوی دی.چه دا صحیح ده **لِأَنَّ الَّذِينَ يَذُبُّونَ عَنْ أَهْلِ الْمِصْرِ وَيَقُومُونَ بِنُصْرَتِهِمْ وَيَدْفَعُونَ عَنْهُمْ أَهْلُ الدِّيوَانِ مِنْ أَهْلِ الْمِصْرِ** څکه چې کوم خلګ د ښار د خلګو د اړخه دفاع کوی.او د هغوی د کومک لپاره قائمیږی.او د هغوی د اړخه مدافعت کوی.هغوی د ښار د خلګو نه اهل دیوان دی **وَلَا يَخُصُّونَ بِهِ أَهْلَ الْعَطَاءِ** او اهل دیوان مدافعت سره اهل عطاء نه خاص کوی.

تشریح:- یو سړې په ښار کې اوسیږی.او دده نسبی رشته دار په کلی کې اوسیږی.اوس که دا سړې څه جنایت اوکړې.نو په کوم ښار کې چې دې اوسیږی.د هغه ځائې اهل دیوان به دده دیت ادا کوی.که د مجرم او اهل دیوان په منځ کې څه قرابت وی.اوکه نه وی.او بعضو حضراتو دا صحیح ګرځولې دې.څکه چې د ښار په خلګو څه مصیبت راشی.نو ددې مدافعت (او حفاظت) ددې د ښار اهل دیوان کوی.او اهل دیوان صرف د خپل ځان یا د اهل عطاء د کومک ذمه دار نه دی.بلکه د واړه ښار د خلګو د ساتنه او کومک ذمه دار دی.نو اهل دیوان د مجرم مددګاران دی.او هم دا به عاقله وی.

۞ دا تفصیل هغه وخت دې.کله چې د اهل دیوان او ددې مجرم په منځ کې څه قرابت نه وی.اوکه د متن یو بل تاویل اوکړې شی.چه د مجرم نژدې رشته داران په کلی کې دی.او د ښار اهل دیوان هم دده رشته داران او خپلوان دی.خو د کلی خلګو سره ئې نژدې رشته داری ده.او اهل دیوان سره ئې لرې رشته داری ده.بیا به هم د ښار خلګ دیت ادا کوی.فرمائی.

## د مذکوره مسئلې تفصیل

**وَقِيلَ تَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ قَرِيبًا لَهُمْ** او وئیلی شوی دی.ددې تاویل دا دې.چه کله دا مجرم ددوی نژدې رشته دار وی **وَفِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ حَيْثُ قَالَ** او په کتاب کې دې اړخ ته اشاره ده.په دې حیثیت سره چې په کتاب کې ئې وئیلی دی **وَأَهْلُ الْبَادِيَةِ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِ مِصْرٍ** او د کلی خلګ د ښار د خلګو په مقابله کې ده ته زیات نژدې دی **وَهَذَا لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَيْهِمْ بِحُكْمِ الْقَرَابَةِ** او دا څکه چې په دوی باندې وجوب د قرابت په حکم سره دې **وَأَهْلُ الْمِصْرِ أَقْرَبُ مِنْهُمْ مَكَانًا** او د ښار خلګ د کلی خلګو ته زیات نژدې دی.د ځائې په اعتبار سره **فَكَانَتِ الْقُدْرَةُ عَلَى النُّصْرَةِ لَهُمْ** نو په کومک باندې به قدرت هم دوی ته وی **وَصَارَ نَظِيرَ مَسْأَلَةِ الْغَيْبَةِ الْمُنْقَطِعَةِ** او دا به د غیبت منقطعه د مسئلې مثال وی.

حل اللغة۞ ① تاویل: معنی،مطلب ② البادية: کلي ③ الغيبة: غائب والې﴾

تشریح:- بعضو حضراتو وئیلی دی.چه د امام محمد رحمه الله په قول کې چې دا فرمائیلی شوی دی.چه ﴿عقل عنه اهل

الديوان من ذالك المصر﴾ دا هغه وخت دې. كله چې د مجرم او د اهل ديوان په منځ كې رشته داري وي. چونكه د امام محمد رحمه الله قول كوم چې ددې نه وړاندې تير شوې دې. يعنى ﴿و اهل البادية أقرب إليه﴾ هم دې اړخ ته اشاره كوي. او ددې وجه دا ده. چه په دوى باندې د ديت وجوب د قرابت په وجه دې. او قرابت د ښار خلكو او د كلي خلكو سره دې. او د كلي خلكو سره ئې زيات نژدې قرابت دې. خود ښار خلكو سره ئې قرابت اګرچه لرې دې. خو د تدبير نژدې والي دې. نو لكه څنګه چې د يوكس دوې (دوه) وليان وي. يواقرب وي. او يو ابعد وي. او ولي اقرب غيبت منقطعه سره غائب شي. نو ولايت به ولي ابعد ته ملاويږي. لكه څنګه چې په هدايه دوهم ټوك كې ددې تفصيل ذكر شوې دې. دغه ډول به دلته د كلي خلګ او د ښار خلګ راكوزولې شي.

### كه په ښار كښې ديره شي خو مستقل رهائش اختيار نكړي نو عاقله به څوك وي؟

وَلَوْ كَانَ الْبَدَوِيُّ نَازِلًا فِي الْمِصْرِ لَا مَسْكَنَ لَهُ فِيهِ وكه د كلي والا ښار ته راغې. چه دده په ښاركې هيڅ مسكن (رهائش) نشته لَا يَعْقِلُهُ أَهْلُ الْمِصْرِ نو د ښار خلګ به دده ديت نه وركوي لِأَنَّ أَهْلَ الْعَطَاءِ لَا يَنْصُرُونَ مَنْ لَا مَسْكَنَ لَهُ فِيهِ خكه چې اهل عطاء دهغه كومك نه كوي. د چا چې په دې ښار كې هيڅ استوګنه نه وي كَمَا أَنَّ أَهْلَ الْبَادِيَةِ لَا تَعْقِلُ عَنْ أَهْلِ الْمِصْرِ النَّازِلِ فِيهِمْ لكه څنګه چې د كلي خلګ د هغه ښاري هيڅ ديت نه وركوي. كوم چې دوى ته لاړ شي لِأَنَّهُ لَا يَسْتَنْصِرُ بِهِمْ خكه چې ښارې د كلي د خلكو نه كومك نه غواړي.

تشريح:- كه څوك د كلي سړې ښار ته راغلې وي. خو دده هيڅ مسكن او كور هلته نه وي. نوكه د هغه نه څه جنايت اوشي. نو د ښار خلګ به دده د اړخه ديت نه ادا كوي. خكه چې په ښار كې كوم خلګ اهل عطاء دي. هغوى صرف د ښار د خلكو كومك كوي. لكه كه يو كلي ته څوك ښارې لاړ شي. نو د كلي خلګ د هغه ديت نه ادا كوي. خكه چې دښار خلګ د كلي د خلكو نه كومك نه غواړي.

### كه د ذمي عاقله معلوم وي اوپه دوى كښې چا قتل خطاء اوكړونو عاقله به څوك وي؟

وَإِنْ كَانَ لِأَهْلِ الذِّمَّةِ عَوَاقِلُ مَعْرُوفَةٌ يَتَعَاقَلُونَ بِهَا كه د ذميانو معلوم عاقله وي. چه هغوى ديت وركوي فَقَتَلَ أَحَدُهُمْ قَتِيلًا نو په دوى كې يو كس څوك قتل كړل فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْلِمِ نو دده ديت به د قتل په عاقله باندې وي. د مسلمان په درجه كې، لِأَنَّهُمُ الْتَزَمُوا أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ فِي الْمُعَامَلَاتِ لَا سِيَّمَا فِي الْمَعَانِي الْعَاصِمَةِ عَنِ الْأَضْرَارِ خكه چې ذميانو په معاملاتو كې د اسلام د احكامو التزام كړې دې. خصوصاً په هغه معاملاتو كې كوم چې د ضررونو نه بچ كونكي دي وَمَعْنَى التَّنَاصُرِ مَوْجُودٌ فِي حَقِّهِمْ او د تناصر معنى ددوى په حق كې موجود ده.

تشريح:- وړاندې راغلى وو. چه په ذميانو كې د برداشت كاوه (او د ذمه وارئ اخستلو) رواج نشته. خو كه وي. او د يو ذمي معلوم عاقله موجود وي. چه هغوى د ديت برداشت كوي. نو په دې صورت كې كه په ذميانو كې يوكس يو سړې قتل كړو. نو دده ديت به دده په عاقله باندې واجب وي. لكه كه مسلمان قاتل وې. نو دده په عاقله باندې به ديت واجب وو. او په معاملاتو. كې ذميانو د اسلام د احكامو التزام كړې دې. او خاص كر هغه معاملات كوم چې د ضررونو نه بچ كونكي دي. لكه حد سرقه، او حد قذف، او قصاص او وجوب د ديت وغيږه. او خپل منځ كې يو بل سره امداد كول لكه څنګه چې په مسلمانانو كې چليږي. هغه ددوى په حق كې هم موجود دې.

### كه د ذمي عاقله معلوم نه وي نو د ديت مسئله

وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُمْ عَاقِلَةٌ مَعْرُوفَةٌ وكه د ذميانو معلوم عاقله نه وي فَالدِّيَةُ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ مِنْ يَوْمِ يُقْضَى بِهَا عَلَيْهِ نو ديت به د ذمي په مال كې وي. په دريو كالو كې دننه، د هغه ورځې نه چې (په كومه ورځ) په ده باندې د ديت فيصله شوې ده كَمَا فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الْوُجُوبَ عَلَى الْقَاتِلِ لكه څنګه چې د مسلمان په حق كې (د قاضي د فيصلې د ورځې نه حسابيږي). د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې. چه وجوب په قاتل باندې وَإِنَّمَا يَتَحَوَّلُ عَنْهُ إِلَى الْعَاقِلَةِ أَنْ لَوْ وُجِدَتْ او د قاتل نه عاقله اړخ ته كرځولې شي. كله چې عاقله موجود وي فَإِذَا لَمْ



تُوجَدْ بَقِيَتْ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ نو كله چې عاقله موجود نه وي. نو ديت به هم په دهٔ باندې پاته پاتې وي. دده په مال كې بِمَنْزِلَةِ تَاجِرَيْنِ مُسْلِمَيْنِ فِي دَارِ الْحَرْبِ قَتَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ د دوو مسلمانانو سوداګرو پشان چې دوى دواړه په دارالحرب كې وي. چه په دوى كې يوكس دوهم قتل كړي يُقْضَى بِالدِّيَةِ عَلَيْهِ فِي مَالِهِ نو په قاتل باندې دهغه په مال كې د ديت فيصله ور كولاى شي لِأَنَّ أَهْلَ دَارِ الْإِسْلَامِ لَا يَعْقِلُونَ عَنْهُ خكه چې د دارالاسلام والا به د هغه د اړخه ديت نه وركوي وَتَمَكُّنُهُ مِنْ هَذَا الْقَتْلِ لَيْسَ بِنُصْرَتِهِمْ او د هغه په دې قتل باندې قادر كيدل ددوى د كومك په وجه نه دي.

تشريح:- كه د ذميانو عاقله وي. نو ديت به ددوى په عاقله باندې وي. ګنې (كه عاقله ئې نه وي نو ديت به) پخپله ددوى په مال كې وي. چه دا به قسط وار په دريو كالو كې وصولولې شي. او درې كاله به د هغه وخت نه معتبر وي. د كوم وخت نه چې قاضي د ديت د وجوب فيصله وركړې ده. خكه چې اصل وجوب خو په قاتل باندې وي. بيا د عاقله په موجودګۍ كې وجوب عاقله اړخ ته اړولې شي. اوكه عاقله نه وي. نو بيا به وجوب په عاقل باندې پخپل حال پاته وي. لكه مثلاً دوې (دوه) مسلمان سوداګر دارالحرب ته لاړل. او يوكس دوهم قتل كړو. نو د قاتل په مال كې به ديت واجب وي. د هغه په عاقله باندې به نه وي.

### كافر او مسلمان د يو بل عاقله نشي كيداې. كافر د يو بل عاقله كيداې شي

وَلَا يَعْقِلُ كَافِرٌ عَنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمٌ عَنْ كَافِرٍ لِعَدَمِ التَّنَاصُرِ او هيڅ كافر به د مسلمان د اړخه او نه به مسلمان د كافر د اړخه ديت وركوي. د تناصر (او خپل منځ كې يو بل سره د امداد) نه كيدو په وجه وَالْكُفَّارُ يَتَعَاقَلُونَ فِيمَا بَيْنَهُمْ وَإِنِ اخْتَلَفَتْ مِلَلُهُمْ او كافران به خپل منځ كې ديت وركوي. اګرچه ددوى دينونه مختلف وي لِأَنَّ الْكُفْرَ كُلَّهُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ خكه چې كفر واړه په ټوله ملت واحده دې قَالُوا: هَذَا إِذَا لَمْ تَكُنِ الْمُعَادَاةُ فِيمَا بَيْنَهُمْ ظَاهِرَةً مشائخو فرمائيلي دي. چه دا هغه وخت دې. كله چې ددوى په منځ كې دښمنى نه وي أَمَّا إِذَا كَانَتْ ظَاهِرَةً كَالْيَهُودِ وَالنَّصَارَى بهرحال كله چې ظاهري عداوت (او دشمنى) وي. لكه يهود او نصارى يَنْبَغِي أَنْ لَا يَتَعَاقَلُونَ بَعْضُهُمْ عَنْ بَعْضٍ نو مناسب دا ده. چه په دوى كې بعضې د بعضو د اړخه ديت ورنكړي وَهَكَذَا عَنْ أَبِي يُوسُفَ لِانْقِطَاعِ التَّنَاصُرِ او د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دغه ډول منقول دى. د تناصر منقطع كيدو په وجه.

تشريح:- چونكه د عاقله كيدو مدار خپل منځ كې يو بل سره په امداد كاوه باندې دې. او د مسلمان او كافر په منځ كې تناصر نشته. په دې وجه به مسلمان د كافر او كافر به د مسلمان ديت نه وركوي. او كافران خپل منځ كې اګرچه مختلف ملتونه لري. خو كفر واړه برابر دې. په دې وجه به دوى د يو بل ديت وركوي. خو دا هغه وخت دى. كله چې په دوى كې ښكاره دشمنى نه وي. لكه يهود او نصارى، اګرچه دواړه كافران دي. خو خپل منځ كې ښكاره دښمنان دي. په دې وجه به دوى كې يو د بل ديت نه ادا كوي. خكه چې خپل منځ كې تناصر كوم چې د عاقله كيدو مدار دې. ختم شوې دې. د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دغه ډول منقول دى.

### د يو وطن اوسيدونكې او اهل ديوان بل وطن ته منتقل كړې شو نو عاقله به څوك وي؟

وَلَوْ كَانَ الْقَاتِلُ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَلَهُ بِهَا عَطَاءٌ اوكه قاتل د كوفې د خلكو څخې وي. او دده لپاره په كوفه كې عطاء وي فَحُوِّلَ دِيوَانُهُ إِلَى الْبَصْرَةِ نو دده ديوان كوفې اړخ ته اوګرځولې شو ثُمَّ رُفِعَ إِلَى الْقَاضِي بيا د قتل د معاملې قاضي اړخ ته مرافعه اوكړې شوه فَإِنَّهُ يُقْضَى بِالدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ نو قاضى به د ديت فيصله د هغه په هغه عاقله باندې كوي. كوم چې د بصرې د خلكو څخې دي

تشريح:- يو سړې د كوفې اوسيدونكې دې. او هغه په كوفه كې د ديوان د خلكو څخې دې. نو هم دا اهل ديوان دده عاقله وو.،، كما مر،، نوكه ده په خطاء سره څوك قتل كړل. نو په اهل ديوان باندې ديت راتلو. خو د قتل نه روستو د قاضي د فيصلې نه وړاندې قاتل د بصرې ديوان كې منتقل كړې شو. او د منتقل كيدو نه روسته د قاضي ته د قتل دا مسئله پيش كړې شوه. نو اوس به قاضي د ديت فيصله عاقله باندې كوي.

وَقَالَ زُفَرُ: يُقْضَى عَلَى عَاقِلَتِهِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ او امام زفر رحمه الله فرمائی.چه قاضی به دده په هغه عاقله باندې د دیت فیصله کوي.کوم چې د کوفې د خلګو څخه دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او هم دا یو روایت دې د امام ابویوسف رحمه الله نه لِأَنَّ الْمُوجِبَ هُوَ الْجِنَايَةُ وَقَدْ تَحَقَّقَتْ ځکه چې واجبونکې شی هغه جنایت دې.او هغه متحقق (او ثابت) شوې دې وَعَاقِلَتُهُ أَهْلُ الْكُوفَةِ وَصَارَ كَمَا إِذَا حُوِّلَ بَعْدَ الْقَضَاءِ حالانکه د هغه عاقله د کوفې خلګ دی.او داسې شوه. لکه چې دیوان اړولې شوې وی.د قاضی د فیصلې نه پس.

**تشریح:-** نو زموږ مسلك دا دې.چه د بصرې په اهل دیوان باندې به د دیت فیصله کولې شی.امام زفر رحمه الله او په یو روایت کې امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه د کوفې په اهل دیوان باندې به د دیت فیصله کولې شی.ددې حضراتو دلیل دا دې.چه د دیت اصل وجوب د جرم او جنایت په وجه سره کیږی.او کله چې دا جنایت ددې قاتل نه صادر شوې وو.هغه وخت دده نوم د کوفې په دیوان کې وو. نو هم په دوی به دیت واجب وی.ځکه که قاضی د کوفې په خلګو د دیت فیصله کړې وی.او د قاضی د فیصلې نه روستو دې د بصرې په دیوان کې منتقل کړې شوې وی.نو هلته به بالاتفاق د دیت وجوب د کوفې په خلګو باندې قائم پاتې وی.نو دلته هم دغه ډول کیدل پکار دی.

### د احنافو دلیل

وَلَنَا أَنَّ الْمَالَ إِنَّمَا يَجِبُ عِنْدَ الْقَضَاءِ لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْمِثْلُ او زموږ دلیل دا د ې.چه مال د قضاء په وخت واجبیږی.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې چې واجب هغه مثل دې وَبِالْقَضَاءِ يَنْتَقِلُ إِلَى الْمَالِ او د قضاء په وجه د مال وجوب اړخ ته منتقل کیږی وَكَذَا الْوُجُوبُ عَلَى الْقَاتِلِ او هم دغه ډول وجوب په قاتل باندې وَتَتَحَمَّلُ عَنْهُ عَاقِلَتُهُ او د قاتل د اړخه دده عاقله برداشت کوی وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ يَتَحَمَّلُ عَنْهُ مَنْ يَكُونُ عَاقِلَتَهُ عِنْدَ الْقَضَاءِ او هرکله چې خبره داسې ده.نو د قضاء په وخت چې دده کوم عاقله وی.هغوی به ددې برداشت کوی.

**تشریح:-** دا زموږ دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د مال وجوب د اصل جنایت په وجه نه کیږی.ګنی اصل جنایت سره د مثل وجوب کیږی.او اصل جنایت سره د مثل وجوب په قاتل باندې کیږی.بیا د مثل نه قیمت اړخ ته او قاتل نه عاقله اړخ ته چې کوم اړول کیږی.دا د قاضی د قضاء په وجه سره دی.نو معلومه شوه.چه د مال وجوب د قضاء په وجه دې.نو د قاضی د قضاء په وخت چې کوم دده عاقله وی.هم په هغوی به دیت واجبیږی.او دغه وخت دده عاقله د بصرې خلګ دی.نو هم په هغوی به دیت واجب وی.

### د قاضی د فیصلې نه روستو عاقله ددیت لپاره ناکافی شی نو څه حکم دې ؟

بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَضَاءِ په خلاف د روستو د قضاء نه لِأَنَّ الْوَاجِبَ قَدْ تَقَرَّرَ بِالْقَضَاءِ ځکه چې واجب د قضاء په وجه مقرر شوې دې فَلَا يَنْتَقِلُ بَعْدَ ذَلِكَ لَكِنْ حِصَّةُ الْقَاتِلِ تُؤْخَذُ مِنْ عَطَائِهِ بِالْبَصْرَةِ نو ددې نه روستو به واجب نه منتقل کیږی.خو د قاتل برخه به دده د هغه عطیې نه اخستلې شی.کومه چې بصره کې وی لِأَنَّهَا تُؤْخَذُ مِنَ الْعَطَاءِ وَعَطَاؤُهُ بِالْبَصْرَةِ ځکه چې دیت د عطاء نه اخستلې شی.او دده عطاء په بصره کې ده.

**تشریح:-** پاتې شوه دویمه مسئله په کومه چې امام زفر رحمه الله دا مسئله قیاس کړې ده.یعنی که قاتل اوس د کوفې په دیوان کې دې.او د کوفې په اهل دیوان باندې قاضی د دیت فیصله اوکړله.بیا قاتل د بصرې په دیوان کې منتقل کړې شوې دې.نو اوس چې وجوب په چا شوې دې.د هغوی څخه به نه لرې کیږی.ځکه چې ددې نوم نقل دې. او نقل ناجائز دې.

البته په دې کې به دومره خیال ضرور ساتلې شی.چه قاتل هم د عاقله یو فرد جوړیږی.او دیت ورکوی.نو قاتل نه چې د دیت کومه برخه وصولولې شی.د هغه عطاء څخه به وصولولې شی.کومه چې د بصرې وی.او کوم چې ددې نه وړاندې د کوفې عطایانې دی.د هغې څخه به دیت نشی وصولولې.ځکه چې دیت د راروانو عطایانو نه اخستلې شی.او رارواني عطایانې به دده د بصرې وی.په کوفه کې دننه به نه وی.



بِخِلَافِ مَا إِذَا قَلَّتِ الْعَاقِلَةُ بَعْدَ الْقَضَاءِ عَلَيْهِمْ په خلاف ددې صورت کله چې عاقله باندې د فیصلې نه روسته عاقله کم شی حَيْثُ يُضَمُّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ فِي النَّسَبِ نو دوی اړخ ته به د نسب په اعتبار سره زیات نژدې قبیلې ملاوولې شی لِأَنَّ فِي النَّقْلِ إِبْطَالَ حُكْمِ الْأَوَّلِ ځکه چې نقل کې د ړومبی حکم باطلول دی. فَلَا يَجُوزُ بِحَالٍ نو دا په هیڅ حال کې جائز نه ده وَفِي الضَّمِّ تَكْثِيرُ الْمُتَحَمِّلِينَ لِمَا قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِمْ او په ملاوولو کې د هغه خلګو زیاوالې دې.کوم چې دهغې اوچتونکی (برداشت کونکی) دی.د کوم چې په دوی فیصله کړې شوې ده فَكَانَ فِيهِ تَقْرِيرُ الْحُكْمِ الْأَوَّلِ لَا إِبْطَالُهُ نو په دې کې د ړومبی حکم تقریر (اثبات) دې.ابطال نه دې.

**حل اللغة**: ① تکثیر: زیاتول ② المتحملین: جمع دمتحمل،باراوړونکی

**تشریح:-** سوال: تاسو اوفرمائیل.چه نقل جائز نه دې.نو د کوفې په خلګو د فیصلې کاوه نه روسته به د بصرې په خلګو د دیت د وجوب فیصله نشی کولې.ګنی نقل به لازم شی.اوکه د یوکس په عاقله باندې د دیت فیصله ورکړې شی.خو عاقله دومره کم دی.چه دوی د دیت ادا کاوه لپاره ناکافی دی.نو بیا به دې قبیلې سره ددې نژدې قبیله ملاوولې شی.او په دوی به دیت واجبولې شی.حالانکه دا هم نقل دې.چه وجوب په چا شوې دې.او په دې کې نور خلګ هم داخل کړې شوی دی؟

ځواب: دا نقل نه دې.بلکه دا ضم ( ملاوول) دی.او نقل ناجائز دې.او ضم جائز دې.ځکه چې نقل کې د ړومبی حکم ابطال لازمیږی.اوپه ضم کې دړومبی حکم ابطال نشته.بلکه په دې کې نوره هم مضبوطی او استحکام پیدا کول دی.او د دیت برداشت کاوه تعداد زیاتول دی.

### د یو وطن اوسیدونکې قاتل د قاضی د فیصلې نه وړاندې بل وطن کښې دیره شو.نو څه حکم دې ؟

وَعَلَى هَذَا لَوْ كَانَ الْقَاتِلُ مَسْكَنُهُ بِالْكُوفَةِ وَلَيْسَ لَهُ عَطَاءٌ او هم په دې طریقه که د قاتل چې دده مسکن (کور) په کوفه کې وی.او دده لپاره عطاء نه وی فَلَمْ يُقْضَ عَلَيْهِ حَتَّى اسْتَوْطَنَ الْبَصْرَةَ نو په ده باندې د دیت فیصله نه وه شوې.چه ده بصره وطن جوړ کړو قُضِيَ بِالدِّيَةِ عَلَى أَهْلِ الْبَصْرَةِ نو د دیت فیصله به د کوفې په خلګو کیږی وَلَوْ كَانَ قُضِيَ بِهَا عَلَى أَهْلِ الْكُوفَةِ او که د د دیت فیصله د کوفې په خلګو شوې وه وَلَمْ يَنْتَقِلْ عَنْهُمْ نو وجوب به د کوفې د خلګو نه نه منتقل کیږی.

**حل اللغة**: ① استوطن: وطن جوړ کړو

**تشریح:-** د مذکوره اصول او د ذکر شوی دلیل په لحاظ سره دویمه جزئیه پیش کوی.چه یو سړې د اهل عطاء څخې نه دې.او د کوفې اوسیدونکې دې.هغه څوك قتل کړل.خو اوس لا قاضی د دیت فیصله نه وه کړې. چې ددې نه وړاندې ده خپل وطن بصره جوړ کړو.اوس چې کله قاضی د دیت د وجوب فیصله کوی.نو د بصرې په خلګو به کوی.او که ددې نه وړاندې د قاضی فیصله د دیت د وجوب په سلسله کې د کوفې په خلګو باندې شوې وه.نو اوس به دده په منتقل کیدو سره دا وجوب نه بدلیږی.ګنی نقل به لازمیږی.او دا ناجائز دې.

### د کلی د قاتل نوم د قاضی د فیصلې نه وړاندې فوج کښې اولیکلې شو نو څه حکم دې ؟

وَكَذَا الْبَدَوِيُّ او هم دغه ډول د کلی اوسیدونکې دې إِذَا أُلْحِقَ بِالدِّيوَانِ بَعْدَ الْقَتْلِ قَبْلَ الْقَضَاءِ کله چې دې دیوان سره یوځائې کړې شو.د قتل نه روستو او د قاضی د قضاء نه وړاندې يُقْضَى بِالدِّيَةِ عَلَى أَهْلِ الدِّيوَانِ نو د دیت فیصله به په اهل دیوان باندې کیږی وَبَعْدَ الْقَضَاءِ عَلَى عَاقِلَتِهِ بِالْبَادِيَةِ لَا يَتَحَوَّلُ عَنْهُمْ او دده د کلی په عاقله باندې د فیصلې کاوه نه روستو به وجوب ددوی (یعنی د کلی د عاقله) نه نه اړولې کیږی.

**حل اللغة**: ① البدوی: کلې وال ② الدیوان: رجسټر ③ یتحول: ګرځی

**تشریح:-** هم ددې په لحاظ بله جزئیه پیش کوی.چه د یو کلی سړې دې.چه هغه په خطاء سره یوکس قتل کړو. اوس د هغه په عاقله باندې د دیت فیصله نه وه شوې.چه د هغه نوم په فوج کې راغې.اوس قاضی د دیت فیصله کوی.نو

قاضي به د ديت د وجوب فيصله په اهل ديوان باندې کوي.اوکه قاضي د هغه په اهل ديوان کې د کيدو نه وړاندې دده د کلي په عاقله باندې د ديت د وجوب فيصله کړې ده.نو اوس به دا وجوب په اهل ديوان باندې نه وي.ګنې نقل به لازم شي.

**د يو کلي په عاقله باندې د ديت فيصلې کولو نه روسته اهل عطاء جوړولو سره د ديت حکم**

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ قُضِيَ بِالدِّيَةِ عَلَيْهِمْ فِي أَمْوَالِهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ او دا دهغه صورت خلاف دې.کله چې يو قوم د کلي د خلګو څنې وي.چه په هغوی باندې د هغوی په مالونو کې په دريو کالو کې دننه د ديت فيصله اوکړې شوه ثُمَّ جَعَلَهُمُ الْإِمَامُ فِي الْعَطَاءِ بيا امام هغوی لره په اهل عطاء کې اوګرځول حَيْثُ تَصِيرُ الدِّيَةُ فِي أَعْطِيَاتِهِمْ كَانَ قَضَى بِهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ فِي أَمْوَالِهِمْ نو ديت به ددوی په عطايانو کې واجب وي.اګرچه په رومبی ځل د ديت فيصله ددوی په مالونو کې کړې شوې وه لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ نَقْضُ الْقَضَاءِ الْأَوَّلِ ځکه چې په دې کې رومبۍ فيصله ماتول نه دی لِأَنَّهُ قَضَى بِهَا فِي أَمْوَالِهِمْ ځکه چې د ديت فيصله ددوی په مالونو کې شوې وه وَأَعْطِيَاتُهُمْ أَمْوَالُهُمْ غَيْرَ أَنَّ الدِّيَةَ تُقْضَى مِنْ أَيْسَرِ الْأَمْوَالِ أَدَاءً او ددوی عطايانې ددوی مالونه دی.خو ديت ادا کولای شی په هغه مالونوکې کومو نه چې اداکول آسان وی وَالْأَدَاءُ مِنَ الْعَطَاءِ أَيْسَرُ إِذَا صَارُوا مِنْ أَهْلِ الْعَطَاءِ او د عطايانو نه ادا کول آسان دی.کله چې دوی د اهل عطاء څنې ګرځولی شوی وی

**تشريح:-** د يو کلي خاندان دې.په هغوی کې يوکس قتل اوکړو.نو د هغه په عاقله يعنی په خاندان باندې ديت واجب کړې شو.د هغوی په مالونو کې ، چې دا به قسط وار په دريو کالو کې ادا کولې شی.خو ددې فيصلې نه روستو داسې اوشوه.چه امام دا پوره خاندان اهل عطاء جوړ کړل.او دوی ته ئې هر کال د عطايانو ملاويدو فيصله صادر کړله.نو قاضی چې د ديت د وجوب کومه فيصله ددوی په مالونو کې کړې وه.نو اوس به ديت ددوی په عطايانو کې واجب وی.او هم ددې نه کال په کال د ديت ثلث وصولولې شی.او په ښکاره دلته اګرچه داسې معلوميږی.چه دا رومبې حکم او رومبې فيصله ماتول دی. خو داسې نه ده.ځکه چې قاضی د ديت د وجوب فيصله ددوی په مالونو کې کړې وه.او عطايانې هم ددوی مالونه دی.او دا وړاندې تيره شوې ده.چه ديت په هغه مال کې واجبولې شی.په کوم چې ديت ادا کول دټولو نه آسان وی.او ښکاره ده.چه د عطايانو نه ديت ادا کول په اصل مالونو کې ادا کاوه نه ډيرآسان دی.او چونکه اوس دوی اهل عطاء جوړ شوی دی.نو د اصول لحاظ به ساتلې شی.

إِلَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ مَالُ الْعَطَاءِ مِنْ جِنْسِ مَا قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِ خو کله چې مال د عطاء د هغه حق د جنس څنې نه وی.د کوم چې په اهل عطاء باندې فيصله کړې شوې ده بِأَنْ كَانَ الْقَضَاءُ بِالْإِبِلِ وَالْعَطَاءُ دَرَاهِمَ په دې طريقه چې د ديت فيصله اوښانو سره وی.او عطاء دراهم وی فَحِينَئِذٍ لَا تَتَحَوَّلُ إِلَى الدَّرَاهِمِ أَبَدًا نو دغه وخت به کله هم ديت دراهمو اړخ ته نه اړولې کيږی لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ الْقَضَاءِ الْأَوَّلِ، لَكِنْ يُقْضَى ذٰلِكَ مِنْ مَالِ الْعَطَاءِ ځکه چې دې کې رومبۍ فيصله باطلول دی.خو دا (اوښان) به د عطاء د مال نه ادا کولای شی لِأَنَّهُ أَيْسَرُ ځکه چې دا آسانه ده.

**تشريح:-** البته که قاضی د ديت فيصله په اوښانو ئې کړې وی.چه سل اوښان به ادا کولې شی.او دوی ته په عطايانو کې دراهم ملاويږی.نو اوس دا نشی کيدې.چه قاضی خپله فيصله بدله کړی.او د سلو اوښانو په ځائې د لسو زرو درهمو فيصله اوکړی.ځکه چې په دې کې د رومبۍ قضاء ابطال لازميږی.او دا باطل ده.البته دا صورت اختيارولې شی.چه دا خلګ د عطايانو نه ديت ادا کړی.ددې صورت به دا وی.چه دوی په دې عطايانو سره اوښان واخلی.او ديت ادا کړی.

**د آزاد شوی غلام عاقله به د آقا قبيله وی**



قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَعَاقِلَةُ الْمُعْتَقِ قَبِيلَةُ مَوْلَاهُ) او د معتق عاقله دده د آقا قبيله ده لِأَنَّ النُّصْرَةَ بِهِمْ ځکه چې کومک هم ددوی په ذريعه دې يُؤَيِّدُ ذٰلِكَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ} (1)او د نبی کريم ﷺ فرمان ددې تائيد کوی.چه د قوم آزاد کړې شوې غلام به هم ددوی قوم نه شمارلې شی.

**تشريح:-** د آزاد کړې شوی عاقله معتق ( آزادونکې) او ددې معتق خاندان دې.ځکه چې دې به هم ددوی نه کومک طلب کوی.او د مذکوره حديث نه ددې تائيد کيږی.

**د مولی الموالاة عاقله به د مولا خاندان وی**

قَالَ (وَمَوْلَى الْمُوَالَاةِ يَعْقِلُ عَنْهُ مَوْلَاهُ وَقَبِيلَتُهُ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.او مولی الموالات، دده د اړخه به دده مولا او دده قبيله ديت ادا کوی لِأَنَّهُ وَلَاءٌ يَتَنَاصَرُ بِهِ ځکه چې دا داسې ولاء ده.چه ددې په وجه خپل منځ کې کومک کيږی فَأَشْبَهَ وَلَاءَ الْعَتَاقَةِ نو دا دولاءِ عتاقه مشابه وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ الْوَلَاءِ او دا په ولاء کې تير شوې دې.

**تشريح:-** عقد موالات زموږ په نيز صحيح دې.او د امام شافعی رحمه الله په نيز باطل دې.نو زموږ په نيز که په دوو سړو کې عقد موالات قائم وی.او دده نه خطاء اوشوه.نو ددې ديت به دده مولا او دده د مولا خاندان ادا کوی.ځکه چې لکه څنګه ولاءِ عتاقه خپل منځ کې د امداد کاوه ذريعه ده.دغه ډول ولاءِ موالات هم خپل منځ کې د امداد کاوه ذريعه ده.د هدايهٔ په دريم ټوک کې په ،، کتاب الولاء،، کې تير شوی دی.

**عاقله به د څومره جرمانې لازميدو په صورت کښې ذمه دار وی؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَا تَعْقِلُ الْعَاقِلَةُ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ عُشْرِ الدِّيَةِ او عاقله به د ديت د نصف عشر نه کم ديت نه ورکوی وَتَتَحَمَّلُ نِصْفَ الْعُشْرِ فَصَاعِدًا او عاقله به د نصف عشر يا د زيات برداشت کوی

**حل اللغة:** ① **تتحمل:** برداشت کوی ② **فصاعدا:** زيات

**تشريح:-** عاقله باندې د ديت وجوب ځکه شوې دې.چه قاتل په پريشانو کې اخته نشی.او په (خفګان کې اخته کيدل په هغه وخت وی.کله چې ديت زيات وی.اوکه کم وی.نو په (خفګان کې به نه اخته کيږی.بيا په کم او زيات کې حد په عقل سره نشی معلوميدې.بلکه دا خبره نص سره معلومه شوې ده.

د جرمانې کم يا زيات مقدار ۞ او نص دا خودلې ده.چه د نصف عشر نه کم يعنی که د پوره ديت د شلمې برخې نه هم کم ديت واجب وی.نو دا به عاقله نه ادا کوی.بلکه دا به قاتل اداکوی.البته که شلمه برخه يا ددې نه زيات مقدار ديت واجب وی.نو دا به کثير شمارلې شی.او ديت به په عاقله باندې واجب وی.

وَالْأَصْلُ فِيهِ حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا او اصل په دې کې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حديث دې.کوم چې په دوی موقوف دې مَوْقُوفًا عَلَيْهِ وَمَرْفُوعًا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او رسول الله ﷺ پورې مرفوع دې { لَا تَعْقِلُ الْعَوَاقِلُ عَمْدًا وَلَا عَبْدًا وَلَا صُلْحًا وَلَا اعْتِرَافًا وَلَا مَا دُونَ أَرْشِ الْمُوضِحَةِ } (2) چې ،، عاقله د عمد ديت نه ورکوی.او نه د غلام او نه د صلح، او نه د اقرار، او نه د موضحه د ارش نه د کم (وَأَرْشُ الْمُوضِحَةِ نِصْفُ عُشْرِ بَدَلِ النَّفْسِ او د موضحه ارش د نفس د بدل نصف عشر دې وَلِأَنَّ التَّحَمُّلَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْإِجْحَافِ او ځکه چې د عاقله برداشت کول د احجاف ( (خفګان ) نه د بچ کيدو لپاره دی وَلَا إِجْحَافَ فِي الْقَلِيلِ وَإِنَّمَا هُوَ فِي الْكَثِيرِ او په قليل کې احجاف ( پريشانی) نشته.او پريشانی په

(1) تقدم تخريجه فی الزكاة وغيرها)_

(2) قال الزيلعی رحمه الله فالموقوف تقدم من رواية محمد بن الحسن والمرفوع غريب وليس فی الحديث أرش الموضحة ولكن أخرج ابن أبی شيبة فی مصنفه عن النخعی رحمه الله قال لا تعقل العاقلة مادون الموضحة ولا يعقل العمد ولا الصلح ولا الإعتراف (نصب:۲۱۱\۵)_

زيات كي ده **وَالتَّقْدِيرُ الْفَاصِلُ عُرِفَ بِالسَّمْعِ** او د قليل او كثير په منځ كي حد فاصل ( فرق ) اندازه د سماع نه معلوم شوي دي.

**حل اللغة*** ① **ارض:** ديت ② **موضحة:** د سر زخم ③ **التحرز:** ځان ساتل، بچ كيدل ④ **اجحاف:** پريشانه كول﴾

**تشريح:-** دلته د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دي. چه دا موقوفاً او مرفوعاً دواړه شان نقل دي. په دې كي پنځه شيان فرمائيلي شوي دي: ① د قتل عمد ذمه داري په عاقله باندې نه ده.،، كمامر،، ② كه غلام قتل كړې وي. نو ددې ذمه داري د آقا په خاندان باندې نه ده. بلكه د جنايت ولي ته به دا غلام وركولې شي. ③ كه قاتل عمداً قتل كړې وي. او قاتل د مال په ادا كاوه مصالحت كړې وي. نو دا مال به په عاقله باندې واجب نه وي. بلكه د قاتل په مال كي به واجب وي. ④ كه قاتل پخپله د قتل اقرار كړې دې. او عاقله ددې تكذيب اوكړي. نو په عاقله به ديت واجب نه وي. ⑤ د موضحه د ارش نه كم چې كوم مالي تاوان واجبيږي. دا به عاقله نه وركوي. بلكه ددې وجوب به د قاتل په مال كي وي. او وړاندې تير شوی دی. چه په موضحه كي نصف عشر يعني شلمه واجبيږي. نو معلومه شوه. چه ددې نه د كم به عاقله برداشت كونكي ( او اوچتونكي ) نه وي.

**د جنايت كم مقدار، او د جنايت كونكي په مال كښې به د ديت فيصله كله كولې شي؟**

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل **(وَمَا نَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ يَكُونُ فِي مَالِ الْجَانِي)** وكوم چې ددې نه كم وي. هغه به د مجرم په مال كي وي **وَالْقِيَاسُ فِيهِ التَّسْوِيَةُ بَيْنَ الْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ** او قياس په دې كي د قليل او كثير په منځ كي برابر وو **فَيَجِبُ الْكُلُّ عَلَى الْعَاقِلَةِ** نو پوره ديت په عاقله باندې واجبيدو **وَكَمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ** رحمه الله لكه څنګه چې امام شافعي رحمه الله تلي دي **أَوِ التَّسْوِيَةُ فِي أَنْ لَا يَجِبَ عَلَى الْعَاقِلَةِ شَيْءٌ إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِمَا رَوَيْنَا** يا برابري كول په دې اره كي چې په عاقله به هيڅ واجب نه وي. موږ دا پريښودي دي. د هغه روايت په وجه كوم چې موږ روايت كړې دي **وَهُوَ مَا رُوِيَ {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَوْجَبَ أَرْشَ الْجَنِينِ عَلَى الْعَاقِلَةِ}**[1] او دهغه حديث په وجه كوم چې نقل دي. چه نبي ﷺ د جنين ارش په عاقله باندې واجب كړې دي **وَهُوَ نِصْفُ عُشْرِ بَدَلِ الرَّجُلِ عَلَى مَا مَرَّ فِي الدِّيَاتِ** او دا ( د جنين ارش ) د سړي د ديت د نصف عشر برابر دي. د هغه تفصيل مطابق كوم چې په ،، كتاب الديات ،، كي تير شوي دي **فَمَا دُونَهُ يُسْلَكُ بِهِ مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ** نو كوم چې ددې نه كم وي. هغه به د مالونو په درجه كي ايخودې شي **لِأَنَّهُ يَجِبُ بِالتَّحْكِيمِ كَمَا يَجِبُ ضَمَانُ الْمَالِ بِالتَّقْوِيمِ** ځكه چې دا ( ددې نه كم ) به د حكم ( قاضي ) په فيصلې سره واجبيږي. لكه څنګه چې د مال ضمان د تقويم په وجه واجبيږي **فَلِهٰذَا كَانَ فِي مَالِ الْجَانِي أَخْذًا بِالْقِيَاسِ** نو په دې وجه دا ( د نصف عشر نه كم ) به د مجرم په مال كي وي. په قياس باندې عمل كاوه سره.

**حل اللغة*** ① **التسوية:** برابري ② **ارش:** ديت ③ **جنين:** د خيټې بچي ④ **التحكيم:** فيصله كول﴾

**تشريح:-** د نصف عشر نه چې كوم كم دي. هغه په عاقله باندې واجب نه دي. بلكه د قاتل په مال كي واجب دي. ځكه چې قياس دلته متعارض دي. يو قياس غواړي. چه د قليل او كثير په منځ كي توپير كاوه نه بغير واړه ديت په عاقله باندې واجب وي. او دوهم قياس غواړي. چه په عاقله باندې بالكل واجب نه وي. بلكه واړه په عاقله باندې واجب وي. په دې وجه موږ قياسونه پريخودي دي. او نص باندې مو عمل كړې دي. او د مذكوره نص نه صفا معلومه شوه. چه د نصف عشر نه د كم ذمه دار قاتل دي. او دوهم حديث دا هم دي. چه نبي كريم ﷺ عاقله باندې د جنين ارش واجب كړو. چه دا د سړي د ديت ۲۰\۱ دي. نو كوم مقدار چې ددې نه كم وي. دا به د مالونو په درجه كي اينبودې شي. ځكه لكه څنګه چې د مال ضمان تقويم سره واجبيږي. دغه ډول د نصف عشر نه كم تحكيم سره واجبيږي. نو دا به د مجرم په مال كي واجبولې شي.

**عاقله د كومو كارونو د جنايت برداشت نشي كولې؟**

[1] من حديث ابي هريرة رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الديات باب جنين المرأة وأن العقل على الوالد رقم ۶۳۹۹)_



**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل **(وَلَا تَعْقِلُ الْعَاقِلَةُ جِنَايَةَ الْعَبْدِ وَلَا مَا لَزِمَ بِالصُّلْحِ أَوْ بِاعْتِرَافِ الْجَانِي)** و عاقله به د غلام د جنايت ديت نه ادا كوي. او نه به هغه مال ( ادا كوي ) كوم چې صلح سره يا د مجرم په اقرار سره لازم شوي دي **لِمَا رَوَيْنَا** د هغه حديث په وجه كوم چې موږ روايت كړې دي **وَلِأَنَّهُ لَا تَنَاصُرَ بِالْعَبْدِ** او ځكه چې د غلام په وجه تناصر نه كيږي **وَالْإِقْرَارُ وَالصُّلْحُ لَا يَلْزَمَانِ الْعَاقِلَةَ لِقُصُورِ الْوِلَايَةِ عَنْهُمْ** او اقرار او صلح به عاقله باندې لازم نه وي. په دوی باندې د ولايت د كموالي په وجه **قَالَ (إِلَّا أَنْ يُصَدِّقُوهُ) لِأَنَّهُ ثَبَتَ بِتَصَادُقِهِمْ** امام قدوري رحمه الله ووييل. خو دا چې عاقله ددې تصديق اوكړي. چه وجوب ددوی په تصديق سره ثابت شوي دي **وَالِامْتِنَاعُ كَانَ لِحَقِّهِمْ** او د وجوب ممتنع كيدل ددوی دحق په وجه وو **وَلَهُمْ وِلَايَةٌ عَلَى أَنْفُسِهِمْ** او عاقله ته پخپل نفس باندې ولايت شته.

**حل اللغة*** ① **تصادق:** د يوبل تصديق كول ② **الامتناع:** منع كول ③ **اعتراف:** اقرار﴾

**تشريح:-** دا هم هغه خبرې دی. كوم چې په تير شوی متن كي په حديث كي تيرې شوي دی. چه دا بالكل آسانې دی.

**د قتل خطاء ديت په كوم صورت كښې عاقله باندې وی او په كوم كښې قاتل باندې؟**

**وَمَنْ أَقَرَّ بِقَتْلٍ خَطَأً** او چا چې د قتل خطاء اقرار اوكړو **وَلَمْ يَرْفَعُوا إِلَى الْقَاضِي إِلَّا بَعْدَ سِنِينَ** او دوی د قتل مسئله قاضي اړخ ته پيش نكړله. خو څوكاله روسته **قُضِيَ عَلَيْهِ بِالدِّيَةِ فِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ مِنْ يَوْمِ يُقْضَى** نو په قاتل باندې به دده په مال كي د ديت فيصله وركولې شي. په دريو كالو كي دننه د هغه ورځې نه د كومې نه چې فيصله اوكړې شي **لِأَنَّ التَّأْجِيلَ مِنْ وَقْتِ الْقَضَاءِ فِي الثَّابِتِ بِالْبَيِّنَةِ** ځكه چې تاجيل د قضاء د وخت نه كيږي. په هغه قتل كي كوم چې ګواهانو سره ثابت شي **فَفِي الثَّابِتِ بِالْإِقْرَارِ أَوْلَى** نو كوم قتل چې اقرار سره ثابت شوې وي. په هغې كي به په درجه اولی ( دده په مال كي د ديت فيصله وركولې شي. او په دريو كالو كي به ادائيګي واجب وي ).

**حل اللغة*** ① **التاجيل:** نيټه وركول ② **البينة:** ګواهان ③ **سنين:** جمع د **سنة:** كال﴾

**تشريح:-** په قتل خطاء كي ديت عاقله باندې واجبيږي. كله چې د قتل ثبوت ګواهانو سره شوې وي. اوكه پخپله د قاتل په اقرار سره ( ثابت ) شوې وي. نو ديت به د قاتل په مال كي وي. او په دواړو صورتونو كي به ديت ادا كول په دريو كالو كي كيږي. او د مودې پيل به د قاضي د فيصلې د وخت نه كيږي. نوكه يو كس د قتل اقرار اوكړو. يعني د قتل خطاء، او تر څوكالو پورې دا مقدمه قاضي ته اوړاندې نكړې شوه. او څوكاله روسته اوس دا مقدمه قاضي ته پيش كړې شوه. نو قاضي د قاتل په مال كي د ديت فيصله اوكړله. نو ددې ديت ادائيګي به په دريو كالو كي كيږي. او د مودې آغاز به اوس د فيصلې د وخت نه كيږي. د قتل د وخت څخه به نه كيږي.

**د قاتل او د جنايت د ولي اتفاق، په عاقله باندې حجت نه دي**

**وَلَوْ تَصَادَقَ الْقَاتِلُ وَوَلِيُّ الْجِنَايَةِ عَلَى أَنَّ قَاضِيَ بَلَدِ كَذَا قَضَى بِالدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ بِالْكُوفَةِ بِالْبَيِّنَةِ** اوكه قاتل او د جنايت ولي دواړو اتفاق اوكړو. چه د فلاني ښار قاضي د قاتل په هغه عاقله كوم چې په كوفه كي دی. د ګواهانو په ذريعه د ديت فيصله كړې ده دي **وَكَذَّبَهُمَا الْعَاقِلَةُ** و عاقله ددی دواړو تكذيب اوكړو **فَلَا شَيْءَ عَلَى الْعَاقِلَةِ** نو په عاقله به هيڅ واجب نه وي **لِأَنَّ تَصَادُقَهُمَا لَيْسَ بِحُجَّةٍ عَلَيْهِمْ** ځكه چې ددوی ( د قاتل او د جنايت د ولي ) دواړو اتفاق عاقله باندې حجت نه دي **(وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي مَالِهِ)** او په قاتل باندې به دده په مال كي هيڅ ( واجب ) نه وي **لِأَنَّ الدِّيَةَ بِتَصَادُقِهِمَا تَقَرَّرَتْ عَلَى الْعَاقِلَةِ بِالْقَضَاءِ** ځكه چې ديت ددوی دواړو په اتفاق سره عاقله باندې د قاضي په قضاء سره مقرر شوې **وَتَصَادُقُهُمَا حُجَّةٌ فِي حَقِّهِمَا** او ددوی دواړو اتفاق ددوی دواړو په حق كي حجت دي.

**تشريح:-** په عاقله باندې د قاتل اقرار حجت نه دي. نو د قاتل او د جنايت د ولي اتفاق به هم عاقله باندې حجت نه وي. نوكه دوی دواړو اتفاق اوكړو. چه د فلاني ښار قاضي د قاتل په عاقله باندې ګواهانو سره د ديت د وجوب فيصله كړې ده. او عاقله ددوی دواړو تكذيب كوي. نو په عاقله به هيڅ واجب نه وي. ځكه چې ددوی دواړو اتفاق

عاقله باندې حجت نه دې.البته كه قاتل د اهل عطاء څنې دې.نو چونكه هغه په عاقلهٔ كې د يو فرد پشان دې.نو په هغه به د خپلې برخې په اندازه ديت لازم وي.ځكه چې انسان پخپل اقرار كې پخپله ګرفتار وي.او په بل باندې دده اقرار حجت نه دې.اوكه قاتل د اهل عطاء څنې نه وي.نو په قاتل باندې هم څه لازم نه دي.

بخلاف الأول إلا أن يكون له عطاء معهم په خلاف د رومبی(صورت)خودا چې قاتل لپاره عاقله سره عطاء وي فحينئذ يلزمه بقدر حصته نو دغه وخت قاتل باندې د خپلې برخې په اندازه لازم وي لأنه في حق حصته مقر على نفسه ځكه چې هغه د خپلې برخې په اندازه پخپل نفس باندې اقرار كونكې دې وفي حق العاقلة مقر عليهم او د عاقله په حق كې ددې په خلاف اقرار كونكې دې.

**تشريح:-** يعنى كله چې قاتل پخپله د قتل خطاء اقرار كړې وي.نو ديت به د قاتل په مال كې واجب وي.په عاقله باندې به واجب نه وي.نو اوس سوال پيدا شو.چه دلته په قاتل باندې ديت ولې واجب كړې شوې دې.او په مذكوره صورت كې ولې نه دې واجب كړې شوې؟

خواب⊛ نو ددې خواب دا دې.چه د اقرار په صورت كې پخپله دده اقرار دې.چه ما قتل كړې دې.نو دې پخپل اقرار كې ګرفتارولې شي.او په موجوده صورت كې د مقتول ولى په قاتل باندې او دده په عاقله باندې د ديت د وجوب مدعى دې.او قاتل هم دده سره اتفاق كوى.خو په عاقله به دا ديت واجب نكړې شو.نو چونكه قاتل هم د **عاقله وو يو فرد دې**.نو په ده به هم ديت واجب نه وي.او خالص دده د اړخه اقرار نشته.البته كه دې د اهل عطاء څنې وي.**نو دې به د** اقرار كونكى په درجه كې راكوزولې شي.او دده د برخې په اندازه به واجبولې شي.

## په غلام د زياتئ او دده د قتلولو د بدلې مسئله

قال امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وإذا جنى الحر على العبد او كله چې آزاد په غلام باندې جنايت اوكړو فقتله خطأ نو هغه ئې خطاء سره قتل كړو كان على عاقلته قيمته نو د قاتل په عاقله باندې به د غلام قيمت وي لأنه بدل النفس على ما عرف من أصلنا ځكه چې قيمت د نفس بدل دې.د هغه تفصيل مطابق كوم چې زموږ معلوم اصل دې وفي أحد قولي الشافعي تجب في ماله او د امام شافعي رحمه الله په دوو قولو كې په يو باندې قيمت د قاتل په مال كې واجب دې لأنه بدل المال عنده ځكه چې دا ددوى په نيز د مال بدل دې ولهذا يوجب قيمته بالغة ما بلغت او هم په دې وجه هغه ددې قيمت واجبوى.چه څومره هم اورسيږي.

**تشريح:-** كه يو آزاد په خطاء سره يو غلام قتل كړو.نو زموږ په نيز د قاتل په عاقله باندې به د غلام قيمت واجب وى.ځكه چې دا قيمت د نفس بدل دې.چه دا د خطاء په وجه واجبيږي.نو دا به په عاقله باندې واجب وي. ځكه چې د نفس د بدل وجوب په عاقله باندې وي.او امام شافعي رحمه الله په يو قول كې فرمائي.چه قيمت په عاقله باندې نشته.بلكه د قاتل په مال كې واجب دې.ځكه چې ددوي په نيز دا قيمت د ماليت بدل دې.او د ماليت بدل په مجرم باندې واجبيږي.او هم دا وجه ده.چه امام شافعي رحمه الله قيمت واجبوي. اوفرمائي.چه قيمت اګرچه د آزاد د ديت نه زيات شي.هم دا به واجب وي.او زموږ په نيز كه د غلام قيمت د آزاد ( د ديت ) برابر يا ددې نه زيات شي.نو دومره قيمت به وركولې شي.چه دا د آزاد د ديت نه لس درهمه كم وي.يعنى ٩٩٩٠ درهمه به وركولې شي.

## د ازاد د نفس نه د كم جنايت تاوان عاقله باندې نه دې

وما دون النفس من العبد لا تتحمله العاقلة او د غلام د نفس نه په كم كې به عاقله اوچتونكى نه وي لأنه يسلك به مسلك الأموال عندنا على ما عرف ځكه چې زموږ په نيز د تير شوى تفصيل مطابق د نفس نه په كم سره د مالونو طريقه اختيارولې شي وفي أحد قوليه العاقلة تتحمله او امام شافعي رحمه الله د يو قول مطابق به ددې برداشت عاقله كوى كما في الحر لكه څنګه چې آزاد كې ( په داسې صورت كې د عاقله په ذمه وو) وقد مر من قبل او دا ( مسئله)



وړاندې تيره شوې ده.

**تشريح:-** كه آزاد غلام قتل كړې نه وي.بلكه يو اندام وغيره ئې خطاء سره كټ كړې وي.نو چونكه وړاندې تير شوى دى.چه د غلام مادون النفس د مالونو په درجه كې دې.او د مالونو برداشت د عاقله په ذمه نه دې.په دې وجه به ددې تاوان وجوب په مجرم وي.او د امام شافعي رحمه الله يو قول دا دې.چه ددې برداشت هم د عاقله په ذمه دې.لكه مثلاً كه آزاد سره داسې جنايت شوې وې.كوم چې د نفس نه كم دې.نو ددې برداشت د عاقله په ذمه وو.نو دا به هم د عاقله په ذمه وي.بيا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه دا وړاندې تيره شوې ده.په دې باندې صاحب د نتائج الافكار وائى.چه دا حواله صحيح نه ده.يعنى دا بحث وړاندې نه دې تير شوې.

## كه د قاتل عاقله نه وي نو ديت به په بيت المال وي

قال أصحابنا: أن القاتل إذا لم يكن له عاقلة زموږ اصحابو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه قاتل كله چې دده لپاره څوك عاقله نه وي فالدية في بيت المال نو ديت په بيت المال كې دې لأن جماعة المسلمين هم أهل نصرته ځكه چې د مسلمانانو جماعت هم دا دده د كومك خلګ دى وليس بعضهم أخص من بعض بذلك او د كومك په سلسله كې بعض د بعضو په مقابله كې خاص شوى نه دى ولهذا لو مات او په دې وجه كه دا ( د چا چې څوك وارث نه وي) مړ شي كان ميراثه لبيت المال نو دده ميراث به د بيت المال لپاره وي فكذا ما يلزمه من الغرامة يلزم بيت المال نو هم دغه شان چې په ده باندې څه غرامت ( او تاوان) لازم شي.هغه به په بيت المال باندې لازم وي وعن أبي حنيفة رواية شاذة أن الدية في ماله او د امام محمد رحمه الله نه شاذ روايت سره رانقل دى.چه ديت دده په مال كې دې ووجهه أن الأصل أن تجب الدية على القاتل او ددې وجه داده.چه اصل دا دې.چه ديت په قاتل باندې واجب وي لأنه بدل متلف ځكه چې ديت د هلاك شوى بدل دې والإتلاف منه او هلاكيدل د قاتل د اړخه دي إلا أن العاقلة تتحملها تحقيقا للتخفيف على ما مر خو عاقله د تير شوى تفصيل مطابق د آسانتيا ثابتولو په غرض سره د ديت برداشت كوى وإذا لم يكن له عاقلة نو كله چې دده لپاره عاقله نه وي عاد الحكم إلى الأصل نو حكم به اصل اړخ ته واپس كيږي.

**حل اللغة:** ① **اتلاف:** هلاكول ② **تتحمل:** برداشت كوى ③ **التخفيف:** آسانتيا كول

**تشريح:-** د **و ما دون النفس.** نه تر آخرى بحث پورې مرغيناني رحمه الله بعضې تفريعات او جزئيات بيانوى.او د مذكوره عبارت مطلب د ژباړې نه واضح دې.

## د ملاعنه ښځې د څوى قاتل جوړيدو سره د ديت مسئله

وابن الملاعنة تعقله عاقلة أمه او د ملاعنه ( ښځې) څوې، دده ديت به دده د مور عاقله ادا كوى لأن نسبه ثابت منها دون الأب ځكه چې دده نسب د مور نه ثابت دې.د پلار نه نه دې فإن عقلوا عنه ثم ادعاه الأب نو كه دوى ( د مور عاقله) دده د اړخه ديت وركړو.بيا پلار دده دعوه اوكړله رجعت عاقلة الأم بما أدت على عاقلة الأب في ثلاث سنين من يوم يقضي القاضي لعاقلة الأم على عاقلة الأب نو د مور عاقله به د هغه ديت په اړه كې كوم چې دوى ادا كړې دې.د پلار په عاقله باندې به رجوع كوى.په دريو كالو كې دننه، د كومې ورځې نه چې قاضي د مور د عاقله لپاره د پلار په عاقله باندې فيصله وركړې ده لأنه تبين أن الدية واجبة عليهم ځكه چې دا خبره واضحه شوه.چه ديت په دوى ( د پلار په عاقله) باندې واجب دې لأن عند الإكذاب ظهر أن النسب لم يزل كان ثابتا من الأب چې د إكذاب ( او دځان دروغجن كولو) په وخت دا خبره ښكاره شوه.چه نسب پيوسته د پلار د اړخه ثابت دې حيث بطل اللعان بالإكذاب ځكه چې د إكذاب په وجه لعان باطل شو ومتى ظهر من الأصل فقوم الأم تحملوا ما كان واجبا على قوم الأب او كله چې نسب د اصل نه ثابت شو.نو د مور قوم د هغه شئ برداشت كړې دې.كوم چې د پلار په قوم باندې واجب وو فيرجعون عليهم نو دوى به په هغوى باندې رجوع كوى لأنهم مضطرون في ذلك ځكه چې دوى په دې كې مجبوره دي.

**حل اللغة:** ① **الملاعنة:** هغه ښځه چې خپل مېړه سره ئې لعان کړې وي ② **تحملوا:** برداشت کړې دي ③ **الاكذاب:** دروغژن کول﴾

**تشریح:-** کله چې یو سړی او ښځې لعان اوکړو.او قاضی د بچی د پلار نه نفی اوکړله.او دده نسب ئې د مور نه ثابت کړو.نو اوس به دده نسب د مور نه ثابت وی.د پلار څخه به ثابت نه وی.اوس دا بچې څه جنایت اوکړی.نو دده دیت د مور په عاقله باندې واجب دې.نو دوی د قاضی د حکم مطابق دیت ادا کړو.ددې نه روسته ملاعن خپل تکذیب اوکړو.او ددې بچی د نسب دعوه ئې اوکړله.نو اوس لعان باطل شو.او د بچی نسب به د پلار نه ثابتیږی.اګرچه ددې ظهور اوس شوې دې.خو په حقیقت کې دده نسب د پیل نه د پلار نه ثابت دې.نو د مور عاقله چې کوم دیت ادا کړې دې.هغه به دوی د پلار د عاقله نه واپس اخلی.ځکه چې ،، آب آمد تیمم برخواست مشهور متل دې.(یعني چې اوبه وی.نو تیمم ته حاجت نشته) خو د پلار عاقله به دا دیت د مور د عاقله لپاره د قاضی د فیصلې د وخت نه دریو کالو کې ادا کوی.

**د مکاتب مرکیدو نه روستو دده د خوی جنایت کول او د آزادی مور دیت او بدل کتاب ادا کولو صورت**

وَكَذٰلِكَ اَنْ مَاتَ الْمُكَاتَبُ عَنْ وَفَاءٍ او هم دغه ډول که مکاتب مړ شی.دومره مال پریخودو سره، چې دا د بدل کتابت ادا کاوه لپاره کافی وی وَلَهُ وَلَدٌ حُرٌّ فَلَمْ او دده یو آزاد بچې وی يُؤَدِّ كِتَابَتَهُ حَتّٰى جَنَى ابْنُهُ نو اوسه پورې دده کتاب ادا نکړې شو.تردې چې دده خوی څه جنایت اوکړو وَعَقَلَ عَنْهُ قَوْمُ اُمِّهِ او دده د مور قوم دده دیت ورکړو ثُمَّ اُدِّيَتِ الْكِتَابَةُ بیا کتابت ادا کړې شو لِاَنَّهُ عِنْدَ الْاَدَاءِ يَتَحَوَّلُ وَلَاؤُهُ اِلٰى قَوْمِ اَبِيْهِ مِنْ وَقْتِ حُرِّيَّةِ الْاَبِ ځکه چې د دیت ادا کاوه په وخت به د مکاتب د خوی ولاء ددې بچی د پلار قوم اړخ ته ګرځیږی.د پلار د آزادیدو په وجه وَهُوَ آخِرُ جُزْءٍ مِنْ اَجْزَاءِ حَيَاتِهِ او دغه وخت د پلار د ژوند په اجزاء کې آخری جزء دې فَيَتَبَيَّنُ اَنَّ قَوْمَ الْاَبِ عَقَلُوا عَنْهُمْ فَيَرْجِعُوْنَ عَلَيْهِمْ نو دا خبره واضح شوه.چه د مور قوم ددوی د اړخه دیت ادا کړې دې. نو دوی به په هغوی باندې رجوع کوی.

**تشریح:-** صورت د مسئلې دا دې.چه یو مکاتب د یوې داسې ښځې سره نکاح اوکړله.چه هغه اوس آزاده ده. وړاندې د یو کس وینځه وه.خو د هغې آقا هغه آزاده کړله.اوس یو هلك پیدا شو.نو هغه ازاد دې.،، كما هو ظاهر،، دلته مکاتب مړ شو.او دومره مال ئې پریخودو.چه دا د بدل کتابت لپاره کافی دې.نو هغه په داسې حال کې مړ شو.چه هغه به آزاد وی.خو اوس بدل کتاب چیرلې شوې نه وو.چه ددې مکاتب خوی څه جنایت اوکړو.او د مور عاقله دده دیت ادا کړو.بیا بدل کتاب ادا کړې شو.نو اوس ښکاره شوه.چه مکاتب د آزادئ په حالت کې مړ شوې دې.نو د مور قوم چې کوم دیت ادا کړې دې.هغه به د پلار د عاقله نه وصوله وی.د هغه تیر شوی دلیل په وجه کوم چې په ،، ابن الملاعنه،، کې تیر شوې دې.ځکه چې د پلار د آزادیدو په وجه چې کوم ولاء مخکې د مور معتق ( آزادونکی مولا) ته ملاویدو.اوس هغه د پلار اړخ ته منتقل شو.او هرکله چې پلار اړخ ته ولاء منتقل شو.نو دده د جنایت دیت به د پلار په عاقله باندې واجب وی.

**ماشوم ته د یوکس د قتلولو حکم سره د قتل د دیت مسئله**

وَكَذٰلِكَ رَجُلٌ اَمَرَ صَبِيًّا بِقَتْلِ رَجُلٍ اوهم دغه ډول یو سړی بچی ته د یو سړی د قتل حکم اوکړو فَقَتَلَهُ نو بچی هغه قتل کړو فَضَمِنَتْ عَاقِلَةُ الصَّبِيِّ الدِّيَةَ نو د بچی عاقله به د دیت ضامن جوړولې شی رَجَعَتْ بِهَا عَلٰى عَاقِلَةِ الْاٰمِرِ اِنْ كَانَ الْاَمْرُ ثَبَتَ بِالْبَيِّنَةِ نو د بچی عاقله به د آمر د عاقل نه واپس اخلی.که دده امر کول بینه سره ثابت شوې وی وَفِيْ مَالِ الْاٰمِرِ اِنْ كَانَ ثَبَتَ بِاِقْرَارِهِ فِيْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ مِنْ يَوْمٍ يَقْضِيْ بِهَا الْقَاضِيْ عَلَى الْاٰمِرِ اَوْعَلٰى عَاقِلَتِهِ او د آمر په مال کې به رجوع کوی.که امر دده په اقرار سره ثابت شوې وی.نو په دریو کالو کې دننه د کوم وخت نه چې قاضی په آمر باندې د دیت فیصله کړې ده.یا د امر په عاقله باندې ( ئې فیصله کړې وی) لِاَنَّ الدِّيَاتِ تَجِبُ مُؤَجَّلَةً بِطَرِيْقِ التَّيْسِيْرِ ځکه چې دیتونه د آسانئ پیدا کاوه په غرض موجل واجبیږی.

**حل اللغة:** ① **موجلة:** په نیټه ② **طریق:** لاره، طریقه ③ **التيسير:** آسانتیا﴾



**تشریح:-** یو سړی یو بچی ته حکم اوکړو.چه فلانې سړې قتل کړه.هغه قتل کړو.نو د بچی په عاقله باندې به د دیت ضمان واجب وی.خو د بچی عاقله ته به د رجوع حق وی.اوس پاتې شوه دا خبره چې رجوع به په آمر کوی او که په عاقله باندې؟ نو ددې لپاره ئې یو اصول بیان کړل.که د آمر، آمرکیدل پخپله د آمر په اقرار سره معلوم شوی وی.نو د امر د مال نه به خپل ورکړې شوې دیت واپس اخلی.اوکه دده آمر کیدل په ګواهانو سره معلوم شوی وی.نو دیت به د آمر د عاقله نه واپس اخستلې شی.او د دیت واپسی که د آمر نه وی.اوکه دده د عاقله نه، په دواړو صورتونو کې به ددې ادائیګی په دریو کالو کې کیږی.او ددې مودې پیل به د هغه وخت نه کیږی.د کوم وخت نه چې قاضی حکم کړې دې.چه دا مال د آمر نه یا دده د عاقله نه واپس واخستلې شی.

**یوه قاعده کلیه او په دې متفرع یو څو مسئلې**

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: هٰهُنَا قَاعِدَةٌ مَسَائِلُ ذَكَرَهَا مُحَمَّدٌ مُتَفَرِّقَةً حضرت مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه دلته یو څو مسئلې دی.چه دا امام محمد رحمه الله جلا جلا ذکر کړی دی. وَالْاَصْلُ الَّذِيْ يُخَرَّجُ عَلَيْهِ او هغه اصل شئ په کوم چې مسئلې متفرع کیږی.دا دې اَنْ يُقَالَ: حَالُ الْقَاتِلِ اِذَا تَبَدَّلَ حُكْمًا چې اوونیلې شی.چه کله حکماً د قاتل حالت بدل شی فَانْتَقَلَ وَلَاؤُهُ اِلٰى وَلَاءٍ بِسَبَبِ اَمْرٍ حَادِثٍ نو دده ولاء د بل ولاء اړخ ته منتقل کیږی.د امر حادث ( د پلار د عتق) په سبب سره لَمْ تَنْتَقِلْ جِنَايَتُهُ عَنِ الْاَوَّلِ قَضٰى بِهَا نو دده جنایت به د ړومبی عاقله نه نه منتقل کیږی.که ددې فیصله شوې وی اَوْلَمْ يَقْضِ اوکه نه وی شوې.

**تشریح:-** ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه امام محمد رحمه الله دلته بعضې جزئیات او مسائل جلا جلا بیان کړی دی.خو که ددې قاعده کلیه په ذهن کې کینولې شی.نو دا مسئلې او ددې مثالونه ددې قاعدې کلیې په رڼا کې پیژندل آسانیږی.نو مرغینانی رحمه الله څلور اصول بیان کړی دی ① که د قاتل په حالت کې توپیر راشی.یعنی ددې حکم بدل شی.لکه د ولاء راښکلو په صورت کې نو دده د بچی ولاء به پلار اړخ ته منتقل کیږی.خو جنایت به نه منتقل کیږی.ځکه چې اصول دا دې.چه حکماً د قاتل بدلولو په صورت کې جنایت په مخکنی عاقله باندې پخپل حال قائم پاتې کیږی.که قاضی اوس لا د دیت فیصله کړې وی.اوکه نه وی کړې.نوکه د یو کس پلار غلام دې.او دده مور آزاده ده.او هغه څه جنایت اوکړو.نو د مور عاقله به دده دیت ورکوی.بیاکه پلار هم آزاد کړې شو.نو ولاء پلار اړخ ته منتقل شو.خو جنایت به نه منتقل کیږی.او د مکاتب په مذکوره مسئله کې د جنایت منتقل کیدل ځکه شوی دی.چه مکاتب په مذکوره صورت کې د مرګ په وخت آزاد وو.یعنی د جرم کاوه نه وړاندې ( آزاد وو).

وَاِنْ ظَهَرَتْ حَالَةٌ خَفِيَّةٌ مِثْلُ دَعْوَةِ وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ اوکه یو پټ حالت ښکاره شوې وی.لکه ( مثلاً) ملاعنه ( ښځې) د هلك دعوه کول حُوِّلَتِ الْجِنَايَةُ اِلَى الْاُخْرٰى وَقَعَ الْقَضَاءُ بِهَا نو جنایت به دوهم عاقله اړخ ته ګرځولې کیږی.که په دې باندې د قاضی قضاء واقع شوې وی اَوْلَمْ يَقَعْ اوکه نه وی واقع شوې

**تشریح:-** ② که د مجرم مخفی او پټ حالت ښکاره وی.نو هلته به جنایت په مخکنی عاقله باندې برقرار نه پاتې کیږی.بلکه دوهم عاقله اړخ ته به منتقل کیږی.که قاضی د دیت فیصله کړې وی.اوکه نه وی کړې.لکه څنګه چې د ملاعنه د خوی په اړه کې د یو پټ حالت ښکاره کیدل دی.نو جنایت به د ملاعن ( پلار) قوم اړخ ته منتقل کیږی.

وَلَوْلَمْ يَخْتَلِفْ حَالُ الْجَانِيْ وَلٰكِنَّ الْعَاقِلَةَ تَبَدَّلَتْ او که د جنایت کونکی حال نه وی مختلف شوې.خو عاقله بدل شی كَانَ الْاِعْتِبَارُ فِيْ ذٰلِكَ لِوَقْتِ الْقَضَاءِ نو په دې کې به د قضاء د وخت اعتبار کولای شی فَاِنْ كَانَ قَضٰى بِهَا عَلَى الْاُوْلٰى نو که وړاندې عاقله باندې د دیت فیصله ورکړې شوې وی لَمْ تَنْتَقِلْ اِلَى الثَّانِيَةِ نو دیت به دوهم عاقله اړخ ته نه منتقل کیږی وَاِنْ لَمْ يَكُنْ قَضٰى بِهَا عَلَى الْاُوْلٰى اوکه د دیت فیصله نه وی شوې.په مخکنی عاقله باندې فَاِنَّهُ يَقْضِيْ بِهَا عَلَى الثَّانِيَةِ نو د دیت فیصله به په دوهم عاقله باندې کیږی

**تشریح:-** اوکه د جنایت کونکې په حالت کې توپیر نه وی. بلکه په عاقله کې دننه وی. نو په دې کې د قضاء د وخت اعتبار دې. که قاضی اوس په رومبی باندې د دیت فیصله نه وی کړې. نو په دوهم عاقله باندې به دیت واجب وی. اوکه په رومبی باندې ئې کړې ده. نو بس اوشوه. اوس به هم په رومبی باندې دیت واجب وی. لکه څنګه چې د کوفې د خلګو او د بصرې د خلګو مسئله تیره شوې ده.

**وَإِنْ كَانَتِ الْعَاقِلَةُ وَاحِدَةً فَلَحِقَهَا زِيَادَةٌ أَوْ نُقْصَانٌ** اوکله چې عاقله یو وی. نو په دې کې زیاتې یا کمې واقع شو **فِي حُكْمِ الْجِنَايَةِ قَبْلَ الْقَضَاءِ وَبَعْدَهُ** نو دا واړه به د جنایت په حکم کې شریک وی. د قضاء نه وړاندې، او ددې نه روسته **إِلَّا فِيمَا سَبَقَ أَدَاؤُهُ** خو هغه مقدار په سلسله کې دکوم ادائیګی چې مقدم شوې ده **فَمَنْ أَحْكَمَ هَذَا الْأَصْلَ مُتَأَمِّلًا** نوچا چې تامل (اوسوچ) سره دا اصل مضبوط کړو **تَمَكَّنَهُ التَّخْرِيجُ فِيمَا وَرَدَ عَلَيْهِ مِنَ النَّظَائِرِ وَالْأَضْدَادِ وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ** نو په دې اصل چې کوم مثالونه او اضداد پیش کیږی. د هغې تخریج به هغه لپاره ممکن وی. والله اعلم بالصواب.

**تشریح:-** اوکه په عاقله کې توپیر نه وی. بلکه په دې کې اضافه شوې وی. یا نقصان شوې دې. د زیاتوالی صورت دا دې. چه په دوی کې څوک بچې بالغ شوې دې. او د نقصان صورت دا دې. چه په دوی کې څوک مړ شی. نو ددې قاعده دا ده. چه د قاضی د قضاء نه روستو او د قاضی د قضاء نه وړاندې دواړو صورتونو کې به په حکم کې دواړه شریک وی. البته کوم مقدار چې ادا کړې شوې دې. هغه ددې نه مستثنی دې. نو کوم چې ادا کړې شوې دې. نو بس ادا شو. اوس به په دې کې هیڅ څوک شریک نه وی. بیا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. چه دا د نکتې خبره ده. څوک چې په دې کې غور کوی. او دا په ذهن کې ساتی. نو هغه به په دې قاعده کلیه باندې پیښیدونکو مثالونو او اضدادو د حکم تخریج په آسانتیا سره کولې شی.

# كتاب الوصايا

ژباړه:- (دا) کتاب د وصیت (په بیان کې) دې.

## د وصیت د صفت بیان

**بَابٌ فِي صِفَةِ الْوَصِيَّةِ مَا يَجُوزُ مِنْ ذَلِكَ** (دا) باب د وصیت د صفت (په بیان کې) دې. او کوم قول چې ددې (وصیت) نه جائز دې **وَمَا يُسْتَحَبُّ مِنْهُ** او کوم چې ددې نه مستحب دې **وَمَا يَكُونُ رُجُوعًا عَنْهُ** او کوم (قول) چې ددې (وصیت) نه رجوع وی (دا باب ددې ټولو په بیان کې دې)

**تشریح:-** اصطلاحی الفاظ ① **موصی:** وصیت کونکې، ② **موصی له:** هغه سړې چا لپاره چې وصیت اوکړې شی ③. **موصی به:** هغه شې د کوم چې وصیت اوکړې شی.

**حکمها:** او د وصیت حکم دا دې. چه موصی له د موصی به په ملك جدید سره مالك کیږی. لکه څنګه چې د هبې په صورت کې موهوب له مالك کیږی. او موصی د موصی له قائم مقام جوړیږی.

**د وصیت صرفی تحقیق:** ① وصیت اسم دې. چه دا د مصدر په معنی کې دې. بیا موصی به ته وصیت اووئیلې شو.
﴿و الوصية في الشريعة تمليك مضاف إلى بعد الموت بطريق التبرع﴾

**شروطها:** د وصیت لپاره یو څو شرطونه دی ① موصی ته دا اهلیت وی. چه هغه په چا باندې تبرع او احسان کولې شی. ② موصی قرضدار نه وی. ③ د وصیت په وخت موصی له ژوندې وی. اګرچه هغه اوس د مور د خیټې کې موجود وی. یعنی د جنین لپاره هم وصیت جائز دې. په دې شرط چې هغه د وصیت په وخت یقیناً په نس کې وی. یعنی د وصیت نه شپږ میاشتو کې پیدا شی. ④ موصی له د موصی وارث نه وی. ⑤ موصی له د موصی قاتل نه وی. ⑥ موصی به قابل تملیك وی. ⑦ د ترکې د دریمې نه د زیات وصیت نه وی.

[...]نده ⑧ د انسان آخری مرحله مرګ دې. او وصیت د مرګ د وخت معامله ده. په دې وجه ئې دا د کتاب په آخر کې [...] کړې دې. او کتاب الجنایات او کتاب الدیات سره هم ددې مناسبت شته. څکه چې جنایات ډیر خله د مرګ



ذریعه جوړیږی. په دې وجه دا د کتاب الجنایات او کتاب الدیات نه روستو بیان کړې شو.

## د وصیت شرعی حیثیت

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله فرمائیل دی (**الْوَصِيَّةُ غَيْرُ وَاجِبَةٍ وَهِيَ مُسْتَحَبَّةٌ**) چې وصیت واجب نه دې. مستحب دې **وَالْقِيَاسُ يَأْبَى جَوَازَهَا** او قیاس ددې د جواز انکار کوی **لِأَنَّهُ تَمْلِيكٌ مُضَافٌ إِلَى حَالِ زَوَالِ مَالِكِيَّتِهِ** څکه چې وصیت داسې تملك دې. چه دا دده د ملکیت زوال وخت اړخ ته مضاف دې **وَلَوْ أُضِيفَ إِلَى حَالِ قِيَامِهَا بِأَنْ قِيلَ مَلَّكْتُكَ غَدًا كَانَ بَاطِلًا** او که ددې تملیك اضافت د مالکیت د قیام وخت اړخ ته اوکړې شی. په دې طریقه چې اووئیلې شی. چه ما ته سهار مالك جوړ کړې. نو دا باطل دې **فَهَذَا أَوْلَى** نو دا به په درجه اولی (باطل وی). **إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّاهُ لِحَاجَةِ النَّاسِ إِلَيْهَا** خو مونږ وصیت د استحسان په وجه جائز اوګرځولو. وصیت اړخ ته د خلګو د حاجت په وجه

**تشریح:-** وصیت واجب نه دې. البته د مرغینانی رحمه الله د قول مطابق مستحب دې. او د قیاس تقاضه دا ده. چه وصیت جائز نه وی. څکه چې موصی موصی له په داسې وخت مالك جوړوی. کله چې موصی پخپله هم مالك نه وی. اوکه د یوکس ملکیت پاته وی. خو هغه د ملکیت نسبت راروانې زمانې اړخ ته اوکړی. او داسې اووانی. چه ته ما ددې شې صباله مالك جوړ کړې. نو دا تملیك باطل دې. حالانکه د مملك ملکیت نن هم شته. او صباله هم شته. ددې باوجود دا باطل ګرځولې شوې دې. نو هرکله چې د مرګ نه روستو د سره ملکیت پاتې نه وی. نو هلته خو په درجه اولی باطلیدل پکار دی. بهرحال د قیاس تقاضه دا وه. خو قیاس پریښودې شو. او استحسان باندې عمل اوکړې شو. او دا جائز اوګرځولې شو. څکه چې خلګو ته ددې حاجت دې. لکه څنګه چې خلګو ته د اجارې حاجت دې. اګرچه قیاس ددې (اجارې) د عدم جواز تقاضه کوی. خو د استحسان په بناء لکه څنګه چې اجاره جائز ګرځولې شوې ده. دغه دول وصیت جائز ګرځولې شوې دې.

**فَإِنَّ الْإِنْسَانَ مَغْرُورٌ بِأَمَلِهِ مُقَصِّرٌ فِي عَمَلِهِ** څکه چې انسان د خپل امید په وجه په دهوکه کې پریوځی. پخپل عمل کې بې غوری کوی **فَإِذَا عَرَضَ لَهُ الْمَرَضُ وَخَافَ الْبَيَاتَ** نو کله چې ده ناروغی (بیماری) راپیښه شوه. او دې د هلاکت نه اویریدو **يَحْتَاجُ إِلَى تَلَافِي بَعْضِ مَا فَرَّطَ مِنْهُ مِنَ التَّفْرِيطِ بِمَالِهِ** نو هغه ددې کوتاهئ پوره کاوه ته محتاج کیږی. کوم چې دده د اړخه وړاندې شوې ده. د خپل مال په ذریعه **عَلَى وَجْهٍ لَوْ مَضَى فِيهِ** په دې طریقه، که هغه په دې مرض کې مړ شو **يَتَحَقَّقُ مَقْصِدُهُ الْمَآلِيُّ** نو دده اخروی حاجت به متحقق شی **وَلَوْ أَنْهَضَهُ الْبُرْءُ** او که صحت دې اوچت کړو **يَصْرِفُهُ إِلَى مَطْلَبِهِ الْحَالِيِّ** نو هغه به دا مال په دنیاوی مقصد کې خرچ کوی **وَفِي شَرْعِ الْوَصِيَّةِ ذَلِكَ** او د وصیت په مشروع کاوه کې دا مقصد حاصل دې **فَشَرَعْنَاهُ وَمِثْلُهُ فِي الْإِجَارَةِ بَيَّنَّاهُ** نو دا موږ مشروع اوګرځولو. او ددې پشان اجاره کې موږ بیان کړې دې.

**حل اللغة:** ① **مغرور:** دهوکه ورکړې شوې ② **تلافی:** پوره کول ③ **التفریط:** کمې کول ④ **انهض:** راپورته کړو، اوچت کړو.

**تشریح:-** وجه ددې دا ده. چه انسان امیدونو راګیر کړې دې. چه ددې په وجه دې ډیرې زیاتې کوتاهیانې کوی. خو کله چې په مرض کې راګیر شو. نو اوس دې خپیمانه شو. نو شریعت هغه ته اجازت ورکړو. چه د امیدونو په چکر کې چې د مال په اړه کې کومې کوتاهیانې شوی دی. هغه پوره کړه. که هغه په دې مرض کې مړ شی. نو د آخرت مقصد به ئې پوره شی. اوکه مړ نشی. نو په دنیاوی مقصدونو کې به ئې اوس استعمال کړی. او فائده به حاصله کړی. او په وصیت کې هم دا کیږی. په دې وجه دا وصیت جائز ګرځولې شوې دې.

## قیاسی دلیل

**وَقَدْ تَبْقَى الْمَالِكِيَّةُ بَعْدَ الْمَوْتِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ** او ملکیت پاته پاتې کیږی. د مرګ نه روستو، د حاجت په اعتبار سره **كَمَا فِي قَدْرِ التَّجْهِيزِ وَالدَّيْنِ** لکه کفن دفن او د پور مقدار کې **وَقَدْ نَطَقَ بِهِ الْكِتَابُ** او د الله تعالی کتاب ددې د جواز په اړه

کي ناطق دي وَهُوَقَوْلُهُ تَعَالَى {مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا أَوْ دَيْنٍ} او هغه د الله تعالى فرمان دي. «من بعد وصية يوصى بها او دين» وَالسُّنَّةُ او ددې د جواز متعلق سنت ناطق دي وَهُوَقَوْلُ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او هغه د نبی کریم ﷺ فرمان دی {اِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى تَصَدَّقَ عَلَيْكُمْ بِثُلُثِ أَمْوَالِكُمْ فِي آخِرِ أَعْمَارِكُمْ زِيَادَةً لَكُمْ فِي أَعْمَالِكُمْ} چې الله تعالى په تاسو باندې آخری عمرونو کي د ستاسو دریمه برخه مال صدقه کړو.د ستاسو د عملونو زیاتوالی په غرض سره تَضَعُونَهَا حَيْثُ شِئْتُمْ چرته چې تاسو غواړئ.دا خرج کړئ أَوْقَالَ {حَيْثُ أَحْبَبْتُمْ} یا ئې اوفرمائیل. «حیث احببتم» وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ او د وصیت په جواز باندې اجماع منعقد شوې ده

**تشریح:**- او د قیاس په دلیل کي چې دا اووئیلی شو.چه د موصی د مرګ نه روستو دده حاجت او ملکیت پاتې کیږی.د هغې خواب ئې ورکړو.چه څومره مړی ته اړتیا دي.هغه حده پورې د مړی ملکیت پاته نه دې وجه کفن دفن او پور ادا کول د ټولو نه وړاندې اوساتلې شو.څکه چې په دې کي د مړی اړتیا دي. «و یشاء له درس السراجی» پاتې کیږی.په

د قرآن او سنت نه د وصیت ثبوت۞او قرآن او حدیث سره د وصیت جواز ثابت دي.د الله تعالى فرمان دي. «فان كان له إخوة فلأمه السدس من بعد وصية يوصى بها أو دين» ،، یعنی که د مړی ( دوې (دوه) یا ددې نه زیات) رونړه دی.نو دده د مور لپاره شپږمه برخه ده.روستو دهغه وصیت نه چې ده کړې وی.یا روستو د ادا کاوه د پور نه،، یعنی په کومه اندازه چې د وراثانو برخې تیرې شوی دی.هغه به ټولې د مړی د وصیت او د هغه د پور د جلا کاوه نه روستو وارثانو ته ورکولې شی.او د وارثانو مال به هغه وی.کوم چې د وصیت په مقدار او د پور اوبښکلو نه روستو پاته پاتې شی.او نیمه او دریمه وغیره د هغه پاته پاتې نه مراد ده.د واړه مال نه مراد نه ده. «وقد بيناه في أوائل درس السراجی» دغه ډول د حدیث نه هم د وصیت جواز ثابت دې.کوم حدیث چې متن کي ذکر شوې دي.د هغې مطلب دا دي.چه الله تعالى ستاسو د مالونو دریمه برخه په تاسو باندې صدقه کړو.چه کله ستاسو د ژوند آخری ساعتونه راشی.چه ددې مال په وجه ستاسو په عملونو کي زیاتوالې اوشی.اوتاسو چې پخپلو دینی ضرورتونو کي چرته غواړئ.دا خرج کړئ.دلته یو یو روایت کي دا الفاظ دی. «تضعونها حيث شئتم» او په یو روایت کي دا الفاظ دی. «حیث احببتم» او د وصیت په جواز باندې د امت اجماع ده.

وَتَصِحُّ لِلْأَجْنَبِيِّ فِي الثُّلُثِ مِنْ غَيْرِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ لِمَا رَوَيْنَا (۱) بیا وصیت صحیح دي.اجنبی لپاره په ثلث مال کي، د وارثانو د اجازت نه بغیر، د هغه حدیث په وجه، کوم چې موږ روایت کړې دي ثُمَّ نُبَيِّنُ مَا هُوَ الْأَفْضَلُ فِيهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى اوموږ به ډیر نژدې بیان کړو.هغه طریقه کومه چې د وصیت په اړه کي افضله ده.که الله تعالى اوغوښتل.

**تشریح:**- بیا په دریمه برخه مال کي د وصیت د جواز لپاره د وارثانو اجازت ته اړتیا نشته.کله چې وصیت د یو وارث لپاره نه وی.بلکه د یو اجنبی لپاره وی.

تنبیه۞ ① د وصیت څلور قسمونه دی.① واجب لکه د زکاة او کفاراتو په حق کي، ② مکروه د فاسقانو او فاجرانو دپاره، ③ مباح (جائز) د توانګر دپاره، ④ او ددوی نه په علاوه کي کله چې څه باطلونکې عارض نه وی.نو مستحب دي. تفصیل لپاره اوګورئ «شامی:ص۴۱۵،ج۵»

### مړې د خپل څومره مال پورې وصیت کولاې شی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَلَا تَجُوزُ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ) لِقَوْلِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ {الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ} بَعْدَ مَا نَفَى وَصِيَّتَهُ بِالْكُلِّ وَالنِّصْفِ او وصیت جائز نه دي.هغه مقدار سره، کوم چې په ثلث باندې زیات وی.د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، د سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه په حدیث کي تر دریمې پورې

(۱) من حدیث أبی هریرة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه فی الوصایا باب ۵ رقم ۲۷۰۹)_



او دریمه زیاته ده.دا ئې هغه وخت فرمائیلی وو.کله چې نبی کریم ﷺ د هغه د واړه او د نیم مال وصیت کاوه نفی فرمائیلې وه

**تشریح:**- د مرض الموت مریض ته د مال حق دریمې برخې مال پورې دي.نو دریمې برخې پورې هغه تصرف کولې شی.ددې نه په زیات کي وصیت کول جائز نه دي.څکه چې حدیث کي د حضرت سعد بن وقاص رضي الله عنه تفصیلی واقعه موجود ده.چه په هغې کي نبی کریم ﷺ د پوره مال وصیت نه او د نیم مال د وصیت نه منع فرمائیلې ده.او په دریمه برخه مال کي ئې د وصیت کاوه اجازت ورکړې وو.او ور سره ئې دا هم فرمائیلی وو.چه داسې (وصیت کول) په ثلث کي هم زیات دي.

وَلِأَنَّهُ حَقُّ الْوَرَثَةِ او څکه چې مال د وارثانو حق دي وَهٰذَا لِأَنَّهُ انْعَقَدَ سَبَبُ الزَّوَالِ إِلَيْهِمْ او دا څکه چې وارثانو اړخ ته د زوال سبب منعقد شوې دي وَهُوَ اسْتِغْنَاؤُهُ عَنِ الْمَالِ او هغه سبب د موصی د مال نه مستغنی کیدل دی فَأَوْجَبَ تَعَلُّقَ حَقِّهِمْ بِهِ، إِلَّا أَنَّ الشَّرْعَ لَمْ يُظْهِرْهُ فِي حَقِّ الْأَجَانِبِ بِقَدْرِ الثُّلُثِ لِيَتَدَارَكَ تَقْصِيرَهُ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ نو دا استغناء (مالداری) دده مال سره ددوی حق متعلق کیدل ثابتوی.خو شریعت په دریمه برخه مقدار کي د اجنبیانو په حق کي دا استغناء ښکاره نکړله. چې زموږ د ذکر شوی بیان مطابق موصی د کوتاهئ پوره والې اوکړی وَأَظْهَرَهُ فِي حَقِّ الْوَرَثَةِ او د وارثانو په حق کي ئې استغناء ښکاره کړې ده لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ لَا يَتَصَدَّقُ بِهِ عَلَيْهِمْ څکه چې ښکاره هم دا ده.چه موصی به د ثلث مال په وارثانو باندې صدقه نه کوی تَحَرُّزًا عَمَّا يَتَّفِقُ مِنَ الْإِيثَارِ عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ چه احتراز اوشی د هغه ایثار نه، کوم چې اتفاق سره واقع کیږی.د هغه تفصیل مطابق کوم چې موږ بیان کړې دي

حل اللغة۞ ① **الاجانب:** جمع د اجنبی، پردې ② **تحرز:** ساتنه ③ **تقصیر:** بې غوری کول»

**تشریح:**- بیا چې کله مالك (د مرګ بیمار) دې حده پورې اورسیدو.نو اوس هغه د مال نه مستغنی (بې حاجته) شو.او د هغه د مال نه مستغنی کیدل، دا خبره واجبوی.چه دده مال سره دده د وارثانو حق متعلق شی.نو دده مال سره د وارثانو حق متعلق شو.او داسې سبب منعقد شو.چه دا مال وارثانو اړخ ته منتقل شی.دده مال سره د وارثانو د حق متعلق کیدل ددې خبرې تقاضه کوی. چې په دریمه برخه کي دننه هم دده تصرف نافذ نشی.خو ددې ذکر شوی دلیل په وجه د اجنبیانو په حق کي د وصیت د تصرف اجازت ورکړې شو.چه د اصل مالك د اړخه د ثابت شوی کوتاهئ پوره والې اوشی.نو موږ د موصی استغناء په ثلث مقدار کي د اجنبیانو په حق کي ښکاره نکړه.البته که وارثانو کي د یوکس لپاره وصیت کوی .نو بیا به دا استغناء ښکاره کیږی.او دده دا تصرف به نه نافذ کیږی.ګنی دلته به د بعضو وارثانو نقصان لازمیږی.څکه چې کله مورث (موصی) بعضو وارثانو ته وصیت کوی.او بعضو ته نه کوی.نو بعضو ته به په بعضو باندې ترجیح ورکوی.چه دا د بعضو نقصان دی.او د تکلیف سبب به جوړیږی.نوپه دې صورت کي اتفاقاً داسې کیږی.چه ایثار لازمیږی.نو دا د سره ناجائز اوګرځولې شو.

وَقَدْ جَاءَ فِي الْحَدِيثِ {الْحَيْفُ فِي الْوَصِيَّةِ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ} (۱) او په حدیث کي راغلی دی.چه په وصیت کي ظلم د اکبرالکبائر (لویو ګناهونو) څخه ده وَفَسَّرُوهُ بِالزِّيَادَةِ عَلَى الثُّلُثِ وَبِالْوَصِيَّةِ لِلْوَارِثِ او عالمانو د حیف تفسیر د ثلث نه په زیات، او وارث لپاره ئې وصیت سره کړې دي.

**تشریح:**- او په حدیث کي فرمائیلی شوی دی.چه ،،حیف،، د اکبرالکبائر (د لویو ګناهونو) څخه ده.یعنی ډیره لویه ګناه ده.او د حیف تفسیر دا دي.چه د دریمې نه زیات وصیت اوکړی.یا د وارث لپاره وصیت اوکړی.

### د دریمې حصې نه زیات وصیت د وارثانو په اجازت باندې موقوف دي

قَالَ (إِلَّا أَنْ يُجِيزَهُ الْوَرَثَةُ بَعْدَ مَوْتِهِ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.خو دا چې وارثان ددې (دریمې نه د زیات) اجازت

(۱) من حدیث سعد بن أبی وقاص رضي الله عنه أخرجه الأئمة الستة فی کتبهم منهم البخاری اللهم .. إلخ فی کتاب مناقب الأنصار رقم ۳۹۳۶)_

ورکړي.د موصی د مرګ نه روستو **وَهُمْ كِبَارٌ** حالانکه هغوی لوئي وی **لان الامتناع لحقهم** ځکه چې امتناع ددوی د حق په وجه ده **لِأَنَّ الْإِمْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ وَهُمْ أَسْقَطُوهُ** او هغوی خپل حق ساقط کړي دي.

**حل اللغة**: ① **الامتناع**: منع کول ② **اسقط**: ساقط کړو﴾

**تشریح**:- یعنی د دریمې نه د زیات مال وصیت کول جائز نه دي.خو که مریض د دریمې برخې نه د زیات وصیت اوکړو.او د هغه د مرګ نه روستو وارثانو د هغې اجازت ورکړو.او وارثان بالغ وی.نو بیا جائز دي. ځکه چې ددې وصیت ممتنع کیدل، د وارثانو د حق په وجه وو.او هرکله چې هغوی خپل حق ساقط کړو.نو جائز دي.

## د وارثانو د اجازت اعتبار به کله کیږي؟

**وَلَا مُعْتَبَرَ بِإِجَازَتِهِمْ فِي حَالِ حَيَاتِهِ** او د موصی په ژوند کي به د وارثانو د اجازت اعتبار نشی کولې **لِأَنَّهَا قَبْلَ ثُبُوتِ الْحَقِّ إِذِ الْحَقُّ** ځکه چې دا (دده په ژوند کي اجازت) د حق د ثبوت نه وړاندې دي **يَثْبُتُ عِنْدَ الْمَوْتِ** ځکه چې د حق د مرګ په وخت ثابتیږي **فَكَانَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوهُ** (دوه) **بَعْدَ وَفَاتِهِ** او وارثانو ته به حق وی.چه هغوی د موصی د وفات نه روستو دا اجازت رد کړي **بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ** په خلاف د مرګ نه روستو (د اجازت، چې دا بیا نشی رد کولې) **لِأَنَّهُ بَعْدَ ثُبُوتِ الْحَقِّ** ځکه چې دا اجازت د حق د ثبوت نه روستو دي. **فَلَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَرْجِعُوا عَنْهُ**. نو وارثانو ته به ددې نه د رجوع. کاوه حق نه وی. **لِأَنَّ السَّاقِطَ مُتَلَاشٍ** ځکه چې ساقط معدوم دي.( چې ددې هیڅ اعتبار نشی کولې).

**حل اللغة**: ① **الساقط**: ساقط کیدونکې ② **متلاش**: معدوم،غیر موجود، غیر معتبر﴾

**تشریح**:- که وارثانو د ثلث نه د زیات وصیت اجازت ورکړو.نو جائز دي.خو په دې کي دا تفصیل دې.چه که د وارثانو اجازت د موصی د مرګ نه روستو دي.نو اجازت صحیح دي.او اوس وارثانو ته د خپل اجازت نه واپس کیدو حق نشته.او که د وارثانو اجازت د موصی په ژوند کي وی.نو اوس به د دې اجازت هیڅ اعتبار نشی کولې.بلکه وارثانو ته به د موصی د مرګ نه روستو ددې اجازت نه د واپس کیدو اختیار حاصل وی.ځکه چې د موصی د وفات نه وړاندې د وارثانو حق د سره ثابت شوې هم نه وو.نو ددوی اجازت به هم معتبر نه وی.خو د مرګ په وخت ددوی حق ثابت شو.نو هرکله چې دوی خپل حق ساقط کړو.یعنی اجازت ئې ورکړو.نو اوس حق ساقط شو.او کوم چې ساقط شو.هغه د نه کیدو په درجه کي شو.

په ،،غایة البیان کي د ﴿لأن الساقط متلاش...﴾ تعلق د موصی په ژوند کي په اجازت ور کاوه سره شوې دي.یعنی دغه وخت د وارثانو اجازت ساقط دي.او ساقط د معدوم په درجه کي دي.او هرکله چې دا د معدوم په درجه کي دي.نو ددوی د اجازت هیڅ اعتبار نشته.نو وارثانو ته ددې د رد کاوه حق حاصل دي.

## د یو سوال مقدر جواب

**غَايَةُ الْأَمْرِ أَنَّهُ يَسْتَنِدُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ** غایة الامر دادې.چه د حق استناد (نسبت) به د اجازت په وخت وی. **لَكِنَّ الْإِسْتِنَادَ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْقَائِمِ** خو استناد په موجود امر کي ښکاره کیږي **وَهٰذَا قَدْ مَضٰى وَتَلَاشٰى** حالانکه دا ( د مرګ نه وړاندې اجازت) تیر شو.او معدوم شو.

**حل اللغة**: ① **تلاشی**:ختم شو﴾

**تشریح**:- دا په حقیقت کي د یو سوال مقدر خواب دي.

سوال◉ د مرګ نه وړاندې چې وارثانو کوم اجازت ورکړې وو.هغه ئې هم پخپل حق کي ورکړې وو.ځکه چې د مړي په مال کي د وارثانو کوم حق دي.هغه د مرض الموت د وخت نه دي.نو هرکله چې په طریقه د استناد د وارثانو د اجازت په وخت ددوی حق ثابت شو.نو ددوی اجازت معتبر کیدل پکار دی.لکه څنګه چې په غصب کي دی؟



خواب◉ اګرچه د وارثانو حق د مړي په مرض پیل کیدو سره دده مال سره متعلق کیږي.خو یو هغوی ته د تصرف اختیار نه وی.او دویمه دا چې استناد لپاره د هغه شي د بقاء اړتیا دي.چه د هغې د استناد په طریقه د ثابتولو کوښښ کولې شی.او هغه اجازت دي.حالانکه کوم اجازت چې د مرګ نه وړاندې ورکړې شوې وو.اوس هغه معدوم شوې دي.نو د استناد په طریقه به هم ددې اجازت ثبوت نشی کیدې.

## د مذکوره جواب تفصیل

**وَلِأَنَّ الْحَقِيقَةَ تَثْبُتُ عِنْدَ الْمَوْتِ** او ځکه چې ملك حقیقی د مرګ په وخت ثابتیږي **وَقَبْلَهُ يَثْبُتُ مُجَرَّدُ الْحَقِّ** او د مرګ نه وړاندې صرف حق ثابتیږي **فَلَوِ اسْتَنَدَ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ يَنْقَلِبُ حَقِيقَةً قَبْلَهُ** نو که په هر اعتبار سره استناد ثابت شی.نو حق به حقیقت سره بدلیږي.مخکې د مرګ نه **وَالرِّضَا بِبُطْلَانِ الْحَقِّ لَا يَكُونُ رِضًا بِبُطْلَانِ الْحَقِيقَةِ** او د حق په باطلیدو راضی کیدل د حق په باطلیدو راضی کیدل نه دی.

**تشریح**:- دمرګ نه وړاندې وارثانو ته صرف د ملك حق دي.او ملك حقیقی هغه د موصی د مرګ نه روستو ثابتیږي.او که تاسو په طریقه د استناد د مرګ نه وړاندې اجازت ثابت کړئ.نو ددې مطلب به دا وی.چه د موصی د مرګ نه وړاندې حق د ملك، ملكِ حقیقی سره بدل شی.حالانکه دا باطل دي.او وارثانو د مرګ نه وړاندې اجازت ور کاوه سره حق د ملك باطل کړې دي.خو د ملك حق باطلولو سره حقیقی ملك نه باطلیږي.

## وارث لپاره د وصیت شرعی حیثیت

**وَكَذٰلِكَ إِنْ كَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَارِثِ وَأَجَازَهُ الْبَقِيَّةُ** او هم دغه ډول که وصیت وارث لپاره وی.او پاته وارثانو اجازت ورکړې وی **فَحُكْمُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ** نو ددې حکم هم هغه دي.کوم چې موږ ذکرکړې دي **وَكُلُّ مَا جَازَ بِإِجَازَةِ الْوَارِثِ** او هغه تصرف کوم چې د وارثانو په اجازت سره جائز شوې وی **يَتَمَلَّكُهُ الْمُجَازُ لَهُ مِنْ قِبَلِ الْمُوصِي عِنْدَنَا** نو مجازله (چا لپاره چې وصیت شوې دې) به زموږ په نیز د موصی د اړخه ددې مالك وی

**تشریح**:- که د دریمې برخې نه د زیات وصیت کاوه په ځائې موصی د وارثانو لپاره وصیت اوکړو.نو بیا هم دغه حکم دي.یعنی د پاته وارثانو په اجازت باندې موقوف دي.اوس په دې کي سوال دا دي.چه موصی له کوم چې مالك جوړ شوې دي.نو د موصی د اړخه جوړ شوې دي.یا د وارث د اړخه (جوړ شوې دي). زموږ په نیز د موصی د اړخه مالك جوړ شوې دي.

**وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ مِنْ قِبَلِ الْوَارِثِ** او د امام شافعی رحمه الله په نیز د وارث د اړخه ( ددې مالك کیږي). **وَالصَّحِيحُ قَوْلُنَا** او صحیح زموږه قول دې **لِأَنَّ السَّبَبَ صَدَرَ مِنَ الْمُوصِي** ځکه چې سبب د موصی د اړخه صادر شوې دي.

**تشریح**:- او د امام شافعی رحمه الله په نیز د وارث د اړخه (مالك) جوړ شوې دي؟ په دې باندې مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه زموږ قول صحیح دي.ځکه چې سبب د ملك، د موصی د اړخه صادر شوې دي.ځکه چې وصیت هغه کړې دي.البته په دې دواړو صورتونو کي ددې سبب کمزور کیدو لپاره د مانع لرې کول شرط دی.او مانع د وارثانو حق ساقطول دی.اود حکم نسبت سبب اړخه ته شوې دي.شرط اړخ ته نه دي شوې. ﴿إلا أن يمنع مانع﴾

**وَالْإِجَازَةُ رَفْعُ الْمَانِعِ** او اجازت خو مانع اوچتول دی **وَلَيْسَ مِنْ شَرْطِهِ الْقَبْضُ فَصَارَ كَالْمُرْتَهِنِ إِذَا أَجَازَ بَيْعَ الرَّاهِنِ** او ددې (مانع اوچتول) شرط قبضه نه ده.لکه مرتهن کله چې هغه د راهن د بیع اجازت ورکړي.

**تشریح**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه هرکله د وارثانو د اړخه مانع اوچتول اوموندې شو.نو ضروری ده.چه د وارثانو قبضه هم وی.حالانکه تر اوسه پورې په دې مال د وارثانو قبضه نشته.نو بیا مانع ختمول او مانع لرې کول څنګه صحیح شو؟

خواب◉ حضرت! د مانع لرې کاوه لپاره قبضه شرط نه ده.نو دا اعتراض بې بنیاده دي.او دا خبره ثابته شوه.چه د ملکیت اثبات د موصی د اړخه دي.او دا بالکل داسې ده.لکه چې راهن مرهون خرڅ کړی.نو دا بیع د مرتهن په

اجازت باندې موقوف دې.خو کله چې مرتهن د بيع اجازت ورکړو.نو د بيع ثبوت به د راهن د اړخه وی.د مرتهن د اړخه به نه وی.

## قاتل لپاره وصيت کول څنګه دی؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَلَا يَجُوْزُ لِلْقَاتِلِ عَامِدًا كَانَ أَوْ خَاطِئًا بَعْدَ أَنْ كَانَ مُبَاشِرًا او قاتل لپاره وصيت کول جائز نه دې.که عمداً ئې قتل کړې وی.او که په خطاء سره، روستو ددې نه چې هغه مباشر (فاعل) وی.د نبی ﷺ د فرمان لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ {لَا وَصِيَّةَ لِلْقَاتِلِ} (لاوصية لقاتل) په وجه (وَلِأَنَّهُ اسْتَعْجَلَ مَا أَخَّرَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى) اوځکه چې قاتل جلتئ سره اخستل اوغوښتلو هغه شئ کوم چې شريعت موخر کړې دې فَيُحْرَمُ الْوَصِيَّةَ كَمَا يُحْرَمُ الْمِيرَاثَ نو هغه به د وصيت نه محروم کولې شی.کله څنګه هغه د ميراث نه محروم کولای شی

حل اللغة: ① استعجل: تلوار اوکړو ② يحرم: محرومه کيږی

تشريح:- د ارث د موانعو بيان تفصيل سره په درس سراجی کي تير شوې دې.بهرحال قتل د ارث لپاره د منعې سبب دې.ګڼی که قتل عمداً وی اوکه خطا سره وی.دا د ارث نه مانع دې.دغه ډول د وصيت د جواز نه هم مانع دې.ځکه چې دې کي صفا حديث موجود دې. «لا وصية للقاتل....»

② دويمه وجه دا ده. چې قاتل موصی قتلولو سره د وصيت مال په جلتئ سره اخستل غواړی.حالانکه شريعت دا فيصله کړې ده.چه دا مال به د موصی د مرګ نه روسته ملاويږی.نو داسې جلدباز بالکل محرومولې شی.لکه څنګه چې هم په دې سبب سره وارث د ميراث نه محرومولې شی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجُوْزُ لِلْقَاتِلِ وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ او امام شافعی رحمه الله اوفرمائيل.چه قاتل لپاره وصيت جائز دې.او هم په دې اختلاف (مبنی) دې إِذَا أَوْصٰى لِرَجُلٍ ثُمَّ إِنَّهُ قَتَلَ الْمُوْصِيَ کله ئې چې د يو سړی لپاره وصيت کړې وی.بيا دغه سړی موصی قتل کړې وی تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز وصيت باطليږی وَعِنْدَهُ لَا تَبْطُلُ او د امام شافعی رحمه الله په نيز وصيت نه باطليږی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ فِي الْفَصْلَيْنِ مَا بَيَّنَّاهُ (٢) او په دواړو صورتونو کي د امام شافعی رحمه الله په خلاف حجت هغه (حديث) دې.کوم چې موږ بيان کړې دې.

تشريح:- اوکه د وړاندې نه ئې وصيت کړې وو.او اوس موصی له، موصی (مورث) قتل کړو.نو اوس به هم قاتل لپاره وصيت باطليږی.خو دا زموږ مسلك دې.او د امام شافعی رحمه الله په نيز دواړو صورتونو کي وصيت جائز دې.مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه مونږه کوم حديث پيش کړې دې.دا په دواړو صورتونو کي د امام شافعی رحمه الله خلاف حجت دې.

## د وارثانو د اجازت حکم

وَلَوْ أَجَازَتْهَا الْوَرَثَةُ او که وارثانو د وصيت اجازت ورکړو جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ (٢) نو د طرفينو رحمهما الله په نيز جائز دې وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: لَا تَجُوْزُ و امام ابويوسف رحمه الله اوفرمائيل.چه جائز نه دې لِأَنَّ جِنَايَتَهُ بَاقِيَةٌ وَالْإِمْتِنَاعُ لِأَجْلِهَا ځکه چې د قاتل جنايت پاته دې.او د وصيت ممتنع کيدل، د جنايت په وجه دی وَلَهُمَا أَنَّ الْإِمْتِنَاعَ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د وصيت ممتنع کيدل، د وارثانو د حق په وجه دی لِأَنَّ نَفْعَ بُطْلَانِهَا يَعُوْدُ إِلَيْهِمْ كَنَفْعِ بُطْلَانِ الْمِيرَاثِ ځکه چې د وصيت باطليدو نفع وارثانو اړخ ته واپس کيږی.او لکه څنګه چې د قاتل د ميراث باطليدو نفع (وارثانو اړخ ته واپس کيږی) وَلِأَنَّهُمْ لَا يَرْضَوْنَهَا لِلْقَاتِلِ كَمَا لَا يَرْضَوْنَهَا لِأَحَدِهِمْ او ځکه چې وارثان به قاتل لپاره د وصيت نه نه

(١) من حديث على رضي الله عنه أخرجه الدارقطنى فى سننه (٢٣٦\٤)_
(٢) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى الخانية (٤٢٣\٤) وملتقى (٤١٨\٤) والهندى (٩١\٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٢\٢)-



راضی کيږی.لکه څنګه چې به هغه وصيت سره نه راضی کيږی.پخپلو کي د يوکس دپاره،

تشريح:- اوس وړاندې تير شو.چه قاتل د وصيت نه هم محروميږی.او د ميراث نه هم،خو که موصی د قاتل لپاره وصيت اوکړو.او وارثانو ددې اجازت ورکړو.نو اوس څه حکم دې؟ نو په دې کي د طرفينو او د امام ابويوسف رحمه الله اختلاف دې.امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.که وارثان اجازت ورکړی.بيا به هم وصيت جائز نه وی.او طرفين حضرات رحمهما الله فرمائی.چه اوس به وصيت جائز وی.

① د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه د وارثانو اجازت ور کاوه سره به د قاتل هغه جرم نه ختميږی.د کوم په وجه چې هغه د وصيت نه محروم کړې شوې وو.او هرکله چې هغه جرم نه ختميږی.نود قاتل حرمان به هم پخپل حال باندې پاتې وی.

② د حضرات طرفينو رحمهما الله دليل دا دی.چه د قاتل د ميراث نه محرومولو اصل راز د وارثانو حق دې. ځکه چې وصيت باطلولو نفع وارثانو ته کيږی.لکه مثلاً که قاتل د ميراث نه محروم کړې شی.نو ددې نفع به هم وارثانو ته رسيږی.او وارثان چې لکه څنګه پخپلو کي د يوکس لپاره وصيت باندې نه راضی کيږی.دغه ډول به دوی قاتل لپاره وصيت کاوه سره هم نه راضی کيږی.خو که دوی پخپلو کي د يو وارث لپاره وصيت باندې راضی شی.او ددې وصيت اجازت ورکړی.نو وصيت جائز کيږی.دغه ډول که وارثان قاتل لپاره هم اجازت ورکړی.نو وصيت به جائز وی.او د امام ابويوسف رحمه الله دا فرمائيل، چې د قاتل دوصيت نه محروميدل، د عقوبت (او سزا) په طوردی.دا نه منو.ځکه چې دې کي عامد او خطاکار دواړه برابر دی.حالانکه خطاکار مستحق د عقوبت نه وی.

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل (وَلَا تَجُوْزُ لِوَارِثِهِ) او د موصی وراث لپاره وصيت جائز نه دی.د نبی ﷺ د فرمان په وجه لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ {أَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى أَعْطٰى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ أَلَا لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ} (١) الله تعالى هرحق والا ته د هغه حق ورکړې دې واورئ! چې وارث لپاره وصيت نشته وَلِأَنَّهُ يَتَأَذَّى الْبَعْضُ بِإِيْثَارِ الْبَعْضِ اوځکه چې بعضو ته به تکليف وی.بعضو ته د ترجيح ور کاوه په وجه فَفِي تَجْوِيْزِهٖ قَطِيْعَةُ الرَّحِمِ نو ددې په جائز ساتلو کي قطع رحمی ده وَلِأَنَّهُ حَيْفٌ بِالْحَدِيْثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ او ځکه چې دا (وارث لپاره وصيت کول) حيف او ظلم دې.د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړې دې

حل اللغة: ① يتاذي: ضرر ملاويږی، تکليف ملاويږی ② ايثار: ترجيح ورکول ③ حيف: ظلم

تشريح:- لکه څنګه چې قاتل لپاره وصيت جائز نه دې.دغه ډول وارث لپاره هم وصيت جائز نه دې. ① اول خو ځکه چې حديث کي وارث لپاره د وصيت نه منع فرمائيلې شوې ده.ځکه چې الله تعالى هر حقدار ته د هغه حق پخپله ورکړو.يعنی د ميراث په ذريعه، بيا به د وارث لپاره د وصيت څه مطلب وی. ② او دويمه وجه دا هم ده.چه په داسې کاوه کي، چونکه بعضو وارثانو ته په نورو بعضو باندې ترجيح ورکول دی.چه دا به د رشته دارانو نه د قطع تعلق ذريعه جوړيږی. ③ او وارث لپاره وصيت کاوه ته په حديث کي حيف (ظلم) هم ارشاد فرمائيلې شوې دې.

وَيُعْتَبَرُ كَوْنُهُ وَارِثًا أَوْ غَيْرَ وَارِثٍ وَقْتَ الْمَوْتِ لَا وَقْتَ الْوَصِيَّةِ او دده وارث کيدل يا د وارث نه کيدلو اعتبار به د مرګ په وخت کيږی.د وصيت په وخت به نه کيږی لِأَنَّهُ تَمْلِيْكٌ مُضَافٌ إِلٰى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې وصيت داسې تمليك دې.چه دا د مرګ نه روستو اړخ ته مضاف دې وَحُكْمُهُ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ او د وصيت حکم د مرګ نه روسته ثابتيږی

تشريح:- ④ بيا د وارث کيدو يا نه کيدو اعتبار د وصيت په وخت نه دې. بلکه د مرګ په وخت دې.نوکه يو مريض د خپل رور لپاره وصيت اوکړو.او د وصيت نه روستو د مريض خوئې پيدا شو.نو اوس رور وارث پاتې نشو.نو وصيت جائز دې.اګرچه د وصيت په وخت هغه (رور) وارث وو. او د مرګ د وخت اعتبار ځکه شوې دې.چه د

(١) من حديث أبى أمامة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الوصايا باب ٦ رقم ٢٨٦٩)_

وصيت معنى مالك جوړول دي.چه دا د مرګ نه روستو اړخ ته مضاف دی.نو د وارث کيدو اعتبار به هم دغه وخت کولې شي.او د وصيت حکم به هم د مرګ نه روستو ثابتيږي.نو د وارث کيدو يا نه کيدو اعتبار به هم د مرګ په وخت کيږي.د وصيت په وخت به نه کيږي.

وَالْهِبَةُ مِنَ الْمَرِيضِ لِلْوَارِثِ فِي هٰذَا نَظِيرُ الْوَصِيَّةِ او د مريض د اړخه وراث لپاره هبه کول، په دې سلسله کې (چې دده د وارث کيدو اعتبار د مرګ په وخت دې) د وصيت پشان دې لِأَنَّهَا وَصِيَّةٌ حُكْمًا حَتّٰى تَنْفُذَ مِنَ الثُّلُثِ ځکه چې هبه د حکم په اعتبار سره وصيت دې.تردې چې هبه د دريمې برخې مال نه نافذ کيږي وَإِقْرَارُ الْمَرِيضِ لِلْوَارِثِ عَلٰى عَكْسِهِ او وارث لپاره د مريض اقرار ددې په عکس دې لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي الْحَالِ ځکه چې دا فی الحال تصرف دې فَيُعْتَبَرُ ذٰلِكَ وَقْتَ الْإِقْرَارِ نو دا به د اقرار په وخت معتبر وی.

تشريح:- که مريض په مرض الموت کي هبه اوکړی.نو دده هبه هم د وصيت په درجه کي ده.نو وارث لپاره به هبه معتبر نه وی.او دلته به هم د وارث کيدو اعتبار د مرګ په وخت کيږی.د وصيت په وخت به نه کيږی.ځکه چې حکماً هبه د وصيت په درجه کي ده.هم دا وجه ده.چه لکه څنګه وصيت په دريمه برخه مال کي نافذ کيږی.دغه ډول هبه هم په دريمه برخه مال کي نافذ کيږی.اوکه مريض وارث لپاره اقراراوکړی.نو دا اقرار معتبر نه دې.خو دلته د وراث کيدو اعتبار د اقرار په وخت دې.د مرګ په وخت نه دې.نو دلته به د اقرار د وخت اعتبار کولې شي.

## څيني وارثان وارث لپاره د وصيت اجازت ورکوی او څيني نه ورکوی نو څه حکم دې؟

قَالَ (إِلَّا أَنْ يُجِيزَهَا الْوَرَثَةُ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.خو دا چې دا وصيت وارثان جائز اوګرځوی وَيُرْوٰى هٰذَا الْإِسْتِثْنَاءُ فِيمَا رَوَيْنَاهُ او دا استثناء په هغه حديث کي نقل ده.کوم چې موږ روايت کړې دې وَلِأَنَّ الْإِمْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ او ځکه چې د وصيت ممتنع کيدل، د وارثانو د حق په وجه دی فَتَجُوزُ بِإِجَازَتِهِمْ نو وصيت دهغوی په اجازت سره جائز دې وَلَوْ أَجَازَ بَعْضٌ وَرَدَّ بَعْضٌ اوکه بعضو اجازت ورکړو.او بعضو رد کړو تَجُوزُ عَلَى الْمُجِيزِ بِقَدْرِ حِصَّتِهِ لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهِ نو اجازت ورکونکي باندې د هغوی د برخې په اندازه جائز دې.پخپل ځان باندې د اجازت ور کاوه د ولايت په وجه وَبَطَلَ فِي حَقِّ الرَّادِّ او د ردکونکی په حق کي وصيت باطل دې.

تشريح:- وراث لپاره وصيت جائز نه دې.خوکه وارثان اجازت ورکړی.نو بيا جائز دې.ځکه چې امتناع هم د دوی د حق په وجه وه.نو هرکله چې هغوی اجازت ورکړو.نو جائز شو.او دا استثناء په حديث کي هم موجود ده.ځکه حديث کي دی.چه «لا تجوز الوصية لوارث إلا ان يشاء الورثة» او که بعضو وارثانو اجازت ورکړو.او بعضو اجازت ورنکړو.بلکه دا ئې رد کړو.نو د ردکونکی په حق کي وصيت باطل شو.او د اجازت ورکونکی په حق کي د خپلې برخې په اندازه صحيح دې.ځکه چې اجازت ورکونکی ته پخپل ځان باندې ولايت حاصل دې.

## د مسلمان او ذمی د يو بل لپاره د وصيت کولو حکم

قَالَ (وَيَجُوزُ أَنْ يُوصِيَ الْمُسْلِمُ لِلْكَافِرِ وَالْكَافِرُ لِلْمُسْلِمِ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.او جائز دې چې وصيت اوکړی مسلمان کافر دپاره، اوکافر د مسلمان لپاره فَالْأَوَّلُ لِقَوْلِهِ تَعَالٰى {لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ} الْآيَةَ نو اول د الله تعالى د فرمان «لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ......» په وجه وَالثَّانِي لِأَنَّهُمْ بِعَقْدِ الذِّمَّةِ سَاوَوُا الْمُسْلِمِينَ فِي الْمُعَامَلَاتِ او دوهم په دې وجه چې کافران عقد ذمه په وجه معاملاتو کي د مسلمانانو برابر شو.وَلِهٰذَا جَازَ التَّبَرُّعُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ ځکه چې په حالت د ژوند کي د دواړو طرفونو نه احسان کول جائز دی.نو هم دغه ډول د مرګ نه روستو هم (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ الْوَصِيَّةُ لِأَهْلِ الْحَرْبِ بَاطِلَةٌ) لِقَوْلِهِ تَعَالٰى {إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ} الْآيَةَ او په جامع صغير کي دی.چه د اهل حرب لپاره وصيت باطل دې.د الله تعالى د فرمان «إِنَّمَا يَنْهَاكُمْ» په وجه.

حل اللغة: ① التبرع: احسان»



تشريح:- که مسلمان ذمی لپاره او ذمی د مسلمان لپاره وصيت اوکړی.نوجائز دې.ځکه چې وصيت يو تبرع (احسان) دی.او ذميان هم د تبرع او احسان قابل دی.البته هغه کافر حربی کوم چې دارالحرب کي دې.هغه لپاره وصيت باطل دې.البته که هغه مستامن وی.نو دهغه حکم هم د ذمی پشان دې.نو مرغينانی رحمه الله د جواز لپاره آيت او بطلان لپاره ئې دوهم آيت پيش کړې دې.رومبی آيت ﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ ۚ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ﴾ الله تعالى تاسو ته هغه خلګو سره د نيکۍ او د انصاف سلوک کاوه نه نه منع کوی.چه هغوی نه د دين په اړه کي تاسو سره جنګ کوی.او نه هغوی تاسو د ستاسو د کورونو نه اوبشکلی یئ،، نو په دې آيت کي د ذميانو لپاره په ژوند کي د تبرع او احسان جواز ثابت شو.او ور سره دا هم ثابته شوه.چه ددوی لپاره وصيت هم جائز دې.

① دوهم آيت ﴿إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلٰى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ﴾ ،، الله تعالى تاسو د هغه خلګو سره د دوستۍ کاوه نه منع کوی.کوم خلګ چې تاسو سره د دين په اړه کي جنګ کوی.او تاسو ئې ستاسو د کورونو نه اوبشکلی.او ستاسو په ويستلو کي شريك شو.ددې آيت نه چې لکه څنګه دا معلومه شوه.چه حربيانو سره دوستی کول ممنوع دی.دغه ډول دا هم معلومه شوه.چه ددوی لپاره وصيت کول باطل دی.او بيا وصيت د ژوندو لپاره وی.او زموږ په نيز حربی د مړی په درجه کي دې.نو دده لپاره وصيت څنګه جائز کيداې شي.

## د مرګ نه روستو د وصيت قبلولو يا رد کولو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.(وَقَبُولُ الْوَصِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ) او د وصيت قبلول د مرګ نه روسته دی فَإِنْ قَبِلَهَا الْمُوصٰى لَهُ حَالَ الْحَيَاةِ أَوْ رَدَّهَا فَذٰلِكَ بَاطِلٌ نو که موصی له د موصی په ژوند کي وصيت قبول کړو.يا ئې رد کړو.نو دا باطل دې.لِأَنَّ أَوَانَ ثُبُوتِ حُكْمِهِ بَعْدَ الْمَوْتِ لِتَعَلُّقِهِ بِهِ ځکه چې د وصيت د حکم ثابتيدو وخت د مرګ نه روسته دې.د وصيت متعلق کيدو په وجه مرګ سره، فَلَا يُعْتَبَرُ قَبْلَهُ كَمَا لَا يُعْتَبَرُ قَبْلَ الْعَقْدِ نو قبلول او ردکول به د مرګ نه وړاندې معتبر نه وی.لکه څنګه چې د عقد نه وړاندې نه معتبر کيږی.

تشريح:- په ميراث کي دا شرط نشته.چه وارث ئې قبول هم کړی.ځکه چې ميراث کي اسباب نه وی.چه ددې د قبلولو حاجت راپيښ شی.بلکه ارث خو په طريقه د خلافت دې.او په هبه کي چې لکه څنګه ملك جديد حاصليږی.دغه ډول په وصيت کي هم ملك جديد حاصليږی.نو په وصيت کي د وصيت د جواز لپاره اګرچه د موصی له قبلول شرط نه دی.خود موصی به د مالك کيدو لپاره د موصی له قبلول شرط دی.البته بعضې صورتونه داسې دی.چه دا د موصی له د قبلولو نه بغير استحسانا جائز دی.لکه مثلاً د وصيت نه روستو د موصی انتقال اوشی.بيا د قبلولو او رد کاوه نه بغير د موصی له هم انتقال اوشی.نو استحساناً به موصی به د موصی له د وارثانو وی. «وسيجئ تفصيله»

① بهرحال ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه د موصی له د مملوك کيدو لپاره د موصی له د اړخه قبلول پکار دی.خو دا قبلول د موصی د مرګ نه روسته کيدل پکار دی.د موصی په ژوند کي چې کوم قبلول او ردکول وصيت نه وړاندې وی.د هغې هيڅ اعتبار نشته.ځکه چې لکه څنګه د هغه قبلولو هيڅ اعتبار نشته .کوم عقد چې د ده.چه د وصيت د حکم ثبوت د مرګ نه روسته دې.نو قبلول به هم دغه وخت معتبر وی.دغه ډول د هغه قبلولو اعتبار نشته.کوم چې د وصی په ژوند کي وی.ددې وجه بنکاره

## د دريمې حصې مال نه کم کښې د وصيت کولو د استحباب بيان

قَالَ (وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُوصِيَ الْإِنْسَانُ بِدُونِ الثُّلُثِ) سَوَاءٌ كَانَتِ الْوَرَثَةُ أَغْنِيَاءَ أَوْ فُقَرَاءَ امام قدوری رحمه الله فرمائيلي دی.او مستحب دی.چه انسان د ثلث نه دکم وصيت اوکړی.که وارثان توانګر وی.او که غريبانان وی لِأَنَّ فِي التَّنْقِيصِ

صِلَةَ الْقَرِيبِ بِتَرْكِ مَالَهُ عَلَيْهِمْ بِخِلَافِ اسْتِكْمَالِ الثُّلُثِ خکه چې د ثلث نه کمولو کې نژدې رشته دار باندې صله رحمي کول دی .هغوی باندې خپل پریخودو سره،په خلاف د ثلث د مکمل کولو ،لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ تَمَامُ حَقِّهِ فَلَا صِلَةَ وَلَا مِنَّةَ خکه چې دا خو خپل حق پوره وصولول دی.نو دا نه صله رحمي ده.او نه څه احسان دې

حل اللغة: ① تنقیص: کمول ② استکمال: پوره کول③ استیفاء: وصولول﴾

تشریح:- شریعت انسان لره دده د ژوند په آخری لمحاتو کې پخپل دریمه برخه مال کې د تصرف اختیار ورکړې دې.نو په دریمه برخه کې دده لپاره وصیت کول جائز دی.خو هغه لپاره مستحب دا دی.چه وارثان که مالداره وی او که غریبانان وی.د پوره دریمې وصیت اونکړی.بکله د کم وصیت اوکړی.خکه چې د کم وصیت کاوه په صورت کې چې کوم مال ده خپلو وارثانو لپاره پریښودې دې.نو په دې کې خپلوانو او رشته دارانو سره سلوك او صله رحمي ده.چه دا محمود فعل دې.اوکه ده د پوره دریمې وصیت اوکړو.نو ده خپل حق وصول کړو.نو دا هیڅ صله رحمي، او احسان او حسن سلوك نه دې.بهرحال د ثلث نه د کم وصیت دې اوکړی.

ثُمَّ الْوَصِيَّةُ بِأَقَلَّ مِنَ الثُّلُثِ أَوْلَى أَمْ تَرْكُهَا؟بیا د دریمې نه کم وصیت کول غوره دی.یا د وصیت پریښول (غوره دی) قَالُوا إِنْ كَانَتِ الْوَرَثَةُ فُقَرَاءَ وَلَا يَسْتَغْنُونَ بِمَا يَرِثُونَ مشائخو رحمهم الله فرمائیلي دی.که وارثان غریبانان وی.او د میراث مقدار سره هغوی نه مالداره کیږی فَالتَّرْكُ أَوْلَى نو وصیت پریښول غوره دی لِمَا فِيهِ مِنَ الصَّدَقَةِ عَلَى الْقَرِيبِ خکه چې دې کې رشته دار باندې صله رحمي کول دی وَقَدْ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ عَلَى ذِي الرَّحِمِ الْكَاشِحِ}(١) او نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی.چه بهترینه صدقه په داسې ذی رحم باندې ده.چه په دې سره هغه نه خوشحالیږی وَلِأَنَّ فِيهِ رِعَايَةَ حَقِّ الْفُقَرَاءِ وَالْقَرَابَةِ جَمِيعًا او خکه چې په دې کې د غریبانو او رشته دارانو دواړو لحاظ دې.

حل اللغة: ① الکاشح: خوشحالی کونکې ② القرابة: خپلولی﴾

تشریح:- بیا دلته دا سوال پیدا کیږی.چه د ثلث نه د کم وصیت کول اولی دی.یا ددې پریښول اولی دی؟نو فقهاو ددې څه تفصیل بیان کړې دې.فرمائی.که وارثان غریبانان وی.او د میراث چې کوم مقدار دوی ته ملاویږی.په دې سره هغوی نه مالداره کیږی.نو په داسې صورت کې وصیت نه کول، افضل او غوره دی.خکه چې په دې صورت کې به رشته دار باندې د صله رحمۍ ثواب ملاویږی.او په دې صورت کې د فقیرانو او رشته دارانو د دواړو د حقوقو رعایت دې.او په مسند احمد کې روایت دې. ﴿افضل الصدقة علی ذی الرحم الکاشح﴾ ،یعنی پخپل هغه ذی رحم باندې صدقه کول افضل دی.چه هغې سره سړې نه خوشحالیږی ،، خکه چې په دې کې د نفس مخالفت دې.

## که وارثان توانګر وی نو وصیت کول افضل دی اوکه نه کول

وَإِنْ كَانُوا أَغْنِيَاءَ أَوْ يَسْتَغْنُونَ بِنَصِيبِهِمْ فَالْوَصِيَّةُ أَوْلَى اوکه وارثان توانګر وی.یا هغوی پخپلې برخې سره توانګر شی.نو وصیت اولی دې لِأَنَّهُ يَكُونُ صَدَقَةً عَلَى الْأَجْنَبِيِّ خکه چې وصیت به اجنبی باندې صدقه وی وَالتَّرْكُ هِبَةٌ مِنَ الْقَرِيبِ وَالْأُولَى أَوْلَى او وصیت پریښول به په رشته دار باندې دی.او ړومبې (صدقه) غوره او افضله ده (د هبې نه). لِأَنَّهُ يَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللهِ تَعَالَى خکه چې صدقې سره د الله تعالی رضامندی لټون کولای شی وَقِيلَ فِي هَذَا الْوَجْهِ يُخَيَّرُ لِاشْتِمَالِ كُلٍّ مِنْهُمَا عَلَى فَضِيلَةٍ او ویلې شوی دی. چې په دې صورت کې موصی ته اختیار دې.چه په دې دواړو کې د هر یو په یو فضیلت باندې د مشتمل کیدو په وجه وَهُوَ الصَّدَقَةُ وَالصِّلَةُ او هغه صدقه یا صله رحمي ده فَيُخَيَّرُ بَيْنَ الْخَيْرَيْنِ نو موصی ته به د دواړو نیکو په منځ کې اختیار ورکولې شی.

تشریح:- که وارثان تنګدسته او غریبانان وی.نو ددوی حکم خو تیر شوې دې.اوکه توانګر وی.یا د میراث په هغه برخې سره دوی مالدره کیږی.کوم چې به دوی ته ملاویږی.نو بیا وصیت کول افضل دی.خکه چې د وصیت کاوه

(١) من حدیث أبی أیوب رضي الله عنه أخرجه أحمد فی مسنده(٤١٦١٥)_



په صورت کې به دا صدقه وی.او د وصیت پریخودو په صورت کې به دا پخپل نژدې رشته دار باندې هبه وی.او په اجنبی باندې صدقه کول، پخپل نژدې رشته دار باندې د هدیې کاوه نه غوره دې.خکه چې د صدقې مقصود د الله تعالی رضا حاصلول دی.او په دې صورت کې بعضې فقهاو داسې فرمائیلي دی.چه موصی ته اختیار دې.که صدقه اختیاروی.او که هبه اختیاروی.خکه چې دواړه پخپل ځائې نیك عملونه دی.نو کوم یو چې غواړی.اختیار دې کړی.

## د وصیت قبلولو نه بغیر د ملکیت مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل ﴿وَالْمُوصَى بِهِ يُمْلَكُ بِالْقَبُولِ﴾(١) او د موصی به د قبلولو په وجه ملکیت کې راځی

تشریح:- ددې مسئلې څه تفصیل اوس وړاندې تیر شوې دې.هلته فرمائیلي شوی وو.چه وصیت قبلول د مرګ نه روستو معتبر دې.بهرحال زموږ په نیز چې ترکومه پورې موصی له قبول نکړی.تر هغه وخته پورې به هغه د موصی به نه مالك کیږی.

خِلَافًا لِزُفَرَ وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ هُوَ يَقُولُ: الْوَصِيَّةُ أُخْتُ الْمِيرَاثِ په خلاف د امام زفر رحمه الله، او هم دا د امام شافعي رحمه الله د دوه اقوالو کې یو قول دې.دوی فرمائی.چه وصیت د میراث خور ده إِذْ كُلٌّ مِنْهُمَا خِلَافَةٌ خکه چې دوی دواړو کې هریو خلافت دې لِمَا أَنَّهُ انْتِقَالٌ خکه چې دا انتقال دې ثُمَّ الْإِرْثُ يَثْبُتُ مِنْ غَيْرِ قَبُولٍ فَكَذَلِكَ الْوَصِيَّةُ بیا ارث د قبول نه بغیر ثابتیږی.نو هم دغه ډول وصیت دې

تشریح:- د امام شافعي او امام زفر رحمهما الله مذهب﴿ په دې کې د امام زفر رحمه الله او د یو قول مطابق د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې.دا حضرات فرمائی.چه د قبلولو نه بغیر به موصی له د موصی به مالك جوړیږی.ددې حضراتو دلیل دا دې.چه وصیت د میراث خور ده.او په میراث کې د وارث د قبلولو نه بغیر ملکیت ثابتیږی.دغه ډول د قبلولو نه بغیر به په وصیت کې هم ملکیت ثابتیږی.خکه چې میراث او وصیت دواړو کې د مړی د اړخه خلافت دې.خکه چې دواړو کې د مورث د اړخه ملکیت منتقل کیږی.او وارث یا موصی له اړخ ته راځی.

وَلَنَا أَنَّ الْوَصِيَّةَ إِثْبَاتُ مِلْكٍ جَدِيدٍ او زموږ دلیل دا دې.چه وصیت د ملك جدید اثبات دې وَلِهَذَا لَا يَرُدُّ الْمُوصَى لَهُ بِالْعَيْبِ وَلَا يُرَدُّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ هم په دې وجه موصی له د عیب په وجه نشی واپس کولې.او نه د عیب په وجه موصی له باندې واپس کیدای شی وَلَا يَمْلِكُ أَحَدٌ إِثْبَاتَ الْمِلْكِ لِغَيْرِهِ إِلَّا بِقَبُولِهِ او د خپل غیر لپاره دهغه د قبلولو نه بغیر د ملك د اثبات مالك نه دې. أَمَّا الْوِرَاثَةُ فَخِلَافَةٌ حَتَّى يَثْبُتَ فِيهَا هَذِهِ الْأَحْكَامُ بهرحال وراثت خلافت دې.تردې چې په وراثت کې به دا احکام جاری کیږی ،فَيَثْبُتُ جَبْرًا مِنَ الشَّرْعِ مِنْ غَيْرِ قَبُولٍ نو (وارث دپاره) به د قبلولو نه بغیر د شریعت د اړخه جبراً (په زبردستۍ) ملك ثابتیږی.

حل اللغة: ① جدید: نوې ② جبر: زبردستی،زور﴾

تشریح:- او زموږ دلیل دا دې.چه میراث خو خلافت دې.په دې کې د ملك جدید اثبات نشته.او په وصیت کې د ملك جدید اثبات دې.او په میراث کې د جدید ملك د اثبات نه بغیر وارث د مورث په ځائې راځی.په وصیت کې د ملك جدید اثبات دې.ددې واضح دلیل دا دې.که مریض موصی یو شئ واخستلو.او مثلاً د زید لپاره ئې وصیت اوکړو.بیا زید دا شئ عیب دار اوموندلو.نو زید ته دا اختیار نشته.چه ددې عیب په وجه دا شئ د موصی بائع ته واپس کړی.او که یو مریض د خپل واړه مال وصیت اوکړو.مثلاً د زید دپاره، بیا مریض د ترکې نه څه شئ خرخ کړو.او مشتری په دغه شئ کې عیب اوموندلو.نو مشتری ته به دا حق نه وی.چه دا موصی له ته واپس کړی.او که وصیت کې موصی له لپاره د ملك ثبوت په طریقه د خلافت وې.نو په دواړو صورتونو کې به د واپس کاوه اختیار

(١) القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله کذا فی الفقه الإسلامی (٢٢١٨) وردالمحتار(٤٦٥١٥) وملتقی (٤٢٠١٤) والهندیة (٩٠١٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٢١٢)-

حاصل وو.

لنډيز د كلام داچه په وصيت كي د ملك جديد اثبات دي.او هيڅ يوكس د چا ملكيت هغه وخته پورې نشي ثابتولى. تركومه پورې ئې چې هغه قبول نكړي.او پاتې شوه مسئله د وراثت، نو دا دخلافت په طريقه ده.په دې وجه وراثت كي به د واپس كاوه احكام جاري كيږي.يعني وارث ته به حق وي.چه كه په هغه شئ كي ئې عيب اوموندلو.كوم چې مورث اخستې وو.نو دا به په بائع باندې واپس كوي.او دغه ډول به مشترى ته حق وي.چه كله دې په هغه شئ كي عيب اومومي.كوم چې هغه اخستې وو.نو دا به په وارث باندې واپس كوي.او كوم شئ چې په طريقه د خلافت ثابتيږي.نو د هغې مدار په قبلولو باندې نه وي.بلكه هغه خو د قبلولو نه بغير د شريعت د اړخه جبراً ثابتيږي.

### د وصيت قبلولو نه وړاندې د موصى له مړكيدو مسئله

قال (الا في مسألة واحدة) امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل.خو په يوه مسئله كي (د موصى له په ملك كي داخليږي). (وهي أن يموت الموصي ثم يموت الموصى له قبل القبول) و هغه دا ده.چه موصى مړ شي.بيا د قبلولو نه وړاندې موصى له مړشي (فيدخل الموصى به في ملك ورثته استحسانا) نو موصى به د موصى له د وارثانو په ملكيت كي استحساناً داخليږي

تشريح:- موصى به به هغه وخت د موصى له په ملكيت كي داخليږي.كله چې د موصى له د اړخه قبول اوموندې شي.خو دا يوه مسئله استحساناً ددې اصولو نه مستثنى ده.او هغه دا ده.چه اول موصى مړشي .او تر اوسه پورې موصى له قبول كړې نه وو.چه هغه هم مړشو.نو دلته استحساناً دا حكم وركړې شوې دې.چه د موصى له وارثان به د موصى به وارث وى

والقياس أن تبطل الوصية لما بينا او قياس دا دې.چه وصيت باطل شي. (ان الملك موقوف على القبول فصار كموت المشتري قبل قبوله بعد ايجاب البائع) د هغه دليل په وجه كوم چې موږ چې ملك په قبول باندې موقوف دې.نو داسې شوه.لكه د مشترى مړكيدل، د بائع د ايجاب نه پس، د خپلو قبلولو نه وړاندې بيان كړې دي

تشريح:- اګرچه دلته د قياس تقاضه دا ده.چه وصيت باطل شي.ځكه چې د موصى له د اړخه قبول اونه موندې شو.نو ددې صورت داسې شو.لكه چې بائع ايجاب اوكړو.او مشترى تر اوسه پورې قبول كړې نه وو.چه دهغه انتقال اوشو.نو ايجاب باطل شو.دغه ډول دلته كي وصيت باطليدل پكار وو.خو موږ قياس پريښودې دې.او په استحسان مو عمل كړې دې.

وجه الاستحسان أن الوصية من جانب الموصي قد تمت بموته تماما لا يلحقه الفسخ من جهته او په استحسان دليل دا دې.چه وصيت موصى اړخ ته د هغه د مرګ په وجه، داسې تمام شوې دې.چه د موصى د اړخه دې ته فسخ نه متعلق كيږي (وإنما توقفت لحق الموصى له) او وصيت د موصى له د حق په وجه موقوف وى (فإذا مات) نو كله چې موصى له مړ شو (دخل في ملكه كما في البيع المشروط فيه الخيار إذا مات قبل الإجازة) نو موصى به دده په ملكيت كي داخل شو.لكه په هغه بيع كي (هم ملكيت كي داخليږي) په كومه كي چې مشترى لپاره خيار شرط لګولې شوې وى.كله چې مشترى د اجازت نه وړاندې مړ شي.

تشريح:- او د استحسان دليل دا دې.چه د موصى د اړخه خو وصيت مكمل او پوره دې.نو دده د اړخه به وصيت نه فسخ كيږي.البته تر اوسه پورې چې كوم وصيت موقوف دې.دا د موصى له د حق په وجه دې.نو هغه ته اختيار دې.كه غواړي.رد دې كړي.او كه غواړي.اجازت دې وركړي.خو هركله چې د قبول نه وړاندې موصى له مړ شو.نو موصى پخپله دده په ملكيت كي داخل شو.او ددې مثال بالكل داسې دې.لكه چې مشترى د خپل ځان لپاره خيار شرط كړې وى.او تر اوسه پورې مشترى اجازت نه وو وركړې.چه په دريو ورځو كي دننه هغه مړ شو.نو بيع مكمل كيږي.او بيع د مشترى وارثانو لپاره كيږي.دغه ډول دلته هم ده.



### د پور برابر د مال مالك لپاره د وصيت كولو حكم

قال امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (ومن أوصى) و چا چې وصيت اوكړو (وعليه دين يحيط بماله لم تجز الوصية) و هغه باندې دومره پور دې.كوم چې دده مال ته محيط (راګيرونكې) دې.نو وصيت جائز نه دې (لأن الدين يقدم على الوصية) ځكه چې پور په وصيت باندې مقدم دې (لأنه أهم الحاجتين) ځكه چې پور په دواړو حاجتونو كي زيات اهم دې (لأنه فرض والوصية تبرع) ځكه چې پور ادا كول فرض او وصيت احسان دې (وأبدا يبدأ بالأهم فالأهم إلا أن يبرئه الغرماء) او هميشه د اهم نه ابتداء كولې شي.بيا د هغې نه كوم چې ددې نه روستو اهم وى.خو دا چې قرضخواه هغه لره برى كړي (لأنه لم يبق الدين) ځكه چې پور پاته پاتې نشو (فتنفذ الوصية على الحد المشروع لحاجته إليها) نو وصيت به دهغه حده پورې نافذ كيږي.كوم چې مشروع دې. وصيت اړخ ته د موصى د حاجت په وجه.

حل اللغة ① الغرماء: جمع د غريم، قرضخواه ② تبرع: احسان ﴾

تشريح:- كه په يوكس باندې دومره پور وى.كوم چې دده مال راګيرونكې دې.نو دده لپاره وصيت كول جائز نه دي.ځكه چې دين وصيت باندې مقدم دې.د سراجي په پيل كي ددې بحث تير شوې دې.بيا په پور او وصيت كي زيات اهم حاجت پور ادا كول دى.ځكه چې پور ادا كول فرض دى.او وصيت خو صرف يو احسان دې.او د هميشه مسلم اصول دې.چه مخكي د اهم نه ابتداء كولې شى.بيا درجه په درجه (پاته پاتې پوره كولې شى).او هركله چې اهم پور دې.نو ابتداء به هم ددې نه كولې شى.ددې نه روسته د وصيت وار دې.البته كه قرضخواهانو مقروض د پور نه برى كړې وى.نو اوس به دده مذكوره وصيت جائز وى.ځكه چې پور د ختميدو په وجه مانع زائل شوې دې.نو په كوم صورت كي چې څومره وصيت جائز دې.هغه به اوس واړه جائز وى.ځكه چې موصى د وصيت محتاج دې.چه ددې وجه د كتاب الوصايا په پيل كي تيره شوې ده.

فائده① ❁ كه حربى مستامن د خپل واړه مال وصيت اوكړي.نو جائز دې.ځكه چې وارثان ئې نشته.(فتدبر) ﴿شامى ص:٤١٨،ج٥﴾

فائده② د چاچه نه څوك وارث وى.او نه په ده پور وى.نو هغه لپاره افضل دا دى.چه پخپل لاس سره د صدقه كاوه نه روسته چې كوم مال پاته پاتې شى.د هغې واړه وصيت اوكړي.﴿شامى ص:٤١٨،ج٥﴾

### د بچي د وصيت حكم او د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر

قال امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل (ولا تصح وصية الصبي) و د بچى وصيت صحيح نه دې (وقال الشافعي: تصح إذا كان في وجوه الخير) او امام شافعي رحمه الله فرمائى.چه صحيح دې.كله چې په نيكه لاره كي وى (لأن عمر رضي الله عنه أجاز وصية يفاع أو يافاع ①) (وهو الذي راهق الحلم) ځكه چې حضرت عمر رضي الله عنه د يفاع يا د يافع وصيت جائز اوګرځولو.او يفاع هغه ماشوم دې.چه دا بلوغ ته نژدې شو

حل اللغة ① الحلم: بلوغ ② راهق: نزديې شوې﴾

تشريح:- كه بچې وصيت اوكړي.نو صحيح دې اوكه نه؟په دې كي زموږ او د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې. زموږ په نيز صحيح دې.او د امام شافعي رحمه الله په نيز كه بچې د خير په كارونو كي وصيت اوكړي .نو جائز دې.په دې باندې امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) دليلونه پيش كړى دى. ①حضرت عمر رضي الله عنه د خپل بچى د وصيت اجازت وركړې وو.چه دا بلوغ ته نژدې وو.چه دده نوم عمرو بن سليم وو.او يفاع وائى.هغه بچى ته كوم چې بلوغ ته نژدې وى.

(ولأنه نظر له بصرفه إلى نفسه في نيل الزلفى) اړخ ته د الله د رضا حاصلولو لپاره (ولو لم تنفذ) او كه وصيت نافذ نكړې شى (يبقى على) ولأنه نظر له بصرفه إلى نفسه في نيل الزلفى ولو لم تنفذ يبقى على غيره نو مال به دده په غير باندې پاته

[1] من حديث عمرو بن سليم الزرقى أخرجه مالك فى الوصية رقم ٢)_

پاتې وي.

حل اللغة: ① زلفی: د الله تعالی رضا ② نیل: حاصلول﴾

تشریح:- ② د بچي د وصیت په صحیح کیدو کي دده لپاره شفقت دی.خکه که دده وصیت نافذ نشی.نو دده مال به غیر استعمالوی.اوکه وصیت نافذ شی.نو گویا چي هغه خپل مال پخپله استعمال کړو.خکه چي هغه ته به په نیك کار کي د خرج کاوه ثواب ملاویږی.چه ددې په وجه به هغه ته د الله تعالی په نیز قرب ملاویږی.

**د احنافو دلیل**

وَلَنَا أَنَّهُ تَبَرُّعٌ وَالصَّبِيُّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او زموږ دلیل دا دی.چه وصیت تبرع (او احسان) دی.او بچی د تبرع اهل نه دی. وَلِأَنَّ قَوْلَهُ غَيْرُ مُلْزِمٍ وَفِي تَصْحِيحِ وَصِيَّتِهِ قَوْلٌ بِإِلْزَامِ قَوْلِهِ او خکه چي د بچي قول ملزم نه دی.او دده په وصیت صحیح گرخولو کي دده د قول ملزم کیدو قائل کیدل دی

تشریح:- دا زموږ دلیل دی.ددې حاصل دا دی.چه بچي د تبرع اهل نه دی.حالانکه وصیت تبرع ده.او دویمه خبره دا ده.چه د بچي قول داسي نه دی.چه دا په ده باندې څه شی لازم کړی.او که دده وصیت حقیر اومنلي شی.نو دده د قول ملزم کیدل به لازمیږی.او دا باطل دی.

وَالْأَثَرُ مَحْمُولٌ عَلَى أَنَّهُ كَانَ قَرِيبَ الْعَهْدِ بِالْحُلُمِ مَجَازًا او اثر محمول دی په دی باندې چي دغه بچي د بلوغ په سلسله کي قریب العهد وو.د مجاز په طور أَوْ كَانَتْ وَصِيَّتُهُ فِي تَجْهِيزِهِ وَأَمْرِ دَفْنِهِ یا د هغه وصیت پخپل تجهیز او د کفن دفن په معامله کي وو. وَذَلِكَ جَائِزٌ عِنْدَنَا او دا زموږ په نیز جائز دی وَهُوَ يُحْرِزُ الثَّوَابَ بِالتَّرْكِ عَلَى وَرَثَتِهِ كَمَا بَيَّنَّاهُ او بچي به ثواب جمع کوی.مال پخپلو وارثانو کي د پریخودو په وجه، لکه څنگه چي مونږ دا بیان کړی دی.

تشریح:- دحضرت عمر رضی الله عنه د اثر خواب دا دی.چه دا بچي اوس اوس بالغ شوی وو.نو د مجاز په څلیریشتو علاقو کي د ماکان علاقي په وجه مجازاً هغه ته ایفاع اوونیلی شو.کنی په حقیقت کي هغه بالغ وو.یا ددې تاویل دا دی.چه دده وصیت د کفن دفن په سلسله کي وو.او دا وصیت زموږ په نیز هم جائز دی.او پاتي شوه خبره د ثواب، نو زیات ثواب په دې کي دی.چه مال خپلو وارثانو ته پریږدی.نو وصیت به باطل وی.

**د امام شافعی رحمه الله د دلیل جواب**

وَالْمُعْتَبَرُ فِي النَّفْعِ وَالضَّرَرِ النَّظَرُ إِلَى أَوْضَاعِ التَّصَرُّفَاتِ لَا إِلَى مَا يَتَّفِقُ بِحُكْمِ الْحَالِ او په نفع او ضرر کي معتبر د تصرفاتو وضعې ته کتلې شی.هغې ته نه کوم چي فی الحال اتفاق سره اوشی اعْتَبِرْهُ بِالطَّلَاقِ دا په طلاق باندې قیاس کړئ. فَإِنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ وَلَا وَصِيُّهُ وَإِنْ كَانَ يَتَّفِقُ نَافِعًا فِي بَعْضِ الْأَحْوَالِ چي بچي او دده وصی د طلاق مالك نه دی.اگرچه په بعضو حالاتو کي د طلاق د نافع کیدو اتفاق کیدای شی وَكَذَا إِذَا أَوْصَى ثُمَّ مَاتَ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ وَقْتَ الْمُبَاشَرَةِ او هم دغه ډول کله چي بچي وصیت اوکړو.بیا د بالغ کیدو نه روسته مړ شو.(نو د هغه وصیت به صحیح نه وی).د مباشرت (او د عمل) په وخت د اهلیت نه کیدو په وجه وَكَذَا إِذَا قَالَ إِذَا أَدْرَكْتُ فَثُلُثُ مَالِي لِفُلَانٍ وَصِيَّةٌ لِقُصُورِ أَهْلِيَّتِهِ او هم دغه ډول کله چي ده اوونیل.چه کله زه بالغ شم.نو زما دریمه برخه مال فلانی لپاره وصیت دی.دده د اهلیت د قاصر کیدو په وجه فَلَا يَمْلِكُهُ تَنْجِيزًا وَتَعْلِيقًا كَمَا فِي الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ بچي به د وصیت مالك نه وی.نو تنجیزاً او نه تعلیقاً، لکه څنگه چي په طلاق او عتاق کي (هم دا حکم دی) بِخِلَافِ الْعَبْدِ وَالْمُكَاتَبِ په خلاف د غلام او لِأَنَّ أَهْلِيَّتَهُمَا مُسْتَتِمَّةٌ وَالْمَانِعُ حَقُّ الْمَوْلَى فَتَصِحُّ إِضَافَتُهُ إِلَى حَالِ سُقُوطِهِ نو خکه چي ددوی دواړو اهلیت پوره دی.او مانع د آقا حق دی.نو د وصیت اضافت د مولی د حق ساقطیدو حالت اړخ ته صحیح دی.

حل اللغة: ① اوضاع: جمع د وضع، مقرر کول ② تنجیز: نافذ کول ③ تعلیق: معلق کول ④ مستتمة: پوره کیدونکي﴾

تشریح:- امام شافعی رحمه الله فرمائیلی وو.چه د بچی نفع د وصیت په جواز کي ده.نو دهغې خواب ئي ورکړو.چه که دا



اومنلي شی.چه په وصیت کي د بچي نفع ده.بیا هم یو اصول یا ساتی: چه د نفعي او نقصان په اړه کي به جنس فعل ته کتلي شی.چه دا ضررناك دی، اوکه د نفعي دی.که اتفاق سره څه نفع حاصله شی.نو اتفاقیاتو ته به نشی کتلي.لکه څنگه چي طلاق بجنسه ضار دی. اگرچه داسي اتفاق هم کیدای شی.چه یو خاني کي طلاق نافع جوړ شی.مثلاً جیلي بی بی له طلاق ورکړی.او دهغي مالداري خور سره نکاح اوکړی.خو دا امر اتفاقی دی.په دې باندې به بنا (بنیاد) نشی ایخودې.بلکه په کلی امورو باندې بنا (بنیاد) ایخودې شی.خکه چي طلاق فی نفسه د خپلي وضعي په اعتبار سره مضر دی.نو بچي او دده وصی به د طلاق مالکان نه وی.که بچي وصیت اوکړو.او بیا د بلوغ نه روستو مړ شو.نو چونکه د وصیت کاوه په وخت هغه د وصیت اهل نه وو.نو د هغه دا وصیت به هم صحیح نه وی.او هرکله چي بچي ته د وصیت اهلیت نشته.نو نه به تنجیزاً صحیح وی.او نه تعلیقاً ،نو که بچي داسي اووائی.چه کله زه بالغ شم.نو زما دریمه برخه مال د فلانی لپاره وصیت دی.نو دده دا وصیت هم باطل دی.لکه څنگه چي په طلاق او عتاق کي هم دا حکم دی.چه بچي ددې دواړو نه تنجیزاً مالك دی.او نه تعلیقا.

④ اوکه غلام یا مکاتب تعلیقاً وصیت اوکړو.چه کله زه آزاد شم.نو زما دومره مال فلانی لپاره وصیت دی.نو دا وصیت به صحیح وی.خکه چي په وخت د مباشرت دوی دواړو کي اهلیت شته.او د وصیت دجواز نه د آقا حق مانع دی.او کوم وخت اړخ ته چي دوی د وصیت نسبت کوی.هغه وخت د آقا حق ساقط دی.په دې وجه به ددوی وصیت جائز وی.

**د مکاتب د وصیت په اړه کښي اختلاف**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَلَا تَصِحُّ وَصِيَّةُ الْمُكَاتَبِ وَإِنْ تَرَكَ وَفَاءً) او د مکاتب وصیت صحیح نه دی.اگرچه وفاء (د بدل کتاب برابر مال) ئي پریښودې وی لِأَنَّ مَالَهُ لَا يَقْبَلُ التَّبَرُّعَ خکه چي دده مال تبرع نه قبلوی وَقِيلَ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ لَا تَصِحُّ او وئیلی شوی دی.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله قول صحیح نه دی وَعِنْدَهُمَا تَصِحُّ رَدًّا لَهَا إِلَى مُكَاتَبٍ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح دی.وصیت واپس کاوه سره، داسي مکاتب اړخ ته يَقُولُ كُلُّ مَمْلُوكٍ أَمْلِكُهُ فِيمَا أَسْتَقْبِلُ فَهُوَ حُرٌّ ثُمَّ عَتَقَ فَمَلَكَ چي هغه وائی.چه هر مملوك چي د هغه زه مالك شم.په راروانه زمانه کي نو هغه آزاد دی.بیا مکاتب آزاد کړی شي.بیا هغه مالك شو وَالْخِلَافُ فِيهَا مَعْرُوفٌ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ او په دې کي مشهور اختلاف دی.چه دا ددې په مقام کي پیژندلي شوی دی.

تشریح:- د مکاتب تعلیقاً وصیت خو جائز دی. ﴿کما مر﴾ خو تنجیزاً دده وصیت جائز نه دی.که دی د بدل کتابت برابر مال پریږدی.بیا به هم دده وصیت صحیح نه وی.خکه چي د مکاتب مال تبرع د سره نه قبلوی.هم دا وجه ده.چه دده عتق او هبه صحیح نه ده.او بعضو حضراتو وئیلی دی.چه د مکاتب وصیت د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول مطابق صحیح نه دی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح دی.صاحبینو رحمهما الله دا په هغه مسئله باندې قیاس کړې ده.کله چي یو مکاتب اووائی.چه زه په راروانه زمانه کي د کوم مملوك مالك شم.نو هغه آزاد دی.بیا دا مکاتب آزاد شو.او مالك جوړ شو.نو دا غلام به آزادیږی.حالانکه صاحبینو رحمهما الله چي په قیاس کي کومه جزئیه پیش کړې ده.په هغې کي هم اختلاف دی.چه د هغې تفصیل د جامع کبیر په کتاب الایمان کي شته.او د مکاتب د وصیت زیاتی تفصیلاتو لپاره ﴿مجمع الانهر او شامی﴾ اوگورئ.

**حمل لپاره د وصیت حکم**

قَالَ (وَتَجُوزُ الْوَصِيَّةُ لِلْحَمْلِ وَبِالْحَمْلِ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل.او وصیت جائز دی د حمل لپاره (إِذَا وُضِعَ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ الْوَصِيَّةِ) او د حمل وصیت (هم جائز دی). کله چي دا د وصیت د وخت نه د شپږو میاشتو نه په کم کي پیدا شی

تشریح:- که یو بچي په نس کي دی.او دده د یو مورث وفات اوشی.نو حمل ته به هم میراث ملاویږی.او میراث او وصیت گویا چي دواړه خویندې دی.نو که حمل لپاره وصیت اوکړې شی.نو جائز دی.او هم دغه ډول که د حمل

وصیت اوکړې شی.نو هغه هم جائز دې.مثلا اووانی.چه زما د وینځې په نس کې چې کوم بچې دې.دا فلانی سړی ته ورکړئ.نو دا هم صحیح دې.او وصیت جائز دې.خو دا وصیت حمل دپاره، یا وصیت د حمل هغه وخت جائز دې.کله چې حمل په نس کې موجود وی.ددې علامت دا دې.چه د وصیت د وخت نه د شپږو میاشتو نه په کم کې پیدا شی.

أما الأول بهرحال رومبې (حمل لپاره وصیت کول) فلأن الوصية استخلاف من وجه لأنه يجعله خليفة في بعض ماله نو خکه چې وصیت په یو اعتبار سره استخلاف دې.پخپل بعضې مال کې والجنين صلح خليفة في الإرث فكذا في الوصية او جنین په میراث کې د خلیفه کیدو صلاحیت لری.نو هم دغه ډول په وصیت کې (هم د خلیفه کیدو قابل دې) إذ هي أخته؛ خکه چې وصیت د میراث خور ده. إلا أنه يرتد بالرد خو وصیت په رد کاوه سره رد کیږی لما فيه من معنى التمليك خکه چې په دې کې د تملیک معنی ده.

**تشریح:-** بیا مرغیناني رحمه الله ددې دواړو جلا جلا دلیل بیان کړو.حمل لپاره وصیت جائز دې.ددې دلیل دا دې.چه وصیت فی الحال مالک جوړول نه دی.بلکه د میراث پشان په دې کې هم استخلاف دې.نو لکه څنګه چې میراث جائز دې.دغه ډول وصیت هم جائز دې.خکه چې وصیت او میراث پخپلو کې د یو بل مثالونه دی.صرف دومره توپیر دې.چه وصیت په رد کاوه سره ردکیږی.او میراث نه رد کیږی.خکه چې وصیت کې د موصی د اړخه تملیک (مالک جوړول) دی.او کوم خانې چې تملیک وی.هلته رجوع جائز ده.او په میراث کې تملیک نشته.بلکه صرف استخلاف دې.

بخلاف الهبة په خلاف د هبې لأنها تمليك محض ولا ولاية لأحد عليه ليملكه شيئا خکه چې هبه خالص تملیک دې.او په جنین باندې هیڅ چاته ولایت نشته.چه هغه ده لره د څه شي مالک جوړ کړی

**تشریح:-** حمل لپاره وصیت جائز دې.خو حمل لپاره هبه جائز نه ده.خکه چې هبه خالص تملیک دې.چه په دې کې هغه ده لره د څه شي مالک جوړ کړی.او چونکه حمل اوس لا نه دې پیدا شوې.نو په ده باندې اوس چاته ولایت نه دې حاصل شوې.په دې وجه هبه ناجائز ده.

وأما الثاني بهرحال دوهم فلأنه بعرض الوجود نو خکه چې جنین په وجود کې د راتلو په مقام باندې دې إذ الكلام فيما إذا علم وجوده وقت الوصية خکه چې کلام په هغه صورت کې دې.کله چې د وصیت په وخت دده وجود معلوم شی وبابها أوسع لحاجة الميت وعجزه او د مړی حاجت او دده د عاجزۍ په وجه د وصیت باب ډیر وسیع دې ولهذا تصح في غير الموجود كالثمرة او په دې وجه غیر موجود کې وصیت صحیح دې.لکه په میوو کې، فلأن تصح في الموجود أولى نو په موجود کې به په درجه اولی صحیح وی.

**تشریح:-** اوپاتې شو د حمل وصیت نو دا هم جائز دې.خکه چې زموږ خبره د داسې جنین حمل په اړه کې ده.چه دده د وصیت په وخت کې موجود کیدل معلوم وی.او هرکله چې دلته دده موجود کیدل معلوم شوی دی. نو دا جنین به یو څو ورځې روسته را موجود کیږی.او د مړی د حاجت او عجز په لحاظ سره د وصیت باب وسیع دې.او د وسعت دلیل دا دې.چه که یو کس وصیت اوکړو.چه زما په باغ کې کومې میوې راشی.دا د فلانی لپاره وصیت دې.نو دا وصیت جائز دې.حالانکه میوې اوس موجود نه دی.نو کوم شی چې موجود دې.د هغې وصیت به په درجه اولی جائز وی.

### د حامله وینځې چا لپاره وصیت کول او د حمل استثناء کول

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (ومن أوصى بجارية إلا حملها) او چا چې د وینځې وصیت اوکړو.خو د هغې د حمل نې اونکړو. صحت الوصية والاستثناء نو وصیت او استثناء صحیح ده لأن اسم الجارية لا يتناول الحمل لفظا ولكنه يستحق بالإطلاق تبعا خکه چې لفظ د جاریه (وینځه) په اعتبار د لفظ سره حمل ته ګډ نه دې.خو د لفظ جاریه د مطلق



ونیلو په وجه تبعاً د حمل استحقاق ثابتیږی فإذا أفرد الأم بالوصية صح إفرادها نو کله چې موصی یواخې د مور وصیت اوکړو.نو د مور افراد صحیح دې ولأنه يصح إفراد الحمل بالوصية فجاز استثناؤه او خکه چې د حمل د وصیت افراد صحیح دې.نو دده استثناء جائز ده ،وهذا هو الأصل أن ما يصح إفراده بالعقد او هم دا قاعده کلیه ده.چه په عقد کې د کوم شي افراد صحیح دې يصح استثناؤه منه نو د عقد نه د هغه شي استثناء صحیح ده إذ لا فرق بينهما خکه چې ددې دواړو په منځ کې هیڅ توپیر نشته ده وما لا يصح إفراده بالعقد او په عقد کې چې د کوم شي افراد صحیح نه دې لا يصح استثناؤه منه نو د عقد نه دهغه شي استثناء صحیح نه وقد مر في البيوع او دا قاعده کلیه په کتاب البیوع کې تیره شوې ده.

**حل اللغة:** ① افراد: خانله والې.

**تشریح:-** که موصی د وینځې وصیت اوکړو.او ددې د حمل استثناء نې اوکړله.نو د وینځې وصیت صحیح دې.او استثناء هم صحیح ده.نو حمل به په وصیت کې داخل نه وی.خکه چې لفظی اعتبار سره لفظ د جاریه حمل ته ګډ نه دې.خو که مطلق جاریه (وینځه) نې اووئیلې.او د حمل استثناء نې اونکړله.نو د تابع کیدو په وجه به حمل هم د وینځې لاندې داخل وی.او وصیت به صحیح وی.نو هرکله چې موصی یواخې د مور وصیت اوکړو.نو وصیت صحیح دې.او که یواخې د حمل وصیت اوکړی. نو دا هم جائز دې. نو ددې استثناء هم صحیح ده.خکه چې قاعده کلیه هم دا ده.چه د کوم شي یواخې عقد صحیح کیږی.د هغې د عقد نه استثناء هم کیداې شی.او د کوم شي چې خانله عقد نشی کیدې.د هغې استثناء هم نه صحیح کیږی.

### د وصیت نه د رجوع کولو حکم

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (ويجوز للموصي الرجوع عن الوصية) او موصی لپاره د وصیت نه رجوع جائز ده لأنه تبرع لم يتم فجاز الرجوع عنه كالهبة خکه چې وصیت یوه تبرع ده.چه دا پوره نشوه.نو د هبې پشان ددې نه رجوع جائز ده وقد حققناه في كتاب الهبة او موږ دا په کتاب الهبه کې بیان کړې دې ولأن القبول يتوقف على الموت او خکه چې قبول په مرګ باندې موقوف دې والإيجاب يصح إبطاله قبل القبول كما في البيع او د قبول نه وړاندې د ایجاب باطلول صحیح دی.لکه څنګه چې بیع کې (هم دا حکم دې).

**تشریح:-** که موصی د وصیت نه رجوع اوکړی.نو جائز دې.خکه چې وصیت تبرع ده.او تبرع چې ترکومه پورې تمام نشی.نو د هغې نه رجوع جائز ده.لکه څنګه چې د هبې د پوره کیدو نه وړاندې ددې نه رجوع جائز ده.چه ددې تفصیلی بیان په کتاب الهبه کې تیر شوې دې.او خکه چې قبول هغه معتبر دې.کوم چې د موصی د مرګ نه روستو وی.(کما مر) او اصول دا دې.چه که د ایجاب نه روسته قبول رانغې.نو د قبول نه مخکې د ایجاب ابطال جائز دې.لکه څنګه چې په بیع کې هم دا حکم دې.

### د وصیت نه د رجوع کولو دوې (دوه) طریقې

قال امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وإذا صرح بالرجوع أو فعل ما يدل على الرجوع كان رجوعا) أما الصريح فظاهر او کله چې موصی رجوع اوکړله.یا نې څه داسې کار اوکړو.کوم چې په رجوع باندې دلالت کوی.نو رجوع به وی.بهرحال صریح خو ښکاره دې وكذا الدلالة او هم دغه ډول دلالت لأنها تعمل عمل الصريح خکه چې دلالت د صریح پشان کار کوی فقام مقام قوله قد أبطلت نو دا دده د قول «قد ابطلت» په خانې قائم شو وصار كالبيع بشرط الخيار فإنه يبطل الخيار فيه بالدلالة او دا داسې شو.لکه بیع په شرط د خیار سره، چې په دې کې د دلالت په وجه خیار باطلیږی.

**حل اللغة:** ① صرح: تصریح اوکړه،ښکاره والې اوکړو.

**تشریح:-** وړاندې معلومه شوې ده.چه موصی لپاره د وصیت نه رجوع جائز ده.بیا فرمائی.چه د رجوع دوې (دوه) طریقې دی.① صراحت سره رجوع اوکړې شی.② کوم یو داسې کار اوکړې شی.چه هغه په رجوع باندې دلالت اوکړی.نو په دواړو صورتونو کې رجوع صحیح ده.خکه چې دلالت هم په صراحت سره د رجوع په درجه کې دی.او

دلالت دده د ﴿قد ابطلت﴾ په درجه کي دي.لکه که مشتری خپل خان لپاره خیار شرط کړي وی.نو په داسي کار کاوه سره به خیار باطلیږی.کوم چي د خیار په باطلولو باندي دلالت اوکړي.

ثُمَّ كُلُّ فِعْلٍ لَوْفَعَلَهُ الْإِنْسَانُ فِي مِلْكِ الْغَيْرِ یبیا هر هغه کار کوم چي یو انسان که د بل په ملك کي اوکړي. يَنْقَطِعُ بِهِ حَقُّ الْمَالِكِ نو هغې سره د مالك حق منقطع کیږی فَإِذَا فَعَلَهُ الْمُوصِي كَانَ رُجُوْعًا نو هرکله چي دغه کار موصی اوکړو.نو دا به رجوع وی وَقَدْ عَدَدْنَا هٰذِهِ الْأَفَاعِيلَ فِي كِتَابِ الْغَصْبِ او دا کارونه موږ په کتاب الغصب کي بیان کړي دي.

تشریح:- ددي خاني نه مرغیناني رحمه الله یو څو قاعدي او اصول پیش کوی.دا رومبۍ قاعده ده.فرمائی.که یوکس د بل په ملکیت کي داسي کار اوکړو.چه په دي سره د مالك حق منقطع شی.لکه مثلاً غنم وو .غاصب دا اوړه کړل نو اوس اوړو سره د غاصب حق متعلق شو.او مغصوب منه ته به ددي ضمان اداکولي شی.نو مرغیناني رحمه الله اوفرمائیل که موصی د وصیت نه روستو په موصی به کي داسي تصرف اوکړو .نو دا تصرف به د رجوع دلیل وی.او په کتاب الغصب کي ددي افعالو تفصیلی بیان تیر شوي دي.

**د وصیت نه د رجوع یو بل صورت او قاعده کلیه**

وَكُلُّ فِعْلٍ يُوجِبُ زِيَادَةً فِي الْمُوصَى بِهِ او هر داسي فعل کوم چي په موصی به کي زیاتوالي ثابت کړي وَلَا يُمْكِنُ تَسْلِيمُ الْعَيْنِ إِلَّا بِهَا او د عین تسلیم ددي زیاتوالی نه بغیر ممکن نه وی.نو هرکله چي موصی داکار اوکړو فَهُوَ رُجُوعٌ نو دا رجوع ده إِذَا فَعَلَهُ مِثْلُ السَّوِيقِ يَلُتُّهُ بِالسَّمْنِ لکه ستوان چي دا ئي په غوړو کي ملاو کړل وَالدَّارِ يَبْنِي فِيهِ الْمُوصِي او کور چي په دي کي موصی عمارت ( آبادی) جوړه کړي وی وَالْقُطْنِ يَحْشُو بِهِ او مالوچ چي په دي سره موصی ډکون کړي وی وَالْبِطَانَةِ يُبَطِّنُ بِهَا او د استر کپړه چي ددي نه موصی استر ( پوښ ) جوړ کړي وی. وَالظِّهَارَةِ يُظَهِّرُ بِهَا او ابره چي ددي نه موصی ابره جوړه کړي وی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ تَسْلِيمُهُ بِدُونِ الزِّيَادَةِ خکه چي ددي زیاتوالی نه بغیر موصی له ته سپارل ممکن نه دی وَلَا يُمْكِنُ نَقْضُهَا او د زیاتوالی ماتول ممکن نه دی لِأَنَّهُ حَصَلَ فِي مِلْكِ الْمُوصِي مِنْ جِهَتِهِ خکه چي زیاتوالي د موصی د اړخه د موصی په ملکیت کي حاصل شوی دي بِخِلَافِ تَجْصِيصِ الدَّارِ الْمُوصَى بِهَا وَهَدْمِ بِنَائِهَا په خلاف د وصیت کړي شوی کور د چونه کولو.او ددي د عمارت د غورځولو لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي التَّابِعِ خکه چي دا په تابع کي تصرف دي.

حل اللغة: ① سويق: ستوان ② القطن: مالوچ ③ البطانة: استر ④ الظهارة: ابره ⑤ تجصيص: چونه کول ⑥ هدم: نوړول﴾

تشریح:- اوکه موصی په موصی به کي څه داسي زیاتوالي اوکړو.چه دا زیاتوالي د موصی به نه نشی جلا کیدي.او که جلا کړي شی.نو په دي کي نقصان راخي.نو داسي کار کول هم ددي خبري دلیل دي.چه موصی رجوع کړي ده.چه ددي مثالونه مرغیناني رحمه الله ډیر بیان کړی دی.چه دا په کتاب کي ذکر دی. البته که موصی په هغه کور کي د کوم چي ده وصیت کړي دي.چونه ئي اوکړله.یا ئي دا راغورځولي وی. نو دا دواړه کارونه د رجوع دلیلونه نه دی.خکه چي اصل موجود دي.او دا شیان تابع دی.او د موصی تصرف په اصل کښي نه دي.بلکه په تابع کي دي.

**دریمه قاعده: داسي تصرف چي دي سره د موصی له ملك زائل شي**

وَكُلُّ تَصَرُّفٍ أَوْجَبَ زَوَالَ مِلْكِ الْمُوصِي فَهُوَ رُجُوعٌ او هر یو داسي تصرف کوم چي د موصی د ملکیت زوال ثابت کړی.نو هغه رجوع ده كَمَا إِذَا بَاعَ الْعَيْنَ الْمُوصَى بِهِ ثُمَّ اشْتَرَاهُ لکه ( مثلاً) کله چي هغه خرڅ کړو.هغه شئ د کوم چي وصیت کړي شوي دي.بیا ده هغه واخستلو وَهَبَهُ ثُمَّ رَجَعَ فِيهِ یا ئي دا هبه کړو.بیا ئي په دي کي رجوع اوکړله أَوْ لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَا تَنْفُذُ إِلَّا فِي مِلْكِهِ خکه چي وصیت نه نافذ کیږی.خو پخپل ملکیت کي فَإِذَا أَزَالَهُ كَانَ رُجُوعًا نو کله چي هغه دا زائل کړو.نو دا رجوع شوه وَذَبْحُ الشَّاةِ الْمُوصَى بِهَا رُجُوعٌ او وصیت کړي شوي وزه (چیلۍ) ذبح کول به رجوع نه وی لِأَنَّهُ لِلصَّرْفِ إِلَى حَاجَتِهِ عَادَةً فَصَارَ هٰذَا الْمَعْنَى أَصْلًا أَيْضًا وَغَسْلُ الثَّوْبِ الْمُوصَى بِهِ لَا يَكُونُ رُجُوعًا لِأَنَّ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُعْطِيَ ثَوْبَهُ غَيْرَهُ خکه



چي کوم کس اراده اوکړله.چه خپلي کپړې د خان نه علاوه ته ورکړي يَغْسِلُهُ عَادَةً فَكَانَ تَقْرِيرًا نو هغه په عامه توګه (عام طور) دا اینځي.نو دا د وصیت تقریر دي.

حل اللغة: ① جحد: انکار ② رجوع: واپس کیدل﴾

تشریح:- اوکه موصی یو داسي تصرف په دي کي اوکړو.کوم چي د موصی د ملك زائل کیدو سبب وی.نو هغه به د رجوع دلیل وی.لکه مثلاً که موصی ، موصی به خرڅ کړو.اګرچه روستو ئي هغه واخستلو.بیا هم دا خرڅول د رجوع دلیل دي.یا موصی دا هبه کړو.اګرچه روستو ئي رجوع هم کړي وی.بیا هم هبه کول د رجوع دلیل دي.خکه چي وصیت خو پخپل ملك کي نافذ کیږی. او کله چي ده په دي تصرفاتو سره خپل ملك زائل کړو.نو دا د رجوع دلیل دي.

او که موصی وصیت کړي شوي وزه (چیلۍ) ذبح کړله.نو دا هم د رجوع دلیل دي.خکه چي عادت دا دي.چه ذابح خپل خان لپاره ذبح کول کوی.نو دا هم یوه قاعده کلیه شوه.چه کله موصی پخپل حاجت کي استعمال لپاره موصی به کي څه تصرف اوکړی.نو دا د رجوع دلیل دي.او که موصی به کپړه وی.او موصی هغه اووینځله.نو داپریمخل (وینځل) به د رجوع دلیل نه وی.خکه عادتاً داسي کیږی.چه کوم کس خپله کپړه بل چاته ورکوی.نو وینځي ئي.په دي وجه دا د رجوع دلیل شمار نکړې شو.بلکه دا د وصیت اثبات او تقریر دي.

**د وصیت نه د انکار کولو حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَإِنْ جَحَدَ الْوَصِيَّةَ لَمْ يَكُنْ رُجُوعًا و چاچه د وصیت نه انکار اوکړو.نو دا انکار به رجوع نه وی كَذَا ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ رحمه الله (۱) امام محمد رحمه الله هم داسي ذکر کړي دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله يَكُونُ رُجُوعًا او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه رجوع به وی لِأَنَّ الرُّجُوعَ نَفْيٌ فِي الْحَالِ خکه چي رجوع في الحال نفی ده وَالْجُحُودُ نَفْيٌ فِي الْمَاضِي وَالْحَالِ او انکار په ماضی او حال کي نفی ده فَأَوْلَى أَنْ يَكُونَ رُجُوعًا نو دا خبره به په درجه اولی وی.چه انکار به رجوع وی.

تشریح:- وړاندي تیر شوی دی.چه د وصیت نه رجوع جائز ده.او بعضي داسي افعال ذکر شو.چه هغه د رجوع دلیلونه دی.اوس ددي خاني نه دا مسئله بیانولي شی.که موصی د سره د وصیت انکار اوکړی.نو څه حکم دي.نو مرغیناني رحمه الله دلته دوي (دوه) قوله پیش کړی دی.یو د امام محمد رحمه الله او دوهم د امام ابویوسف رحمه الله، نو امام محمد رحمه الله ذکرکړي دی.چه دا انکار به رجوع نه وی.

د امام ابویوسف رحمه الله مذهب۞ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه دا به رجوع وی.د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دي.چه د رجوع حقیقت دا دي.چه په دي کي په ماضی کي د وصیت اثبات دي.او فی الحال ددي نفی مقصود ده.او رجوع جائز ده.او د وصیت نه د انکار مطلب دا دي.چه په ماضی کي هم انکار دي.او په حال کي هم انکار دي.نو هرکله چي د فی الحال په انکار سره رجوع کیږی.نو د ماضی او حال دواړو په نفی سره به په درجه اولی رجوع وی.

تنبیه۞ امام محمد رحمه الله په جامع کبیر کي فرمائیلی دی.چه انکار رجوع نه ده.او په مبسوط کي ئي ذکر کړی دی.چه انکار رجوع ده.بعضي فقهاو فرمائیلی دی.کوم قول چي په مبسوط کي ذکر دي.دا په هغه حالت باندي محمول دي.کله چي رجوع د موصی له په وړاندي وی.او کوم قول چي په جامع کبیر کي ذکر دي.هغه په دي حالت باندي محمول دي.کله چي رجوع د موصی له د غائب والی په صورت کي وی.او د بعضو حضراتو وینا ده.چه کوم په جامع صغیر کي ذکر دي.هغه د امام محمد رحمه الله قول دي.او کوم چي په مبسوط کي ذکر دي.هغه د امام ابویوسف رحمه الله قول دي.د مرغیناني رحمه الله خیال هم دا دي.او هم دا صحیح ده.﴿زیلعی ص:۱۸۷، ج۶﴾

---

(۱) القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا في ردالمحتار(۵/۴۶۶) وحاشية تبيين الحقائق (۶/۱۸۷) وملتقى (۴/۴۲۳) والفقه الإسلامى (۸/۵۵) نقلاً عن القول الراجح (۲/۳۷۳)-

### د امام محمد رحمه الله دوې (دوه) دليلونه

ولمحمد أن الجحود نفي في الماضي والانتفاء في الحال ضرورة ذلك او د امام محمد رحمه الله دليل دا دی.چه انکار کول په ماضي کي نفي کول دی.او په حال کي منتفي کيدل ددې د ارتيا په وجه دی وإذا كان ثابتا في الحال او هرکله چې کذب في الحال ثابت دی كان الجحود لغوا نو انکار کول به لغوه نه وی

تشريح:- دا دامام محمد رحمه الله دليل ① دی.ددې حاصل دا دی.چه د جحود او انکار مقصد دا دی.چه په ماضي کي د وصيت نفي اوکړې شي.او هرکله چې په ماضي کي نفي اوکړې شوه.او هيڅ توپير او نه موندې شوه.نو دا في الحال هم منتفي شمار کړې شي.هم دا مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل.چه د في الحال انتفاء په ماضي کي د نفي د ارتيا په لحاظ سره شوې دی.او چونکه په دې مسئله کي داسې فرض کړې شوې ده.چه موصي وصيت کړې دی.خو اوس هغه ددې نه انکار کوی.نو معلومه شوه.چه موصي دروغژن دی.اوهرکله چې دده دروغژن کيدل ثابت شو.نو دده دانکار په وجه به ماضي کي نفي نه ثابتيږی.بلکه باطله به وی.او هرکله چې د ماضي نفي باطله شوه.نو د حال نفي به په درجه اولی باطله وی.نو د موصي انکار لغوه شو.

أو لأن الرجوع إثبات في الماضي ونفي في الحال او ځکه چې ماضي کي اثبات او حال کي نفي کول دی والجحود نفي في الماضي والحال او انکار کول په ماضي او حال کي نفي کول دی فلا يكون رجوعا حقيقة نو په حقيقت کي به رجوع نه وی ولهذا لا يكون جحود النكاح فرقة او هم په دې وجه به د نکاح نه انکار فرقت (طلاق) نه وی.

تشريح:- ② د امام محمد رحمه الله دوهم دليل دا دی.چه د رجوع حقيقت يوشان دی.او د انکار حقيقت بل شان دی.په رجوع کي په ماضي کي اثبات دی.او په حال کي نفي ده.او په انکارکي دواړو ځايونو کي نفي ده.نو هرکله چې ددې دواړو حقيقت جلا جلا دی.نو د انکار نه حقيقت کي رجوع څنګه کيدای شي.هم دا وجه ده.چه د نکاح نه انکار کول، فرقت او طلاق نه شمارلې کيږی.ځکه چې د دواړو حقيقت جلا دی.ځکه چې دانکار مقصد په ماضي کي د نکاح نفي کول دی.او د طلاق مقصد په ماضي کي اثبات او في الحال نفي ده.نو لکه څنګه چې په دې دواړو کي د تقابل په وجه يو د بل په ځای د استعارې په طور نشي اخستلې.دغه ډول په انکار او رجوع کي هم تقابل دی.نو په دې کي به هم يو د بل په ځای نشي استعمالولې.

### هغه الفاظ په کومو سره چې رجوع نه ثابتيږی

ولو قال كل وصية أوصيت بها لفلان فهو حرام وربا لا يكون رجوعا فلاني لپاره وصيت کړې دی.نو هغه حرام او رباء ده.نو دا به رجوع نه وی لأن الوصف يستدعي بقاء الأصل ځکه چې وصف د اصل د بقاء تقاضا کوی بخلاف ما إذا قال فهي باطلة په خلاف ددې صورت، کله چې موصي اوونيل.نو دا باطل دی لأنه الذاهب المتلاشي ځکه چې باطل هغه دی.کوم چې ختم شی.او معدوم شی

حل اللغة: ① المتلاشي: ختميدونکې ② التاخير: روستووالې

تشريح:- که موصي د وصيت نه روستو دا الفاظ استعمال کړل.چه زما کړې شوې هر وصيت حرام او سود دی.نو دا به رجوع نه وی.ځکه چې هرکله څه شی په يو وصف سره متصف کيږی.نو د هغې مطلب دا وی .چه دا شی پخپله موجود دی.نو د هغې حرام کيدل، او رباء کيدل د وصيت وصف دی.نو هرکله چې ددې وصف پاته دی.نو وصيت په درجه اولی پاته دی.او هرکله چې وصيت پاته دی.نو دا به رجوع نشي ګرځولې.البته که موصي داسې وئيلی وی.چه زما کړې شوی واړه وصيتونه باطل دی.نو دا به د وصيت نه رجوع وی.ځکه چې باطل هغه شی ته وائی.کوم چې معدوم شوې وی.او ختم شوې وی.او معدوم کيدل د رجوع دليل دی.

ولو قال أخرتها لا يكون رجوعا او که ده اوونيل.چه ما وصيت مؤخر کړو.نو دا به رجوع نه وی.لأن التأخير ليس للسقوط كتأخير الدين ځکه چې روستو کول د سقوط لپاره نه دی.لکه پور مؤخر کول بخلاف ما إذا قال تركت لأنه إسقاط په



خلاف ددې صورت کله چې موصي اوونيل.چه «ما ترکت» ځکه چې پرېښول اسقاط دی.

تشريح:- او که موصي داسې اوونيل.چه ما وصيت مؤخر کړلو.نو ددې څخه به رجوع نه وی.ځکه چې تاخير مقصد اسقاط نه دی.لکه مقروض ته په پور ادا کاوه کي مهلت ورکول، ددې مقصد دا نه دی.چه پور ختم شوې دی.نو معلومه شوه.چه تاخير سره اسقاط نه کيږی.البته که موصي داسې وئيلی وی.چه ما وصيت پريخودو.نو دا به رجوع وی.ځکه چې پرېښول اسقاط دی.نو رجوع به ثابت وی.

### هغه الفاظ په کومو سره چې رجوع ثابتيږی

ولو قال العبد الذي أوصيت به لفلان فهو لفلان كان رجوعا او که موصي اوونيل.چه هغه غلام د کوم چې ما فلانی لپاره وصيت کړې دی.نو هغه غلام د فلانی لپاره دی.نو دا به رجوع وی لأن اللفظ يدل على قطع الشركة بخلاف ما إذا أوصى به لرجل ثم أوصى به لآخر ځکه چې لفظ د شرکت په ختمولو باندې دلالت کوی.په خلاف ددې صورت کله چې ده د غلام د يو سړی لپاره وصيت کړې وی.بيا ئې ددې د بل چا لپاره وصيت کړې وی لأن المحل يحتمل الشركة واللفظ صالح لها ځکه چې محل د شرکت احتمال لری.او لفظ د شرکت صلاحيت لری وكذا إذا قال فهو لفلان وارثي او هم دغه ډول کله چې ده اوونيل.چه دغه غلام زما د فلانی وارث دی يكون رجوعا عن الأول لما بينا نو دا به د ړومبی نه رجوع وی.د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړې دی ويكون وصية للوارث او دا به د وارث لپاره وصيت وی وقد ذكرنا حكمه او مونږ ددې حکم ذکرکړې دی

تشريح:- که موصي اول د خالد لپاره د يو غلام وصيت اوکړو.او بيا موصي اوونيل.چه ما خالد لپاره کوم وصيت کړې وو.هغه وصيت زه د بکر لپاره کوم.نو ښکاره ده.چه دا رجوع ده.او د موصي مقصد دا دی. چې دا دخالد نه لرې کړم.او بکر لپاره وصيت اوکړم.

او که وړاندې ددې غلام وصيت موصي د خالد لپاره کړې وی.او بيا دهغه وصيت بکر لپاره اوکړو.نو دلته به غلام د ړومبی او دوهم په منځ کي نيم په نيمه ګرځولې شی.ځکه چې په دې کلام کي هيڅ يو لفظ داسې مستعمل نشته.چه دا په شرکت ختمولو باندې دلالت اوکړی.او لفظ د وصيت د شرکت احتمال لری.يعنی په وصيت کي د شرکت صلاحيت شته.

او که موصي داسې وئيلې وی.چه ما فلانی ته کوم وصيت کړې دی.نو هغه سامان زما د فلانی وارث لپاره وصيت دی.نو دا به هم رجوع وی.يعنی موصي د مخکنی وصيت نه رجوع اوکړله.او اوس به دا د وارث لپاره وصيت ګرځولې شی.او وارث لپاره د وصيت څه حکم دی؟ ددې تفصيلی بيان وړاندې تير شوې دی.

ولو كان فلان الآخر ميتا حين أوصى فالوصية الأولى على حالها او که دغه دوهم فلانی د وصيت په وخت مړې وی.نو ړومبې وصيت پخپل حال باندې دی لأن الوصية الأولى إنما تبطل ضرورة كونها للثاني ځکه چې ړومبې وصيت باطليږی.د دوهم وصيت لپاره د ارتيا کيدو په ولم يتحقق او دا (دوهم لپاره وصيت) ثابت نشو فبقي للأول نو وصيت د اول لپاره پاته پاتې شو ولو كان فلان حين قال ذلك حيا او که دغه فلانې کله چې موصي دا خبره کړې وه.ژوندې وی ثم مات قبل موت الموصي بيا هغه (دوهم موصی له) د موصي د مرګ نه مخکې مړ شو فهي للورثة لبطلان الوصيتين نو وصيت به د موصي د وارثانو لپاره وی.د دواړو وصيتونو باطليدو په وجه الأولى بالرجوع والثانية بالموت والله أعلم بالصواب ړومبې د رجوع او دوهم د مرګ په وجه، (د باطليدو په وجه) والله اعلم.

تشريح:- خو کله چې موصي دوهم موصی له ته وصيت اوکړو.دغه وخت موصی له ژوندې نه دی.بلکه د وصيت نه وړاندې مړ شوې دی.نو مخکنې وصيت به باطل نه وی.بلکه وصيت به پخپل حال پاته پاتې وی.ځکه چې مخکنې وصيت صرف هغه وخت ماتيږی.کله چې وصيت د دوهم لپاره صحيح شی.او دلته وصيت د دوهم لپاره صحيح نشو.نو مخکنې وصيت صحيح او درست دی.او که د موصي ددې وئيلو په وخت موصی له ژوندې دی.خو هغه د موصي د مرګ نه وړاندې مړ شو.نو اوس د دواړو په حق کي باطل دی.او د وصيت دا مال به د موصي د وارثانو

لپاره وی.د مخکنی وصیت باطلیدو وجه د موصی ددې نه رجوع کول دی.او د دوهم وصیت باطلیدو وجه د دوهم موصی له د موصی د مرګ نه وړاندي مړینه دی.والله اعلم بالثواب.

## باب الوصية بثلث المال

ژباړه:- (دا) باب د ثلث مال د وصیت کاوه (په بیان کي) دي.

تشريح:- د کتاب الوصایا د عامو مسئلو دائره ثلث مال دې.په دې وجه د کتاب الوصایا د مقدماتو بیانولو نه روستو د هغه مسئلو بیان کوی.کوم چې دې باب سره تعلق ساتی.

### د دوو جلا جلا سړو لپاره د يو يو ثلث وصيت كولو حكم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِثُلُثِ مَالِهِ او چاچه د یو سړي لپاره د خپل ثلث مال وصیت اوکړو.او د دوهم کس لپاره ئې د خپل ثلث مال وَلِآخَرَ بِثُلُثِ مَالِهِ وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا او وارثانو اجازت ورنکړو نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کي (مشترک) وی لِأَنَّهُ يَضِيقُ الثُّلُثُ عَنْ حَقِّهِمَا ځکه چې ثلث ددوی دواړو دحق نه تنګ (او کم) دي إِذْ لَا يُزَادُ عَلَيْهِ عِنْدَ عَدَمِ الْإِجَازَةِ عَلَى مَا تَقَدَّمَ ځکه چې د وارثانو د اجازت نه کیدو په وخت، وصیت د ثلث نه نشی زیاتولې.د هغه تفصیل مطابق کوم چې وړاندې تیر شوې دي وَقَدْ تَسَاوَيَا فِي سَبَبِ الْاسْتِحْقَاقِ او دوی دواړه د استحقاق په سبب کي برابر دی فَيَسْتَوِيَانِ فِي الْاسْتِحْقَاقِ نو په استحقاق کي به دواړه برابر وی وَالْمَحَلُّ يَقْبَلُ الشَّرِكَةَ فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا او محل شرکت قبلوی.نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کي وی.

تشريح:- وړاندې تفصیلات تیر شوی دی.چه که د دریمې برخې نه د زیات مال وصیت ئې اوکړو.نو د وارثانو اجازت سره دا (وصیت) نافذ کیدای شی.ګنی نشی نافذ کیدې.اوس اوګورئ.چه زید د خپل ثلث مال وصیت خالد لپاره اوکړو.او د بکر لپاره ئې هم د ثلث مال وصیت اوکړو.نو ددې دواړو وصیتونو مال دوې (دوه) دریمې حصې شو.او د وصیت نافذ کیدو محل صرف ثلث دې.او وارثانو د ثلث نه په زیات کي اجازت ورنکړو.نو یو ثلث به د خالد او بکر په منځ کي نیم په نیمه وی.ځکه چې په یو ثلث کي دومره وسعت او ګنجائش نشته.چه ددې نه هر یو ته پوره پوره ثلث ملاو شی.ځکه چې هرکله د وارثانو اجازت نه وی.نو وصیت په ثلث باندې نشی زیاتیدې.او د استحقاق په سبب کي دواړه برابر او مساوی دی.نو بیا به په استحقاق کي هم دواړه برابر وی.او په ثلث کي هم دا صلاحیت شته.چه په دې کي شرکت کیدای شی.نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کي مشترک ګرځولې شی.

### يو سړي لپاره د ثلث او دوهم لپاره د سدس د وصيت كولو حكم

وَإِنْ أَوْصَى لِأَحَدِهِمَا بِالثُّلُثِ وَلِلْآخَرِ بِالسُّدُسِ او که په دوی دواړو کي ئې یو لپاره د ثلث او دوهم لپاره د سدس (شپږمې حصې) وصیت اوکړو فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کي درې برخو سره تقسیمولې شی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُدْلِي بِسَبَبٍ صَحِيحٍ وَضَاقَ الثُّلُثُ عَنْ حَقَّيْهِمَا ځکه چې په دوی دواړو کي هر یو د صحیح سبب په وجه استحقاق لری.او ثلث ددوی دواړو د حق نه تنګ (کم) شو فَيَقْتَسِمَانِهِ عَلَى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا كَمَا فِي أَصْحَابِ الدُّيُونِ نو دوی به ثلث د خپل خپل حق په اندازه تقسیموی.لکه ځنګه چې په اصحاب الدیون (کي (قرضخواهان د خپل حق مطابق ترکه کي شریک وی) فَيُجْعَلُ الْأَقَلُّ سَهْمًا وَالْأَكْثَرُ سَهْمَيْنِ کم (حقدار) ته به یوه برخه او زیات (حقدار) ته به دوې (دوه) برخې ور کولای شی فَصَارَ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ سَهْمٌ لِصَاحِبِ الْأَقَلِّ وَسَهْمَانِ لِصَاحِبِ الْأَكْثَرِ نو.نو درې برخې شوې.یوه برخه د کم والا دپاره، او دوې (دوه) برخې د زیات والا دپاره.

تشريح:- که موصی د خالد لپاره د ثلث مال وصیت اوکړو.او د بکر لپاره ئې د سدس (وصیت اوکړو).نو دده مال نصف شو.او نصف د وارثانو د اجازت نه بغیر دوی ته نشی ورکولې.نو صرف ثلث به هم دوی دواړو ته ورکولې شی.ددې صورت به دا وی.چه خالد ته به د ثلث نه ٢/٣ او بکر ته به ١/٣ ملاویږی.ځکه چې د دواړو استحقاق د



وصیت په ذریعه شوې دې.او دا صحیح سبب دې.او په ثلث کي دومره وسعت نشته.چه دا ددوی دواړو حق پوره کړی.نو لکه ځنګه چې قرضخواهان ترکه د خپل خپل حق مناسبت سره تقسیموی.دغه ډول به دوی دواړه موصی له هم کوی.(د قرضخواهانو تفصیل موږ په درس سراجی کي بیان کړې دې).نو ددوی په حق کي هم دا تناسب دې.چه د خالد حق ٢/٣ دې.او د بکر ١/٣ دې.نو ثلث به هم دریو برخو کي تقسیمولې شی.او په دغه حساب به ورکولې شی.چه خالد لپاره به دوې (دوه) برخې وی.او د بکر لپاره به یوه برخه وی.

### يو د پاره د ټول مال او دوهم لپاره د ثلث د وصيت كولو حكم

وَإِنْ أَوْصَى لِأَحَدِهِمَا بِجَمِيعِ مَالِهِ او که موصی په دوی دواړو کي د یو لپاره د خپل پوره مال وصیت اوکړو وَلِلْآخَرِ بِثُلُثِ مَالِهِ او د دوهم لپاره ئې د خپل ثلث مال وصیت اوکړو وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثانو ددې اجازت ورنکړو فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَسْهُمٍ عِنْدَهُمَا نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ثلث ددوی دواړو په منځ کي څلورو برخو باندې (تقسیمولې) شی

تشريح:- زید د خالد لپاره د خپل پوره مال وصیت اوکړو.او د بکر لپاره ئې د ثلث مال وصیت اوکړو.نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی ① وارثانو د واړه وصیت اجازت ورکړو. ② وارثانو اجازت ورنکړو.نو که ړومبې صورت وی.نو په دې کي هم د آئمه ثلاثه رحمهم الله اختلاف دې.او په دوهم صورت کي هم اختلاف دې. په ړومبی صورت کي د امام صاحب رحمه الله په نیز به خالد لپاره ٥/٦ وی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به خالد لپاره ٣/٤ وی.او بکر لپاره به ١/٤ وی.خو مرغینانی رحمه الله دا ړومبې صورت نه دې بیان کړې.بلکه صرف دوهم صورت ئې بیان کړې دې.په دې کي هم حضرات صاحبین رحمهما الله دا فرمائی.چه د ثلث به څلور برخې کولې شی.بیا به په دې کي درې برخې خالد ته او یوه به بکر ته ورکولې شی.

وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: الثُّلُثُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ[1] او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی.چه ثلث به دوی دواړو په منځ کي نیم په نیمه وی وَلَا يَضْرِبُ أَبُوحَنِيفَةَ لِلْمُوصَى لَهُ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ إِلَّا فِي الْمُحَابَاةِ وَالسِّعَايَةِ وَالدَّرَاهِمِ الْمُرْسَلَةِ او امام ابوحنیفه رحمه الله د موصی له په حق کي د ثلث نه په زیات کي د تناسب لحاظ نه کوی.خو په محابات کي ، او په سعایه کي او په دراهم مرسله کي.

تشريح:- او د امام صاحب رحمه الله په نیز په ذکر شوی صورت کي به دواړه په ثلث کي برابر شریك وی.ځکه چې د ثلث نه د زیات وصیت باطل دې.کله چې وارثان اجازت ورنکړی.او د باطل هیڅ اعتبار نه وی.نو (وصیت) ثلث پورې پاته پاتې شو.او د ثلث (وصیت) بکر لپاره هم دې.نو دا صورت د هغه صورت پشان شو.په کوم کي ئې چې دواړو لپاره د ثلث ثلث وصیت کړې وو.اوهلته هم دا حکم وو.دغه ډول به دلته کي هم د نیم په نیمه تقسیمولو حکم وی.

قاعده کلیه بیا یوه قاعده کلیه بیان کړې شوې ده.چه د خالد او د بکر د حقوقو تناسب خو کتلې کیدای شی.خو د ثلث مال پورې کتلې کیدای شی.او که وصیت د ثلث نه زیات شی.بیا به د حقوقو تناسب ته نشی کتلې.بلکه دواړه به برابر په ثلث کي شریکولې شی.او په ذکر شوی صورت کي وصیت د ثلث مال نه زیات شوې دې.(لکه ځنګه چې ښکاره ده).نو ددې قاعدې مطابق به د تناسب لحاظ نه کیږی.بلکه دواړه به برابر شمارلې کیږی.

یوځو مستثنی صورتونه البته ددې قاعدې کلیې نه درې مسئلې مستثنی دی: ① په بیع کي محابات، ② د غلام مزدوری، ③ دراهم مرسله.اوس ددې دریو واړو تفصیل اوګورئ.① محابات فی البیع: د زید دوې (دوه) غلامان دی.په دوی کي د یو قیمت مثلاً یوولس سوه روپئ دې.او د دوهم شپږ سوه روپئ دې.اوس د ړومبی قیمت والا وصیت زید د خالد لپاره اوکړو.او د دوهم غلام ئې بکر لپاره اوکړو.او داسې ئې اووئیل.چه دا غلام په خالد

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (٣٦٩\٩) وملتقى (٤٢٥) وردالمحتار(٤٧٢\٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٥\٢)-

باندې خرڅ کړه.په سل روپۍ کې .او دا دوهم په بکر باندې خرڅ کړي.په سل روپۍ باندې.نو هم دغه ډول اوکړي شو.او زید ددې دواړو غلامانو نه علاوه هیڅ نه دی پریخودی.نو وصي به صرف په دریمه کې نافذ کیږي.او دا دریمه به دواړو موصی له ته ددوی د حق تناسب سره ملاویږي.نو ګویا زید د خالد لپاره د زرو روپو او د بکر لپاره نې د پنځو سوو روپو وصیت کړې دی.چه ددې ثلث پنځه سوه دې.نو خالد لپاره به د پنځو سوو ۲۱۳ او بکر ته به ۱۱۳ ملاویږي.او پاته قیمت به د موصی وارثانو ته ورکولې شي.بهرحال د امام صاحب رحمه الله په نیز که دا صورت مستثنی نه وې.نو خالد او بکر دواړو لپاره به د پنځو سوو نه نیم په نیمه وه.او پاته قیمت به د موصی وارثانو ته ورکولې شو. خو دلته دوی دا خپل اصول پریښودې دې.او د حق د تناسب په لحاظ سره نې ثلث ویش کړې دې.

② سعایه (دغلام مزدوری)دسعایه صورت دا دې.چه زید د خپلو دوو غلامانو د آزادولو وصیت اوکړو.او د ددې دواړو غلامانو نه علاوه هیڅ مال نشته.او په دوی کې د یو قیمت دوې (دوه) زره دې.او د زید دې.نو دا وصیت به په ثلث کې نافذ کیږي.او په دوې (دوه) ثلثو کې به په دوی باندې قیمت واجب وی.چه دا به دوی ګټه کوی.او وارثانو ته به نې ورکوی.خو په دې ثلث کې به د دواړو د قیمت په اندازه سره ویش کولې شی.او ددوی دواړو د قیمت مجموعه درې زره ده.چه ددې ثلث زر روپۍ دی.نو دکوم غلام قیمت چې دوې (دوه) زره دې.د هغه د قیمت څخه به (۶۶۶) روپۍ ساقطیږی.او پاته به دې مزدوری کوی.او وارثانوته به نې ورکوی.او دکوم غلام قیمت چې زر روپۍ دې.د هغه د قیمت څخه به (۳۳۳) روپۍ سقاطیږی .او هغه به د خپل پاته قیمت لپاره مزدوری کوی.او وارثانو ته به نې ورکوی.

③ دراهم مرسله: ددې مطلب دا دې.چه دا متعین نکړې شی.چه ثلث دده او نصف دهغه وغیره.بلکه موصی مطلق داسې اووائی.چه د دوو سوو روپو وصیت خالد لپاره دې.او د بکر لپاره د سلو روپو وصیت دې.او دده سره صرف هم دا مال دې.نو دا وصیت به صرف په ثلث یعنی سلو روپو کې نافذ کیږی.چه په دې کې به رومبی ته (۶۶) روپۍ او دوهم ته به (۳۳) روپۍ ملاویږی.

## د صاحبینو رحمهما الله دلیل

لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ أَنَّ الْمُوصِي قَصَدَ شَيْئَيْنِ الِاسْتِحْقَاقَ وَالتَّفْضِيلَ په اختلافی مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه موصی د دوو څیزونو اراده کړې ده.د استحقاق او د تفضیل وَامْتَنَعَ الِاسْتِحْقَاقُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او د وارثانو د حق په وجه استحقاق خو ممتنع شو وَلَا مَانِعَ مِنَ التَّفْضِيلِ او د تفضیل (او ترجیح) نه هیڅ شئ مانع نه دې فَيَثْبُتُ كَمَا فِي الْمُحَابَاةِ وَأُخْتَيْهَا نو تفضیل (او ترجیح) به ثابتیږی.لکه په محابات او ددې په دواړو مثالونو کې .

**تشریح:-** دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه په مذکوره صورت کې د موصی اراده د دوو څیزونو ده.① دا چې هغه د واړه مال یوکس مستحق جوړول غواړی.خو دده دا اراده د وارثانو د حق په وجه نشی پوره کیدې.② دویمه اراده ئې دا ده.چه هغه خالد ته په بکر باندې ترجیح ورکول غواړی.نو ددې تفضیل او ترجیح ور کاوه نه هیڅ مانع موجود نه دې.نو تفضیل به ثابتیږی.لکه څنګه چې په محابات وغیره کې تفضیل ثابت شوې دې.

## د امام اعظم رحمه الله دلیل

وَلَهُ أَنَّ الْوَصِيَّةَ وَقَعَتْ بِغَيْرِ الْمَشْرُوعِ عِنْدَ عَدَمِ الْإِجَازَةِ مِنَ الْوَرَثَةِ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه وصیت (مذکوره) غیر مشروع واقع شوې دې.د وارثانو د اجازت نه کیدو په وخت إِذْ لَا نَفَاذَ لَهَا بِحَالٍ فَيَبْطُلُ أَصْلًا څکه چې په هیڅ حال کې ددې وصیت نفاذ نشته.نو دا اصلاً باطل شو.( یعنی هغه مقدار کوم چې مشروع نه دې.هغه باطل شو) وَالتَّفْضِيلُ يَثْبُتُ فِي ضِمْنِ الِاسْتِحْقَاقِ او تفضیل (ترجیح) د استحقاق په حق کې ثابتیږی فَبَطَلَ بِبُطْلَانِهِ كَالْمُحَابَاةِ الثَّابِتَةِ فِي ضِمْنِ الْبَيْعِ، بِخِلَافِ مَوَاضِعِ الْإِجْمَاعِ نو د استحقاق د بطلان په وجه به تفضیل باطلیږی.لکه هغه محابات کوم چې د بیع



په ضمن کې ثابت وی. په خلاف د خایونو د اجماع ( یعنی د محابات وغیره) لِأَنَّ لَهَا نَفَاذًا فِي الْجُمْلَةِ بِدُونِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ څکه چې ددې ( مواضعو د اجماع ) لپاره د وارثانو د اجازت نه بغیر فی الجمله نفاذ شته بِأَنْ كَانَ فِي الْمَالِ سَعَةٌ په دې طریقه چې په مال کې وسعت ( ګنجائش) وی فَتُعْتَبَرُ فِي التَّفَاضُلِ لِكَوْنِهِ مَشْرُوعًا فِي الْجُمْلَةِ، بِخِلَافِ مَا نَحْنُ فِيهِ نو وصیت به د تفاضل (ترجیح ) په حق کې معتبر وی.ددې د فی الجمله د مشروع کیدو په وجه، په خلاف ددې مسئله کومه کې چې موږ کلام کوو.

**تشریح:-** دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه کله وارثانو اجازت ورنکړو.نو د دریمې برخې نه زیات وصیت مشروع نه دې.څکه چې د وارثانو د اجازت نه بغیر د ثلث نه زیات کې ددې د نافذ کاوه هیڅ صورت نشته.نو د ثلث نه په زیات کې وصیت بالکل باطل شو.او هرکله چې زیاتوالې باطل شو. نو په دواړو کې برابری پاتې شوه.هم دا مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه دا تفضیل باطل شو.څکه چې تفضیل د استحقاق په ضمن کې ثابتیږی.او هرکله چې استحقاق باطل اوګرځیدو.نو تفضیل هم باطل شو.څکه چې قاعده هم دا ده.چه د متضمن بطلان سره د متضمن بطلان لازمیږی.لکه مثلاً که په بیع کې محابات وی.او بیع فاسد شی.نو محابات به هم فاسد وی.او که بیع صحیح وی.نو محابات به هم صحیح وی.پاتې شوه د صاحبینو رحمهما الله ذکر شوې مسئله، نو په دې مذکوره دریو واړو باندې قیاس کول، قیاس مع الفارق دې.څکه چې وجه د مناسبت (علت مشتبه ) مفقود دې.څکه چې ذکر شوو مسئلو کې دا ګنجائش شته.چه د وارثانو د اجازت نه بغیر پوره وصیت نافذ شی.کله چې په مال کې دومره وسعت ( ګنجائش) وی.چه د موصی به نه علاوه ددې دوچند مال موجود وی.او په مذکوره مسئله کې د وارثانو د اجازت نه بغیر په پوره مال کې د وصیت نافذ کاوه هیڅ وصیت نشته.ګنی د مشروع مخالفت به لازم شی.(کما هو ظاهر) په دې وجه مذکوره مسئله کې او په دریو ( مذکوره) مسئلو کې توپیر کول لازمی شو.چه په دې دریو واړو کې د مال د وسعت په صورت کې پوره موصی به، موصی له ته ملاویدې شی.او په مذکوره مسئله کې نشی ملاویدې.څکه چې په دې کې د تفاضل اعتبار نه دې کړې شوې.او په دریو مسئلو کې د تفاضل اعتبار کړې شوې دې.د ثلث مقدار نه د زیاتیدو په صورت کې هم د حق د تناسب لحاظ ساتلې شوې دې.

## د سوال مقدر جواب

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى بِعَيْنٍ مِنْ تَرِكَتِهِ وَقِيمَتُهُ تَزِيدُ عَلَى الثُّلُثِ او دا د هغه صورت خلاف دې.کله چې موصی پخپله ترکه کې یو معین شئ ( مثلاً د اس) وصیت اوکړو.اوددې قیمت د ثلث نه زیات دې فَإِنَّهُ يَضْرِبُ بِالثُّلُثِ وَإِنِ احْتَمَلَ أَنْ يَزِيدَ الْمَالُ فَيَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ نو بې شکه چې موصی له به د دریمې برخې په حساب سره مستحق وی.اګرچه د مال زیاتیدو احتمال شته.نو د عین ثلث څخه به خارجیږی لِأَنَّ هُنَاكَ الْحَقَّ تَعَلَّقَ بِعَيْنِ التَّرِكَةِ بِدَلِيلِ أَنَّهُ لَوْ هَلَكَ څکه چې دلته د موصی له حق عین ترکې سره متعلق شوې دې.په دې دلیل سره چې که عین هلاک شي وَاسْتَفَادَ مَالًا آخَرَ تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ او موصی دوهم مال حاصل کړو.نو وصیت به باطل وی وَفِي الْأَلْفِ الْمُرْسَلَةِ لَوْ هَلَكَتِ التَّرِكَةُ او په مطلق زرو (روپو) کې که ترکه هلاک شی تَنْفُذُ فِيمَا يُسْتَفَادُ نو په مال مستفاد کې به وصیت نافذ کیږی فَلَمْ يَكُنْ مُتَعَلِّقًا بِعَيْنِ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْوَرَثَةِ نو حق د موصی له بعینه هغه شئ سره متعلق نشو.کوم سره چې د وارثانو حق متعلق دې.

**تشریح:-** ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله د یو سوال مقدر ځواب ورکول غواړی.

سوال⊕ ستاسو د تقریر لنډیز دا شوه.چه که د موصی به نه علاوه نور مال راوځی.نو چونکه په دې صورت کې په پوره موصی به کې د وصیت نفاذ کیدائې شی.او موږ تاسو ته داسې مثال خودلې شو.چه هلته دا معنی موجود ده.ددې باوجود هم هلته د ثلث نه د زیات حق د تناسب لحاظ نه دې ساتلې شوې.کوم چې د مسائلو ثلاثه وو ځنې ده.مثلاً زید د خپل اس وصیت خالد لپاره اوکړو.یعنی د پوره اس، او د بکر لپاره ئې د ثلث اوکړو.او ددې اس نه علاوه زید هیڅ مال پرې نخودو.نو دلته د حق د تناسب لحاظ ساتل پکار دی.حالانکه دلته هم تاسو دغه فرمائیلی دی.چه دواړه به په ثلث کې نیم په نیمه شریک وی.حالانکه د مسائل ثلاثه وو وجه دلته هم موجود

ده.یعني کیداې شي.چه ددې اس نه علاوه بل څه مال حاصل شي.نو بیا به په پوره اس کي وصیت جاري کیږي.
خواب۞ ستا سوال معقول دې.او هغه وجه دلته هم موجود ده.ددې باوجود هم د دراهم مرسله والا حکم دې ته نه دې ورکړې شوې.ددې وجه دا ده.چه په دې اس او دراهم مرسله کي توپیر دې.او هغه توپیر دا دې.چه اس په صورت کي د موصی لـه حق ددې معین اس سره متعلق دې.خکـه کـه دا اس هـلاك شـي.نو وصیت بـه باطلیږي.اګرچي موصی ته ددې اس د هلاکیدو نه روسته نور مال هم حاصل شو.بیا به هم وصیت باطل وي.خکه چې دده حق بعینه په دې اس کي وو.او هرکله چې دا هلاك شو.نو د هغه حق هم باطل شو .او د دراهم مرسله په صورت کي دده حق څه معینو دراهمو سره نه وو.نو که د وصیت نه روستو ترکه هلاکه شي.اوبیا نورمال مستفاد ( حاصل) شي.نو د موصی له حق پخپل حال پاته دې.نو ددې نه معلومه شوه.چه په اس کي تر دریمې برخې پورې د موصی له حق دې.او بعینه هم په دې اس کي د دریمې نه علاوه کي د وارثانو حق دې.او د دراهم مرسله په صورت کي بعینه کوم مال سره چې د وارثانو حق متعلق شوې دې.هغې سره د موصی لـه حق متعلق نـه دې.بهرحال په دې دواړو کي د مذکوره توپیر په وجه د دواړو په حکم کي توپیر کړې شوې دې.

**د خپل ځوی د مال نه د یو سړی لپاره د وصیت کولو حکم**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا أَوْصَىٰ بِنَصِيبِ ابْنِهِ فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ او کله چې موصی د خپل ځوی د برخې وصیت اوکړو.نو وصیت باطل دې وَلَوْ أَوْصَىٰ بِمِثْلِ نَصِيبِ ابْنِهِ جَازَ او که د خپل ځوی د برخې د مثل وصیت ئې اوکړو.نو جائز دې لِأَنَّ الْأَوَّلَ وَصِيَّةٌ بِمَالِ الْغَيْرِ خکه چې اول د غیر د مال وصیت دې لِأَنَّ نَصِيبَ الْابْنِ مَا يُصِيبُهُ بَعْدَ الْمَوْتِ خکه چې د خوی برخه هغه ده.کومه چې به ده ته د مرګ نه روسته ملاویږي وَالثَّانِي وَصِيَّةٌ بِمِثْلِ نَصِيبِ الْابْنِ او دوهم د ځوني د برخې د مثل وصیت دې وَمِثْلُ الشَّيْءِ غَيْرُهُ وَإِنْ كَانَ يَتَقَدَّرُ بِهِ فَيَجُوزُ او د یو شي مثل د هغې نه غیر وي.اګرچه ددې مثل اندازه شئ سره کیږي.نو دا صورت جائز دې

**تشریح:-** که موصی داسې وصیت اوکړو.چه زما د خوئي برخه فلانی لپاره وصیت دې.نو دا وصیت به جائز نه وي.خکه چې د خوئي برخه به دخوئي ملکیت وي.نو موصی تـه بـه دا حق نـه وي.چه هغـه د بـل د مـال وصیت اوکړي.او که موصی داسې وصیت اوکړو.چه زما د خوئي څومره برخه ده.د هغې په اندازه ما د فلانی لپاره وصیت اوکړو.نو دا وصیت جائز دې.خکه چې دلته موصی د بل د مال وصیت نه دې کړې .بلکه موصی به ئې د غیر مال سره اندازه کړې دې.اوپه دې کي هیڅ باك نشته.خکه قاعده مشهوره ده.چه د شي مثل ددې شي غیر وي.نو معلومه شوه.چه موصی د بل د حق وصیت نه دې کړې.بلکه د خپل خوی حق سره ئې موصی به ناپ کړې دې.او دموصی به اندازه ئې لګولې ده.

وَقَالَ زُفَرُ: يَجُوزُ فِي الْأَوَّلِ أَيْضًا او امام زفر رحمه الله فرمائی.چه په رومبی کي هم جائز دې فَيُنْظَرُ إِلَى الْحَالِ وَالْكُلُّ مَالُهُ فِيهِ نو امام زفر رحمه الله د فی الحال لحاظ کړې دې.او فی الحال واړه مال د موصی مال دې وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او ددې خواب هم هغه دې.کوم چې موږ بیان کړې دې.

**تشریح:-** امام زفر رحمه الله فرمائی.چه لکه څنګه په دوهم صورت کي وصیت جائز دې.دغه ډول په رومبی صورت کي هم جائز دې.او د امام زفر رحمه الله نظر په دې خبره دې.چه فی الحال دا مال د خوئي مال نشو .بلکه دا خو اوس لا واړه په توله د موصی مال دې.نو د غیر د مال وصیت نشو.خو ددې خواب هم هغه دې .کوم چې موږ وړاندې پیش کړې دې.چه د هغې حاصل دا دې.چه اګرچه دا فی الحال د خوئي مال نه دې.خو د موصی د مرګ نه روسته کله چې د موصی له د مالك جوړیدو وار راځي.هغه وخت به دا د خوئي مال وي.نو موصی ته دا حق چرته شته.چه هغه د غیر د مال وصیت اوکړي.نو دا وصیت به باطل وي.

**په لفظ د حصې او جز، سره د یوکس لپاره د وصیت کولو حکم**



قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَىٰ بِسَهْمٍ مِنْ مَالِهِ او چا چې پخپل مال کي د یوې برخې وصیت اوکړو فَلَهُ أَخَسُّ سِهَامِ الْوَرَثَةِ إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ عَنِ السُّدُسِ نو موصی له لپاره به د وارثانو په برخو کي اخس ( د ټولو نه کم) دې.خو دا چې اخس د سدس نه کم شي فَيُتِمُّ لَهُ السُّدُسَ وَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ نو دده لپاره به سدس پوره کولې شي.او د سدس څخه به نشي زیاتولې وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی

**تشریح:-** که موصی په دې الفاظو کي وصیت اوکړو.چه زما د مال یوه برخه فلانی لپاره ده.یا زما د مال یو جزء فلانی لپاره دې.نو د برخې او د جزء دواړه یوه معنی ده.او په دواړو کي جهالت دې.او جهالت وصیت لپاره مضر نه دې.نو وصیت به جائز او صحیح وي.خو په دې کي دا ابهام پاتې شو.چه هر کس ته به څومره ملاویږي.نو دا فیصله د موصی په وضاحت باندې موقوف ده.او که موصی وضاحت اونکړې شو.تردې چې د موصی انتقال اوشو.نو اوس به دده وارثان د موصی قائم مقام وي.نو وارثان به ددې وضاحت کوی.چه د برخې او جزء نه څه مراد دې؟ وارثان چې څه وضاحت هم اوکړي.که هغه لږ وي او که ډیروي.په دې باندې به عمل کولې شي.دا اصل مسئله ده.خو د کوفې د خلګو په اصطلاح کي به برخه د سدس په معنی کي استعمالیدله.په دې وجه د امام صاحب او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د برخې وئیلو په صورت کي اختلاف شو.کوم چې کتاب کي ذکر دې.

وَقَالَا: او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلي دي. لَهُ مِثْلُ نَصِيبِ أَحَدِ الْوَرَثَةِ چې موصی له لپاره به په وارثانو کي د یوکس د برخې په مثل وي. وَلَا يُزَادُ عَلَى الثُّلُثِ او په ثلث باندې به نشي زیاتولې إِلَّا أَنْ يُجِيزَ الْوَرَثَةُ خو دا چې وارثان اجازت ورکړي

**تشریح:-** یعنی صاحبین رحمهما الله فرمائی.که برخه ئې اووئیله.نو د موصی د وارثانو برخو ته به کتلې شي.په هغوی کي چې د چاحصه د ټولو نه کمه وي.هم دغومره برخه به موصی له ته ورکولې شي.خو که اتفاق سره چرته داسې راپیښ شو.چه په دې کي کمه برخه د ثلث نه زیاته شي.نو هلته به د وارثانو د اجازت نه بغیر د ثلث نشي زیاتولې.مثلاً موصی یوه لور پریخودله.چه هغې لپاره نصف دې.او بل هیڅ څوك وارث ئې نشته.نو دلته د نصف نه کمه هیڅ برخه نشته.خود وارثانو د اجازت نه بغیر موصی لـه تـه نصف نشي ورکیدې.په دې وجه به صرف ثلث ورکولې شي.او که وارثان مختلف وي. نو په دوی کي چې د کوم وارث برخه د ټولو نه کمه وي.هغومره به موصی له ته ورکولې شي.

د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب۞ او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ذکر شوی صورت کي به موصی له ته سدس ورکولې شي.نه به ددې نه کمولې شي.او نه به زیاتولې شي.او هم دا سدس په نسبی ذوی الفروضو کي د ټولو نه کمه برخه ده.

لِأَنَّ السَّهْمَ يُرَادُ بِهِ أَحَدُ سِهَامِ الْوَرَثَةِ عُرْفًا خکه چې حصه، ددې نه په عرف کي د وارثانو په برخو کي یو مراد اخستې شي لَا سِيَّمَا فِي الْوَصِيَّةِ.خاص طور باندې په وصیت کي وَالْأَقَلُّ مُتَيَقَّنٌ بِهِ او اقل یقیني دې فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ، إِلَّا إِذَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ نو اقل اړخ ته به ګرځولې شي.خو کله چې اقل د ثلث نه زیات کړې شي فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو زیاتوالې به په وارثانو باندې ګرځولې شي لِأَنَّهُ لَا مَزِيدَ عَلَيْهِ عِنْدَ عَدَمِ إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ خکه چې د وارثانو د اجازت نه کیدو په وخت ثلث باندې زیاتوالې نه کیږي.

**تشریح:-** په دې باندې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د برخې نه مراد په وارثانو کي د یوکس برخه ده.او چونکه وصیت د میراث خور ده.نو په وصیت کي به هم د برخې نه هم دا مراد اخستلې شي.او چونکه برخې مختلف دی.بعضې نصف ده او څلورمه ده، او اتمه ده، او چرته ثلثان او ثلث او ثمن دې.او په داسې ځایونو کي اقل یقیني وي.نو د برخې څخه به په ټولو کي کمه برخه مراد اخستلې شي.او که په یو ځائې کي موصی به د کمې برخې نه هم زیات شي.نو هلته به د ثلث نه زیات موصی لـه تـه نشي ورکولې.بلکه د ثلث نه زیات به وارثانو ته ورکولې

شی.خکه چې کله د وارثانو اجازت نه وی.نو موصی له ته د ثلث نه زیات نشی ورکیدې.دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل
دې.او روستو د امام صاحب رحمه الله دلیل راروان دې.

## د امام اعظم رحمه الله دلیل

وَلَهُ أَنَّ السَّهْمَ هُوَ السُّدُسُ هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ(¹)او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه برخه هغه سدس
دې.د ابن مسعود رضی الله عنه نه هم دا نقل دی وَقَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِيمَا يُرْوَى او دوی دا پخپل روایت کې مرفوعاً
(هم) روایت کړې دی وَلِأَنَّهُ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ السُّدُسُ او خکه چې برخه ذکر کولې شي.او ددې نه سدس مراد اخستلې
کیږی فَإِنَّ إِيَاسًا قَالَ: السَّهْمُ فِي اللُّغَةِ عِبَارَةٌ عَنِ السُّدُسِ، وَيُذْكَرُ خکه چې ایاس رحمه الله فرمائیلی دی.چه د سهم (حصې)
نه مراد په لغت کې سدس دې.او برخه ذکر کولای شی وَيُرَادُ بِهِ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ الْوَرَثَةِ او په دې کې د وارثانو په برخو کې
یوه برخه مراد اخستلې شی فَيُعْطَى مَا ذَكَرْنَا، قَالُوا: هَذَا كَانَ فِي عُرْفِهِمْ نو موصی له ته به هم هغه ورکولې
شی.کومه چې مونږه ذکر کړې ده.مشائخو فرمائیلی دی.چه دا د کوفې د خلګو په عرف کې وو وَفِي عُرْفِنَا السَّهْمُ
كَالْجُزْءِ او زموږ په عرف کې برخه دجزء پشان ده.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د برخې نه مراد سدس دې.د ابن مسعود رضی الله عنه نه
مرفوعاً او موقوفاً یو روایت نقل دې.چه په دې کې هم دا فرمائیلی شوی دی.چه برخه سدس دې.او د بصرې
قاضی ایاس بن معاویه رضی الله عنه هم فرمائیلی دی.په لغت کې د سهم نه مراد سدس دې.او سهم وئیلو سره د وارثانو د
ټولو نه کمه برخه سدس مراد اخستلې شی.او د نسبی ذوی الفروضو د ټولو نه کمه برخه سدس ده.نو موصی له ته
به سدس ورکولې شی.نه به ددې نه کم ورکولې شی.او نه به زیاته ورکولې شی.په دې باندې مرغینانی رحمه الله
فرمائی.چه دا واړه تفصیلات د اهل کوفه عرف دې.ګنی زموږ په عرف کې سهم د جزء په معنی کې مستعمل
دې.او د جزء په اړه کې چې کوم حکم دې.هغه موږ په پیل کې بیان کړې دې.او روستو هم دا بیانولې شی.

## د مجهول جزء وصیت کولو سره د تفصیل مسئله

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَلَوْ أَوْصَى بِجُزْءٍ مِنْ مَالِهِ او که د خپل مال نه ئې د یو جزء وصیت اوکړو قِيلَ لِلْوَرَثَةِ
أَعْطُوهُ مَا شِئْتُمْ نو وارثانو ته به وئیلې شی.چه موصی له ته کوم څه تاسو غواړئ ورکړئ لِأَنَّهُ مَجْهُولٌ يَتَنَاوَلُ الْقَلِيلَ
وَالْكَثِيرَ غَيْرَ أَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْوَصِيَّةِ خکه چې جزء مجهول دې.چه دا لږ او ډیر ته ګډ دې.علاوه ددې خبرې نه چې
جهالت د وصیت صحت ته مانع نه دې وَالْوَرَثَةُ قَائِمُونَ مَقَامَ الْمُوصِي او وارثان د موصی قائم مقام دی فَإِلَيْهِمُ الْبَيَانُ نو
بیان وارثانو اړخ ته دې.

**تشریح:-** ددې تشریح مونږه وړاندې بیان کړې ده.او دا هم بیان شوی دی.چه د سهم او جزء دواړو یو حکم دې.

## په وصیت کښې د زیاتوالي حکم

قَالَ وَمَنْ قَالَ سُدُسُ مَالِي لِفُلَانٍ او چاچه دا اووئیل.چه زما سدس مال د فلانی لپاره دې ثُمَّ قَالَ فِي ذَلِكَ
الْمَجْلِسِ أَوْ فِي مَجْلِسٍ آخَرَ لَهُ ثُلُثُ مَالِي وَأَجَازَتِ الْوَرَثَةُ بیا هم په دې مجلس کې یا ئې په بل یو مجلس کې اووئیل.چه
فلانی لپاره زما ثلث مال دې.او وارثانو اجازت ورکړو فَلَهُ ثُلُثُ الْمَالِ وَيَدْخُلُ السُّدُسُ فِيهِ نو هغه لپاره ثلث مال
دې.اوسدس به په دې ثلث کې داخلیږی

**تشریح:-** موصی اووئیل.چه زما سدس مال د فلانی لپاره وصیت دې.او بیا هم په دې مجلس کې یا ددې نه علاوه په
بل مجلس کې اووانی.چه هغه لپاره زما ثلث مال وصیت دې.نو ددې دواړو مجموعه نصف وی.او وارثان هم ددې

¹) أخرجه البزار فی مسنده والطبرانی فی معجمه الوسیط (نصب:۲۲۷۱۵)_



په نافذ کاوه باندې راضی دی.او د نصف مال ورکاوه اجازت ورکوی.بیا به هم موصی له ته صرف ثلث
ملاویږی.او ړومبې سدس به هم په دې کې مدغم کیږی (او غائبیږی).

وَمَنْ قَالَ سُدُسُ مَالِي لِفُلَانٍ و چاچه اووئیل.چه زما سدس مال د فلانی لپاره دې ثُمَّ قَالَ فِي ذَلِكَ الْمَجْلِسِ أَوْ
فِي غَيْرِهِ سُدُسُ مَالِي لِفُلَانٍ فَلَهُ سُدُسٌ وَاحِدٌ بیا هم په دې مجلس کې یا ددې نه په علاوه کې ئې اووئیل.چه زما
سدس د فلانی لپاره دې.نو هغه لپاره یو سدس دې لِأَنَّ السُّدُسَ ذُكِرَ مُعَرَّفًا بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْمَالِ خکه چې سدس
معرفه ذکرکړې شوې دې.مال اړخ ته د اضافت کاوه په وجه وَالْمَعْرِفَةُ إِذَا أُعِيدَتْ يُرَادُ بِالثَّانِي عَيْنُ الْأَوَّلِ هُوَ الْمَعْهُودُ فِي
اللُّغَةِ او د معرفه چې کله څه اعاده کولې شی.نو د ثانی نه عین اول مراد اخستلې شی.په لغت کې هم دا معهود (او
مشهور) دې.

**تشریح:-** او که ده اول اووئیل.چه زما سدس مال د فلانی لپاره وصیت دې.او بیا هم په دې مجلس کې یا په بل
مجلس کې وائی.چه زما سدس مال فلانی لپاره وصیت دې.نو د قاعدې مطابق هغه ته ثلث ملاویدل پکار
دی.خکه چې دوې (دوه) سدسه ملاو شی.نو ثلث جوړیږی.خو هغه ته به صرف ثلث ملاویږی.خکه چې قاعده دا
مقرر ده.چه د معرفه نه روسته دوباره معرفه راشی.نو د دوهم او اول دواړو معرفو نه یو مراد اخستلې شی.او دلته
سدس معرفه ده.خکه چې ددې اضافت مال اړخ ته دې.او هم دا متکلم اړخ ته د مضاف کیدو په وجه معرفه ده.چه
ددې په وجه سدس هم معرفه شو.نو د معرفه نه روسته دویمه معرفه بیان شوې ده.نو د دوهم سدس څخه به عین
اول مراد وی.او صرف موصی له ته به یو سدس ورکولې شی.

## د وصیت کولو نه روسته د مال هلاکیدو حکم

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ دَرَاهِمِهِ و چاچه وصیت اوکړو.پخپلو دراهمو کې د ثلث، أَوْ بِثُلُثِ
غَنَمِهِ یا پخپلو چیلو کې د ثلث فَهَلَكَ ثُلُثَا ذَلِكَ وَبَقِيَ ثُلُثُهُ نو ددې دوې (دوه) ثلثه هلاك شو.او ددې یو ثلث پاته پاتې
شو وَهُوَ يَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنْ مَالِهِ و دا (کوم ثلث چې پاته پاتې شوې دې) دده د پاته مال د ثلث نه اوځی فَلَهُ
جَمِيعُ مَا بَقِيَ نو هغه لپاره واړه پاته پاتې دې

**تشریح:-** زید سره څه دراهم دی.او څه وزه (چیلئ) دی.او ددې دراهمو او چیلو نه علاوه هم څه مال شته.چه دا د
چیلویادراهمو د ثلث نه دوچند دې.کله چې زید وصیت کوی.چه زما د دراهمو دریمه برخه فلانی لپاره وصیت
دې.یا اووائی.چه زما د چیلو یو ثلث وصیت دې.نو وصیت صحیح دې.خو اوس دا واقعه راپیښه شوه.چه په دې
دراهمو یا چیلو کې دوې (دوه) ثلثه هلاك شو.او صرف یو ثلث پاته پاتې شو.او ددې ثلث نه علاوه موصی سره
دومره مال موجود دې.چه هغه ددې په مقابله کې دوچند یا ددې نه هم زیات دې.نو اوس به موصی له ته څومره
ورکولې شی.نو په دې کې زموږ او د امام زفر رحمه الله اختلاف دې.

د احنافو مذهب❁ زموږ مذهب دا دې.چه په دراهمو او په چیلو کې چې کوم ثلث پاته دې.هغه پوره ثلث به
موصی له ته ورکولې شی.

وَقَالَ زُفَرُ: لَهُ ثُلُثُ مَا بَقِيَ(¹)او امام زفر رحمه الله فرمائی.چه هغه لپاره د پاته پاتې ثلث دې لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُشْتَرَكٌ
بَيْنَهُمْ خکه چې په دې دواړو کې هر یو ددې واړه په منځ کې مشترك دې وَالْمَالُ الْمُشْتَرَكُ يَتْوَى مَا تَوِيَ مِنْهُ عَلَى الشَّرِكَةِ او
مال مشترك هلاکیږی د هغې نه، کوم چې هلاکیږی په شرکت باندې وَيَبْقَى مَا بَقِيَ عَلَيْهَا او پاته پاتې کیږی هغه
کوم چې پاتې کیږی په شرکت باندې وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَتِ التَّرِكَةُ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً او داسې شوه کله چې ترکه مختلف

¹) القول الراجح هوهذا قول زفر رحمه الله كذا فی کشف الأستار(۳۲٤١٢) وحاشیة السعدی علی العنایة (۳۷٤١٩) وردالمحتار(٤٧٥١٥)
والعینی (٤٢٣١١٣) نقلاً عن القول الراجح (۳۷٦١٢)-

اجناس وی.

تشریح:- او امام زفر رحمه الله فرمائي.چه کوم ثلث پاته دې.د هغې ثلث به موصی له ته ملاویږي.مثلاً واړه نهه سوه دراهم وو.په دې کي ثلث یعني ۳۰۰ پاته پاتي شو.او ۶۰۰ دراهم هلاك شو.نو د امام زفر رحمه الله په نیز د پاته پاتي ۳۰۰ ثلث یعني ۱۰۰ به موصی له ته ورکولې شي.او زموږ په نیز به ۳۰۰ موصی له ته ورکولې شي.

؟ د امام زفر رحمه الله دلیل ۞ د امام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه واړه مال یعني دراهم او وزه (چیلۍ) به موصی له او وارثانو په منځ کي مشترك وي.نو کوم مقدار چه هلاك شو.هغه هم مشترك دې.او کوم چې پاته پاتي دې.هغه هم مشترك دې.او اصول دا دې.چه کوم مال مشترك وي.د هغې هلاکت هم په شرکت باندې وي.او کوم چې پاته پاتي کیږي.د هغې بقاء هم شرکت باندې پاته پاتي کیږي.نو په ذکر شوی صورت کي چې هرکله دا مال مشترك شو.نو هلاك شوې او پاته پاتي واړه مشترك شو.او که ترکه مختلف اجناس وي.او هلته موصی دا طریقه اختیار کړي وي.نو هلته د تولو (امامانو) په نیز هم دا حکم دې.چه د پاته پاتي ثلث به موصی له ته ورکولې شي.مثلاً زید سره څه د چیلو رمه ده.او څه د اوښانو ده.او څه د غویانو ده.او زید په دې کي د یو ثلث وصیت اوکړو.او اتفاق سره د هر یوې رمې دوې (دوه) ثلثه هلاك شو.او صرف یو ثلث پاته پاتي شوې دې.نو هلته به بالاتفاق موصی له ته د جنس د پاته پاتي ثلث نه یو ثلث ورکولې شي.نو دلته کي هم دغه ډول پکار ده.

**د احنافو دلیل او د امام زفر رحمه الله د دلیل جواب**

وَلَنَا أَنَّ فِي الْجِنْسِ الْوَاحِدِ يُمْكِنُ جَمِيعُ حَقِّ أَحَدِهِمْ فِي الْوَاحِدِ او زموږ دلیل دا دې.چه په یو جنس کي په دې کي د هر یو حق په یو کي جمع کول ممکن دی وَلِهَذَا يَجْرِي فِيهِ الْجَبْرُ عَلَى الْقِسْمَةِ په دې وجه په یو جنس کي ویش باندې زبردستي جاري کیږي وَفِيهِ جَمْعٌ او په ویش کي جمع کول دی. وَالْوَصِيَّةُ مُقَدَّمَةٌ او وصیت وړاندې دي فَجَمَعْنَاهَا فِي الْوَاحِدِ الْبَاقِي دا په یو پاته کي جمع کړل.او دراهم د درهم مثل شو. وَصَارَتِ الدَّرَاهِمُ كَالدِّرْهَمِ نو موږ

تشریح:- دا زموږ د اړخه د امام زفر رحمه الله خواب دې.ددې حاصل دا دې.چه جنس واحد په مختلفو اجناسو باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.ځکه چې په کتاب القسمة کي دا بحث تیر شوې دې.په جنس واحد کي به د ویش په درخواست باندې قاضي په پاته شریکانو باندې زبردستي کوي.او د مختلفو اجناسو په صورت کي به قاضي زبردستي نه کوي.او ددې وجه دا ده.چه په یو جنس کي د یو شي ډیر شریکان راجمع کیداې شي.یعني په دې کي د موصی له هم حق وي.او د وارثانو حق هم وي.نو هرکله چې اجتماع اوشوه.یعني د یو جنس په صورت کي په ۹۰۰ سوه دراهمو کي ، نو د موصی له حق به وړاندې وي.ځکه چې وصیت د میراث نه مقدم وي.نو په دې کي د موصی له حق اصالتاً وي.او د وارثانو حق تبعاً وي.او بیا قاعده کلیه دا ده.چه هرکله یو مال په أصل او تابع باندې مشتمل وي.او په دې کي بعضې هلاك شي.نو هلاك شوې تابع اړخ ته ګرځولې شي.اصل اړخ ته نشي ګرځولې.لکه څنګه چې په مال مضاربت کي هم دغه ډول کیږي.نو دلته به هلاکت هغه ثلثان اړخ ته ګرځولې شي.کوم چې د وارثانو حق وو.او اصل ثلث پاته دې.نو هغه به موصی له ته ورکولې شي.

بِخِلَافِ الْأَجْنَاسِ الْمُخْتَلِفَةِ په خلاف د مختلفو اجناسو لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ الْجَمْعُ فِيهَا جَبْرًا فَكَذَا تَقْدِيمًا ځکه چې مختلفو اجناسو کي ویش باندې د زبردستۍ په اعتبار سره جمع کول ممکن نه دی. نو هم دغه ډول په اعتبار د وړاندې والی (هم ممکن نه دی)

تشریح:- او که اجناس مختلف وي.نو هلته نه زبردستي کیداې شي.او نه واړه په شي واحد کي جمع کیداې شي. او هرکله چې دا واړه شیان نشي کیدې.نو د وصیت به د میراث نه تقدیم هم نه ثابتیږي.او نه به د اصل او تبع



مسئله جاری کیداې شي.دا دلیل حاصل شو.او که موصی د دراهمو په خانې درهم ونیلي وي.مثلاً داسې ني ونیلي وو.چه ما فلاني ته یو درهم هبه کړو.او مثلاً درې درهمه وو.چه د هغې نه دوې (دوه) درهمه هلاك شو.او یو پاته پاتي شو.نو دا یو به موصی له ته ورکولې شي.یعني دلته به دا نشي ونیلې.چه ددې یو درهم ثلث به موصی له ته ورکولې شي.پاته خبره واضحه ده.

**د یو ثلث وصیت کولو نه روسته دوې (دوه) ثلثه مال هلاك شي نو څه حکم دې ؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَلَوْ أَوْصَى بِثُلُثِ ثِيَابِهِ او که د خپلې دریمې برخې کپړو وصیت ني اوکړو فَهَلَكَ ثُلُثَاهَا وَبَقِيَ ثُلُثُهَا نو په دې کي کپړو کي دوې (دوه) ثلثه هلاك شو.او ددې ثلث پاته پاتي شو وَهُوَ يَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنْ مَالِهِ او دا (پاته پاتي ثلث) دده د پاته پاتي مال د ثلث نه خارجیږي دی لَمْ يَسْتَحِقَّ إِلَّا ثُلُثَ مَا بَقِيَ مِنَ الثِّيَابِ نو موصی له به مستحق نه وي.خو د پاته پاتي کپړ و د ثلث قَالُوا: هَذَا إِذَا كَانَتِ الثِّيَابُ مِنْ أَجْنَاسٍ مُخْتَلِفَةٍ مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه دا هغه وخت دی.کله چې کپړې د مختلف جنس وي وَلَوْ كَانَتْ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الدَّرَاهِمِ او که کپړې د یو جنس وي.نو کپړې د دراهمو په درجه کي دی وَكَذَلِكَ الْمَكِيلُ وَالْمَوْزُونُ بِمَنْزِلَتِهَا او هم دغه ډول هر کیلي او وزني شي د دراهمو په درجه کي لِأَنَّهُ يَجْرِي فِيهِ الْجَمْعُ جَبْرًا بِالْقِسْمَةِ ځکه چې په دې (کیلي او وزني څیز) کي جمع کول جاري کیږي.په ویش کي د زبردستۍ په اعتبار سره،

تشریح:- که موصی د خپلو کپړو د ثلث وصیت کړې وي.او اتفاق سره ددې کپړو نه دوې (دوه) ثلثه هلاکې شي.او صرف یوثلث پاته پاتې شي.نو موصی له ته به د پاته پاتې ثلث ملاویږي.اوکه پاته پاتي واړه به ملاویږي ؟ نو په دې کي تفصیل دې.که کپړې د مختلف جنس وي.نو د پاته پاتي کپړو ثلث به ملاویږي.اوکه د یو جنس وي.نو پاته پاتي به واړه ملاویږي.ځکه چې د جنس د اتحاد په صورت کي کپړې د دراهمو پشان شوې.او هم دغه ډول هرکیلي او وزني شي هم د دراهمو په مرتبه کي دې.ځکه چې لکه څنګه چې په دراهمو کي ویش باندې زبردستي جائز ده.دغه ډول کیلي او وزني څیزونو کي ویش باندې زبردستي جائز ده.او لکه څنګه چې په دراهمو وغیره کي جمع کول ممکن دی.دغه ډول په کیلي او وزني شي کي جمع کول ممکن دی.

**په دریو غلامانو کښې د یو ثلث وصیت کولو نه روسته دوې (دوه) غلامان مړه شو نو څه حکم دې ؟**

وَلَوْ أَوْصَى بِثُلُثِ ثَلَاثَةٍ مِنْ رَقِيقِهِ او که ده وصیت اوکړو.پخپلو دریو غلامانو کي د ثلث فَمَاتَ اثْنَانِ نو دوې (دوه) مړه شو لَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا ثُلُثُ الْبَاقِي نو نه به وی دده (موصی له دپاره) مګر د پاته پاتي ثلث، وَكَذَا الدُّورُ الْمُخْتَلِفَةُ او هم دغه ډول مختلف کورونه دی وَقِيلَ هَذَا عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَحْدَهُ او ونیلی شوی دی.چه دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې دې لِأَنَّهُ لَا يَرَى الْجَبْرَ عَلَى الْقِسْمَةِ فِيهَا ځکه چې هغوی په دوی په دې (غلامانو او مختلفو کورونو) کي ویش باندې زبردستي کول جائز نه ګڼړي

تشریح:- که زید پخپلو دریو غلامانو کي د ثلث وصیت اوکړو.او بیا دوې (دوه) غلامان مړه شو.او یو پاته پاتي شو.نو موصی له ته به ددې یو غلام ثلث ورکولې شي.او که یو څو مختلف کورونه وي.نو په دې کي هم دغه حکم دې.بیا پاتي شوه دا خبره چې په دې کي اختلاف شته اوکه نه؟ نو په دې کي د مشائخو رحمهم الله دوې (دوه) اقواله دی:
① دا صرف د امام صاحب رحمه الله قول دې.ځکه چې ددوی په نیز مذکوره څیزونو کي ویش باندې زبردستي جائز نه ده.نو ددې به هغه حکم وی.کوم چې دجنس د اختلاف په صورت کي دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز په دې کي ویش باندې زبردستي جائز ده.نو دا به د دراهمو په مرتبه کي وی.

وَقِيلَ هُوَ قَوْلُ الْكُلِّ او ونیلی شوی دی.چه دا د ټولو قول دې لِأَنَّ عِنْدَهُمَا لِلْقَاضِي أَنْ يَجْتَهِدَ وَيَجْمَعَ ځکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز قاضي ته حق شته.چه هغه داسې اجتهاد اوکړي.او جمع کړي وَبِدُونِ ذَلِكَ يَتَعَذَّرُ الْجَمْعُ او د قاضي د اجتهاد نه بغیر جمع کول متعذر دی وَالْأَوَّلُ أَشْبَهُ لِلْفِقْهِ الْمَذْكُورِ او اول (یعني په دې کي د اختلاف کیدل) د

مذکوره فقهي زیات مشابه دې.

تشریح:- ② او دوهم قول دا دې.چه دا د ټولو اجماعی قول دې.نوپه دې صورت کي صاحبینو رحمهما الله باندې اعتراض واردیږي.خودهغوی دارخه دا خواب ورکړې شوې دې.چه د قاضی د اجتهاد نه بغیر په شریکانو کي د یوکس حق په یو کور یا یو غلام کي نشي جمع کیدې.او هرکله دوې (دوه) غلامان یا دوې (دوه) کورنه هلاك شو.نو په دې کي د قاضي اجتهاد تر اوسه پورې نه دې شوې.نو پاته پاتې هم مشترك مال پاتې شو.نو موصی له ته به د پاته پاتي مال صرف دریمه برخه ملاویږي.او هم دا د امام صاحب رحمه الله قول دې.خو مرغیناني رحمه الله رومبی قول ته ترجیح ورکړې ده.

**چه مال نغد هم وي او پور هم وي نو د زرو روپو وصیت به څنګه پوره کولای شي؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ و چا چي د یوکس لپاره د زرو درهمو وصیت اوکړو وَلَهُ مَالٌ عَيْنٌ وَدَيْنٌ و د هغه نغد مال شته.او پور هم شته فَإِنْ خَرَجَ الْأَلْفُ مِنْ ثُلُثِ الْعَيْنِ دُفِعَ إِلَى الْمُوصَى لَهُ نو که زر (درهم) راوخي.د نغد ثلث نه، نو زر (درهم) به موصی له ته ور کولای شي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ إِيفَاءُ كُلِّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ مِنْ غَيْرِ بَخْسٍ فَيُصَارُ إِلَيْهِ څکه چي هر حقدار ته د هغه حق ورکول ممکن دی.د څه کمی نه بغیر، نو دې اړخ ته به رجوع کولای شي وَإِنْ لَمْ يَخْرُجْ او که زر (درهم) دثلث نه نه اوخي دُفِعَ إِلَيْهِ ثُلُثُ الْعَيْنِ نو موصی له ته به د نغد مال ثلث ور کولای شي وَكُلَّمَا خَرَجَ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ أَخَذَ ثُلُثَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْأَلْفَ او د پور نه چي کوم مقدار وصولیږي.د هغي څخه به ثلث اخلی.تردې چي هغه (موصی له) زر (درهم) وصول کړي

حل اللغة* ① بخس: کموالي﴿

تشریح:- زید وصیت اوکړو.چه زما د مال نه دې زر روپۍ بکر ته ورکړې شي.نو وصیت صحیح دې.خو زید څه مال نغد پریخودو.او بعضې مال هغه دې.کوم چې په خلګو باندې پور دې.نو بکر ته چي کوم هزار روپۍ ورکولې شي.که نغد مال دومره وی.چه د هغې ثلث زر روپۍ جوړیږي.مثلاً درې زره یا ددې نه زیات نغد مال موجود دې.نو بکر ته به زر روپۍ ددې نغد مال نه ورکولې شي.او که نغد مال دومره نه دې.بلکه کم دې.مثلاً ټولې زر روپۍ نغدې دی.او پاته مال په خلګو باندې پور دې.نو بکر ته به د زرو روپو ثلث په نغدو کي ورکولې شي.او پاته برخه به هغه ته د قرضو نه ملاویږي.چه ددې صورت به دا وی.چه څومره پور وصولیږي.د هغې دریمه برخه به بکر ته ورکولې شي.تردې چي د هغه حق پوره شي.یعنی زر روپۍ پوره شي.

لِأَنَّ الْمُوصَى لَهُ شَرِيكُ الْوَارِثِ څکه چې موصی له د وارث شریك دې وَفِي تَخْصِيصِهِ بِالْعَيْنِ بَخْسٌ فِي حَقِّ الْوَرَثَةِ او د موصی له په خاص کاوه کي نغد مال سره، د وارثانو په حق کي کمی کول دی.لِأَنَّ لِلْعَيْنِ فَضْلًا عَنِ الدَّيْنِ څکه چې نغد مال ته په قرضو باندې فضیلت حاصل دې وَلِأَنَّ الدَّيْنَ لَيْسَ بِمَالٍ فِي مُطْلَقِ الْحَالِ او څکه چې پور په مطلق حال کي مال نه دې وَإِنَّمَا يَصِيرُ مَالًا عِنْدَ الْاِسْتِيفَاءِ فَإِنَّمَا يَعْتَدِلُ النَّظَرُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ هغه د وصولولو په وخت مال جوړیږي.نو د (موصی له او وارثانو په منځ کي) د نظر برابری په هغه صورت کي ده.کوم چې موږ ذکرکړې دي.

تشریح:- ددې طریقې اختیارولو وجه دا ده.چه موصی له او وارثان په ترکه کي دواړه شریکان دی.ددې باوجود که نغد مال صرف موصی له ته ورکړې شي.نو د وارثانو په حق کي کمی کول لازمیږي.او کمی څکه لازمیږي.چه موصی له ته نغد مال ملاو شو.او وارثانو ته هغه مال ملاو شو.کوم چې په خلګو باندې پور دې.حالانکه نغد مال د پور نه غوره او افضل وی.څکه چې پور فی الحال مال نه دې.بلکه د وصولولو نه روسته په مال وی.نو د موصی له او وارثانو په منځ کي برابری به په هغه صورت کي پاتې کیږي.کوم چې موږ بیان کړې دي.

**دوې (دوه) کسانو لپاره د ثلث مال وصیت کولو نه روسته معلومه شوه چې یو کس مړ شوې دې نو څه حکم دې؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَى لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو بِثُلُثِ مَالِهِ و چاچه وصیت اوکړو.د زید او عمرو دپاره، د خپل مال د ثلث فَإِذَا عَمْرٌو مَيِّتٌ نو عمرو مړ دې فَالثُّلُثُ كُلُّهُ لِزَيْدٍ نو ثلث به واړه په ټوله د زید لپاره وی لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْوَصِيَّةِ څکه چې مړې د وصیت اهل نه دې فَلَا يُزَاحِمُ الْحَيَّ الَّذِي هُوَ مِنْ أَهْلِهَا نو ژوندی مقابل (خصم) نه جوړیږي.کوم چې د وصیت اهل دې.لکه کله چې هغه وصیت اوکړو.د زید او دیوال دپاره كَمَا إِذَا أَوْصَى لِزَيْدٍ وَجِدَارٍ نو مړې به ددې



حل اللغة* ① جدار: دیوال ② یزاحم: مقابل کیږي.﴿

تشریح:- بکر د زید او عمرو دواړو لپاره د خپل دریمه برخه مال وصیت اوکړو.خو عمرو ژوندې نه دې.بلکه هغه د وصیت کاوه نه وړاندې مړ شوې دې.نو پوره ثلث به زید ته ملاویږي.څکه چې مړې د وصیت اهل نه دې.او زید چونکه ژوندې دې.او د وصیت اهل دې.نو عمرو به د اهلیت نه کیدو په وجه د زید مقابل نه جوړیږي.او هغه ته به د ثلث ور کاوه نه مانع نه جوړیږي.لکه مثلاً که بکر د زید او دیوال لپاره د ثلث مال وصیت اوکړو.نو پوره ثلث به زید ته ملاویږي.څکه چې دیوال کي اهلیت نشته.چه هغه (دیوال) ته هم ورکړې شي.نو عمرو (چې مړ دې) هم د دیوال په مرتبه کي دې.او په دواړو صورتونو کي به زید ته پوره ثلث ملاویږي.

**په مذکوره مسئله کښې د امام ابویوسف رحمه الله نقطه نظر**

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِمَوْتِهِ فَلَهُ نِصْفُ الثُّلُثِ او د امام ابویوسف رحمه الله نه رانقل دی.چه کله موصی د عمرو د مرګ نه خبر نه وی.نو د زید لپاره د ثلث نصف دې لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ عِنْدَهُ صَحِيحَةٌ لِعَمْرٍو څکه چې د موصی په نیز (دده په ګمان کي) عمرو لپاره وصیت صحیح دې وَفَلَمْ يَرْضَ لِلْحَيِّ إِلَّا نِصْفَ الثُّلُثِ

تشریح:- د مخکنۍ مسئلې امام ابویوسف رحمه الله دا تفصیل بیان کړې دې.که موصی ته معلومه ده.چه عمرو ژوندې دې.حالانکه هغه مړ شوې دې.نو موصی پخپل ګمان کي زید ته صرف د ثلث نصف ورکول غواړي.نو د ثلث نصف به زید ته ملاویږي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ بِمَوْتِهِ نو هغه راضی نه دې ژوندی لپاره خو د ثلث په نصف سره، په خلاف ددې صورت کله چې دې د هغه د مرګ نه خبر وی لِلْمَيِّتِ لَغْوٌ څکه چې مړی لپاره وصیت کول عبث دی لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ فَكَانَ رَاضِيًا بِكُلِّ الثُّلُثِ لِلْحَيِّ نو هغه د پوره ثلث نه د زید په حق کي راضی شو.

تشریح:- اوکه موصی ته معلومه ده.چه عمرو مړ شوې دې.بیا هم هغه په دې الفاظو کي وصیت کوی.نو عمرو لپاره وصیت کول سراسر لغوه (او عبث) دې.او په دې صورت کي به پوره ثلث زید ته ملاویږي.ګویا چې هغه د پوره ثلث زید ته ور کاوه باندې راضی دې.او په رومبی صورت کي زید ته په پوره ثلث ور کاوه سره راضی نه دې.

**د دوو کسانو په منځ کښې د ثلث مال وصیت نه روسته معلومه شي چې یوکس مړ شوې دې نو څه حکم دې؟**

وَإِنْ قَالَ ثُلُثُ مَالِي بَيْنَ زَيْدٍ وَعَمْرٍو وَزَيْدٌ مَيِّتٌ اوکه موصی اووئیل.چه زما دریمه برخه مال د زید او عمرو په منځ کي دې.او زید مړ دې كَانَ لِعَمْرٍو نِصْفُ الثُّلُثِ نو عمرو لپاره به د ثلث نصف وی لِأَنَّ قَضِيَّةَ هَذَا اللَّفْظِ أَنْ يَكُونَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ الثُّلُثِ بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ څکه چې ددې لفظ تقاضا دا ده.چه په دوی دواړو کي هر یو لپاره د ثلث نصف وی.په خلاف د مخکنۍ مسئلې

حل اللغة* ① قضية: تقاضا﴿

تشریح:- که موصی هغه الفاظ استعمال کړي.کوم چې وړاندې تیر شو.چه زما د مال ثلث د زید او عمرو لپاره وصیت دې.نو ددې حکم خو ذکر شوې دې.او که هغه ددې په ځائې لفظ د بین (منځ) استعمال کړي.اوداسې اووائی.چه زما دمال دریمه برخه د زیداوعمرو په منځ کي ده.او په دوی کي زید ژوندې نه دې.صرف عمرو ژوندې دې.نو عمرو لپاره به د ثلث، نصف وی.څکه چې موصی کوم د بین (منځ) لفظ استعمال کړې دی.د هغې تقاضا هم دا ده.چه موصی په دوی دواړو کي هر یو ته د ثلث نصف ورکول غواړي.او په مخکنۍ مسئله کي داسې هیڅ

لفظ نشته.چه هغه په دې خبره دلالت اوکړي.چه موصي په دوی دواړو کې هر یو ته د ثلث نصف ورکول غواړي.

اَلَاتَرٰی اَنَّ مَنْ قَالَ ثُلُثُ مَالِیْ لِزَیْدٍ وَسَکَتَ آیا ته نه ګورې.چه چا اوونیل.چه زما دریمه برخه مال زید لپاره دې.او خاموش شو کَانَ لَهٗ کُلُّ الثُّلُثِ نو زید لپاره به پوره ثلث وی وَلَوْقَالَ ثُلُثُ مَالِیْ بَیْنَ فُلَانٍ وَسَکَتَ او که وې وئیل.چه زما د مال دریمه برخه فلانی په منځ کې ده.او خاموشه شو لَمْ یَسْتَحِقَّ الثُّلُثَ نو فلانی به د ثلث مستحق نه وی.

تشریح:- ددې په تائید کې مرغینانی رحمه الله دوې (دوه) جزءه بیان کړی دی ① که موصي داسې اوونیل.چه زما دریمه برخه مال زید لپاره دې.او نور نې هیڅ او نه وئیل.نو زید لپاره به دریمه برخه مال وی.② اوکه موصي داسې اوونیل.چه زما دریمه برخه مال د زید په منځ کې دې.او هیڅ نې او نه وئیل.نو زید ته به پوره ثلث نشي ورکولې.بلکه د ثلث نصف به ملاویږی.نو معلومه شوه.چه د لفظ د بین (منځ) استعمالولو مخکښې طریقې (وصیت) اختیارولو حکم به جلا وی.او د

**د وصیت په وخت مال موجود نه وی او روستو اوګټي نو د وصیت څه حکم دې؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ اَوْصٰی بِثُلُثِ مَالِهٖ وَلَامَالَ لَهٗ وَاکْتَسَبَ مَالًا) و چاچه د مال د ثلث وصیت اوکړو.او هغه لپاره مال نشته.او موصي مال اوګټلو اِسْتَحَقَّ الْمُوْصٰی لَهٗ ثُلُثَ مَایَمْلِکُهٗ عِنْدَ الْمَوْتِ نو موصی له به د هغې مال د ثلث مالك وی.چه موصي د مرګ په وخت د کوم مالك وو

تشریح:- زیدوصیت اوکړو.چه زما د مال ثلث بکر ته ورکړئ.خو زید سره مال نشته.البته زید د وصیت نه روستو مال اوګټلو.اود مرګ په وخت نې مال پریخودو.او مړ شو.نو زید چې د مرګ په وخت د څومره مال مالك دې.د هغې مال ثلث به موصي له ته ورکولې شی.

لِاَنَّ الْوَصِیَّةَ عَقْدُ اسْتِخْلَافٍ مُضَافٌ اِلٰی مَابَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې وصیت د خلیفه جوړولو یو عقد دې.چه دا د مرګ نه روستو ارخ ته مضاف دې وَیَثْبُتُ حُکْمُهٗ بَعْدَهٗ او د وصیت د عقد حکم به د مرګ نه روستو ثابتیږی فَیُشْتَرَطُ وُجُوْدُ الْمَالِ عِنْدَ الْمَوْتِ لَاقَبْلَهٗ نو د مرګ په وخت د مال وجود شرط دې.ددې نه وړاندې نه دې

تشریح:- ځکه چې په وصیت کې د وصیت په وخت د مال وجود شرط نه دې.بلکه د مرګ په وخت د مال وجود شرط دې.او د مرګ په وخت مال موجود دې.ځکه چې د وصیت حکم د موصي د مرګ نه روسته هم ثابتیږی.نو دغه وخت به ملکیت کتلې شی. ځکه چې د وصیت حقیقت هم دا دې.چه موصي ګویا دا وائی.چه ته زما د مرګ نه روستو زما د مال په ثلث کې زما خلیفه او زما قائم مقام یې.

وَکَذٰلِكَ اِذَاکَانَ لَهٗ مَالٌ فَهَلَكَ ثُمَّ اکْتَسَبَ مَالًا لِمَا بَیَّنَّا او هم دغه کله چې دده لپاره مال وی.نو مال هلاك شوې وی.بیا هغه مال ګټلې وی.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې.

تشریح:- دغه ډول که د وصیت په وخت زید سره مال موجود وی.خو دغه مال روستو هلاك شو.او زید بیا د مرګ نه وړاندې مال اوګټلو.نو د مرګ په وخت مال موجود دې.نو ددې مال په ثلث کې به وصیت جاری کیږی.

**چه د مرګ په وخت مال نه وی نو وصیت باطل دې**

وَلَوْاَوْصٰی لَهٗ بِثُلُثِ غَنَمِهٖ او که موصي، موصی له لپاره د خپلو چیلو د ثلث وصیت اوکړو فَهَلَكَ الْغَنَمُ قَبْلَ مَوْتِهٖ نو دهغه د مرګ نه وړاندې وزه (چیلئ) هلاکې شوې اَوْلَمْ یَکُنْ لَهٗ غَنَمٌ فِی الْاَصْلِ یا په حقیقت کې موصي لپاره وزه (چیلئ) نه وې فَالْوَصِیَّةُ بَاطِلَةٌ لِمَاذَکَرْنَا اَنَّهٗ اِیْجَابٌ بَعْدَ الْمَوْتِ نو وصیت باطل دې.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې.چه وصیت د مرګ نه روستو واجبول دی. فَیُعْتَبَرُ قِیَامُهٗ حِیْنَئِذٍ نو اعتبار به کولې شی.د هغه وخت (کوم چې د مرګ نه روستو دې) د موصي به د قیام، وَهٰذِهِ الْوَصِیَّةُ تَعَلَّقَتْ بِالْعَیْنِ او دا وصیت متعلق دې عین سره فَتَبْطُلُ بِفَوَاتِهٖ عِنْدَ الْمَوْتِ نو



د مرګ په وخت د عین په فوت کیدو (او هلاکیدو) سره وصیت باطلیږی وَاِنْ لَمْ یَکُنْ لَهٗ غَنَمٌ او که هغه د پاره وزه (چیلئ) نه وی فَاسْتَفَادَ ثُمَّ مَاتَ فَالصَّحِیْحُ نو موصي وزه (چیلئ) حاصلې کړې وی.او بیا موصي مړ شی.نو صحیح ده اَنَّ الْوَصِیَّةَ تَصِحُّ ځکه چې وصیت صحیح دې دې لِاَنَّهَا لَوْکَانَتْ بِلَفْظِ الْمَالِ تَصِحُّ ځکه که وصیت په لفظ د مال سره وی.نو صحیح به وو فَکَذَا اِذَاکَانَتْ بِاسْمِ نَوْعِهٖ نو هم دغه ډول کله چې وصیت دمال د یو نوع په نوم سره وی وَهٰذَا لِاَنَّ وُجُوْدَهٗ قَبْلَ الْمَوْتِ فَضْلٌ او دا ځکه چې د مرګ نه وړاندې د موصي به وجود زیات وَالْمُعْتَبَرُ قِیَامُهٗ عِنْدَ الْمَوْتِ او معتبر د موصي به د مرګ په وخت موجود کیدل دی.

حل اللغة: ① غنم: وزه (چیلئ) ② استفاد: پیدا شو، حاصل شو.

تشریح:- که د وصیت په وخت مال نشته.او روستو مال حاصل کړې شی.چه دا د موصي د مرګ په وخت موجود وی.نو په دې کې په ثلث کې وصیت نافذ کیږی.او مال یو جنس دې.چه ددې انواع ګنړ دی. مثلاً کپړې، میښې، دراهم، وزه (چیلئ) وغیره.نو په چیلو کې هم د جنس مال یو نوع ده.نوکه موصي د چیلو وصیت اوکړو.او د وصیت په وخت وزه (چیلئ) موجود نه دی.البته د مرګ په وخت وزه (چیلئ) موجود دی.نو وصیت به نافذ وی.ځکه چې د مال په صورت کې دا حکم وو.نو د چیلو په صورت کې به هم دا حکم وی.ځکه چې وزه (چیلئ) هم د مال یو نوع ده.او دا خودلې شوې ده.چه د وصیت په وخت د مال وجود او عدم وجود برابر دې.بلکه ضروری دا ده.چه د مرګ په وخت مال موجود وی.نو د چیلو په صورت کې به هم دغه ډول حکم وی.

خو که موصي سره د وصیت په وخت وزه (چیلئ) شته.خو د وصیت نه روستو ټولې وزه (چیلئ) هلاکې شوې.یا د سره وزه (چیلئ) نشته.نو دا وصیت به باطل وی.ځکه چې د مرګ په وخت موصي به نشته.حالانکه د وصیت د جواز لپاره ضروری ده.چه د مرګ په وخت موصي به موجود وی.او دویمه وجه دا هم ده.چه هرکله د وصیت تعلق عین سره وی.او د مرګ په وخت عین مقصود شی.نو وصیت باطلیږی.او دلته د وصیت تعلق عین سره دې.یعنی چیلو سره دې.

**په پوره مال کښې د یوې وزه (چیلئ) وصیت کولو نه روسته که په مال کښې وزه (چیلئ) نه وی نو څه حکم دې؟**

وَلَوْقَالَ لَهٗ شَاةٌ مِنْ مَالِیْ او که موصي اوونیل.چه موصی له لپاره زما په مال کې یوه وزه (چیلئ) ده وَلَیْسَ لَهٗ غَنَمٌ حالانکه هغه سره وزه (چیلئ) نشته یُعْطٰی قِیْمَةَ شَاةٍ نو موصی له ته به د یوې وزه (چیلئ) قیمت ور کولای شی لِاَنَّهٗ لَمَّا اَضَافَهٗ اِلَی الْمَالِ ځکه چې هرکله موصي د چیلو نسبت مال ارخ ته اوکړو عَلِمْنَا اَنَّ مُرَادَهُ الْوَصِیَّةُ بِمَالِیَّةِ الشَّاةِ نو موږ ته دا خبره معلومه شوه.چه د موصي مراد د چیلو د مالیت وصیت کول دی اِذْ مَالِیَّتُهَا تُوْجَدُ فِیْ مُطْلَقِ الْمَالِ ځکه چې د چیلو مالیت په مطلق مال کې موندلې کیږی.

تشریح:- که موصي سره وزه (چیلئ) نه وی.خو هغه دا الفاظ استعمال کړل.چه زما په مال کې یوه وزه (چیلئ) د فلانی ده.نو ددې مقصدا دا دې.چه زما په مال کې دومره مال هغه ته ورکړې شی.چه هغه د یوې وزه (چیلئ) مالیت وی.او د وزه (چیلئ) د مالیت اندازه په هرحال کې کیدای شی.نو موصی له ته به د وزه (چیلئ) قیمت ورکولې شی. ددې نشاندهی ددې نه کیږی.چه د لفظ ،، شاة،، (چیلئ) اضافت چې مال ارخ ته شوې دې.

**که د خپل مال ذکر ئې اونکړو او د یوې وزه (چیلئ) وصیت اوکړو او وزه (چیلئ) نه وی نو څه حکم دې؟**

وَلَوْاَوْصٰی بِشَاةٍ او که هغه د وزه (چیلئ) وصیت اوکړو وَلَمْ یُضِفْهُ اِلٰی مَالِهٖ وَلَاغَنَمَ او ددې نې خپل مال ارخ ته اضافت اونکړو.او نه هغه وزه (چیلئ) شته قِیْلَ لَایَصِحُّ نو وئیلی شوی دی.چه وصیت به صحیح نه وی لِاَنَّ الْمُصَحِّحَ اِضَافَتُهٗ اِلَی الْمَالِ وَبِدُوْنِهَا ځکه چې صحیح کونکې شیء د ،، شاة،، (چیلئ) مال ارخ ته اضافت کول دی تُعْتَبَرُ صُوْرَةُ الشَّاةِ وَمَعْنَاهَا او د اضافت نه بغیر د وزه (چیلئ) د صورت کې او ددې د معنی اعتبار کولای شی

تشریح:- که موصي صرف داسې اوونیل.چه د بکر لپاره د یوې وزه (چیلئ) وصیت دې.او دا نې اونه وئیل.چه زما په مال کې د یوې وزه

ثلث فلانی لپاره او ددې دوی (دوه) ثلثه به مسکینانو لپاره وی وَلَوْ أَوْصَى لِلْمَسَاكِينِ وکه هغه د مسکینانو لپاره وصیت اوکړو لَهُ صَرْفُهُ إِلَى مِسْكِينٍ وَاحِدٍ عِنْدَهُمَا نو د شیخینو رحمهما الله په نیز موصی ته حق شته.په یو مسکین باندې خرچ کولو وَعِنْدَهُ لَا يُصْرَفُ إِلَّا إِلَى مِسْكِينَيْنِ بِنَاءً عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ و د امام محمد رحمه الله په نیز به نشی خرچ کولی.خو په دوو مسکینانو باندې، په هغه قاعده باندې د بناء کاوه په وجه کومه چې موږ بیان کړې ده.

تشریح:- ددې عبارت مطلب د ژباړې نه ښکاره دې.(فتدبر)

## د دوو کسانو سره په وصیت کښې د دریم کس ملاوولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ وَلِآخَرَ بِمِائَةٍ و کوم کس چې د یو سړی لپاره (دوه) سوه درهمو وصیت اوکړو.او د دوهم لپاره ئې د سلو درهمو وصیت اوکړو ثُمَّ قَالَ لِآخَرَ قَدْ أَشْرَكْتُكَ مَعَهُمَا فَلَهُ ثُلُثُ كُلِّ مِائَةٍ بیا موصی بل کس ته اووئیل.چه ته ما ددوی دواړو سره شریك کړلې.نو ددې ثالث لپاره به د دوی سلو ثلث وی لِأَنَّ الشَّرِكَةَ لِلْمُسَاوَاةِ لُغَةً وَقَدْ أَمْكَنَ إِثْبَاتُهُ بَيْنَ الْكُلِّ بِمَا قُلْنَاهُ لِاتِّحَادِ الْمَالِ خکه چې په لغت کې شرکت د برابری لپاره دې.او ددوی دریو په منځ کې برابری ثابتول په هغه طریقه ممکن ده.کومه چې موږ بیان کړې ده.د مال د اتحاد په وجه لِأَنَّهُ يُصِيبُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ ثُلُثُ مِائَةٍ خکه چې په دې دوی کې به هر یو ته د سلو یو ثلث ور رسیږی بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى لِرَجُلٍ بِأَرْبَعِمِائَةٍ وَلِآخَرَ بِمِائَتَيْنِ ثُمَّ كَانَ الْإِشْرَاكُ.په خلاف ددې صورت کله چې موصی یو سړی د خلورو سوو او دوهم کس ته د دوو سوو وصیت کړې وی.بیا ( دبل کس) شریکول شوی وی لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ تَحْقِيقُ الْمُسَاوَاةِ بَيْنَ الْكُلِّ لِتَفَاوُتِ الْمَالَيْنِ خکه چې د دواړو مالونو په منځ کې د تفاوت په وجه د دریو واړو په منځ کې برابری نا ممکن ده فَحَمَلْنَاهُ عَلَى مُسَاوَاتِهِ كُلَّ وَاحِدٍ بِتَنْصِيفِ نَصِيبِهِ عَمَلًا بِاللَّفْظِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ نو موږ دا د دریم کس په برابر کیدو باندې محمول کړو.د هر یو سره د هر یو برخه نیمولو سره، په لفظ د اشتراك باندې د امکان په اندازه عمل کاوه سره.

حل اللغة: ① تنصیف: نیمول ② المساواة: برابری

تشریح:- که زید عمرو ته د دوو سوو روپو وصیت اوکړو.او د بکر لپاره ئې هم د سلو روپو وصیت اوکړو.اوس زید خالد ته وائی.چه ما ته دوی دواړو سره شریك کړې.نو خالد به ۳۳ روپۍ د عمرو نه او ۳۳ د بکر نه اخلی.چه ددې مجموعه ۶۶ شوه.او هم دغومره په دوی دواړو کې هر یو سره پاته پاتې شوې ده. نومساوات اوشو.او شرکت برابری غواړی.اوکه زید د عمرو لپاره د خلورو سوو، او د بکر لپاره ئې د دوو سوو وصیت کړې وی.بیا زید خالد ته وائی.چه ما ته دوی دواړو سره شریك کړې.نو دلته د برابرۍ وصیت نه راوځی.کوم چې مخکې وو.خکه چې دواړو سره مال متفاوت دې.نو صرف یو صورت پاته پاتې شو.نو موږ هم په هغې عمل اوکړو.او هغه دا دې.چه خالد به د عمرو نه دوې (دوه) سوه او د بکر څخه به سل روپۍ اخلی .چه په لفظ د شرکت باندې د امکان په اندازه عمل اوکړې شی.کنی ددې نه علاوه دلته په شرکت باندې د عمل کاوه هیڅ صورت نشته.

## د یو سړی په پور باندې وارثانو ته د تصدیق کولو لپاره د وئیلو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ قَالَ لِفُلَانٍ عَلَيَّ دَيْنٌ و چاچه اووئیل.د فلانی په ما باندې پور دې فَصَدِّقُوهُ نو تاسو دهغه تصدیق اوکړئ مَعْنَاهُ قَالَ ذَلِكَ لِوَرَثَتِهِ فَإِنَّهُ يُصَدَّقُ إِلَى الثُّلُثِ وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ ددې مطلب دا دې.چه هغه خپلو وارثانو ته اووئیل.چه د هغه فلانی به ثلث پورې تصدیق کولې شی.او دا استحسان دې

تشریح:- زید خپلو وارثانو ته وائی.چه د خالد زما په ذمه پور دې.نو هرکله چې هغه تاسو خلگو نه د خپلې پور مطالبه اوکړی.او کوم مقدار چې اوښائی.نو تاسو د هغه تصدیق اوکړئ.نو خالد د زید د مرګ نه روسته راغې.او د خپل پور مطالبه ئې اوکړله.او دهغې مقدار ئې اوخودلو.نو د دریمې برخې ترکې پورې به د هغه تصدیق کولې [illegible] دا احکم د استحسان دې.



وَفِي الْقِيَاسِ لَا يُصَدَّقُ او په قیاس کې دا خبره ده.چه د فلانی تصدیق اونکړې شی لِأَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْمَجْهُولِ وَإِنْ كَانَ صَحِيحًا لَكِنَّهُ لَا يُحْكَمُ بِهِ إِلَّا بِالْبَيَانِ خکه چې د مجهول اقرار اګرچه صحیح وی.خو په مجهول اقرار باندې به حکم نشی لګولې.خو بیان ( تفصیل) سره

تشریح:- کنی قیاس دا غواړی.چه د خالد بالکل تصدیق اونکړې شی.خکه چې زید اګرچه اقرار کړې دې.خو په دې کې ئې د پور مقدار نه دې ښکاره کړې.او مجهول اقرار اګرچه صحیح کیږی.خو په دې باندې حکم هغه وخت مرتب کیږی.کله چې ددې بیان راغلې وی.او بیان راغلې نه وو.تر دې پورې چې د موصی وفات اوشو.او اوس هغه د بیان کاوه محل پاتې نشو .

وَقَوْلُهُ فَصَدِّقُوهُ صَدَرَ مُخَالِفًا لِلشَّرْعِ او قول دده «فصدقوه» صادر شوې دې.د شریعت مخالف لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ لَا يُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ خکه چې د مدعی تصدیق نشی کولې. خو په حجت سره، فَتَعَذَّرَ إِثْبَاتُهُ إِقْرَارًا مُطْلَقًا فَلَا يُعْتَبَرُ نو متعذر دې ددې اقرار اثبات، د مطلق اقرار په طریقه باندې، نو ددې اعتبار به نشی کولې.

تشریح:- او هغه چې کوم څه وئیلی وو.چه تاسو د هغه تصدیق اوکړئ.دا هم د مذکوره اقرار لپاره بیان نشی جوړیدې.خکه چې ددې صدور پخپله د شریعت خلاف شوې دې.خکه چې د شریعت قاعده دا ده.چه کله مدعی څه دعوه اوکړی.نو دهغه تصدیق د حجت نه روسته کولې شی.او موصی وائی.چه د حجت نه بغیر دهغه تصدیق اوکړئ.دا د شریعت خلاف دې.نو دا اقرار مطلق اقرار نشو.چه په دې باندې د اقرار احکام جاری کړې شی.په دې وجه د قیاس تقاضا دا وه.چه دا اقرار معتبر نشی.او د خالد بالکل تصدیق اونکړې شی.خو مونږ قیاس پریخودو.او په استحسان مو عمل اوکړو.روستو مرغینانی رحمه الله د استحسان دلیل بیانوی.

## د استحسان دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّا نَعْلَمُ أَنَّ مِنْ قَصْدِهِ تَقْدِيمَهُ عَلَى الْوَرَثَةِ داستحسان دلیل دا دې.چه موږ ته پته ده.چه ده د چا اراده کړې ده.هغه لره په وارثانو باندې وړاندې کول دی وَقَدْ أَمْكَنَ تَنْفِيذُ قَصْدِهِ بِطَرِيقِ الْوَصِيَّةِ او دده د ارادې نافذ کول ممکن دی.د وصیت په طریقه باندې وَقَدْ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ مَنْ يَعْلَمُ بِأَصْلِ الْحَقِّ عَلَيْهِ دُونَ مِقْدَارِهِ سَعْيًا مِنْهُ فِي تَفْرِيغِ ذِمَّتِهِ او کله دې اقرار ارخ ته هغه سړې محتاجه وی.کوم چې پخپل ځان باندې اصل حق پیژنی.د هغې مقدار نه خبر نه وی.د خپل ارخه د خپلې ذمې نه د فارغ کیدو کوښښ کوی فَيَجْعَلُهَا وَصِيَّةً جَعَلَ التَّقْدِيرَ فِيهَا إِلَى الْمُوصَى لَهُ نو دوی دا داسې وصیت ګرځوی.چه په دې کې تقدیر (او اندازه کول) موصی له ارخ ته ګرځولې شوې وی كَأَنَّهُ قَالَ إِذَا جَاءَكُمْ فُلَانٌ وَادَّعَى شَيْئًا ګویا چې موصی داسې وئیلې وی.چه کله تاسو ته فلانې سړې راشی.او زما په مال کې څه دعوه اوکړی فَأَعْطُوهُ مِنْ مَالِي مَا شَاءَ نو زما د مال نه هغه ته دومره ورکړئ.څومره چې هغه غواړی وَهَذِهِ مُعْتَبَرَةٌ مِنَ الثُّلُثِ فَلِهَذَا يُصَدَّقُ عَلَى الثُّلُثِ دُونَ الزِّيَادَةِ او دا وصیت د دریمې برخې ( ترکې) نه معتبر کیږی.په دې وجه به د فلانی تر دریمې پورې تصدیق کولې شی.په زیات کې به نه کیږی.

حل اللغة: ① تنفیذ: نافذ کول ② تفریغ: فارغ کول، اوزګارول

تشریح:- دا د استحسان دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه دلته د زید مقصد دا دې.چه خالد په وارثانو باندې مقدم کړې شی.او دلته دده اراده نافذ کولې شی.چه ددې طریقه به دا وی.چه دا به وصیت ګرځولې شی. خکه چې کله داسې کیږی.چه په یو سړی باندې د چا حق وی.خو هغه ددې د مقدار نه خبر نه دې.صرف دومره خبر وی.چه د خالد په ما باندې حق شته.نو په داسې صورت کې به زید محتاج وی.چه هغه داسې قسم وصیت اوکړی.چه په هغې سره د هغه حق ادا شی.کوم چې دهغه په ذمه دې.خو ددې د مقدار نه زیدخبر نه دې.په دې وجه هغه مجبوراً وائی.چه خالد څه اووائی.د هغه تصدیق اوکړئ.نو دا داسې وصیت شو.چه په دې کې د موصی به د تعداد ( مقدار) بیانولو اختیار پخپله موصی له ته وی.نو دا وصیت صحیح دې.او موصی له ته به دا اختیار نه وی.چه هغه د ثلث نه زیات اختیار کړی.اوکه ( زیات اختیار) کړی.نو ددې اعتبار به نه وی.بلکه هغه ته به صرف ثلث ملاویږی.نو

دلته د زید د وصیت حاصل دا شو .چه کله تاسو ته خالد راشي.او په ما باندې د خپل مال دعوه اوکړي.نو خومره چې هغه غواړي.هم هغومره هغه ته زما د مال نه ورکړئ.نو دا وصیت صحیح دي.او معتبر دي.خو دریمې برخې پورې معتبر دي.په زیات کې نه دي.نو په مذکوره صورت کې به د خالد تصدیق صرف ثلث پورې کولې شي.ددې څخه به په زیات کې نشی کولې.

## مجهول اقرار سره د نورو وصیتونو د ویش مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلي دي (وَإِنْ أَوْصَى بِوَصَايَا غَيْرِ ذَلِكَ) و که موصی ددې نه علاوه (نور) وصیتونه کړي وي يُعْزَلُ الثُّلُثُ لِأَصْحَابِ الْوَصَايَا وَالثُّلُثَانِ لِلْوَرَثَةِ نو د وصیت د خلګو لپاره به ثلث جلا کولې شي.او وارثانو لپاره به ثلثان (جلا کولې شي). لِأَنَّ مِيرَاثَهُمْ مَعْلُومٌ ځکه چې ددوی میراث معلوم دي وَكَذَا الْوَصَايَا مَعْلُومَةٌ او هم دغه ډول وصیتونه معلوم دي وَهَذَا مَجْهُولٌ او دا (د خالد حق) مجهول دي فَلَا يُزَاحِمُ الْمَعْلُومَ نو مجهول به د معلوم مزاحم (او مقابل) نه جوړیږي فَيُقَدَّمُ عَزْلُ الْمَعْلُومِ نو معلوم به جلا کول مقدم وي.

حل اللغة: ① يزاحم: مقابله کوی ② عزل: جلا کول

تشریح:- ددې نه په وړاندې مسئله کې کله چې موصی دا وصیت کړې وو.چه کله خالد راشي.او زما په مال کې خپل حق اوښائي.نو خومره حق چې هغه اوښائي.هغه ته نې ورکړئ.نو دا حکم کوم چې ذکر شوې دې. چې ثلث پورې به د خالد تصدیق کولې شي.دا هغه وخت دې.کله چې موصی نور څه وصیتونه ددې نه علاوه نه وی کړې.خو که هغه ددې نه علاوه نور هم څه وصیتونه کړی دی.نو بیا دا حکم نه دې.بلکه دهغې حکم دا دې.کوم چې دلته کې ذکر دي.

دلته به دټولو نه ړومبې کار دا کیږی.چه د وصیتونو خاوندان کوم چې د خالد نه علاوه دی.د پوره ترکې څخه به دهغوی ثلث جلا کولې شي.او د وارثانو به دوې (دوه) ثلثه جلا کولې شي.یعنی د ټولې ترکې به درې برخې جوړولې شي.په دې کې یوه برخه د وصیتونو والا لپاره او دوې (دوه) د وارثانو لپاره دی.ځکه چې د د وصیتونو مستحقینو ثلث معلوم دې.او د وارثانو دوې (دوه) ثلثه معلوم دی.او د خالد حق مجهول دې.او مجهول د معلوم مقابل نشی جوړیدې.ددې امله به د ټولو نه مخکې کار دا کولې شي.چه د وصیتونو د خلګو ثلث به جلا کولې شي.او د وارثانو به دوې (دوه) ثلثه جلا کولې شي.

## د د وصیتونو د خلقو د ثلث جدا کولو دویمه فائده

وَفِي الْإِفْرَازِ فَائِدَةٌ أُخْرَى او په جلا کاوه کې دویمه فائده ده وَهُوَ أَنَّ أَحَدَ الْفَرِيقَيْنِ قَدْ يَكُونُ أَعْلَمَ بِمِقْدَارِ هَذَا الْحَقِّ وَأَبْصَرَ بِهِ او هغه دا ده.چه په دوو ډلو کې یوه کله کله هغه مقدار نه زیات خبر وی.او ددې په اړه کې ورته زیات تحقیق حاصل وی وَالْآخَرُ أَلَدُّ خِصَامًا او دویمه ډله ډیره جګړماره وی وَعَسَاهُمْ يَخْتَلِفُونَ فِي الْفَضْلِ إِذَا ادَّعَاهُ الْخَصْمُ او کیدای شي چې دواړه ډلې د زیاتوالی په اړه کې جګړه اوکړی.کله چې خصم (قرضدار) د زیاتوالی دعوه اوکړی وَبَعْدَ الْإِفْرَازِ يَصِحُّ إِقْرَارُ كُلِّ وَاحِدٍ فِيمَا فِي يَدِهِ مِنْ غَيْرِ مُنَازَعَةٍ او دجدا کولونه روسته به د هر یو مقدار صحیح وی.د هغه مقدار په حق کې کوم چې د هغه په قبضه کې دې.د څه جګړې نه بغیر.

حل اللغة: ① الافراز: جلا کول،خانله کول ② الفضل: زیاتی

تشریح:- یعنی د معلوم او مجهول تقاضه هم دا وه.چه مجهول د معلوم مقابل نه وی.او معلوم جلا کړې شی. اودې سره سره په جلا کاوه کې یوه بله فائده هم ده.او هغه دا چې کیدای شی.چه یوه ډله د خالد د حق په اړه کې زیات معلومات او زیات تحقیقات لری.او دویمه ډله هسې بیسه جګړماره وی.یعنی کله چې خالد راشی.او دعوه اوکړی.چه زما درې سوه روپۍ وې.نو یوه ډله خو اووائی.چه آو رشتیا وائی.هم دغومره وې.او دویمه ډله اووائی.چه دروغ وائی.چه دده خو پنځوس روپۍ وې.هسې په دروغه سل روپۍ بیانوی.خو کله چې د هرې یوې ډلې برخه جلا کړې شوه.نو هره ډله به په خپل اقرار کې ګرفتارولې شی.اودهیڅ جګړې او تنازع صورت به نه راپیښیږی.خیر



نړاوس به څه طریقه اختیارولې شی.دا مرغینانی رحمه الله په راروان عبارت کې پیش کوی.

## دوصیت په خلقو او وارثانو کښې به هر فریق د خپل اقرار مطابق ګرفتارولې شي

فَإِذَا عُزِلَ او هر کله چې جدا کړې شوه يُقَالُ لِأَصْحَابِ الْوَصَايَا صَدِّقُوهُ فِيمَا شِئْتُمْ نو د وصیت مستحقینو ته به وئیلې شی.چه تاسو دده تصدیق اوکړئ.په خومره مقدار کې چې غواړئ وَيُقَالُ لِلْوَرَثَةِ صَدِّقُوهُ فِيمَا شِئْتُمْ او وارثانو ته به وئیلې شی.چه تاسو دده تصدیق اوکړئ.په خومره مقدار کې چې تاسو غواړئ. لِأَنَّ هَذَا دَيْنٌ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ وَصِيَّةٌ فِي حَقِّ التَّنْفِيذِ ځکه چې دا د مستحق په حق کې پور دې.د نافذ کاوه په حق کې وصیت دې فَإِذَا أَقَرَّ كُلُّ فَرِيقٍ بِشَيْءٍ نو کله چې اقرار کړې وی.هر یوې ډلې په یو مقدار باندې ظَهَرَ أَنَّ فِي التَّرِكَةِ دَيْنًا شَائِعًا فِي النَّصِيبَيْنِ نو دا خبره ښکاره شوه.چه په ترکه کې پور خوردې.په دواړو حصو کې فَيُؤْخَذُ أَصْحَابُ الثُّلُثِ بِثُلُثِ مَا أَقَرُّوا نو د ثلث خلګ (چا لپاره چې وصیت شوې دې) به پخپل اقرار کې ګرفتارولې شی وَالْوَرَثَةُ بِثُلُثَيْ مَا أَقَرُّوا تَنْفِيذًا لِلْإِقْرَارِ كُلِّ فَرِيقٍ فِي قَدْرِ حَقِّهِ او وارثان به پخپل اقرار کې دوې (دوه) ثلثو کې رانیولې شی.د هر فریق اقرار نافذ کاوه دپاره، د هغه د حق په مقدار کې وَعَلَى كُلِّ فَرِيقٍ مِنْهُمَا الْيَمِينُ عَلَى الْعِلْمِ إِنِ ادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ زِيَادَةً عَلَى ذَلِكَ او په دوی دواړو کې هر فریق باندې په علم باندې قسم خوړل دی.که مقرله ددې اقرار نه د زیات دعوه اوکړی لِأَنَّهُ يَحْلِفُ عَلَى مَا جَرَى بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ ځکه چې د فریق نه قسم اخستلې شی.هغه فعل باندې کوم چې دده او دده نه د علاوه په منځ کې جاری شوې دې.

حل اللغة: ① تنفيذ: نافذ کول، ② شائع: خور وور،ناقابل تقسیم

تشریح:- هر کله چې پوره ترکه درې برخې کړې شوه.یوه دریمه برخه د وصیت مستحقینو لپاره جلا کړې شوه.او دوې (دوه) ثلثه د وارثانو لپاره جلا کړې شوې.نو د وصیتونو خلګ چې د خومره پور اقرار اوکړی.هم د دې اقرار یو ثلث به خالد ته ورکولې شی.او وارثان چې خومره اقرار اوکړی.د هغې دوې (دوه) ثلثه به ورکوی .یعنی هر فریق به د خپل اقرار مطابق ګرفتارولې شی.او یو فریق به د دوهم فریق د اقرار په وجه نشی ګرفتارولې.نو که د وصیتونو خاوندانو او وارثانو دواړو دا اقرار اوکړو.چه د خالد حق درې سوه روپۍ دی.نو سل روپۍ به د وصیتونو خلګو رکوی.او دوې (دوه) سوه روپۍ به وارثان ورکوی.او که کم یا زیات وی.نو هر فریق به د خپل اقرا مطابق رانیولې شی.مثلاً د وصیتونو خلګ د شپږو سوو روپو اقرار اوکړی.او وارثان د نهه سوه روپو اقرار اوکړی.نو د وصیتونو خلګ به دوې (دوه) سوه او وارثان به شپږ سوه روپۍ ورکوی.

سوال ۞ تاسو په وړاندې مسئله کې وئیلی وو.چه دا اقرار په حقیقت کې وصیت دې.او دا تاسو وصیت ګرځولې وو.او نافذ کړې مو وو.نو ددې د وصیت کیدو تقاضا دا ده.چه صرف د وصیتونو په خلګو اقرار اوکړې شی.او په هغې کې خالد ته د هغه د حق ورکړې شی.نو وارثان ګرفتارول او هغوی باندې اقرار او تصدیق کول، او د اقرار دوې (دوه) ثلثه د هغوی نه اخستل، څنګه صحیح شو.حالانکه دا پور نه دې. بلکه وصیت دې؟

ځواب ۞ موږ دا ځکه وصیت ګرځولې وو.چه ددې د نافذ کاوه لاره هواره شی.ګنی په حقیقت کې دا پور دې.ځکه چې خالد دې ته وصیت نه وائی.هغه دې ته خپل پور وائی.خو چونکه وصیت سره ددې مشابهت شته.په دې وجه موږ وئیلی وو.چه ددې نفاذ به صرف په ثلث کې وی.د ثلث نه په زیات کې به نه کیږی.او چونکه ددې د اقرار او پور سره هم مشابهت شته.په دې وجه به موږ دا پوره ترکه کې خوره ګرځوو.او صرف وصیت ګرځولو سره به د وصیت خلګ نه رانیسو.په دې وجه موږ اووئیل.چه په وارثانو باندې به هم تصدیق کولې شی.او کوم مقدار پورې چې هغوی تصدیق اوکړی.د هغې دوې (دوه) ثلثه به د هغوی نه اخستلې شی.

ددې اشکال ځواب مرغینانی رحمه الله پخپل عبارت کې داسې ورکړې دې چې ﴿لأن هذا دين في حق المستحق....﴾ او په ترکه کې هر فریق ته هم په دې تناسب سره ملاو شوې دې.یعنی وارثانو ته ۲/۳ او د وصیت خلګو ته ۱/۳، نو هر فریق به هم په دې تناسب سره پخپل اقرار کې ګرفتارولې شی.خو که خالد دعوه کوی.چه زما خو درې زره روپۍ وې.او دا دواړه فریق د دریو سوو اقرار کوی.او د وصیت خلګو نه سل او د وارثانو نه دوې (دوه) سوه

واخستلې شوې.او خالد ته ورکړې شوې.خو هغه د زياتو دعوه کوی.نو د وصيت د خلګو او د وارثانو څخه به قسم اخستلې شي.او هغوی به دا قسم خوری.چه ،، والله موږ ته ددې نه د زيات علم نشته،، يعنی ددوی قسم به په علم باندې وي.او په ثابتولو به وي.قطعي به نه وي.ځکه اصول دا دي.چه پخپل فعل باندې کوم قسم اخستلې شي.هغه قطعي او يقيني وي.او د بل په فعل باندې چې کوم قسم اخستلې شي.هغه په علم باندې اخستلې شي.خو ددې وئيلو به دوی ته هيڅ حق نه وي.چه ،، موږ ته معلومه نه ده.دومره ئې بالکل نه دی اخستي،، ځکه چې د بل کس د فعل په اړه کې سړې قطعي خبره نشي کولې.او دلته دا فعل د خالد او موصی په منځ کې جاري شوې دې.دا فعل د وارثانو، د وصيت د خلګو او د خالد نه دې.

**د اجنبي او وارث دپاره، ژوندي او مړ دپاره، قاتل او اجنبي لپاره د وصيت کولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلي دی وَمَنْ أَوْصَى لِأَجْنَبِيٍّ وَلِوَارِثِهِ او چاچه د يو اجنبي او خپل وارث لپاره وصيت اوکړو فَلِلْأَجْنَبِيِّ نِصْفُ الْوَصِيَّةِ وَتَبْطُلُ وَصِيَّةُ الْوَارِثِ نو اجنبي لپاره د وصيت نصف دې.او وارث لپاره به وصيت باطل وی لِأَنَّهُ أَوْصَى بِمَا يَمْلِكُ الْإِيصَاءَ بِهِ وَبِمَا لَا يَمْلِكُ ځکه چې موصی د هغه شئ وصيت اوکړو.د کوم چې هغه مالك دې.او دهغې (څيز وصيت ئې اوکړو) دکوم چې هغه مالك نه دې فَصَحَّ فِي الْأَوَّلِ وَبَطَلَ فِي الثَّانِي نو دهغه وصيت په رومبی کې صحيح دې.او په دوهم کې باطل دې. بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى لِحَيٍّ وَمَيِّتٍ په خلاف ددې صورت کله چې موصی د ژوندی او مړی لپاره وصيت کړې وی لِأَنَّ الْمَيِّتَ لَيْسَ بِأَهْلٍ لِلْوَصِيَّةِ فَلَا يَصْلُحُ مُزَاحِمًا ځکه چې مړی د وصيت اهل نه دې.نو مړی به د ژوندی لپاره د مقابل جوړيدو صلاحيت نه لری فَيَكُونُ الْكُلُّ لِلْحَيِّ نو واړه وصيت به ژوندی لپاره وی وَالْوَارِثُ مِنْ أَهْلِهَا وَلِهَذَا تَصِحُّ بِإِجَازَةِ او وارث د وصيت اهل دې.په دې وجه به وصيت صحيح وی.د وارثانو په اجازت سره، الْوَرَثَةِ فَافْتَرَقَا نو دا دواړه جلا شو

**حل اللغة:** ① الايصاء: وصيت کول

**تشريح:-** موصی د خپل وارث او يو اجنبي لپاره وصيت اوکړو.نو وارث لپاره به وصيت باطل وی.او اجنبي ته به د پوره وصيت نصف ملاويږي.ځکه چې موصی ته دا اجازت شته.چه اجنبي لپاره وصيت اوکړی.او وارث ته د وصيت کاوه اجازت نشته.نو کوم ځائې چې هغه ته اجازت شته.هلته وصيت صحيح دې.او چرته چې اجازت نشته.هلته وصيت باطل دې.البته که موصی د ژوندی او مړی لپاره وصيت کړې وی.نو چونکه مړی د وصيت اهل نه دې.په دې وجه به پوره وصيت ژوندی لپاره وی.ځکه چې مړی د ژوندی لپاره مقابل نشي جوړيدې.او چونکه وارث د وصيت اهل دې.هم دا وجه ده.که وارثان وارث لپاره د وصيت اجازت ورکړی.نو جائز دې.هم په دې وجه په وارث او مړی کې د توپير کيدو په وجه مسئله کې توپير اوشو.

وَعَلَى هَذَا إِذَا أَوْصَى لِلْقَاتِلِ وَلِلْأَجْنَبِيِّ او هم په دې طريقه کله چې موصی قاتل او اجنبي لپاره وصيت کړې وی.

**تشريح:-** او دغه ډول قاتل هم د وارث په درجه کې دې.نو که قاتل او اجنبي لپاره ئې وصيت اوکړو.نو قاتل لپاره به وصيت باطل وی.او اجنبي ته به د موصی به نصف ملاويږي.

**د وارث يا اجنبي لپاره د اقرار کولو حکم**

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ بِعَيْنٍ أَوْ دَيْنٍ لِوَارِثِهِ وَلِلْأَجْنَبِيِّ او دا (وارث او اجنبي لپاره وصيت کول) ددې صورت خلاف دې.کله چې مريض د يو عين او پور په اړه کې د خپل وارث او اجنبي لپاره اقرار اوکړی حَيْثُ لَا يَصِحُّ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ أَيْضًا په دې حيثيت سره چې دا اقرار به د اجنبي په حق کې صحيح نه وی

**تشريح:-** که زيد د بکر او خالد لپاره دا اقرار کړې دې.چه زما دا اس ددوی دواړو دې.يا ددوی دواړو په ما باندې لس زره روپۍ پور دی.او بکر د زيد خونې دې.او خالد اجنبي دې.نو د دواړو په حق کې اقرار باطل دې.يعنی څخه به بکر ته څه ملاويږي.او څخه به خالد ته.حالانکه که داسې ئې وصيت کړې وې.نو د اجنبي (خالد) په حق کې به



وصيت جائز وو.او د بکر (خونی) په حق کې به وصيت باطل وو. (کما مر)

لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ إِنْشَاءُ تَصَرُّفٍ ځکه چې وصيت د تصرف انشاء ده وَالشَّرِكَةُ تَثْبُتُ حُكْمًا لَهُ او شرکت د انشاء حکم جوړيږي او ثابتيږي فَتَصِحُّ فِي حَقِّ مَنْ يَسْتَحِقُّهُ مِنْهُمَا نو وصيت به صحيح وی.په دوی دواړو کې د هغه سړی په حق کې، کوم چې د وصيت مستحق دې (يعنی د اجنبي په حق کې).

**تشريح:-** وجه ددې دا ده.چه په وصيت او اقرار کې توپير دې.وصيت خو اوس د يو تصرف انشاء ده.کومه چې د مخکې نه نه وه.اګرچه شرکت ددوی دواړو په وصيت کې هم کيږي.خو اصالتاً نه کيږي.بلکه چې د انشاء حکم جوړ شي.نو وصيت کې شرکت ثابتيږي.نو کوم چې د وصيت کاوه اهل دې.هغه لپاره وصيت صحيح شو.او کوم چې اهل نه دې.هغه لپاره وصيت صحيح نشو.په نورو الفاظو کې داسې چې د وارث په حق کې د سره انشاء معتبر نشوه.نو د هغه د شرکت حکم به هم نه ثابتيږي.ددې مطلب دا شو.چه په وصيت کې به شرکت نه کيږي.هر کله چې شرکت صحيح نشو.نو دچا حق چې باطل دې.هغه باطل شو.او دچا حق چې باطل نه دې.بلکه پاته دې.هغه به پاته باتې وی.په دې وجه وصيت اجنبي لپاره صحيح شوې وو.

وَأَمَّا الْإِقْرَارُ فَإِخْبَارٌ عَنْ كَائِنٍ بهرحال اقرار دا د تير شوی امر خبر ورکول دی وَقَدْ أَخْبَرَ بِوَصْفِ الشَّرِكَةِ فِي الْمَاضِي حالانکه مقر په تيره شوې زمانه کې د شرکت د وصف خبر ورکړې دی وَلَا وَجْهَ إِلَى إِثْبَاتِهِ بِدُونِ هَذَا الْوَصْفِ او ددې اقرار دشرکت ددې وصف نه بغير د ثابتولو هيڅ وجه نشته. لِأَنَّهُ خِلَافُ مَا أَخْبَرَ بِهِ وَلَا إِلَى إِثْبَاتِ الْوَصْفِ ځکه چې دا د هغه خبر خلاف دې.کوم چې مقر خبر ورکړې دې.او نه ددې وصف د ثابتولو څه وجه شته لِأَنَّهُ يَصِيرُ الْوَارِثُ فِيهِ شَرِيكًا ځکه چې په دې کې به وارث شريك جوړيږي

**تشريح:-** پاتې شو اقرار نو ددې حقيقت دا دې.چه مقر پخپل اقرار کې دا بنائي.چه په دې عين يا پور کې د بکر او خالد دواړو اشتراك دې.يعنی دلته شرکت عارضی نه دې.بلکه د اقرار په حقيقت کې داخل دې.نو اقرار چې کله هم وی.د شرکت وصف سره به وی.اوکه شرکت لرې کړې شي.نو د مقر د اقرار رعايت پاتې نشو.حالانکه اصل بنا (بنياد) د مقر اقرار دې.

؟ نوکه تاسو دا اووايئ.چه د وارث شرکت دې لرې کړې شي.نو غلطه ده.ځکه چې دا د مقر دخبر خلاف دې.اوکه شرکت پاته اوساتلې شي.نو هم غلطه ده.ځکه چې وارث لپاره لکه څنګه وصيت جائز نه دې. دغه ډول هغه لپاره اقرار هم جائز نه دې.او کله چې د شرکت د وصف اعتبار کولې شي.نو په دې کې به وارث شريك منل ضروري وی.حالانکه دا غلطه ده.

وَلِأَنَّهُ لَوْ قَبَضَ الْأَجْنَبِيُّ شَيْئًا كَانَ لِلْوَارِثِ أَنْ يُشَارِكَهُ او که اجنبي په څه شي باندې قبضه اوکړله.نو وارث ته به حق وی.چه په دې کې اجنبي سره شريك شي فَيَبْطُلُ فِي ذَلِكَ الْقَدْرِ نو په دې مقدار کې به قبضه باطليږي ثُمَّ لَا يَزَالُ يَقْبِضُ وَيُشَارِكُهُ الْوَارِثُ حَتَّى يَبْطُلَ الْكُلُّ بيا به اجنبي پيوسته قبضه کوی.او وارث به هغه سره شريك وی.تر دې پورې چې واړه اقرار به باطليږي فَلَا يَكُونُ مُفِيدًا نو دا اقرار به ګټور نه وی وَفِي الْإِنْشَاءِ حِصَّةُ أَحَدِهِمَا مُمْتَازَةٌ عَنْ حِصَّةِ الْآخَرِ بَقَاءً وَبُطْلَانًا او په انشاء (وصيت) کې په دوی دواړو کې د يوحصه معلوم ده.د بل د برخې نه، د بقاء او بطلان په اعتبار سره، (بقاء د اجنبي په حق کې او بطلان د وارثانو په حق کې)

**تشريح:-** او دويمه خبره دا هم ده.چه اجنبي په يو شي باندې قبضه اوکړی.نو په دې کې به د اقرار په حکم سره وارث هم شريك وی.او بيا به هم هغه د اقرار د بطلان صورت وی.او پيوسته به هم هغه صورت جوړيږي.چه دلته به اجنبي قبضه کوی.هلته به وارث د اقرار په حکم سره په دې کې شريکيږي.نو بيا به دا قبضه باطلول لازميږي.نو دلته به قبضه مفيد نه وی.او اقرار به دفريقينو په حق کې باطل ګرځول لازمی وی.او په وصيت کې داسې نه ده.يعنی هلته شرکت د وصيت د انشاء په وضع کې داخل نه دې.بلکه په وصيت کې د هريو برخه د بل نه جلا ده.نو داجنبي حق به پاته پاتې وی.او د وارث به باطليږي.

**د دریو مختلف تهانونو دریو سړو لپاره د وصیت کولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَمَنْ كَانَ لَهُ ثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ جَيِّدٌ وَوَسَطٌ وَرَدِيٌّ فَ او د چا چې درې کپړې وی.یوه اعلی وی.او دویمه منځنی وی.او دریمه خرابه وی فَأَوْصَى بِكُلِّ وَاحِدٍ لِرَجُلٍ فَضَاعَ ثَوْبٌ نو هغه د هر یوې کپړې د یو بېله سړی لپاره وصیت اوکړو.نو یوه کپړه ضائع شوه وَلَا يَدْرِي أَيُّهَا هُوَ و دا معلومه نشوه.چه په دې کې کومه یوه کپړه ضائع شوې ده وَالْوَرَثَةُ تَجْحَدُ ذَلِكَ فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ و وارثان ددې انکار کوی.نو وصیت باطل دې وَمَعْنَى جُحُودِهِمْ او ددوی د انکار دا مطلب دې..يَقُولَ الْوَارِثُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ بِعَيْنِهِ چې وارث په دوی کې هریو ته په معین طریقه باندې وایي الثَّوْبُ الَّذِي هُوَ حَقُّكَ قَدْ هَلَكَ چې هغه کپړه کومه چې ستا حق وو.هلاکه شوه آنْ فَكَانَ الْمُسْتَحَقُّ مَجْهُولًا نو مستحق به مجهول وی وَجَهَالَتُهُ تَمْنَعُ صِحَّةَ الْقَضَاءِ وَتَحْصِيلَ الْمَقْصُودِ او د مستحق جهالت د قضاء صحت او د مقصود حصول منع کوی فَتَبْطُلُ .نو وصیت به باطلیږی.

**حل اللغة:** ① اثواب: جمع د ثوب، کالی ② جید: کهرۀ ③ ردی: بیکاره،خرابه ④ ضاع: ضائع شو﴾

**تشریح:-** د زید سره درې تهانونه دی.① ډیر اعلی چې ددې قیمت دوې (دوه) زره روپۍ دې.② منځنی چې ددې قیمت زرروپۍ دې.③ خرابه چې ددې قیمت پنځه سوه روپۍ دې.بیا زید د اعلی (قیمتی) کپړې وصیت خالد لپاره اوکړو.او د منځنۍ کپړې نې د بکر دپاره، او د خرابې کپړې وصیت نې عمرو لپاره اوکړو.خو اتفاق سره په دې دریو وارو تهانونو کې یو تهان ضائع شو.خو دا معلومه نشوه.چه کوم یو تهان ضائع شوې دې.یعنی قیمتی تهان ضائع شوې دې.اوکه منځنی او که خراب ضائع شوې دې.او وارثان دوی دریو وارو موصی لهم ته دا وائی.یعنی هر یو ته جلا جلا وائی.چه ستا کوم حق وو.هغه هلاك شو.نوپه دې صورت کې چونکه مستحق مجهول دې.او هرکله چې مستحق مجهول دې.نو قاضی هم هیڅ فیصله نشی کولې.او نه په دې کې د موصی مقصود حاصلیدې شی.نو وصیت به باطل ګرځولې شی.ددې نه علاوه هیڅ لاره نشته.

**د مذکوره وصیت باطلیدو نه د بچ کیدو طریقه**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَ الْوَرَثَةُ الثَّوْبَيْنِ الْبَاقِيَيْنِ خو دا چې وارثان پاته دواړه تهانونه اوسپاری فَإِنْ سَلَّمُوا زَالَ الْمَانِعُ نو که هغوی اوسپارل.نو مانع زائل شو وَهُوَ الْجُحُودُ و هغه د هغوی انکار کول وو فَيَكُونُ لِصَاحِبِ الْجَيِّدِ ثُلُثَا الثَّوْبِ الْأَجْوَدِ نو د اعلی کپړې والا لپاره به د اعلی کپړې دوې (دوه) ثلثه وی وَلِصَاحِبِ الْأَوْسَطِ ثُلُثُ الْجَيِّدِ وَثُلُثُ الْأَدْوَنِ و د منځنی والا لپاره به د اعلی کپړې ثلث او د خرابې کپړې ثلث وی وَلِصَاحِبِ الْأَدْوَنِ ثُلُثَا الثَّوْبِ الْأَدْوَنِ و د خرابې کپړې والا لپاره به د خرابې کپړې دوې (دوه) ثلثه وی لِأَنَّ صَاحِبَ الْجَيِّدِ لَا حَقَّ لَهُ فِي الرَّدِيءِ بِيَقِينٍ ځکه چې د اعلی کپړې والا په یقین سره د موجوده خرابې کپړې کې هیڅ حق نشته لِأَنَّهُ إِمَّا أَنْ يَكُونَ وَسَطًا أَوْ رَدِيئًا وَلَا حَقَّ لَهُ فِيهِمَا ځکه چې دا (خرابه کپړه) یا خو منځنی ده.یا خرابه ده.او دده په دې دواړو کې هیڅ حق نشته

**تشریح:-** دا وصیت هغه وخت باطلیږی.کله چې وارثان په مذکوره طریقه باندې انکار اوکړی.خو که دوی پاته پاتې دواړه تهانونه هغوی ته حواله کړل.نو مانع زائل شو.او وصیت د باطلیدو نه بچ شو.بلکه دا به نافذ کولې شی.او په مذکوره صورت کې به په ویش کې واړه شریك وی.نو ددې صورت به دا وی.چه د اعلی والا (خالد) ته به د موجوده تهان نه ۲/۳ ملاویږی.او د خرابې کپړې والا (عمرو) ته به په دې وخت چې کومه خرابه کپړه ده.د هغې نه ۲/۳ ملاویږی.او پاته پاتې شو د منځني کپړې والا (بکر) نو هغه ته به د اعلی کپړې ۱/۳ ملاویږی.داسې ولې کیږی؟ ځکه چې دې وخت کومه خرابه ده.هغې کې دوې (دوه) احتماله دی.① کیداې شی.چه په حقیقت کې هم دا خرابه وی.② کیداې شی.چه دا منځنی وی.او ددې نه خرابه هغه وی.کومه چې هلاکه شوې ده.بهرحال ددې دواړو [...]سالونو باوجود د خالد حق په دې خرابه کپړه کې بالکل نه رسیږی.بلکه دده حق صرف په هغه کپړه کې [...]ی.کومه چې دې وخت اعلی ده.او ددې ځخه به ۲/۳ ملاویږی.



وَصَاحِبُ الرَّدِيءِ لَا حَقَّ لَهُ فِي الْجَيِّدِ الْبَاقِي بِيَقِينٍ او د خرابې کپړې والا په یقین سره د اعلی کپړې په پاته کې هیڅ حق نشته لِأَنَّهُ إِمَّا أَنْ يَكُونَ جَيِّدًا أَوْ وَسَطًا وَلَا حَقَّ لَهُ فِيهِمَا ځکه چې دا خرابه کپړه یا خو اعلی ده او یا خو منځنی ده او د ده په دواړو کې هیڅ حق نیشته وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ الرَّدِيءُ هُوَ الرَّدِيءُ الْأَصْلِيُّ او احتمال شته.چه موجوده خرابه کپړه په حقیقت کې خرابه وی فَيُعْطَى مِنْ مَحَلِّ الِاحْتِمَالِ نو د خرابې کپړې والا ته د احتمال د محل په وجه ور کولای شی وَإِذَا ذَهَبَ ثُلُثَا الْجَيِّدِ اوهرکله چې د اعلی کپړې دوې (دوه) ثلثه او د خرابې کپړې دوې (دوه) ثلثه ختم شو.نو پاته پاتې نشوه خو د اعلی کپړې ثلث وَثُلُثَا الْأَدْوَنِ لَمْ يَبْقَ إِلَّا ثُلُثُ الْجَيِّدِ وَثُلُثُ الرَّدِيءِ فَيَتَعَيَّنُ حَقُّ صَاحِبِ الْوَسَطِ فِيهِ بِعَيْنِهِ ضَرُورَةً نو د ارتیا په وجه به د منځنی والا حق په دې کې متعین کیږی.

**تشریح:-** اوپاتې شود خرابې کپړې والا (عمرو) نودده په دې وخت موجوده اعلی کپړه کې هیڅ حق نه جوړیږی.ځکه چې په دې اعلی کپړه کې هم دوې (دوه) احتماله دی.① په حقیقت کې اعلی ده.② دا په حقیقت کې منځنی وی.بهرحال که هره یوه وی.په دې دواړو کې د خرابې کپړې والا هیڅ حق نه رسیږی.البته کومه چې خرابه ده.هغې کې هم دوې (دوه) احتماله دی.① دا په حقیقت کې خرابه وی.② کیداې شی.چه دا منځنی وی.بهرحال به د[...] دا احتمال شته.چه هم دا ردی وی.نو په دې کې دا احتمال شته.چه دا دعمرو حق جوړ شی.نو موږ ددې نه ۲/۳ عمرو ته ورکړلې.اوس بکر پاته پاتې شو.نو هغه لپاره هیڅ پاته پاتې نشو.علاوه د اعلی کپړې د ۱/۳ نه، او د ردی د ۱/۳ نه، نو موږ اووئیل.چه هغه ته به د اعلی کپړې ثلث او د خرابې کپړې ثلث ورکولې شی.

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل وَإِذَا كَانَتِ الدَّارُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ و کله چې کور د دوو سړو په منځ کې مشترك وی فَأَوْصَى أَحَدُهُمَا بِبَيْتٍ بِعَيْنِهِ لِرَجُلٍ په دوی کې یو (شریکوال) د یو سړی لپاره د یوې معین کمرې وصیت اوکړو فَإِنَّهَا تُقْسَمُ نو کور به تقسیمولې شی فَإِنْ وَقَعَ الْبَيْتُ فِي نَصِيبِ الْمُوصِي نو که اطاق د موصی په برخه کې راشی فَهُوَ لِلْمُوصَى لَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ رحمهما الله [1] نو دا اطاق به موصی له لپاره وی.د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په نیز

**تشریح:-** د زید او بکر په منځ کې یو کور مشترك دې.چه دهغې اوس لا ویش نه دې شوې.چه زید په دې کې د یوې کمرې خالد لپاره وصیت اوکړو.نو وصیت صحیح دې.اوس زید وفات شو.نودا اطاق به خالد ته څنګه ملاویږی؟ نو ددې طریقه نې دا اوخودله.چه مخکې به د زید او بکر په منځ کې دا کور تقسیمولې شی.بیا د ویش نه روستو به دا کتلې شی.چه هغه اطاق د کومې نې چې وصیت کړې وو.په ویش کې دچا په برخه کې راغلې ده.که دا په ویش کې د زید په برخه کې راغلې وی.نو خالد ته به پوره اطاق ورکولې شی.اوکه د بکر په برخه کې راغلې وی.نو خالد ته به ددغه کمرې برابر ځائې ورکولې شی.چه دا به په دغه کور کې د هغه ځائې نه ورکولې شی.کومه چې د زید په برخه کې راغلې ده.او دا د حضرات شیخینو رحمهما الله مذهب دې.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ نِصْفُهُ لِلْمُوصَى لَهُ او دا امام محمد رحمه الله په نیز به ددې نصف موصی له لپاره وی وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ و که دا اطاق د دوهم کس (شریکوال) په برخه کې واقع شی فَلِلْمُوصَى لَهُ مِثْلُ ذَرْعِ الْبَيْتِ نو موصی له لپاره به د کمرې د وسعت په مثل وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله او دا د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: مِثْلُ ذَرْعِ نِصْفِ الْبَيْتِ او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه د نصف کمرې د وسعت په مثل به وی.

**تشریح:-** او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه په ړومبی صورت کې به خالد ته دکمرې نصف او په دوهم صورت کې به د کمرې په ځائې د نصف په مثل ځائې ورکولې شی.

[1] القول الراجح هوهذا قول الشیخین رحمهما الله کذا فی ملتقی (۴۳۳/۴) وکنز (۴۱۸) وردالمحتار (۴۷۹/۵) نقلاً عن القول الراجح (۳۷۸/۲)-

### د امام محمد رحمه الله دليل

لَهُ أَنَّهُ أَوْصَى بِمِلْكِهِ وَبِمِلْكِ غَيْرِهِ د امام محمد رحمه الله دليل دا دي.چه موصى خپل ملك او د خپل غير د ملك وصيت كړي دي لِأَنَّ الدَّارَ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا مُشْتَرَكَةٌ فَيَنْفُذُ الْأَوَّلُ وَيَتَوَقَّفُ الثَّانِي څكه چي كور سره د خپلو ټولو اجزاؤ مشترك دي.نو رومبي به نافذ وي.او دوهم به موقوف وي وَهُوَ أَنْ مِلْكَهُ بَعْدَ ذَلِكَ بِالْقِسْمَةِ الَّتِي هِيَ مُبَادَلَةٌ او موصى د وصيت نه روستو اګرچه د كمري مالك شوي دي.د هغه قسمت په ذريعه كومه چي مبادله ده لَا تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ السَّالِفَةُ ( بيا به هم) رومبي وصيت نه نافذ كيږي.

حل اللغة: ① سالفة:وړاندينى،مخكني ② فوات: فوت كيدل»

تشريح:- دا د امام محمد رحمه الله دليل دي.ددي حاصل دا دي.چه كله زيد وصيت كړي وو.دغه وخت دا پوره كور د دواړو په منځ كي مشترك وو.او دكور واړه اجزاء مشترك وو.نو هغه اطاق هم مشترك وه.د كومي چي زيد وصيت كړي وو.او د اشتراك مطلب دا شو.چه زيد د هغي د نصف مالك دي.او دنصف مالك بكر دي.نو زيد چي كوم وصيت كړي دي.څه ئي خو پخپل ملك كي كړي دي.او څه ئي د بكر په ملك كي كړي دي.نو زيد چي د كومي برخي مالك دي.هغي كي به دهغه وصيت نافذ كيږي.او د كومي برخي چي بكر مالك دي.هغي كي به وصيت نه نافذ كيږي.بلكه هغه د بكر په اجازت باندي موقوف دي.كه اجازت وركړي.نو په هغي كي به هم نافذ كيږي.ګنى نه به كيږي.

كَمَا إِذَا أَوْصَى بِمِلْكِ الْغَيْرِ لكه كله ئي چي وصيت اوكړو د غير د ملك، ثُمَّ اشْتَرَاهُ بيا ئي هغه اخستي وي ثُمَّ إِذَا اقْتَسَمُوهَا وَوَقَعَ الْبَيْتُ فِي نَصِيبِ الْمُوصِي بيا چي كله دوى كور ويش كړو.او دا اطاق دموصى په برخه كي راغلله تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِي عَيْنِ الْمُوصَى بِهِ وَهُوَ نِصْفُ الْبَيْتِ نو په عين موصى به كي به وصيت نافذ كولي شي.او هغه د كمري نصف دي وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ اوكه دا اطاق دده د انډيوالان ( شريكوال) په برخه كي واقع شي لَهُ مِثْلُ ذَرْعِ نِصْفِ الْبَيْتِ تَنْفِيذًا لِلْوَصِيَّةِ فِي بَدَلِ الْمُوصَى بِهِ عِنْدَ فَوَاتِهِ نو موصى له لپاره به د كمري د وسعت د نصف په مثل ملاويږي.د موصى به د فوت كيدو په وخت، د موصى به په بدل كي ، د وصيت نافذ كاوه دپاره.

تشريح:- كه يو سړي د بل چا دڅه شئ وصيت اوكړي.او بيا موصى دغه شئ واخلي.نو وصيت به صحيح نه وي.دغه دول دلته زيد د وصيت په وخت د پوره كمري مالك نه دي.او پوره اطاق د زيد په ملكيت كي د ويش نه روسته راغلي ده.او د ويش حقيقت مبادله ده.لكه څنګه چي شراء ( مبادله) ده.نو دلته به هم رومبي وصيت نه نافذ كيږي.نو لنډيز دكلام دا شوه.چه هركله كور ويش كړي شو.او دا اطاق د زيد په برخه كي راغلله.نو كوم چي موصى به دي.په هغي كي به وصيت نافذ كيږي.او موصى به ددي كمري نصف دي.او كه دا اطاق د بكر په برخه كي راغلي وي.نو اوس به خالد ته د موصى به بدل ملاويږي.يعنى څومره ځائي چي ددي كمري دي.ددي په نيمه به خالد ته د هغه زمكي نه وركولي شي. كومه چي د زيد په برخه كي راغلي ده.

### د موصى به فوت كيدو مسئله

كَالْجَارِيَةِ الْمُوصَى بِهَا إِذَا قُتِلَتْ خَطَأً لكه هغه وينځه د كومي چي وصيت اوكړي شو.كله چي هغه خطاء سره قتل كړي شوه تَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِي بَدَلِهَا بِخِلَافِ نو د هغي په بدل كي به وصيت نافذ كولي شي. مَا إِذَا بِيعَ الْعَبْدُ الْمُوصَى بِهِ په خلاف ددي صورت كله چي موصى به غلام خرڅ كړي شوي وي حَيْثُ لَا تَتَعَلَّقُ الْوَصِيَّةُ بِثَمَنِهِ په دي حيثيت سره چي وصيت به د هغه په ثمن سره نه متعلق كيږي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ تَبْطُلُ بِالْإِقْدَامِ عَلَى الْبَيْعِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ څكه چي وصيت به باطليږي.په بيع باندي داقدام په وجه،دهغه تفصيل مطابق كوم چي مونږبيان كړي دي وَلَا تَبْطُلُ بِالْقِسْمَةِ اووصيت به ويش سره نه باطليږي.

تشريح:- كله چي موصى به فوت شي.نو دهغي بدل به دهغي قائم مقام جوړيږي.ددي يو مثال پيش كړي شوي



دي.چه كله زيد د خپلي وينځي وصيت د يو سړي لپاره اوكړو.او چا په خطاء سره دا وينځه قتل كړله .نواوس به موصى له ته د وينځي په ځائي د هغي بدل ملاويږي.

كه څوك پوښتنه اوكړي چي كه موصى، موصى به غلام خرڅ كړو.نو آيا دلته به هم په ثمن كي وصيت جاري كولي شي؟ نوځواب دا دي چي نه، څكه چي د موصى په بيع باندي اقدام كول ددي خبري دليل دي.چه هغه د وصيت نه رجوع كوي.نو دلته به د سره وصيت باطل وي.او چونكه تقسيمول د رجوع كاوه دليل نه دي.نو په ويش سره به وصيت نه باطليږي.دا د امام محمد رحمه الله دليل دي.روستو د شيخينو رحمهما الله دليل راروان دي.

### د شيخينو رحمهما الله دليل

وَلَهُمَا أَنَّهُ أَوْصَى بِمَا يَسْتَقِرُّ مِلْكُهُ فِيهِ بِالْقِسْمَةِ او د شيخينو رحمهما الله دليل دا دي.چه موصى د داسي شئ وصيت كړي دي.چه هغي كي به ويش سره دده ملكيت مضبوطيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَقْصِدُ الْإِيصَاءَ بِمِلْكٍ مُنْتَفَعٍ بِهِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ وَذَلِكَ يَكُونُ بِالْقِسْمَةِ څكه چي ښكار هم دا ده.چه موصى د داسي ملك د وصيت كاوه قصد كړي دي.چه دهغي نه هر اعتبار سره نفع حاصله كړي شي.او دا ( پوره نفع اخستل) ويش سره كيداي شي ده لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْمُشَاعِ قَاصِرٌ څكه چي د مشاع (شريك) په ذريعه انتفاع قاصر وَقَدِ اسْتَقَرَّ مِلْكُهُ فِي جَمِيعِ الْبَيْتِ إِذَا وَقَعَ فِي نَصِيبِهِ فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِيهِ او هركله چي اطاق د موصى په برخه كي راغلله.نو په پوره اطاق كي دده ملك مضبوط شو.نو په دي كي به وصيت نافذ كيږي

تشريح:- دا د حضرات شيخينو رحمهما الله دليل بيانوي.چه د وصيت په وخت اګرچه په پوره اطاق كي د زيد ملكيت نه وو.خو دا احتمال په دي كي د وړاندي نه موجود دي.چه د ويش په ذريعه په دي كي د زيد ملكيت ثابت شي.او هركله چي بكر ته معلومه ده.چه انډيوالان ( شريكوال) ددي كمري وصيت كړي دي.هغه به هم ددي رعايت (او لحاظ) ساتي.څكه چي په داسي ځايونو كي د رعايت كاوه عادت جاري دي.او كوم شئ چي مشترك وي.د هغي نه مكمل انتفاع نشي حاصليدي.بلكه ددي څخه به نفع اخستل قاصر وي.نو د زيد منشاء د مخكي نه دا ده.چه د ويش نه روستو دا اطاق خالد ته حواله كړي شي. څكه چي د زيد مقصد هم دا دي.چه خالد ته ددي كمري نه پوره نفع حاصله شي.او دا د ويش نه بغير ممكن نه ده.بهرحال هركله چي د مخكي نه دا مقصد وو.او اوس په ويش كاوه سره دا پوره اطاق د زيد په ملكيت كي راغلله.نو وصيت به نافذ كولي شي.او پوره اطاق به خالد ته حواله كولي شي.

وَمَعْنَى الْمُبَادَلَةِ فِي هَذِهِ الْقِسْمَةِ تَابِعٌ او په دي ويش كي د مبادله معنى تابع ده وَإِنَّمَا الْمَقْصُودُ الْإِفْرَازُ تَكْمِيلًا لِلْمَنْفَعَةِ او مقصود افراز دي.ګويا د پيل نه اطاق د موصى ملكيت دي. وَلِهَذَا يُجْبَرُ عَلَى الْقِسْمَةِ فِيهِ اوهم د دي املـه مجبوره كولاى شي په ويش باندي په دي كي وَعَلَى اعْتِبَارِ الْإِفْرَازِ اود جداوالى په اعتبار سره يَصِيرُ كَأَنَّ الْبَيْتَ مِلْكُهُ مِنَ الِابْتِدَاءِ ګرځي لكه چي د كور مالك شوي دي دي د اول نه

تشريح:- پاتي شو د امام محمد رحمه الله دا فرمان په ويش كي د مبادله معنى ده.چه دا د شراء په درجه كي ده.نو ددي ځواب دا دي.چه په ويش كي د مبادله او جدايئ دواړه معاني شته.او په ځاروو او سامانونو كي د مبادلي معنى اكثره ده.او په جنس واحد كي د جدايئ معنى غالب وي.نو دلته جنس واحد دي.چه په دي كي د جدايئ معنى اصل ده.او د مبادله معنى مغلوب وي.او تابع ده.او چونكه دلته د جدايئ معنى غالب ده.په دي وجه ويش باندي زبردستي جائز ده.ګنى چرته چي د مبادله معنى غالبه وي.هلته د قاضي زبردستي جائز نه ده.( چي ددي تفصيلي بيان په كتاب القسمت كي تير شوي دي). بهرحال هركله چي دلته د جدايئ معنى غالب ده.نو ددي نه دا خبره معلومه شوه.چه ګويا د پيل نه دا اطاق د زيد ملكيت دي.نو وصيت به په دي كي نافذ كيږي.

### د مذكوره مسئلي مزيد وضاحت

وَإِنْ وَقَعَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ اوكه دا اطاق د بل ( شريكوال) په برخه كي راغلي وي تَنْفُذُ فِي قَدْرِ ذُرْعَانِ جَمِيعِهِ مِمَّا وَقَعَ فِي نَصِيبِهِ نو وصيت به نافذ كولي شي.د كمرو د ټولو ګزونو په اندازه، هغه مځكه كي كومه چي د موصى په برخه كي

واقع شوي ده اما لانه عوضه كما ذكرناه يا خو ځكه چې دا (كومه مځكه چې زيد ته ملاو شوې ده) ددې عوض دي.لكه ځنګه چې موږ دا ذكر كړي دي اولان مراد الموصي من ذكر البيت التقدير به تحصيلا لمقصوده ما امكن يا په دې وجه چې د موصي مراد د كمرې په ذكر كاوه سره ددې په ذريعه تعين او اندازه كول دي.تر كومه پورې چې ممكن وي.د هغه د مقصود حاصلولو په وجه الا انه يتعين البيت اذا وقع في نصيبه جمعا بين الجهتين التقدير والتمليك خو دا خبره ده.چه اطاق به متعين كيږي.كله چې اطاق د موصي په برخه كي واقع شي.د تقدير او تمليك، دواړو جهتونو په منځ كي جمع كاوه سره وان وقع في نصيب الآخر او كه اطاق د بل (شريك) په برخه كي واقع شوي وي عملنا بالتقدير نو موږ په تقدير باندې عمل اوكړو اولانه اراد التقدير على اعتبار احد الوجهين والتمليك بعينه على اعتبار الوجه الآخر ځكه چې موصي د تقدير اراده كړې ده.په دوو وجو كي د يو په اعتبار باندې، او بعينه د تمليك (اراده ئې كړې ده) د دويمې امله په اعتبار باندې.

**تشريح:-** كه دا اطاق د زيد په برخه كي راشي.نو هم دا اطاق به وركولې شي.اوكه دا اطاق د هغه د انډيوالان (شريك) په برخه كي راشي.نو اوس به د زيد په برخه كي د زمكې نه خالد ته هغومره مځكه وركولې شي.څومره چې دغه اطاق ده.ولې؟ يا خو په دې وجه چې دا مځكه ددې كمرې عوض دې.او كله چې د اصل موصي به په سپارلو باندې قدرت نه وي.يعنې هغه فوت شي.نو د هغې بدل د هغې قائم مقام جوړيږي.چه ددې تفصيل اوس وړاندې تير شوې دي.يا دا وجه ده.چه د موصي مراد بعينه هم دا اطاق وصيت كول مقصود نه دي.بلكه د هغې په مثل د زمكې وصيت كول مقصود دي.او د كمرې ذكر صرف د تقدير (او اندازه كولو) په طريقه باندې دي.يعنې د موصي به د مقدار او اندازې لګولو لپاره دي.د كمرې نه تقدير (او اندازه) مراد ولې واخستلې شوه؟ ځكه چې څومره ممكن وي.د موصي د مقصد رعايت اوكړې شي.

سوال۞ هركله چې كمرې سره تقدير او اندازه مراد ده.نو هركله چې دا اطاق د زيد په برخه كي راشي.نو موصي يا د هغه وارثانو ته اختيار ملاويدل پكار دي.چه هغه بعينه هم دغه اطاق وركړي.يا د هغې په مثل مځكه وركړي.نو كه دا اطاق د زيد په برخه كي راشي.نو تاسو دا حكم ولې متعين كړو.چه اوس به هم اطاق خالد ته وركولې شي.دا حكم خو د تقدير خلاف دې؟

ځواب۞ دلته دواړه احتماله شته.دا هم كيداې شي.چه د زيد مراد د كمرې په ذكر سره ددې نه اندازه بيانول دي.او دا هم كيداې شي.چه دده مراد بعينه ددې كمرې مالك جوړول وي.نو هركله چې دا اطاق د زيد په برخه كي راغلله.نو موږ اووئيل.چه هم دا اطاق به خالد ته وركولې شي.چه په دې كي د تقدير او تمليك دواړو رعايت اوكړې شي.يعنې دواړه خبرې په دې كي په يو وخت كي جمع شوې.

؟اوكه دا اطاق د دوهم شريك په برخه كي راشي.نو هلته په تقدير باندې عمل كړې شوې دې.يا دا هم كيداې شي.چه د زيد پخپله مراد دا وي.چه كه دا اطاق زما په برخه كي راغلله.نو بعينه هم دا اطاق به وركولې شي.اوكه دا اطاق زما په برخه كي رانغلله.نو ددې په برابر ځاې به وركولې شي.يعنې د وصيت په وخت د موصي اراده د تقدير او تمليك دواړو كيداې شي.

## د مذكوره مسئلې مثال

كما اذا علق عتق الولد وطلاق المرأة باول ولد تلده امته لكه كله چې ده معلق كړې وي.د بچي آزادي او د ښځې طلاق، مځكې په هغه بچي باندې كوم چې د هغه وينځه اوزيګوي فالمراد في جزاء الطلاق مطلق الولد وفي العتق ولد حي نو مراد د طلاق په جزاء كي مطلق بچې دې.او د آزادۍ په حق كي ژوندې بچې دې.

**تشريح:-** دا آخرې چې كوم ځواب وركړې شوې دې.چه كيداې شي.چه د موصي مراد د مځكې نه دا وي.چه كه دا اطاق زما په برخه كي راشي.نو بعينه به هم دا وركولې شي.او كه دا زما په برخه كي رانشي.نو ددې په مثل ځاې به وركولې شي.ددې ځاې نه مرغيناني رحمه الله ددې مثال پيش كوي.مثلاً د زيد يوه وينځه ده.چه دهغې نې خالد سره نكاح كړې ده.او يوه د زيد ښځه ده.اوس زيد وائي.چه زما وينځه كله مځكې بچې راوړي.نو هغه آزاد دې.او



زما ښځې ته طلاق دې.نو كله چې دا بچې پيدا شو.نو ازاد به وي.او د زيد ښځې ته به طلاق واقع كيږي.خو د طلاق او آزادۍ دواړو مراد جلا جلا دې.يعنې د طلاق واقع كيدو لپاره مطلق بچې مراد دې.يعنې كه بچې ژوندې پيدا شو.اوكه مړ، په دواړو صورتونو كي به طلاق واقع كيږي.او د آزاديدو لپاره ژوندې بچې مراد دې.يعنې كه هغه ژوندې بچې راوړي.نو بچې به آزاد وي.ګني كه بچې مړ پيدا شو.نو هغه به آزاد نه وي.نو معلومه شوه.چه زيد د مځكنې بچې نه د طلاق په حق كي مطلق بچې مراد اخستې دې.او د آزادۍ په حق كي ئې ژوندې بچې مراد اخستې دې.دغه ډول دلته هم ده.چه كه دا اطاق زما په برخه كي راشي.نو هم دا اطاق مراد ده.اوكه زما په برخه كي رانشي.نو ددې په مثل دوهم ځاې مراد دې.

## د ويش طريقه

ثم اذا وقع البيت في نصيب غير الموصي والدار مائة ذراع والبيت عشرة اذرع بيا هركله چې اطاق د غير موصي په برخه كي راشي.او كور سل ګزه وي.او اطاق لس ګزه وي يقسم نصيبه بين الموصى له وبين الورثة على عشرة اسهم تسعة منها للورثة وسهم للموصى له نو د موصي برخه به د موصى له او وارثانو په منځ كي په لسو برخو كي تقسيمولې شي.ددې څخه به نهه وارثان لپاره وي.او يوه برخه به موصى له لپاره وي وهذا عند محمد رحمه الله او دا د امام محمد رحمه الله په نيز دي فيضرب الموصى له بخمسة اذرع بنصف البيت وهم بنصف الدار سوى البيت وهو خمسة واربعون نو موصى له به د نصف كور په حساب سره پنځه ګزه اخلي.او وارثانو لپاره نيم كور دې.د كمرې نه علاوه، او دا (د كمرې نه علاوه نيم كور) پنځه څلويښت ګزه دي فيجعل كل خمسة سهما فيصير عشرة نو هر پنځه ګزه به يوه برخه ګرځولې شي.نو لس برخې به جوړيږي.

**تشريح:-** هركله چې دا معلومه شوې ده.چه كه دا برخه د زيد په برخه كي رانشي.نو ددې په برابر مځكه به خالد ته وركولې شي.نو ددې ويش به څه طريقه وي.اګرچه مسئله پخپله واضحه وه.خو مرغيناني رحمه الله دا بيانوي.فرمائي چې د امام محمد رحمه الله په نيز به موصى له ته د كمرې د نصف عوض وركولې شي.نو كه پوره كور سل ګزه دې.او اطاق لس ګزه ده.نو موصى له ته به پنځه ګزه ملاويږي.يعنې د زيد په برخه كي د كور پنځه ګزه راغلل.او د كمرې نصف پنځه ګزه دي.نو په پنځه ګزه مځكه به موصى له ته وركولې شي. او پاته پنځه څلويښت ګزه به د زيد وارثانو لپاره وي.هم دا په نورو الفاظو كي داسې اووايئ.چه د زيد د پوره تركې به لس برخې جوړولې شي.ددې څخه به نهه د زيد وارثانو ته او يوه به موصى له ته وركولې شي.ځكه چې د پنځوسو نه پنځه څلويښت ٩١١٠ ده.او د پنځوسو نه پنځه برخې ١١١٠ دې.دا تفصيل د امام محمد رحمه الله په نيز دې.چه ويش به په لسو برخو باندې كولې شي.او هر پنځه ګزه به يوه برخه ګرځولې شي.

## د شيخينو رحمهما الله په نيز د ويش طريقه

وعندهما يقسم على احد عشر سهما او د شيخينو رحمهما الله په نيز به (د موصي حصه) په يوولسو برخو باندې تقسيمولې شي لان الموصى له يضرب بالعشرة وهم بخمسة واربعين ځكه چې موصى له به د لسو ګزونو په حساب سره اخلي.او وارثان به د پنځه څلويښتو (په تناسب سره اخلي) فتصير السهام احد عشر للموصى له سهمان ولهم تسعة نو برخې به يوولس جوړيږي.موصى له لپاره به دوې (دوه) برخې وي.او وارثانو لپاره نهه

**تشريح:-** دا د حضرات شيخينو رحمهما الله په نيز د ويش طريقه ده.ددې حاصل دا دې.چه د موصي په برخه كي كوم پنځوس ګزه راغلي دي.د هغې به يوولس برخې كولې شي.ددې څخه به نهه برخې وارثانو ته او دوې (دوه) به موصى له ته وركولې شي.يعنې پنځوس به زياتولې شي.او ٥٥ به جوړولې شي.او بيا به د پنځه پنځوسو نه لس برخې موصى له ته او پنځه څلويښت به وارثانو ته وركولې شي.ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پوره اطاق لس ګزه ده.نو هم دا لس ګزه به په ذكر شوې طريقه موصى له ته وركولې شي.چه ددې تفصيل دا دې.چه زيد خالد ته ګويا د لسو (حصو) وصيت كړې دې.او پوره كور سل ګزه دې.هركله چې د سلو نه لس اووتلې.نو نوې (لس كم

سل) پاته پاتې شوې.چه دا د دوارو شریکانو په منځ کې مشترك دی.او د هر فریق پنځه څلوېښت شوې.خو د شریك برخه به نشی کمولې.نوهغه ته به خو د هغه پوره پنځوس ملاویږی.البته په پاته پاتې پنځوسو کې چې کله د وارثانو د پنځه څلوېښتو او د موصی له دلسو برخو په حساب سره اوکتلی شو.او برخه د پنځو ګزو شوه.نو اصل به ۵۵ برخې ګرځولې شي.چه یوولس برخې جوړې شي.

تنبیه◉ دا مرغینانی رحمه الله طول لا طائل (او اوګدوالې) اختیار کړې دې.ګنی فرمائی.چه د شیخینو رحمهما الله په نیز به پنځوس ګزه په پنځو برخو باندې تقسیمولې شی.یعنی څلوېښت د وارثانو او یوه برخه یعنی لس برخې به د موصی له وی.د امام محمد رحمه الله په نیز چونکه د کمرې نصف خرځیدې شی.نو هغه مجبوراً په لسو برخو باندې د ویش قائل دې.خو د شیخینو رحمهما الله په نیز به د پوره کمرې مثل ملاویږی .نو په پنځو برخو باندې به تقسیمولې شی.﴿زیلعی ص:۱۹۴،ج۶﴾

**که مذکوره مسله کښې د وصیت په ځائې اقرار وی نو څه حکم دې؟**

وَلَوْكَانَ مَكَانَ الْوَصِيَّةِ إِقْرَارًا او که د وصیت په ځائې اقرار وی قِيلَ هُوَعَلَى الْخِلَافِ نو وئیلی شوی دی.چه دا په اختلاف باندې دې وَقِيلَ لَاخِلَافَ فِيهِ لِمُحَمَّدٍ رحمه الله او وئیلی شوی دی.چه په دې کې د امام محمد رحمه الله اختلاف نشته وَالْفَرْقُ لَهُ اَنَّ الْإِقْرَارَ بِمِلْكِ الْغَيْرِ صَحِيحٌ او د امام محمد رحمه الله لپاره وجه د توپیر دا ده.چه د غیر د ملك اقرار صحیح دې حَتَّى اَنَّ مَنْ اَقَرَّ بِمِلْكِ الْغَيْرِ لِغَيْرِهِ ثُمَّ مَلَكَهُ تردې پورې چې کوم کس د غیر د ملك اقرار اوکړو.د خپل غیر دپاره، بیا مقر ددې مالك شو يُؤْمَرُ بِالتَّسْلِيمِ إِلَى الْمُقَرِّ لَهُ نو مقر ته به ددې مقرله ارخ ته د سپارلو حکم ور کولای شی وَالْوَصِيَّةُ بِمِلْكِ الْغَيْرِ لَا تَصِحُّ، حَتَّى لَوْمَلَكَهُ بِوَجْهٍ مِنَ الْوُجُوهِ ثُمَّ مَاتَ او د بل د ملکیت وصیت کول صحیح نه دی.تردې که موصی د موصی به په څه طریقه باندې مالك شی.بیا مړشی لَا تَصِحُّ وَصِيَّتُهُ وَلَا تَنْفُذُ نو دده وصیت به صحیح نه وی.او نه به نافذ کیږی.

تشریح:- مثلاً د زید او عمرو په منځ کې یو کور شریك دې.او زید ددې نه د یوې معین کمرې په اره کې خالد لپاره اقرار اوکړو.چه د خالد په ملکیت کې ده.نو دلته به بالاتفاق خالد ته دا پوره اطاق ملاویږی.یا به ددې په برابر مخکه ملاویږی.یعنی په دې کې د امام محمد رحمه الله اختلاف نشته.او هم دا عدم اختلاف مختار قول دې.اګرچه بعضو حضراتو وئیلی دی.چه د امام محمد رحمه الله دلته هم اختلاف شته.چه د کمرې نصف یا به ددې نصف مثل ملاویږی.

؟ د عدم اختلاف په صورت کې امام محمد رحمه الله باندې اعتراض واردیږی.چه دوی په وصیت او اقرار کې توپیر ولې کړې دې؟ نو ددې خواب دا دې.چه په اقرار او وصیت کې توپیر دې.د ملكِ غیر په اره کې اقرار، صحیح اقرار دې.خو د ملكِ غیر وصیت صحیح نه دې.د اقرار صحیح کیدو دلیل دا دې.چه زید دا اقرار اوکړو.چه دخالد دا کورد بکر دې.او بیا زید ددې کور مالك شو.نو دې به پخپل اقرار کې ګرفتارولې شی.اوده ته به حکم ورکولې شی.چه دا کور بکر ته اوسپاره.که د ملكِ غیر وصیت اوکړی .او بیا د موصی به مالك شو.نو بیا به هم وصیت صحیح نه وی.او نه به نافذ کیږی.

**د یو سړی د معین مال د بل سړی لپاره د وصیت کولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ اَوْصَى مِنْ مَالِ رَجُلٍ لِآخَرَ بِأَلْفٍ بِعَيْنِهِ) و چا چې د بل یو کس په مال کې د یو سړی لپاره د معین زر (روپو) وصیت اوکړو فَاَجَازَ صَاحِبُ الْمَالِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُوصِي بیا د موصی د مرګ نه روستو د مال میره اجازت ورکړو.نو که هغه دا مال موصی له ته ورکړو فَإِنْ دَفَعَهُ فَهُوَجَائِزٌ وَلَهُ اَنْ يَمْتَنِعَ نو جائز دې.او د مال مالك ته اختیار شته.چه د ور کاوه نه انکار اوکړی لِاَنَّ هٰذَا تَبَرُّعٌ بِمَالِ الْغَيْرِ فَيَتَوَقَّفُ عَلَى إِجَازَتِهِ ځکه چې دا (د موصی فعل) د غیر د مال نه تبرع ده.نو د مال د مالك په اجازت باندې موقوف دې وَإِذَا اَجَازَ يَكُونُ تَبَرُّعًا مِنْهُ اَيْضًا او هرکله هغه اجازت ورکړو.نو د هغه د ارخه به هم تبرع وی فَلَهُ اَنْ يَمْتَنِعَ مِنَ التَّسْلِيمِ



تشریح:- زید سره مثلاً دخالد امانت ایخودلې شوې دې.او په دې کې ئې د زر روپو وصیت بکر لپاره اوکړو.نو چونکه دا وصیت د غیر په مال کې دې.په دې وجه دا وصیت د خالد په اجازت باندې موقوف دې.که ده د موصی د مرګ نه روستو ددې اجازت ورکړو.نو صحیح ده.ګنی باطل دې.او د جواز لپاره ضروری ده.چه خالد موصی به د بکر په قبضه کې ورکړی.وجه ددې دا ده.چه د خالد مذکوره فعل د هبې په درجه کې دې.او د هبې پوره کیدو لپاره قبضه شرط ده.او که خالد اجازت ورکړو.خو موصی به ئې تر اوسه پورې موصی له ته سپارلې نه وو.نو هغه ته حق شته.چه د ور کاوه نه ئې منع کړی.ځکه چې دلته د زید فعل د غیر د مال نه تبرع ده.نو دا به ددغه غیر په اجازت باندې موقوف وی.او هرکله چې غیر اجازت ورکړو.نو د غیر د ارخه به هم دا تبرع شمارلې کیږی.نو دې غیر ته حق شته.چه هغه د سپارلو نه منع شي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا اَوْصَى بِالزِّيَادَةِ عَلَى الثُّلُثِ وَاَجَازَتِ الْوَرَثَةُ نو د مال مالك ته حق شته.چه د سپارلو نه انکار اوکړی.په خلاف ددې صورت کله چې موصی د دریمې برخې نه د زیات وصیت اوکړو.او وارثانو اجازت ورکړو لِاَنَّ الْوَصِيَّةَ فِي مَخْرَجِهَا صَحِيحَةٌ لِمُصَادَفَتِهَا مِلْكَ نَفْسِهِ ځکه چې وصیت پخپل مخرج کې صحیح واقع شو.ددې د ملاویدو په وجه د خپل ملك نه وَالْاِمْتِنَاعُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ او په زیات کې ممتنع کیدل د وارثانو د حق په وجه وو فَإِذَا اَجَازُوهَا سَقَطَ حَقُّهُمْ نو هرکله چې وارثانو اجازت ورکړو.نو دهغوی حق ساقط شو فَنَفَذَ مِنْ جِهَةِ الْمُوصِي نو وصیت د موصی د ارخه نافذ شو.

تشریح:- او که موصی د دریمې برخې نه د زیات وصیت کړې وی.نو دا د وارثانو په اجازت باندې موقوف دی.که وارثانو اجازت ورکړو.نو دا اجازت د سپارلو نه بغیر صحیح دې.ځکه چې دلته وصیت د پیل نه صحیح دې.کوم چې مالك کړې دې.البته په دې کې د وارثانو حق رکاوټ جوړ شوې وو.نو هرکله چې وارثانو اجازت ورکړو.نو د هغوی حق ساقط شو.نو وصیت به د موصی د ارخه نافذ کیږی.د وارثانو د ارخه به (نافذ) نه وی.

**د میراث تقسیمولو نه روسته د یو وارث د وصیت اقرار کول او ددې حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل (وَإِذَا اقْتَسَمَ الْاِبْنَانِ تَرِكَةَ الْاَبِ اَلْفًا) و کله چې دوو ځامنو د پلار ترکه زر روپۍ ویش کړلې ثُمَّ اَقَرَّ اَحَدُهُمَا لِرَجُلٍ اَنَّ الْاَبَ اَوْصَى لَهُ بِثُلُثِ مَالِهِ بیا په دوی دوارو کې یو کس د یو سړی لپاره اقرار اوکړو.چه پلار دده لپاره د خپل ثلث مال وصیت کړې وو دی فَإِنَّ الْمُقِرَّ يُعْطِيهِ ثُلُثَ مَا فِي يَدِهِ نو مقر به هغه ته د هغه (حصې) ثلث ورکوی.کوم چې دده په قبضه کې وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دې.

تشریح:- د زید دوې (دوه) ځامن دی.خالد او ساجد، د زید (یعنی د پلار) انتقال اوشو.او دوی دوارو (ځامنو) د پلار ترکه ویش کړله.چه دا مثلاً زر روپۍ وې.بیا خالد اقرار اوکړو.چه پلار د فلانی سړی لپاره د خپل ثلث مال وصیت کړې وو.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه کوم (رور) اقرار نه دې کړې.هغه خو بری الذمه دې.البته د خالد په قبضه کې چې د ترکې کوم مال رسیدلې دې.هغه به په دغې برخه کې ثلث فلانی سړی ته ورکوی.(دچا لپاره چې هغه اقرار کړې دې).او دا حکم استحسان دی.

**قیاسی دلیل**

وَالْقِيَاسُ اَنْ يُعْطِيَهُ نِصْفَ مَا فِي يَدِهِ او قیاس دا دې.چه دا (مقر) هغه ته د هغې نصف ورکړی.کوم چې دده په قبضه کې دې وَهُوَقَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې لِاَنَّ اِقْرَارَهُ بِالثُّلُثِ لَهُ تَضَمَّنَ اِقْرَارَهُ بِمُسَاوَاتِهِ اِيَّاهُ ځکه چې د مقر د موصی له لپاره د ثلث اقرار کول متضمن دی.دده اقرار کاوه ته، چې ده هغه لره د خپل ځان برابر جوړ کړې دې وَالتَّسْوِيَةُ فِي اِعْطَاءِ النِّصْفِ لِيَبْقَى لَهُ النِّصْفُ او برابری په نصف ور کاوه کې ده.چه د مقر لپاره نصف پاته پاتې شی.

تشریح:- یعنی موږ چې کوم دا وئیلی دی.چه مقر به پخپله برخه کې ثلث ورکوی.دا حکم په طریقه د استحسان دې.ګنی د قیاس تقاضا دا ده.چه مقر پخپله برخه کې نصف مقرله ته ورکړی.او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې.ځکه چې هرکله مقر د هغه لپاره د ثلث مال اقرار اوکړو.نو ددې مطلب به دا وی.چه ټوله ترکه به درې برخې کولې

شی.او دواړو خامنو او موصی له ته به برابر ملاویږی.نو د ثلث اقرار دې خبرې ته ګډ دې.چه مقر دا اقرار کړې دې.چه مقرله په برخه کې زما برابر دې.او د برابرۍ تقاضه دا ده.چه دده په قبضه کې کوم څه دی.د هغې نیمه ورکړی.چه نیم د مقر لپاره شی.او نیم د مقرله لپاره شی.

فائده: خو د مقر مطلب دا دې.چه په ټوله ترکه کې هغه زما برابر دې.زما په قبضه کې هغه زما برابر نه دې.( فتدبر)

## د استحسان دليل

وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ أَنَّهُ أَقَرَّ لَهُ بِثُلُثٍ شَائِعٍ فِي التَّرِكَةِ د استحسان دلیل دا دې.چه مقر په ترکه کې د ثلث شائع اقرار کړې دې.( چې په مجموعه ترکه کې ګډ دې). وَهِيَ فِي أَيْدِيهِمَا او ترکه ددوی دواړو په قبضه کې ده فَيَكُونُ مُقِرًّا بِثُلُثِ مَا فِي يَدِهِ نو هغه به پخپل قبض کړې شوی مال کې د ثلث اقرار کونکې وی.

تشريح:- خو مونږ مذکوره قیاس پرېښودې دې.او په استحسان باندې مو عمل کړې دې.د استحسان دلیل دا دې.چه مقر په ټوله ترکه کې په طریقه د شیوع ( په واړه مال کې ) د ثلث موصی له لپاره اقرار کړې دې.او ټوله ترکه د دواړو رونړو په قبضه کې ده.نو د مقر په قبضه کې چې کوم څه دی.دې د هغې د ثلث اقرار کونکې شو.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ أَحَدُهُمَا بِدَيْنٍ لِغَيْرِهِ په خلاف ددې صورت کله چې په دوی دواړو کې یوکس د خپل غیر لپاره د پور اقرار کړې وی لِأَنَّ الدَّيْنَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْمِيرَاثِ نو هغه به د غیر د وراندې والی اقرار کونکې وی فَيَكُونُ مُقِرًّا بِتَقَدُّمِهِ دغه غیر به په ده باندې مقدم کولې شی.

تشريح:- البته که په دوی دواړو کې یو کس دا اقرار اوکړو.چه په پلار باندې د خالد دومره پور دې.که اوس د مقر واړه حق هم ختم شی.نو ددې پرواه به نشی کولې.بلکه د مقرله حق به ادا کولې شی.ځکه چې پور په میراث باندې مقدم دې.نو ده پخپله اقرار کړې دې.چه فلانې په ما باندې وړاندې دې.نو دده د اقرار مطابق به هغه مخکې کولې شی.

## موصی له وارثانو سره شريك وی

أَمَّا الْمُوصَى لَهُ بِالثُّلُثِ شَرِيكُ الْوَارِثِ بهرحال موصی له بالثلث هغه د وارث شریك دې فَلَا يُسَلَّمُ لَهُ شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يُسَلَّمَ لِلْوَرَثَةِ ثُلُثَاهُ نو هغه لپاره به هیڅ شئ سپارلې نشی.خو په دې صورت کې چې وارثانو لپاره د ترکې دوې (دوه) ثلثه سلامت پاتې شی

تشريح:- قرضخواه د وارثانو نه مقدم وی.او موصی له مقدم نه وی.بلکه وارثانو سره شریك وی.نو موصی له ته به دده حق هغه وخت ورکولې شی.کله چې دوې (دوه) ثلثه وارثانو لپاره سلامت پاتې شی.نو په ذکر شوی صورت کې به د مقر د قبض شوی ثلث هغه ته ورکولې شی.نصف به نشی ورکولې.

وَلِأَنَّهُ لَوْ أَخَذَ مِنْهُ نِصْفَ مَا فِي يَدِهِ او ځکه چې که موصی له د مقر نه دده د قبضې نصف واخلی نو کیدای شی.چه دوهم ځوئې هم ددې اقرار اوکړی فَيَأْخُذُ نِصْفَ مَا فِي يَدِهِ نو موصی له به دده د قبض شوی نصف واخلی فَيَصِيرُ نِصْفَ التَّرِكَةِ فَيَزْدَادُ عَلَى الثُّلُثِ نو د ترکې نصف به جوړیږی.نو دا به د ثلث نه زیات وی.

تشريح:- ځکه که موصی له ته نصف ورکړې شو.او کیدای شی.چه دوهم ځوئې هم اقرار اوکړی.نو د هغه څخه به هم نصف اخستلې شی.نو اوس موصی له ته نیمه ترکه ملاو شوه.حالانکه هغه ته به د ثلث نه زیات نشی ورکولې.نو معلومه شوه.چه موصی له ته به د مقر د قبض شوی مال نه ثلث ملاویږی.

## د داسې وینځې وصیت کول، چې د موصی د وفات نه روسته ددې ب چې پیدا شی نو څه حکم دې ؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل (وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِجَارِيَةٍ) او چا چې د یوکس لپاره د وینځې وصیت اوکړو فَوَلَدَتْ



بَعْدَ مَوْتِ الْمُوصِي وَلَدًا وَكِلَاهُمَا يَخْرُجَانِ مِنَ الثُّلُثِ نو هغې د موصی د مرګ نه روستو بچې راوړو.او دوی دواړه د دریمې نه اوخې. فَهُمَا لِلْمُوصَى لَهُ نو دوی دواړه به موصی له لپاره وی لِأَنَّ الْأُمَّ دَخَلَتْ فِي الْوَصِيَّةِ أَصَالَةً وَالْوَلَدَ تَبَعًا حِينَ كَانَ مُتَّصِلًا بِالْأُمِّ ځکه چې مور په وصیت کې اصالتاً داخله ده.او بچې تبعاً ( داخل دې).کله چې دا مور سره متصل وو فَإِذَا وَلَدَتْ قَبْلَ الْقِسْمَةِ نو کله چې وینځې د ویش نه وړاندې او زیګولو وَالتَّرِكَةُ قَبْلَهَا مُبْقَاةٌ عَلَى مِلْكِ الْمَيِّتِ او ترکه د ویش نه وړاندې د مړی په ملکیت باندې پاته پاتې کیږی.تردې پورې چې ددې نه حَتَّى يُقْضَى بِهَا دُيُونُهُ د مړی پور ادا کولای شی دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ فَيَكُونَانِ لِلْمُوصَى لَهُ نو بچې په وصیت کې داخل شو.نو دوی دواړه به موصی له لپاره وی.

تشريح:- زید خالد لپاره د خپلې وینځې وصیت اوکړو.او د زید د مرګ نه روستو، د ترکې تقسیمولو نه وړاندې وینځې یو بچې راوړو.او د وینځې او د بچې قیمت دومره دې.چه دوی دواړه د ترکې د دریمې نه اوخی.یعنی ترکه او ددوی دوې (دوه) ثلثه یا ددې نه زیات موجود دی.نو وینځه او بچې دواړه به خالد ته ملاویږی.ځکه چې وصیت کې مور اصالتاً داخله ده.ځکه چې ددې وصیت زید کړې دې.او بچې چونکه د وصیت په وخت کې مور سره متصل دې.نو بچې به د تبعیت په بناء وصیت کې داخل وی.او ترکه د تقسیمولو نه وړاندې د مړی په ملکیت باندې پاته پاتې وی.ددې دلیل دا دې.چه د مړی د ترکې نه د مړی پور ادا کولې شی.نو هرکله چې ترکه لا اوس د مړی ( د زید) په ملکیت باندې پاته پاتې ده.او هیڅ مانع موجود نه دې.نو بچې به هم وصیت کې داخل وی.او هرکله چې مور او بچې ( دواړه) په وصیت کې داخل شو.نو دوی دواړه به خالد ته ملاویږی.

## که مور او ځوئې د ثلث نه نه اوځی نو څه حکم دې ؟

وَإِنْ لَمْ يَخْرُجَا مِنَ الثُّلُثِ او که دوې دواړه د دریمې برخې نه نه اوخی ضَرَبَ بِالثُّلُثِ نو موصی له به دریمه برخه اخلی وَأَخَذَ مَا يَخُصُّهُ مِنْهُمَا جَمِيعًا فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او په دوی دواړو کې چې کوم یو دده په برخه کښې راشی.هغه به اخلی.د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې

تشريح:- او که مور او بچې دواړه د دریمې نه نه اوخی.یعنی ددوی د قیمت نه علاوه دوې (دوه) ثلثه یا ددې نه زیات پاته پاتې نشی.نو په دې کې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله ٠ اختلاف دې.

وَقَالَ أَبُو حَنِيفَةَ يَأْخُذُ ذَلِكَ مِنَ الْأُمِّ، فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ أَخَذَهُ مِنَ الْوَلَدِ(1) او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی.چه هغه به ثلث د مور نه وصولوی.نو که څه بچ پاتې شی.نو هغه به د بچې نه اخلی.

تشريح:- امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه هغه به خپله دریمه برخه د مور نه اخلی. که د مور نه دده دریمه پوره شی.نو صحیح ده.ګنی که څه پاتې شی.نو دا کمې به په بچی سره پوره کولې شی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د مور او بچی دواړو نه په یوځائې ثلث وصولولې شی.چه ددې وضاحت په راروان مثال کې بیانیږی.فرمائی.

## د جامع صغیر یو مثال سره د اختلافی مسئلې وضاحت

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ عَيَّنَ صُورَةً او په جامع صغیر کې ئې یو صورت متعین کړې دې وَقَالَ: رَجُلٌ لَهُ سِتُّمِائَةِ دِرْهَمٍ وَأَمَةٌ تُسَاوِي ثَلَاثَمِائَةِ دِرْهَمٍ او وئیلی ئې دی.چه یو سړې دې.چه هغه سره شپږ سوه درهمه دی.او یوه وینځه ده.چه دا د دریو سوو درهمو برابر دی فَأَوْصَى بِالْجَارِيَةِ لِرَجُلٍ ثُمَّ مَاتَ نو هغه د یو سړی لپاره د وینځې وصیت اوکړو.بیا موصی مړ شو فَوَلَدَتْ وَلَدًا يُسَاوِي ثَلَاثَمِائَةِ دِرْهَمٍ قَبْلَ الْقِسْمَةِ فَلِلْمُوصَى لَهُ الْأُمُّ نو وینځې یو بچې راوړو.چه د دریو سوو درهمو برابر دې.د ویش نه وړاندې( دا بچې پیدا شوې وو) نو موصی له لپاره مور ده وَثُلُثُ الْوَلَدِ عِنْدَهُ او د بچې ثلث دې.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز

(1) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى (٤٣٥\٤) وردالمحتار(٤٨٠\٥) نقلاً عن القول الراجح (٣٧٩\٢)-

تشریح:- داد جامع صغیر په یو مثال سره د اختلافي مسئلې وضاحت دی. مثلاً زید سره شپږ سوه درهمه دي. او پوره وینځه ده. چه د هغې قیمت درې سوه درهمه دي. اوس زید ددې وینځې وصیت خالد لپاره اوکړو. نو وصیت او د ترکې تقسیمولو نه وړاندې دغه وینځې یو بچې راوړو. چه د هغه قیمت هم درې سوه درهمه دي. او یوه وینځه به خالد ته ملاویږي. ځکه چې وینځه د پوره ترکې دریمه (حصه) ده. خود زید د مرګ نه روستو ترکه ۱۲۰۰ سوه درهمه شوه. چه ددې ثلث څلور سوه جوړیږي. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به پوره وینځه خالد ته ورکولې شي. خو اوس هم دهغه ثلث پوره نشو. نو د بچې د قیمت څخه به ۱۱۳ نوره هم خالد ته ورکولې شي. اوس تول لټه څلور سوه مالیت خالد ته ملاو شوې دي. چه دا د دولسو سوو ثلث دي.

وَعِنْدَهُمَا لَهُ ثُلُثَا كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او د صاحبینو رحمهما الله په نیز دوی دواړو کې دهر یو دوې (دوه) ثلثه دي.

تشریح:- او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د مور او بچې دواړ ۲۱۳ خالد ته ورکولې شي. او دمور دوې (دوه) ثلثه ۲۱۳ دوې (دوه) سوه دراهم دي. او د بچې دوې (دوه) ثلثه هم دوې (دوه) سوه درهم دي. نو د دولسو سوو ثلث پوره شو. نو خالد ته به ددوی دواړو دوې (دوه) ثلثه ملاویږي. اوس به په دې باندې د فریقینو دلیلونه پیش کولې شي.

**د صاحبینو رحمهما الله دلیل**

لَهُمَا مَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْوَلَدَ دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ تَبَعًا حَالَةَ الِاتِّصَالِ د صاحبینو رحمهما الله دلیل هغه دي. کوم چې مونږ ذکر کړې دي. چه بچې د تبعیت په بناء د اتصال په وخت وصیت کې داخل شوې دي فَلَا يَخْرُجُ عَنْهَا بِالِانْفِصَالِ نو دغه بچې به د اتصال په وجه نه خارجیږي.

تشریح:- دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دي. ددې حاصل دا دي. چه بچې هم په وصیت کې داخل شوې دي. اګرچه بچې په وصیت کې اصالتاً داخل دي. او بچې تبعاً داخل دي. بهرحال که هرڅنګه داخل شي. خو داخل دي. او هرکله چې بچې د اتصال د وخت نه وصیت کې داخل دي. نو اوس هرکله چې هغه د مور نه جلا شوې دي. نو اوس به د وصیت نه نه خارجیږي. نو اوس به داسې ګڼړلې شي. چه مور او بچې په وصیت کې دواړه برابر داخل دي. نو اوس ددې هیڅ وجه پاتې نشوه. چه مور په بچې باندې مقدم کړې شي. او ددې مثال داسې دي.

كَمَا فِي الْبَيْعِ وَالْعِتْقِ لکه څنګه چې بیع او آزادئ کې (نه خارجیږي) فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ فِيهِمَا عَلَى السَّوَاءِ مِنْ غَيْرِ تَقْدِيمِ الْأُمِّ نو په دې دواړو کې برابرئ سره وصیت نافذ کیږي. د مور د مقدم کاوه نه وړاندې.

تشریح:- لکه چې یوکس یوه حامله وینځه خرڅه کړله. او تر اوسه پورې مشتري په وینځه باندې قبضه نه وه کړې. چه هغې بچې راوړو. نو بچې به هم بیع کې داخل وي. او دې به هم بچې شمارلې کیږي. او لکه چې یوکس حامله وینځه آزاده کړي. نو تبعاً به بچې هم آزادیږي. نو هرکله چې دا بچې پیدا شو. یعنی منفصل (او د مور نه جدا) شو. نو بچې به د خپلې آزادئ په صفت باندې پاته پاتې کیږي.

**د امام اعظم رحمه الله دلیل**

وَلَهُ أَنَّ الْأُمَّ أَصْلٌ وَالْوَلَدُ تَبَعٌ وَالتَّبَعُ لَا يُزَاحِمُ الْأَصْلَ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دي. چه مور اصل دي. او بچې په دې کې تابع دي. او تابع د اصل مقابل نشي جوړیدې وَفَلَوْ نَفَّذْنَا الْوَصِيَّةَ فِيهِمَا جَمِيعًا تَنْتَقِضُ الْوَصِيَّةُ فِي بَعْضِ الْأَصْلِ وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ نو که مونږ په دوی دواړو کې وصیت نافذ کړو. نو په بعضې اصل کې به وصیت ماتیږي. او دا جائز نه دي.

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دي. ددې حاصل دا دي. چه په وصیت کې مور اصل ده. او بچې د هغې تابع دي. او دا اصول پخپل ځانې مسلم دي. چه تابع د اصل مقابل نه جوړیږي. نو دلته بچې د مور مقابل څنګه جوړیدې شي. ځکه که په مور او بچې دواړو کې وصیت نافذ اومنلې شي. نو بچې (چې تابع دي) د مور (چې اصل ده) مقابل وي. مور لپاره به په بعضې برخه کې وصیت باطلوي. او دا ناجائز ده. چه بچې په اصل کې وصیت باطل کړي. ځکه چې د صاحبینو رحمهما الله د قول مطابق د مور ۲۱۳ وصیت کې داخل دي. او ۱۱۲ د وصیت نه خارج شو. او



دا واړه د تابع په وجه شوي دي.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع لِأَنَّ تَنْفِيذَ الْبَيْعِ فِي التَّبَعِ لَا يُؤَدِّي إِلَى نَقْضِهِ فِي الْأَصْلِ ځکه چې تابع کې بیع نافذ کول به، په اصل کې د بیع ماتولو اړخ ته نه مودی کیږي بَلْ يَبْقَى تَامًّا صَحِيحًا فِيهِ بلکه اصل کې به بیع تام صحیح پاته پاتې کیږي. إِلَّا أَنَّهُ لَا يُقَابِلُهُ بَعْضُ الثَّمَنِ ضَرُورَةَ مُقَابَلَتِهِ بِالْوَلَدِ إِذَا اتَّصَلَ بِهِ الْقَبْضُ خو د اصل په مقابله کې به د ثمن بعضې برخه نه راځي. د بعضې ثمن د مقابل کیدو د اړتیا په وجه، بچې سره، کله چې بچې سره قبضه متصل شي وَلَكِنَّ الثَّمَنَ تَابِعٌ فِي الْبَيْعِ حَتَّى يَنْعَقِدَ الْبَيْعُ بِدُونِ ذِكْرِهِ وَإِنْ كَانَ فَاسِدًا خو په بیع کې ثمن تابع دي. تردې پورې چې د ثمن ذکر کاوه نه بغیر به بیع منعقد کیږي. اګرچه بیع به فاسد وي.

تشریح:- دا په بیع باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دي. ځکه که د تبعیت په بناء په تابع کې بیع نافذ کړې شي. نو په دې سره د اصل په بیع باندې هیڅ اثر نه پریوځي. بلکه بیع به پخپل حال پوره او صحیح وي. نو بیع ته په بیع کیدو کې خلل نه راځي. البته دومره توپیر پریوځي. چه هرکله په بچې باندې قبضه اوکړې شوه. نو چونکه د ثمن بعضې برخه به د بچې مقابل وي. نو د اصل مقابل چې کوم ثمن وو. هغې کې به څه کمې راځي.

**که وینځه د میراث تقسیمولو نه روسته ب چې راوړي نوڅه حکم دي!**

هَذَا إِذَا وَلَدَتْ قَبْلَ الْقِسْمَةِ دا هغه وخت دی. کله چې وینځې د ویش نه وړاندې بچې راوړلې وي فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ الْقِسْمَةِ نو که د ویش نه روستو ئې بچې راوړلې وي فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ الْقِسْمَةِ فَهُوَ نو بچې دموصی له لِلْمُوصَى لَهُ لِأَنَّهُ نَمَاءٌ خَالِصٌ مِلْكِهِ لِتَقَرُّرِ مِلْكِهِ فِيهِ بَعْدَ الْقِسْمَةِ ځکه چې دا خالص د هغه په ملك کې زیاتوالې دي. د هغه د ملك متقرر کیدو په وجه، د ویش نه روستو.

تشریح:- دا ذکر شوی واړه تفصیلات هغه وخت دی. کله چې وینځې د ویش نه وړاندې بچې راوړلې وي. او که وینځې د ویش نه روستو بچې راوړلې وي. نو اوس بچې د موصی له لپاره کیدو کې هیڅ شك او شبه نشته. ځکه چې دا خالص د هغه په ملکیت کې زیاتوالې دي. ځکه چې د ویش نه روستو په بچې کې د موصی له ملکیت مضبوط او قوي شوې دي.

## (فَصْلٌ فِي اعْتِبَارِ حَالَةِ الْوَصِيَّةِ)

ژباړه:- (دا) فصل د وصیت د حالت اعتبار کاوه (په بیان) کې دي.

تشریح:- وړاندې دا خبره بیان کړې شوې ده. چه کله وارث اجازت ورنکړي. نو وصیت صرف په ثلث مال کې نافذ کیږي. ددې نه په زیات کې نه نافذ کیږي. په دې فصل کې دا احکام بیانولې شي. چه د یو څیزپه وصیت کې د وصیت د ایجاب وخت معتبر وي. او که د مرګ د وخت حالت معتبر وي. او چونکه صفت د موصوف نه موخر وي په دې وجه وصیت مقدم او ددې حالت مؤخر بیان کړې شوې دي.

**په مرض الموت کښې د یوې ښځې لپاره د پور د اقرار یا د هبه کولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلي دی وَإِذَا أَقَرَّ الْمَرِيضُ لِامْرَأَةٍ بِدَيْنٍ او کله چې مریض د یوې ښځې لپاره د پور اقرار اوکړو أَوْ أَوْصَى لَهَا بِشَيْءٍ یا ئې هغې لپاره د څه شئ وصیت اوکړو أَوْ وَهَبَ لَهَا ثُمَّ تَزَوَّجَهَا ثُمَّ مَاتَ جَازَ الْإِقْرَارُ وَبَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ وَالْهِبَةُ یا ئې هغې لپاره څه هبه کړل. بیا هغې سره ده نکاح اوکړله. بیا دې مړ شو. نو اقرار جائز دي. او وصیت او هبه باطل ده

تشریح:- زید د یوې اجنبیه ښځې لپاره د پور اقرار اوکړو. یا ئې هغې لپاره دیو شئ وصیت اوکړو. یا ئې هغې لپاره څه شئ هبه کړو. او زید په مرض الموت کې اخته دي. نو دا درې واړه شیان جائز وو. ځکه چې هیڅ مانع نشته. خو که زید بیا ددې اجنبیه ښځې سره نکاح اوکړله. نو اوس وصیت او هبه باطله شوه. او اقرار صحیح دي.

لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُلْزِمٌ بِنَفْسِهٖ وَهِيَ أَجْنَبِيَّةٌ عِنْدَ صُدُوْرِهٖ ځکه چې اقرار پخپله ملزم دې.او ښځه اجنبيه ده.د اقرار صادر کيدو په وخت کې وَهٰذَا لَا يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ په دې وجه به اقرار د پوره مال نه معتبر وی وَلَا يَبْطُلُ بِالدَّيْنِ إِذَا كَانَ فِي الصِّحَّةِ او د پور په وجه به اقرار باطل نه وی.کله چې اقرار د صحت په حالت کې وی أَوْ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ يا د مرض په حالت کې وی إِلَّا أَنَّ الثَّانِيْ يُؤَخَّرُ عَنْهُ بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ خو تحقيق چې دوهم د ړومبی نه موخر ساتلې شوې دې.په خلاف د وصيت لِأَنَّهَا إِيْجَابٌ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه چې وصيت د مرګ په وخت ايجاب دې وَهِيَ وَارِثَةٌ عِنْدَ ذٰلِكَ وَلَا وَصِيَّةَ لِلْوَارِثِ او ښځه د مرګ په وخت وارثه ده.او وارث لپاره وصيت نشی کولې.

**تشريح:-** ځکه چې د اقرار مرګ اړخ ته اضافت نه دې شوې.هم دې ته مرغينانی رحمه الله «يلزم بنفسه» وئيلی دی.نو هرکله چې مرګ اړخ ته ددې اضافت نه دې شوې.نو په دې کې به د مرګ حالت ته نشی کتلې.بلکه په دې کې به د اقرار د وخت حالت ته کتلې شی.او د اقرار په وخت دا اجنبيه ښځه ده.نو دا اقرار به صحيح هم وی.او د ښځه به معتبر وی.بيا که په زيد باندې نور پور وی.بيا به هم دا اقرار باطل نه وی.که اقرار د صحت په حالت کې وی.او که د مرض په حالت کې وی.په دواړو صورتونو کې اقرار صحيح دې.البته دومره توپير ضرور دې.چه کوم پور د صحت د حالت وی.هغه به د مرض د حالت په پور باندې مقدم ساتلې شی.بهرحال اقرار خو ددې ښځې لپاره جائز دې.اوس پاتې شو وصيت اوهبه، نو دا جائز نه دی.ځکه چې وصيت کې داسې تمليک وی.چه په دې کې د مرګ نه روستو اړخ ته اضافت کيږی.حالانکه د زيد د مرګ په وخت دا ښځه دزيد وارثه ده.او وارث لپاره وصيت جائز نه وی.

## د مريض د هبې باطليدو وجه

وَالْهِبَةُ وَإِنْ كَانَتْ مُنَجَّزَةً صُوْرَةً فَهِيَ كَالْمُضَافِ إِلٰى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا او هبه اګرچه منجز وی.د صورت په اعتبار سره، نو هبه داسې ده.لکه چې حکماً د مرګ نه روستو طرفته مضاف وی لِأَنَّ حُكْمَهَا يَتَقَرَّرُ عِنْدَ الْمَوْتِ ځکه چې د هبې حکم د مرګ په وخت مضبوطيږی أَلَا تَرٰى أَنَّهَا تَبْطُلُ بِالدَّيْنِ الْمُسْتَغْرِقِ ايا ته نه ګورې.چه هبه د راګيرونکی پور په وجه باطليږی وَعِنْدَ عَدَمِ الدَّيْنِ تُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ او د پور نه کيدو په وخت هبه د دريمې نه معتبر کيږی.

**حل اللغة:** ① المستغرق: راګيرونکې

**تشريح:-** او د ذکرشوې ښځې لپاره د مريض هبه هم باطله ده.اګرچه په هبه کې د صورت په اعتبار سره تنجيز دې.مرګ اړخ ته د هبې اضافت نه دې شوې.خو د مريض د مرض الموت هبې ته د وصيت درجه ورکړې شوې ده.نو داسې به ګڼړو.چه د هبې مضبوطی او تقويت به د مرګ په وخت کيږی.ځکه چې د مرګ نه وړاندې هبه کې مضبوطی نشته.ځکه که دمرګ نه وړاندې مړی باندې دومره پور راووتلو.چه هغه دده ترکه راګيرونکې ده.نو هبه به باطليږی.نو معلومه شوه.چه هبه حکماً د وصيت په درجه کې ده.اوکه په هبه کونکی باندې پور نه وی.نو دده هبه به د دريمې برخې مال نه معتبر وی.ددې نه هم معلومه شوه.چه د مرګ د مريض هبه د وصيت په درجه کې ده.

## په مرض الموت کښې د نصرانی د ځوی لپاره د پور د اقرار،يا دهبې کولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی (وَإِذَا أَقَرَّ الْمَرِيْضُ لِابْنِهٖ بِدَيْنٍ) و کله چې مريض د خپل ځوی لپاره د پور اقرار اوکړو وَابْنُهٗ نَصْرَانِيٌّ حالانکه دهغه ځوئې نصرانی دې أَوْ وَهَبَ لَهٗ أَوْ أَوْصٰى لَهٗ يا ئې هغه ته هبه کړو.يا ئې هغه لپاره وصيت اوکړو فَأَسْلَمَ الْاِبْنُ قَبْلَ مَوْتِهٖ بَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهٗ نو ځوئې د پلار د مرګ نه وړاندې مسلمان شو.نو دا واړه باطل شو

**تشريح:-** د مرض الموت د مريض يو نصرانی ځوئې دې.اوس دا مسلمان مريض ( پلار) ددې ځوئی لپاره د پور اقرار کوی.يا هغه لپاره د څه شئ وصيت کوی.يا هغه ته څه شئ هبه کوی.او اوس لا د پلار انتقال نه وو شوې.چه ځوئې مسلمان شو.نو اوس به هغه وارث وی.او په ړومبی صورت کې نه وارث کيږی.نو دهغه په حق کې ئې چې کوم



اقرار کړې دې.هغه به هم باطل وی.او وصيت او هبه هم باطل ده.او د ښځې په مسئله کې اقرار صحيح وو.خو دلته اقرار هم باطل دې.

أَمَّا الْهِبَةُ وَالْوَصِيَّةُ فَلِمَا قُلْنَا إِنَّهٗ وَارِثٌ عِنْدَ الْمَوْتِ بهرحال هبه او وصيت، نو د هغه دليل په وجه کوم چې بيان کړې شوې دې.چه ځوئې به وارث جوړيږی.( د خپل اسلام په وجه) د مرګ په وخت وَهُمَا إِيْجَابَانِ عِنْدَهٗ أَوْ بَعْدَهٗ او دا دواړه (وصيت او هبه) ايجاب دی.د مرګ په وخت يا د مرګ نه روستو.

**تشريح:-** دوصيت او هبې باطليدو وجه خو ښکاره ده.چه په دې کې د عقد د حالت کيدو اعتبار نشی کيدای.بلکه د مرګ د وخت اعتبار کولې شی.او دمرګ په وخت هغه دده وارث دې.ځکه چې د ميراث نه منع کونکې شئ کفر وو.او اوس هغه مسلمان شوې دې.او وصيت او هبه دواړه په يوه درجه کې دی.چه په دې کې داسې ايجاب کيږی.چه په دې کې تمليک د مرګ په وخت کيږی.يا د مرګ نه روستو کيږی.د «تمليک مضاف إلى زوال الأهلية» په لحاظ سره «عنده» وئيلی شوی دی.او د «الترکة مبقاة على ملك الميت بعد الموت» په لحاظ سره «او بعده» وئيلی شوی دی.

## د اقرار د باطليدو وجه

وَالْإِقْرَارُ وَإِنْ كَانَ مُلْزِمًا بِنَفْسِهٖ او اقرار اګرچه ملزم بنفسه دې وَلٰكِنَّ سَبَبَ الْإِرْثِ وَهُوَ الْبُنُوَّةُ قَائِمٌ وَقْتَ الْإِقْرَارِ خو د ارث سبب او هغه ځوئې توب دې.د اقرار په وخت قائم دې فَيُعْتَبَرُ فِيْ إِيْرَاثِ تُهْمَةِ الْإِيْثَارِ بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ نو دارث د سبب اعتبار به کولې شی.د ايثار تهمت پيدا کاوه کې .په خلاف د هغه مسئلې کوم چې وړاندې (بيان شوې) ده لِأَنَّ سَبَبَ الْإِرْثِ الزَّوْجِيَّةُ ځکه چې د ارث سبب زوجيت دې وَهِيَ طَارِئَةٌ حَتّٰى لَوْ كَانَتِ الزَّوْجِيَّةُ قَائِمَةً وَقْتَ الْإِقْرَارِ او زوجيت طاری ( روستو پيدا شوې) دې.( چې د اقرار په وخت نه وو).تردې که اقرار په وخت زوجيت قائم وې وَهِيَ نَصْرَانِيَّةٌ حالانکه ښځه نصرانيه ده ثُمَّ أَسْلَمَتْ قَبْلَ مَوْتِهٖ لَا يَصِحُّ الْإِقْرَارُ لِقِيَامِ السَّبَبِ حَالَ صُدُوْرِهٖ بيا د مقر د اقرار نه وړاندې هغه مسلمانه شی.نو اقرار به صحيح نه وی.د اقرار صادر کيدو په وخت د سبب قائميدو په وجه.

**حل اللغة:** ① طارئة: عارضی،غير مستقل»

**تشريح:-** دلته اقرار هم صحيح نه دې.او د ښځې په مسئله کې اقرار صحيح نه وو.نو د هغې ځواب ور کولای شی.چه اقرار اګرچه ملزم بنفسه دې.خو دې ځوئی ته چې کوم ميراث ملاويږی.دا د مسلمانيدو په وجه نه ملاويږی.بلکه ددې سبب ځوئې توب دې.او ځوئی توب د اقرار په وخت هم موجود وو.نو په دې سره شبه پيدا شوه.چه مشر ( پلار) بعضې اولاد ته په بعضې اولاد باندې د ترجيح (او فضيلت) ور کاوه په چکر کې دې.او پاتې شوه د ښځې مسئله نو هلته اقرار ځکه صحيح شوې وو.چه په هغې کې د ارث سبب زوجيت دې.او دا د زوجيت رشته د اقرار په وخت موجود نه وه.بلکه روستو پيدا شوې ده.که هلته هم د اقرار په وخت زوجيت وی.او اقرار اوکړی.نو اقرار به باطل وی.مثلاً يوه نصرانی ښځه د يو مسلمان منکوحه ده.نو د نه مسلمانيدو په وجه به دا ښځه د مسلمان ( خاوند) وارثه نه جوړيږی. خو که هغه مسلمانه شوه.نو وارثه به وی.او د ميراث سبب به هم دا د زوجيت رشته وی.نوکه ميړه ددې نصرانيه ښځې لپاره د پور اقرار اوکړو.او بيا هغه مسلمانه شوه.نو دا اقرار به باطل وی.ځکه چې د اقرار په وخت د ارث سبب زوجيت قائم دې.

## د غلام يا مکاتب ځوی لپاره د اقرار، هبې او وصيت حکم

كَذَا لَوْ كَانَ الْاِبْنُ عَبْدًا أَوْ مُكَاتَبًا او هم دغه ډول که ځوئې غلام يا مکاتب وی فَأُعْتِقَ لِمَا ذَكَرْنَا آزاد نو ازاد کړې شو.دهغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې.

**تشريح:-** دغه ډول که د يوکس ځوئې د چا غلام دې.يا مکاتب دې.او پلار هغه لپاره اقرار اوکړو.يا ئې وصيت اوکړو.يا ئې هبه اوکړله.او بيا د پلار د مرګ نه وړاندې هغه آزاد کړې شوې دې.نو دلته هم اقرار او وصيت او هبه باطل دی.چه ددې دليل اوس ذکرکړې شوې دې.

**د اقرار صحیح کیدو شرط**

وَذَكَرَفِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ أَنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ يَصِحُّ او د مبسوط په کتاب الاقرار کي ذکر دی. که په ده باندې پور نه وی. نو اقرار صحیح دې لِأَنَّهُ أَقَرَّ لِمَوْلَاهُ وَهُوَ أَجْنَبِيٌّ خکه چې مقر دده د مولا لپاره اقرار کړې دې. او مولی اجنبی دې

**تشریح:-** مرغینانی رحمه الله دا بیانول غواړی. چه د جامع صغیر د عبارت نه خو دا معلومیږی. چه په ذکر شوی صورت کي داقرار او وصیت او هبې تولو حکم برابر دې. خو د مبسوط په کتاب الاقرار کي دی. که په غلام باندې پور نه وی. نو بیا اقرار صحیح دې. خکه چې دا اقرار به غلام لپاره نه وی. بلکه دده آقا لپاره به وی. او آقا اجنبی دې

وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ لَا يَصِحُّ او که په ده باندې پور وی. نو اقرار به صحیح نه وی لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ لَهُ وَهُوَ ابْنُهُ خکه چې دا دهغه لپاره اقرار دې. حالانکه هغه دده خوئې دې.

**تشریح:-** او که په ده باندې پور وی. نو اوس به اقرار صحیح نه وی. خکه چې دا اقرار به آقا لپاره نه وی. بلکه غلام لپاره به وی. او غلام د مقر خوئې دې. او خوئې لپاره اقرار صحیح نه دې.

**غلام او مکاتب لپاره د وصیت او هبې باطلیدو وجه**

وَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْمُعْتَبَرَ فِيهَا وَقْتُ الْمَوْتِ او وصیت باطل دې. د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې. چه معتبر په وصیت کي د مرګ وخت دې

**تشریح:-** د غلام او مکاتب لپاره وصیت او هبه هم باطل ده. خکه چې په وصیت کي خو د مرګ د وخت اعتبار کیږی. او د مرګ په وخت هغه دده وارث دې. او وارث لپاره وصیت جائز نه دې.

وَأَمَّا الْهِبَةُ فَيُرْوَى أَنَّهَا تَصِحُّ او بهرحال هبه نو نقل دی. چه هبه صحیح ده لِأَنَّهَا تَمْلِيكٌ فِي الْحَالِ وَهُوَ رَقِيقٌ خکه چې هبه فی الحال تملیک دې. او فی الحال هغه غلام دې وَفِي عَامَّةِ الرِّوَايَاتِ هِيَ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ او په عامو روایاتو کي دی. چه هبه په مرض الموت کي د وصیت په درجه کي ده فَلَا تَصِحُّ نو هبه به صحیح نه وی.

**تشریح:-** اوس پاتې شوه هبه نو په دې اړه کي دوې (دوه) روایات دی. (۱) جائز ده. خکه چې هبه فی الحال تملیک وی. او فی الحال هغه غلام دې. چه دا به وارث نه وی. (۲) دا هبه هم صحیح نه ده. خکه چې په مرض الموت کي هبه د وصیت په درجه کي وی. نو لکه څنګه چې وصیت صحیح نه دې. دغه ډول به هبه هم صحیح نه وی.

**د مرض وفات وضاحت. او د معذوره، فالج زده او ګډشل د هبې حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله او فرمائیل (وَالْمُقْعَدُ وَالْمَفْلُوجُ وَالْأَشَلُّ وَالْمَسْلُولُ) و د معذوره او فالج زده او د ګډشل او د مسلول (چې د سل (تپ دق) مرض ئې وی چې په دې کي پهپیهړي خرابیږی) إِذَا تَطَاوَلَ ذَلِكَ وَلَمْ يُخَفْ مِنْهُ الْمَوْتُ کله چې دا مرض اوګد شی. او ددې نه د مرګ خطره پاتې نشی فَهِبَتُهُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ نو دده هبه به په پوره مال کي وی لِأَنَّهُ إِذَا تَقَادَمَ الْعَهْدُ خکه چې هرکله عهد (مرض) زوړ شو صَارَ طَبْعًا مِنْ طِبَاعِهِ نو دده په طبعیتونو کي یو طبعیت جوړ شو وَلِهَذَا لَا يَشْتَغِلُ بِالتَّدَاوِي په دې وجه هغه په دوایئ (او علاج) کاوه کي نه مشغولیږی وَلَوْ صَارَ صَاحِبَ فِرَاشٍ بَعْدَ ذَلِكَ او که هغه ددې نه روستو صاحب فراش شی. (او په مرض کي اخته شی). فَهُوَ كَمَرَضٍ حَادِثٍ آنَ نو دا مرض به د نوی مرض پشان وی.

**حل اللغة:** ① **المقعد:** ګوډ ② **المفلوج:** فالج وهلې ③ **الاشل:** شل ④ **المسلول:** د سل (تب دق) بیماریٔ مریض ⑤ **تطاول:** اوږده شی ⑥ **التداوی:** دوائی کول

**تشریح:-** بار بار د مرض الموت ذکر راځی. نو دلته مرغینانی رحمه الله ددې وضاحت کول غواړی. ددې حاصل دا دې. چه د کوم مرض نه د هلاکت خطره زیاته وی. هغه مرض الموت دې. ګنی نه دې. لکه فرمائی. که یو سړې د لاسو پښو معذور وی. یعنی د اودریدو قدرت نه لری. او چا ته چې فالج وی. یا یو اندام شل شوې وی. یا د سل ناروغی



(بیماری) وی. او دا مرض ده ته ډیرې زمانې پورې وی. چه ددې نه د مرګ یره نه وی. نو دا به مرض الموت نه وی. او که هغه په دې حالت کي هبه کوی. نو دهغه هبه به د پوره مال نه پوره کولې شی. خکه چې هغه روغ دې. خکه چې هرکله دا ناروغی (بیماری) اوګده شی. نو دا دده طبعی شیان جوړیږی. په دې وجه سړې ددې علاج معالجه هم نه کوی. او که هغه ددې نه روسته صاحب فراش (او سخت بیمار) شی. نو دا دده نوې مرض شمارلې کیږی.

**په مرض الموت کښې د هبې حکم**

وَإِنْ وَهَبَ عِنْدَ مَا أَصَابَهُ ذَلِكَ او که هبه کړو. ددې مرضونو لګیدو په وخت وَمَاتَ مِنْ أَيَّامِهِ وهم په دې ورخو کي مړ شو فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ إِذَا صَارَ صَاحِبَ فِرَاشٍ نو هبه به د دریمې برخې نه معتبر وی. کله چې دې صاحب فراش جوړ شوې وی لِأَنَّهُ يُخَافُ مِنْهُ الْمَوْتُ وَلِهَذَا يَتَدَاوَى خکه چې ددې نه د مرګ یره وی. او په دې وجه هغه علاج معالجه کوی فَيَكُونُ مَرَضَ الْمَوْتِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو دا به مرض الموت وی. والله اعلم.

**تشریح:-** او کله چې دا ذکر شوی مرضونه ده ته پیل شی. او دې صاحب فراش جوړ شوې وی. او ده هبه کړې وی. او هم په دې ورخو کي دې مړ شو. نو دا به مرض الموت وی. او دا هبه به د دریمې برخې نه معتبر وی. خکه چې ددې نه د مرګ خطره وی. په دې وجه انسان په داسې صورت کي علاج معالجه کي مشغولیږی. په دې وجه به دا مرض الموت شمارلې کیږی.

## (بَابُ الْعِتْقِ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ)

**ژباړه:-** (دا) باب په مرض الموت کي د ازادولو (په بیان) کي دې.

**تشریح:-** په مرض الموت کي آزادول د وصیت په درجه کي دی. خکه چې معتق په داسې زمانه کي تبرع کوی. کله چې دده مال سره د وارثانو حق متعلق شوې دې. په دې وجه دا په کتاب الوصایا کي ذکر کړې شوې دې. خو د صریح وصیت نه دا مؤخر بیان کړې شوې دې. خکه چې صریح اصل دې.

**په مرض الموت کښې د غلام آزادولو، یا د محابات او د هبې کولو حکم**

قَالَ: امام قدوری رحمه الله او فرمائیل وَمَنْ أَعْتَقَ فِي مَرَضِهِ عَبْدًا أَوْ بَاعَ و چا چې پخپل مرض الموت کي یو غلام آزاد کړو. یا ئې خرڅ کړو. وَحَابَى أَوْ وَهَبَ وبه دې کي ئې محابات اوکړو. یا ده هبه اوکړله فَذَلِكَ كُلُّهُ جَائِزٌ نو دا واړه جائز دی وَهُوَ مُعْتَبَرٌ مِنَ الثُّلُثِ و دا به د دریمې نه معتبر وی وَيُضْرَبُ بِهِ مَعَ أَصْحَابِ الْوَصَايَا ودې به په ثلث کي د وصیتونو والا سره شریك وی وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ فَهُوَ وَصِيَّةٌ مَكَانَ قَوْلِهِ جَائِزٌ او د قدوری په بعضو نسخو کي دی. «فهو وصية» دده دقول جائز په ځائې باندې وَالْمُرَادُ الِاعْتِبَارُ مِنَ الثُّلُثِ وَالضَّرْبُ مَعَ أَصْحَابِ الْوَصَايَا لَا حَقِيقَةُ الْوَصِيَّةِ س او مراد د ثلث نه معتبر کیدل دی. او د وصیتونو والا سره شریکیدل دی. حقیقی وصیت سره نه دی

**تشریح:-** مخکي دا خبره واضح کول ضروری دی. چه دلته د قدوری نسخې مختلف دی. په بعضو نسخو کي دی. «فذالك كله جائز» او په بعضو نسخو کي ددې په ځائې داسې دی چې «فهو وصية» او د دواړو خبرو قائل یو دې.

① په مرض الموت کي یو کس خپل غلام آزاد کړو. یا ده بیع اوکړله. او په بیع کي ئې محابات اوکړو. مثلاً د دوې (دوه) زره (روپو) شیٔ ئې په شل روپیٔ باندې خرڅ کړو. یا ده هبه اوکړله. نو دا واړه صورتونه جائز دی. (دا هم صحیح ده. او که داسې اووئیلی شی. چه دا واړه صورتونه وصیت دی. دا هم جائز ده). نو د یو ثلث څخه به دا تصرف معتبر وی. او که مریض ددې نه علاوه دنورو لپاره هم وصیت کړې وی. نو هم په دې ثلث کي به هغوی هم شریك وی. او دې ته چې وصیت وئیلې شوې دې. ددې دا مطلب نه دی. چه دا په حقیقت کي وصیت دې.

لِأَنَّهَا إِيجَابٌ بَعْدَ الْمَوْتِ وَهَذَا مُنَجَّزٌ غَيْرُ مُضَافٍ خکه چې وصیت داسې ایجاب دې. چه دا د مرګ نه روستو دې. او دا (اعتاق وغیره) منجز دی. چه دا مرګ اړخ ته مضاف نه دی وَاعْتِبَارُهُ مِنَ الثُّلُثِ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْوَرَثَةِ او ددې اعتبار د ثلث نه

کیږي.د وارثانو د حق متعلق کیدو په وجه.

**تشریح:-** څکه چې وصیت کي تملیك د مرګ نه روستو اړخ ته مضاف کیږي.او په دې کي په یو کي هم د مرګ نه روستو اړخ ته اضافت نشته.بلکه واړه تصرفات د تنجیز په طریقه دی.بلکه مطلب دا دې.چه دا واړه تصرفات د وصیت پشان د ثلث مال نه معتبر وی.او دې به د نورو وصیتونو والا سره شریکولې شی.اوس پاتې شوه دا خبره چې ددې ټولو تصرفاتو به د ثلث مال نه ولې اعتبار کولې شی؟ نو ددې وجه دا ده.چه دلته هم مال سره د وارثانو حق متعلق شوې دې.

## په مرض الموت کښې د مریض د تصرف حکم

**وَكَذٰلِكَ مَا ابْتَدَأَ الْمَرِيضُ إِيجَابَهُ عَلَىٰ نَفْسِهِ** او هم دغه ډول هر هغه تصرف د کوم چې مریض پخپل نفس باندې واجبولو ابتداء کړې وی **كَالضَّمَانِ وَالْكَفَالَةِ فِي حُكْمِ الْوَصِيَّةِ** لکه ضمان او کفالت، د وصیت په حکم کي دې **لِأَنَّهُ يُتَّهَمُ فِيهِ كَمَا فِي الْهِبَةِ** څکه چې هغه په دې کي د هبې پشان متهم دې.

**تشریح:-** د آزادۍ وغیره پشان د مریض هر هغه تصرف دې.کوم چې هغه پخپل نفس باندې ابتداء کي واجب کړی.لکه (مثلاً) د یوکس ضامن جوړ شی.یا کفیل جوړ شی.دا هم د وصیت په حکم کي دې. څکه چې لکه څنګه سرې په وصیت کي متهم دې.هغه تهمت دلته هم موجود دې.

## ددسې تصرف حکم کوم چې د مرګ نه روستو سره تعلق ساتی

**وَكُلُّ مَا أَوْجَبَهُ بَعْدَ الْمَوْتِ** او هر داسې عقد د کوم ایجاب چې مریض د مرګ نه روسته کړې وی **فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ** نو هغه به د ثلث نه معتبر وی **وَإِنْ أَوْجَبَهُ فِي حَالِ صِحَّتِهِ اعْتِبَارًا بِحَالَةِ الْإِضَافَةِ دُونَ حَالَةِ الْعَقْدِ** اګرچه هغه د خپل صحت په حالت کي ددې ایجاب کړې وی.د اضافت د حالت اعتبار کاوه سره.د عقد حالت اعتبار نه وی **وَمَا نَفَّذَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ** اوکوم تصرف ئې چې نافذ کړې وی **فَالْمُعْتَبَرُ فِيهِ حَالَةُ الْعَقْدِ** نو په هغې کي دعقد حالت معتبر دې. **فَإِنْ كَانَ صَحِيحًا** نو که دادعقد په وخت صحیح وی **فَهُوَ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ** نو دا به د پوره مال نه معتبر وی **وَإِنْ كَانَ مَرِيضًا فَمِنَ الثُّلُثِ** که دعقد په وخت مریض وی.نو د دریمې برخې څخه به معتبر وی

**تشریح:-** ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله یوه قاعده کلیه بیانوی.چه متصرف کوم تصرف داسې اوکړی.چه د هغې اضافت د مرګ نه روستو حالت اړخ ته وی.لکه څنګه چې وصیت او مدبر کول وغیره دی.نو دا تصرف به د دریمې برخې مال نه معتبر وی.که هغه د تصرف په وخت روغ وی.اوکه مریض وی. څکه چې په دې صورت کي د عقد دحالت اعتبار نشی کولې.بلکه په دې کي د اضافت د حالت اعتبار دې.او کوم تصرف چې هغه د مرګ اړخ ته نه دې مضاف کړې.بلکه هغه ئې د تنجیز په طور کړې دې.لکه څنګه آزادول دی.او هبه وغیره ده.نو په دې کي دعقد دحالت اعتبار دې.نو که هغه په داسې تصرف کي د عقد په وخت روغ وی.نو دا به د پوره مال نه معتبر وی.اوکه د عقد په وخت مریض وی.نو د دریمې برخې مال څخه به معتبر وی.

**وَكُلُّ مَرَضٍ صَحَّ مِنْهُ** او هرهغه مرض چې د هغې نه مریض صحیح شوې وی. **فَهُوَ كَحَالِ الصِّحَّةِ** نو هغه د صحت د حالت پشان دې **لِأَنَّ بِالْبُرْءِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا حَقَّ فِي مَالِهِ** څکه چې د صحیح کیدو په وجه دا خبره واضحه شوه.چه دده په مال کي د هیڅ چا حق نشته.

**تشریح:-** روستو مرغینانی رحمه الله یوه قاعده بیانوی.فرمائی.چه د کوم مرض نه مریض روغ شو.نو هغه مرض پاتې نشو.بلکه هغه د صحت پشان دې.څکه چې هرکله مریض روغ شو.نو ددې نه دا خبره معلومه شوه.چه دده مال سره د هیڅ چا حق متعلق نه دې.

## که ثلث نه کافی کیږی.نو محابات او عتق کښې به کوم یو مقدم وی؟

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَإِنْ حَابَىٰ ثُمَّ أَعْتَقَ وَضَاقَ الثُّلُثُ عَنْهُمَا** و که مریض محابات اوکړو.بیا ئې آزاد



کړو.او ثلث ددوی دواړو نه تنګ(کم) شو. **فَالْمُحَابَاةُ أَوْلَىٰ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز محابات غوره دې **وَإِنْ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابَىٰ فَهُمَا سَوَاءٌ**(١)او که هغه آزاد کړو.بیا ئې محابات اوکړو .نو دوی دواړه برابر دی

**تشریح:-** د مرض الموت واړه وصیتونه برابر وی.یو ته په بل باندې فضیلت نه وی.نو واړه وصیتونو والا به په ثلث کي برابر شریك وی.یعنی د خپلې خپلې برخې په اندازه به ثلث کي واړه شریك وی.البته درې شیان داسې دی.چه دا د ټولو وصیتونو نه مقدم دی.(١) د مرض الموت آزادول. (٢) د مرض الموت مدبر کول. (٣) د مرض الموت محابات- دا درې شیان به د نورو وصیتونو نه مخکې کولې شی.نو که په دې دریو واړو کي د یو سره نور وصیتونه جمع شی.نو د ثلث څخه به وړاندې دا پوره کولې شی.اوکه د دې ادا کاوه نه روستو په ثلث کي څه بچ پاتې شی.نو نورو وصیتونو والا ته به ملاویږی.ګنی هیڅ به نه ملاویږی. خو که محابات او آزادول جمع شی.نو د دې حکم په راروان متن کي راځی.

**وَقَالَا: الْعِتْقُ أَوْلَىٰ فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه په دواړو مسئلو کي آزادی غوره ده.

**تشریح:-** صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه عتق په هرحال کي د محابات نه اولی دې.او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.که مخکې مریض محابات کړې وی.او ددې نه روسته ئې آزاد کړې وی.نو په دې صورت کي محابات د عتق نه اولی دې.اوکه ده مخکې آزاد کړې وی.او بیا ده محابات کړې وی.نو دواړه برابر دی.د برابر کیدو مطلب دا دې.چه په ثلث کي به دواړه برابر شریك وی. او د محابات د مقدم کیدو مطلب دا دې.چه په ثلث کي به مخکې محابات جاری کولې شی.که څه بچ پاتې شی.نو په پاته پاتې کي به آزادی نافذ کیږی.ګنی (که څه پاته پاتې نشو) نو څخه به آزادیږی.او د آزادۍ مقدم کاوه مطلب دا دې.چه د ثلث نه مخکې به آزادی نافذ کولې شی.که څه بچ پاتې شی.نو په پاته پاتې کي به محابات جاری کیږی.ګنی (که څه پاتې نشو.نو) څخه به جاری کیږی.

## که وصیتونه ډیر وی او یو وصیت هم د ثلث نه زیات نه وی نو څه حکم دې؟

**وَالْأَصْلُ فِيهِ** او قاعده کلیه په دې کي دا ده **أَنَّ الْوَصَايَا إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيهَا مَا جَاوَزَ الثُّلُثَ** چې په وصیتونو کي چې کله کوم یو وصیت د دریمې برخې نه زیات نه وی **فَكُلٌّ مِنْ أَصْحَابِهَا يَضْرِبُ بِجَمِيعِ وَصِيَّتِهِ فِي الثُّلُثِ** نو په وصیتونو والا کي به هر یو په ثلث کي خپل واړه وصیت سره شریك وی **لَا يُقَدَّمُ الْبَعْضُ عَلَى الْبَعْضِ** بعضې په بعضې باندې نشی مقدم کولې.

**تشریح:-** یوه قاعده کلیه ده‌دې ځائې نه مرغینانی رحمه الله دخپلې اصل مسئلې نه جلا کیږی.او په دې باب کي یوه نوې قاعده کلیه پیش کوی.فرمائی.چه کله ډیر وصیتونه جمع شی.او په دې کي هیڅ یو وصیت انفرادی طور باندې د ثلث نه زیات نه وی.نو دا واړه وصیتونو والا به برابر شریك وی.او بعضو ته به په بعضو باندې افضلیت نشی ورکولې.مثلاً د زید ټوله ترکه دولس زره روپئ دی.چه ددې ثلث څلور زره روپئ جوړیږی.او زید د عمرو لپاره د زر روپو وصیت اوکړو.او بکر لپاره ئې د دوو زرو روپو، او خالد لپاره ئې د دریو زرو روپو، او ساجد لپاره ئې د دوو زرو،چه ددې مجموعه اته زره جوړیږی.خو انفرادی طریقه باندې هیڅ یو وصیت د ثلث نه زیات نه دې.نو واړه وصیتونه صحیح دی.او واړه به په ثلث کي شریك وی.خو دخپلو برخو تناسب سره.نو هر یو ته به دده د وصیت نصف ملاویږی.چه ددې مجموعه څلور زره روپئ جوړیږی.چه دا د ټولې ترکې ثلث دې.نو عمرو ته به پنځه سوه، او بکر ته به زرروپئ، اوخالد ته به پنځلس سوه، او ساجد ته به هم زر روپئ ورکولې شی.او ددې ټولو مجموعه څلور زره روپئ جوړیږی. لنډیز د کلام دا چې دلته هیڅ یوکس ته په بل باندې برتری حاصل نه ده.

**إِلَّا الْمُوقَعُ فِي الْمَرَضِ** علاوه د هغه آزادۍ نه کومه چې مرض الموت کي واقع کړې شوې وی **وَالْعِتْقُ الْمُعَلَّقُ بِمَوْتِ**

(١) القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ملتقی (٤٣٧\١٤) وكنز(٤١٩) والدرالمختار(٤٨٢\١٥)نقلاً عن القول الراجح (٣٨٠\١٢)-

اَلْمُوْصِيْ كَالتَّدْبِيْرِ الصَّحِيْحِ اوکه هغه عتق کوم چې د موصی په مرګ باندې معلق کړې شوې وي. لکه صحیح مدبر کول وَالْمُحَابَاةُ فِي الْبَيْعِ إِذَا وَقَعَتْ فِي الْمَرَضِ او په بیع کې محابات، کله چې محابات په مرض الموت کې واقع شوې وي لِأَنَّ الْوَصَايَا قَدْ تَسَاوَتْ خکه چې واړه وصیتونه برابر دي وَالتَّسَاوِيْ فِي سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ يُوْجِبُ التَّسَاوِيْ فِيْ نَفْسِ الْاِسْتِحْقَاقِ او د استحقاق په سبب کې برابریدل، په نفس استحقاق کې برابری واجبوي.

**تشریح:-** خو ددې قاعدې کلیې نه درې شیان مستثنی دي. که په دې کې یوڅیز د نورو وصیتونو سره جمع شي. نو ددوی په وړاندې به دا وصیتونه کښته کیږي. په ثلث کې به مخکې هغه نافذ کولې شي. کوم چې موجود دې که څه بچ پاتې شي. نو په دې کې به نور وصیتونو والا د خپلو برخو مناسبت سره شریك وي. وکه هیڅ بچ پاتې نشي. نو د وصیتونو والا لپاره به هیڅ نه وي. او هغه درې شیان دا دي. ① په مرض الموت کې تنجیزاً آزادول، ② داسې آزادي کوم چې د موصی په مرګ باندې معلق وي. لکه مدبر جوړول، چه د مدبر آزادي د موصی په مرګ باندې کیږي. او مدبر جوړول د صحیح قید سره خکه مقید کړې دې. چه د فاسد تدبیر نه احتراز اوشي. لکه مثلاً که موصی داسې اووئیل. چه دا غلام زما د مرګ نه یوه میاشت روسته آزاد دې. نو دا مدبر کول صحیح نه دي. نو دې به د نورو وصیتونو والا نه نشي مقدم کولې. بلکه دا به د نورو وصیتونو والا سره شریك وي. او که مدبر کول صحیح وي. لکه مثلاً موصی دا اووائی. چه دا غلام زما په مرګ باندې آزاد دې. نو دا آزادي به د نورو وصیتونو والا نه مقدم وي. ③ په بیع کې محابات کله چې محابات په مرض الموت کې وي. بهرحال دا درې شیان مستثنی دي. ددې نه علاوه پاته واړه وصیتونه داسې دي. چه په دې کې یو ته په بل باندې هیڅ افضلیت نشته. بلکه دا واړه برابر دي. او هرکله چې د استحقاق په سبب کې برابری او مساوات دې. نو په نفس استحقاق کې به هم برابری وي.

**وصیتونو باندې ددې دریو څیزونو د مقدم کولو دلیل**

وَإِنَّمَا قُدِّمَ الْعِتْقُ الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ آنِفًا او هغه عتق مقدم کړې شوې دې. کوم چې مونږ اوس ذکر کړې دې. لِأَنَّهُ أَقْوٰى خکه چې دا زیات قوی دې فَإِنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ مِنْ جِهَةِ الْمُوْصِيْ، وَغَيْرُهُ يَلْحَقُهُ خکه چې دې ته د موصی د اړخه فسخ نشي متعلق کیدې. او ددې غیر ته فسخ متعلق کیدای شي وَكَذٰلِكَ الْمُحَابَاةُ لَا يَلْحَقُهَا الْفَسْخُ مِنْ جِهَةِ الْمُوْصِيْ او هم دغه ډول محابات دې. چه دې ته د موصی د اړخه فسخ نشي متعلق کیدای وَإِذَا تَقَدَّمَ ذٰلِكَ او کله چې دا (آزادي او محابات) مقدم کړې شوې دي فَمَا بَقِيَ مِنَ الثُّلُثِ بَعْدَ ذٰلِكَ يَسْتَوِيْ فِيْهِ مَنْ سِوَاهُمَا مِنْ أَهْلِ الْوَصَايَا نو ددې نه روسته چې د ثلث نه کوم پاته پاتې شي. په هغې کې به هغه خلګ شریك وي. کوم چې د وصیتونو په خلګو کې ددې دواړو نه علاوه دي وَلَا يُقَدَّمُ الْبَعْضُ عَلَى الْبَعْضِ او بعضي په بعضي باندې نشي مقدم کولې.

**تشریح:-** اوس ددې خائې نه مرغینانی رحمه الله دا بیانوي. چه دا درې واړه شیان په پاته وصیتونو باندې ولې مقدم کولې شي. نو فرمائي. چه د عتق مقدم کاوه وجه دا ده. چه عتق قوی دې. ددې دلیل دا دې. چه د آزادئ نه روستو که موصی آزادي فسخ کول اوغواړي. نو فسخ کولې ئې نشي. او د آزادئ نه علاوه چې کوم نورو وصیتونه دي. هغې ته فسخ متعلق کیدای شي. یعنی که موصی ددغه وصیتونو نه رجوع اوکړي. نو رجوع صحیح ده. او صحیح مدبر کول هم په آزادئ کې داخل کړې شوې دي. اوس پاتې شو محابات نو دا هم د نورو وصیتونو نه زیات قوی دې. خکه که موصی پخپله دا اوغواړي. چه په بیع کې محابات فسخ کړم. نو نشي کولې. بهرحال آزادي او محابات د نورو وصیتونو نه مقدم دي. نو که ددې ثلث څه برخه بچ پاتې شي. نو په دې پاته پاتې کې به واړه وصیتونو والا برابر شریك وي. او هیڅ یو ته به په بل باندې ترجیح نشي ورکولې.

**د صاحبینو رحمهما الله دلیل**

هُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ أَنَّ الْعِتْقَ أَقْوٰى په اختلافي مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چه آزادي زیات مضبوطه ده لِأَنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ الْفَسْخُ خکه چې آزادئ ته فسخ نشي متعلق کیدای وَالْمُحَابَاةُ يَلْحَقُهَا او محابات ته فسخ متعلق کیدای شي



**تشریح:-** ددې خائې نه مرغینانی رحمه الله د متن په اختلافي مسئله باندې د فریقینو دلیلونه بیانوي. فرماني چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز آزادي مقدم کیږي. او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که محابات مقدم وي. نو محابات به د آزادئ نه مقدم وي. او که آزادي مقدم وي. نو دواړه به برابر وي. نو صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه آزادي د محابات نه زیات قوی دې. ولې؟ خکه چې آزادي نشي فسخ کیدې. او محابات فسخ کیدای شي. یعنی که آزادونکې اوغواړي. چه آزادي فسخ کړم. نو نشي کولې ئې کولې. او که غلام اوغواړي. چه آزادي فسخ کړم. نو نشي کولې. او محابات اګرچه د موصی د اړخه فسخ نه قبلوي. خو د مشتري د اړخه فسخ قبلوي. مثلاً مشتري د څلور زره درهمو یو شې په زر درهمه باندې واخستلو. او د بائع مریض ددې مبیع نه علاوه هیڅ مال نشته. او وارثانو اجازت ورنکړو. نو مشتري ته به وئیلې شي. چه تا ته به صرف د مړي د دریمې برخې نه محابات ملاویږي. او پاته قیمت به وارثانو لپاره پوره کولې شي. کنې بیع فسخ کړه. نو اوس مشتري ته اختیار شته. که غواړي پاته قیمت دې ورکړي. او که غواړي بیع دې فسخ کړي. نو معلومه شوه. چه محابات داسې شې دې. چه دې ته فسخ لاحق کیدای شي. او آزادئ ته په هیڅ شان فسخ نشي لاحق کیدې.

وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّقْدِيْمِ الذِّكْرِ او په ذکر کې د تقدیم اعتبار نشته لِأَنَّهُ لَا يُوْجِبُ التَّقَدُّمَ فِي الثُّبُوْتِ خکه چې دا (په ذکر کې مقدم کول) په ثبوت کې تقدم نه واجبوي.

**تشریح:-** ﴿ولا معتبر بالتقدیم...﴾ یعنی په ذکر کې د تقدیم لفظي نشي کولې شي. د حقیقي معنی اعتبار کولې شي. د تقدیم هیڅ اعتبار نشته. خکه چې زباني الفاظو کې د محابات مقدم واقع کیدل، په قوت او ثبوت کې مقدم کیدل نه واجبوي. خکه چې قوت یو معنوي شې دې. چه په دې کې د زباني ذکر هیڅ دخل نشته. لنډیز د کلام دا چه صاحبینو رحمهما الله په آزادئ او محابات کې آزادي مقدم او افضله ګرځولې ده. او ددې بنا (بنیاد) د فسخ په قابل کیدو او نه کیدو باندې ایخودې شوې دې. او امام صاحب رحمه الله محابات مقدم ګرځولې دې. دوی په بل اعتبار سره محابات ته ترجیح ورکړې ده.

**د امام صاحب رحمه الله دلیل**

وَلَهُ أَنَّ الْمُحَابَاةَ أَقْوٰى او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چه محابات زیات قوی دې لِأَنَّهَا تَثْبُتُ فِيْ ضِمْنِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ خکه چې محابات د عقد معاوضه په ضمن کې ثابتیږي فَكَانَ تَبَرُّعًا بِمَعْنَاهُ لَا بِصِيْغَتِهِ نو محابات به تبرع وي. د خپلې معنی په اعتبار سره، د خپلې صیغې په اعتبار سره به نه وي وَالْإِعْتَاقُ تَبَرُّعٌ صِيْغَةً وَمَعْنًى او آزادي تبرع ده. د صیغې او معنی په اعتبار سره فَإِذَا وُجِدَتِ الْمُحَابَاةُ أَوَّلًا دُفِعَ الْأَضْعَفُ کله چې رومبې محابات اوموندې شو. نو محابات به زیات کمزوري (ازادي) لرې کوي وَإِذَا وُجِدَ الْعِتْقُ أَوَّلًا وَثَبَتَ او کله چې وړاندې آزادي اوموندې شوه. او آزادي ثابت شوه وَهُوَ لَا يَحْتَمِلُ الدَّفْعَ او دا د محابات لرې کاوه احتمال نه لري كَانَ مِنْ ضَرُوْرَتِهِ الْمُزَاحَمَةُ نو ددې د ضروریاتو څخه مقابل جوړیدل دي.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه محابات د آزادئ نه مقدم دې. خکه چې محابات د عقد بیع په ضمن کې ثابتیږي. چه دا مرغینانی رحمه الله په عقد معاوضه سره تعبیر کړې دې. نو محابات د خپلې صیغې او الفاظو په اعتبار سره تبرع نه ده. بلکه د الفاظو په اعتبار سره دا عقد بیع ده. البته د معنی په اعتبار سره دا تبرع ده. او آزادي د لفظ او معنی هر اعتبار سره تبرع ده. نو ددې نه معلومه شوه. چه محابات زیات قوي دې. خکه چې عقد معاوضه د خالص تبرع نه زیات قوی وي. نو هرکله چې زیات قوی یعنی محابات وړاندې وي. او هلته کمزورې یعنی آزادي تلل غواړي. نو زیات قوی به هغې ته دیکه ورکوي. او لرې کوي به یې. او هرکله چې د محابات مخې ته ددې پنجه نه خنبیږي. نو ثبوت به چرته وي. اوکه وړاندې آزادي اوموندې شي. او روسته محابات اوموندې شي. نو آزادي چونکه زیات کمزورې ده. په دې وجه آزادي محابات ته دیکه نشي ورکولې. نو ددې دواړو په منځ کې مقابله ثابته شوه. او هرکله چې د دواړو په منځ کې مقابله ثابته شوه. نو د مجبورئ ... اووئیلی شو. چه دواړه مساوي او برابر دي.

**د امام صاحب رحمه الله په اصول باندې متفرع کیدونکې دوې (دوه) مسئلې**

وَعَلَى هٰذَا قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: او هم ددې اصولو په بنا (بنیاد) باندې امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی إِذَا حَابَى ثُمَّ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابَى چې مریض محابات اوکړو. بیا ئې آزاد کړو. بیا ئې محابات اوکړو قُسِمَ الثُّلُثُ بَيْنَ الْمُحَابَاتَيْنِ نِصْفَيْنِ لِتَسَاوِيهِمَا نو ثلث به دواړو محابتونو په منځ کې نیمولې شی. ددې دواړو د برابر کیدو په وجه ثُمَّ مَا أَصَابَ الْمُحَابَاةَ الْأَخِيرَةَ قُسِمَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِتْقِ بیا چې کوم مقدار آخری محابات ته رسیدلې دې. هغه به د محابات او آزادئ په منځ کې تقسیمولې شی لِأَنَّ الْعِتْقَ مُقَدَّمٌ عَلَيْهَا فَيَسْتَوِيَانِ، خکه چې آزادی په محابات باندې مقدم ده. نو دواړه به برابر وی

**تشریح:-** د امام ابوحنیفه رحمه الله د بیان شوو اصولو مطابق ددوی په نیز په دې اصولو باندې دوې (دوه) متفرع جزئیات پیش کوی. (١) مریض په مرض الموت کې یو غلام آزاد کړو. او دوو سرو سره ئې محابات اوکړو. چه ددې ترتیب داسې دې. چه وړاندې ئې محابات کړې وو. او په دوهم خل ئې غلام آزاد کړو. او په دریم خل ئې بیا محابات اوکړو. نو دلته به څه حکم وی؟ نو وې فرمائیل. چه ثلث به دواړو محابتونو په منځ کې تقسیمولې شی. خکه چې دواړه محابات برابر دی. خکه چې د دواړو واقع کیدل د عقد معاوضه په ضمن کې شوی دی. بیا چې د کوم ثلث نصف د آخری محابات په برخه کې راغلې دې. هغه نصف به د آخری محابات او آزادئ په منځ کې تقسیمولې شی. خکه چې د آخری محابات نه وړاندې آزادی راغلې ده. او کله چې آزادی وړاندې راشی. او محابات روستو راشی. نو هلته د مقابل جوړیدو په وجه آزادی او محابات برابر شریکیږی. نو دلته به هم دغه دول کیږی

وَلَوْ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابَى ثُمَّ أَعْتَقَ او که مریض آزاد کړو. بیا ئې محابات اوکړو. بیا ئې آزاد کړو قُسِمَ الثُّلُثُ بَيْنَ الْعِتْقِ الْأَوَّلِ وَالْمُحَابَاةِ نو ثلث به د ړومبی آزادئ او محابات په منځ کې تقسیمولې شی نِصْفَيْنِ وَمَا أَصَابَ الْعِتْقَ قُسِمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْعِتْقِ الثَّانِي او کوم مقدارچه دآزادئ په برخه کې راشی. هغه به د ړومبی آزادئ اودویمې ازادئ په منځ کې تقسیمولې شی وَعِنْدَهُمَا الْعِتْقُ أَوْلَى بِكُلِّ حَالٍ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز هر حال کې آزادی راجح ده.

**تشریح:-** اوکه وړاندې مریض آزاد کړې وی. او بیا ئې محابات کړې وی. او بیا ئې په دریم خل کې آزاد کړې وی. نو اوس به څه حکم وی؟ نو چونکه دلته د محابات نه آزادی مقدم ده. نو د ذکر شوې قاعدې مطابق به ثلث د ړومبی آزادئ او محابات په منځ کې تقسیمولې شی. بیا چې کوم د محابات په برخه کې راشی. هغې کې به هیڅ توپیر نشی کولې. او کوم څه چې د آزادئ په برخه کې راشی. هغه به د ړومبی آزادئ او دویمې آزادئ په منځ کې تقسیمولې شی. چه ددې وجه ښکاره ده. او دا واړه تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول مطابق دې. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به هرحال کې آزادی مقدم ساتلې کیږی.

**په دې الفاظو سره د وصیت کولو حکم چه.. په دې سلو درهمو غلام واخلئ او آزاد ئې کړئ..**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی (وَمَنْ أَوْصَى بِأَنْ يُعْتَقَ عَنْهُ بِهٰذِهِ الْمِائَةِ عَبْدٌ) و چا چې وصیت اوکړو چه ،، دده د اړخه دده په سلو درهمو یو غلام آزاد کړې شی فَهَلَكَ مِنْهَا دِرْهَمٌ نو ددې نه یو درهم هلاك شو لَمْ يُعْتَقْ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به په پاته پاتې سره دده د اړخه غلام نشی آزادولې دې وَإِنْ كَانَتْ وَصِيَّتُهُ بِحَجَّةٍ و که دده وصیت د حج په اړه کې وی يُحَجُّ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ مِنْ حَيْثُ يَبْلُغُ نو دده د اړخه به په پاته پاتې سره هغه ځائې نه حج کولې شی. د کوم ځائې نه چې رسیدلې شی وَإِنْ لَمْ يَهْلِكْ مِنْهَا او که ددې نه هیڅ هلاك شوې نه وی وَبَقِيَ شَيْءٌ مِنَ الْحَجَّةِ و د حج نه څه شئ پاته پاتې شو يُرَدُّ عَلَى الْوَرَثَةِ نو پاته پاتې به وارثانو ته واپس کولای شی وَقَالَا: يُعْتَقُ عَنْهُ بِمَا بَقِيَ و صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی. چه دده د اړخه به په پاته پاتې سره آزادولې شی لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِنَوْعِ قُرْبَةٍ خکه چې دا د قربت (د الله تعالی د رضا حاصلولو) دنوع وصیت فَيَجِبُ تَنْفِيذُهَا مَا أَمْكَنَ اعْتِبَارًا بِالْوَصِيَّةِ بِالْحَجِّ نو څومره پورې چې ممکن وی. وصیت نافذ کول واجب دی. د حج په وصیت باندې قیاس



کاوه سره.

زید د خپلو وارثانو په وړاندې دا وصیت اوکړو. چه ددې سلو درهمو نه زما د اړخه حج اوکړئ. او اتفاق سره

**تشریح:-** ددې نه څه دراهم هلاك شو. نو په پاته پاتې دراهمو سره د زید د اړخه حج کول واجب دی. که دومره مقدار پاته دې. چه د پیښور (د پاکستان د ښار) نه په دومره مقدار سره حج کولې شی. او زید د پیښور اوسیدونکې دې. نو د دهلی څخه به حج کولې شی. او که د پیښور نه حج نشی کیدې. البته لاهور نه په تللو سره حج لپاره دا رقم کافی دې. نو د پیښور په ځائې به د لاهور نه حج کولې شی.

لنډیز د کلام دا چې د حج د وصیت په صورت کې د بعضو دراهمو هلاکیدل وصیت نه باطلوی. او دده د اړخه به حج کولې شی. اوکه زید دا وصیت اوکړو. چه په دې سلو دراهمو غلام واخلئ. او آزاد ئې کړئ. نو په وارثانو باندې واجب دی. چه هغوی په دې سلو دراهمو غلام واخلی. او آزاد ئې کړی. خو اتفاق سره ددې نه مثلاً یو درهم هلاك شو. او یو کم سل پاته پاتې شو. نو اوس څه حکم دې؟ نو په دې کې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې. صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه اوس هم هغه حکم دې. کوم چې د حج د وصیت په صورت کې دې. یعنی د پاته پاتې به غلام اخستلې شی. او د هغه د اړخه به آزادولې شی. او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی. چه په پاته پاتې به غلام نشی اخستلې. او نه به شی آزادولې. که هغه د حج کاوه وصیت کړې وو. او دهغې نه هیڅ هلاك نشو. او حج اوکړې شو. خو د حج نه د فارغ کیدو نه روستو څه دراهم بچ پاتې شو. نو کوم چې پاته دراهم پاتې شوی دی. هغه به وارثانو ته واپس ورکولې شی. په اختلافی مسئله کې د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چه د آزادئ وصیت، دا د قربت یو قسم وصیت دې. نو څومره پورې چې ممکنه وی. د هغه دا وصیت نافذ کول واجب دی. هغوی دا د حج په وصیت باندې قیاس کړې دې.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل**

وَلَهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې أَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِالْعِتْقِ لِعَبْدٍ يُشْتَرَى بِمِائَةٍ چې دا د آزادئ وصیت دې. د داسې سغلام لپاره کوم چې په سلو باندې اخستلې شوې وی وَتَنْفِيذُهَا فِيمَنْ يُشْتَرَى بِأَقَلَّ مِنْهُ تَنْفِيذٌ لِغَيْرِ الْمُوصَى لَهُ او وصیت نافذ کول په هغه غلام کې کوم چې ددې نه په کم کې اخستې شوې وی. د موصی له نه علاوه لپاره وَذٰلِكَ لَا يَجُوزُ او دا جائز نه ده.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه د موصی په ذکر شوی صورت کې موصی له هغه غلام دې. کوم چې په سلو (دراهمو) اخستې شوې دې. او کله چې ددې نه په کم کې واخستلې شی. او آزاد کړې شی. نو موصی له به بدلیږی. او وارثانو ته دا حق نشته. چه په موصی له کې توپیر اوکړی.

بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ بِالْحَجِّ په خلاف د حج د وصیت لِأَنَّهَا قُرْبَةٌ مَحْضَةٌ وَهِيَ حَقُّ اللهِ تَعَالَى خکه چې دا خالص قربت دې. چه دا دالله تعالی حق دې وَالْمُسْتَحِقُّ لَمْ يَتَبَدَّلْ او مستحق نه بدلیږی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَوْصَى لِرَجُلٍ بِمِائَةٍ فَهَلَكَ بَعْضُهَا يُدْفَعُ الْبَاقِي إِلَيْهِ نو دا داسې شوه. مثلاً کله چې ده وصیت کړې وی. د یو سړی لپاره د سلو دراهمو، نو د هغې نه څه هلاك شوې. نو پاته به دغه سړی ته ورکولې شی.

**تشریح:-** او پاتې شوه مسئله د حج د وصیت، نو هلته مستحق د حج په هیڅ صورت کې نه بدلیږی. خکه چې حج خالص قربت دې. او هغه د الله تعالی حق دې. نو مستحق د حج الله تعالی دې. چه په دې کې هیڅ توپیر نه راخی. اود حج وصیت داسې دې. لکه چې زید وصیت کړې وی. چه دا سل دراهم خالد ته ورکړئ. اتفاق سره د هغې نه بعضې دراهم هلاك شو. نو کوم دراهم چې پاته دی. هغه به خالد ته ورکولې شی. خکه چې موصی له کې هیڅ توپیر نشته. او د آزادئ په صورت کې موصی له کې توپیر راخی.

**عتاق حق الله دې او که حق العبد دې ؟**

وَقِيلَ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ بِنَاءٌ عَلَى أَصْلٍ آخَرَ مُخْتَلَفٍ فِيهِ او ونیلی شوی دی. چه دا مسئله مبنی ده په یو بل اصل باندې. چه هغې

کي اختلاف کړي شوي دي. وَهُوَ اَنَّ الْعِتْقَ حَقُّ اللّٰهِ تَعَالٰى عِنْدَهُمَا حَتّٰى تُقْبَلَ الشَّهَادَةُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ دَعْوٰى فَلَمْ يَتَبَدَّلِ الْمُسْتَحِقُّ او هغه دا ده. چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز آزادي د الله تعالى حق دي. تردي پورې چې په دې باندې د غلام د دعوې نه بغير شهادت قبلولي شي. نو مستحق بدل نشو وَعِنْدَهُ حَقُّ الْعَبْدِ حَتّٰى لَا تُقْبَلَ الْبَيِّنَةُ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ دَعْوٰى فَاخْتَلَفَ الْمُسْتَحِقُّ او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز آزادي د بنده حق دي. تردې پورې چې په دې باندې د غلام د دعوې نه بغير ګواهان نه قبليږي. نو مستحق بدل شو وَهٰذَا اَشْبَهُ او دا ( يعنى دا مسئله په دې اصول باندې متفرع کيدل) صحيح کيدو ته زياته نژدې ده.

**تشريح:-** آزادي د الله تعالى حق دې. اوکه د بنده حق دې؟ په دې کې د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله اختلاف دې. امام صاحب رحمه الله آزادي د بنده حق ګرځوي. او صاحبين رحمهما الله آزادي د الله تعالى حق ګڼرۍ. د الله تعالى په حق کې بالاتفاق د شهادت قبلولو لپاره دعوه شرط نه ده. اود بنده په حق کې د شهادت قبوليت لپاره دعوه شرط ده. هرکله چې دا اصول معلوم شو. نو دا خبره واضحه شوه. چه د آزادۍ مسئله هم په دې اصولو باندې متفرع ده. د صاحبينو رحمهما الله په نيز آزادي د حج د وصيت پشان د الله تعالى حق دې. او د الله تعالى د حق مستحق کې د تبديلۍ سوال نشته. نو په آزادۍ کې هم موصى له بدل نشو. او امام ابوحنيفه رحمه الله آزادي د بنده حق ګرځولې دې. نود موصى له توپير ښکاره ده. ځکه چې موصى له هغه غلام وو. کوم چې په سلو ( دراهمو) واخستلې شى. او اوس موصى له هغه غلام شو. کوم چې په يوکم سلو(دراهمو) اخستي شوي دې. مرغيناني رحمه الله ا وفرمائيل. چه دا ،،اشبه،، ده. يعنى دا وئيل چې ،، د صاحبينو او د امام صاحب رحمهم الله اختلاف ددې اصولو په اختلاف باندې مبنى دى. چه آزادي د الله تعالى حق دې. اوکه د بنده حق دې؟،، زيات صحيح ( او قابل فهم) دى.

## د ثلث نه زيات وصيت د وارثانو په اجازت باندې موقوف دې

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ تَرَكَ ابْنَيْنِ وَمِائَةَ دِرْهَمٍ وَعَبْدًا قِيْمَتُهُ مِائَةٌ و چاچه دوې (دوه) ځامن او سل دراهم ( په ترکه کې ) پريخودل. او يو غلام ( ئې پريخودو) چې د هغه قيمت سل درهمه دې دِرْهَمٍ وَقَدْ كَانَ اَعْتَقَهُ فِي مَرَضِهِ او هغه دا پخپل مرض الوفات کې آزاد کړې وو فَاَجَازَ الْوَارِثَانِ ذٰلِكَ لَمْ يَسْعَ فِي شَيْءٍ نو دواړو وارثانو ددې اجازت ورکړو. نو غلام به هيڅ مزدوري نه کوي

**تشريح:-** وړاندې دا خبره بار بار تيره شوې ده. چه د وصيت نافذ کيدو محل ثلث مال دې. البته که د ثلث نه زيات وصيت کړې شوې وى. او وارثانو ددې اجازت ورکړې وى. نو د ثلث نه د زيات وصيت به هم نافذ کيږي. او هم ددغه ذکر شوى اصولو نه يوه جزئيه دلته پيش کولې شى. چه د زيد وفات اوشو. او هغه دوې (دوه) ځامن وارثان پريخودل. اوپه ترکه کې ئې سل دراهم او يو غلام پريخودو. چه د هغه قيمت دوې (دوه) درهمه دې. او زيد دا غلام پخپل مرض الوفات کې آزاد کړې وو. نو د قاعدې مطابق به دده آزادي په ثلث مال کې جاري کيږي. يعنى(١٠٠) دراهم، خو که دواړو ځامنو د پوره وصيت نافذ کاوه اجازت ورکړو. نو وصيت به نافذ کيږي. او غلام به آزاديږي. او په غلام به هيڅ مزدوري کول واجب نه وى.

لِاَنَّ الْعِتْقَ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ وَاِنْ كَانَ فِي حُكْمِ الْوَصِيَّةِ ځکه چې مرض الوفات کې آزادي اګرچه د وصيت په حکم کې دې وَقَدْ وَقَعَتْ بِاَكْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ او وصيت د ثلث نه په زيات کې واقع شوې دې اِلَّا اَنَّهَا تَجُوْزُ بِاِجَازَةِ الْوَرَثَةِ خو دا ( د ثلث نه زيات وصيت) د وارثانو اجازت سره جائز دې لِاَنَّ الْاِمْتِنَاعَ لِحَقِّهِمْ وَقَدْ اَسْقَطُوْهُ ځکه چې امتناع هم ددوى د حق په وجه وه. او هغوى خپل حق ساقط کړې دې.

**تشريح:-** ځکه چې مرض الوفات کې دا آزادي د وصيت په درجه کې ده. او وصيت د ثلث نه په زيات کې نه نافذ کيږي. خو که وارثان اجازت ورکړي. نو نافذ کيږي. ځکه چې د وصيت نه نافذ کيدل د وارثانو د حق په وجه کيږي. او دلته وارثانو اجازت ورکړو. نو هغوى خپل حق ساقط کړې دې.

## د غلام د آزادولو وصيت کولو نه روسته د غلام د جنايت کولو مسئله



قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى وَمَنْ اَوْصٰى بِعِتْقِ عَبْدِهِ ثُمَّ مَاتَ و چاچه د خپل غلام د آزادۍ وصيت اوکړو. بيا موصى مړ شو فَجَنٰى جِنَايَةً وَدُفِعَ بِهَا بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو هغه څه جنايت ( جرم) اوکړو. او د جنايت بدله ورکړې شوه. نو وصيت باطل شو لِاَنَّ الدَّفْعَ قَدْ صَحَّ لِمَا اَنَّ حَقَّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ مُقَدَّمٌ عَلٰى حَقِّ الْمُوْصِيْ ځکه چې ورکول صحيح دى. په دې وجه چې د جنايت د ولى حق د موصى په حق باندې مقدم دې فَكَذٰلِكَ عَلٰى حَقِّ الْمُوْصٰى لَهُ نو هم دغه ډول د موصى له په حق باندې ( هم وړاندې دې). لِاَنَّهُ يَتَلَقَّى الْمِلْكَ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې موصى له د موصى د اړخه ملکيت حاصلوى.

**تشريح:-** زيد پخپل مرض الوفات کې وصيت کړې وو. چه زما دا غلام آزاد کړئ. او د زيد وفات اوشو. او دا غلام د مال نه اوخى. خو دې غلام څه جنايت ( جرم) اوکړو. چه ددې په وجه دا غلام دجنايت ولى ته حواله دريمې برخې کړې شو. نو مذکوره وصيت به باطليږي. ځکه چې دلته د وارثانو دا غلام د جنايت ولى ته حواله کول صحيح دى. ځکه چې د جنايت دولى حق د موصى نه مقدم دې. نو په درجه اولى به د موصى له د حق نه هم مقدم وى. ځکه چې موصى له ته کوم ملکيت حصال شوې دې. هغه د موصى په جهت سره ثابت شوې دې.

اِلَّا اَنَّ مِلْكَهُ فِيْهِ بَاقٍ خو په غلام کې د موصى ملک پاته دې وَاِنَّمَا يَزُوْلُ بِالدَّفْعِ او دا د موصى ملکيت په ور کاوه سره زائل کيږي، فَاِذَا خَرَجَ بِهِ عَنْ مِلْكِهِ بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ كَمَا اِذَا بَاعَهُ الْمُوْصِيْ اَوْ وَارِثُهُ بَعْدَ مَوْتِهِ نو هرکله چې په ور کاوه سره ملک زائل شو. نو وصيت باطل شو لکه ( مثلاً) کله چې موصى يا د هغه وارث دا خرڅ کړې وى. د موصى د مرګ نه روستو

**تشريح:-** ترکومه پورې چې غلام د جنايت ولى ته حواله نکړې شى. تر هغې پورې په دې غلام کې د موصى ملکيت پاته دې. او کله چې د جنايت ولى ته حواله کړې شو. نو اوس د موصى ملکيت زائل شو. او وصيت باطل شو. لکه موصى پخپله دا غلام خرڅ کړې وې. نو وصيت به باطليدو. ځکه چې د موصى د خرڅولو په وجه به دده ملکيت ختميدو. او د موصى د مرګ نه روستو که په مړى باندې د پور په سبب سره د موصى وارث دا غلام خرڅ کړو. نو بيا به هم وصيت باطليږي.

فَاِنْ فَدَاهُ الْوَرَثَةُ كَانَ الْفِدَاءُ فِيْ مَالِهِمْ نو که وارثانو د غلام فديه ورکړله. نو فديه به د وارثانو په مال کې وى لِاَنَّهُمْ هُمُ الَّذِيْنَ الْتَزَمُوْهُ، وَجَازَتِ الْوَصِيَّةُ ځکه چې هغوى ددې التزام کړې دې. او وصيت جائز دې لِاَنَّ الْعَبْدَ طَهُرَ عَنِ الْجِنَايَةِ بِالْفِدَاءِ كَاَنَّهُ لَمْ يَجْنِ فَتَنْفُذُ الْوَصِيَّةُ ځکه چې غلام د فديې ور کاوه په وجه د جنايت نه پاک شو. ګويا چې هغه جنايت نه دې کړې. نو وصيت به نافذ کيږي.

**تشريح:-** وارث ته حق شته. چه هغه دا غلام د جنايت ولى ته حواله کړي. خو که وارثانو ددې غلام فديه ادا کړله. نو دا فديه به د وراثانو په مال باندې پريوځى. او وارثان به په دې فديې ادا کاوه سره متبرعين ( احسان کونکى) شمارلې کيږي. ځکه چې دا فديه ورکول، په دوى باندې واجب نه وه. نو دا خو دوى پخپل اختيار سره ورکړې ده. نو د موصى وصيت به جائز وى. ځکه چې د فديې ادا کاوه په وجه غلام دجنايت نه پاک صفا شو. ګويا چې هغه هيڅ جنايت نه دې کړې. نو د وصيت نافذ کاوه نه هيڅ مانع پاتې نشو. په دې وجه به وصيت نافذ کيږي.

## د غلام د آزادولو په حالت کښې د موصى له او د وارث د اختلاف مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ اَوْصٰى بِثُلُثِ مَالِهِ لِاٰخَرَ و چاچه د خپل ثلث مال د يو بل کس لپاره وصيت اوکړو فَاَقَرَّ الْمُوْصٰى لَهُ وَالْوَارِثُ اَنَّ الْمَيِّتَ اَعْتَقَ هٰذَا الْعَبْدَ نو موصى له او وارث اقرار اوکړو. چه مړي دا غلام آزاد کړې دې فَقَالَ الْمُوْصٰى لَهُ اَعْتَقَهُ فِي الصِّحَّةِ نو موصى له اووئيل. چه دا ئې په صحت کې آزاد کړې دې وَقَالَ الْوَارِثُ اَعْتَقَهُ فِي الْمَرَضِ و وارث اووئيل. چه دې ئې په مرض کې آزاد کړې دې. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْوَارِثِ وَلَا شَيْءَ لِلْمُوْصٰى لَهُ نو د وارث قول به معتبر وى. او موصى له لپاره به هيڅ نه وى اِلَّا اَنْ يَفْضُلَ مِنَ الثُّلُثِ شَيْءٌ اَوْ تَقُوْمَ لَهُ الْبَيِّنَةُ اَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ خو دا چې د ثلث نه څه شئ بچ پاتې شى. ( نو هغه به ملاويږي). يا د موصى له لپاره ګواهان قائم شى. چه ازادي د

صحت په حالت کي شوې ده.

**تشریح:-** زید مرحوم خالد لپاره د خپل ثلث مال وصیت اوکړو.او دزید یو غلام دې.خالد او د زید وارث ددې خبرې اقرار کوی.چه زید دې آزاد کړې دې.البته ددوی دواړو په دې کي اختلاف دې.چه کله ئې آزاد کړې دې.خالد وائی.چه د صحت په حالت کي ئې آزاد کړې دې.او وارث وائی.چه د مرض په حالت کي ئې آزاد کړې دې.دخالد د ونیلو مطلب دا دې.چه دا غلام د صحت په حالت کي آزاد کړې شوې دې.نو دا د وصیت په درجه کي نه دې.نود پوره مال څخه به د هغه آزادی نافذ کیږی.او کوم مال چې پاته دې.د هغې د ثلث زه مستحق یم.او دزید وارث وائی.چه زید دا د مرض په حالت کي آزاد کړې دې.او د مرض د حالت آزادی د وصیت نه وړاندې ده.او ددې نفاذ په ثلث مال کي کیږی.او آزادی د نورو وصیتونو نه مقدم وی.نود خالد د حق څخه به مقدم وی.

نو د ثلث څخه به مخکې د غلام حق نافذ کیږی.که د غلام د آزدولو نه روسته په ثلث کي څه بیچ پاتې شی.نو هغه به خالد ته ملاویږی.اوکه څه پاته پاتې نشی.نو نه به ملاویږی.نو دلته به د چا قول معتبر وی؟نو وې فرمائیل.که خالد پخپله دعوه باندې گواهان قائم کړی.نو دخالد قول به معتبر وی.گنی دوارث قول به معتبر وی.خکه چې دلته خالد مدعی دې.او وارث منکر دې.او د مدعی فریضه ده.چه هغه گواهان قائم کړی.گنی سره د قسم څخه به د منکر قول معتبر وی.نو فرمائی.

## د وارث د قول معتبر کیدو دلیل

**لِأَنَّ الْمُوصَى لَهُ يَدَّعِي اسْتِحْقَاقَ ثُلُثِ مَا بَقِيَ مِنَ التَّرِكَةِ بَعْدَ الْعِتْقِ** څکه چې موصی له د آزادئ نه روسته د ترکي د پاته پاتې ثلث د استحقاق دعوه کوی. **لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ لَيْسَ بِوَصِيَّةٍ وَلِهَذَا يَنْفُذُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ** چې آزادی په حالت د صحت کي وصیت نه دې.په دې وجه دا ( د صحت آزادی) د پوره مال نه نافذ کیږی. **وَالْوَارِثُ يُنْكِرُ** څکه ددې انکار کوی **لِأَنَّ مُدَّعَاهُ الْعِتْقُ فِي الْمَرَضِ وَهُوَ وَصِيَّةٌ** څکه چې د وارث دعوه په مرض الوفات کي د آزادولو دا ( په مرض الوفات کي آزادول) وصیت دې **وَالْعِتْقُ فِي الْمَرَضِ مُقَدَّمٌ عَلَى الْوَصِيَّةِ بِثُلُثِ الْمَالِ** او په مرض الوفات کي آزادی د ثلث مال په سلسله کي وصیت باندې مقدم ده **فَكَانَ مُنْكِرًا** نو وارث به منکر وی **وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ الْيَمِينِ** او قول د منکر معتبر وی. سره دده دقسم نه.

**تشریح:-** دلته خالد(موصی له) مدعی او وارث منکر ولې دې؟نو وې فرمائیل.چه خالد دعوه کوی.چه د آزادئ نافذ کاوه نه روسته چې کومه ترکه پاته پاتې شوه.زه د هغې د ثلث مستحق یم.څکه چې آزادی د صحت په حالت کي واقع شوې ده.دا وصیت نه دې.او په دې وجه دا آزادی د پوره مال نه نافذ کیږی.او وارث ددې نه منکر دې.څکه چې د وراث دعوه دا ده.چه موصی په مرض الوفات کي آزاد کړې دې.او په مرض الوفات کي آزادول وصیت دې.او د مرض الوفات آزادی په نورو وصیتونو باندې مقدم وی. لنډیز دکلام دا چې د وارث مقصد دا دې.چه د موصی له لپاره هیڅ نشته.نو وارث منکر شمار کړې شوې دې.او د منکر قول سره د قسم نه معتبر وی.

## د وارث د قول معتبر کیدو دوهم دلیل

**وَلِأَنَّ الْعِتْقَ حَادِثٌ** اوڅکه چې آزادی حادث(راپیښ شوې) ده **وَالْحَوَادِثُ تُضَافُ إِلَى أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ لِلتَّيَقُّنِ بِهَا** او حوادث مضاف وی.دټولو نه نژدې وختونو ارخ ته.ددوی په سلسله کي د تیقن په وجه، **فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِلْوَارِثِ** نو ښکاره حال وارث لپاره شاهد شو. **فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ مَعَ الْيَمِينِ** نو قول به د وارث معتبر وی. سره دهغه د قسم نه.

**تشریح:-** د وارث د قول معتبر کیدو دا دوهم دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه آزادی د مخکې نه خو نه وه.معلومه شوه.چه دا آزادی حادث ده ( او روستو پیدا شوې ده) او قاعده دا ده.چه د حادث اضافت نیردې وختونو ارخ ته کولې شی.څکه چې دې اضافت کي کوم یقین دې.هغه لرې وختونو ارخ ته اضافت کي نشته.او نژدې وخت حالت د مرض دې.نو په دې اعتبار سره هم ښکاره حال وارث لپاره شاهد شو.څکه چې د وارث قول به سره د قسم نه معتبر وی.



**إِلَّا أَنْ يَفْضُلَ شَيْءٌ مِنَ الثُّلُثِ عَلَى قِيمَةِ الْعَبْدِ** خو دا چې د غلام په قیمت باندې ثلث نه څه بیچ پاتې شی **لِأَنَّهُ لَا مُزَاحِمَ لَهُ فِيهِ** څکه چې د موصی له په دې زیاتی کي هیڅ مقابل نشته. **أَوْ تَقُومَ لَهُ الْبَيِّنَةُ أَنَّ الْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ** یا د موصی له لپاره گواهان قائم شی.په دې خبره چې آزادی د صحت په حالت کي واقع شوې ده **لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالْبَيِّنَةِ كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً** څکه چې کوم شئ گواهانو سره ثابت شی.هغه داسې دې.لکه چې په لیدلو سترگو ثابت شوې وی **وَهُوَ خَصْمٌ فِي إِقَامَتِهَا لِإِثْبَاتِ حَقِّهِ** او موصی له به خصم وی.د گواهانو قائمولو په سلسله کي ، د خپل حق ثابتولو دپاره.

**تشریح:-** البته که په ثلث کي د آزادئ نافذ کاوه نه روسته څه بیچ پاتې شی.نو هغه به خالد ( موصی له ) ته ورکولې شی.څکه چې دې زیاتی کي اوس هیڅ څوک دده مقابل ( اوخصم) نشته.یا بیا خالد گواهان قائم کړی.چه آزادی د صحت په حالت کي واقع شوې ده.نو اوس به د خالد قول معتبر وی.څکه چې د گواهانو په ذریعه کومه خبره ثابته شی.هغه داسې ده.لکه چې په سترگو کتلې شوې او ثابته شوې وی.

که څوک دا ووایې چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خو آزادی د بنده حق دې.نو ترکومه پورې چې دغلام د ارخه دعوه نه وی.نو گواهان به څنگه قائمولې شی؟

خواب ۞ دلته مورږ غلام مدعی نه دې گرځولې.بلکه مدعی موصی له دې.او موصی له د وارث خصم دې.غلام نه دې.او دده د ارخه دعوه موجود ده.او د دعوې نه روسته گواهان قائمول صحیح دی.څکه چې چرته خالد ته اړتیا دې.چه هغه خپل حق ثابت کړی.نو د گواهانو قائمولو په سلسله کي به موصی له خصم جوړولې شی.

## د آزادئ د مدعی.او د پور د مدعی وارث تصدیق اوکړو نو څه حکم دې؟

**قَالَ** امام محمد رحمه الله اوفرمائیل **(وَمَنْ تَرَكَ عَبْدًا)** او چاچه یو غلام پریخودو **فَقَالَ لِلْوَارِثِ أَعْتَقَنِي أَبُوكَ فِي الصِّحَّةِ** نو دې غلام وارث ته اووئیل.چه زه ستا پلارد صحت په حالت کي آزاد کړې ووم **وَقَالَ رَجُلٌ لِي عَلَى أَبِيكَ أَلْفُ دِرْهَمٍ** او یو سړي اووئیل.چه زما ستا په پلار باندې زر دراهم پور دې **فَقَالَ صَدَقْتُمَا** نو وارث اووئیل.چه تا رشتیا اووئیل

**تشریح:-** د زید وفات اوشو.او په ترکه کي ئې صرف یو غلام پریخودو.دغه غلام وارث ته اووئیل.چه زه ستا پلار د صحت په حالت کي آزاد کړې ووم.او یو بل سړي اووئیل.چه زما ستا په پلار باندې پور دې.چه دهغې مقدار زر درهمه دې.نو وارث ددوی دواړو په ځواب کي اووئیل.چه تاسو دواړه رشتیا وایئ.

**فَإِنَّ الْعَبْدَ يَسْعَى فِي قِيمَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله** (۱) نو غلام به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پخپل قیمت کي مزدوری کوی **وَقَالَا: يَعْتِقُ وَلَا يَسْعَى فِي شَيْءٍ** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه غلام به آزاد وی.او هیڅ مزدوری به نه کوی

**تشریح:-** اوس سوال دا دې.چه غلام به آزادیږی او که نه؟ او په غلام به د خپل قیمت مزدوری کول واجب وی.اوکه نه؟ نو په دې کي د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اختلاف دې.په دې خبره باندې خوواړه متفق دی.چه غلام آزاد شو.او په ده باندې د مزدورئ په واجبولو او نه واجبیدو کي اختلاف دې.د امام صاحب رحمه الله په نیز په ده باندې خپل قیمت کي مزدوری کول واجب دی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز په ده باندې هیڅ مزدوری کول واجب نه دی.

**لِأَنَّ الدَّيْنَ وَالْعِتْقَ فِي الصِّحَّةِ ظَهَرَا مَعًا بِتَصْدِيقِ الْوَارِثِ فِي كَلَامٍ وَاحِدٍ** څکه چې پور او آزادی په صحت کي دواړه په یو خائې ښکاره شوی دی.د وارث په یو کلام کي د تصدیق کاوه په وجه **فَصَارَا كَأَنَّهُمَا كَانَا مَعًا** نو دوی دواړه داسې شو.گویا چې دواړه په یو خائې وو **وَالْعِتْقُ فِي الصِّحَّةِ لَا يُوجِبُ السِّعَايَةَ وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمُعْتِقِ دَيْنٌ** او د صحت په حالت کي آزادی مزدوری نه واجبوی.اگرچه په آزادئ باندې پور وی.

**تشریح:-** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه دلته په صحت کي د آزادئ او پور دواړو ښکاره کیدل یو خائې شوی

(۱) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في تنوير الأبصار على هامش ردالمحتار(۴۸۲۱۵) وملتقى (۴۳۹۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۳۸۱۱۲)-

دی.یعنی کله چې وارث په یو کلام سره ددوی دواړو تصدیق اوکړو.نو په دې سره په یو خانې په صحت کې د آزادئ او پور ښکاره کیدل اوشو.نو ددې مطلب دا شو.چه آزادی او پور دواړه په یو خل واجب شوی دی.یعنی د دواړو تعلق د صحت حالت سره دې.اودلته قاعده دا ده.چه د صحت په حالت کې که آزادی وی.نو بیا په غلام باندې هیڅ نه واجبیږی.اګرچه په آزادونکی باندې پور هم وی.په دې وجه صاحبینو رحمهما الله اوفرمائیل.چه په غلام باندې مزدوری واجب نه ده.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل**

وَلَهُ أَنَّ الْإِقْرَارَ بِالدَّيْنِ أَقْوَى او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د پور اقرار زیات قوی دې لِأَنَّهُ يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ خکه چې پور د پوره مال نه معتبر کیږی وَالْإِقْرَارُ بِالْعِتْقِ فِي الْمَرَضِ يُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ د مرض په حالت کې د آزادئ اقرار د ثلث مال نه معتبر وی

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.حاصل د دلیل دا دې.چه پور د آزادئ نه زیات قوی دې.او د پور زیات قوی کیدو دلیل دا دې.که مریض د پور اقرار اوکړی.نو د پور دا اقرار به د پوره مال نه معتبر وی.اوکه په مرض کې د آزادئ اقرار اوکړی.نو دا اقرار به د مال د ثلث نه معتبر وی.

وَالْأَقْوَى يَدْفَعُ الْأَدْنَى او زیات قوی ادنی لرې کوی فَقَضِيَّتُهُ أَنْ يَبْطُلَ الْعِتْقُ أَصْلًا إِلَّا أَنَّهُ بَعْدَ وُقُوعِهِ لَا يَحْتَمِلُ الْبُطْلَانَ نو ددې تقاضه دا ده.چه آزادی بالکل باطل شی.خو آزادی د خپلو واقع کیدو نه روسته د بطلان احتمال نه لرې فَيُدْفَعُ مِنْ حَيْثُ الْمَعْنَى بِإِيجَابِ السِّعَايَةِ آزادی نو آزادی به د معنی په حیثیت سره دفع کولې شی.د مزدورئ واجبولو سره.

تشریح:- ددې نه معلومه شوه.چه پور د آزادئ نه زیات قوی دې.او وړاندې تیر شوی دی.چه کوم زیات قوی وی.هغه ادنی ته دیکه ورکوی.نو ددې تقاضه دا وه.چه آزادی بالکل باطل شوې وې.خو څه اوکړې شی.چه اصول دا دې.چه کله آزادی واقع شی.نو بیا د بطلان احتمال نه لری.په دې وجه آزادی نشی باطلیدې.البته معنوی اعتبار سره آزادی باطلیدې شی.یعنی چې آزادی نافذ اومنلې شی.او په غلام باندې مزدوری واجب کړې شی.نو موږ هم دا طریقه اختیار کړله.چه غلام آزاد دې.خو په ده باندې خپل قیمت کښې مزدوری کول او اداکول واجب دی.

**د امام صاحب رحمه الله دوهم دلیل**

وَلِأَنَّ الدَّيْنَ أَسْبَقُ او خکه چې پور مقدم دې لِأَنَّهُ لَا مَانِعَ لَهُ مِنَ الْإِسْتِنَادِ خکه چې د اسناد نه هیڅ مانع نشته فَيُسْتَنَدُ إِلَى حَالَةِ الصِّحَّةِ نو د پور اسناد به د صحت حالت اړخ ته کولای شی وَلَا يُمْكِنُ إِسْنَادُ الْعِتْقِ إِلَى تِلْكَ الْحَالَةِ او د آزادئ اسناد د صحت حالت اړخ ته کول ممکن نه دی لِأَنَّ الدَّيْنَ يَمْنَعُ الْعِتْقَ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ مَجَّانًا خکه چې پور په مفتو کې په حالت د مرض کې آزادی منع کوی فَيَجِبُ السِّعَايَةُ نو مزدوری به واجب وی.

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دوهم دلیل دې.فرمائی.چه پور د آزادئ نه مقدم دې.خکه که د پور اسناد د صحت حالت اړخ ته اوکړې شی.نو ددې دلته هیڅ مانع نشته.نو د پور اسناد به د صحت حالت اړخ ته کولې شی.او ونیلې به شی.چه دا پور د صحت د حالت دې.او د مذکوره آزادئ اسناد د صحت حالت اړخ ته ممکن نه دې.خکه چې ددې ښکاره کیدل خو اوس شوی دی.کله چې د موصی انتقال شوې دې.او د صحت حالت اړخ ته اسناد کاوه کې به د مرض په حالت کې تیریدل وی.او تیریدل جائز نه دی.بلکه دا اسناد به دلته لاندې کولې شی.ولې؟ خکه چې مخکې د صحت په حالت کې پور موجود دې.او کله چې په مرض الوفات کې مقروض مفت غلام آزاد کړی.نو هغه به مفت نه آزادیږی.بلکه غلام به آزاد وی.خو په ده باندې به مزدوری کول واجب وی.نو موږ په هغه باندې مزدوری واجب کړې ده.

**په مړی باندې د پور او د ودیعت د دعوې کولو مسئله**



وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ او هم په دې اختلاف (مبنی) ده إِذَا مَاتَ الرَّجُلُ وَتَرَكَ أَلْفَ دِرْهَمٍ کله چې یو سړې مړشو.او هغه زر دراهم پریښول فَقَالَ رَجُلٌ لِي عَلَى الْمَيِّتِ أَلْفُ دِرْهَمٍ دَيْنٌ نو یو سړی اوونیل.چه زما په مړی باندې زر درهم پور وې وَقَالَ الْآخَرُ كَانَ لِي عِنْدَهُ أَلْفُ دِرْهَمٍ وَدِيعَةً او دوهم سړی اوونیل.چه زما هغه سره زر دراهم امانت وې فَعِنْدَهُ الْوَدِيعَةُ أَقْوَى نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ودیعت (امانت) زیات قوی دې وَعِنْدَهُمَا سَوَاءٌ والله اعلم

تشریح:- د زید وفات اوشو.او هغه زر درهم په ترکه کې پریخودل.نو یو سړی اوونیل.چه زید زما قرضدار وو.یعنی هغه باندې زما زر درهم پور وې.او دوهم سړی اوونیل.چه هغه سره زما زر درهم امانت وې.نو اوس به دچا قول معتبر وی؟ نو حضرات صاحبینو رحمهما الله اوفرمائیل.چه د پور او امانت دواړو یوه درجه ده.او دوی دواړه برابر دی.یعنی په موجوده زر درهمو کې به دواړه برابر شریکان وی.او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د پور نه امانت زیات قوی دې.نو موجوده زر درهم به د امانت والا ته ملاویږی.اوس پاتې شوه دا خبره چې ودیعت ولې زیات قوی دې.نو ددې خواب دا دې.چه پور خو واجب فی الذمه وی.عین سره ددې تعلق نشته.او د ودیعت تعلق عین سره دې.یعنی هم دا زر درهم دی.چه دا زما هغه سره ودیعت وو.په دې وجه امانت زیات قوی شمار کړې شوی دی.

**په دریمه برخه مال کښې مختلف قسمه وصیتونه راجمع کول.او ددې د ادا کولو مسئله**

(فَصْلٌ) دا فصل دې قَالَ وَمَنْ أَوْصَى بِوَصَايَا مِنْ حُقُوقِ اللَّهِ تَعَالَى قَالَ او چاچه وصیتونه اوکړل.مختلف وصیتونه، د حقوق الله خنې وَمَنْ أَوْصَى بِوَصَايَا مِنْ حُقُوقِ اللَّهِ تَعَالَى قُدِّمَتِ الْفَرَائِضُ مِنْهَا قَدَّمَهَا الْمُوصِي أَوْ أَخَّرَهَا مِثْلَ الْحَجِّ وَالزَّكَاةِ وَالْكَفَّارَاتِ نو ددې څخه به فرائض مقدم کولې شی.که موصی هغه مقدم کړې وی اوکه مؤخر کړې وی.لکه حج او زکاة او کفارات لِأَنَّ الْفَرِيضَةَ أَهَمُّ مِنَ النَّافِلَةِ وَالظَّاهِرُ مِنْهُ الْبُدَاءَةُ بِمَا هُوَ الْأَهَمُّ خکه چې فرض د نفلونو نه اهم دې.او ښکاره دا ده.چه موصی به د هغې نه پیل کړې وی.کوم چې اهم دې.

تشریح:- که د یوسړی وفات اوشی.او د هغه په ذمه د الله تعالی بعضې حقوق دی.مثلاً مونځ، یا روژه یا زکاة یا حج یا کفاره یا نذر یا صدقة فطر، نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی.مړ کیدونکی ددې په اړه کې څه وصیت کړې دې اوکه نه؟ که نه ئې دې کړې.نو په وارثانو باندې ددې اداکول واجب نه دی.بلکه وارثانو ته د اوښکلو او نه اوښکلو اختیار شته.او که دومبې صورت وی.یعنی هغه وصیت کړې وی.نو د مرحوم د ثلث مال څخه به دهغې اداکول واجب وی.بیا به د وصیتونو نه کوم وصیت مخکې کولې شی. نو په دې کې تفصیل دې.دغه وصیتونه به یا د الله تعالی حقونه وی.یا به د بنده ګانو حقونه وی.او کوم چې د الله تعالی حقونه دی.هغه به یا واړه وصیتونه په فرائضو کې داخل وی.لکه زکاة او حج او روژه، او مونځ، یا به واړه په واجباتو کې داخل وی.لکه کفارات او نذر او صدقة فطر، یا به واړه وصیتونه په نفلو کې داخل وی.لکه د نفی حج وصیت، او په فقیرانو باندې د صدقې وصیت، نو که وصی دا واړه وصیتونه جمع کړې وی.نو که د موصی ثلث مال د ټولو وصیتونو نافذ کاوه لپاره کافی کیږی.نو دا واړه وصیتونه به نافذ کولې شی.او که د موصی ثلث مال ددې ټولو وصیتونو لپاره نه کافی کیږی.خو وارثانو اجازت ورکړو.چه دا واړه وصیتونه نافذ کړې شی.نو دا واړه به نافذ کولې شی.

او که وارثانو اجازت ورنکړو.نو اوس به کتلې شی.چه دا واړه وصیتونه په فرائضو کې داخل دی او که نه دی؟ که واړه فرائضو کې داخل وی.نو کوم وصیت چې موصی مقدم بیان کړې دې.د هغې څخه به پیل کولې شی.اوکه بعضې فرائض او بعضې غیر فرائض وی.نو مخکې به د فرائضو نه ابتداء کولې شی.اګرچه موصی په ذکر کې فرائض مؤخر کړی وی.او واجبات او تطوعات ئې مقدم کړې وی.

فرائض به ولې مقدم کولې شی؟ خکه چې فرائض د نفلو نه اهم دی.او ښکاره هم دا ده.چه د موصی مقصد هم اهم مقدم کول دی.خکه چې په کوم سړی باندې پور وی.هغه په عامه توګه (عام طور) باندې په خیراتونو او صدقو کې نه مشغولیږی.

**که ټول وصیتونه په قوت او درجه کښې برابر وی نو کوم یو به وړاندې کولای شی!**

لِأَنْ تَسَاوَتْ فِي الْقُوَّةِ نو كه واړه وصيتونه په قوت كي برابر وي يُبْدَأُ بِمَا قَدَّمَهُ الْمُوصِي إِذَا ضَاقَ عَنْهَا الثُّلُثُ نو ابتداء به دهغه وصيت نه كولى شى. كوم چې موصى مقدم كړې دې. كله چې ثلث ددې ټولو وصيتونو نه تنګ (كم) شى لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالْأَهَمِّ ځكه چې ښكاره هم دا ده. چه موصى به د اهم نه ابتداء كوى

تشريح:- كه واړه وصيتونه په قوت كي برابر دى. مثلاً واړه د فرائضو ځنې دى. يا واړه د واجباتو ځنې دى. يا واړه د نفلونو ځنې دى. نو دغه وخت به هغه وصيت مقدم كولې شى. كوم چې موصى مقدم بيان كړې دې. او دا تفصيل هغه وخت دې. كله چې ثلث ددې ټولو وصيتونو لپاره ناكافى شى. ځكه چې د موصى د بيان نه هم دا ښكاره كيږى. چه ده هغه وصيت مقدم كړې دې. كوم چې دده په نيز اهم دې.

وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّهُ يَبْتَدِئُ بِالزَّكَاةِ او طحاوى رحمه الله ذكر كړى دى. چه د زكاة ځخه به ابتداء كولاى شى وَيُقَدِّمُهَا عَلَى الْحَجِّ او دا به په حج باندې مقدم كولاى شى وَهُوَ إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله او هم دا د امام ابويوسف رحمه الله نه په دوو روايتونو كي يو روايت دې وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ أَنَّهُ يُقَدِّمُ الْحَجَّ او د امام ابويوسف رحمه الله نه په دوهم روايت دا دې. چه حج به مقدم كولاى شى وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رحمه الله او هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې.

تشريح:- امام طحاوى رحمه الله ذكر كړى دى. كه زكاة او حج دواړه جمع شى. او دا دواړه په فرائضو كي داخل دى. بيا به هم زكاة په حج باندې مقدم كولې شى. او دا كوم چې امام طحاوى رحمه الله ذكر كړى دى. دا د امام ابويوسف رحمه الله نه په دوو روايتونو كي يو روايت دې. چه زكاة به په حج باندې مقدم كولې شى. او د امام ابويوس رحمه الله دوهم روايت او هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې. دا دې. چه حج به په زكاة باندې مقدم كولې شى.

فائده• كيداې شى چې مرغينانى رحمه الله ته څه داسې روايت ملاو شوې وى. چه امام محمد رحمه الله حج په زكاة باندې مقدم ګرځوى. ① ګنى امام قدورى رحمه الله په شرح مختصرالكرخى كي ② صاحب د تحفة او شيخ ابونصر رحمه الله په شرح الاقطع كي د امام محمد رحمه الله قول دا بيان كړې دې. چه ددوى په نيز به زكاة په حج باندې مقدم كولې شى. ③ شمس الائمه سرخسى رحمه الله په شرح كافى كي او شمس الائمه بيهقى رحمه الله په كفايه كي

## په زكاة او حج كښې به كوم يو مقدم كولاې شى؟

وَجْهُ الْأُولَى أَنَّهُمَا وَإِنِ اسْتَوَيَا فِي الْفَرِيضَةِ فَالزَّكَاةُ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّ الْعِبَادِ فَكَانَ أَوْلَى د ړومبى روايت دليل دا دې. چه دا دواړه اګرچه په فرضيت كي برابر دى. نو زكاة سره د بنده ګانو حق متعلق دې. نو زكاة به اولى وى وَجْهُ الْأُخْرَى أَنَّ الْحَجَّ يُقَامُ بِالْمَالِ وَالنَّفْسِ وَالزَّكَاةُ بِالْمَالِ قَصْرًا عَلَيْهِ فَكَانَ الْحَجُّ أَقْوَى د دوهم روايت دليل دا دې. چه حج په مال او جان (بدن) سره ادا كولې شى. او زكاة صرف په مال سره ادا كولې شى. ( چې دا په مال باندې مقصود او منحصردې). نو حج به زيات قوى وى

تشريح:- په زكاة او حج كي به كوم يو مقدم كولې شى. په دې كي دوې (دوه) روايتونه دى. د ړومبى روايت وجه دا ده. چه زكاة اوحج اګرچه دواړه فرض دى. خو زكاة سره د الله تعالى حق كيدو سره سره د بنده ګانو حق متعلق شوې دې. ځكه به زكاة په حج باندې مقدم كولې شى. او د دوهم روايت وجه دا ده. چه حج په مال او جان سره ادا كولې شى. او زكاة صرف په مال سره ادا كيږى. په دې وجه حج د زكاة نه زيات قوى شو. نو حج به د زكاة نه مقدم كولې شى.

ثُمَّ تُقَدَّمُ الزَّكَاةُ وَالْحَجُّ عَلَى الْكَفَّارَاتِ لِمَزِيَّتِهِمَا عَلَيْهَا فِي الْقُوَّةِ بيا به زكاة او حج په ټولو كفاراتو باندې مقدم وى. ددې دواړو د فضيلت په وجه، په كفاراتو باندې په قوت كي إِذْ قَدْ جَاءَ فِيهِمَا مِنَ الْوَعِيدِ مَا لَمْ يَأْتِ فِي الْكَفَّارَاتِ ځكه چې ددې دواړو په اړه كي داسې وعيدونه (او عذابونه) دى. چه دا په كفاره كي نشته. وَالْكَفَّارَةُ فِي الْقَتْلِ وَالظِّهَارِ وَالْيَمِينِ مُقَدَّمَةٌ عَلَى صَدَقَةِ الْفِطْرِ او كفاره د قتل او كفاره د ظهار او كفاره د قسم به په صدقة فطر باندې مقدم كولاى شى لِأَنَّهُ



عُرِفَ وُجُوبُهَا دُونَ صَدَقَةِ الْفِطْرِ ځكه چې ددې كفاراتو وجوب د قرآن نه معلوم شوې دې. چه د صدقة فطر (حكم د قرآن نه معلوم) نه دې.

تشريح:- بيا زكاة او حج او كفارات اګرچه واړه فرائضو كي داخل دى. خو په كفاراتو به زكاة او حج مقدم كولې شى. ځكه چې د زكاة او حج په اړه كي كوم وعيدونه وارد شوى دى. هغه په كفاراتو كي نه دى وارد شوى. بيا كفاره د قتل، او كفاره د ظهار او كفاره د قسم، دا واړه به په صدقة فطر باندې مقدم وى. ځكه چې ددې كفاراتو وجوب د قرآن نه معلوم شوې دې. او د صدقة فطر وجوب د قرآن نه نه دې معلوم شوې. بلكه د حديث نه معلوم شوې دې.

## صدقة الفطر به د قربانئ نه مقدم كولاې شى

وَصَدَقَةُ الْفِطْرِ مُقَدَّمَةٌ عَلَى الْأُضْحِيَةِ لِلِاتِّفَاقِ عَلَى وُجُوبِهَا بِالْقُرْآنِ وَالِاخْتِلَافِ فِي الْأُضْحِيَةِ او صدقة فطر په قربانئ مقدم ده. د صدقة فطر په وجوب باندې د اتفاق په وجه، او په قربانئ كي د اختلاف په وجه وَعَلَى هَذَا الْقِيَاسِ يُقَدَّمُ بَعْضُ الْوَاجِبَاتِ عَلَى الْبَعْضِ او هم په دې قياس باندې به بعضې واجبات په بعضو واجباتو باندې مقدم وى

تشريح:- او صدقة فطر به د قربانئ نه مقدم كولې شى. ځكه چې د صدقة فطر په وجوب باندې د فقهاو اتفاق دې. اوقربانئ په وجوب باندې د فقهاو اتفاق نشته. دغه ډول به په واجباتو كي بعضې په بعضو باندې مقدم كولې شى. نو صدقة فطر به په نذرونو باندې مقدم وى. ځكه چې صدقة فطر د الله تعالى په واجبولو سره واجب شوې ده. او نذرونه د بنده ګانو په واجبولو سره واجبيږى. او نذرونه او كفارات به قربانئ باندې مقدم وى. ځكه چې د قربانئ په وجوب كي اختلاف دې. خو د كفاراتو او نذرونو په وجوب كي اختلاف نشته. او قربانى به نوافلو باندې مقدم وى. بيا به كفاره د قتل په نورو كفاراتو باندې مقدم وى. ځكه چې كفاره د قتل د ټولو كفاراتو نه زياته قوى ده. هم دا وجه ده. چه په كفارې د قتل كي د آزادونكى غلام مومن كيدل شرط دى. بيا به كفاره د قسم په كفارې د ظهار باندې مقدم وى. ځكه چې د قسم د كفارې وجوب د الله تعالى دنوم د بې حرمتئ په وجه واجب شوې ده. او كفاره د ظهار ځكه واجب شوې ده. چه ده ښځه پخپل ځان باندې حرام كړې ده. نو كفاره د قسم به په كفارې د ظهار باندې زياته قوى وى.

قَالَ (وَمَا لَيْسَ بِوَاجِبٍ قُدِّمَ مِنْهُ مَا قَدَّمَهُ الْمُوصِي) لِمَا بَيَّنَّا امام قدورى رحمه الله فرمائيل. او كوم چې واجب نه دى. په هغې كي به هغه مقدم كولې شى. كوم چې موصى مقدم كړې دې. د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړې دې وَصَارَ كَمَا إِذَا صَرَّحَ بِذَلِكَ او داسې شوه. لكه چې موصى ددې صراحت كړې وى.

تشريح:- او وصيتونه چې كله د فرائضو او واجباتو ځنې نه وى. بلكه د نوافلو ځنې وى. نو كوم چې موصى مقدم بيان كړې دې. هم هغه به مقدم كولې شى. چه ددې وجه وړاندې تيره شوې ده. يعنى دا چې موصى به هم ددې نه پيل كوى. كوم چې د هغه په نيز اهم وى. او كه هغه ددې خبرې صراحت كوى. چه ما كوم وصيت مقدم كړې دې. هغه دې مقدم كړې شى. نو بيا دهغې مقدم كول ضرورى دى. نو دغه ډول به هلته كي هم مقدم كولې شى. كله چې ده صراحت نه وى كړې. خو په ذكر كي ئې هغه مقدم كړې وى.

## په حق الله او حق العبد كښې به كوم يو مقدم كولاې شى؟

قَالُوا: إِنَّ الثُّلُثَ يُقْسَمُ عَلَى جَمِيعِ الْوَصَايَا مَا كَانَ لِلَّهِ تَعَالَى وَمَا كَانَ لِلْعَبْدِ فقهاو فرمائيلى دى. چه ثلث به په ټولو وصيتونو باندې تقسيمولې شى. كوم چې د الله تعالى لپاره وى. اوكوم چې د بنده ګانو لپاره وى فَمَا أَصَابَ الْقُرَبَ صُرِفَ إِلَيْهَا عَلَى التَّرْتِيبِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ نو كوم چې د قرباتو په تله (حصه) كي راشى. هغه په قرباتو باندې، د هغه ترتيب مطابق خرچ كولې شى. كوم چې موږ ذكر كړې دې

تشريح:- ددې ځائې نه مرغينانى رحمه الله يوه نوې مسئله بيانوى. مثلاً زيد مختلف وصيتونه اوكړل. د زكاة دپاره، دحج دپاره، او د كفاراتو دپاره، او زيد دپاره، نو په دې كي ړومبنى درې واړه حقوق د الله دى. او څلورم وصيت حق د

بنده دي.نو په دې کي به څه صورت اختیارولې شي؟ نو وې فرمائیل.چه اول به د ثلث څلور حصې کولې شي.ددغه څلورو څخه به یوه برخه زید ته ورکولې شي.اوس پاته پاتې شوې درې حصې،نو په دې کي به هغه طریقه اختیارولې شي.کومه چي اوس بیان شوه.یعني ددې دریو وارو حصونه به په قرباتو کي زکاة مقدم کولې شي.که د زکاة ادا کاوه نه روسته څه مال بچ پاتې شي.نو بیا به حج د کفارې نه مقدم کولې شي.که د کفارې لپاره څه بچ پاتې شي.نو هغه به هم ادا کولې شي.ګني ( که مال پاته پاتې نشو) نو نه به شي ادا کولې.دا به څلور وصیتونه شمارلې شي.او د ثلث څخه به څلورې برخې جوړولې شي.دا به نه کیږي.چه د الله تعالی د حق په وجه به درې واړه یو ګڼرلې شي.او ثلث به په دوو برخو کي تقسیمولې شي.

اوس دا تقریر عبارت سره ملاو کړې.چه ثلث به په ټولو وصیتونو باندې تقسیمولې شي.یعني د حقوق الله او په حق العبد کي به د ټولو مجموعه جوړولې شي.

وَيُقْسَمُ عَلَى عَدَدِ الْقُرَبِ او ثلث به د قرباتو په عدد باندې تقسیمولې شي وَلَا يُجْعَلُ الْجَمِيعُ كَوَصِيَّةٍ وَاحِدَةٍ او واړه به د یو وصیت په مثل نشي ګرځولې لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ الْمَقْصُودُ بِجَمِيعِهَا رِضَا اللهِ تَعَالَى ځکه چي د ټولو قرباتو نه مقصود د الله تعالی رضامندي ده فَكُلُّ وَاحِدَةٍ فِي نَفْسِهَا مَقْصُودٌ فَتَنْفَرِدُ نو هر قربت پخپله مقصود دې.نو هر قربت به جلا وی كَمَا تَنْفَرِدُ وَصَايَا الْآدَمِيِّينَ لکه څنګه چي د مختلفو سړو وصیتونه جلا جلا وی.

**تشریح:-** او ثلث به ددې مجموعې په رؤسو ( افرادو) باندې تقسیمولې شي.او د ثلث کوم مقدار چي د حقوق الله په برخه کي راشي.نو ددې په مقدار کي به د حقوق الله نه هغه مقدم کولې شي.د کوم مقدم کول چي اوس وړاندې ذکر شوی دی.او ثلث به د قرباتو په عدد باندې تقسیمولې شي.دا به نه کیږي.چه واړه قربات یو اوګڼرلې شي.او په دوو باندې ویش کړې شي.اګرچه په حقوق الله کي د ټولو وصیتونو مقصود د الله تعالی رضا ده.خو هر قربت جلا جلا مقصود دې.نو هر یو به جلا جلا شمارلې شي.لکه چي د مختلفو سړو لپاره ئې وصیت کړې وی.نو واړه جلا جلا شمارلې کیږي.نو اوس به هم واړه قربات جلا جلا شمارلې شي.مثلاً زید د فقیرانو، مسکینانو، او مسافرو لپاره وصیت اوکړو.نو په دې کي به هر یو جلا جلا شمارلې شي.او د هر فریق به یوه یوه برخه اوښکلې شي.اګرچه د ټولو مقصود قربت دې.دغه ډول به په ټولو قرباتو کي هم هر قربت جلا جلا شمارلې شي.

**د حج وصیت به څنګه ادا کولای شي؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله او فرمائیل وَمَنْ أَوْصَى بِحَجَّةِ الْإِسْلَامِ و کوم کس چي د حج اسلام وصیت اوکړو أَحَجُّوا عَنْهُ رَجُلًا مِنْ بَلَدِهِ يَحُجُّ رَاكِبًا نو په وارثانو کي به دده د اړخه یوکس باندې حج کولې شي.د موصی د ښار نه، چي دې به په سپرلئ باندې حج کوی لِأَنَّ الْوَاجِبَ لِلّٰهِ تَعَالَى الْحَجُّ مِنْ بَلَدِهِ ځکه چي الله تعالی لپاره د هغه د ښار نه حج کول واجب دی وَلِهَذَا يُعْتَبَرُ فِيهِ مِنَ الْمَالِ مَا يَكْفِيهِ مِنْ بَلَدِهِ په دې وجه به په واجب حج کي دومره مال معتبر وی.کوم چي موصی لپاره د موصی د ښار نه کافي وی وَالْوَصِيَّةُ لِأَدَاءِ مَا هُوَ الْوَاجِبُ عَلَيْهِ او وصیت د هغه شئ ادا کاوه لپاره دې.کوم چي په موصی باندې واجب دې وَإِنَّمَا قَالَ رَاكِبًا لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ أَنْ يَحُجَّ مَاشِيًا او امام قدوري رحمه الله راکباً اوفرمائیل.ځکه چي په موصی باندې پیدل حج کول لازم نه دی فَانْصَرَفَ إِلَيْهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي وَجَبَ عَلَيْهِ نو حج به د غیر په اړخ په هغه طریقه باندې ګرځولې شي.په کومه طریقه چي موصی باندې واجب دې.

**حل اللغة:** ① ماشیا: پیدل ② راکبا: سور

**تشریح:-** په زید باندې حج فرض دې.هغه په مرض الوفات کي وصیت اوکړو.چه زما د اړخه حج اوکړئ.نو په داسې صورت کي به وارثانو باندې واجب وی.چه دهغه د مال نه حج اوکړي.او یو سړې منتخب کړي.چه هغه د موصی د ښار نه حج اوکړي.او دا حج به پیدل تللو سره نه کوی.بلکه په سوریدو به ئې کوی.ځکه چي په زید باندې هم چي کوم حج فرض وو.هغه د خپل ښار نه واجب وو.هم دا وجه ده.چه په زید به هغه وخت حج فرض وی.کله چي هغه سره دومره مال وی؛کوم چي دهغه د ښار نه حج کاوه لپاره کافي وی.ګني که د لارې خرچ او سورلی نه وی.نو په



زید به د استطاعت نه کیدو په وجه حج فرض نه وی.نو هرکله چي په زید باندې حج ادا کول د خپل ښار نه واجب دي.او دهغه د مرګ نه روستو چي په کوم سړي باندې حج کولې شي.دا هم دهغه حج ادا کول دی.کوم چي په زید باندې واجب دي.او په زید باندې د خپل ښار نه حج کول واجب وو.نو دې به هم د زید د ښار نه حج کوی.او دا غیر چي کوم حج کوی.په سپرلئ باندې به ئې کوی.ځکه چي په زید باندې پیدل تللو سره حج کول لازم نه وو.بلکه په سوریدو باندې واجب وو.نو په غیر باندې به هم حج په هغه طریقه ادا کول واجب وی.په کومه طریقه چي په زید باندې واجب وو.

**که د ثلث مال نه د حج وصیت نشي پوره کیدای نو څه حکم دي؟**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل فَإِنْ لَمْ تَبْلُغِ الْوَصِيَّةُ النَّفَقَةَ نو که مقدار د وصیت د حج د نفقې لپاره کافي نه وی أَحَجُّوا عَنْهُ مِنْ حَيْثُ تَبْلُغُ نو وارثان دې د هغه د اړخه دهغه ځائې نه حج اوکړي.د کوم ځائې نه چي رسیدې شي وَفِي الْقِيَاسِ لَا يُحَجُّ عَنْهُ او په قیاس کي به د موصی د اړخه حج نشي کولې لِأَنَّهُ أَمَرَ بِالْحَجَّةِ عَلَى صِفَةٍ عَدِمْنَاهَا فِيهِ

**تشریح:-** وړاندې دا خبره ډیر خل تیره شوې ده.چه وصیت د مړي په ثلث مال کي نافذ کیږي.ددې نه په زیات کي نه نافذ کیږي.نو که مریض وصیت اوکړو.چه زما د مال نه دې حج اوکړې شي.خو دده سره دومره مال نشته.چه په هغې سره حج اوکړې شي.نو په داسې صورت کي چي د کوم ځائې نه حج کیدای شي.د هغه ځائې څخه به کولې شي.مثلاً دومره مال شته.چه په هغې سره د دیوبند نه حج نشي کیدې.البته د بمبئ نه حج کیدای شي.نو د بمبئ څخه به حج کولې شي.او دا حکم استحساناً دې.ګني د قیاس تقاضا دا ده.چه اوس د موصی د اړخه د سره حج اونکړې شي.ځکه چي دهغه د وصیت مقصد دا دې.چه د دیوبند نه حج اوکړې شي.ځکه چي موصی د دیوبند اوسیدونکې دې.او د دیوبند نه په دومره مال سره حج نشي کیدې.نو هغه وصف د سره اونه موندې شو.کوم چي موصی بیان کړې دی.

غَيْرَ أَنَّا جَوَّزْنَاهُ ځکه چي موصی د حج کاوه حکم ورکړو.په داسې صفت باندې چي په دې مال کي موږ دا صفت نه بیا مومو.علاوه ددې خبرې نه چي موږ دا جائز ګرځولې ده لِأَنَّا نَعْلَمُ أَنَّ الْمُوصِيَ قَصَدَ تَنْفِيذَ الْوَصِيَّةِ فَيَجِبُ تَنْفِيذُهَا مَا أَمْكَنَ ځکه چي موږ ته معلومه ده. چي موصی د وصیت نافذ کاوه وعده کړې ده.نو ترکومه پورې چي ممکنه وی د اصل نافذ کول به واجب وی وَالْمُمْكِنُ فِيهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او په دې کي هغه طریقه ممکن ده.کومه چي موږ ذکرکړې ده وَهُوَ أَوْلَى مِنْ إِبْطَالِهَا رَأْسًا او دا بالکل د وصیت باطلولو نه غوره ده وَقَدْ فَرَّقْنَا بَيْنَ هَذَا وَبَيْنَ الْوَصِيَّةِ بِالْعِتْقِ مِنْ قَبْلُ او ددې په منځ او په منځ د وصیت کي وړاندې توپیر بیان کړې دی.

**تشریح:-** خو موږ استحساناً دا جائز ګرځولې دې.ځکه چي موږ ته دا خبره معلومه ده.چه د موصی مقصد دا دې.چه دده وصیت نافذ اوکړې شي.نو ترکومه پورې چي ممکنه وی.د هغه وصیت نافذ کول واجب دی.او کومه طریقه چي بیان کړې شوې ده.دا طریقه ممکن ده.نو هم دا به اختیارولې شي.او د امکان حده پورې وصیت نافذ کول د مطلق وصیت باطلولو نه افضل دی.او په تیر شوی سبق کي دا بحث تیر شوې دې.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز حج په وصیت کاوه کي او د غلام د آزادولو په وصیت کي څه توپیر دې؟

**د حاجی په لاره کښې مړکیدل او د حج وصیت کولو مسئله**

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ خَرَجَ مِنْ بَلَدِهِ حَاجًّا و کوم سړې چي د حج په ارادې د پخل ښار نه اووتلو فَمَاتَ فِي الطَّرِيقِ نو هغه په لاره کي مړ شو وَأَوْصَى أَنْ يُحَجَّ عَنْهُ و دا وصیت ئې اوکړو.چه دده د اړخه حج اوکړې شي يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ بَلَدِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ نو دده د اړخه به دده د ښار نه حج کولې شي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز،او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ اسْتِحْسَانًا او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلي دی.چه دهغه ځائې څخه به حج کولې شي.کوم ځائې ته چي هغه رسیدلې وو.د احسان په بناء باندې

**تشریح:-** زيدد خپل کور نه اووتلو.او صرف د حج په ارادې سره اووتلو.تجارت وغيره مقصد ئې نه وو.او هغه په لاره کې مړ شو.او دا وصيت ئې اوکړو.چه زما د اړخه حج اوکړې شي.نو دده د اړخه به حج کولې شي.خو اختلاف په دې کې دې.چه دا حج به د کوم ځائې نه کولې شي.د مړکيدونکي د ښار نه، اوکه د هغه ځائې نه کوم ځائې چې دهغه انتقال شوې دې؟ نو امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله قول دا دې.چه د زيد د ښار نه حج اوکړې شي.او حضرات صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه چرته د زيد وفات شوې دې.د هغه ځائې ښخه به د زيد د اړخه حج کولې شي.او صاحبينو رحمهما الله دا حکم استحساناً فرمائيلي دې.او د

**وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا مَاتَ الْحَاجُّ عَنْ غَيْرِهِ فِي الطَّرِيقِ** او هم په دې اختلاف ( مبني) ده.کله چې د غير د اړخه حج کونکې په لاره کې مړ شي.

**تشریح:-** او دغه ډول که زيد د حج وصيت کړې وو.او وارثانو د هغه د اړخه يو سړې د حج لپاره اوليګلو.خو د هغه په لاره کې انتقال اوشو.نو اوس به د هغه په ځائې بل کس حج کاوه لپاره ليګلې شي.خو دا دوهم کس به د کوم ځائې نه ليګلې شي؟ نو امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله فرمائي.چه د زيد د ښار ښخه به ليګلې شي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به دهغه ځائې نه ليګلې شي.کوم ځائې چې د هغه وفات شوې دې.

## د صاحبينو او د امام ابوحنيفه رحمهم الله دليل

**لَهُمَا أَنَّ السَّفَرَ بِنِيَّةِ الْحَجِّ وَقَعَ قُرْبَةً** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دحج په نيت سره سفر قربت واقع شوې دې **وَسَقَطَ فَرْضُ قَطْعِ الْمَسَافَةِ بِقَدْرِهِ** او د هغې په اندازه د مسافه کولو(او لاره وهلو) فريضه ساقط شوې ده **وَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ** او د هغې اجر په الله تعالى باندې واجب شوې دې **فَيَبْتَدِئُ مِنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ كَأَنَّهُ مِنْ أَهْلِهِ** او د ځائې ښخه به پيل کولې شي.ګويا چې هغه هم دغه ځائې اوسيدونکې دې.په خلاف د **بِخِلَافِ سَفَرِ التِّجَارَةِ** نو هم ددغه تجارت د سفر **لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ قُرْبَةً** ځکه چې هغه قربت نه دې واقع شوې **فَيُحَجُّ عَنْهُ مِنْ بَلَدِهِ** نو دده د اړخه به دده د ښار نه حج کولې شي

**تشریح:-** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه هرکله موصى د سفر په ارادې سره وتلې دې.نو د هغه چې ځومره سفر پوره شوې دې.دا قربت دې.او په هغه باندې د خپل ښار نه حج کول واجب وو.خو کوم سفر چې هغه پوره کړې دې.دغومره فريضه د هغه د ذمې نه ادا شوې ده.او د هغې ثواب هغه ته ملاو شوې دې.نو اوس به دوهم سړې ددغه ځائې نه حج لپاره ليګلې شي.اوداسې به ګڼړلې شي. چې موصى هم ددې ځائې اوسيدونکې دې.او هرکله چې هغه ددغه ځائې اوسيدونکې شمار کړې شو.نو دهغه د اړخه به هم ددغه ځائې نه حج کول واجب وي.البته که د تجارت په غرض سره سفر کوي.او په منځ کې دهغه وفات اوشي. او هغه دا وصيت کړې وي.چه زما د اړخه حج اوکړې شي.نو دده د اړخه به بالاتفاق دده دښار نه حج کاوه واجب وي.ځکه چې دده سفر هيڅ قربت نه دې واقع شوې.نو د هغه د اړخه به د هغه د ښار نه حج کولې شي.

**وَلَهُ** او دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې **الْوَصِيَّةَ تَنْصَرِفُ إِلَى الْحَجِّ مِنْ بَلَدِهِ** چې وصيت به راګرځولې شي.د هغه د ښار نه حج کاوه اړخ ته **عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ** د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړې دې **أَدَاءً لِلْوَاجِبِ عَلَى الْوَجْهِ** په واجب ادا کاوه سره، په هغه طريقه **الَّذِي وَجَبَ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ** سکوم چې واجب شوې دې.والله اعلم.

**تشریح:-** اود اما ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه هرکله هغه د حج پوره کاوه نه وړاندې مړ شو.نو د هغه وتل به د غيرحج لپاره شمارلې شي.نو داسې شوه.لکه څنګه چې د سوداګر د مرګ حکم دې.نو اوس به داسې ګڼړلې شي.لکه چې ده په ابتداء کې د حج وصيت کړې دې.او وړاندې دا خبره تيره شوې ده.چه کله د حج وصيت اوکړې شي.نو د موصى د ښار نه حج کول واجبيږي.لکه څنګه چې واجب وو.هم هغه شان دا ادا کړې شي.

## (بَابُ الْوَصِيَّةِ لِلْأَقَارِبِ وَغَيْرِهِمْ)

**ژباړه:-** ( دا) باب د اقاربو ( خپلوانو) او غير اقاربو (پردو) لپاره د وصيت کاوه ( په بيان کې ) دې.



**تشریح:-** په دې باب کې ديو مخصوص قوم لپاره د وصيت ذکر دې.او په تيرو شوو بابونو کې عموم دې. اوپه دې کې خصوص دې.او عموم په خصوص باندې مقدم وي.په دې وجه دا باب روستو کړې شوې دې

## د ګاونډي مصداق

**قَالَ** امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل **وَمَنْ أَوْصَى لِجِيرَانِهِ** او چاچه د خپلو ګاونډيانو لپاره وصيت اوکړو **فَهُمُ الْمُلَاصِقُونَ** نو هغوى به ملاصق ( مولښتي ) وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله **وَقَالَا: هُمُ الْمُلَاصِقُونَ** و صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه دوى ملاصقون دي **وَغَيْرُهُمْ مِمَّنْ يَسْكُنُ مَحَلَّةَ الْمُوصِي وَيَجْمَعُهُمْ مَسْجِدُ الْمَحَلَّةِ** او ددوى نه علاوه هغه خلګ دي.کوم چې د موصى په محله کې اوسيږي.او کوم چې د محلې جمات راجمع کوي

**تشریح:-** زيد وصيت اوکړو.چه زما د مال ثلث زما ګاونډيانو لپاره دې.نو ددې ښخه به کوم ګاونډي مراد وي. ځکه چې د ګاونډيانو مختلف قسمونه دي.يو ګاونډي د قرابت، چې هغه سره د قرابت ګاونډتوب وي.او بل ګاونډتوب د زمکې دې.يعنى د زمکې ګاونډي، او دريم ګاونډتوب د کور دې.يعنى د کور ګاونډي، او دلته بالاتفاق د ګاونډي نه مراد ګاونډتوب د قرابت دې.او د زمکې ګاونډتوب مراد نه دې.البته د کور ګاونډتوب مراد ... بيا ددې په تفسير کې اختلاف دې.نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه د جيران ( ګاونډي) نه مراد هغه ګاونډيان دي.چه د هغه کور د موصى کور سره متصل ( مولښتي ) او ملاو شوې وي.که ددوى دروازې نږدې وي.اوکه لرې وي.او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه د ګاونډيانو نه مراد ملاصقين هم دي.( دچا کوروڼه چې دده سره مولښتي لګيدلي دي).او ور سره ور سره هغه خلګ هم په دې کې داخل دي.کوم چې د موصى په محله کې اوسيږي.او کوم خلګ چې دده د جمات لمونځ ګزار دي.

## استحساني دليل

**وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ** او دا استحسان دې **وَقَوْلُهُ قِيَاسٌ** او د امام ابوحنيفه رحمه الله قول قياس دې **لِأَنَّ الْجَارَ مِنَ الْمُجَاوَرَةِ** ځکه چې جار (ګاونډي) د مجاورت (ګاونډتوب) نه مشتق دې **وَهِيَ الْمُلَاصَقَةُ حَقِيقَةً** او مجاورت په حقيقت کې ملاصق دې **وَلِهَذَا يَسْتَحِقُّ الشُّفْعَةَ بِهَذَا الْجِوَارِ** په دې وجه ګاونډي ددې ګاونډ په وجه د شفعې مستحق کيږي **وَلِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ صَرْفُهُ إِلَى الْجَمِيعِ يُصْرَفُ إِلَى أَخَصِّ الْخُصُوصِ** او ځکه چې کله د وصيت دټولو ګاونډيانو اړخ ته ورګرځول متعذر دي.نو دا به اخص الخصوص اړخ ته ګرځولې شي **وَهُوَ الْمُلَاصِقُ** او اخص الخصوص ملاصق ګاونډي دې.

**تشریح:-** د صاحبينو رحمهما الله قول استحسان دې.او د امام ابوحنيفه رحمه الله قول قياس دې.د قياس دليل دا دې. چې جار د مجاورت نه مشتق دې.او مجاورت په حقيقت کې ملاصقت ( يوځائې والى) ته وائي.نو دچا کور چې موصى سره متصل دې.وصيت به هغوى لپاره وي.او مولښتي ګاونډي د ګاونډتوب په وجه د شفعې مستحق کيږي.نور خلګ به د شفعې نه مستحق کيږي.او دويمه وجه دا هم ده.چه ټولو ګاونډيانو اړخ ته وصيت ورګرځول متعذر دي.ځکه چې ګاونډتوب د قرابت اوګاونډتوب دزمکې په دې کې داخل نه دې.بلکه په دې کې تخصيص کړې شوې دې.نو دا به اخص الخصوص اړخ ته ورګرځولې شي .او اخص الخصوص مولښتي ګاونډي دې.

**وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ هَؤُلَاءِ كُلَّهُمْ يُسَمَّوْنَ جِيرَانًا عُرْفًا** د استحسان دليل دا دې.چه دا واړه ( د يوې محلې) خلګ په عرف کې ګاونډيان شمارلې شي **وَقَدْ تَأَيَّدَ بِقَوْلِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** او د رسول الله ﷺ د فرمان نه ددې تائيد کيږي. {**لَا صَلَاةَ لِجَارِ الْمَسْجِدِ إِلَّا فِي الْمَسْجِدِ**} [1] چې ،، د جمات د ګاونډي لمونځ نه کيږي.خو په جمات کې **وَفَسَّرَهُ بِكُلِّ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ** او ددې تفسير(حضرت على رضي الله عنه) کړې دې.په هر هغه سړى سره ،،کوم چې آذان واورى **وَلِأَنَّ الْمَقْصِدَ بِرُّ الْجِيرَانِ** او ځکه چې د وصيت مقصد ګاونډيانو سره ښيګڼه (ښيګړه) کول دي **وَاسْتِحْبَابُهُ يَنْتَظِمُ الْمُلَاصِقَ وَغَيْرَهُ** او ددې استحباب ملاصق ( که

[1]) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه الدارقطني في سننه (۴۲۰۱۱) والحاكم في المستدرک (۲۴۶۱۱)_

یو خاني مولبنتي وی اوکه نه وی) دواړو ته ګډ دي. اِلَّا أَنَّهُ لَابُدَّ مِنَ الْاِخْتِلَاطِ خو اختلاط ضروری دي وَذٰلِكَ عِنْدَ اتِّحَادِ الْمَسْجِدِ او اختلاط به د جمات د اتحاد په وخت کیږی.

**تشریح:-** دا د استحسان دلیل دي. چه په عرف کي هغه ټولو خلګو ته ګاونډیان ونیلي شی. کوم چي په یوه محله کي اوسیږی. او په یو جمات کي لمونځ کونکی وی. او په یو حدیث سره ددي تائید کیږی. حدیث کي دی. «لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد» یعنی د جمات د ګاونډی لمونځ به صرف په جمات کي کیږی. نو دلته د جمات د ګاونډی نه هغه کس مراد نه دي. چه دهغه کور جمات سره متصل (مولبنتی) دي. بلکه هر هغه سړي مراد دي. کوم کس چي دجمات آذان اوری. او د حضرت علی رضی الله عنه نه ددي هم دا تفسیر رانقل شوي دي. او د موصی مقصد دا دي. چه خپلو ګاونډیانو سره ښه سلوك (او احسان) اوکړی. او دا مستحب امر دي. خود نیکئ کاوه دا استحباب صرف د ملاصق (او مولبنتی ګاونډی) لپاره مخصوص نه دي. بلکه ملاصق او غیر ملاصق دواړو ته ګډ دي. خوپه موصی او موصی له کي څه نا څه اختلاط کیدل پکار دي. نو د جمات د یو والی په وجه اختلاط ثابت دي.

## د ګاونډی په اړه کښي د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر

وَمَا قَالَهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: الْجِوَارُ إِلٰى أَرْبَعِينَ دَارًا بَعِيدٌ او کومه خبره چي امام شافعی رحمه الله فرمائیلي ده. چه ګاونډتوب څلویښتو کورونو پوري دي. دا خبره لرې ده وَمَا يُرْوٰى فِيهِ ضَعِيفٌ (¹) اوپه دي اړه کي چي کوم حدیث نقل کولي شی. هغه ضعیف دي. قَالُوا: وَيَسْتَوِي فِيهِ السَّاكِنُ وَالْمَالِكُ وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى وَالْمُسْلِمُ وَالذِّمِّيُّ او مشائخو رحمهم الله فرمائیلي دی. چه، اوپه دي کي اوسیدونکي (کرایه دار) او مالك، او سړي او ښځه، او مسلمان او ذمی، واړه برابر دی لِأَنَّ اسْمَ الْجَارِ يَتَنَاوَلُهُمْ ځکه چي لفظ د جار (ګاونډی) دوی ټولو ته ګډ دي وَيَدْخُلُ فِيهِ الْعَبْدُ السَّاكِنُ عِنْدَهُ لِإِطْلَاقِهِ او په دي کي اوسیدونکي غلام داخل دي. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د جار مطلق کیدو په وجه وَلَا يَدْخُلُ عِنْدَهُمَا او د صاحبینو رحمهما الله په نیز داخل نه دي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَهُ وَصِيَّةٌ لِمَوْلَاهُ وَهُوَ غَيْرُ سَاكِنٍ ځکه چي دغلام لپاره وصیت به دده د آقا لپاره وصیت وی. حالانکه آقا اوسیدونکي (رهانشی) نه دي.

**تشریح:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه ګاونډتوب څلویښتو کورونو پوري دي. یعنی دهر اړخه لسولسو کورونو پوري، او داسي حدیث هم شته. چه د هغي نه امام شافعی رحمه الله استدلال کړي دي. نو د هغي په اړه کي مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل. چه د امام شافعی رحمه الله دا خبره د قیاس نه لرې ده. او کوم حدیث چي دوی پیش کړي دي. دا حدیث ضعیف دي. بیا په دواړو اقوالو کي ګاونډتوب کي هغه کس داخل دي. کوم چي په دي کي کور یا محله کي مالکانه حیثیت سره اوسیږی. اوکه د عاریت وغیره په طریقه باندي اوسیږی. او که هغه سړي وی او که ښځه وی، اوکه مسلمان وی اوکه ذمی وی. ځکه چي په لفظ د جار (ګاونډی) کي دا واړه داخل دی. او که څوك غلام اوسیږی. او د هغه کور د موصی کور سره مولبنتی وی. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دغه غلام هم په وصیت کي داخل وی. ځکه چي د ګاونډتوب په اطلاق کي غلام هم داخل دي. او صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه اوسیدونکي غلام به نه داخلیږی. او د وصیت حقدار به نه وی. ځکه که غلام لپاره وصیت جائز اومنلي شی. نو دا وصیت به دده د آقا لپاره شی. حالانکه هغه دلته نه اوسیږی. او نه هغه د موصی ګاونډی دي.

## د سخرګنئ رومبي مصداق

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصٰى لِأَصْهَارِهِ و چاچه د خپل اصهار (سخرګنئ) لپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ لِكُلِّ ذِي رَحِمٍ مُحَرَّمٍ مِنِ امْرَأَتِهِ نو وصیت به دده د ښځي هر ذی رحم محرم لپاره وی

**حل اللغة:** ① اصهار: سخرګنئ.

¹) قال الزيلعي رحمه الله روى مسندا ومرسلاً فالمسند فيه عن كعب بن مالك أخرجه الطبراني في معجمه وأما المرسل فرواه أبوداود في المراسيل (نصب: ٤١٥/٤)ـ



**تشریح:-** یو سړی د خپلي سخرګنئ لپاره وصیت اوکړو. نو په دي وصیت کي به کوم خلګ داخل وی. نو وي فرمائیل. چه د ښځي واړه ذو رحم محرم به په دي کي داخل وی. یعنی دده د ښځي د قرابت د خلګو (رشته دارانو) هغه سړی به داخل وی. چه د هغوی رشته ددي ښځي سره د نسب په طور داسي وی. چه هغه شرعاً ددي محرم وی. یعنی دده (موصی) ښځي ته د هغوی سره همیشه لپاره نکاح حرام وی. لکه د ښځي پلار، او رور، او ماما، او اکا (تره) وغیره. نو د ښځي داسي رشته داران ددي د میړه اصهار (سخرګنئ) ده. او دا د عربو عرف دي. او زموږ په ملك کي د صهر ژباړه په سخر سره کولي شی.

لِمَا رُوِيَ "{أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لَمَّا تَزَوَّجَ صَفِيَّةَ په دي وجه چي نقل دي. چه نبی کریم ﷺ کله د صفیه رضی الله عنها سره نکاح اوکړله أَعْتَقَ كُلَّ مَنْ مَلَكَ مِنْ ذِي رَحِمٍ مُحَرَّمٍ مِنْهَا إِكْرَامًا لَهَا} نو هر کس آزاد کړو. کوم کس چي د هغي د ذی رحم محرم مالك وو. د صفیة رضی الله عنها په اکرام (او اعزاز) کي وَكَانُوا يُسَمَّوْنَ أَصْهَارَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (¹) او دغه خلګو ته به د نبی ﷺ په اصهار سره نوم اخستلي شو وَهٰذَا التَّفْسِيرُ اخْتِيَارُ مُحَمَّدٍ وَأَبِي عُبَيْدَةَ او دا تفسیر د امام محمد رحمه الله او د ابوعبیده رحمه الله مختار دي.

**تشریح:-** په دي باندي مرغینانی رحمه الله د یو روایت حواله ورکړي ده. چه کله نبی کریم ﷺ د حضرت صفیة رضی الله عنها سره نکاح اوکړله. نو ددي ذی رحم محرم چي د کوم صحابی رضی الله عنه په ملکیت کي وو. هغه د صفیة رضی الله عنها په اکرام کي هغه آزاده کړو. او دغه خلګو ته به د نبی کریم ﷺ سخرګنئ ونیلي شوه. او د سخرګنئ نه دا خلګ مراد دی. دا تفسیر امام محمد رحمه الله او ابوعبیده رحمه الله اختیار کړي دي.

تنبیه ① ۞ دلته مرغینانی رحمه الله د صفیه رضی الله عنها ذکر کړي دي. چه دا د خیبر په یهودو کي معززه وه. کله چي خیبر فتح کړي شو. نو دا ګرفتاره راوستلي شوه. او نبی کریم ﷺ دوی د خپل ځان لپاره منتخب کړل. او بیا ئي آزاده کړله. او په دي کي آزادئ کي هغي سره نکاح اوکړله. او د خیبر یهود ئي آزاد کړل. او د زمیدارئ په طور ئي په اجاره باندي ترکومه پوري چي اوغوښتل. پرېږ ئي خودل. نو د صفیة رضی الله عنها رشته دار (ذی رحم محرم) ئي په ذکر شوي طریقه باندي آزاد نکړل. نو (معلومه شوه چه) دلته د صفیه رضی الله عنها ذکر سهواً شوي دي.

② او په حقیقت کي دا واقعه د جویریه بنت الحارث ده. د هغي واقعه دا ده. چه د جویره رضی الله عنها پلار د بنومصطلق (قبیلي) سردار وو. کله چي د بنو مصطلق سره جهاد اوکړي شو. او هغوی قید کړي شو. نو جویریه رضی الله عنها هم قیدی راوستلي شوه. او دا د ثابت بن قیس رضی الله عنه یا ددوی د اکا (تره) د ځوئی په برخه کي راغلله. او دوی (جویریة رضی الله عنها) خپل ځان مکاتبه کړل. او جویریه رضی الله عنها ډیره ښائسته وه. لنډیز د کلام دا چي جویره رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ په خدمت کي راغلله. عرض ئي اوکړو. چه ای د الله رسوله ﷺ! زه جویریه بنت الحارث یم. او کومه واقعه چي ما سره اوشوه. هغه ستا نه پټه نه ده. او زه د ثابت بن قیس رضی الله عنه په برخه کي راغلي یم. نو ما خپل ځان مکاتبه کړي دي. نو زه ستا په دربار کي ددي لپاره حاضره شوي یم. چه ستاسو نه د کتابت ادا کاوه په اړه کي سوال اوکړم. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چه ته ددي نه افضل غواړي. هغي اوونیل. هغه څه دی. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. چه زه ستا بدل کتابت ادا کړم. او تا سره نکاح اوکړم. هغي دا منظوره کړله. او نبی کریم ﷺ بدل کتابت ادا کړو. او دوی د هغي سره نکاح اوکړله. کله چي خلګو ته دا معلومه شوه. چه نبی کریم ﷺ د جویریه رضی الله عنها سره نکاح کړي ده. نو د بنومصطلق نه چي چا په برخه کي کوم قیدی مملوك وو. دوی هغه آزاد کړو. او وې ونیل. چه دا خلګ خو اوس د نبی کریم ﷺ اصهار (سخرګنئ) دی.

## دوهم مصداق

وَكَذَا يَدْخُلُ فِيهِ كُلُّ ذِي رَحِمٍ مُحَرَّمٍ مِنْ زَوْجَةِ أَبِيهِ وَزَوْجَةِ ابْنِهِ وَزَوْجَةِ كُلِّ ذِي رَحِمٍ مُحَرَّمٍ مِنْهُ او هم دغه ډول په دي کي د موصی د پلار د ښځي هر ذی رحم محرم داخل دي. اود موصی د ځوئی د ښځي، اود موصی د هر ذی رحم محرم د

¹) من حديث عائشة رضى الله عنها أخرجه أبوداود فى العتق باب ٢ رقم ٣٩٣١)ـ

ښځې لِأَنَّ الْكُلَّ أَصْهَارٌ ځکه چې دا واړه اصهار (سخرګنی) ده.

**تشريح:-** فرمائي. چه په اصهار کې عموم دې. چه لکه څنګه د خپلې ښځې ذو رحم محرم په اصهار کې داخل دی. دغه ډول په دې کې د پلار د ښځې ذو رحم محرم او د خونی د ښځې ذو رحم محرم او د هر ذو رحم محرم د ښځې ذو رحم محرم داخل دی. ځکه چې دا واړه خلګ په اصهار (سخرګنی) کې داخل دی. خو دا د عربو عرف دې. او زموږ په عرف کې ددې نه صرف سخر مراد اخستلې شي.

**سخرګنۍ د وصيت کله پورې مستحق وي؟**

وَلَوْمَاتَ الْمُوصِي او که موصی مړشی وَالْمَرْأَةُ فِي نِكَاحِهِ أَوْفِي عِدَّتِهِ مِنْ طَلَاقٍ رَجْعِيٍّ او ښځه دده په نکاح کې وی. یا دده د طلاق رجعی په عدت کې وی فَالصِّهْرُ يَسْتَحِقُّ الْوَصِيَّةَ نو سخربه د وصيت مستحق وی وَإِنْ كَانَتْ فِي عِدَّةٍ مِنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ او که دا د طلاق بائن په عدت کې وی لَا يَسْتَحِقُّهَا نو سخر به د وصيت مستحق نه وی لِأَنَّ بَقَاءَ الصِّهْرِيَّةِ بِبَقَاءِ النِّكَاحِ ځکه چې د سخرتوب بقاء د نکاح د بقاء په وجه وی وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَ الْمَوْتِ او نکاح د مرګ په وخت شرط ده.

**تشريح:-** کله چې د موصی وفات کيږي. چه دغه وخت دده ښځه دده په نکاح کې وی. یا دغه وخت دا د طلاق رجعی په عدت کې وی. نو سخرګنۍ به د وصيت مستحق وی. ځکه چې د نکاح د پاته پاتې کيدو په وجه د سخرتوب رشته پاته ده. او که دا د طلاق بائن په عدت کې وی. نو سخرګنۍ به د وصيت مستحق نه وی. ځکه چې د نکاح پاته نه پاتې کيدو په وجه د سخرتوب رشته ختم شوې ده. او استحقاق لپاره ضروری ده. چه د مرګ په وخت نکاح پاته وی.

**د ذومانو لپاره د وصيت حکم او د ((اختان)) مصداق**

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل (وَمَنْ أَوْصَى لِأَخْتَانِهِ) وچاچه د خپلو ذومانو لپاره وصيت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ لِزَوْجِ كُلِّ ذَاتِ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو دده د هر ذی رحم محرم ميرمه لپاره به وصيت وی وَكَذَا الْمَحَارِمُ الْأَزْوَاجِ او هم دغه ډول د خاوندانو ذو رحم محرم (به هم داخل وی)، لِأَنَّ الْكُلَّ يُسَمَّى خَتَنًا ځکه چې ټولو ته ختن (ذوم) وائی قِيلَ هَذَا فِي عُرْفِهِمْ ونيلی شوی دی. چه دا د عربو خلګو په عرف کې دی وَفِي عُرْفِنَا لَا يَتَنَاوَلُ الْأَزْوَاجَ الْمَحَارِمَ او زموږ په عرف کې به دا نه شامليږي. خو د محارمو خاوندانو ته وَيَسْتَوِي فِيهِ الْحُرُّ وَالْعَبْدُ او په دې کې آزاد او غلام او نږدې او لرې رشته داران واړه برابر دی وَالْأَقْرَبُ وَالْأَبْعَدُ لِأَنَّ اللَّفْظَ يَتَنَاوَلُ الْكُلَّ ځکه چې دا لفظ ټولو ته ګډ دې.

**حل اللغة:** ① اختان: جمع دختن، زوم، د لور خاوند.

**تشريح:-** که يوکس دا وصيت اوکړو. چه زما ذومانو ته دومره مال ورکړئ. نو په اختان کې به د هرهغه ښځې ميره داخل وی. کوم چې د موصی ذو رحم محرم دې. لکه خور، ترور، وغيره. اوکه ښځه وصيت اوکړي. چه د دې د ميره ذو رحم محرم به په دې کې داخل وی. ځکه چې دوی ټولو ته ختن (ذوم) وائی. په دې باندې بعضو مشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی. چه دا د کوفې د خلګو عرف دې. ګنی زموږ په عرف کې د اختان نه مراد د ښځو د خاوندانو محارم مراد دی. اوهرکله چې ددې نه د ښځو د خاوندانو محارم مراد دی. نو بيا په دې خاوندانو کې عموم دې. که هغه آزاد وی. اوکه غلام وی. د موصی قريبی رشته دار وی، اوکه نه وی. ځکه چې لفظ د ختن دوی ټولو ته ګډ دې.

**اقاربو لپاره وصيت کولو کښې به اقاربو کښې څوک داخل وي؟**

قَالَ امام قدوری رحمه الله او فرمائيل وَمَنْ أَوْصَى لِأَقَارِبِهِ و چاچه د خپلو اقاربو لپاره وصيت اوکړو فَهِيَ لِلْأَقْرَبِ فَالْأَقْرَبِ مِنْ كُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو وصيت په اقرب لپاره وی. بيا هغه چا لپاره کوم چې دده نه روسته اقرب وی. يعنی د موصی هر ذو رحم محرم وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ الْوَالِدَانِ وَالْوَلَدُ و په دې کې به مور پلار او اولاد نه داخليږي وَيَكُونُ ذَلِكَ



لِلِاثْنَيْنِ فَصَاعِدًا او دا وصيت به د دوو يا زياتو لپاره وی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی وَقَالَ صَاحِبَاهُ: الْوَصِيَّةُ لِكُلِّ مَنْ يُنْسَبُ إِلَى أَقْصَى أَبٍ لَهُ فِي الْإِسْلَامِ وَهُوَ أَوَّلُ أَبٍ أَسْلَمَ او صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه وصيت به د هر هغه سړی لپاره وی. کوم چې اسلام کې آخری پلار اړخ ته منسوب وی أَوْ أَوَّلُ أَبٍ أَدْرَكَ الْإِسْلَامَ (¹) او آخری پلار هغه رومبې پلار دې. کوم چې مسلمان شوې وی وَإِنْ لَمْ يُسْلِمْ يا به هغه رومبې وی. چاچه اسلام موندلې وی. اګرچه هغه مسلمان شوې نه وی وَفَائِدَةُ الِاخْتِلَافِ تَظْهَرُ فِي أَوْلَادِ أَبِي طَالِبٍ په دې کې د مشائخو رحمهم الله د اختلاف مطابق، او د اختلاف فائده به ښکاره کيږي د ابو طالب په په اولاد کې عَلَى حَسَبِ مَا اخْتُلِفَ فِيهِ فَإِنَّهُ أَدْرَكَ الْإِسْلَامَ وَلَمْ يُسْلِمْ چه ابوطالب د اسلام زمانه موندلې ده. او مسلمان شوې نه دې.

**تشريح:-** زيد د خپلو اقرباو لپاره وصيت اوکړو. نو په دې کې به څوک داخليږي. نو په دې کې د امام ابوحنيفه رحمه الله اوصاحبينو رحمهما الله اختلاف دې. صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه په اقرباو کې به هغه واړه حضرات داخل وی. کوم چې اسلام کې آخری پلار اړخ ته منسوب وی. ددې څه مطلب دې؟ نو ددې په تفسير کې د مشائخو رحمهم الله دوې (دوه) اقواله دی: ① يعنی هغه پلار کوم چې رومبې اسلام راوړلې وی. لکه اولاد د حضرت علی رضي الله عنه ② رومبې هغه پلار چې هغه د اسلام زمانه موندلې وی. او هغه مسلمان شوې نه وی. لکه اولاد د ابوطالب، چې کله څوک علوی د خپلو اقرباو لپاره وصيت اوکړي. نو د رومبی تفسير په اعتبار سره به اقرباو کې صرف د حضرت علی رضي الله عنه اولاد داخل وی. او د جعفر او د عقيل اولاد به په دې کې داخل نه وی. او د دوهم تفسير په اعتبار سره به په دې کې د حضرت علی رضي الله عنه اولاد سره سره د جعفر او د عقيل اولاد هم داخل وی. لنډيز د کلام داچه د موصی نه واخله تر آخری پلاره پورې چې کوم په اسلام کې دی. د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ددې په منځ کې واړه اولاد په دې وصيت کې داخل وی. که هغه سړی وی او که ښځې وی، که اقرب وی او که ابعد وی. دا واړه تفصيل د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې دې. او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دلته د شپږو څيزونو لحاظ ساتلې شوې دی: ① مستحق به هغه څوک وی. کوم چې د موصی ذو رحم محرم وی. ② دغه ذو رحم محرم که د پلار د اړخه وی. اوکه دمور د اړخه وی. ③ او ددې وصيت حقدار به صرف هغه کس وی. کوم چې د موصی وارث نه وی. ④ په دې کې به د الاقرب فالاقرب لحاظ وی. نو د اقرب په موجودګۍ کې به ابعد ته وصيت نه ملاويږي. ⑤ مستحق د وصيت به دلته دوې (دوه) وی. يا به د دوو نه زيات وی. ځکه چې اقرباء د جمعې صيغه ده. چه ددې اقل فرد دلته دوې (دوه) دی. ⑥ په دې وصيت کې به مور پلار او اولاد نه داخليږي.

**د صاحبينو رحمهما الله دليل**

لَهُمَا أَنَّ الْقَرِيبَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْقَرَابَةِ د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. چه قريب د قرابت نه مشتق دې فَيَكُونُ اسْمًا لِمَنْ قَامَتْ بِهِ نو قريب به د هر هغه سړی نوم وی. چه هغه سره قرابت قائم وی فَيَنْتَظِمُ بِحَقِيقَتِهِ مَوَاضِعَ الْخِلَافِ نو قريب به د خپل حقيقت په اعتبار سره مخالف ځايونو نه ته ګډ نه وی.

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله دليل دې. فرمائي. چه قريب د قرابت نه مشتق دې. نو چا سره چې قرابت قائم وی. هم هغه ته به قريب وئيلې کيږي. نو کوم سړې چې د خپل خاندان ځنې دې. که هغه ذو رحم محرم وی او که نه وی قرابت خو هر يو سره قائم دې. نو هر يو ته به قريب وئيلې شي.

**د امام صاحب رحمه الله دليل**

---

(¹) قال صاحب القول الراجح هذا إختلاف عصر وزمان لأنه قال فی حاشية الهداية وعندهما أقصی وفی المبسوط كان هذا فی زمن محمد رحمه الله لأن فی زمنه كان فی أقرباء الإنسان الذين ينسبون إلی أقصی أب له كثرة وأما فی زماننا ففيهم كثرة لا يمكن أحصاءهم فتنصرف الوصية إلی أولاد إبنه وجده وجد أبيه وأولاد أمه وجدته وجدة أمه ولا يصرف إلی أكثر من ذلک كذا فی حاشية هداية (٤٨٠\١٤) القول الراجح (٣٨٣\٢)-

وَلَهُ أَنَّ الْوَصِيَّةَ أُخْتُ الْمِيرَاثِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه وصيت د ميراث خور ده وَفِي الْمِيرَاثِ يُعْتَبَرُ الْأَقْرَبُ او په ميراث كي د الاقرب فالاقرب اعتبار كولای شی فَالْأَقْرَبُ وَالْمُرَادُ بِالْجَمْعِ الْمَذْكُورِ فِيهِ اثْنَانِ او ددې جمعې نه كوم چې په ميراث كي ذكر كولای شی دوي (دوه) دی فَكَذَا فِي الْوَصِيَّةِ نو هم دغه ډول په وصيت كي (هم) دی.

**تشريح:-** ددې خائې نه د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل پيل كيږي.فرمائي.چه وصيت د ميراث خور ده.او په ميراث كي د الاقرب فالاقرب اعتبار كيږي.چه ددې تفصيل په ،، باب العصبات،، كي سراجی كي ذكر شوې دې.نو دغه ډول به په وصيت كي هم د الاقرب فالاقرب اعتبار كولې شی.او په ميراث كي د جمعې نه مراد دوې (دوه) دی.نو دغه ډول به په وصيت كي هم د جمعې نه مراد كم ازكم دوې (دوه) وی.

## اقرباء (رشته دارو) لپاره د وصيت مقصد

وَالْمَقْصِدُ مِنْ هٰذِهِ الْوَصِيَّةِ تَلَافِي مَا فَرَطَ فِي إِقَامَةِ وَاجِبِ الصِّلَةِ او ددې وصيت مقصد د هغه كوتاهۍ پوره كول دی.كوم چې دده نه د واجب صلې په ادا كاوه كي بې غوری شوې ده وَهُوَ يَخْتَصُّ بِذِي الرَّحِمِ الْمَحْرَمِ مِنْهُ او دا (دصله رحمۍ وجوب) د موصي ذو رحم محرم سره خاص دې وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ قَرَابَةُ الْوِلَادِ او په دې كي به د ولد قرابت نه داخليږی فَإِنَّهُمْ لَا يُسَمَّوْنَ أَقْرِبَاءَ خكه چې ددوی نوم اقرباء نه ايخودلې كيږی وَمَنْ سَمَّى وَالِدَهُ قَرِيبًا او چاچه د خپل پلار نوم قريب كيخودو كَانَ مِنْهُ عُقُوقًا نو دا نوم ايخودل به دده دارخه نافرمانی وی وَهٰذَا لِأَنَّ الْقَرِيبَ فِي عُرْفِ اللِّسَانِ مَنْ يَتَقَرَّبُ إِلَى غَيْرِهِ بِوَسِيلَةِ غَيْرِهِ او دا خكه چې قريب د ژبې عرف كي هغه سړي دې.كوم چې خپل غير ارخ ته د خپل غير په وسيله قرابت ساتی، وَتَقَرُّبُ الْوَالِدِ وَالْوَلَدِ بِنَفْسِهِ لَا بِغَيْرِهِ، وَلَا مُعْتَبَرَ بِظَاهِرِ اللَّفْظِ بَعْدَ انْعِقَادِ الْإِجْمَاعِ عَلَى تَرْكِهِ او د پلار او اولاد قرابت پخپله وی.او د ظاهر لفظ اعتبار نشی كولې.د اجماع منعقد كيدو نه پس، د ظاهر په پريخود باندې فَعِنْدَهُ يُقَيَّدُ بِمَا ذَكَرْنَاهُ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به اقرباء مقدر وی.هغه طريقې سره، كومه چې موږ ذكر كړې ده وَعِنْدَهُمَا بِأَقْصَى الْأَبِ فِي الْإِسْلَامِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز په اسلام كي آخری پلار سره وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ بِالْأَبِ الْأَدْنٰى او د امام شافعی رحمه الله په نيز قريبي پلار سره.

**حل اللغة:** ① **تلافي:** رالاندې كول، كمې پوره كول ② **عقوق:** جمع د عق، دمور يا پلار نافرمانی.

**تشريح:-** او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه شريعت د صله رحمۍ حكم وركړې دې.او صله رحمۍ كټ كاوه نه منع فرمائيلې ده.او د صله رحمۍ كټ كونكو متعلق سخت وعيد وارد شوې دې.نو د موصي مقصد اقرباو لپاره د وصيت كاوه نه دا دې.چه په ژوند كي د صله رحمۍ په سلسله كي كومه بې غوری دده نه شوې ده.د هغې پوره والې اوشی.او صله رحمی ذو رحم محرم سره واجب ده.نورو سره (واجب) نه ده.هم دا وجه ده.كه ذو رحم محرم غريب وی.نو په ده باندې د هغوی نفقه واجب ده.او كوم چې ذو رحم محرم نه وی.د هغه نفقه په ده باندې واجب نه ده.او مور پلار او اولاد به په اقرباو كي داخل نه وی.نوهغوی به په دې وصيت كي هم نه داخليږی.

خكه ① د الله تعالى ارشاد دې.چه ﴿لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ﴾ نو د ﴿الْأَقْرَبِينَ﴾ په ﴿الْأَقْرَبِينَ﴾ باندې د عطف كاوه نه دا خبره ښكاره شوه.چه په اقربينو كي والدين (مورپلار) داخل نه دی.او هركله چې اقربين نه والدين خارج شو.نو اولاد به هم خارجيږی.نو دوی دواړو ته به اقربين نشی وئيلې.اوځوك چې خپل پلار ته قريب اووائی.نو هغه ته نافرمانه او فاسق وئيلې شی.لكه څنگه چې د بعضو فاسقانو طريقه ده.چه هغوی څه معمولی شان عهده حاصل كړی.نو پلار ته په پلار وئيلو باندې شرميږی.او داسې وائی.چه دا زما قريبي دې.او د امام صاحب رحمه الله دليل ② دا هم دې.چه په عرف لسانی كي قريب هغه كس ته وائی.د چا قرابت چې د غير په واسطه سره وی.او د مورپلار او د اولاد قرابت دځه واسطې نه بغير دې.

سوال⊛ په اقرباو كي په ښكاره واړه قريبي خلگ داخل دی.نو د الاقرب فالاقرب قاعدې سره د قرابت باوجود ددوی خارجول لازميږی؟

ځواب⊛ بيا خو د ظاهر اعتبار كاوه سره واړه انسانان په اقرباو كي داخل دی.خكه چې واړه د موصي د جدامجد



(نيكه) حضرت ادم عليه السلام اولاد دې.نو واړه انسانان په وصيت كي داخلول پكاردی.خو بالاجماع د ظاهر اعتبار اونكړې شو.هركله چې د ظاهر اعتبار اونكړې شو.نو بيا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اقرباء، كي هغه قيودات اونكړې شو.هركله چې ذكركړې شوی دی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز اقرباء نه مراد د هغه پلار اولاد دې.كوم چې په اسلام كي دی.كوم چې ذكر كړې شوی دی.(كما ذكرنا) او د امام شافعی رحمه الله په نيز چې كوم قريبي پلار دې.د هغه اولاد به په اقرباء كي داخل آخری پلار دې.

وی.

## په اكا (تره) او ماما كوم كښې زيات اقرب دې؟

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا أَوْصٰى لِأَقَارِبِهِ وَلَهُ عَمَّانِ وَخَالَانِ او كله چې هغه دخپلو اقرباو لپاره وصيت اوكړو.او دده دوې (دوه) ترونه او دوې (دوه) ماماگان دی فَالْوَصِيَّةُ لِعَمَّيْهِ عِنْدَهُ اعْتِبَارًا لِلْأَقْرَبِ كَمَا فِي الْإِرْثِ نو دده دواړو ترونو لپاره به وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، د اقرب اعتبار كاوه سره، لكه څنگه چې ميراث كي دی وَعِنْدَهُمَا بَيْنَهُمْ أَرْبَاعًا او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به وصيت څلورو برخو باندې وی (إِذْ هُمَا لَا يَعْتَبِرَانِ الْأَقْرَبَ خكه چې صاحبين رحمهما الله د اقرب اعتبار نه كوی.

**تشريح:-** د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز وصيت كي د ميراث په شان د الاقرب فالاقرب قاعده جاری ده.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دا قاعده نشته.نوكه يوكس د خپلو اقرباو لپاره وصيت اوكړو.او دده په اقرباو كي دوې (دوه) ترونه او دوې (دوه) ماماگان موجود دی.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ترونه د ماماگانو نه اقرب دی.نو پوره وصيت به دواړه ترونه اخلی.او ماما ته به هيڅ نه ملاويږی.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د وصيت څلور برخې كولې شی.او هر يو به برابر شريك وی.

## د اقرباء لپاره ئې وصيت اوكړو اوصرف اكا (تره) او دوې (دوه) ماماگان دې نوڅه حكم دې؟

وَلَوْ تَرَكَ عَمًّا وَخَالَيْنِ او كه موصي يو اكا (تره) او دوې (دوه) ماماگان پريښول فَلِلْعَمِّ نِصْفُ الْوَصِيَّةِ نو اكا (تره) لپاره د وصيت نصف دې وَالنِّصْفُ لِلْخَالَيْنِ او نصف د دواړو ماماگانو لپاره دې لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ مَعْنَى الْجَمْعِ خكه چې دجمعې د معنى اعتبار ضروری دې وَهُوَ الِاثْنَانِ فِي الْوَصِيَّةِ كَمَا فِي الْمِيرَاثِ او دا دوې (دوه) دی پر(په)وصيت كښې لكه څنگه چې پر(په)ميراث كښې دی

**تشريح:-** كه موصي د اقرباو لپاره وصيت اوكړو.او هغه صرف يو اكا (تره) او دوې (دوه) ماماگان پريښودې دی.نو چونكه اقرباء د جمعې صيغه ده.چه ددې لپاره كم ازكم دوې (دوه) افراد ضروری دی.او اكا (تره) صرف يوكس دې.په دې وجه به دا اكا (تره) صرف د نصف وصيت حقدار وی.او نصف بچ پاتې شو.نودا به دواړه ماماگان اخلی.

## د واحد صيغه استعمالولو په صورت كښې به كوم يو اقرب شمارلې كيږی؟

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصٰى لِذِي قَرَابَتِهِ حَيْثُ يَكُونُ لِلْعَمِّ كُلُّ الْوَصِيَّةِ په خلاف د هغه صورت كله چې موصي د خپل قرابت والا لپاره وصيت كړې وی.په دې حيثيت سره چې پوره وصيت به د اكا (تره) لپاره وی لِأَنَّ اللَّفْظَ لِلْفَرْدِ فَيُحْرِزُ الْوَاحِدُ كُلَّهَا خكه چې دا د واحد لفظ دې.نو يو به پوره وصيت اخلی إِذْ هُوَ الْأَقْرَبُ خكه چې هم دا اقرب دې.

**تشريح:-** كه موصي د جمعې صيغه يعنی اقرباء نه وی استعمال كړې.بلكه د واحد صيغه ئې استعمال كړې وی.يعنی داسې ئې وئيلې وی.چه زما قرابت والا لپاره وصيت دې.نو اوس به صرف اكا (تره) د پوره وصيت حقدار وی.او دواړه ماماگان به بالكل د وصيت نه محروم كيږی.خكه چې دلته به يواځې اكا (تره) د اقرب كيدو په وجه پوره وصيت اخلی.

## د جمعې په صيغې سره د يو اكا (تره) لپاره د وصيت حكم

وَلَوْ كَانَ لَهُ عَمٌّ وَاحِدٌ فَلَهُ الثُّلُثُ لِمَا بَيَّنَّاهُ او كه دده لپاره يو اكا (تره) وی.نو دده لپاره د ثلث نصف دې.د هغه دليل په وجه، كوم چې موږ بيان كړې دې.

تشریح:- که موصی دجمعې لفظ سره وصیت اوکړو.یعنی لفظ ،،اقرباء،،سره،اودموصی صرف یو اکا (تره) دې.نو د مذکوره قاعدې مطابق به دې اکا (تره) ته صرف د ثلث نصف ملاویږی.

## د اکا (تره) او ترور قرابت زیات قوی دې

وَلَوْتَرَكَ عَمًّا وَعَمَّةً وَخَالًا وَخَالَةً او که موصی یو اکا (تره) او یوه ترور (د پلار خور) او یو ماما او یوه ترور (د مور خور) پریښودې وی فَالْوَصِيَّةُ لِلْعَمِّ وَالْعَمَّةِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ لِاسْتِوَاءِ قَرَابَتِهِمَا نو وصیت به اکا (تره) او ترور لپاره وی.چه دوی دواړو په منځ کې برابر وی.ددوی دواړو د قرابت برابر کیدو په وجه وَهِيَ أَقْوَى وَالْعَمَّةُ وَإِنْ لَمْ تَكُنْ وَارِثَةً او دا قرابت (دتره او ترور) زیات قوی دې.(د قرابت د ماما او د مور دخور نه) او د پلار خور اګرچه وارثه نه ده فَهِيَ مُسْتَحِقَّةٌ لِلْوَصِيَّةِ كَمَا لَوْ كَانَ الْقَرِيبُ رَقِيقًا أَوْ كَافِرًا نو هغه د وصیت مستحقه ده.لکه که قریب غلام یا کافر وی.

حل اللغة: ① العمة: چاچی،د اکا (تره) ښځه ② اقوی:زیاته قوی

تشریح:- د اکا (تره) او د ترور (د پلار د خور) قرابت د ماما او د د مور د خور نه زیات قوی دې.نو کله چې دا څلور واړه جمع شی.نو وصیت به اکا (تره) او او د پلار خور (ترور) ته ملاویږی.او ددوی دواړو په منځ کې به برابر تقسیمولې شی.ځکه چې د دواړو قرابت برابر دې.او د پلار خور اګرچه وارثه نه جوړیږی.ځکه چې هغه نه د اصحاب الفرائض ځنې ده.او نه عصبه ده.خو د وصیت به هغه مستحقه وی.لکه څنګه چې کافر او غلام وارث نه جوړیږی.خو که اقرباو لپاره وصیت اوکړې شی.او د هغه په اقرباو کې کافر یا غلام وی.نو د وصیت حقدار جوړیږی.دغه ډول به دلته کې د پلار خور د وصیت حقداره وی.

## که محرم هیڅ څوک نه وی د جمعې په لفظ سره د وصیت کولو حکم

وَكَذَا إِذَا أَوْصَى لِذَوِي قَرَابَتِهِ او هم دغه ډول (حکم دې) کله چې موصی وصیت اوکړو.د خپلو قرابت والو لپاره أَوْ لِأَقْرِبَائِهِ أَوْ لِأَنْسِبَائِهِ فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا یا دخپلو قرابت دارو دپاره، یا د خپل نسب خلګو دپاره، د هغه ټولو تفصیلاتو په اره کې کوم چې موږ ذکرکړی دی لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ لَفْظُ جَمْعٍ ځکه چې په دې کې هریوجمعې لفظ دې وَلَوِ انْعَدَمَ الْمَحْرَمُ اوکه محرم معدوم شی بَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو وصیت به باطل وی لِأَنَّهَا مُقَيَّدَةٌ بِهَذَا الْوَصْفِ ځکه چې وصیت ددې وصف سره مقید دې.

تشریح:- د جمعې لفظ ،، اقرباء،، استعمالولو څه حکم دې؟ ددې خواب اوس تیر شوې دې.او دلته چې کوم الفاظ ذکر شوی دی.واړه د جمعې الفاظ دی.نو ددې حکم به هم هغه شان وی.کوم چې د جمعې د لفظ ،، اقرباء،، حکم تیر شوې دې.او که موصی اقرباو لپاره وصیت کړې وی.او دهغه هیڅ څوک محرم نه وی.نو وصیت به باطل وی.ځکه چې دده غرض صله رحمی ده.او صله رحمی د ذو رحم محرم سره خاص ده.نو د محرم نشت والی په صورت کې به وصیت باطل ګرځولې شی.

## د اهل په لفظ سره به ددې مصداق څوک وی؟

قَالَ: وَمَنْ أَوْصَى لِأَهْلِ فُلَانٍ مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.او چاچه د فلانی لپاره وصیت اوکړو فَهِيَ عَلَى زَوْجَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ([1]) نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به وصیت دده په ښځه باندې محمول وی وَقَالَا: يَتَنَاوَلُ كُلَّ مَنْ يَعُولُهُمْ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه هغه خلګو ته به ګډ وی.کوم چې دده دعیال ځنې دی وَتَضُمُّهُمْ نَفَقَتُهُ اعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ او چاته چې د هغه نفقه ملاویږی.دعرف اعتبار کاوه سره وَهُوَ مُؤَيَّدٌ بِالنَّصِّ، قَالَ اللَّهُ تَعَالَى {وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ} او د نص نه ددې تائید کیږی.د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ وَلَهُ أَنَّ اسْمَ الْأَهْلِ حَقِيقَةٌ فِي الزَّوْجَةِ يَشْهَدُ

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(٤٨٤\٥) والفقه الإسلامی (٧٨\٨) وملتقی (٤٤٥\٤) وتبیین (٢٠١\٦) نقلاً عن القول الراجح (٣٨٢\٢)-



بِذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهِ﴾ او د امام ابو حنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه لفظ د اهل په ښځه کې حقیقت دې.د الله تعالی فرمان ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهِ﴾ ددې شاهد دې وَمِنْهُ قَوْلُهُمْ تَأَهَّلَ بِبَلْدَةِ كَذَا، وَالْمُطْلَقُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْحَقِيقَةِ او هم ددې نه د دوی قول دې. «تاهل ببلدة كذا» او مطلق کامل اړخ ته ګرځولې شی.

حل اللغة: ① یعول: د اهل وعیال ځنی کیدل ② نفقة: خرچه ③ بلدة: ښار

تشریح:- زید وصیت اوکړو.چه د فلانی اهل ته زما دومره مال ورکړئ.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به د اهل نه مراد ښځه وی.او هم هغه به د وصیت حقدار وی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز اهل کې هغه واړه خلګ داخل دی.کوم چې د زید په عیال کې داخل وی.او زید د هغوی د نفقې ذمه دار وی.لکه ښځه، بچی او غلام او خادم وغیره.

صاحبینو رحمهما الله د عرف اعتبار کړې دې.او داخبره ئې کړې ده.چه په عرف کې دا واړه خلګ په اهل کې داخل شمارلې شی.او الله تعالی د حضرت یوسف علیه السلام دا قول نقل کړې دې. ﴿وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ کوم چې هغوی خپلو رونړو ته وئیلی وو.چه تاسو خپل اهل وعیال ماته راولئ.نو دلته په اهل کې واړه داخل دی.یعنی ښځه او بچی او غلام او خادم وغیره، او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د لفظ اهل حقیقی معنی ،، ښځه،، ده.او په نورو خلګو باندې د مجاز په طریقه وئیلې شی.الله تعالی د حضرت موسی علیه السلام په اړه کې ارشاد فرمائیلې دې. ﴿وَسَارَ بِأَهْلِهِ﴾ یعنی هغه خپله ښځه بوځی.او د عربو خلګو قول دې. «تاهل بلدة كذا» یعنی هغه په فلانی ښار کې تاهل اوکړو.یعنی په فلانی ښار کې ئې اهل جوړ کړو.یعنی ښځه ئې په نکاح واخستله.او کله چې لفظ مطلق وئیلې شی.او هیڅ یو داسې قرینه نه وی.چه هغه دې لره مجازی معنی اړخ ته اوګرځوی.نو د لفظ نه ددې حقیقی معنی مراد اخستلې شی.اوکه څه قرینه موجود وی.لکه څنګه چې د حضرت یوسف علیه السلام په کلام کې دی.نو مجازی معنی مراد اخستلې شی.

## په لفظ د ،، آل،، سره د وصیت کولو حکم

قَالَ: وَلَوْ أَوْصَى لِآلِ فُلَانٍ او که ده د فلانی د آل لپاره وصیت اوکړو فَهُوَ لِأَهْلِ بَيْتِهِ نو دا وصیت به د هغه د کور خلګو لپاره وی لِأَنَّ الْآلَ الْقَبِيلَةُ الَّتِي يُنْسَبُ إِلَيْهَا ځکه چې ال هغه قبیله ده.کوم اړخ ته چې دا سړې منسوب کولای شی وَلَوْ أَوْصَى لِأَهْلِ بَيْتِ اوکه ده د فلانی اهل بیت لپاره وصیت اوکړو فُلَانٍ يَدْخُلُ فِيهِ أَبُوهُ وَجَدُّهُ نو په دې کې به د فلانی پلار او د هغه نیکه داخل وی لِأَنَّ الْأَبَ أَصْلُ الْبَيْتِ ځکه چې پلار د بیت (کور) اصل دې.

تشریح:- که زید مثلاً د ،، آل خالد،، لپاره وصیت اوکړو.نو د خالد دکور اوخاندان خلګ به په دې کې داخل وی.ځکه چې دلته د آل نه مراد هغه قبیله ده.کوم اړخ ته چې د خالد نسبت کولې شی.مثلاً ،، آل امام زین العابدین رحمه الله،، لپاره ئې وصیت اوکړو.نو ددې څخه به دهغه د کور خلګ مراد وی.یعنی پوره قبیله، یعنی د حضرت علی رضی الله عنه په اولاد کې چې کوم مذکر (نارینه) دی هغه او کوم چې زنانه دی (یعنی نر، ښځې، غټ، واړه واړه به داخل وی) البته د لونړو او څامنو اولاد به په دې کې نه شاملیږی.او که زید د خالد اهل بیت لپاره وصیت اوکړو.نو د خالد دکور خلګ به په دې کې داخل وی.او دخالد پلار نیکه به هم په دې وصیت کې داخل وی.ځکه چې د کور د خلګو اصل خو پلار نیکه دی.

## د ،،اهل نسب،، یا ،، د خپل جنس،، په الفاظو سره د وصیت کولو حکم

وَلَوْ أَوْصَى لِأَهْلِ نَسَبِهِ أَوْ لِجِنْسِهِ او که ده خپل نسب والا یا دخپل جنس والو لپاره وصیت اوکړو فَالنَّسَبُ عِبَارَةٌ عَمَّنْ يُنْسَبُ إِلَيْهِ نو نسب مراد دې د هغه خلګو نه، دچا اړخ ته چې دې منسوب کولای شی وَالنَّسَبُ يَكُونُ مِنْ جِهَةِ الْآبَاءِ او نسب د پلار د اړخه وی وَجِنْسُهُ أَهْلُ بَيْتِ أَبِيهِ دُونَ أُمِّهِ او دده جنس د خپل پلار د کور خلګ دی.دده د مور کور خلګ نه دی لِأَنَّ الْإِنْسَانَ يَتَجَنَّسُ بِأَبِيهِ ځکه چې انسان د خپل پلار د جنس ځنې وی بِخِلَافِ قَرَابَتِهِ حَيْثُ تَكُونُ مِنْ جَانِبِ الْأُمِّ وَالْأَبِ په خلاف د انسان د قرابت په دې حیثیت سره چې دا د مور او پلار د اړخه کیږی.

**تشريح:-** كه زيد د خپل اهل نسب لپاره يا دخپل جنس لپاره وصيت اوكړو.نو په دې دواړو صورتونو كي به په وصيت كي دده دكور هغه خلگ داخل وي.چه دهغوى نسب هغه سړى سره ملاوېږي.كوم سره چې د موصى نسب ملاوېږي.مثلاً څوك علوى وصت كوى.چه دا زما د اهل نسب دپاره، يا زما د جنس لپاره وصيت دې.نو په دې كي به هغه خلگ داخل وى.دچا نسب چې حضرت علي﷜ سره ملاوېږي.يعنى د پلار د اړخه هغه علوى وى.خكه چې د نسب اعتبار د پلار د اړخه كيږي.د مور د اړخه نه كيږي.او دجنس نه هم دده د پلار كورنئ مراد ده.خكه چې انسان د خپل پلار د خاندان هم جنس وى.د مور د خاندان هم جنس نه وى.او قرابت دواړو لپاره عام دې.نو اهل قرابت به د پلار د اړخه خلگ هم وى.او د مور د اړخ خلگ به هم وى.

## د فلاني سړي د يتيمانو، شليانو او كنډو رنډو لپاره د وصيت كولو حكم

وَلَوْأَوْصَى لِأَيْتَامِ بَنِي فُلَانٍ او كه هغه د بنو فلان د يتيمانو لپاره أَوْلِعُمْيَانِهِمْ أَوْلِزَمْنَاهُمْ أَوْلِأَرَامِلِهِمْ يا ددوى د شليانو دپاره، يا ئې ددوى د كنډو ښځو لپاره وصيت اوكړو كَانُوا قَوْمًا يُحْصَوْنَ نو كه دوى داسې خلگ دى.چه دا شمارلې كيداې شى دَخَلَ فِي الْوَصِيَّةِ فُقَرَاؤُهُمْ وَأَغْنِيَاؤُهُمْ ذُكُورُهُمْ وَإِنَاثُهُمْ نو په وصيت كي به ددوى فقيران او ددوى توانگر (تول) داخل وى.ددوى سړى (هم) او ددوى ښځې (هم) لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيقُ التَّمْلِيكِ فِي حَقِّهِمْ وَالْوَصِيَّةُ تَمْلِيكٌ خكه چې ددوى په حق كي د تمليك متحقق كيدل ممكن دى.او وصيت تمليك دې وَإِنْ كَانُوا لَا يُحْصَوْنَ او كه دوى شميرلې كيداې نشى فَالْوَصِيَّةُ فِي الْفُقَرَاءِ مِنْهُمْ نو وصيت به په دوى كي فقيرانو لپاره وى لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الْوَصِيَّةِ الْقُرْبَةُ خكه چې د وصيت مقصود قربت دې وَهِيَ فِي سَدِّ الْخَلَّةِ وَرَدِّ الْجَوْعَةِ او قربت د حاجت په لرې كاوه كي دې.او لوږې په لرې كاوه كي دې وَهَذِهِ الْأَسَامِي تُشْعِرُ بِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ او دا نومونه (يتيمان، گډيان، شليان، او كنډې رنډې وغيره) د حاجت د ثبوت خبر وركوى فَجَازَ چور عَلَى الْفُقَرَاءِ نو دا په فقيرانو باندې محمول كول جائز دى.

**حل اللغة:** ① **ايتام**:جمع د يتيم،هغه څوك چې مور يا پلار ئې نه وى او دې نابالغه وى ② **عميان**: جمع د عم، اكا (تره) ③ زمن، په پښو شل ④ **ارامل**: جمع د رملة: كونډه ⑤ **سد**:بندول ⑥ **الخلة**: حاجت ⑦ **الجوعة**: ولوږه ﴾

**تشريح:-** زيد وصيت اوكړو.چه په بنوخالد كي چې كوم يتيمان دى.هغوى لپاره وصيت دې.يا په بنوخالد كي چې كوم خلگ ړانده دى.هغوى لپاره وصيت دې.يا په بنوخالد كښې چې كوم شليان (او گډيان) دى. هغوى لپاره وصيت دې.يا په بنوخالد كي چې كومې كنډې ښځې دى.هغوى لپاره ئې وصيت اوكړو.نو په دوى كي به څوك (په وصيت كي) داخل وى؟ حالانكه بعضې يتيمان فقيران وى.او بعضې مالداره وى.دغه ډول بعضې ړانده غريبانان وى.او بعضې ډير مالداره وى.او د شليانو او كنډو رنډو هم دا حال دې.نو په دې وصيت كي چې كوم يتيمان او ړانده وغيره دى.واړه داخل دى.كه هغوى غريبانان وى.او كه مالداره وى.اوكه صرف فقيران او مسكينان به داخل وى؟ نو ددې لپاره يوه قاعده كليه بيانوى .فرمائى.كه دا خلگ يعنى د بنو خالد يتيمان وغيره شميرل ممكن وى.نو جلا حكم دې.او كه د شميرلو قابل نه وى.نو جداحكم دې.او د امام ابويوسف﷫ په نيز چې كله د حساب كتاب نه بغير يعنى بغير د مردم شمارئ نه ددوى شمارل ممكن وى.نو دوى به د شميرلو قابل گڼرلې شى.او امام محمد﷫ فرمائى.كه دوى د سلو نه زيات وى.نو دوى د شميرلو قابل دى.او بعضو حضراتو فرمائيلى دى.چه دا د قاضى په رائې باندې موقوف ده.او هم په دې باندې فتوى ده.او د امام محمد﷫ قول هم دې اړخ ته اشاره كوى. ﴿كذا فى فتاوى قاضى خان﴾

نوكه دا خلگ د شمير قابل وى.نو په وصيت كي چې كوم فقيران او مالداره خلگ دى.اوكوم چې گډيان شليان وغيره دى.واړه به داخل وى.اوكه د شمير قابل وى.نو صرف فقيران به داخليږي.او توانگر به نه داخليږي. ولې؟ خكه چې ړومبى صورت كي ددې تولو مالك جوړول ممكن دى.او مالك جوړول وصيت دې.نوپه ړومبى صورت كي به ثلث مال ددوى تولو په منځ كي برابر تقسيمولې شى.كه دوى فقيران وى او كه توانگر وى.او په دوهم صورت كي صرف فقيران خكه داخل دى.چه دلته د موصى مقصود قربت دې.او د قربت مقصود دلته دا دې.چه



ددوى حاجت لرې كړې شى.او ددوى د اولږې حالت لرې كړې شى.اويتيمان،او شليان وغيره دا واړه داسې نومونه دى.چه دا عام طور باندې فقيران وى.نو دا نوم پخپله د حاجت متحقق كيدو اړخ ته اشاره كوى.نو اوس به وصيت صرف په فقيرانو باندې محمول كولې شى.

## د بنو فلان د ځوانانو يا ځوانو جينكو لپاره د وصيت كولو حكم

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى لِشُبَّانِ بَنِي فُلَانٍ وَهُمْ لَا يُحْصَوْنَ په خلاف ددې صورت كله چې ده د بنو فلان د خوانانو لپاره وصيت كړې وى.او هغوى نشى شميرلې كيداې أَوْلِأَيَامَى بَنِي فُلَانٍ وَهُمْ لَا يُحْصَوْنَ حَيْثُ تَبْطُلُ الْوَصِيَّةُ يا د بنوفلان خوانو جينكو لپاره (ئې وصيت اوكړو).او هغوى نشى شميرلې كيدې.په دې حيثيت سره چې دا وصيت به باطل وى لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي اللَّفْظِ مَا يُنْبِئُ عَنِ الْحَاجَةِ خكه چې په دې لفظ كي هيڅ داسې شئ نشته.چه هغه د حاجت خبر وركړى فَلَا يُمْكِنُ صَرْفُهُ إِلَى الْفُقَرَاءِ نو ددې به فقيرانو اړخ ته خرچ كړل ممكن نه وى وَلَا يُمْكِنُ تَعْمِيمُهُ تَمْلِيكًا فِي حَقِّ الْكُلِّ لِلْجَهَالَةِ الْمُتَفَاحِشَةِ او نه د تولو مالك جوړولو سره ددې وصيت صحيح كول ممكن دى.د سخت جهالت په وجه، وَتَعَذُّرُ الصَّرْفِ إِلَيْهِمْ او ددوى تولو اړخ ته د خرچ متعذر كيدو په وجه.

**حل اللغة:** ① **شبان**: جمع د شاب، خوان ② **ايام**: جمع ايم، پيغله جينئ، ناوادة كړې انجلى ﴾

**تشريح:-** زيد د بنو خالد خوانانو لپاره يا د بنوخالد خوانو جينكو لپاره وصيت اوكړو.او د خوانانو دا طبقه دومره وسيع ده.چه دوى نشى شميرلې كيدې.نو دلته به وصيت باطل وى.خكه كه د تولو خوانانو لپاره وصيت اوساتلې شى.او واړه مالكان جوړ كړې شى.نو دا متعذر ده.خكه چې دوى بې شميره دى.او په دوى كي د بې شماره كيدو په وجه سخت جهالت دى.نو دا صورت خو ممكن نه دې.او كه په دوى كي صرف د فقيرانو په حق كي وصيت اوگڼرلې شى.نو دا هم ممكن نه ده.خكه چې لفظ د شبان (خوانانو) نه او دغه ډول لفظ د ايامى (خوانو جينكو) نه د هيڅ حاجت معنى نه معلوميږي.لكه څنگه چې د يتيمانو او ړندو نه د حاجت معنى معلوميږي.نو هركله چې هيڅ صورت پاته پاتې نشو.نومونږ مجبوراً اووئيل.چه وصيت باطل دې.

## د فقيرانو او مسكينانو لپاره د وصيت حكم

وَفِي الْوَصِيَّةِ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ اود فقيرانو او مسكينانو لپاره په وصيت كاوه كي يَجِبُ الصَّرْفُ إِلَى اثْنَيْنِ مِنْهُمْ اعْتِبَارًا بِمَعْنَى الْجَمْعِ په دوى كي (كم ازكم) دوو اړخ ته خرچ كول واجب دى.د جمعې د معنى اعتبار كاوه سره وَأَقَلُّهُ اثْنَانِ فِي الْوَصَايَا عَلَى مَا مَرَّ او د جمعې اقل فرد په وصيتونو كي دوې (دوه) دې.د هغه تفصيل مطابق كوم چې تير شوې دې.

**تشريح:-** وړاندې بار بار دا بحث تير شوې دې.چه په وصيت كي د جمعې اقل فرد دوې (دوه) دې.نو كله چې زيد د فقيرانو او مسكينانو لپاره وصيت اوكړو.نو ثلث به كم ازم كم دوې (دوه) مسكينانو او دوې (دوه) فقيرانو ته وركول واجب وى.

## د.. بنو فلان.. په الفاظو سره به څوك څوك د وصيت مستحق وى؟

وَلَوْأَوْصَى لِبَنِي فُلَانٍ اوكه ده د بنو فلان لپاره وصيت اوكړو يَدْخُلُ فِيهِمُ الْإِنَاثُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ أَوَّلُ قَوْلَيْهِ نو د امام ابوحنيفه﷫ د ړومبى قول مطابق به په دې كي ښځې داخل وى وَهُوَ قَوْلُهُمَا او هم دا د صاحبينو ﷮ قول دې لِأَنَّ جَمْعَ الذُّكُورِ يَتَنَاوَلُ الْإِنَاثَ خكه چې جمع مذكر ښځو ته شامليږى ثُمَّ رَجَعَ وَقَالَ يَتَنَاوَلُ الذُّكُورَ خَاصَّةً بيا امام ابوحنيفه﷫ ددې نه رجوع اوكړله.او وې فرمائيل.چه دا به صرف سړو ته گډ وى لِأَنَّ حَقِيقَةَ الْإِسْمِ لِلذُّكُورِ خكه چې د لفظ حقيقت سړو لپاره دې وَانْتِظَامُهُ لِلْإِنَاثِ تَجَوُّزٌ او ددې ښځو ته شامليدل د مجاز په طور دى وَالْكَلَامُ لِحَقِيقَتِهِ او كلام پخپل حقيقت باندې محمول كيږى بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بَنُو فُلَانٍ اسْمَ قَبِيلَةٍ أَوْفَخِذٍ حَيْثُ يَتَنَاوَلُ الذُّكُورَ وَالْإِنَاثَ په خلاف ددې صورت كله چې بنوفلان د قبيلې يا فخذ (يو ښاخ) نوم وى.په دې حيثيت سره چې دا (بنوفلان) به سړو او ښځو ته گډ وى لِأَنَّهُ لَيْسَ يُرَادُ بِهَا أَعْيَانُهُمْ خكه چې ددې نه مراد ددې اعيان نه دى إِذْ هُوَ مُجَرَّدُ الْإِنْتِسَابِ كَبَنِي آدَمَ خكه

چې دا خو صرف منسوب کول دي.لکه بنو آدم وَهٰذَا يَدْخُلُ فِيهِ مَوْلَى الْعَتَاقَةِ وَالْمُوَالَاةِ وَحُلَفَاؤُهُمْ او هم په دې وجه په دې کې مولی العتاقه او مولی الموالات او ددوی حلفاء ( ملاتړ او مددګار) داخل دي.

**حل اللغة:** ① **اناث:** زنانه ② **ذکور:** نارینه ③ **يتناول:** شاملیږي﴾

**تشریح:**- که زید د بنو خالد لپاره وصیت اوکړو.نو اوس سوال دا دې.چه په دې کې به هلکانو سره نجوني (جینکۍ) هم داخل وي اوکه نه؟ نو په دې کې تفصیل دې.موصی چې کوم بنوخالد وئیلی دي.نو دا به کتلې شي. چې په دې نوم سره څه قبیله شته.اوکه نه موصی صرف د خالد خامنو خاص کاوه لپاره بنو وئیلی دي. نوکه په دې نوم سره څه قبیله وي.یعنی بنوخالد د قبیلې نوم وي.لکه بنوهاشم، بنو امیه وغیره.نواوس د موصی مقصد خاص خامن مراد اخستل نه دي.ځکه چې دلته د خامنو تخصیص صرف د انتساب په غرض سره دې.په دې غرض سره نه دې.چه خاص خامن مراد دي.لکه څنګه چې بنوآدم وئیلې شي.او دا صرف د انتساب لپاره دې.چه په دې کې سړي او ښځې واړه داخل دي.بهرحال که بنوخالد د قبیلې نوم وي.نو په دې کې به سړی او ښځې ټولې داخل وي.او په بنو خالد کې به د بنوخالد معتق، او مولی الموالات او ددوی حلفاء هم داخل وي.

Ⓑ اوکه بنوخالددیوې قبیلې نوم نه وي.نود صاحبینو (رحمهما الله) قول دادې.چه په دې کې به ښځې هم داخل وي.امام ابوحنیفه (رحمه الله) رومبې قول دې.او د امام ابوحنیفه (رحمه الله) هغه قول کوم اړخ ته ئې رجوع کړې ده.دا دې.چه په دا د کې به ښځې نه داخلیږي.بلکه دا به صرف د سړو لپاره وي.د صاحبینو (رحمهما الله) دلیل دا دې.چه په جمع مذکر کې ښځې هم داخل وي.لکه څنګه چې په ،،مسلمون،، کې ښځې هم داخل دي.

د امام ابوحنیفه (رحمه الله) دلیل ❁ د امام ابوحنیفه (رحمه الله) دلیل دا دې.چه د بنون حقیقی معنی سړي دي.او ددې لفظ ښځو ته شاملیدل مجازاً دي.او ترکومه پورې چې د حقیقت نه څه قرینه صارفه موجود نه وي.نو کلام ددې په حقیقی معنی باندې محمول کولې شي.

تنبیه① ❁ مولی العتاقه❁ مثلاً بنوعباس یا بنو امیه یو غیر محصور( نا قابل شمار) جماعت دې.نو دوی چې کوم غلام آزاد کړې دې.نو هغوی ته به هم بنوالعباس یا بنوامیه وئیلې شي.یعنی هم دې قبیلې اړخ ته به منسوب کولې شي.حالانکه دوی اولاد نه دې.

مولی الموالات❁ ددې یو تفسیر هغه دې.کوم چې موږ په درس د سراجی کې بیان کړې دې.او دوهم تفسیردا دې.چه کوم سړې دکومې قبیلې په لاس باندې مسلمان شي.نو هغه هم د هغوی نه شمارلې کیږي. او هغه ته مولی الموالات وئیلې شي.

حلیف❁ ددې جمع حلفاء ده.څوک چې په قسم سره خپل منځ کې دیو بل په کومك باندې راجمع شي.

تنبیه② ❁ د عربو په نسبونو کې بیان په دې طریقه مشهور وو.① **شعب:** چې په دې کې ډیرې قبیلې وي.لکه د قریش په شعب کې خزیمه ده.چه ددې لاندې ډیرې قبیلې دي.او د شعب لاندې عماره ده.لکه څنګه چې قریش عماره ده.او د عماره لاندې بطون وي.لکه څنګه قص بطن دې.او د بطن لاندې فخذ وي.لکه څنګه چې هاشم فخذ دې.او د فخذ لاندې فصیل دې.لکه څنګه چې عباس فصیل دې.

### په ،، ولد فلان،، الفاظو سره د وصیت حکم

قَالَ امام قدوري (رحمه الله) وفرمائیل (وَمَنْ أَوْصَى لِوَلَدِ فُلَانٍ) و چاچه د فلانی ولد لپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ نو وصیت به ددوی په منځ کې ( تقسیمولې) شي وَالذَّكَرُ وَالْأُنْثَى فِيهِ سَوَاءٌ او سړي او ښځې به په دوی کې برابر وي قَالَ امام قدوري فرموده است لِأَنَّ اسْمَ الْوَلَدِ يَنْتَظِمُ الْكُلَّ انْتِظَامًا وَاحِدًا. ځکه چې لفظ د ولد ټولو ته ګډ دې. انتظام واحد سره.

**تشریح:**- ابن نه صرف خوني مراد وي.او په لفظ د ،، ولد،، سره خامن او لونړه واړه مراد وي.په نورو الفاظو کې داسې چې لفظ د ولد په حقیقت کې مطلق اولاد ته ګډ دې.نو کله چې زید د خالد ولد لپاره وصیت اوکړو.نو دخالد خامن او نجوني (جینکۍ) به په دې وصیت کې برابر برابر شریك وي.



### د،، فلانی وارثانو،، الفاظو سره د وصیت حکم

وَمَنْ أَوْصَى لِوَرَثَةِ فُلَانٍ او چاچه د فلانی وارثانو لپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ نو وصیت به ددوی په منځ کې د ﴿لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ﴾ په طریقه وي لِأَنَّهُ لَمَّا نَصَّ عَلَى لَفْظِ الْوَرَثَةِ ځکه چې هرکله هغه د ،، ورثه،، لفظ تصریح اوکړله آذَنَ ذٰلِكَ بِأَنَّ قَصْدَهُ التَّفْضِيلُ كَمَا فِي الْمِيرَاثِ نو هغه ددې خبرې خبر ورکړو .چه دده اراده د تفصیل ده.لکه څنګه چې میراث کې دي.

**تشریح:**- زید وصیت اوکړو.چه د فلانی وارثانو لپاره وصیت دې.نو دلته به په هلك او انجلی کې د میراث مطابق ویش کولې شي.یعنی کوم چې انجلی ته ملاویږي.د هغې دوچند به هلك ته ملاویږي.ځکه چې د لفظ ورثه تصریح دې اړخ ته اشاره کوي.چه د زید اراده هم دا ده.چه د هلکانو حق د جینکو نه زیات وي.لکه څنګه چې په میراث کې کیږي.

### د تعین نه بغیر موالی لپاره د وصیت کولو حکم

وَمَنْ أَوْصَى لِمَوَالِيهِ او چا چې د خپل موالی لپاره وصیت اوکړو وَلَهُ مَوَالٍ أَعْتَقَهُمْ او د هغه څه موال دي.چه دا موصی آزاد کړي دي وَمَوَالٍ أَعْتَقُوهُ او بعضې داسې موالي دي.چه هغوی ده لره آزاد کړې دي فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ نو وصیت باطل دې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي بَعْضِ كُتُبِهِ: أَنَّ الْوَصِيَّةَ لَهُمْ جَمِيعًا او امام شافعي (رحمه الله) په خپلو بعضو کتابونو کې فرمائیلي دي.چه وصیت به دوی ټولو خلګو لپاره وي وَذَكَرَ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ أَنَّهُ يُوقَفُ حَتَّى يُصَالِحُوا او په بل ځائې کې ئې ذکرکړې دي.چه دې به منع کولې شي.تردې چې دوی اتفاق اوکړي.

**تشریح:**- زید مخکې غلام وو.نو ده لره دده یو مولی یا ډیرو آزاد کړې وو.نو هغوی به دده مولی او موالی وي.او ده هم څه غلامان اخستي او آزاد کړي دي.نو دې به د هغوی معتق او مولی وي.اوس زید وصیت کوي.چه زما موالی لپاره وصیت دې.او دا ئې واضحه نکړله.چه د موالی نه څوك مراد دي.معتق ( چې دې ئې آزاد کړې دې) مراد دې.او که معتق ( کوم چې ده آزاد کړي دي). نو اوس به څه حکم وي؟ نو زموږ په نیز حکم دا دې.چه وصیت باطل دې.او د شوافعو په بعضو کتابونو کې دي.چه ددوی ټولو په منځ کې به وصیت نافذ کولې شي.او ددوی په بعضو کتابونوکې داسې دي.چه اوس به منع کولې شي.او موقوف به ساتلې شي.اوکله چې دواړه فریق په دې خبره باندې اتفاق اوکړي.چه ثلث زموږ دواړو په منځ کې برابر دې.نو بیا به ثلث ددوی په منځ کې تقسیمولې شي.

### د امام شافعي او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیلونه

لَهُ أَنَّ الْإِسْمَ يَتَنَاوَلُهُمْ د امام شافعي (رحمه الله) دلیل دا دې.چه لفظ دموالی دوی ټولو ته ګډ دې لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمْ يُسَمَّى مَوْلًى فَصَارَ كَالْإِخْوَةِ ځکه چې په دوی کې د هر یو نوم موالی ایخودې شي.نو دا د اخوة پشان شو وَلَنَا أَنَّ الْجِهَةَ مُخْتَلِفَةٌ او زموږ دلیل دا دې.چه جهت مختلف دې لِأَنَّ أَحَدَهُمَا يُسَمَّى مَوْلَى النِّعْمَةِ وَالْآخَرَ مُنْعَمٌ عَلَيْهِ فَصَارَ مُشْتَرَكًا ځکه چې په دوی دواړو کې د یو نوم مولی النعمه اخستلې شي.او د دوهم نوم منعم علیه ( اخستلې شي) نو دا لفظ مشترك شو فَلَا يَنْتَظِمُهُمَا لَفْظٌ وَاحِدٌ فِي مَوْضِعِ الْإِثْبَاتِ نو لفظ د واحد په ځائې اثبات کې دوی دواړو قسمونو ته نه شاملیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ مَوَالِيَ فُلَانٍ حَيْثُ يَتَنَاوَلُ الْأَعْلَى وَالْأَسْفَلَ په خلاف ددې صورت کله چې ده قسم خوړلې وي.چه د فلانی موالی سره به خبرې نه کوم.په دې حیثیت سره چې دا به اعلی او لاندې ته ګډ وي لِأَنَّهُ مَقَامُ النَّفْيِ وَلَا تَنَافِيَ فِيهِ ځکه چې دا مقام د نفی دې.او په دې کې هیڅ منافات نشته.

**حل اللغة:** ① **اعلی:** پورته حصه، طرف، منزل ② **الاسفل:** کښته حصه، طرف، منزل﴾

**تشریح:**- ددې ځائې نه د هر فریق دلیل بیانوي.د امام شافعي (رحمه الله) دلیل دا دې.چه لکه څنګه لفظ د،، اخوة،، هر قسمه رونړو ته ګډ دې.او د رونړو لپاره د وصیت کاوه په صورت کې هر قسمه رور د وصیت مستحق وي.دغه ډول لفظ د موالی هم دوی دواړه قسمه موالی ته ګډ دې.نو دلته هم دواړه قسمه موالی لپاره وصیت صحیح کیدل

پکار دی.

د احنافو دلیل۞ او زمونږ دلیل دا دی چه موالی په اخوة باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دی.ځکه چې لفظ د اخوة مشترك نه دی.بلکه عام دی.چه دا ټولو رونړو ته ګډ دی.او لفظ د موالی عام نه دی.بلکه مشترك دی.ځکه چې دلته جهات مختلف دی.یو ته مولی په دې اعتبار سره وئیلې شوې دی.چه دا مولی نعمت دی.یعنی معتق (آزادونکې) دی.او دوهم ته مولی په دې اعتبار سره وئیلې شوې دی.چه دا منعم علیه دی.یعنی هغه آزاد کړې شوې) دی.نو لفظ د موالی عام نشو.بلکه مشترك شو.او د مشترك قاعده دا ده.چه کله ددې استعمال د اثبات په مقام کې وی.نو لفظ مشترك به د ځان لاندې داخل ټولو ګډ نه وی.ځکه چې مشترك کې عموم نه وی.نو په دوی کې به یو مراد اخستلې شی.او دا ترجیح بلا مرجح ده.نو د وصیت باطلولو نه بغیر هیڅ لاره نشته.

۞او په نفی کې مشترك کې عموم وی.نو که زید قسم اوخوړلو.چه زه به د خالد موالی سره خبرې نه کوم.او د خالد دواړه قسمه موالی شته.یعنی معتق هم شته او معتق هم، نو زید که د هریو مولی سره خبرې اوکړی.حانث به وی.ځکه چې دا مقام دنفی دی.چه دلته موالی دواړو ته ګډ دی.او د نفی په صورت کې د دوو قسمونو په مراد اخستلو کې هیڅ باك نشته.ځکه چې دلته په حقیقت کې د دواړو معانو جمع کول نه لازمیږی.او نفی کول د مختلفو بلکه د متضاد څیزونو یوې کلمې سره ممکن ده.تردې چې په دنیا کې څومره شیان دی.او پخپلو کې د یو بل ضد دی.دټولو نه د الوهیت نفی په کلمه د توحید سره شوې ده.نو معلومه شوه.چه کوم لفظ مشترك وی.د هغې د معانو نه اثبات کول په یو استعمال کې د یو نه زیات نه وی.او نفی کول د ټولو معانو ممکن ده.نو مولی سره په کلام نه کاوه کې د دواړو فریقو نه نفی ده.

## موالی کښې صرف غلامان وی نو موالی لپاره د وصیت حکم

وَيَدْخُلُ فِي هٰذِهِ الْوَصِيَّةِ مَنْ أَعْتَقَهُ فِي الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ او په دې وصیت کې به هغه خلګ داخلیږی.کوم چې موصی په صحت او مرض کې آزاد کړی وی. وَلَا يَدْخُلُ مُدَبَّرُوْهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ او د موصی مدبرین، او دده ام ولدات به نه داخلیږی لِأَنَّ عِتْقَ هٰؤُلَاءِ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ ځکه چې ددوی عتق د مرګ نه روسته ثابت شوې دی وَالْوَصِيَّةُ تُضَافُ إِلٰى حَالَةِ الْمَوْتِ او وصیت د مرګ حالت اړخ ته مضاف کیږی فَلَا بُدَّ مِنْ تَحَقُّقِ الْاِسْمِ قَبْلَهُ نو د مرګ نه وړاندې د لفظ (مولی او عتق) ثبوت ضروری دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُمْ يَدْخُلُوْنَ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دا واړه به داخل وی لِأَنَّ سَبَبَ الْاِسْتِحْقَاقِ لَازِمٌ ځکه چې د استحقاق سبب لازم دی وَيَدْخُلُ فِيْهِ عَبْدٌ قَالَ لَهُ مَوْلَاهُ إِنْ لَمْ أَضْرِبْكَ فَأَنْتَ حُرٌّ او په دې کې هغه غلام داخل دی.چاته چې دهغه آقا وئیلې وی.که ما ته او نه وهلې.نو ته آزاد یې لِأَنَّ الْعِتْقَ يَثْبُتُ قُبَيْلَ الْمَوْتِ عِنْدَ تَحَقُّقِ عَجْزِهِ ځکه چې عتق به ثابتیږی.د مرګ نه وړاندې، دده د عاجزی ثابتیدو په وخت.

تشریح:- زید دخپلو موالی لپاره وصیت اوکړو.او دده په موالی کې صرف دده آزاد کړې شوی غلامان دی.نو هغوی واړه به په وصیت کې داخل وی.کوم چې زید د صحت په حالت کې آزاد کړی وی.او کوم چې په حالت د مرض کې آزاد کړې وی.د ټولو حکم برابر دی.او واړه به په وصیت کې داخل وی.البته مدبر او ام ولدات به په موالی کې نه داخلیږی.او د وصیت حقدار به نه جوړیږی.ځکه چې د مدبر او د ام ولدو آزادی دده د مرګ نه روسته ثابتیږی.یعنی د آقا د مرګ په وخت دوی آزاد نه وی.او په وصیت کې داخلیدو لپاره ضروری ده.چه د زید د مرګ نه وړاندې دا آزاد کړې شوی وی.او دلته داسې اونشوه.نو معلومه شوه.چه دوی به په وصیت کې نه داخلیږی.

۞او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه مدبرین او ام ولد هم په وصیت کې داخل دی.ځکه چې تدبیر او استیلاد دواړه د عتق د استحباب داسې سببونه دی.چه لازم دی.او آقا ته اوس د مدبر کاوه نه د رجوع کاوه حق نشته.او که زید د خپلو موالی لپاره وصیت کړې وو.او دده یو غلام وو.چه ده هغه ته دا وئیلی وو.که زه تا او نه وهم.نو ته آزاد یې.او ده اوس لا نه وو وهلې.چه زید مړ شو.نو دا غلام به هم په موالی کې داخلیږی.او د وصیت به حقدار وی او که نه؟ نو وې فرمائیل.چه په دې باندې د ټولو اجماع ده.چه دا غلام به په وصیت کې داخل وی.ځکه چې هرکله زید د خپل ژوند په آخری لمحاتو کې ددې غلام د وهلو نه عاجزه شو.نو هم دغه وخت د مرګ نه وړاندې دا غلام



آزاد شو.او کوم غلام چې د مرګ نه وړاندې آزاد شوې وی.نو هغه د موالی په فهرست کې داخلیږی.او مستحق د وصیت جوړیږی.

## په لفظ د موالی سره به آزادونکی او د آزادونکی اولاد داخل وی

وَلَوْ كَانَ لَهُ مَوَالٍ وَأَوْلَادُهُ مَوَالٍ وَمَوَالِي مُوَالَاةٍ او که دده لپاره موالی وی.او د موالی اولاد وی.او موالی الموالات وی.يَدْخُلُ فِيْهَا مُعْتَقُوْهُ وَأَوْلَادُهُمْ دُوْنَ مَوَالِي الْمُوَالَاةِ نو په وصیت کې به د موصی آزاد کړې شوی غلامان، او ددوی اولاد داخل وی.موالی الموالات به نه داخلیږی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُمْ يَدْخُلُوْنَ أَيْضًا وَالْكُلُّ شُرَكَاءُ او د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دا (موالی موالات) به هم داخلیږی.او واړه به شریکان وی لِأَنَّ الْاِسْمَ يَتَنَاوَلُهُمْ عَلَى السَّوَاءِ ځکه چې لفظ د موالی دوی ټولو ته برابری سره شامل دی ي وَمُحَمَّدٌ يَقُوْلُ: الْجِهَةُ مُخْتَلِفَةٌ، فِي الْمُعْتَقِ الْاِنْعَامُ امام محمد رحمه الله فرمائی.چه جهت مختلف دی.په آزادونکی کې د انعام جهت دی وَفِي الْمَوَالِي عَقْدُ الْاِلْتِزَامِ وَالْاِعْتَاقُ لَازِمٌ او په موالی کې د عقد التزام، او اعتاق لازم دی فَكَانَ الْاِسْمُ لَهُ أَحَقَّ نو لفظ د موالی به د معتق لپاره زیات حقدار وی وَلَا يَدْخُلُ فِيْهِمْ مَوَالِي الْمَوَالِي او په موالی کې به د موالی، موالی نه داخلیږی لِأَنَّهُمْ مَوَالِي غَيْرِهِ حَقِيْقَةً بِخِلَافِ مَوَالِيْهِ وَأَوْلَادِهِمْ ځکه چې دا په حقیقت کې د موصی د غیر موالی دی.په خلاف د موصی د موالی او د موالی د اولاد لِأَنَّهُمْ يُنْسَبُوْنَ إِلَيْهِ بِإِعْتَاقٍ وُجِدَ مِنْهُ ځکه چې دا (موالی او دده اولاد) آزادونکی اړخ ته منسوب دی.د هغه اعتاق په وجه کوم چې د موصی د اړخه موجود شوې دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ مَوَالٍ وَلَا أَوْلَادُ الْمَوَالِي او په خلاف ددې صورت کله چې موصی لپاره موالی او دموالی اولاد نه وی لِأَنَّ اللَّفْظَ لَهُمْ مَجَازٌ ځکه چې لفظ ددوی (موالی الموالی) لپاره مجاز دی فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ اعْتِبَارِ الْحَقِيْقَةِ نو مجاز اړخ ته به ګرځولې شی.د حقیقت اعتبار متعذر کیدو په وخت کې.

تشریح:- زید د خپلو موالی لپاره وصیت اوکړو.او بعضې دده موالی دی.یعنی د زید آزاد کړې شوی غلامان دی.او بعضې دده د موالی اولاد دی.یعنی د آزاد کړې شوو غلامانو اولاد دی.او بعضې نور خلګ هم دی.کوم چې د زید په لاس مسلمانان شوی دی.یعنی موالی موالات، نو په دې صورت کې به په موالی کې څوك داخلیږی.او څوك به د وصیت مستحق وی؟ نو وې فرمائیل.چه آزاد کړې شوی غلامان او ددوی اولاد به په وصیت کې داخل وی.او موالی موالات به په وصیت کې نه داخلیږی.

۞دامام ابویوسف رحمه الله مسلك۞ د امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه موالی موالات به هم په موالی کې داخل وی.او دا واړه به په ثلث کې شریك وی.ځکه چې لفظ د موالی دوی ټولو ته برابر ګډ دی.

۞د امام ابویوسف رحمه الله په دلیل باندې امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه موالی دوی ټولو ته څنګه شاملیدې شی.حالانکه په جهت کې اختلاف دی.آزادونکی ته مولی وئیلې شوې دی.په دې اعتبار سره چې په ده باندې زید انعام کړې دی.او مولی الموالات ته مولی په دې اعتبار سره وئیلې شوې دی.چه دده سره د عقد موالات التزام کړې شوې دی.

که څوك سوال اوکړی هرکله چې جهت مختلف دی.لکه څنګه چې تاسو اوفرمائیل.نو بیا وصیت باطلیدل پکار دی؟

ځواب۞ د جهت مختلف کیدو په وجه وصیت هلته باطلیږی.کوم ځائې چې ترجیح ممکن نه وی.او دلته ترجیح ممکن ده.چه اعتاق لازم دی.کوم چې د آزادونکی په فسخ کاوه سره نه فسخ کیږی.او ولاء موالات د فسخ احتمال لری.نو دمولی جوړیدو زیات مستحق آزادونکې شو.په دې وجه دې ته ترجیح ورکړې شو.او وصیت باطل نکړې شو.

که څوك سوال اوکړی په موالی کې به د زید د آزاد کړې شوو غلامانو آزاد کړې شوی غلامان داخلیږی او که نه؟
ځواب۞ نه، ځکه چې حقیقت کې موالی د زید آزاد کړې شوی دی.او دا د زید آزاد کړې شوی نه دی.بلکه د زید د غیر یعنی دده د آزاد کړې شوی معتقین دی.

که څوك سوال اوکړی نو بیا د زید د آزاد کړې شوو غلامانو اولاد د زید په موالی کې ولې داخل کړې شو؟

خواب۞ د زید موالی او د زید د موالی اولاد واړه زید اړخ ته د ازادئ په وجه منسوب دی.یعنی د کوم اعتاق په وجه چې د زید معتق (آزاد کړې شوې غلام) د زید مولی جوړ شوی دې.خاص هم ددې اعتاق په وجه د آزاد کړې شوی غلام اولاد د زید موالی جوړ شوی دې.او که زید دخپلو موالی لپاره وصیت اوکړو .او د زید هیڅ څوک معتق نشته.او نه د معتق اولاد شته.بلکه موالی موالات دی.نو اوس به د وصیت مستحق موالی موالات وی.ولې؟ څکه چې د لفظ موالی حقیقی معنی هم دا ده.او د موالیو موالی ددې مجازی معنی ده.او قاعده دا ده.چه کله په حقیقت باندې عمل متعذر شی.نو مجاز اړخ ته رجوع کولې شی.او دلته د موالی حقیقی معنی متعذر ده.څکه چې د زید معتق او دده اولاد نشته.نو په مجازی معنی باندې به محمول کولې شی.

که څوک سوال اوکړی که زید د خپلو موالی لپاره وصیت اوکړو.او دده صرف یو مولی (آزاد کړې شوې غلام) دې.او بعضې د موالیو موالی دی.نو اوس څه حکم دې؟

خواب۞ د وصیت نصف به معتق لپاره وی.او پاته نصف به د موصی وارثانو لپاره وی.

که څوک سوال اوکړی داسې ولې اوشو.دلته هم هغه شان وئیل پکار وو.کوم چې په تیر شوی سبق کې وئیلی شوی وو.چه د معتق لپاره به نصف وی.او پاته نصف به د موالیو موالی لپاره وی.لکه څنګه چې وړاندې د اکا (تره) او د دوو ماماګانو کیدو په صورت کې وئیلی شوی وو؟

خواب۞ که دلته دغه ډول اوئیلې شی.نو د حقیقت او د مجاز جمع کول به لازم شی.او دا متعذر او محال دې.او هلته د حقیقت او د مجاز جمع کیدل نه لازمیږی.څکه چې هلته ماما د نصف مستحق کیدل، د قرابت په وجه دی.په راروان عبارت کې هم دا مسئله بیان کړې شوې ده.

**د معتق او موالی الموالی لپاره وصیت کولو کښې به څوک داخل وی؟**

وَلَوْ كَانَ لَهُ مُعْتَقٌ وَاحِدٌ وَمَوَالِي الْمَوَالِي او که د موصی یو معتق وی.او موالی موالی فَالنِّصْفُ لِمُعْتَقِهِ وَالْبَاقِي لِلْوَرَثَةِ نو نصف دده د معتق دې.او پاته وارثانو لپاره دې. لِتَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْحَقِيقَةِ وَالْمَجَازِ د جمعې د متعذر کیدو په وجه.د حقیقت او مجاز په منځ کې . .

تشریح:- ددې مسئلې مطلب وړاندې بیان کړې شوې دې.

**د موالی لپاره وصیت کولو کښې به موالی څوئې او موالی پلار نه داخلیږی**

وَلَا يَدْخُلُ فِيهِ مَوَالٍ أَعْتَقَهُمْ ابْنُهُ أَوْ أَبُوهُ او نه به داخلیږی په موالی کې هغه موالی کوم چې د موصی څوئې یا دده (د موصی) پلار آزاد کړې وی لِأَنَّهُمْ لَيْسُوا بِمَوَالِيهِ لَا حَقِيقَةً وَلَا مَجَازًا څکه چې دا د موصی موالی نه دی.نه حقیقتاً دی، او نه مجازاً دی وَإِنَّمَا يُحْرِزُ مِيرَاثَهُمْ بِالْعُصُوبَةِ بِخِلَافِ مُعْتَقِ الْبَعْضِ او دا ددوی میراث د عصوبت په وجه حاصلوی.په خلاف د معتق د آزاد کړې شوی غلام لِأَنَّهُ يُنْسَبُ إِلَيْهِ بِالْوَلَاءِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ څکه چې دا وصیت اړخ ته منسوب کولې شی.د ولاء په ذریعه.والله اعلم بالصواب.

تشریح:- که زید د خپلو موالی لپاره وصیت اوکړو.او د زید څوئی یا د زید پلار څوک آزاد کړې دې.نو آیا د څوئی موالی او د پلار موالی به اوس د زید په موالی کې داخل شمارلې شی.او د وصیت به مستحق وی اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه نا، څکه چې کوم خلګ د زید دپلار یا دده د څوئی موالی دی.هغوی نه په حقیقت کې د زید موالی دی.او نه حکماً.

که څوک سوال اوکړی هرکله چې د زید د څوئی یا د زید د پلار موالی نه په حقیقت کې د زید موالی دی.او نه مجازا دی.نو کله چې د پلار یا د څوئی په موالی کې څوک مړشی.او ترکه پریږدی.او خپل هیڅ څوک وارث پرې نږدی.اودهغه معتق یعنی د زید څوئې یا پلار هم مړ شوې دې.او زید موجود دې.نو زید ولې د هغه وارث جوړیږی؟

خواب۞ په ذکر شوی صورت کې د میراث مستحق جوړیدل د عصوبت په بنا (بنیاد) سره دی.او د عصوبت دوې



(دوه) قسمونه دی① نسبی ② سببی، دا سببی عصوبیت دې.او پاتې شو د معتق معتق، نو دا مجازاً د زید مولی دې.څکه چې د معتق د معتق ولاء زید اړخ ته مجازاً منسوب دې.په خلاف د څوئې د معتق، چې دا زید اړخ ته نه په حقیقت کې منسوب دې.او نه مجازاً.

تنبیه۞ دلته په مروج نسخو کې عبارت داسې دې. ﴿بخلاف معتق البعض﴾ حالانکه عبارت داسې کیدل پکار دی. ﴿بخلاف معتق المعتق﴾

## بَابُ الْوَصِيَّةِ بِالسُّكْنَى وَالْخِدْمَةِ وَالثَّمَرَةِ

ژباړه:- (دا) باب د سکنی او خدمت او د میوو وصیت کاوه (په بیان کې) دې.

تشریح:- بعضې شیان داسې وی.کوم چې بالفعل بطور عین موجود وی.لکه غلام یا کور وغیره، او بعضې شیان داسې دی.چه هغه بالفعل بطور عین موجود نه وی.بلکه حاصلیدې شی.لکه مثلاً زید اوئیل.چه زما په وفات باندې زما په باغ کې چې دې کال کومې میوې راشی.د هغې ما د بکر لپاره وصیت اوکړو .یا ئې اوو‌ئیل.چه زما ددې وینځې یا دغلام، یا د یوې وینځې یا د یو غلام خدمت د یوکال پورې بکر لپاره وصیت دې.یا بکر لپاره یوکال پورې زما په دې کور کې د اوسیدو وصیت دې.بهرحال مرغینانی رحمه الله چه د اعیان د وصیت نه فارغ شو.نو اوس دهغه وصیتونو ذکر فرمائی.د کومو تعلق چې منافعو سره دې.او منافع د اعیان نه مؤخر وی.په دې وجه دا باب مؤخر کړې شوې دې.

**د غلام د خدمت یا په کور کښې د اوسیدو وغیره د وصیت حکم**

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل کې وَتَجُوزُ الْوَصِيَّةُ بِخِدْمَةِ عَبْدِهِ وَسُكْنَى دَارِهِ سِنِينَ مَعْلُومَةً ورد خپلو غلامانو د خدمت،اودخپل کوردسکنی دمعین کالونو پورې وصیت کول جائز دې وَتَجُوزُ بِذَلِكَ أَبَدًا او ددې وصیت د همیشه لپاره کول جائز دې لِأَنَّ الْمَنَافِعَ يَصِحُّ تَمْلِيكُهَا فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ بِبَدَلٍ وَغَيْرِ بَدَلٍ څکه چې د ژوند په حالت کې د منافعو مالك جوړول صحیح دی.د بدل په ذریعه، او د بدل نه بغیر (هم) فَكَذَا بَعْدَ الْمَمَاتِ لِحَاجَتِهِ كَمَا فِي الْأَعْيَانِ نو هم دغه ډول د مرګ نه روسته د موصی د حاجت په وجه، لکه څنګه چې اعیان کې کیږی وَيَكُونُ مَحْبُوسًا عَلَى مِلْكِهِ فِي حَقِّ الْمَنْفَعَةِ او دا (غلام یا کور) به د موصی په ملك باندې محبوس وی.د منفعت په حق حَتَّى يَتَمَلَّكَهَا الْمُوصَى لَهُ عَلَى مِلْكِهِ كَمَا يَسْتَوْفِي الْمَوْقُوفُ عَلَيْهِ مَنَافِعَ الْوَقْفِ عَلَى حُكْمِ مِلْكِ الْوَاقِفِ تردې چې موصی له به د موصی په ملك باندې د منفعت مالك وی. لکه څنګه چې موقوف علیه د وقف منافع د وقف کونکی د ملك په حکم باندې وصول کوی.

حل اللغة: ① سکنی: استوګنه ② محبوس: بند شوې

تشریح:- لکه څنګه چې انسان په خپل ژوند کې د خپل شئ د منافعو نور خلګ مالك جوړولې شی.چه ددې یوځوصورتونه دی① کرایه باندې ئې ورکړی.نوپه کرایه باندې اخستونکې د اجرت په بدله کې د منافعو مالك شو.② عاریت باندې ئې ورکړی. د عاریت په صورت کې عاریت باندې اخستونکې په مفتو کې د منافع مالك کیږی.دغه ډول انسان ته دا حق حاصل دې.چه د خپل مرګ نه روسته یوکس د خپل شئ د منافعو مالك جوړ کړی.څکه چې لکه څنګه هغه ته د اعیان د وصیت حاجت راپیښیږی.د غه شان هغه ته د منافعو د وصیت حاجت راپیښیږی.

اوس سوال دادې.چه ددې شئ مالك به څوك وی.موصی به وی اوکه د موصی وارثان،او که موصی له بالمنافع؟ نو وې فرمائیل.چه اګرچه ددې په عین کې ملکیت د وارثانو وی.خو د منفعت په حق کې دا شئ د موصی په ملك باندې پاته دې. یعنی موصی له ددې منفعت مالك د موصی په ملکیت باندې جوړ شوې دې.لکه څنګه چې په موقوف کې موقوف علیه د وقف کوم منافع حاصلوی.د واقف په ملك باندې ئې حاصلوی.

**وصیت د مقرر وخت لپاره وی او که همیشه لپاره وی؟**

وَيَجُوزُ مُؤَقَّتًا وَمُؤَبَّدًا كَمَا فِي الْعَارِيَةِ او وصيت جائز دې.د مقرر وخت دپاره، اوهميشه دپاره، لكه څنګه چې عاريت جائز دي فَإِنَّهَا تَمْلِيكٌ عَلَى أَصْلِنَا، بِخِلَافِ الْمِيرَاثِ خكه چې عاريت زمونږ په اصل كې مالك جوړول دي.په خلاف د ميراث لِأَنَّهُ خِلَافَةٌ فِيمَا يَتَمَلَّكُهُ الْمُوَرِّثُ خكه چې ميراث خلافت دي.هغه شئ كې دكوم چې مورث مالك دي وَذَلِكَ فِي عَيْنٍ تَبْقَى او خلافت په داسې عين كې كيږي.كوم چې پاته پاتې شي وَالْمَنْفَعَةُ عَرَضٌ لَا يَبْقَى او منفعت داسې عرض دي.چه پاته نه پاتې كيږي وَكَذَا الْوَصِيَّةُ بِغَلَّةِ الْعَبْدِ وَالدَّارِ او هم دغه ډول د غلام او د كور د آمدنئ وصيت كول (جائز) دي لِأَنَّهُ بَدَلُ الْمَنْفَعَةِ فَأَخَذَ حُكْمَهَا خكه چې آمدني د منفعت بدل دي.نو آمدني به د منفعت حكم اخلي وَالْمَعْنَى يَشْمَلُهُمَا او معني دوى دواړو (منفعت او آمدنئ) ته ګډ ده.

**حل اللغة:** ① **موقت:** وختى طور ② **موبد:** هميشه لپاره ③ **الغلة:** آمدن، ګټه»

**تشريح:-** هر كله چې د منافعو وصيت جائز دې.نو بيا كه د يو څو ورځو كوى.دا هم جائز ده.او كه هميشه لپاره ئې اوكړى.نو دا هم جائز ده.لكه څنګه چې عاريت كې دا دواړه خبرې جائز دى.خكه چې زمونږ د اصل مطابق عاريت مالك جوړول دى.او وصيت هم مالك جوړول دى.البته په ميراث كې د رقبهٔ نه بغير صرف په منافعو كې ميراث نه جارى كيږي.خكه چې ميراث مالك جوړول نه دى.بلكه خلافت دې.او خلافت په پاقى اعيانو كې جارى كيږي.په اعراضو كې نه جارى كيږي.او منافع اعراض دى.چه دا پاته نه پاتې كيږي.په دې وجه منافعو كې خلافت نه جارى كيږي.او لكه څنګه چې د خپل غلام او د كور د منافعو وصيت جائز دې.دغه ډول دا هم جائز دى.چه غلام په اجرت باندې په وركولو، او كور په كرايه باندې ور كاوه سره چې كومه كرايه حاصليږي.د هغې وصيت اوكړى.خكه چې دا كرايه د منافعو بدل دي.نوهر كله چې د منافعو وصيت جائز دې.نو دمنافعو د بدل وصيت به هم جائز وى.او د كومو وجوهات په لحاظ سره چې د منافعو وصيت جائز دې.هم د هغه وجوهاتو په لحاظ سره د كرايه (آمدنئ) وصيت هم جائز دې.

**د غلام د خدمت په وصيت كښې د نفاذ طريقه**

قَالَ امام قدورى رحمه الله او فرمائيل فَإِنْ خَرَجَتْ رَقَبَةُ الْعَبْدِ مِنَ الثُّلُثِ نو كه د غلام رقبه د دريمې برخې نه اوخى يُسَلَّمُ إِلَيْهِ لِيَخْدُمَهُ نو غلام به موصى له ته سپارلې كيږي.چه غلام د موصى له خدمت اوكړى لِأَنَّ حَقَّ الْمُوصَى لَهُ فِي الثُّلُثِ لَا يُزَاحِمُهُ الْوَرَثَةُ خكه چې د موصى له حق په دريمه برخه كې دې.چه په دې كې وارثان مقابل نشي جوړيدې وَإِنْ كَانَ لَا مَالَ لَهُ غَيْرُهُ.كه د موصى د غلام نه علاوه مال نه وى خَدَمَ الْوَرَثَةَ يَوْمَيْنِ وَالْمُوصَى لَهُ يَوْمًا نو غلام به دوې (دوه) ورځې د وارثانو خدمت كوى.او يوه ورځ به د موصى له (خدمت) كوى لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الثُّلُثِ وَحَقَّهُمْ فِي الثُّلُثَيْنِ كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ فِي الْعَيْنِ خكه چې د موصى له حق په دريمه برخه كې دې.او د وارثانو حق په دريوكې دوو برخو كې دې.لكه څنګه چې د عين په وصيت كې (كيږى). وَلَا تُمْكِنُ قِسْمَةُ الْعَبْدِ أَجْزَاءً او د تكړې كاوه په طريقه باندې د غلام تقسيمول ممكن نه دى لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ خكه چې غلام غير متجزى دې فَصِرْنَا إِلَى الْمُهَايَأَةِ إِيفَاءً لِلْحَقَّيْنِ نو مونږه مهايات (نمبروارى) اړخ ته اوګرځيدو.د دواړو حقونو پوره كاوه دپاره.

**حل اللغة:** ① **المهاياة:** نمبروارى ② **تزاحم:** مقابل كيږى ③ **خدم:** جمع د خادم، خدمتګار»

**تشريح:-** زيد د خالد لپاره د غلام د خدمت وصيت اوكړو.او د غلام قيمت دوې (دوه) ثلثه دې.يا ددې نه زيات نور مال هم موجود دې.يعنى غلام د ثلث نه وتلې شى.نو غلام به خالد ته سپارلې كيږي.چه غلام د خالد خدمت كوى.خكه چې د خالد حق په ثلث كې دې.په دې ثلث كې وارثان دده مقابل نشى جوړيدې. او كه موصى سره ددې غلام نه علاوه نور هيڅ مال نه وى.نو بيا به دا طريقه اختيارولې شى.چه دا غلام به دوې (دوه) ورځې د وارثانو خدمت كوى.او يوه ورځ به د خالد خدمت كوى.خكه چې د وارثانو حق دوې (دوه) ثلثه دې.او د خالد حق يو ثلث دې.لكه څنګه چې د اعيانو په وصيت كې كيږي.او غلام درې برخې كول، او تكړې



كاوه سره ويش كيداې نشى.خكه چې غلام په دې اعتبار سره غير متجزى دې.نو اوس د مهايات (نمبروارى) نه علاوه هيڅ لاره نشته.نو مهايات به اختيارولې شى.چه دواړه حقونه پوره كړې شى.د وارثانو حق هم او د موصى له حق هم.

**د كور د سكنى په وصيت كښې كه دا د ثلث نه نه اوځى نو څه حكم دې؟**

بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ بِسُكْنَى الدَّارِ إِذَا كَانَتْ لَا تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ حَيْثُ تُقْسَمُ عَيْنُ الدَّارِ ثَلَاثًا لِلِانْتِفَاعِ په خلاف د وصيت كاوه په كور كې د اوسيدو.كله چې كور د ثلث نه اوخى.په دې حيثيت سره چې دكورعين به په دريو برخو باندې تقسيمولې شى.د فاندې اخستلو لپاره لِأَنَّهُ يُمْكِنُ الْقِسْمَةُ بِالْأَجْزَاءِ وَهُوَ أَعْدَلُ لِلتَّسْوِيَةِ بَيْنَهُمَا زَمَانًا وَذَاتًا خكه چې تكړې كاوه سره ويش ممكن دې.او هم دا زياته مناسب ده.ددوى دواړو په منځ كې د زمان او ذات په اعتبار سره، د برابرئ په وجه وَفِي الْمُهَايَأَةِ تَقْدِيمُ أَحَدِهِمَا زَمَانًا او په مهايات كې په دوى دواړو كې د يو تقديم دې.

**تشريح:-** كه زيد د غلام د منافعو په خانې په كور كې د اوسيدو وصيت كړې وى.او د كور نه علاوه د زيد هيڅ مال نه وى.نو دلته به كور په اعتبار د اجزاو تقسيمولې شى.يعنى دوې (دوه) ثلثه به وارثانو ته او يو ثلث به موصى له ته وركولې شى.او هم دا د اجزاو په ذريعه تقسيمول زيات عدل دې.خكه چې په دې طريقهٔ كاركې د موصى له او وارثانو په منځ كې برابرى ده.د ذات په اعتبار سره هم، چې دواړو فريقو ته كور ملاو شو.او د زمان په اعتبار سره هم، چې دواړو فريقو ته په يوه زمانه كې كور ملاو شوې دې.او په مهايات كې يو فريق مقدم كول لازميږي.

**په كور كښې دننه برخو سره ويش كيداې شى**

وَلَوِ اقْتَسَمُوا الدَّارَ مُهَايَأَةً مِنْ حَيْثُ الزَّمَانُ تَجُوزُ أَيْضًا او كه دوى كور د مهايات په طور ويش كړو.د زمانې په اعتبار سره، نو هم جائز ده لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ، إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ وَهُوَ الْأَعْدَلُ أَوْلَى خكه چې حق هم ددوى دې.خو ړومبئ (طريقه) او هم دا زياته د عدل ده.افضله ده وَلَيْسَ لِلْوَرَثَةِ أَنْ يَبِيعُوا مَا فِي أَيْدِيهِمْ مِنْ ثُلُثَيِ الدَّارِ او وارثانو ته دا حق نشته.چه د كور دوې (دوه) ثلثه كوم چې ددوى په قبضه كې دى.هغه خرڅ كړى. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّ لَهُمْ ذَلِكَ لِأَنَّهُ خَالِصُ مِلْكِهِمْ او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى.چه دوى لپاره دا خپل حق (خرڅول) خكه (جائز دى) چې دا خالص ددوى ملكيت دې.

**تشريح:-** په كور كې اجزاو سره ويش كيداې شى.نو هم دا طريقه به اختيارولې شى.خكه چې دا زياته د عدل ده.او هم په دې كې برابرى زياته ده.او كه دوى كور د مهايات په طريقه ويش كړو.نو دا هم جائز ده.خو اولى ړومبئ طريقه ده.وارثانو سره چې دكور كوم دوې (دوه) ثلثه دى.كه هغوى دغه خرڅول اوغواړى.نو كولاى شى اوكه نشى كولې؟ نو ظاهرالرواية دا دې.چه نشى كولې.او د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دى. چې جائز دى.خكه چې دوى خالص پخپل حق كې تصرف كوى.

**د ظاهرالرواية دليل**

وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ حَقَّ الْمُوصَى لَهُ ثَابِتٌ فِي سُكْنَى جَمِيعِ الدَّارِ د ظاهرالرواية دليل دا دې.چه د موصى له حق د پوره كور په سكنى كې ثابت دى بِأَنْ ظَهَرَ لِلْمَيِّتِ مَالٌ آخَرُ وَتَخْرُجُ الدَّارُ مِنَ الثُّلُثِ په دې طريقه چې مړى لپاره نور مال ښكاره شى.او كور د ثلث نه خارج شى وَكَذَا لَهُ حَقُّ الْمُزَاحَمَةِ فِيمَا فِي أَيْدِيهِمْ او هم دغه ډول موصى له لپاره د مقابل جوړيدو حق شته.په هغه كور كې كوم چې د وارثانو په قبضه كې دې إِذَا خَرِبَ مَا فِي يَدِهِ كله چې هغه برخه خرابه شى. كومه چې د موصى له په قبضه كې ده وَالْبَيْعُ يَتَضَمَّنُ إِبْطَالَ ذَلِكَ فَمُنِعُوا عَنْهُ او بيع متضمن ده.ددې باطلولو ته، نو وارثان به ددې نه منع كولې شى.

**تشريح:-** دا د ظاهرالرواية دليل دې.ددې حاصل دا دې.كه د مړى تركه ښكاره شى.او دا كور د دريمې برخې نه اوخى.نوده ته به په پوره كې د اوسيدو حق حاصل وى.او هم دغه ډول موصى له ته وارثانو سره د مقابل (او خصم)

جوړيدو حق شته.د كور په هغه برخه كي كومه چې د وارثانو په قبضه كي ده.يعني د موصى له په قبضه كي چې كومه ده.كه هغه خرابه شي.نو هغه ته به حق وى.چه وارثانو نه هغه برخه اوغواړي.كومه چې د وارثانو په قبضه كي ده.خكه چې ددې كور د مرمت ذمه دارى په وارثانو باندې ده.او موصى له ته صرف د اوسيدو حق حاصل دې.نو د مقابل جوړيدو حق به لرى.او كه وارثانو ته د خرڅولو اجازت وركړې شى.نو د موصى له د حق باطلول لازميږى.نو وارثان به ددې نه منع كولې شى.

**د موصى له په مرګ سره به موصى به وارثانو ته ور كولې شى**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل فَإِنْ كَانَ مَاتَ الْمُوصَى نو كه موصى له مړ شو لَهُ عَادَ إِلَى الْوَرَثَةِ نو موصى به وارثانو ارخ ته راواپس كيږى لِأَنَّ الْمُوصِي أَوْجَبَ الْحَقَّ لِلْمُوصَى لَهُ لِيَسْتَوْفِيَ الْمَنَافِعَ عَلَى حُكْمِ مِلْكِهِ خكه چې موصى موصى له لپاره حق واجب كړې وو.چه منافع د موصى په ملك باندې حاصل كړې شى فَلَوِ انْتَقَلَ إِلَى وَارِثِ الْمُوصَى نو كه حق د موصى له وارث ارخ ته منتقل كړې شى لَهُ اسْتَحَقَّهَا ابْتِدَاءً مِنْ مِلْكِ الْمُوصِي مِنْ غَيْرِ مَرْضَاتِهِ وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ نو وارث به په پيل كي د منافعو د موصى د ملك نه بغير د هغه د رضامندئ نه مستحق شى.او دا ناجائز ده وَلَوْ مَاتَ الْمُوصَى لَهُ فِي حَيَاةِ الْمُوصِي بَطَلَتْ او كه د موصى په ژوند كي موصى له مړ شى.نو وصيت به باطل وى لِأَنَّ إِيجَابَهَا تَعَلَّقَ بِالْمَوْتِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ خكه چې د وصيت ايجاب د موصى په مرګ باندې معلق دې.د هغه تفصيل مطابق كوم چې موږ وړاندې بيان كړې دې.

**تشريح:-** زيد د خالد لپاره پخپل كور كي د اوسيدو وصيت كړې وو.او د زيد د وفات نه روسته د وصيت مطابق خالد په كور كي اوسيدو.او اوس د خالد وفات اوشو.نو موصى به، به وارثانو ته حواله كولې شى.خكه چې موصى د زيد لپاره دا وصيت كړې وو.چه هغه د موصى د ملك په حكم باندې ددې نه نفع حاصله كړى.اوكه اوس موصى به د خالد وارثانو ته وركړې شى.نو په دې سره به دا لازميږى.چه د موصى د رضامندئ نه بغير په ابتداء كي د موصى له وارثان د منافعو مستحق كيږى.حالانكه دا جائز نه ده.چه د مالك د رضامندئ نه بغير د ملك استحقاق اوشى.

؟ اوكه د زيد په ژوند كي د خالد وفات اوشى.نو وصيت به باطليږى.خكه چې وصيت هم يو عقد دې.چه په دې كي د ايجاب او قبول اړتيا دې.د موصى قول ايجاب دې.او د موصى د مرګ نه روسته د موصى له ددې ايجاب قبلولو ته قبول ونيلې شى.او موصى پخپل ژوند كي ايجاب كوى.او ددې ظهور د اثر په اعتبار سره د موصى د مرګ په وخت كيږى.او دلته چې كله موصى له د موصى په ژوند كي مړ شو.نود موصى ايجاب باطل شو.لكه مثلاً كه بائع ايجاب كړې وو.او اوس لا مشترى قبول كړې نه وو.چه د مشترى وفات اوشو.نو د بائع ايجاب به باطليږى.ددې په اړه كي مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه موږ دا وړاندې په ﴿فصل في إعتبار حالة الوصية﴾ كي بيان كړې دې.

**د غلام د مزدورئ يا د كور د كرايئ د وصيت كولو حكم**

وَلَوْ أَوْصَى بِغَلَّةِ عَبْدِهِ أَوْ دَارِهِ او كه موصى دخپل غلام يا دخپل كور د آمدنئ وصيت اوكړو فَاسْتَخْدَمَهُ بِنَفْسِهِ أَوْ سَكَنَهَا بِنَفْسِهِ نو موصى له د غلام نه پخپله خدمت واخستلو.يا ئې په كور كي پخپله اوسيدل اختيار كړل قِيلَ يَجُوزُ ذَلِكَ نو ونيلى شوى دى.چه دا جائز دى لِأَنَّ قِيمَةَ الْمَنَافِعِ كَعَيْنِهَا فِي تَحْصِيلِ الْمَقْصُودِ خكه چې د منافعو قيمت د عين منافعو پشان دې.د مقصود په حاصلولو كي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ او اصح دا ده.چه جائز نه ده لِأَنَّ الْغَلَّةَ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ خكه چې آمدنى خو دراهم يا دنانير دى. وَقَدْ وَجَبَتِ الْوَصِيَّةُ بِهَا او وصيت هم ددې ( دراهمو او دنانيرو) ثابت شوې دې وَهَذَا اسْتِيفَاءُ الْمَنَافِعِ اودا (خدمت اخستل او اوسيدل) د منافعو وصولول دى وَهُمَا مُتَغَايِرَانِ وَمُتَفَاوِتَانِ فِي حَقِّ الْوَرَثَةِ اودا ( آمدنى او خدمت اخستل) دواړه متغاير دى.او د وارثانو په حق كي دواړه متفاوت دى. فَإِنَّهُ لَوْ ظَهَرَ دَيْنٌ خكه كه په مړى باندې پور ښكاره شى يُمْكِنُهُمْ أَدَاؤُهُ مِنَ الْغَلَّةِ بِالِاسْتِرْدَادِ مِنْهُ بَعْدَ اسْتِغْلَالِهَا نو د وارثانو آمدنئ سره پور اداكول ممكن دى.د موصى



له نه واپس اخستلو سره د آمدنئ حاصلولو نه روسته وَلَا يُمْكِنُهُمْ مِنَ الْمَنَافِعِ بَعْدَ اسْتِيفَائِهَا بِعَيْنِهَا او بعينه د منافعو حاصلولو نه روسته وارثانو له په منافعو سره ادا كول ممكن نه دى.

**حل اللغة:** ① **غلة:** آمدن، ګټه ② **استرداد:** واپس كول ③ **استيفاء:** وصولول ④ **المنافع:** جمع د منفعة ، فائده،ګټه

**تشريح:-** كه زيد د خالد لپاره دا وصيت اوكړو.چه خالد به زما د غلام مزدورى اخلى.يا به زما د كور كرايه اخلى.نو وصيت جائز دې.خوكه په كور كي خالد پخپله اوسيدل پيل كړى.يا د غلام نه پخپله خدمت اخلى.نو دا جائز دى.او كه نه دى؟ نو مرغينانى رحمه الله اوفرمائيل.چه په دې كي اختلاف دې.بعض حضرات دا جائز ګرخوى.او بعضې دا نا جائز ګرخوى.بيا مرغينانى رحمه الله دوهم قول ته ترجيح وركړې ده.او دا ئې اصح ګرخولې دې.او په درمختار كي هم دا مفتى به قول ګرخولې شوې دې.اوس د دواړو اقوالو دليل واورئ.

؟ ①دړومبى قول دليل دا دې.چه هركله خالد لپاره د غلام او د كور د منافعو د قيمت اخستلو حق شته.نو دعين منافعو اخستلو حق به هم وى.خكه چې په مقصود حاصلولو كي دواړه برابر دى.② د دوهم قول دليل دا دې.چه موصى به آمدنى ده.عين منافع نه دى.او په دوى دواړو كي تغاير دې.خكه چې آمدنى دراهم او دنانير دى.او هم دا موصى به دى.او ددې دواړو تغاير ښكاره دې.

؟ او دغه ډول د وارثانو په حق كي هم دواړه متفاوت دى.او هغه په دې طريقه كه خالد ددې نه آمدنى حاصلوله.او اتفاق سره په زيد باندې پور ښكاره شوې وې.نو وارثانو لپاره جائز وو.چه د خالد نه آمدنى واپس واخلى.او پور ادا كړى.او كه خالد پخپله منافع حاصل كړې وى.نو د منافعو واپس اخستل ممكن نه دى.نو منافع واپس اخستل او پور ادا كول ممكن نه دى.

**د غلامت د خدمت، د كور د اوسيدو،يا د څه خيز د منافعو د وصيت حكم**

وَلَيْسَ لِلْمُوصَى لَهُ بِالْخِدْمَةِ وَالسُّكْنَى أَنْ يُؤَاجِرَ الْعَبْدَ أَوِ الدَّارَ او د خدمت اخستلو او اوسيدو موصى له ته دا اختيار نشته.چه غلام يا كور په اجاره باندې وركړى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهُ ذَلِكَ او امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه موصى له ته دا حق شته لِأَنَّهُ بِالْوَصِيَّةِ مَلَكَ الْمَنْفَعَةَ خكه چې موصى له د وصيت په وجه د منفعت مالك شوې دې فَيَمْلِكُ تَمْلِيكَهَا مِنْ غَيْرِهِ بِبَدَلٍ نو موصى له به د خپل غير د منفعت د تمليك، مالك وى.په بدل سره يا بغير د بدل نه، أَوْ غَيْرِ بَدَلٍ لِأَنَّهَا كَالْأَعْيَانِ عِنْدَهُ بِخِلَافِ الْعَارِيَةِ خكه چې منفعت ددوى په نيز د اعيانو پشان دې.په خلاف د عاريت لِأَنَّهَا إِبَاحَةٌ عَلَى أَصْلِهِ وَلَيْسَ بِتَمْلِيكٍ خكه چې عاريت ددوى د اصل مطابق اباحت او تمليك نه دې.

**تشريح:-** كه زيد د خالد لپاره وصيت اوكړو.خو د غلام د خدمت يا په كور كي د اوسيدو وصيت ئې اوكړو .نو وصيت جائز دې.اوس خالد غواړى.چه په دې سره كرايه اوكړم.او آمدنى حاصله كړم.نو دا جائز ده او كه نه؟ نو په دې كي اختلاف دې. زموږ په نيز دا جائز نه ده.او د امام شافعى رحمه الله په نيز جائز ده.د امام شافعى رحمه الله دليل دا دې.چه خالد د وصيت په وجه د منافعو مالك شوې دې.او هركله چې هغه مالك شو.نو هغه لپاره به جائز وى.چه هغه بل څوك ددې مالك جوړ كړى.كه په مفتو كي ئې مالك جوړ كړى.او كه په معاوضه سره ئې جوړ كړى.مفت داسې لكه چې په عاريت باندې ئې وركړى.او معاوضه سره داسې چې په اجاره باندې ئې وركړى.خكه چې د امام شافعى رحمه الله په نيز لكه څنګه چې دراهم او دنانير موجودات عينيه دى.نو دغه ډول ددوى په نيز منافع هم موجودات عينيه دى.﴿و مر في كتاب الإجارات﴾ نو لكه څنګه چې د اعيانو تمليك جائز دې.دغه ډول به د منافعو تمليك هم جائز وى.

كه څوك سوال اوكړى هركله چې د امام شافعى رحمه الله په نيز منافع د اعيانو پشان دى.نوكله چې زيد خالد ته خپل اس په عاريت باندې وركړې وى.نوخالد لپاره جائز كيدل پكار دى.چه هغه اس بل چاته عاريت باندې وركړى.حالانكه امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه مستعير لپاره جائز نه ده.چه هغه عاريت په عاريت باندې وركړى؟

خواب۞ منافع ددوى په نيز د اعيانو پشان دى.خو څه اوكړې شى.چه ددوى په نيز وصيت كي موصى له د موصى به مالك جوړيږى.او مستعير په عاريت كي نه مالك كيږى.نو هركله چې مستعير پخپله د منافعو نه مالك

کيږي.نو بل څوک به څنگه مالک جوړولې شي.خکه چې عاريت ددوی په نيز اباحت دي.تمليک نه دي.او په اباحت او تمليک کې هم دا توپير دي.چه په ړومبی کې مالک نشي جوړولې.او په دوهم کې ئې مالک جوړولې شي.

**د احنافو رحمهم الله ړومبی دليل**

وَلَنَا أَنَّ الْوَصِيَّةَ تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ مُضَافٍ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ او زموږ دليل دا دي.چه وصيت د بدل نه بغير تمليک دي.چه د مرگ نه روستو ارخ ته مضاف دي فَلَا يَمْلِكُ تَمْلِيكَهُ بِبَدَلٍ اعْتِبَارًا بِالْإِعَارَةِ نو موصی له به بدل سره ددې تمليک نه مالک کيږي.عاريت باندې قياس کاوه سره فَإِنَّهَا تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ عَلَى أَصْلِنَا خکه چې عاريت د ژوند په حالت کې د بدل نه بغير تمليک دي. زموږ د اصل مطابق وَلَا يَمْلِكُ الْمُسْتَعِيرُ الْإِجَارَةَ او مستعير د اجارې مالک نه دي لِأَنَّهَا تَمْلِيكٌ بِبَدَلٍ،خکه چې اجاره بدل سره تمليک دي كَذَا هَذَا نو دغه ډول دا هم دي وَتَحْقِيقُهُ أَنَّ التَّمْلِيكَ بِبَدَلٍ لَازِمٌ وَبِغَيْرِ بَدَلٍ غَيْرُ لَازِمٍ او ددې تحقيق دا دي.چه تمليک بالبدل لازم دي.او د بدل نه بغير غير لازم دي وَلَا يَمْلِكُ الْأَقْوَى بِالْأَضْعَفِ وَالْأَكْثَرَ بِالْأَقَلِّ او اقوی د اضعف په وجه، او اکثر د اقل په وجه نه مملوک کيږي وَالْوَصِيَّةُ تَبَرُّعٌ غَيْرُ لَازِمٍ إِلَّا أَنَّ الرُّجُوعَ لِلْمُتَبَرِّعِ لَا لِغَيْرِهِ او وصيت داسې تبرع ده.چه غير لازم ده.خو د رجوع کاوه حق متبرع (موصی) ته شته.دده نه غير ته نشته وَالْمُتَبَرِّعُ بَعْدَ الْمَوْتِ لَا يُمْكِنُهُ الرُّجُوعُ او متبرع نو د مرگ نه روستو هغه له رجوع ممکن نه ده. فَلِهَذَا انْقَطَعَ أَمَّا هُوَ فِي وَضْعِهِ فَغَيْرُ لَازِمٍ نو هم په دې وجه رجوع منقطع شوه.بهرحال وصيت کول د خپلې وضعې په اعتبار سره لازم ده.

**تشريح:-** دا زموږ دليل دي.ددې حاصل دا دي.چه وصيت د منافعو کمزوري دي.او په کرايه باندې ورکول زيات قوي دي.او کمزوري د قوي احتمال نه لري.خکه چې خالد (چاته چې د منافعو وصيت کړې شوې دي) هغه د غلام او د کور په اجاره باندې د ور کاوه حقدار نه دي.اوس دا حاصل عبارت سره منطبق کړئ.وصيت کې تمليک دي.خو تمليک في الحال نه دي.بلکه د موصي دمرگ نه روستو دي.او په وصيت کې تمليک مفت دي.موصی ددې تمليک هيڅ بدل او عوض نه دي اخستې.نو هر کله چې موصي له لره موصي په مفتو کې مالک جوړ کړې دي.نو موصی له ته به دا حق نه وي.چه هغه بل څوک بدل او عوض سره ددې مالک جوړ کړي.لکه څنگه چې په عاريت کې هم دا حکم دي.چه په عاريت کې معير مستعير لره پخپل ژوند کې د منافعو مالک جوړوي.او په مفتو کې ئې جوړوي.نو مستعير ته به دا حق نه وي.چه هغه بل څوک د بدل او عوض مالک جوړ کړي.نو مستعير عاريت په اجاره باندې نشي ورکولې.نو هم دغه ډول موصی له غلام يا کور په کرايه باندې نشي ورکولې.

او ددې خواب تحقيق دا دي.چه تمليک بالبدل لازم دي.نو په تمليک بالبدل کې مملک رجوع نشي کولې.او تمليک بغير البدل غير لازم دي.نو موصی ته د رجوع کاوه حق وي.او دا اصول مقرر دي.چه سړي ته د اضعف او اقل په وجه د اقوی او اکثر ملکيت نه حاصليږي.او وصيت يوه تبرع ده.چه غير لازم ده.او اجاره عقد لازم دي.نو د وصيت په وجه به موصي له ته د اجارې استحقاق نه وي.خو په تبرع کې د رجوع کاوه حق صرف متبرع ته وي.غير ته نه وي.نو موصی ته حق وو.چه هغه رجوع اوکړي.خو کله چې موصی مړ شو.نو د مرگ نه روستو د موصی د رجوع کاوه امکان ختم شو.گنی وصيت د خپلې وضعې په اعتبار سره عقد غيرلازم دي.

**د احنافو رحمهم الله دوهم دليل**

وَلِأَنَّ الْمَنْفَعَةَ لَيْسَتْ بِمَالٍ عَلَى أَصْلِنَا او خکه چې منفعت زموږ د اصل مطابق مال نه دي وَفِي تَمْلِيكِهَا بِالْمَالِ إِحْدَاثُ صِفَةِ الْمَالِيَّةِ فِيهَا تَحْقِيقًا لِلْمُسَاوَاةِ فِي عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ او منفعت دمال په ذريعه په مالک جوړولو کې په منفعت کې د ماليت صفت پيدا کول دي.په عقد معاوضه کې د برابرئ ثابتولو په غرض سره فَإِنَّمَا تَثْبُتُ هَذِهِ الْوِلَايَةُ لِمَنْ يَمْلِكُهَا تَبَعًا لِلْمِلْكِ الرَّقَبَةِ نو دا ولايت صرف هغه کس ته حاصليږي.کوم چې د منفعت مالک جوړ شوې وي.د ملک رقبه په تبعيت سره أَوْ لِمَنْ يَمْلِكُهَا بِعَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ يا هغه سړي ته کوم چې د منفعت مالک شوې وي د عقد معاوضه په وجه حَتَّى يَكُونَ مُمَلِّكًا لَهَا بِالصِّفَةِ الَّتِي تَمَلَّكَهَا، تردې چې دا سړې د منفعت مملوک کيداې شي.هغه صفت سره کوم سره چې هغه ددې منفعت مالک شوې دي أَمَّا إِذَا تَمَلَّكَهَا مَقْصُودَةً بِغَيْرِ عِوَضٍ بهرحال هر کله چې هغه د منفعت مالک شوې دي.په



داسې حال کې چې منفعت مقصود دي.د عوض نه بغير ثُمَّ مَلَّكَهَا بِعِوَضٍ بيا هغه د منفعت مالک جوړ کړي په عوض سره كَانَ مُمَلِّكًا أَكْثَرَ مِمَّا تَمَلَّكَهُ مَعْنًى وَهَذَا لَا يَجُوزُ نو هغه معنی دهغې نه د زيات مملک شو.دکوم چې هغه مالک شوې وو.او دا جائز نه ده.

**تشريح:-** دا زموږ دوهم دليل دي.ددې حاصل دا دي.که د خدمت او اوسيدو موصی له ته په اجاره باندې د ور کاوه اجازت ورکړې شي.نو دا به خلاف اصول خبره وي.چه په دې کې د غير مال، مال جوړول لازميږي. حالانکه دلته جوړونکی ته دا حق نشته.اوس دا اجمالي تقرير عبارت سره منطبق کړئ.

زموږ د اصل مطابق منافع مال نه دي.او که موصی له ته دا اجازت ورکړې شي.چه هغه دا په کرايه باندې ورکړي.نو چونکه په کرايه باندې اخستونکې په بدله کې مال ورکوي.نو ضروري به وي.چه په منافعو کې هم د ماليت صفت پيدا کړې شي.چه په عقد معاوضه کې مساوات او برابري ثابت شي. خکه چې اجاره عقد معاوضه ده.حالانکه موصی له ته دا حق نشته.چه هغه په منافعو کې د ماليت صفت پيدا کړي.خکه چې منافعو کې د ماليت د صفت پيدا کاوه صلاحيت چې کومو حضراتو ته حاصل دي. هغوی کې موصی له نشته.

کوم حضرات چې په منافعو کې د ماليت صفت پيدا کوي.هغه دوې (دوه) ډلې دي:① کوم چې د عقد معاوضه په وجه د منافعو مالک شوې وي.لکه مستاجر، نو هغه ته به اجاره باندې د ور کاوه حق وي.② کوم چې د منافعو مالک د ملک رقبه په تبعيت کې جوړ شوې وي.لکه مشتري، وارث وغيره، نو دا دواړه چې په کومه طريقه د منافعو مالکان شوی دی.هم په دغه طريقه نور خلگ هم د منافعو مالکان جوړولې شي.او څوک چې صرف د منافعو مالک شوې وي.او هلته صرف منافع مقصود وي.او مالک هم د عوض نه بغير جوړ شوې دي.نوهغه ته به دا حق نه وي.چه هغه عوض سره بل څوک ددې مالک جوړ کړي.گنی دا به لازميږي.چه د څومره شي دې پخپله مالک جوړ نشو.د هغې بل څوک مالک جوړوي.حالانکه دا جائز نه ده. اوهم دا حال دلته د ذکر شوی موصی له دي.

**موصی له لپاره د موصی به غلام د ښار نه بهر بوتلل جائز دي اوکه نه؟**

وَلَيْسَ لِلْمُوصَى لَهُ أَنْ يُخْرِجَ الْعَبْدَ مِنَ الْكُوفَةِ او موصی له ته دا حق نشته.چه هغه غلام د کوفې نه اوباسی إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْمُوصَى لَهُ وَأَهْلُهُ فِي غَيْرِ الْكُوفَةِ خو دا چې موصی له او دده کور والا په غير کوفه کې وي فَيُخْرِجُهُ إِلَى أَهْلِهِ لِلْخِدْمَةِ هُنَالِكَ إِذَا كَانَ يَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ نو موصی له به غلام د خپل اهل (خاندان) ارخ ته اوبنکلې شي.هلته د خدمت کاوه دپاره، کله چې غلام د ثلث نه اوځي لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ إِنَّمَا تَنْفُذُ عَلَى مَا يُعْرَفُ مِنْ مَقْصُودِ الْمُوصِي خکه چې وصيت هم په دې طريقه نافذ کيږي.چه د موصی مقصود معلوم شوې دي فَإِذَا كَانُوا فِي مِصْرِهِ نو کله چې د موصی له اهل د موصی په ښار کې وي کړي فَمَقْصُودُهُ أَنْ يُمَكِّنَهُ مِنْ خِدْمَتِهِ فِيهِ بِدُونِ أَنْ يَلْزَمَهُ مَشَقَّةُ السَّفَرِ نود موصی مقصود دا دي.چه هغه موصی له ته هم په دې ښار کې دغلام نه د خدمت اخستلو قدرت ورکوي.بغير ددې نه چې هغه په غلام باندې د سفر مشقت لازم وَإِذَا كَانُوا فِي غَيْرِهِ فَمَقْصُودُهُ أَنْ يَحْمِلَ الْعَبْدَ إِلَى أَهْلِهِ لِيَخْدُمَهُمْ او کله چې اهل د موصی د ښار نه په غير کې وي.نو دموصی مقصود دا دي.چه موصی له غلام خپل اهل ته بوځي.چه غلام د هغوی خدمت اوکړي.

**تشريح:-** زيد د خالد لپاره د خپل غلام د خدمت وصيت اوکړو.نو آيا خالد ته دا حق شته.چه دا غلام بهر ته بوځي؟ نو وې فرمائيل.چه ددې مدار د موصی په اراده او دده په اجازت باندې دي.او موصی په دې وخت ژوندې نه دي.نو قرائنو څخه به دې ته کتلې شي.که زيد او خالد دواړه مثلاً د بغداد اوسيدونکی وي.او د خالد اهل وعيال هم په بغداد کې اوسيږي.نو خالد ته به دا حق نه وي.چه غلام چرته بهر بوځي.خکه چې دلته د زيد مقصد دا وو.چه غلام په بغداد کې اوسيدو سره د خالد خدمت کوي.او په غلام باندې د سفر مشقت لازم نکړې شي.

اوکه د خالد اهل وعيال په بغداد کې نه اوسيږي.بلکه بهر په بل يو ښار کې اوسيږي.نو هلته د زيد مقصود دا دي.چه خالد دا غلام خپل اهل وعيال له بوځي.چه هلته لاړ شي.او د هغوی خدمت اوکړي.نو اوس به خالد ته حق

وی.چه دا غلام بهر ته بوځی.نو په دې صورت کې به هم خالد ته د بهر بیولو (بوتللو) حق صرف هغه وخت وی.کله چې غلام د دریمې برخې نه خارج شی.او که غلام د دریمې برخې نه نه اوځی.نو بیا به خالد ته دا حق نه وی.چه غلام بهر ته بوځی.خو کله چې وارثان اجازت ورکړی.

## د خپل غلام یا د کور د آمدنۍ د وصیت کولو حکم

ولو أوصى بغلة عبده أو بغلة داره يجوز أيضا او که موصی وصیت اوکړو د خپل غلام د آمدنۍ، یا د خپل کور د آمدنۍ، نو بیا هم جائز ده لأنه بدل المنفعة ځکه چې دا دمنفعت بدل دې فأخذ حكم المنفعة في جواز الوصية به نو د بدل (آمدنۍ) حکم به اخلی.ددې سره د وصیت د جواز په سلسله کې كيف وأنه عين حقيقة ولې به جائز نه وی.حالانکه آمدنی حقیقت کې مال عین دې لأنه دراهم أو دنانير ځکه چې آمدنی دراهم او دنانیر فكان بالجواز أولى نو آمدنی به دجواز په سلسله کې اولی وی ولو لم يكن له مال غيره او که ددې نه علاوه د موصی مال نه وی كان له ثلث غلة تلك السنة نو موصی له لپاره به ددې کال د آمدنۍ ثلث وی لأنه عين مال يحتمل القسمة بالأجزاء ځکه چې آمدنی داسې مال عین دې.چه دا اجزاء سره دویش احتمال لری.

تشریح:- دا مسئله وړاندې تیره شوې ده.او هلته ددې جواز معلوم شوې دې.خو کومه مسئله چې ددې نه روستو ذکر ده.د هغې د تمهید لپاره دا مسئله دوباره بیان کړې شوې ده.زید وصیت اوکړو.چه زما د غلام یا زما د کورآمدنی خالد لپاره وصیت دی.نو دا وصیت جائز دې.ځکه چې دمنافعو وصیت جائز دې.نود آمدنۍ وصیت به په درجه اولی جائز وی.ځکه چې آمدنی د منفعت بدل دې.نو هرکله چې د منفعت خدمت جائز دې.نود منفعت د بدل وصیت به په درجه اولی جائز وی.

ځکه چې آمدنی خو دراهم او دنانیر دی.چه دا مال عین دې.نو ددې وصیت په درجه اولی جائز دې.خو که ددې غلام یا ددې کور نه علاوه د موصی نور هیڅ څه مال نه وی.او وارثان ددې اجازت ورنکړی.چه پوره آمدنی موصی له ته ملاو شی.نو موصی له ته به د کال د آمدنۍ ثلث ملاویږی.یعنی که د کال کرایه وصوله شی.نو د کال د آمدنۍ دریمه به ملاویږی.که آمدنی میاشت په میاشت ملاویږی.نو د میاشتې د آمدنۍ ثلث به ملاویږی.او دا خبره وړاندې تیره شوې ده.چه کوم شئ د اجزاو په اعتبار سره تقسیمیږی.نو د هغې ویش به د اجزاو په طریقه کیږی.د مهایات په طریقه به نه کیږی.راروان عبارت کې اصل مسئله بیانوی.چه ددې دا تمهید هم بیانوی.

## د موصی له دکور خپله ثلث برخه وارثانو سره تقسیمول او کور په کرایه باندې ورکول

فلو أراد الموصى له قسمة الدار بينه وبين الورثة نو که موصی له پخپل منځ کې او د وارثانو په منځ کې د کور تقسیمولو اراده اوکړله ليكون هو الذي يستغل ثلثها چې د موصی له د کور ثلث په کرایه باندې لم يكن له ذلك إلا في رواية عن أبي يوسف نو هغه ته به ددې حق نه وی.خو د امام ابویوسف رحمه الله نه په یو روایت کې (دا جواز رانقل دې) فإنه يقول: الموصى له شريك الوارث وللشريك ذلك، فكذلك للموصى له نو امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه موصی له د وارث شریک دې.او شریک ته دا حق شته.نو هم دغه ډول به موصی له ته هم وی إلا أنا نقول: المطالبة بالقسمة تبتنى على ثبوت الحق للموصى له فيما يلاقيه القسمة خو موږ وایو.چه د ویش مطالبه د موصی له د حق په ثبوت باندې مبنی ده.په هغه شئ کې کوم سره چې ویش ملاو شوې دې إذ هو المطالب ځکه چې مطالب هم هغه دې ولا حق له في عين الدار او په عین کور کې د موصی له هیڅ حق نشته وإنما حقه في الغلة او دده حق خو صرف په آمدنۍ کې دې فلا يملك المطالبة بقسمة الدار نو موصی له به د کور د تقسیمولو د مطالبې مالك نه وی.

تشریح:- زید خالد لپاره دکور د آمدنۍ وصیت کړې وو.نو دا جائز وو.او کور د دریمې برخې نه نه اوځی.نو ددې د آمدنۍ ثلث به خالد ته ورکولې شی.خو اوس خالد غواړی.چه دکور ثلث وارثانو سره ویش کړی.او دا پخپله کرایه باندې ورکوی.نو دا جائز ده اوکه نه؟ نو په ټولو روایاتو کې دا حکم دې.چه دا جائز نه دې.البته د امام ابویوسف رحمه الله نه په یو روایت کې دا جواز منقول دې.ددې روایت دلیل دا دې.چه موصی له د وارثانو شریک دې.او



شریك د کور د ویش مطالبه کولې شی.نو موصی له هم کولې شی.د عدم جواز دلیل دا دې.چه موصی مطالبه هغه وخت کولې شوه.کله چې د موصی له په دې شئ کې څه حق وو.چه ددې به ویش کولې شی.حالانکه دده حق صرف په آمدنۍ کې دې.او ویش به صرف د عین کور کیږی.چه په دې کې د موصی له هیڅ حق نشته.نو خالد به ددې مطالبې حقدار نه وی.

## یو لپاره د غلام د رقبې او دوهم کس لپاره د غلام د خدمت وصیت کول

ولو أوصى له بخدمة عبده او که موصی د موصی له لپاره د خپل غلام د خدمت وصیت اوکړو ولآخر برقبته او د بل لپاره نې د غلام د رقبې (وصیت اوکړو). وهو يخرج من الثلث او دا غلام د دریمې برخې نه اوځی فالرقبة لصاحب الرقبة نو رقبه د رقبه والا لپاره ده والخدمة عليها لصاحب الخدمة او په رقبه باندې خدمت د خدمت والا دې لأنه أوجب لكل واحد منهما شيئا معلوما عطفا منه لأحدهما على الآخر ځکه چې موصی په دوی دواړو کې هر یوکس لپاره د معلوم شئ ایجاب کړې دې.دموصی د طرفه، په دوی دواړو کې دیو په دوهم باندې عطف کاوه سره فتعتبر هذه الحالة بحالة الانفراد نو حالت د عطف به په حالت د انفراد باندې قیاس کولې شی.

حل اللغة: ① عطف: اړخ ،اړخ ② الانفراد: ځانله والې

تشریح:- زیدخالد لپاره د غلام د رقبې وصیت اوکړو.او بکر لپاره نې دده د خدمت وصیت اوکړو.یعنی مثلاً داسې نې اووئیل.چه ما د غلام د رقبې وصیت خالد لپاره اوکړو.او د خدمت وصیت مې بکر لپاره اوکړو.یعنی د خدمت عطف نې رقبه باندې اوکړو.او غلام د ثلث نه خارجیږی.نو رقبه د خالد لپاره ده.او خدمت د بکر لپاره دې.ځکه چې زید د هر یو لپاره جلا جلا ایجاب کړې دې.او د هریو لپاره نې د متعین شئ ایجاب کړې دې.او په طریقه د عطف نې کړې دې.او عطف د شرکت تقاضا نه کوی.بلکه مغایرت غواړی.نودعطف په صورت کې به هم هغه حکم وی.کوم چې جلا جلا د وصیت کاوه په صورت کې دې. یعنی که زید د خالد لپاره د رقبې وصیت جلا اوکړی.او بکر لپاره د خدمت وصیت جلا اوکړی.نو رقبه د خالد لپاره وی.او خدمت د بکر لپاره وی.نو د عطف کاوه په صورت کې به هم دا حکم وی.

## د تیرې شوې مسئلې وضاحت او د یوې شبهې ازاله

ثم لما صحت الوصية لصاحب الخدمة بيا هرکله چې د خدمت والا لپاره وصیت صحیح شو فلو لم يوص في الرقبة بشيء نو که موصی د رقبې په سلسله کې هیڅ وصیت نه کولو لصارت الرقبة ميراثا للورثة مع كون الخدمة للموصى له نو رقبه به د وارثانو میراث وو. سره ددې چې خدمت به موصی له لپاره وو فكذا إذا أوصى بالرقبة لإنسان آخر نو هم دغه ډول کله چې موصی د رقبې وصیت د بل انسان لپاره اوکړو إذ الوصية أخت الميراث من حيث أن الملك يثبت فيهما بعد الموت ځکه چې وصیت د میراث خور ده.په دې حیثیت سره چې په دې دواړو کې ملکیت د مرګ نه روستو ثابتیږی.

تشریح:- سوال۞ دا خو عجیبه خبره ده.چه رقبه دچا لپاره ده.او خدمت دچا لپاره دې؟

ځواب۞ دا هیڅ عجیبه خبره نه ده.ځکه که زید د بکر لپاره صرف د خدمت وصیت کړې وې.او د بل چا لپاره نې د رقبې وصیت نه وې کړې.نو د غلام رقبه به د وارثانو ملکیت وو.او خدمت به د بکر لپاره وو.او په دې کې هیڅ تعجب نه کیږی.حالانکه دلته هم دا خبره ده.چه رقبه دچا ده.او خدمت دچا کوی.او هرکله چې میراث کې دا خبره د تعجب نشوه.نو چونکه وصیت د میراث خور ده.په دې وجه به وصیت کې هم دا دتعجب څه خبره نه وی.ځکه چې په وصیت او میراث کې مناسبت دې.چه په دواړو کې ملکیت د مرګ نه روستو ثابتیږی.په حاشیه کې دا عبارت د انفراد دحالت تفسیر او توضیح ګرځولې شوې دې.یعنی که صرف د خدمت وصیت نې کړې وې.د نور څه وصیت نې نه وې کړې.نو رقبه به د وارثانو وه.او بکر لپاره به خدمت وو.نو د انضمام په حالت کې به هم دا اشتراك وی.چه خالد لپاره به رقبه وی.او بکر لپاره به خدمت وی.

## د ذکر شوې مسئلې مثالونه

وَلَهَا نَظَائِرُ او ددې مسئلې ډیر مثالونه دی وَهُوَ مَا إِذَا أَوْصَى بِأَمَةٍ لِرَجُلٍ او هغه دا کله چې موصی د یو سړی لپاره د وینځې وصیت کړې وی وَبِمَا فِي بَطْنِهَا لِآخَرَ او دبل کس لپاره ئې د هغې کوم چې ددې په نس کې دې وَهِيَ تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ او وینځه د دریمې برخې نه اوځی أَوْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِخَاتَمٍ یا موصی دیو کس سړی لپاره د ګتمې وصیت اوکړو وَلِآخَرَ بِفَصِّهِ او د بل کس لپاره ئې ددې د غمی أَوْ قَالَ هَذِهِ الْقَوْصَرَّةُ لِفُلَانٍ یا موصی اووئیل چه دا ټوکرئ د فلانی لپاره ده وَمَا فِيهَا مِنَ التَّمْرِ لِفُلَانٍ او کومې کجورې چې په دې کې دی.هغه د فلانی لپاره دی كَانَ كَمَا أَوْصَى وَلَا شَيْءَ لِصَاحِبِ الظَّرْفِ فِي الْمَظْرُوفِ فِي هَذِهِ الْمَسَائِلِ كُلِّهَا نو هم دغه ډول به وی.لکه څنګه چې موصی وصیت کړې وی.او د مظروف (کوم څه چې په دې کې دی.دهغې) څخه به د ظرف (ټوکرئ) والا لپاره هیڅ نه وی.په دې ټولو مسئلو کې.

**حل اللغة** ① **امة**: وینځه ② **بطن**: نس ③ **خاتم**: انګشتری ④ **القوصرة**: ټوکرئ ⑤ **الظرف**: لوښې ⑥ **التمر**: خرما (قجوره)﴾

**تشریح**:- کیدای شی چې اوس هم دا خبره تاته عجیبه معلومه شی.چه د غلام رقبه د خالد ،او د غلام خدمت د خالد لپاره وی.په دې وجه مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه ددې مسئلې ډیر مثالونه دی.اوس دهغې نه درې مثالونه پیش کوی.① زید وصیت اوکړو.چه زما وینځه خالد لپاره ده.او کوم حمل چې دهغې په نس کې دې.هغه د بکر لپاره دې.او دا وینځه د دریمې برخې ترکې نه اوځی.نو وینځه به د خالد وی. اوددې حمل به بکر لپاره وی.خو ددې لپاره شرط دا دې.چه حمل په شپږو میاشتو کې دننه پیدا شی. ګنی که د شپږو میاشتو نه په زیات کې شی.نو د حمل وصیت به صحیح نه وی.﴿کذا فی شرح الطحاوی﴾

② زید د خالد لپاره د ګتمې وصیت اوکړو.او بکر لپاره ئې د غمی وصیت اوکړو.نو الغه به د خالد وی. او غمې به د بکر لپاره وی.③ زید وصیت اوکړو.چه دا ټوکرئ د خالد لپاره وصیت دې.او په دې کې چې کومې کجورې دی.دا د بکر لپاره وصیت دې.نو ټوکرئ به خالد لپاره وصیت وی.او کجورې به بکر لپاره وی.او د وینځې والا به په حمل کې هیڅ برخه نه وی.او وینځه د ظرف په درجه کې دې.او ددې حمل د مظروف په درجه کې دې.اوهم دغه ډول په پاته دواړو مسئلو کې ده.نو هم دا مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په دې ټولو مسئلو کې د صاحب ظرف (د خالد) په مظروف کې هیڅ برخه نه وی.

تنبیه◉ اوس دلته دا سوال پاته پاتې کیږی.چه ددې غلام نفقه په چا باندې واجب ده.نو ددې ځواب دا دې.چه دچا لپاره د خدمت وصیت کړې شوې دې.هغه باندې د غلام نفقه واجب ده.څکه چې خدمت اخستل هغه وخت ممکن دې.کله چې په ده باندې خرچ هم اوکړې شی.لکه څنګه چې د مستعار شئ نفقه په مستعیر باندې واجب وی.اوکه دا غلام وړوکې دې.چه دا د خدمت قابل نه دې.نو د خدمت قابل جوړیدو پورې به دده نفقه په صاحب د رقبې باندې واجب وی.بیا چې هرکله دا دخدمت والا خدمت پیل کړی.نو دده نفقه به په خدمت والا باندې واجب وی.

### که دوې (دوه) وصیتونه جلا جلا وی نو څه حکم دې ؟

ثُمَّ إِذَا فَصَلَ أَحَدُ الْإِيجَابَيْنِ عَنِ الْآخَرِ فِيهَا بهرحال کله چې موصی په دوو ایجابونو کې ، یو د بل نه جلا کړې وی.په دې ټولو مسئلو کې فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابویوسف رحمه الله په نیز هم دغه ډول ځواب دې أَوْ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ الْأَمَةُ لِلْمُوصَى لَهُ بِهَا او د امام محمد رحمه الله د قول مطابق به وینځه هغه چا لپاره وی.چا لپاره چې د وینځې وصیت کړې شوې دې وَالْوَلَدُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او بچې به ددوی دواړو په منځ کې نیم په نیمه وی وَكَذَلِكَ فِي أَخَوَاتِهَا اوهم دغه ډول ددې اخوات (مثالونه) دی.

**تشریح**:- په دې مذکوره ټولو مسئلو کې دا حکم هغه دې.کله چې د دواړو وصیتونو ذکر موصولا (متصل) شوې وی.او که جلا جلا شوې وی.یعنی مخکې ئې د وینځې وصیت خالد لپاره کړې وی.او بیا ئې جلا کلام سره دهغې د بچی وصیت بکر لپاره کړې وی.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه په دې کې دامام ابویوسف او امام



محمد رحمه الله اختلاف دې.امام ابویوسف رحمه الله اوس هم هغه فرمائی.کوم ئې چې د وصل (یوځائې ونیلو) په صورت کې فرمائیلی وو.چه وینځه به خالد لپاره وی.او بچې به د بکر لپاره وی.

او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه په جلا کلام سره د وصیت کاوه په صورت کې به وینځه هم د هغه کس وی.چا لپاره چې د وینځې خدمت کړې شوې دې.او بچې به دخالد او بکر په منځ کې نیم په نیمه وی.او ددوی دواړو حضراتو دا اختلاف صرف په وینځه او ددې په بچی کې نه دې.بلکه په ګتمه او غمی، او ټوکرئ او کجورو په دې ټولو مسئلو کې هم دا اختلاف دې.

### د امام ابویوسف رحمه الله دلیل

لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ بِإِيجَابِهِ فِي الْكَلَامِ الثَّانِي تَبَيَّنَ أَنَّ مُرَادَهُ مِنَ الْكَلَامِ الْأَوَّلِ إِيجَابُ الْأَمَةِ لِلْمُوصَى لَهُ بِهَا دُونَ الْوَلَدِ او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه موصی په دې ایجاب سره کوم چې په دوهم کلام کې دې.دا خبره واضحه کړله.چه په رومبی کلام سره د موصی مراد موصی له لپاره د وینځې ایجاب دې.د بچې (ایجاب) نه دې وَهَذَا الْبَيَانُ مِنْهُ صَحِيحٌ وَإِنْ كَانَ مَفْصُولًا او د موصی د اړخه دا بیان صحیح دې.اګرچه جلا دې لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ لَا تُلْزِمُ شَيْئًا فِي حَالِ حَيَاةِ الْمُوصِي څکه چې وصیت دموصی د ژوند په حالت کې هیڅ شئ نه لازموی فَكَانَ الْبَيَانُ الْمَفْصُولُ فِيهِ وَالْمَوْصُولُ سَوَاءً كَمَا فِي وَصِيَّةِ الرَّقَبَةِ وَالْخِدْمَةِ نو په دې کې بیان مفصول او موصول (چې یوځائې وی) برابر دی.لکه څنګه چې د رقبې او د خدمت په صورت کې دی.

**تشریح**:- دا دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د تغیر په بیان کې وصل ضروری نه دې.اودلته د موصی دوهم کلام د تفسیر بیان نه دې.یعنی کله چې زید په دوهم کلام سره بکر لپاره ایجاب اوکړو.نو په دې کلام سره دا خبره واضحه شوه.چه په رومبی کلام سره د زید مراد صرف د وینځې ایجاب وو.ددې بچې په ایجاب کې داخل نه وو.او د زید دا بیان صحیح دې.اګرچه مفصول وی.څکه چې دا بیان تغیر نه دې.څکه چې د موصی په ژوند کې به وصیت سره هیڅ نه لازمیږی.بلکه کوم څه چې لازم شی.هغه به دموصی د مرګ نه روستو وی.نو هرکله چې د لزوم نه وړاندې بیان راغې.نو دا به مفسر محض وی.نوکه دا بیان موصولا وی.اوکه مفصولا وی.دټولو حکم برابر دې.لکه مثلاً که زید د خالد لپاره د غلام د رقبهٔ وصیت اوکړو.او بکر لپاره ئې د هغه دخدمت وصیت اوکړو.نو که موصولا اوکړی.او که مفصولا اوکړی.دواړو صورتونو کې هم دا حکم دې.چه خالد لپاره رقبه ده.او بکر لپاره خدمت دې.

### د امام محمد رحمه الله دلیل

وَلِمُحَمَّدٍ أَنَّ اسْمَ الْخَاتَمِ يَتَنَاوَلُ الْحَلْقَةَ وَالْفَصَّ او د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه لفظ د ګتمې حلقې او غمی دواړو ته ګډ دې وَكَذَلِكَ اسْمُ الْجَارِيَةِ يَتَنَاوَلُهَا وَمَا فِي بَطْنِهَا وَاسْمُ الْقَوْصَرَّةِ كَذَلِكَ او هم دغه ډول لفظ د وینځې، وینځې ته هم ګډ دې.او هغې ته هم کوم چې دهغې په نس کې دې.او لفظ د ټوکرئ هم دغه ډول دې وَمِنْ أَصْلِنَا أَنَّ الْعَامَّ الَّذِي مُوجِبُهُ ثُبُوتُ الْحُكْمِ عَلَى سَبِيلِ الْإِحَاطَةِ بِمَنْزِلَةِ الْخَاصِّ او زموږ د اصل څنې دا ده.چه هغه عام دکوم موجب چې د حکم ثبوت وی.په طریقې د احاطې سره، هغه د خاص په درجه کې دې.

**حل اللغة** ① **حلقة**: کړئ ② **الفص**: غمې ③ **القوصرة**: ټوکرئ﴾

**تشریح**:- دا دامام محمد رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د تعارض په وخت د تطبیق هم دا صورت راوځی.نو فرمائی.چه د ګتمې لفظ په اصطلاح کې اګرچه عام نه دې.خو د عام په درجه کې دې.چه د دې لاندې الغه او غمې دواړه داخل دی.او هم دغه ډول لفظ د جاریه دعام په درجه کې دې.چه دا وینځې ته هم ګډ دې.او هغې ته هم ګډ دې.کوم څه چې دهغې په نس کې دی.او هم شان لفظ د قوصره ټوکرئ ته ګډ دې.او کوم څه چې په ټوکرئ کې دی.هغې ته هم ګډ دې.او دا منلې شوې اصول دې.چه عام اصطلاحی هغه شان قطعی وی.لکه څنګه چې خاص قطعی وی.نو خاتم هم د خپلې معنی په سلسله کې قطعی دې.او غمې هم قطعی دې.رومبې د عام کیدو په وجه،او

دوهم دخاص کیدو په وجه.

؟نو کله چې زید د ګتمې وصیت خالد لپاره اوکړو.نو په ګتمه کې الغه او غمې دواړه قطعیت سره داخل دی.او کله چې ده په جلا کلام سره د غمی وصیت بکر لپاره اوکړو.نو اوس صورت دا شو.چه په الغه کې خو هیڅ تعارض نشته.دا خو صرف دخالد ده.البته په غمی کې تعارض شو.د عام تقاضا دا ده.چه غمې هم د خالد دې.او د خاص تقاضا دا ده.چه غمې د بکر دې. او عام او خاص دواړه قطعي دی.نو موږ د تعارض ختمولو لپاره غمې د دواړو په منځ کې مشترك اوګرځولو.او نیم په نیمه مو دواړو لپاره اوګرځولو.دا د مرغینانی رحمه الله د کلام حاصل دې.ددې تفصیل لپاره اوګورئ:﴿نور الانوار:ص٧٣﴾

تنبیه◉ د﴿نتائج الافکار په صفحه ٤٨٤،ج٨﴾ باندې د مرغینانی رحمه الله په دې کلام باندې سخت طعن شوې دې.او په آخر کې دا فرمائیلی شوی دی.چه ﴿فقوله ومن اصلنا أن العام بمنزلة الخاص بمنزلة اللغو ههنا كم لا يخفى﴾ ،، قلتُ،، دا خبره د انصاف نه لرې ده.کله چې تقریر په طریقه اوکړې شي.کوم چې فقیر(شارح هذا) عرض کړو.نو هیڅ اشکال به نه کیږی.

## د ړومبي تقریر نور وضاحت

فَقَدِ اجْتَمَعَ فِي الْفَصِّ وَصِيَّتَانِ نو په غمی کې دوې (دوه) وصیتونه جمع شو وَكُلٌّ مِنْهُمَا وَصِيَّةٌ بِإِيجَابٍ عَلَى حِدَةٍ او په دوی دواړو کې هر یو جلا ایجاب سره دې فَيُجْعَلُ الْفَصُّ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو غمې به په دوی دواړو کې نیم په نیمه کولای شی وَلَا يَكُونُ إِيجَابُ الْوَصِيَّةِ فِيهِ لِلثَّانِي رُجُوعًا عَنِ الْأَوَّلِ، كَمَا إِذَا أَوْصَى لِلثَّانِي بِالْخَاتَمِ او په دې کې دوهم کس لپاره د وصیت ایجاب به د ړومبی نه رجوع نه وی.لکه کله چې موصی د دوهم کس لپاره د ګتمې وصیت کړې وی.

تشریح:- دا د وړاندې تقریر نور وضاحت دې.چه دلته د غمی په اړه کې دوې (دوه) وصیتونه دی.او دواړه په جلا جلا ایجاب سره ثابت دی.نو اوس دلته دوې (دوه) صورتونه دی① غمې به ددوی دواړو په منځ کې مشترك ګرځولې شی.② دوهم ایجاب به د ړومبی نه رجوع ګرځولې شی.خو دلته دویمه طریقه مناسب نه ده.بلکه ړومبئ طریقه زیاته مناسب ده.نو په هغې باندې عمل کړې شوې دې.او دا د ړومبی نه رجوع نه ده ګرځولې شوې.لکه مثلاً که موصی خالد لپاره د غمی وصیت اوکړی.او بیا بکر لپاره د ګتمې وصیت اوکړی.نو اوس به هم غمې صرف د خالد وی.او الغه به ددوی دواړو په منځ کې مشترکه وی.

## د امام ابویوسف رحمه الله د دلیل جواب

بِخِلَافِ الْخِدْمَةِ مَعَ الرَّقَبَةِ په خلاف د خدمت، د رقبې سره لِأَنَّ اسْمَ الرَّقَبَةِ لَا يَتَنَاوَلُ الْخِدْمَةَ ځکه چې لفظ د رقبه خدمت ته ګډ نه دې وَإِنَّمَا يَسْتَخْدِمُهُ الْمُوصَى لَهُ بِحُكْمِ أَنَّ الْمَنْفَعَةَ حَصَلَتْ عَلَى مِلْكِهِ او موصی له ددې نه خدمت اخلی.هغه حکم سره چې منفعت د موصی له په ملك باندې حاصل شوې دې فَإِذَا أَوْجَبَ الْخِدْمَةَ لِغَيْرِهِ نو کله چې موصی دده د غیر لپاره دخدمت ایجاب اوکړو لَا يَبْقَى لِلْمُوصَى لَهُ فِيهِ حَقٌّ، بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْكَلَامُ مَوْصُولًا نو په خدمت کې د موصی له هیڅ حق پاته پاتې نشو.په خلاف ددې صورت کله چې کلام موصول (یوځائې) وی لِأَنَّ ذَلِكَ دَلِيلُ التَّخْصِيصِ وَالِاسْتِثْنَاءِ ځکه چې د تخصیص او استثناء دلیل دې فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ أَوْجَبَ لِصَاحِبِ الْخَاتَمِ الْحَلْقَةَ خَاصَّةً دُونَ الْفَصِّ نو دا خبره واضحه شوه.چه د ګتمې والا خصوصیت سره د حلقې ایجاب کړې دې.د غمی ئې نه دې کړې.

تشریح:- دا د امام محمد رحمه الله د اړخه د امام ابویوسف رحمه الله ځواب دې.امام ابویوسف رحمه الله مذکوره درې مسئلې د رقبې او خدمت په مسئله باندې قیاس کړې وې.نو امام محمد رحمه الله ځواب ورکوی.چه دا قیاس مع الفارق دې.ځکه چې ګتمه خو غمی ته هم ګډ دې.او په وینځه کې دده برخه هم داخل ده.خو په رقبه کې خدمت ګډ نه دې.

که څوك سوال اوکړی نو بیا دکوم کس لپاره چې د غلام وصیت کړې شوې وی.او د یوبل کس لپاره ددې د خدمت وصیت نه وی شوې.هغه د خدمت اخستلو مستحق ولې جوړیږی؟



ځواب◉ دې موصی له ته چې د خدمت اخستلو کوم حق ملاو شوې دې.په دې وجه نه دې.چه رقبه خدمت ته ګډ دې.بلکه په دې بنا (بنیاد) ملاو شوې دې.چه دلته به منافع د خدمت، د موصی له په ملکیت باندې حاصلیږی.خو کله چې موصی د خدمت ایجاب بل سړی لپاره اوکړو.نو اوس په خدمت کې د ړومبی موصی له حق پاتې نشو.

؟او دلته د اشتراك قول اختیار نکړې شو.ځکه چې رقبه د وړاندې نه خدمت ته ګډ نه دې.نو موږ اوونیل.چه رقبه به ړومبنی موصی له لپاره وی.او خدمت به دوهم موصی له لپاره وی.او که په مقیس کې دوهم ایجاب موصولا وی.نو دا بیان به د دلیل خصوص او استثناء په درجه کې ساتلې شی.چه د دې واضح مطلب دا دې.چه موصی د مخکې نه خالد لپاره د پوره ګتمې ایجاب نه دې کړې.بلکه صرف د حلقې ئې کړې دې.د غمی ئې نه دې کړې.

## د خپل غلام د وصیت کولو حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی ﴿وَمَنْ أَوْصَى لِآخَرَ بِثَمَرَةِ بُسْتَانِهِ ثُمَّ مَاتَ وَفِيهِ ثَمَرَةٌ﴾ کوم کس چې د بل یوکس لپاره د خپل باغ د میوو وصیت اوکړو.بیا موصی مړ شو.او په باغ کې میوې شته فَلَهُ هَذِهِ الثَّمَرَةُ وَحْدَهَا نو هغه لپاره به صرف هم دا میوې وی وَإِنْ قَالَ لَهُ ثَمَرَةُ بُسْتَانِي أَبَدًا او که موصی وئیلې وی.چه هغه لپاره همیشه زما د باغ میوې دی فَلَهُ هَذِهِ الثَّمَرَةُ وَثَمَرَتُهُ فِيمَا يُسْتَقْبَلُ مَا عَاشَ نو موصی له لپاره به دا میوې وی.او ددې باغ راروانې میوې وی.تر کومه پورې چې موصی له ژوندې وی وَإِنْ أَوْصَى لَهُ بِغَلَّةِ بُسْتَانِهِ او که موصی د موصی له لپاره د خپل باغ د آمدنۍ وصیت اوکړو فَلَهُ الْغَلَّةُ الْقَائِمَةُ وَغَلَّتُهُ فِيمَا يُسْتَقْبَلُ نو موصی له لپاره به موجوده آمدنی او ددې راروانه آمدنی وی.

حل اللغة° ① بستان: باغ ② ثمرة: میوه﴾

تشریح:- زیدخالد لپاره د خپل باغ د میوو وصیت اوکړو.نود موصی د مرګ په وخت چې کومې میوې دی.خالد به صرف دهغې مستحق وی.او راروانې چې کومې میوې راځی.د هغې به مستحق نه وی.او که خالد لپاره ده د خپل باغ د میوو همیشه لپاره وصیت اوکړو.نو کومې میوې چې د موصی د مرګ په وخت دی.هغه هم داخل دی.او کومې میوې چې بیا لپاره راځی.هغه به هم داخل وی.او د موصی له د ژونده پورې به د باغ میوې هغه ته ملاویږی.اوکه زید د میوو په ځائې آمدنی وئیلې وی.نو بیا به د همیشوالی د لفظ نه بغیر موجوده آمدنی او راروانه آمدنی په وصیت کې داخله وی.ترکومه پورې چې خالد ژوندې وی.

## د میوو او د آمدنۍ د فرق وجه

وَالْفَرْقُ أَنَّ الثَّمَرَةَ اسْمٌ لِلْمَوْجُودِ عُرْفًا او وجه د توپیر دا ده.چه ثمره (میوې) په عرف کې د موجود نوم دې فَلَا يَتَنَاوَلُ الْمَعْدُومَ إِلَّا بِدَلَالَةٍ زَائِدَةٍ،نو دا به معدوم ته ګډ نه وی.خو د زیاتی دلالت په وجه، لکه په ابد باندې تصریح کول لِأَنَّهُ لَا يَتَأَبَّدُ إِلَّا بِتَنَاوُلِ الْمَعْدُومِ وَالْمَعْدُومُ مَذْكُورٌ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ شَيْئًا ځکه چې میوې به تابیدی نه وی.خو معدوم ته شاملیدو سره،اومعدوم قابل دذکر دې.اګرچه دا هیڅ شئ نه دې مِثْلُ التَّنْصِيصِ عَلَى الْأَبَدِ أَمَّا الْغَلَّةُ فَتَنْتَظِمُ الْمَوْجُودَ وَمَا يَكُونُ بِعَرَضِ الْوُجُودِ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى بهرحال لفظ د آمدنۍ ګډ دې موجود ته هم، او هغې ته هم کوم چې بلا ناغه د وجود صلاحیت لری.(په عرف کې).

حل اللغة° ① یتابد: همیشه لپاره به وی ② تنتظم: شاملیږی③ الغلة: آمدن﴾

تشریح:- په میوو او آمدنۍ کې توپیر ولې کړې شوې دې؟ نو دا د هغې دلیل دې.چه په عرف کې میوې هغې ته وائی.کومې چې موجودې وی.نو په دې کې به هغه میوې نه داخلیږی.کومې چې معدوم دی.البته که څه زیاتی لفظ داسې راشی.کوم چې د همیش والی په معنی باندې دلالت اوکړی.لکه د ابد (د لفظ) صراحت کول، نو دغه وخت به میوې راروانو میوو ته هم ګډ وی.ځکه چې میوو کې پخپله دوام (او همیشوالې) نشته.اوکه په دې کې د همیشوالی ثابتولو کوښښ اوکړې شو.نو په دې کې به راروانې میوې داخلول لازمی وی.کومې چې في الحال

معدوم دی.او معدوم اگرچه شي (څیز) نه دي.خو دا قابل د ذکر دي.نو که صراحت سره ددي ذکر راغي.نو همیشوالي به ثابت وی.او پاتې شو لفظ د آمدنۍ، نو دا د خپلې وضعې په اعتبار سره موجود او هغه معدوم (دواړو) ته ګډ دي.کوم چې موجود کیداي شي.او دا د آمدنۍ عرفي معنی ده.نو ددوی دواړو په منځ کې توپیر کول لازمی شو.

**د تېرې شوې مسئلې په یو مثال سره وضاحت**

عُرْفًا يُقَالُ فُلَانٌ يَأْكُلُ مِنْ غَلَّةِ بُسْتَانِهِ وَمِنْ غَلَّةِ أَرْضِهِ وَدَارِهِ عرف کې وئیلې شي.چه فلانی د خپل باغ آمدنی خوری.او د خپلې زمکې آمدنی، او د خپل کور آمدنی (خوری). فَإِذَا أُطْلِقَتْ نو کله چې لفظ د آمدنۍ مطلق اووئیلې شی يَتَنَاوَلُهُمَا عُرْفًا غَيْرَ مَوْقُوفٍ عَلَى دَلَالَةٍ أُخْرَى نو په عرف کې به دوی دواړو (موجود ته او کوم چې د موجود کیدو صلاحیت لري) ته ګډ وی.چه دا به په بل څه دلیل باندې موقوف نه وی أَمَّا الثَّمَرَةُ إِذَا أُطْلِقَتْ بهرحال میوې کله چې مطلق اووئیلې شی لَا يُرَادُ بِهَا إِلَّا الْمَوْجُودُ نو ددې څخه به صرف موجود مراد وی فَلِهَذَا يَفْتَقِرُ الِانْصِرَافُ إِلَى دَلِيلٍ زَائِدٍ په دې وجه به میوې همیشوالی ارخ ته ګرځولو لپاره زیاتی دلیل ته محتاج وی.

**تشریح:-** په میوو او آمدنۍ کې توپیر دي.چه په رومبی کې همیشوالې نشته.او دوهم کې شته.دا یو مثال سره واضح کوی.کله چې د چا په اړه کې پوښتنه اوکړې شی.چه هغه د کوم خانې نه خوری.یعنی ضروریات د کوم خانې نه پوره کوی.نو (په خواب کې) داسې وئیلې شی.چه د خپل باغ آمدنۍ نه، یا دخپل کور آمدنۍ نه، یا د خپلې زمکې آمدنۍ نه خوری.(او خپل ضروریات پوره کوی).او داسې نشی وئیلې.چه هغه د خپل باغ میوې خوری.څکه چې میوې همیشه نشی خوړلې کیدې.هرکله چې ددوی دواړو په منځ کې دا توپیر واضح شو.نو دا خبره واضحه شوه.چه کله لفظ د آمدنۍ مطلق اووئیلې شی.نو دا په عرف کې موجود او غیر موجود دواړو ته ګډ وی.او دواړو ته ګډ کیدو لپاره به د دوهم دلیل څه حاجت نه وی.چه د همیشوالی د لفظ اضافه اوکړې شی.او کله چې لفظ د میوو مطلق اووئیلې شی.نو ددې څخه به صرف هغه میوې مراد وی.کومې چې موجود دی.نو همیشوالی ارخ ته ګرځولو لپاره به د زیاتی دلیل حاجت راپیښیږی.

**د خپلو چیلو د وړۍ، د بچو او د پیو د وصیت کولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی.(وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِصُوفِ غَنَمِهِ أَبَدًا أَوْ بِأَوْلَادِهَا أَوْ بِلَبَنِهَا ثُمَّ مَاتَ) او کوم کس چې د یوسړی لپاره همیشه لپاره د خپلو چیلو د د وړۍ وصیت اوکړو.یا ددې د اولاد.یا ددې د پیو، بیا موصی مړ شو فَلَهُ مَا فِي بُطُونِهَا مِنَ الْوَلَدِ نو موصی له لپاره هغه بچی دی.کوم چې ددوی په خیټو کې دی وَمَا فِي ضُرُوعِهَا مِنَ اللَّبَنِ او هغه شیدې دی.کوم چې ددوی په تهیونو کې دی وَمَا عَلَى ظُهُورِهَا مِنَ الصُّوفِ او هغه وړۍ ده.کوم چې ددوی په شاګانو باندې ده يَوْمَ يَمُوتُ الْمُوصِي سَوَاءٌ قَالَ أَبَدًا أَوْ لَمْ يَقُلْ په کومه ورځ چې موصی مړ شوې وی.که هغه ابدا (د همیشه لفظ) وئیلې وی.اوکه نه ئې وی وئیلې لِأَنَّهُ إِيجَابٌ عِنْدَ الْمَوْتِ فَيُعْتَبَرُ قِيَامُ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ يَوْمَئِذٍ څکه چې دا وصیت د مرګ په وخت ایجاب دې.نو ددې څیزونو د قیام به په هغه ورځ اعتبار کولې شی.او د رومبۍ مسئلې خلاف ده. وَهَذَا بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ

**حل اللغة:** ① **بطون**: جمع د بطن، نس ② **ظهور**: جمع د ظهر، شاه ③ **الصوف**: وړۍ، ④ **ضروع**: جمع د ضرعة: غولونخه ⑤ **اللبن**: شیدې، شودې.

**تشریح:-** زید خالد لپاره داوصیت اوکړو.چه خالد ته به همیشه زما د چیلو وړۍ ملاویږی.یا به ددې شیدې ملاویږی.یا کوم بچی چې ددوی پیدا کیږی.هغه به ملاویږی.نو خالد ته به هغه وړۍ او اولاد او شیدې ملاویږی.کوم چې د زید د مرګ په وخت ددوی په خیټو کې او په تهیونو کې او په شاګانو کې دی.که زید د همیشوالی قید لګولې وی.او که لګولې ئې نه وی.څکه چې وصیت دمرګ په وخت ایجاب شمارلې کیږی.نو ددې څیزونو به په دغه ورځ د قیام اعتبار کولې شی.ددې نه روسته به نه کیږی.په خلاف د میوو او آمدنۍ والا



مسئلې.چه په آمدنۍ کې پخپله همیشوالې دي.او میووکې اګرچه پخپله همیشوالې نشته.خوکه په دې کې د همیشوالې د قید اضافه اوکړې شی.نو په دې کې هم همیشوالې پیداکیږی.خو دلته (موجوده مسئله کې) هیڅ ډول همیشوالې نشته.

**د میوو او وړۍ په منځ کښې وجه د فرق**

وَالْفَرْقُ أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى تَمْلِيكَ الْمَعْدُومِ او وجه د توپیر دا ده.چه قیاس انکار کوی.د معدوم د تملیک لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الْمِلْكَ څکه چې معدوم ملك نه قبلوی إِلَّا أَنَّ فِي الثَّمَرَةِ وَالْغَلَّةِ الْمَعْدُومَةِ جَاءَ الشَّرْعُ بِوُرُودِ الْعَقْدِ عَلَيْهَا كَالْمُعَامَلَةِ وَالْإِجَارَةِ خود معدومې میوې او د معدوم آمدنۍ په اړه کې شریعت وارد شوې دي.په دې (میوو او آمدنۍ معدومې) باندې د عقد په اړه کې لکه څنګه چې مساقات او اجاره ده فَاقْتَضَى ذَلِكَ جَوَازَهُ فِي الْوَصِيَّةِ بِالطَّرِيقِ الْأَوْلَى نو دا په طریقه اولی ددې د وصیت د جواز تقاضه کوی لِأَنَّ بَابَهَا أَوْسَعُ څکه چې د وصیت باب ډیر وسیع دي أَمَّا الْوَلَدُ الْمَعْدُومُ وَأُخْتَاهُ او بهرحال معدوم بچې، او ددې دواړه خویندې (یعنی شیدې او وړۍ) فَلَا يَجُوزُ إِيرَادُ الْعَقْدِ عَلَيْهَا أَصْلًا وَلَا تُسْتَحَقُّ بِعَقْدٍ مَا نو په دې باندې بالکل عقد وارد کول جائز نه دي.او نه په یوعقد سره ددې استحقاق کیداي شی فَكَذَلِكَ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْوَصِيَّةِ بِخِلَافِ الْمَوْجُودِ مِنْهَا نو هم دغه ډول به دا د وصیت لاندې نه داخلیږی.په خلاف د هغې کوم چې ددوی نه موجود وی لِأَنَّهُ يَجُوزُ اسْتِحْقَاقُهَا بِعَقْدِ الْبَيْعِ تَبَعًا وَبِعَقْدِ الصُّلْحِ مَقْصُودًا څکه چې د موجوداتو استحقاق تبعا استحقاق سره جائز دي.اومقصود جوړیږی عقد صلح سره فَكَذَا بِالْوَصِيَّةِ، وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو هم دغه ډول وصیت سره.

**تشریح:-** ددې خانې نه ددې وجه بیانوی.چه د چیلو وړۍ او شیدې او اولاد د همیشوالی د صراحت باوجود نه ولې ګډ نه دي.او د همیشوالی د ذکر کاوه نه روسته حادث ته ولې شاملیږی؟ نو وې فرمائیل.چه د قیاس تقاضه دا ده.چه د معدوم تملیك نه وی.څکه چې هرکله معدوم ملك نه قبلوی.نو د هغې بل څوك څنګه مالك جوړیدې شی.

که څوك سوال اوکړی میوې او آمدنی هم معدوم ده.حالانکه په آمدنۍ کې د همیشوالی د صراحت نه بغیر او په میوو کې د همیشوالی د صراحت باوجود تاسو دا معدوم ته ګډ ګرځولې دي؟

خواب: د قیاس تقاضه خو دا ده.خو څه اوکړې شی.چه د مساقات او اجارې متعلق شریعت وارد شوې دي.او شریعت دا جائز ګرځولې دي.او په میوو کې هم دا د مساقات مسئله ده.او په آمدنۍ کې د اجارې، په دې وجه دې دواړو کې د معدوم کیدو باوجود کله چې شریعت دا جائز اوګرځولو.نو ددې د وصیت جواز به په درجه اولی ثابت وی.څکه چې په باب د وصیت کې وړۍ او شیدې او د وزه (چیلۍ) اولاد کوم چې معدوم وی.دا وارړه داسې شیان دی.چه په دې باندې د معدوم کیدو په صورت کې هیڅ عقد نشی کیدې.اونه په یوعقد سره ددې استحقاق ثابتیدې شی.په دې وجه دا د وصیت لاندې هم نشی داخلیدې.البته په دې دریو څیزونو کې چې کوم شیان موجود دی.نو د هغې د عقد بیع په ضمن کې تبعاً استحقاق ثابتیږی.مثلاً یوکس یوه وزه (چیلۍ) واخستله.نو تبعاً ددې وړۍ او شیدې او ددې بچې به هم په بیع کې داخل وی.او په عقد بیع کې قصداً ددې استحقاق کیداي شی.مثلاً یوې ښځې خپل میړه ته اووئیل.چه زما د وینځې یا زما د وزه (چیلۍ) په نس کې چې کوم څه دی.د هغې په بدله کې ما سره خلع اوکړله.او میړه قبول کړو.نو خلع صحیح شوه.او کوم څه چې د وزه (چیلۍ) په نس کې دی.هم هغه به میړه ته ملاویږي.اوکه اتفاق سره نس کې هیڅ څه نه وی.نو هیڅ به نه ملاویږی.نو هرکله چې دا درې شیان چې کله موجود وی.تبعاً په بیع کې داخلیدې شی.او په خلع کې قصداً (داخلیږی).نو په وصیت کې به هم داخلیږی.او ددې وصیت کول به صحیح وی.

## (بَابُ وَصِيَّةِ الذِّمِّيِّ)

ژباړه:- (دا) باب د ذمی د وصیت (په بیان کې) دي.

**تشریح:-** دمسلمانانو د وصیت احکام بیانولو نه روسته اوس مرغینانی رحمه الله د ذمی د وصیت احکام بیانوی.څکه چې

کافرانو د معاملاتو په حق کي د مسلمانانو تابع دی.﴿وفیه کلام فی النتائج﴾

## د یهودي جوړه شوې کنیسه یا بیعه به دده د مرګ نه روسته میراث وي

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی ﴿وَإِذَا صَنَعَ يَهُودِيٌّ أَوْ نَصْرَانِيٌّ بِيعَةً أَوْ كَنِيسَةً فِي صِحَّتِهِ ثُمَّ مَاتَ فَهُوَ مِيرَاثٌ﴾ و کله چې یهودي یا نصراني بیعه یا کنیسه جوړه کړله.د خپل صحت په حالت کي ،بیا هغه مړ شو.نوهغه میراث دي لِأَنَّ هَذَا بِمَنْزِلَةِ الْوَقْفِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ خکه چې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د وقف په درجه کي دي رحمه الله وَالْوَقْفُ عِنْدَهُ يُورَثُ وَلَا يَلْزَمُ نَکَذَا هَذَا او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وقف په میراث کي کیږي.او نه لازمیږي.نوهم دغه ډول به دا وی وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ هَذِهِ مَعْصِيَةٌ او بهرحال د صاحبینو رحمهما الله په نیز، نو خکه چې دا معصیت دي فَلَا يَصِحُّ عِنْدَهُمَا نو ددوی په نیز به صحیح نه وی.

حل اللغة: ① بیعة: دیهودیانوعبادت خانه ② کنیسة: د عیسایانو عبادت خانه﴾

تشریح:- یو یهودی کنیسه (خپله عبادت خانه) او یو نصرانی بیعه (خپله عبادت خانه) د خپل صحت په حالت کښي جوړه کړله.او بیا دا یهودي یا نصراني مړشو.نو دا بیعه یا کنیسه به میراث وي.او دده د وارثانو په منځ کي به تقسیمولې شي.خکه چې هرکله هغه پخپل ژوند کي دا جوړ کړې دي.نو دا وصیت نه دې.بلکه دا به وقف وی.او وقف د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه لازمیږي.بلکه په میراث کي تقسیمیږي.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز وقف لازمیږي.خو ددې لپاره شرط دا دې.چه دا معصیت نشو.او دا وقف معصیت دې.په دې وجه به بالاتفاق دا وقف صحیح نه وی.او بالاتفاق به به میراث کي تقسیمولې شي.

## د یهودي د خپل کور نه د کنیسي یا بیعه جوړولو د وصیت حکم

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی ﴿وَلَوْ أَوْصَى بِذَلِكَ لِقَوْمٍ مُسَمَّيْنَ﴾ وکه ده (یهودي یا نصراني) ددې (کنیسې یا بیعې جوړولو) یو معین قوم لپاره وصیت اوکړو. فَهُوَ الثُّلُثُ نو دا به د ثلث نه معتبر وی مَعْنَاهُ إِذَا أَوْصَى أَنْ تُبْنَى دَارُهُ بِيعَةً أَوْ كَنِيسَةً فَهُوَ جَائِزٌ مِنَ الثُّلُثِ ددې مطلب دا دې.کله چې هغه دا وصیت اوکړي.چه دده کور نه بیعه یا کنیسه جوړه کړې شي.نو دا جائز ده.د دریمي برخي نه لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ فِيهَا مَعْنَى الِاسْتِخْلَافِ وَمَعْنَى التَّمْلِيكِ خکه چې په وصیت کي د استخلاف اود تملیك معنی ده وَلَهُ وِلَايَةُ ذَلِكَ او په ذمی کي ددې (استخلاف اوتملیك) ولایت دې فَأَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَعْنَيَيْنِ نو د دواړو معنی په اعتبار سره ددې تصحیح ممکن ده.

حل اللغة: ① مسمین: جمع د مسمی، معلوم معین﴾

تشریح:- ړومبۍ مسئله د وصیت سره متعلق نه وه.او دا وصیت سره متعلق ده.فرمائی.که یهودی یا نصرانی دا وصیت اوکړو.چه زما د کور نه بیعه یا کنیسه جوړه کړې شي.نودا وصیت جائز دې.او په ثلث کي به نافذ کیږي.او دا حکم بالاتفاق دې.چه په دې کي د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اختلاف نشته.خو دا حکم هغه وخت دې.کله چې دې د معین او محفوظ قوم لپاره دبیعې او کنیسې جوړولو وصیت اوکړي .خکه چې دا وصیت دې.او په وصیت کي دوې (دوه) معانې موندلې کیږي.① استخلاف② تملیك، او ذمی لپاره استخلاف هم جائز دې.او تملیك هم جائز دې.نوکه د ړومبۍ معنی اعتبار اوکړې شي.بیا به هم دا وصیت جائز وی.اوکه ددویمې معانې یعنی دتملیك لحاظ اوکړې شي.بیا به هم وصیت وی.نو د استخلاف رعایت کاوه سره مونږه ثلث پورې دا اجازت ګرخولې دې.او دتملیك د معنی رعایت سره موږ اوونیل.چه اوس دا د معین قوم ملکیت دې.هغوی چې په دې څه غواړي.کولې شي.

## د خپل کور نه د غیر معین قوم لپاره د عبادت خانې جوړولو مسئله



قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائیل ﴿وَإِنْ أَوْصَى بِدَارِهِ كَنِيسَةً لِقَوْمٍ غَيْرِ مُسَمَّيْنَ﴾ اوکه ده د خپل کور نه د کنیسې جوړولو وصیت اوکړو.د غیر محفوظ قوم لپاره جَازَتِ الْوَصِيَّةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وصیت جائز دی وَقَالَا: الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه وصیت باطل دې لِأَنَّ هَذِهِ مَعْصِيَةٌ حَقِيقَةً وَإِنْ كَانَ فِي مُعْتَقَدِهِمْ قُرْبَةً، وَالْوَصِيَّةُ بِالْمَعْصِيَةِ بَاطِلَةٌ خکه چې دا په حقیقت کي معصیت دې.اګرچه ددوی اعتقاد کي قربت دې.او دمعصیت وصیت باطل دې لِمَا فِي تَنْفِيذِهَا مِنْ تَقْرِيرِ الْمَعْصِيَةِ خکه چې ددې په نافذ کاوه کي معصیت برقرار ساتل دی.

تشریح:- که ذمی مذکوره وصیت د غیر معین او غیر محفوظ قوم لپاره اوکړو.نو په دې کي اختلاف دې.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اوس هم وصیت جائز دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز باطل دې.د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه دا وصیت فی نفسه باطل دې.اګرچه د ذمیانو په اعتقاد کي قربت دې.او د معصیت وصیت باطل دې.خکه که دا نافذ کړې شی.نو معصیت او باطل ته به هوا ملاو شی.

## د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ هَذِهِ قُرْبَةٌ فِي مُعْتَقَدِهِمْ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه دا ددوی په اعتقاد کي قربت دې وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِينُونَ او موږ ته حکم راکړې شوې دې.چه دوی ددوی په اعتقاد باندې پرېږدو فَتَجُوزُ بِنَاءً عَلَى اعْتِقَادِهِمْ نو دا وصیت ددوی په اعتقاد باندې بناء کاوه سره جائز دې أَلَا يُرَى أَنَّهُ لَوْ أَوْصَى بِمَا هُوَ قُرْبَةٌ حَقِيقَةً مَعْصِيَةٌ فِي مُعْتَقَدِهِمْ ایا دا نه ګورې.که ذمی دهغه شي وصیت اوکړو.کوم چې حقیقت کي قربت دې.ددوی په اعتقاد کي معصیت دې لَا تَجُوزُ الْوَصِيَّةُ اعْتِبَارًا لِاعْتِقَادِهِمْ فَكَذَا عَكْسُهُ نو ددوی د اعتقاد اعتبار کاوه سره وصیت جائز نه دې.نو هم دغه ډول به ددې عکس وی.

تشریح:- دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې چه ددوی د وصیتونو د جواز او عدم جوز مدار، ددوی د اعتقاد مطابق په قربت کیدو او نه کیدو باندې دې.شریعت موږ ته حکم راکړې دې.چه موږ د ذمیانو د معتقداتو سره تعرض اونه ساتو.او دوی ددوی په اعتقاد باندې پرېږدو.او دلته ددوی په اعتقاد کي دا قربت دې.نو موږ دې ته صحیح اوونیل.او د جمات جوړولو وصیت ددوی په اعتقاد کي معصیت دې.نو موږ ددوی په اعتقاد باندې مدار ساتلو سره دا باطل ګرخولې دې.

## د کنسې . بیعې جوړولو او د وصیت په منځ کښي د فرق وجه

الْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ بَيْنَ بِنَاءِ الْبِيعَةِ وَالْكَنِيسَةِ وَبَيْنَ الْوَصِيَّةِ بِهِ بیا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د بیعې او کنیسې جوړولو په منځ کي، او ددې د وصیت کاوه په منځ کي وجه د توپیر دا ده أَنَّ الْبِنَاءَ نَفْسَهُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِزَوَالِ مِلْكِ الْبَانِي چې نفس بناء (تعمیر کول) د بانی د مالك د زوال سبب نه دي وَإِنَّمَا يَزُولُ مِلْكُهُ بِأَنْ يَصِيرَ مُحَرَّرًا خَالِصًا لِلَّهِ تَعَالَى كَمَا فِي مَسَاجِدِ الْمُسْلِمِينَ او د بانی ملك په دې طریقه زائل کیږي.چه دا محرزا (محفوظه) او خالص د الله تعالی لپاره شی.لکه څنګه چې د مسلمانانو په جماتونو کي دی وَالْكَنِيسَةُ لَمْ تَصِرْ مُحَرَّرَةً لِلَّهِ تَعَالَى حَقِيقَةً او کنیسه په حقیقت کي الله تعالی لپاره محرز نشوه ثُمَّ تَبْقَى مِلْكًا لِلْبَانِي فَتُورَثُ عَنْهُ نو کنیسه به د جوړونکی په ملك باندې قائم پاتي کیږي.نو کنیسه به د جوړونکی د اړخه په میراث کي تقسیمولې شي وَلِأَنَّهُمْ يَبْنُونَ فِيهَا الْحُجُرَاتِ وَيَسْكُنُونَهَا او خکه چې دا خلګ په کنیسه کي کمرې جوړوی.او په دې کي اوسیږي فَلَمْ يَتَحَرَّرْ لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعِبَادِ بِهِ نو دا محرز نشوه.ددې سره د خلګو د حق متعلق کیدو په وجه وَفِي هَذِهِ الصُّورَةِ يُورَثُ الْمَسْجِدُ أَيْضًا لِعَدَمِ تَحَرُّرِهِ بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ او په دې صورت کي د عدم احراز په وجه په جمات کي هم میراث جوړیږي.په خلاف د وصیت لِأَنَّهُ وُضِعَ لِإِزَالَةِ الْمِلْكِ خکه چې وصیت د ملك د

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنیفة رحمه الله كذا في فتاوى قاضیخان (٤٢٣\٤) وملتقى (٤٥١\٤) والفقه الإسلامي (٤١٨) نقلاً عن القول الراجح (٣٨٤\١٢)-

ازالي لپاره موضوع دي إِلَّا أَنَّهُ امْتَنَعَ ثُبُوتُ مُقْتَضَاهُ فِي غَيْرِ مَا هُوَ قُرْبَةٌ عِنْدَهُمْ خو د وصيت د مقتضى ثبوت ممتنع دي په هغه شي کي کوم چي ددوی په نيز قربت نه وی فَبَقِيَ فِيمَا هُوَ قُرْبَةٌ عَلَى مُقْتَضَاهُ نو د هغه شي په وصيت کي کوم چي قربت دي پخپله مقتضى باندي قائم دي فَيَزُولُ مِلْكُهُ فَلَا يُورَثُ نو دده ملک به زائل کيږي.نو دا به په ميراث کي نه تقسيميږي.

حل اللغة* ① محرز: محفوظ ②

تشريح:- په امام ابوحنيفه رحمه الله باندي يو اعتراض وارديدو.چه کله ذمی د بيعې يا کنيسې جوړولو وصيت اوکړي.نو تاسو دا جائز ګرځوئ.اوکه ذمی پخپله بيعه يا کنيسه جوړه کړي.(پخپل ژوند کي) نو دا باطل او غير لازم ګرځوئ.او په دې کي ميراث جاري کوئ.آخر داسې ولي کوئ؟ نو ددې ځاني نه مرغيناني رحمه الله د امام صاحب رحمه الله د فرمان مطابق ددې دواړو په منځ کي وجه د توپير بيانوی.ددې لنډيز دا ده.چه بيعه يا کنيسه جوړول د وقف په درجه کي دی.او دا غير لازم دې.او د جوړولو وصيت کول،د وصيت په درجه کي دی.او که هيڅ مانع نه وی.نو وصيت لازميږي.نو ددې دواړو په منځ کي د لزوم او عدم لزوم توپير دې.په دې وجه ړومبې ميراث اوګرځولې شو.او دوهم ميراث اونه ګرځولې شو. بلکه دا وصيت اومنلې شو.او په دې باندې د وصيت احکام جاري کړې شو.اوس دا تقرير د مرغيناني رحمه الله په اوګد تقرير باندې منطبق کړئ.فرماني.چه په ړومبی صورت کي کله چې ذمی بيعه يا کنيسه جوړه کړله .نو په دې سره د جوړونکی ملکيت نه زائل کيږي.ځکه چې زوال د جوړونکی د ملک لپاره ضروری دې.چه دا شئ د نورو د حقوقو نه پاک صفا شی.او خالص د الله تعالى لپاره داسې شی.لکه څنګه چې د مسلمانانو جماتونه دی. حالانکه د يهوديانو په کنيسو کي دا احراز نشته دې.نو د جوړونکی ملک قائم دې.اوهرکله چې د جوړونکی ملک قائم دې.نو په دې کي ميراث جاري کاوه باندې هيڅ شبه پاتې نشوه.او دعدم احراز دليل دا دې.چه يهود پخپلو کنيسو کي حجرې او کمرې جوړوی.اوپه هغې کي پخپله اوسيږي.نو چونکه ددې سره د خلګو حق متعلق دې.په دې وجه دې کي احراز اونه موندلې شو.اوکه عدم احراز د مسلمانانو په جماتونو کي هم اوموندلې شی.نودا به هم شرعاً جمات نه وی.بلکه په دې کي به د جوړونکی ملک قائم پاتې وی.او دده د اړخه به په ميراث کي دده د وارثانو په منځ کي تقسيمولې شی.لکه مثلاً يوکس جمات جوړکړو.او د هغې دپاسه ئې خپل کور جوړ کړو.نو چونکه احراز اونه موندې شو.نو دا به خالص د الله تعالى لپاره نه وی.نو دا به هم ميراث کي تقسيميږي.دغه ډول د يهوديانو کنيسه ده.

② په خلاف د وصيت، ځکه چې وصيت خو ځکه موضوع دې.چه دموصی به د موصی ملکيت زائل شی.خو موږ په وصيت کي دا تفصيل کړې دې.چه که وصيت ئې د داسې شئ کړې دې.چه هغه ددوی په منځ کي قربت نه دې.نو دا د سره وصيت نه دې.نود وصيت مقتضی به هم دلته نه ثابتيږي.اود موصی ملک به نه زائل کيږي.او که وصيت دداسې شئ اوکړی.چه هغه قربت دې.نو دا وصيت صحيح دې.او دلته به د وصيت مقتضی ثابته وی.او دموصی ملک به زائل کيږي.او هرکله چې ملک زائل شو.نو اوس دا د موصی د اړخه په ميراث کي نشی تقسيمیدې.

**د ذمی د وصيتونو اقسام او احکام، ړومبی قسم**

ثُمَّ الْحَاصِلُ أَنَّ وَصَايَا الذِّمِّيِّ عَلَى أَرْبَعَةِ أَقْسَامٍ بيا حاصل دا دې.چه د ذمی وصيتونه په څلور قسمه دی مِنْهَا أَنْ تَكُونَ قُرْبَةً فِي مُعْتَقَدِهِمْ وَلَا تَكُونَ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا د هغې نه يو خود دا دې.چه وصيت د ذميانو په اعتقاد کي قربت وی.او زموږ په اعتقاد کي قربت نه وی وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا هغه دې.د کوم چې موږ ذکر اوکړو وَمَا إِذَا أَوْصَى الذِّمِّيُّ بِأَنْ تُذْبَحَ خَنَازِيرُهُ او کله چې ذمی وصيت کړې وی.چه دهغه خنزيران ذبح کړې شی وَتُطْعَمَ الْمُشْرِكِينَ او په مشرکانو دې اوخوړلې شی وَهَذِهِ عَلَى الْخِلَافِ إِذَا كَانَ لِقَوْمٍ غَيْرِ مُسَمَّيْنَ كَمَا ذَكَرْنَاهُ او دا صورت په اختلاف باندې (مبنی) دی.کله چې غير معين قوم لپاره وی.لکه څنګه چې موږ دا ذکرکړې دي وَالْوَجْهُ مَا بَيَّنَّاهُ او ددې وجه هم هغه ده.کومه چې مونږه بيان کړې ده.

تشريح:- مرغيناني رحمه الله اختلافی مسئله بيانوی.او په دې باندې د دواړو فريقو دليلونه بيانوی.او دا تفصيل



بيانوی.چه د ذمی وصيتونه واړه په څلور قسمه دی.اوس به د هغې د هر يو تفصيل او د هر يو حکم بيانوی.ړومبې صورت دا دې.کوم چې اوس بيان کړې شوې دې.چه ذمی د داسې شئ وصيت اوکړی.کوم چې زموږ په اعتقاد کي باطل دې.او د ذميانو په اعتقاد کي قربت دې.چه ددې حکم اوس تير شوې دې.چه دا صورت د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز باطل دې.ددې ړومبی صورت يوه جزئيه دا هم ده.چه ذمی دا وصيت اوکړو.چه زما خنزيران ذبح کړئ.او مشرکانو باندې ئې اوخورئ.نو په دې کي هم هغه اختلاف دې.او هم هغه د فريقينو دليلونه دی.او که په دې صورت کي ذمی د يو معين او محفوظ قوم لپاره وصيت کړې وی.نو بيا اجماع سره جائز دې.

**دوهم قسم**

وَمِنْهَا إِذَا أَوْصَى بِمَا يَكُونُ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا او هم ددې صورتونو نه دوهم صورت دا دې.کله چې ذمی د هغه شئ وصيت اوکړی.کوم چې زموږ په حق کي قربت وی وَلَا يَكُونُ قُرْبَةً فِي مُعْتَقَدِهِمْ او د ذميانو په اعتقاد کي قربت نه وی كَمَا إِذَا أَوْصَى بِالْحَجِّ لکه کله چې هغه حج اوکړی أَوْ بِأَنْ يُبْنَى مَسْجِدٌ لِلْمُسْلِمِينَ أَوْ بِأَنْ يُسْرَجَ فِي مَسَاجِدِ الْمُسْلِمِينَ يا دا وصيت اوکړی.چه د مسلمانو جمات جوړ کړې شی.يا دمسلمانانو په جمات کي سراج اولګولې شی فَهَذِهِ الْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ بِالْإِجْمَاعِ اعْتِبَارًا لِاعْتِقَادِهِمْ إِلَّا إِذَا كَانَ لِقَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ لِوُقُوعِهِ تَمْلِيكًا او دا وصيت بالاجماع باطل دې.ددوی د اعتقاد اعتبار کولوسره، خو کله چې وصيت د يو معين قوم لپاره وی. د وصيت تمليک واقع کيدو په وجه لِأَنَّهُمْ مَعْلُومُونَ وَالْجِهَةُ مَشُورَةٌ ځکه چې دا خلګ (د کومو لپاره چې وصيت کړې شوې دې) معلوم دی.او جهت مشوره ده.

تشريح:- دا په څلورو اقسامو کي د دوهم ډول بيان دې.چه دا ددوی په اعتقاد کي قربت نه دې.او زموږ په اعتقاد کي قربت دې.مثلاً ذمی وصيت اوکړی.چه زما په مال باندې حج اوکړئ.يا د مسلمانانو په جمات کي سراج اولګوئ.يا د مسلمانانو جمات تعمير کړئ وغير.نو په دې صورت کي تفصيل دې.چه د مطلق مسلمان په اړه کي وانی.يا د يو معين قوم په اړه کي وانی.کوم چې محصور (او قابل د شمار) دې.هغه خلګ د کومو لپاره ئې چې وصيت کړې دې.که هغه غير محصور (او ناقابل شمار) وی.نو بيا دا وصيت بالاجماع باطل دې.اوکه د محصور قوم لپاره وصيت اوکړی.نو وصيت به جائز وی.چه ددې به موږ دا مطلب اخلو.چه موصی دا معين قوم ددې مال مالک جوړ کړې دې.او بيا کوم جهت چې هغه بيان کړې دې.چه دا په حج کي خرج کړئ.يا ئې په سراج لګولو کي، يا ئې په جمات جوړولو کي خرج کړئ.نو دا به د هغه مشوره وی.بهرحال وصيت جائز دې.او دغه قوم به ددې مالک جوړيږي.او په دې مال چې څه غواړي.کولې شی.

**دريم قسم**

وَمِنْهَا إِذَا أَوْصَى بِمَا يَكُونُ قُرْبَةً فِي حَقِّنَا او هم ددې (صورتونو) څخه دا دې.کله چې ذمی د داسې شئ وصيت اوکړو.کوم چې زموږ په حق کي اوددوی په حق کي قربت دې وَفِي حَقِّهِمْ كَمَا إِذَا أَوْصَى بِأَنْ يُسْرَجَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ لکه کله چې هغه په بيت المقدس کي د ډيوې لګولو وصيت اوکړی أَوْ يُغْزَى التُّرْكُ وَهُوَ مِنَ الرُّومِ يا ترک يعنی روم سره د جنګ وصيت اوکړی وَهَذَا جَائِزٌ سَوَاءٌ كَانَتْ لِقَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ او دا جائز دې.که معين قوم وی.اوکه غير معين وی أَوْ بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمْ لِأَنَّهُ وَصِيَّةٌ بِمَا هُوَ قُرْبَةٌ حَقِيقَةً ځکه چې دا د هغه شئ وصيت دې.کوم چې په حقيقت کي قربت دې وَفِي مُعْتَقَدِهِمْ أَيْضًا او ددوی په اعتقاد کي هم (قربت دې).

تشريح:- دا په مذکوره څلورو قسمونو کي دريم ډول دې.چه دا زموږ په نيز هم قربت وی.او ددوی په نيز هم قربت وی.نو دا وصيت بالاتفاق صحيح دې.مثلاً هغه دا وصيت اوکړو.چه زما د مال نه په بيت المقدس کي سراج اولګوئ.يا زما مال د ترکو يعنی د روم په جنګ کي خرج کړئ.بيا دلته د قوم د محصور او غير محصور کيدو هيڅ بحث نشته.

**څلورم قسم**

ازالي لپاره موضوع دي إلا أنه امتنع ثبوت مقتضاه في غير ما هو قربة عندهم خو د وصيت د مقتضی ثبوت ممتنع دي په هغه شي کي کوم چي ددوی په نیز قربت نه وی فيبقى فيما هو قربة على مقتضاه سنو د هغه شي په وصيت کي کوم چي قربت دي پخپله مقتضی باندي قائم دي فيزول ملكه فلا يورث نو دده ملك به زائل كيږي.نو دا به په ميراث کي نه تقسيميږي.

**حل اللغة:** ① محرز: محفوظ ②

**تشريح:-** په امام ابوحنيفه رحمه الله باندي يو اعتراض وارديدو.چه کله ذمی د بيعې يا کنيسې جوړولو وصيت اوکړی.نو تاسو دا جائز ګرځوئ.اوکه ذمی پخپله بيعه يا کنيسه جوړه کړی.( پخپل ژوند کي ) نو دا باطل او غير لازم ګرځوئ.او په دې کي ميراث جاری کوئ.آخر داسې ولي کوئ؟ نو ددې ځانې نه مرغيناني رحمه الله د امام صاحب رحمه الله د فرمان مطابق ددې دواړو په منځ کي وجه د توپير بيانوی.ددې لنډيز دا ده.چه بيعه يا کنيسه جوړول د وقف په درجه کي دی.او دا غير لازم دې.او د جوړولو وصيت کول،د وصيت په درجه کي دی.او که هيڅ مانع نه وی.نو وصيت لازميږی.نو ددې دواړو په منځ کي د لزوم او عدم لزوم توپير دې.په دې وجه ړومبې ميراث اوګرځولې شو.او دوهم ميراث اونه ګرځولې شو. بلکه دا وصيت اومنلې شو.او په دې باندي د وصيت احکام جاری کړې شو.اوس دا تقرير د مرغيناني رحمه الله په اوګد تقرير باندي منطبق کړئ.فرمانی.چه په ړومبی صورت کي کله چې ذمی بيعه يا کنيسه جوړه کړله .نو په دې سره د جوړونکی ملکيت نه زائل کيږی.ځکه چې زوال د جوړونکی د ملک لپاره ضروری دې.چه دا شئ د نورو د حقوقو نه پاك صفا شی.او خالص د الله تعالی لپاره داسې شی.لکه څنګه چې د مسلمانانو جماتونه دی. حالانکه د يهوديانو په کنيسو کي دا احراز نشته دې.نو د جوړونکی ملك قائم دې.اوهرکله چې د جوړونکی ملك قائم دې.نو په دې کي ميراث جاری کاوه باندې هيڅ شبه پاتې نشوه.او دعدم احراز دليل دا دې.چه يهود پخپلو کنيسو کي حجرې او کمرې جوړوی.اوپه هغې کي پخپله اوسيږی.نو چونکه ددې سره د خلګو حق متعلق دې.په دې وجه دې کي احراز اونه موندلې شو.اوکه عدم احراز د مسلمانانو په جماتونو کي هم اوموندلې شی.نودا به هم شرعاً جمات نه وی.بلکه په دې کي به د جوړونکی ملك قائم پاتې وی.او دده د ارځه به په ميراث کي دده د وارثانو په منځ کي تقسيمولې شی.لکه مثلاً يوکس جمات جوړکړو.او د هغې دپاځه ني خپل کور جوړ کړو.نو چونکه احراز اونه موندې شو.نو دا به خالص د الله تعالی لپاره نه وی.نو دا به هم ميراث کي تقسيميږی.دغه ډول د يهوديانو کنيسه ده.

ⓐ په خلاف د وصيت، ځکه چې وصيت خو ځکه موضوع دې.چه دموصی به د موصی ملکيت زائل شی.خو موږ په وصيت کي دا تفصيل کړې دې.چه که وصيت ئې د داسې شئ کړې دې.چه هغه ددوی په منځ کي قربت نه دې.نو دا د سره وصيت نه دې.نود وصيت مقتضی به هم دلته نه ثابتيږی.اود موصی ملك به نه زائل کيږی.او که وصيت دداسې شئ اوکړی.چه هغه قربت دې.نو دا وصيت صحيح دې.او دلته به د وصيت مقتضی ثابته وی.او دموصی ملك به زائل کيږی.او هرکله چې ملك زائل شو.نو اوس دا د موصی د ارځه په ميراث کي نشی تقسيميدې.

### د ذمي د وصيتونو اقسام او احکام، ړومبې قسم

ثم الحاصل أن وصايا الذمي على أربعة أقسام بيا حاصل دا دې.چه د ذمی وصيتونه په څلور قسمه دی منها أن تكون قربة في معتقدهم ولا تكون قربة في حقنا د هغې نه يو خود دا دې.چه وصيت د ذميانو په اعتقاد کي قربت وی.او زموږ په اعتقاد کي قربت نه وی وهو ما ذكرناه او دا هغه دې.د کوم چې موږ ذکر اوکړو وما إذا أوصى الذمي بأن تذبح خنازيره او کله چې ذمی وصيت کړې وی.چه دهغه خنزيران ذبح کړې شی وتطعم المشركين او په مشرکانو دې اوخوړلې شی وهذه على الخلاف إذا كان لقوم غير معينين كما ذكرناه او دا صورت په اختلاف باندي ( مبنی ) دې.کله چې غير معين قوم لپاره وی.لکه څنګه چې موږ دا ذکرکړې دې والوجه ما بيناه او ددې وجه هم هغه ده.کومه چې موږه بيان کړې ده.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله اختلافی مسئله بيانوی.او په دې باندې د دواړو فريقو دليلونه بيانوی.او دا تفصيل



بيانوی.چه د ذمی وصيتونه واړه په څلور قسمه دی.اوس به د هغې د هر يو تفصيل او د هر يو حکم بيانوی.ړومبې صورت دا دې.کوم چې اوس بيان کړې شوې دې.چه ذمی د داسې شئ وصيت اوکړی.کوم چې زموږ په اعتقاد کي باطل دې.او د ذميانو په اعتقاد کي قربت دې.چه ددې حکم اوس تير شوې دې.چه دا صورت د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز باطل دې.ددې ړومبی صورت يوه جزئيه دا هم ده.چه ذمی دا وصيت اوکړو.چه زما خنزيران ذبح کړئ.او مشرکانو باندي ني اوخورئ.نو په دې کي هم هغه اختلاف دې.او هم هغه د فريقينو دليلونه دی.او که په دې صورت کي ذمی د يو معين او محفوظ قوم لپاره وصيت کړې وی.نو بيا اجماع سره جائز دې.

### دوهم قسم

ومنها إذا أوصى بما يكون قربة في حقنا او هم ددې صورتونو نه دوهم صورت دا دې.کله چې ذمی د هغه شئ وصيت اوکړی.کوم چې زموږ په حق کي قربت وی ولا يكون قربة في معتقدهم او د ذميانو په اعتقاد کي قربت نه وی كما إذا أوصى بالحج لکه کله چې هغه حج اوکړی أو بأن يبنى مسجد للمسلمين أو بأن يسرج في مساجد المسلمين يا دا وصيت اوکړی.چه د مسلمانو جمات جوړ کړې شی.يا دمسلمانانو په جمات کي سراج اولګولې شی فهذه الوصية باطلة بالإجماع اعتبارا لاعتقادهم إلا إذا كان لقوم بأعيانهم لوقوعه تمليكا او دا وصيت بالاجماع باطل دې.ددوی د اعتقاد اعتبار کولوسره، خو کله چې وصيت د يو معين قوم لپاره وی. د وصيت تمليك واقع کيدو په وجه لأنهم معلومون والجهة مشورة ځکه چې دا خلګ ( د کومو لپاره چې وصيت کړې شوې دې) معلوم دی.او جهت مشوره ده.

**تشريح:-** دا په څلورو اقسامو کي د دوهم ډول بيان دې.چه دا ددوی په اعتقاد کي قربت نه دې.او زموږ په اعتقاد کي قربت دې.مثلاً ذمی وصيت اوکړی.چه زما په مال باندې حج اوکړئ.يا د مسلمانانو په جمات کي سراج اولګوئ.يا د مسلمانانو جمات تعمير کړئ وغير.نو په دې صورت کي تفصيل دې.چه د مطلق مسلمان په اړه کي وائی.يا د يو معين قوم په اړه کي وائی.کوم چې محصور ( او قابل د شمار) دې.هغه خلګ د کومو لپاره ئې چې وصيت کړې دې.که هغه غير محصور ( او ناقابل شمار) وی.نو بيا دا وصيت بالاجماع باطل دې.اوکه د محصور قوم لپاره وصيت اوکړی.نو وصيت به جائز وی.چه ددې به موږ دا مطلب اخلو.چه موصی دا معين قوم ددې مال مالك جوړ کړې دې.او بيا کوم جهت چې هغه بيان کړې دې.چه دا په حج کي خرچ کړئ.يا ئې په سراج لګولو کي ، يا ئې په جمات جوړولو کي خرچ کړئ.نو دا به د هغه مشوره وی.بهرحال وصيت جائز دې.او دغه قوم به ددې مالك جوړيږی.او په دې مال چې څه غواړی.کولې شی.

### دريم قسم

ومنها إذا أوصى بما يكون قربة في حقنا او هم ددې ( صورتونو) څنې دا دې.کله چې ذمی د داسې شئ وصيت اوکړو.کوم چې زموږ په حق کي اوددوی په حق کي قربت دې وفي حقهم كما إذا أوصى بأن يسرج في بيت المقدس لکه کله چې هغه په بيت المقدس کي د ډيوې لګولو وصيت اوکړی أو يغزى الترك وهو من الروم يا ترك يعنی زوم سره د جنګ وصيت اوکړی وهذا جائز سواء كانت لقوم بأعيانهم او دا جائز دې.که معين قوم وی.اوکه غير معين وی أو بغير أعيانهم لأنه وصية بما هو قربة حقيقة ځکه چې دا د هغه شئ وصيت دې.کوم چې په حقيقت کي قربت دې وفي معتقدهم أيضا او ددوی په اعتقاد کي هم ( قربت دې).

**تشريح:-** دا په مذکوره څلورو قسمونو کي دريم ډول دې.چه دا زموږ په نيز هم قربت وی.او ددوی په نيز هم قربت وی.نو دا وصيت بالاتفاق صحيح دې.مثلاً هغه دا وصيت اوکړو.چه زما د مال نه په بيت المقدس کي سراج اولګوئ.يا زما مال د ترکو يعنی د روم په جنګ کي خرچ کړئ.بيا دلته د قوم د محصور او غير محصور کيدو هيڅ بحث نشته.

### څلورم قسم

وَمِنْهَا إِذَا أَوْصَى بِمَا لَا يَكُونُ قُرْبَةً لَا فِي حَقِّنَا وَلَا فِي حَقِّهِمْ او هم ددې څخه دي. کله چې ذمي د داسې شي وصيت اوکړي. چه دا نه زمونږ په حق کې قربت وي. او نه ددوی په حق کې ( قربت وي) كَمَا إِذَا أَوْصَى لِلْمُغَنِّيَاتِ وَالنَّائِحَاتِ، فَإِنَّ هَذَا غَيْرُ جَائِزٍ لکه کله چې هغه د ګانو ويونکې ښځو او د نوحه کونکو ښځو لپاره وصيت اوکړي. نو داجائز نه دي لِأَنَّهُ مَعْصِيَةٌ فِي حَقِّنَا وَفِي حَقِّهِمْ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ لِقَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ څکه چې دا زمونږ اوددوی په حق کې معصيت دې. خو دا چې وصيت د يو معين قوم لپاره وي فَيَصِحُّ تَمْلِيكًا وَاسْتِخْلَافًا نو صحيح دې. د تمليك او استخلاف په اعتبار سره.

حل اللغة: ① مغنيات: جمع د مغنية سندرغاړې ② النائحات: جمع د نائحة: په مړي پسې وير کونکې»

تشريح:- دا په څلورو اقسامو کې د څلورم ډول وصيت دې. کوم چې دا دچا په نيز هم قربت نه وي. او کړي. يعنى دا نه ددوی په نيز قربت دې. او نه زمونږ په نيز، لکه هغه وصيت اوکړي. چه زما دومره مال د ګانو ويونکو ډمانو او نوحه کونکو ښځو ته ورکړئ. نو دا وصيت باطل دې. څکه چې د قربت په طور دا صحيح نه ګرځولې کيږي. او نه د تمليك په طور جاری کيداې شي. څکه چې دغه خلګ د غير محصور ( او بې شماره) کيدو په وجه مجهول دی. او دمجهول مالك جوړول صحيح نه دی. البته که د يو معين او محصور قوم لپاره ئې وصيت اوکړو. چه فلانی، فلانی ډمې او فلانی، فلانی، نوحه کونکې ښځې ( لپاره وصيت دې). نو اوس دا وصيت صحيح دې. خو د قربت په حيثيت سره صحيح نه دې. بلکه د تمليك او استخلاف په حيثيت سره ( صحيح دې).

## د بدعتي د وصيت حکم

وَصَاحِبُ الْهَوَى إِنْ كَانَ لَا يُكَفَّرُ او صاحب د بدعت که د هغه تکفير نه وی شوې فَهُوَ فِي حَقِّ الْوَصِيَّةِ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْلِمِ نو هغه دوصيت په حق کې د مسلمانانو په درجه کې دې لِأَنَّا أُمِرْنَا بِبِنَاءِ الْأَحْكَامِ عَلَى الظَّاهِرِ څکه چې مونږ ته په ظاهر باندې داحکامو د مبنی کاوه حکم راکړې شوې دې وَإِنْ كَانَ يُكَفَّرُ او که دده تکفير اوکړې شی فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُرْتَدِّ نو هغه د مرتد په درجه کې دې فَيَكُونُ عَلَى الْخِلَافِ الْمَعْرُوفِ فِي تَصَرُّفَاتِهِ بَيْنَ أَبِي حَنِيفَةَ وَصَاحِبَيْهِ نو وی د هغه د اختلاق مطابق کوم چې معروف او مشهور دې. دمرتد دتصرفاتو په سلسله کې ، د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله کې وَفِي الْمُرْتَدَّةِ الْأَصَحُّ أَنَّهُ تَصِحُّ وَصَايَاهَا او په مرتده کې اصح دا ده. چه دده وصيتونه صحيح دی لِأَنَّهَا تَبْقَى عَلَى الرِّدَّةِ په منخ بِخِلَافِ الْمُرْتَدِّ څکه چې مرتد په ردت باندې قايم پاتې کيداې شی. په خلاف د مرتد لِأَنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُسْلِمُ څکه چې هغه به قتلولې شی. يا به مسلمانيږی.

حل اللغة: ① صاحب الهوى: صاحب د خواهش چې څه ورته نفس او شيطان وائی هغه کوی اود شريعت د اصولو څه خيال نه ساتی»

تشريح:- دا د ذميانو بيان پيل وو. نو په دې کې مرغيناني رحمه الله د مسلمانانو نه د هغه خلګو حکم بيان کړو. کوم چې د خواهشاتو تابع او بدعتيان دی. چه ددوی ډيرې فرقې دی. ( چې ددوی تفصيلی بيان مونږ په جواهر الفرائد کې کړې دې). نو ددې ځاې نه د هغوی حکم بيانوی. چه که ددوی بدعت د کفر حد ته رسيدلې وی. نوهغوی د مرتد په حکم کې دی. او که د کفر حد ته نه وی رسيدلې. نو هغوی د مسلمانانو په حکم دی. او د مرتد په اره کې دهدايه د دوهم ټوك په آخر کې د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله اختلاف تير شوې دې. چه د امام صاحب رحمه الله په نيز د مرتد تصرفات موقوف وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دی. او که وصيت کونکې مرتده ښځه وی. نو چونکه دا قتلولې نشی. بلکه په قيد کې ساتلې شی. ترکومه پورې چې مسلمانه نشی. نو د مترده ذميه ښخې په درجه کې ده. او د ذميه پشان به د مرتدې تصرفات نافذ کيږی. او مرتد به قتلولې شی. يا به هغه مسلمانيږی. نوهغه پخپل ردت باندې پاته نشی پاتې کيدې. په دې وجه به مرتد د ذمی په درجه کې نه وی.

## په دارالاسلام کښې دحربی کافر د يوکس لپاره د وصيت کولوحکم

قَالَ امام محمد رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ دَارَنَا بِأَمَانٍ او کله چې حربی زمونږ کور ( دارالاسلام) کې په امان



اخستلو سره داخل شی فَأَوْصَى لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ بِمَالِهِ كُلِّهِ جَازَ نو هغه يو مسلمان يا ذمی ته د خپل واړه مال وصيت اوکړو. نو جائز دې لِأَنَّ امْتِنَاعَ الْوَصِيَّةِ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ څکه چې د ثلث نه د زيات وصيت ممتنع کيدل د وارثانو د حق په وجه دې وَلِهَذَا تَنْفُذُ بِإِجَازَتِهِمْ په دې وجه د وارثانو په اجازت سره دا ( يعنى د ثلث نه د زيات وصيت) نافذ کيږی وَلَيْسَ لِوَرَثَتِهِ حَقٌّ مَرْعِيٌّ لِكَوْنِهِمْ فِي دَارِ الْحَرْبِ او د حربی مستامن ( ذمی) لپاره هيڅ داسې حق نشته چه د هغې رعايت اوساتلې شی. د وارثانو په دارالحرب کې د کيدو په وجه إِذْ هُمْ أَمْوَاتٌ فِي حَقِّنَا څکه چې حربيان زمونږ په حق کې مړه دی وَلِأَنَّ حُرْمَةَ مَالِهِ بِاعْتِبَارِ الْأَمَانِ او څکه چې د مستامن د مال حرمت د امان په اعتبار سره دې وَالْأَمَانُ كَانَ لِحَقِّهِ لَا لِحَقِّ وَرَثَتِهِ او امان د مستامن حق دې. د مستامن د وارثانو حق نه دې.

حل اللغة: ① مستامن: هغه کافر چې په اسلامی ملك کې ئې د امن طلب کړې وی او حکومت ورته امن ورکړې وی»

تشريح:- يو حربی کافر امان واخستلو. او زمونږ دارالاسلام ته راغې. او دلته هغه يو مسلمان يا ذمی ته د خپل پوره مال وصيت اوکړو. نودا جائز دې. شايد په دې دا اشکال اوشی. چه دا څنګه جائز شو. حالانکه ددې په دوې (دوه) ثلثه کې د وارثانو حق دې؟ نو ددې ځواب دا دې. چه دلته خو وارثان هغه حربيان دی. کوم چې په دارالحرب کې دی. او هغوی ددې قابل نه دی. چه د هغوی د حق رعايت اوکړې شی. څکه چې هغوی خو زمونږ په حق کې د مړو پشان دی. او دا وجه هم ده. چه د مستامن په مال کې چې کوم حرمت پيدا شوې دې. چه دهغې نه تعرض اونکړې شی. دا د مستامن د حق په وجه سره کيږی. د وارثانو دحق په وجه نه کيږی.

## د کافر مستامن د ټول مال نه په کم سره د وصيت حکم

وَلَوْ كَانَ أَوْصَى بِأَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ او که کافر مستامن د واړه مال نه دکم وصيت کړې وی أُخِذَتِ الْوَصِيَّةُ وَيُرَدُّ الْبَاقِي عَلَى وَرَثَتِهِ نو د وصيت په اندازه به اخستلې شی. او پاته به د مستامن په وارثانو ته واپس کولای شی وَذَلِكَ مِنْ حَقِّ الْمُسْتَأْمَنِ أَيْضًا او دا به هم د مستامن د حق په وجه وی وَلَوْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عِنْدَ الْمَوْتِ أَوْ دَبَّرَ عَبْدَهُ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ او که هغه د مرګ په وخت خپل غلام آزاد کړې وی. يا ئې خپل غلام مدبر جوړ کړې وی. په دارالاسلام کې فَذَلِكَ صَحِيحٌ مِنْهُ مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ الثُّلُثِ لِمَا بَيَّنَّا نو دا دده د اړخه دثلث اعتبار کاوه نه بغير صحيح دې. د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړې دې.

تشريح:- که حربی مستامن دواړه مال وصيت اونکړو. بلکه ددې نه د کم وصيت ئې اوکړو. نو دا هم صحيح دې. او د وصيت په اندازه به موصى له ته ملاويږی. او پاته به د مستامن وارثانو ته واپس کولې شی. خودا وارثانو ته واپس کول د وارثانو د حق په وجه نه دی. بلکه د مستامن د حق د رعايت په وجه دی. چه هغه زمونږ مستامن وو. چه دده مال صحيح ځاې ته اورسولې شی. اوکه مستامن حربی په دارالاسلام کې د مرګ په وخت خپل غلام آزاد کړو. يا ئې خپل غلام مدبر کړو. نو صحيح ده. او په دې کې به هم د ثلث هيڅ لحاظ نشی ساتلې. څکه چې د ثلث لحاظ کله کيږی. نو هغه د وارثانو د حق په وجه کيږی. او ( دلته) وارثان د رعايت لائق نه دی. څکه چې زمونږ په حق کې حربی خلګ د مړو پشان دی.

## د حربی مستامن لپاره د مسلمان يا ذمی د وصيت حکم

وَكَذَلِكَ لَوْ أَوْصَى لَهُ مُسْلِمٌ أَوْ ذِمِّيٌّ بِوَصِيَّةٍ جَازَ او هم دغه ډول که حربی مستامن لپاره مسلمان يا ذمی څه وصيت اوکړو. نو دا جائز دې لِأَنَّهُ مَا دَامَ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ څکه چې مستامن ترکومه پورې په دارالاسلام کې دې فَهُوَ فِي الْمُعَامَلَاتِ بِمَنْزِلَةِ الذِّمِّيِّ نو هغه په معاملاتو کې د ذمی په مرتبه کې دې وَلِهَذَا تَصِحُّ عُقُودُ التَّمْلِيكَاتِ مِنْهُ فِي حَالِ حَيَاتِهِ څکه چې د مستامن په لاس د تمليکاتو عقدونه د مسلمانانو د اړخه صحيح دی. د مسلمان په ژوند کې وَيَصِحُّ تَبَرُّعُهُ فِي حَيَاتِهِ او د مسلمان تبرع صحيح دې. د مسلمانانو په ژوند کې فَكَذَا بَعْدَ مَمَاتِهِ نو هم دغه ډول د مسلمانانو د مرګ نه روسته

(به هم جائز وی).

**تشریح:-** که یومسلمان یاذمی حربی د مستامن لپاره څه وصیت اوکړی.نو دا جائز دې اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه جائز دې.ځکه که مسلمان د ذمی لپاره وصیت اوکړی.نو جائز دې.او حربی مستامن چې ترکومه پورې زموږ په دارالاسلام کې دې.په ټولو معاملاتو کې د ذمی په درجه کې دې.نو د حربی مستامن لپاره به هم وصیت جائز وی.که مسلمان په خپل ژوندکې د مستامن په لاس د بیع وغیره معاملات اوکړی.نو جائز دی.لکه څنګه چې د ذمی په لاس جائز دی.دغه ډول که مسلمان پخپل ژوند کې د حربی مستامن لپاره څه تبرع اوکړی.یا هبه وغیره اوکړی.نو جائز ده.نو هم دغه ډول که د مرګ نه روستو مسلمان حربی په مستامن باندې څه تبرع اوکړی.نو دا به هم جائز وی.

**د شیخینو رحمهما الله نقطه نظر**

**وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ** او د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله نه نقل دی.چه دا جائز نه ده شی **لِأَنَّهُ مُسْتَأْمَنٌ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ** ځکه چې هغه داسې مستامن دې.چه دا د حربیانو خلګو څخې دې. **إِذْ هُوَ عَلَى قَصْدِ الرُّجُوعِ** ځکه چې هغه د رجوع په اجاره باندې دې **وَيُمَكَّنُ مِنْهُ** او هغه ته به د رجوع قدرت ورکولې **وَلَا يُمَكَّنُ مِنْ زِيَادَةِ الْمُقَامِ عَلَى السَّنَةِ إِلَّا بِالْجِزْيَةِ** او د یو کال څخه به د زیات اجازت نشی ورکولې.خو جزیه سره

**تشریح:-** که مسلمان ذمی لپاره وصیت اوکړی.نو جائز دې.خو د حضرات شیخینو رحمهما الله نه دا هم نقل دی.چې دا جائز نه دې.ځکه چې دا مستامن حربی دې.او د دارالاسلام او دارالحرب په منځ کې د تباین په وجه پخپل منځ کې عصمت او موالات ختم دې.نو په ده به احسان کول باطل وی.او هغه حربی ځکه دې. چې دهغه د واپس تللو اراده شته.او که هغه واپس تلل اوغواړی.نو هغه به نشی منع کولې.البته که هغه دلته اوسیدل غواړی.نو د یو کال نه زیات به نه اوسیږی.اوکه د یو کال نه زیات پاتې شو.نو اوس به په هغه باندې جزیه واجبولې شی.او اوس به دارالحرب ته د واپس تللو قدرت نشی ورکولې.بلکه هغه به د ذمی په درجه کې وی.

**د ذمی د دریمې نه زیات یا خپل وارث لپاره د وصیت حکم**

**وَلَوْ أَوْصَى الذِّمِّيُّ بِأَكْثَرَ مِنَ الثُّلُثِ أَوْ لِبَعْضِ وَرَثَتِهِ** او که ذمی د ثلث نه زیات وصیت اوکړو.یا ئې د خپلو بعضو وارثانو لپاره وصیت اوکړو **لَا يَجُوزُ اعْتِبَارًا بِالْمُسْلِمِينَ** نو جائز نه دې.په مسلمانانو باندې قیاس کاوه سره **لِأَنَّهُمُ الْتَزَمُوا أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْمُعَامَلَاتِ** ځکه چې ذمیانو داسلام د احکامو التزام کړې دې.هغه احکامو کې کوم چې معاملاتو ارخ ته راجع دی **وَلَوْ أَوْصَى لِخِلَافِ مِلَّتِهِ جَازَ اعْتِبَارًا بِالْإِرْثِ** او که ذمی د خپل ملت خلاف لپاره وصیت اوکړو.نو جائز دې.په میراث باندې قیاس کاوه سره **إِذِ الْكُفْرُ كُلُّهُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ** ځکه چې کفر واړه یو ملت دې **وَلَوْ أَوْصَى لِحَرْبِيٍّ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ لَا يَجُوزُ** او که ذمی په دارالاسلام کې اوسیدو سره حربی لپاره وصیت اوکړو.نو جائز نه دې **لِأَنَّ الْإِرْثَ مُمْتَنِعٌ لِتَبَايُنِ الدَّارَيْنِ** ځکه چې میراث ممتنع دې.د دارینو د تباین په وجه **وَالْوَصِيَّةُ أُخْتُهُ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ** او وصیت د میراث خور ده.والله اعلم.

**حل اللغة:** ① **تباین:** اختلاف، ② **الدارین:** تثنیه د دار، کور خو دلته ترې دوې (دوه) ملکونه مراد دی چې یو اسلامی وی او بل د کافرانو وی»

**تشریح:-** مرغینانی رحمه الله بعضې نور جزئیات پیش کوی.① که ذمی د دریمې برخې مال نه زیات وصیت اوکړو.یا ئې د خپلو وارثانو لپاره وصیت اوکړو.نو آیا دا جائز دې؟ نو وې فرمائیل.چه نه، ځکه چې دا مسلمانانو لپاره جائز نه دې.نو ذمیانو لپاره به هم جائز نه وی.ځکه چې دکومو احکامو تعلق چې معاملاتو سره دې.په هغه احکامو کې ذمیان د مسلمانانو پشان دی.او دا معامله ده.چه په دې کې ذمیان د مسلمانانو پشان دی.② که یو یهودی ذمی د نصرانی ذمی لپاره وصیت اوکړو.نو څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه جائز دې.ځکه چې کفر واړه یو ملت دې.یعنی واړه کافران د یو پټی ساګ دی.③ او که هغه ذمی کوم چې دارالاسلام کې دې.د یو داسې حربی لپاره



وصیت اوکړو.کوم چې دارالحرب کې دې.نو دا جائز نه دې ځکه چې مذکوره صورت کې د دارینو د تباین په وجه میراث هم ممتنع دې.نو وصیت به هم ممتنع وی.ځکه چې وصیت د میراث خور ده.

## (بَابُ الْوَصِيِّ وَمَا يَمْلِكُهُ)

ژباړه:- (دا) باب د وصی او دده د اختیاراتو (په بیان کې) دې.

**تشریح:-** تردې خائې پورې مرغینانی رحمه الله د موصی له داحکام بیان کړل.نواوس دموصی الیه احکام بیانوی.او موصی الیه ته وصی وائی.کوم چې د موصی د مرګ نه روسته د هغه د مالونو انتظام او نګرانی کوی.بهرحال د موصی له احکام زیات دی.او دا زیات واقع کیږی.په دې وجه ئې د موصی له احکام مقدم ذکر کړل.او د وصی احکام ئې مؤخر ذکر کړی دی.

**د موصی په وړاندې د وصیت قبلولو نه روسته دده په غیر موجدګئ کښې د رد کولو حکم**

**قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَمَنْ أَوْصَى إِلَى رَجُلٍ** وچا چې یوکس وصی جوړ کړو **فَقَبِلَ الْوَصِيُّ فِي وَجْهِ الْمُوصِي** نو وصی، وصی جوړیدل د موصی په وړاندې قبول کړو **وَرَدَّهَا فِي غَيْرِ وَجْهِهِ فَلَيْسَ بِرَدٍّ** و وصی د موصی په غیر موجودګئ کې وصی جوړیدل رد کړل.نو نه رد کیږی **لِأَنَّ الْمَيِّتَ مَضَى مُعْتَمِدًا عَلَيْهِ** ځکه چې مړې (موصی) پخپله لاره روان شو.په وصی باندې اعتماد کاوه سره، **فَلَوْ صَحَّ رَدُّهُ فِي غَيْرِ وَجْهِهِ فِي حَيَاتِهِ أَوْ بَعْدَ مَمَاتِهِ** نو که د موصی په غیر موجودګئ کې دده رد صحیح شی.د موصی په ژوند کې، یا دهغه د مرګ نه روسته **صَارَ مَغْرُورًا مِنْ جِهَتِهِ** ① **فَرُدَّ رَدُّهُ** نو هغه به د وصی د اړخه دهوکه خوړونکې وی **فَرُدَّ رَدُّهُ، بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِشِرَاءِ عَبْدٍ** نو دده رد کول به ردکولې شی.په خلاف ددې څوک چې د یو غیر معین غلام اخستلو وکیل وی **أَوْ بِبَيْعِ مَالِهِ حَيْثُ يَصِحُّ رَدُّهُ فِي غَيْرِ وَجْهِهِ** یا دهغه د مال خرڅولو وکیل وی.په دې حیثیت سره، چې د مؤکل په غیر موجودګئ کې د وکیل ردکول صحیح دی **لِأَنَّهُ لَا غُرُورَ هُنَاكَ** ځکه چې دلته هیڅ ضرر نشته **لِأَنَّهُ حَيٌّ قَادِرٌ عَلَى التَّصَرُّفِ بِنَفْسِهِ** ځکه چې مؤکل ژوندې دې.پخپله په تصرف کاوه باندې قادر دې.

**حل اللغة:** ① **مغرور:** دهوکه ورکړې شوې»

**تشریح:-** زید خپل مرګ ته نژدې خالد خپل وصی جوړ کړو.او خالد دا ذمه داری قبوله کړله.یعنی د موصی په وړاندې خالد قبوله کړله.او بیا ئې د هغه په غیر موجودګئ کې وصی جوړید رد کړل.نو وصی جوړیدل به نه رد کیږی.ځکه چې زید خو په خالد باندې اعتماد کاوه سره د دنیا نه رخصت شوې دې.نوکه د خالد ردکول معتبر شی.نو په دې کې سخت ضرر دې.او په دې کې زید ته دهوکه ورکول دی.او دهوکه ورکول حرام دی.نو د زید دا ردکول به مردود وی.

البته که زید، خالد وکیل جوړ کړو.چه زما لپاره یو غلام واخله.یا ئې وکیل جوړ کړو.چه زما مال خرڅ کړه. او خالد د زید په غیر موجودګئ کې د وکالت نه انکار اوکړو.نو جائزدې.ځکه چې دلته هیڅ ضرر نشته.ځکه چې زید پخپله ژوندې دې.د قدرت میړه دې.او دا کار پخپله پوره کولې شی.البته که زید د یو معین غلام اخستلو لپاره خالد وکیل جوړ کړې وو.او خالد د زید په غیر موجودګئ کې وکالت رد کړو.بیا ئې دا غلام دخپل ځان لپاره واخستلو.نو وکالت به نه رد کیږی.او دا غلام به د زید لپاره وی.

**د موصی په وړاندې د ردکولو حکم**

**فَإِنْ رَدَّهَا فِي وَجْهِهِ فَهُوَ رَدٌّ** نوکه وصی، وصی جوړیدل د موصی په وړاندې رد کړو.نو دا به رد وی **لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْمُوصِي وِلَايَةُ إِلْزَامِهِ التَّصَرُّفَ، وَلَا غُرُورَ فِيهِ** ځکه چې موصی لپاره په وصی باندې د تصرف لازمولو ولایت نشته.او نه په دې کې څه دهوکه شته **لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُنِيبَ غَيْرَهُ** ځکه چې موصی لپاره دا ممکن ده.چه هغه دده نه غیر نائب جوړ کړی **وَإِنْ لَمْ يَقْبَلْ وَلَمْ يَرُدَّ حَتَّى مَاتَ الْمُوصِي** او که وصی نه قبول کړو.او نه ئې رد کړو.تردې چې موصی مړ شو **فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ**

قَبِلَ وَإِنْ شَاءَ لَمْ يَقْبَلْ نو وصی ته اختيار دي.که غواړي.قبول دي کړي.اوکه غواړي.نو نه دي قبلوی لِأَنَّ الْمُوصِيَ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الْإِلْزَامِ فَبَقِيَ مُخَيَّرًا خکه چې موصی ته د الزام ولايت نشته.نو وصی پخپل اختيار پاته پاتې شو فَلَوْ أَنَّهُ بَاعَ شَيْئًا مِنْ تَرِكَتِهِ نو که وصی د موصی دترکې نه څه شئ خرڅ کړو فَقَدْ لَزِمَتْهُ نو وصی جوړيدل په ده باندې لازم شو لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلَالَةُ الْإِلْتِزَامِ خکه چې دا( خرڅول) د التزام او قبلولو دليل دي وَالْقَبُولُ وَهُوَ مُعْتَبَرٌ بَعْدَ الْمَوْتِ او قبلول د مرګ نه روسته معتبر دی.

تشريح:- که خالد د زيد په وړاندې وصی جوړيدل رد کړل.نو رد به وی.خکه چې زيد ته دا اختيار نشته.چه هغه په بل کس باندې دا تصرف لازم کړي.يعنی زيد ته په خالد باندې د ولايت الزام حاصل نه دې.او کله چې خالد د زيد په وړاندې رد کړو.نو په دې کې د دهوکې هم څه خبره نشته.خکه چې دلته زيد بل څوك خپل وصی مقرر کولې شي.او که خالد د موصی د وينا نه روسته نه قبول کړو.او نه ئې رد کړو.بلکه خاموش پاتې شو.تردې چې د زيد وفات اوشو.نو خالد ته اختيار شته.که خوښه وی قبول دې کړي.ګني رد دې کړي.خکه چې موصی ته په ده باندې د الزام ولايت حاصل نه دې.نو خالد ته ( د قبلولو او رد کولو) اختيار شته.البته که ده قبول کړي نه وو.خو د زيد د مرګ نه روسته ئې د هغه د ترکې نه څه شئ خرڅ کړو.نو اوس دې وصی جوړ شو.او ولايت هغه لپاره لازم شو.خکه چې دا د التزلم او قبلولو علامت دې.او د موصی د مرګ نه روسته قبول او التزام معتبر دې.

## د موصی د ترکې نه د څه څيز د خرڅولو مسئله

وَيَنْفُذُ الْبَيْعُ لِصُدُورِهِ مِنَ الْوَصِيِّ او بيع به نافذ کيږي. د بيع د صادر کيدوپه وجه، د وصی د اړخه وَسَوَاءٌ عَلِمَ بِالْوِصَايَةِ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ، بِخِلَافِ الْوَكِيلِ او وصی ته که د وی جوړولو علم وی اوکه نه وی.په خلاف د وکيل، کله چې هغه ته د توکيل علم نه وی إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالتَّوْكِيلِ فَبَاعَ حَيْثُ لَا يَنْفُذُ نو که هغه بيع اوکړله.نو نافذ به نه وی لِأَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ خکه چې وصی جوړول خو خلافت دي لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِحَالِ انْقِطَاعِ وِلَايَةِ الْمَيِّتِ خکه چې وصی جوړول مختص دې د مړي د ولايت منقطع کيدو په وخت فَتَنْتَقِلُ الْوِلَايَةُ إِلَيْهِ نو ولايت به وصی اړخ ته منتقل کيږي وَإِذَا كَانَتْ خِلَافَةً او هرکله چې وصی جوړول خلافت دي لَا تَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ كَالْوِرَاثَةِ نو خلافت په علم باندې موقوف نه دې.د وارث پشان أَمَّا التَّوْكِيلُ إِنَابَةٌ لِثُبُوتِهِ فِي حَالِ قِيَامِ وِلَايَةِ الْمُنِيبِ بهرحال وکيل جوړول انابت دې.د توکيل ثابتيدو په وجه، د منيب(نائب)د ولايت قائميدو په وخت فَلَا يَصِحُّ مِنْ غَيْرِ عِلْمِهِ كَإِثْبَاتِ الْمِلْكِ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ نو توکيل به صحيح نه وی.د وکيل د علم نه بغير،لکه د بيع او شراء په ذريعه د ملك اثبات ( کيږي) وَقَدْ بَيَّنَّا طَرِيقَ الْعِلْمِ وَشَرْطَ الْإِخْبَارِ فِيمَا تَقَدَّمَ مِنَ الْكُتُبِ او مونږ د علم طريقه او د خبريدو شرط بيان کړې دې.په ډيرو هغه کتابونو کې کوم چې وړاندې تير شوی دی.

حل اللغة* ①منيب: نائب ② التوکيل: وکيل جوړول﴾

تشريح:- وصی د موصی د ترکې نه څه شئ خرڅ کړو.نو بيع نافذ ده اوکه نه؟ نو وې فرمائيل.چه بيع هم نافذ ده.او دا بيع دليل د قبول هم دې.او صرف دا نه بلکه که وصی بيع اوکړله.او اوسه پورې وصی ته دا علم هم نشته.چه زيد زه وصی جوړ کړې يم.بيا هم بيع صحيح او نافذ ده.اوکه زيد خالد وکيل جوړ کړو.چه هغه زما فلانې سامان خرڅ کړي.او خالد ته ددې توکيل علم اونشو.او د علم نه وړاندې اتفاق سره خالد دا سامان خرڅ کړو.نو بيع به نه نافذ کيږي.او په وصی جوړولو او توکيل کې وجه د توپير دا ده.چه وصی جوړول خلافت دې.او توکيل انابت دې.د خلافت مطلب دا دې.چه دموصی دمرګ نه روسته به وصی ته د تصرف اختيار وی.او د انابت مطلب دا دې.چه موکل موجود دې.او هغه ته په تصرف باندې قدرت حاصل دې.بيا هم توکيل ته د تصرف اختيار ملاويږي.نو وکيل د خپل موکل نائب دې.خليفه نه دې.حضرات شيخين رضي الله عنهما د نبی کريم ﷺ خليفه دی.او نائب د مهتمم صاحب خليفه نه دې.بلکه نائب دی.

د خلافت قانون دا دې.چه هغه پخپل ثبوت کې علم ته محتاج نه دې.لکه څنګه چې وراثت خلافت دې.که وارث ته علم وی اوکه نه وی.هغه به وارث وی.دغه ډول وصی جوړول خلافت دې.نو که وصی ته علم وی او که نه



وی موصی عليه به وصی وی.او د انابت اصول دا دې.چه ترکومه پورې نائب ته دا معلومه نشي.چه زه د فلانی نائب يم.تر هغې پورې به نيابت نه ثابتيږي.لکه مثلاً خالد لپاره زيد يو اس واخستلو.او خالد ته ددې علم نشته.او هم په دې حالت کې خالد په دې اس کې څه تصرف اوکړو.نو په خالد به بيع لازم نه وی.خکه چې خالد لا اوس د بيع نه خبر هم نه دې.نو خالد ته د بيع رد کاوه اختيار شته.

دا خبره چې وصی يا وکيل ته د خبر او اطلاع ور کاوه کومه ذريعه معتبر ده.نو دا وړاندې ډيرو پاتې شوه کتابونو کې تيره شوې ده.چه د وکالت علم به د يو سړي په خبر سره ثابتيږي.که دغه سړې غلام وی اوکه آزاد وی، عادل وی اوکه فاسق وی، ښځه وی اوکه سړې وی، بالغ وی او که بچې وی.دا خو اتفاقی حکم دې.پاتې شوه مسئله د معزول کولو، نو په دې کې د امام ابوحنيفه او صاحبينو رحمهم الله اختلاف دې.د صاحبينو رحمهما الله په نيز د معزول کاوه هم دا حکم دې.يعنی لکه څنګه چې د وکالت علم معتبر دې.دغه ډول د معزول کاوه حکم هم دې.يعنی مطلق په خبر واحد سره به ددې هم ثبوت کيږي.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوو څيزونو کې يو شرط دې.يا به عدد وی.يا به عدالت وی.يعنی د معزول کاوه خبرورکونکې به يادوې (دوه) سړي وی.اوکه يووی.نو دهغه عادل کيدل ضروری دی.هم دامرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د علم ذريعې او د خبر ور کاوه شرط په يوځانې کې نه، بلکه د هداية په ډير کتابونو کې بيان شوی دی.يعنی په د،،کتاب ادب القاضی،، په،،فصل القضاء بالمواريث،، کې ، او په ،،کتاب الوکالة،، کې او په ،، کتاب الشفعه،، کې بيان شوی دی.

## د موصی د مرګ نه روسته وصيت رد کولو نه روسته د دوباره قبلولو حکم

وَإِنْ لَمْ يَقْبَلْ حَتّٰى مَاتَ الْمُوصِيُ وکه وصی قبول کړې نه وی.تردې چې موصی مړ شی فَقَالَ لَا أَقْبَلُ ثُمَّ قَالَ أَقْبَلُ نو وصی اووئيل.﴿لا اقبل﴾ ،، زه وصی جوړيدل نه قبلوم،، بيا ئې اووئيل.چه زه ئې قبلوم فَلَهُ ذٰلِكَ إِنْ لَمْ يَكُنِ الْقَاضِي أَخْرَجَهُ مِنَ الْوَصِيَّةِ حِينَ قَالَ لَا أَقْبَلُ نو وصی لپاره دا حق شته.که دده د﴿لا اقبل﴾ وئيلو په وخت وصی هغه لره د وصيت نه خارج کړې نه وی لِأَنَّ بِمُجَرَّدِ قَوْلِهِ لَا أَقْبَلُ لَا يَبْطُلُ الْإِيصَاءُ خکه چې دده صرف د﴿لا اقبل﴾ وئيلو په وجه وصی جوړيدل نه باطليږي لِأَنَّ فِي إِبْطَالِهِ ضَرَرًا بِالْمَيِّتِ خکه چې د وصی جوړول باطل کاوه کې د مړي ضرر دې وَضَرَرُ الْوَصِيِّ فِي الْإِبْقَاءِ مَجْبُورٌ بِالثَّوَابِ او د وصی ضرر د وصی جوړولو په پاته ساتلو کې د ثواب په ذريعه پوره کولای شی وَدَفْعُ الْأَوَّلِ وَهُوَ أَعْلٰى أَوْلٰى، إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ إِذَا أَخْرَجَهُ عَنِ الْوِصَايَةِ يَصِحُّ ذٰلِكَ او د ړومبی دفع کول حالانکه هغه اعلی دې.زيات غوره دې.خو کله چې قاضی وصی لره د وصی جوړيدو نه خارج کړې وی.نو دا اخراج صحيح دې لِأَنَّهُ مُجْتَهَدٌ فِيهِ خکه چې د قاضی فيصله مجتهد فيه ده إِذْ لِلْقَاضِي وِلَايَةُ دَفْعِ الضَّرَرِ خکه چې قاضی ته د خلګو نه د ضرر لرې کاوه ولايت شته.

حل اللغة* ① الايصاء: وصيت کول ② ابقاء: پاته پاتې کول﴾

تشريح:- کله چې زيد خالد لره وصی جوړ کړو.نو دغه وخت خو خالد قبول نکړو.او د زيد د مرګ نه روسته خالد اول اووئيل.چه ما ته دا وصی جوړيدل قبول نه دی.ددې نه روسته ئې بيا اووئيل.چه ما وصی جوړيدل قبول کړل.نو زموږ په نيز اوس هم د وصی قبلول صحيح دی.او د امام زفر رحمه الله په دې کې اختلاف دې.هغه فرمائی.چه د رد کاوه نه روسته بيا د قبلولو ولايت پاتې نشو.خکه چې دده په رد کاوه سره د موصی تفويض (سپارل) باطل شو.او هرکله چې تفويض باطل شو.نو ددې نه روسته د قبلولو حق پاتې نشو.بهرحال زموږ په نيز اوس هم د قبلولو حق شته.خو په دې کې دا شرط دې.چه قاضی هغه لره د وصی جوړيدو نه خارج کړې نه وی.او که دده د ﴿لا اقبل﴾ وئيلو په وخت قاضی هغه لره د وصی جوړيدو نه خارج کړې وی.نو بيا د قاضی د خارجولو نه روسته هغه ته دا حق پاتې نشو.چه هغه وصی جوړ شی.خکه چې کله هغه ﴿لا اقبل﴾ وئيلی وو.نو صرف ددې وئيلو په وجه وصی جوړيدل باطل شوی نه وو.خکه که وصی جوړول باطل کړې شی.نو په دې کې د مړي ضرر دې.خکه چې هغه په ده باندې اعتماد کاوه سره د دنيا نه رخصت شوې دې.نو مړې د ضرر نه بچ کاوه لپاره وصی جوړول نه دی باطل کړې شوی.

ﷺ اودوصی جوړولو پاته ساتلو کې د مړي فائده ده.خو په دې کې د وصی ضرر دې.ځکه چې په ده باندې وصی جوړېدل لازمېږي.ځکه کیداې شي.چه هغه ددې ذمه دارئ پوره کاوه نه عاجز وی؟ نو ددې خواب نې ورکړو چه په دې کې د وصی هم ضرر دې.خو د وصی ضرر د ثواب په ذریعه پوره کړې شوې دې.یعنی هغه ته به د آخرت ثواب ملاوېږي.یا داسې اووایئ:چه دا دواړه ضررونه دی.خو د مړي ضرر زیات قوی او اعلی دې.او د وصی اولی دې.او د قوی ضرر لرې کاوه لپاره معمولی ضرر برداشت کولې شي.نو د وصی د معمولی ضرر تحمل به کولې شي.

ﷺ خو که هغه لره قاضی د وصی جوړېدو نه خارج کړې وی.نو د قاضی اخراج صحیح دې.ځکه چې د قاضی دا فیصله د اجتهادی امورو څنې ده.او کله چې په اجتهادی امورو کې د قاضی فیصله اوکړې شی.نو هغه لازمېږي.نو وصیت به باطل وی.ځکه چې قاضی دا کار د ضرر لرې کاوه لپاره کړې دې.او قاضی ته د خلګو د ضرر لرې کاوه ولایت حاصل دې.

## قاضی ته د وصی د معزول کولو حق شته اوکه نشته؟

وَرُبَّمَا يَعْجِزُ عَنْ ذٰلِكَ او ډیرخله وصی ددې(وصی جوړېدو فرائض پوره کولو)نه عاجز کیږي فَيَتَضَرَّرُ بِبَقَاءِ الْوِصَايَةِ نو وصی به ضرر محسوسوی.د وصی جوړېدو په پاته ساتلو سره فَيَدْفَعُ الْقَاضِي الضَّرَرَ عَنْهُ نو قاضی به د وصی نه ضرر لرې کوی وَيَنْصِبُ حَافِظًا لِمَالِ الْمَيِّتِ مُتَصَرِّفًا فِيهِ او د وصیت د مال لپاره به څوک نګران مقرر کوی.چه هغه به د مړي په مال کې تصرف کوی فَيَنْدَفِعُ الضَّرَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فَلِهٰذَا يَنْفُذُ إِخْرَاجُهُ نو د فریقینو ضرر به لرې شي.په دې وجه به د قاضی اخراج نافذ کیږي فَلَوْ قَالَ بَعْدَ إِخْرَاجِ الْقَاضِي إِيَّاهُ أَقْبَلُ نو که وصی د قاضی د خارجولو نه روسته ﴿ اقبل ﴾ اووئیلې لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَيْهِ نو هغه اړخ ته به توجه نشی ورکولې لِأَنَّهُ قَبِلَ بَعْدَ بُطْلَانِ الْوِصَايَةِ بِإِبْطَالِ الْقَاضِي ځکه چې وصی د وصی جوړولو د بطلان نه روسته قبول کړې دې.چه دا د قاضی د ابطال نه روسته باطل شوې دې.

**تشریح:**- هم هغه مخکنئ خبره پاته ده.چه قاضی ته دا ولایت شته.چه وصی د وصی جوړېدو نه خارج کړی.ځکه کیداې شي.چه وصی د وصی جوړېدو د فرائضو پوره کاوه نه عاجزه شی.او ددې باوجود هم وصی جوړېدل پاته اوساتلې شی.نو په دې کې د وصی ضرر دې.نو قاضی ته به حق وی.چه هغه وصی د وصی جوړېدو نه خارج اوګرځوی.او د وصی نه ضرر لرې کړی.او د مړي د مال لپاره څوک نګران مقرر کړی.چه هغه د مړي په مال کې تصرف اوکړی.نو په دې تدبیر سره به د دواړو طرفونو نه ضرر لرې شي.نو قاضی چې وصی د وصی جوړېدو نه خارج کړې دې.نو دده خارجول به نافذ وی.او که وصی د قاضی د خارجولو نه روسته اووائی.چه زه قبلوم.نو دده قبلولو اړخ ته به توجه نشی کولې.ځکه چې اوس د قبلولو نه هیڅ فائده نشته.ځکه چې د قاضی د باطلولو په وجه وصی جوړېدل باطل شوی دی.

## قاضی د بوکس وصی غلام، کافر او فاسق د وصیت نه اوبکلې شي

قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل وَمَنْ أَوْصَى إِلَى عَبْدٍ أَوْ كَافِرٍ أَوْ فَاسِقٍ و کوم کس چې یو غلام، یا کافر یا فاسق وصی جوړ کړو أَخْرَجَهُمُ الْقَاضِي عَنِ الْوِصَايَةِ وَنَصَبَ غَيْرَهُمْ نو قاضی به هغوی د وصی جوړېدو نه خارجوی.او ددوی ځخه به غیر مقرر کوی وَهٰذَا اللَّفْظُ يُشِيرُ إِلَى صِحَّةِ الْوَصِيَّةِ او د امام قدوری رحمه الله دا لفظ د وصیت صحت اړخ ته اشاره کوی لِأَنَّ الْإِخْرَاجَ يَكُونُ بَعْدَهَا ځکه چې اخراج د صحت نه روسته کیږي وَذَكَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ أَنَّ الْوَصِيَّةَ بَاطِلَةٌ او امام محمد رحمه الله په مبسوط کې ذکرکړی دی.چه وصیت باطل دې قِيلَ مَعْنَاهُ فِي جَمِيعِ هٰذِهِ الصُّوَرِ أَنَّ الْوَصِيَّةَ سَتَبْطُلُ ونیلی شوی دی.چه ددې معنی په دې ټولو صورتونو کې دا ده.چه وصیت به ډیر زر باطلولې شی وَقِيلَ مَعْنَاهُ فِي الْعَبْدِ بَاطِلٌ حَقِيقَةً لِعَدَمِ وِلَايَتِهِ وَاسْتِبْدَادِهِ او ونیلی شوی دی.چه د غلام په سلسله کې ددې معنی په حقیقت کې باطلول دی.د غلام د عدم ولایت او عدم استقلال په وجه وَفِي غَيْرِهِ مَعْنَاهُ سَتَبْطُلُ او د غلام نه په علاوه کې ددې معنی باطلیدل دی وَقِيلَ فِي الْكَافِرِ بَاطِلٌ أَيْضًا لِعَدَمِ وِلَايَتِهِ عَلَى الْمُسْلِمِ او ونیلی شوی دی.چه په کافر کې هم باطل ده.کافر ته په مسلمان باندې د ولایت نه کیدو په وجه.



استبداد: مستقل کیدل.﴾

**حل اللغة:** ① **استبداد:** مستقل کیدل.﴾

**تشریح:**- که زید د خالد غلام خپل وصی جوړ کړو.یا نې یو کافر یا فاسق خپل وصی جوړ کړو.نو امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.چه قاضی به دوی درې واړه د وصی جوړېدو نه خارجوی.او ددوی نه علاوه به یوکس مقرر کوی.اوس په دې باندې صاحب دهدایه رحمه الله څه تبصره کوی.فرمائي چه د امام قدوری رحمه الله دا کلام دا خبره واضح کوی.چه وصیت به صحیح وی.ځکه چې خارجول هغه وخت کیږي.کله چې وصیت صحیح شوې وی.او امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائیلی دی.چه وصیت باطل دې.اوس ددې په تشریح کې مختلف اقوال دی ① فقیه ابوالليث رحمه الله د جامع صغیر په شرح کې د امام محمد رحمه الله ددې ذکر شوی قول دا معنی بیان کړې ده.چه وصیت په دې دریو واړو صورتونو کې ددې قابل دې.چه دا باطل اوګرځولې شي.نو چونکه دا وصیت د باطلولو قابل دې په دې وجه دې ته د وړاندې نه باطل ونیلی شوی دی.② او بعضې حضراتو ونیلی دی.چه د غلام په صورت کې خو دا بطلان پخپل حقیقت باندې محمول دې.یعنی وصیت د سره باطل دې.ځکه چې په غلام کې دا ولایت نشته.او نه غلام ته استقلال حاصل دې.ځکه چې هغه د خپل مولا په قبضه او د هغه په اختیار کې دې.③ او بعضې حضراتو ونیلی دی.که کافر وصی جوړ کړې شو.نو دا هم د سره باطل دې.ځکه چې کافر هم په مسلمان باندې ولایت نه لری.او نه په هغه کې دا اهلیت شته.چه هغه د مسلمان ولی جوړ شي.

## د وصیت صحت او د قاضی د خارجولو د صحت وجه

وَوَجْهُ الصِّحَّةِ ثُمَّ الْإِخْرَاجِ أَنَّ الْأَصْلَ النَّظَرُ ثَابِتٌ لِقُدْرَةِ الْعَبْدِ حَقِيقَةً او د صحت بیا د خارجولو وجه دا ده.چه اصل شفقت ثابت دې.د غلام په حقیقت کې د قادر کیدو په وجه وَوِلَايَةُ الْفَاسِقِ عَلَى أَصْلِنَا او زموږ د اصل مطابق د فاسق د ولایت په وجه وَوِلَايَةُ الْكَافِرِ فِي الْجُمْلَةِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ النَّظَرُ لِتَوَقُّفِ وِلَايَةِ الْعَبْدِ عَلَى إِجَازَةِ الْمَوْلٰى او فی الجمله د کافر د ولایت په وجه.خو شفقت تام نه دې.د غلام د ولایت موقوف کیدو په وجه، د آقا داجازت او د آقا د قادر کیدو په وجه وَتَمَكُّنِهِ مِنَ الْحَجْرِ بَعْدَهَا وَالْمُعَادَاةِ الدِّينِيَّةِ الْبَاعِثَةِ لِلْكَافِرِ عَلَى تَرْكِ النَّظَرِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ وَاتِّهَامِ الْفَاسِقِ بِالْخِيَانَةِ د اجازت نه روسته د حجر په عائد کاوه باندې، او د هغه دینی دشمنئ په وجه، کومه چې د مسلمان په حق کې کافر لره د شفقت په پرېخودو باندې راپورته کوی.او د فاسق د متهم کیدو په وجه د خیانت په وجه فَيُخْرِجُهُ الْقَاضِي مِنَ الْوِصَايَةِ وَيُقِيمُ غَيْرَهُ مَقَامَهُ إِتْمَامًا لِلنَّظَرِ نو قاضی په دوی کې هر یو د وصایت نه خارجولې شی.او ددوی نه غیر کس ددوی په ځائې لګولې شی. د شفقت پوره کاوه په غرض سره.

**حل اللغة:** ① **اتمام:** پوره کول ② **النظر:** شفقت، مهربانی ③ **الحجر:** بندیز ④ **المعاداة:** دشمنی ⑤ **اتهام:** تهمت لګول﴾

**تشریح:**- کومو حضراتو چې فرمائیلی دی.چه وصیت صحیح دې.او بیا د قاضی خارجول هم صحیح دی.نو ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله وجه د صحت او بیا د خارجولو د صحت وجه بیانوی.چه د هغې حاصل دا دې.چه ددوی دریو واړو په حق کې وصیت ځکه صحیح ګرځولې شوې دې.چه په دې دریو واړو کې اصل شفقت شته.خو په دې کې نقصان او کمی ده.نو د اصل موجود کیدو په وجه صحت اوشو.او د نقصان موجود کیدو په وجه خارجول صحیح شو.اوس پاتې شوه دا خبره چې اصل قدرت څنګه شته.نو وې فرمائیل.چه غلام ته داسې شته.چه هغه عاقل بالغ دې.نو هغه د تصرف اهل دې.او فاسق زموږ د اصل مطابق ولایت لری.

ﷺ او پاتې شو کافر نو فی الجمله هغه ته هم ولایت شته.مثلاً یو کافر یو مسلمان غلام واخستلو.نو دهغه اخستل صحیح دی.او په غلام به د کافر مشتری ملکیت ثابت وی.او کافر مشتری ته به په دې غلام باندې ولایت حاصل وی.هغه بله خبره ده.چه په دغه کافر به ددې مسلمان غلام په خرڅولو باندې زبردستی کولې شی.بهرحال معلومه شوه.چه فی الجمله کافر ته هم ولایت شته.خو په دوی کې د هیڅ یوکس شفقت کامل او تمام نه دې.ځکه چې د غلام ولایت خو د آقا په نظر او کرم باندې دې.که هغه اجازت ورکړی.نو پاته دې.ګنی ختم به وی.او د اجازت ور کاوه نه روسته هم چې کله آقا اوغواړی.هغه لره محجور علیه ګرځولې شی.او په کافر کې د نقصان سبب دا

دې.چه هغه كافر دې.چه هغه لره ديني دشمني په دې خبره راپورته كوي.چه هغه مسلمان لپاره شفقت پرېږدي.او په فاسق كې دا كمى ده.چه هغه خيانت سره متهم دې.نو ددې وجوهاتو په بناء به قاضي دوى د وصي جوړيدو نه خارجوي.او ددوى په ځاى به بل څوك مقرروي.چه د شفقت پوره پوره خيال اوساتلې شي.

**فاسق به كله د وصيت نه خارجولې شي؟**

وَشَرَطَ فِي الْأَصْلِ أَنْ يَكُونَ الْفَاسِقُ مَخُوفًا عَلَيْهِ فِي الْمَالِ او په مبسوط كې نې شرط لګولې دې.چه فاسق داسې وي.چه هغه باندې د مال په اړه كې يره وي وَهٰذَا يَصْلُحُ عُذْرًا فِي إِخْرَاجِهِ وَتَبْدِيلِهِ بِغَيْرِهِ او دا خبره ( چې فاسق داسې وي.چه هغه باندې دمال په اړه كې يره وي) د فاسق خارجول، او ده لره دده د غير په بدله كې د بدلولو د عذر جوړيدو صلاحيت لرى.

**تشريح:-** په مبسوط كې دفاسق د خارجولو په اړه كې ليكلى دى.چه هغه وخت دده خارجول صحيح دى.كله چې دا فاسق داسې وى.چه هغه باندې د مال په اړه كې د پخپله خوړلو يره وى.او د مال په اړه كې پخپل خان باندې د خوړلو يره داسې عذر دې.چه ددې په وجه فاسق د وصي جوړيدو نه جلا كولې، او بل څوك دده په ځاى مقرر كيداې شي.ځكه چې د موصى مقصد دده په وصي جوړيدو سره دا وو.چه دا د موصى نه روسته دده د اولاد او دده د مال ساتنه اوكړى.او هغه د ساتنه په ځاې خيانت پيل كړو.

**د خپل غلام د وصي جوړولو حكم**

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَمَنْ أَوْصَى إِلَى عَبْدِنَفْسِهِ و چاچه خپل غلام وصي جوړ كړو وَفِي الْوَرَثَةِ كِبَارٌ او په وارثانو كې بالغ خلګ موجود وى وَلَمْ تَصِحَّ الْوَصِيَّةُ نو وصيت به صحيح نه وى لِأَنَّ لِلْكِبِيرِ أَنْ يَمْنَعَهُ أَوْيَبِيعَ نَصِيبَهُ ځكه چې بالغ ته حق شته.چه هغه غلام منع كړى.يا هغه د غلام نه خپله برخه وپلورى فَيَمْنَعُهُ الْمُشْتَرِي نو غلام به مشترى منع كوى فَيَعْجِزُعَنِ الْوَفَاءِ بِحَقِّ الْوِصَايَةِ نو غلام به د وصي جوړيدو د حق پوره كاوه نه عاجزه شي فَلَا يُفِيدُ فَائِدَتَهُ نو وصي جوړيدل به خپله فائده نه وركوى وَإِنْ كَانُوا صِغَارًا كُلُّهُمْ او كه واړه وارثان ماشومان وى فَالْوَصِيَّةُ إِلَيْهِ جَائِزَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ()نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ده لره وصي جوړول جائز دى وَلَا تَجُوزُ عِنْدَهُمَا وَهُوَ الْقِيَاسُ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه دې.او هم دا قياس دې.

**تشريح:-** په مخكنئ مسئله كې موصى د بل يوكس غلام وصي جوړ كړې وو.چه د هغې حكم بيان كړې شوې دې.اوكه زيد خپل غلام وصي جوړ كړو.نو د هغې څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه په دې كې تفصيل دې.روميې به دا كتلې شي.چه وارثان ماشومان دى.اوكه بالغ دى.نوكه واړه وارثان بالغ وى.يا په وارثانو كې بعضې خلګ بالغ وى.نوپه دې صورت كې به بالاتفاق وصيت صحيح نه وى. اوكه واړه وارثان نا بالغه وى.نو په دې كې اختلاف دې.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز وصيت جائز دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه دې.او كوم چې د صاحبينو رحمهما الله قول دې.د قياس هم دا تقاضه ده.

كه واړه وارثان يا په دوى كې بعضې خلګ بالغان وى.نو د وصيت نه جائز كيدو وجه دا ده.چه بالغ ته حق شته.چه هغه دا وصي غلام منع كړى.او تصرف ته نې پرې نږدى.ځكه چې دا بالغ دهغه مولا دې.چه ده ته پخپل غلام باندې ولايت حاصل دې.اودې غلام ته دا حق هم شته.چه هغه خپله برخه وپلورى .نوكوم مشترى چې دده برخه اخستې ده.هغه دا غلام د تصرف نه منع كولې شى.نو په دې طريقه به دا وصي غلام د وصي جوړيدو د حق پوره كاوه نه عاجز او قاصر وى.نو بيا به د وصي جوړيدو هيڅ فائده نه وى.

**د امام محمدرحمه الله قول مضطرب دې**

() القول الراجح هوهذا قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى حاشية حلبى (۲۰۸\۶) وتبيين(۲۰۷\۶) وملتقى (۴۵۵\۴) نقلاً عن القول الراجح(۳۸۵\۲)-



وَقِيلَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ مُضْطَرِبٌ، يَرْوِي مَرَّةً مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ، وَتَارَةً مَعَ أَبِي يُوسُفَ او وئيلې شوى دى.چه د امام محمد رحمه الله قول په دې كې مضطرب دې.كله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره روايت كولې شى.اوكله د امام ابو يوسف رحمه الله سره .

**تشريح:-** مخكې مرغيناني رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول د امام ابويوسف رحمه الله سره ذكركړې وو.اوس فرمائى.چه د بعضو حضراتو وينا ده.چه په دې كې د امام محمد رحمه الله قول مضطرب دې.په بعضو رواياتو كې د امام محمد رحمه الله قول د امام ابوحنيفه رحمه الله سره روايت كړې شوې دې.او په بعضو رواياتوكې د امام ابويوسف رحمه الله سره روايت كړې شوې دې.

تنبيه۞ په دې اړه كې تفصيلى بحث لپاره نتائج الافكارخصوصيت سره قابل د كتلو دې.

**د صاحبينو رحمهما الله د قول دليل**

وَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّ الْوِلَايَةَ مُنْعَدِمَةٌ د قياس دليل دا دې.چه دغلام ولايت معدوم دې لِمَا أَنَّ الرِّقَّ يُنَافِيهَا ځكه چې رقيت ( غلامى) د ولايت منافى ده وَلِأَنَّ فِيهِ إِثْبَاتَ الْوِلَايَةِ لِلْمَمْلُوكِ عَلَى الْمَالِكِ، وَهٰذَا قَلْبُ الْمَشْرُوعِ او ځكه چې په دې كې مالك باندې مملوك لپاره ولايت ثابتول دى.دا مشروع امر التپه كول دى وَلِأَنَّ الْوِلَايَةَ الصَّادِرَةَ مِنَ الْأَبِ لَا تَتَجَزَّأُ، وَفِي اعْتِبَارِ هٰذِهِ تَجْزِئَتُهَا لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ بَيْعَ رَقَبَتِهِ وَهٰذَا نَقْضُ الْمَوْضُوعِ او ځكه چې هغه ولايت كوم چې د پلار د اړخه صادر شوې دې.غير متجزى دې.او ددې وصيت په اعتبار كاوه كې د ولايت ټكړې كول دى ځكه چې غلام د خپلې رقبې د بيع مالك نه دې.او دا د موضوع ماتول دى.

**حل اللغة:** ① الرق: خالصه غلامى ② تتجزا: تقسيميږى

**تشريح:-** دا د صاحبينو رحمهما الله د قول دليل دې.چه دا د قياس مطابق دې.او په دې دليل كې درې برخې دى① غلام وصي نشى مقرر كيدې.ځكه چې په ده كې ولايت نشته.ځكه چې په غلامئ او ولايت كې منافات دې.② اصول خو دا دې.چه اعلى ته په ادنى باندې ولايت حاصل وى.او غلام ادنى او مالك اعلى دې.او تاسو غلام ته په آقا باندې ولايت وركړو.حالانكه غلام مملوك دې.او آقا مالك دې.نو دا موضوع التپه كول او مشروع التپه كول دى.③ د موصى ولايت غير متجزى دې.يعنى پلار ته چې كوم ولايت حاصل وو.هغه غير متجزى وو.اوكه دې غلام ته ولايت وركړې شى.نو په دې كې به تجزى لازميږى.ځكه چې غلام اګرچه د موصى سامان خرڅولې شى.خو خپل خان نشى خرڅولې.او دا موضوع ماتول دى.چه خبره څنګه وى.او څنګه شوه.نو موږ اووئيل.چه خپل غلام وصي جوړول صحيح نه دى.

**د امام صاحب رحمه الله د قول دليل**

وَلَهُ أَنَّهُ مُخَاطَبٌ مُسْتَبِدٌّ بِالتَّصَرُّفِ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه غلام مخاطب دې.مستقل دې.د تصرف په سلسله كې فَيَكُونُ أَهْلًا لِلْوِصَايَةِ، وَلَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَيْهِ وِلَايَةٌ نو غلام به د وصي جوړيدو اهل وى.او هيڅ چاته په ده باندې ولايت نشته فَإِنَّ الصِّغَارَ وَإِنْ كَانُوا مُلَّاكًا لَيْسَ لَهُمْ وِلَايَةُ الْمَنْعِ فَلَا مُنَافَاةَ ځكه چې بچې اګرچه مالك دې.دوى لپاره د منع كاوه ولايت نشته.نوهيڅ منافات نشته وَإِيصَاءُ الْمَوْلَى إِلَيْهِ يُؤْذِنُ بِكَوْنِهِ نَاظِرًا لَهُمْ وَصَارَ كَالْمُكَاتَبِ او دمولى هغه لره وصي جوړول، دغلام د بچو لپاره د ناظر ( مهربان) كيدو خبر وركول دى.او دا د مكاتب پشان شو وَالْوِصَايَةُ قَدْ تَتَجَزَّأُ عَلَى مَا هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او وصي جوړيدل متجزى دى.د هغه قول مطابق كوم چې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دې أَوْنَقُولُ: يُصَارُ إِلَيْهِ كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى إِبْطَالِ أَصْلِهِ يا موږ وايو.چه دې اړخ ته به رجوع كولې شى.چه اصل وصيت اړخ ته مودى ( متعدى) نه شى وَتَغْيِيرُ الْوَصْفِ لِتَصْحِيحِ الْأَصْلِ أَوْلَى او وصف متغير كول غوره دى.د اصل صحيح كاوه دپاره.

**تشريح:-** دا د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې.چونكه ددوى په نيز خپل غلام په ذكر شوى صورت كې وصي جوړول صحيح دى.نو فرمائى.چه دا غلام مخاطب دې.يعنى عاقل او بالغ دې.د تصرف په اړه كې مستقل دې.البته دغير

په غلام کي استقلال او استبداد (اختیار) نشته.ځکه چي دغه غیر کله اوغواړي .په هغه به حجر (بندیز) لګوی په دي وجه به خپل غلام اهل ګرځولي شي.اوهیڅ چاته به په ده باندي ولایت حاصل نه وی.چه هغه ده لره منع کړی.نو دلته هیڅ منافات پاتي نشو.ځکه چي داسي هیڅ وجه او نه موندي شوه.چه هغه دده ولایت ممنوع اوګرځوی.اوهرکله چي مولی دا غلام وصی جوړ کړي دي.نوددي نه پخپله دا معلومیږي.چه دا غلام د ماشومانو په حق کي نګران او ساتونکي دي.نو دي غلام ارخ ته وصیت کول داسي شو.لکه خپل مکاتب وصی جوړول، او دا جائز دی.نو دا به هم جائز وی.

۞ پاتي شو دا اعتراض نچه د موصی په ولایت کي تجزی نشته.او ددي غلام په ولایت کي تجزی ده.چه په دي کي نقض د موضوع لازمیږي؟ نو ددي ① یو خواب دا دي.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله د یو روایت مطابق وصی جوړول متجزی دی.نو که موصی زید د عین په سلسله کي وصی جوړ کړو.او خالد ئي د دین په وصولولو کي (وصی جوړ کړو).نو دواړه به خپل خپل کارونه پوره کوی.او په دي کي به تصرف کوی.حالانکه موصی ته په دواړو کي دتصرف کاوه حق وو.نو تجزی ثابته شوه.

۞ اوددي ② دوهم خواب دا دي.چه د صفت نه زیات د موصوف اهمیت دي.ځکه چي موصوف د باطلولو نه د بچ کاوه لپاره د وصف تغیر او تبدل برداشت کولي شي.نو د وصیت باطلولو په مقابله کي ولایت بدلول یعنی تجزی نه کاوه سره تجزی ارخ ته راتګ دی.نو ددي تحمل به کولي شي.

## د وصیت د فرائضو پوره کولو نه د عاجز سړي د وصی جوړولو حکم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَمَنْ يَعْجِزُ عَنِ الْقِيَامِ بِالْوَصِيَّةِ** و چاچه داسي سړي وصی جوړ کړو.چه هغه د وصیت ادا کاوه نه عاجز دي **ضَمَّ إِلَيْهِ الْقَاضِي غَيْرَهُ** رِعَايَةً لِحَقِّ الْمُوصِي وَالْوَرَثَةِ نو قاضی به هغه ارخ ته د هغه غیر ملاو کړی.د موصی او وارثانو د حق د رعایت په وجه وَهٰذَا لِأَنَّ تَكْمِيلَ النَّظَرِ يَحْصُلُ بِضَمِّ الْآخَرِ إِلَيْهِ لِصِيَانَتِهِ وَبَعْضِ كِفَايَتِهِ او دا ځکه چي د شفقت مکمل کول به هغه ارخ ته د دوهم په ملاوولو سره حاصلیږي.د وصی د صیانت او ساتنه په وجه، او دده د بعضي کفایت په وجه فَيَتِمُّ النَّظَرُ بِإِعَانَةِ غَيْرِهِ نو شفقت به تمامیږي.دده د غیر په کومك سره. |

**تشریح:**- زید خالد خپل وصی مقرر کړي وو.خو هغه د وصیت فرائض پوره کاوه نه قاصر دي.یا عاجز دي.نو په داسي موقع باندي به قاضی هغه سره بل څوك ملاو کړی.چه د موصی او وارثانو دواړو رعایت اوشي ځکه چي په داسي کاوه کي به مکمل شفقت حاصلیږي.اوپه دي سره به د عاجز وصی حفاظت او صیانت هم کیږي.او په بعضو کارونو کي به دوهم دده کفایت کوی.نو کله چي دوهم دده مددګار شو.نو شفقت تمام شوي دي.

## که وصی د قاضی په وړاندي د عجز اظهار اوکړي نو څه حکم دي؟

| |
|---|
| **وَلَوْ شَكَى إِلَيْهِ الْوَصِيُّ ذٰلِكَ** او که وصی د خپلي عاجزئ قاضی ته شکایت اوکړو **لَا يُجِيبُهُ حَتّٰى يَعْرِفَ ذٰلِكَ حَقِيقَةً** نو قاضی دي د هغه خبره نه قبلوی.تردي چي په حقیقت کي هغه اوپیژنی لِأَنَّ الشَّاكِيَ قَدْ يَكُونُ كَاذِبًا تَخْفِيفًا عَلٰى نَفْسِهِ ځکه چي شکایت کونکي کله دروغژن وی.پخپل نفس باندي د آسانتیا په غرض سره **وَإِذَا ظَهَرَ عِنْدَ الْقَاضِي عَجْزُهُ أَصْلًا** او کله چي د قاضی په نیز یقین سره دده عاجزی ښکاره شي اسْتَبْدَلَ بِهِ رِعَايَةً لِلنَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ نو دا دي قاضی بدل کړی.د دواړو طرفونو نه د شفقت رعایت کاوه سره **وَلَوْ كَانَ قَادِرًا عَلَى التَّصَرُّفِ أَمِينًا فِيهِ** اوکه وصی په تصرف باندي قادر وی.په تصرف کي امین وی لَيْسَ لِلْقَاضِي أَنْ يُخْرِجَهُ نو قاضی ته حق نشته.چه هغه وصی خارج کړي لِأَنَّهُ لَوِ اخْتَارَ غَيْرَهُ كَانَ دُونَهُ ځکه که قاضی دده نه غیر اختیار کړو.نو دغه غیر به دهغه نه کم وی لِمَا أَنَّهُ كَانَ مُخْتَارَ الْمَيِّتِ وَمَرْضِيَّهُ فَإِبْقَاؤُهُ أَوْلٰى ځکه چي وصی د مړی مختار او دهغه خوښ وو.نو هم دده پاته ساتل به اولی وی وَلِهٰذَا قُدِّمَ عَلٰى أَبِي الْمَيِّتِ مَعَ وُفُورِ شَفَقَتِهِ فَأَوْلٰى أَنْ يُقَدَّمَ عَلٰى غَيْرِهِ په دي وجه وصی د مړی په پلار باندي مقدم کولي شي.د پلار دشفقت کامل کیدو باوجود، نوبه درجه اولی به هغه لره د پلار په غیر باندي مقدم کولي شي. |

**حل اللغة:** ① **تخفیف** آسانول ② **ابقاء** پاته پاتي کول ③ **وفور**: کامل والي پوره والي﴾



**تشریح:**- که وصی قاضی ته پخپله د خپلي عاجزئ شکایت اوکړي.نو قاضی دي د تحقیق نه بغیر د وصی خبره نه قبلوی.ځکه کیداي شي.چه دي دروغ واني.ځکه چي سړي پخپل ځان باندي د آسانتیا په غرض سره هم دروغ واني.البته که د تحقیق نه روستو د قاضی په وړاندي د هغه عاجزی ښکاره شي.نو اوس دي قاضی هغه بدل کړي.چه په دي کي د دواړو رعایت اوشي.یعنی د وصی هم او د مړی دوارثانو هم.

۞ اوکه وصی په تصرفاتو باندي قادر کیدو سره سره امین هم وي.نو دي به د وصی کیدو نه نه خارجوی.ځکه چي ده لره مړی وصی جوړ کړي دي.او د مړی په نیز خوښ (او مختار) دي.نو کوم دوهم کس چي دده په ځاني منتخب کولي شي.هغه دده برابر نشی کیدي.که یو سړی خپل وصی مقرر کړو.او د موصی پلار هم موجود دي.نو وصی د مړی د پلار نه مقدم ساتلي کیږي. حالانکه په پلار کي کامل شفقت موجود دي.نو هرکله چي دي د پلار نه مقدم ساتلي شوي دي.نو په نورو به په درجه اولی مقدم ساتلي شي.

## دټولو یا د بعضو وارثانو قاضی ته د شکایت کولو مسئله

| |
|---|
| وَكَذَا إِذَا شَكَى الْوَرَثَةُ أَوْ بَعْضُهُمُ الْوَصِيَّ إِلَى الْقَاضِي او هم دغه ډول کله چي وارثانو یا په وارثانو کي بعضو قاضی ته د وصی شکایت اوکړو فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِي لَهُ أَنْ يَعْزِلَهُ ① حَتّٰى يَبْدُوَ ② لَهُ مِنْهُ خِيَانَةٌ نو قاضی لپاره مناسب نه ده.چه هغه معزول کړي.تردي چي کله د هغه خیانت ښکاره شي لِأَنَّهُ اسْتَفَادَ الْوِلَايَةَ مِنَ الْمَيِّتِ، غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا ظَهَرَتِ الْخِيَانَةُ ځکه چي هغه د مړی د ارخه ولایت حاصل کړي دي.علاوه ددي خبري نه چي کله خیانت ښکاره شي. فَالْمَيِّتُ إِنَّمَا نَصَّبَهُ وَصِيًّا لِأَمَانَتِهِ وَقَدْ فَاتَتْ نو مړی هغه لره د هغه د امانت په وجه وصی مقرر کړي وو.او امانت فوت شوي دي وَلَوْ كَانَ فِي الْأَحْيَاءِ ③ او که موصی د ژوندو خلګو څني وي، لَأَخْرَجَهُ مِنْهَا، فَعِنْدَ عَجْزِهِ يَنُوبُ الْقَاضِي مَنَابَهُ كَأَنَّهُ لَا وَصِيَّ لَهُ نو هغه به ئي د وصیت نه خارج کړي وي.نو د مړی د عاجز کیدو په وخت به قاضی دده قائم مقام وی.ګویا چي د سره دده وصی نشته. |

**حل اللغة:** ① **عزل**: معزوله کول ② **تبدو**: ښکاره شی ③ **الاحیاء**: جمع د حي،ژوندي﴾

**تشریح:**- که واړه وارثان یا بعضي وارثانو قاضی ته د وصی شکایت اوکړو.نو هغه به د وصی جوړیدو نه نه خارجوی.البته که د وصی خیانت ښکاره شي.نو معزول کولي به شي.ځکه چي وصی د مړی د ارخه ولایت حاصل کړي دي.نو د څه امله نه بغیر قاضی لپاره مناسب نه ده.چه هغه معزول کړي.البته که د وصی خیانت ښکاره شي.نو بله خبره ده.نو اوس به هغه معزول کولي شي.ځکه چي موصی هغه په دي وجه خپل وصی جوړ کړي وو.چه هغه ده لره امانت ګنړلي وو.او اوس دده د امانت نه پرده اوچته شوه.(او ښکاره شوه چي دي خیانتګر دي) نو که اوس موصی ژوندي وي.نو دي به ئي د وصی جوړیدو نه معزول کړي وي. نو اوس هرکله چي موصی د وصی جوړیدو نه د خارج کاوه نه عاجز دي.نو قاضی به دهغه قائم مقام جوړیږی.او دي به معزول کوی.او دده په ځاني به بل څوك مقرروی.او داسي به ګنړلي شي.ګویا چي د مړی هیڅ څوك وصی نه وو.

## د دوو سړو د وصی جوړولو حکم

| |
|---|
| قَالَ امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَمَنْ أَوْصٰى إِلَى اثْنَيْنِ** و چا چي دوي (دوه) نفر وصی جوړ کړل **لَمْ يَكُنْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دُونَ صَاحِبِهِ** إِلَّا فِي أَشْيَاءَ مَعْدُودَةٍ نُبَيِّنُهَا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى[1] نو په دوی کي یو کس ته دا حق نشته.چه هغه تصرف اوکړي.د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیز، خو په یو څو څیزونو کي، چي دا به موږ ان شاء الله بیان کړو وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَنْفَرِدُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالتَّصَرُّفِ فِي جَمِيعِ الْأَشْيَاءِ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه منفرد به وی.په دوی دواړو کي هر یو په ټولو څیزونو کي تصرف کاوه کي. |

**تشریح:**- زید، خالد او بکر دواړه خپل وصی جوړ کړل.نو اوس سوال دادي.چه د ټولو کارونو په تصرف کي ددوی

[1] القول الراجح هو هذا قول الطرفین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار(ص،۴۹۷) والهندیة (۱۳۹\۶) وملتقی (۴۵۶\۴) نقلا عن القول الراجح(۳۸۶\۲)-

دوارو جمع کیدل ضروری دی.اوکه په انفرادی طریقه هم هر یو ته حق شته.چه هغه تصرف اوکړی.نو په دې کې تفصیل دې.بعضې تصرفات خو بالاتفاق داسې دی.چه په هغې کې هر یو ته انفرادی طور باندې د تصرف کاوه حق حاصل دې.چه ددې تفصیل مرغینانی رحمه الله په راروان عبارت کې بیانوی.او ددې مستثنا کارونو نه علاوه کې د طرفینو او د امام ابویوسف رحمه الله اختلاف دې.حضرت طرفین رحمهما الله فرمائی.چه یو کس ته به د خپل اندیوالان نه بغیر د تصرف حق نه وی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به حق وی.چه یوکس د خپل اندیوالان نه بغیر تصرف اوکړی.اوس مرغینانی رحمه الله د فریقینو تصرف پیش کوی.

لِأَنَّ الْوِصَايَةَ سَبِيلُهَا الْوِلَايَةُ خکه چې وصی جوړیدل، ددې طریقه ولایت ده وَهِيَ وَصْفٌ شَرْعِيٌّ او ولایت یو شرعی وصف دې لَا تَتَجَزَّأُ چې دا غیر متجزی دې فَيَثْبُتُ لِكُلٍّ مِنْهُمَا كَمَلًا كَوِلَايَةِ الْإِنْكَاحِ لِلْأَخَوَيْنِ نو دا ولایت به دوی دوارو کې هر یو لپاره کامل ثابت وی.لکه دوو رونړو لپاره ولایت د انکاح وَهَذَا لِأَنَّ الْوِصَايَةَ خِلَافَةٌ او دا خکه چې وصی جوړیدل خلافت دې وَإِنَّمَا تَتَحَقَّقُ إِذَا انْتَقَلَتِ الْوِلَايَةُ إِلَيْهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي كَانَ ثَابِتًا لِلْمُوصِي او خلافت متحقق کیږی.کله چې د وصی د ارخه ولایت په دې طریقه باندې منتقل شی.لکه څنګه چې موصی لپاره ثابت وو وَقَدْ كَانَ بِوَصْفِ الْكَمَالِ او موصی لپاره دا ولایت کامل وصف سره ثابت وو وَلِأَنَّ اخْتِيَارَ الْأَبِ إِيَّاهُمَا يُؤْذِنُ بِاخْتِصَاصِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالشَّفَقَةِ او خکه چې د پلار (موصی) دوی دوارو لره اختیارول خبر ورکوی.دوی دوارو کې دهر یو شفقت سره د مختص کولو فَيَنْزِلُ ذَلِكَ مَنْزِلَةَ قَرَابَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو دا اختصاص به د هر د قرابت په درجه کې راکوزولې شی.

**تشریح:-** دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه د وصی جوړیدو حاصل ولایت دې.یعنی موصی وصی ته د ولایت شرف ورکړې دې.او ولایت یو شرعی وصف دې.چه دا تجزی او انقسام نه قبلوی .نوهرکله چې ولایت تجزی نه قبلوی.نو هر وصی ته به پوره پوره ولایت حاصل وی.او هرکله چې پوره پوره ولایت حاصل شی.نو هر یو ته به د دوهم (ملګری) نه بغیر د تصرفاتو حق وی.لکه مثلاً یوه ښځه ده.او د هغې دوې (دوه) رونړه دی.نو دواړه ته ددې په نکاح د ور کاوه پوره ولایت دې.نو یو ته حق شته.چه د دوهم رور نه بغیر د خور نکاح اوکړی.نو دغه ډول به دلته کې هم دا حق وی.

امام ابویوسف رحمه الله دوهم دلیل ور کاوه کې فرمائی.چه وصی جوړیدل خلافت دې.اوپه خلافت کې خلیفه ته هغه ولایت حاصلیږی.کوم چې اصل ته حاصلیږی.نو د موصی ولایت به منتقل کیږی.او وصی ته به ملاویږی.او موصی ته دا ولایت کامل درجه حاصل وو.نو دغه ډول به هر وصی ته هم په کامله درجه ولایت ملاویږی.او په دریمه دلیل ور کاوه کې امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه هرکله زید خالد او بکر دواړه وصی جوړ کړی دی.نو ددې مطلب دا دې.چه زید دوی دواړه د شفقت په سلسله کې مخصوص منلې دی.نو ددوی دوارو دې شفقت سره خاص کاوه ته به دا درجه ورکولې شی.چه دوی دوارو ته موصی سره قرابت دې.او د قرابت په وجه چې کوم ولایت ملاویږی.هغه کامل وی.نو دا به هم د کمال په درجه وی.

وَلَهُمَا أَنَّ الْوِلَايَةَ تَثْبُتُ بِالتَّفْوِيضِ او د طرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه ولایت تفویض (سپارلو) سره ثابتیږی فَيُرَاعَى وَصْفُ التَّفْوِيضِ نو د تفویض (یعنی د حواله کولو) د وصف رعایت به ساتلې شی وَهُوَ وَصْفُ الِاجْتِمَاعِ او وصف د تفویض وصف د اجتماع دې إِذْ هُوَ شَرْطٌ مُفِيدٌ، وَمَا رَضِيَ الْمُوصِي إِلَّا بِالْمُثَنَّى وَلَيْسَ الْوَاحِدُ كَالْمُثَنَّى خکه چې اجتماع یو مفید شرط دې.او موصی نه دې راضی شوې.خو په دوو سره، او یو د دوو پشان نه دې.

**حل اللغة:** ① **تفویض:** سپارل ② **انکاح:** په نکاح سره ورکول

**تشریح:-** دا د حضرت طرفینو رحمهما الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه وصی ته کوم ولایت ملاو شوې دې.دا د موصی د تفویض (او سپارلو) په وجه ملاو شوې دې.نو څنګه چې تفویض شوې دې.د هغې اعتبار به کولې شی.او کله چې موصی د ولایت تفویض اوکړو.نو د اجتماع وصف سره نې کړې دې.نو د اجتماع د وصف رعایت به ساتلې شی.خکه چې دا شرط مفید هم دې.خکه چې انفراد ته هغه قوت حاصل نه وی.کوم چې اجتماع ته حاصل وی.او



دلته موصی د دوو په رائې سره راضی شوې دې.د یو په رائې سره نه دې راضی شوې.او یو د دوو پشان نشی کیدې.

## د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس جواب

بِخِلَافِ الْأَخَوَيْنِ فِي الْإِنْكَاحِ په خلاف د دوو رونړو دنکاح کولو لِأَنَّ السَّبَبَ هُنَالِكَ الْقَرَابَةُ وَقَدْ قَامَتْ بِكُلٍّ مِنْهُمَا كَمَلًا خکه چې هلته سبب قرابت دې.او قرابت په دوی دوارو کې هر یو سره په کامل طریقه قائم دې.

**تشریح:-** دا د طرفینو رحمهما الله د ارخه د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس خواب دې.خکه چې دوی دا په ولایت دنکاح باندې قیاس کړې وو.(کما مر) نو حضرات طرفینو رحمهما الله اوفرمائیل.چه دا په ولایت د انکاح باندې قیاس کول، قیاس مع الفارق دې.خکه چې د ولایت د انکاح سبب قرابت دې.او قرابت دوارو سره برابر قائم دې.چه په دې کې هیڅ تجزی نشته.

## د جواب نور وضاحت

وَلِأَنَّ الْإِنْكَاحَ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ لَهَا عَلَى الْوَلِيِّ او خکه چې نکاح کول یو داسې حق دې.چه دا واجب دې ښځې لپاره په ولی باندې حَتَّى لَوْ طَالَبَتْهُ بِإِنْكَاحِهَا مِنْ كُفْءٍ تَخْطُبُهَا يَجِبُ عَلَيْهِ او تر دې که ښځه د ولی نه مطالبه اوکړی.د خپل ځان د نکاح کولو، هغې کفو سره چاچه دې ته د نکاح پیغام ورکړې دې.نودا نکاح کول په ولی باندې واجب ده وَهَاهُنَا حَقُّ التَّصَرُّفِ لِلْوَصِيِّ او دلته وصی لپاره دتصرف حق دې وَلِهَذَا يَبْقَى مُخَيَّرًا فِي التَّصَرُّفِ په دې وجه وصی په تصرف کې مختار دې فَفِي الْأَوَّلِ أَوْفَى حَقًّا عَلَى صَاحِبِهِ فَصَحَّ نو په رومبی صورت کې ولی هغه حق پوره کړې دې.کوم چې دده په اندیوالان باندې واجب وو.نو دا صحیح دې وَفِي الثَّانِي اسْتَوْفَى او په دوهم صورت کې وصی وصول کړې دې لان ولاية التصرف لهما خکه چې د تصرف ولایت دوی دوارو ته دې فاذا تصرف وحده حقًّا لِصَاحِبِهِ فَلَا يَصِحُّ نو هرکله چې یو کس د پخل اندیوالان په حق کې تصرف اوکړو.نو دا صحیح نه دې.

**تشریح:-** طرفینو رحمهما الله چې د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس کوم خواب ورکړې دې.د هغې نوره تشریح ده.فرمائی.چه په دې دوارو کې ډیر توپیر دې.په ولی باندې د ښځې نکاح کول یو واجبی حق دې.نو که یو کفو ښځې ته د نکاح پیغام ورکړو.او ښځې د خپل ولی نه د نکاح کاوه مطالبه اوکړله.نو په ولی باندې واجب دی.چه دې کفو سره ددې نکاح اوکړی.او دلته په وصی باندې هیڅ واجبی حق نشته.بلکه ده ته دا د یو تصرف اختیار ملاو شوې دې.هم دا وجه ده.چه وصی ته د تصرف کاوه اختیار دې.دا په ده باندې څه واجبی حق نه دې.نو د نکاح په صورت کې کله چې یو رور نکاح اوکړله.نو دا جائز ده.خکه چې ددې په دوهم رور باندې چې کوم واجبی حق وو.دا د هغې ادا کول دی.او په دوهم صورت کې چې کله یو وصی تصرف اوکړو.نو دا د دوهم کس واجبی حق ادا کول نه دی.بلکه دهغه حق په زوره اخستل دی.خکه چې د تصرف ولایت دوی دوارو ته ملاو وو.نو کله چې یو کس تصرف اوکړو.نو هغه د خپل اندیوالان په حق کې تصرف اوکړو.په دې وجه به دا صورت صحیح نه وی.

## د دوارو اقوالو مثالونه

أَصْلُهُ الدَّيْنُ الَّذِي عَلَيْهِمَا وَلَهُمَا، بِخِلَافِ الْأَشْيَاءِ الْمَعْدُودَةِ ددې اصل هغه پور دې.کوم چې په دوی دوارو باندې وی.او کوم چې ددوی دوارو لپاره وی.په خلاف د یو څو څیزونو لِأَنَّهَا مِنْ بَابِ الضَّرُورَةِ لَا مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ خکه چې دا شیان د ارتیا د باب څنې دی.د ولایت د باب څنې نه دی وَمَوَاضِعُ الضَّرُورَةِ مُسْتَثْنَاةٌ أَبَدًا او د ارتیا خایونه همیشه مستثنی دی وَهِيَ مَا اسْتَثْنَاهُ فِي الْكِتَابِ وَأَخَوَاتُهَا او دا هغه شیان دی.د کومو چې په قدوری کتاب کې استثناء ده. او ددې مثالونه دی.

**تشریح:-** مرغینانی رحمه الله اوس د دوارو مثالونه پیش کړی دی.فرمائی.داسې اوګنړه.لکه چې د زید په خالد او بکر دوارو باندې پور دې.او د خالد پور هم بکر ادا کړو.نو جائز دې.خکه چې دا خو په هغه باندې یو واجبی حق ادا کول دی.او که د خالد او بکر دوارو پور په زید باندې وی.او دواړه قرضونه خالد وصول کړل. نو د بکر پور وصول

نشو.خکه چې دلته خالد د بکر واجبي حق نه دې ادا کړي.بلکه د بکر په يو حق کې ئې تصرف کړي دې.چه د هغې ده ته حق نشته.دغه ډول د انکاح مسئله د ړومبی پشان ده.او د وصي جوړيدو مسئله د دوهم پشان ده.

هغه کارونه د کومو چې تصرف کې جمع کيدل ضروري نه دی④ البته دکومو يو څو ځيزونو چې استثناء کړې شوې ده.هغه په دوی کې يوکس هم پوره کولې شی.خکه چې ددې تعلق باب د ولايت نه نه دې ايخودې شوې.بلکه د باب د اړتيا نه ايخودې شوې دې.او د اړتيا او مجبورئ صورتونه هميشه مستثنی وی.اوس پاتې شوه دا خبره چې دغه د شمير شيان کوم کوم دی؟ نو وې فرمائيل.چه دا هغه دی. د کومو چې په قدوری کې استثناء موجود ده.يا هغه شيان کوم چې د هغې پشان وی.اوس به مرغيناني رحمه الله په راروان عبارت کې هغه شماری.چه دا تقريباً پنځلس شيان دی.

| |
|---|
| فَقَالَ (اِلَّا فِي شِرَاءِ كَفَنِ الْمَيِّتِ وَتَجْهِيْزِهِ)نو امام قدوری رحمه الله او فرمائيل.خود مړی کفن اخستلو کې ، او دده په تجهيز کې لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ فَسَادَ الْمَيِّتِ خکه چې تاخير کې د مړی فساد ( او نقصان) دې وَلِهٰذَا يَمْلِكُهُ الْجِيْرَانُ عِنْدَ ذٰلِكَ (وَطَعَامِ الصِّغَارِ وَكِسْوَتِهِمْ)هم په دې وجه د تاخير په وخت به ګاونډيان د تجهيز مالك وی. اودماشومانو خوراك،اوددوی په کپړو اخستلو کې لِأَنَّهُ يُخَافُ مَوْتُهُمْ جُوْعًا وَعُرْيًا خکه چې د اولږې او برېنډ کيدو په وجه د ماشومانو د مړکيدو يره ده. |

حل اللغة° ① جيران: جمع د جار، ګاونډی ② الصغار: جمع د صغير ورکوټې ③ جوع: لوږه ④ عري: برېنډتيا ⑤ کسوة: جامې﴾

تشريح:- په دې عبارت کې د څلورو ځيزونو ذکر دې① که د مړی د کفن اخستلو اړتيا وی.نو يو وصي به ئې اخلی.انتظار به نشی کولې.چرته داسې اونشی.چه کومه پورې دوهم وصي راځی.نو د مړی لاش خراب شی.ددې تاخير په وجه ګاونډيانو ته هم حق وی.چه هغوی مړی لپاره کفن واخلی.② د مړی په تجهيز کې به د دوهم وصي انتظار نشی کولې.او په تجهيز کې هغه واړه امور داخل دی.چه قبر کې د مړی ايخودو پورې چې کومو ځيزونو ته هغه محتاج دې.③ که د موصي د وړو ماشومانو لپاره د خوراك اخستلو اړتيا راپيښ شی.نو يو وصي اخستلې شی.د دوهم انتظار به نشی کولې.ګنې ترکومه پورې چې د دوهم انتظارکولې شی.خطره ده.چه د سختې اولږې د امله نه دا بچي مړه شی.④ دغه ډول که د بچو لپاره د کپړو اخستلو اړتيا وی.نو ددې لپاره به د دوهم وصي انتظار نشی کولې.ګنی که انتظار اوکړې شی.نو يره ده.چه بچي د برېنډ کيدو په وجه دګرمئ يايخنئ د سختوالی برداشت اونکړې شی.او مړه نشی.

## دواړو وصيانو ته به د جلا جلا تصرف حکم کوم ځائې کېنې وی؟

| |
|---|
| وَرَدِّ الْوَدِيْعَةِ بِعَيْنِهَا وَرَدِّ الْمَغْصُوْبِ وَالْمُشْتَرَي شِرَاءً فَاسِدًا وَحِفْظِ الْأَمْوَالِ وَقَضَاءِ الدُّيُوْنِ او معين وديعت واپس کول، او مغصوب واپس کول، او په شراء فاسد سره اخستلې شوې شئ واپس کول، او دمالونو ساتنه کول،او پور ادا کول لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ خکه چې دا امور د ولايت د باب خنې نه دی فَإِنَّهُ يَمْلِكُهُ الْمَالِكُ، وَصَاحِبُ الدَّيْنِ إِذَا ظَفِرَ بِجِنْسِ حَقِّهِ خکه چې مالك او قرضخواه به د هغه شئ مالك جوړيږی.کله چې هغه د خپل حق جنس سره کامياب شی وَحِفْظُ الْمَالِ يَمْلِكُهُ مَنْ يَقَعُ فِي يَدِهِ فَكَانَ مِنْ بَابِ الْإِعَانَةِ او د مال د حفاظت، ددې به هغه کس مالك شی.دچا په لاس کې چې دا واقع شی.نو دا ساتنه به د کومك دباب خنې وی وَلِأَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الرَّأْيِ وَتَنْفِيْذِ وَصِيَّةٍ بِعَيْنِهَا وَعِتْقِ عَبْدٍ بِعَيْنِهِ او خکه چې دې کې رائې اړخ ته حاجت نشته.او متعين وصيت نافذ کول، او متعين غلام آزادول لِأَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى الرَّأْيِ وَالْخُصُوْمَةِ فِي حَقِّ الْمَيِّتِ خکه چې په دې کې د رائې حاجت نشته.او د مړی په حق کې خصومت کول لِأَنَّ الْإِجْتِمَاعَ فِيْهَا مُتَعَذِّرٌ وَلِهٰذَا يَنْفَرِدُ بِهَا أَحَدُ الْوَكِيْلَيْنِ وَقَبُوْلِ الْهِبَةِ خکه چې خصومت کې اجتماع متعذر ده.په دې وجه خصومت سره، په دوو وکيلانو کې به يو منفرد وی.او هبه قبلول لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ خِيْفَةَ الْفَوَاتِ خکه چې په تاخير کې د فوت کيدو يره ده لِأَنَّهُ يَمْلِكُهُ الْأَمُّ وَالَّذِي فِي حِجْرِهِ او خکه چې ددې قبلولو مور مالکه ده.او هغه کس مالك دې.چه بچې د چا په پرورش کې وی فَلَمْ يَكُنْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو دا به د ولايت د باب خنې نه وی. |



حل اللغة° ① خصومة: جګړه ② حجر: پرورش،تربيت، پالنه ③ خيفة: ويره ④ فوات: فوت کيدل ،ضائع کيدل﴾

تشريح:- په کومو ځيزونو کې چې خانله وصي ته د تصرف حق وی.هم د هغې نه نور شيان شماری.ددې نه وړاندې څلور تير شوی دی.⑤ که موصي سره د يو کس متعين وديعت وی.نو دهغې واپس کاوه لپاره د دوهم وصي د انتظار اړتيا نشته.

⑥ دغه ډول که موصي يو شئ غصب کړې وو.نو دا به واپس کولې شی.او د دوهم انډيوالان انتظار به نشی کولې.

⑦ که مشتری شراء فاسد سره څه شئ اخستې وو.نو د هغې واپس کول جائز دی.⑧ او د موصي د مال په ساتنه کاوه کې به هم د دوهم انډيوالان انتظار نشی کولې.⑨ دغه ډول که په مړی باندې پور وی.نو د هغې په ادا کاوه کې به هم د دوهم وصي انتظار نشی کولې.

ددې ټولو خانله د جائز کيدو وجه دا ده.چه دا امور د باب د ولايت سره تعلق نه ساتی.خکه چې کوم کس د موصي د اړخه ولايت نه دې حاصل کړې.دا امور هغه هم پوره کولې شی.خکه چې کوم کس د وديعت مالك دې.کله چې هغه ته خپل سامان ملاو شی.نو هغه پخپله دا اخستلې شی.دغه ډول کله چې قرضخواه ته د خپل حق جنس ملاو شی.نو هغه دا پخپله اخستلې شی.اوپه شراء فاسد کې هم دا حال دې.چه مالك دا ورکولې شی.او پاتې شوه مسئله د مالونو د حفاظت، نو ددې لپاره صرف وصي مخصوص نه دې.بلکه هغه کس دچا په لاس کې چې دا راشی.هم هغه ددې ساتنه کولې شی.نو دا ساتنه هم د کومك او د اړتيا د باب خنې دې.چه په دې کې د رائې هيڅ حاجت نشته.چه داسې اوونيلې شی.چه د دواړو په جمع کيدو سره رائې کې به مضبوطی پيدا شی.

⑩ معين وصيت وی.د هغې په نافذ کاوه کې به د دوهم وصي د انتظار کاوه اړتيا نه وی.[11] او د يو معين غلام آزادی وی.هغه لپاره هم د وصي د انتظار کاوه اړتيا نشته.خکه چې دې کې هم د رائې هيڅ اړتيا نشته.[12] يو سړی سره د مړی په حق کې خصومت کول وی.نو يو وصي کولې شی.خکه چې خصومت خو به د دواړو د جمع کيدو په صورت کې هم يو وصي کوی.چه په مجلس د قضاء کې د دواړو د جمع کيدو په وجه شور شغف جوړ نشی.په دې که د يوکس دوې (دوه) وکيلان وی.بيا به هم خصومت يوکس کوی.[13] که د يو ماشوم لپاره هبه وی.نو يو وصي دا قبلولې شی.خکه که هغه د دوهم وصي انتظارکوی.نو کيدای شی.چه هبه کونکې بيا هبه نه کوی.په دې وجه دا اختيار مور ته هم ورکړې شوې دې.چه هغه د بچې لپاره هبه قبوله کړی.او دغه ډول هغه سړې هم هبه قبلولې شی.چه د هغه په پرورش کې ماشوم وی.بهرحال هبه قبلول د ولايت د باب خنې نه ده.

## د دوهم وصي په غير موجوګئ کېنې کوم کوم ځيز خرڅولې شی؟

| |
|---|
| وَبَيْعِ مَا يُخْشَى عَلَيْهِ التَّوَى وَالتَّلَفَ او هغه شئ خرڅول، چې د هغې د هلاکيدو او ضائع کيدو يره وی لِأَنَّ فِيْهِ ضَرُوْرَةً لَا تَخْفَى وَجَمْعِ الْأَمْوَالِ الضَّائِعَةِ خکه چې دې کېنې اړتيا دې. چې دا پټ نه دې.او متفرق مالونه جمع کول لِأَنَّ فِي التَّأْخِيْرِ خَشْيَةَ الْفَوَاتِ خکه چې تاخير کې د فوات يره ده وَلِأَنَّهُ يَمْلِكُهُ كُلُّ مَنْ وَقَعَ فِي يَدِهِ او خکه چې ددې هر هغه سړې مالك دې.د چا په لاس کې چې واقع شی فَلَمْ يَكُنْ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو دا به د ولايت د باب خنې نه وی. |

حل اللغة° ① توى: هلاکت ② التلف: ضائع کيدل ③ التاخير: روستوالی﴾

تشريح:- [14] هغه شيان د کومو چې د ضائع کيدو او خرابيدو خطره وی.لکه مثلاً د ميبنې او چيلو شيدې دی. نو دا يو وصي خرڅولې شی.خکه چې په دې کې اړتيا دې.[15] که د موصي مال متفرق وی.نو دا يو وصي جمع کولې شی.ګنی د فوت کيدو يره ده.او چونکه دا کارونه د مړی ګاونډی هم کولې شی.نو وصي ئې په درجه اولی کولې شی.خکه چې ددې تعلق باب د ولايت سره نه دې.

## په کومو کارونو کېنې د دواړو وصيانو موجود کيدل ضروري دی؟

| |
|---|
| وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او په جامع صغير کې دی وَلَيْسَ لِأَحَدِ الْوَصِيَّيْنِ أَنْ يَبِيْعَ وَيَتَقَاضَى او دوو وصيانو کې يو وصي ته دا حق نشته.چه هغه بيع اوکړی.يا قبضه اوکړی وَالْمُرَادُ بِالتَّقَاضِي الْإِقْتِضَاءُ، كَذَا كَانَ الْمُرَادُ مِنْهُ فِي عُرْفِهِمْ او د تقاضی نه |

مراد قبضه کول دی.د کوفیانو په عرف کې د تقاضی نه هم دغه ډول مراد دې وَهٰذَا لِأَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا مُجْتَمِعًا فِي الْقَبْضِ او دا ځکه چې موصی د قبضه کاوه په سلسله کې ددوی دواړو په امانت سره راضی شوې دې وَلِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْمُبَادَلَةِ لَا سِيَّمَا عِنْدَ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ عَلَى مَا عُرِفَ او ځکه چې قبضه کول د مبادلې په معنی کې دې.خصوصاً د جنس د اختلاف په وخت د هغه تفصیل مطابق کوم چې معلوم شوې دې فَكَانَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ نو دا به د ولایت د باب څخه وی.

تشریح:- په جامع صغیر کې یوه جزئیه پیش کړې شوې ده.چه زید دوې (دوه) سړې خپل وصی مقرر کړل.او د زید د مرګ نه روسته دوی دواړو کې یوکس د موصی مال خرڅول غواړی.یا د موصی په مال باندې قبضه کول غواړی.چه دا په یوکس باندې دې.نو یو ته به دا حق نه وی.ځکه ① چې زید ددوی دواړو په اجتماعی امانت باندې اعتماد کړې دې.او هم په دې سره هغه راضی شوې وو. ② دویمه وجه دا ده.چه دده تعلیق د باب د ولایت څخه دې.ځکه چې دا کارونه به په مستثنی څیزونو کې داخل نه وی.ځکه چې قبضه کې په هر صورت د مبادلې معنی موندلې شی.د جنس د اتحاد په صورت کې وی.نو بیا هم، او که د جنس د اختلاف په صورت کې وی.نو ددې مبادله کیدل بدیهی امر دې.ځکه چې یوکس ته به ددې حق نه وی.چه هغه د دوهم وصی نه بغیر فیصله اوکړی.یا ئې خرڅ کړی.

### که دواړه وصیان جلا جلا جوړ شوی وی نو د جلا جلا تصرف څه حکم دې ؟

وَلَوْ أَوْصَى إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ عَلَى الِانْفِرَادِ او که ده هر یو جلا جلا وصی جوړ کړې وی قِيلَ يَنْفَرِدُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالتَّصَرُّفِ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلَيْنِ إِذَا وُكِّلَ كُلُّ وَاحِدٍ عَلَى الِانْفِرَادِ نو ویلی شوی دی.چه په دوی دواړو کې به هر د تصرف په سلسله کې منفرد وی.د دوو وکیلانو په درجه کې ، کله ئې چې هر یو جلا جلا وکیل جوړ کړې وی وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَمَّا أَفْرَدَ فَقَدْ رَضِيَ بِرَأْيِ الْوَاحِدِ او دا ځکه چې کله موصی د افراد نه کار واخستلو.نو هغه د یو په رائې سره راضی دې وَقِيلَ الْخِلَافُ فِي الْفَصْلَيْنِ وَاحِدٌ او ویلی شوی دی.چه په دواړو صورتونو کې یو اختلاف دې لِأَنَّ وُجُوبَ الْوَصِيَّةِ عِنْدَ الْمَوْتِ بِخِلَافِ الْوَكِيلَيْنِ ځکه چې د وصیت وجوب د مرګ په وخت دې.په خلاف د دوو وکیلانو لِأَنَّ الْوَكَالَةَ تَتَعَاقَبُ ځکه چې وکالت خو وړاندې روستو کیږی.

حل اللغة: ① تتعاقب: یوبل پسې، وړاندې روستو ② الانفراد: خانله ، جدا۔

تشریح:- کله چې موکل دوې (دوه) وکیلان جوړ کړل.او دواړه ئې جلا جلا وکیل کړل.نو هر وکیل ته د خپل اندیوالان په غیر موجودګئ کې د تصرف اختیار شته.دغه ډول د فقیه ابواللیث رحمه الله وغیره حضراتو وینا ده.چه کله موصی دوې (دوه) وصیان مقرر کړل.خو دواړه ئې په یو ځائې جوړ نکړل.بلکه هر یو ئې جلا جلا وصی جوړ کړې دې.نو هر یو وصی ته به اختیار وی.چه هغه د خپل اندیوالان په غیر موجودګئ کې تصرف اوکړی .ځکه چې هر کله موصی دوی جلا جلا وصی جوړ کړی دی.نو دا ددې خبرې دلیل دې.چه هغه د یو په رائې سره راضی دې.او د بعضو حضراتو فرمائیلی دی.چه موصی که دوی دواړه یو ځائې وصی جوړ کړی وی. اوکه جلا جلا ئې جوړ کړی وی.دواړو صورتونو کې یو حکم دې.یعنی د طرفینو رحمهما الله په نیز دا جائز نه ده.چه یو وصی جلا تصرف اوکړی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز دې.

؟ او وجه ددې دا ده.چه وصی جوړول که اجتماعاً وی اوکه انفراداً وی.د دواړو یو حال دې.ځکه چې د وصیت ثبوت د مرګ د وخت نه کیږی.نو په دواړو صورتونو کې په وصیت کې اجتماع ثابتیږی.البته په وکیل جوړولو کې اجتماع او افراد فائده ورکوی.ځکه چې وکالت تعاقب ( وړاندې او روستو کیدل) قبلوی.یعنی کوم کس چې مؤکل په کومه زمانه کې وکیل جوړ کړو.نوهغه وکیل شو.خو د وصیت ثبوت د مرګ په وخت کیږی.

### په دوو وصیانو کښې د یو وصی وفات کیدل

فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا نو که په دوو وصیانو کې یو مړشی. جَعَلَ الْقَاضِي مَكَانَهُ وَصِيًّا آخَرَ نو قاضی دې دده په ځائې بل



څوک وصی مقرر کړی أَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ الْبَاقِيَ عَاجِزٌ عَنِ التَّفَرُّدِ بِالتَّصَرُّفِ بهرحال د طرفینو رحمهما الله په نیز، نوځکه چې پاته د خانله (په یواځې) د تصرف کاوه نه عاجز دې فَيَضُمُّ الْقَاضِي إِلَيْهِ وَصِيًّا آخَرَ نَظَرًا لِلْمَيِّتِ عِنْدَ عَجْزِهِ نو قاضی به هغه ارخ ته بل څوک وصی ملاو کړی.په مړی باندې د شفقت په غرض سره، د پاته وصی د عاجز کیدو په وخت وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ الْحَيُّ مِنْهُمَا وَإِنْ كَانَ يَقْدِرُ عَلَى التَّصَرُّفِ او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز دوی دواړو کې ژوندې اګرچه په تصرف باندې قادر دې فَالْمُوصِي قَصَدَ أَنْ يَخْلُفَهُ مُتَصَرِّفَانِ فِي حُقُوقِهِ نو موصی اراده کړې ده.چه دده په حقوقو کې تصرف کونکی دوې (دوه) سړی خلیفه وی. وَذٰلِكَ مُمْكِنُ التَّحَقُّقِ بِنَصْبِ وَصِيٍّ آخَرَ مَكَانَ الْمَيِّتِ او د موصی دا مقصود ثابتول ممکن دی.د مړی په ځائې د دوهم وصی د مقرر کاوه نه پس.

تشریح:- که زید دوې (دوه) وصیان مقرر کړی وو.خو په دوی دواړو کې یو مړ شو.نو قاضی دې ددې وصی په ځائې یو وصی بل مقرر کړی.د طرفینو رحمهما الله په نیزخو ددې وجه ښکاره ده.چه یو وصی د تصرف کاوه نه عاجز دې.په دې وجه دې قاضی دده سره دوهم وصی ملاو کړی.په دې کې د مړی لپاره ښیګڼه (ښیګړه) ده.البته د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اشکال کیږی.چه ددوی په نیز دوهم وصی ولې مقررولې شی. حالانکه چې ددوی په نیز یو وصی په تصرفاتو باندې قادر دې؟ نو وې فرمائیل.چه ددې وجه دا ده.چه د موصی مقصد دا وو.چه دوې (دوه) سړی زما خلیفه وی.چه هغوی زما په حقوقو کې تصرف اوکړی.او د موصی دا مقصد پوره کیدای شی.یعنی چې د مړشوی وصی په ځائې دوهم وصی مقرر کړی.نو دموصی دا مقصد پوره کولې شی.

### د فوت شوی وصی، ژوندې وصی لره خپل وصی جوړول

وَلَوْ أَنَّ الْمَيِّتَ مِنْهُمَا أَوْصَى إِلَى الْحَيِّ اوکه په دواړو وصیانو کې چې کوم یو مړ شوې دې.هغه ژوندې وصی (خپل) وصی جوړ کړې وی فَلِلْحَيِّ أَنْ يَتَصَرَّفَ وَحْدَهُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا أَوْصَى إِلَى شَخْصٍ آخَرَ نو ژوندی لپاره حق شته.چه هغه یواځې تصرف اوکړی.د ظاهرالروایة مطابق، د هغه صورت په درجه کې کله چې ده بل څوک وصی جوړ کړې وی وَلَا يَحْتَاجُ الْقَاضِي إِلَى نَصْبِ وَصِيٍّ آخَرَ او قاضی به دوهم وصی مقررولو ته محتاج نه وی لِأَنَّ رَأْيَ الْمَيِّتِ بَاقٍ حُكْمًا بِرَأْيِ مَنْ يَخْلُفُهُ ځکه چې د مړی رائې دده د خلیفه په ذریعه حکماً پاته ده وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَنْفَرِدُ بِالتَّصَرُّفِ او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.چه ژوندې یواځې تصرف نشی کولې لِأَنَّ الْمُوصِيَ مَا رَضِيَ بِتَصَرُّفِهِ وَحْدَهُ بِخِلَافِ مَا إِذَا أَوْصَى إِلَى غَيْرِهِ ځکه چې موصی خانله دده په تصرف سره نه دې راضی شوې.په خلاف ددې صورت، کله چې وصی د ژوندی وصی نه غیر څوک وصی جوړ کړې وی لِأَنَّهُ يَنْفُذُ تَصَرُّفُهُ بِرَأْيِ الْمُثَنَّى كَمَا رَضِيَهُ الْمُتَوَفَّى ځکه چې د ژوندی تصرف به نافذ کیږی.د دوو د رائې کیدو په وجه، لکه څنګه چې مړې (موصی) په دې سره راضی شوې وو.

تشریح:- زید خالد او بکر دواړه خپل وصی مقرر کړې وو.د هغوی نه د خالد وفات اوشو.او خالد د وفات په وخت بکر خپل وصی مقرر کړې وو.یعنی خپل اختیارات ئې هغه ته سپارلی وو.نو د ظاهرالروایة مطابق بکر یواځې د تصرفاتو حق لری.او اوس به قاضی ته د دوهم وصی مقرر کاوه حاجت نه راپیښیږی.ځکه چې د خالد خلیفه بکر موجود دې.نو ددې خلافت په وجه د خالد رائې هم موجود ده.نو حکماً د بکر رائې دبل رائې ده.نو دا داسې شوه.لکه مثلاً که خالد بل څوک سړې وصی مقرر کړې وې.نو جائز وو.دغه ډول که بکر مقرر کړی.نوجائز دې.

؟ او په روایت د حسن بن زیاد رحمه الله د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.چه بکر ته یواځې د تصرفاتوحق اوس هم حاصل نه دې.ځکه چې زید یواځې د بکر رائې نه نه وو راضی شوې.بلکه هغه د دوو د رائې نه راضی شوې وو.البته که خالد د بکر نه علاوه بل څوک خپل وصی مقرر کړی.نو جائز ده.چه بکر هغه سره ملاو شی.او تصرف اوکړی.ځکه چې اوس بکر یواځې نه دې.بلکه دا دوې (دوه) نفر دی.او هم دا د موصی مقصد وو.یعنی هغه د دوو سړو په رائې سره راضی شوې وو.

### د یو وصی د خپل مرګ نه وړاندې دوهم خپل وصی جوړول

وَإِذَا مَاتَ الْوَصِيُّ وَأَوْصَى إِلَى آخَرَ او کله چې وصی مړ شو.او هغه بل څوک جوړ کړو سره فَهُوَ وَصِيُّهُ فِي تَرِكَتِهِ نو دا (دویم

به دده وصی وی.د وصي په ترکه کي وَتَرِكَةِ الْمَيِّتِ الْأَوَّلِ عِنْدَنَااو د رومبی مړی په ترکه کي زموږ په نيز وَقَالَ الشَّافِعِي: لَا يَكُونُ وَصِيًّا فِي تَرِكَةِ الْمَيِّتِ الْأَوَّلِ اعْتِبَارًا بِالتَّوْكِيلِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِاو امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه هغه به د رومبی مړی په ترکه کي وصی نه وی.د ژوند په حالت کي ، په وکیل جوړولو باندې قیاس کاوه الْجَامِعُ بَيْنَهُمَا أَنَّهُ رَضِيَ بِرَأْيِهِ لَا بِرَأْيِ غَيْرِهِاو کوم شئ چي دتوكيل او وصی جوړولو په منځ کي جامع دې.هغه دا دې.چه رومبي مړی د خپل وصی په رائې سره راضی شوی دی.دده دغیر په رائې سره نه دی راضی شوی.

تشريح:- زيدخالد خپل وصی جوړ کړی وو.اوس خالد د خپل مرګ نه وړاندې بکر خپل وصی جوړ کړو. نو جائز دی.اوس سوال دا دې.چه بکر به صرف هم په دې ترکه کي وصی وی.کومه چي د خالد ترکه ده.اوکه د خالد او زید دواړو په ترکه کي به وصي وی.نو په دې کي اختلاف دې.د حنفيانو مسلك دا دې.چه بکر به په دواړو ترکو کي وصی وی.او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه بکر به صرف د خالد په ترکه کي وصی وی.د زید په ترکه کي به نه وی.امام شافعی رحمه الله دا په توکیل باندې قیاس کړی دې. یعنی که زید ، خالد خپل وکیل جوړ کړی وی.او خالد بکر خپل وکیل جوړ کړو.نو د بکر وکالت به د خالد په حق کي وی.د زید په حق کي به بکر وکیل نه وی.دغه ډول په وصی جوړولو کي هم کیدل پکار دی. لنډیز د کلام دا چي امام شافعی رحمه الله وصی جوړول په توکیل باندې قیاس کړی دی.نود مقیس علیه او مقیس په منځ کي څه علت جامعه کیدل هم پکار دی؟ نو وې فرمائیل.چه علت جامعه د دواړو په منځ کي دا دی.چه په دواړو صورتونو کي زید د خالد رائې سره راضی شوی دی.د بکر رائې سره نه دی راضی شوی.

## د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا أَنَّ الْوَصِيَّ يَتَصَرَّفُ بِوِلَايَةٍ مُنْتَقِلَةٍ إِلَيْهِاو زموږ دلیل دا دې.چه وصی تصرف کوی.د هغه ولایت په سبب سره، کوم چي وصی ارخ ته منتقل کیږی فَيَمْلِكُ الْإِيصَاءَ إِلَى غَيْرِهِ كَالْجَدِّنو وصی به خپل غیر لره د وصی جوړولو مالك وی.لکه نیکه أَلَا يُرَى أَنَّ الْوِلَايَةَ الَّتِي كَانَتْ ثَابِتَةً لِلْمُوصِي تَنْتَقِلُ إِلَى الْوَصِيِّ فِي الْمَالِ وَإِلَى الْجَدِّ فِي النَّفْسِ آیا نه ګوری.چه کوم ولایت موصی لپاره ثابت وو.هم هغه ولایت د مال په سلسله کي وصی ارخ ته منتقل کیږی.او په نفس کي نیکه ارخ ته ثُمَّ الْجَدُّ قَائِمٌ مَقَامَ الْأَبِ فِيمَا انْتَقَلَ إِلَيْهِبیا نیکه د پلار قائم مقام دې.په هغه ولایت کي کوم چي نیکه ارخ ته منتقل کیږی فَكَذَا الْوَصِيُّنو هم دغه ډول وصی ( ته هم دا ولایت حاصلیږی).

تشريح:- دا زموږ دلیل دې.یعنی وصی ته د وصی جوړولو اختیار شته.او دا دوهم وصی به د رومبی موصی اود دوهم موصی (دواړو) وصی وی.څکه چي کوم ولایت موصی ته حاصل وو.هم هغه ولایت وصی ارخ ته منتقل کیږی.او هم ددې ولایت لاندې وصی تصرف کوی.او موصی ته حق وو.چه هغه څوك وصی مقرر کړی.نو هم دغه ډول به وصی ته حق وی.چه هغه څوك وصی مقرر کړی.لکه څنګه چي نیکه د پلار قائم مقام دې.یعنی پلار ته چي د بچو دنکاح کاوه کوم ولایت حاصل وو.هغه اوس نیکه ارخ ته منتقل شو.نو لکه څنګه چي پلار ته حق وو.چه هغه څوك خپل قائم مقام جوړ کړی.دغه ډول به نیکه ته هم حق وی.چه هغه څوك خپل قائم مقام جوړ کړی.څکه چي د مال په سلسله کي موصی ته کوم ولایت حاصل وو.هم ولایت منتقل شو.او وصی ته ملاو شو.او په ولایت د انکاح کي ولایت پلار ته حاصل وو.هم هغه ولایت نیکه ته ملاو شو.او نیکه لپاره جائز دی.چه کوم ولایت هغه ته ملاو شوی دې.هغه په دې کي بل څوك خپل قائم مقام جوړ کړی.نو دغه ډول به وصی ته هم دا ولایت حاصل وی.چه په کوم شئ کي هغه ته ولایت ملاو شوی دی.هغه په دې کي څوك خپل قائم مقام جوړ کړی.

وَهَذَا لِأَنَّ الْإِيصَاءَ إِقَامَةُ غَيْرِهِ مُقَامَهُ فِيمَا لَهُ وِلَايَتُهُاو دا څکه چي وصی جوړول خپل غیر لره د خان قائم مقام جوړول دی.په هغه شئ کي په کوم کي چي ده د موصی ولایت دي وَعِنْدَ الْمَوْتِ كَانَتْ لَهُ وِلَايَةٌ فِي التَّرِكَتَيْنِاود موصی د مرګ په وخت دواړو ترکو کي ولایت شته فَيُنَزَّلُ الثَّانِي مَنْزِلَتَهُ فِيهِمَانو دوهم به د رومبی وصی په مرتبه کي راکوزولې شی.ددې دواړو ترکو په سلسله کي وَلِأَنَّهُ لَمَّا اسْتَعَانَ بِهِ فِي ذَلِكَ مَعَ عِلْمِهِ أَنَّهُ قَدْ تَعْتَرِيهِ الْمَنِيَّةُ قَبْلَ تَتْمِيمِ مَقْصُودِهِ بِنَفْسِهِاو څکه



چي کله موصی په دې سلسله کي کومك طلب کړو.د موصی په دې خبره د علم باوجود، چي مرګ راتلې شی.د موصی د مقصود پوره کیدو نه وړاندې د وصی د ذات نه وَهُوَ التَّلَافِي مَا فَرَطَ مِنْهُاو مقصود هغه دده د کوتاهئ پوره والې دې.کوم چي د موصی نه صادر شوې دې صَارَ رَاضِيًا بِإِيصَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ بِخِلَافِ الْوَكِيلِنو موصی راضی شو.دوصی خپل غیر لره وصی جوړولو سره، په خلاف د وکیل لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ حَيٌّ يُمْكِنُهُ أَنْ يُحَصِّلَ مَقْصُودَهُ بِنَفْسِهِڅکه چي موکل ژوندې دې.په دې وجه ممکن ده.چه خپل مقصود پخپله حاصل کړی فَلَا يَرْضَى بِتَوْكِيلِ غَيْرِهِ وَالْإِيصَاءِ إِلَيْهِنو موکل به خپل غیر لره په وکیل جوړولو سره، او خپل غیر لره په وصی جوړولو سره راضی نه وی.

حل اللغة: ① تعتري: پیښیږی ② المنية: مرګ ③ تميم: پوره کول ④ تلافي: کمې پوره کول ⑤ فرط: بې غوری کړې وه

تشريح:- دا د ذکر شوی دلیل نور وضاحت دې.فرمائی.چه د وصی جوړولو حاصل دا دې.چه موصی ته په کوم شئ کي ولایت حاصل دې.هغه په دې کي څوك خپل قائم مقام جوړوی.او کله چي د وصی وفات اوشو.دغه وخت ده ته په دواړو ترکوکي ولایت حاصل دې.یعنی پخپله ترکه کي هم، او د موصی په ترکه کي هم،نودا دوهم وصی به د رومبی وصی په درجه کي راکوزولې شی.او په دې دواړو ترکوکي به ولایت ورکولې شی.بیا دویمه خبره دا ده.چه دموصی مقصود وصی جوړولو سره دا دې.چه هغه د خپل وصی نه کومك طلب کوی.چه د موصی د اړخه کومه بې غوری د مال په سلسله کي صادر شوې ده.د هغې مکافات او پوره والې اوشی.حالانکه موصی ته ددې خبرې پته وه.چه کیدای شی.دا مقصود پوره نشی.او ده له مرګ راشی.او ددې باوجود هم هغه ده لره پخل وصی جوړوی.نو ددې ښکاره مقصد دا شو.چه هغه د خپل وصی په دې فعل سره راضی دې.چه دې بل څوك خپل وصی مقرر کړی.

او پاتې شوه مسئله د توکیل نو هغه جلا ( مسئله) ده.څکه چي موکل پخپله ژوندې دې.هغه خپل مقاصد پخپله حاصلوی.نو کله چي هغه خالد خپل وکیل جوړ کړو.نو هغه په دې سره راضی نشو.چه خالد بکر خپل وکیل جوړ کړی.یا د مرګ په وخت بکر لره خپل وصی جوړ کړی.څکه چي په وصی جوړولو او توکیل کي توپیر دې.نو وصی جوړول په توکیل باندې قیاس کول، قیاس مع الفارق دې.

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلي دی وَمُقَاسَمَةُ الْوَصِيِّ الْمُوصَى لَهُ عَنِ الْوَرَثَةِ جَائِزَةٌو د وصی ویش کول، موصی له سره د وارثانو د اړخه جائز دې وَمُقَاسَمَتُهُ الْوَرَثَةَ عَنِ الْمُوصَى لَهُ بَاطِلَةٌو د وصی ویش کول وارثانو سره د موصی له د اړخه باطل دې لِأَنَّ الْوَارِثَ خَلِيفَةُ الْمَيِّتِ حَتَّى يَرُدَّ بِالْعَيْبِڅکه چي وارث د مړی خلیفه دې.تردې چي وارث به رد کوی دعیب په وجه وَيُرَدُّ عَلَيْهِ بِهِاو په وارث به د عیب په وجه رد کولای شی وَيَصِيرُ مَغْرُورًا بِشِرَاءِ الْمُوَرِّثِاو وارث به دهوکه کړې شوې وی.د مورث د اخستلو په وجه وَالْوَصِيُّ خَلِيفَةُ الْمَيِّتِ أَيْضًااو وصی هم د مړی خلیفه دې فَيَكُونُ خَصْمًا عَنِ الْوَارِثِ إِذَا كَانَ غَائِبًانو وصی د وارث د اړخه خصم کیدای شی.کله چي وارث غائب وی فَصَحَّتْ قِسْمَتُهُ عَلَيْهِ، حَتَّى لَوْ حَضَرَنو په وارث باندې د وصی ویش کول صحیح دی.تردې که وارث حاضر شو وَقَدْ هَلَكَ مَا فِي يَدِ الْوَصِيِّ حالانکه کوم مال چي د وصی په قبضه کي وو.هغه هلاك شوې دي لَيْسَ لَهُ أَنْ يُشَارِكَ الْمُوصَى لَهُنو وارث ته حق نشته.چه هغه د موصی له شریك جوړ شی.

تشريح:- وصی د موصی خلیفه او نائب وی.نود موصی د وارثانو په حق کي به وصی ته په هغه امورو کي اختیار وی.د کوم اختیار چي موصی ته وو.نو وصی د موصی د وارثانو د اړخه دترکې ویش کولې شی. خو که د موصی له نائب جوړ شی.او ویش کول اوغواړی.نو نشی کولې.څکه چي وارث او وصی دواړه د مړی خلیفه دی.او موصی له د مړی خلیفه نه دې.نو دا به وصی لپاره جائز وی.چه هغه دمړی د دوهم خلیفه نمائنده جوړ شی.خو دا حق به نه وی.چه هغه د موصی له نمائنده جوړ شی.نو فرمائی.څکه چي وارث د مړی خلیفه دې.اوس ددې دلیل بیانوی.فرمائی.

① که مورث څه شئ واخستلو.او هغه مړ شو.تردې چي دا شئ وارث ته ملاو شو.او وارث په دې کي څه داسې عیب

اوموندلو.چه دا بائع سره په دې کې موجود وو.نو وارث ته به حق وی.چه دا شئ هغه سړی ته واپس کړی.د چا نه چې مورث (مړی) اخستې وو.اوکه مورث څه شئ خرڅ کړې وو.او هغه مړ شو.او مشتری په دې کې داسې څه عیب اوموندلو.کوم چې بائع سره دې.او بائع مړ شوې دې.خو دهغه وارث موجود دې.نو مشتری ته به حق وی.چه دا وارث ته واپس کړی.ځکه چې وارث د مړی خلیفه دې.

🔒اوکه مورث یوه وینځه واخستله.او بیا مړ شو.او هغه دده د وارث په برخه کې راغلله.نوهغه ددې سره وطی اوکړله.او بچې پیدا شو.بیا یوکس په دې وینځه کې د استحقاق دعوه اوکړله.او دا دعوه ئې ثابته کړله.نو ددې بچې به آزاد وی.البته د بچی قیمت ورکول به لازمی وی.ځکه که مورث پخپله ژوندې وې. او هغه سره دا واقعه راپیښه شوې وې.نو بیا به هم دا حکم وو.نو د وارث په صورت کې به هم دا حکم وی.ځکه چې دلته بائع مورث ته دهوکه ورکړې ده.ګنی په دې خبره به راضی شوې نه وو.چه دده بچې د چا غلام وی.په دې وجه دا دهوکه شوې ګڼړلې شی.او د دهوکه شوی حکم په ده باندې جاری کړې شوې دې.او بچې به په قیمت سره آزاد ګرځولې شی.

🔒بهرحال وارث او وصی دواړه د مړی خلیفه دی.او اصول دا دې.چه څوك دچا قائم مقام شی.دې د هغه تصرفاتو هم مالك کیږی.نو د وارث دغائب کیدو په صورت کې به وصی ته حق وی.چه د وارث د اړخه ویش اوکړی.نو کله چې وصی ویش اوکړو.نو دده ویش کول صحیح دی.نو که وارث روستو راغې.او په داسې وخت کې راغې.چه د وصی په لاس کې هغه مال هلاك شو.کوم چې وصی دده لپاره په ویش کې اخستې وو.نو اوس به وارث ته دا حق نه وی.چه موصی له سره شریك شی.

أَمَّا الْمُوْصٰى لَهٗ بهرحال موصی له فَلَيْسَ بِخَلِيْفَةٍ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو هغه په هیڅ اعتبار سره د مړی خلیفه نه دی لِأَنَّهٗ مَلَكَهٗ بِسَبَبٍ جَدِيْدٍ ځکه چې موصی له ددې د جدید سبب په وجه، ددې مالك شوې دې وَلِهٰذَا لَايُرَدُّ بِالْعَيْبِ په دې وجه موصی له نشی رد کولې وَلَايُرَدُّ عَلَيْهِ او نه په موصی له باندې رد کیدای شی وَلَايَصِيْرُ مَغْرُوْرًا بِشِرَاءِ الْمُوْصِيْ او نه موصی له د موصی د اخستلو په وجه دهوکه خور وی فَلَايَكُوْنُ الْوَصِيُّ خَلِيْفَةً عَنْهُ عِنْدَ غَيْبَتِهٖ نو وصی به د موصی له خلیفه نه وی.د موصی له دغائب کیدو په وخت حَتّٰى لَوْهَلَكَ مَا أَفْرَزَ لَهٗ عِنْدَ الْوَصِيِّ تردې که چرې هغه مال هلاك شو.کوم چې دده لپاره جلا کړې شوې وو.وصی سره كَانَ لَهٗ ثُلُثُ مَا بَقِيَ نو موصی له لپاره به د پاته پاتې ثلث وی لِأَنَّ الْقِسْمَةَ لَمْ تَنْفُذْ عَلَيْهِ ځکه چې ویش به نافذ نه وی.

تشریح:- وصی خو د مړی خلیفه دې.خو موصی له د مړی خلیفه نه دې.ځکه چې موصی کوم موصی به حاصل کړې دې.د هغې هیڅ څه دائمی سبب نشته.بلکه یو جدید سبب دې.یعنی د وصیت په بنا (بنیاد) باندې موصی له موصی به حاصل کړې دې.نو موصی له د موصی خلیفه نشی ګرځولې کیدې.نو د عیب په وجه موصی له موصی په بائع باندې رد کولې شی.او نه د موصی مشتری په موصی له باندې دعیب په وجه واپس کولې شی.دغه ډول موصی له د وینځې په سلسله کې مغرور( دهوکه خور) نشی ګرځولې کیدې. نو د موصی له بچې به په ذکر شوی صورت کې نه ازادیږی.اګرچه هغه قیمت هم اداکړی.نو هرکله چې موصی له د مړی خلیفه نه دې.نو د موصی له د غیر موجودګئ په وخت به وصی دموصی له خلیفه نه وی. نوکه وصی د موصی له په غیرموجودګئ کې ویش کړې وو.او د موصی له برخه وصی سره هلاکه شوه.نو چونکه دا ویش به صحیح نه وی.او نه به دا قیمت نافذ کیږی.نو کله چې موصی له راشی.نو هغه ته به د پاته پاتې ترکې نه ثلث ملاویږی.

### د موصی له په غیر موجودګئ کښې د وصی هغه لپاره د تقسیمولو حکم

غَيْرَ أَنَّ الْوَصِيَّ لَايَضْمَنُ علاوه ددې خبرې نه چې وصی به ضامن نه وی لِأَنَّهٗ أَمِيْنٌ فِيْهِ، وَلَهٗ وِلَايَةُ الْحِفْظِ فِي التَّرِكَةِ ځکه چې هغه خو په دې کې امین دې.او وصی ته د ترکې د ساتنه ولایت دې فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ بَعْضُ التَّرِكَةِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ نو داسې شوه.لکه چې کله د ترکې څه برخه د ویش نه وړاندې هلاکه شی.فَيَكُوْنُ لَهٗ ثُلُثُ الْبَاقِيْ نو موصی له لپاره به د پاته ثلث وی لِأَنَّ الْمُوْصٰى لَهٗ شَرِيْكُ الْوَارِثِ ځکه چې موصی له د وارث شریك دې فَيَتْوِيْ مَا تَوِيَ مِنَ الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ



عَلَى الشَّرِكَةِ نو د مال مشترك نه چې کوم څه هلاك شی.هغه به شرکت باندې هلاك وَيَبْقٰى مَا بَقِيَ عَلَى الشَّرِكَةِ او کوم چې پاته پاتې شی.هغه به شرکت باندې پاته پاتې وی.

تشریح:- د موصی له په غیر موجودګئ کې چې وصی د موصی له لپاره کوم ویش کړې دې.نو وصی ته ددې ویش حق نه وو.نوکه هلاك شی.نو داسې به ګنړلې شی.لکه چې ویش نه دې شوې.او موصی له ته به د پاته پاتې ثلث ملاویږی.خو سوال دا دې.چه آیا وصی به ددې هلاك شوی مال ضامن هم وی؟ نو وې فرمائیل.چه ضامن به نه وی.ځکه چې وصی امین دې.او هغه ته د ترکې د ساتنه ولایت حاصل دې.نو دده حکم به هغه وی.کله چې د ترکې څه برخه د ویش نه وړاندې هلاکه شی.نو هلته به هم دا حکم وی.چه د پاته پاتې ثلث موصی له ته ورکړې شی.وجه ددې دا ده.چه موصی له د وارث شریك دې.او د شرکت تقاضا دا ده.چه د مال مشترك نه کوم هلاك شی.هغه به هم مشترك وی.اوکوم چې پاته پاتې شی.هغه به هم مشترك پاته وی.

### د موصی له برخه د وصی نه هلاکه شوه نو څه حکم دې !

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی فَإِنْ قَاسَمَ الْوَرَثَةَ نو که وصی د وارثانو سره ویش اوکړو وَأَخَذَ نَصِيْبَ الْمُوْصٰى لَهٗ و وصی د موصی له برخه واخستله فَضَاعَ نو هغه ضائع شوه أَنْ رَجَعَ الْمُوْصٰى لَهٗ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ لِمَا بَيَّنَّا نو موصی له به د پاته پاتې نه ثلث واپس اخلی.د هغه دلیل په وجه کوم چې بیان شوې دې.

حل اللغة: ① ضاع: ضائع شو ② مستغرق: راګیرونکې ﴾

تشریح:- دا هم هغه مسئله ده.د کوم تفصیل چې مرغینانی رحمه الله وړاندې بیان کړې دې.

### د حج د وصیت مال وصی نه هلاك شی نو څه حکم دې !

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَإِنْ كَانَ الْمَيِّتُ أَوْصٰى بِحَجَّةٍ او که مړی د حج وصیت کړې وی فَقَاسَمَ الْوَرَثَةَ نو وصی وارثانو سره ویش اوکړو فَهَلَكَ مَا فِيْ يَدِهٖ نو هغه مال کوم چې د وصی په قبضه کې وو.هغه هلاك شو أَنْ حَجَّ عَنِ الْمَيِّتِ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ نو د پاته پاتې د ثلث څخه به د مړی د اړخه حج کولای شی وَكَذٰلِكَ إِنْ دَفَعَهٗ إِلٰى رَجُلٍ لِيَحُجَّ عَنْهُ فَضَاعَ فِيْ يَدِهٖ (١) او هم دغه ډول که دا مال ئې یو سړی ته ورکړې وی.چه د مړی د اړخه حج اوکړی.نو دا مال هلاك شو وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: إِنْ كَانَ مُسْتَغْرِقًا لِلثُّلُثِ لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ، وَإِلَّا يَرْجِعُ بِتَمَامِ الثُّلُثِ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.که هلاك شوې مال دریمه برخه راګیرونکې وی.نو وصی به هیڅ واپس نه اخلی.ګنی د ثلث د مکمل کیدو پورې به واپس اخلی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَايَرْجِعُ بِشَيْءٍ او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه هیڅ به واپس نه اخلی لِأَنَّ الْقِسْمَةَ حَقُّ الْمُوْصِيْ ځکه چې ویش د موصی حق دې وَلَوْ أَفْرَزَ الْمُوْصِيْ بِنَفْسِهٖ مَالًا لِيَحُجَّ عَنْهُ که موصی پخپله مال جلا کړې وې.چه دده د اړخه حج اوکړې شی فَهَلَكَ نو هغه هلاك شوې وې لَايَلْزَمُهٗ شَيْءٌ وَبَطَلَتِ الْوَصِيَّةُ نو په هغه به هیڅ لازم نه وو.او وصیت به باطلید وَكَذَا إِذَا أَفْرَزَهٗ وَصِيُّهُ الَّذِيْ قَامَ مَقَامَهٗ نو هم دغه ډول ( حکم دې) کله چې د موصی دې وصی جلا کړې وی.کوم چې د موصی قائم مقام دې.

تشریح:- مړی وصیت کړې وو.چه زما د اړخه حج اوکړئ.نو دده وصی وارثانو سره دا مال ویش کړو.خو کوم مال چې وصی د حج لپاره ایخودې دې.وصی سره هلاك شو.نو اوس څه حکم دې؟ نو په دې کې د ائمه ثلاثه رحمهم الله اختلاف دې.

د امام ابوحنیفه رحمه الله مسلك ۞ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.که د وصی په لاس کې ضائع شوې وی.یا د هغه سړی د لاس نه هلاك شی.چا ته چې دا مال حج کاوه لپاره ورکړې شوې وو.په دواړو صورتونو کې به د مړی د پاته پاتې ترکه نه حج کول لازم وی.

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدرالمحتار(١٥:٥٠٠) وملتقى (١٤:٤٦٠)نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٨٦)-

د امام ابویوسف رحمه الله مسلك ۞ امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه کوم مال جلا کړې شوې وو.که هغه ثلث مال وی.نو وصیت باطل شو.او اوس به هیڅ نشی اوبنکلي.خو که دا د ثلث مال نه کم وی.نو دومره به نور اوبنکلي شی.چه ثلث مال مکمل شی.ددې نه د زیات مال اوبنکلو حق به نه وی.

د امام محمد رحمه الله مسلك ۞ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه اوس به هیڅ نشی اوبنکلي.خکه که موصی د حج لپاره مال پخپله اوبنکلي او جلا کړې وو.او هغه مال هلاك شی.نو وصیت به باطل وی.او د پاته ترکې څخه به حج کاوه لپاره مال نشی اوبنکلي.

؟نو هر کله چې د موصی وصی اوبنکلو.نو د هغې به هم دا حکم وی.خکه چې وصی خو دموصی قائم مقام دې.نو اوس به هم وصیت باطل وی.

**د امام ابویوسف رحمه الله دلیل**

وَلِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ مَحَلَّ الْوَصِيَّةِ الثُّلُثُ او د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه د وصیت محل ثلث دې فَيَجِبُ تَنْفِيذُهَا مَا بَقِيَ مَحَلُّهَا نو د وصیت نافذ کول واجب دی.ترکومه پورې چې د وصیت محل پاته دې وَإِذَا لَمْ يَبْقَ او کله چې محل پاته پاتې نشی بَطَلَتْ لِفَوَاتِ مَحَلِّهَا نو وصیت به باطل وی.د وصیت د محل فوت کیدو په وجه وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْقِسْمَةَ لَا تُرَادُ لِذَاتِهَا بَلْ لِمَقْصُودِهَا او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه ویش پخپله مراد نه وی.بلکه د خپل مقصود په لحاظ سره مراد وی وَهُوَ تَأْدِيَةُ الْحَجِّ او مقصود د ویش حج ادا کول دی فَلَمْ تُعْتَبَرْ دُونَهُ نو د حج ادا کاوه نه بغیر به ویش معتبر نه وی وَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ الْقِسْمَةِ او داسې شوه.لکه چې مال هلاك شوې وی.د ویش نه وړاندې فَيَحُجُّ بِثُلُثِ مَا بَقِيَ نو د پاته پاتې د ثلث څخه به حج کولای شی وَلِأَنَّ تَمَامَهَا بِالتَّسْلِيمِ إِلَى الْجِهَةِ الْمُسَمَّاةِ او خکه چې د ویش پوره والې به د هغه جهت ارخ ته سپارلو سره کیږی.د کوم چې تعیین شوې دې إِذْ لَا قَابِضَ لَهَا خکه چې ددې جهت لپاره څوك قبضه کونکې نشته فَإِذَا لَمْ يُصْرَفْ إِلَى ذَلِكَ الْوَجْهِ نو هر کله چې مال خرج کړې شوې نه دې.په دې طریقه باندې لَمْ يَتِمَّ نو ویش به پوره نه وی فَصَارَ كَهَلَاكِهِ قَبْلَهَا نو داسې شوه.لکه د ویش نه وړاندې مال هلاکیدل.

حل اللغة: ① المسماة: متعین ، معلوم ② القسمة: ویش

تشریح:- د امام محمد رحمه الله دلیل تیر شوې دې.اوس د امام ابویوسف رحمه الله دلیل بیانوی.فرمائی.چه دا د حج وصیت دې.او د وصیت نافذ کاوه محل دریمه برخه مال دې.نو ترکومه پورې چې د مال دریمه برخه پاته پاتې وی.نو وصیت نافذ کول به واجب وی.او کله چې د وصیت نافذ کاوه محل باطل شی.نو وصیت به باطل وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه ویش پخپله مراد او مقصود نه وی.بلکه د ویش چې کوم مقصود دې.د هغې حاصلیدل، د ویش اصل غرض دې.او دلته اصلی غرض حج ادا کول دی.نو ترکومه پورې چې حج ادا نکړې شی.تر هغه وخته پورې به د ویش اعتبار نه کیږی.او داسې به گنړلې شی.چه تر اوسه پورې هیڅ ویش نه دې شوې.نو د پاته پاتې د ثلث څخه به حج کولې شی.بیا به د ویش تکمیل او پوره والې هغه وخت کیږی.کله چې مال هغه ځائې خرج کړې شی.کوم ځائې چې موصی ددې لپاره متعین کړې وو.او چونکه حج ادا کول په مال باندې قابض نشی جوړیدې.نو سپارل به هغه وخت وی.کله چې په دې متعین جهت باندې دا رقم خرج کړې شی.او هرکله چې صرف نکړې شو.نو سپارل کامل نشو.نو اوس داسې شوه.لکه چې د ویش نه وړاندې مال هلاك شی.او په دې صورت کې به د پاته پاتې د ثلث نه حج کولې شی.نو دغه ډول به دلته هم کولې شی.

**د موصی له په غیر موجودګۍ کښې د قاضی د تقسیمولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ أَلْفِ دِرْهَمٍ او چاچه د زرو درهمو د ثلث وصیت اوکړو فَدَفَعَهَا الْوَرَثَةُ إِلَى الْقَاضِي فَقَسَمَهَا وَالْمُوصَى لَهُ غَائِبٌ فَقِسْمَتُهُ جَائِزَةٌ نو وارثانو زر درهم قاضی ته ورکړلې.نو قاضی دا ویش کړلې.او موصی له غائب دې.نو د قاضی ویش جائز دې لِأَنَّ الْوَصِيَّةَ صَحِيحَةٌ خکه چې وصیت صحیح دې وَلِهَذَا لَوْ مَاتَ الْمُوصَى لَهُ قَبْلَ الْقَبُولِ هم په دې وجه که موصی له د قبلولو نه وړاندې مړ شی تَصِيرُ الْوَصِيَّةُ مِيرَاثًا لِوَرَثَتِهِ نو وصیت به



میراث جوړیږی.د موصی له د وارثانو لپاره وَالْقَاضِي نُصِبَ نَاظِرًا لِاسِيَّمَا فِي حَقِّ الْمَوْتَى وَالْغُيَّبِ او قاضی مقرر کړې شوې دې (دمسلمانانو د معاملاتو دپاره) محافظ او نگران، خاص طور باندې د مړو او غائبو خلگو په حق کې وَمِنَ النَّظَرِ إِفْرَازُ نَصِيبِ الْغَائِبِ وَقَبْضُهُ فَنَفَذَ ذَلِكَ وَصَحَّ حَتَّى لَوْ حَضَرَ الْغَائِبُ او د شفقت څخه دې د غائب برخه جلا کول.او په دې باندې قبضه کول دی.نو دا وصیت به نافذ وی.او صحیح به وی.تردې چې غائب حاضر شی دې وَقَدْ هَلَكَ الْمَقْبُوضُ حالانکه مقبوض هلاك شوې لَمْ يَكُنْ لَهُ عَلَى الْوَرَثَةِ سَبِيلٌ نو دده لپاره به وارثانو باندې هیڅ لاره نه وی.

تشریح:- زید دخالد لپاره د زرو درهمو د ثلث وصیت کړې وو.وارثانو زر درهم واخستل.او قاضی ته ئې اوسپارل.چه قاضی ویش اوکړی.نو قاضی ویش اوکړو.او ددې دوې (دوه) ثلثه ئې وارثانو ته ورکړل.او یو ثلث ئې خالد لپاره کیخودو.او خالد اوس غائب دې.نو د قاضی دا ویش جائز دې.

که څوك سوال اوکړی دا وصیت خو جائز کیدل پکار نه دی.خکه چې زید د غائب لپاره وصیت کړې دې.او د غائب د ارخه قبول نه دې موجود شوې.نو بیا به وصیت څنگه صحیح وی؟

خواب ۞ د هدایه په څلورم توك کې دا مسئله تیره شوې ده.چه کله موصی مړ شی.او موصی له اوسه پورې قبول کړې نه وو.نو استحساناً به وصیت صحیح منلې شی.او موصی به د موصی له د وارثانو په ملکیت کې داخلیږی.نو هم دا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه دلته هم وصیت صحیح دې.نوکه په مذکوره صورت کې د موصی د مرګ نه روسته موصی له د قبلولو نه وړاندې مړ شی.نو موصی به، به د موصی له لپاره میراث وی.او د وصیت صحیح کیدو دلیل دې.او قاضی هم ددې لپاره مقرر کولې شی.چه هغه د مسلمانانو د معاملاتو ساتنه اوکړی.خصوصاً د مړو او د غائبو خلگو په حق کې، خکه چې دا خلگ پخپله دتصرف کاوه نه قاصر دی.نو هر کله چې قاضی محافظ دې.نو دا هم په ساتنه کې داخل دې.چه قاضی د غائب برخه جلا کړی.او په هغې باندې قبضه اوکړی.نو د قاضی ویش صحیح دې.او نافذ دې. او هر کله چې ویش نافذ او صحیح دې.نو که اتفاق سره دا مال د قاضی نه هلاك شی.نو موصی له د وارثانو نه هیڅ نشی اخستلې.خکه چې د قاضی په ویش کاوه سره ویش صحیح او نافذ شو.

**د قرضخواهانو په غیر موجودګۍ کښې د ترکې نه د وصی د خرڅولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَإِذَا بَاعَ الْوَصِيُّ عَبْدًا مِنَ التَّرِكَةِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْغُرَمَاءِ فَهُوَ جَائِزٌ او کله چې وصی دترکې یو غلام د قرضخواهانو په غیر موجودګۍ کې خرڅ کړو.نو دا جائز دې لِأَنَّ الْوَصِيَّ قَائِمٌ مَقَامَ الْمُوصِي خکه چې وصی د موصی قائم مقام دې وَلَوْ تَوَلَّى حَيًّا بِنَفْسِهِ اوکه موصی په ژوند کې پخپله د بیع متولی وې يَجُوزُ بَيْعُهُ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْغُرَمَاءِ وَإِنْ كَانَ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ نو د هغه بیع به جائز وه.نو د قرضخواهانو په غیر موجودګۍ کې اګرچه د موصی په مرض الوفات کې وی فَكَذَا إِذَا تَوَلَّاهُ مَنْ قَامَ مَقَامَهُ نو هم دغه ډول کله چې متولی وی.د بیع هغه سړې کوم چې د موصی قائم مقام دې وَهَذَا لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمَالِيَّةِ لَا بِالصُّورَةِ او دا خکه چې د قرضخواهانو حق مالیت سره متعلق دې.صورت سره نه دې وَالْبَيْعُ لَا يُبْطِلُ الْمَالِيَّةَ لِفَوَاتِهَا إِلَى خَلَفٍ او بیع مالیت نه باطلوی.د مالیت د فوت کیدو په وجه، خلیفه ارخ ته وَهُوَ الثَّمَنُ بِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمَدْيُونِ او خلیفه هغه ثمن د ی.په خلاف د قرضدار غلام لِأَنَّ لِلْغُرَمَاءِ حَقَّ الِاسْتِسْعَاءِ وَأَمَّا هَاهُنَا فَبِخِلَافِهِ خکه چې قرضخواهانو لپاره د مزدورۍ (او ګټې) کاوه حق شته.بهرحال نو دلته خلاف دې.

حل اللغة: ① الغرماء: جمع د غریم، قرضخواه ② استسعاء: مزدوری، محنت، کوشش

تشریح:- خالد د زید وصی دې.او په زید باندې څه پور دې.او هم په دې حالت کې خالد د ترکې نه یو غلام خرڅ کړو.او د قرضخواهانو په غیر موجودګۍ کې ئې خرڅ کړې دې.نو سوال دا دې.چه بیع جائز ده اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه دا بیع جائز ده.خکه چې وړاندې بار بار دا خبره تیره شوې ده.چه وصی د موصی قائم مقام دې.اوکه

موصی پخپل ژوند کي د کار کړې وي. نو دا بيع به جائز وه.اګرچه هغه په مرض الوفات کي هم دا کار کړې وي.بيا به هم بيع جائز وه.نو د وصی بيع به هم جائز وی.ځکه چې د قرضخواهانو حق ماليت سره متعلق دې.د غلام صورت سره نه دې.او د بيع په وجه به ماليت نه باطليږی.ځکه چې د غلام نه روستو د غلام خليفه ثمن موجود دی.

البته که په ماذون غلام باندې پور وی.او دده آقا يا دده وصی دا خرڅول اوغواړی.نو د قرضخواهانو د موجودګئ او ددوی د اجازت نه بغير به دا بيع جائز نه وی.ځکه چې دلته د قرضخواهانو حق صرف ماليت سره متعلق نه دې.بلکه نفس د غلام سره متعلق دې.ځکه چې قرضخواهانو ته حق شته.چه هغوی غلام خرڅول، او د هغه د ثمن اخستلو په ځائې دا (غلام) خپل خان سره اوساتی.او په ده باندې مزدوری اوکړی.

## د وصيت مال د وصی نه هلاک شی نو په ده باندې ضمان شته اوکه نشته؟

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلی دی وَمَنْ أَوْصَى بِأَنْ يُبَاعَ عَبْدُهُ او چاچه وصيت اوکړو.چه دده غلام دې خرڅ کړې شی وَيَتَصَدَّقَ بِثَمَنِهِ عَلَى الْمَسَاكِينِ او د هغې ثمن دې په مسکينانو باندې صدقه کړې شی فَبَاعَهُ الْوَصِيُّ نو وصی هغه خرڅ کړو وَقَبَضَ الثَّمَنَ او په ثمن ئې قبضه اوکړله فَضَاعَ فِي يَدِهِ نو ثمن د وصی په قبضه کي ضائع شو فَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ ضَمِنَ الْوَصِيُّ نو په غلام کي استحقاق ثابت شو.نو وصی به ضامن وی لِأَنَّهُ هُوَ الْعَاقِدُ فَتَكُونُ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ، وَهَذِهِ عُهْدَةٌ ځکه چې وصی عاقد دې.نو ذمه داری به په وصی باندې وی.او دا ذمه داری ده لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ مِنْهُ مَا رَضِيَ بِبَذْلِ الثَّمَنِ إِلَّا لِيُسَلَّمَ لَهُ الْمَبِيعُ وَلَمْ يُسَلَّمْ ځکه چې کوم سړې د وصی نه اخستونکې دې.هغه په ثمن باندې ور کاوه باندې نه دې راضی شوې.خو په دې چې دده لپاره مبيع اوسپارلې شی.او هغه نه دې سپارلې شوې فَقَدْ أَخَذَ الْوَصِيُّ الْبَائِعُ مَالَ الْغَيْرِ بِغَيْرِ رِضَاهُ نو بائع وصی دغير مال اخستې دې.د هغه د رضامندئ نه بغير فَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّهُ نو په وصی باندې دا مال واپس کول واجب دی.

**تشريح:-** زيد دا وصيت کړې وو.چه زما غلام دې خرڅ کړې شی.او د هغه قيمت دې مسکينانو باندې صدقه کړې شی.نو د وصيت مطابق وصی دا غلام خرڅ کړو.دده په ثمن باندې ئې قبضه اوکړله.اوس دوې (دوه) صورتونه راپيښ شو.① دا ثمن د وصی په قبضه کي هلاك شو.② غلام د بل چا مستحق راووتلو.نو د مشتری کوم ثمن چې وصی وصول کړې دې.وصی به ضامن وی.چه مشتری ته د هغه ثمن واپس کړی.او چونکه هغه هلاك شوې دې.نو د خپل اړخه دې د هغې ضمان ادا کړی.اوس پاتې شوه دا خبره چې وصی به ولې ضامن وی؟ نو وې فرمائيل.ځکه چې وصی عاقد دې.او د بيع د حقوقو ذمه داری په عاقد باندې راځی.او دا هم ذمه داری ده.او ددې وجه دا هم ده.چه کوم کس د وصی نه دا غلام اخستې دې.او هغه چې وصی ته کوم ثمن ورکړې دې.نو د هغې منشاء دا ده.چه غلام ماته حواله کړې شی.ګنی ددې نه بغير هغه په ثمن ادا کاوه باندې نه دې راضی شوې.نو ددې مطلب به دا وی.چه وصی کوم چې (اوس) بائع دې.هغه د غير مال د هغه د رضامندئ نه بغير اخستې دې.نو په وصی باندې د هغې مال واپس کول واجب دی.

## وصی چې کوم ضمان مشتری ته اداکړو.دا به دچا نه اخلی؟

وَيَرْجِعُ فِيمَا تَرَكَ الْمَيِّتُ او وصی به رجوع کوی.په هغه مال کي کوم چې مړی پريښودې دې لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چې د مړی وصی عامل دې فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ كَالْوَكِيلِ نو وصی به په مړی باندې رجوع کوی.لکه څنګه چې وکيل (په داسې صورت کي مؤکل باندې رجوع کوی) وَكَانَ أَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا: لَا يَرْجِعُ او امام ابوحنيفه رحمه الله به وړاندې فرمائيل.چه وصی به رجوع نه کوی لِأَنَّهُ ضَمِنَ بِقَبْضِهِ ځکه چې وصی دخپلو وصولولو په وجه ضامن جوړ شوې ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَا ذَكَرْنَا بيا امام ابوحنيفه رحمه الله هغه قول اړخ ته رجوع اوکړله.کوم چې موږ ذکرکړې دې وَيَرْجِعُ فِي جَمِيعِ التَّرِكَةِ او وصی به په ټوله ترکه کي رجوع کوی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَرْجِعُ فِي الثُّلُثِ او د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه په ثلث کي به رجوع



کوی لِأَنَّ الرُّجُوعَ بِحُكْمِ الْوَصِيَّةِ فَأَخَذَ حُكْمَهَا ځکه چې رجوع د وصيت د حکم په وجه ده.نو رجوع به د وصيت حکم اخلی. وَمَحَلُّ الْوَصِيَّةِ الثُّلُثُ او د وصيت محل ثلث دې وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِحُكْمِ الْغُرُورِ ظاهرالرواية وجه دا ده.چه وصی په مړی باندې د دهوکې ور کاوه په حکم سره رجوع کوی وَذَلِكَ دَيْنٌ عَلَيْهِ او دا په مړی باندې پور دې وَالدَّيْنُ يُقْضَى مِنْ جَمِيعِ التَّرِكَةِ او پور د پوره ترکې نه ادا کولې شی.

**تشريح:-** اوس سوال دا دې.چه وصی کوم ضمان مشتری ته ادا کړې دې.د هغې به څه کيږی؟ نو وې فرمائيل.چه وصی به دا ضمان د مړی دترکې نه وصولوی.ځکه چې وصی خو دمړی عامل او دهغه کارکونکې دې.نو وصی ته به حق وی.چه دا د مړی د ترکې نه واپس واخلی.لکه مثلاً که وکيل ته داسې ډول ضمان ادا کاوه اړتيا راپيښ شی.نو هغه به په مؤکل باندې رجوع کوی.

دا د امام ابوحنيفه رحمه الله هغه قول دې.کوم اړخ ته ئې چې رجوع کړې ده.ګنی د امام صاحب رحمه الله روميې قول دا وو.چه وصی ته به د رجوع کاوه حق نه وی.ځکه چې وصی کوم ضمان ادا کړې دې.هغه ئې دخپلې قبضې په وجه ادا کړې دې.ځکه چې هرکله په غلام کي استحقاق ثابت شو.نو وصيت باطل شو.او وصی د وارثانو عامل نه دې.نو په هغوی باندې د رجوع کاوه هيڅ حق نه وی.بهرحال د امام ابوحنيفه رحمه الله د مرجوع اليه قول مطابق رجوع جائز ده.اوس په دې باندې سوال دا دې.چه ترکومه پورې رجوع کولې شی؟ نو وې فرمائيل.که پوره ترکه هم ختمه شی.نو ترهغې پورې به رجوع کوی.ځکه چې دا د پور په درجه کي دې.او د پور اداکول د پوره ترکې نه واجب وی. امام محمد رحمه الله فرمائی.چه د ترکې دريمې برخې پورې د رجوع کاوه حق دې.ددې نه زيات نشته.ځکه چې مذکوره بيع د وصيت په حکم سره وه.او هم دهغې په وجه د رجوع کاوه حق حاصل دې.او وصيت نافذ کول صرف په دريمه برخه مال کي کيږی.د ظاهرالرواية دليل دا دې.چه موصی په دې ونيلو سره وصی ته دهوکه ورکړې ده.چه دا زما غلام دې.او زما ملك دې.او د موصی ددې دهوکې په وجه وصی باندې ضمان واجب شوې دې.نو ددې ضمان اداکول په مړی باندې پور دې.او پور اداکول د پوره ترکې نه کولې شی.نو د پوره ترکې څخه به ادا کولې شی.

## که د وصی په ځائې قاضی ته دا مسئله راپيښه شی نو څه حکم دې؟

بِخِلَافِ الْقَاضِي أَوْ أَمِينِهِ إِذَا تَوَلَّى الْبَيْعَ په خلاف د قاضی يا دده د امين، کله چې دې د بيع متولی وی حَيْثُ لَا عُهْدَةَ عَلَيْهِ او په دې حيثيت سره چې په ده باندې هيڅ ذمه داری نشته لِأَنَّ فِي إِلْزَامِهَا الْقَاضِيَ تَعْطِيلَ الْقَضَاءِ ځکه چې په قاضی باندې د ذمه دارئ په لازم ګرځولوکي قضاء معطل کول (او ختمول) دی إِذْ يَتَحَامَى عَنْ تَقَلُّدِ هَذِهِ الْأَمَانَةِ حَذَرًا عَنْ لُزُومِ الْغَرَامَةِ ځکه چې قاضی به ددې امانت اخستلو نه پرهيز کوی.د تاوان د لزوم د يرې نه فَتَتَعَطَّلُ مَصْلَحَةُ الْعَامَّةِ نو عام مصلحت به معطل شی وَأَمِينُهُ سَفِيرٌ عَنْهُ كَالرَّسُولِ وَلَا كَذَلِكَ الْوَصِيُّ او د قاضی امين د قاضی سفير دې.د ايلچی پشان، او وصی داسې نه دې لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلِ ځکه چې وصی د توکيل په مرتبه کي دې وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ الْقَضَاءِ او دا په کتاب القضاء کي تير شوی دی فَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ قَدْ هَلَكَتْ أَوْ لَمْ يَكُنْ بِهَا نو که ترکه هلاکه شوه.يا د ترکې نه ددې ادائيګی اونکړې شی وَفَاءٌ لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ كَمَا إِذَا كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ آخَرُ نو وصی به په هيڅ چا باندې رجوع نه کوی.لکه چې په مړی باندې نور پور وی.

**حل اللغة:** ① يتحامى: پرهيز کوی،ځان ساتی ② تقلد: قبلول

**تشريح:-** دا د ضمان د وجوب حکم، او بيا د مړی د ترکې نه د واپس اخستلو حکم د وصی لپاره دې.اوکه قاضی د مړی غلام خرڅ کړو.او قاضی سره د هغې ثمن هلاك شو.او د غلام په اړه کي يوك د استحقاق دعوه اوکړله.او دغه دعوه ثابته شوه.نو په قاضی به هيڅ ضمان نه وی.ځکه که په قاضی باندې د بيع ذمه داری اولګولې شی.اودا ضمان واجب کړې شی.نو منصب د قضاء به معطل شی.ځکه چې بيا به هيڅ څوك هم د قاضی جوړيدو لپاره تيار نه وی.ځکه چې هغه ته به دا يره وی.چه چرته ضمان او تاوان ورکول لازم نشی.او قاضی د عام د مصلحت لپاره وی.او کله چې څوك دا عهده نه قبلوی.نو عام مصلحت به معطل پاتې شی.

اوکه بیع د قاضی په خانې د قاضی امین اوکړی.نو بیا هم دا حکم دې.ځکه چې دا د قاضی ګویا سفیر اوترجمان دې.او دده د قاصد او ایلچی پشان دې.نو په ده به هم څه ضمان نه وی.او په وصی باندې ضمان ځکه راغې.چه وصی د وکیل په درجه کي دې.چه ددې تفصیل په کتاب ادب القاضی کي تیر شوې دې.خو که د مړی ترکه هلاکه شوه.یا هلاکه نشوه.خو ترکه دومره کمه ده.چه هغه د وصی ددې پور لپاره ناکافی ده.نو اوس وصی ته د رجوع کاوه حق نشته.لکه مثلاً که په مړی باندې نور پور وی.نو بیا هم وصی ته د رجوع کاوه حق نشته.

## که د بچي د حصې غلام ئې خرڅ کړو او ثمن هلاك شو نوڅه حکم دې ؟

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی وَإِنْ قَسَمَ الْوَصِيُّ الْمِيرَاثَ فَأَصَابَ صَغِيرًا مِنَ الْوَرَثَةِ عَبْدٌ او که وصی میراث ویش کړو.نو په وارثانو کي د یو ماشوم په برخه کي یو غلام راغې فَبَاعَهُ وَقَبَضَ الثَّمَنَ فَهَلَكَ وَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ نو وصی هغه خرڅ کړو.او په ثمن باندې ئې قبضه اوکړله .نو ثمن هلاك شو.او په غلام کي استحقاق ثابت شو رَجَعَ فِي مَالِ الصَّغِيرِ نو وصی به د صغیر په مال کي رجوع کوی لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چې وصی د بچی لپاره عامل دې وَيَرْجِعُ الصَّغِيرُ عَلَى الْوَرَثَةِ بِحِصَّتِهِ لِانْتِقَاضِ الْقِسْمَةِ بِاسْتِحْقَاقِ مَا أَصَابَهُ او صغیر به دخپلې برخې په اندازه وارثانو باندې رجوع کوی.د ویش د ماتیدو په وجه، د هغه شئ استحقاق نه کوم چې د ماشوم په برخه کي راغلې دې.

**تشریح:-** وصی د میراث ویش اوکړو.او په وارثانو کي مثلاً یو ماشوم دې.چه د هغه په برخه کي یو غلام هم راغې.چه وصی هغه خرڅ کړو.او د هغه ثمن ئې وصول کړو.اوس دوې (دوه) خبرې راپیښیږی.① وصی سره دغه ثمن هلاك شو.② غلام د بل چا مستحق راووتلو.نو وصی به مشتری لپاره د تیر شوی بیان مطابق ضامن وی.او چونکه وصی د ماشوم لپاره کار کوی.په دې وجه به دا ضمان د بچی د مال نه واپس اخستلې شی.او بچې به د خپلې برخې په اندازه په ټولو وارثانو باندې رجوع کوی.ځکه په کتاب القسمة کي تیر شوی دی.چه که د ویش نه روستو یو شئ داسې راوځی.چه په هغې کي د چا استحقاق ثابت شی.نو په هغې کي به ویش ماتیږی.

## د یتیم په مال کښې د وصی د حوالې قبلولو څه حکم دې ؟

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی وَإِذَا احْتَالَ الْوَصِيُّ بِمَالِ الْيَتِيمِ او کله چې د یتیم د مال په سلسله کي وصی حواله قبول کړله فَإِنْ كَانَ خَيْرًا لِلْيَتِيمِ جَازَ نو که دا حواله قبلول یتیم لپاره بهتره وی.نو جائز ده وَهُوَ أَنْ يَكُونَ أَمْلَأَ او هغه دا ده.چه محتال علیه توانګر وی إِذِ الْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ ځکه چې دا ولایت د شفقت دې وَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ أَمْلَأَ لَا يَجُوزُ او که اصل قرضدار توانګر وی.نو جائز نه ده لِأَنَّ فِيهِ تَضْيِيعَ مَالِ الْيَتِيمِ عَلَى بَعْضِ الْوُجُوهِ ځکه چې په دې کي د یتیم مال ضائع کول دی.په بعضو صورتونو کي .

**تشریح:-** د یتیم په خالد باندې پور دې.کله چې وصی د خالد نه د پور مطالبه اوکړله.نو خالد د پور حواله په بکر باندې اوکړله.یعنی چې زما پور به بکر ادا کوی.او بکر هم دا قبول کړله.نوکه وصی دا حواله قبوله کړی.نو جائز ده اوکه نه؟ نو وې فرمائیل.چه په دې کي تفصیل دې.که محتال علیه توانګر وی.بیا خو په دې کي بچی لپاره بهتری ده.یعنی دده څخه به پور زر وصول شی.اوکه خالد توانګر وی.نو ددې حوالې قبلول جائز نه دی.ځکه چې هرکله دا توانګر نه دې.نو اداکول به موخر کولې شی.او تاخیر هم من وجه اتلاف او ضائع کول دی.او د وصی ولایت دشفقت په وجه دې.او په کوم صورت کي چې بچی لپاره بهتری نه وی.نو د هغې په اختیارولو کي هیڅ شفقت نشته.

## د یتیمانو په مال کښې د وصی د اخستلو او خرڅولو د تصرف حکم؟

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْوَصِيِّ وَلَا شِرَاؤُهُ إِلَّا بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِي مِثْلِهِ او جائز نه دې د وصی بیع، او نه دده شراء ( جائز ده).خو هغه مقدار سره دکوم په مثل چې خلګ تاوان برداشت کوی لِأَنَّهُ لَا نَظَرَ فِي الْغَبْنِ الْفَاحِشِ بِخِلَافِ الْيَسِيرِ ځکه چې په ډیر تاوان کي هیڅ شفقت نشته.په خلاف د معمولی تاوان وی لِأَنَّهُ لَا



يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ځکه چې د معمولی تاوان نه بچ کیدل ممکن نه دی فَفِي اعْتِبَارِهِ انْسِدَادُ بَابِهِ نو د معمولی تاوان نه د بچ کیدو په ممکن کیدو کي د وصی جوړیدو دروازه بندول دی وَالصَّبِيُّ الْمَأْذُونُ وَالْعَبْدُ الْمَأْذُونُ وَالْمُكَاتَبُ يَجُوزُ بَيْعُهُمْ وَشِرَاؤُهُمْ بِالْغَبْنِ الْفَاحِشِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او ماذون بچې او ماذون غلام او مکاتب ددوی بیع او ددوی شراء د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز معمولی تاوان سره جائز ده لِأَنَّهُمْ يَتَصَرَّفُونَ بِحُكْمِ الْمَالِكِيَّةِ ځکه چې دا خلګ د مالکیت په حکم سره تصرف کوی وَالْإِذْنُ فَكُّ الْحَجْرِ بِخِلَافِ الْوَصِيِّ او اجازت ورکول حجر ( بندیز) اوچتول دی.په خلاف د وصی لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ النِّيَابَةِ الشَّرْعِيَّةِ نَظَرًا ځکه چې وصی د شرعی د نیابت په وجه د شفقت په بناء تصرف کوی فَيَتَقَيَّدُ بِمَوْضِعِ النَّظَرِ نو دا تصرف به د شفقت ځائې سره مقید وی نه وَعِنْدَهُمَا لَا يَمْلِكُونَهُ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به دا خلګ ددې مالك لِأَنَّ التَّصَرُّفَ بِالْفَاحِشِ مِنْهُ تَبَرُّعٌ لَا ضَرُورَةَ فِيهِ وَهُمْ لَيْسُوا مِنْ أَهْلِهِ ځکه چې غبن فاحش سره تصرف کول داسې تبرع ده.چه ددې هیڅ اړتیا نشته.او دا خلګ د تبرع اهل نه دې.

**حل اللغة:** ① یتغابن: تاوان کوی ② یسیر: کم ③ تبرع: احسان ④ انسداد: بندول

**تشریح:-** وصی ته حق شته.چه هغه د ماشومانو په معاملاتو کي تصرف اوکړی.ددوی لپاره اخستل خرڅول اوکړی.خو په ډیر تاوان سره د وصی تصرف او اخستل خرڅول جائز نه دی.البته که معمولی لاندې باندې وی.نو جائز دې.ځکه چې ددې نه بچکیدل ممکن نه دی.او که ددې اعتبار اوکړې شی.نو د وصی جوړیدو دروازه بندول به لازمه شی.او ددې نقصانات ښکاره دی.

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه د ماذون بچی او د ماذون غلام اود مکاتب تصرف د څه نیابت په وجه نه دې.بلکه پخپله ددوی د اهلیت په وجه دې.البته په دوی باندې حجر ( ممانعت) وو.خو اوس چې هرکله حجر پورته کړې شو.نو ددوی اهلیت ښکاره شو.نو ددوی تصرف په زیات تاوان سره هم جائز دې.ځکه چې ددوی تصرف مالکانه دې.نائبانه نه دې.او د وصی تصرف نائبانه دې.یعنی د شفقت په بنا (بنیاد) شریعت ده لره نائب جوړ کړې دې.نو دده تصرف مالکانه نه دې.بلکه نائبانه دی.په دې وجه به دده تصرف ساتنه او شفقت سره مقید وی.او غبن فاحش ( ډیر تاوان) سره تصرف کول او مال هلاکاوه کي هیڅ شفقت نشته.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز دوی هم غبن فاحش سره تصرف نشی کولې.ځکه چې غبن فاحش سره ددوی تصرف داسې تبرع ده.چه ددې اړتیا نشته.او نه دا خلګ ددې اهل دی.

## د خرڅولو بیع نامه به د وصیت نامې نه جدا لیکلې شی

وَإِذَا كَتَبَ كِتَابَ الشِّرَاءِ عَلَى وَصِيٍّ كَتَبَ كِتَابَ الْوَصِيَّةِ عَلَى حِدَةٍ وَكِتَابَ الشِّرَاءِ عَلَى حِدَةٍ او کله چې په وصی باندې بیع نامه لیکلې شی.نو وصیت دې جلا اولیکلې شی.او بیع نامه دې جلا اولیکلې شی لِأَنَّ ذَلِكَ أَحْوَطُ ځکه چې دې کي ډیر زیات احتیاط دې وَلَوْ كَتَبَ جُمْلَةً او که یو ځائې اولیکلې شی عَسَى أَنْ يَكْتُبَ الشَّاهِدُ شَهَادَتَهُ فِي آخِرِهِ مِنْ غَيْرِ تَفْصِيلٍ نو کیدائې شی.چه شاهد خپل شهادت ددې نه روستو اولیکی.دتفصیل نه بغیر فَيَصِيرُ ذَلِكَ حَمْلًا لَهُ عَلَى الْكَذِبِ نو دا به هغه لره په دروغو راوچتول وی ثُمَّ قِيلَ: يَكْتُبُ اشْتَرَى مِنْ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ وَلَا يَكْتُبُ مِنْ فُلَانٍ وَصِيِّ فُلَانٍ لِمَا بَيَّنَّا بیا وئیلی شوی دی.چه ( قاضی یا مشتری ) داسې اولیکی. «اشتری من فلان» او داسې دې نه لیکی. «من فلان وصی فلان» د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دي وَقِيلَ لَا بَأْسَ بِذَلِكَ او وئیلی شوی دی.چه په دې کي هیڅ باك نشته لِأَنَّ الْوِصَايَةَ تُعْلَمُ ظَاهِرًا ځکه چې وصی جوړیدل ښکاره معلومیږی.

**تشریح:-** وصی یو شئ خرڅ کړو.چه په هغې باندې بیع نامه لیکلې کیږی.نو دلته بیع نامه او وصیت نامه په یو کاغذ لیکل پکار نه دی.بلکه بیع نامه په جلا کاغذ او وصیت نامه په جلا کاغذ لیکل پکار دی.ځکه چې په عامه توګه (عام طور) داسې کیږی.چه د وصیت ګواهان جلا وی.او د شراء ګواهان جلا وی.او د بیع په وخت چې کله بیع نامه لیکلې شی.نو که وصیت نامه هم په دې کي لیکلې شوی وی.نو کوم چې د بیع ګواهان دی.هغوی به ددې په آخر کي خپل دستخطونه کوی.چه ددې څخه به په ښکاره دا معلومیږی.چه دا ګواهان د وصیت او بیع دواړو

ګواهان دی.حالانکه دا صرف د بیع ګواهان دی.په دې وجه هم دا طریقه ډیره احوط ده.چه دواړه لیکل جلا جلا وی.

بیا چې کله قاضی یا مشتری یا ددوی په حکم بل څوك بیع نامه لیکی.نو دهغوی لیکل داسې پکار دی.چه د ،،فلان بن فلان،، نه فلانی دا شی؛ واخستلو.او داسې دې نه لیکی.چه د ،، فلان بن فلان،، نه چې دا د فلانی وصی دې.دده نه ئې دا شی؛ واخستلو.ځکه چې په دې کې بیا هم هغه خبره راغلله.چه بیع او وصیت ګویا په یو خانې راجمع کړل.او دا د احوط خلاف دې.او بعضو حضراتو فرمائیلی دی.چه په دې کې هیڅ باك نشته.ځکه دا وصیت نامه ده.بلك اوس خو په عامه توګه (عام طور) باندې خلګو ته معلومه ده.چه دا د فلانی وصی دې.نو د شهرت په بنا (بنیاد) باندې په دې بیع نامه کې الفاظ لیکلی شوی دی.ګنی دې ته به وصیت نامه نشی وئیلې.

## وصی ته د بالغ هلك د سامان خرڅولو اختیار شته او که نشته؟

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی وَبَيْعُ الْوَصِيِّ عَلَى الْكَبِيرِ الْغَائِبِ جَائِزٌ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي الْعَقَارِ او په کبیر ( بالغ) غائب باندې د وصی بیع جائز ده.په ټولو څیزونو کې ، خو په مځکه کې ( جائز نه ده) لِأَنَّ الْأَبَ يَلِي مَا سِوَاهُ وَلَا يَلِيهِ، فَكَذَا وَصِيُّهُ فِيهِ ځکه چې پلار د زمکې نه علاوه باندې ولایت لری.او د زمکې وی باندې ولایت نه لری.نو په دې کې به دغه ډول د پلار وصی وَكَانَ الْقِيَاسُ أَنْ لَا يَمْلِكَ الْوَصِيُّ غَيْرَ الْعَقَارِ أَيْضًا او قیاس خو دا وو.چه وصی د زمکې نه د علاوه مالك نه وی لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ عَلَى الْكَبِيرِ ځکه چې ( په حقیقت کې ولایت ددې په کبیر ( بالغ) باندې پلار مالك نه دې.( البته د ساتنه په بناء باندې مالك دې) إِلَّا أَنَّا اسْتَحْسَنَّاهُ لِمَا أَنَّهُ حِفْظٌ لِتَسَارُعِ الْفَسَادِ إِلَيْهِ، وَحِفْظُ الثَّمَنِ أَيْسَرُ خو موږ دا د استحسان په بنا (بنیاد) باندې جائز منلې دې.په دې وجه چې دا ساتنه دې.دده ارخ ته د فساد د زر راتلو په وجه.او د ثمن ساتنه آسان دې وَهُوَ يَمْلِكُ الْحِفْظَ أَمَّا الْعَقَارُ فَمُحَصَّنٌ بِنَفْسِهِ او وصی د ساتنه مالك دې.بهرحال مځکه نو دا پخپل محفوظ ده.

**تشریح:-** خالد د زید وصی دې.او د زید یو بالغ خونې دې.چه هغه غائب دې.نو آیا خالد ته اختیار شته.چه د زیددې بالغ خونی سامان هم خرڅ کړی؟ نو وې فرمائیل.چه وصی د زمکې نه علاوه نور سامان خرڅولې شی.ځکه چې په کومو څیزونو پلار ته ولایت حاصل وو.په هغې باندې به وصی ته هم ولایت حاصل وی.او پلار ته ولایت وو.چه د خونی سامان خرڅ کړی.او چونکه وصی د پلار د قائم مقام دې.نو هم دا اختیار به وصی ته هم حاصل وی.البته د زمکې خرڅولو ولایت پلار ته هم نشته.( نه وصی ته به هم نه وی).

خو قیاس تقاضا دا وه.چه وصی نه د زمکې خرڅولو مالك وی.او نه د زمکې نه د علاوه دنورو څیزونو ، ځکه چې دا ولایت په حقیقت کې پلار ته هم حاصل نه دې.او پلار ته چې کوم د زمکې نه د علاوه سامان خرڅولو ولایت ملاو دې.دا ولایت نه دې.بلکه ساتنه دې.بهرحال دا د قیاس تقاضا وه.خو موږ قیاس پریخودو.او په استحسان باندې مو عمل کړې دې.او موږ اووئیل.چه دا ولایت نه دې.بلکه ساتنه دې. ځکه چې د زمکې نه د علاوه څیزونو بیع په ساتنه کې داخل دی.ځکه چې د منقولاتو د ضائع کیدو او خرابیدو خطره ده.نو د سامان په ځائې ددې د ثمن ساتنه آسان وی.او د ساتنه کاوه ولایت وصی ته حاصل دې.او د زمکې د خرڅولو اختیار ځکه نشته.چه په ددې د هلاکیدو او ضائع کیدو یره نشته.ځکه چې دا خو پخپله محفوظ ده.

## وصی ته په مال کښې د تجارت اجازت نشته

قَالَ امام محمد رحمه الله او فرمائیل وَلَا يَتَّجِرُ فِي الْمَالِ او وصی به په مال کې تجارت نه کوی لِأَنَّ الْمُفَوَّضَ إِلَيْهِ الْحِفْظُ دُونَ التِّجَارَةِ ځکه چې هغه ته ساتنه سپارلې شوې دی.تجارت نه دې ( سپارلې شوې).

**تشریح:-** وصی ته په مال کې د تجارت اجازت نشته.ځکه چې موصی هغه لره په مال کې د ساتنه لپاره مقرر کړې دې.تجارت لپاره ئې نه دې مقرر کړې.

## وصی لپاره په مال کښې د تصرف د جواز یو صورت



وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: وَصِيُّ الْأَخِ فِي الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ الْغَائِبِ بِمَنْزِلَةِ وَصِيِّ الْأَبِ فِي الْكَبِيرِ الْغَائِبِ او امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائیلی دی.چه د رور وصی د ماشوم او د هغه رور په اړه کې چې غائب وی.د پلاردوصی پشان دې.چه د بالغ په اړه کې ئې جوړ کړې وی وَكَذَا وَصِيُّ الْأُمِّ وَوَصِيُّ الْعَمِّ او هم دغه ډول د مور او د اکا (تره) وصی ( هم دې). وَهَذَا الْجَوَابُ فِي تَرِكَةِ هَؤُلَاءِ او دا ځواب ددې خلګو د ترکې په اړه کې دې لِأَنَّ وَصِيَّهُمْ قَائِمٌ مَقَامَهُمْ وَهُمْ يَمْلِكُونَ مَا يَكُونُ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ ځکه چې ددوی وصی د دوې قائم مقام دې.او هغه مالك وو.د هغه څیزونو کوم چې د ساتنه د باب خنې وی فَكَذَا وَصِيُّهُمْ نو هم دغه ډول به ددوی وصی وی.

**تشریح:-** د زید وفات اوشو.او دوې (دوه) رونړه دی.یو وړوکې دې.چه نابالغ دې.او یو بالغ دې.خو غائب دې.او دا دواړه د زید وارثان جوړ شوی دی.او زید خالد خپل وصی مقرر کړې وو.نو خالد ددوی دواړو رونړو په هغه مال کې تصرف کولې شی.کوم چې دوی ته دزید نه په ترکه کې ملاو شوې دې؟ نو وې فرمائیل. چې کوم حکم د پلار وصی ته وو.د بالغ غائب خوئی په سلسله کې ، هم هغه به ددوی دواړو رونړو په حق کې د رور د وصی هم وی.یعنی د رور وصی ددوی دواړو نور سامان خرڅولې شی.خو ددوی دواړو مځکه نشی خرڅولې.

او که د مور یا د اکا (تره) وصی وی.نو د هغه هم دا حکم دې.ځکه چې وصی د خپل موصی قائم مقام وی. او که موصی رور یا مور یا اکا (تره) وی.نو د هغوی هم دا حکم وو.نوهم دا حکم به ددوی د وصی هم وی.خو ذکر شوی وصی ته چې کوم دا اجازت ملاو شوې دې.دا صرف په هغه مال کې دې.کوم چې دده د موصی د اړخه دوی ته په ترکه کې ملاو شوې دې.ګنی دهغوی هغه مال کوم چې د مخکې نه د هغوی دې.په هغې کې به دې وصی ته د تصرف حق نه وی.

## په وصی او د ماشومانو په نیکه کښې به ترجیح کوم یو ته وی

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلي دی وَالْوَصِيُّ أَحَقُّ بِمَالِ الصَّغِيرِ مِنَ الْجَدِّ او وصی د ماشوم د مال زیات حقدار دې.د نیکه نه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْجَدُّ أَحَقُّ او امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی.چه نیکه زیات حقدار دې لِأَنَّ الشَّرْعَ أَقَامَهُ مُقَامَ الْأَبِ حَالَ عَدَمِهِ حَتَّى أَحْرَزَ الْمِيرَاثَ فَيُقَدَّمُ عَلَى وَصِيِّهِ ځکه چې شریعت هغه لره د پلار نه کیدو په وخت د پلار قائم مقام جوړ کړې دې.تردې چې هغه میراث اخلی.نو نیکه به د پلار په وصی باندې مقدم کولای شی وَلَنَا أَنَّ بِالْإِيصَاءِ تَنْتَقِلُ وِلَايَةُ الْأَبِ إِلَيْهِ او زموږ دلیل دا دې.چه د وصی جوړولو په وجه د پلار ولایت وصی اړخ ته منتقل فَكَانَتْ وِلَايَتُهُ قَائِمَةً مَعْنًى نو معنیٰ د پلار ولایت قائم دې فَيُقَدَّمُ عَلَيْهِ كَالْأَبِ نَفْسِهِ نو وصی به په نیکه باندې مقدم کولې شی.لکه څنګه چې پخپل پلار ( د نیکه نه په ولایت کې مقدم دې) وَهَذَا لِأَنَّ اخْتِيَارَهُ الْوَصِيَّ مَعَ عِلْمِهِ بِقِيَامِ الْجَدِّ او دا ځکه چې د پلار وصی اختیارول سره ددې چې موصی ته د نیکه د وجود بنه علم وو وَيَدُلُّ عَلَى أَنَّ تَصَرُّفَهُ أَنْظَرُ لِبَنِيهِ مِنْ تَصَرُّفِ أَبِيهِ په دې خبره باندې دلالت کوی.چه د وصی تصرف د موصی د خامنو لپاره د شفقت زیات سبب دې.د وصی د پلار د تصرف نه.

**تشریح:-** که د موصی پلار یعنی د ماشومانو نیکه هم موجود وی.او وصی هم وی.نو په دوی کې به ترجیح چاته وی؟ نو زموږ په نیز به وصی ته ترجیح ورکولې شی.او د امام شافعی رحمه الله په نیز به نیکه ته ترجیح ورکولې شی.ځکه چې د پلار د نه کیدو په وخت شریعت نیکه د پلار قائم مقام جوړ کړې دې.په دې وجه چې د پلار کوم میراث وی.هغه واړه نیکه وصولوی.نو معلومه شوه.چه نیکه مقدم دې.

او زموږ دلیل دا دې.چه کله موصی خپل وصی مقرر کړو.نو د پلار ولایت وصی اړخ ته منتقل شو.نو ګویا چې معنی د پلار ولایت قائم دې.نو وصی به په نیکه به داسې مقدم کولې شی.لکه مثلاً که پلار پخپله موجود وې.بیا به پلار هم په نیکه باندې مقدم وو.او هرکله چې موصی ته علم دې.چه د بچو نیکه موجود دې.بیا هم هغه خپل وصی مقرروی.دا ددې خبرې واضح دلیل دې.چه موصی د وصی تصرف د بچو لپاره د پلار د تصرف نه بهتر ګنړلې دې.

**وصي مقرر کړي نه وي نو نيکه د پلار قائم مقام دي**

فَإِنْ لَمْ يُوصِ الْأَبُ نو که پلار وصي نه وي جوړ کړي فَالْجَدُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ نو نيکه د پلار په درجه کي دي لِأَنَّهُ أَقْرَبُ النَّاسِ إِلَيْهِ خکه چې نيکه د بچي لپاره په خلګو کي د ټولو نه زيات نژدې دي وَأَشْفَقُهُمْ عَلَيْهِ حَتَّى يَمْلِكَ الْإِنْكَاحَ دُونَ وَصِيِّ الْأَبِ او په بچي باندې د خلګو نه زيات شفيق دې.تردې چې نيکه د نکاح کاوه مالك دې.وصي نه دې غَيْرَ أَنَّهُ يُقَدَّمُ عَلَيْهِ وَصِيُّ الْأَبِ فِي التَّصَرُّفِ لِمَا بَيَّنَّاهُ علاوه ددې خبرې نه چې په نيکه باندې د پلار وصي په تصرف کي مقدم ساتلې شوې دې.د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې.

**تشريح:-** که پلار څوك خپل وصي نه وي مقرر کړې.نو اوس به نيکه د پلار په درجه کي وي.خکه چې اوس د بچي لپاره دا نيکه په خلګو کي دټولو نه زيات نژدې او دټولو نه زيات شفيق دې.په دې وجه ولايت د انکاح نيکه ته ملاوېږي.وصي ته نه ملاوېږي.البته که پلار وصي مقرر کړې وي.نود ذکر شوي دليل په وجه به د پلار وصي په نيکه باندې مقدم کولې شي.

## فَصْلٌ فِي الشَّهَادَةِ

ژباړه:- (دا) فصل د شهادت (په بيان کي) دې.

**تشريح:-** مرغيناني رحمه الله د وصيت د بيان نه فارغ شو.نوددې ځاې نه په وصيت کي دشهادت احکام بيانوي .او چونکه وصيت اصل دې.او شهادت يو عارض دې.او عارض موخر وي.په دې وجه د شهادت احکام موخر کړې شوي دي.

**د دوو وصيانو د دريم سړي د وصي کيدو د شهادت حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلي دي وَإِذَا شَهِدَ الْوَصِيَّانِ و کله چې دوو وصيانو ګواهي ورکړله أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصَى إِلَى فُلَانٍ مَعَهُمَا فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ چې مړي فلانې ددوی دواړو سره وصي جوړ کړې دې.نو شهادت باطل دې لِأَنَّهُمَا مُتَّهَمَانِ فِيهَا لِإِثْبَاتِهِمَا مُعِينًا لِأَنْفُسِهِمَا خکه چې دوی دواړه په دې شهادت کي متهم دی.ددوی دواړو د ثابتولو په وجه، خپل ځان لپاره د مددګار قَالَ (إِلَّا أَنْ يَدَّعِيَهَا الْمَشْهُودُ لَهُ) امام محمد رحمه الله فرمائي.خو دا چې مشهودله (چا لپاره ئې ګواهي ورکړې ده هغه) د وصي جوړيدو دعوه اوکړی.او دا وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ استحسان دې وَهُوَ فِي الْقِيَاسِ كَالْأَوَّلِ لِمَا بَيَّنَّا مِنَ التُّهْمَةِ او دا (شهادت قبلول) په قياس کي د ړومبی پشان دې.د هغه تهمت په وجه کوم چې موږ بيان کړې دې وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ لِلْقَاضِي وِلَايَةَ نَصْبِ الْوَصِيِّ ابْتِدَاءً استحسان دليل دا دې.چه په قاضي کي په پيل کي د وصي مقررولو ولايت شته أَوْ ضَمَّ آخَرَ إِلَيْهِمَا بِرِضَاهُ بِدُونِ شَهَادَتِهِمَا يا دوی دواړو وصيانو اړخ ته ددوی دواړو د شهادت نه بغير د دريم کس د ملاوولو ولايت شته.د دريم کس په رضا مندئ سره فَيَسْقُطُ بِشَهَادَتِهِمَا مُؤْنَةُ التَّعْيِينِ عَنْهُ نو ددوی دواړو شهادت سره د قاضي نه د تعيين مشقت ساقطيږي أَمَّا الْوِصَايَةُ تَثْبُتُ بِنَصْبِ الْقَاضِي بهرحال وصي جوړول نو دا به د قاضي په مقررولو سره ثابتيږي.

**حل اللغة:** ① **تعيين:** معين کول ② **نصب:** مقرر کول

**تشريح:-** زيد خالد او بکر دواړه خپل وصيان جوړ کړی وو.اوس دوی دواړه شهادت ورکوی.چه زيد زموږ سره ساجد هم وصي جوړ کړې وو.نو دا شهادت به قبليږي اوکه نه؟ نو وې فرمائيل.که ساجد پخپله د وصي جوړيدو دعوه اوکړی.او په دې باندې دوی دواړه شهادت ورکړی.نو شهادت به قبلولې شي.او که ساجد د وصي جوړيدو دعوه اونکړی.نو ددوی دواړو شهادت به نه قبليږي.بلکه شهادت به باطل وی. خکه چې دلته کي دواړه وصي پخپل شهادت کي متهم دی.او د متهم شهادت نه قبليږي.

او د تهمت وجه دا ده.چه دوی دواړه پخپل دې شهادت کي خپل ځان لپاره يو معين ثابتوی.او کله چې ساجد پخپله د وصي جوړيدو دعوه اوکړی.نو ددوی شهادت استحساناً قبول کړې شوې دې.ګنی د قياس تقاضا دلته هم



دا ده.چه شهادت قبول نکړې شي.خکه چې تهمت دلته هم موجود دې.خو دلته قياس پرېښودې شوې دې.او په استحسان باندې عمل کړې شوې دې.خکه که قاضي پخپله وصي مقرر کړی. کله چې د مړي هيڅ وصي نه وي.نو جائز ده.خکه چې قاضي ته د وصي مقرر کاوه ولايت حاصل دې.اوکه د وراندې نه يو يا دوې (دوه) وصيان موجود دی.او قاضي ددوی سره بل څوك (دريم وصي) ملاوول اوغواړی.نو قاضي ته ددې ولايت شته.اګرچه دوی دواړه شهات هم ورنکړی.البته کوم کس چې قاضي وصي جوړوی.د هغه رضامندی ضروری ده.نو هرکله چې قاضي ته پخپله د وصي مقررولو ولايت شته.نو دلته ددوی د شهادت قبلولو حاصل دا راووتلو.چه ددې دريم وصي مقرر کول قاضي کړی دی.البته ددوی دواړو د شهادت په وجه قاضي د تعين مشقت نه بچ شو.يعنی د وصي جوړولو ثبوت ددوی دواړو په شهادت سره نه دې شوې.بلکه د قاضي په مقررولو سره شوې دې.

**د مړي د ځامنو د يو په حق کښي د وصي کيدو ګواهي ورکول**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلي دي وَكَذَلِكَ الِابْنَانِ و هم دغه ډول دوې (دوه) ځامن دي مَعْنَاهُ إِذَا شَهِدَا أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصَى إِلَى رَجُلٍ وَهُوَ يُنْكِرُ ددې معنی دا ده.چه که دوو ځامنو ګواهي ورکړله.چه مړي (يعنی ددوی دواړو پلار) فلانې سړې وصي جوړ کړې وو. حالانکه هغه سړې انکار کوی.(نو وصيت باطل دې) لِأَنَّهُمَا يَجُرَّانِ إِلَى أَنْفُسِهِمَا نَفْعًا بِنَصْبِ حَافِظٍ لِلتَّرِكَةِ خکه چې دوی دواړه د ځان لپاره نفع راکاږي. ترکې لپاره نګران مقرر کاوه سره.

**تشريح:-** د زيد وفات اوشو.او دده دوې (دوه) ځامن دی.خالد او بکر، دوی دواړو ګواهي ورکړله.چه زموږ پلار فلانې سړې مثلاً ساجد خپل وصي مقرر کړې وو.نودا شهادت به باطل وی.خکه چې دا دواړه ځامن پخپل شهادت کي متهم دی.يعنی د خپلې فائدې لپاره ګواهي ورکوی.چه د ترکې ساتنه کونکې او ددې څوك نګران ملاو شي.

**د دوو وصيانو د نابالغه وارث په حق کښي د شهادت حکم**

وَلَوْ شَهِدَا يَعْنِي الْوَصِيَّيْنِ لِوَارِثٍ صَغِيرٍ بِشَيْءٍ مِنْ مَالِ الْمَيِّتِ أَوْ غَيْرِهِ که دوو وصيانو د مړي د مال يا ددې نه د علاوه په اړه کي د يو شي؛ متعلق د ماشوم وارث لپاره ګواهي ورکړله فَشَهَادَتُهُمَا بَاطِلَةٌ نو ددوی دواړو شهادت باطل دې لِأَنَّهُمَا يُظْهِرَانِ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ لِأَنْفُسِهِمَا فِي الْمَشْهُودِ بِهِ خکه چې دوی دواړه خپل ځان لپاره د تصرف ولايت ښکاره کوی.په مشهود به کي.

**تشريح:-** د زيد وفات اوشو.او دده دوې (دوه) وصيان دی.او د زيد وارث يو وړوکې ماشوم دې.نو ددې بچي په مال باندې دواړو وصيانو ته ولايت حاصل دې.يعنی دده په مال کي د تصرف کاوه ولايت دوی دواړو ته حاصل دی.که د بچي دا مال د موصي د ترکې ځنې وی.او که ددې نه علاوه بل څه مال وی.دواړو کي د تصرف ولايت شته.اوس د زيد دواړه وصيان دا ګواهي ورکوی.چه د زيد فلانې مال ددې ماشوم دې.يا هغه فلانې مال چې دې.هغه په ترکه کي نه دې.هغه ددې بچي دې.نو دا ګواهي به نشی قبلولې.خکه چې دوی دواړه په دې ګواهیٔ کي متهم دی.او ددوی مقصد په دې ګواهیٔ سره هغه مال کي د ولايت تصرف ثابتول دی.دکوم متعلق چې دوی شهادت ورکوی.نو دا شهادت باطل دې.

**د دوو وصيانو د بالغ وارث په حق کښي د شهادت حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلي دي وَإِنْ شَهِدَا لِوَارِثٍ كَبِيرٍ فِي مَالِ الْمَيِّتِ لَمْ يَجُزْ وکه دوی دواړو وصيانو د بالغ وارث لپاره د مړي په مال کي ګواهي ورکړله.نو جائز نه ده وَإِنْ كَانَ فِي غَيْرِ مَالِ الْمَيِّتِ جَازَ وکه ګواهي د مړي د مال نه په علاوه کلي وی.نوجائز ده وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الفقه الإسلامي (١٤٧/٨) وملتقى (٤٦٥/٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٨٨/٢)-

وَقَالَا: أَنْ شَهِدَ الْوَارِثَانِ كَبِيرَيْنِ تَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلي دي. که دوی دواړو د بالغ وارث لپاره شهادت ورکړو. نو جائز دي لِأَنَّهُ لَا يَثْبُتُ لَهُمَا وِلَايَةُ التَّصَرُّفِ فِي التَّرِكَةِ إِذَا كَانَتِ الْوَرَثَةُ كِبَارًا ځکه چې دوی دواړو وصیانو لپاره په ترکه کې د تصرف ولایت نه ثابتیږي. کله چې وارثان بالغ وي فَعَرِيَتْ عَنِ التُّهْمَةِ نو شهادت د تهمت نه خالي دي.

**حل اللغة:** ① عریت: خالي شوه ② کبار: جمع د کبیر، لوئي)

**تشریح:-** که د مرحوم زید دوې (دوه) وصیان دي. خو هغوی د ماشوم بچي لپاره نه بلکه بالغ وارث لپاره گواهي ورکوي. نو ددې څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل. چه په دې کې تفصیل دې. که ددوی دواړو گواهي د مړي دمال نه په علاوه کې وي. چه دا د فلاني وارث دې. نو بالاتفاق به گواهي قبول وي. اوکه د مړي په مال کې گواهي وي. چه دا مال د فلاني وارث دې. نو په دې کې اختلاف دې. امام ابوحنیفه رحمه الله دا جائز نه گرځوي. او صاحبین رحمهما الله دا هم جائز گرځوي.

د صاحبینو رحمهما الله دلیل◉ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چه کله وارثان بالغ وي. نو وصیانو ته په ترکه کې د ولایت تصرف نشته. نو په دې گواهۍ کې هیڅ تهمت او شبه پاتې نشوه. نو دا شهادت به قبلولې شي. خو امام ابوحنیفه رحمه الله شهادت باطل گرځوي. چه ددې دلیل په راروان عبارت کې بیانولې شي.

### د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل

وَلَهُ أَنَّهُ يَثْبُتُ لَهُمَا وِلَايَةُ الْحِفْظِ وَوِلَايَةُ بَيْعِ الْمَنْقُولِ عِنْدَ غَيْبَةِ الْوَارِثِ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. چه دوی دواړو لپاره د ساتنه ولایت او د منقول د خرڅولو ولایت شته. د وارث د غائب کیدو په وخت فَتَحَقَّقَتِ التُّهْمَةُ بِخِلَافِ شَهَادَتِهِمَا فِي غَيْرِ التَّرِكَةِ لِانْقِطَاعِ وِلَايَةِ وَصِيِّ الْأَبِ عَنْهُ نو تهمت به ثابت وي. په خلاف ددوی دواړو د شهادت د ترکې نه په غیر (مال) کې. د پلار د وصي د ولایت د منقطع کیدو په وجه، د غیر ترکې نه لِأَنَّ الْمَيِّتَ أَقَامَهُ مُقَامَ نَفْسِهِ فِي تَرِكَتِهِ لَا فِي غَيْرِهَا ځکه چې مړي هغه لره خپل قائم مقام پخپله ترکه کې جوړ کړې دې. د خپلې ترکې نه په غیر کې نې نه دې جوړ کړې.

**تشریح:-** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه دبالغ د مال د ساتنه ولایت وصي ته حاصل دې. او دغه ډول دده دمنقول مال د خرڅولو ولایت وصي ته حاصل دې. کله چې بالغ وارث غائب وي. او موجود نه وي. نو تهمت موجود دې. چه دا دشهادت مردود کیدو ته مستلزم دې. البته که دوی دواړه وصیان د هغه مال په اړه کې شهادت ورکړي. کوم چې د مړي دترکې څخه نه وي. نو ددوی شهادت مقبول دې. ځکه چې په دې مال کې د پلار وصي ته هیڅ ولایت حاصل نه دې. ځکه چې وصي لپاره به هغه ولایت ثابت وي. کوم چې موصي لپاره ثابتیږي. او موصي وصي لره خپل قائم مقام جوړ کړې دې. خو پخپله ترکه کې نې جوړ کړې دې. د بل چا په مال کې نې نه دې جوړ کړې. نومعلومه شوه. که دوی دواړه د مړي د ترکې نه علاوه کې د بالغ وارث لپاره گواهي ورکړي. نو ددوی شهادت به قبلولې شي.

### د دوو سړو د نورو دوو سړو لپاره په مړي باندې د پور د گواهۍ ورکولو مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلي دي وَإِذَا شَهِدَ رَجُلَانِ لِرَجُلَيْنِ عَلَى مَيِّتٍ بِدَيْنٍ أَلْفِ دِرْهَمٍ و کله چې دوو سړو د دوو سړو لپاره په مړي باندې د زرو درهمود پور گواهي ورکړله وَشَهِدَ الْآخَرَانِ لِلْأَوَّلَيْنِ بِمِثْلِ ذٰلِكَ و دوی دواړو (چا لپاره چې شهادت ورکړې شوې دې) د دواړو مخکنو لپاره ددې پشان گواهي ورکړله جَازَتْ شَهَادَتُهُمَا نو ددوی دواړو فریقو شهادت جائز دې وَإِنْ كَانَتْ شَهَادَةُ كُلِّ فَرِيقٍ لِلْآخَرِ بِوَصِيَّةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ لَمْ تَجُزْ او که د هر فریق



شهادت د بل لپاره د زر درهم د وصیت په اړه کې وي. نو شهادت جائز نه دي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او دا د امام ابوحنیفه او د امام محمد رحمه الله قول دې وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا تُقْبَلُ فِي الدَّيْنِ أَيْضًا[1] او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلي دي. چه په پور کې به هم شهادت نشي قبلولې وَأَبُو حَنِيفَةَ فِيمَا ذَكَرَ الْخَصَّافُ مَعَ أَبِي يُوسُفَ او امام ابوحنیفه رحمه الله د هغه روایت مطابق کوم چې خصاف رحمه الله ذکر کړې دې. د امام ابویوسف رحمه الله سره دې وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ مِثْلُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ او د امام ابویوسف رحمه الله نه د امام محمد رحمه الله د قول پشان نقل دي.

**تشریح:-** د زید وفات اوشو. د وفات نه روسته خالد او بکر دا گواهي ورکړله چه په زید باندې د ساجد او حامد زر درهمه پور دی. او دغه ډول ساجد او حامد گواهي ورکړله. چه په زید باندې د خالد او بکر زر درهمه پور دی. نو دا شهادت جائز دې. اوکه په دواړو فریقو کې هر یو د بل فریق په حق کې د پور په ځائې د وصیت گواهي ورکړله. نو د هر یو فریق شهادت باطل دې. لنډیز د کلام دا که شهادت د وصیت په اړه کې وي. نو باطل دې. اوکه د پور په اړه کې وي. نو جائز دې. چه ددې دلیل روستو راروان دې.

او په وصیت کې د شهادت نه قبلول اجماعي دي. خو د پور په اړه کې شهادت قبلولو کې اختلاف دي. حضرات طرفین رحمهما الله دا جائز گرځوي. او د شهادت قبلولو قائل دی. او امام ابویوسف رحمه الله په پور کې د شهادت قبلولو قائل نه دي. بیا په دې اړه کې د امام محمد رحمه الله نه صرف یو روایت دې. یعنی چې په پور کې شهادت قبلول جائز دی. او د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله نه دوې (دوه) روایتونه دي. د امام صاحب رحمه الله یو روایت د امام محمد رحمه الله سره دې. یعني چې قبلول جائز دی. او دوهم روایت د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. یعنی چې قبلول جائز نه دی. او دغه ډول د امام ابویوسف رحمه الله نه هم دوې (دوه) روایتونه نقل دي. یو هم هغه کوم چې ذکر شو. یعني شهادت نه قبلول. او دوهم روایت امام محمد رحمه الله سره دې. یعني چې شهادت قبلول جائز دی. هم دا د مرغیناني رحمه الله د عبارت حاصل دې.

### د شهادت قبلولو دلیل

وَجْهُ الْقَبُولِ د شهادت قبلولو دلیل دا دې. الدَّيْنُ يَجِبُ فِي الذِّمَّةِ چې پور په ذمه واجب دي. وَهِيَ قَابِلَةٌ لِحُقُوقٍ شَتَّى فَلَا شَرِكَةَ او ذمه مختلف حقوق قبلوی. نو شرکت نشته وَلِهٰذَا لَوْ تَبَرَّعَ أَجْنَبِيٌّ بِقَضَاءِ دَيْنِ أَحَدِهِمَا په دې وجه که یو اجنبي دوی دواړو فریقو کې د یوکس د پور ادا کاوه تبرع اوکړله لَيْسَ لِلْآخَرِ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ نو دوهم لپاره د شرکت حق نشته.

**تشریح:-** که د پور په اړه کې دواړو فریقو کې هریودبل لپاره شهادت ورکړي. نو په دې کې دوې (دوه) روایتونه دي. لکه څنگه چې وړاندې تیر شوی دی. یو روایت د شهادت قبلولو دې. او دوهم د شهادت د نه قبلولو دې. اوس مرغیناني رحمه الله ددواړو روایتونو دلیلونه بیانوي. وړاندې به د شهادت د قبلولو دلیل بیانوي. او بیا به د شهادت نه قبلولو دلیل بیانوي. د دلیل نه وړاندې دا خبره ذهن کې کینول پکار دي. چې کوم ځائې په یو مال کې د دواړو فریقو څه اشتراک ثابت شي. نو هلته به شهادت باطل وي. اوکه اشتراک نه وي. نو شهادت به باطل نه وي. او په دې خبره باندې دټولو اتفاق دې. که زید ژوندې وي. او دواړو فریقو هم دغه ډول په زید باندې د زر درهمو د پور گواهي ورکړله. نو دا گواهي به قبلیږي. ځکه چې هرکله زید ژوندې دې. نو د پور تعلق د زید په ذمه دې. د زید عین مال سره نه دې. نو که د زید مال هلاک شي. نو پور به بیا هم پخپل حال قائم وي. دا ددې خبرې ښکاره دلیل دې. چه پور په ذمه باندې واجب وي. په عین مال کې واجب نه وي.

او وصیت په ذمه واجب نه وي. بلکه ددې تعلق عین ترکې سره وي. نو په وصیت کې د اشتراک جهت دې. چه دا شهادت باطلونکې دې. او په پور کې اشتراک نشته. نو دلته به شهادت قبلولې شي. نو مرغیناني رحمه الله ووېل. چه

[1]) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في كشف الأستار (۳۳۸|۲) وردالمحتار (۵۰۵|۵) ونصب (۲۱۴|۶) نقلاً عن القول الراجح (۳۸۹|۲)-

پور په ذمه باندې واجب وي.او ذمه داسې شئ دې.چه دا مختلف حقوق د اشتراك نه بغير قبلوي.نو دلته به شركت نه ثابتيږي.نو شهادت به د شاهد د خان لپاره نه وي.بلكه مشهود عليه لپاره به وي.هم دا وجه ده.كه يو اجنبي تبرعاً د زيد د اړخه صرف د يو فريق پور ادا كړو.نو دا به هم ددغه فريق وي.د دوهم فريق به په دې كي د مشاركت حق نه وي.

### د شهادت نه قبلولو دليل

وَجْهُ الرَّدِّ أَنَّ الدَّيْنَ بِالْمَوْتِ يَتَعَلَّقُ بِالتَّرِكَةِ د شهادت رد كاوه وجه دا ده.چه پور د مرګ په وجه تركې سره متعلق كيږي إِذْ الذِّمَّةُ خَرِبَتْ بِالْمَوْتِ ځكه چې ذمه د مرګ په وجه خرابه او برباده شوه وَلِهَذَا لَوْ اسْتَوْفَى أَحَدُهُمَا حَقَّهُ مِنَ التَّرِكَةِ او هم په دې وجه كه قريقينو كي يو كس په تركه كي خپل حق وصول كړو يُشَارِكُهُ الْآخَرُ فِيهِ نو په دې مال كي به دوهم فريق ددې فريق شريك وي فَكَانَتِ الشَّهَادَةُ مُثْبِتَةً حَقَّ الشَّرِكَةِ فَتَحَقَّقَتِ التُّهْمَةُ، نو شهادت به حق د شركت ثابتونكې وي.نو تهمت متحقق شو. بِخِلَافِ حَالِ حَيَاةِ الْمَدْيُونِ په خلاف د قرضدار د ژوند د حالت لِأَنَّهُ فِي الذِّمَّةِ لِبَقَائِهَا لَا فِي الْمَالِ ځكه چې پور په ذمه كي وي.د ذمې د پاته پاتې كيدو په وجه، په مال كي نه وي فَلَا تَتَحَقَّقُ الشَّرِكَةُ نو شركت به متحقق نه وي.

**تشريح:-** دا د دوهم روايت يعنى د شهادت د نه قبلولو دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه هركله د زيد وفات اوشو.نو اوس د پور تعلق د زيد ذمې سره پاتې نشو.بلكه د زيد تركې سره متعلق شو.ځكه چې د زيد د مرګ په وجه د زيد ذمه خرابه شوې ده.چه هغه اوس د وجوب برداشت كاوه محل پاتې نشو.او هركله چې د پور تعلق ذمې سره پاتې نشو.بلكه تركې سره شو.نو شركت به ثابت وي.لكه ځنګه چې په وصيت كي كيږي.او هركله چې شركت ثابت شو.نو د تهمت د ثبوت په وجه به شهادت نا قابل قبول وي.

۞ او دلته د شركت دليل دا دې.كه يو فريق د تركې نه خپل حق واخستلو.نو په دې كي به دوهم فريق هم شريك وي.په خلاف دهغې صورت كله چې زيد ژوندې وو.ځكه چې دغه وخت د هغه ذمه پاته وه.نو د پور تعلق د زيد ذمې سره وو.د زيد مال سره نه وو.نو هلته به شركت نه متحقق كيږي.په دې وجه هلته بالاتفاق د شهادت قبلولو قول اختيار كړې شوې دې.

### د دوو سړو د نورو دوو سړو لپاره د وينځې په وصيت باندې د ګواهۍ وركولو مسئله

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي فرمائيلي دي وَلَوْ شَهِدَا أَنَّهُ أَوْصَى لِهَذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِجَارِيَتِهِ وكه دوو سړو ګواهي وركړله.چه مړي ددوي دواړو لپاره دخپلې وينځې وصيت كړې دې دې وَشَهِدَ الْمَشْهُودُ لَهُمَا أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصَى لِلشَّاهِدَيْنِ بِعَبْدِهِ جَازَتِ الشَّهَادَةُ بِالِاتِّفَاقِ او چا لپاره چې ګواهي وركړې شوې ده.هغوى ګواهي وركړله. چې مړي د دواړو ګواهانو لپاره دخپل غلام وصيت كړې دې.نو بالاتفاق شهادت جائز لِأَنَّهُ لَا شَرِكَةَ فَلَا تُهْمَةَ ځكه چې هيڅ شركت نشته.نوهيڅ تهمت نشته.

**تشريح:-** د مخكنۍ مسئلې پشان دوې (دوه) فريقه دي.يو فريق ګواهي وركړله.چه مړي ددې فريق لپاره د خپلې وينځې وصيت كړې دې.او دې دوهم فريق د ړومبي فريق لپاره ګواهي وركړله.چه مړي ددوي لپاره د خپل غلام وصيت كړې دې.نو دلته د وصيت كيدو باوجود دا شهادت جائز دې.ځكه چې د يو فريق لپاره وينځه ده.او د دوهم لپاره غلام دې.نو شركت نشته.او هركله چې شركت نشته.نو تهمت هم نشته.نو شهادت جائز دې.

### دوو سړو د نورو دوو سړو په حق كښې د ثلث مال د ګواهۍ وركولو مسئله

وَلَوْ شَهِدَا أَنَّهُ أَوْصَى لِهَذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِثُلُثِ مَالِهِ وكه دوو سړو ګواهي وركړله.چه ده (مړي) ددې دوو سړو لپاره د خپل مال د ثلث وصيت كړې دې وَشَهِدَ الْمَشْهُودُ لَهُمَا أَنَّهُ أَوْصَى لِلشَّاهِدَيْنِ بِثُلُثِ مَالِهِ فَالشَّهَادَةُ بَاطِلَةٌ و مشهود لهما شهادت وركړو.چه مړي ددې دواړو ګواهانو لپاره د خپل مال د ثلث وصيت كړې دې. نو شهادت باطل دې وَكَذَا إِذَا شَهِدَ



الْأَوَّلَانِ أَنَّ الْمَيِّتَ أَوْصَى لِهَذَيْنِ الرَّجُلَيْنِ بِعَبْدِهِ او هم دغه ډول (حكم دې).كله چې دواړو ړومبنو ګواهي وركړله چه مړي ددې دواړو سړو لپاره د غلام وصيت كړې دېده او مشهود لهما ګواهي وركړله.چه مړي د ړومبنو دواړو لپاره دخپل مال د ثلث وصيت كړې دې.نو دا شهادت باطل دې لِأَنَّ الشَّهَادَةَ فِي هَذِهِ الصُّوَرِ مُثْبِتَةٌ لِلشَّرِكَةِ ځكه چې په دې صورت كي شهادت شركت ثابتونكې دې.

**تشريح:-** وړاندې قاعده تيره شوې ده.چه كوم ځاني شهادت شركت ثابتوي.هغه شهادت به باطل وي.نو هم ددې اصولو مطابق دوې (دوه) جزئيې پيش كوي.① د ګواهانو يو فريق دا ګواهي وركړله.چه مړي د دوهم فريق لپاره د خپل ثلث مال وصيت كړې دې.او دوهم فريق د ړومبي فريق لپاره ګواهي وركړله.چه مړي هغه لپاره د خپل ثلث مال وصيت كړې دې.نو چونكه په دې شهادت كي شركت ثابتيږي.په دې وجه دا شهادت باطل د ي.② ړومبي فريق شهادت وركړو.چه مړي د دوهم فريق لپاره د خپل غلام وصيت كړې دې.او دوهم فريق شهادت وركړو.چه مړي د ړومبي فريق لپاره د خپل ثلث مال وصيت كړې دې.نو دا شهادت به هم باطل وي.ځكه چې دا غلام به هم په ثلث كي داخل وي.په دې وجه شركت باطل شو.اوكوم شهادت چې شركت ثابتوي.هغه باطل دې.

## كِتَابُ الْخُنْثَى

ژباړه:- (دا) كتاب د خنثى (په بيان كي) دې.

**تشريح:-** اصل خو دا دې.چه د انسان يوه آله (اندام مخصوصه) وي.چه يا د سړي وي او يا د ښځې وي.او د دواړو اندامونو(چه هم د سړي وي او هم د ښځې نو دا) جمع كيدل ډير نا آشنا دي.بهرحال كله كله داسې كيږي. په دې وجه ددې د بيان اړتيا پيښ شو.او چونكه دا نا آشنا دي.په دې وجه دا دټولو نه روستو بيان كړې شوې دې.

۞ په دې كتاب كي دوې (دوه) فصلونه بيان كړې شوى دى.په ړومبي فصل كي د خنثى بيان دې.چه ددې تفصيل روستو راروان دې.او په دوهم فصل كي د خنثى احكام بيانيږي.

## فَصْلٌ فِي بَيَانِهِ

ژباړه:- (دا) فصل ددې (خنثى) په بيان كي دې.

### د خنثى تعريف او حكم

قَالَ امام قدوري رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا كَانَ لِلْمَوْلُودِ فَرْجٌ وَذَكَرٌ فَهُوَ خُنْثَى و كله چې د بچي فرج او ذكر (د ښځې او سړي اندام مخصوصه) دواړه وي.نو هغه خنثى دي فَإِنْ كَانَ يَبُولُ مِنَ الذَّكَرِ فَهُوَ غُلَامٌ نوكه هغه ذكر سره بولې كوي.نو هغه هلك دي وَإِنْ كَانَ يَبُولُ مِنَ الْفَرْجِ فَهُوَ أُنْثَى و كه فرج سره بولې كوي.نوهغه ښځه ده {لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُئِلَ عَنْهُ كَيْفَ يُوَرَّثُ؟ ځكه چې د نبى كريم ﷺ نه ددې په اړه كي سوال اوكړې شو.چه ځنګه به ميراث وركولاى شى فَقَالَ مِنْ حَيْثُ يَبُولُ}[1] نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.چه د كوم ځائې نه بولې كوي وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مِثْلُهُ[2] او د حضرت علي رضي الله عنه نه ددې پشان نقل دى وَلِأَنَّ الْبَوْلَ مِنْ أَيِّ عُضْوٍ كَانَ فَهُوَ دَلَالَةٌ عَلَى أَنَّهُ هُوَ الْعُضْوُ الْأَصْلِيُّ الصَّحِيحُ او ځكه چې بولې په كوم اندام سره وي.هغه په دې خبره دليل دې.چه هم دغه اصلي اندام دې.چه صحيح دې وَالْآخَرُ بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ او دوهم د عيب په درجه كي دې.

**تشريح:-** يو ماشوم دې.چه دده دواړه قسمه آلې دى.د سړو پشان هم دې.او د ښځو پشان ځائې ئې هم شته.نو ده ته

---

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه ابن عدى فى الكامل والبيهقى فى السنن الكبرى (٦/٤٢٨) رقم (١٢٥١٨)_

[2] أخرجه عبدالرزاق فى مصنفه فى الفرائض (نصب:٥/٢٦٢)_

خنثی وانې.نو که هغه ذکر سره بولې کوی.نو هغه ته به هلك ونیلې شی.او د ښځو پشان اندام به عیب شمارلې کیږی.او که د ښځو پشان شرمګاه سره بولې کوی.نو هغه ته به انجلی ونیلې شی.او ذکر به داسې شمارلې کیږی.لکه چې د یوکس شپږ ګوتې وی.چه په هغې کې یوه زیاتی وی.اوس مرغینانی رحمه الله ددې په دلیل کې یو حدیث پیش کوی.

جناب رسول الله ﷺ نه ددې په اړه کې پوښتنه کړې شوې وه.چه داسې کس ته به میراث څنګه ورکولې شی.چې د هلك حکم جلا دې.او د انجلی حکم جلا دې.اوس به دې کوم یو ګڼرلې شی.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه د کوم خائې نه بولې کوی.د هغې اعتبار اوکړئ.یعنی که هغه ذکر سره بولې کوی.نو د هلکانو میراث به ملاویږی.او که په فرج سره بولې کوی.نو د جینکو میراث به ملاویږی.دغه ډول د حضرت علی رضی الله عنه نه هم دا نقل دی.او دا اثر عبدالرزاق رحمه الله په خپل تصنیف کې د فرائضو په بیان کې کړې دې.بیا چې هغه د کوم خائې نه بولې کوی.ددې خبرې دلیل دې.چه اصل اندام هم دا دې.او هم دا صحیح اندام دې.او دوهم دعیب پشان دې.

**که خنثی په دواړو لارو متیازې کوی نو څه حکم دې ؟**

| | |
|---|---|
| **وَإِنْ بَالَ مِنْهُمَا فَالْحُكْمُ لِلْأَسْبَقِ** اوکه دا ماشوم په دې دواړو سره بولې کوی.نو حکم د مخکنی لپاره دې **لِأَنَّ ذٰلِكَ دَلَالَةٌ أُخْرَىٰ عَلَىٰ أَنَّهُ هُوَ الْعُضْوُ الْأَصْلِيُّ** خکه چې دا دوهم دلیل دې.په دې خبره چې هم دا اصلی اندام دې. | |

**تشریح:-** که دا ماشوم داسې وی.چه دا ذکر سره هم بولې کوی.او فرج سره هم کوی.نو دا به کتلې شی.چه بولې مخکې د کوم خائې نه راوخی.دکوم خائې نه چې بولې مخکې راوخی.نو هم د هغې حکم به په ده باندې جاری کولې شی.ګویا دا وړاندې کیدل د ترجیح د اسبابو څنې دی.خکه چې بولې به هغه اندام اړخ ته وړاندې والې کوی.کومه چې اصی نالې ده.او ددې نه روسته د متیازو د دوهم خائې نه وتل، دا د مرض علامت دې.چه دې اړخ ته به توجه نشی ورکولې.او د کوم خائې نه چې بولې مخکې راوتلې دی.د هغې هیڅ معارض نشته.نو هم دې ته به د متیازو اصلی نالئ ونیلې شی.هم دا مرغینانی رحمه الله اوفرمائیل.چه د متیازو وړاندې کیدل دا دوهم دلیل دې.چه په وړاندې کیدو کې اصلی اندام دې.

**که دواړه اندامونه په مخکښې کیدو کښې یوځائې وی نو څه حکم دې ؟**

| | |
|---|---|
| **وَإِنْ كَانَا فِي السَّبْقِ عَلَى السَّوَاءِ** وکه دا دواړه اندامونه په وړاندې والی کې برابر وی **فَلَا مُعْتَبَرَ بِالْكَثْرَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د متیازو د زیاتوالی هیڅ اعتبار نشی کولې **وَقَالَا: يُنْسَبُ إِلَىٰ أَكْثَرِهِمَا بَوْلًا** و صاحبینو رحمهما الله فرمانیلی دی.چه ماشوم به دې دواړو اندامونو کې زیاتو متیازو والا اندام اړخ ته منسوب کولای شی **لِأَنَّهُ عَلَامَةُ قُوَّةِ ذٰلِكَ الْعُضْوِ وَكَوْنُهُ عُضْوًا أَصْلِيًّا** خکه چې دا ددې اندام د قوت علامت دې.او ددې د اصلی اندام کیدو علامت دې **وَلِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ فِي أُصُولِ الشَّرْعِ** او خکه چې اکثر لپاره د کل حکم دې.په اصولو د شریعت کې **فَيَتَرَجَّحُ بِالْكَثْرَةِ** نو د کثرت په وجه ترجیح ور کولای شی **وَلَهُ أَنَّ كَثْرَةَ الْخُرُوجِ لَيْسَ يَدُلُّ عَلَى الْقُوَّةِ** او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د خروج کثرت په قوت باندې دلالت نه کوی **لِأَنَّهُ قَدْ يَكُونُ لِاتِّسَاعٍ فِي أَحَدِهِمَا** خکه چې زیاتوالې کله کله د کلاویدو په وجه کیږی.په دوی دواړو کې په یو کې **وَضِيقٍ فِي الْآخَرِ** او په دوهم کې د تنګوالی په وجه **وَإِنْ كَانَ يَخْرُجُ مِنْهُمَا عَلَى السَّوَاءِ** او که بولې ددې دواړو نه برابر راوخی **فَهُوَ مُشْكِلٌ بِالْاِتِّفَاقِ** نو دا ماشوم بالاتفاق خنثی مشکل دې **لِأَنَّهُ لَا مُرَجِّحَ** خکه چې هیڅ مرجح نشته. | |

**تشریح:-** که دا ماشوم داسې وی.چه دده د دواړو اندامونو نه بولې په یو خائې راوخی.نو اوس هیڅ وجه د ترجیح نشته.نو که بل څه علامت د ترجیح نه وی.نو ده ته به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خنثی مشکل ونیلې شی.خو د صاحبینو رحمهما الله په نیز کله چې وړاندې کیدو کې برابری وی.نو بیا به ددې نه روستو د متیازو کم والی او زیاتوالی ته کتلې شی.یعنی دا به کتلې شی.چه زیاتې بولې د ذکر نه راوخی.اوکه د فرج نه، د کوم خائې نه چې زیاتې بولې راوخی.هم هغه حکم به په دې باندې جاری کولې شی. صاحبینو رحمهما الله په دلیل کې فرمائیلی دی.چه ،، للاکثر حکم



الکل،، مشهوره قاعده ده.نو د کثرت په وجه به ترجیح حاصل وی.او د کوم اندام نه چې زیاتې بولې راوخی هغه ددې خبرې دلیل دې.چه هم دغه اندام زیات قوی او مضبوط دې.او هم دا اصلی اندام دې.

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمانیلی دی.چه د متیازو په زیاتوالی او کموالی باندې به مدار نه ایخودې کیږی.خکه چې د قلت او کثرت مدار په دې باندې نه دې.بلکه کله داسې هم کیږی.چه یو اندام کلاو دې.او دوهم تنګ دې.نو کوم چې کلاو دې.د هغې خخه به بولې زیاتې راوخی.او د دویمې خخه به کمې راوخی.او د سړی د ذکر سوړه تنګه وی.او د ښځې شرمګاه کلاو وی.نو بولې به دښځې د شرمګاه نه زیاتې راوخی. بهرحال که قلت او کثرت کې هم برابری او مساوات وی.نو اوس حضرات صاحبین رحمهما الله هم متفق دی چه دا خنثی مشکل دې.خکه چې دلته هیڅ مرجح نه دې موجود شوې.

**خنثی چې بالغ شی نو په علامتونو ښکاره کیدو سره به حکم لګولې شی**

| | |
|---|---|
| **قَالَ** امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل **وَإِذَا بَلَغَ الْخُنْثَىٰ وَخَرَجَتْ لَهُ اللِّحْيَةُ أَوْ وَصَلَ إِلَى النِّسَاءِ فَهُوَ رَجُلٌ** و کله چې خنثی بالغ شی.او دده ګیره راوخی.یا دې ښځو اړخ ته اورسیږی.نو دا سړې دې **وَكَذَا إِذَا احْتَلَمَ كَمَا يَحْتَلِمُ الرَّجُلُ أَوْ كَانَ لَهُ ثَدْيٌ مُسْتَوٍ** او هم دغه ډول کله چې ده ته د سړی پشان احتلام اوشی.یا دده سینه برابر وی. **لِأَنَّ هٰذِهِ مِنْ عَلَامَاتِ الذُّكْرَانِ** خکه چې دا د سړو د علاماتو څنې دی. | |

**حل اللغة°** ① **احتلم:** شیطانی خوب اووینی، او په هغې کې ئې انزال اوشی ② **الذکران:** جمع د مذکره﴾

**تشریح:-** دا واړه تقریر هغه وخت دې.کله چې خنثی ماشوم وی.ګنی د بلوغ علامتونه به په عامه توګه (عام طور) باندې د ترجیح لپاره موجود وی.نو ددغه علامتونو مطابق به په ده باندې حکم جاری کولې شی.نوکه د بلوغ نه روستو دده ګیره راووتله.یا ښځو سره د وطی کاوه قدرت حاصل شو.یا د سړو پشان ده ته احتلام اوشو.یا دده سینه دسړو د سینې پشان برابر ده.بهر ته نه ده راوتلې.نو چونکه دا واړه د سړو علامتونه دی.نو دې به سړې شمارلې کیږی.

**د ښځې علامتونه ښکاره شو نو د ښځې حکم به لګولې شی**

| | |
|---|---|
| **وَلَوْ ظَهَرَ لَهُ ثَدْيٌ كَثَدْيِ الْمَرْأَةِ أَوْ نَزَلَ لَهُ لَبَنٌ فِي ثَدْيِهِ أَوْ حَاضَ أَوْ حَبِلَ أَوْ أَمْكَنَ الْوُصُولُ إِلَيْهِ مِنَ الْفَرْجِ فَهُوَ امْرَأَةٌ** وکه د ښځې پشان ئې تهیونه راښکاره شو.یا دده په سینو کې شیدې راغلل.یا دې ته حیض راغې. یا ددې حمل اوشو.یا ددې شرمګاه ته رسیدل ممکن شو.نو دا ښځه ده **لِأَنَّ هٰذِهِ مِنْ عَلَامَاتِ النِّسَاءِ** خکه چې دا د ښځو د علاماتو څنې دی **وَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ إِحْدَىٰ هٰذِهِ الْعَلَامَاتِ فَهُوَ خُنْثَىٰ مُشْكِلٌ** اوکه ددې علامتونو نه هیڅ یو ښکاره نشو.نودا خنثی مشکل دې **وَكَذَا إِذَا تَعَارَضَتْ هٰذِهِ الْمَعَالِمُ** او هم دغه ډول کله چې دا علامتونه متعارض شی. | |

**حل اللغة°** ① **ثدی:** سینه ② **حبل:** امید ، حمل﴾

**تشریح:-** اوکه څه داسې علامت ښکاره شو.چه دهغې په وجه ده ته ښځه ونیلې کیدای شی.نو ښځه به شمارلې شی.مثلاً دده تهیونه د ښځو د تهیونو پشان بهرته راوپړسیدل.یا دده په تهیونو کې شیدې راغلل. یا ده ته حیض راغې.یا ده ته حمل اوشو.یا دده په شرمګاه کې وطی کول ممکن شو.نو دا ښځه ده.خکه چې دا واړه کوم چې ذکر شو.د ښځو د علاماتو څنې دی.اوکه د بلوغ نه روستو داسې څه راجح علامت ښکاره نشو.یا متعارض علامات ښکاره شو.مثلاً تهیونه ئې هم راوپړسیدل.او ګیره ئې هم راغلله.وغیره وغیره.نو اوس به ده ته بالاتفاق خنثی مشکل ونیلې شی.

## فَصْلٌ فِي أَحْكَامِهِ

ژباړه:- (دا) فصل د خنثی د احکامو (په بیان کې) دې. (؟)جاری

**د خنثی مشکل د احکامو بیان او یوه قاعده کلیه**

الْأَصْلُ فِي الْخُنْثَى الْمُشْكِلِ أَنْ يُؤْخَذَ فِيهِ بِالْأَحْوَطِ وَالْأَوْثَقِ فِي أُمُورِ الدِّينِ په خنثى مشكل كي اصل دا دي.چه په ده كي به د دين د امورو په اړه كي احوط او زيات اعتمادى باندي عمل كولاى شي وَأَنْ لَا يُحْكَمَ بِثُبُوتِ حُكْمٍ وَقَعَ الشَّكُّ فِي ثُبُوتِهِ او د داسي حكم د ثبوت حكم به نشي وركولي.چه هغي سره ثبوت كي شك واقع شي.

**حل اللغة:** ① **الاحوط:** زيات احتياط ② **اوثق:** زيات قوى ﴾

**تشريح:-** په دي فصل كي مرغيناني رحمه الله د خنثى مشكل احكام بيانوى.دټولو نه مخكي په دي كي يوه قاعده كليه بيان كړي شوي ده.چه د خنثى په اړه كي دا اصول په ذهن كي كينول پكار دى.چه په ده كي د دين په امورو كي احوط او اوثق او په مضبوط صورت باندي عمل اوكړي شي.او كوم حكم چي داسي وى.چه دهغي په ثبوت كي اوس هم شك وى.د هغي د ثبوت حكم به نشي جارى كولي.

### د جماعت په مونځ كښي به خنثى كوم ځائي اودريږي؟

قَالَ امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل وَإِذَا وَقَفَ خَلْفَ الْإِمَامِ او كله چي خنثى د امام شاته اودريږى قَامَ بَيْنَ صَفِّ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ نو د سړو او د ښځو د صف په منځ كي به اودريږى.ددي خبري د احتمال په وجه چي ( هسي نه) دا ښځه وى فَلَا يَتَخَلَّلُ الرِّجَالَ كَيْ لَا يُفْسِدَ صَلَاتَهُمْ نو چي د سړو په منځ كي اونه دريږى.چه د سړو لمونځ فاسد نشي وَلَا النِّسَاءَ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ اونه به د ښځو په منځ كي اودريږى.ددي خبري د احتمال په وجه چي ( هسي نه) دا سړي وى فَتَفْسُدُ صَلَاتُهُ نو دده لمونځ به فاسد شي.

**تشريح:-** په جماعت سره د لمونځ كاوه په وخت به خنثى كوم ځائي اودريږى؟ نو وي فرمائيل.چه ده له پكار دى.چه د سړو او د ښځو د صف په منځ كي اودريږى.ځكه كيداي شي.چه دا ښځه وى.اوكه دا په واقع كي ښځه وى.نو دده د سړو په منځ كي د اودريدو په صورت كي كله چي امام ددي د امامت نيت كړي وى.نو دهغه سړو لمونځ به فاسديږى.كوم چي ددي ښى او چپه اړخ ته دى.او كوم چي ددي شاته دى. دده په مقابل كي .نو اګرچه دلته دا ښځه نه ده.خود ښځي كيدو احتمال شته.نو په احوط طريقه باندي به عمل كولي شي.او نه به د ښځو په صف كي اودريږى.ځكه كيداي شي.چه دا سړي وى.اوكه دا واقعى سړي وي.او د ښځو په صف كي ودريدلي وي.نو ددي لمونځ به فاسد كيدو.نو احوط او اعتمادى طريقه هم دا ده.كومه چي بيان كړي شوه.

### د ښځو په صف كښي د خنثى مشكل د اودريدو حكم

فَإِنْ قَامَ فِي صَفِّ النِّسَاءِ نو كه خنثى د ښځو په صف كي اودريدو فَأَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُعِيدَ صَلَاتَهُ لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ رَجُلٌ نو زما په نيز خوښه خبره دا ده.چه خنثى د خپل لمونځ اعاده اوكړى.دده د سړي كيدو د احتمال په وجه وَإِنْ قَامَ فِي صَفِّ الرِّجَالِ فَصَلَاتُهُ تَامَّةٌ اوكه دي د سړو په صف كي اودريدو.نو دده لمونځ پوره شو وَيُعِيدُ الَّذِي عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ وَالَّذِي خَلْفَهُ بِحِذَائِهِ صَلَاتَهُمْ احْتِيَاطًا لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ او هغه خلګ به د خپلو مونځونو اعاده كوى.كوم چي دده ښى او چپه اړخ ته دى.او دده مقابل شاته دى.د احتياط په وجه، ددي خبري د احتمال په وجه چي دا ښځه وى.

**تشريح:-** كه خنثى مشكل د ښځو په صف كي اودريږى.نو ښه خبره دا ده.چه د خپل لمونځ اعاده اوكړى. ځكه چي دده د سړي كيدو احتمال دي.اوكه دي د سړو په صف كي اودريدو.نو دده لمونځ پوره شو.خو احتياطاً دي هغه خلګ د خپلو مونځونو اعاده اوكړى.كوم چي دده ښى او چپه اړخ ته يا بالمقابل دده شاته ولاړ دى.ځكه چي دده د ښځه كيدو احتمال دي.

### د بالغ خنثى د مونځ بيان

قَالَ امام محمد رحمه الله په مبسوط كي فرمائيلي دي وَأَحَبُّ إِلَيْنَا أَنْ يُصَلِّيَ بِقِنَاعٍ او زما په نيز خوښ امر دا دي.چه خنثى لوكښت سره لمونځ اوكړى لِأَنَّهُ يُحْتَمَلُ أَنَّهُ امْرَأَةٌ ځكه احتمال شته.چه دا ښځه وى وَيَجْلِسُ فِي صَلَاتِهِ جُلُوسَ الْمَرْأَةِ



او خنثى دي پخپل لمونځ كي د ښځو پشان كښيني لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ رَجُلًا فَقَدْ تَرَكَ سُنَّةً ځكه كه دا ښځه وى.نو ده به سنت پريښودي دي وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْجُمْلَةِ او دا سنت پريښول في الجمله جائز دى وَإِنْ كَانَ امْرَأَةً فَقَدِ ارْتَكَبَ مَكْرُوهًا اوكه دا ښځه وى.نو دي د مكروه امر ارتكاب كړي دي لِأَنَّ السَّتْرَ عَلَى النِّسَاءِ وَاجِبٌ مَا أَمْكَنَ ځكه چي په ښځو باندي ستر واجب دي.خومره پوري چي ممكنه وى وَإِنْ صَلَّى بِغَيْرِ قِنَاعٍ أَمَرْتُهُ أَنْ يُعِيدَ او كه دي د لوكښت نه بغير لمونځ اوكړو.نو زه به دي ته حكم وركوم.چه اعاده اوكړى.ددي خبري د احتمال په وجه چي دا ښځه وى لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ امْرَأَةٌ وَهُوَ عَلَى الِاسْتِحْبَابِ وَإِنْ لَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ او دا ( د واپس ادا كاوه حكم) مستحب دي.اوكه دي اعاده اونكړله.نو ددي لمونځ ددي لپاره كافى دي.

**حل اللغة:** ① **قناع:** لوپټه، پټو (څادر) ﴾

**تشريح:-** كه خنثى بالغ وى.نو ددي لپاره واجب دي.چه دا پټو (څادر) سره لمونځ اوكړى.اوكه د پټو (څادر) نه ني بغير لمونځ اوكړو.نو اعاده به واجب وى.خو كه خنثى بالغ شوي نه وى.بلكه مراهق ( بلوغ ته نيږدي) وى.نو دده حكم دا دي.كوم چي دلته ذكر دي.يعنى امام محمد رحمه الله په مبسوط كي دده په اړه كي فرمائيلي دى.چونكه دده د ښځه كيدو احتمال شته.په دي وجه خوښه خبره دا ده.چه دا پټو (څادر) سره لمونځ اوكړى.او كله چي په لمونځ كي كيني.نو د ښځو پشان كيني.ځكه كه دا سړي وى.نو ده د كيناستلو يو سنت پريښودو.او سنت پريښول آسان دى.د مكروه تحريمي مرتكب كيدو نه.او د ښځو د سړو پشان كښينستل مكروه تحريمي دى.ځكه په ښځو باندي واجب دى.چه تركومه پوري ممكنه وى.ستر( پرده) اختيار كړى.او د ښځو پشان كيناستلو كي زيات ستر دى.نو ددي طريقي اختيارول واجب دى.اود واجبو پريښول مكروه تحريمي دى.اوكه ده بغير د پټو (څادر) نه لمونځ اوكړو.نو استحباباً به ده ته د لمونځ راګرځولو حكم وركولي شى.ځكه چي دده د ښځه كيدو احتمال دي.او كه ده اعاده اونكړله.نو كوم لمونځ ني چي ادا كړي دي.هغه كافى دي.

تنبيه۞ خو دا حكم د مراهق دي.( كوم چي بلوغ ته نږدي وى).خو كه خنثى بالغ وى.نو په هغه باندي اعاده د لمونځ واجب ده.

### د خنثى مشكل د ختني كولو مسئله

وَتُبْتَاعُ لَهُ أَمَةٌ تَخْتِنُهُ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ او دده لپاره يوه وينځه واخستلي شي.چه هغه دده ختنه اوكړى.كه دده لپاره مال وى لِأَنَّهُ يُبَاحُ لِمَمْلُوكَتِهِ النَّظَرُ إِلَيْهِ رَجُلًا كَانَ أَوِ امْرَأَةً ځكه چي دده د مملوكي لپاره جائز دى.ده اړخ ته كتل.چه دا سړي وى او كه ښځه وى وَيُكْرَهُ أَنْ يَخْتِنَهُ رَجُلٌ او مكروه دى.چه دده ختنه څوك سړي اوكړى لِأَنَّهُ عَسَاهُ أُنْثَى ځكه كيداي شى.چه دا ښځه وى أَوْ تَخْتِنَهُ امْرَأَةٌ يا دده ختنه څوك ښځه اوكړى لِأَنَّهُ لَعَلَّهُ رَجُلٌ ځكه كيداي شى.چه دا سړي وى فَكَانَ الِاحْتِيَاطُ فِيمَا قُلْنَا نو احتياط هم په دي كي دي.كوم چي موږ بيان كړي دي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ اوكه دده لپاره مال نه وى ابْتَاعَ لَهُ الْإِمَامُ أَمَةً مِنْ بَيْتِ الْمَالِ نو امام دي دده لپاره د بيت المال نه يوه وينځه واخلى لِأَنَّهُ أُعِدَّ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِينَ ځكه چي بيت المال د مسلمانانو د ضرورتونو لپاره دي فَإِذَا خَتَنَتْهُ بَاعَهَا نو كله چي هغي دده ختنه اوكړله.نوامام دي دا وپلورى وَرَدَّ ثَمَنَهَا فِي بَيْتِ الْمَالِ لِوُقُوعِ الِاسْتِغْنَاءِ عَنْهَا او ددي ثمن دي په بيت المال كي واپس كړى.د وينځي نه د استغناء واقع كيدو په وجه.( چي اوس وينځي ددي هيڅ اړتيا پاتي نشو).

**حل اللغة:** ① **تختن:** سنت كول، ختنه كول ② **استغناء:** مستغنى كيدل، بي پرواه كيدل﴾

**تشريح:-** اوكه د خنثى مشكل ختنه نه وى شوي.او كه دا مراهق يا بالغ شوي دي.نو چونكه دده ختنه نه څوك سړي كولي شى.اونه ښځه.ځكه چي دا مكروه دى.ځكه كيداي شى.چه دا سړي وى.او كيداي شى چي دا ښځه وى.نوكه دده سره مال وى.نو يوه وينځه دي واخستلي شى. چي هغه دده ختنه اوكړى.اوكه دده پلار سره مال موجود وى.نو دهغي نه دي يوه وينځه واخستلي شى.او دغه وينځه دي دده ختنه اوكړى.ځكه چي دغه وينځه دده مملوكه ده.اوكه دا سړي وى.نو دده مملوكي لپاره دده اړخ ته كتل جائز دى.او كه دا ښځه وى.نو دده مملوكه د اړتيا او

عذر په وخت دده ارخ ته کتلې شي.

اوکه دده سره یا دده پلار سره مال نه وی.نو بیا دې امام د بیت المال د مال نه یوه وینځه واخلی.چه هغه دده ختنه اوکړی.او کله چې هغه ختنه اوکړی.نو امام دې وینځه وپلوری .او ددې ثمن دې بیت المال ته واپس کړی.ځکه چې اوس ددې وینځې نه استغناء شوې ده.او د بیت المال نه د وینځې اخستلو حکم ځکه دې.چه بیت المال د مسلمانانو د حاجتونو لپاره جوړ کړې شوې دې.

## خنثی مشکل لپاره د زیوراتو او د ښځو د نورو احکامو بیان

وَيُكْرَهُ لَهُ فِي حَيَاتِهِ لُبْسُ الْحُلِيِّ وَالْحَرِيْرِ او خنثی مشکل لپاره پخپل ژوند کې زیورات او ریښم اغوستل حرام دی وَأَنْ يَتَكَشَّفَ قُدَّامَ الرِّجَالِ أَوْقُدَّامَ النِّسَاءِ او د سړو یا ښځو په وړاندې بربنډېدل (هم حرام دی). وَأَنْ يَخْلُوَبِهِ غَيْرُمَحْرَمٍ مِنْ رَجُلٍ أَوِامْرَأَةٍ او (حرام دی) دا چې دده سره سړې یا ښځه چې غیر محرم وی.خلوت اوکړی. وَأَنْ يُسَافِرَمِنْ غَيْرِمَحْرَمٍ مِنَ الرِّجَالِ تَوَقِّيًا عَنْ احْتِمَالِ الْمُحَرَّمِ یا دا د غیر محرم سړو سره سفر اوکړی.د حرام د احتمال نه بچ کیدو وَإِنْ أَحْرَمَ وَقَدْ رَاهَقَ دپاره، اوکه ده احرام اوتړلو .حالانکه هغه مراهق (قریب البلوغ) دې قَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: لَاعِلْمَ لِي فِي لِبَاسِهِ لِأَنَّهُ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیل.چه ماته دده د کپړو علم نشته آن كَانَ ذَكَرًا يُكْرَهُ لَهُ لُبْسُ الْمَخِيْطِ ځکه که دا هلك وی.نو دده لپاره ګنډلې شوې کپړه اغوستل مکروه ده وَإِنْ كَانَ أُنْثَى يُكْرَهُ لَهُ تَرْكُهُ او که دا ښځه ده.نو دده لپاره ددې (ګنډلو شوو کپړو) پریښول مکروه دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَلْبَسُ لِبَاسَ الْمَرْأَةِ(١) او امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه دی به دښځو کپړې اچوی لِأَنَّ تَرْكَ لُبْسِ الْمَخِيْطِ وَهُوَامْرَأَةٌ أَفْحَشُ مِنْ لُبْسِهِ ځکه چې د ګنډلو شوو کپړو پریخودل، او حال دا چې دا ښځه وی.دده د ګنډلو شوو کپړو اغوستلو نه افحش دی وَهُوَرَجُلٌ وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ او حال دا چې دا سړې وی.او په باندې هیڅ شې نشته. لِأَنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ ځکه چې دې بالغ شوې نه دې.

حل اللغة: ① قدام: وړاندې ② راهق: بلوغ ته نزدې شو ③ المخيط: ګنړلې شوې﴾

تشریح:- دخنثی مشکل لپاره زیورات او ریښم اغوستل مکروه دی.او خنثی مشکل لپاره (دا هم) مکروه دی.چه هغه د سړو یا ښځو په وړاندې بدن بربنډ کړی.او دده لپاره غیرمحرم سړو یا غیرمحرم ښځو سره خلوت کول هم مکروه دی.او دده لپاره غیر محرم سړو سره سفرکول مکروه دی.چه د حرام نه پرهیز اوشي.اوکه خنثی احرام اوتړلو.او دې اوس لا مراهق دې.بالغ شوې نه دې.بلکه بلوغ ته نژدې دې.نو امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی.چه ماته دده د کپړو علم نشته.ځکه که دې هلك وی.نو دده لپاره ګنډلې شوې کپړه اغوستل مکروه دی.اوکه دا انجلی ده.نو دده لپاره دا کپړې پریښول مکروه دی.یعنی امام ابویوسف رحمه الله په دې کې هیڅ فیصله نه ده کړې.او امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه خنثی مشکل لپاره به د ښځو کپړې وی.ځکه که دې سړې وی.او په احرام کې وی.نو ګنډلې شوې کپړه ممنوع ده.خو سړی لپاره ګنډلې شوې کپړه اغوستل دومره افحش (او بې حیا) نه دی.څومره افحش چې دا دی.چه ښځه ناګنډلې شوې کپړې واغوندی.خو ددې اغوستلو په سبب به د بالغ کیدو په وجه په ده باندې هیڅ ضمان واجب نه وی.

## د بچي په پیدا کیدو باندې د معلق طلاق او آزادۍ حکم، که ب چې خنثی مشکل وی!

وَمَنْ حَلَفَ بِطَلَاقٍ أَوْعَتَاقٍ او کوم کس چې د طلاق یا عتاق (آزادۍ) قسم اوخوړلو آن كَانَ أَوَّلُ وَلَدٍ تَلِدِيْنَهُ غُلَامًا چې کوم بچې ته مخکې اوزیګوې.که هغه هلك وی فَوَلَدَتْ خُنْثَى نو هغه خنثی راوړلو لَمْ يَقَعْ حَتَّى يَسْتَبِيْنَ أَمْرُ الْخُنْثَى نو طلاق یا عتاق به نه واقع کیږی.تردې چې د خنثی امر واضح شی لِأَنَّ الْحِنْثَ لَايَثْبُتُ بِالشَّكِّ ځکه چې حانث کیدل دشك په وجه نه ثابتیږی.

تشریح:- زید خپلې ښځې یا خپلې وینځې ته اوونیل.که ستا رومبې بچې هلك وی.نو تاته طلاق دې.یا ته آزاد یې.او

(١) القول الراجح هوهذا قول محمد رحمه الله كذا في القول الراجح (٣٩٠١٢)-



کوم بچې چې پیدا شو.هغه خنثی مشکل دې.چه دده اوس سړې یا ښځه کیدل واضح شوی نه دی.نو طلاق یا عتاق به نه واقع کیږی.ځکه چې دده په هلك کیدو کې شك دې.او د شك په وجه سړې نه حانث کیږی.

## په سړي یا ښځه کیدو کښې د شك حکم

وَلَوْقَالَ كُلُّ عَبْدٍلِي حُرٌّ او که سړی اوونیل.چه زما هر غلام آزاد دې أَوْقَالَ كُلُّ أَمَةٍ لِي حُرَّةٌ یا ئې اوونیل.چه زما هره وینځه آزاده ده وَلَهُ مَمْلُوْكٌ خُنْثَى او دده یو مملوك دې.چه هغه خنثی دې لَمْ يُعْتَقْ حَتَّى يَسْتَبِيْنَ أَمْرُهُ لِمَا قُلْنَا نو دا خنثی به نه آزادیږی.تردې چې دده امر ښکاره شی.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې وان وَإِنْ قَالَ الْقَوْلَيْنِ جَمِيْعًا او که ده دواړه خبرې په یو ځاني اوکړلې عَتَقَ لِلتَّيَقُّنِ بِأَحَدِ الْوَصْفَيْنِ نو آزاد به وی.په دوو وصفونو کې د یو د یقیني کیدو په وجه آزاد لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُهْمَلٍ ځکه چې دا (خنثی) ددې نه خالي نه دې

تشریح:- د زید یو مملوك دې.چه خنثی مشکل دې.چه دده سړې یا ښځه کیدل واضح نه دې.او زید داسې اوونیل.چه زما هر غلام آزاد دې.نو دا خنثی به نه آزادیږی.ځکه چې دده غلام کیدل مشکوك دی.دغه ډول که زید داسې اوونیل.چه زما هره وینځه آزاده ده.نو دې به اوس هم نه آزادیږی.ځکه چې دده وینځه کیدل مشکوك دی.خو که مولی داسې اوونیل.چه زما هر غلام او وینځه آزاده ده.نو اوس به مملوك خنثی آزاد وی.ځکه چې خنثی به په دې دوو وصفونو کې د یو نه خالي نه وی.یعنی دا به یا سړې وی.یا به ښځه وی.اګرچه زموږ په وړاندې په دې کې یو هم نه دې ښکاره شوې.خو د الله په نیز دې په دې کې یو دې.او په تفسیر جلالین کې دی. ﴿والخنثى المشكل عندنا ذكر او انثى عندالله﴾ یعنی هغه خنثی کوم چې زموږ په نیز مشکل دې هغه د الله تعالی په نیز یا سړې دې یا ښځه ده.

## خنثی د قول حکم

وَإِنْ قَالَ الْخُنْثَى أَنَارَجُلٌ أَوْأَنَا امْرَأَةٌ لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ إِذَاكَانَ مُشْكِلًا او که خنثی اوونیل.چه زه سړې یم.یا زه ښځه یم.نو دده قول به نشی قبلولې.کله چې دې مشکل وی. لِأَنَّهُ دَعْوَى يُخَالِفُ قَضِيَّةَ الدَّلِيْلِ ځکه چې دا دعوه د دلیل د تقاضا خلاف ده وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُشْكِلًا او که هغه مشکل نه وی يَنْبَغِي أَنْ يُقْبَلَ قَوْلُهُ نو مناسب دا ده.چه دده قول قبول کړې شی لِأَنَّهُ أَعْلَمُ بِحَالِهِ مِنْ غَيْرِهِ ځکه چې هغه د خپل حال دځان نه د علاوه نه زیات خبر دې.

تشریح:- که د یو خنثی مشکل کیدل ښکاره شی.او دا خنثی خپل ځان ته سړې یا ښځه اووائی.نو دده دا دعوه به نشی قبلولې.ځکه دا داسې دعوه ده.چه د دلیل خلاف ده.بلکه دلیل ددې د خلاف تقاضا کوی.ځکه چې هرکله د مخکې نه دده خنثی مشکل کیدل یقیني شوی دی.نو دا صرف دده دعوه ده.چه دا ددې تیرشوی دلیل خلاف ده.په دې وجه به دا دعوه نشی قبلولې.او که د علاماتو د تعارض نه کیدو په وجه دده خنثی مشکل کیدل ښکاره او معلوم شوی نه وو.چه ده دعوه اوکړله.چه زه سړې یم.یا ښځه یم.نو دده قول به قبلولې شی.ځکه چې دلته دده دعوه د هیڅ دلیل خلاف نه ده.او دا خنثی پخپل حال کې امین دې.او دده حال دده نه زیات هیڅوك نه پیژنی.په دې وجه به دده دعوه قبلولې شی.

## که خنثی مشکل وفات شی نو ده ته به غسل څوك ورکوی!

وَإِنْ مَاتَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَبِيْنَ أَمْرُهُ او که خنثی مړ شی.دده د امر واضح کیدو نه وړاندې لَمْ يُغَسِّلْهُ رَجُلٌ وَلَاامْرَأَةٌ نو ده ته به نه سړې غسل ورکوی.او نه ښځه لِأَنَّ حِلَّ الْغُسْلِ غَيْرُثَابِتٍ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ ځکه چې دغسل حلال کیدل، ثابت نه دی.د سړو او دښځو په منځ کې فَيَتَوَقَّى لِاحْتِمَالِ الْحُرْمَةِ نو ددې ځخه به بچ کیږی.د حرمت د احتمال په وجه وَيُيَمَّمُ بِالصَّعِيْدِ لِتَعَذُّرِ الْغُسْلِ او تیمم به کولای شی په خاورې سره، د غسل د متعذر کیدو په وجه.

حل اللغة: ① صعید: د زمکې مخ ② یتوقی: ساتنه کوی، ځان ساتی﴾

تشریح:- دیو خنثی مشکل وفات اوشو.چه دده د سړی یا د ښځه کیدو هیڅ انکشاف نه وو شوې.بلکه اشکال پخپل حال پاته وو.نو ده ته به غسل څوك ورکوی؟ نو وې فرمائیل.چه ده ته به نه سړې غسل ورکوی.او نه ښځې، ځکه

کیداې شی.چه دا سړې وی.او کیداې شی.چه دا ښځه وی.او دا حرام دی.چه سړې ښځې ته، یا ښځه سړی ته غسل ورکړی.او دلته ددې احتمال موجود دې.نو ده ته به غسل هیڅ څوک نه ورکوی.البته ده ته به په پاکه خاوره تیمم ورکولې شی.

تنبیه◎ دلته به دده لپاره وینځه نشی اخستلې.چه هغه ده ته غسل ورکړی.لکه څنګه چې د ختنې کاوه لپاره وینځه اخستلې شوې وه.وجه د توپیر دا ده.چه دلته کله خنثی مړ شو.نو اوس په ده کې د مالکیت صفت ختم شوې دې.خکه چې مرګ د مالکیت منافی دې.یعنی مالکیت جدیده، او د ختنې په صورت کې خنثی ژوندې دې.نو دغه وینځه دده په ملکیت کې داخلیږی.

## د مړ سړی یا ښځې دغسل په وخت د بالغ خنثی مشکل حاضریدل ممنوع دی

وَلَا يَحْضُرُ اِنْ كَانَ مُرَاهِقًا غُسْلَ رَجُلٍ وَلَا امْرَأَةٍ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ ذَكَرٌ اَوْ اُنْثٰى اوکه خنثی مراهق وی.نو د سړی یا د ښځې په غسل کې به نه حاضریږی.ددې خبرې د احتمال په وجه، چې دا سړې وی.یا ښځه وی وَاِنْ سُجِّيَ قَبْرُهُ فَهُوَ اَحَبُّ اوکه دده قبر پټولې شی.نو دا زیاته خوښه ده لِاَنَّهُ اِنْ كَانَ اُنْثٰى خکه که دا ښځه وی يُقِيمُوا وَاجِبًا نو موږ یو واجب ادا کړو وَاِنْ كَانَ ذَكَرًا اوکه دا سړې وی فَالتَّسْجِيَةُ لَا تَضُرُّهُ نو پواړه دده مضر نه دی.

حل اللغة: ① مراهق: قریب البلوغ ② سجی: قبر پټ کړې شی،

تشریح:- که خنثی مشکل بالغ یا مراهق (قریب البلوغ) وی.او یو مړ سړی یا ښځې ته غسل ورکولې شی.نو دې هیڅ چرته نشی حاضریدې.خکه چې دده د سړی او ښځه کیدو دواړو احتمال شته.د ښځو قبرونه پټولې شی.نو آیا د خنثی مشکل قبر به هم پټولې شی؟ نو وې فرمائیل.چه او ددې پواړه هم خوښ امر دې.خکه که دا ښځه وی.نو موږ واجب ادا کړو.اوکه دا سړې وی.نو دده په قبر پټولو سره هیڅ نقصان نشته.خکه که څه عذر وی.مثلاً سخته ګرمی وی.یا سخته یخنی وی.یا باران وی.نو د سړی د قبر پټولو کې هیڅ باک نشته.او دده خنثی مشکل کیدل ددې ذکر شوو عذرونو نه زیات عذر دې.

## د خنثی مشکل د جنازې احکام

وَاِذَا مَاتَ او کله چې خنثی مشکل مړ شی فَصُلِّيَ عَلَيْهِ وَعَلٰى رَجُلٍ وَامْرَأَةٍ نو په ده باندې، او په سړی باندې، او په ښځه باندې به لمونځ کولای شی وُضِعَ الرَّجُلُ مِمَّا يَلِي الْاِمَامَ وَالْخُنْثٰى خَلْفَهُ وَالْمَرْأَةُ خَلْفَ الْخُنْثٰى نو سړې به امام سره متصل ایخودې شی.او خنثی به هغه پسې شاته، او ښځه به خنثی پسې شاته فَيُؤَخَّرُ عَنِ الرَّجُلِ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ امْرَأَةٌ، نو خنثی به د سړی نه روستو ایخودې شی.ددې خبرې د احتمال په وجه، چې (کیداې شی) دا ښځه وی وَيُقَدَّمُ عَلَى الْمَرْأَةِ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ رَجُلٌ او په ښځه باندې به مقدم کولې شی.ددې خبرې د احتمال په وجه چې دا سړې وی.

تشریح:- اتفاق سره درې جنازې په یو وخت کې حاضرې شوې.په دوی کې یو سړې دې.او یو خنثی مشکل دې.او یوه ښځه ده.او په دریو واړو باندې په یو خائې لمونځ کول دی.نو په جنازې ایخودو کې به کوم ترتیب اختیارولې شی؟ نو وې فرمائیل.چه لکه څنګه د ژوند په حالت کې ددوی په منځ کې ترتیب وو.دغه ډول به اوس هم هغه ترتیب اختیارولې شی.په حالت د ژوند کې چې لکه څنګه د خنثی صف په منځ کې وو.هغه شان به اوس هم په منځ کې وی.او دلته به امام سره متصل د سړی جنازه ایخودې کیږی.او بیا به دخنثی،او د ټولو نه شاته به د ښځې جنازه ایخودې شی.پاته خبره واضحه ده.

## په یو قبرکښې د دفن کولو په وخت خنثی مشکل سره د ترتیب مسئله

وَلَوْ دُفِنَ مَعَ رَجُلٍ فِيْ قَبْرٍ وَاحِدٍ مِنْ عُذْرٍ او که خنثی د سړی سره په یو قبر کې دفن کړې شی.د څه عذر په وجه جُعِلَ الْخُنْثٰى خَلْفَ الرَّجُلِ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ امْرَأَةٌ نو خنثی به سړی پسې شاته ایخودې شی.ددې خبرې د احتمال په وجه چې دا ښځه وی جُعِلَ الْخُنْثٰى خَلْفَ الرَّجُلِ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ امْرَأَةٌ او ددوی دواړو په منځ کې به د خاورې یو ډهیرې ایخودې شی



وَاِنْ كَانَ مَعَ امْرَأَةٍ او که خنثی د ښځې سره وی قُدِّمَ الْخُنْثٰى لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ رَجُلٌ نو خنثی به مقدم کولې شی.ددې خبرې د احتمال په وجه، چې دا سړې وی وَاِنْ جُعِلَ عَلَى السَّرِيْرِ نَعْشُ الْمَرْأَةِ او که دخنثی په جنازې باندې د ښځو پټو (څادر) واچولې شی فَهُوَ اَحَبُّ اِلَيَّ لِاحْتِمَالِ اَنَّهُ عَوْرَةٌ نو دا زما په نیز زیاته خوښه ده.ددې خبرې د احتمال په وجه چې دا ښځه وی.

حل اللغة: ① حاجز: پرده ② السریر: کټ ③ صعید: د زمکې مخ، خاوره ④ نعش: د مړی د جونګړه

تشریح:- که څه عذر راپیښ شی.چه ددې په وجه ډیر مړی په یو قبر کې ښخوی.نو په داسې موقع چې په دوی کې کوم د شرافت او تکریم زیات لائق وی.هغه به قبلې اړخ ته مخکې ایخودې شی.نوکه د یو سړې او خنثی مشکل په یو قبر کې د دفن کاوه حاجت راپیښ شی.نو د قبلې په اړخ کې به مخکې سړې ایږدلې شی.او خنثی به مؤخر کولې شی.خکه چې په خنثی کې د ښځه کیدو احتمال دې.اوکه د خنثی او د ښځې په یو قبر کې د دفن کاوه اړتیا راپیښ شی.نو د قبلې په اړخ کې به خنثی مقدم ایخودې شی.خکه چې د خنثی د سړی کیدو احتمال دې.او په دواړو صورتونو کې ددې دواړو په منځ کې د خاورې یو پرده جوړولې شی.او کوم پټو (څادر) چې د ښځو په جنازه (کټ) باندې اچولې شی.که د خنثی په جنازه باندې واچولې شی.نو څنګه دې.نو وې فرمائیل په دا حوښ عمل دې.خکه چې دده د ښځه کیدو احتمال دې.

## د خنثی مشکل د کفن احکام

وَيُكَفَّنُ كَمَا تُكَفَّنُ الْجَارِيَةُ او خنثی مشکل ته به د انجلۍ پشان غسل ورکولې شی. وَهُوَ اَحَبُّ اِلَيَّ يَعْنِيْ يُكَفَّنُ فِيْ خَمْسِ اَثْوَابٍ او دا زما په نیز زیاته خوښه ده.یعنی په پنځو کپړو کې کفن کړې شی لِاَنَّهُ اِذَا كَانَ اُنْثٰى فَقَدْ اُقِيْمَتْ سُنَّةٌ خکه که دا ښځه وی.نو سنت ادا کړې شو وَاِنْ كَانَ ذَكَرًا اوکه دا سړې وی فَقَدْ زَادُوْا عَلَى الثَّلَاثِ وَلَا بَأْسَ بِذٰلِكَ نو دوی په دریو کپړو باندې اضافه اوکړله.او په دې کې هیڅ باك نشته.

تشریح:- په کفن کې سړی ته درې کپړې اغوستلې شی.او ښځې ته پنځه کپړې.او په حقیقت کې دا د ژوند په حالت باندې قیاس کړې شوې دې.خکه چې ښځې په عامه توګه (عام طور) په ژوند کې پنځه کپړې اغوندی.او سړی درې کپړې اغوندی.نو کله چې خنثی مشکل ته کفن ورکولې شی.نو د ښځو پشان به پنځو کپړو کې کفن کولې شی.خکه که دا ښځه وی.نو د کفن سنت ادا شو.اوکه سړې وی.نو دده په کفن کې څه اضافه اوشوه.او اضافه کیداې شی.خکه چې ددې قیاس د ژوند په کپړو باندې کولې شی.او په ژوند کې سړې د دریو کپړو نه زیاتې اغوندلې شی.اوکه دا ښځه وی.نو په دریو باندې اکتفاء کول سنت پرېښول دی.نو زیات احتیاط هم دا دې.چه په پنځو کپړو کې ده ته کفن ورکړې شی.

## په میراث کښې د خنثی مشکل د حصې مسئله

وَلَوْ مَاتَ اَبُوْهُ وَخَلَّفَ ابْنًا اوکه د خنثی مشکل پلار مړ شو.او ده یو خوئې پریخودو.(او یو دا خنثی مشکل) فَالْمَالُ بَيْنَهُمَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَثْلَاثًا امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مال د دوی دواړو په منځ کې دریو برخو باندې تقسیمولې شی لِلْاِبْنِ سَهْمَانِ نو.د خوئې لپاره به دوې (دوه) برخې وی وَلِلْخُنْثٰى سَهْمٌ او د خنثی لپاره به یوه برخه وی وَهُوَ اُنْثٰى عِنْدَهُ فِي الْمِيْرَاثِ اِلَّا اَنْ يَّتَبَيَّنَ غَيْرُ ذٰلِكَ([1]) او خنثی د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په میراث کې ښځه ده.خو دا چې ددې نه علاوه واضح شی.

تشریح:- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اصل دا دې.چه خنثی مشکل په باب د میراث کې ښځه ګڼړلې شوې ده.د صاحبینو رحمهما الله مسلك ددې خلاف دې.چه ددې تفصیل اوس په روستو عبارت کې راروان دې.نوکه یو سړې مړ

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی ردالمحتار(۵۱۵\۵) والشریفیة شرح (ص،۱۲۶) ومجمع (۴۷۰\۱۴) والسراجیة (۴۹) نقلاً عن القول الراجح (۳۹۰\۱۲)-

شی.او دوې (دوه) وارثان پریږدی.یو خوني او یو پخپل اولاد کي خنثی مشکل.نو چونکه دا (خنثی مشکل) دلته د ښځې په درجه کي دي.نو د ټولې ترکي به درې برخې کولې شی.د هغې څخه به ۲۱۳ هلك ته او ۱۱۳ انجلی ته یعني خنثی ته ورکولې شی.او دا حکم هغه وخت دي.چه د خنثی اشکال نه وی ختم شوي.اوکه دده د راجح علاماتو په وجه سړې یا ښځه کیدل راجح شوی وی.نو بیا به دده هغه حکم وی.کوم چې دده کیدل راجح شوی دی.

**د خنثی مشکل د میراث په اړه کښي د صاحبینو رحمهما الله نقطه نظر**

وَقَالَا: لِلْخُنْثٰى نِصْفُ مِيرَاثِ ذَكَرٍ وَنِصْفُ مِيرَاثِ أُنْثٰى او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چه خنثی لپاره د سړی د میراث نصف او د ښځې د میراث نصف دي وَهُوَ قَوْلُ الشَّعْبِيِّ او هم دا د شعبی رحمه الله قول دي وَاخْتَلَفَا فِي قِيَاسِ قَوْلِهِ او فقهاو د شعبی رحمه الله قول د قیاس مطابق تخریج کي اختلاف کړې دي قَالَ مُحَمَّدٌ: الْمَالُ بَيْنَهُمَا عَلَى اثْنَيْ عَشَرَ سَهْمًا امام محمد رحمه الله فرمائیلی دی.چه مال به ددوی دوارو په منځ کي دولسو برخو باندې تقسیمولې شی لِلِابْنِ سَبْعَةٌ وَلِلْخُنْثٰى خَمْسَةٌ د خوني لپاره اووه او خنثی لپاره به پنځه وی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: الْمَالُ بَيْنَهُمَا عَلٰى سَبْعَةٍ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی. چې مال به ددوی په منځ کي اووه برخو باندې تقسیمولې شی لِلِابْنِ أَرْبَعَةٌ وَلِلْخُنْثٰى ثَلَاثَةٌ د خوني لپاره به څلور او خنثی لپاره به درې وی.

**تشریح:-** حضرات صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چه خنثی ته به هغه ملاویږی.کوم چې د سړی د میراث نصف او د ښځې د میراث نصف وی.او دا په حقیقت کي د عامر بن شرحبیل رحمه الله قول دي. صاحبینو رحمهما الله ددوی د قول اتباع کړې ده.البته بیا د تخریج په طریقه کي ډیر اختلاف دي.نو په ذکر شوی صورت کي به د ټولې ترکې ۱۲ برخې کولې شی.په دي کي به ۵ د خنثی وی.او ۷ به د خوني وی.دا د امام محمد رحمه الله قول دي.او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په مذکوره صورت کي به ټوله ترکه اووه برخې کیږی.په دې کي درې د خنثی او څلور به د خوني وی.چه ددې تفصیل او دهر یو دلیل په راروان عبارت کي بیانولې شی.بهرحال د امام ابویوسف رحمه الله قول د خنثی لپاره زیات د فائدې دي.ځکه چې ۳۱۷ د ۵۱۱۲ نه زیات دي.( کما لا یخفی)

فائده* په عامة الروایات کي د امام محمد رحمه الله هغه قول نقل کړې شوې دي.کوم چې د امام محمد رحمه الله قول دي.نو دا روایت د عامة الروایات معارض دي.ممکن ده.چه د امام محمد رحمه الله مذهب هغه وی.کوم چې د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دي.دا خبره امام محمد رحمه الله د شعبی رحمه الله قول مخې ته ایخودو سره ددې د تخریج طریقه بیانولو سره کړې ده.

**د امام ابویوسف رحمه الله دلیل**

لِأَنَّ الِابْنَ يَسْتَحِقُّ كُلَّ الْمِيرَاثِ عِنْدَ الِانْفِرَادِ ځکه چې خوني د یواځي کیدو په وخت د پوره میراث مستحق دي وَالْخُنْثٰى ثَلَاثَةَ الْأَرْبَاعِ او خنثی په څلورو کي د دریو برخو فَعِنْدَ الِاجْتِمَاعِ يُقْسَمُ بَيْنَهُمَا عَلٰى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا نو داجتماع په وخت به مال ددوی دوارو په منځ کي ددوی دوارو د حق په اندازه تقسیمولې شی هٰذَا يَضْرِبُ بِثَلَاثَةٍ دا (خنثی) به د دریو په حساب سره اخلی وَذٰلِكَ يَضْرِبُ بِأَرْبَعَةٍ او دا (خوني) به د څلورو (په حساب سره) فَيَكُونُ سَبْعَةً نو ټولې به اووه شی

**تشریح:-** دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دي.ددې حاصل دا دي.چه کله خوني یواځې وی.نو هغه دپوره مال مستحق وی.اوکه خنثی یواځې وی.او بل هیڅ څوك وارث دده د پلار نه وی.نو دې د ۳۱۴ مستحق وی. ځکه چې وراندې اصول بیان کړې شوې دي.چه خنثی ته د هلك دمیراث نصف او د هلك د میراث نصف ملاویږی.چه ددې مجموعه ۳۱۴ جوړیږی.ځکه چې د هلك میراث واړه دي.یعنی که څلورې برخې وی.نو ټولې برخې به دهلك وی.نو ددې نصف ۲۱۴ شو.او د انجلی میراث واړه ۲۱۴ دي.چه ددې نصف ۱۱۴ دي.اوکله چې ۲۱۴ او ۱۱۴ جمع کړې شی.نو ددې مجموعه ۳۱۴ جوړیږی.نو د خنثی واړه میراث ۳۱۴ دي.او د خوني میراث څلور واړه ټولې برخې دی.نو کله چې خوني او خنثی دواړه جمع شی.نو موږ په دې حساب سره ټوله ترکه ویش کړله.نو ددې مجموعه اووه شوه.نو موږ اووئیل.چه هلك ته به ۴۱۷ او خنثی ته ۳۱۷ ورکولې شی.دا د امام ابویوسف رحمه الله تخریج دي.او هم



دا ددوی مذهب دي.

**د امام محمد رحمه الله دلیل**

وَلِمُحَمَّدٍ أَنَّ الْخُنْثٰى لَوْ كَانَ ذَكَرًا او د امام محمد رحمه الله دلیل دا دي.که خنثی سړې وي يَكُونُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو مال به ددوی دواړو په منځ کي نیم په نیمه وو وَإِنْ كَانَ أُنْثٰى اوکه ښځه وه يَكُونُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا نو مال به ددوی دواړو په منځ کي درې برخې کولې شو احْتَجْنَا إِلٰى حِسَابٍ لَهُ نِصْفٌ وَثُلُثٌ نو مونږه محتاج شو.داسې حساب (شمیر) ارخ ته، چې دهغې نصف او ثلث وی. وَأَقَلُّ ذٰلِكَ سِتَّةٌ او په دې کي د ټولو نه وړوکي عدد ۶ دي فَفِي حَالٍ يَكُونُ الْمَالُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ ثَلَاثَةٌ نو په یو حال کي به مال ددوی دواړو په منځ کي نیم په نیمه وی په دوی کي به هر یو ته ۳ ملاویږی وَفِي حَالٍ يَكُونُ أَثْلَاثًا او په یو حال کي به درې برخې کولای شی لِلْخُنْثٰى سَهْمَانِ وَلِلِابْنِ أَرْبَعَةٌ خنثی لپاره دوې (دوه) برخې او خوني لپاره څلور برخې فَسَهْمَانِ لِلْخُنْثٰى ثَابِتَانِ بِيَقِينٍ وَوَقَعَ الشَّكُّ فِي السَّهْمِ الزَّائِدِ نو خنثی لپاره دوې (دوه) برخې په یقین سره ثابت دی.او په زیاتی برخه کي شك واقع شو فَيَتَنَصَّفُ نو دا به نیم په نیمه کولای شی أَنْ فَيَكُونُ لَهُ سَهْمَانِ وَنِصْفٌ فَانْكَسَرَ نو خنثی لپاره دوې (دوه) برخې او نصف شو.نو په دې کي کسر واقع شو فَيُضَعَّفُ لِيَزُولَ الْكَسْرُ نو مخرج به دوچند کولې شی.چه کسر واقع شی فَصَارَ الْحِسَابُ مِنَ اثْنَيْ عَشَرَ لِلْخُنْثٰى خَمْسَةٌ وَلِلِابْنِ سَبْعَةٌ نو حساب به د یوولسو نه کیږی.خنثی لپاره ۵ او خوني لپاره ۷.

**تشریح:-** دا د امام محمد رحمه الله دلیل دي.ددې حاصل دا دي.چه خنثی ته د هلك د میراث نصف او د انجلی د میراث نصف ملاویږی.نو موږ داسې عدد واخستلو.چه په هغې صحیح غیرمنکسر ثلث او نصف راوځی.نو دټولو نه وړوکي عدد ۶ مو واخستلو.نو اوس موږ په دې کي غور اوکړو.که خنثی سړې وې.نو ده ته به په نصف ۶ کي درې ملاویدې.نو د دریو نصف محفوظ أوساتلې شو.اوکه دا انجلی وه.نو دې ته به د ۶ ثلث یعني دوې (دوه) ملاویدې.نو ددې نصف یعني یو محفوظ اوساتلې شو.چه ددې مجموعه دوې (دوه) نیم شوه.او دوهم اړخ ته درې نیم شوه.نو خنثی لپاره دوې (دوه) پوره شوې.البته په دریمه کي شك وو.چه ده ته ملاو شی اوکه ملاو نشی.چونکه دا هلك نه دي.نو ددې تقاضا دا وه.چه دا یو زیاتی ده ته ملاو نشی.گنی د دواړو برابری به لازم شی.او چونکه دا انجلی هم نه ده.نو ده ته به د ټولې ترکې ثلث یعني دوې (دوه) ملاویدل هم پکار نه دی.بلکه زیات ملاویدل پکار دی.نو موږ ددې تنصیف اوکړو.او ددې نیمه برخه مو خنثی ته ورکړله.او دویمه نیمه مو هلك ته ورکړله.نو خنثی لپاره دوې (دوه) نیمه شوه.او هلك لپاره درې نیمې شوې.خو د دواړو په برخو کي کسر واقع کیږی.نو کسر چې لرې کړې شو.او اصل مخرج ۶ کي ضرب ورکړې شو. نو اوس مجموعه ۱۲ شو.او د هر وارث برخې ډبل شوې.نو خنثی لپاره پنځه شوې.او خوني لپاره اووه شوې.یعني خنثی لپاره ۵۱۱۲ او هلك لپاره ۷۱۱۲ شوې.دا د امام محمد رحمه الله د قول مطابق د مسئلې تخریج دي.او ددې دلیل دي.او د کسر د بسیط جوړولو طریقه او د حساب طریقې موږ پخپل کتاب ،،درس سراجی،، کي تفصیل سره بیان کړی دی.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل**

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ الْحَاجَةَ هَاهُنَا إِلٰى إِثْبَاتِ الْمَالِ ابْتِدَاءً او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دي.چه دلته مخکي د مال ثابتولو اړتیا دي وَالْأَقَلُّ وَهُوَ مِيرَاثُ الْأُنْثٰى مُتَيَقَّنٌ بِهِ او دټولو نه کم مقدار کوم چې د انجلی د میراث دي.هغه متیقن به (او یقیني) دي. وَفِيمَا زَادَ عَلَيْهِ شَكٌّ او کوم مقدار چې ددې نه زیات دي.هغې کي شك دي فَأَثْبَتْنَا الْمُتَيَقَّنَ قَصْرًا عَلَيْهِ نو موږ متیقن به ثابت کړې دي.په کم باندې قصر (او اعتماد) کاوه سره لِأَنَّ الْمَالَ لَا يَجِبُ بِالشَّكِّ ځکه چې مال د شك په وجه نه واجبیږی وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ الشَّكُّ فِي وُجُوبِ الْمَالِ بِسَبَبٍ آخَرَ او داسې شوه.لکه چې کله په بل څه سبب سره د مال په وجوب کي شك وی فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ فِيهِ بِالْمُتَيَقَّنِ، كَذَا هٰذَا ځکه چې په دې کي هم متیقن به اخستلې شی.دغه ډول دا (مذکوره صورت هم) دي.

**تشریح:-** د امام ابویوسف او د امام محمد رحمهما الله د دلائلو نه د فراغت نه روسته اوس مرغینانی رحمه الله د امام

ابوحنيفه رحمه الله دليل بيانوي.ددې حاصل دا دې.چه په پيل کي د مال د اثبات په وخت په يقيني امر باندې عمل کولې شي.او يقيني اقل مقدار دې.او د انجلي ميراث کم وي.په دې وجه هم دا يقيني دې.او ددې نه په زيات کي شک دې.او د شک په وجه مال نه واجبيږي.لکه مثلاً که په نورو ذريعو سره د مال په وجوب کي شک پيدا شي.نو هلته هم اقل او يقيني ( مال) اخستلې شي.مثلاً يو کس اوونيل.چه ،،لفلان على دراهم،، او څومره دراهم دي؟ د هغې د بيانولو نه وړاندې مړ شو.نو په ده به اقل مقدار واجب وي.او د جمعې اقل مقدار درې دي.نو درې دراهم به واجب وي.نو دغه ډول په مذکوره صورت کي هم ددې اصول لحاظ ساتلې شي.او اقل او يقيني به واجبولې شي.او هغه د مال ثلث دې.

## په ميراث کښې د خنثى مشکل د برخو مثالونه

الَّا اَنْ يَكُوْنَ نَصِيْبُهُ الْاَقَلَّ لَوْ قَدَّرْنَاهُ ذَكَرًا خو دا چې د خنثى برخه کمه وي.که موږ دا سړې فرض کړو فَحِيْنَئِذٍ يُعْطٰى نَصِيْبَ الْاِبْنِ فِىْ تِلْكَ الصُّوْرَةِ لِكَوْنِهٖ مُتَيَقَّنًا بِهٖ نو په دې صورت کي به ده ته د سړي برخه ورکولې شي.ددې د يقيني کيدو په وجه.وَهُوَ اَنْ تَكُوْنَ الْوَرَثَةُ زَوْجًا وَاُمًّا وَاُخْتًا لِاَبٍ وَاُمٍّ هِىَ خُنْثٰى او هغه دا ده.چه وارثان خاوند، او مور، او حقيقي خور وي.هم دا خنثى وي اَوْ اِمْرَاَةً وَاَخَوَيْنِ لِاُمٍّ وَاُخْتًا لِاَبٍ وَاُمٍّ هِىَ خُنْثٰى يا ښځه او دوې (دوه) اخيافي رونړه او يوه حقيقي خور وي.هم دا خنثى وي. فَعِنْدَنَا فِى الْاُوْلٰى لِلزَّوْجِ النِّصْفُ وَلِلْاُمِّ الثُّلُثُ وَالْبَاقِىْ لِلْخُنْثٰى نو زموږ په نيز رومبي صورت کي ميړه لپاره نصف او مور لپاره ثلث او پاته خنثى لپاره دي وَفِى الثَّانِيَةِ لِلْمَرْاَةِ الرُّبُعُ وَلِلْاَخَوَيْنِ لِاُمٍّ الثُّلُثُ وَالْبَاقِىْ لِلْخُنْثٰى او په دوهم صورت کي ښځې لپاره څلورمه او دوې (دوه) اخيافي رونړو لپاره ثلث دې.او پاته خنثى لپاره دې لِاَنَّهُ اَقَلُّ النَّصِيْبَيْنِ فِيْهِمَا وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ ځکه چې په دې دواړو صورتونو کي هم دا د دواړو برخو نه کمه ده.والله اعلم بالصواب

**تشريح:-** د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په اقل او يقيني کيدو باندې بنا (بنياد) ايخودې شوې دې.نو که څه صورتونه داسې وي.چه هغې کي خنثى ته د سړي ګڼړلو په وجه برخه کمه ملاويږي.او د ښځه ګڼړلو په صورت کي برخه زياته ملاويږي.نو په اقل او متيقن باندې د مدار کيدو په وجه چې د سړو کومه برخه کمه ده.هم هغه به خنثى ته ورکولې شي.چه ددې دوې (دوه) مثالونه مرغيناني رحمه الله پيش کړي دي.

رومبې مثال۞ يو مثال دا دې.کوم چې مرغيناني رحمه الله نه دې بيان کړې دې.ميت:-

مړې ............ ﴿۶﴾

| اخت علاتي خنثى | حقيقي وړور | زوج |
|---|---|---|
| محروم | ۳ | ۳ |

په مذکوه صورت کي د خالد وفات اوشو.او هغه ذکر شوي وارثان پريخودل.که خنثى سړې اوګڼړلې شي.يعنې علاتي رور،نو هغه لپاره هيڅ نه پاتې کيږي.نو دې به رور ګڼړلې شي.او محروم به وي.اود واړه مال به ۶ برخې کولې شي. ميړه ته ۳ او او حقيقي خور ته به درې ورکولې شي.او که خنثى ته د علاتي رور درجه ورکړې شي.نو د ثلثين د تکميل لپاره به دده لپاره سدس وي.او د ۷ څخه به عول کولې شي.نو په ذکر شوي صورت کي رومبې؛ طريقه د متيقن کيدو په وجه اختيارولې شي.

دوهم مثال۞ کوم چې په کتاب کي ذکر دې.

مړې ............ ﴿۶﴾

| اخت حقيقي خنثى | مور | زوج |
|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ |

په مذکوره صورت کي د خالد وفات اوشو.او ده مذکوره وارثان پريخودل.چه په دې کي ټوله ترکه ۶ برخې کولې شي. ميړه ته ۳ ورکړې شوې.او مور ته ثلث ( ۲ حصې) او پاته يو دعصبه کيدو په وجه خنثى ته ورکړې شوې ده.يعنې دلته دې رور ګڼړلې شوې دې.چونکه په دې صورت کي ده ته برخه کمه ملاويږي. ځکه چې رور د



اصحاب الفروض څنې نه دې.بلکه عصبه دې.اوکه دې اصحاب الفرائض څنې دې.ځکه چې دده برخه به زياتيږي.او د مسئلې صورت به بدليږي.يعنې مسئله به داسې وي.

مړې ............ ﴿۸﴾

| اخت حقيقي خنثى | مور | زوج |
|---|---|---|
| ۳ | ۲ | ۳ |

يعنې ميړه ته ۳ او مور ته ثلث يعنې ۲ او حقيقي خور ته نصف يعنې ۳. نومسئله به د ۸ نه عول کوي.

دريم مثال۞

مړې ............ ﴿۱۲﴾

| اخت حقيقي خنثى | دوې (دوه) اخيافي وړونړه | زوجه |
|---|---|---|
| ۵ | ۴ | ۳ |

په مذکوره صورت کي خنثى ته د رور درجه ورکړې شوې ده.او پاته پاتې مال ده ته ورکړې شوې دې.ځکه چې ښځې لپاره څلورمه برخه ده.او د مور اولاد لپاره ثلث، او پاته به د عصبه کيدو په وجه د رور وي.او د مسئلې تخريج به د ۱۲ نه کيږي.او ۵\۱۲ کم دې د ۶\۱۲ نه، نو دا صورت اختيار کړې شو.ګنې که دې خور فرض کړې شوې وې.نو ده ته به ۶\۱۲ ملاويدله.او دده برخه به زياتيدله.حالانکه ده ته اقل ورکول دي.نو دا صورت اختيار کړې شوې دې.ګنې ده لره د خور ګڼړلو په صورت کي به د مسئلې صورت داسې وي.

مړې ............ ﴿۱۲﴾

| اخت حقيقي خنثى | دوې (دوه) اخيافي وړونړه | زوجه |
|---|---|---|
| ۶ | ۴ | ۳ |

وجه ښکاره ده.د مسئلو د تخريج اصول موږ په درس سراجي کي بيان کړي دي.

# مَسَائِلُ شَتّٰى

ژباړه:- يعنې مختلفې مسئلې

**تشريح:-** شتى: د شتيت جمع ده.په معنى د متفرق (جلا جدا)، د مصنفينو رحمهم الله عادت دې.چه کومې مسئلې داسې وي.چه د ذکر قابلې وي.او هغه د ذکر کاوه نه پاتې کيږي.نو هغې ته د ،، مسائل متفرقه،، يا ،، مسائل منثوره،، يا ،، مسائل شتى،، عنوان ورکوي.او بيانوي.

## د ګونګي د وصيت طريقه

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي فرمائيلي دي وَاِذَا قُرِئَ عَلَى الْاَخْرَسِ كِتَابُ وَصِيَّتِهٖ او کله چې په ګونګي نه دده وصيت نامه واورولې شوه فَقِيْلَ لَهٗ اَنَشْهَدُ عَلَيْكَ بِمَا فِىْ هٰذَا الْكِتَابِ نو هغه ته اوونيلې شو.چه آيا مونږه په تا باندې ددې شي ګواهان شو.کوم چې په دې کتاب کي دي فَاَوْمَاَ بِرَاْسِهٖ: اَىْ نَعَمْ اَوْ كَتَبَ نو هغه پخپل سر سره اشاره اوکړله.يعنې آو ئې اوکړو.يا هغه ليکل اوکړل فَاِذَا جَاءَ مِنْ ذٰلِكَ مَا يُعْرَفُ اَنَّهٗ اِقْرَارٌ فَهُوَ جَائِزٌ نو کله چې دده نه څه داسې خبره صادر شي.چه د هغې نه دا خبره معلومه شي.چه دا اقرار دې.نو دا جائز دي وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ فِى الَّذِىْ يَعْتَقِلُ لِسَانُهٗ او دا په هغه سړي کي جائز نه ده.چه د هغه ژبه بنده کړې شوې وي.

**حل اللغة:** ① اخرس: ګونګا ② لسان: ژبه ③ اوما: اشاره اوکړه ④ يعتقل: بنديږي﴾

**تشريح:-** مثلاً زيد ګونګا دې.هغه د يوکس لپاره وصيت اوکړو.او وصيت نامه ئې اوليکله.چه دا خلګو ته زيد ته واوروله.او خلګو اوونيل.چه موږ په دې وصيت باندې ګواهان شو.هغه پخپلې اشارې سره په مثبت انداز کي څواب ورکړو.يعنې په اوګدوالي باندې ئې سر اوړقولو.چه ددې مطلب دا وي.چه آو.نو دا جائز ده.اوکه دا ګونګې نه وي.خو اتفاق سره د څه عارض په وجه دده ژبه بنده شوه.مخکې به ئې خبرې کولې شوې.اوس د څه په وجه بنده شوه.نو دا به د

ګونګا په درجه کي نه وي. دغه ډول که ګونګا په پلن والی سر اوړ قولو. نو دا اشاره د او نه ده. بلکه د نا ده. نو دده وصیت به نه نافذ کیږي. ځکه چې دې ته اقرار نشي ونیلې. دا څه چې بیان شو. زموږ مسلك دې. په دې کي د امام شافعي رحمه الله اختلاف دې. چه ددې بیان په راروان عبارت کي ذکر کوي.

**د چاړا په اړه کښي د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر**

وَقَالَ الشَّافِعِي: يَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رحمه الله اوفرمائیل. چه په دواړو صورتونو کي جائز دي لِأَنَّ الْمُجَوِّزَ إِنَّمَا هُوَ الْعَجْزُ وَقَدْ شَمِلَ الْفَصْلَيْنِ ځکه چې جائز کونکي شئ هغه عاجزي ده. او عاجزي دواړو صورتونو ته ګډ ده وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْأَصْلِيِّ وَالْعَارِضِ كَالْوَحْشِيِّ وَالْمُتَوَحِّشِ مِنَ الْأَهْلِيِّ فِي حَقِّ الذَّكَاةِ او اصلي او د عارضي په منځ کي هیڅ توپیر نشته. لکه وحشي او کوم چې د پاللی شوی څاروو نه متوحش شي. په حق د ذکاة (ذبحه) کي (برابر دی).

تشریح:- امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه لکه څنګه د ګونګي په صورت کي جائز دي. دغه ډول د هغه کس په حق کي هم جائز دي. دچا ژبه چې بنده شوې ده. ځکه چې صراحت سره د خبرو کاوه په ځاني چې د ګونګي په اشارې باندې کومه اکتفاء کولې شي. دا دده د عاجزئ په وجه کولې شي. او عاجزي په هغه سړي کي هم شته. د کوم کس ژبه چې بنده شوې ده. نو که اصلي ګونګا جوړ شوې وي. او که عارضي ګونګې وي. د دواړیو حکم دي. اصلي هغه کس دي. کوم چې ګونګې دي. او عارضي دچا چې ژبه بنده شوې ده. (او مخکي ئې خبرې کولې شوې). لکه څنګه چې وحشي خناورو کي ذکاة اضطراري جائز ده. چه ددې وجه دده وحشي کیدل دی. نوکه پاللې شوې حیوان (څاروې) وحشي شي. نو په دې کي هم ذکاة اضطراري جائز دې. ځکه چې دواړو خایونوکي ددې د جواز وجه د ذکاة اختیاری نه عاجزه کیدل دی. دغه ډول دلته په دواړو کي د جواز وجه د ګونګا او د ژبې بندیدونکی عاجز کیدل دی.

**د چاړا په اړه کښي د احنافو رحمهم الله نقطه نظر**

وَالْفَرْقُ لِأَصْحَابِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ أَنَّ الْإِشَارَةَ إِنَّمَا تُعْتَبَرُ إِذَا صَارَتْ مَعْهُودَةً مَعْلُومَةً او زموږ د اصحابو رحمهم الله لپاره وجه د توپیر دا ده. چه اشاره معتبر کیږي. کله چې دا معهود معلوم وی وَذَلِكَ فِي الْأَخْرَسِ دُونَ الْمُعْتَقَلِ لِسَانُهُ حَتَّى لَوِ امْتَدَّ ذَلِكَ وَصَارَتْ لَهُ إِشَارَاتٌ مَعْلُومَةٌ او دا په ګونګی کي دی. په هغه کس کي نه دی. دچا چې ژبه بنده شوې وی. تردې که دا (ژبه بندیل) ممتد شي. او دده لپاره اشارې معلومې شي قَالُوا هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْأَخْرَسِ نو مشانخو رحمهم الله فرمائیلی دی. چه دا د ګونګا په درجه کي دي وَلِأَنَّ التَّفْرِيطَ جَاءَ مِنْ قِبَلِهِ او ځکه چې بې غوري دده د اړخه راخی دي حَيْثُ أَخَّرَ الْوَصِيَّةَ إِلَى هَذَا الْوَقْتِ په دې حیثیت سره، چې ده تردې وخته پورې وصیت موخر کړې دي أَمَّا الْأَخْرَسُ فَلَا تَفْرِيطَ مِنْهُ بهرحال ګونګا نو دده د اړخه هیڅ بې غوري نشته وَلِأَنَّ الْعَارِضَ عَلَى شَرَفِ الزَّوَالِ دُونَ الْأَصْلِيِّ او ځکه چې عارضي د زوال په غاړه پروت دي. اصلي نه فَلَا يَتَقَاسَانِ، وَفِي الْآبِدَةِ عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ نو دا دواړه به په یو بل باندې نشي قیاس کولې. او په وحشي کي مونږه دا د نص نه پیژندلي دي.

تشریح:- زموږ احنافو اصحابو رحمهم الله په دوی دواړو کي توپیر کړې دي. یعني په ګونګا او چاړا (چې عارضي ئې ژبه بنده شوې وی) کي توپیر کړې دي. ددې حاصل دا دي. چه اصل خو دسړی خبرې او کلام دي. او اشارات هغه وخت قابل د اعتبار وي. کله چې اشارات مشهور او معلوم وي. او داسې اشارات به صرف د ګونګی وي. او دچا چې ژبه بنده شوه. د هغه اشارات به داسې نه وي. ځکه چې دا خو دده د اوسنې عذر دي. نو خلګو ته به دده په اشاراتو پوهیدوکي مشکلات وي. خو که په ده کي امتداد وي. یعني د ژبې بندیدو نې ډیره موده تیره شي. او په دې موده کي دده اشارات هر چاته معلوم شي. نو اوس به دې د اخرس په درجه کي وي.

؟ اوس پاتې شوه دا خبره چې د امتداد حد څه دي. نو په دې کي دوې (دوه) روایتونه دی. بعضو حضراتو ونیلی دی. چه حد د اوګدوالی یو کال دې. او بعضو حضراتو ونیلی دی. که په ژبه بندیدو کي دومره اوګدوالی وي. چه د مرګ برابر وي. نو دده په اشارې سره اقرار جائز دې. او په دې باندې استشهاد جائز ځکه چې اوس ده ته داسې عذر او عجز لاحق شوې دي. چه اوس ددې د زوال امید نه پاتې شوې. نو دا به



دا ګونګی پشان وي.،، وعلیه الفتوی.،،

؟ په ګونګا او عارضي ژبه بندشوی (چاړا) کي دوهم فرق دا دي. چه ژبه بند شوې قصور وار دې. او ګونګا قصور وار نه دي. یعني د ژبې بند شوی وصت کول چې تر اوسه پورې موخر کړې شوی دی. تردې چې دده ژبه بنده شوه. نو په دې کي دده قصور او بې غوری ده. ځکه چې هغه ددې نه وړاندې په خبرو باندې قادر وو. که هغه په هغه وخت وصیت کړې وې. نو ده ته به هیڅ مشکلات نه وو. نو په تاخیر د وصیت کي دهغه قصور دي. او د ګونګا هیڅ قصور نشته. او دده داړخه هیڅ بې غوری نشته.

فائده: خو د مرغیناني رحمه الله دا دلیل د ړومبی دلیل خلاف تقاضا کوی. (فتدبر) دریم توپیر ددوی دواړو په منځ کي دا دي. چه د ګونګا عذر اصلی دي. او د ژبه بند شوی عارضي دي. او عارضي قابل د زوال وي. او اصلي قابل د زوال نه وي. په دې وجه په دې کي یو په بل باندې قیاس کول جائز نه دی. پاتې شو د امام شافعي رحمه الله هغه استدلال کوم چې دوی دا مسئله په وحشي او د پاللی شوی په وحشي کیدو باندې قیاس کاوه سره پیش کړې وه. نو ددې ځواب ئې دا ورکړو. چه قیاس خو ددې تقاضا کوی. چه په پاللو شوو څاروو کي ذکاة اضطراري جائز نه وي. بلکه صرف ذکاة اختیاری وي. خو خلاف قیاس نص سره دا خبره ثابته شوه. چه د پالولو شوو څاروو نه وحشي کیدو کي هم ذکاة اضطراري جائز ده. او قاعده دا ده. چه کوم شئ خلاف قیاس د نص نه ثابت وي. په هغې باندې د بل د څه شئ قیاس کول جائز نه دی.

**د چاړا د نکاح، طلاق، آزادولو او اخستلو خرخولو حکم**

قَالَ امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کي فرمائیلی دی وَإِذَا كَانَ الْأَخْرَسُ يَكْتُبُ كِتَابًا أَوْ يُومِئُ إِيمَاءً يُعْرَفُ بِهِ او کله چې ګونګا څه خط لیکی. یا اشاره کوی. چه هغه اوپیژندلې شي فَإِنَّهُ يَجُوزُ نِكَاحُهُ وَطَلَاقُهُ وَعَتَاقُهُ وَبَيْعُهُ وَشِرَاؤُهُ نو دده نکاح، او دده طلاق، او دده آزادول او دده اخستل جائز دی وَيُقْتَصُّ لَهُ وَمِنْهُ او دده لپاره به قصاص اخستلې شي. او دده څخه به قصاص اخستلې شي وَلَا يُحَدُّ وَلَا يُحَدُّ لَهُ او ګونګی ته به حد نشي ورکولې. او نه به د ګونګی لپاره حد ور کولای شي أَمَّا الْكِتَابَةُ فَلِأَنَّهَا مِمَّنْ نَأَى بِمَنْزِلَةِ الْخِطَابِ مِمَّنْ دَنَا بهرحال کتابت نو ځکه چې کتابت هغه سړي سره کوم چې لرې وي. د هغه سړي د خطاب په درجه کي دي. کوم چې نژدې وي أَلَا تَرَى أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَدَّى وَاجِبَ التَّبْلِيغِ مَرَّةً بِالْعِبَارَةِ وَتَارَةً بِالْكِتَابَةِ إِلَى الْغُيَّبِ[1] آیا ته نه ګورې. چه نبی کریم ﷺ د تبلیغ فریضه کله په عبارت سره ادا کړې ده. او کله ئې غائبینو اړخ ته لیکلو سره (ادا کړې ده). وَالْمُجَوِّزُ فِي حَقِّ الْغَائِبِ الْعَجْزُ او دغائب په حق کي چې کوم جائز کونکې شئ دې. هغه عاجزی ده وَهُوَ فِي حَقِّ الْأَخْرَسِ أَظْهَرُ وَأَلْزَمُ او عاجزی په ګونګا کي زیاته ښکاره او زیاته پیټنټ (او ثابته) ده.

تشریح:- یو سړې ګونګا دې. چه دده اشارې معلومې (او مشهورې) دی. یا هغه په لیکلو پوهیږي. نو هغه په لیکلو سره د خپل زړه مراد ادا کوی. نو اوس جائز ده. نوکه ګونګا په لیکلو یا د معلومې اشارې په ذریعه نکاح اوکړله. یا ئې خپلې ښځې ته طلاق ورکړو. یا ئې خپل غلام آزاد کړو. یا ئې بیع او شراء اوکړله. نو دا واړه عقود به ثابتیږي. اوکه ګونګی په لیکلو یا اشارې سره د قصاص اقرار اوکړو. یا ئې په بل باندې د قصاص دعوه اوکړله. او دا دعوه ثابته شوه. نو په ړومبی صورت کي به د ګونګی نه قصاص اخستلې شي. خوکه ګونګا د حد اقرار اوکړو. یا ګونګا په بل کس باندې د حد دعوه اوکړله. او دا دعوه به دده یا تحریراً وي. یا به د معلومو اشارو په ذریعه وي. دغه ډول به دده اقرار تحریراً وي. یا به په اشاروکي وي. په

[1]) قال الزیلعي رحمه الله أما تبلیغه بالعبارة فمعروف وأما بالكتابة فعن ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاري في بدء الوحي حديث هرقل رقم ۷_

دوارو صورتونو کي به نه ده ته حد ورکولې شي.او نه به دده لپاره په بل چا باندې حد لګولې شي.

امام محمد رحمه الله دلته د ګونګا دوې (دوه) شيان بيان کړي دي.يو کتابت، او دويمه اشاره، اوس مرغيناني رحمه الله ددوی دوارو په اثبات تفصيلي بحث کوي.د کتابت په اړه کي ئې اوفرمائيل.چه ددې اصول دا دي.چه کوم سړې لرې وی.د هغه د تحرير هغه درجه دې.کومه چې د نږدې موجود کس د خبرو او تکلم ده.ددې واضح دليل دا هم دې.چه نبی کريم ﷺ د تبليغ فريضه ادا کاوه کې کله د خبرو نه کار اخستې دې.لکه څنګه چې په عامه توګه (عام طور) هم دغه ډول شوی دی.او کوم خلګ چې به لرې وو.هغوی ته به ئې دعوتي خطونه ليکل.نو معلومه شوه.چه د غائبينو تحرير د حاضرينو د خطاب پشان دې.او هرکله چې د غائب تحرير معتبر شو.ځکه چې هغه د مخکې ګفتګو کاوه نه عاجز دې.نو هم دا عاجزی خو په ګونګا کې د غائب نه هم زياته ده.ځکه چې غائب خو في الجمله په خبرو باندې قادر دې.او ګونګا د خبرو نه بالکل عاجز دې.دکتابت شرح کاوه سره مرغيناني رحمه الله د کتابت اقسام بيان کړی دی.او ور سره ئې ددې احکام بيان کړي دي.

## د کتابت د دريو قسمونو بيان

ثُمَّ الْكِتَابُ عَلَى ثَلَاثِ مَرَاتِبَ: بيا د کتابت درې درجې دی مُسْتَبِينٌ مَرْسُومٌ مستبين مرسوم وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ النُّطْقِ فِي الْغَائِبِ وَالْحَاضِرِ عَلَى مَا قَالُوا او دا د خبرو په درجه کي دې.د غائب او حاضر په حق کې .د هغه تفصيل مطابق کوم چې فقهاو بيان کړې دي وَمُسْتَبِينٌ غَيْرُ مَرْسُومٍ او مستبين غيرمرسوم كَالْكِتَابَةِ عَلَى الْجُدَارِ وَأَوْرَاقِ الْأَشْجَارِ لکه په ديوال باندې ليکل.او د ونو په پاڼرو باندې ليکل وَيَنْوِي فِيهِ او په دې کي به د نيت پوښتنه کولای شي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ صَرِيحِ الْكِتَابَةِ فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ ځکه چې دا قسم د صريح کنايه په درجه کي دې.نو نيت ضروري دي وَغَيْرُ مُسْتَبِينٍ او غير مستبين كَالْكِتَابَةِ عَلَى الْهَوَاءِ وَالْمَاءِ لکه په هوا باندې ليکل، او په اوبو باندې ليکل وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ كَلَامٍ غَيْرِ مَسْمُوعٍ فَلَا يَثْبُتُ بِهِ الْحُكْمُ او دا د کلام غير مسموع په درجه کي دې.نو ددې په وجه به حکم نه ثابتيږي

**حل اللغة:** ① **مرسوم:** نومول نښانه کړې شوې ② **اوراق:** جمع د ورق، پاڼړه

**تشريح:**- ددې ځائې نه مرغيناني رحمه الله دا بيان کړی دی.چه د کتابت درې قسمونه دی.① کتابت مستبين مرسوم ② کتابت مستبين غيرمرسوم ③ غيرمستبين، که کتابت داسې وی.چه دا ليکلې کيدای شی.لکه کاغذ وغيره باندې قلم وغيره سره ليکل.او په داسې طريقه ئې اوليکل.لکه څنګه چې د خطونو ليکلو طريقه ده.يعنی دا مصدر او معنون ( عنوان ورکړې شوې) وی.يعنی په دې کي عنوان وی.چه ددې نه دا پته لګی.چه چا راليګلې دې.او چا ارخ ته ئې ليګلې دې.لکه ليکلی شی چې ،، من فلان بن فلان الی فلان ابن فلان،، نو داسې کتابت ته مستبين مرسوم وئيلې شي.

او که ليکل ددې قابل وی.چه دا وئيلې شی.خو چا ليکلې دې.او دچا په اړه کي ئې ليکلې دې.دا هيڅ پته او نه لګی.لکه په ديوال ئې اوليکل ،، اوبن،، يا ما طلاق ورکړو، وغيره.خو دا معلومه نشوه.چه دچا په اړه کي ئې ليکلی دی.نو ددې نوم دې.مستبين غير مرسوم.يعنی ددې هيڅ عنوان نشته.

او که په فضاء کي يا د اوبو د پاسه ئې اوليکل.چه دا نشی وئيلې کيدې.نو دا غيرمستبين دې.بيا د دې قسمونو احکام جلا جلا دی.د مستبين مرسوم حکم دا دې.چه دا حاضر اوليکی، او که غائب.دا د کلام په درجه کي دې.نو کوم سړې چې حاضر وی.اوهغه د مستبين مرسوم په طريقه باندې تحرير اوليکی.او پيش ئې کړی.نو داسې ده.لکه چې هغه پخپله ژبه باندې وئيلې وی.او هم دا ددې حکم دې.

او د مستبين غيرمرسوم حکم دا دې.چه په دې کي به د ليکونکی د نيت پوښتنه کولې شی.ځکه چې دا قسم داسې دې.لکه څنګه چې کنائی الفاظ دی.يا په طلاق کي چې په دې کي دده د نيت معلومولو اړتيا راپيښيږی.دغه ډول په دې قسم کي د نيت اړتيا راپيښيږی.



مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل. ﴿لأنه بمنزلة صريح الكناية﴾ يعنی د تحرير دا مذکوره طريقه داسې ده.لکه چې ژبه وئيلو سره دا کنايات استعمال کړی وی.چه په دې کي د نيت اړتيا راپيښيږی.دغه ډول به په دې کي هم راپيښيږی.نو د صريح کنايه نه مراد کنايه قولی ده.او غير مستبين داسې دې.لکه کلام غير مسموع، چې په دې سره هيڅ حکم نه ثابتيږی.دغه ډول په دې قسم سره هيڅ حکم نه ثابتيږی.او په پاڼرو ، هوا، او اوبو باندې چې څومره طلاقونه اوليکی.طلاق به نه واقع کيږی.

## د چارا د اشارې حکم

وَأَمَّا الْإِشَارَةُ فَجُعِلَتْ حُجَّةً فِي حَقِّ الْأَخْرَسِ فِي حَقِّ هَذِهِ الْأَحْكَامِ لِلْحَاجَةِ إِلَى ذَلِكَ او بهرحال اشاره، نو دا د ګونګا په حق کي په دې احکامو کي حجت ګرځولې شوې دې.دې اړخ ته د حاجت په وجه لِأَنَّهَا مِنْ حُقُوقِ الْعِبَادِ ځکه چې دا احکام د حقوق العباد ځنې دی وَلَا تَخْتَصُّ بِلَفْظٍ دُونَ لَفْظٍ او دا احکام يو لفظ سره خاص نه دی. نه بل لفظ سره وَقَدْ تَثْبُتُ بِدُونِ اللَّفْظِ او کله دا الفاظ د لفظ نه بغير ثابتيږی وَالْقِصَاصُ حَقُّ الْعَبْدِ أَيْضًا او قصاص هم حق العبد دې وَلَا حَاجَةَ إِلَى الْحُدُودِ او حدودو اړخ ته هيڅ حاجت نشته لِأَنَّهَا حَقُّ اللَّهِ تَعَالَى ځکه چې حدود حقوق الله دی وَلِأَنَّهَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ او ځکه چې حدود شبهاتو سره لرې کيږی وَلَعَلَّهُ كَانَ مُصَدِّقًا لِلْقَاذِفِ او کيدای شی چې ګونګا د قاذف تصديق کونکې وی فَلَا يُحَدُّ لِلشُّبْهَةِ نو د شبهې په وجه به حد نشی لګولې وَلَا يُحَدُّ أَيْضًا بِالْإِشَارَةِ فِي الْقَذْفِ لِانْعِدَامِ الْقَذْفِ صَرِيحًا وَهُوَ الشَّرْطُ او په قذف کي به د اشارې په وجه هم حد نشی لګولې.په صراحت سره د قذف نه کيدو په وجه.حالانکه دا ( صراحت سره د زنا تهمت لګول) شرط دې.

**تشريح:**- د کتابت د بيان نه د فارغ کيدو نه روسته اوس مرغيناني رحمه الله د اشارې بيان کوی.چه په ټولو احکامو کي بغير د حدودو نه د ګونګا اشاره په دې وجه معتبر شوه.چه چونکه دا احکام د حقوق العباد ځنې دی.نو په دې کي بنده ته حاجت او اړتيا دې.نو ددې اړتيا په لحاظ سره به د ګونګا په اشارې سره دا احکام ثابتيږی.او چونکه دا احکام مخصوص الفاظو سره مختص هم نه دی.بلکه لکه څنګه چې د عربۍ ژبې الفاظو او کلمو نه ددې ثبوت کيږی.دغه ډول د فارسۍ او اردو الفاظو او کلمو سره به هم ددې ثبوت کيږی.بلکه په بعضو موقعو باندې د الفاظو نه بغير هم ددې ثبوت کيږی.لکه څنګه چې په بيع د تعاطی کي دالفاظو نه بغير بيع کيږی.او په نکاح د فضولی کي په تکلم باندې د قدرت باوجود نکاح منعقد کيږی.نو په ګونګا کي هرکله چې عاجزی موجود ده.په درجهٔ اولی به د الفاظو نه بغير دا احکام ثابتيږی.

او قصاص هم حق العبد دې.نو قصاص هم د نورو حقوق العبادو پشان د ګونګا په کتابت او اشارې سره ثابتيږی.البته د ګونګا په اشارې سره به د حدودو ثبوت نه کيږی.يعنی که هغه اشارې سره د قذف اقرار اوکړی.نو په ده به حد قذف نشی لګولې.او که په بل کس باندې د حد قذف اشاره اوکړی.نو په بل کس به هم حد قذف نشی لګولې.ځکه احتمال شته.چه مورږ کوم قذف ګڼړلې دې.هغه قذف نه وی.بلکه د قاذف تصديق وی.نو شبه پيدا شوه.او حدود، شبهاتو سره ختميږی.او که ګونګا اشارې سره زيد باندې د زنا تهمت اولګولو.نو ګونګا باندې به حد قذف نشی لګولې.ځکه چې ګونګا صرف اشاره کړې ده.چه په دې کي ډير احتمالات دی.او د حد قذف لپاره شرط دا دې.چه صراحت سره د زنا تهمت اولګولې.او د ﴿إذا فات الشرط فات المشروط﴾ قاعده کليه ( مشهوره) ده.

## په حدودو او قصاص کښې فرق

ثُمَّ الْفَرْقُ بَيْنَ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ أَنَّ الْحَدَّ لَا يَثْبُتُ بِبَيَانٍ فِيهِ شُبْهَةٌ بيا د حدودو او قصاص په منځ کي توپير دا دې.چه حد په داسې بيان سره نه ثابتيږی.چه په هغې کي شبه وی أَلَا تَرَى أَنَّهُمْ لَوْ شَهِدُوا بِالْوَطْءِ الْحَرَامِ أَوْ أَقَرَّ بِالْوَطْءِ الْحَرَامِ لَا يَجِبُ الْحَدُّ آيا ته نه ګورې.که ګواهانو د حرام وطی ګواهی ورکړله.يا ده پخپله د حرام وطی اقرار اوکړو.نو حد به واجب نه وی ،وَلَوْ شَهِدُوا بِالْقَتْلِ الْمُطْلَقِ أَوْ أَقَرَّ بِمُطْلَقِ الْقَتْلِ يَجِبُ الْقِصَاصُ وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ لَفْظُ التَّعَمُّدِ او که خلګو

د مطلق قتل ګواهي ورکړله. یا مجرم پخپله د مطلق قتل اقرار اوکړو. نو قصاص به واجب وی. اګرچه لفظ د تعمد نه دې موجود شوې وَهٰذَا لِأَنَّ الْقِصَاصَ فِيهِ مَعْنَى الْعِوَضِيَّةِ او دا خکه چې قصاص، په دې کې د عوض کیدو معني ده لِأَنَّهُ شُرِعَ جَابِرًا خکه چې قصاص دنقصان د جبر (یعنی د نقصان د پوره کولو) لپاره مشروع شوې دي فَجَازَ أَنْ يَثْبُتَ مَعَ الشُّبْهَةِ كَسَائِرِ الْمُعَاوَضَاتِ الَّتِي هِيَ حَقُّ الْعَبْدِ نو جائز ده. چه قصاص شبهې سره ثابت شی. هغه واړه معاوضات کوم چې د بنده حق دي أَمَّا الْحُدُودُ الْخَالِصَةُ لِلّٰهِ تَعَالَى فَشُرِعَتْ زَوَاجِرَ بهرحال حدود خالص د الله تعالی لپاره زاجر جوړ شوی او مشروع شوی دی وَلَيْسَ فِيهَا مَعْنَى الْعِوَضِيَّةِ او په دې کې دعوض کیدو معنی نشته فَلَا تَثْبُتُ مَعَ الشُّبْهَةِ لِعَدَمِ الْحَاجَةِ نو حدود به د حاجت نه کیدو په وجه شبهې سره نه ثابتیږی.

**حل اللغة*** ① **زواجر:** جمع د زاجر: رټونکې، زورنه ورکونکې

**تشریح:-** دلته دا سوال پیدا کیږي. چه په قصاص او حدود کې توپیر ولې اوشو. چه د ګونګا په کتابت او اشارې سره قصاص جائز دې. خو حد جاری کول جائز نه دی. حالانکه په ښکاره د دواړو یوه درجه ده؟ نو خواب نې ورکړو. چه په دې دواړو کې توپیر دې. او هغه توپیر دا دې. چه په حدودو کې به معمولي شان شبه هم نشي برداشت کولې. او په قصاص کې معمولي شان شبه برداشت کولې شي. ددې د ثبوت لپاره اوګورئ. که ګواهانو ګواهي ورکړله. چه زید حرام وطی کړې ده. یا زید پخپله د حرام وطی اقرار کړې وی. نو په دواړو صورتونو کې به زید باندې نشي جاری کولې. خکه چې په حالت د حیض کې هم وطی کول حرام دی. خو ددې په وجه حد نه واجبیږی. او دغه ډول مجوسیه وینځې سره وطی کول هم حرام دی. خو ددې په وجه حد نه واجبیږی. او د وطی حرام فرد کامل زنا ده. ددې باوجود هم ددې شهاد او ددې اقرار په وجه حد نه واجبیږی.

① اوکه ګواهانو دا ګواهي ورکړله. چه زید خالد قتل کړې دې. یا زید پخپله اقرار اوکړو. چه آو ما خالد قتل کړې دې و په دواړو صورتونو کې به زید باندې قصاص واجب وی. حالانکه قصاص صرف په قتل عمد کې واجبیږی. او د لفظ عمد دلته هیڅ ذکر نه دې راغلې. ددې باوجود هم ددې شبې برداشت کړې شوې دې. او قصاص واجب کړې شوې دې. نو ددې تفصیل نه معلومه شوه. چه په حد او قصاص کې توپیر دې. که په حد کې څه شبه وی. نو د حد ثبوت به نه کیږی. اوکه په قصاص کې معمولي شان شبه وی. نو قصاص ثابتیدې شی.

② اوس پاتې شوه دا خبره چې ددې څه وجه ده. چه د حد د شبهې په وجه ثبوت نه کیږی. او د قصاص کیږی؟ نو ددې خواب نې ورکړو. چه په قصاص کې دعوض کیدو جهت دې. دا د بنده حق دې. یعنی قصاص ددې لپاره مشروع شوې دې. چه د قاتل نه کوم قصور (او کوتاهی) صادر شوې ده. د هغې تلافی (او پوره والې) اوشی. نو دغه ډول کوم چې دټولو هغه معاوضاتو حکم دې. کوم چې د بنده حق دې. چه شبهې سره هم ددې ثبوت کیږی. دغه ډول د قصاص ثبوت هم شبهې سره کیږی. او پاتې شو حدود، نو په دې کې دعوض کیدو معنی نشته. بلکه حدود زواجر دی. یعنی حدود ددې لپاره مشروع شوی دی. چه خلګ ددې کارونو د ارتکاب نه بچ شی. په دې وجه ددې دواړو په منځ کې توپیر کول ضروری دی. نو د قصاص ثبوت به شبهې سره کیږی. او دحدودو ثبوت به شبهې سره نه کیږی. دا د مرغیناني رحمه الله د تقریر حاصل دې. په نورو الفاظو کې داسې چې قصاص جابر دې. (چې په دې سره د نقصان تلافی کیږی). او حد زاجر دې. او په جابر کې د شبهې تحمل (او برداشت) کیدای شی. خو په زاجر کې د شبهې تحمل نه کیږی.

فائده* مرغیناني رحمه الله دلته دا تقریر کړې دې. چه د قصاص ثبوت شبهې سره کیږی. صاحب د نتائج الافکار هغه واړه خایونه دلته شمار کړی دی. کوم کوم خائې کې چې مرغیناني رحمه الله دا بیان کړې دې. چه قصاص شبهې سره ساقطیږی. نو دده د کلام حاصل دا دې. چه دا دلیل تام نه دې.



## د غائب لیکل د قصاص په اړه څنګې حجت دې اوکه نه؟

وَذَكَرَ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ أَنَّ الْكِتَابَ مِنَ الْغَائِبِ لَيْسَ بِحُجَّةٍ فِي قِصَاصٍ يَجِبُ عَلَيْهِ او د مبسوط په کتاب الاقرار کې دی. چه د غائب تحریر د هغه قصاص په سلسله کې حجت نه دې. کوم چې په غائب باندې واجب وی وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ الْجَوَابُ هُنَا كَذٰلِكَ او احتمال شته. چه دلته په (ګونګا کې) خواب هم هغه شان وی فَيَكُونُ فِيهِمَا رِوَايَتَانِ نو د ګونګا په مسئله کې به دوې (دوه) روایتونه شی وَيُحْتَمَلُ أَنْ يَكُونَ مُفَارِقًا لِذٰلِكَ او احتمال شته. چه ګونګا د غائب نه جلا وی لِأَنَّهُ يُمْكِنُ الْوُصُولُ إِلَى نُطْقِ الْغَائِبِ فِي الْجُمْلَةِ لِقِيَامِ أَهْلِيَّةِ النُّطْقِ خکه چې د غائب نطق (خبرو) پورې رسیدل فی الجمله ممکن دی. د نطق د اهلیت قائمیدو په وجه وَلَا كَذٰلِكَ الْأَخْرَسُ لِتَعَذُّرِ الْوُصُولِ إِلَى النُّطْقِ لِلْآفَةِ الْمَانِعَةِ او ګونګا داسې نه دې. کلام پورې د رسیدو متعذر کیدو په وجه. د هغه آفت په وجه کوم چې د نطق نه مانع دې.

**تشریح:-** وړاندې د جامع صغیر عبارت تیر شوې دې. او مرغیناني رحمه الله په هغې باندې تفصیلي بحث کړې دې. چه ددې حاصل دا وو. که ګونګا د لیکلو په ذریعه یا د اشارې په ذریعه د قصاص اقرار او اعتراف اوکړی. نو دده اقرار به معتبر وی. او په ده به قصاص واجب وی. خو امام محمد رحمه الله د مبسوط په کتاب الاقرار کې دا مسئله بیان کړې ده. که یو غائب سړې د تحریر په ذریعه اقرار اوکړی. چه په ما باندې قصاص دې. نو دده دا تحریر او تحریری اقرار حجت نه دې. او په ده باندې به قصاص واجب نه وی. دا جزئیه د مبسوط ده. اوس په دې باندې حضرت مرغیناني رحمه الله څه تبصره کوی. فرمانی. چه د مبسوط دا جزئیه مخې ته کیخودې شی. نو دوې (دوه) احتماله مخې ته راځی. ① چې د ګونګا دتحریر هم دا حکم وی. کوم چې د غائب د تحریر دې. یعنی که ګونګا د تحریر په ذریعه د قصاص اقرار اوکړی. نو دده تحریر به حجت نه وی. او په ده به قصاص واجب نه وی. حالانکه د جامع صغیر روایت ددې په عکس دې. نو اوس ونیلې کیدای شی. چه د ګونګا په مسئله کې د حنفیانو رحمهم الله په نیز دوې (دوه) روایتونه دی. یو هغه کوم چې په جامع صغیر کې مذکور دې. او دوهم هغه کوم چې د مبسوط روایت نه معلومیږی. ② دوهم احتمال دا دې. چه د مبسوط دا جزئیه صرف په غائب باندې مقصود اوساتلې شی. او د ګونګا هم هغه حکم اوګرځولې شی. کوم چې په جامع صغیر کې دې. نو اوس به د ګونګا په مسئله کې دوې (دوه) روایتونه نه وی. بلکه د ګونګا او غائب په مسئله کې توپیر دې. او په مبسوط کې صرف د غائب مسئله ذکر ده. او په جامع صغیر کې د ګونګا مسئله ذکر ده. او په غائب او ګونګا کې وجه د توپیر دا ده. چه غائب د حاضریدو نه روسته په نطق او خبرو باندې قادر دې. خکه چې په ده کې د کلام کاوه اهلیت موجود دې. او په ګونګا کې د خبرو کاوه اهلیت نشته. خکه چې هغه د خپلو خبرو د آلې په ذریعې سره معذور شمار کړې شوې دې.

## چه په لیکلو قادر وی د هغه د اشارې حکم

وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى أَنَّ الْإِشَارَةَ مُعْتَبَرَةٌ وَإِنْ كَانَ قَادِرًا عَلَى الْكِتَابَةِ او دا مسئله په دې خبره دلالت کوی. چه اشاره معتبر ده. اګرچه هغه په کتابت باندې قادر وی بِخِلَافِ مَا تَوَهَّمَهُ بَعْضُ أَصْحَابِنَا رَحِمَهُمُ اللّٰهُ أَنَّهُ لَا تُعْتَبَرُ الْإِشَارَةُ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْكِتَابَةِ په خلاف ددې صورت چې زمونږ بعضو اصحابو رحمهم الله ددې توهم کړې دې. چه اشاره کتابت باندې قدرت سره معتبر نه ده لِأَنَّهُ حُجَّةٌ ضَرُورِيَّةٌ خکه چې اشاره یو ضروری حاجت دې وَلَا ضَرُورَةَ او دلته هیڅ اړتیا نشته. (نو اشاره ولې معتبر ده). لِأَنَّهُ جَمَعَ هٰهُنَا بَيْنَهُمَا خکه چې امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې ددوی دواړو په منځ کې جمع کړې ده فَقَالَ: أَشَارَ أَوْ كَتَبَ، وَإِنَّمَا اسْتَوَيَا نو داسې نې فرمائیلی دی. چه «اشار او کتب» او دوی دواړه برابر دی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُجَّةٌ ضَرُورِيَّةٌ خکه چې په دوی دواړو کې هر یو ضروری حجت دې وَفِي الْكِتَابَةِ زِيَادَةُ بَيَانٍ لَمْ يُوجَدْ فِي الْإِشَارَةِ او په کتابت کې د بیان داسې زیاتوالې دې. چه دا په اشاره کې نه موندلې کیږی وَفِي الْإِشَارَةِ زِيَادَةُ أَثَرٍ او په اشارې کې د یو امر زیاتوالې دې لَمْ يُوجَدْ فِي الْكِتَابَةِ او

کوم چې په کتابت کې موجود نه ده **لِمَا أَنَّهُ أَقْرَبُ إِلَى النُّطْقِ مِنْ آثَارِ الْأَقْلَامِ فَاسْتَوَيَا** ځکه چې اشاره د قلمونو د آثارو په مقابله کې نطق (خبرو) ته زیاته نژدې ده.نو دوی دواړه برابر شو.

**تشریح:-** مرغیناني رحمه الله د اصل مسئلې تفصیلات بیان کړل.اوس ددې مسئلې نه د مستنبط کیدونکو احکامو ذکرکوي.نو فرمائي.چه امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې دا مسئله بیان کړې ده.او دا عبارت ئې ارشاد فرمائیلي دي. «إذا كان الأخرس يكتب كتاباً أو يومئ إيماء يعرف بـه....» ددې مطلب دې اشارات او کتب ( یعنی تحرير)،یعنی د امام محمد رحمه الله د کلام حاصل دا دې.چه د ګونګا اشاره او دده تحرير دواړه برابر دی.یو ته په بل باندې هیڅ اوچتوالې او برتري حاصل نه ده.نو ددې مسئلې نه خبره معلومه شوه.چه زمونږه بعضو اصحابو رضي الله عنهم ته چې کوم دا وهم شوې دې.چه کله ګونګا ته په کتابت او لیکلو باندې قدرت وی.نو دغه وخت به دده د اشارې هیڅ اعتبار نشی کولې.او ددوی دلیل دا دې.چه ،، الضرورة تتقدر بقـدر الضــرورة،، قاعده کلیه ده.او اشاره یو داسې شئ دې.چه ددې د اړتیا او مجبورئ اعتبار کولې شی.او دلته چونکه ګونګا ته په لیکلو او کتابت باندې د قدرت په وجه د اشارې اعتبار نشی کولې.د ذکر شوې قاعدې په لحاظ سره.خو ددې حضراتو دا وهم صرف وهم دې.ځکه چې امام محمد رحمه الله مسئله بیان کړې دې.خو په دوی دواړو کې ئې هیڅ توپیر نه دې کړې.( کما مر).بیا دا ونیل.چه اشاره د اړتیا په وجه ده.او کتابت اصل دې.دا هم غلط دی.بلکه اشاره او کتابت دواړه د اړتیا په وجه دی.او اصل نطق او کلام کول دی.او دا دواړه ضروري حجت دې.او دوی دواړو کې یوته په بل باندې هیڅ برتري حاصل نه ده.ځکه چې په یو اعتبار سره اګرچه کتابت قوي معلومیږي.خو په بل اعتبار سره اشاره قوي معلومیږي.نو د دواړو درجه برابر ایخودې شوې ده.که په دې اعتبار سره اوکتلې شی.چه مفهوم کتابت سره صفا معلومیږي.او په اشاره کې داسې خبره نشته.نو په دې اعتبار سره خو د کتابت او لیکلو غوره کیدل معلومیږي.او که په دې اعتبار سره اوکتلې شی.چه تحرير خو دده د لرې اثارو ځنې دې.او اشارات دده د نژدې آثارو ځنې دې.یعنی په تحرير کې لیکلی شوی نقوش د قلم آثار دی.او د اشاراتو تعلق براه راست دده اندامونو او بدن سره دې.نو د اشاراتو د براه راست کیدو په وجه نطق (خبرو) ته زیات نژدې دی.نو دوی دواړو ته برابر درجه ورکړې شوې ده.

## د عارض په وجه د ژبې بندیدو حکم

**وَكَذَلِكَ الَّذِي صَمَتَ يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ لِعَارِضٍ** و هم دغه ډول هغه سړې چې هغه یوه ورځ یا دوې (دوه) ورځې د څه عارض په وجه خاموش پاتې شو **لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُعْتَقَلِ لِسَانُهُ أَنَّ آلَةَ النُّطْقِ قَائِمَةٌ**.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ د هغه سړې په اړه کې بیان کړې دې.دکوم چې ژبه بنده شوې وی.چه آله د نطق قائم ده **وَقِيلَ هَذَا تَفْسِيرُ لِمُعْتَقَلِ اللِّسَانِ** او ونیلی شوی دی.چه دا د معتقل اللسان ( یعنی د ژبې بندیدو) تفسیر دې.

**تشریح:-** په وړاندې تیره شوې مسئله کې د جامع صغیر عبارت تیر شوې دې.چه د هغې آخری عبارت دا وو. «ولا يجوز ذالك في الذي يعتقل لسـانه» نو دا عبارت معطوف علیه دې.او دا کوم عبارت چې دلته مذکور دې.دا د هغې معطوف دې.یعنی لکه ځنګه چې هغه سړې دچا چې ژبه بنده شوه.نو د تیرشوی تفصیل مطابق د هغه اشارې سره اقرار جائز نه دې.دغه ډول دهغه کس حکم دې.د کوم چې د څه عارض په وجه یوه یا دوې (دوه) ورځې خاموش پاتې شو.او هیڅ خبرې ئې نشوې کولې.نو په سر سره به دده اشارات هم معتبر نه وی.ځکه چې په ده کې د نطق آله موجود او برقرار ده.او بعضو حضراتو دا هم ونیلی دی.چه د امام محمد رحمه الله عبارت د معتقل اللسان تفسیر دې.او موږ وړاندې ددې تفسیر بیان کړې دې.

## مذبوحه او مړزګې وزه (چیلئ) ګډه وډه شی نو څه حکم دې ؟

**قَالَ** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائیلی دی **وَإِذَا كَانَتِ الْغَنَمُ مَذْبُوحَةً وَفِيهَا مَيْتَةٌ** و کله چې ډیرې



مذبوحه وزه (چیلئ) وی.او په هغې کې مړزګې هم وی **فَإِنْ كَانَتِ الْمَذْبُوحَةُ أَكْثَرَ تَحَرَّى فِيهَا وَأَكَلَ** نو که مذبوحه زیاتې وی.نو په دې چیلو کې دې تحري اوکړی.او اودې خوری **وَإِنْ كَانَتِ الْمَيْتَةُ أَكْثَرَ أَوْ كَانَا نِصْفَيْنِ لَمْ يَأْكُلْ** اوکه مرداري زیاتې وی.یا دواړه نیم په نیمه وی.نو خوړلې دې نشی.

**تشریح:-** ډیرې وزه (چیلئ) په یو ځائې کې پرتې دی.په هغې کې بعضې ذبح کړې شوی دی.او څه مرداري دی.او دا معلومه نه ده.چه کومه مړزګې ده.او کومه مذبوحه ده.که په یوه نښانه دا معلومه شی.چه دا مذبوحه ده.او دا مړزګې ده.نو د مذبوحې خوراك جائز دې.اوکه معلومه نشی.نو کتلې به شی.چه مذبوحه د مردارو نه زیاتې دی اوکه نه دی.که مذبوحه د مردارو نه زیاتې وی.نو د تحري نه روستو ددې چیلو نه د هغه چیلو خوراك جائز دې.د کومو په اړه کې چې دده په تحري کې دا واقع شوې وی.چه دا مذبوحه ده.او د کومو په اړه کې چې تحري دا وی.چه دا مړزګې ده.نو دهغې خوراك جائز نه دې.اوکه دواړه برابر وی.یا مرداري زیاتې وی.نو په دې دواړو صورتونو کې دتحري او عدم تحري په دواړو صورتونو کې خوراك جائز نه دې.

## په ذکرشوې مسئله کښې د مجبورئ او د اختیار د حالت فرق

**وَهَذَا إِذَا كَانَتِ الْحَالَةُ حَالَةَ الِاخْتِيَارِ** او دا حکم هغه وخت دې.کله چې حالت د اختیار وی **أَمَّا فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ يَحِلُّ لَهُ التَّنَاوُلُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ** بهرحال د اړتیا حالت کې دده لپاره خوراك په دې ټولو صورتونو کې جائز دې **لِأَنَّ الْمَيْتَةَ الْمُتَيَقَّنَةَ تَحِلُّ لَهُ فِي حَالَةِ الضَّرُورَةِ** ځکه چې کومه یقیناً مردار وی.دده لپاره په حالت د اړتیا کې حلاله ده **فَالَّتِي تَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ ذَكِيَّةً أَوْلَى، غَيْرَ أَنَّهُ يَتَحَرَّى** نوهغه کومه چې د مذبوحه کیدو احتمال لری.په درجه اولی ( به حلاله وی).علاوه ددې خبرې نه چې تحري به کوی **لِأَنَّهُ طَرِيقٌ يُوَصِّلُهُ إِلَى الذَّكِيَّةِ فِي الْجُمْلَةِ** ځکه چې تحري یوه داسې طریقه ده.چه دا فی الجمله ده لره مذبوحه پورې رسوی **فَلَا يَتْرُكُهُ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ** نو دې به د اړتیا نه بغیر تحري نه پریږدی.

**تشریح:-** وړاندې چې کوم حکم بیان کړې شوی دې.دا په هغه حالت کې دې.کله چې د مجبورئ او اولړې حالت نه وی.ګنی د اولړې او مجبورئ په حالت کې په ټولو صورتونو کې خوراك او اکل جائز دې.که مذبوحه زیاتې وی او که کمې یا برابرې وی.ځکه چې په حالت د اولړې کې چې ددې حرام کیدل یقیني وی.هغه هم حلال ده.نو په کومه کې چې د مذبوحه کیدو او حلال کیدو احتمال دې.هغه به په درجه اولی حلال وی.خو په حالت د اضطرار کې به هم که دومره ګنجائش وی.چه تحري کولې شی.نو تحري به دلته کې هم نه پریږدی.ځکه چې تحري یو داسې دلیل دې.چه دا فی الجمله مذبوح پورې د رسولو ذریعه ده.نود اړتیا نه بغیر به تحري اوس هم نه پریږدی.خو که د اولړې حالت ډیر سخت وی.( چې تحري نشی کولې).نو په ټولو صورتونو کې دده لپاره خوراك جائز دې.دا حکم چې بیان شو.زموږ مسلك دې.په دې کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې.نو په راروان عبارت سره د امام شافعی رحمه الله اختلاف بیانوی.

## د امام شافعی رحمه الله نقطه نظر او دلیل

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ الْأَكْلُ فِي حَالَةِ الِاخْتِيَارِ وَإِنْ كَانَتِ الْمَذْبُوحَةُ أَكْثَرَ** او امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د اختیار په حالت کې خوراك جائز نه دې.اګرچه مذبوحه زیاتې وی **لِأَنَّ التَّحَرِّيَ دَلِيلٌ ضَرُورِيٌّ** ځکه چې تحري ضروري دلیل دې **فَلَا يُصَارُ إِلَيْهِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ** نو د اړتیا نه بغیر به دې اړخ ته رجوع نشی کولې **فَلَا يُصَارُ إِلَيْهِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ وَلَا ضَرُورَةَ لِأَنَّ الْحَالَةَ حَالَةُ الِاخْتِيَارِ** او دلته هیڅ اړتیا نشته.ځکه چې حالت د اختیار حالت دې.

**تشریح:-** دا د امام شافعی رحمه الله مسلك دې.دوی فرمائیلی دی.چه په حالث د اختیار کې یعنی کله چې د اولړې او مجبورئ حالت نه وی.ددې چیلو خوراك جائز نه دې.نه په تحري سره، او نه د تحري نه بغیر، که مذبوحه زیاتې وی.او که کمې یا برابرې وی.او دوی په دې باندې دلیل پیش کړې دې.چه تحري څه اصلی دلیل نه

دې.بلکه تحری داسې دلیل دې.چه ددې نه د اړتیا په وجه کار اخستلې شي.یعنی دا دلیل ضروري دې.او ،، الضرورة تتقدر بقدر الضرورة،، قاعده کلیه د ه.او دلته هیڅ اړتیا نشته.ځکه چې دا حالت د اختیار دې.د اضطرار حالت نه دې.ګنی په حالت د اضطرار کې ټولې جائز دی.

## د احنافو رحمهم الله دلیل

وَلَنَا اَنَّ الْغَلَبَةَ تُنَزَّلُ مَنْزِلَةَ الضَّرُوْرَةِ فِيْ إِفَادَةِ الْإِبَاحَةِ اوزمونږ دلیل دا دې.چه غلبه ( او اکثریت) د اباحت فائدې ور کاوه لپاره د اړتیا په درجه کې راکوزولې شي اَلَا تَرٰي اَنَّ اَسْوَاقَ الْمُسْلِمِيْنَ لَا تَخْلُوْ عَنِ الْمُحَرَّمِ الْمَسْرُوْقِ وَالْمَغْصُوْبِ وَمَعَ ذٰلِكَ يُبَاحُ التَّنَاوُلُ اعْتِمَادًا عَلَى الْغَالِبِ آیا ته نه ګورې.چه د مسلمانانو بازارونه د حرامو څیزونو، او د غلا شوو، او د مغصوب نه خالی نه وی.او ددې باوجود خوراك جائز دې.په غالب باندې اعتماد کاوه سره وَهٰذَا لِاَنَّ الْقَلِيْلَ لَا يُمْكِنُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهُ او دا ځکه چې قلیل نه بچ کیدل ممکن نه دی وَلَا يُسْتَطَاعُ الْاِمْتِنَاعُ عَنْهُ او ددې نه د بچ کیدو توان نشته فَسَقَطَ اعْتِبَارُهُ دَفْعًا لِلْحَرَجِ كَقَلِيْلِ النَّجَاسَةِ وَقَلِيْلِ الْاِنْكِشَافِ نو د حرج لرې کاوه لپاره ددې اعتبار ساقط شو. لکه قلیل نجاست، او قلیل انکشاف ( ښکاره کیدل) بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا نِصْفَيْنِ أَوْ كَانَتِ الْمَيْتَةُ أَغْلَبَ په خلاف ددې صورت کله چې دا دواړه نیم په نیمه وی.یا مردار غالب وی لِاَنَّهُ لَا ضَرُوْرَةَ فِيْهِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ، وَإِلَيْهِ الْمَرْجِعُ وَالْمَآبُ المرجع والمآب ځکه چې په دې کې هیڅ اړتیا نشته.والله اعلم بالصواب.

**حل اللغة:** ① انکشاف: ښکاره کیدل ② المرجع: واپس کیدل

**تشریح:-** ددې ځائې نه مرغینانی رحمه الله خپل دلیل بیانوی.حاصل د دلیل دا دې.چه د اړتیا په وخت خو اباحت ثابتیږي.لکه څنګه چې د خصم ( فریق مخالف) په نیز هم دا خبره مسلم ده.دغه ډول کثرت او غلبه هم د اباحت فائده ورکوی.یعنی کله حلال شیان خپل ضد سره مخلوط شي.او حلال شیان زیات وی.نو اباحت ثابتیږي. لنډیز د کلام دا چې کثرت او اړتیا دواړه د اباحت ثابتولو اسباب دی.نو اوګورئ.چه د مسلمانانو په بازار کې حرام شیان هم خرڅیږي.او غلا شوی او مغصوب ( شیان (څیزونه )) هم خرڅیږي.خود مباحو څیزونو غلبه او کثرت دې.نو په غلبه او کثرت باندې اعتماد کړې شوې دې.او وئیلی شوی دی.چه د مسلمانانو د بازار نه سامان اخستل جائز دی.ګنی د امام شافعی رحمه الله د قول په قیاس باندې نه جائز کیدل.ځکه چې په دې بازارونو کې محرمات وغیره هم خرڅیږي.خو لکه څنګه چې دلته کې ددې قلیل اعتبار نه دې ساتلې شوې.دغه ډول د چیلو په مسئله کې هم د قلیل اعتبار نه دې ساتلې شوی.او د تحری نه روسته د اباحت قول اختیار کړې شوې دې.

او ددې وجه دا هم ده.چه د قلیل نه بچ کیدل ممکن نه دی.او ددې نه د بچ کیدو توان نشته.نو د حرج لرې کاوه لپاره د قلیل اعتبار نه دې کړې شوې.لکه د قلیل نجاست او قلیل انکشاف (او ښکاره کیدو) اعتبار نه دې ساتلې شوې.چه ددې تفصیل د هدایة په ړومبی ټوك کې پیل کې تیر شوې دې.البته که مذبوحه او مردارې دواړه نیم په نیمه وی.یا مردارې زیاتې وی.نو دلته به ددې د اباحت حکم نشی ورکولې. ځکه چې دلته نه اړتیا شته.ځکه چې دا حالت د اختیار دې.او نه د اړتیا قائم مقام دې. یعنی د غلبې او کثرت.

**والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب**

## کتاب الجنايات



## باب مايوجب القصاص ومالايوجبه

## باب القصاص فيما دون النفس

فصل فی أصابع الید نصف الدیة







فصل فی الجنین



باب ما یحدث الرجل فی الطریق

باب جناية المملوك والجناية عليه







فصل (فی الجناية عليه)

**كتاب الوصايا**







**باب الوصية بثلث المال**

(فَصْلٌ فِي اعْتِبَارِ حَالَةِ الْوَصِيَّةِ)





(بَابُ الْعِتْقِ فِي مَرَضِ الْمَوْتِ)



(بَابُ الْوَصِيَّةِ لِلْأَقَارِبِ وَغَيْرِهِمْ)

فصل في الشهادة



كتاب الخنثى

فصل في بيانه



فصل في أحكامه

[املہ (وجې)
[اړخ (طرف)
[انډیوال (ملګری)
[اوپړیمنځل (اووینځل)
[اړتیا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انډیوالان (ملګري)
[ایله کرې (پرانستې)
[انا (نیا)
[اکا (تره)
[اونه کی (اونکړې)

(ب)
[برخو (حصو)
[برخه (حصه)
[بیرغ (جنډا)
[بلا ناغه (پرله پسې)
[باید ده (پکار ده)
[بوخت (مشغول)
[بولې (متیازې)
[بازې (لوبې)
[بې غوری (کوتاهي)
[بوق (قب)
[بته (مټه)
[بندی خانه (جیلخانه)

(پ)
[پاته (باقي)
[پیل (شروع)
[پوښتنه (تپوس)
[په عامه توګه (عام طور)
[پرېښولو (پرېخودلو)
[پاته (باقي)
[پرېښول (پرېخودل)
[پرېښولو (پرېخودلو)
[پزه (پوزه)
[پر (په)
[پرېښولو (پرېښولو )

[پیوسته (مسلسل)
[پیشي (پیشو)
[پیشلمی (پیشمنې)
[پور (قرض)
[پوست (پوستکې)
[پور (قرضې)
[پوولې (څرولې)
[پښو (خپو)
[پښې (خپې)
[پوول (څرول)
[پلنډه (تان)
[پرېښودې (پرېخودې)

(ت)
[توانګر (مالدار)
[توپیر (فرق)
[توپیر (توپیر (تبدیلي )
[تیخرګ (ترخ)
[توان (طاقت)
[توپیر (تبدیلي)

(ټ)
[ټوک (جلد)

(ث)
[ټوک (جلد)

(ج)
[جلا (جدا)
[جلا جلا (جدا جدا)

(چ)
[چوپوالې (خاموشي)
[چپه (ګس)
[چوپ (چپ)
[چم (چل)
[چنګوښه (چیندخ)
[چوغکه (مرغۍ)
[چتلې (ګندګي)
[چمپلان (څپلۍ)
[چاغه (تیاره)
[چمپلان (څپلۍ)

[چور (حمله)
[چم (چل)

(ح)
[حکمـي مـرداري (حکمـی نجاست)

(خ)
[خلګ (خلق)
[خلګو (خلقو)
[خپاره (خواره)

(د)
[دغه ډول (دغه شان)
[د عمل ور (د عمل وړ)
[درلودی (لرلو)
[دریېم (دریم)

(ر)
[راسته (ښې)
[راتګ (راتلل)

(ز)
[زمونږ (مونږ)
[زیږیدل (پیدائش)

(ژ)
[زمونږ (مونږ)
[زیږیدل (پیدائش)
[ژباړې (ترجمې)
[ژباړه (ترجمه)
[ژي (مشکیزه)
[ژوول (جوئیل)
[ژي (مشکیزه)

(س)
[سهار (صبا)
[ساتنه (حفاظت)
[سربیره (دپاسه)
[سراج (ډیوه)
[سلواغه (بوقه)
[ساعتونه (لمحات)
[ساعت (لحمه)
[سراج (ډیوه)
[سپرلۍ (سورلۍ)

[مخکه (زمکه)

(ن)

[نبنانه (نبنه)

[نجوني (نجوني (جينکۍ))

[نفر (کسان)

[نبنليدل (لګيدل)

[ناړې (لياړې)

[نبنتيزل (نچوړول)

[نژدې (نيزدې)

[نومول (نامدار)

(و)

[ويش (تقسيم)

[واړه (تول)

[وزه (چيلۍ)

[ولاړ شه (لاړ شه)

[وزون (پتون)

[ورونان (پتونان)

[ور کولای شی (کولې شی)

[ور کولاې (کولې)

[وپلوری (خرڅه کړی)

[وياله (نهر)

(ه)

[هسکې (پچې)

[هنداره (شيشه)

[کولای شی (کولې شی)

[کوټ (خيرې)

[کوڅيو (کونسۍ)

[کبنتۍ (کشتۍ)

[کونجته (کونځله)

[کولاې (کولې)

[کرار کرار (مزه مزه))

(ګ)

[ګډ (شامل)

[ګونډۍ (کونډۍ)

[ګوله (نمرۍ)

[ګبنتونه (چکرونه)

[ګټور (ګټور (فائده مند))

[ګټور (فائده مند)

[ګرځ (ګرد)

(ل)

[لنډيز (خلاصه)

[لمر (نمر)

[لينګۍ (پنډۍ)

[لنګوټې (پټکی)

[لږترلږ (کم ازکم)

[لويديځ (مغرب)

[لاستي (لاسکې)

[لوټه (کوزه)

[لاچاری (مجبوری)

(م)

[مهال (دوران)

[ماپبنين (ماسپخين)

[ميړه (خاوند)

[مسبوق (خليفه)

[مرداری (پليتی)

[منځنی (درميانه)

[مسافه (مسافت)

[مولبنتی (پيوست))

[مچی کول (بنکلول)

[منډې (مياندې)

[مړينه (مرکيدل)

[منګوړ (کتمل)

[سرپټ (سرپوبن)

[سرکبنه (سرکشه)

[ساعت (لمحه)

[سپينسي (مزې)

(ش)

[شی (څيز)

[شيان (شيان (خګيزونه))

[شرموبن (شرمخ)

[شاګر (شاګرد)

[شتمن (مالدارن)

[شتمن (مالدارن)

(ص)

[صحرائی (باندېچی)

[صندخ (صندوق)

(ط)

[طرفه (اړخه)

(ع)

[عکس (تصوير)

[عجلی (تيزی)

(ف)

[فرش (قالين)

(ق)

[فرش (قالين)

[قرضونه (پورونه)

[قلف (تاله)

(ک)

[کوبنبن (کوشش)

[کاوه (کولو)

[کيداې (کيدې)

[کومك (مدد)

[کبنته (بنکته)

[کبنينستل (کيناستل)

[کالی (جامه)

[کوڅيو (کونسۍ)

[کشور (شمشتۍ)

[کوڅيو (کوڅو)

[کبنت (پټې)

[کشف (شمشتۍ)